تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ۱


شارح: مولانا ظہور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام د کتور محمد دین المشاوری



تاج کتب خانه (رجسٹرڈ) قصه خوانی پشاور پاکستان

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ۱ پاره ۱ تا ۵


شارح: حضرت مولانا ظهور الباری دیوبندی

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور

فون: 214454

C-24

# ذ تاج البخاري رومبي جلد د مضامينو فهرست

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د اِمام بخاريؒ حالات

**نوم او نسب:** نوم مبارک ئے محمد بن اسمٰعیل بن ابراهیم بن مغیره جعفي بخاري دے. او کنیت ئے ابو عبدالله دے. جعفي بن سعد څوک چه د یمن د قبیلے سردار وو د هغه ټول خاندان او ټول نسل د جُعفي په لقب سره یادولے شي. یمان بخاري جعفي د بخارا والي هم د همدهٔ د نسل یو فرد وو دے د پاره هغهٔ ته هم جعفي ویلے کیدل. د امام بخاري غور نیکه مغیره آتش پرست وو لیکن د یمان بخاري په لاس باندے په اسلام مشرف شو. دے د پاره کوم لقب چه د یمان بخاري وو. هم هغه لقب د مغیره هم شو.

**پیدائش او وفات:** امام بخاريؒ ذ جمعے په ورځ د مازیگر مانځه نه پس په ۱۳ شوال ۱۹۴ هـ کښے پیدا شو او ذ ورکوتي اختر په رومبۍ شپه کومه چه ذ خالي شپه وه د ماښام او ذ ماسخوتن د مونځ تر مینځه په ۲۵۶ هـ کښے وفات شو او د اختر په ورځ د ماسپخین مانځه نه پس دفن کړے شو. د هغوئ عمر دیارلس ورځے کم دوه شپیته کاله وو. د هغوئ مزار د سمرقند نه پنځه میله فاصله باندے خرتنګ نومے کلي کښے جوړ کړے شو. د هغوئ د وفات په واقعاتو کښے دا خبره ډیر عجیبه ده چه کله خلق د هغوئ د جنازے مونځ نه فارغ شو او خاوروته ئے اوسپارلو، نو د قبر نه د مشکو غوندے خوشبوئ راپیدا شوه او تر یو مودے پورے به خلق برابر قبر ته راتلل او د قبر خاوره به ئے ذ مشکو پشان بونیؤله.

د یو بزرګ بیان دے چه ما په خوب کښے اولیدل چه یو خائے کښے رسول الله صلي الله علیه وسلم سره د اصحابو تشریف فرما دے. ما ورته اسلام او کړو. حضورؐ د سلام جواب راکړو. ما ورته عرض اوکړو چه حضورؐ! تاسو دلته په څه وجه رونق افروز یئ. نو وے فرمائیل چه مونږه د محمد بن اسمعیل په انتظار یو. څو ورځے پس ما واوریدل چه امام بخاري په هم هغه تاریخ او هم هغه وخت وفات شوے وو.

علامه فربري واني چه ما محمد بن اسمٰعیل بخاري په خوب کښے اولیدو چه هغهٔ رسول الله صلي الله علیه وسلم پسے روان دے او د حضورؐ د قدم په چاپونو باندے قدم اږدي. یعني امام بخاري د سنت نبویه پوره عامل وو. یو قدم ئے هم د رسول اللّٰهؐ د سنت نه خلاف ایخول نه غوښتل.

د ماشوم والي په زمانه کښے د محمد بن اسمٰعیل بخاريؒ د سترګو نظر ختم شوے وو. یو خلے د هغوئ مور بي بي په خوب کښے اولیدل چه حضرت أبراهیم خلیل الله علیه السلام ورته فرمائي چه اے بنځے! خدائے تعالي ستا د دعا په برکت سره ستا ذ هلک بینائي واپس کړه. چه سحر شو نو امام بخاري بالکل بینا وو.

**د امام بخاري حافظه:** محمد بن بشار څوک چه د امام بخاري (او امام مسلم) استاد وو، هغوئ فرمائي چه په ټوله دنيا کښې اعجاز نما حافظه لرونکي ټول څلور کسان دي. ابو زرعه رازي، مسلم نيشاپوري، عبدالله بن عبدالرحمن سمرقندي، او محمد بن اسمٰعيل بخاري، علامه ابن حجر وائي چه په دغه څلورو واړو کښې امام بخاري ته ترجيح او فضيلت حاصل دے. ذ محمد بن حمدويه قول دے چه ما د محمد بن اسمٰعيل بخاريؒ نه اوريدلي دي، هغوئ فرمائيل چه ماته درے لکه حديثونه ياد دي، په کومو کښې چه دوه لکه غير صحيح دي او يو لک صحيح دي.

محمد بن ازهر سختياني وائي چه زۀ د سليمان بن حرب په لاس کښې اوم او ما امام بخاري هم مونږ سره سامع وو، خو ليکل به ئے نه کول، يو ورځ ذ درس يو ملګري اووے چه او ګورئ په ده باندے څه شوي دي چه ليکل نه کوي. نو امام بخاري ورته اووے چه زۀ بخارا ته لاړ شم نو د خپل ياد نه به ئے اوليکم.

**د امام بخاري علمي امتياز او تبحر:** امام احمد بن حنبلؒ فرمائي چه د خراسان په زمکه د امام بخاري غوندے عالم پيدا شوے نه دے او حافظه په څلورو خراسانيانو باندے ختمه ده په کومو کښې چه يو امام بخاري دے. ابو مصعب فرمائي چه امام بخاري د امام احمد نه زيات فقيه او صاحب بصيرت وو. يو سړي ورته اووے چه دا تاسو څه او فرمائيل؟ ابو مصعب اووے چه که چرے يو نظر په امام بخاري باندے واچوے او يو نظر په امام مالک باندے، نو دواړه به يو بيا مومے. رجاء بن موجي وائي چه امام بخاري ته په نورو عالمانو باندے داسے فضيلت حاصل دے څنګه چه سړو ته په ښځو باندے يو کس سوال او کړو چه آيا په تمامو عالمانو باندے بخاري ته شرف حاصل دے؟ وے فرمائيل چه دا تۀ څه وائے، امام بخاريؒ د خدائے نښو نه يوه نښه ده کومه چه د زمکے په مخ ګرځي. محمد بن اسحق وائي چه د آسمان لاندے ما د امام بخاري نه زيات د حديث عالم بل څوک نه دے ليدلے.

**د امام بخاري زُهد او وَرَع:** علامه وراق بخاري وائي چه کله د امام بخاريؒ والد صيبؒ وفات کيدلو نو احمد بن حفص د هغۀ خوا له ورغے. د امام بخاري والد اووے چه زما په مال کښې نۀ څه درهم ذ حرامو شته او نۀ د مُشبه کتيے. دائے اووے او وفات شو. او امام بخاري په حيثيت ذ وراثت د همدغه مال وارث شو او تر آخر عمر پورے په همدغه مال باندے ئے ترقئ او تزاکئ سره ګزاره کوله، ګويا چرے ئے حرامه نوړئ نه ده خوړلے. وراق وائي چه امام صاحب فرمايل چه ما نۀ خو چرے څه څيز خرڅ کړے دے او نه م اخستے دے بلکه د بل سړي په ذريعه م خرڅول اخستل کړي دي. خلقو ترے تپوس او کړو چه ددے وجه څه ده؟ نو هغوئ او فرمائيل چه په بيع و شرا کښے کمے او زياتے او خلط ملط کيږي او زۀ دانۀ خوښوم.

**د امام بخاري حِلم:** ذ عبدالله بن محمد صيارفي قول دے چه يو خل څما په وړاندے د امام بخاريؒ په

مجلس کښې د هغوئ وينزه کورته دننه تللو د پاره د هغوئ د مخې نه تيره شوه' دغه وخت د امام صيب مخې ته قلمدان پروت وو' وينزه په دغه قلمدان باندې راپريوته. امام صاحب ورته او فرمائيل چه دا څنګه تلل کوې؟ هغې ورته د ګستاخئ لهجه کښې اووې چه: لاره نه وي نو مونږه څه او کړو' څنګه لاړ شو؟ امام صاحب خپل لاس سره هغې ته اشاره او کړه اووې فرمائيل چه خه ماتهٔ آزاده کړې. خلقو ورته عرض او کړو چه حضرت! هغې خو تاسو له غصه ذروسته او تاسو بيا هم په هغې باندې احسان او فرمائيلو. هغوئ جواب ورکړو چه بيشکه هغې زهٔ ناراضه کړې اوم' ليکن زهٔ په دې خپل فعل سره راضي شوم. حقيقت ته رسيدونکي دماغ لرونکي ددې فعل نه د امام موصوف د حلم اندازه کولې شي او بالکل په هم هغه واقعه باندې دا معامله قياس کولې شو چه کله حضرت ابو مسعودؓ خپل غلام په کوړې سره وهلې وو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د روستو نه تشريف راؤړو او هغه ئې ددې فعل نه منع کړلو. او وې فرمائيل چه څومره قدرت تا ته په دهٔ باندې حاصل دې د هغې نه زيات قدرت اللّٰه تعالٰي ته په تا باندې دې. ابو مسعودؓ د هغې نه پس هغه غلام آزاد کړلو' او راغې حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته ئې ددې ذکر او کړو. هغوئ ورته او فرمائيل چه: اَمَا لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ (که داسې دِ نه وې کړې نو اُور به سوزولے وې)

**په مونځ کښې د امام بخاري خشوع او خضوع:** بکر بن منير وائي چه يو ځل امام بخاريؒ مونځ کولو په دې کښې يو مچئ راغله او د هغوئ بدن ئې اولس ځايه او چيچلو ليکن هغوئ مونځ مات نه کړو' مونځ ختمولو نه پس ئې او فرمائيل چه او ګورئ په مانځه کښې راته څه څيز تکليف راکړې دې. چه او کتلې شو نو اولس ځايه مچئ تکونه لګولي وو' او ټول ځايونه پړسيدلي وو.

**په رمضان کښې د امام بخاري تلاوت قرآن:** چه د رمضان مياشت کښې به کله امام بخاري د تراويحو مونځ ورکولو نو په هر رکعت کښې به ئې شل آيتونه لوستل. ليکن تهجد کښې به ئې نيم يا دريمه حصه قرآن روزانه لوستلو' په دې طريقې سره به ئې زيات نه زيات درې ورځو کښې ګنې دوؤ ورځو کښې د تهجد په مونځ کښې يو قرآن ختمولو او بيا د ورځې به ئې هره ورځ يو قرآن ختمولو او فرمائيل به ئې چه د هر ختم قرآن وخت کښې يوه دعا قبليږي وغيره.

**د بخاري شريف تاليف:** امام بخاري د حجاز په دريم سفر کښې مسجد نبوي سره متصل يو شپه خوب کښې اوليدل چه ځما په لاس کښې يو ډير ښائسته د ويښتو مچ بنړک دې اوزهٔ هغهٔ په ډير اطمينان سره وَ هم' سحر له چه امام د مونځ ئه فارغ شو نو د تعبير عالمانو په وړاندې ئې د خپل خوب اظهار او فرمائيلو او د هغې تعبير ئې او پوښتلو' هغوئ ورله جواب ورکړو چه ته به دروغ حديثونه د صحيح حديثونو نه بيلوې. دې تعبير د امام بخاري په زړه کښې د بخاري تاليف کولو احساس پيدا کړو او هغه د

هم هغه وخت نه دې اهم کار طرف متوجه شو. ددې نه علاوه د امام خيال ته نور تقويت دې خبرې سره هم اورسېدو چه د هغوئ استاذ شيخ اسحق راهويهؒ يو خل هغوئ ته او فرمائيل چه "محمد بن اسمعيله! څه ښه به وې چه ته يو داسې کتاب تاليف کړې وې کوم چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د صحيح احاديثو جامع وې" امام بخاري فرمائي چه د محبوب شيخ او د استاذ د ارشاد نه پس ما خپل توجهات "جامع صحيح" طرف له او ګرځول". د امام بخاريؒ به وړاندې اوس صرف يو کار وو او هغه دا چه جامع صحيح د زړه سره په وجود کښې راشي. ددې يو وجه دا هم وه چه تر اوسه پورې د احاديثو کومې نسخې جمع کړې شوې وې هغې کښې به صحيح او غير صحيح باندې څه خاص توجه نه وه ورکړې شوې. ددې نه علاوه اصول هم مخې نه وو کوم چه به صحيح او غير صحيح کښې امتياز پيدا کوي. يو بل څيز هم موندې کېدلو چه د احاديثو سره ئې د علماؤ اقوال هم شامل کړي وو.

د بخاري د تاليف په سلسله کښې امام صاحب د ټولو نه مخکښې کار دا وکړو چه تقريباً د شپږو لکو احاديثو مسودات ئې ترتيب کړل، څو کاله د احاديثو جمع کولو او مسودو جوړولو کښې تير شو. چه ددې نه فارغ شو نو امام بخاري د احاديثو انتخاب شروع کړو او د دغه عظيم ترينې ذخيرې نه ئې يوه يوه آبداره ملغلره راټوله کړه او "جامع صحيح" ته حواله کول ئې شروع کړل. لکه چه امام صاحب پخپله بيان کول چه:

ما په "جامع صحيح" کښې څومره حديثونه ليکلي دي د هر حديث درج کولو نه مخکښې مې دوه رکعته نفل ادا کړي دي". امام بخاري ته به چه د بخاري تاليف کولو په زمانه کښې د يو حديث په اسناد کښې اطمينان او نشو نو هغوئ به روضې مبارکې ته مخامخ د استخارې په نيت دوه رکعته مونځ او کړو، او بيا به ئې مراقبه او فرمائيله او په همدغه حالت کښې به هغوئ ته د زړه اطمينان حاصليدلو، هغوئ ډير خل رسول الله صلي الله عليه وسلم په خوب کښې ليدلو چه هغوئ به د حديث صحت طرفته اشاره فرمائيله غرض دا چه د امام صاحب دا کوشش او محنت تر شپاړسو کالو پورې جاري وو او په دې دوران کښې ئې سوا د بخاري د تاليف نه، او د احاديثو د انتخاب او تحقيق او تنقيد نه سوا بل هيڅ (علمي) کار اونه کړو.

د امام صاحب بيان دې چه "د شپاړسو کالو په اوږده موده کښې ما انتهائي حزم او احتياط سره د شپږو لکو احاديثو د مجموعې نه انتخاب اوکړو او خپل کتاب بخاري مې په حرم محترم او مسجد نبوي کښې ناستې سره مکمل کړو".

**اُستاذان او شاګردان:** علامه ابن حجر عسقلانيؒ فرمائي چه د امام بخاري د استاذانو د شمار څوک

اندازه نشي لګولے. ولے چه هغه حضرات کومو نه چه هغوئ صرف د يو روايت سماعت کړے دے هغوئ يو زر او اتيا حضرات دي. د امام صاحب خپل بيان دے چه "ما د اتيا زرو حضراتو نه روايت کړے دے کوم چه د ټولو نه د اوچتے پائے محدثينو کښے شماريدل. او په پنځو طبقاتو باندے مشتمل ؤو يعني تبع تابعين اتباع تبع تابعين' اقرآن' اصحاب او تلامذه' د امام صاحب په خصوصي استاذانو کښے اسحق بن راهويه' حضرت امام احمد بن حنبل' او حضرت يحيي بن معين او د حسن بن ربيع کوفي نامے ډيرے ښکاره په نظر راځي.

د امام صاحب د شاګردانو د کثرت اندازه ددے خبرے نه لګيدے شي چه علامه فربري فرماني چه کله ما د امام بخاري شهرت او چرچه واوريده او ذ شاګردئ د پاره د هغوئ خدمت ته اورسيدم نو تر هغه وخته پورے څلور نيمے شلے زره (۹۰ هزار) کسان د هغوئ شاګردان شوي وو. په نامور شاګردانو کښے نے امام ترمذي او علامه دارمي هم شامل وو.

**ذ معاصرينو رائے:** د حضرت امام بخاري د عظمت او علمي اوچتوالي اندازه ذ معاصرينو د هغه خيالاتو نه لګيدے شي کوم چه به هغوئ په خپله زمانه کښے ظاهرول. او حقيقت هم دا دے چه د چا د اوچتے مرتبے پيژندلو او معلومولو ددے نه بهتره بله کومه طريقه هم نشي کيدلے. په دے مختصرو غوندے سوانحو کښے دومره ګنجائش نيشته چه هغه ټول آراء او بيانات ظاهر کړے شي کوم چه د امام بخاري باره کښے موندے کيږي لهذا د دريو حضراتو رائے مختصرا پيش کوؤ.

امام الائمه ابوبکر بن محمد بن اسحق بن خزيمة فرماني چه د اسمان لاندے محمد بن اسمعيل بخاريؒ د ټولو نه زيات په حديث باندے پوهيدونکے دے".

ابو محمد عبدالله بن عبدالرحمٰن دارميؒ فرماني چه "زه حجاز' شام او عراق او ذ عربو مختلفو مقاماتو ته تلے يم' عالمانو سره ملاؤ شوے يم ليکن د امام بخاري غوندے د علم و فضل جامع م هيڅوک بيانه موندو"

ابو حاتم الرازيؒ بيان کوي چه "ذ خراسان او عراق زمکے د امام بخاري غوندے شخصيت تر ننه پورے نه دے پيدا کړے".

(عارف)

# پارهٔ اوّل ۱

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## ۱. کتاب الوحی

## ۱. (دَ وحي بیان)

بَاب ۱ : كَيْفَ كَانَ بَدْءُ الْوَحِيُ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰی نُوْحٍ وَّ النَّبِيّٖنَ مِنْ بَعْدِهٖ.

باب ۱ : په رسول الله صلي الله علیه وسلم وحي نازلیدل څنګه شروع شو؟ او دَ الله تعالٰي قول چه مونږ تا ته وحي او لیږلے' څنګه چه حضرت نوحؑ او دَ هغهٔ نه پس پیغمبرانو ته مولیږلے وے.

۱ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدِ نِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيُّ اَنَّهٗ سَمِعَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ نِ اللَّيْثِيَّ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَ اِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَّا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوْ اِلٰى اِمْرَاَةٍ يَّنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

۱ : حمیدي' سفیان' یحیٰي بن سعید انصاري' محمد بن ابراهیم تیمي' دَ علقمه بن وقاص لیثي نه روایت کوي هغه وائي' ما دَ حضرت عمر بن خطابؓ نه په منبر واوریدل هغه ویل ما دَ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چه دَ اعمالو نتائج په نیتونو موقوف وي' او هر سړي ته به هغه رسي' چه دَ هغے ئے نیت کړے وي' نو دَ چا هجرت چه دُنیا دَ پاره وي' چه دُنیا بیا مومي یا دَ یوے ښځے دَ پاره وي' چه هغے سره نکاح اوکړي' نو دَ هغهٔ هجرت به هغے څیز طرف ته شمیرلے شي' چه دَ هغے دَ پاره ئے هجرت کړے وي.

امام بخاري دَ کتاب شروع' دَ وحي نه کړے ده' ځکه چه په حقیقت کښې د رسولؐ کلام هم وحي وي. د لغت په اعتبار دَ وحي معني دَ څه' څیز راکوزیدل یا نازلیدل دي. د شریعت په اصطلاح کښې دَ وحي تعلق صرف د الله کلام سره دے چه په یو رسول باندې دَ الله دَ طرفه نازلیږي. نو مؤلف (امام بخاري) په شروع کښې دَ هغے څیز حقیقت واضح کړو' چه په هغے باندِ دَ دین عمارت ولاړ دے. که وحي نه وے نو قرآن به دنیا ته نهٔ راتلو. او دَ اِسلام دَ دولت نه' به خلق محرومه وو. د دے وجے نه دَ تفصیلي احکامالو ذکر کولو نه

وړاندے ذَ وحي ذَ نازليدو ذكر كول ضروري وؤ. كله چه ذَ وحي ثابتول او په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندے ذَ وحي نازليدل او منلے شو، نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم ذَ رسالت منل واجب او ضروري شو. او ذَ عقلمند انسان د پاره ذَ انكار كولو مجال پاتے نشو وحي څه څيز دے؟ د وحي حقيقت څه دے؟ ذ دے په حقله، اولني احاديثو كښ پُوره د تسلي لاره معلوميږي. مصنّف ذَ ړومبي حصے "سر ليک "وحي" ځكه خوښ كړيدے چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم "وينا" ټوله وحي ده چه دے كتاب كښ ذكر شويده. ذَ وحي كيفيت دا دے چه وحي رسول الله صلي الله عليه وسلم د فرښتے نه پخپله بغير د څه واسطه اخلي. او فرښته ذَ الله د طرفنه راخي. د دے وجے نه، د رسول صلي الله عليه وسلم هره خبره يقيني ده.

وَ مَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰىO اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰىO رسول صلي الله عليه وسلم د خپل خواهش نه خبرے نه كوي. مگر دا هغه ته وحي كيږي.

دا ښكاره خبره ده كه يو سړے د وحي د كيفيت او حقيقت نه بے خبره وي. هغه به ذَ رسالت حقيقت څرنګ او پيژني. د دے باب د سر ليک په باره كښ يو حديث دے باقي احاديث كه د سر ليک مطابق نه دي. ځكه چه اصل مقصد د وحي عظمت او ماهيت ښكاره كول دي. چه وحي څه وخت شوے وه او كوم ځائے وحي راغلے وه دواړه څيزونه راغلل. يو حديث كښ ذَ وحي ځائے او بل حديث كښ د وحي وخت، بيا وحي كښ ذَ الله خبرے راغلے او د رسول صلي الله عليه وسلم خبرے هم وحي ده. ذَ باب اول كښ د قرآن آيت دا ښكاره كوي. چه وحي څه نوے يا نااشنا څيز نه دے. بلكے د رسول صلي الله عليه وسلم نه مخكښ تير شوے رسولانو باندے وحي د خدائے تعالٰي پيغام راتللو. دا د هغه عادت دے. چه څرنګ هغه وحي د شک نه پاكه وه. داسے دا وحي د هدايت ذريعه ده نيغه سمه لاره ښائي. د ګمراهئ نه خلاصے دے.

په شروع كښ دا حديث ځكه ذكر شويدے چه د مصنف نيت او د كتاب لوستونكي نيت سم شي. او په سم روغ نيت كتاب شروع كړي. پدے حديث كښ د هجرت ذكر دے بيا وړاندے احاديثو كښ د غار حراء د يواځے والي بيان دے دا هم د هجرت يو شكل دے دويمه خبره دا ده چه د سړي په ښكاره كارونو كښ دښوكه او ريا (ځان ښودل) هم وي. مگر د زړه كار كښ ريا ځان ښودل ممكن نه دي. ذَ امام بخاري دا مقصد دے چه كتاب په اخلاص الله د پاره ليكم، هجرت ديته ويلے شي چه كوم ځائے هميشه د پاره پريښودل. يو څيز سره تعلّق ختمول، غارِ حرا ته د رسول الله صلي الله عليه وسلم هجرت د دنيا د ټولو ناپاكو نه هميشه د پاره ځان جُدا كول دي دے مناسبت سره دا حديث د كتاب اول كښ ذكر شو. دے حديث نه د شروع كولو يوه وجه دا اهم ده چه ذَ اِسلام بنيادی عقايد و تعلّق زړه سره دے او نيت هم د زړه كار دے. د دے وجے نه ذَ اِسلام بنيادي تعليم د وحي او الهام په ذريعه رسول صلي الله عليه وسلم ته وركړے شو. او دا هغه وخت پورے پوهه كښ نه رازي تر څو چه انسان هدايت نه غواړي. او د خلاصي خواهش نه لري. او ذَ هغے د پاره ذَ اِخلاص نيت پكار دے.

۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ

۲: عبداللّٰه بن يوسف، مالک، هشام بن عروه، عروه ذَ اُم المؤمنين بي بي عائشے نه روايت كوي چه حارث بن هشام ذَ رسول اللّٰه نه تپوس اوكه،

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ الْحَارِثَ ابْنَ هِشَامٍ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ يَأْتِيْكَ الْوَحْيُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْيَانًا يَأْتِيْنِيْ مِثْلَ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ وَهُوَ اَشَدُّهُ عَلَيَّ فَيُفْصَمُ عَنِّيْ وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ وَ اَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِيْ فَاَعِيْ مَا يَقُوْلُ قَالَتْ عَائِشَةُ وَلَقَدْ رَاَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيْدِ الْبَرْدِ فَيُفْصِمُ عَنْهُ وَ اِنَّ جَبِيْنَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا.

يا رسول الله، تاسو ته وحي څنګه راځي، نو رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، چه کله ما ته دَ جرس[۱] دَ آواز په شان راځي او هغه په ما ډيره سخته وي، او چه هغه حالت خما نه لرے شي، نو ماته هغه هر څه يادوي، چه هغه وئيلے وي او کله فرېښته د سړي په شکل کښې ماله راشي، او ما سره خبرے کوي، او څۀ چه هغه وائي، هغه زۀ ياد کړم. بي بي عائشے او فرمائيل، ما دَ سختے يخنـي په ورځو کښې په حضورؐ وحي راتلل ليدلے دي. چه کله به د وحي سلسله ختمه شوه نو د هغوئ د تندي نه به خوله اوبهيده[۲].

۱. وَحي يا الهام د پيغام رسولو هغے سلسلے ته وائي. کومه چه د الله د طرفنه د هغه غوره بندګانو سره خاص ده. په اصطلاحي ډول سره دَ وحي لفظ پيغمبرانو د پاره خاص دے او الهام عام دے چه د الله نورو بندګانو د پاره هم دے. علماؤ ليکلے دي چه د جرس آواز په حقيقت کښې د فرښتے آواز دے چه دَ وحي مختلفو کيفيتونو سره رازي علماؤ د وحي مختلف طريقے نقل کړي دي مګر په حقيقت کښې څلور دي. اول دا، چه د الله خبرے پيغمبر پخپله واوري. لکه موسيٰ عليه السلام چه په کوهِ طور او په معراج کښې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوريدے. دويم دا چه فرښته د الله پيغام راوړي او راشي. دريم دا چه دَ پيغمبر په زړه کښې خبره واچولے شي. څلورم دا چه رښتينے خوب پيغمبرته او خودلے شي. ذکر شوي ترتيب سره آخري صورت نه پيغمبري شروع کيږي. ړومبے ورته خوبونه ښودلے شي بيا ورته په زړه کښې إلهام د الله تعالىٰ د طرفنه کيږي. بيا ورته فرښته کله په يو خاص شکل کښې رازي او وحي ورته راوړي. دَ الله تعالىٰ خبرے يواځے د اولواالعزم رسولانو برښه ده. دا غوره والے هر پيغمبر ته نه حاصليږي.

وحي په حقيقت کښې د انسان ضرورتونو جواب دے الهام هم د دے يو قسم دے چه ځناورو ته هم کيږي.

وَ اَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ — د شهدو مچو ته ستا رب وحي او کړه.

د الهام نه عام انسان هم فائده اَخلي. نن چه څومره نوے څيزونه ښکاره شوي يا ايجاد شويدي ددے ټولو بنياد الهام دے. د الهامي اشارے نه روستو انساني عقل اسونه زغلوي او نوي نوي څيزونه د سره جوړوي (ايجاد) له دے وجے نه الهام يا وحي داسے څيز نه دے چه د هغے د منلو د پاره دڅه دليل ضرورت پيښيږي. هره ورځ په ژوند کښې داسے واقعات رازي چه د هغے نه د إلهام حقيقت ښکاره کيږي.

۲. دَ الله پيغام يوه لويه ذمه واري او د كمال آخري مرتبه ده د دے بوج برداشت كول ډير گران دے. دا د اللـه تعالىٰ د وركړي طاقت برداشت او د هغه ښنلے توفيق دے چه د هغے په وجه پيغمبر د وحي امانت خپلـه سينـه كښ ساتوي. د وحي د دے لوئے والي او د درروند والي دا نتيجه وه. چه د وحي د نازليدو په وخت نبي عليه السلام خُولے خولے كيدو. تر دے چه هر هغه څيز چه په هغے به نبي عليه السلام ناست وو په هغے به اثر كيدلو. دا د وحي د حقّانيت ثبوت دے.

۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ وَ كَانَ يَخْلُوا بِغَارِ حِرَاءٍ فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ وَ يَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا حَتَّى جَاءَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ فَقَالَ قُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجُهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ فَقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجُهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ فَقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ

۳: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عروه بن زبير، دَ بي بي عائشې رض نه روايت كوي، هغې او فرمائيل د ټولونه ړومبئ وحي چه په رسول الله صلے الله عليه وسلم راتلل شروع شو، هغه ښئ خوبونه وو، چه دَ خوب په حالت كښ به حضورؐ ليدل، كله چه به حضورؐ خوب اوليدلو، هغه به دِ سحر دَ رنړا په شان ظاهريدلو. بيا يواځے كيدلو سره دَ حضورؐ محبت پيدا شو. او غار حرا كښ يوازے اوسيدلو. او مخكښ دَ دے نه چه دَ كور خلقو ته ئے دَ راتلو شوق پيدا شي هلته به ئے عبادت كولو (او دَ تحنث [3] نه خو شپے عبادت كول مراد دي) او هغے دَ پاره به ئے توښه اُوړله. بيا به بي بي خديجې رض ته واپس راتلو. او دغسے توښه به ئے اُوړله. حتي چه [4] حق راغے او حضورؐ غارِ حرا كښ وو، نو هغويّ ته يوه فريښته راغله، او ورته ئے او وے "اولوله". حضورؐ او فرمائيل، ما ورته اووے، زهٔ په لوستونهٔ پوهيږم، حضورؐ فرمائي، زهٔ هغے فريښتے اونيولم او زوريے راكړو تر دے چه ستړے يے كړم، بيائے زهٔ پريښودم، او وے وئيل، اولوله ما ورته اووے، زهٔ لوستے نشم. بيائے دوباره زهٔ اونيولم، او زورئے راكړو. تر دے چه زهٔ بے طاقته شوم. بيائے زهٔ پريښودم، او وے وئيل، اولوله، ما اووے، زهٔ به لوستونه پوهيږم. حضورؐ فرمائي، بيائے په دريم خل زهٔ اونيولم او زورئے راكړو. بيائے پريښودم، او وے وئيل، دَ

اقْرَءْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ○ خَلَقَ
الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ○ اقْرَءْ وَ رَبُّكَ
الْأَكْرَمُ فَرَجَعَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ
فَدَخَلَ عَلٰى خَدِيْجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ
فَقَالَ زَمِّلُوْنِيْ زَمِّلُوْنِيْ فَزَمَّلُوْهُ حَتّٰى
ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ فَقَالَ لِخَدِيْجَةَ وَ
اَخْبَرَهَا الْخَبَرَ لَقَدْ خَشِيْتُ عَلٰى
نَفْسِيْ فَقَالَتْ خَدِيْجَةُ كَلَّا وَاللّٰهِ مَا
يُخْزِيْكَ اللّٰهُ اَبَدًا، اِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَ
تَحْمِلُ الْكَلَّ وَ تَكْسِبُ الْمَعْدُوْمَ وَ
تَقْرِي الضَّيْفَ وَ تُعِيْنُ عَلٰى نَوَائِبِ
الْحَقِّ فَانْطَلَقَتْ بِهٖ خَدِيْجَةُ حَتّٰى اَتَتْ
بِهٖ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْنِ اَسَدِ ابْنِ
عَبْدِالْعُزّٰى ابْنَ عَمِّ خَدِيْجَةَ وَ كَانَ
امْرَءً تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ
يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعِبْرَانِيَّ فَيَكْتُبُ مِنَ
الْاِنْجِيْلِ بِالْعِبْرَانِيَّةِ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ
يَّكْتُبَ وَ كَانَ شَيْخًا كَبِيْرًا قَدْ عَمِيَ
فَقَالَتْ لَهٗ خَدِيْجَةُ يَابْنَ عَمِّ اسْمَعْ مِنِ
ابْنِ اَخِيْكَ فَقَالَ لَهٗ وَرَقَةُ يَابْنَ اَخِيْ
مَاذَا تَرٰى فَاَخْبَرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرَ مَا رَاٰى فَقَالَ
لَهٗ وَرَقَةُ هٰذَا النَّامُوْسُ الَّذِيْ نَزَّلَ اللّٰهُ
عَلٰى مُوْسٰى يَالَيْتَنِيْ فِيْهَا جَذَعًا
يَالَيْتَنِيْ اَكُوْنُ حَيًّا اِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ

خپل رب نوم سره اولوله، چه انسان ئې دَ چکه وينې نه
پیدا کۀ، اولوله او ستا رب دَ ټولو نه لوئې عزتمند دې،
رسول اللّٰه صلې اللّٰه علیه وسلم دغه بیا اولوستلو،
داسې حال کښ چه دَ حضورؐ زړۀ ° رپیدلو، نو بي بي
خدیجې بنت خویلد، له راغې، او وې فرمائیل، په ما
کمبل واچوه، په ما کمبل واچوه، نو کمبل پرې واچولې
شو، تردې چه دَ حضورؐ ویره ختمه شوه. نو بي بي
خدیجې ته ئې ټوله واقعه بیان کړه او وې فرمائیل، ما
سره دَ خپل ځان ویره ده. بي بي خدیجې ورته او وې
هیڅ کله به اللّٰه تاسو رسوا نۀ کړي. تاسوؐ خپلوانو سره
خپل ولي پالئ، د کمزوزو بوج په ځان آخلئ. محتاجو
دَ پاره ګټه کوئ (کماتې هو) دَ میلمه میلمستیا کوئ،
او دَ حق[1] په لار کښ مصیبتونو کښ مدت کوئ. بیا بي
بي خدیجې حضورؐ سره ورقه بن نوفل بن اسد بن
عبدالعزي ته لاړه چه دَ بي بي خدیجې دَ ترۀ ځوئې وو. دَ
جاهلیت زمانه کښ عیسائي شوې وو. او عبراني ژبه
کښ به ئې لیکل کول انجیل ئې عبراني ژبه کښ لیکلو،
څومره چه اللّٰه ته منظوره وه چه اولیکي او ړوند بوډا
شوې وو. بي بي خدیجې ورته اووې، اې ځما د ترۀ
ځویه دَ خپل وراره خبره واوره. نو حضورؐ ته ورقه
اووې. اې وراره تۀ څه وینې؟ نو څۀ چه رسول صلي اللّٰه
علیه وسلم لیدلې وو، هغه ئې ورته بیان کړل. ورقه
حضورؐ ته اووې، چه دا هغه ناموس[2] فرښته ده چه اللّٰه
تعالي په حضرت موسيؑ نازل کړې وو افسوس چه زۀ
ځوان وې. افسوس چه زۀ هغه وخته پورې ژوندې وې،
چه ستا قوم به تا اوباسي، نو رسول اللّٰه صلې اللّٰه علیه

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ قَالَ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهٖ اِلَّا عُوْدِيَ وَ اِنْ يُّدْرِكْنِيْ يَوْمُكَ اَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ اَنْ تُوُفِّيَ وَ فَتَرَ الْوَحْيُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِاللّٰهِ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَقَالَ فِيْ حَدِيْثِهٖ بَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ اِذْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِّنَ السَّمَآءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِيْ فَاِذَا الْمَلَكُ جَآءَنِيْ بِحِرَآءَ جَالِسٌ عَلٰى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَرُعِبْتُ مِنْهُ فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِيْ زَمِّلُوْنِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ وَ ثِيَابَكَ فَطَهِّرْ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ فَحَمِيَ الْوَحْيُ وَ تَتَابَعَ تَابَعَهُ عَبْدُاللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ وَ اَبُوْ صَالِحٍ وَ تَابَعَهُ هِلَالُ بْنُ رَدَّادٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ يُوْنُسُ وَ مَعْمَرٌ بَوَادِرُهُ.

وسلم او فرمائيل' آيا هغوي به ما او باسي' ورقه جواب ورکړو' کوم څوک چه تا راوړيدے' دا شان څيز چه چا راوړے دے' هغه سره دشمني شوے ده' که زهٔ ستا زمانه بيا مومم' نوزهٔ به ستا پوره مدد او کړم. بيا زياته زمانه' نهٔ وه تيره چه ورقه وفات شو. او وحي راتلل څه موده د پاره بند شو. [٨] ابن شهاب اوويے' ماته ابو سلمه بن عبدالرحمن بيان اوکهٔ' چه جابر بن عبدالله انصاري د وحي بنديدو حديث بيانولو' نو هغے حديث کښې ئے بيان اوکهٔ حضورؐ فرمائيل يو ځل زه تلم' نو دَ آسمان (آړخ) نه م يو آواز و اوريدلو' چه نظر م اوچت کهٔ او اوم کتل' نو هغه فريښته وه' کومه چه ماته حراء ته راغلے وه. دَ آسمان اوزمکے مينځ کښې په کُرسي ناسته وه. په ما رُعب خورشو' او واپس راغلم' نو ما اووے' په ما کمبل واچوئے' په ما کمبل واچوئے نو الله تعالیٰ دا آيت نازل کهٔ "اے کمبل اغوستونکيه' پاسه او خلق او يرَوه. او دَ خپل رب لوئي بيان کړه او خپلے کپړے پاکے کړه او ناپاکي پريږده". بيا دَ وحي سلسله ګرمه شو. او پرله پسے راتله. [٩] عبدالله بن يوسف او ابو صالح د دے متابع حديث بيان کړے دے' او هلال بن رداد' دَ زهري نه متابعت کړے دے. او يونس اور معمر دَ فواده په ځائے بوادره [١٠] بيان که

١. خوب د ابتدائي (دَ اولني) روحاني پړاوونو سره تعلق لري. خوب ليدونکے يو طرفته خپل مادي وجود سره پډے د اوږو ښاورو دنيا کښې وي. بل طرفته د خوب حالات ورته داسے حقيقتونه رنړا کوي. چه هغے ته عقل مادي سامان سره نه رسيږي له دے وجے نه رښتيني خوب د نبوّت (د پيغمبرئ) حصه ده. انبياء عليهم السلام (پيغمبران) اول پاک او رښتينے خوبونه وينې پډے طريقه د پيغمبرئ راتلونکے خوالے شوے ذمه وارو سره مناسبت پيدا کيږي. پيغمبر ته د پيغمبرئ د ذمه وارو (تربيت) پالنه يو خاص ترتيب سره ورکولے شي.

۲. "تَحَنُّثٌ" د جاهليت د زمانې اصطلاح ده. په هغه زمانه كښې د عبادت يوه طريقه دا وه. چه يو سړي به په كوټ كښې د ټولو خلقو نه يواځې څو شپې د الله تعالى په فكر كښې تيره ولې. دغه وخت پورې نبي عليه السلام باندې وحي نه وه راغلې، د بُتانو د عبادت نه ئې نفرت كولو. نو نبي عليه السلام د عبادت هغه پخوانې د طريقه خوښه كړې چه هغه په اصل كښې صحيح او د عمل جوګه وه د دنيا او د هر څه نه جدا، خان لهٔ خللّه په ذات كښې دَ غور او فكر كولو دا تَحَنُّث وؤ. د بعثت نه وړاندې د نبي عليه السلام دا طريقه وه.

۳. د حق مطلب، د الله تعالى دين دې دَ دين په حقله وړاندې د الله د طرفنه وحي راغلې نه وه. نو په غارِ حراء كښې جبريل عليه السلام نبي عليه السلام ته د دين د حق والي وحي راوړه.

۴. د دې واقعې نه وړاندې داسې څه حالت نه وؤ راغلې، نو د انساني غوښتنې په وجه داسې نا اشنا حالت كښې هيبت راتلل لرې خبره نه ده.

۵. د رسالت د مرتبې حاصلېدو د پاره چه د كومو كاملو صفتونو ضرورت وي هغه ټول په پوره ډول نبي عليه السلام لرل. خديجې بي بي اګرچه د اسلام رنړا نه فائده اخستلې نه وه. بياسم دهغې يقين وو. چه دَ محمد صلي الله عليه وسلم ذات كښې هغه قيمتي جوهر شته، چه دې به يوه لويه كارنامه سرته رسوي. او د دنيا هيڅ يو طاقت به ورته تكليف نشي رسولې. بيا الله تعالى د داسې لويو اخلاقو مالك، بې مدده بې كسه نه پرېږدي. ددې حديث شريف نه دا هم معلوميږي چه پيغمبر كښې هغه انساني صفتونه وي كوم چه يو انسان كښې كيدې شي. پدې حقله، پيغمبر، د پيغمبرئ د ټولو ذمه وارو قبلولو نه پس هم انسان وي. هم دا وجه ده چه كله په كلمهٔ شهادت كښې د رسالت ذكر دې ورسره د نبي عليه السلام دبندګئ (دانسانيت) ذكر هم شته اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا (صلى الله عليه وسلم) عبده و رسوله. كه چرې د رسول الله صلي الله عليه وسلم د پيغمبر كيدو نه پس د انسانيت نه وتل ضروري وؤ نو بيا به د.وحي نازليدو نه وړاندې به دهغه ټول انساني صفتونه بدليدل يا دوحي په شروع كيدو سره به پرې ويره نه راتلله.

۷. ناموس په عربئ ژبه كښې د راز پټ ساتونكې ملګري ته وائي چه د انسان خواخوږې وي د ناموس په مقابله كښې جاسوس د انسان دښمن وي چه د هغه پټ راز معلوموي. دلته د ناموس مطلب "فرښته" ده چه پيغمبرانو ته وحي راوړي.

۸. دَ وحي راتلل دوه يا درې كاله بند شوي وؤ.

۹. بيا چه كله د وحي راتلل شروع شو نو دا واقعه پيښه شوه د دې دويم دور ړومبئ وحي د سورت مدثر اولني آيتونه دي.

۱۰. دې د واړو راويانو د فُؤَاد پخائې "بَوَادِر" لفظ نقل كړليدې بَوَادِر د بَادِرَةٌ جمع ده. بَادِرَه دَ سټ او داوږې په مينځ كښې د بدن حصې ته وائي. دا حصه ډير ځله دويرې په حالت كښې رپيږي. مطلب يې دا دې چه دې د حيرانتيا واقعه كښې د نبي عليه السلام دَ اوږې غوښه زر زر اورپيده.

۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ قَالَ حَدَّثَنَا

۴: موسى بن اسماعيل، ابوعوانه، موسى بن ابي عائشه، سعيد بن جبير، دَ الله تعالى دَ قول "لَا تُحَرِّكْ بِهٖ

مُوْسَى بْنُ اَبِيْ عَائِشَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَالِجُ مِنَ التَّنْزِيْلِ شِدَّةً وَّ كَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَاَنَا اُحَرِّكُهُمَا لَكَ كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَرِّكُهُمَا وَ قَالَ سَعِيْدٌ اَنَا اُحَرِّكُهُمَا كَمَا رَاَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يُحَرِّكُهُمَا فَحَرَّكَ شَفَتَيْهِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَ قُرْاٰنَهٗ قَالَ جَمْعَهٗ لَكَ صَدْرُكَ وَ تَقْرَءُهٗ فَاِذَا قَرَءْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ قَالَ فَاسْتَمِعْ لَهٗ وَ اَنْصِتْ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا اَنْ تَقْرَءَهٗ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ اِذَا اَتَاهُ جِبْرِيْلُ اِسْتَمَعَ فَاِذَا انْطَلَقَ جِبْرِيْلُ قَرَاَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا قَرَاَهٗ.

لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ" (زر يادولو ذَ پاره خپله ژبه مهٔ خوزوه) متعلق د حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي هغه وائي، دَ قرآن ذَ نازليدو په وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته تكليف معلوميدو د هغې تكليف علامه داوه چه حضورؐ به خپلې دواړه شونډې خوزولې. حضرت ابن عباسؓ او فرمائيل، زهٔ دا دواړه خوزوم، څنګه چه به حضورؐ خوزولې. او سعيد بيان او كهٔ، چه زهٔ (دواړه شونډې) خوزوم، څنګه چه م حضرت ابن عباسؓ خوزونكې ليدلې دې. خپلې دواړه شونډې ئې خوزولې. او ښودلې، نو اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كه "اے محمدهؐ دَ قرآن زر يادولو دَ پاره خپله ژبه مهٔ خوزوه دَ دے جمع كول اولولول ځمونږ په ذمه [۱] دي" ابن عباسؓ وائي، چه دَ قرآن ستا سينه كښې جمع كول او دَ هغې ستالوستل، بيا چه مونږ هغه اولولو، نو دَ هغې دَ لوستو پيروي كوه. ابن عباسؓ فرمائي يعني دا واوره، اوچپ شه. بيا يقيناً دَ دے په مطلب ستا پوهيدل ځمونږ په ذمه دي. بيا بلاشبه دا ځما په ذمه دي، چه ته دا اولولے، دے نه پس چه به جبرائيلؑ حضورؐ ته راتلو، نو حضورؐ به (غور سره) ترے اوريدلو. بيا چه جبرائيل به لاړلو نو هغه به نبي عليه السلام لوستلو [۲] څنګه چه به جبرائيلؑ لوستلے وو.

۱. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د يادولو په خاطر زر زر وحي بيابيالوستله، پدے باندے دا آيت شريف نازل شو چه دا قرآن ځمونږ كلام دے د كوم مقصد د پاره چه مونږ نازل كړيدے د هغې پوره كول ځمونږ ذمه ده. پدے وجه په اطمينان سره نازليدونكې وحي اوره. د هغې ذَ يادولو فكر مه كوه. دقرآن شريف په آيتونو كښې خدائے تعالٰي دا اعجاز پيدا كړيدے چه وركوټي ماشوم ته قرآني آيتونه ياديږي. او نور مذهبي واړهٔ كتابونه سړے يادولے نشي بيا دے آيت كښې دا ثبوت هم شته چه قرآن د اللّٰه كلام دے. نعوذ باللّٰه كه قرآن مجيد د محمد صلي اللّٰه عليه وسلم تصنيف وے. نو داسے آيتونه به نه راتلل چه په هغې

كښې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته زورَ نه وه.

٢ . دَ اسلامي رورولئې او محبت دا تقاضا ده چه يو مسلمان د بل مسلمان مددګار وي د چا په زړه کښې چه دَ اسلام ګرمي وي. هغه به پخان او بل مسلمان کښې فرق نه کوي پدې حديث شريف کښې دا تاکيد شويدې چه مسلمان دې نور مسلمانان د خان پشان ګنړي کوم مسلمان چه څومره د نورو مسلمانانو نه بې پرواه او بې تعلقه وي دغه اندازه باندې د هغه ايمان به کمزورې وي.

٣. د هغه مقصد داؤو چه دَ وحي الفاظ ياد شي.

٥ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُاللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُاللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ وَ مَعْمَرٌ نَحْوَهٗ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُاللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ وَ كَانَ اَجْوَدَ مَا يَكُوْنُ فِيْ رَمَضَانَ حِيْنَ يَلْقَاهُ جِبْرَائِيْلُ فَكَانَ يَلْقَاهُ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْاٰنَ فَلَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيْحِ الْمُرْسَلَةِ.

٥ : عبدان. عبدالله. يونس. زهري ح (دويم سند) بشر بن محمد. عبدالله. يونس او معمر. زهري. عبيد الله بن عبدالله دَ حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، وې فرمائيل، رسول الله صلي الله عليه وسلم د ټولو خلقو نه زيات سخي وو. په رمضان کښې چه جبرائيلؑ به ورسره يو ځائې کيدلو، نو دَ ټولو خلقو نه به زيات سخي وو. او جبرائيلؑ به حضورَ سره رمضان کښې هره شپه ملاقات کولو او دَ قرآن دوره به ئې کوله. رسول الله صلي الله عليه وسلم به خير رسولو کښې د ليکلې شوې هوا نه هم زيات سخي وو[١].

١ . په دې حديث شريف کښې ذکر دې. چه رمضان کښې به جبرائيل عليه السلام نبي عليه الصلاة والسلام سره د قرآن شريف د ورکولو. دا د دې د پاره چه قرآن مجيد د دنيا خلقو د پاره په رمضان کښې نازليدل شروع شو. په دې حقله د قرآن شريف سره د رمضان ډير مناسبت دې. دا دَ وحي د نازليدو مياشت ده. پدې وجه د رحمت د نازليدو مياشت شوه. دې حديث شريف نه دا معلوميږي چه د رمضان په مياشت کښې ډير ښه کارونه او ډير زيات صدقې او خيرات کول پکار دي.

٦ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ ابْنُ نَافِعٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُاللّٰهِ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَبْدَاللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اَبَا

٦ : ابواليمان. حکم بن نافع. شعيب. زهري. عبيد الله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود نه روايت دې، ابن عباسؓ نه هغه ته ابوسفيان بن حرب (رضي الله عنه) اوويل چه هرقل[١] هغوي ته يو سړې اوليږه او هغه هغه وخت دَ قريش په قافله کښې وو او دغه خلق شام کښې سوداګر وو (دا واقعه) هغې زمانه کښې (شوې ده) چه رسول الله صلي الله

سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فِيْ رَكْبٍ مِّنْ قُرَيْشٍ وَّ كَانُوْا تُجَّارًا بِالشَّامِ فِي الْمُدَّةِ الَّتِيْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَادَّ فِيْهَا أَبَا سُفْيَانَ وَ كُفَّارَ قُرَيْشٍ فَأَتَوْهُ وَهُمْ بِإِيْلِيَاءَ فَدَعَاهُمْ فِيْ مَجْلِسِهٖ وَ حَوْلَهُ عُظَمَاءُ الرُّوْمِ ثُمَّ دَعَاهُمْ وَ دَعَا تَرْجُمَانَهُ فَقَالَ أَيُّكُمْ أَقْرَبُ، نَسَبًا بِهٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعَمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ قَالَ أَبُوْ سُفْيَانَ فَقُلْتُ أَنَا أَقْرَبُهُمْ نَسَبًا فَقَالَ أَدْنُوْهُ مِنِّيْ وَ قَرِّبُوْا أَصْحَابَهُ فَاجْعَلُوْهُمْ عِنْدَ ظَهْرِهٖ ثُمَّ •قَالَ لِتَرْجُمَانِهٖ قُلْ لَهُمْ إِنِّيْ سَائِلٌ هٰذَا عَنْ هٰذَا الرَّجُلِ فَإِنْ كَذَبَنِيْ فَكَذِّبُوْهُ فَوَاللّٰهِ لَوْلَا الْحَيَاءُ مِنْ أَنْ يَّأْثِرُوْا عَلَيَّ كَذِبًا لَكَذَبْتُ عَنْهُ ثُمَّ كَانَ أَوَّلَ مَا سَأَلَنِيْ عَنْهُ أَنْ قَالَ كَيْفَ نَسَبُهُ فِيْكُمْ قُلْتُ هُوَ فِيْنَا ذُوْ نَسَبٍ قَالَ فَهَلْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ مِنْكُمْ أَحَدٌ قَطُّ قَبْلَهُ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ كَانَ مِنْ اٰبَآئِهٖ مِنْ مَّلِكٍ قُلْتُ لَا قَالَ فَأَشْرَافُ النَّاسِ اتَّبَعُوْهُ أَمْ ضُعَفَآؤُهُمْ قُلْتُ بَلْ ضُعَفَآؤُهُمْ قَالَ أَيَزِيْدُوْنَ أَمْ يَنْقُصُوْنَ قُلْتُ بَلْ يَزِيْدُوْنَ قَالَ فَهَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِّنْهُمْ سَخْطَةً لِدِيْنِهٖ بَعْدَ أَنْ يَّدْخُلَ فِيْهِ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ

عليه وسلم ابو سفيان او (نورو) كفار قريش سره صلحه كړے وه. غرض دا چه ټول قريش هرقل ته راغلل. دا خلق (دغه وخت) ايليا [٢] كښې وو، نو هرقل خپل دربار ته اوغوښتل، او دَهغهٔ گير چاپيره دَ روم غټان (ناست) وو. بيائے دغه (ټول قريش) ځان ته راوغوښتل، او خپل ترجمان ئے طلب كړ (قريشو ته مخاطب شو، او) وے وئيل، تاسو كښې دَ ټولو نه زيات هغے سړي ته نسب كښې نزدے [٣] څوک دے. كوم چه ځان ته نبي وائي. ابوسفيان اويل ما اووے زهٔ دَ ټولو نه زيات دَ هغهٔ قريبي خپلوان يم (دے آوريدو سره) هرقل اووے، ابوسفيان ما ته رانزدے كړئے، او دَ دهٔ ملگري هم ده ته نزدے كړئے، او هغوي دَ ابوسفيان شاته اُودروے. بيا خپل ترجمان ته ئے اووے، دے خلقو ته او وايه، چه زهٔ دَ ابو سفيان نه دَ هغے سړي دَ حال تپوس كوم (چه ځان ته نبي وائي) كه دے ما ته دروغ او وائي، نو تاسو (سمدستي) دَ دهٔ دروغو ته دروغ او وائيے (ابوسفيان وائي) خما دے په [٤] خدائے قسم وي كه ماله په دے خبره غيرت نهٔ راتلے، چه خلق به په ما دَ دروغو الزام اولږوي، نو ما به ضرور دَ هغوي (حضورؐ) په نسبت دروغ ويلے وو. غرض دا چه دَ ټولو نه مخښې هرقل ما نه كوم تپوس اوكړ، هغه دا وو، هغه اووے دَ هغه (حضورؐ) نسب تاسو خلقو كښې څنگه دے؟ ما اووے. هغه مونږ كښې دَ (لوئے) نسب [٥] خاوند دے. بيا هرقل اووے، آيا تاسو كښې چا دَ هغهٔ نه مخكښې هم دَ دے خبرے (يعني نبوّت) دعويٰ كړے ده؟ ما اووے، نه بيا هرقل اووے، آيا دَ هغهٔ په پلار نيكهٔ كښې څوک بادشاه تير شوے دے؟ ما اووے، نه، بيا هرقل اووے، اميران خلق دَ هغهٔ پيروي كوي يا كمزوري [٦] ما اووے نه، بلكه كمزوري. بيا هرقل اووے، آيا دَ هغهٔ پيروي كونكي (ورځ په ورځ) زياتيږي يا كميږي؟ ما اووے (كميږي نه بلكه) زياتيږي. هرقل تپوس اوكړ، آيا هغوي كښې څوک سړے دَ هغوي دين كښې داخليدو نه پس دَ هغے دين نه خارج كيږي هم؟ ما اووے نه، بيا هرقل اووے، دَ دے نه مخكښې آيا هغهٔ

كُنْتُمْ تَتَّهِمُوْنَهٗ بِالْكَذِبِ قَبْلَ اَنْ
يَّقُوْلَ مَا قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ يَغْدِرُ
قُلْتُ لَا وَ نَحْنُ مِنْهُ فِيْ مُدَّةٍ لَّا نَدْرِيْ
مَا هُوَ فَاعِلٌ فِيْهَا شَيْئًا قَالَ وَلَمْ
يُمْكِنِّيْ كَلِمَةٌ اُدْخِلُ فِيْهَا شَيْئًا غَيْرَ
هٰذِهِ الْكَلِمَةِ قَالَ فَهَلْ قَاتَلْتُمُوْهُ قُلْتُ
نَعَمْ قَالَ كَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ اِيَّاهُ قُلْتُ
الْحَرْبُ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهٗ سِجَالٌ يَنَالُ مِنَّا
وَ نَنَالُ مِنْهُ قَالَ مَاذَا يَاْمُرُكُمْ قُلْتُ
يَقُوْلُ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَلَا تُشْرِكُوْا
بِهٖ شَيْئًا وَّاتْرُكُوْا مَا يَقُوْلُ اٰبَآؤُكُمْ وَ
يَاْمُرُنَا بِالصَّلٰوةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ
وَالصِّلَةِ فَقَالَ لِلتَّرْجُمَانِ قُلْ لَهٗ
سَاَلْتُكَ عَنْ نَسَبِهٖ فَذَكَرْتَ اَنَّهٗ فِيْكُمْ
ذُوْ نَسَبٍ وَ كَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِيْ
نَسَبِ قَوْمِهَا وَ سَاَلْتُكَ هَلْ قَالَ اَحَدٌ
مِّنْكُمْ هٰذَا الْقَوْلَ فَذَكَرْتَ اَنْ لَّا
قُلْتُ لَوْ كَانَ اَحَدٌ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ
قَبْلَهٗ لَقُلْتُ رَجُلٌ يَّأْتَمِيْ بِقَوْلٍ قِيْلَ
قَبْلَهٗ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ كَانَ مِنْ اٰبَآئِهٖ مِنْ
مَّلِكٍ فَذَكَرْتَ اَنْ لَّا فَقُلْتُ فَلَوْ كَانَ
مِنْ اٰبَآئِهٖ مِنْ مَّلِكٍ قُلْتُ رَجُلٌ يَّطْلُبُ
مُلْكَ اَبِيْهِ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ كُنْتُمْ
تَتَّهِمُوْنَهٗ بِالْكَذِبِ قَبْلَ اَنْ يَّقُوْلَ مَا
قَالَ فَذَكَرْتَ اَنْ لَّا فَقَدْ اَعْرِفُ اَنَّهٗ لَمْ
يَكُنْ لِيَذَرَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ وَ

چرته دروغ ونيلے دي؟ ما اوويے نه' بيائے اوويے' هغه چرته وعده
خلافي كوي' ماويے' نه' او اوس زمونږ دهغهٔ سره د صلحے يو موده
مقرر شوے ده. مونږ ته نهٔ ده معلومه' چه هغه به دے (مهلت) كښې څهٔ
كوي (وعده خلافي يا وعده پوره كول) ابوسفيان وائي' سوا ذَ دے
كلمے څه ما ته بله هيڅ موقعه په لاس رانغله' چه ماڅهٔ خبره ذَ هغوي
(حضورؐ) په حالاتو كښې داخله كړے وے. هرقل اوويے' آيا تاسو چرته
هغهٔ سره جنګ كړے دے. ما اوويے' او' نو دے ونيل' ستاسو جنګ
هغوي سره څنګه وي؟ ما اوويے' خمونږ او ذَ هغوي مينځكښې جنګ
(په مثل د ") بوكرے وي' كله ئے هغوي څمونږ نه اخلي' او كله ئے مونږ
ذَ هغوي نه اخلو (يعني كله مونږ فتح بيامومو' او كله هغوي) هرقل
تپوس اوكهٔ چه هغوي (حضورؐ) تاسو ته څهٔ حكم دركوي؟ ما اوويے'
هغوي (حضورؐ) وائي' چه يوازے ذَ الله عبادت كوئے' او هغهٔ سره
هيڅوک مهٔ شريكوئے' او (ذَ شرک) كوئے خبرے چه ستاسو پلار
نيكهٔ كولے' هغه پريږدئے' او مونږ ته ذَ مونځ كولو' رينښتيا ونيلو'
پرهيزګاري او د خپلوئي د پاللو ^ حكم راكوي. بيا هرقل ترجمان ته
اوويے' ابوسفيان ته اووايه' چه ما تانه ذَ هغويٌ ذَ نسب تپوس اوكهٔ' نو تا
بيان اوكهٔ' چه هغويٌ تاسو كښې اعلیٰ نسب لري او ټول پيغمبران ذَ
خپل قوم نسب كښې دغه شان د لوئے نسب (عالي نسب) راغلے دي'
او ما تانه تپوس اوكهٔ چه آيا دا خبره (يعني ذَ خپل نبوت دعويٰ) تاسو
كښې بل چاهم كړے وه' نو تا بيان اوكهٔ چه نه نو زهٔ (زړهٔ كښې) پوه
شوم كه دا خبره ذَ هغويٌ نه مخكښې چاكړے وے' نوزهٔ به اووايم' چه
هغه يو سړے دے' چه ذَ هغے وينا پيروي كوي' چه ذَ هغهٔ نه مخكښې
ونيلے شوے دے. او ماتانه تپوس اوكهٔ' چه ذَ هغوي پلار نيكهٔ كښې
څوک بادشاه تير شوے دے' نو تا اوويے' چه نه نو (ما زړهٔ كښې جوړه
كړه) كه ذَ هغوي پلار نيكه كښې څوک بادشاه تير شوے وي' نو زهٔ به
اووايم' چه هغهٔ يو داسے سړے دے چه ذَ خپل پلار نيكه ملک

يَكْذِبَ عَلَى اللّٰهِ وَ سَأَلْتُكَ اَشْرَافُ النَّاسِ اتَّبَعُوْهُ اَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ فَذَكَرْتَ اَنَّ ضُعَفَآءَهُمُ اتَّبَعُوْهُ وَهُمْ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ وَ سَأَلْتُكَ اَيَزِيْدُوْنَ اَمْ يَنْقُصُوْنَ فَذَكَرْتَ اَنَّهُمْ يَزِيْدُوْنَ وَ كَذٰلِكَ اَمْرُ الْاِيْمَانِ حَتّٰى يَتِمَّ وَ سَأَلْتُكَ اَيَرْتَدُّ اَحَدٌ سَخْطَةً لِدِيْنِهٖ بَعْدَ اَنْ يَدْخُلَ فِيْهِ فَذَكَرْتَ اَنْ لَا وَ كَذٰلِكَ الْاِيْمَانُ حِيْنَ تُخَالِطُ بَشَاشَتُهٗ وَ سَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَذَكَرْتَ اَنْ لَا وَ كَذٰلِكَ الرُّسُلُ لَا تَغْدِرُ وَ سَأَلْتُكَ بِمَا يَأْمُرُكُمْ فَذَكَرْتَ اَنَّهٗ يَأْمُرُكُمْ اَنْ تَعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَ يَنْهَاكُمْ عَنْ عِبَادَةِ الْاَوْثَانِ وَ يَأْمُرُكُمْ بِالصَّلٰوةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ فَاِنْ كَانَ مَا تَقُوْلُ حَقًّا فَسَيَمْلِكُ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ وَقَدْ كُنْتُ اَعْلَمُ اَنَّهٗ خَارِجٌ وَلَمْ اَكُنْ اَظُنُّ اَنَّهٗ مِنْكُمْ فَلَوْ اَنِّيْ اَعْلَمُ اَنِّيْ اَخْلُصُ اِلَيْهِ لَتَجَشَّمْتُ لِقَآءَهٗ وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهٗ لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمَيْهِ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ بَعَثَ بِهٖ مَعَ دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ اِلٰى عَظِيْمِ بُصْرٰى فَدَفَعَهٗ عَظِيْمُ بُصْرٰى اِلٰى هِرَقْلَ فَقَرَاَهٗ فَاِذَا فِيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ

(حاصلول) غواړي. او ماتانه تپوس اوكهٔ چه آيا ذ دے نه مخكښ چه هغوي دا خبره (ذ نبوّت دعوي) كړے ده، چرته دروغ ونيلے دي، نو تا اووے، چه نه، نو (اوس) زهٔ يقيناً په دے پوهيږم، چه داسے هيڅوک سړے نشي كيدے چه په خلقو دروغ نهٔ وائي او په اللّٰه دروغ او وائي او ما تانه تپوس اوكهٔ چه آيا لوئے (اميران) خلق ذ هغويّ پيروي كوي يا كمزوري خلق، نو تا اووے، چه كمزورو ذ هغويّ پيروي كړے ده اصل كښ د ټولو پيغمبرانو منونكي داسے خلق وي او ما تانه تپوس اوكهٔ چه ذ هغويّ منونكي زياتيږي كه كميږي نو تا بيان اوكهٔ چه زياتيږي (حقيقت كښ) ذ ايمان كمال ته رسيدو پورے دغه حال وي. او ما تانه تپوس اوكهٔ آيا څوک چه ذ هغوي دين كښ داخل شي، نو بيا ذناخوښي په صورت كښ ترے واپس كيږي هم؟ نو تابيان اوكهٔ چه نه، او ذ ايمان هم دغه صورت دے هر كله چه ذهغے خوښي په زړونو كښ كيني. او ماتانه تپوس اوكهٔ چه آيا هغه وعده خلافي كوي، نو تا اووے، چه نه (خبره داده چه) دغسے ټول پيغمبرانٌ [۹] وعده خلافي نهٔ كوي او ماتانه تپوس اوكهٔ چه هغويّ تاسوته ذ څهٔ حكم دز كوي نو تا اووے هغوي تاسوته دا حكم دركوي چه ذ اللّٰه عبادت كوئے او هغهٔ سره هيڅوک شريک مهٔ جوړوے او تاسو ذ بتانو ذ عبادت نه منع كوي او تاسوته ذ مونځ كولو، ريښتيا ونيلو او پرهيز ګاري [۱۰] حكم دركوي كه ستا كړے خبرے ريښتياوي نو زر به هغويّ ځما ددے دووقدمونو [۱۱] ذ ځائے مالک شي، او بيشكه ماته (ذ پخوانو كتابونونه) معلومه وه، چه هغويّ ظاهريدونكي دي، خو داراته نهٔ وه معلومه، چه هغوي به ستاسو (ذ قام) نه وي، كه زه پوهيدے چه زهٔ به هغوي ته اورسم، نو ما به هغويّ سره ذ ملاقات ډير كوشش كړے وو، اوكه زهٔ هغويّ سره وے، نو يقيناً به ما ذ هغويّ پښے وينزلے [۱۲] بيا هرقل ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم هغه (مقدس) [۱۳] خط چه حضورٌ ذ دحيه كلبي په لاس امير بصريٰ ته ليږلے وو، او امير بصريٰ هغه هرقل ته ليږلے وو، راوغوښتلو

وَ رَسُوْلِهٖ اِلٰى هِرَقْلَ عَظِيْمِ الرُّوْمِ
سَلَامٌ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى، اَمَّا بَعْدُ
فَاِنِّيْ اَدْعُوْكَ بِدِعَايَةِ الْاِسْلَامِ اَسْلِمْ
تَسْلَمْ يُؤْتِكَ اللّٰهُ اَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ فَاِنْ
تَوَلَّيْتَ فَاِنَّ عَلَيْكَ اِثْمَ الْيَرِيْسِيِّيْنَ وَ
يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ
سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اَنْ لَّا نَعْبُدَ اِلَّا
اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ
بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاِنْ
تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ
قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ فَلَمَّا قَالَ مَا قَالَ وَ
فَرَغَ مِنْ قِرَآءَةِ الْكِتَابِ كَثُرَ عِنْدَهُ
الصَّخَبُ فَارْتَفَعَتِ الْاَصْوَاتُ وَ
اُخْرِجْنَا فَقُلْتُ لِاَصْحَابِيْ حِيْنَ
اُخْرِجْنَا لَقَدْ اَمِرَ اَمْرُ ابْنِ اَبِيْ كَبْشَةَ
اِنَّهٗ يَخَافُهٗ مَلِكُ بَنِي الْاَصْفَرِ فَمَا زِلْتُ
مُوْقِنًا اَنَّهٗ سَيَظْهَرُ حَتّٰى اَدْخَلَ اللّٰهُ
عَلَيَّ الْاِسْلَامَ وَ كَانَ ابْنُ النَّاطُوْرِ
صَاحِبُ اِيْلِيَآءَ وَ هِرَقْلَ سَقُفًّا عَلٰى
نَصَارَى الشَّامِ يُحَدِّثُ اَنَّ هِرَقْلَ حِيْنَ
قَدِمَ اِيْلِيَآءَ اَصْبَحَ يَوْمًا خَبِيْثَ
النَّفْسِ فَقَالَ بَعْضُ بَطَارِقَتِهٖ
قَدِ اسْتَنْكَرْنَا هَيْئَتَكَ قَالَ ابْنُ النَّاطُوْرِ
وَ كَانَ هِرَقْلُ حَزَّاءً يَنْظُرُ فِي النُّجُوْمِ
فَقَالَ لَهُمْ حِيْنَ سَاَلُوْهُ اِنِّيْ رَاَيْتُ
اللَّيْلَةَ حِيْنَ نَظَرْتُ فِي النُّجُوْمِ مَلِكَ

(او هغه نے اولُولولو) هغے کبښ دا (مضمون) وو. دَ اللّٰه [14] په نوم
(شروع کوم) چه ډير مهربانه او رحم کونکے دے، دَ اللّٰه دَ بنده او دَ
هغهٔ دَ پيغمبر محمدؐ دَ طرف نه دَ روم بادشاه ته، په هغه دے سلام وي،
چه دَ هدايت پيروي اوکړي. دے نه پس دے واضحه وي، چه زهٔ تا
اسلام طرف ته بلم که اسلام راوړے، نو (دَ خدائے دَ قهر [15] نه) بچ به
شے، او اللّٰه به درته دوه دونړه [16] ثواب درکړي اوکه تهٔ (څما دَ دعوت
نه) مخ واړوے، نو بيشکه په تا به ستا دَ رعيت (دَ ايمان نهٔ راوړلو) گناه
وي [17] او اَے اهل کتابو، يوے داسے خبرے ته راشئے، چه څمونږ. او
ستاسو په مينځ کبښ مشترکه ده، يعني دا چه مونږ او تاسو به دَ اللّٰه نه
بغير دَ بل چا بندگي نهٔ کوو، او هغهٔ سره به څوک شريک نهٔ جوړوو
او نهٔ به مونږ بعضے، بعضولره خدايان [18] نيسو (اللّٰه پاک فرمائي) بيا که
اهل کتاب دَ دے نه مخ واړوي، نو ورته اووائے په دے خبره گواه
اوسئے، چه مونږ (دَ خدائے) اطاعت [19] کونکي يو. ابوسفيان وائي،
هرقل چه څهٔ وے، هغه ئے اووے، او دَ حضورؐ دَ خط لوستونه فارغ شو،
نو هغهٔ سره شور زيات شو. آوازونه اوچت شو. او مونږ خلق (دَ هغے
ځائے نه) او ويستلے شو، نو ما خپلو ملګرو ته اووے، چه (ګورئے) دَ
ابو کبشته [20] دَ ځوئ (محمد صلي اللّٰه عليه وسلم) کار دومره ترقي
کړے ده، چه دَ هغهٔ نه دَ بني اصفر (روم) بادشاه هم ويريږي، نو دَ هغے
وخت نه ماته هميشه دَ پاره دا يقين اوشو، چه حضورؐ به ضرور غالب
کيږي تر دے چه اللّٰه زهٔ اسلام کبښ [21] داخل کړم. او ابن ناطور دَ
ايليا [22] حاکم او د هرقل دوست او د شام عيسايانو پادري وو. وائي
چه کوم وخت هرقل ايليا ته راغے، نو يوه ورځ سحر سخت پريشانه
پاسيدو نو بعضے خواصو ورته اووے، چه مونږ (دے وخت) ستاسو
حالت ډير خراب وينو. ابن ناطور وائي، چه هرقل کاهن وو. نجوم
کبښ ئے مهارت لرلو، هغه خپلو خواصوته کوم وخت چه هغوي ترے
تپوس اوکه دا اووے، چه ما دَ شپے نجوم کبښ نظر اوکهٔ، نو اومِ لهدل

الْخِتَانِ قَدْ ظَهَرَ فَمَنْ يَخْتَتِنُ مِنْ هٰذِهِ
الْاُمَّةِ قَالُوْا لَيْسَ يَخْتَتِنُ اِلَّا الْيَهُوْدَ فَلَا
يُهِمَّنَّكَ شَأْنُهُمْ وَاكْتُبْ اِلٰى مَدَآئِنِ
مُلْكِكَ فَلْيَقْتُلُوْا مَنْ فِيْهِمْ مِنَ
الْيَهُوْدِ فَبَيْنَمَا هُمْ عَلٰى اَمْرِهِمْ اُتِيَ
هِرَقْلُ بِرَجُلٍ اَرْسَلَ بِهٖ مَلِكُ غَسَّانَ
يُخْبِرُ عَنْ خَبَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اسْتَخْبَرَهٗ هِرَقْلُ
قَالَ اذْهَبُوْا فَانْظُرُوْا اَمُخْتَتِنٌ هُوَ اَمْ لَا
فَنَظَرُوْا اِلَيْهِ فَحَدَّثُوْهُ اَنَّهٗ مُخْتَتِنٌ وَ
سَاَلَهٗ عَنِ الْعَرَبِ فَقَالَ هُمْ يَخْتَتِنُوْنَ
فَقَالَ هِرَقْلُ هٰذَا مَلِكُ هٰذِهِ الْاُمَّةِ قَدْ
ظَهَرَ ثُمَّ كَتَبَ هِرَقْلُ اِلٰى صَاحِبٍ لَّهٗ
بِرُوْمِيَةَ وَكَانَ نَظِيْرَهٗ فِي الْعِلْمِ
وَصَارَ هِرَقْلُ اِلٰى حِمْصَ فَلَمْ يَرِمْ
حِمْصَ حَتّٰى اَتَاهُ كِتَابٌ مِنْ صَاحِبِهٖ
يُوَافِقُ رَأْيَ هِرَقْلَ عَلٰى خُرُوْجِ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَّهٗ نَبِيٌّ
فَاَذِنَ هِرَقْلُ لِعُظَمَآءِ الرُّوْمِ فِيْ
دَسْكَرَةٍ لَّهٗ بِحِمْصَ ثُمَّ اَمَرَ بِاَبْوَابِهَا
فَغُلِّقَتْ ثُمَّ اطَّلَعَ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الرُّوْمِ
هَلْ لَكُمْ فِي الْفَلَاحِ وَالرُّشْدِ وَ اَنْ
يُّثْبُتَ مُلْكُكُمْ فَتُبَايِعُوْا هٰذَا النَّبِيَّ
فَحَاصُوْا حَيْصَةَ حُمُرِ الْوَحْشِ اِلَى
الْاَبْوَابِ فَوَجَدُوْهَا قَدْ غُلِّقَتْ فَلَمَّا
رَاٰى هِرَقْلُ نَفْرَتَهُمْ وَ اَيِسَ مِنَ

چه ختنه (سنت) کونکي بادشاه غالب شو' نو (او گورئ چه) دې
زمانه کښې سنت څوک کوي. خلقو ورته اووې' چه سوا د يهودو نه
بل څوک ختنه نه کوي' نو د يهوديانو د طرف نه تاسو انديښنه مه
کوئ' او د خپل ملک لوئې لوئې ښارونو ته حکم اوليکئ' چه څومره
يهوديان هلته دي' ټول دې قتل کړې شي' نو دغې خلقو دا تدبير
کولو' چه هرقل له يو سړې راوستې شو' چه د غسان بادشاه رالیږلې
وو' هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم حالات بيان کړ. هر کله چه
هرقل د هغه نه دا حالات معلوم کړ' نو وې وئيل' لاړ شئ' او او
گورئ' چه هغه سنت شوې دې' که نه' خلقو هغه اوليد' نو بيان ئې
او کړ' چه هغه سنت شوې دې. او هرقل د هغه نه د عربو د حال تپوس
او کړ نو هغه اووې چه هغوي سنت کوي' بيا هرقل اووې' چه هم دې
(نبي عليه السلام) د دې زمانې د خلقو بادشاه دې' چه ظاهر شولو بيا
هرقل خپل يو دوست [23] ته دا حال اوليکه چه هغه روميه ښهر کښې وو
او هغه علمِ نجوم کښې د ده هم پايه وو. او (دې ليکلو سره) هرقل
حمص طرف ته لاړلو. بيا د حمص نه لا بهرنه وو وتلې' چه د هغه د
دوست خط (د هغې په جواب [24] کښې) راغې. هغه خط هم د نبي صلي
الله عليه وسلم د ظهور باره کښې د هرقل د رائې موافقت کولو' او دا
(هغه ليکلې وو) چه هغې نبي دې. دې نه پس هرقل د روم سرداران
خپل محل کښې چه حمص کښې وو' طلب کړل' او حکم ئې او کړ' چه
د محل دروازې دې بندې کړې شي نو هغه بندې کړې شوې' او
هرقل (د خپل کورنه) بهر راغې' او وې وئيل' اې روميانو' آيا هدايت
او کاميابئ کښې (څه حصه) ستاسو هم شته' او دا (تاسو ته منظوره ده)
چه ستاسو سلطنت دې قائم وي (که داسې غواړئ) نو د دې نبي
بيعت [25] او کړئ' نو (دې آوريدو سره) هغوي د وحشي خرونو په
شان دروازو طرف ته اوتښتيدل' خو هغه بندې وې. آخر چه هرقل
د هغوي دومره) نفرت اوليد' او د هغوي د ايمان راوړلو نه

الْإِيْمَانِ قَالَ رَدُّوْهُمْ عَلَيَّ وَ قَالَ اِنِّيْ قُلْتُ مَقَالَتِيْ اٰنِفًا اَخْتَبِرُ بِهَا شِدَّتَكُمْ عَلٰى دِيْنِكُمْ فَقَدْ رَاَيْتُ فَسَجَدُوْا لَهٗ وَ رَضُوْا عَنْهُ فَكَانَ ذٰلِكَ اٰخِرُ شَاْنِ هِرَقْلَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِاللّٰهِ رَوَاهُ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ وَ يُوْنُسُ وَ مَعْمَرُ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

ناامیده شو نو ورے ونیل دا خلق ماته واپس راولئے (چه هغوي راغلل) نو ورته ئے او وے چه اوس ما کومه خبره کړے وه، نو هغے سره م ستاسو دَ دین دَ مضبوطئ امتحان اخستلو، او هغه ماته[۲۶] معلومه شوه بیا خلقو هغهٔ ته سجده او کړه، او دهغهٔ[۲۷] نه خوشحاله شو. دَ هرقل آخري حالت دغه پاتے شو. ابو عبدالله وائي، چه دا حدیث (دَ شعیب نه علاوه) صالح بن کیسان یونس اور معمر هم دَ زهري نه روایت کړے دے.

۱. هرقل، د روم د باداشاه لقب وو.

۲. ایلیا، د بیت المقدس نوم دے.

۳. د دے سوال مقصد داوو چه د مکے د خلقو قافله کښې هغه خلق وو چه د محمد صلي الله علیه وسلم سخت مخالف (دښمنان) وو دد ے وجے نه هرقل داسے سړے خوښوو چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم د خپلوئي رشته دارئ په سبب زیات خبر وي. او د تسلئ معلومات ورکولے شي.

۴. دا هم د رسول الله صلي الله علیه وسلم یو معجزه ده چه د هغوي زیات مخالف دښمن د خپل خواهش سره سره، دروغ ویلے نه شو او په رښتیا ویلو مجبوره وو.

۵. مکه کښې د ټولو نه لویه زوره وره او عزتمنده قبیله د قریشو وه. او په قریشو کښې د شرافت په حقله د بنو هاشم خاندان زیات شریف ګڼړلے شو. رسول الله صلي الله علیه وسلم دَ بني هاشم خاندان وو.

۶. یعني زیات مسلمانان هغه خلق وو څوک چه د مال په حقله غریبانان وو. کني، حضرت ابوبکر صدیقؓ، حضرت خدیجهؓ، حضرت حمزهؓ، او حضرت عمر رضي الله عنهم په مالدارئي کښې دلوئے حیثیت خلق وو.

۷. دا یو عربي متل دے. چه په داسے موقعو ویلے شي، مطلب ئے دا دے چه د جنګ معامله داسے ده، چه کله یو ټولے ګټه کوي کله بل ټولے فتحه حاصلوي.

۸. د صلۀ رحمئے (د خپلوئي پاللو) مطلب دے چه د وینے د خپلوانو تعلقات باقي ساتي د خپلو خپلوانو عزیزانو سره ښه سلوک کوي.

۹. د "هرقل" د خبرو نه دا اندازه لیږي. چه هغه لوئے عقلمند، منصف مزاج او د حق طرفدار وو. دا خبرے چه ابوسفیان (رضي الله عنه) سره اوشوے د یو عقلمند انسان د پاره، د رسول الله صلي الله علیه وسلم د دعوت منلو د پاره کافي دي. بدے شرط سره، که حق لټوي.

۱۰. هرقل چه څنګه د أبوسفیان (رضي الله عنه) په یو یو خبره غور کولو، د هغے جواب بدئے ورکوو. د دے نه معلومیږي چه د مذهب د روح او د پیغمبرانو د تاریخ نه، ښه خبروو. چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم یو یو خصوصیت به ئے د نورو پیغمبرانو د خصوصیت سره کتلو، نو بدے نتیجه او رسیدو. چه محمد صلي الله علیه وسلم په حقه نبي دے.

۱۱. يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم به دا بادشاهت واخلي. چه كوم ځاے وخت ځما قبضه كښې دے.

۱۲. يعني ما به ئې غلامي كوله او دهغه پښې به مې وينځلې.

۱۳. اول هغه ته، د رسول الله صلي الله عليه وسلم خط مبارك رسيدلے وو. هغه ئې او كتلو، د هغې نه ئې روستو د قريشو قافلے را او غوختله چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم حالات معلوم كړي. د ابوسفيان (رضي الله عنه) د پوره بيان نه روستوئې خط مبارك بيارا اوغوښتو او اوئې لوستلو.

۱۴. په كتلو خو ډير ساده خط وو. خو ډير أثري او ډير عزتمند، په داسے بهادرئ زړه ور والي او بے تكلفئ سره داسے لوئے بادشاه ته د اسلام بلنه وركول، دا دهغه انسان كار دے چه د خپلے خبرے ئې د رښتياوالي پوره يقين دي. او پخپله دعوه كښې رښتينے او د اعتبار وړوي.

۱۵. د اسلامي قوانينو په وجه په دنيا كښې امن و سكون او آرام به دے نصيب شي. او چه اسلام قبول كړے نو په آخرت كښې به جنت دركړي او خدائے تعالىٰ به درنه رضا شي.

۱٦. په حديث كښې راغلي دي چه اهل كتاب، اسلام قبول كړي نو هغوي ته دوه دونړي ثواب وركړے شي. يو ثواب د خدائے تعالىٰ د اولني شريعت په منلو، او دويم ثواب د آخري شريعت په قبلولو باندے.

۱۷. يعني چه كوم دين ستا دے هغه به ستا د رعيت هم دين وي كه عيسائي پاتے شے تو ستا رعيت به هم عيسايان وي. او كه اسلام قبول كړے نو ستا رعيت به هم مسلمانان شي، چه دهغے ثواب به د بادشاه عمل نامه كښې اوليكلے شي. او كني د اسلام نه قبلولو ستا گناه او ستا د رعيت گناه به هم ستا په غاړه وي.

۱۸. عيسايانو د تثليث (د درے خدايانو منلو) عقيده خپله كړے وه. او هغوي به پادريان هر څه منل، د قرآن دے آيت كښې د هغوي گمراهئ ته اشاره ده.

۱۹. يعني د مسلمان اصل ذمه داري تبليغ دے د تبليغ نه پس كه څوك اسلام نه مني نو دا دهغه خپل عمل دے.

۲۰. د مكے كافرانو به رسول الله صلي الله عليه وسلم ته بے اَدبے كولو په وجه ذَ ابو كبشه ځوئے ويل. دا د داسے سړي نوم وو چه د بُتانو په ځائے ئې د يو ستوري عبادت كولو.

۲۱. ابوسفيان (رضي الله عنه) په آخري وقت كښې چه كله مكه فتحه شوه اسلام قبول كړو.

۲۲. ايلياء د بيت المقدس نوم دے.

۲۳. ذَ بيت المقدس حاكم ته.

۲۴. رسول الله صلي الله عليه وسلم، هرقل ته په شپږم هجري كال كښې د دحيه كلبي رضي الله عنه په لاس چه پخوانے مسلمان صحابي وو، خط ليكلے وو.

۲۵. "د هرقل" د دے خبرے نه معلوميږي. چه هغه ذَ اسلام قبلولو اراده كړے وه. مگر د خپلو سردارانو او دعوامو ذَ ويرے (خوف) نه پكښې دومره جُرأت پيدا نه شو، چه اسلام ئې په خوشحالئ قبول كړے وئے.

۲٦. د هرقل د طرفنه ذَ اسلام دعوت ډيره نااَشنا او داسے خبره وه چه ذَ دے اميد نشو كيدے او زر

ترزره خپل مذهب پرېښوول هغې خلقو برداشت کولے نه شو. په عيسائيت کښې ذهغه خلقو ډيرے مزے او عيش عشرت آزادي وه. د دے خلقو د شوروغوغا او د ګړبړ خوريدو د خطرے په وجه هرقل دروازے بندے کړے وے.

۲۷. کله چه "هرقل" ته اندازه اوشوه. چه دا بدنصيبه خلق په هيڅ طريقه اسلام نه قبلوي. نو هغه د خپلے خبرے انداز بدل کړو. او اوئے ويل: چه پدے خبره ما ستاسو خالص آزميښت کولو. نو بيا هغه ټول بے وقوفه خلق، "هرقل" ته په سجده پريوتل. پدے سجده هغوي خپل تعظيم او خپلے فرمان براداري ئے ښکاره کړه. د "هرقل" په حقله دا روايت هم راغلے دے چه هغه مسلمان شوے وو مګر صحيح خبره داده چه هغه په اسلام مين وؤ او مسلمان نشو او تر آخره پورے عيسائي وو لکه څنګه چه د حديث د آخرے حصے نه معلوميږي. دا ذکر شوے حديث شريف د رسول الله صلي الله عليه وسلم د بعثت د اولني حالاتو او د هغه صفات او خصوصيات پکښې بيان شويدي. چه کوم نورو عزتمندو پيغمبرانو کښې وؤ د باب د سر خط نه دا معلوميږي چه د وحي د نازليدو د پاره د کوم حيثيت انسان پکار دے هرقل په هغه معيار د نبي عليه السلام په حيثيت ذ ځان پوه کولو کوشش اوکړو ذ نبي عليه السلام حيثيت ورته معلوم شو. ذ اسلام حقانيت ورته په ډاګه شو. بدقسمته وؤ اسلام ئے قبول نه کړے شو. قسطلاني ليکلے دي. چه د هغه دوخته، يولسمے هجري صدے پورے د نبي عليه السلام هغه مبارک خط د هرقل اولاد سره ذ تبرّک په طور د سروزرو په صندوق کښې محفوظ پروت وؤ. په ډير اهتمام او خيال ئے ساتلے وو.

**فائده:** دے امر کښې ذ علماؤ اختلاف دے، چه هرقل ايمان راوړے وو يا نه. کوم خلق چه ذ هغهٔ ذ ايمان قائل دي، هغوي ذ دے حديث ذ دے جملے نه استدلال کوي "که زهٔ هلته وے" نو ما به ذ هغوئ پښے وينزلے" څکه چه دا ذ هغه ذ هغے کيفيت قلبي اظهار دے، چه ذ هغهٔ ذ حضور ذ نبوّت په سلسله کښې پيدا شوے وو، چه ذ هغے په بنا هغه مؤمن شو. خو ذ بوے ډلے دا خيال دے چه هرقل مؤمن نهٔ وو، څکه چه صرف زړهٔ کښې ذ نبوّت اعتقاد ته بغير ذ ژبے ذ اقرار او علي الاعلان اظهار نه ايمان نشي وئيلے.

## كِتَابُ الْإِيْمَانِ

## (ذ ايمان بيان)

**باب ۲ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ وَّهُوَ قَوْلٌ وَّ فِعْلٌ وَّ يَزِيْدُ وَ يَنْقُصُ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِيَزْدَادُوْا اِيْمَانًا مَعَ اِيْمَانِهِمْ وَ زِدْنٰهُمْ هُدًى وَّ يَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى وَّالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّ اٰتٰهُمْ تَقْوٰىهُمْ وَ يَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِيْمَانًا وَّ قَوْلُهٗ**

**باب ۲ :** ارشادِ نبويّ چه ذ اسلام بنياد په پنځو څيزونو دے. او ايمان وينا او کولو دواړوته وئيلے شي، او کميږي او زياتيږي الله تعالٰي (ګنړو ځايونو کښې) فرمائيلے دي، چه ذ ايمان والو، په ايمان، ايمان زيات شي، او مونږ ذ هغے خلقو هدايت زيات کهٔ، او الله تعالٰي ذ هدايت يافته خلقو هدايت زياتوي او کوم خلق چه هدايت يافته دي، د هغوي هدايت الله تعالٰي زيات کهٔ او هغوي ته ئے ذ هغوي تقوي ورکړه او ذ ايماندارو ئے ايمان زيات کهٔ، او د الله

عَزَّ وَجَلَّ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖ اِيْمَانًا فَاَمَّا
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّ قَوْلُهٗ
فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا وَّ قَوْلِهٖ وَمَا
زَادَهُمْ اِلَّا اِيْمَانًا وَّ تَسْلِيْمًا وَّالْحُبُّ فِي
اللّٰهِ وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ مِنَ الْاِيْمَانِ وَ
كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اِلٰى عَدِيِّ
بْنِ عَدِيٍّ اَنَّ لِلْاِيْمَانِ فَرَائِضَ وَ
شَرَائِعَ وَ حُدُوْدًا وَّ سُنَنًا فَمَنِ
اسْتَكْمَلَهَا اسْتَكْمَلَ الْاِيْمَانَ وَمَنْ لَّمْ
يَسْتَكْمِلْهَا لَمْ يَسْتَكْمِلِ الْاِيْمَانَ فَاِنْ
اَعِشْ فَسَاُبَيِّنُهَا لَكُمْ حَتّٰى تَعْمَلُوْا بِهَا
وَ اِنْ اَمُتْ فَمَا اَنَا عَلٰى صُحْبَتِكُمْ
بِحَرِيْصٍ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ
السَّلَامُ وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ وَ قَالَ
مُعَاذٌ اِجْلِسْ بِنَا نُؤْمِنُ سَاعَةً وَ قَالَ
ابْنُ مَسْعُوْدٍ اَلْيَقِيْنُ الْاِيْمَانُ كُلُّهٗ وَ
قَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ حَقِيْقَةَ
التَّقْوٰى حَتّٰى يَدَعَ مَا حَاكَ فِي
الصَّدْرِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ
الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا اَوْصَيْنَاكَ يَا
مُحَمَّدُ وَ اِيَّاهُ دِيْنًا وَّاحِدًا وَّ قَالَ ابْنُ
عَبَّاسٍ شِرْعَةً وَّ مِنْهَاجًا سَبِيْلًا وَّ سُنَّةً
وَّ دُعَآءُ كُمْ اِيْمَانُكُمْ.

تعالٰي ارشاد (دے) چه تاسو کښې ئے دَ چا ایمان زیات کړ، نو
څوک چه ایماندار دي، دَ هغوي ایمان هغهٔ زیات کړے دے،
او دَ اللّٰه تعالٰي قول (دے) چه دَ هغوي ایمان او تسلیم ئے
زیات کړ، او دَ اللّٰه د پاره چاسره محبت کول او دَ اللّٰه دَ پاره
چاسره بُغض ساتل ایمان کښې داخل دي، او عمر بن
عبدالعزیز عدي بن عدي ته اولیکل چه دَ ایمان یو څو فرائض
دي، یو څو شرائع دي او یو څو سنت دي، څوک چه دا ټول
کامل کړي، نو هغهٔ ایمان کامل کړ، او څوک چه دا کامل نهٔ
کړي، نو هغهٔ ایمان نامکمله پریښودهٔ، او که زهٔ ژوندے پاتې
شوم، نو هغه به تاسو خلقو ته بیان کړم، چه تاسو پرے عمل
اوکړئے، او که مړشوم، نوزهٔ تاسو سره دَ او سید و خواهش
مند نهٔ یم، او ابراهیم علیه السلام وئیلي وو، "دَ پاره دَ دے چه
څما زړهٔ مطمئن شي" او معاذ (بن جبل) (یو څلي اسود ته)
اودے، مونږ سره کېنه، چه څهٔ ساعت له مونږ ایماندار شو. او
ابن مسعود او فرمائیل، چه یقین ټول ایمان دے. او ابن عمر
او فرمائیل، چه بنده دَ تقویٰ حقیقت هغه وخت حاصل کړي
چه زړهٔ کښې شک شبهه پیدا کونکې خبرے هم دَ دے
خوف نه پریږدي، چه چرته دا هم شریعت کښې ناروا نهٔ وي،
او مجاهدٌ وئیلي دي چه: شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ
نُوْحًا، (مطلب ئے دا دے) چه مونږ تاته او نوحٌ ته اے محمدهٌ،
د یو دین تعلیم درکړے دے. او ابن عباسٌ وئیلي دي چه دَ
شرعة او منهاج معني لاره او طریقه ده او دُعَاءُ كُمْ (لَوْلَا
دُعَاؤُكُمْ) معني ده "ستاسو ' ایمان"

ف ۱. دے کښې هم دَ علماؤ اختلاف دے، بعضے علماء وائي چه وېل، او عبادت کول دَ ایمان حصه نه ده.
لیکن امام بخاريؒ او نور محدثین وینا او عمل دواړه دَ ایمان حصے ګرځولې دي.

۲. دَ آیتونو دَ ترجمے نه ظاهرېږي چه ایمان کښې کمے زیاتے کېږي. دَ بعضے حضراتو قول دے چه
دا کمے زیاتے صرف دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلم دَ حیات پورے محدود وو، ځکه چه دَ آیات قرآنیه

نزول كيدلو، چه كوم نوے حكم به نازل شو نو ذَ هغے تصديق سره به ايمان زياتيدهٔ.

۳. ذَ هغے آيت ترجمه ده، چه هغے كښ ابراهيم عليه السلام اللّٰه تعالىٰ ته خواست او كهٔ چه ماته مړي ژوندي كول اوښائے، نو ارشاد الٰهي اوشو، چه ابراهيمؑ، ستا په دے يقين نهٔ دے څه نو عرض ئے او كهٔ، چه اے ربه، يقين خوم پوره دے، ليكن عين اليقين حاصلول غواړم. قلب كښ چه څهٔ دي، هغه حق اليقين دے او يوے درجے نه بلے درجے طرف ته تلل ذَ ايمان زياتے دے.

۴. دين محمديؐ او ذَ نوح عليه السلام په دين كښ كمي بيشي شته خو بنيادي اصول ئے يو دي، نو خكه اللّٰه تعالىٰ دواړوته يو او فرمائيل. دے نه معلومه شوه، په دين كښ كمي بيشي كيږي.

۵. ذَ دُعا لفظ يو آيت كښ وارد شوے دے. ذَ ابن عباسؓ مقصود دا دے، چه دے آيت كښ دُعا نه مراد ايمان دے. مصنف ذَ ايمان كمي زياتي ثابتولو ذَ پاره ډير آيتونه او ذَ صحابه ؤ او تابعينو اقوال پيش كړے دي. چه ذَ هغے نه ذَ هغوي په خيال كښ ذَ هغوي دعوي ثابتيږي، نو يو آيت كښ ذَ دُعا لفظ نه خان له دليل جوړ كړے. چه دعا عمل دے ورته ايمان وائي. ليكن كوم علما چه دا وائي چه ايمان كښ كمي زياتي نهٔ كيږي ذَ هغوي ذَ طرف نه ذَ دے ټولو دليلونو جوابونه وركړے شوے دي ذَ دے خلقو په نزد ايمان په هغے امورو ذَ تصديق قلبي نوم دے، چه ذَ سورة بقره آخري آيتونو: اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ الخ: كښ بيان شوے دي. او نورو احاديثو كښ هم دغے اُمورو ته ايمان وئيلے شوے دے او ذَ كومو احاديثونه چه امام بخاريؒ ذَ ايمان ذَ كمي زياتي استدلال كوي حقيقت كښ دا ټول اعمال ذَ ايمان بالكتاب تفصيل دے.

۱. ددے آيتونو ذكر كولونه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا مقصد دے چه ايمان كښ كمے زياتے ثابت شي. ليكن د مخكنو او روستنو عالمانو هغه مسلك دے چه هغے ته وړاندے اشاره شويده. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه چه د ايمان كمے زياتے ثابتوي. غالباً هغه د ايمان د اندازے په حقله نه وائي. بلكے د ايمان كمے زياتے د هغے د حالت په حقله وائي. خكه چه كوم څيزونو باندے يقين كول ايمان دے هغه معلوم دي. په هغ كښ ذَ يو نه انكار او شي. نو ايمان ختميږي. ايمان كښ چه كومو كمے زياتے دے هغه د يقين او پيژند ګلو سره تعلق لري. كله د اللّٰه د قدرت داسے يو نظاره مخے ته راشي. چه د هغه په مينه زيات مست شي. كله د انسان زړه د ګناه په زنګ ككړ شي، نو ذَ ايمان خواږه ئے د زړه نه لرے شي. دا د ايمان كمے زياتے دے د دے آيتونونه دا هم معلوميږي چه دين كښ كمے زياتے كيږي. او ذَ دِين بنيادي څيزونه اعمال په هره زمانه كښ شريک وي. هر پيغمبر هغے ته خلق رابلي، ذَ دِين هغه احكام چه هغے ته شريعت وائي هغه د هر قوم د هرے زمانے د خلقو د حالت په اندازه دي ليكن ذَ محمد صلي اللّٰه عليه وسلم دين د ټولو پيغمبرانو ذَ شريعت ضروري احكامو خلاصه ده په دے وجه د هر قوم د هرے زمانے د ضرورتونو مطابق دے.

۷: حَدَّثَنَا عُبَيْدُاللّٰهِ ابْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ ابْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۷: عبيداللّٰه بن موسٰي، حنظله بن ابي سفيان، عكرمه بن خالد، ذَ ابن عمرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلعم او فرمائيل، ذَ اسلام بنياد په پنځو ' څيزونو دے. (۱) ذَ دے خبرے ګواهي كول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءُ الزَّكٰوةِ وَالْحَجُّ وَ صَوْمُ رَمَضَانَ.

چه دَ اللّٰه نه بغير بل معبود نشته او دا چه محمدٌ دَ اللّٰه رسول دے. (۲) مونځ د تولو شرطونو آدابو سره ادا كول. (۳) زكوٰة وركول (۴) حج كول (۵) دَ رمضان روژے نيول.

۱. پنځه ستنے چه په هغے د اسلام آبادے ولاړ دے په هغے كښ كلمهٔ شهادت هغه بنيادي ركن دے چه د هغے نه بغير مونځ روژه حج زكات ټولے ستنے بے كاره دي. عقيده هغه ضروري بنياد دے چه د اللّٰه په يو والي، او د محمد صلي اللّٰه عليه وسلم په رسالت باندے يقين او اعتماد باندے پيدا كيږي د دے نه وروستو عملي ژوند كښ دَ مونځ اولنے مقام دے د هغے نه روستو زكات بيا روژه بيا حج دے دے روايت كښ روژه د حج نه روستو بيان شويده مگر د مسلم شريف په روايت كښ روژه د حج نه وړاندے ذكر ده. جهاد دے روايت كښ ځكه بيان نه شو چه هغه فرض كفايه دے دويم دا چه دَ جهاد مقصد د اسلام پنځو بنيادونو د پاره چهت دے چه هغه د باران، گرمئ، يخنئ نه حفاظت كوي. ځكه جهاد بنياد كښ شامل نه شو جهاد دَ اسلام اوچت عمل دے نورو احاديثو كښ د جهاد اهميت ډير زيات دے. چه د جهاد نه بغير دَ اسلام دا پنځه بنيادونه، نشي بچ كيدے دے ځائے كښ دهغه خبرو بيان اوشو چه دَ اسلام قبلولو او د مسلمانيدو د پاره ضروري دي. كوم انسان چه دا پنځه څيزونه مني او اقرار ئے كوي دا دَ هغه د خلاصي د پاره كافي دي.

## باب۳: اُمُوْرِ الْاِيْمَانِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّوَ جَلَّ لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ اِلٰى قَوْلِهٖ الْمُتَّقُوْنَ، قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاٰيَة.

باب ۳: دَ هغے څيزونو بيان چه ايمان كښ داخل دي. دَ اللّٰه تعالٰي ارشاد، دا نيكي نهٔ ده چه تاسو خپل مخونه مشرق او مغرب طرف ته اوگرځوئے، بلكه نيكي داده، چه په اللّٰه ايمان راوړي، المتّقون پورے (او) يقيناً ايماندار كامياب دي. الاٰية.

۸: حَدَّثَنَا عَبْدُاللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ نِالْجُعْفِيُّ قَالَ ثَنَا اَبُوْ عَامِرِ نِالْعَقَدِيُّ قَالَ ثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْاِيْمَانُ بِضْعٌ وَّ سِتُّوْنَ شُعْبَةً وَّالْحَيَآءُ شُعْبَةٌ مِّنَ الْاِيْمَانِ.

۸: عبداللّٰه بن محمد جعفي. ابو عامر عقدي. سليمان بن بلال. عبداللّٰه بن دينار. ابو صالح. ابو هريرهٌ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه نقل كوي حضورٌ او فرمائيل، دَ ايمان دَ شپيتو نه، زيات بناخونه دي. او حيا (هم) دَ ايمان يو بناخ دے.

ف ۱. دَ شپيتو نه دا مقصد نهٔ دے چه صرف دومره حصے يا بناښونه ئے دي. بلكه دے نه ډير والي ته اشاره

شوے دہ. لکه نورو احاديثو كښې ذ دے نه زيات ذ اوياؤ شمير بيان شوے دے.

۱. يو بل حديث شريف كښې ذ ايمان ذ اوياؤ نه زياتے حصے بيان شويدي. مطلب ئے دا دے چه ذ ايمان ډيرے څانگے دي. چه په هغے كښې حيا' شرم ذ ايمان يوه حصه ده. پرده نه كول' بے شرمي او بے غيرتي د كافرو خويونه دي. ذ دے په مقابله كښې غيرت او حيا د ايمان څانگه ده. ددے نه معلومه شوه چه ايمان ذ اخلاقي خايستونو د مجموعے نوم دے. ذ حيا مطلب' هغه شرم دے چه انسان بے غيرتئ او د بے شرمئ د كارونو نه بچ ساتي' بے موقعے حياء او شرم په اصل كښې د نفس د كمزورئ دويم نوم دے.

باب ۴: اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَيَدِهٖ

باب ۴: مسلمان هغه دے چه ذ هغهٔ ذ ژبے او لاس نه مسلمانان محفوظ وي.

۹ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِي السَّفَرِ وَ اِسْمٰعِيْلَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَ يَدِهٖ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ اَبُوْ مَعَاوِيَةَ ثَنَا دَاوٗدُ بْنُ اَبِيْ هِنْدٍ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو وَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ عَبْدُ الْاَعْلٰى عَنْ دَاوٗدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹ : آدم بن ابي اياس' شعبه. عبداللّٰه بن ابي السفرا و اسماعيل. شعبي' عبداللّٰه بن عمروؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه نقل كوي' حضورؐ او فرمائيل' مسلمان هغه دے چه ذ هغهٔ ذ ژبے او لاس نه مسلمانان سلامت وي او مهاجر هغه دے چه هغه څيزونه پريږدي' چه ذ هغے نه اللّٰه منع كړيده بخاري اووے' چه ابو معاويه په روايت ذ داؤد. عامر عبداللّٰه بن عمروؓ' ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت اُوكهٔ او عبداللّٰه په روايت ذ داؤد. عامر. عبداللّٰه ذ نبي عليه السّلام نه روايت اوكهٔ'.

۱. مقصد دا دے چه رښتينے او پوخ كلك مسلمان هغه دے چه بل مسلمان ته د هغه د لاس يا ژبے نه نقصان او نه رسي نه ئے په لاس اوهي نه ورته په خوله بد ردا وائي داسے اصل هجرت هم دا دے چه انسان ذ هغه ټولو كارونو نه منع شي چه د كومو كارونونه اللّٰه تعالٰي منع كړيده. انسان پوره پوره د اللّٰه حكم منونكے جوړ شي دے حديث شريف كښې د مهاجرينو ذكر خاص طور باندے شويدے چه هغوي وطن پريښے ذ دين نورو اعمالو كښې سستي او نه كړي. يا د هجرت حبشه يا د هجرتِ مدينه ثواب هغه انسان ته وركيږي كوم چه حرام كارونه پريږدي. آخر كښې امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د دے حديث نور روايات ذكر كړيدي. دا حديث مسلم كښې نشته دا يوا خي د بخاري روايت دے.

باب ۵ : اَيُّ الْاِسْلَامِ اَفْضَلُ.

باب ۵ : كوم اسلام افضل دے.

۱۰ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدِ الْاُمَوِيُّ الْقُرَشِيُّ قَالَ ثَنَا اَبِيْ قَالَ ثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الْاِسْلَامِ اَفْضَلُ قَالَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَ يَدِهٖ.

۱۰ : سعيد بن يحيي بن سعيد اموي قرشي. يحيي بن سعيد. ابو برده بن عبدالله بن ابي برده ابو برده. ابو موسيؓ وائي' يو خلے صحابه ؤ عرض اوكه' يا رسول الله' كوم اسلام افضل دے' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' ذ هغے سړي اسلام (افضل دے) چه ذ هغهٔ ذ لاس [1] او ژبے نه مسلمانان په امن وي (بچ وي)

۱. ذ اِسلامي عقيدو منلو نه روستو' انسان مسلمان شماريږي د هغے عقيدونه پس ذ اسلام د دنيا د برکتونو او د آخرت د ثوابونو صحيح اندازه کيدلے شي. دے حديث شريف کښ د ريښتينے کلک مسلمان دا يوه نښه خودلے شويده چه غوره اسلام ذ هغه انسان دے چه پخپله ژبه چاته بد او نه وائي او پخپل عمل چاته ضرر او نه رسوي د طبيعت روغ' نفس ئے شريف وي او ټولو سره صلح کونکے وي. دے حديث شريف کښ اګر چه د مسلمان ذکر دے ليکن د نورو احاديثو مطابق دے کښ مسلمان او کافر ټول برابر دي.

بَاب ٦ : اِطْعَامُ الطَّعَامِ مِنَ الْاِسْلَامِ.

باب ٦ : بل له طعام ورکول د اسلام حصه ده.

۱۱ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْاِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَ تَقْرَءُ السَّلَامَ عَلٰى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ.

۱۱ : عمر بن خالد. ليث. زيد. ابو الخير. عبدالله بن عمروؓ وائي' يو سړي ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو' چه کوم قسم اسلام بهتر دے' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' بل له خوراک ورکوه او که څوک پيژنے او که څوک نهٔ پيژنے (ټولو) ته سلام کوه [1].

۱. سوال دے د پاره شوے وو چه ذ اِسلام خوبئ او شميرلے شي نو نبي عليه السلام دوه غوره اسلامي خويونه بيان کړل (۱) خوراک خورول' اوږے بنده ته خوراک ورکول' ميلمه' مسافر او د دوست خاطر مدار کول به دے کښ شامل دي (۲) دويم غوره عمل دا دے هر مسلمان ته سلام کول که آشنا وي او که نه سلام د يو بل سره د محبت ذريعه ده. او اسلامي رورولي دا غواړي چه يو مسلمان بل مسلمان سره يو خائے وي جُدا نه وي د سلام رواج ډيره اثر کونکے او آسانه ذريعه ده.

بَاب ٧ : مِنَ الْاِيْمَانِ اَنْ يُّحِبَّ

باب ٧ : خپل ورور ذ پاره هغه خبره خوښول

لِاَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهٖ.

کومه چه خان ذَ پاره خوښوي، ایمان کښې داخله ده[۱].

۱۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ وَ عَنِ الْحُسَيْنِ الْمُعَلِّمِ قَالَ ثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُؤْمِنُ اَحَدُكُمْ حَتّٰى يُحِبَّ لِاَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهٖ.

۱۲ : مسدّد. يحيٰي. شعبه. قتاده. انس، ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه نقل کوي، حضورؐ او فرمائيل، تاسو کښې څوک هغه وخته پورې مؤمن کيدې نشي، څو پورې چه ذَ خپل مسلمان ورور ذَ پاره هغه څيز خوښ نه کړي، کوم چه خان ذَ پاره خوښوي.

باب۸: حُبُّ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْاِيْمَانِ.

باب۸: رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره محبت ساتل ذَ ایمان یوه حصه ده.

۱۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ ثَنَا شُعَيْبٌ قَالَ ثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يُؤْمِنُ اَحَدُكُمْ حَتّٰى اَكُوْنَ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِنْ وَّالِدِهٖ وَ وَلَدِهٖ.

۱۳ : ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعرج، ذَ ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، خما دې په هغه ذات قسم وي، چه ذَ هغهٔ په لاس کښې خما ساه ده، تاسو کښې څوک ايماندار کيدې نشي، څو پورې چه زهٔ هغه ته ذَ هغهٔ ذَ پلار او اولاد نه زيات خوږ (محبوب) نشم[۱].

۱. ذَ اسلام دولت مونږ ته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په ذريعه راکړې شويدې ذَ دې وجې نه ذَ اللّٰه تعالیٰ نه پس په مونږ زيات احسان ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دې اسلام هغه دين دې چه د هغې په وجه مونږ ته د امن سلامتيا، او دبنه ژوند طريقې ښودلې شويدي. د مور پلار په وجه مونږ دنيا ته راغلې يو او اولاد په دنيا کښې خمونږ دلښې نښانې باقي پاتې کيدو صورت دې ليکن د ورو کوالي نه تر مرګه، خمونږ د ټول ژوند د سميدو لاره او دهغې نه روستو د هميشه ژوند د سمولو لارې مونږ ته محمد صلي اللّٰه عليه وسلم ښودلې دي له دې کبله په مونږ ذَ نبي عليه السلام ډير لوئې احسان دې نو دهغه سره ډير تعلق او ډيره مينه پکار ده. دا مينه چه څومره زياته وي دومره به ايمان پوره وي.

۱۴ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ ثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ

۱۴ : يعقوب بن ابراهيم. ابن علّيه عبدالعزيز بن صهيب. انسؓ. ح (دويم سند) آدم بن ابي اياس. شعبه. قتاده. ذَ انسؓ نه روايت کوي نبي صلي اللّٰه عليه وسلم

إِيَاسٍ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى أَكُوْنَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهٖ وَ وَلَدِهٖ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ.

او فرمائيل. تاسو كښې څوک (كامل) مؤمن كيدے نشي، څو پورے چه زهٔ ذَ هغهٔ دَ پلار، دَ هغهٔ دَ اولاد او دَ ټولو خلقو نه هغه ته زيات محبوب نشم.

## بَاب ۹ : حَلَاوَةُ الْإِيْمَانِ.

## باب ۹ : دَ ايمان دَ خوږ والي بيان.

۱۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ قَالَ ثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلٰثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْإِيْمَانِ أَنْ يَكُوْنَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَ أَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهٗ إِلَّا لِلّٰهِ وَ أَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُوْدَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ.

۱۵ : محمد بن مثنٰى. عبدالوهاب ثقفي. ايوب. قلابه. انس رضي الله عنه دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل دا درے خبرے چه چا كښې وي هغه به دَ ايمان خوږ والے بيامومي چه (۱) اللّٰه او رسول دَ هغهٔ په نزد، دَ ټول ماسوا نه زيات محبوب وي. (۲) او چا سره چه محبت كوي نو اللّٰه دَ پاره ورسره محبت كوي (۳) او كفر ته واپس گرځيدل داسے بد او گنړي څنګه چه اُور كښې غورځيدل (هغه) بد گنړي.

۱. مؤمن ته دَ اللّٰه او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم محبت او تعلق د ټولے دنيا نه زيات پكار دے ايمان دَ اللّٰه په يو والي او دَ رسول صلي اللّٰه عليه وسلم په رسالت موقوف دے څومره چه د واړو سره زيات تعلق وي دومره به د بنده ايمان پوره وي او دَ ايمان مزے به اخلي، بيا د يو مؤمن تعلقات د دنيا د مقصدونو پخانے دَ اللّٰه ـ پاره پكار دي. دريمه خبره داده چه انسان ته د كفر نه دومره زيات نفرت پكار دے څومره چه هغه په اور باندے د سوزيدو نه نفرت كوي. ځكه چه كفر دَ ايمان ضد دے دا درے خبرے چه چاكښې وي هغه به يقيني ډول باندے پوخ او رښتينے مسلمان وي او هغه به د ايمان مزے اَخلي هغه د صحابه ؤ كرامو د ژوند د كارنامو نه معلوميږي چه د هغوي د قربانو او د خدائے په لاره كښې خپل سرونو روحونو قربانولو نه د ايمان د خوږوالي اندازه كيدے شي.

## بَاب ۱۰ : عَلَامَةُ الْإِيْمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ.

## باب ۱۰ : انصارو سره محبت ساتل دَ ايمان نښه ده.

۱۶ : حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ

۱۶ : ابوالوليد. شعبه. عبداللّٰه بن جبير. انس بن مالک رضي الله عنه دَ نبي صلعم نه نقل كوي حضورؐ او فرمائيل انصارو سره محبت ساتل دَ ايمان

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰيَةُ الْاِيْمَانِ حُبُّ الْاَنْصَارِ وَ اٰيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْاَنْصَارِ.

نښه ده' او انصارو سره دشمني ساتل ذ منافقت نښه ده'.

۱. چه کوم وخت نبي عليه السلام دا فرمايلي وو هغه وخت داسې وو چه د مدينې مسلمانانو ته د اللّٰه د رسول صلي اللّٰه عليه وسلم د طرفنه د انصار لقب د اعزاز په طور ورکړې شوې وو چه هغوي د مکې نه هجرت کونکو مسلمانانو مدد کړې وو. کله چه د اللّٰه تعالٰي رسول صلي اللّٰه عليه وسلم مدينې منورې ته هجرت اوکه. او دهغه سره د مسلمانانو ګنړ شمير خلق مدينه منوره کښې اوسيدل. د مدينې مسلمانانو په هغه وخت چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او د نورو مسلمانانو کوم مدد کړيدلې او د هغوي ملګرتيائې کړيده د هغې مثال تاريخ کښې نشته' د هغوي دا ډير لوئې احسان وۆ د هغې بدله اللّٰه پاک داسې ورکړه چه د قيامت د ورځې پورې مسلمانان هغوي په عزتمند نوم انصار سره يادَوي. څرنګ چه د هغوي په ژوند هغوي سره محبت ضرور وۆ. نن هم هغوي سره محبت کول ضروري دي که انصارو د مدينې په هغه نازک وخت کښې دَ اسلام مدد نه وۆ کړې نو په ظاهري حالاتو کښې په عربو کښې هم اسلام خوريدې نشو. او مونږ ته به د اسلام نعمت رسيدلې نه وو. له دې کبله د انصارو سره مينه د ايمان حصه مقرر شوه.

باب ۱۱:

باب ۱۱: (دا باب بې عنوانه دې)

۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَنَا اَبُوْ اِدْرِيْسَ عَائِذُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَّهُوَ اَحَدُ النُّقَبَآءِ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ حَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ بَايِعُوْنِيْ عَلٰى اَنْ لَّا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَّلَا تَسْرِقُوْا وَلَا تَزْنُوْا وَلَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَكُمْ وَلَا تَاْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَ اَرْجُلِكُمْ وَلَا تَعْصُوْا فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَفٰى مِنْكُمْ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوْقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا

۱۷: ابواليمان. شعيب. زهري. ابو ادريس. عائد اللّٰه بن عبداللّٰه بيان اوکۀ چه عباده بن صامت چه جنګ بدر کښې شريک وه' او شپ عقبه کښې يو نقيب (دربان) وو هغه وائي رسول اللّٰه صلعم هغه وخت او فرمائيل' چه ذ حضورٌ نه ذ اصحابو يو جماعت چاپيره ناست وو چه تاسو مانه ذ دې خبرې بيعت اوکړئ' چه اللّٰه سره به څوک شريک نه جوړوئې. غلا به نۀ کوئې زنا به نۀ کوئې او خپل اولاد به نۀ قتلوئې او نه به ذ خانه په چا تهمت لګوئې او بنۀ خبره کښې به (ذ خدائې او رسول) نافرماني نۀ کوئې' نو څوک چه تاسو کښې دا (عهد) پوره کړي ذ هغه ثواب ذ اللّٰه په ذمه دې. او څوک چه دې (خرابو) خبرو کښې يوه کښې آخته شي' او دُنيا کښې ذ هغې سزا ورکړې شي' نو دا سزا به ئې کفاره شي. او څوک چه دې (ب' و) خبرو کښې يو کښې اخته شي او اللّٰه :رې پرده واچوي' نو هغه ذ اللّٰه په

ثُمَّ سَتَرَهُ اللّٰهُ فَهُوَ اِلَى اللّٰهِ اِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَ اِنْ شَآءَ عَاقَبَهُ فَبَايَعْنَاهُ عَلٰى ذٰلِكَ.

حواله دے كه غواړي نو معاف به ئے كړي او كه غواړي نو عذاب به وركړي (عباده بن صامت وائي چه) مونږ ټولو د حضورؐ سره په دے شرط بيعت' او كه.

۱ د دے حديث شريف راوي هغه انصاري صحابي دے چه هغه مكے ته تلے وو او د حج په موقع عقبه سومے ځائے كښ د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره بيعت كړے وؤ. نبي عليه السلام د مدينے د خلقو تعليم و تربيت د پاره چه كوم دولس صحابه خپل نائبان او نقيبان مقرر كړے وو دا راوي د هغوي يو ملگرے نقيب دے جنگ بدر كښ شامل وؤ. پدے حديث كښ دا ذكر نشته چه د مدينے خلقو ته انصار ولے وائي ليكن د دے نه دا معلوميږي چه د مدينے مسلمانان د اسلام د مدد د پاره مكے شريفے ته تلے وو د اسلام د مدد بيعت ئے كړے وو په دے وجه ورته انصار ويلے شي انصار د ناصر جمع ده د ناصر معني ده "مدد كونكے" د دے حديث نه دا مسئله ثابتيږي چه كله دَ اسلامي قانون مطابق چه كله يو مجرم ته د هغه د جرم سزا وركړے شي. دا د آخرت د سزا كفاره ده بيا به ورته نوره سزا نه وركيږي دويم ترے دا معلومه شوه چه خرنگ دا ضروري نده' چه اللّٰه تعالي د هر جرم سزا وركړي داسے په اللّٰه تعالي د نيكئ بدله وركول هم فرض نه دي كه دَ جرم سزائے وركړه دا د اللّٰه انصاف دے او كه جرم ئے معاف كړو نو دا د هغه رحمت دے كه د نيكئ ثواب ورنكړي دا د اللّٰه بے نيازي ده او كه ثواب وركړي نو دائے كرم دے. دريمه مسئله داده كه د گناه كبيره كونكے بے توبے مړ شي نو دا د اللّٰه خوښه ده كه دَ ايمان په بركت ئے بغير د سزا وركولو جنت ته بوزي او كه اوغواړي نو سزا به وركړي بيا به ئے جنت ته بوزي څلورم ترے دا معلومه شوه چه دا مناسب نه دي چه د يو خاص انسان په حقله د هغه د جنتي كيدو يا دوزخي كيدو وينا اوكړي. پنځمه ترے دا معلومه شوه چه ايمان په زړه كښ دے نو صرف په گناه كولو څوك نه كافر كيږي. په دے حديث شريف كښے دَ اسلامي تعليم او د ښو اخلاقو خلاصه او مغز بيان شويدے كه د دے په مضمون عمل اوشي نو د كاميابئ د پاره كافي دے.

## بَاب۱۲ : مِنَ الدِّيْنِ الْفِرَارُ مِنَ الْفِتَنِ

باب ۱۲ : فتنونه تيښته دَ دين حصه ده.

۱۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ اَنَّهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْشَكُ اَنْ تَكُوْنَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ

۱۸ : عبداللّٰه بن مسلم. مالك. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن بن ابي صعصعه. عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن. ابو سعيد خدريؓ وائي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل نزدے ده چه دَ مسلمان ښه مال به چيلئے وي' هغه به واخلي او دَ غرونو څوكو او ميدانونو ته چرته چه د

بِهَا...... شَعَفَ الْجِبَالِ وَ مَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِيْنِهٖ مِنَ الْفِتَنِ. باران د وريدو خايونه دي هلته به لاړ شي، ذ پاره ذ دے چه خپل دين ذ فتنو نه بچ كړي'.

١. د دے حديث شريف نه دا معلومه شوه. چه انسان ته په هر حالت كښ د فتنو نه ځان بچ كول ضروري دي. چه كله فتنه فساد دومره زيات شي چه اصلاح ئے نه كيږي. نو په داسے وخت كښ ځان له په كوټ كښ كيناستل او يواځے كيدل غوره دي. باقي دا چه فتنه څه ته وائي. نو پدے كښ ذ فسق و فجور زياتيدل د سياسي حالاتو خرابے او د حكومتي چارو واكو خرابيدل دا ټول فتنه ده. چه د انسان په ژوند د هغے اثر غورزيكي چه د هغه د دين حفاظت هم گرانيږي. نو په داسے حالاتو كښ كه څوک د دين بچ كولو د پاره د يواځے كيدو ځائے ته لاړ شي چه هلته د فتنو نه بچ شي. نو دا هم د دين خبره ده په دے به اجر ثواب الله تعالى وركوي.

باب۱۳: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا اَعْلَمُكُمْ وَ اَنَّ الْمَعْرِفَةَ فِعْلُ الْقَلْبِ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلٰكِنْ يُّوَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ.

باب۱۳: ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم قول چه زۀ تاسو كښ ذ ټولو نه زيات الله پيژنم او ذ دے خبرے ثبوت چه معرفت ذ زړۀ فعل دے په قول ذ الله تعالى چه "ليكن الله به تاسو په هغے نيسي چه ستاسو زړونو كړے وي"

۱۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَمَرَهُمْ مِنَ الْاَعْمَالِ بِمَا يُطِيْقُوْنَ قَالُوْا اِنَّا لَسْنَا كَهَيْئَتِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ غَفَرَلَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ فَيَغْضِبُ فِيْ وَجْهِهٖ ثُمَّ يَقُوْلُ اِنَّ اَتْقَاكُمْ وَ اَعْلَمُكُمْ بِاللّٰهِ اَنَا.

۱۹: محمد بن سلام. عبدة. هشام. بي بي عائشهؓ وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم به خلقو ته ذ داسے اعمالو حكم وركولو چه هغوي به (هميشه) كولے شو (ذ سخت عبادت ترغيب به ئے نه وركولو) صحابهؓ ؤ عرض اوكۀ يا رسول الله مونږ خو ستاسو په شان نۀ يو. بيشكه الله ستاسو مخكښ ورستو (ټول) گناهونه معاف كړے دي. په دے خبره حضورؐ غضبناک شولو، حتي چه ذ مخ مبارک نه ئے ذ غضب اثر ظاهر شولو. بيا حضورؐ اُو فرمائيل بے شكه زۀ ستاسو نه زيات پرهيزگار يم زۀ ستاسو ذ ټولو نه زيات ذ الله پيژندونكے يم'.

١. د دے باب د سر ليک نه امام بخاري رحمة الله عليه دا ثابتول غواړي چه ذ ايمان تعلق زړه سره دے او د زړه عمل هر ځايے يو شان نه وي ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم د زړه ايماني كيفيت د ټولو صحابوؤ او د ټول مخلوق نه زيات وو. د دے حديث شريف نه دا معلوميږي چه عبادت كښ ميانه روي د خدائے تعالى خوښه ده د طاقت، ذ وَس نه زيات عبادت اسلام نه دے فرض كړے. د الله تعالى فرض كړے شوي عبادتونه انسان ته برابر او د خوشالئ ژوند نصيب كوي ذ هغے په سبب انسان ذ بندگئ جذبے سره

خوشاله وي بل خوا ته انسان د الله تعالٰي جوړه کړے دنيا کښې خپل صلاحيت قابليت پوره پوره لګوي. د دے حديث شريف نه دا هم معلومه شوه چه ايمان د الله تعالٰي د پيژندلو نوم دے او د پيژندو تعلق زړه سره دے. له دے کبله پواخے د ژبے اقرار ته ايمان ويلے نشي.

بَاب ۱۴ : مَنْ كَرِهَ اَنْ يَّعُوْدَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ اَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ مِنَ الْاِيْمَانِ.

باب ۱۴ : څوک چه کفر ته واپس کيدل بد ګنړي څرنګ چه اور ته غورزيدل بد ګنړي دا هم د ايمان حصه ده.

۲۰ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَـلٰثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْاِيْمَانِ مَنْ كَانَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَمَنْ اَحَبَّ عَبْدًا لَّا يُحِبُّهُ اِلَّا لِلّٰهِ وَمَنْ يَّكْرَهُ اَنْ يَّعُوْدَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ اَنْ اَنْقَذَهُ اللّٰهُ كَمَا يَكْرَهُ اَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ.

۲۰ : سليمان بن حرب. شعبه. قتاده. انسؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضورؐ او فرمائيل چاکښې چه دا درے خبرے وي. هغه به دَ ايمان خوږوالے بيامومي، هغه سړے چه دَ هغهٔ په نزد الله او دَ هغهٔ رسول د هر چا نه زيات محبوب وي او هغه سړے چه يو بنده سره محبت کوي، نو دَ الله دَ پاره ورسره محبت کوي، او هغه سړے چه دَ ايمان نصيب کيدو نه پس کفر اختيارول داسے بد او ګنړي، څنګه چه څوک اُور ته غُرځيدل بد ګنړي¹.

۱. بنکاره ده چه د کوم بنده په زړه کښې د الله تعالٰي د رسول مينه او د اسلام مينه دومره قوي شي نو بيا هغه بنده د کفرّ هيڅ يو حالت برداشت کولے نشي ليکن دا مينه په زباني جمع خرچ (اقرار) نه بنکاره کيږي. بلکه په احکامو عمل کولو او د نفس په محنت بنکاره کيږي. او داسے سړے په حقيقت کښې د اسلام په لاره کښې مصيبتونو زغملو سره خوشاله اوسيږي.

بَاب ۱۵ : تَفَاضُلِ اَهْلِ الْاِيْمَانِ فِي الْاَعْمَالِ.

باب ۱۵ : دَ اهل ايمان اعمالو کښې دَ يو بل نه دَ زياتيدو بيان.

۲۱ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَمْرِو ابْنِ يَحْيٰى الْمَازِنِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِالْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَدْخُلُ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَ اَهْلُ النَّارِ النَّارَ ثُمَّ يَقُوْلُ اللّٰهُ

۲۱ : اسماعيل. مالک. عمرو بن يحيٰي مازني. يحيٰي مازني. ابوسعيد خدريؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي حضورؐ او فرمائيل هر کله چه جنتيان جنت کښې او دوزخيان دوزخ کښې داخل شي، نو دے نه پس به الله تعالٰي (فريښتو ته) او فرمائي، دَ چا په زړهٔ کښې دَ اُوري دَ دانے برابر هم ايمان وي، هغه (دَ دوزخ

اَخْرِجُوْا مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ مِنْ اِيْمَانٍ فَيُخْرَجُوْنَ مِنْهَا قَدِاسْوَدُّوْا فَيُلْقَوْنَ فِيْ نَهْرِ الْحَيَا اَوِ الْحَيَاةِ شَكَّ مَالِكٌ فَيَنْبُتُوْنَ كَمَا تَنْبُتُ الْحَبَّةُ فِيْ جَانِبِ السَّيْلِ اَلَمْ تَرَ اَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَآءَ مُلْتَوِيَةً قَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرٌو اَلْحَيَاةِ وَ قَالَ خَرْدَلٍ مِّنْ خَيْرٍ.

نه) اوکاږئے نو هغوي به دَ دوزخ نه اوښکلے شي او هغوي به (سوزيدو سره) تور شوے وي. بيا به هغوي "نهر حيا" يا "نهر حياة" (دے کښ دَ مالک شک دے) کښ واچولے شي نو اوبه تړو کيږي، زرغون به شي، څنګه چه دانه د اوبو د سيلاب خوا کښ زرغونيږي (اے سړيه) تهٔ نهٔ وينے، چه دانه څنګه زيړه نغختلے زرغونيږي دَ دے حديث يو راوي عمرو خپل روايت کښ دَ لفظ حيا په ځائے لفظ حياة او من ايمان په ځائے من خير روايت کړے [1] دے.

[1] . د چا په زړه کښ چه ايمان کم وي نو هغه به د بدو اعمالو د سزا نه روستو د دوزخ نه خلاصيږي. دا د اللّٰه تعالىٰ فضل دے چه داسے ګنهګار خلق، دوزخ ته د ننوتو نه پس، د ايمان په زور د سزا د وخت پوره کيدو نه وړاندے به د دوزخ نه اوباسلے شي. د دے نه معلوميږي چه خلاصے په ايمان دے مګر اللّٰه پاک سره اصل درجات په اعمالٔ ورکيږي څومره چه اعمال نيک وي او ښه وي دغه قدر به ئے درجه اوچته وي.

٢٢ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ ابْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا نَآئِمٌ رَاَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُوْنَ عَلَيَّ وَ عَلَيْهِمْ قُمُصٌ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَ مِنْهَا مَا دُوْنَ ذٰلِكَ وَ عُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ يَّجُرُّهٗ قَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الدِّيْنَ.

٢٢ : محمد بن عبيداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. ابو امامه بن سهيل بن حنيف. ابو سعيد خدريؓ والي رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، زهٔ دَ خوب په حالت کښ ووم، ما (خوب کښ) اوليدل چه خلق څما مخکښ پيش کولے شي او دَ هغوي (په بدن) چه قميصونه دي، نو بعضے قميصونه خو صرف تيونو (پستانوں) پورے دي اور بعضے دَ هغے نه خکته دي. او عمر بن خطابؓ هم څما مخکښ پيش کړے شو، او دَ هغه (په بدن) چه کوم قميص دے (هغه دومره خکته دے) چه هغه ئے ځان پسے (تلو کښ) راکاږي. صحابهؓ عرض اوکهٔ يا رسول اللّٰه، تاسو دَ دے څهٔ تعبير اوکړلو، نو حضورؐ او فرمائيل، دَ دے تعبير دين [1] دے.

ف: يعني دَ چا قميص چه څومره لوئے وو، هغومره ما دَ هغهٔ دين لوئے او ګنړلو. دَ عمر بن خطابؓ قميص دَ ټولونه لوئے وو. نو معلومه شوه چه هغه دَ ټولونه زيات په دين پوهه وو، چه حضورؐ خوب کښ اوليدلو.

۱. د دې مثال یو مطلب دا دې چه د حضرت عمر رضي الله عنه په ذات کښې دَ اسلام دین دومره زیات جمع وُو چه بل چا ته دا درجه نه وه ورکړې شوې. د حضرت عمر رضي الله عنه دیني خدمات که انفرادي دي که اولسي که اخلاقي دي که د خیر خیګړې، انتظامي دي که قانوني که د وطن د حفاظت، بچ کولو او که سیاسي حکومتي ډول دي دا داسې لویې کارنامې دي چه د هغوي نه روستو دا فخر د بل چا نصیب نه شو. د حضرت ابوبکر صدیقؓ عنه د قرباني او د دین د ارکانو دَ دِفاع او د صلاحیت او قابلیت په حقله د حضرت عمر رضي الله عنه ذاتي کارنامې داسې دي چه د هغې مثال نشته، تر دې چه دَ هغه د اسلام قبلولو قیصه او د خلافت د زمانې واقعات په دې ګواهي ورکوي دویم د دې حدیث شریف نه دا هم معلومه شوه چه دَ دِین د ټولو نه زیاته پوهه اور علم حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکړې شوې وو. څومره ئې چه قمیص لوېې وو دغه هومره ئې پوهه او علم زیات وُو قمیص ئې د ټولونه لوېې نو علم ئې د ټولو نه زیات لکه چه نورو روایاتو نه معلومیږي. (او دا حدیث خصوصي ډول باندې دا ښکاره کوي لَوْ كَانَ بَعْدِيْ نَبِيًّا لَكَانَ عُمَرُ که څما نه روستو نبي وې نو هغه نبي به حضرت عمر رضي الله عنه وُو. مترجم)

## بَاب ۱۶ : اَلْحَيَاءُ مِنَ الْإِيْمَانِ.

باب ۱۶ : حیا دَ ایمان جُز دې.

۲۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُاللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرْنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ اَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ فَاِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْاِيْمَانِ.

۲۳ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک بن انس. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن عمروؓ وائي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم (یو ځل) دَ یو انصاري سړي طرف ته تیر شو، چه هغهٔ خپل رور ته دَ حیا باره کښې نصیحت کولو، نو رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، دې پریږده، ځکه چه حیا دَ ایمان ۱ نښه ده (چا کښې چه ایمان وي، نو حیا به کښې وي).

ف : یعني هغهٔ خپل رور ته وې چه تهٔ دومره شرم او حیا مهٔ کوه، دَ هغهٔ رور غالباً ډیر شرمګین وو.

۱. یو انصاري خپل رور د شرم و حیا نه منعه کوو نو نبي علیه السلام دا او فرمایل چه حیا شرمیدل د ایمان په وجه پیدا کیږي نو د حیا پریخودو تعلیم مه ورکوه. ځکه چه د انسان فطرتي حیاء د بې حیائي د کارونونه، د ډیرو ګناهونونه انسان منعه کوي او بچ ئې ساتي، د حیا نه بې ځایه شرمیدل مراد نه دي. د کوم په وجه چه دَ سړي جرأت ختم شي او د بنده د کار کولو طاقت خرابیږي.

## بَاب ۱۷ : فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوا سَبِيْلَهُمْ.

باب ۱۷ : دَ اللّٰه تعالٰی قول که هغوي توبه اوباسي مونځ کوي او زکٰوة ورکوي نو (قتلول د) هغوي پریږدئې / نو دهغوي لاره آزاده کړئي.

۲۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ بِالْمُسْنَدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَوْحٍ بِالْحَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَشْهَدُوْا اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَ يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ يُؤْتُوا الزَّكٰوةَ فَاِذَا فَعَلُوْا ذٰلِكَ عَصَمُوْا مِنِّيْ دِمَآءَ هُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ اِلَّا بِحَقِّ الْاِسْلَامِ وَ حِسَابُهُمْ عَلَى اللّٰهِ.

۲۴ : عبدالله بن محمد مسندي. ابو روح حرمي بن عماره. شعبه. واقد بن محمد. ابن عمرؓ وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل ماته دا حكم شوے دے چه زهٔ به خلقو سره ذ هغے وخته پورے جنګيږم چه هغوي ذ دے خبرے ګواهي اوکړي، چه ذ الله نه بغير بل څوک ذ عبادت لائق نشته، او ذ دے خبرے چه محمدؐ ذ الله رسول دے او مونځ کوي او زکوة ورکوي، چه دا اوکړي نو مانه به ئے جان و مال محفوظ شي علاوه ذ هغے سزا نه چه اسلام (په څهٔ جرم په هغوي) مقرر کړے ده. او دهغوي سره حساب ۱ د الله تعالي ذمه واري ده.

**ف**: يعني اسلام چه ذ کوم جرم سزا قتل مقرر کړے ده، هغے کښې به قتليږي او ذ کوم جرم سزا چه ئے ذ مال صرف کول مقرر کړے دي، هغے کښې به ترے مال اخستے شي.

۱. اسلام فطرتي دين دے د الله د طرفه هيچاته دا روانه ده چه هغه د خدائے تعالٰي بنودلے شوے فطرتي لاره پريږدي او په غلطه لار روان شي. ذ الله ذ حکم رسيدونه روستو دوه لارے دي. منل يا نه منل په زور د زړه حالت نه بدليږي لَا اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ (په دين کښې زور زياتے نشته) دا پخپله د اسلامي آزادئ قانون دے ليکن ذ دُنيا د انتظام د مشرئ کولو د پاره او د اولسي ژوند. بنه کولو د پاره په هر حالت کښې طاقت لګول ضروري دي. که چرے د چا زړه د اسلام حق والے نه مني بياهم به هغه اسلامي قوانينو سر خکته کوي. او ذ دے ذ پاره به زور لګولے شي. اسلام کښې ناحق وينه تويه ول نشته نه ئے خوښ دي په کوم جرمونو ګناهونو کښې چه وژل ضروري دي د هغے نه بغير د يو انسان تباهي او بے قصوره مومن وژل ناروا دي. يوه نکته په دے حديث شريف کښې دا هم ده. چه د اسلامي اُولس ظاهر ښکاره حالات به کتلے شي که د اسلام د اصولو پابندي کوي کوم چه د مسلمان د پاره ضروري دي. نو د مسلمانانو تړولي کښيے به شميريږي. د هغه د زړه او باطن کيفيت به الله تعالٰي ته سپارلے شي او الله تعالٰي به ورسره آخرت کښې پخپله پوهيږي دنيا کښې خامخا د چا نيت لټول او په هغه حکم لګول دا خالص بے وقوفي ده.

## بَاب۱۸ : مَنْ قَالَ اِنَّ الْاِيْمَانَ هُوَ الْعَمَلُ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ

باب۱۸ : ذ بعضو قول دے، چه ايمان عمل دے، او د هغے دليل دا آيت دے: وَ تِلْكَ الْجَنَّةُ (ترجمه) او دا جنت دے چه ذ هغے تاسو وارثان مقرر شوے ئے، ذ هغے عوض کښې چه

تَعْمَلُوْنَ وَ قَالَ عِدَّةٌ مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَوَ رَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ عَنْ قَوْلِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ قَالَ لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُوْنَ.

تاسو به کول' او يو څو اهل علمو' د الله تعالىٰ قول: فَوَ رَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ستا په رب قسم دے چه د ټولو نه به د دوي د عمل په حقله ضرور پوښتنه کوو: کښې وئيلے دي' چه دے نه مراد لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وئيل دي او الله تعالىٰ فرمائيلے دي چه: لِمِثْلِ هٰذَا (ترجمه) د دے په مثل عمل کونکو له عمل پکار دے.

ف: دا هغه د ايمان د کمي زياتي مسئله ده' چه اوس ئے مصنف د هل عنوان نه ثابتول غواړي.

۲۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ وَ مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَا حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ اَيُّ الْعَمَلِ اَفْضَلُ فَقَالَ اِيْمَانٌ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ قِيْلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قِيْلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ حَجٌّ مَّبْرُوْرٌ.

۲۵: احمد بن يونس. موسىٰ بن اسماعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شاب. سعيد بن مسيب د ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د رسول الله صلے الله عليه وسلم نه تپوس اوشو' چه کوم عمل افضل دے' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' الله او د هغه رسول باندے ايمان راوړل. بيا ترے پښتنه اوشوه' چه بيا کوم عمل' نو وے فرمائيل' د الله په لار کښې جهاد کول. بيا ترے تپوس اوشو' دے نه پس کوم عمل' نو وے فرمائيل' قبول شوے حج.

۱. په لنډو الفاظو ضروري حقيقتونو بالدے رنړا اچولے شويده دا درے واړه بنيادي اعمال په خپل خاے زيات ضروري دي ليکن د قبول شوي حج خبره د يو خاص وقتي ضرورت لاندے سيوا شويده. داسے نورو احاديثو کښې هم بيان راغلے دے.

بَابٌ ۱۹: اِذَا لَمْ يَكُنِ الْاِسْلَامُ عَلَى الْحَقِيْقَةِ وَ كَانَ عَلَى الْاِسْتِسْلَامِ اَوِ الْخَوْفِ مِنَ الْقَتْلِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْا اَسْلَمْنَا فَاِذَا كَانَ عَلَى الْحَقِيْقَةِ فَهُوَ عَلٰى قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ الْاٰيَةَ.

باب ۱۹: که يو سړي د زړهٔ د صدق نه ايمان نه وي راوړلے' بلکه (د چا په زبردستي) مسلمان کولو سره يا د قتل د خوف نه مسلمان شوے وي (نو هغه سړے مؤمن نهٔ دے) ځکه چه الله تعالىٰ ارشاد فرمائي' چه ديهاتي عرب وائي: اٰمَنَّا. مونږ ايمان راوړے دے (اے نبيؐ) ورته او وايه' چه تاسو ايمان نهٔ دے راوړے (نو اٰمَنَّا مهٔ وائے) بلکه: اَسْلَمْنَا: مونږ اسلام راوړے دے: وائے' او که چا په ريښتيا اسلام راوړے وي' نو هغه مؤمن دے' ځکه چه د الله تعالىٰ فرمان دے: اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ " الآية: د الله په نزد مقبول دين اسلام دے.

**٢٦ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ سَعْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطٰى رَهْطًا وَّ سَعْدٌ جَالِسٌ فَتَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا هُوَ اَعْجَبُهُمْ اِلَيَّ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَالَكَ عَنْ فُلَانٍ فَوَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَاَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ اَوْ مُسْلِمًا فَسَكَتُّ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ لِمَقَالَتِيْ فَقُلْتُ مَالَكَ عَنْ فُلَانٍ فَوَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ اَوْ مُسْلِمًا فَسَكَتُّ قَلِيْلًا ثُمَّ غَلَبَنِيْ مَا اَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ لِمَقَالَتِيْ وَ عَادَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ يَا سَعْدُ اِنِّيْ لَاُعْطِي الرَّجُلَ وَ غَيْرُهُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْهُ خَشْيَةَ اَنْ يَّكُبَّهُ اللّٰهُ فِي النَّارِ رَوَاهُ يُوْنُسُ وَ صَالِحٌ وَ مَعْمَرٌ وَ ابْنُ اَخِي الزُّهْرِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ.**

**٢٦ :** ابو اليمان. شعيب. زهري. عامر بن سعد بن ابي وقاص.
سعد (بن ابي وقاص) نه روايت كوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم څښے خلقو ته (مال) ور كړ او سعد هم هلته ناست وو، رسول الله صلعم يو داسے سړے پريښودو (يعني مال ئے ورنۀ كړ) چه ماته د ټولو نه ښـۀ معلوميده نو ما عرض او كړ يا رسول الله، څۀ وجه ده، تاسو ذ فلاني سړي نه مخ واړولو. په الله م دے قسم وي زۀ خو هغه مومن گنړم. حضورؐ او فرمائيل (چه مومن ئے گنړے) يا مسلم؟ نو لږ ساعت زۀ چپ شوم. بيا چه څۀ ذ هغے سړي ذ طرف نه ماته معلوم وو، هغے زۀ مجبور كړم، او ما بيا هغه خبره او كړه، يعني دام اووے چه څۀ وجه ده تاسو فلانے سړے پريښود، په الله م دے قسم وي زۀ خو هغه مؤمن گنړم نو حضورؐ او فرمائيل (مؤمن ئے گنړے) يا مسلم. بيا زۀ څه ساعت پورے چپ ووم دے نه پس چه ما ته څۀ د هغے سړي ذ طرف نه معلوم وو هغے زۀ مجبور كړم او ما بيا هغه خپله خبره او كړه، او رسول الله صلي الله عليه وسلم بياهم هغسے او فرمائيل. آخر حضورؐ او فرمائيل، اے سعده زۀ يو سړي ته ذ دے خوف نه چه چرته داسے نۀ وي كه هغۀ له څۀ ورنۀ كړم، نو هغۀ به كافر شي او الله تعالىٰ هغه په اُور كېنې نسكور اونۀ غُرخوي نومال، ور كړم، حالانكه بل سړے ماته ذ هغه نه زيات محبوب وي (او هغه ته نۀ وركوم څكه چه ذ هغۀ متعلق دا خيال نه پيدا كيږي دا روايت يونس، صالح، معمر، ذ زهري ورارۀ ذ زهري نه كړے دے ١.

١. د دے نه معلومه شوه چه كوم سړي ته دا يقين وي چه دا خبره روغه ده په هغے قسم خوړلے شي دويم دا چه سفارش كول روا دي او سفارش منل يا نه منل دواړه روا دي. بله خبره ترے دا معلومه شوه چه جنت د نور چا د پاره يقيني نه دے سيوا د هغے لس كسانو چه هغوي ته د جنت زيرے وركړے شويدے بله دا، چه د مؤمن كيدو د پاره صرف د ژبے اقرار كافي نه دے بلكے د زړه تصديق (اعتقاد) هم ضروري دے دا يوه خبره ترے هم معلومه شوه چه چا نوے نوے اسلام قبول كړے وي د هغوي زړه د اسلام د پاره نرم كلكولو ذ پاره په هغوي مال لگول روا عمل دے.

## بـاب ٢٠ : اِفْشَـاءُ السَّلَامِ مِنَ

## باب ٢٠ : سلام لـه رواج وركول اسلام كښې

اَلْاِسْلَامِ وَ قَالَ عَمَّارٌ ثَلٰثٌ مَنْ جَمَعَهُنَّ فَقَدْ جَمَعَ الْاِيْمَانَ اَلْاِنْصَافُ مِنْ نَفْسِكَ وَ بَذْلُ السَّلَامِ لِلْعَالَمِ وَ اَلْاِنْفَاقُ مِنَ الْاِقْتَارِ.

داخل دي، او عمار وئيلي دي، چه درے خبرے کوم سړي را جمع کړے، نو يقيناً هغهٔ ايمان را جمع کهٔ، او هغه دا چه (۱) دَ خپل ذات په مقابله کښې انصاف کول (۲) او ټولو خلقو ته (که آشنا وي او که ناشنا) سلام کول (۳) او دَ تنګدستي په وخت خرڅ کول.

ف: (۱). يعني که ستا په بل چا څهٔ حق دے، نو څهٔ چه به تا دَ خپل حق دَ وصول کولو دَ پاره کول، هغه وخت هم کوه، چه دَ بل چاپه تا حق وي.

(۲). يعني دَ سلام کولو دَ پاره دا خيال مهٔ کوه، چه صرف آشنا ته دے سلام کوے، بلکه هر مؤمن مسلم آشنا ګنړه او سلام ورته کوه (اللّٰه پاک دے دا نعمت خمونږ دَ ټولو نصيب کړي. اللّٰهم امين. فقير محمد عباس قادريه)

۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ ابْنِ اَبِیْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِی الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَیُّ الْاِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَ تَقْرَءُ السَّلَامَ عَلٰى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ.

۲۷: قتيبه. ليث. يزيد بن حبيب. ابوالخير عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت دے، يو سړي دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه تپوس او کهٔ کوم اسلام بهتر دے نو حضورؐ ورته او فرمائيل (په خلقو) ډوډۍ خوروه، او که څوک پيژنے او که څوک نهٔ پيژنے (ټولو) ته سلام کوه'.

ا. اسلام د ژوند د ټولو اړخونو احکام بيان کړيدي په دے حديث شريف کښې چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم کوم جواب کړيدے په دے کښې د اسلامي ژوند څو خاص غوره اصول بيان کړيدي چه په هغے کښې يو دا دے چه اوږو له خوراک ورکوئ او هر چا ته سلام کوئي، چه يو طرفته څوک اوږے پاتے نشي، او بل طرفته خلق د يو بل نه ناآشنا او بے خبره پاتے نشي که د دوي په مينځ کښې څه تعلق نه وي نو د دُعا او سلام تعلق ضروري دے.

## بَابٌ ۲۱: كُفْرَانُ الْعَشِيْرِ وَ كُفْرٌ دُوْنَ كُفْرٍ فِيْهِ عَنْ اَبِیْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۱: دَ خاوند دَ ناشکرۍ بيان او (دَ کفر مراتب مختلف دي) يو کفر دَ بل کفر نه کم وي. دے (مضمون) کښې دَ ابو سعيد روايت دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه دے.

۲۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۲۸: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. ابن عباسؓ وائي نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل (يو خلے) ماته دوزخ او ښودلے شو نو هغے کښې ما زياتے ښځے اوليدے. وجه داده، چه هغوي

أُرِيتُ النَّارَ فَإِذَا أَكْثَرُ أَهْلِهَا النِّسَآءُ يَكْفُرْنَ قِيلَ أَيَكْفُرْنَ بِاللّٰهِ قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ وَ يَكْفُرْنَ الْإِحْسَانَ لَوْ أَحْسَنْتَ إِلٰى إِحْدٰهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْـئًا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ.

ناشكري كوي عرض اوشو، آيا دَ اللّٰه ناشكري كوي، نو حضورؐ ورته او فرمائيل دَ خپل خاوند ناشكري كوي او احسان نهٔ مني (اے سړيه) كه تهٔ يوے ښځے سره ډيرے موده پورے احسان كوے، بيا دَ هغے نه پس تا نه څهٔ (خلاف) خبره او ويني، نو (سمدستي) به وائي، چه ما ستانه هيڅرے ' ښيګړه / ښه سلوک نه دے ليدلے.

۱. دے حديث شريف كښں د خاوند ناشكرئ ته كفر ويلے شويدے. د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه په نظر كښں د كفر درجے مختلف دي يو كفر هغه دے چه دَ ايمان مقابله كښں دے هغه يقيني كفر دے. ليكن څه كارونه داسے دي چه د هغے د پاره د كفر لفظ استعماليږي. د هغے مطلب د حق نه انكار كول او حقيقت پټول دي د دے كارونو كونكے د اسلام نه بهر نه وي كافر نه وي. د دے حديث شريف نه دا معلوميږي چه د خاوند حق ډير لويے دے دويم چه ښځے په عمومي ډول د ش[illegible] كولو د صفت نه محرومه وي. په دے كښں خاوندانو ته دا سبق دے چه د ښځو په ناشكرئ دے نه خ[illegible]ږي دا دهغوي عامه طريقه ده. ښځوته په دے حديث شريف كښں دا نصيحت دے چه په خپل غلط عمل دے خان دَ دوزخ خشاک نه جوړوي.

**باب ۲۲ : اَلْمَعَاصِيُ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ وَلَا يُكَفَّرُ صَاحِبُهَا بِارْتِكَابِهَا إِلَّا بِالشِّرْكِ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ امْرُءٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَ يَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ إِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَأَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا فَسَمَّاهُمُ الْمُؤْمِنِيْنَ.**

**باب ۲۲ :** ګناهونه دَ جاهليت كارونه دي او دَ هغے كونكو ته بغير دَ شرک نه دَ هغے كولو سره كافر كولے نشي خكه چه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ارشاد دے بيشكه تهٔ داسے سړے ئے، چه تا كښں جاهليت (يعني اثر دَ جاهليت باقي) دے، او دَ اللّٰه تعالٰي ارشاد چه اللّٰه د نهٔ ښښي، چه هغهٔ سره دے شرک اوكړے شي، او دَ دے نه علاوه چه څوک غواړي، نو وے ښښي، او كه دَ مسلمانانو دوه ډلے خپلو كښں جنګيږي نو دَ هغے دواړو مينځ كښں صلح او كړئے (ګورے) كنه چه اللّٰه هغوي ته مسلمان اووے.

**۲۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ قَالَ ثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ ثَنَا أَيُّوبُ وَ يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ عَنِ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ ذَهَبْتُ لِأَنْصُرَ**

**۲۹ :** عبدالرحمٰن بن مبارک. حماد بن يزيد. ايوب. يونس. حسن. احنف بن قيسؒ وائي چه زهٔ روان شوم چه (جنګ) كښں د دے سړي (عليؓ) مدد او كړم نو ماله ابوبكرؓ مخے له راغے نو ماته ئے

هٰذَا الرَّجُلَ فَلَقِيَنِيْ اَبُوْبَكْرَةَ فَقَالَ: اَيْنَ تُرِيْدُ قُلْتُ: اَنْصُرُ هٰذَا الرَّجُلَ قَالَ: ارْجِعْ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُوْلُ فِي النَّارِ قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُوْلِ قَالَ: "اِنَّهُ كَانَ حَرِيْصًا عَلٰى قَتْلِ صَاحِبِهٖ"

اويل چرته د تلو اراده لرے؟ ما ورته اويل د دے سړي مدد كوم ماته ئے اويل: واپس شه ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه اوريدلے دي. فرمايل ئے "كله چه دوه مسلمانان په توره يوبل سره مخامخ شي، نو قتلونكے او وژلے شوے دواړه به اور كښ وي. ما اويل: اے د اللّٰه رسوله دا خو قاتل دے نو دَ قتل شوي څه (گناه) ده هغوي او فرمايل ده د خپل ملگري د قتل كولو حرص كوو'.

ا. دَ دے باب منشا دا ده كه گناه وره وي كه لويه دَ اسلام خلاف ده د جاهليت كار دے ليكن بغير د شرك نه د بلے لوئے گناه په كولو سړے نه كافر كيږي. د حديث شريف مضمون دا بنائي چه جنگ د حضرت عليؓ او د حضرت معاويه په مينځ كښ دَ اسلام د غوښتنه خلاف وو د څكه ابوبكره رضي اللّٰه عنه احنفؓ بن قيس منع كړو كوم حديث چه ابوبكرهؓ نقل كړے دا د هغه جنگ په حقله دے چه د ذاتي او د خان د فائدے د پاره كيږي. ليكن د حضرات صحابه ؤ جنگ د يو بل سره د غلط فهمئ او ديني مصلحتونو په حقله شوي وو له دے كبله د قاتل او مقتول په حقله دا حديث په صحابه ؤ نه واقع كيږي. د نورو رواياتونه معلوميږي چه احنفؓ بن قيس دَ ابوبكرهؓ مشوره او نه منله او د حضرت علي رضي اللّٰه عنه د طرفنه جگ كښ شامل شو. دا جنگ د اجتهادي كارونو په حقله وؤ د يو اجتهاد صحيح او د بل اجتهاد صحيح نه وو او د دے اجتهاد په غلطئ اللّٰه خوک نه نيسي د صحابؓو دا معامله وه.

۳۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاصِلٍ الْاَحْدَبِ عَنِ الْمَعْرُوْرِ قَالَ: لَقِيْتُ اَبَاذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ وَّ عَلٰى غُلَامِهٖ حُلَّةٌ فَسَاَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ: اِنِّيْ سَابَبْتُ رَجُلًا فَعَيَّرْتُهُ بِاُمِّهٖ فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَا اَبَاذَرٍّ عَيَّرْتَهُ بِاُمِّهٖ اِنَّكَ امْرُؤٌ فِيْكَ جَاهِلِيَّةٌ اِخْوَانُكُمْ خَوَلُكُمْ جَعَلَهُمُ اللّٰهُ تَحْتَ اَيْدِيْكُمْ فَمَنْ كَانَ

۳۰: سليمان بن حرب شعبه، واصل احدب د معرور نه روايت كوي هغه اويل زهٔ ربده كښ ابوذر رضي اللّٰه عنه ته ملاقات ته ورغلم هغه جوړه اغوستلے وه. او د هلک ئے هم هغسے جامے (جوړه) وے ماترے د دے په حقله پوښتنه اوكړه هغه اويل ما يو سړي ته (كنخل) زيړے اوكړے نو د مور پيغور مے وركړه. نو نبي عليه السلام ماته اويل: اے ابوذره تا ورته د مور پيغور وركړو. ته داسے سړے ئے چه تاكښ جاهليت دے. ستاسو نوكران ستاسو رونړه دي. اللّٰه ستاسو د لاس لاندے گرخولے دي. د چا چه رور دهغه د لاس

اَخُوْهُ تَحْتَ يَدِهٖ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبِسُ وَ لَا تُكَلِّفُوْهُمْ مَا يَغْلِبُهُمْ فَاِنْ كَلَّفْتُمُوْهُمْ فَاَعِيْنُوْهُمْ.

لاندې وي. نو هغه ته دې هغه خوراک ورکوي چه خپله خوري او هغې جامې دې ورکوي چه کومې خپله اغوندي دوي نه داسې کار مه اخلئ چه په دوي غالب وي او که مود داسې کار تکليف ورکړو. نو مددئې اوکړئ[۱].

۱. اسلام اولسي برابرئ ته نه رسي د اسلام د زوره ورې کاميابئ دا اصول ساده او اثر کونکې دې د عبادت نه واخله هر اولسي معامله کښې موجود دې.

## بَاب ۲۳ : ظُلْمٌ دُوْنَ ظُلْمٍ.

## باب ۲۳ : يو ظلم ذ بل ظلم نه کم دې.

۳۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ بِشْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ لَمَّا نَزَلَتْ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ قَالَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

۳۱: ابوالوليد. شعبه ح (دويم سند) بشر محمد. شعبه. سليمان. ابراهيم. علقمه. عبدالله (بن مسعود) نه روايت دې، هر کله چه دا آيت: اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ (کومو خلقو چه ايمان راوړلو، او خپل ايمان ئې ظلم سره يو ځائې نهٔ کړهٔ) نازل شو، نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم اصحابو اووې، مونږ کښې داسې څوک دې، چه هغهٔ ظلم نهٔ دې کړې (يعني او يريدل) نو الله تعالیٰ: اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ (بيشکه شرک لوئې ظلم دې) نازل کړلو.

**ف**: ذ صحابه کرامو د ويرې وجه دا وه چه د ظلم نه مراد ذ خدائې نافرماني ده. خواه ذ وړې درجې وي يا ذ لوئې. او داسې هيڅ انسان نشته چه ذ هغهٔ نه سهواً خطا لوئې وړوکې قصور نهٔ وي شوې بلکه په بعضو موقعو ذ معمولي قسم قصور قصداً هم اوشي، ذ هر قسم قصور نه بچ کيدل ذ انساني طاقت نه لرې خبره ده. نو ذ دې ويرې لرې کولو ذ پاره مزيد وضاحت اوکړې شو، او دا آيت: اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ نازل شولو[۱].

۱. معلومه شوه ظلم گناه ته ويلې شي او گناه وړه هم وي او لويه هم، صحابهؓ خکه پريشان شو، چه مسلمان واړه گناهونه کله قصداً کوي او کله بې خبرئې کښې. نو دا آيت شريف نازل شو چه ايمان راوړلو نه روستو چه شرک او نه کړي هغه د پاره خلاصې دې که چرې نور گناهونه ترې اوشو نو الله تعالیٰ د نورو گناهونو ببنلو وعده کړې ده.

## بَاب ۲۴ : عَلَامَةُ الْمُنَافِقِ.

## باب ۲۴ : ذ منافق ذ علاماتو بيان.

۳۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ اَبُو الرَّبِيْعِ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ

۳۲: سليمان. ابوالربيع. اسماعيل بن جعفر نافع بن مالک بن ابي عامر. ابو سهيل. مالک

قَالَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ مَالِكِ بْنِ اَبِیْ عَامِرٍ اَبُوْ سُهَیْلٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اٰیَةُ الْمُنَافِقِ ثَلٰثٌ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ اِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ وَ اِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ.

بن ابي عامر. ابوهریرهؓ د نبي صلی اللّه علیه وسلم نه روایت کوي حضورؐ او فرمائیل ذ منافق درې نښې دي، چه خبرې کوي، نو دروغ وائي چه وعده او کړي، نو ذ هغې خلاف کوي، چه امین (امانتدار) کړې شي نو خیانت او کړي'.

۱. نفاق هغه ناکاره خوئې دې چه د انسان، شخصیت، سیرت او ژوند بربادوي. منافق نۀ ځان ته فائدۀ رسولې شي نه نورو خلقو ته له دې کبله په قرآن مجید او احادیثو کښې د منافق خلقو ډیره بدي بیان شویده. چه کوم قوم کښې منافق خلق زیات شي نو دهغه قوم بنیادونه کمزور شي او راتلونکې ژوندئې تیاره شي دروغ ویل، وعده خلافي او خیانت د ټولو نه ناکاره قوم ئې هم نه خوښوي او زیات بداخلاقي نظام ئې هم نه زغمي، اسلام خو یو پاک مذهب دې په چا کښې چه دا درې خویونه دي هغه په صحیح معني کښې مسلمان نشي کیدې تر دې چه ئې پریږدي.

۳۳: حَدَّثَنَا قَبِیْصَةُ بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ بْنِ عُبَیْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِیْهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا وَّمَنْ كَانَتْ فِیْهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِیْهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتّٰی یَدَعَهَا اِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ اِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَ اِذَا خَاصَمَ فَجَرَ تَابَعَهُ شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ.

۳۳: قبیصه بن عقبه. سفیان. اعمش. عبیداللّه بن مره. مسروق. عبداللّه بن عمرؓ نه روایت دې نبي صلی اللّه علیه وسلم او فرمائیل، چاکښې چه څلور خبرې وي هغه خالص منافق دې، او چا کښې چه دې څلورو خبرو کښې یوه خبره وي هغه کښې یوه خبره ذ نفاق ده، څو پورې چه هغه پرې نه ږدي (هغه څلور خبرې دا دي) چه امین جوړ کړې شي نو خیانت او کړي، چه خبره کوي نو دروغ وائي چه وعده او کړي نو ذ هغې خلاف کوي چه جنګ کوي نو بیهوده لګیا وي'.

۱. دا حدیث شریف د تیر شوي حدیث شریف مخالف نه دې ځکه چه دې حدیث شریف کښې د "منافق خالص" الفاظ دي مطلب ئې دادې چه چاکښې دا څلورم عادت چه د جنګ په وخت غلط خوله خوزوي د شرافت د پولې نه تیرشي نو د دې سړي نفاق پوره دې او د دغې سړي ټول ژوند د منافقۍ دې او چاکښې چه دا یو عادت وي نو هغه کښې د لږې درجې منافقي شته. دې احادیثو کښې د منافقۍ چه خومره نښې ښودلې شویدي هغه ذ عمل سره تعلق لري د مسلمانیدو روستو په عمل کښې منافقي ښکاره کول که

چرے منافقي په زړه کښې وي نو بيا په هغې بنده کښې ايمان نشته او يواځې په ژبه خان مسلمان ښکاره کوي. نو دغه منافقي د کفر او شرک برابر ده بلکې د هغې نه زياته ده که چرے د منافقۍ نښې نښانې د چا په عمل کښې وي نو د دې مطلب دا دے چه د زړه اعتقاد او ايمان ئې کمزورے ګوڼږے پرلګيدلے دے.

**بـاب ۲۵ : لَيْـلَةُ الْـقَـدْرِ مِـنَ الْإِيْمَانِ.**

**باب ۲۵ :** شـب قـدر کښې بيداريدل ايمان کښې داخل دي.

۳۴: حَـدَّثَـنَـا اَبُوالْيَمَانِ قَـالَ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَـنِ الْاَعْـرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَـنْ يَّقُمْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ اِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

۳۴: ابـوالـيـمـان. شـعـيـب. ابوالـزنـاد. اعـرج. ابـوهـريرهؓ وائي، رسولِ دَ خدائے صلي الله عليه وسلم او فـرمـائيـل، څـوک چـه د ايمان دارئ او دَ ثواب په خيال شـب قدر کښې بيدار پاتے شي (يعني ذکر، عبادت کوي) نو دَ هغۀ مخکني ګناهونه اوبښلے شي.

❖❖❖❖❖

**باب ۲۶ : اَلْجِهَادُ مِنَ الْإِيْمَانِ.**

**باب ۲۶ :** جهاد (غزا) کول دَ ايمان حصه ده.

۳۵: حَـدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ حَفْصٍ قَـالَ حَـدَّثَـنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْـنِ جَـرِيْـرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ الـنَّبِيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْتَـدَبَ الـلّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لِمَنْ خَرَجَ فِيْ سَبِيْـلِـهٖ لَا يُـخْـرِجُـهٗ اِلَّا اِيْمَانٌ بِيْ اَوْ تَـصْـدِيْـقٌ بِرُسُلِيْ اَنْ اَرْجِعَهٗ بِمَا نَالَ مِـنْ اَجْـرٍ اَوْ غَـنِيْـمَـةٍ اَوْ اُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ وَلَـوْلَا اَنْ اَشُـقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ مَا قَعَدْتُّ خَـلْفَ سَرِيَّةٍ وَّلَوَدِدْتُّ اَنِّيْ اُقْتَلُ فِيْ سَبِيْـلِ الـلّٰـهِ ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ.

۳۵: حـرمـي بن حفص، عبدالواحد، عماره، ابوزرعه بـن عمر بن جرير، ابوهريرهؓ د نبي عليه السلام نه راويان دي حـضـورﷺ او فـرمائيل، الله تعالي دَ هغې سړي دَ پاره چه دَهغۀ پـه لار کـښې (جهـاد لـه) اوځـي، چه په الله تعالي ايمان او د پيـغـمبرانو تصديق (جهاد دَ پاره دَ کورنه) اوتلے وي، دَ دے کـار ذمـه اخستـے ده، چـه يـا بـه زۀ هـغـه، هغې ثواب يا مالِ غـنيمت سره واپس کړم. چه جهاد کښې ورته حاصل شوي وي يـا هـغه به (شهيد کيدو سره) جنت کښې داخل کړم، او (حضور صلعم فرمائي) که ما په خپل اُمت ګرانه نه ګنړلے نو وړوکي لښکر سره تلونه به هم ناست پاتے شوے نه وے. څـکـه چـه زۀ يـقيـناًدا خبره خوښوم، چه دَ الله تعالي په لار کـښې سرور کړم، بيا ژوندے شم، بيا سرور کړم. بيا ژوندے شم، بيا سرور کړم[۱].

۱. دے حديث شريف کښې د جهاد فضيلت او اهميت ئې بيان شويدے خپل روح دَ الله په دربار کښې پيش کول ډير اوچت عمل دے چه کوم سړے د الله په خاطر خپل سر ورکولو ته تيار شي نو د الله تعالي بے

اندازے رحمت هغه سره وي. كه فتحه حاصل كړي نو غازي شي او كه شهيد شي نو په دواړه صورتونو كښې ثواب ورته يقيني ور كيږي.

**باب۲۷: تَطَوُّعُ قِيَامِ رَمَضَانَ مِنَ الْاِيْمَانِ**

**باب۲۷:** رمضان كښې دَ شپے نفل كول ايمان كښې داخل دي.

**۳۶:** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا غُفِرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

**۳۶:** اسماعيل. مالک. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل كوم سړے چه رمضان كښې دَ ايمان او دَ ثواب كار ګڼړلو سره عبادت اوكړي، نو دَ هغه مخكني ګناهونه معاف كړے شي.

**باب۲۸: صَوْمُ رَمَضَانَ اِحْتِسَابًا مِّنَ الْاِيْمَانِ.**

**باب۲۸:** دَ ثواب په نيت دَ رمضان روژے نيول ايمان كښې داخل دي.

**۳۷:** حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا غُفِرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

**۳۷:** ابن سلام. محمد بن فضيل. يحيٰي بن سعيد. ابو سلمه. ابو هريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، څوک چه رمضان كښې دَ ايمان او ثواب كار ګڼړلو سره روژے اونيسي دَ هغه مخكني ګناه معاف كړے شي[۱].

۱. يعني د روژو نيول دَ ايمان و يقين سره خالص د اللّٰه تعالٰي د پاره وي.

**باب۲۹: اَلدِّيْنُ يُسْرٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ الدِّيْنِ اِلَى اللّٰهِ الْحَنِيْفِيَّةُ السَّمْحَةُ.**

**باب۲۹:** دين ډير آسان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلے دي، دَ خدائے په نزد دَ ټولو نه زيات محبوب هغه دين دے، چه ريښتنے او نيغ (سم) دے.

**۳۸:** حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ قَالَ نَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ مَعْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ نِالْغَفَارِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِ نِالْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

**۳۸:** عبدالسلام بن مطهر. عمر بن علي. معن بن محمد غفاري. سعيد بن ابي سعيد. مقبري، دَ ابوهريرهؓ نه راويان دي، حضورؐ او فرمائيل، دين ډير آسان دے، او كوم سړے چه دين كښې سختي كوي، هغه به پرے غالب

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الدِّيْنَ يُسْرٌ وَّلَنْ يُّشَادَّ الدِّيْنَ اَحَدٌ اِلَّا غَلَبَهٗ فَسَدِّدُوْا وَ قَارِبُوْا وَاَبْشِرُوْا وَاسْتَعِيْنُوْا بِالْغُدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَ شَيْءٍ مِّنَ الدُّلْجَةِ.

راشي' نو تاسو خلق ميانه روي اختيار كړئ' او (اعتدال ته) قريب اوسئ او خوشحاله شئ (چه تاسو ته آسان دين دركړے شو) او سحر او ذ غرمے (دوبهر' نه پس اوځه ذ شپے عبادت كولو سره دينے مدد حاصلوئ ۱.

۱. د دے حديث شريف نه معلومه شوه چه دين كښ سختي كول' يا عمل كښ زياتے كول يا عبادت (حد) نه زيات د اسلام خلاف كارونه دي. يو مينځ اومانه او برابر ژوند تيرول چه په هغے كښ د الله تعالي د يادونه بے خبري نه وي. او د دنيا ژوند بے كاره شوے نه وي دا اسلام غواړي داسے خلق چه هره مسئله كښ زياتے كوي او د هر ديني حكم اهميت بغير د څه سببه زياتوي آخر پخپله سختئ كښ نښلي او نتيجه ئے دا وي چه نه په دين په صحيح طريقه عمل كولے شي او نه د دين د آسانتيا نه آرام او فائده اخستلے شي د دے وجه په سر ليک كښ دا اوښودلے شوه. چه د الله رښتينے او نيغ دين خوښ دے او هغه اسلام دے او كني خوارو او چيلو ايستلو د پاره عيسائيت او د جوګيانو طريقے څه كمے نه دي. ليكن د الله په نزد غلطے دي.

بَابٌ ۳۰: اَلصَّلٰوةُ مِنَ الْاِيْمَانِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ يَعْنِىْ صَلٰوتَكُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ.

باب ۳۰: مونځ ايمان كښ داخل دے' ځكه چه ذ الله تعالي ارشاد دے: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ الله تعالي داسے نه دے چه ستاسو ايمان يعني ستاسو مونځونه چه بيت المقدس كښ موكړے دي' ضائع كړي (دے آيت كښ مونځ ته ايمان وئيلے شوے دے).

۳۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ نَا زُهَيْرٌ قَالَ نَا اَبُو اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ نَزَلَ عَلٰى اَجْدَادِهٖ اَوْ قَالَ اَخْوَالِهٖ مِنَ الْاَنْصَارِ وَ اَنَّهٗ صَلّٰى قِبَلَ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ سِتَّةَ عَشَرَ شَهْرًا اَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا وَ كَانَ يُعْجِبُهٗ اَنْ تَكُوْنَ قِبْلَتُهٗ قِبَلَ الْبَيْتِ وَ اَنَّهٗ صَلّٰى اَوَّلَ صَلٰوةٍ صَلَّاهَا صَلٰوةَ الْعَصْرِ وَ

۳۹: عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحاق. براء (بن عازب) نه روايت دے' چه نبي صلے الله عليه وسلم (په هجرت) مدينے ته راغے' نو مخكښ خپلے نيكانے يا ماما ګانو (نا نهال) كره چه انصار وو' پاتے شو' او حضورؐ (مدينے ته ذ راتلو نه پس) شپاړس يا اولس مياشتے بيت المقدس طرف ته مونځ اوكړ' خو حضورؐ دا خوښوله' چه ذ دوئ قبله كعبے طرف ته شي (نو دغسے اوشوه) او ذ تهولونه وړمبے مونځ چه حضورؐ (كعبے طرف ته) اوكړ هغه ذ مازيګر مونځ وو. او حضورؐ سره ځنے خلق مانځه كښ شريک وو. هغوي كښ يو سړے لاړ' او ذ يو

صَلّٰی مَعَهٗ قَوْمٌ فَخَرَجَ رَجُلٌ مِّمَّنْ صَلّٰی مَعَهٗ فَمَرَّ عَلٰی اَهْلِ مَسْجِدٍ وَهُمْ رَاكِعُوْنَ فَقَالَ اَشْهَدُ بِاللّٰهِ لَقَدْ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ مَكَّةَ فَدَارُوْا كَمَا هُمْ قِبَلَ الْبَيْتِ وَكَانَتِ الْيَهُوْدُ قَدْ اَعْجَبَهُمْ اِذْ كَانَ يُصَلِّيْ قِبَلَ الْبَيْتِ الْمَقْدِسِ وَاَهْلُ الْكِتٰبِ فَلَمَّا وَلّٰى وَجْهَهٗ قِبَلَ الْبَيْتِ اَنْكَرُوْا ذٰلِكَ قَالَ زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ فِيْ حَدِيْثِهٖ هٰذَا اَنَّهٗ مَاتَ عَلَى الْقِبْلَةِ قَبْلَ اَنْ تُحَوَّلَ رِجَالٌ وَّقُتِلُوْا فَلَمْ نَدْرِ مَا نَقُوْلُ فِيْهِمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ.

جماعت په خلقو تیریده چه هغوي (بیت المقدس طرف ته) مونځ کولو، نو هغه ورته اووے، چه زهٔ الله تعالی گواه کوم او وایم چه ما رسول الله صلي الله علیه وسلم سره مکې طرف ته مونځ کړے دے (دے آوریدو سره) هغه خلق چه کوم حالت کښې وو، هغې حالت کښې کعبې طرف ته تاو شو. او کوم وخت چه حضورؐ بیت المقدس طرف ته مونځ کولو، نو یهود او (نور) اهل کتاب به ډیر خوشحالیدل. خو کوم وخت چه حضور صلي الله علیه وسلم مخ کعبې طرف ته اوګرځولو، نو دا په هغوي سخته اولږیده. زهیر (چه د دے حدیث راوي دے) وائي، چه مونږ ته ابو اسحاق ذ براء ذے، حدیث کښې دا هم نقل کړے دي، چه ذ قبلې ذ ګرځیدونه مخکښې په دغې پخوانئ قبلې ځنې خلق مړهٔ شوے وو. مونږ په دے پوه نهٔ شو، چه ذ هغوي په حقله مونږ څه ویلې شو په دے خبره الله تعالی دا آیت: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ، نازل کړلو.

**ف**: دے حدیث نه ذ حنفیه په نزد دا مسئله را ایستلې شوے ده، که یو سړے داسې مقام ته اورسي چه هلته ورته د قبلې طرف معلوم نه وي نو په خپل عقل دے زور واچوي او معلوم دے کړي چه قبله کوم طرف ته پکار ده. دے ته (تحري) وائي. دے نه پس چه کوم طرف ته ذ هغهٔ ګمان غالب شي، هغې طرف ته دے مونځ کول شروع کړي. اوس که ذ مانځه دوران کښې څوک داسې سړے راشي، چه هغهٔ ته قبله معلومه وي، نو خبر دے ورکړي چه قبله فلاني جانب ته ده، نو مونځ کښې دے هغې جانب ته اوګرځي. او مخکښې چه کرمو خلقو ذ آخر وخته پورے بیت المقدس طرف ته مونځ کړے وو، دا آیت ذ هغوي ذ مونځ متعلق نازل شو، چه هغه وخت قبله هغه وه. په دے وجه ذ هغوي مونځو نه قبلې طرف ته داسې ګنړلې شي، څنګه چه د ګرځیدو (تحویل) نه پس کعبې طرف ته.

۱. کومو خلقو چه بیت المقدس طرفته مونځونه کړے وو او په دے دوران کښې هغوي وفات شوي وو نو صحابؓ رضي الله عنهم ته دا شک پیښ شو چه اصل قبله خانه کعبه ده هسې نه چه د هغوي پخواني مونځونه برباد شوي نه وي په دغه وخت الله تعالي دا آیت نازل کړو. مونږ انصاف کونکے یُو بغیر د څه وجې مونږ د چا مونځ نه بربادوو. دے آیت کښې د ایمان نه مراد مونځ دے حدیث نه هم دا ثابتول دي چه مونځ ته ایمان هم وائي نو مونځ هم د ایمان حصه ده.

## بَاب ۳۱: حُسْنِ اِسْلَامِ الْمَرْءِ باب ۳۱: ذ سړي ذ اسلام ذ خوبئ بیان امام

قَالَ مَالِكٌ اَخْبَرَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ اَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا اَسْلَمَ الْعَبْدُ فَحَسُنَ اِسْلَامُهُ يُكَفِّرُ اللّٰهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا وَ كَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ الْقِصَاصُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا اِلٰى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَّالسَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا اِلَّا اَنْ يَّتَجَاوَزَ اللّٰهُ عَنْهَا.

مالک ۱ په روایت ذ زید بن اسلم عطاء بن یسار بیان او کړ، چه ابوسعید خدري ذ رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم نه داو اوریدل، چه کله سړے مسلمان شي، او ذ هغهٔ اسلام ښهٔ وي نو اللّٰه تعالی ذ هغهٔ ټول ګناهونه چه هغهٔ کړے وي، معاف کوي، او ذ هغې نه پس بدله شروع شي، چه ذ نیکي بدله لس چنده نه واخله اووه سوه چنده پورے وي، او ذ بدي بدله ذ هغې موافق وي. خو دا چه اللّٰه تعالی ئے ورته معاف کړي. (نو دا بیله خبره ده).

۱. امام بخاري د باب سر لیک کښې د امام مالک د حدیث روایت نقل کړیدے د دے او څلویښتم حدیث شریف یو مضمون دے د امام مالک روایت، امام بخاري ته په څه واسطه او نه رسیدو. د دے وجے امام بخاري په سر لیک کښې دا روایت درج کړو. دے دواړو روایتونو کښې یوه خبره بیان شویده. نیکي او بدي د خدائے تعالی په دختر کښې څنګه کیږي. یو بنده چه په ربښتینه زړه سره مسلمان شي هغه څه کار او کړي د اللّٰه په نظر کښې د هغ ډیر وزن وي دا ذ اللّٰه تعالی فضل دے چه د یو نیکۍ اجر ثواب لس چنده تر اوه سوو چندو پورے ورکوي او د بدئے بدله کښې یوه بدي لیکلې شي او په هغه یوه بدئے به نیول کیږي باقي دا مسئله چه د اسلام راوړلونه وړاندے د نیکو اعمالو څه حالت دے پدے کښې د اسلام د عالمانو رائے کښې اختلاف دے مګر د احادیثو په رنړا کښې د محققینو علماؤ دا رائے خوښه کړیده چه کوم بنده مسلمان شو د هغه پخواني نیکو اعمالو کښې یو ځائے کیږي او کني د ټولو نیک اعمالو بدله به دے دنیا کښې ورکولے شي. د اسلام چه کوم خوبۍ طرفته اشاره کړیده چه د بنده زړهٔ د دے منافقۍ او د ریا (خان ښودلو) نه پوره پاک وي.

۴۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَحْسَنَ اَحَدُكُمْ اِسْلَامَهُ فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَّعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا اِلٰى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَّ كُلُّ سَيِّئَةٍ يَّعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِمِثْلِهَا.

۴۰: اسحاق بن منصور. عبدالرزاق. معمر همام ذ ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل هر کله چه تاسو کښې څوک سړے ذ خپل اسلام خوبي پیدا کړي، نو هغه چه څهٔ نیکي کوي، د هغهٔ ذ پاره ذ لس چنده نه اوه سوه چنده پورے لیکلے شي، او کومه بدي چه هغه کوي، هغهٔ د پاره هم هغومره لیکلے شي.

**باب ۳۲: اَحَبُّ الدِّيْنِ اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ اَدْوَمُهٗ.**

**۴۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَ عِنْدَهَا امْرَاَةٌ قَالَ مَنْ هٰذِهٖ قَالَتْ فُلَانَةُ تَذْكُرُ مِنْ صَلَاتِهَا قَالَ مَهْ عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيْقُوْنَ فَوَاللّٰهِ لَا يَمَلُّ اللّٰهُ حَتّٰى تَمَلُّوْا وَ كَانَ اَحَبُّ الدِّيْنِ اِلَيْهِ مَا دَاوَمَ عَلَيْهِ صَاحِبُهٗ.**

**باب ۳۲: دَ خدائے پـه نـزد دَ ټـولو نـه زيـات محبوب كار هغه دے، چه هميشه كولے شي.**

۴۱: محمد بن مثني. يحيٰي. هشام. عروه. بي بي عائشهؓ وائي، چه نبي عليه السلام يو خلے هغې له راغے، او هغې سره هغه وخت يوه ښځه ناسته وه. حضورؐ ترے تپوس اوكه چه دا څوك ده، بي بي عائشےؓ اووے دا فلانئے ده، او دَ هغې (دَ ډيرو) مونځونو بيان ئے شروع كۀ حضورؐ اوفرمائيل گوره تاسو دَ دومره اعمالو ذمه واري په سر آخلے چه دَ هغې (هميشه) طاقت لرئے خكه چه اللّٰه (په ثواب وركولو) نۀ ستړے كيږي، څو پورے چه تاسو (زيات عبادت كولو سره) ستړے نۀ شئے (يعني تاسو به ئے پوره نۀ كړے شے) او دَ اللّٰه په نزد زيات محبوب دَ دين هغه كار دے، چه هغه سړے هميشه كولے شي[۱].

۱. معلومه دا شوه چه د عبادت زياتوالے غوښتلے نشي بلكے عبادت په پابندئ سره ادا كول (نه قضا كول) او هميشه[۱] كول د اللّٰه خوښ عمل دے په لږ عمل كښ خوشالي او مزه حاصليدے شي. او بنده ئے د ډير وخت د پاره كولے هم شي د ژوند ډير قسماقسم ذمه وارئ دي په دے وجه داسے عبادت غوره كول دي چه انسان ئے هميشه كولے شي او بنده د خپلے بندګئ احساس هر وخت او هر حالت كښ قائم ساتلے شي او هغه عبادت د انسان د ضروري فرائضو نه ركاوټ هم نه جوړيږي. چه نور ضروري كارونه پاتے شي.

**باب ۳۳: زِيَادَةِ الْاِيْمَانِ وَ نُقْصَانِهٖ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَزِدْنٰهُمْ هُدًى وَّ يَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِيْمَانًا وَّ قَالَ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ فَاِذَا تَرَكَ شَيْئًا مِّنَ الْكَمَالِ فَهُوَ نَاقِصٌ.**

**۴۲: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ فِيْ**

باب ۳۳: دَ ايمان كمے زياتے دَ اللّٰه تعالي دَ دے ارشاد نه هم ثابت دے: وَزِدْنٰهُمْ: او مونږ دَ هغوي هدايت (زيات كړ) او وَ يَزْدَادُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: (او دَ ايمان والو ايمان زيات شي) او دائے هم فرمائيلے دي: اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ ما نن ستاسو دين پوره كړو ستاسو د پاره كله چه يو څيز د پوره والي نه پريخودے شي نو هغه څيز نيمګړے وي.

۴۲: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. حضرت انسؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي حضورؐ او فرمائيل، كوم سړے چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او وائي او دَ هغۀ په زړۀ كښ دَ يوے وربشے برابر نيكي (ايمان) وي، نو هغه به دَ دوزخ نه اوبنكلے شي، او كوم سړے چه لا اله

قَلْبِهٖ وَزْنُ شَعِيْرَةٍ مِّنْ خَيْرٍ وَّ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ فِيْ قَلْبِهٖ وَزْنُ بُرَّةٍ مِّنْ خَيْرٍ وَّ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ فِيْ قَلْبِهٖ وَزْنُ ذَرَّةٍ مِّنْ خَيْرٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْاِيْمَانِ مَكَانَ خَيْرٍ.

الا الله او وائي او دَ هغهٔ په زړهٔ کښې دَ غنم دَ دانې برابر نيکي (يعني ايمان) وي، نو هغه به (هم) دَ دوزخ نه اوبښکلې شي، او کوم سړے چه لا اله الا الله او وائي، او دَ هغهٔ په زړهٔ کښې ذره برابر نيکي (يعني ايمان) وي، نو هغه (هم) دَ دوزخ نه اوبښکلې شي. ابوعبدالله اووے، چه ابان په روايت دَ قتاده. انس. دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دَ "خير" په ځائې دَ ايمان ' لفظ روايت کړے دے.

**ف**: دے حديث نه ثابته شوه، چه اصل ايمان: لا اله الا الله سره حاصليږي. دے نه پس که يو سړے دَ لويو يا وړو ګناهونو په وجه دَ سزا مستحق شي، او الله هغه معاف نه کړي نو هغه به دَ خپل جرم دَ سزا موندلو نه پس دَ دوزخ نه اوبښکلې شي او جنت ته به بوتلې شي، چه هغه دَ ايمان: لا اله الا الله نتيجه به وي، نه چه دَ اعمالو.

۱. خالي په ژبه کلمه ويل کافي نه دي بلکې په زړه کښ د کلمې دَ حقيقت شته والې پکار دے په کوم بنده کښ چه ايمان وي نو د سزا تيره ولونه پس ئې ښبل يقيني دي په دے حديث شريف کښ ئې دَ ايمان تشبيه خو خيزونو سره ورکړيده. مطلب ئې دا دے که چرے ډير لږ ايمان په زړه کښ وي نو په آخرت کښ به د هغې فائده مومي. حديث شريف کښې د "خير" د لفظ نه "ايمان مراد دے د حديث شريف په آخر کښ امام بخاري صاحب د يو بل روايت حواله ورکړيده چه په هغ کښ د "خير" پځائې د "ايمان" لفظ راغلې دے.

۴۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ سَمِعَ جَعْفَرَ بْنَ عَوْنٍ حَدَّثَنَا اَبُو الْعُمَيْسِ اَخْبَرَنَا قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ اَنَّ رَجُلًا مِنَ الْيَهُوْدِ قَالَ لَهٗ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اٰيَةٌ فِيْ كِتَابِكُمْ تَقْرَءُوْنَهَا لَوْ عَلَيْنَا مَعْشَرَ الْيَهُوْدِ نَزَلَتْ لَا تَّخَذْنَا ذٰلِكَ الْيَوْمَ عِيْدًا قَالَ اَيُّ اٰيَةٍ قَالَ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ اَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَ رَضِيْتُ

۴۳: حسن بن صباح. جعفر بن عون ابوالعميس. قيس بن مسلم. طارق بن شهاب. دَ عمر بن خطابؓ نه روايت کوي، يو يهودي هغوي ته اووے، چه اے امير المؤمنينه، ستاسو کتاب (قرآن مجيد) کښې يو داسې آيت دے که په مونږ (يهوديانو، دغه آيت نازل شوے وے، نو مونږ به دغه ورځ اختر کړے وے. امير المؤمنين ترے تپوس اوکړ، هغه کوم آيت دے. يهودي ورته اووے (هغه آيت دا دے) اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ اَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَ رَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا: عمرؓ (چه دا واوريدل) نو وے

لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا قَالَ عُمَرُ قَدْ عَرَفْنَا ذٰلِكَ الْيَوْمَ وَالْمَكَانَ الَّذِيْ نَزَلَتْ فِيْهِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قَائِمٌ بِعَرَفَةَ يَوْمَ جُمُعَةٍ.

ونيـل بيشـكه مونږ ته هغه ورځ او هغه مقام ياد دے، چه هغے كښ دا آيت په نبي صلي الله عليه وسلم نازل شوے وو. حضورؐ دغه ورځ عرفه كښ مقيم وو، او ذ جمعے ورځ وه.

ف: (۱). اليوم اكملت الخ: ما ستاسو ذ پاره ستاسو دين كامل كۀ، او خپل نعمت مِ درباندے تمام كۀ، او دين اسلام مِ ستاسو د پاره غوره كۀ.

(۲). د حضرت عمرؓ مقصود دا وو، چه هغه ورځ خو ذ برغ (غبرگ) اختر ورځ وه، يو ذ جمعے په سبب دونم د عرفے په سبب ذ دے نه زيات ذ آختر څۀ صورت كيدے شي (اے يهودي) كه ستا پوه كښ نه راحي نو د دے څۀ علاج دے.

د حضرت عمر رضي الله عنه د جواب مطلب دا دے چه د جمع ورځ او د عرفے ورځ خمونږ په سر د اختر شميرلے شي له دے كبله، مونږ په دے خوشالي ښكاره كوو بيا د عرفے نه وړاندے د لويے اختر ورځ وي له دے كبله مونږ ته ډيره خوشالي حاصليږي چه تاسو ته په تماشو او لوبو دومره خوشالي نه ملاويږي.

## بَاب ۳۴: اَلزَّكٰوةُ مِنَ الْاِسْلَامِ

وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَمَا اُمِرُوْا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ حُنَفَآءَ وَ يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ يُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَ ذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ.

باب ۳۴: زكوة ادا كول اسلام دے او د الله تعالٰي ارشاد دے: او هغوي ته صرف د دے خبرے حكم وركړے شو، چه ذ الله عبادت اوكړي، خالص ذ هغۀ عبادت ګزار او يو مخيز شي، او مونځ كوي، زكوة ركوي، او هم دغه سمه لار ده.

۴۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ عَمِّهٖ اَبِيْ سُهَيْلِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ سَمِعَ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَهْلِ نَجْدٍ ثَائِرُ الرَّأْسِ نَسْمَعُ دَوِيَّ صَوْتِهٖ وَلَا نَفْقَهُ مَا يَقُوْلُ حَتّٰى دَنَا فَاِذَا هُوَ يَسْاَلُ عَنِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ قَالَ لَا اِلَّا اَنْ تَطَوَّعَ قَالَ رَسُوْلُ

۴۴: اسماعيل. مالک بن انس. ابو سهيل بن مالک ذ طلحه بن عبيدالله نه روايت كوي چه ذ نجد او سيدونكے يو سړے چه ويښته ئے خوارۀ وارۀ وو، رسول الله صلي الله عليه وسلم له راغے، ذ هغۀ ذ آواز ګُنړ ګُنړ خو آوريدے شو خو دا پوهه كښ نۀ راتله چه څۀ وائي. خو څۀ وخت چه نزدے شو نو معلومه شوه چه هغه ذ اسلام په حقله ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه تپوس كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل چه ورځ او شپه كښ پنځه مونځونه دي. هغه سړي اووے ذ دے نه علاوه هم (څۀ مونځ) په ما شته. حضورؐ ورته او فرمائيل نه خو دا چه ته خپلے خوشي سره اوكړے. بيا ورته رسول الله صلي الله عليه وسلم او

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صِيَامُ رَمَضَانَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ وَ ذَكَرَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّكٰوةَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَا أَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا وَلَا أَنْقُصُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ.

فرمائيل چه د رمضان روژے دي. هغهٔ عرض اوکړو چه د دې نه علاوه (نورے روژے) هم په ما فرض دي؟ حضورٌ ورته او فرمائيل نه خو دا چه ته ئے په خپله خوښه ساتے (طلحه) وائي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم هغهٔ ته د زکوٰة ذکر هم اوکړو. هغهٔ اووے آیا په ما د دے نه علاوه هم (بله څهٔ صدقه) فرض ده؟ حضورٌ ورته او فرمائيل نه خو دا چه ته ئے په خوشحالئ ورکوے. طلحهٌ وائي بيا هغه سړے دے خبرے کولو سره لاړ او هغه وئيل چه په الله م دے قسم وي نه به (د دے عبادت نه) زيات اوکړم او نه کم. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل که دے ريښتياوائي نو کامياب شو.

۱. د کامياب کيدو مطلب دا دے چه الله تعالي به ترے خوشاله شي او آخرت کښې عزتمند به وي نبي عليه السلام ښئينه کونکي ته دَ اسلام بنيادي احکام اوښودل چه په هغے باندے دَ اسلامي ژوند بلډنگ جوړيږي. او دا بنيادي احکام اسلامي اخلاقو له ترقي ورکوي که چرے د عقيدے د پوخ والي او صحيح اسلامي مزاج سره د اسلام دا بنيادي حقيقتونه خپل شي نو د هغے بنده اخلاق او سيرت عادت به کامل وي او هيچرے به نه نقصاني کيږي.

## باب ۳۵: اِتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ مِنَ الْإِيْمَانِ.

## باب ۳۵: جنازو سره تلل ايمان دے.

۴۵: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَلِيِّ الْمَنْجُوْفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ وَ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيْمَانًا وَّ اِحْتِسَابًا وَ كَانَ مَعَهُ حَتّٰى يُصَلّٰى عَلَيْهَا وَ يَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيْرَاطَيْنِ كُلُّ قِيْرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلّٰى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيْرَاطٍ تَابَعَهُ

۴۵: احمد بن عبدالله بن علي منجوفي روح، عوف، حسن، محمد، دَ ابوهريرهٌ نه روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، څوک چه دَ يو مسلمان جنازے سره په دے نيت خي چه دَ ايمان او ثواب کارئے گنړي، او خو پورے چه په هغهٔ مونځ نهٔ وي شوے او دفن شوے نهٔ وي، نو هغه دوه قيراطه ثواب سره واپس کيږي، چه هر قيراط دَ اُحد (دَ غر) برابر دهٔ. او څوک چه دَ جنازے مونځ اوکړي. او دفن کولو نه مخکښې واپس شي، نو هغه يو قيراط ثواب سره واپس کيږي. عثمان موذن دَ رَوح راوي په طرز د حديث

عُثْمَانُ الْمُؤَذِّنُ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

روايت کړے دے، چه مونږ ته روايت دَ عوف محمد. محمد او ابوهريرهؓ دَ نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کړے دے.

ف: قيراط: يو خاص وزن دے. دلته هغه خاص وزن مراد نهٔ دے. بلکه يو معين مقدار مقصود دے.

باب ۳۶: خَوْفِ الْمُؤْمِنِ اَنْ يَّحْبَطَ عَمَلُهُ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ التَّيْمِيُّ مَا عَرَضْتُ قَوْلِيْ عَلٰى عَمَلِيْ اِلَّا خَشِيْتُ اَنْ اَكُوْنَ مُكَذِّبًا وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَدْرَكْتُ ثَلٰثِيْنَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَخَافُ النِّفَاقَ عَلٰى نَفْسِهٖ مَا مِنْهُمْ اَحَدٌ يَّقُوْلُ اِنَّهٗ عَلٰى اِيْمَانِ جِبْرِيْلَ وَ مِيْكَائِيْلَ وَ يُذْكَرُ عَنِ الْحَسَنِ مَا خَافَهٗ اِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا اَمِنَهٗ اِلَّا مُنَافِقٌ وَمَا يُحَذَّرُ مِنَ الْاِصْرَارِ عَلَى التَّقَاتُلِ وَالْعِصْيَانِ مِنْ غَيْرِ تَوْبَةٍ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَمْ يُصِرُّوا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ.

باب ۳۶: دَ مؤمن دَ دے خبرے نه ويره، چه داسے نه چه دَ هغهٔ عمل برباد کړے شي او هغه خبر نهٔ وي، ابراهيم تيمي اووے، چه زهٔ خپل گفتار او کردار مقابله کرم، نو ماسره دا خوف پيدا شي، چه چرته زهٔ په دروغجنو کښې رانشم. ابن ابي مليکه اووے، چه زهٔ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ديرشو صحابه ؤ سره يو ځائے شوم، هغوي ټولو سره دَ خپل منافق کيدو ويره وه. هغوي کښې يو سړي دانهٔ وے چه زهٔ دَ جبريل او ميکائيل په ايمان يم. حسن بصريؒ نه نقل دے، چه دَ نفاق خوف هغے چاسره وي، ځوک چه مؤمن وي، او دَ دے نه هغه سړے بے خوفه وي، چه منافق وي، او د کومے خبرے نه چه (مومنان) پرۆلے شي هغه په خپلو کښے جنګ کول او په ګناهونو باندے اصرار کول او بيا توبه نه کول دي ځکه چه اللّٰه تعالٰي فرمائي: وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ.

۴۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ زُبَيْدٍ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا وَائِلٍ عَنِ الْمُرْجِئَةِ فَقَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُاللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوْقٌ وَ قِتَالُهٗ كُفْرٌ.

۴۶: محمد بن عرعره. شعبه. زبيدؒ وائي، چه ما دَ ابو وائل نه دَ مرجئه (فرقه) باره کښې تپوس او کهٔ، نو هغهٔ اووے، ماته عبداللّٰه (بن مسعود) بيان او که، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، مسلمان ته کنځل کول فسق دے او هغهٔ سره جنګ کول کفر دے.

ف: دَ دے جواب يو مطلب خو دا دے، چه مرجيه فرقه مؤمنانو ته کنځل کوي، او دَ ايمان نه يے خارج

بنائي. او حضورؐ فرمائیلي دي، چه مسلم او مؤمن ته کنځل کول فسق دے، نو هغوي فاسقان دي او که مرجیه مسلمانانو سره جنګ کول جائز او ثواب ګنړي، نو حضورؐ فرمائیلي دي، چه مؤمن سره جنګ (حلال ګنړل) کفر دے، او ځما مطلب دا دے، چه ماته ذ دے فرقې متعلق تفصیلي حالات معلوم نه دي، په دے وجه زۀ هیڅ نشم وئیلے، ځکه که هغوي مؤمنان وي او ما ورته کافر اووے، نو حضورؐ دا ارشاد فرمائیلے دے.

۱. د مرجئه فرقې دا عقیده ده چه د ګناه کبیره کولو سره کونکے مسلمان نه فاسق کیږي. د أبو وائل د پښتنے مطلب داؤو چه د مرجئه عقیده څنګه ده د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د جواب دا مطلب دے چه ذ ګناهِ کبیره کونکے فاسق دے د مرجئه فرقې عقیده باطله ده.

۴۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ قَالَ اَنَسٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يُخْبِرُ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحٰى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ اِنِّيْ خَرَجْتُ لِاُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ وَ اِنَّهٗ تَلَاحٰى فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَ عَسٰى اَنْ يَّكُوْنَ خَيْرًا لَّكُمْ فَالْتَمِسُوْهَا فِي السَّبْعِ وَالتِّسْعِ وَالْخَمْسِ.

۴۷: قتیبه بن سعید. اسمٰعیل بن جعفر. حمید، حضرت انسؓ نه روایت کوي، ماته عباده بن صامت اووے، رسول الله صلي الله علیه وسلم (یو ځلے خلقو ته) ذ شب قدر ښودلو ذ پاره اووتلو، نو (اتفاق سره هغه وخت) دوه مسلمانان خپلو کښې په جنګ وو حضورؐ او فرمائیل، دے وخت زۀ دے د پاره راوتلے ووم، چه تاسو ته شب قدر اوښایم، خو فلانے او فلانے خپلو کښې په جګړه وو. په دے وجه (ذ هغے خبر ذ دنیا نه) اوچت کړے شو. او شاید ستاسو په حق کښې دا غوره وي. اوس تاسو شب قدر ذ رمضان په اوویشم او یو کم دیرشم او په پنځویشم (تاریخونو کښې[۱]) تلاش کوئے.

۱. د مسلم روایت داسے دے چه فلاني فلاني سرو جګړه کوله د دے وجے نه دليلة القدر خبره هیره شوه او هیریدل په دے ښه شوو چه تاسو د ليلة القدر د برکتي ساعتونو زیات کوشش او کړئے که یوه خاص شپه معلومه وے نو بیا به یوه شپه خلقو عبادت کولو لیکن اوس به د مختلف شپو هغوي ته زیاته موقعه ورکیږي. او د ليلة القدر اصل مقصود هم عبادت او الله ته توجه کول دي. د دے باب سر لیک کښې چه امام بخاري تفصیل کړے دے دا حدیث شریف د هغے بالکل برابر دے د دے باب سر لیک دا دے چه مؤمن ته د خپلو عملونو د برباد کیدو ویره پکار ده. د دے حدیث شریف نه دا معلومه شوه چه د رمضان المبارک میاشت کښې بیا د رسول اللّٰه صلي الله علیه وسلم وړاندے او غالباً مسجد نبوي کښې دوو مسلمانانو په خپل مینځ کښې د جګړے کولو په وجه د ليلة القدرؔ، معلومیدو پوهه الله تعالي واپس اوچته کړه او د یو نعمت نه مسلمانان محرومه شوو. دویمه دا چه مسلمان ته د ګناه کولو نه ویره پکار ده. هسے نه چه تیر شوے عمل ئے برباد شي او کوم نعمت چه ورکیدونکے وي هغه ورنه کړے شي. دا هم د مرجئه

فرقه رد دے چه وائي چه د ايمان راوړلو نه پس مسلمان له خطره نشته.

**باب۳۷: سُوَالِ جِبْرِيْلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْاِيْمَانِ وَالْاِسْلَامِ وَالْاِحْسَانِ وَ عِلْمِ السَّاعَةِ وَ بَيَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ ثُمَّ قَالَ جَآءَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يُعَلِّمُكُمْ دِيْنَكُمْ فَجَعَلَ ذٰلِكَ كُلَّهُ دِيْنًا وَمَا بَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ مِنَ الْاِيْمَانِ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ.**

**باب۳۷: ذَ جبرائيلٌ ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ذَ ايمان. اسلام. احسان او ذَ قيامت...... ذَ علم** په حقله پښتنه' او ذَ نبي عليه السلام هغهٔ ته بيان کول. بيا حضورٌ (صحابه وُ ته) او فرمائيل' چه جبريل عليه السلام تاسو ته دين ښودلو ته راغلے وو' حضورٌ دے ټولو ته دين اووے. او ذَ دين کومے خبرے چه نبي صلے الله عليه وسلم ذَ (قبيلهٔ) عبدالقيس وفد ته بيان کړے وے (هغه هم دين وو) او ذَ الله تعالٰي دا قول چه کوم سړے ذَ اسلام نه سوا' بل دين پسے شي' نو هغه به هيڅ کله قبول نهٔ کړے شي.

۴۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَيَّانَ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَارِزًا يَّوْمًا لِلنَّاسِ فَاَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ مَا الْاِيْمَانُ قَالَ الْاِيْمَانُ اَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ بِلِقَآئِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ تُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ قَالَ مَا الْاِسْلَامُ قَالَ الْاِسْلَامُ اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكَ بِهٖ وَ تُقِيْمَ الصَّلٰوةَ وَ تُؤَدِّيَ الزَّكٰوةَ الْمَفْرُوْضَةَ وَ تَصُوْمَ رَمَضَانَ قَالَ مَا الْاِحْسَانُ قَالَ اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ قَالَ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ مَا الْمَسْئُوْلُ بِاَعْلَمَ مِنَ السَّآئِلِ وَ

۴۸: مسدد. اسمٰعيل بن ابراهيم. ابو حيان التيمي. ابوزرعه' ذَ ابو هريرهٌ نه روايت کوي' چه يوه ورځے نبي صلي الله عليه وسلم ذَ خلقو مخکښې ناست وو. ناسا په ذَ حضورٌ مخے ته يو سړے راغے' او هغهٔ ذَ حضورٌ نه تپوس او کهٔ' چه ايمان څهٔ څيز دے' حضورٌ ورته او فرمائيل' ايمان دا دے' چه تهٔ په الله' ذَ هغهٔ په فريښتو او (آخرت کښې) الله سره ذَ يو ځائے کيدو' او ذَ الله په پيغمبرانو ايمان راوړے او ذَ قيامت يقين او لرے. بيا هغے سړي او وے' چه اسلام څهٔ څيز دے' حضورٌ ورته او فرمائيل' دا چه تهٔ ذَ الله تعالٰے عبادت کوے' او هغهٔ سره شرک نهٔ کوے' او مونځ کوے او فرض زکٰوة ورکوے' او ذَ رمضان روژے نيسے. بيا هغے سړي اووے' چه احسان څهٔ څيز دے' حضورٌ ورته او فرمائيل دا چه تهٔ ذَ الله عبادت داسے (خشوع او خضوع سره) کوے' چه ګويا تهٔ الله وينے' او که دا حالت نهٔ وي چه ته هغه وينے' نو دا خيال دے وي چه هغه تاويني. بيا هغے سړي اووے' چه قيامت به کله وي' حضورٌ ورته او فرمائيل چه ذَ چا نه ذَ دے خبرے تپوس کيږي' هغهٔ ته (خپله) ذَ تپوس کونکي نه زيات معلومات نشته (يعني په دے حقله ناواقفي کښې دواړه برابريو) خو زهٔ تاته ذَ هغے علامتونه ښايم (او

سَأُخْبِرُكَ عَنْ اَشْرَاطِهَا اِذَا وَلَدَتِ الْاَمَةُ رَبَّهَا وَ اِذَا تَطَاوَلَ رُعَاةُ الْاِبِلِ الْبُهْمِ فِي الْبُنْيَانِ فِيْ خَمْسٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ تَلَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ الْاٰيَةَ ثُمَّ اَدْبَرَ فَقَالَ رُدُّوْهُ فَلَمْ يَرَوْا شَيْـئًا فَقَالَ هٰذَا جِبْرِيْلُ جَاۤءَ يُعَلِّمُ النَّاسَ دِيْنَهُمْ قَالَ اَبُو عَبْدِ اللّٰهِ جَعَلَ ذٰلِكَ كُلَّهٗ مِنَ الْاِيْمَانِ.

هغه دا) چه کله وينزه خپل سردار اوزيګوي او کله تور اوښان څرونکي اوچتو عمارتونو کښې اوسيدل شروع کړي (نو پوه شه چه قيامت نزدې دے) او د قيامت علم خو دے پنځو څيزونو کښې دے چه په هغے بغير د خدائے نه هيڅوک نه پوهيږي. بيا نبي صلي الله عليه وسلم: اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ: پوره آيت تلاوت کړ دے نه پس هغه سړے لاړ نو حضورؐ صحابهؓ ته او فرمائيل هغه سړے ماته واپس راولئے (نو هغوي د هغه واپس راوستو د پاره لاړل) خو هلته ئے هيڅوک او نه ليدل' نو حضورؐ او فرمائيل' چه هغه جبرئيلؑ وو' خلقو ته ذ دين تعليم ورکولو ذ پاره راغلے وو. ابو عبدالله وائي چه نبي صلے الله عليه وسلم دا ټولے خبرے ذ ايمان جُزء ګرځولے دي.

**ف:** ذَ دے عبارت يو مطلب خو دا کيدے شي چه قربِ قيامت کښې چه ذ ښځے نه کوم اولاد پيدا کيږي د هغه رويه به خپلے مور سره هغه نۀ وي' چه ذَ يو خوئ خپلے مور سره پکار ده' بلکه ذَ هغے برخلاف هغه رويه به وي' چه ذَ يو آقا خپلے وينځے سره وي. دوئم مطلب ئے دا کيدے شي' چه شريف النسب نجيب الطرفيْن خلق به داسے ښځو سره نکاح او کړي. چه نسبي اعتبار نه به ذَ وينزو جوړيدو جوګه وي. او د هغے ښځو نه چه ذَ هغوي کوم اولاد وي' هغه به ذَ مور په حق کښې ذَ مالک درجه لري' ځکه چه بچے پلار طرف ته منسوب کيږي' چه پلار شريف النسب وي او ذَ آقا (مالک) جوړيدو قابل وي' نو ذ هغه اولاد هم دغه حيثيت لري' ګويا بچے به ذَ مور مالک ګنړلے شي.

۱. ايمان' اسلام او دين هغه بنيادي الفاظ دي چه هغه د هغه اصولونه عبارت دي چه په هغے يو مسلمان له يقين کول ضروري وي. د دے درے واړو لفظونو يوه معني ده يا جدا' جدا دے کښې د علماؤ مختلف اقوال دي ايمان' يقين ته وائي. او اسلام حکم منلوته وائي او دين د ژوند خاص طرز ته وائي. په عام اصطلاح کښې ملت او مذهب ته هم وائي. ذَ دے ترتيب د وجے نه اول يقين دے ذَ ايمان درجه ده بيا په احکامو عمل کول دي ذَ اسلام درجه ده. چه کوم قوانين دي هغے ته دين وائي. مګر کله کله' ايمان' اسلام او دين لفظونه د يو بل په ځائے استعماليږي چه ذَ هغے ډير مثالونه قرآن شريف او احاديثو کښې موجود دي (شته دي). الله تعالي په لويے حکمت سره د خپلے خاص فرشتے په ذريعه' صحابه ؤ کراموته تعليم ورکړو. اول يے ذَ ايمان' د عقيدو تعليم ورکړو' بيائے د عمل طريقے' اسلام اوښودلو' او بيائے ذَ احسان حقيقت ښکاره کړو. په ذَ يقين او عمل نه پس د انسان په عملي ژوند کښې داسے حالت پيدا شي' چه هر وخت ئے الله تعالي مخے ته وي. د هغے ذات تصور چه ټوله دنيائے قبضه کښې وه. کله چه د داسے ذات تصور ګران کار دے نو کم از کم دومره خيال ضروري دے چه هغه ذات ما ګوريويني' ددے خيال نه روستو د انسان تعلق الله تعالي سره پيدا شي' او هر وخت عبادت کښې شميرلے شي' د دے وجے نه د هر عبادت په صحيح طريقه ذ ادا کولو حکم شويدے او د دے عبادت په برکت ذ انسان بهرني ژوند کښې د الله تعالي ربوبيت' مالک کيدو او د خپل عبادت پوهه او احسان پيدا کيږي. د قيامت چه کومے دوه نښے دے حديث شريف

کښې بيان شويدي اولـه دا چـه اولاد بـه د مور پلار سره ذ وينزو غلامانو پشان سلوک کوي. د مور پلار نافرمان بـه وي حکـم بـه لـې نـه مـني. دويمه دا چه د کم حيثيت او د کمې مرتبې خلقو ته به لوئې مرتبې ورکړې شي، هغوي به لوئې لوئې بلډنګونه جوړوي. او د يو بل نه به وړاندې کيږي. باقي د قيامت اصلي وخت اللـه تعالیٰ ته معلوم دې د هغې علم هغې پنځو څيزونو کښې دې چه د هغې علم يو اخې الله تعالیٰ ته دې بـاقي د حساب يا د نجوم په ذريعه چه کوم علم حاصليږي هغه ناقص نيمګړې او اندازې سره دې هغه پنځه څيزونه دا دي. اول د باران د وريدو صحيح وخت دويم د مور په ګيډه کښې د ماشوم، هلک يا جينئ معلـومـول، دريم دا چه راتلونکې ورځې صبا له به څه کيږي خلورم دا چه په کومه زمکه به د انسان مرګ راځي پـنـځـم دا چه قيامت به کله وي. د دې حديث شريف نه دا معلومه شوه چه د غيب علم د الله تعالیٰ نه بغير بل چا ته نشته که هغه رسول وي که فرښته.

باب ۳۸:

باب ۳۸: (دا باب عنوان نهٔ لري)

۴۹: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ ابْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سُفْيَانُ بْنُ حَرْبٍ أَنَّ هِرَقْلَ قَالَ لَهُ سَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ فَزَعَمْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ وَ كَذٰلِكَ الْإِيمَانُ حَتَّى يَتِمَّ وَ سَأَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ سَخْطَةً لِدِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا وَ كَذٰلِكَ الْإِيمَانُ حِينَ تُخَالِطُ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوبَ لَا يَسْخَطُهُ أَحَدٌ.

۴۹: ابـراهـيـم بن حمزه. ابراهيم بن سعد صالح. ابـن شهـاب. عبيـدالله بن عبدالله عبدالله بن عباسؓ وائي چـه مـاتـه ابـوسفيان (رضي الله عنه) بن حرب بيان اوکهٔ چـه هـرَقـل ورتـه اويـل ماتانه پوښتنه اوکړه چه ذ محمد (صلي الله عليه وسلم) پيروکار زياتيږي يا کميږي، نو تا اووې، چـه زيـاتـيـږي او ايـمـان چه څو پورې پوره اعلیٰ درجې تـه اونـهٔ رسـي، نـو هـغـه وختـه پورې ذ هغې دغه صورت وي، ماتانه دا هم تپوس کړې وو، چه څوک دې ديـن کـښې داخـل شـي، نو بيا ترې واپس هم ګرځي (که نـه) نـو تا اووې، چه نه، او ذ ايمان حالت داسې دې چه ذ دې خـوشحالي زړونو سره يو ځائې شي، نو بيا هيڅوک ذ دې نه ناخوښي نشي کولې [۱].

۱. دې حديث شريف کښې هم ايمان او دين په يوه معني کښې استعمال شويدي.

بـاب ۳۹: فَضْلُ مَنِ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ.

باب ۳۹: ذ هغې سړي ذ فضيلت بيان چه ذ خپل دين قائم ساتلو ذ پاره ځان ذ ګناهونو نه بچ کړي.

۵۰: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ نُعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ

۵۰: ابونعيم. زکريا. عامر. نعمان بن بشيرؓ وائي، مـا ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، چه حـلال هـم ظـاهـر دي او حـرام هم ظاهر دي، او ذ دې

اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ وَ بَيْنَهُمَا مُشْتَبِهَاتٌ لَا يَعْلَمُهَا كَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ فَمَنِ اتَّقَى الْمُشْتَبِهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِيْنِهٖ وَ عِرْضِهٖ وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ كَرَاعٍ يَرْعٰى حَوْلَ الْحِمٰى يُوْشِكُ اَنْ يُّوَاقِعَهٗ اَلَا وَ اِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى اَلَا اِنَّ حِمَى اللّٰهِ فِيْ اَرْضِهٖ مَحَارِمُهٗ اَلَا وَ اِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً اِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهٗ وَ اِذَافَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهٗ اَلَا وَهِيَ الْقَلْبُ.

دواړو په مينځ كښ د شك څيزونه دي چه ډير خلق هغه نه پيژني، نو څوك چه دَ شبهې دَ څيزونو نه بچ شي، هغهٔ خپل دين او خپل عزت بچ كړلو، او څوك چه د شبهو څيزونو كښ آخته شي د هغهٔ مثال داسې دے، لكه يو شپونكے، دَ شاهي ورشو (چراگاه) خوا كښ مال څروي، چه دَ هغې متعلق آنديښنه وي، چه يوه ورځ به هغې كښ دننه هم داخل شي (خلقو) آگاه شئي دَ هر بادشاه يو ورشو وي، آگاه شئ، چه دَ اللّٰه ورشو. هغهٔ زمكه كښ دَ هغه حرام كړے شوے څيزونه دي. خبردار شئ چه بدن كښ دَ غوښې يوه ټكړه ده، چه هغه سمه وي. نو ټول بدن سم وي، او چه هغه خرابه شي نو ټول بدن خراب شي، واورئ، هغه ټكړه زړهٔ دے.

۱. په حديث شريف كښ د حكمت نه ډكه قيمتي خبره بيان شويده. چه د بنيادم دَ وجود اصلي تعلق زړه سره دے تر څو چه هغه كاركوي ټول وجود حركت كښ وي. او چه كله كار پريږدي نو هغه وخت د ژوند سلسله ختمه شي زړه دَ انساني نورو اندامونو كښې دَ انساني اخلاقو د پاره دَ چابي (كنجي) حيثيت لري. كه چرے زړه د ټولو بد اخلاقو، بے حياؤ، او پليتونه پاك وي چه د هغې نه د بچ كيدو اللّٰه تعالىٰ حكم كړيدے نو دَ انسان ټول ژوند پاك اوصاف وي او كه زړه د خرابئ او د فساد نه ډك وي. نو دَ انسان هر يو كار، د فتنې فساد او دَ شر وي د دے وجې نه د ټولو نه وړاندے زړه سَمول ضروري دي. له دے كبله په احكامو عمل كولو نه وړاندے عقيده سمول دي كه زړه روغ شو نو د انسان د بدن او روح دواړو اصلاح (سمول) كيدلے شي.

## بَاب ۴۰: اَدَآءُ الْخُمُسِ مِنَ الْاِيْمَانِ.

باب ۴۰: د خمس ادا كول ايمان كښ داخل دي.

(خمس: دَ مال غنيمت پنځمه حصه چه بيت المال كښ داخليږي)

۵۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ قَالَ كُنْتُ اَقْعُدُ مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ فَيُجْلِسُنِيْ عَلٰى سَرِيْرِهٖ فَقَالَ اَقِمْ عِنْدِيْ حَتّٰى اَجْعَلَ لَكَ سَهْمًا مِنْ مَّالِيْ فَاَقَمْتُ مَعَهٗ

۵۱: علي بن جعد. شعبه. ابوجمرهؒ وائي چه زهٔ به ابن عباسؓ سره كيناستم، نو هغه به زهٔ په خپل تخت كينولم (يو خلې) هغهٔ ماته اووے، چه تهٔ ماسره اُسه، زهٔ به تاله دَ خپل مال نه څهٔ حصه در كړم، نوزهٔ دوه درے مياشتې هغه سره ووم. بيا هغه (يوه ورځ) ماته اووے، دَ (قبيلهٔ عبدالقيس خلق چه كوم وخت نبي عليه السلام له راغلل، نو حضورؐ هغوي ته اووے، چه تاسو

شَهْرَيْنِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ الْقَوْمُ اَوْ مَنِ الْوَفْدُ قَالُوْا رَبِيْعَةُ قَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ اَوْ بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامٰى فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا لَا نَسْتَطِيْعُ اَنْ نَّأْتِيَكَ اِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكَ هٰذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرُ بِهٖ مَنْ وَّرَآءَنَا وَ نَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ وَ سَاَلُوْهُ عَنِ الْاَشْرِبَةِ فَاَمَرَهُمْ بِاَرْبَعٍ وَّ نَهَاهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَمَرَهُمْ بِالْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ قَالَ اَتَدْرُوْنَ مَا الْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ قَالُوا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءُ الزَّكٰوةِ وَ صِيَامُ رَمَضَانَ وَ اَنْ تُعْطُوْا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ وَ نَهَاهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ عَنِ الْحَنْتَمِ وَالدُّبَّآءِ وَالنَّقِيْرِ وَالْمُزَفَّتِ وَ رُبَمَا قَالَ الْمُقَيَّرِ وَ قَالَ احْفَظُوْهُنَّ وَ اَخْبِرُوْا بِهِنَّ مَنْ وَّرَآءَكُمْ.

ذ کوم قوم نه ئے' یا دا ئےپوس ئے او کۀ' چه تاسو ذ کوم جماعت نه ئے. هغوي ورته اووے' مونږ ذ ربیعه (ذ خاندان نه یو) حضورؐ ورته او فرمائیل: هر کله دے راشي قوم یا وفد نه بے عزته شوے نه پښیمانه مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ یا په ځائے ذ بِالْقَوْمِ' بِالْوَفْدِ (ئے او فرمائیل) غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامٰى. بیا هغے خلقو عرض او کۀ یا رسول اللّٰه' مونږ ماسوا ذ ماه حرام نه (بله زمانه کښ) تاسو له نۀ شو راتلے' ځکه چه زمونږه او ستاسو تر مینځه ذَ مضر کفارو قبیله اوسیږي (ذَ هغوي نه خمونږ ویره کیږي) نو تاسو مونږ ته څۀ داسے خبره اوښائے' چه مونږ خپلو پاتے خلقو ته ذ هغے اطلاع ورکړو' او مونږ ټول (په هغے عمل کولو سره) جنت ته لاړ شو. او هغے خلقو ذ څکلو ذَ څیزونو متعلق هم ذَ حضورؐ نه تپوس او کۀ' چه کوم حلال دي او کوم حرام دي' نو حضورؐ هغويِ ته ذَ څلورو څیزونو حکم ورکۀ' او ذ څلورو څیزونو نه ئے منع کړل. هغويِ ته ئے صرف په اللّٰه باندے ذَ ایمان راوړلو حکم ورکۀ. حضورؐ ورته او فرمائیل تاسو ته مُعلومه ده چه صرف اللّٰه باندے ایمان راوړل څنګه وي. هغويِ اووے اللّٰه او ذ هغۀ رسول ښه پوهیږي. حضورؐ ورته او فرمائیل' ذَ دے خبرے ګواهي کول' چه سوا ذ خدائے نه بل معبود نشته او دا چه محمدؐ ذَ اللّٰه رسول دے. او (هغويِ ته ئے حکم ورکۀ) ذَ مونځ کولو' ذ زکٰوة ورکولو' او ذَ رمضان ذَ روژو نیولو' او (حکم ئے ورکۀ) ذَ دے خبرے چه ذَ مالِ غنیمت پنځمه حصه (بیت المال کښ) ورکوئے' او څلورو څیزونو (کښ ذَ اوبو یا ذ بل څۀ څیز ذَ څکلو) نه ئے منع کړل' حنتم نه' دُبّاء نه' نقیر نه او مزفت نه (او کله به ابن عباسؓ ذَ مزفت په ځائے مقیر وے) او حضورؐ او فرمائیل' چه دا خبرے یا دلرئے' او نورو خلقو ته (چه خپل ځائے کښ پاتے شوے دي) ددے تعلیم ورکړئے.

**ف**: حَنْتَمْ. دباء. نقیر. مزفت او مقیر ذَ یو خاص قسم لوښو نومونه دي. دے لوښو کښ به ذَ حرام کیدونه مخکښ شراب څکلے شو' نو ذَ دے ذَ استعمال نه بالکل ممانعت اوکړے شو. دے کښ څو مصلحتونه وو' اول دا چه ذ دے لوښو ذَ استعمال نه دا آندیښنه وه چه ذَ شراب نوشي خواهش به پیدا کړي. دوئم دا هم احتمال وو' چه هغے کښ ذ شرابو څۀ اثر باقي پاتے شوے وي.

۱. خمس په جهاد کښ د مالِ غنیمت پنځمه حصه ده. د دغے قبیلے خلقو د هغے عملونو پوښتنه اوکړه چه په هغے عمل اوکړي او جنت ته لاړ شي د دے وجے نه هغوي ته ئے هغه عملونه اوښودل چه په

هغې، هغوي ته عمل كول آسان وؤ د حج كولو حكم ئې ورنه كړو. خكه چه هغوي داسې خائې اوسيدل چه كافران ئې په مخه كښې وؤ. د جهاد په سلسله كښې ورته د خُمس دادا كولو حكم وركړو خكه چه دا د ايمان حصه ده. حديث شريف كښې چه د كومو څلورو حيزونو نه ئې منع اوشوه هغه داسې لوښي وو چه په هغې كښې شراب جوړيدل او شراب پكښې څښلې شو.

بَابُ ۴۱: مَا جَآءَ اَنَّ الْاَعْمَالَ بِالنِّيَّةِ وَالْحِسْبَةِ وَلِكُلِّ امْرِءٍ مَّا نَوٰى فَدَخَلَ فِيْهِ الْاِيْمَانُ وَالْوُضُوْءُ وَالصَّلٰوةُ وَالزَّكٰوةُ وَالْحَجُّ وَالصَّوْمُ وَالْاَحْكَامُ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى قُلْ كُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ عَلٰى نِيَّتِهٖ نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلٰى اَهْلِهٖ يَحْتَسِبُهَا صَدَقَةٌ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِن جِهَادٌ وَّ نِيَّةٌ.

باب ۴۱: (حديث كښې) چه راغلې دي، چه اعمال د نيت او خيال مطابق وي، او هر سړي ته به هغه رسي، چه د هغې هغه نيت كړې وي. په دې بنا اعمالو كښې ايمان، اودس، مونځ، زكوة، حج، روژه او ټول شرعي احكام داخل شو، او اللّٰه تعالٰي فرمائيلې دي، اې نبيّ، اووايه، چه هر سړې د خپلې طريقې يعني د خپل نيت مطابق عمل كوي، او د سړي په خپلې بي بي خرچ كول كه هغه ثواب او ګنړي، نو صدقه ده، او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي، چه اوس صرف جهاد او نيت باقي دې.

۵۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ عَنْ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَلِكُلِّ امْرِيءٍ مَّا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ لِدُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

۵۲: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک يحيٰي بن سعيد. محمد بن ابراهيم. علقمه بن وقاص د حضرت عمرؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه اعمال (د نتيجې د لحاظ نه) د نيت موافق وي. او د هر سړي د پاره هغه دي، چه د هغې نيت اوكړي. نو چا چه هجرت د اللّٰه او د هغه د رسول د پاره كړې وي، نو (اللّٰه سره) د هغه هجرت د هغې كار د پاره ليكلې شي، چه د هغې د پاره هغه هجرت كړې وي[1].

[1]. د دې حديث په سر ليك كښې امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د دې خبرې خيال ساتلې وې. چه د انسان ټول كارونه د هغه د ارادې تابع وي دا حديث شريف اول تير شويدې. اندازتاً هغه اوه ځايه دا روايت ذكر كړيدې هغه دا ثابتوي چه د اعمالو صحت په نيت دې يا د ثواب دارومدار په نيت دې دې باب كښې دا ښائي چه ثواب په نيت باندې موقوف دې څرنګ چه كوم بنده په خپل اولاد بال بچ خرچه كوي چه ددوي پالنه خما ديني فريضه ده او دا د اللّٰه تعالٰي حكم دې نو دا خرچه به صدقه ګنړلې شي او

ثواب بـه ور کیږي. د حنفیانو په نزد د نیت په شرعي حیثیت کښ څه لږ فرق دے څه عبادتي اعمال مقصد او عبادت دواړه دي دهغوي د پاره نیت ضروري دے د نیت نـه بغیر نـه صحیح کیږي نـه پرے ثواب ور کیږي. لکه مونځ، زکات، حج جهاد، روژه او کوم عملونه چه اصلي مقصد نه دي بلکې د عبادت د پاره یوه ذریعه ده لکه د مونځ د پاره اودس کول په دے کښ د حنفیانو په نزد نیت شرط نه دے امام بخاري رحمة الله علیه د دے سر لیک دوه حدیثونه نور هم ذکر کړیدي.

۵۳: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلٰى اَهْلِهٖ يَحْتَسِبُهَا فَهِيَ لَهٗ صَدَقَةٌ.

۵۳: حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. عبداللّٰه بن یزید. ابو مسعودؓ ذ نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي، چه حضورؐ او فرمائیل هر کله چه یو سړے د ثواب په نیت په خپلے بي بي خرخ او کړي، نو هغه ذ هغهٔ په حق کښ صدقه ده (یعني ذ صدقے حکم لري).

۵۴: حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَامِرُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا اُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتّٰى مَا تَجْعَلَ فِيْ فَمِ امْرَاَتِكَ.

۵۴: حکم بن نافع. زهري. عامر بن سعد حضرت سعد بن ابي وقاص روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم هغهٔ ته او فرمائیل، تهٔ چه ذ اللّٰه تعالٰي ذ خوشالولو ذ پاره څهٔ خرچ کوے، (لږ یا ډیر) ذ هغے ثواب به ضرور تا ته در کیدے شي. تر دے چه تهٔ څهٔ (نوړئے) ذ خپلے بي بي په [۲] خوله کښ اچولے (ذ هغے به هم ثواب بیامومے)

۲. ذ اسلامي احکامو جامعیت او خوښوالے په دے اندازه دے چه د ژوند هر اړخ کښ ئے انسان ته تعلیمات ورکړے دي چه څوک ترے نه ستړے کیږي دا احکام داسے خایسته او ښکلي دي چه همیشه به باقي وي. سړے قدرتي طور د ښځے سره مینه لري اسلام دا د مینے تعلقات ډیر پاک او اعلٰي او گرځول چه انسان ئے د ذلت نه لرے کړو عظمت او لوئے والے ئے ورکړو تر دے چه هغه تعلق او مینه ئے عبادت شو. دنیا کښ داسے زبردست انقلاب راوست چه انسان د اللّٰه تعالٰي خوښ شو او د ثواب حقدار شو، بل طرفته خاندان پاک بااخلاقه نیک خویه او گرزیدو. او ټوله معاشره د ترقۍ په لار روانه شوه.

## باب ۴۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَلِاَئِمَّةِ الْمُسْلِمِيْنَ وَ

باب ۴۲: نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل چه اللّٰه، ذ هغهٔ رسول، ائمه مسلمین او عامه مسلمین ذ پاره مخلص اوسیدل دین دے.

عَامَّتِهِمْ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى اِذَا نَصَحُوْا لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

او دا قول د اللّٰه تعالٰي "چه کله هغوي د اللّٰه او دهغه د رسول د خاطر خير خواهي اوکړي.

۵۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسُ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَجَلِيِّ قَالَ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

۵۵ : مسدد. يحيٰي. اسمٰعيل. قيس بن ابي حازم دَ حضرت جرير بن عبداللّٰه نه روايت کوي هغه وائي ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دَ مونځ کولو، زکوٰة ورکولو او دَ هر مسلمان دَ خير خواهئ کولو (په اقرار) باندې بيعت[۱] اوکړه.

۱ . د دين مطلب دا دې چه بنده دَ خالص اخلاص او دَ خير خواهئ جذبات خپل زړه کښې اوساتي د اللّٰه تعالٰي د پاره، دهغه رسول صلي اللّٰه عليه وسلم د پاره، د اسلامي حاکمانو او د عامو مسلمانانو د پاره، د اللّٰه تعالٰي د ذات و صفات صحيح تصور، دَ اللّٰه تعالٰي عظمت او د لوئے والي احساس، او خالص د اللّٰه تعالٰي فرمان بر داري او بندګي کول، د هغه حکم منل، دا د اللّٰه تعالٰي د پاره اخلاص او خير خواهي ده. په نيکو خبرو کښې د مسلمان حاکم حکم منل، د دين د مشرانو تعظيم او عزت کول، مسئلو کښې په هغوي اعتبار کول دَ مسلمان حاکم خير خواهي ده، دَ خپلو مسلمانانو رونړو حقونه پيژندل، هغوي سره مهربانئ او شفقت سلوک کول، هغوي ته د نيکو کارونو حکم ورکول، د بدو کارونونه منع کول، دا د عامو مسلمانانو د پاره دَ اخلاص او خير خواهئ مظاهره ده. يو مسلمان ته د اللّٰه تعالٰي، د هغه د رسول صلي اللّٰه عليه وسلم د عالمانو، حاکمانو او د عامو مسلمانانو په حقله دا طريقه خوښول دي.

۵٦ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ زِيَادِ بْنِ عَلَاقَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيْرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَوْمَ مَاتَ الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَامَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ وَ قَالَ عَلَيْكُمْ بِاتِّقَآءِ اللّٰهِ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَالْوَقَارِ وَالسَّكِيْنَةِ حَتّٰى يَاْتِيَكُمْ اَمِيْرٌ فَاِنَّمَا يَاْتِيْكُمُ الْاٰنَ ثُمَّ قَالَ اِسْتَعْفُوْا لِاَمِيْرِكُمْ فَاِنَّهٗ كَانَ يُحِبُّ الْعَفْوَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ اُبَايِعُكَ عَلَى

۵٦ : ابوالنعمان. ابوعوانه. حضرت زياد بن علاقهٌ وائي په کومه ورځ چه مغيرهٌ بن شعبه وفات شو، په هغه ورځ ما دَ جرير بن عبدالله نه واوريدل (اول) هغه پاسيدو او دَ الله حمد او ثنائې بيان کړله بيائے (خلقو ته) اووے چه دَ الله وحده لا شريک له نه خوف، وقار، سکينه په ځان لازم کړئے، تردے چه امير تاسوله راشي، ځکه چه امير اوس تاسوله راځي، بيائے اووے، چه تاسو دَ خپل امير (متوفي) دَ پاره (دَ خدائے نه) معافي غواړئے، ځکه چه هغه به خپله هم دَ خپلو مجرمانو قصور معاف کول خوښولو. بيائے اووے. پس د دے خبرے زۀ دَ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شوم، او عرض م اوکۀ چه تاسو سره په اسلام بيعت کوم، نو حضورٌ ساته دَ مسلمان اوسيدو او دَ هر مسلمان

اَلْاِسْلَامِ فَشَرَطَ عَلٰى وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ فَبَايَعْتُهٗ عَلٰى هٰذَا وَ رَبِّ هٰذِهِ الْمَسْجِدِ اِنِّيْ لَنَاصِحٌ لَّكُمْ ثُمَّ اسْتَغْفَرَ وَ نَزَلَ.

ذَ خير خواهئ شرط هم كيښود. بس په دې ما ذَ حضورؐ سره بيعت اوكړه. ذَ دې جُمات په پروردګار مِ دې قسم وي، بيشكه چه زهٔ ستاسو خلقو خير خواه يم. دې نه پس هغهٔ استغفار اوكړه او (ذَ منبر نه) راكوز شولو [۱].

ف: متوفي (مغيره ابن شعبهؓ) به ذَ خلقو قصور معاف كول خوښول، نو ذَ هغهٔ په حق كښې خير خواهي دا وه، چه ذَ هغهٔ ذَ وفات نه پس خلقو ته ذَ هغهٔ ذَ معافئ خواست اوكړے شي. او جرير بن عبدالله په دې كار ذَ حضور صلي الله عليه وسلم سره بيعت كړے وو، چه هغهٔ به ذَ هر مسلمان په حق كښې خير خواهي كوي، نو ذَ هغې بيعت حق ئې، په دې موقع ادا كهٔ او خلقو ته ئې اوښودل چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم په حكم دې عمل اوكړے شي.

۱. د دې حديث شريف نه دا ثابته شوه چه يو مسلمان ته د بل مسلمان سره ښيګړه پكار ده حاكم ته عامو خلقو سره، او عامو خلقو ته د حاكم سره، د مغيره بن شعبه رضي الله عنه ذَ وفات په موقعه چه څرنګ جرير بن عبدالله رضي الله عنه اوكړل. (كتاب الايمان ختم شو كتاب العلم شروع كيږي)

## كِتَابُ الْعِلْمِ (ذَ علم بيان)

باب ۴۳: فَضْلِ الْعِلْمِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ط وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ وَ قَوْلِهٖ رَبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا.

۴۳: ذَ علم فضيلت بيان. ذَ الله تعالي ارشاد دې. كوم خلقو چه تاسو كښې ايمان راوړے دې، او هغوي ته علم وركړے شوے دې، الله به ذَ هغوي مرتبې اوچتې كړي، او څه چه تاسو كوئې الله ذَ هغې نه خبر دې، او ذَ الله تعالي فرمائيل، چه (وايه) اې څما ربه، څما علم زيات كړے [۱].

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دې باب كښې دوه آيتونه ذكر كړل، كوم حديث شريف ئې ذكر نه كړو شايد چه دې باب كښې دهغه د شرطونو مطابق حديث شريف ورته رسيدلے نه وي.

باب ۴۴: مَنْ سُئِلَ عِلْمًا وَّهُوَ مُشْتَغِلٌ فِيْ حَدِيْثِهٖ فَاَتَمَّ الْحَدِيْثَ ثُمَّ اَجَابَ السَّآئِلَ.

باب ۴۴: ذَ كوم سړي نه چه څهٔ مسئله او پښتې شي، او هغه څهٔ خبره كښې مشغوله وي، نو (خپله ورنيې) خبره دې پوره كړي، بيا دې تپوس كونكي ته جواب وركړي.

۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ قَالَ ثَنَا فُلَيْحٌ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ

۵۷: محمد بن سنان. فليح. ح (دوئم سند) ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. فليح. هلال بن علي. علاء بن يسار. ذَ ابوهريرهؓ نه روايت كوي چه (يوه ورځ) نبي صلے الله عليه

بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ ثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَجْلِسٍ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ جَآءَهُ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ فَمَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ سَمِعَ مَا قَالَ بَعْضُهُمْ لَمْ يَسْمَعْ حَتّٰى اِذَا قَضٰى حَدِيْثَهُ قَالَ اَيْنَ اُرَاهُ السَّآئِلُ عَنِ السَّاعَةِ قَالَ هَا اَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاِذَا ضُيِّعَتِ الْاَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ فَقَالَ كَيْفَ اِضَاعَتُهَا قَالَ اِذَا وُسِّدَ الْاَمْرُ اِلٰى غَيْرِ اَهْلِهٖ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ.

وسلم مجلس كښې خلقوته (څه) بيان كولو' چه دې حالت كښې يو اعرابي (بانډيسې) حضورؐ له راغې' او تپوس ئې او كړ چه قيامت به كله وي' نو رسول الله صلي الله عليه وسلم څه جواب ورنهٔ كړ' او حضورؐ خپله خبره بيانوله. په دې څنې خلقو اووې چه حضورؐ دَ هغې سړي خبره خو واوريدله' خو دَ هغهٔ خبره ورته بده معلومه شوه' په دې سبب جواب ئې ورنه كړ' او څنو خلقو اووې' چه دا خبره نهٔ ده' بلكه آوريدلې ئې نه ده' تردې چه حضورؐ خپله خبره ختمه كړه' نو وې فرمائيل' چرته دې (زه پوهيږم چه دې نه پس دا الفاظ وو) هغه دَ قيامت تپوس كونكې. نو هغې تپوس كونكي اووې' يا رسول اللّٰه' زهٔ موجوديم' حضورؐ ورته اوفرمائيل '' كوم وخت چه آمانت ضائع كړې شي نو تهٔ دَ قيامت انتظار كوه. هغه تپوس اوكړ' چه دَ امانت ضائع كول به څنګه وي' نو حضورؐ او فرمائيل' چه كار نااهلو (خلقو) ته حواله شي' نو تهٔ دَ قيامت انتظار كوه.

**ف**: دې نه دا ثابته شوه' چه كله دَ بيان سلسله جاري وي' نو مينځ كښې دَ يو سړي سوال كولو سره دَ كلام سلسله قطع كول نهٔ دي پكار. بلكه خپل خبره يو حده پورې رسَوَل پكار دي. دَ هغې نه پس دِ سوال كونكي له جواب وركړي. او دې كښې تپوس كونكي ته هم تعليم وركړې شوې دې چه هغه دې هم په داسې موقع دَ خبرو اترو په مينځ كښې تپوس نهٔ كوي' څو پورې چه خبرې كونكي خپل بيان يو حده پورې اونهٔ رسوي.

۱. د بيان په دوران كښې كه څوك داسې پښتنه اوكړي چه د بيان سره تعلق نه لري نو هغه وخت دهغې جواب وركول ضروري نه دي د خبرو آداب دادي چه خبره كله پوره شي نو بيا پښتنه كول پكاري دي. دويمه خبره د حديث شريف نه دا معلومه شوه چه كله د حكومت واړې نالائقو خلقو له وركړې شي نو دنيا كښې به فتنې فساد زيات شي او ګډوډي به عامه شي او چه كله فساد پوره دنيا كښې عام او خورشي د هغې نه روستو به قيامت راشي.

## بَابُ ۴۵: مَنْ رَّفَعَ صَوْتَهٗ بِالْعِلْمِ.

## باب ۴۵: دَ هغې سړي بيان چه دَ علم بيان كښې خپل آواز اوچت كړي.

۵۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ

۵۸: ابوالنعمان. ابوعوانه. ابي بشر. يوسف بن مالک. عبدالله بن عمرؓ وائي' يو سفر كښې نبي

يُوْسُفَ بْنِ مَاهَكَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ تَخَلَّفَ عَنَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفْرَةٍ سَافَرْنَاهَا فَأَدْرَكَنَا وَقَدْ أَرْهَقْنَا الصَّلٰوةَ وَنَحْنُ نَتَوَضَّأُ فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلٰى أَرْجُلِنَا فَنَادٰى بِأَعْلٰى صَوْتِهٖ وَيْلٌ لِّلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلٰثًا.

صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ نه ورستو پاتے شو. كوم وخت چه رانزدے شولو، نو مونږ ځکه ښ د تاخير راتلو د وجے نه مونږ زر زر اودس كولو. په دے وجه مونږ په خپلو پښو باندے د اوبو اچولو په ځائے په لاس سره خپو باندے اوبه خورولے نو حضورؐ په اوچت آواز دوه يا درے ځلے او فرمائيل د پښو ګټو ته د اور (د عذاب) نه خرابي (كيدونكے) ده.

**ف**: صحابه ؤ پښو وينزلو كښ د تادئ نه كمي كوله، نو حضورؐ ورته په طور د زورنے او فرمائيل چه داسے مه كوئے، ځكه چه كومے پښے اودس كښ اوچے پاتے شي، نو هغه به اُور كښ سوزي.

## بَاب ۴۶: قَوْلِ الْمُحَدِّثِ

## باب ۴۶: د محدث، حَدَّثَنَا، أَخْبَرَنَا او أَنْبَأَنَا

حَدَّثَنَا وَ أَخْبَرَنَا وَ أَنْبَأَنَا وَ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ كَانَ عِنْدَ ابْنِ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا وَ أَخْبَرَنَا وَ أَنْبَأَنَا وَسَمِعْتُ وَاحِدًا وَّ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ وَ قَالَ شَقِيْقٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً كَذَا وَ قَالَ حُذَيْفَةُ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثَيْنِ وَ قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَبِّهٖ وَ قَالَ أَبُوْ أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَبِّكُمْ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى.

وئيل او مونږ ته حميدي اووے، چه د ابن عيينه په نزد حَدَّثَنَا، او أَنْبَأَنَا او سَمِعْتُ يو څيز وو، او ابن مسعود اووے، چه حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ او شقيق د عبداللّٰه (بن مسعود) نه نقل كوي، چه سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً كَذَا، او حذيفه وئيلے دي چه حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثَيْنِ او ابوالعاليه د ابن عباسؓ نه نقل كوي چه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا يَرْوِيْ عَنْ رَبِّهٖ او انسؓ وئيلے دي چه: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَبِّهٖ، او ابوهريرهؓ وئيلے دي، چه: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَبِّكُمْ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى.

ف: دا ذَ اصول حديث مسئله ده. ذَ بعضے محدثينو په نزد ذَ حدثنا او اخبرنا وغيره استعمال موقعے جدا جدا دي. امام بخاريؒ ذَ دے مخالف دے' نو هغه دا خبره ثابتوي' چه صحابه ؤ به دا ټول الفاظ بے د څه فرقه استعمالول' کله به ئے حدثنا وئيلو سره حديث بيانولو' کله سمعت او کله عَنْ وئيلو سره.

١. د دے باب نه ذَ امام بخاري رحمة الله عليه دا مقصد دے چه د امام بخاري په نزد' د حديث شريف بيانولو چه هر څومره اصطلاحي الفاظ دي هغه ذَ معني په لحاظ يو دي. اګرچه د نورو محدثينو علماؤ په نزد' الفاظو سره معني کښې هم فرق رازي.

٥٩ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَّا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَ اِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ فَحَدِّثُوْنِيْ مَاهِيَ فَوَقَعَ النَّاسُ فِيْ شَجَرِ الْبَوَادِيْ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ اَنَّهَا النَّخْلَةُ فَاسْتَحْيَيْتُ ثُمَّ قَالُوْا حَدِّثْنَا مَاهِيَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ.

٥٩ : قتيبه بن سعيد. اسمٰعيل بن جعفر. عبدالله بن دينار. ذَ ابن عمرؓ نه روايت کوي' چه (يو ځلے) رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه ؤ ته او فرمائيل' اونو کښې يو اُونه داسے ده' چه ذَ هغے پاڼړے (ذَ خزان په سبب) نۀ غرځيږي. او هغه ذَ مؤمن په مثل ده' نو تاسو او وائيے' چه هغه کومه اُونه ده' نو خلق ذَ ځنګلي اونو خيال کښې لاړل. عبدالله بن عمرؓ وائي' ځما خيال ته راغله' چه هغه ذَ قجورے اُونه ده. خو زۀ (ذَ بزرګانو مخکښې ذَ خبرے کولونه) شرميدم. آخر صحابه ؤ عرض اوکه' يا رسول الله' تاسوؐ مونږ ته اوښائيے) چه هغه کومه اُونه ده' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' چه هغه ذَ قجورے اُونه ده.

باب ٤٧ : طَرْحِ الْاِمَامِ الْمَسْئَلَةَ عَلٰى اَصْحَابِهٖ لِيَخْتَبِرَ مَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ.

باب ٤٧ : ذَ امام ذَ خپلو ملګرو مخکښې ذَ هغوي ذَ علم ذَ امتحان ذَ پاره ذَ سوال کولو بيان.

٦٠ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مُخْلَدٍ قَالَ ثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَّا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَ اِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ حَدِّثُوْنِيْ مَاهِيَ قَالَ فَوَقَعَ النَّاسُ فِيْ شَجَرِ الْبَوَادِيْ

٦٠ : خالد بن مخلد. سليمان بن بلال. عبدالله بن دينار. ابن عمرؓ ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي' حضورؐ او فرمائيل' اونو کښې يوه اُونه داسے ده' چه ذَ هغے پاڼړے نه پريوځي' او هغه ذَ مسلمان په شان ده. نو تاسو ماته اووائيے چه هغه کومه اُونه ده. ابن عمرؓ وائي خلق ذَ ځنګل ذَ اونو په خيال کښې پريوتل. عبدالله ابن عمرؓ وائي' ځما په زړۀ کښې راغله' چه هغه ذَ قجورے اُونه ده'

قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَوَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ اَنَّهَا النَّخْلَةُ فَاسْتَحْيَيْتُ ثُمَّ قَالُوْا حَدِّثْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَاهِيَ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ.

خوزهٔ (دَ وئيلو نه) شرميدم آخر صحابه وُ عرض او كه يا رسول اللّٰه، تاسو مونږ ته اوښائيے چه هغه كومه اُونه ده نو حضورؐ ورته او فرمائيل هغه دَ قجورے اُونه ده [1].

۱. دا حديث دوه ځله ذكر شو. ليكن د باب سر ليک او سندونه ئے جُدا جُدا دي د كهجورے مثال ئے ځكه وركړو چه دا هميشه شنه او نه ده خزان پرے نه راځي، ميوه ئے خوږه خوندئے خوږ، رنګ ئے ځائسته او خوشبويه ده. دربنتينے مسلمان مثال هم دا دے هغه غوره او د خلقو خوښ وي.

## بَابٌ ۴۸: اَلْقِرَآءَةُ وَالْعَرْضُ عَلَى الْمُحَدِّثِ

## باب ۴۸: دَ حديث لوستو او محدّث مخكښ دَ پيش كولو بيان.

وَرَاَى الْحَسَنُ وَالثَّوْرِيُّ وَ مَالِكٌ الْقِرَآءَةَ جَائِزَةً وَّاحْتَجَّ بَعْضُهُمْ فِي الْقِرَآءَةِ عَلَى الْعَالِمِ بِحَدِيْثِ ضِمَامِ بْنِ ثَعْلَبَةَ اَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آللّٰهُ اَمَرَكَ اَنْ نُّصَلِّيَ الصَّلٰوةَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَهٰذِهٖ قِرَآءَةٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَ ضِمَامٌ قَوْمَهُ بِذٰلِكَ فَاَجَازُوْهُ وَاحْتَجَّ مَالِكٌ بِالصَّكِّ يُقْرَأُ عَلَى الْقَوْمِ فَيَقُوْلُوْنَ اَشْهَدَنَا فُلَانٌ وَ يُقْرَأُ عَلَى الْمُقْرِئِ فَيَقُوْلُ الْقَارِئُ اَقْرَاَنِيْ فُلَانٌ.

او حسن بصري. سفيان ثوري او امام مالک هم خپله لوستل كافي كنړلے دي. او بغضے محدّثينو، دَ عالم مخكښ قرات (كافي كيدو) كښ دَ ضمام بن ثعلبه دَ حديث نه استدلال كړے دے، هغه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ته عرض كړے وو، چه آيا تاسوته حكم دركړے شوے دے، چه مونږ دے مونځ كوو؟ نو حضورؐ ورته او فرمائيل او، نو هغه محدثين وائي چه (دَ ضمام بن ثعلبه) دا قول دَ نبي صلعم مخكښ لوستل وو. او ضمام خپل قوم ته دَ دے اطلاع وركړه، او دَ قوم خلقو دا كافي اوګنړله. او امام مالک دَ دستاويز نه استدلال كړے دے، چه هغه دَ خلقو مخكښ لوستے شي، نو حاضرين وائي، چه مونږ ته فلاني سړي واورولو. او دَ معلم مخكښ كتاب لوستے شي، نو لوستونكے وائي چه ماته فلاني سړي اُولُولَولو [1].

ف: (۱). دَ محدثينو په دے كښ اختلاف دے، چه آيا دَ اُستاد مخكښ دے شاګرد لُولي نو هغه زيات قابل اعتبار لوستل دي، يا استاد دے وائي او شاګردانو ته دے آوروي، دَ دے زيات اعتبار دے. دا اختلاف امام بخاريؒ دلته بيانوي، او قرينے نه معلوميږي، چه امام بخاريؒ دواړه برابر ګنړي، اګر كه سلفو كښ زيات تر دا مروج وه، چه استاد به لوستو، او شاګردانو ته به ئے آورولو، او شاګردانو به دَ استاد نه آوريدهٔ.

(۲). صک: يو خاص قسم تحرير ته وائي لكه شاهي فرمان وغيره چه هغے ته نن صبا دستاويز وئيلے شي.

۱. د حديث شريف د روايت دوه طريقے مشهورے دي. يوه دا چه استاذ وائي او شاګرد اوري دويمه چه شاګرد ئے لولي او استاذ ئے اوري. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دواړه طريقو ته اشاره كړيده. د بعضے محدثينو په نزد اولنۍ طريقه غوره ده او د بعضو په نزد دويمه.

۶۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ الْوَاسِطِيُّ عَنْ عَوْفٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ لَا بَأْسَ بِالْقِرَاءَةِ عَلَى الْعَالِمِ وَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ اِذَا قَرَأَ عَلَى الْمُحَدِّثِ فَلَا بَأْسَ اَنْ يَّقُوْلَ حَدَّثَنِيْ. ...... قَالَ وَ سَمِعْتُ اَبَا عَاصِمٍ يَّقُوْلُ عَنْ مَالِكٍ وَّ سُفْيَانَ الْقِرَآءَةُ عَلَى الْعَالِمِ وَ قِرَآءَتُهٗ سَوَآءٌ.

۶۱ : محمد بن سلام. محمد بن حسن واسطي عوف. ذَ حضرت حسن بصري نه روايت كوي، هغهٔ او فرمائيل ذَ عالم مخكښې لوستو كښې هيڅ مضائقه نشته. او عبيدالله بن موسٰي د سفيان نه روايت كړے دے هغهٔ به وے، هر كله چه ذَ محدث مخكښې ئې لوستے وي. نو حدثني وئيلو كښې څهٔ حرج نشته. ذَ محمد بن سلام بيان دے، چه ما ذَ ابو عاصم نه واوريدل، هغهٔ به ذَ مالك او سفيان نه نقل كولو چه ذَ عالم مخكښې لوستل او ذَ عالم لوستل دواړه برابر دي.

۶۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدٍ هُوَ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوْسٌ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ دَخَلَ رَجُلٌ عَلٰى جَمَلٍ فَاَنَاخَهٗ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ عَقَلَهٗ ثُمَّ قَالَ اَيُّكُمْ مُحَمَّدٌ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئٌ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ فَقُلْنَا هٰذَا الرَّجُلُ الْاَبْيَضُ الْمُتَّكِئُ فَقَالَ لَهُ الرَّجُلُ يَابْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَجَبْتُكَ فَقَالَ الرَّجُلُ اِنِّيْ سَائِلُكَ فَمُشَدِّدٌ عَلَيْكَ فِي الْمَسْئَلَةِ فَلَا تَجِدْ عَلَيَّ فِيْ نَفْسِكَ فَقَالَ سَلْ عَمَّا بَدَا لَكَ فَقَالَ اَسْئَلُكَ بِرَبِّكَ وَ رَبِّ مَنْ قَبْلَكَ

۶۲ : عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد. مقبري. شريك بن عبدالله بن ابي نمر نه روايت دے هغهٔ ذَ حضرت انس بن مالكؓ نه واوريدل، چه مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره جمات كښې ناست وو، يو سړے په اوښ سور راغے. او خپل اوښ ئې په جمات كښې كينولو، او پښے ئې ورله اوتړلے. بيا هغهٔ صحابه ؤ ته اووے، چه تاسو كښې محمد صلے الله عليه وسلم كوم يو دے؟ او دغه وخت نبي صلي الله عليه وسلم ذَ صحابه ؤ مينځ كښې ډډه لږولے ناست وو، نو مونږ خلقو ورته ووے، چه دا ذَ صاف سپين رنګ خاوند: چه ډډه ئې وهلے ده او ناست دے، ذَ دهٔ نوم محمدؐ دے. بيا هغے سړي حضورؐ ته اووے، اے ذَ عبدالمطلب ځويه، نبي صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، وايه، زهٔ موجوديم هغهٔ حضورؐ ته اووے، زهٔ تاسو نه څهٔ تپوس ذَ پاره راغلے يم، او تپوس كښې به په تاسو سختي كوم، لو تاسو به خما نه خفه كيږئے نه. حضورؐ ورته او فرمائيل، چه څهٔ غواړے، ذَ هغے تپوس كولے شے، هغهٔ اووے، زهٔ تاسو ته ستا سو ذَ پروردګار او ستاسو نه د مخكښې خلقو ذَ پروردګار قسم دركوم

اَللّٰهُ اَرْسَلَكَ اِلَى النَّاسِ كُلِّهِمْ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ نَعَمْ فَقَالَ اَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ آللّٰهُ اَمَرَكَ اَنْ تُصَلِّيَ الصَّلٰوَاتِ الْخَمْسَ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ قَالَ اَللّٰهُمَّ نَعَمْ قَالَ اَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ آللّٰهُ اَمَرَكَ اَنْ تَصُوْمَ هٰذَا الشَّهْرَ مِنَ السَّنَةِ قَالَ اَللّٰهُمَّ نَعَمْ قَالَ اَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ آللّٰهُ اَمَرَكَ اَنْ تَاْخُذَ هٰذِهِ الصَّدَقَةَ مِنْ اَغْنِيَائِنَا فَتَقْسِمُهَا عَلٰى فُقَرَآءِ نَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ نَعَمْ فَقَالَ الرَّجُلُ اٰمَنْتُ بِمَا جِئْتَ بِهٖ وَ اَنَا رَسُوْلُ مَنْ وَّرَآئِيْ مِنْ قَوْمِيْ وَ اَنَا ضِمَامُ بْنُ ثَعْلَبَةَ اَخُوْ بَنِيْ سَعْدِ بْنِ بَكْرٍ رَوَاهُ مُوْسٰى وَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيْدِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

(ربنبتیا وایه) چه آیا الله تاسو ټولو خلقوته (پیغمبر) رالیږلے ئے، حضورؐ ورته او فرمائیل اے الله، او، بیا هغهٔ اووے. زهٔ تاسو ته دَ الله قسم درکوم (رښتیا وایه) آیا ورځ شپه کښې دَ پنځو مونځونو کولو الله تاسو ته حکم درکړے دے. حضورؐ ورته او فرمائیل اے الله او، بیا هغهٔ اووے، زهٔ تاسو ته دَ الله قسم درکوم (رښتیا وایه) آیا دَ دے میاشتے (یعني دَ رمضان) دَ روژو نیولو الله تاسو ته حکم درکړے دے، حضورؐ ورته او فرمائیل، اے الله، اؤ، بیا هغهٔ اووے، زهٔ تاسو ته دَ الله قسم درکوم (رښتیا وایه) آیا الله تاسو ته دا حکم درکړے دے چه تاسو دا صدقه (زکوٰة) څمونږ دَ مالدارونه اخلئے. او هغه څمونږ په فقیرانو تقسیمونے؟ نو نبي صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل اے الله، اؤ دے نه پس هغے سړي اووے، چه ما په دے (شریعت) ایمان راوړلو، کوم چه تاسو راوړے دے، او زهٔ دَ خپل قوم خلقو، کوم چه ما پسے دي رالیږلے یم. او زهٔ ضمام بن ثعلبه یم د (قبیلهٔ) سعد بن بکر دَ ورونړونه یم. دا روایت موسٰي. علي بن عبدالحمید. سلیمان. ثابت. انسؓ دَ نبي علیه السلام نه کړے دے[۱].

۱. دے روایت کښې د حج ذکر نشته لیکن د مسلم شریف روایت کښې د حج ذکر شته خکه چه حج هم دَ دین رکن دے.

۶۳ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيْرَةِ قَالَ ثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ نُهِيْنَا فِي الْقُرْاٰنِ اَنْ نَّسْاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ يُعْجِبُنَا اَنْ يَّجِيْءَ الرَّجُلُ مِنْ اَهْلِ الْبَادِيَةِ فَيَسْاَلُهٗ وَ نَحْنُ نَسْمَعُ فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْبَادِيَةِ

۶۳ : موسٰي بن اسمٰعیل. سلیمان بن مغیره ثابت. انسؓ وائي، چه مونږ ته قرآن کښې ددے خبرے ممانعت شوے وو، چه مونږ دَ نبي علیه السلام نه (دَ دیني مسائلو) پښتنه اوکړو. په دے وجه مونږ به په خپله تپوس نهٔ کولو، او څمونږ به دا خواهش وو، چه څوک بوهے والا بانډیسي راشي، او هغه دَ حضورؐ نه تپوس اوکړي او مونږ خپله تپوس او نهٔ کو (یوه ورځے) یو بانډیسے راغے او هغهٔ حضورؐ ته اووے، ستاسو قاصد مونږ ته راغے، او هغهٔ مونږ ته دَ دے خبرے اطلاع راکړه، چه

فَقَالَ اَتَانَا رَسُوْلُكَ فَاَخْبَرَنَا اَنَّكَ تَزْعَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ اَرْسَلَكَ قَالَ صَدَقَ فَقَالَ فَمَنْ خَلَقَ السَّمَآءَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قَالَ فَمَنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالْجِبَالَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ قَالَ فَمَنْ جَعَلَ فِيْهَا الْمَنَافِعَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قَالَ فَبِالَّذِيْ خَلَقَ السَّمَآءَ وَ خَلَقَ الْاَرْضَ وَ نَصَبَ الْجِبَالَ وَ جَعَلَ فِيْهَا الْمَنَافِعَ آللّٰهُ اَرْسَلَكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ زَعَمَ رَسُوْلُكَ اَنَّ عَلَيْنَا خَمْسَ صَلَوَاتٍ وَ زَكٰوةً فِيْ اَمْوَالِنَا قَالَ صَدَقَ قَالَ بِالَّذِيْ اَرْسَلَكَ آللّٰهُ اَمَرَكَ بِهٰذَا قَالَ نَعَمْ قَالَ وَ زَعَمَ رَسُوْلُكَ اَنَّ عَلَيْنَا صَوْمَ شَهْرٍ فِيْ سَنَتِنَا قَالَ صَدَقَ قَالَ فَبِالَّذِيْ اَرْسَلَكَ آللّٰهُ اَمَرَكَ بِهٰذَا قَالَ نَعَمْ قَالَ وَ زَعَمَ رَسُوْلُكَ اَنَّ عَلَيْنَا حِجَّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا قَالَ صَدَقَ قَالَ فَبِالَّذِيْ اَرْسَلَكَ آللّٰهُ اَمَرَكَ بِهٰذَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَوَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا اَزِيْدُ عَلَيْهِنَّ شَيْئًا وَّلَآ اَنْقُصُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ صَدَقَ لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ.

تاسو فرمائي' چه تاسو الله تعالیٰ پيغمبر رالیږلے ئے. حضورؐ ورته او فرمائيل هغهٔ ريښتيا وئيلے دي. بيا هغه سړي اووے' آسمان چا پيدا کړے دے؟ حضورؐ ورته او فرمائيل' الله تعالیٰ. هغهٔ اووے' چه زمکه او غرونه چا پيدا کړے دي. حضورؐ ورته او فرمائيل' الله تعالیٰ. هغهٔ اووے' چه غرونو کښې فائدے چا ايښے دي. حضورؐ ورته او فرمائيل الله تعالیٰ. (دے آوريدو سره) هغهٔ اووے' ستا دے په هغه ذات قسم وي' چه هغهٔ آسمان پيدا کړے دے' او زمکه ئے پيدا کړے ده' او زمکه کښې ئے غرونه ئے اُودرولے دي او هغے کښې ئے فائدے ايښے دي (ريښتيا وايه) آيا الله ته پيغمبر کړے ئے. حضورؐ ورته او فرمائيل. او بيا هغهٔ اووے. چه ستاسو قاصد مونږ ته دا هم وئيلے وو چه په مونږ پنځه مونځونه (فرض) دي. او څمونږ په مالونو کښې زکوٰة (فرض) دے. حضورؐ ورته او فرمائيل' هغهٔ ريښتيا وئيلے دي (دے آوريدو سره) هغهٔ اووے' چه تاته په هغه ذات قسم درکوم' چه ته ئے پيغمبر جوړ کړے ئے (ريښتيا او وايه) الله تاسو ته دَ دے حکم درکړے دے. حضورؐ ورته او فرمائيل' او. بياهغهٔ اووے. ستاسو قاصد مونږ ته دا هم وئيلي وو' چه په مونږ کال کښې يوه مياشت روژے (فرض) دي. حضورؐ ورته او فرمائيل' هغهٔ ريښتيا وئيلے دي. هغهٔ اووے' ستا دے په هغه ذات قسم وي' چه ته ئے پيغمبر جوړ کړے ئے (ريښتيا او وايه) آيا الله تاسو ته د دے حکم درکړے دے. حضورؐ ورته او فرمائيل' او هغهٔ اووے نو په هغه ذات قسم خورم' چه ته ئے په ريښتيا (پيغمبر) راليږلے ئے' زهٔ به په دے خبرو کښې نهٔ زياتے کوم او نهٔ کمے (يعني دا خبرے به هم دغسے منم او عمل به پرے کوم) نو صحابهؓ ز ته نبي صلى الله عليه وسلم او فرمائيل' که دا سړے ريښتيا وائي' نو بيشکه جنت له به ځي.

**ف**: دَ غرونو دَ فائدے نه مراد هغه ميوه جات دي' چه اکثر غرونو کښې خپله پيدا کيږي. دے نه علاوه شهدهم اکثر غرونو کښې پيدا کيږي او کله کله جواهرات هم په کښې بيا موندے شي.

## باب ۴۹: مَا يُذْكَرُ فِي الْمُنَاوَلَةِ

## باب ۴۹: دَ مُناولـه بيان' او دَ اهل علم دَ علم

وَ كِتَابِ اَهْلِ الْعِلْمِ بِالْعِلْمِ اِلَى الْبُلْدَانِ وَ قَالَ اَنَسٌ نَسَخَ عُثْمَانُ الْمَصَاحِفَ فَبَعَثَ بِهَا اِلَى الْاٰفَاقِ وَ رَاٰى عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ وَ يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ وَّ مَالِكٌ ذٰلِكَ جَائِزًا وَّ احْتَجَّ بَعْضُ اَهْلِ الْحِجَازِ فِي الْمُنَاوَلَةِ بِحَدِيْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ لِاَمِيْرِ السَّرِيَّةِ كِتَابًا وَ قَالَ لَا حَتّٰى تَبْلُغَ مَكَانَ كَذَا وَ كَذَا فَلَمَّا بَلَغَ ذٰلِكَ الْمَكَانَ قَرَاَهُ عَلَى النَّاسِ وَ اَخْبَرَهُمْ بِاَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خبرے لیکل ښارونو ته استول. او انسؓ اووے، چه عثمانؓ مصاحف (قرآن شریفونه) اولیکل، او هغه ئے اطرافو و جوانبو ته واستول، او عبدالله بن عمر او یحيٰ بن سعید او مالک هم دا جائز ګنړلے دي. او بعضے اهل حجاز ذَ مناوله قابل اعتماد کیدو کبن ذَ نبي علیه السلام ذَ حدیث نه استدلال کړے دے کوم وخت چه حضورؐ ذَ لښکر ذَ سردار ذَ پاره یو تحریر (ذَ دستور العمل په طور) اولیکه او هغه ته ئے اووے، چه څو پورے ته فلاني فلاني مقام ته اونۀ رسے، نو دا تحریر مۀ لوله، هر کله چه هغه هغے مقام ته اورسید، نو ذَ خلقو مخکښ ئے هغه اولوست، او ذَ نبي صلي الله علیه وسلم حکم چه هغے کبن درج وو، هغه ئے ټولو ته او ښودلو[۱].

**ف:** مناوله ذَ محدثینو په اصطلاح کبن دے ته وائي، چه استاد خپل کتاب شاګرد ته ورکړي، او ورته اووائي، چه څۀ دے کتاب کبن لیکلے دي، ذَ دے ذَ روایت زۀ تاته اجازت درکوم. نو خلقو له په دے طریقه عمل کول پکار دي، که نه. ذَ محققینو رائے دے طرف ته ده، چه جائز دي. دا مسئله امام بخاريؒ دلته بیانوي.

۱. حدیث څلور شپیتم، پنځه شپیتم امام بخاري رحمة الله علیه د مناولے د اجازت او تائید د پاره ذکر کړیدي د هغے مقصد دا دے چه خط کبن لیکلے شوے عبارت معتبر دے منل ئے ضروري دي.

٦۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍؓ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهٖ رَجُلًا وَّ اَمَرَهٗ اَنْ يَّدْفَعَهٗ اِلَى عَظِيْمِ الْبَحْرَيْنِ فَدَفَعَهٗ عَظِيْمُ الْبَحْرَيْنِ اِلٰى كِسْرٰى فَلَمَّا

٦۴: اسماعیل بن عبدالله. ابراهیم بن سعد. صالح. ابن شهاب. ذَ عبیدالله بن عبدالله بن عتبه نه روایت کوي، هغۀ ته عبدالله بن عباسؓ اووے، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم خپل خط ذَ یو سړي په لاس اولیږۀ او هغۀ ته ئے دا حکم ورکۀ، چه دا خط ذَ بحرین حاکم ته ورکه (نو هغۀ ورکۀ) ذَ بحرین حاکم هغه کسريٰ (شاهِ ایران) ته اورسولو. چه کسريٰ هغه اولوست، نو هغه ئے (ذَ خپلے بدبختي په وجه) او شلولو (ابن شهاب چه ذَ دے حدیث راوي دے، وائي) زۀ دا

قَرَأَهُ مَزَّقَهُ فَحَسِبْتُ اَنَّ ابْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُمَزَّقُوْا كُلَّ مُمَزَّقٍ.

خيال كوم چه ابن مسيب (ذَ دي نه پس ماته) دا اوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم (ذَ خپل خط ذَ شلولو واوريدل نو) هغي خلقوته ئې بددُعا اوكړه. چه هغوي دې (دَ غسې) ټکړې ټکړې شي.

٦٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ قَالَ ثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابًا اَوْ اَرَادَ اَنْ يَكْتُبَ فَقِيْلَ لَهُ اِنَّهُمْ لَا يَقْرَءُوْنَ كِتَابًا اِلَّا مَخْتُوْمًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى بَيَاضِهِ فِيْ يَدِهٖ فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ مَنْ قَالَ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ اَنَسٌ.

٦٥ : محمد بن مقاتل ابوالحسن. عبداللّٰه. شعبه. قتاده. انس بن مالک وائي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم يو خط (شاه روم يا شاه ايران) اوليکه، يا ذَ ليکلو اراده ئې اوکړله، نو حضورؐ ته اووئيلې شو، چه هغه بې مُهره خط نۀ لولي. نو حضورؐ ذَ سپينو زرو يوه ګوته جوړه کړه. چه په هغې مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ کنده شوې وو، (انسؓ وائي، ذَ هغې ګوتې خائست ځما په زړۀ کښې ځائې کړې وو) ګويا ماته معلوميږي چه هغه دې وخت هم ځما ذَ نظر مخکښې پرقيږي. (شعبه چه د دې حديث حديث راوي دې وائي) ما قتاده ته اووې، چه دا تاته چا اووې، چه هغې (ګوته) کښې محمد رسول اللّٰه ليکلې وو؟ هغۀ اووې، انس (راته اووې).

بَابٌ ٥٠ : مَنْ قَعَدَ حَيْثُ يَنْتَهِيْ بِهِ الْمَجْلِسُ وَمَنْ رَّاٰى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيْهَا.

باب ٥٠ : د هغې سړي بيان چه ذَ مجلس آخر کښې کيني او ذَ هغه بيان چه ذَ مجلس مينځ کښې ځائې بيا مومي او کيني.

٦٦ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى عَقِيْلِ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ عَنْ اَبِيْ وَاقِدِنِ اللَّيْثِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ وَالنَّاسُ مَعَهُ اِذَا اَقْبَلَ ثَلٰثَةُ نَفَرٍ فَاَقْبَلَ اِثْنَانِ اِلٰى رَسُوْلِ

٦٦ : اسماعيل. مالک. اسحٰق بن عبداللّٰه بن ابي طلحه. ابومره (ذَ عقيل بن ابي طالب ازاد کرده غلام) ذَ ابو واقد ليثي نه روايت کوي، چه (يوه ورځ) رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم جمات کښې وو، او خلق ورسره ناست وو، چه درې سړي راغلل، نو هغې کښې دوه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته مخې ته راغلل، او يو لاړلو (ابو واقدؓ) وائي، چه هغه دواړه

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَهَبَ وَاحِدٌ قَالَ فَوَقَفَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَّا اَحَدُهُمَا فَرَاٰى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيْهَا وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَجَلَسَ خَلْفَهُمْ وَ اَمَّا الثَّالِثُ فَاَدْبَرَ ذَاهِبًا فَلَمَّا فَرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا اُخْبِرُكُمْ عَنِ النَّفَرِ الثَّلٰثَةِ اَمَّا اَحَدُهُمْ فَاَوٰى اِلَى اللّٰهِ فَاٰوَاهُ اللّٰهُ وَ اَمَّ الْاٰخِرُ فَاسْتَحْيٰى فَاسْتَحْيٰى اللّٰهُ مِنْهُ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَاَعْرَضَ فَاَعْرَضَ اللّٰهُ عَنْهُ.

(څه وخته پورے) رسول الله صلي الله عليهو سلم سره ولاړ وو، بيا هغوي كښې يو حلقه كښې ځايے بيامند، او هغے كښې دننه كيناست، او دويم د ټولو نه ورستو (كوم ځائے چه مجلس ختميده) كيناست. او دريم واپس لاړ څۀ وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم (دَوعظ نه) فارغ شولو. صحابه ؤ ته ئے او فرمائيل، زۀ تاسو ته دَ هغے درے سړو حالت اونۀ ښايم، چه هغے كښې يو اللّٰه طرف ته رجوع اوكړه او اللّٰه هغۀ له ځائے وركړۀ، او دويم شرم اوكۀ، نو اللّٰه هم دَ هغۀ نه حيا اوكړه، او دريم مخ او ګرځولو، نو اللّٰه هم دَ هغۀ نه مخ واړوو.

۱. رسول صلي اللّٰه عليه وسلم د درے واړو كسانو حالت د مثال په طور بيان كړيدے چه يو سړي مجلس كښې كوم ځائے د كيناستلو او ليدو هلته كيناستلو، دويم چه چرته مجلس كښې ځائے اونه ليدلو نو د مجلس ډډے ته كيناستلو او دريم سړي ځائے بيانه موندنو پخپله لار لاړو. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د مجلس نه مخ ګرځول د اللّٰه تعالٰي نه مخ ګرځول دي. د دے وجے نبي عليه السلام د زورنے الفاظ او فرمايل. د دے حديث شريف نه دا معلومه شوه چه مجلس كښې سړے كوم ځائے كښې ځائے بياموني هلته دے كيني.

## بَاب ۱۵ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ مُبَلَّغٍ اَوْعٰى مِنْ سَامِعٍ.

باب ۱۵ : ارشاد نبويؐ ډير كرته، هغه سړے چه هغۀ ته حديث اورسولے شي. دَ آوريدونكي نه زيات ياد ساتونكے وي.

ف: دَ حديث آوريدونكو نه مراد هغه صحابهؓ دي، چه هغوي دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه احاديث واوريدل، او چاته چه حديث اورسولے شي، دَ هغے نه مراد هغه خلق دي، چه هغوي ته دَ صحابه ؤ په ذريعه احاديث اورسيدل، هغوي ته تابعين وائي. دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم مقصود دا دے، چه ځما دَ احاديثو په اشاعت كښې كوتاهي مۀ كونے، ځكه چه راتلونكو نسلونو كښې به ځنے خلق داسے وي، چه شايد ستاسو نه زيات ځما دَ احاديثو په حقيقت پوه شي.

۶۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا بِشْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ ابْنِ

۶۷ : مسدد. بشر. ابن عون. ابن سيرين. عبدالرحمٰن بن ابي بكر دَ خپل پلار نه روايت كوي، (يو ځلئے) دَ نبي صلي

سِيْرِيْنَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بِنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَعَدَ عَلٰى بَعِيْرِهٖ وَ اَمْسَكَ اِنْسَانٌ بِخِطَامِهٖ اَوْ بِزِمَامِهٖ قَالَ اَيُّ يَوْمٍ هٰذَا فَسَكَتْنَا حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاَيُّ شَهْرٍ هٰذَا فَسَكَتْنَا حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ بِذِى الْحِجَّةِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاِنَّ دِمَاءَ كُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ وَ اَعْرَاضَكُمْ بَيْنَكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَاِنَّ الشَّاهِدَ عَسٰى اَنْ يُّبَلِّغَ مَنْ هُوَ اَوْعٰى لَهٗ مِنْهُ.

الله علیه وسلم ذکر کولو، حضورؐ په خپل اوښ سور وو. او يو سړي د هغې مهارنيولے وو، نو حضورؐ (صحابه ؤ ته) او فرمائيل، نن کومه ورځ ده. مونږ خلق خاموش شو تردے چه مونږ خيال اوکړ، چه کيدے شي، حضورؐ ددے اصل نوم نه سوا، څه بل نوم اوښائي، نو حضورؐ او فرمائيل، آيا دا د قرباني ورځ نه ده؟ مونږ عرض اوکړ، چه او. بيا حضورؐ تپوس اوکړ، دا کومه مياشت ده، مونږ بيا خاموش شو، او دا خيال مو اوکړ، چه شايد حضورؐ ددے بل نوم اوښائي، نو حضورؐ او فرمائيل، آيا دا ذي الحجه نه ده. مونږ عرض اوکړ، چه او (دے نه پس) حضورؐ او فرمائيل، ستاسو وينه ۱ (خون) او ستاسو مال خپلو کښې تاسو د پاره داسې حرام دي، څنګه چه ستاسو دے ورځ کښې، ستاسو دے مياشت کښې ستاسو دے ښار کښې حرام ګڼړلے شي. پکار دي، چه حاضر غائب ته دا خبر اورسوي. په دے چه شايد حاضر داسې سړي ته (دا حديث) اورسوي، چه د هغه نه زيات هغه محفوظ کونکے وي.

ف: مقصود دا دے، چه خپلو کښې خون ريزي او د يو بل مال ناحق اخستل، هميشه د پاره قطعي حرام اوګڼړئے. مکه کښې او بيا د حج مياشتو کښې او بيا خاص د حج په ورځ کښې خون ريزي او لوټ مار د جاهليت د زمانې نه سخته ګناه ګڼړلے شوه. په دے وجه حضورؐ د دے مثال ورکړلو.

۱. د رسول الله صلي الله عليه وسلم د فرمان مطلب دا دے چه مسلمانانو له د يو بل وينه تويول حرام دي يو مسلمان ته د بل مسلمان د روح، د مال، او د عزت احترام او خيال ساتل ضروري دي. د حج په مياشتو به عربو جنګ کول بدګڼړه. د لوئې اختر د مياشتے او د حج د ورځے ډير زيات عزت کولو. د دے وجے نه د مثال په طور نبي عليه السلام بيان او فرمايلو.

## باب ۵۲: اَلْعِلْمِ قَبْلَ الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ

لِقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَبَدَاَ بِالْعِلْمِ وَ اَنَّ الْعُلَمَاءَ هُمْ وَرَثَةُ الْاَنْبِيَاءِ وَرَّثُوا الْعِلْمَ مَنْ اَخَذَهٗ اَخَذَ بِحَظٍّ وَّافِرٍ وَّمَنْ

باب ۵۲: د قول او عمل نه مخکښې د علم بيان د دے دليل د الله تعالىٰ فرمان دے: فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ: څکه چه الله تعالىٰ د علم نه ابتدا فرمائيلے ده، او علماء د انبياؤ وارثان دي، هغوي (د انبياؤ نه) د علم ميراث بيامندے دے. چا چه علم حاصل کړ، هغهٔ لوئې دولت حاصل کړ،

سَلَكَ طَرِيْقًا يَطْلُبُ بِهٖ عِلْمًا سَهَّلَ اللّٰهُ لَهٗ طَرِيْقًا اِلَى الْجَنَّةِ وَ قَالَ اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَآءُ وَ قَالَ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعَالِمُوْنَ وَ قَالَ وَ قَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِيْٓ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ وَ قَالَ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُّفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَ اِنَّمَا الْعِلْمُ بِالتَّعَلُّمِ فَقَالَ اَبُوْذَرٍّ لَوْ وَضَعْتُمُ الصَّمْصَامَةَ عَلٰى هٰذِهٖ وَ اَشَارَ اِلٰى قَفَاهُ ثُمَّ ظَنَنْتُ اَنِّيْ اُنْفِذُ كَلِمَةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ اَنْ تُجِيْزُوْا عَلَيَّ لَاَنْفَذْتُهَا وَ قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَآئِبَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُوْنُوْا رَبَّانِيِّيْنَ حُكَمَآءَ عُلَمَآءَ فُقَهَآءَ وَ يُقَالُ الرَّبَّانِيُّ الَّذِيْ يُرَبِّى النَّاسَ بِصِغَارِ الْعِلْمِ قَبْلَ كِبَارِهٖ.

او څوک چه په يوه لاره د علم حاصلولو د پاره قدم اږدي، نو الله تعالي د هغه د پاره د جنت لار آسانوي، او الله پاک فرمائيلي دي: چه د الله هغه بنديان د الله نه ويريږي، چه عالمان دي، او فرمائيلي دي: چه هغه د علماؤ نه سوا بل هيڅوک نه پيژني، او فرمائيلي دي: چه هغې خلقو اووے، کاش چه مونږ اوريدے او پوهيدے، نو مونږ به دوزخيان نه وے، او فرمائيلي دي: چه آيا هغه خلق چه علم لري، او هغه چه علم نه لري، برابر کيدے شي؟ او نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چاسره چه الله ښيګړه کول غواړي، نو هغه ته د دين پوهه عطا کړي. علم خو زده کړے سره راځي. او ابوذرؓ (يو ځلے) خپل ګردن طرف ته اشاره او کړه، او وے فرمائيل، که تاسو دا په توره اووهئ، ليکن بياهم که زۀ پوه شم، چه د دے نه مخکښ چه تاسو په ماتوره او چلوئ، يوه کلمه چه ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے ده، وئيلے شم، نو هغه به ضرور وايم، او د نبي صلي الله عليه وسلم فرمان: لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ (هم د علم ظاهرولو حکم ورکوي). ابن عباسؓ وئيلے دي: كُوْنُوْا رَبَّانِيِّيْنَ (کښ ربانيين نه) حکماء، علماء او فقهاء (مراد دي) او وئيلے شي، چه رباني هغه سړے دے، چه خلقوته د علم د وړو وړو خبرو د لويو لويو خبرو نه مخکښ تعليم ورکړي.

**باب ۵۳: مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُهُمْ بِالْمَوْعِظَةِ وَالْعِلْمِ كَيْ لَا يَنْفِرُوْا.**

**باب ۵۳:** د نبي صلي الله عليه وسلم خلقو ته د موقعے او وخت مناسب د نصيحت کولو بيان، چه وار خطا نشي.

۶۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ

۶۸: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابن وائل. ابن مسعودؓ نه روايت کوي، وے فرمائيل چه نبي صلي الله عليه وسلم مونږ ته

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الْاَيَّامِ كَرَاهَةَ السَّاٰمَةِ عَلَيْنَا.

نصيحت كولو د پاره څه ورځے مقرر كړے وے' خمونږ د پريشانه كيدو د خيال نه (هره ورځ به ئے وعظ نه كولو).

۶۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ ثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوالتَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَسِّرُوْا وَلَا تُعَسِّرُوْا وَلَا تُنَفِّرُوْا.

۶۹ : محمد بن بشار. يحيي بن سعيد. شعبه. ابوالتياح. انسؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي' حضورؐ او فرمائيل (دين كښې) آساني كونړے' او سختي مه كوے. خلقوته خوشخبري آوروئے' او (زياتو ويرولو سره') په هغوي كښې نفرت مه پيدا كوني.

۱. اسلام فطرتي دين دے اسلام ذ هميشه د پاره او د هر انسان د پاره داسے اصول بيان كړے دي چه ذ انساني فطرت مناسب دي. په قرآن مجيد او احاديثو كښې د زوړنے نه زيات د مهرباني او د بخښنے بيان دے له دے وجے نه په خاص ډول ئے داسے اصول بيان كړل "چه ذ دين څه مسئله كښې داسے اړخ مه خوښوئي چه د هغے نه خلقوته تكليف اورسي. يا د وعظ اونصيحت داسے طريقه مه خوښوئي چه خلقوته د اللّٰه تعالي د رحمت او بښنے په ځائے د داسے نصيحت نه نفرت او كركه پيدا شي. ذ اسلام حكيمانه او نفسياتي اصول ذ اسلام د حقانيت او رښتياؤ روخانه ثبوت دے.

بَاب ۵۴ : مَنْ جَعَلَ لِاَهْلِ الْعِلْمِ اَيَّامًا مَعْلُوْمَةً.

باب ۵۴ : ذ هغے سړي بيان' چه هغهٔ ذ علم حاصلونكو ذ تعليم ذ پاره څهٔ ورځے مقرر كړي.

۷۰ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ ثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِيْ كُلِّ خَمِيْسٍ فَقَالَ لَهٗ رَجُلٌ يَا اَبَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ لَوَدِدْتُ اَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا كُلَّ يَوْمٍ قَالَ اَمَا اِنَّهٗ يَمْنَعُنِيْ مِنْ ذٰلِكَ اَنِّيْ اَكْرَهُ اَنْ اُمِلَّكُمْ وَ اِنِّيْ اَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ كَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِهَا مَخَافَةَ السَّاٰمَةِ عَلَيْنَا.

۷۰ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابو وائل وائي چه عبداللّٰه بن مسعودؓ به خلقو ته ذ زيارت (جمعرات) په ورځ وعظ كولو' نو هغوي كښې يو سړي اووے' چه اے ابو عبدالرحمانه' زهٔ دا غواړم' چه ته مونږ ته هره ورځ وعظ كوے' هغهٔ ورته اووے (چه روزانه وعظ نه) ماته صرف دا خبره منعه كوي چه چرته تاسو تنگ نهٔ شئے. او زهٔ ستاسو ذ نصيحت ذ پاره هغه شان وخت مقرروم' څنگه چه به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ خلقوته ذ نصيحت ذ پاره وخت مقررولو. خمونږ ذ ستومانه كيدو او تنگيدو د ويرے نه. (هره ورځ به ے وعظ نهٔ كولو).

## باب ٥٥: مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ.

## باب ٥٥: الله تعالىٰ چه چا سره ښۀ کول غواړي، نو هغۀ ته دَ دين پوهه ورکوي.

٧١: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ ثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ خَطِيْبًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَ اِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ وَاللّٰهُ يُعْطِيْ وَلَنْ تَزَالَ هٰذِهِ الْاُمَّةُ قَآئِمَةً عَلٰى اَمْرِ اللّٰهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتّٰى يَأْتِيَ اَمْرُ اللّٰهِ.

٧١: سعيد بن عفير. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمنؒ وائي، چه يوه ورځ مِ دَ معاويهؓ نه خطبه لوستو کښې دا واوريدل، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه دا اوريدلې دي، چه الله چا سره ښۀ کول ' غواړي، نو هغۀ ته دَ دين پوهه ورکوي، او زه تقسيمونکے يم او ورکونکے خو خدائے پاک دے (ياد ساتئ چه) دا امت به هميشه دَ خدائے په حکم قائم وي، کوم سړے چه دَ دوي مخالف وي، دوئي ته به نقصان او نۀ رسولے شي، تردے چه قيامت راشي.

١. د دے حديث شريف نه دا معلومه شوه چه په دين کښې پوهه دَ علم اوچته مرتبه ده دويمه دا چه اسلام به قيامته پورے دنيا کښې باقي وي که څوک ئے د زمکے د مخ نه ورکول غواړي نو ورکولئے نشي دريمه دا چه د نبي عليه السلام کار يواځے د دين احکام رَسُول دي د الله تعالىٰ پيغام ټوله دنيا کښې خورَوَل او هر بنده ته برخه کښې ورکول دي د چا په حصه کښې څومره علم او څومره دين رازي دا د الله خوښه ده هر بنده ته د هغه د قابليت او طاقت برابر ورکولے شي. د دے حديث شريف نه دا مطلب هم اخستے شي چه رسول صلي الله عليه وسلم څه مال دولت په مسلمانانو تقسيموي هغه د الله د طرفنه دي. رسول صلي الله عليه وسلم صرف تقسيم کونکے دے اصل ورکونکے الله تعالىٰ دے.

## باب ٥٦: اَلْفَهْمُ فِي الْعِلْمِ.

## باب ٥٦: علم کښې دَ پوهے بيان.

٧٢: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ لِيَ بْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَلَمْ اَسْمَعْهُ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا حَدِيْثًا وَّاحِدًا قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُتِيَ

٧٢: علي بن عبدالله. سفيان. ابن ابي نجيح. مجاهدؒ وائي، چه زۀ دَ مدينے پورے دَ ابن عمرؓ ملګرے ووم (دے موده کښې) دَ يو حديث نه سوا ما دَ هغۀ نه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم څۀ حديث نۀ دے آوريدلے. هغۀ اووے، مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره وو، چه حضورؐ ته جُمّار د کجورے غونچکه راوړے شوه، نو حضورؐ اوفرمائيل، اُونو کښې يوه اُونه داسے ده،

بِجُمَّارٍ فَقَالَ اِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً مَثَلُهَا كَمَثَلِ الْمُسْلِمِ فَاَرَدْتُ اَنْ اَقُوْلَ هِيَ النَّخْلَةُ فَاِذَا اَنَا اَصْغَرُ الْقَوْمِ فَسَكَتُّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ.

چه ذ هغے كيفيت ذ مسلمان ذ كيفيت په شان دے. (ابن عمرؓ وائي) ما غوښتل' چه اووايم' چه هغه ذ قجورے اُونه ده. خو زهٔ تولو كښں وړوكے ووم. په دے وجه چپ پاتے شوم (چه چا اونهٔ ښودله) نو نبي صلعم خپله او فرمائيل' هغه ذ قجورے' اُونه ده.

۱. دا د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د ذهانت او هوخيارتيا دليل دے چه ذ رسول صلي الله عليه وسلم ذ سوال په مطلب پوهه شو. دويم دا هم دهغه د پوهے خبره ده چه د مشرانو په مجلس كښں پخپله خان لوئے ښكاره كول ښه خبره نه ده.

بَاب۵۷: اَلْاِغْتِبَاطِ فِي الْعِلْمِ وَالْحِكْمَةِ وَ قَالَ عُمَرُ تَفَقَّهُوْا قَبْلَ اَنْ تُسَوَّدُوْا وَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ بَعْدَ اَنْ تُسَوَّدُوْا وَقَدْ تَعَلَّمَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ كِبَرِ سِنِّهِمْ.

باب۵۷: علم او حكمت كښں ذ رشك كولو بيان. او عمرؓ او فرمائيل' ذ سردار جوړيدونه مخكښں علم حاصل كه' ابوعبدالله وائي' ذ سردار جوړيدونه ورستو هم علم حاصلوه ذ نبي صلي الله عليه وسلم صحابهؓ ذ بوډا كيدونه پس هم علم حاصل كړے وو.

ف: (۱) ذ امام بخاريؒ قول دے. ذ هغهٔ مقصود ذ دے عبارت ذ زياتولو نه دا دے' چه ذ حضرت عمرؓ ذ كلام نه دا مطلب مه آخلئے' چه ذ سردار جوړيدونه پس علم حاصلول نهٔ دي پكار.

(۲) دا په دے وجه چه اكثر صحابهؓ ذ اسلام راوړلو په وخت بوډاګان وو' اوڅهٔ علم دين چه صحابهؓ حاصل كهٔ' هغه ئے ذ اسلام راوړلونه ورستو حاصل كړے وو' او كوم چه كم عمره وو' هغوي به مسلسل علم حاصلولو.

۷۳: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ خَالِدٍ عَلٰى غَيْرِ مَا حَدَّثَنَاهُ الزُّهْرِيُّ قَالَ سَمِعْتُ قَيْسَ بْنَ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَاللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاحَسَدَ اِلَّا فِيْ اِثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلٰى

۷۳: حميدي. سفيان. اسمٰعيل بن ابي خالد. زهري. قيس بن ابي حازم. عبدالله بن مسعودؓ وائي' چه نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' رشك نهٔ دے پكار' خود دوو سړو يو هغه سړے' چه هغهٔ له الله مال وركړے وي او هغه په هغے مال هغے خلقو له قدرت وركړي چه هغه ذ حق په لاره كښں صرف كړي' او بل په هغے سړي چه الله هغهٔ

هَلَكَتِهٖ فِي الْحَقِّ وَ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَ يُعَلِّمُهَا. له علم ورکړے وي او هغه ذ هغې په ذريعه حکم کوي او (خلقوته) ذ هغې تعليم' ورکوي.

۱. د بل چا قابليت' شخصيت مال يا په خوشحالئ خفه کيدل او دا خواهش کول چه ذ بل هغه نعمت او حالت دے ختم شي او ماته دے راکړے شي ديته حسد وائي ليکن کله' کله دا مطلب هم وي چه يو بنده بل ځوک اويني او دا اوغواړي چه افسوس دے داسے حال دے خماوے دا نعمت دے ماته هم راکړے شي دے حالت ته رشک وائي. چه د کوم ځيز زيات شوق او حرص پيدا شي. له دے کبله امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د باب سرليک کښ غِبطه لفظ استعمال کړے دے حسد په هر حالت کښ ناکاره عمل دے مګر داسے حسد چه هغے ته رشک ويلے شي په حديث شريف کښ چه کوم دوه قسمه کسان ذکر شويدي هغوي سره حسد کول روا دي چه د هغے ذکر حديث شريف کښ راغلے دے.

باب ۵۸ : مَا ذُكِرَ فِيْ ذَهَابِ مُوْسٰى فِي الْبَحْرِ اِلَى الْخَضِرِ وَ قَوْلِهٖ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰٓى اَنْ تُعَلِّمَنِيَ الْاٰيَةِ.

باب ۵۸ : ذَ موسٰيؑ درياب کښ دننه خضرؑ ته ذ ورتلو چه کومه واقعه ده' ذ هغے بيان' او ذَ اللّٰه تعالیٰ فرمائيل چه موسٰيؑ خضرؑ ته اووے' آيا زهٔ تاسره روان شم چه ما ته خپل علم اوښائے.

۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ غُرَيْرٍ الزُّهْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ ثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ يَعْنِي ابْنَ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شَهَابٍ حَدَّثَهٗ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهٗ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ تَمَارٰى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ بْنِ حِصْنِ الْفَزَارِيُّ فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ خَضِرٌ فَمَرَّبِهِمَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ اِنِّيْ تَمَارَيْتُ اَنَا وَ صَاحِبِيْ هٰذَا فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى الَّذِيْ سَاَلَ مُوْسٰى السَّبِيْلَ اِلٰى لُقِيِّهٖ هَلْ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَاْنَهٗ قَالَ نَعَمْ

۷۴: محمد بن عزيز زهري.. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم. صالح بن کيسان. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه' ذ عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت کوي' چه ابن ابن عباس او حربن قيس فزاري ذ موسٰيؑ ذ ملګري په باره کښ اختلاف اوکهٔ. ابن عباسؓ وئيلے' چه هغه خضرؑ دے' ناسا په ابي بن کعبؓ ذ هغوي خواکښ تير شو' نو ابن عباسؓ راوبلو' او ورته ئے اووے چه بيشکه خما او خما ذ دے ملګري (حُر بن قيس) ذ موسٰي ذ ملګري په باره کښ چه هغهٔ سره ذ يو ځائے کيدو ذ پاره موسٰيؑ ذ اللّٰه پاک نه ذ لارے پُښتنه کړے وه' اختلاف پيدا شوے دے نو آيا تا ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه ذ هغهٔ کيفيت آوريدلے دے. ابي بن کعبؓ اووے. او ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا آوريدلے دي' چه يو خلے موسٰيؑ ذ بني اسرائيلو په جماعت کښ ناست وو' اتفاق سره يو سړے ورله راغے' او تپوس ئے ترے اوکهٔ' تاسو ته داسے څوک معلوم دے' چه

سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَمَا مُوْسٰى فِيْ مَلَإٍ مِّنْ بَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ اِذْ جَآءَهٗ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمَ مِنْكَ قَالَ مُوْسٰى لَا فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلٰى مُوْسٰى بَلٰى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَاَلَ مُوْسٰى السَّبِيْلَ اِلَيْهِ فَجَعَلَ اللّٰهُ لَهُ الْحُوْتَ اٰيَةً وَّ قِيْلَ لَهٗ اِذَا فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَارْجِعْ فَاِنَّكَ سَتَلْقَاهُ فَكَانَ يَتَّبِعُ اَثَرَ الْحُوْتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ لِمُوْسٰى فَتَاهُ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَآ اَنْسٰنِيْهِ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ قَالَ ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا فَكَانَ مِنْ شَاْنِهِمَا مَا قَصَّ اللّٰهُ تَعَالٰى فِيْ كِتَابِهٖ.

تاسو نه زيات عالم وي' موسیٰؑ ورته اووے' نه. نو الله تعالیٰ په موسیٰؑ وحي راولیږلے چه او خمونږ بنده خضرؑ (ستا نه زيات عالم دے) نو موسیٰؑ ذ خپل پروردګار نه هغه (يعني خضرؑ) سره ذ يو ځائے کیدو ذ پاره ذ لارے تپوس اوکۀ' نو الله تعالیٰ ذ هغۀ ذ پاره کب (مچھلی) نښه اوګرځوله او هغۀ ته اووئیلے شو' چه کله تۀ کب بیانه مومے نو (مخکښې تلونه) واپس راوګرځه' ځکه چه دے نه پس به تۀ هغۀ سره يو ځائے شے' نو موسیٰ عليه السلام هغه (خضرؑ) سره ذ ملاقات ذ پاره روان شو' او په ټوله لاره ئے درياب کښې ذ کب ذ علامت انتظار کولو (يو مقام ته چه اورسيدل نو) ذ موسیٰؑ خادم هغۀ ته اووے' که تاسو ته يادوي' نو کوم وخت چه مونږ هغے کاڼړي (کټ سره ناست وو' نو دغه وخت) ځما هير شولو' او ذ هغے ياد مانه شيطان هير کړلو. موسیٰ عليه السلام ورته اووے' چه هم دغه خو هغه مقام دے چه مونږ ذ هغے تلاش پسے يو' نو دواړه ذ خپلو قدمونو په نښه واپس راوګرځيدل بيائے خضرؑ بيامند. بيا ذ دے دواړو حال هغه دے' چه الله تعالیٰ خپل کتاب کښې بيان کړے دے [1].

۱. د دے حدیث شریف نه دا معلومه شوه چه موسیٰ عليه السلام د دومره لوئے علم بناوند د زيات علم حاصلولو د پاره د بل چا شاګردي عیب نه ګنړي. د دے نه د علمْ غوره والے او اهمیت څرګندیږي.

## بَابٌ ۵۹: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ.

**باب ۵۹:** ذ نبي صلي الله عليه وسلم دا ارشاد چه اے خما الله' دۀ ته ذ قرآن علم اوښايه.

**۷۵:** حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ ثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ضَمَّنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ.

**۷۵:** ابومعمر. عبدالوارث. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ وائي' چه زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلم (يو ځل) ځان ته راجخت کړم اووے فرمائيل چه اے الله' دۀ ته ذ (خپل) کتاب علم عطا کړے.

## باب ۶۰: مَتٰى يَصِحُّ سِمَاعُ الصَّغِيْرِ.

۷۶: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلٰى حِمَارٍ اَتَانٍ وَّ اَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الْاِحْتِلَامَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِمِنٰى اِلٰى غَيْرِ جِدَارٍ فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ وَ اَرْسَلْتُ الْاَتَانَ تَرْتَعُ وَ دَخَلْتُ فِي الصَّفِّ وَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَلَيَّ.

۷۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُسْهِرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنِي الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَحْمُوْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ قَالَ عَقَلْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَجَّةً مَجَّهَا فِيْ وَجْهِيْ وَ اَنَا ابْنُ خَمْسِ سِنِيْنَ مِنْ دَلْوٍ.

## باب ۶۰: دَ بچي كوم عمر كښې آوريدل صحيح دي.

۷۶: اسمٰعيل. مالك. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. عبداللّٰه ابن عباسؓ وائي، چه (يو خل) زه په يوه خره (ګدهي) سور شوم، تلم او هغه وخت زهٔ بلوغ ته نزدې ووم، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم منٰي كښې بغير دَ څهٔ ديوال نه مونځ كولو. زهٔ دَ يو صف مخكښې تير شوم، او خره مِ پريښوده، هغې خرند شروع كهٔ، او زهٔ صف كښې داخل شوم زه (چا) دَ دې خبرې نه منع نهٔ كړم.

۷۷: محمد بن يوسف. ابو مسهر. محمد بن حرب. زبيدي. زهري. محمود بن ربيع نه روايت كوي، هغهٔ اووې، ماته ياد دي چه يو ځلې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ يو ډول (بورقې) نه خوله كښې اوبه واخستې، او څما په مخ ئې واچولې [۱].

۱. د دې حديث شريف نه معلوميږي چه دَ پينځو كالو ماشوم خبره ياد ساتلې شي او په هغه اعتبار كول پكار دي.

## باب ۶۱: اَلْخُرُوْجِ فِيْ طَلَبِ الْعِلْمِ وَ رَحَلَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ مَسِيْرَةَ شَهْرٍ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُنَيْسٍ فِيْ حَدِيْثٍ وَّاحِدٍ.

۷۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْقَاسِمِ خَالِدُ بْنُ خَلِيٍّ قَاضِيْ حِمْصَ قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ الْاَوْزَاعِيُّ

## باب ۶۱: دَ علم طلب كښې دَ كور نه دَ بهروتلو بيان جابر بن عبداللّٰه دَ يوې مياشتې په مسافت (سفر اوكهٔ) او دَ يو حديث دَ پاره عبداللّٰه بن انيس له تلې وو.

۷۸: ابو القاسم خالد بن خلي قاضي حمص محمد بن حرب. اوزاعي. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود، ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه هغه او حُر بن قيس

أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ تَمَارٰى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ ابْنِ حِصْنٍ الْفَزَارِيُّ فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى فَمَرَّ بِهِمَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَقَالَ اِنِّيْ تَمَارَيْتُ اَنَا وَ صَاحِبِيْ هٰذَا فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى الَّذِيْ سَاَلَ السَّبِيْلَ اِلٰى لُقِيِّهٖ هَلْ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَاْنَهٗ فَقَالَ اُبَيٌّ نَعَمْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَاْنَهٗ يَقُوْلُ بَيْنَمَا مُوْسٰى فِيْ مَلَاٍ مِّنْ بَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ اِذْ جَآءَهٗ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمَ مِنْكَ قَالَ مُوْسٰى لَا فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلٰى مُوْسٰى بَلٰى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَاَلَ السَّبِيْلَ اِلٰى لُقِيِّهٖ فَجَعَلَ اللّٰهُ لَهُ الْحُوْتَ اٰيَةً وَّ قِيْلَ لَهٗ اِذْ فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَارْجِعْ فَاِنَّكَ سَتَلْقَاهُ فَكَانَ مُوْسٰى يَتَّبِعُ اَثَرَ الْحُوْتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ فَتٰى مُوْسٰى لِمُوْسٰى اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَآ اَنْسٰىنِيْهُ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ قَالَ مُوْسٰى ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا فَكَانَ مِنْ شَاْنِهِمَا مَا قَصَّ اللّٰهُ

فزاري د موسىٰ د ملګري په باره کښې اختلاف او کړ. اتفاق سره ابي بن کعبؓ د هغوي خوا کښې تېر شولو، نو ابن عباسؓ راوبللو او ورته ئې اووې، چه دې وخت خما او خما دې دوست د موسىٰ د ملګري په باره کښې اختلاف راغلې دې، چه هغه سره د ملاقات د پاره موسىٰ الله تعالىٰ نه د لارې تپوس کړې وو، نو تا د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه د هغه په حقله څه حال آوريدلې دي. ابي بن کعب اووې. او ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه د هغه حال آوريدلې دې. حضورؐ اوفرمائيل، چه (يوه ورځ)موسىٰ عليه السلام د بني اسرائيلو په جماعت کښې وعظ کولو ناساپه يو سړې ورله راغې، او ورته ئې اووې، چه آيا تاسو ته معلومه ده، چه ستاسو نه زيات څوک عالم هم شته. موسىٰ ورته اووې، نه. حضورؐ فرمائي، نو الله تعالىٰ موسىٰ ته وحي اوليږله چه. او. خما بنده خضرؑ (ستانه زيات پوهيږي يعني زيات عالم دې) بيا موسىٰ هغه سره د يو ځائې کېدو لاره او پښتله. نو الله تعالىٰ ورته (غائب کېدل د) کب نښه اوګرځوله، او ورته اوويلې شو، چه هر کله کب (مچلي) بيانه مومې، (نو پوه شه چه هغه ځائې ستا د ملاقات دې) که مخکښې تلې ئې نو واپس شه. دې نه پس به ستا هغه سره ملاقات اوشي. نو موسىٰ روان شو، او (په تهوله لاره ئې) درياب کښې د کب د علامت انتظار کولو. دې کښې د موسىٰ خادم موسىٰ ته اووې، که تاسو ته ياد وي نو کوم وخت چه مونږ هغې ګټ سره ناست وو (دمه مو کوله) نو مانه هغه کب هير شولو، او د هغې يادول مانه شيطان هير کړل. موسىٰ ورته اووې، چه دغه مقام دې، د کوم چه مونږ تلاش کښې يو، نو هغوي دواړه د قدمونو په نښه واپس شو، نو خضرؑ ئې بيامند. بيا وړاندې د دوي حال هغه دې، کوم چه الله پاک

فِيْ كِتَابِهٖ.

خپل كتاب كښ بيان كړے دے ¹.

¹. د علم د ضرورت او اهميت د پاره دا حديث شريف د بل سر ليک لاندے ذكر شويدے.

## باب ۶۲ : فَضْلِ مَنْ عَلِمَ وَ عَلَّمَ.

## باب ۶۲ : دَ هغے سړي دَ فضيلت بيان چه خپله هم لوسته اُكړي او نورو ته هم اوښائي.

۷۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاۤءِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ مَا بَعَثَنِيَ اللّٰهُ بِهٖ مِنَ الْهُدٰى وَالْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيْرِ اَصَابَ اَرْضًا فَكَانَ مِنْهَا نَقِيَّةٌ قَبِلَتِ الْمَآءَ فَاَنْبَتَتِ الْكَلَاءَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيْرَ وَ كَانَتْ مِنْهَا اَجَادِبُ اَمْسَكَتِ الْمَآءَ فَنَفَعَ اللّٰهُ بِهَا النَّاسَ فَشَرِبُوْا وَ سَقَوْا وَزَرَعُوْا وَ اَصَابَ مِنْهَا طَآئِفَةً اُخْرٰى اِنَّمَا هِيَ قِيْعَانٌ لَّا تُمْسِكُ مَآءً وَّلَا تُنْبِتُ كَلَآءً فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ فَقُهَ فِي الدِّيْنِ وَ نَفَعَهٗ بِمَا بَعَثَنِيَ اللّٰهُ بِهٖ فَعَلِمَ وَ عَلَّمَ وَ مَثَلُ مَنْ لَّمْ يَرْفَعْ بِذٰلِكَ رَاْسًا وَّلَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللّٰهِ الَّذِيْ اُرْسِلْتُ بِهٖ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اِسْحٰقُ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ وَ كَانَ مِنْهَا طَآئِفَةٌ اِسْحٰقُ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ وَ كَانَ مِنْهَا طَآئِفَةٌ قَبِلَتِ الْمَآءَ قَاعٌ يَعْلُوْهُ الْمَآءُ وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِيْ مِنَ الْاَرْضِ.

۷۹ : محمد بن علاء، جماد بن اُسامه، بريد بن عبدالله، ابوبرده، ابو موسٰي دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، كوم علم او هدايت سره چه زهٔ الله پاک راليږلے يم، دَ هغے مثال دَ هغے باران پـه شان دے، چـه پـه زوره پـه زمكـه او وريږي، نو كومه زمكـه چه صافه وي هغه او به راكاږي او ډير واښهٔ او سبزه راټوكوي او كومه زمكه چه سخته وي هغه او به راګيرے كړي. بيا الله تعالٰي دَ هغے نه خلقو ته فائده رسوي هغه (خپله هم) څكي او (په څناورونے هم) څكوي او زراعت پرے كوي (فصلونه پرے اوبه كوي) او څهٔ باران (دَ زمكے) داسے حصے ته رسي چه بالكل خشک ميدان وي. نهٔ اوبهٔ راګيروي او نهٔ سبزي راټوكوي. بس دغه مثال دَ هغے سړي دے چه دَ الله دين كښ فقيه شي هغه زده كوي او خلقوته ئے اوښائي او دا بل مثال دَ هغے سړي دے چه هغه دے طرف تـه سر قدرے هم اوچت نهٔ كه، او دَ الله هغه هدايت چه هغے سره زهٔ راليږلے شوے يم، هغه ئے قبول نهٔ كهٔ. او عبدالله (امام بخاري) ويلے دي، اسحاق د ابو اسامه نه روايت كړے دے " دَ زمكے يو ے حصے او به قبولے كړے ميدان وؤ او به وربـاندے د پاسه ورغلے، د صَفْصَف معني ده هموار ه (آواره) زمكه.

ف : يعني كوم علم او حكمت چه ماته عطا كړے شوے دے، هغه دَ پروردګار رحمت دے او دَ هغے به

قبلولو کښې دَ بنـي نـوع آدم مثـال دَ زمکـې دَ هغې درې حصو په شان دې نو دَ زمکې کومه حصه چه دَ سـرسبـزه کیـدو او شـادابـه کیـدو صـلاحیت لرې هغه باران سره سرسبزه شي خپله هم ښۀ معلومیږي او نوروتـه هـم فـائـده رسوي او دَ زمکې کومې حصې کښې چه دَ سرسبزه کیدو صلاحیت نۀ وي بلکه صرف دومـره صـلاحیـت لـري چـه اوبه خان کښې راګیرې کړي نو هغه او به راګیرې کړي او دَ جهیل تالاب په شـکـل کښې نوروته فائده رسوي اګر که خپله ترې څۀ فائده نشي اوچتولې. لیکن دَ زمکې یوه حصه داسې وي چـه دغه ذکر شوې دواړه صفتونه نۀ لري نو هغه دَ دغې رحمت نه [۱] مـحرومه پاتې شي. او ډیره خرابه حصه ده د زمکې.

۱. دې حـدیـث شـریف کښـې رسـول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم د پوهې (د علم) مثال باران سره بیان کـړیـدې څـومره چه باران ضروري دې داسې پوهه علم ضروري دې د محدثینو مثال د هغې صافې ښکته زمکـې دې لـکه تالاب حوض چه اوبه پکښې ولاړې ښکاري نو داسې محدثینو حضراتو ته د احادیثو لویه حـصـه ور کـړې شوې وي چه هغه خلقوته رسیږي. د دویمې حصې زمکې چه هغه اوبه راکاږي د هغې اوبو پـه ذریـعـه د خـوراک څیـزونـه ګیاه ګانې میوې او ګلونه زرغون شي هغې زمکه کښې اوبه نه ښکاري اوبه ورکـښې ورننـوتې وي. دا دَ فقهاؤ مثال دې څرنګ چه د هغې زرغونې زمکې نه د ژوند ټول حاجتونه پوره کـیـږي. داسـې فـقهاؤ دَ دین ټولې مسئلې د فقې کتابونو کښې لیکلې دي. د آخري بنجر زمکې مثال نه هغه خلق مراد دي چه نه د حدیث علم لري نه د فقهې.

**باب ۶۳ : رَفْعِ الْعِلْمِ وَ ظُهُوْرِ الْجَهْلِ وَ قَالَ رَبِيْعَةُ لَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ شَيْءٌ مِّنَ الْعِلْمِ اَنْ يُّضَيِّعَ نَفْسَهٗ.**

**باب ۶۳ : دَ علـم اوچتیـدو او جهـل ظـاهریدو** بیان. او ربیعه اووې چه چا سره څۀ علم وي هغۀ سره نۀ ښـائـي چـه خپـل ځـان (څۀ بل کار کښې مشغولیدو سره) ضائع کړي.

۸۰ : حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يُّرْفَعَ الْعِلْمُ وَ يُثْبَتَ الْجَهْلُ وَ تُشْرَبَ الْخَمْرُ وَ يَظْهَرَ الزِّنَا.

۸۰ : عـمـران بـن میسـره. عبـدالـوارث. ابـوالتیـاح. انـسؓ وائـي چـه رسـول اللّٰـه صلي اللّٰه عـلیـه وسـلـم او فـرمـائـیـل دَ قیـامـت پـه عـلامتـونـو کـښې یـو عـلامـت دا هـم دې چـه عـلـم بـه پـاسـي او جهـل بـه قـائـم شـي او شـراب نـوشـي بـه شـروع شـي او زنـا بـه خـوره شـي پـه څـرګـنـده کیږي.

۸۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَاُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيْثًا لَا

۸۱ : مسـدد. یـحیـي بـن سـعید. شعبـه. قتـاده. دَ انـس نـه روایـت کـوي چه هغه قتاده ته اووې لن زۀ تاته یـو داسـې حـدیـث بیـانـوم چـه څـمـا نـه پـس بـه نې

يُحَدِّثُكُمْ اَحَدٌ بَعْدِيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يَقِلَّ الْعِلْمُ وَ يَظْهَرَ الْجَهْلُ وَ يَظْهَرَ الزِّنَا وَ تَكْثُرَ النِّسَآءُ وَ يَقِلَّ الرِّجَالُ حَتّٰى يَكُوْنَ لِخَمْسِيْنَ امْرَاَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ.

درته هيڅوک بيان نهٔ کړي، ما دَ رسول الله صلعم نه واوريدل فرمائيل ئې، چه دَ قيامت دَ علامتونونه يو علامت دا هم دې، چه علم به کم شي او جهل به غالب شي. زنا به ډيره کيږي. ښځې به ډيرې شي او سړي به دومره کم شي، چه دَ پنځو سو ښځو ذمه وار به يو سړې وي.

## باب ۶۴ : فَضْلِ الْعِلْمِ.

## باب ۶۴ : دَ علم دَ فضيلت بيان.

۸۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَمَا اَنَا نَآئِمٌ اُتِيْتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ فِيْ اَظْفَارِيْ ثُمَّ اَعْطَيْتُ فَضْلِيْ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالُوْا وَمَا اَوَّلْتَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْعِلْمَ.

۸۲: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. حمزه بن عبدالله بن عمر، ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغهٔ اوورې، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، وې فرمائيل، زهٔ اُودهٔ ووم، نو ماته دَ پيو يوه پيالې (خوب کښې) راکړې شوه، نوما اوڅکله تردې چه زهٔ په دې پوه شوم، چه دَ مورِ والي نه (رطوبت) څما دَ نوکونو نه اوځي. بيا باقي پئې ما عمر بن خطاب له ورکړل صحابهٌ ؤ عرض اوکهٔ، يا رسول الله، تاسو دَ دې څه تعبير اُويستو؟ وې فرمائيل چه علم[1].

ا. علم ته د پيو تشبيه ورکړې شوې ده پيو (شودو) سره انسان لونيږي صحت او طاقت انسان له ورکوي داسې علم، د انسان د ترقئ او د لوئ ذريعه ده بيا حضرت عمر رضي الله عنه ته د پيغمبرئ د علمونو لويه حصه ورکړې شوې وه. دا هم دا حديث شريف ښائي.

## بَاب ۶۵ : اَلْفُتْيَا وَهُوَ وَاقِفٌ عَلٰى ظَهْرِ الدَّابَّةِ اَوْ غَيْرِهَا.

## باب ۶۵ : په سورلئ يا په څهٔ څيز په ولاړه فتوئ ورکول (يا دَ دين مسئله ښودل جائز دي)

۸۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عِيْسَى بْنِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَنَّ

۸۳: اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. عيسٰي بن طلحه بن عبيدالله. عبدالله بن عمرو بن عاص نه روايت دې چه رسول الله صلعم حجة الوداع کښې خلقو دَ پاره منٰي کښې ايسار شولو. دې کښې يو سړې راغې، او هغهٔ

رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ فِي حِجَّةِ الْوِدَاعِ بِمِنٰى لِلنَّاسِ يَسْأَلُوْنَهُ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ لَمْ اَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ قَالَ اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ فَجَآءَ اٰخَرُ فَقَالَ لَمْ اَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ قَالَ فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا اُخِّرَ اِلَّا قَالَ اِفْعَلْ وَلَا حَرَجَ.

اوريے، چه ذ ناپوهئ په وجه ذ ذبح كولو نه مخكښې ما سرا و خريلو. حضورؐ ورته او فرمائيل اوس ذبح اوكړه. هيڅ گناه نشته. بيايو بل سړے راغے، او هغه اوويے، چه ذ ناپوهنے په وجه ما ذ شيطان ويشتل كولو نه مخكښې قرباني اوكړه. حضورؐ ورته او فرمائيل (اوس) رَمي او كړه، هيڅ حرج نشته. عبدالله بن عمر وائي، (په هغه ورځ) ذَ حضور نه چه د كوم څيز په باره كښې تپوس اوشو خواه مخكښې كړے شوے وو يا روستو كړے شوے وو، خو حضورؐ ورته دغه او فرمائيل، چه (اوس) اوكه هيڅ حرج' نشته.

۱. د حرج (گناه) نه كيدو مطلب دا دے كه د ناپوهئ په وجه ترتيب بدل شي نو گناه نشته د نورو امامانو په نزد ترتيب پريخودلو سره كفاره نه لازميږي دَ امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه په نزد، ترتيب واجب دے ترتيب پريخودلو سره كفّاره (قرباني) لازميږي په دے روايت كښې دا نشته چه نبي عليه السلام په اوښه سور وو د خلقو دَ سوالونو جوابونه ئے وركول په كتاب الحج كښې چه كوم روايت دے په هغے كښې شته چه نبي عليه السلام په اوښه سور وو.

## بَاب ۶۶ : مَنْ اَجَابَ الْفُتْيَا بِاِشَارَةِ الْيَدِ وَالرَّأْسِ.

## باب ۲۲ : دَ هغے سړي بيان چه لاس يا دَ سر اشارے سره دَ فتوے جواب وركړي.

۸۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ ثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ فِيْ حِجَّتِهٖ فَقَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ فَاَوْمٰى بِيَدِهٖ قَالَ وَلَا حَرَجَ وَ قَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ فَاَوْمَأَ بِيَدِهٖ وَلَا حَرَجَ.

۸۴: موسى بن اسمٰعيل. وهيب. ايوب. عكرمه. ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه نبي صلعم نه (آخري) حج كښې سوالات اوكړے شو. چا اوويے، چه ما دَ رمي كولو نه مخكښې ذبح اوكړه، نو حضورؐ خپل لاس سره اشاره اوكړه، او وے فرمائيل، چه هيڅ حرج نشته.

۸۵: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَنَا حَنْظَلَةَ عَنْ سَالِمٍ

۸۵: مكي بن ابراهيم. حنظله. سالم. ابوهريرهؓ. دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي حضورؐ او

قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُقْبَضُ الْعِلْمُ وَ يَظْهَرُ الْجَهْلُ وَالْفِتَنُ وَ يَكْثُرُ الْهَرَجُ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا الْهَرَجُ فَقَالَ هٰكَذَا بِيَدِهٖ فَحَرَّكَهَا كَاَنَّهٗ يُرِيْدُ الْقَتْلَ.

فرمائيل (راتلونكي زمانه كښې به) علم اوچت كړے (پاسولے) شي. او جهل او فتنې به غالب شي' او هرج به زيات وي. عرض اوشو' يا رسول اللّٰه' هرج څهٔ څيز دے' نو حضورؐ لاس سره په ترس (ترچها) اشاره او كړه' وے فرمائيل' دا شان گويا دَ حضورؐ مراد (دَ هرج نه) قتل وو.

۸۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ ثَنَا هِشَامٌ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ اَتَيْتُ عَآئِشَةَ وَهِيَ تُصَلِّيْ فَقُلْتُ مَا شَاْنُ النَّاسِ فَاَشَارَتْ اِلَى السَّمَآءِ فَاِذَا النَّاسُ قِيَامٌ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ قُلْتُ اٰيَةٌ فَاَشَارَتْ بِرَاْسِهَا اَيْ نَعَمْ فَقُمْتُ حَتّٰى عَلَانِيَ الْغَشْيُ فَجَعَلْتُ اَصُبُّ عَلٰى رَاْسِي الْمَآءَ فَحَمِدَ اللّٰهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ لَمْ اَكُنْ اُرِيْتُهٗ اِلَّا رَاَيْتُهٗ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا حَتَّى الْجَنَّةَ وَالنَّارَ فَاُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِيْ قُبُوْرِكُمْ مِثْلَ اَوْ قَرِيْبَ لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ يُقَالُ مَا عِلْمُكَ بِهٰذَا الرَّجُلِ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ اَوِ الْمُوْقِنُ لَا اَدْرِيْ اَيُّهُمَا قَالَتْ اَسْمَآءُ فَيَقُوْلُ هُوَ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ جَآءَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى فَاَجَبْنَاهُ وَاتَّبَعْنَاهُ هُوَ مُحَمَّدٌ

۸۶: موسٰي بن اسماعيل. وهيب. هشام. فاطمه. اسماءؓ وائي زهٔ بي بي عائشےؓ له راغلم' او هغے مونځ كولو نو ما هغے ته اووے' چه دَ خلقو څهٔ حال دے (ولے دومره ويريږي) نو هغے آسمان طرف ته اشاره او كړه (چه گوره نمر تندر نيولے دے) بيا دے كښې ټول خلق (دَ نمر دَ تندر نيولو مونځ دَ پاره) اودريدل. بي بي عائشےؓ اووے سبحان اللّٰه' ما ترے تپوس او كهٔ چه (دا نمر تندر نيول آيا) څهٔ نښه ده. بي بي عائشےؓ خپل سر سره اشاره او كړه' چه او' بيازهٔ هم (مونځ دَ پاره) اودريدم (مونځ دومره اوږد وو' چه) په ما بيهوشي راغله. نو ما په خپل سر اوبه توبول شروع كړل. بيا چه مونځ ختم شو او تندر نيول لاړل نو نبيؐ دَ خدائے تعالٰي حمد و ثنا بيان كړه' اووے فرمائيل' كوم څيز چه (اوسه پورے) ماته نهٔ وو ښودلے شوے' هغه ما (دے وخت) په خپل ځائے (په ولاړه ولاړه) اوليد. تردے چه جنت او دوزخ هم. او ماته دا وحي راليږلے شوے ده' چه ستاسو قبرونو كښې به ستاسو آزمائش كيږي' چه دَ دجال دَ فتنے په شان به سخت وي يا دَ دے قريب قريب (فاطمهؒ) وائي' ماته ياد نهٔ دي' چه اسماء څهٔ ونيلے وو دَ مثل لفظ يا دَ قريب لفظ' او (قبر كښې به سوال وي) تپوس به كولے شي' چه ستا دَ دے سړي متعلق څهٔ معلومات دي' نو څوک چه مؤمن وي يا موقن (فاطمهؒ وائي' ماته يادنهٔ دي' چه اسماء څهٔ ونيلے وو. (دَ مؤمن لفظ يا دَ موقن لفظ) هغه (مړے) به وائي' چه دا محمدؐ دے' او دَ اللّٰه پيغمبر دے' مونږ ته ئے معجزے او هدايت راوړے وو' نو مونږ دَدهٔ خبره اومنله' او دَ دهٔ پيروي مو لو كړله او دا محمدؐ دے (دا كلمه به درے خله اووائي) بيا به هغه ته اوونيلے شي' ته

ثَلٰثًا فَيُقَالُ نَمْ صَالِحًا قَدْ عَلِمْنَا اِنْ كُنْتَ لَمُوْقِنًا بِهٖ وَ اَمَّا الْمُنَافِقُ اَوِ الْمُرْتَابُ لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ شَيْئًا فَقُلْتُهٗ.

آرام سره اوده شه، بیشکه مونږ پوه شو، چه ته به محمد صلي الله علیه وسلم ایمان لرې. لیکن منافق یا شک کونکې (فاطمهٔ وائي چه ماته یاد نهٔ دي. اسماء به دې دواړو لفظونو کښې کوم یو وئیلې وو. منافق نې وئیلې وو، یا شک کونکي نې وئیلې وو) به وائي، زهٔ (په اصل حقیقت) نهٔ پوهیږم خو ما چه ذدري په نسبت څهٔ آوریدلې وو، ما هم هغه اووې.

ف: دجال ته مسیح دجال په دې وجه وائي، چه دا معجزه الله تعالیٰ خپل یو نبي برحق حضرت عیسٰی علیه السلام ته ورکړې وه، چه دَ خدائې په حکم به نې مړې ژوندې کولو، او دجال ورته په دې وجه وائي، چه هغه به مکار. فریبي او کافر وي.

ا. د دې حدیث شریف ذکر کولو مطلب دا دې چه (د باب د سر لیک مطابق) چه حضرت عائشې بي بي حضرت اسماء بي بي (رضي الله عنهما) ته د سَر په اشاره جواب ورکړې وؤ باقي پوره حدیث صلاة الکسوف کښې ذکر دې. چه رسول الله صلي الله علیه وسلم هغه وخت فرمائیلې وو چه نَمر (نُور) تندر نیولې وؤ.

بَابُ ٦٧: تَحْرِيْضِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلٰى اَنْ يَّحْفَظُوا الْاِيْمَانَ وَالْعِلْمَ وَ يُخْبِرُوْا مَنْ وَّرَآءَ هُمْ وَ قَالَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ قَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْجِعُوْآ اِلٰٓى اَهْلِيْكُمْ فَعَلِّمُوْهُمْ.

باب ٦٧: دَ نبي صلي الله علیه وسلم دَ قبیلهٔ عبدالقیس وفد ته ترغیب ورکول، چه دَ ایمان او علم حفاظت اوکړي او څان پسې ورستو راتلونکي خلق خبر کړي. او مالک بن حویرث وئیلې دي، مونږ ته نبي صلي الله علیه وسلم فرمائیلي وو، چه تاسو خپل کور والوته واپس لاړ شئې او هغوي ته (دَ دین) تعلیم ورکړئې.

۸۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ قَالَ كُنْتُ اُتَرْجِمُ بَيْنَ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَ بَيْنَ النَّاسِ فَقَالَ اِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ اَتَوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنِ الْوَفْدُ اَوْ مَنِ الْقَوْمُ قَالُوْا رَبِيْعَةَ قَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ اَوْ بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا

۸۷: محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابوجمرهٔ وائي چه (یوه ورځ) ابن عباسؓ (حدیث) بیان کولو، او ذ هغهٔ او دَ خلقو مینځ کښې ما ترجمه کوله (یعني څهٔ چه به نې وئیلې، هغه به ما په اوچت آواز خلقوته آورولو). ابن عباسؓ اووې، دَ قبیلهٔ عبدالقیس وفد چه نبي صلی الله علیه وسلم له راغې، نو حضورؐ تپوس اوکهٔ، کوم وفد دې، یا دا تپوس نې اوکهٔ، چه کوم خلق دي، هغوي اووې، چه مونږ دَ قبیله ربیعه نه یو. حضورؐ ورته او فرمائیل، چه مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ یا دائې او فرمائیل، چه مَرْحَبًا بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامٰى دا وفد دِ په خیر راشي، چه نه شرمنده دي او نه خپیمانه دي. هغې

نَدَامٰی قَالُوْآ اِنَّا نَأْتِیْكَ مِنْ شُقَّةٍ بَعِیْدَةٍ وَّ بَیْنَنَا وَ بَیْنَكَ هٰذَا الْحَیُّ مِنْ کُفَّارِ مُضَرَ وَلَا نَسْتَطِیْعُ اَنْ نَّاْتِیَكَ اِلَّا فِیْ شَهْرٍ حَرَامٍ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ نُخْبِرْ بِهٖ مَنْ وَّرَآءَ نَا نَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ فَاَمَرَهُمْ بِاَرْبَعٍ وَ نَهَاهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَمَرَهُمْ بِالْاِیْمَانِ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الْاِیْمَانُ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ قَالُوا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِیْتَآءُ الزَّکٰوةِ وَ صَوْمُ رَمَضَانَ وَ تُؤْتُوا الْخُمُسَ مِنَ الْمَغْنَمِ وَ نَهَاهُمْ عَنِ الدُّبَّآءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ قَالَ شُعْبَةُ وَ رُبَّمَا قَالَ النَّقِیْرَ وَ رُبَّمَا قَالَ الْمُقَیَّرَ قَالَ احْفَظُوْهُ وَ اَخْبِرُوْهُ مَنْ وَّرَآءَ کُمْ.

خلقو عرض او کړ، چه مونږ ډېر لرې ځائے نه تاسو له راغلي یو او خمونږ او ستاسو مینځ کښې د کفار مضر قبیله حائله ده، او (د هغوي د ویرې نه) مونږ غیر د ماهِ حرام نه (پهله زمانه کښې) تاسوله نهٔ شو راتلے، نو مونږ ته داسے اعمال اوښائے، چه مونږ خپل ورستو خلق د هغے نه خبر کړو، او د هغے په سبب مونږ جنت کښې داخل شو. حضورؐ هغوي ته د څلورو خبرو حکم ورکړهٔ او د څلورو خبرونه ئے منع کړل، هغوي دے په یو الله ایمان لري (چه دا حکم ئے ورکړهٔ نو) حضورؐ ورته او فرمائیل، تاسو پوهیږئے، چه په الله د ایمان لرلو څهٔ مطلب دے. هغوي عرض اوکړ، چه الله او د هغهٔ رسولؐ (خمونږنه) زیات پوهیږي. حضورؐ ورته او فرمائیل (ددے مطلب دا دے چه) د دے خبرے شهادت ورکول، چه د الله نه سوا بل معبود نشته، او محمد د الله رسول دے. او هغوي ته ئے د مونځ کولو او د رمضان د روژو نیولو حکم ورکړهٔ، او دا (ئے هم حکم ورکړهٔ) چه د مال غنیمت پنځمه حصه به (د خدائے په لار کښې) ورکوئے. او هغوي ئے د دباء حنتم او مزفت د استعمال نه منع کړل. او ابو جمره به اکثر نقیر هم وے او اکثر به ئے مقیر هم وے. دے سره حضورؐ ارشاد او فرمائیلو، چه دا خبرے تاسو یادے کړئے او خپل ورستي خلق ترے نه خبر کړئے [1].

۱. دا حدیث شریف د کتاب الایمان په آخر کښې تیر شویدے.

## باب۶۸: اَلرِّحْلَةِ فِی الْمَسْئَلَةِ النَّازِلَةِ.

## باب۶۸: د پیښیدونکے مسئلے د پاره د سفر کولو بیان.

۸۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِیْدِ بْنِ اَبِیْ حُسَیْنٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِیْ مُلَیْکَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ اَنَّهٗ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِاَبِیْ اِهَابِ بْنِ عَزِیْزٍ فَاَتَتْهُ امْرَاَةٌ فَقَالَتْ اِنِّیْ قَدْ اَرْضَعْتُ عُقْبَةَ وَالَّتِیْ

۸۸: محمد بن مقاتل. ابوالحسن. عبدالله عمر بن سعید بن ابي حسین. عبدالله بن ابي ملیکه. عقبه بن حارث وائي، چه هغه د ابو اِهاب بن حارث لورسره نکاح او کړه. هغے نه پس یوه ښځه راغله او بیان ئے او که چه ما عقبه له اودے ښځے له چه عقبه ورسره نکاح کړے ده. تے ورکړے دے (نو دا دواړه رضاعي ورور خور دي، دے کښې نکاح درسته نهٔ ده) عقبه ورته اووے، ماته نهٔ ده معلومه، چه تا ماله

تَزَوَّجَ بِهَا قَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا اَعْلَمُ اَنَّكِ اَرْضَعْتِنِيْ وَلَا اَخْبَرْتِنِيْ فَرَكِبَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ وَقَدْ قِيْلَ فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ وَ نَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهٗ.

پئے راکړے دي، او نۀ ذَ دے نه مخکښ دے چرته ماله دَ دے خبرے اطلاع راکړے ده بيا عقبه (ذمکے نه) سور شو، رسول اللّٰه صلعم له مدينے ته لاړ او حضورؐ نه ئے دَ دے مسئلے پښتنه اوکړه، نو رسول اللّٰه صلعم ورته او فرمائيل، چه اوس تۀ څنګه (هغے سره تعلق ساتلے شے) حالانکه دا بيان چه اوشو. دے نه دَ حرمت شبهه پيدا کيږي. نو عقبه هغه ښځه پريښوده، او هغے بل سړي سره نکاح اوکړه[۱].

ف: دے حديث نه ثابته شوه، چه رضاعت ثابت کيدو دَ پاره دَ نورو معاملاتو په شان دَ دوو ګواهانو ضرورت نشته، بلکه صرف دَ يوے ښځے په وينا هم رضاعت ثابت کيږي. (خلافًا للاحناف)

۱. عقبه رضي اللّٰه عنه د احتياط په خاطر هغه ښځه پريخودله ځکه چه شک پيدا شوے وو نو دَ شک د خبرے نه ځان ساتل غوره دي. تر څو چه د مسئلے تعلق دے نو د يو ښځے ګواهي به دے حقله کافي نه ده د احتياط په خاطر نبي عليه السلام هغه ته او فرمايل. دَ جمهورو امامانو په نزد د دوو ښځو ګواهي ضروري ده.

## بَابٌ ۲۹ : التَّنَاوُبِ فِي الْعِلْمِ.

باب ۲۹ : علم حاصلولو کښ دَ وار مقررولو بيان.

۸۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح قَالَ وَ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ اَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابن اَبِيْ ثَوْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ اَنَا وَ جَارٌ لِّيْ مِنَ الْاَنْصَارِ فِيْ بَنِيْ اُمَيَّةَ بْنِ بُنِ زَيْدٍ وَّهِيَ مِنْ عَوَالِي الْمَدِيْنَةِ وَ كُنَّا نَتَنَاوَبُ النُّزُوْلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْزِلُ يَوْمًا وَ اَنْزِلُ يَوْمًا فَاِذَا نَزَلْتُ جِئْتُهُ بِخَبَرِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ مِنَ الْوَحْيِ وَ غَيْرِهٖ وَ اِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ

۸۹ : ابو اليمان. شعيب. زهري. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن ابو عوانه عبداللّٰه بن عباس. حضرت عمرؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، چه زۀ او يو انصاري خما ګوانډي بني اُميه بن زيد (محله) کښ اوسيدو، او دا مقام دَ مدينے په بلندئ باندے وو، او مونږ به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته وار په وار راتلو. يوه ورځ به هغه راتۀ، او يوه ورځ به زۀ په کومه ورځ چه به زۀ راتلم، دَ هغے ورځ خبر يعني دَ وحي وغيره حالات به ما هغۀ ته رسَول. او په کومه ورځ چه به هغه راتۀ، نو هغۀ به هم دغسے کول. يوه ورځ به خپل وارخما انصاري دوست دَ حضورؐ په خدمت کښ حاضر شو، او دَ هغے ځائے نه چه واپس شو، نو خما

ذٰلِكَ فَنَزَلَ صَاحِبِي الْاَنْصَارِيُّ يَوْمَ نَوْبَتِهٖ فَضَرَبَ بَابِيْ ضَرْبًا شَدِيْدًا فَقَالَ اَثَمَّ هُوَ فَفَزِعْتُ اِلَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَدَثَ اَمْرٌ عَظِيْمٌ فَدَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَةَ فَاِذَا هِيَ تَبْكِيْ فَقُلْتُ اَطَلَّقَكُنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَآ اَدْرِيْ ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ وَ اَنَا قَآئِمٌ اَطَلَّقْتَ نِسَآءَ كَ قَالَ لَا فَقُلْتُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ.

دروازه ئے ډیر زور سره او ټکوله او (څما نوم ئے واخستٰ) وے وئيل چه هغه دلته شته. زهٔ اُویریدم او هغهٔ له راووتم، نو هغهٔ اووے، چه نن یوه لویه واقعه پیښه شوے ده. (یعني رسول الله صلعم خپلو بیبیانو له طلاق ورکهٔ) نو زه (بي بي) حفصےؓ له ورغلم، نو هغے ژړل. ما هغے ته اووے، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم تاسوله طلاق درکړے دے، هغے اووے، ماته نهٔ ده معلومه. بیازهٔ نبيؐ له ورغلم، او په ولاړه مِ عرض اوکه، چه آیا تاسو خپلو بیبیانوله طلاق ورکهٔ، نو حضورؐ او فرمائیل، نه. ما اووے، الله اکبر.

باب ٤٠: اَلْغَضَبِ فِي الْمَوْعِظَةِ وَالتَّعْلِيْمِ اِذَا رَاٰى مَا يَكْرَهُ.

باب ٤٠: نصیحت او تعلیم کښې چه څوک خرابه خبره اویني، نو دَ غصے کولو بیان.

٩٠: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ ابْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَآ اَكَادُ اُدْرِكُ الصَّلٰوةَ مِمَّا يُطَوِّلُ بِنَا فُلَانٌ فَمَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَوْعِظَةٍ اَشَدَّ غَضَبًا مِّنْ يَّوْمَئِذٍ فَقَالَ اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّكُمْ مُنَفِّرُوْنَ فَمَنْ صَلّٰى بِالنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَاِنَّ فِيْهِمُ الْمَرِيْضَ وَالضَّعِيْفَ وَ ذَاالْحَاجَةِ.

٩٠: محمد بن کثیر. سفیان. ابوخالد. قیس بن ابي حازم. ابو مسعود انصاري نه نقل دے، وائي یو سړے راغے، او وے وئیل، یا رسول الله کیدے شي چه زهٔ مونځ (جماعت سره) لاندے نهٔ کړم، ځکه چه فلانے سړے مونږ ته ډیر اوږدهٔ مونځونه راکوي. ابومسعودؓ وائي چه ما نصیحت کولو کښې دَ دے ورځے نه زیات هیڅ کله نبيؐ غصه کښې نهٔ وولیدلے. حضورؐ او فرمائیل، اے خلقو، تاسو (دومره سختي کولو سره دَ دین نه) دَ خلقو نفرت پیدا کوئے (ګورے) څوک چه خلقوله مونځ ورکوي، هغه له پکار دي چه (هر رکن ادا کولو کښې) تخفیف اوکړي، په دے وجه مقتدیانو کښې مریضان هم وي، کمزوري هم وي او ضرورت واله هم وي.

٩١: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرِ الْعَقَدِيُّ قَالَ ثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالِ الْمَدِيْنِيُّ

٩١: عبدالله بن محمد. ابو عامر عقدي. سلیمان بن بلال مدیني. ربیعه بن ابو عبدالرحمٰن. یزید (دَ منبعث آزاد کرده غلام) زید بن خالد جهنيؓ نه روایت کوي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم

عَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ يَزِيْدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ...... عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَلَهُ رَجُلٌ عَنِ اللُّقْطَةِ فَقَالَ اعْرِفْ وِكَاءَ هَا اَوْ قَالَ وِعَاءَ هَا وَ عِفَاصَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اسْتَمْتِعْ بِهَا فَاِنْ جَآءَ رَبُّهَا فَاَدِّهَآ اِلَيْهِ قَالَ فَضَآلَّةُ الْاِبِلِ فَغَضِبَ حَتّٰى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ اَوْ قَالَ احْمَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَآؤُهَا وَ حِذَآءُ هَا تَرِدُ الْمَآءَ وَ تَرْعَى الشَّجَرَ فَذَرْهَا حَتّٰى يَلْقَاهَا رَبُّهَا قَالَ فَضَآلَّةُ الْغَنَمِ قَالَ لَكَ اَوْ لِاَخِيْكَ اَوْ لِلذِّئْبِ.

نه يو سړي ذ غورځيدلي [۱] (پريوتي) څيز ذ حکم تپوس اوکړ، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، چه ذ هغې بندش ذ تړلو مزے او پيژنه بيا يو کال پورې ذ هغې پيژندګلو کوشش کوه. پس ذ هغې که څوک مالک نۀ پيدا نشي، نو فائده ترې اخله، او که ذ هغې مالک راشي، نو هغۀ ته ئې حواله کړه. بيا هغې سړي اووے که ورک شوے اوښ څوک بيا مومي، نو حضور ورته په قهر شو. تر دے چه ذ حضورؐ دواړه آننګي سره (سُرخ) شو (ياراوي اووے چه د حضورؐ مخ مبارک سُر شولو) او حضورؐ او فرمائيل، ستا هغې اُوښ سره څۀ کار دے. ذ هغۀ مشک او د هغۀ سُم (ذ هغۀ موزے) هغۀ سره دي. اوبو له به خي. اُوبه، به څکي، او اُونے (پاڼړے) به خوري، نو هغه پريږده، تردے چه مالک ئې پيداشي. بيا هغې سړي اووے، چه ذ ورکې شوے چيلئې نيول څنګه دي، نو حضورؐ ورته او فرمائيل (هغه اونيسه، ځکه چه) هغه ستاده، يا ستاذ ورور ده، او که ذ چا په لاس ورنغله، نو ذ شر مخ ده.

۱. پريوتے څيز ته لقطه وائي دے حديث شريف کښ د هغې حکم بيان شويدے.

۹۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَشْيَاءَ كَرِهَهَا فَلَمَّا اُكْثِرَ عَلَيْهِ غَضِبَ ثُمَّ قَالَ لِلنَّاسِ سَلُوْنِيْ عَمَّا شِئْتُمْ فَقَالَ رَجُلٌ مَّنْ اَبِيْ قَالَ اَبُوْكَ حُذَافَةُ فَقَامَ اٰخَرُ فَقَالَ مَنْ اَبِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَبُوْكَ سَالِمٌ مَّوْلٰى شَيْبَةَ فَلَمَّا رَاٰى عُمَرُ مَا فِيْ وَجْهِهٖ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا نَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

۹۲ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد. ابوبرده. ابو موسٰي نه روايت کوي، يو ځلې ذ حضورؐ نه ذ څو خبرو تپوس اوشو، چه ذ حضورؐ ذ مزاج خلاف وے، ذ حضورؐ نه کثرت سره تپوسونه اوشو، نو حضورؐ له غصه ورغله او خلقوته ئې او فرمائيل، چه څۀ موخوښه وي، ذ هغې مانه تپوس اوکړئې نو يو سړي اووے، چه څما پلار څوک دے، حضورؐ ورته او فرمائيل چه ستا پلار حُذافه دے. بيابل سړے اودريد، او هغۀ اووے، يا رسول اللّٰه، څما پلار څوک دے؟ حضورؐ ورته او فرمائيل. ستا پلار سالم دے ذ شيبه مولٰي. بيا چه عمرؓ ذ حضورؐ په مخ مبارک ذ قهر آثار اوليدل، نو هغۀ عرض اوکړ، يا رسول اللّٰه، مونږ اللّٰه تعالٰي ته توبه کوو [۱].

(مولٰي: مددګار. آزاد کرده. غلام)

۱ . عبث او بے فائدے سوال کول ذ یو عالم نه د ناپوهئ او د بیوقوفئ خبره ده. بیا د الله تعالیٰ د رسول صلي الله علیه وسلم عبث سوال کول ډیره خرابه خبره ده. د بیخایه پښتنو' عبث سوالونو باندے نبي علیه السلام خفه شو او په غصه ئے او فرمایل چه څه سوال کوئي نو کوئي. اگرچه نبي علیه السلام انسان وو لیکن د الله تعالیٰ لوئے رسول وو نو د وحي په ذریعه هر څه حالات هغه ته معلومیدل چه د کوم به ضرورت پیښیدلو.

## بَاب ۷۱: مَنْ بَرَكَ رُكْبَتَيْهِ عِنْدَ الْإِمَامِ اَوِ الْمُحَدِّثِ.

## باب ۷۱: امام یا محدث سره (ذ ادب نه) ذ دو' زانو ناستے بیان.

۹۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُذَافَةَ فَقَالَ مَنْ اَبِيْ قَالَ اَبُوْكَ حُذَافَةُ ثُمَّ اَكْثَرَ اَنْ يَّقُوْلَ سَلُوْنِيْ فَبَرَكَ عُمَرُ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَّ بِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَّ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيًّا ثَلٰثًا فَسَكَتَ.

۹۳ : ابوالیمان. شعیب. زهري. انس بن مالکؓ وائي. رسول الله صلي الله علیه وسلم (یوه ورځ) راووت' نو عبدالله بن حذافه اودرید' او هغهٔ اووے یا رسول الله' خما پلار څوک دے. حضورؐ ورته او فرمائیل' ستا پلار حذافه دے. بیا حضورؐ په بیابیا فرمائیل' چه (څهٔ موخوښه وي) مانه تپوس اوکړئي. عمر رضي الله عنه چه دا حالت اولید' نو (ذ ادب نه) په زنګونو کیناست. او دے خله ئے اووے چه مونږ ۱. راضي یو ذ الله نه چه خمونږ پروردګار دے او ذ اسلام نه چه خمونږ دین دے او ذ محمد صلي الله علیه وسلم نه چه خمونږ نبي دے' نو ذ حضورؐ غصه یخه شوه' او حضورؐ غلے' چپ شولو.

۱ . د حضرت عمر رضي الله عنه مطلب داوو چه کله مونږ الله تعالیٰ رب اومنلو' او اسلام دین مو قبول کړو او محمد صلي الله مو نبي اومنلو بیا د زیاتي سوالونو کولو مونږ ته ضرورت نشته.

## بَاب ۷۲: مَنْ اَعَادَ الْحَدِيْثَ ثَلٰثًا لِيُفْهَمَ

## باب ۷۲: ذ هغے سړي بیان چه ذ بنه پوهیدلو ذ پاره یوه خبره درے خله اوکړي.

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا وَ قَوْلَ الزُّوْرِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ بَلَّغْتُ ثَلٰثًا.

رسول الله صلعم: اَلَا وَ قَوْلَ الزُّوْرِ : او فرمائیل' او برابر ذ دے تکرار ئے کولو. او ابن عمرؓ وائي چه نبي صلعم: هَلْ بَلَّغْتُ درے خله او فرمائیل.

۹۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَةُ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ ثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُثَنّٰى

۹۴ : عبده. عبدالصمد. عبدالله بن مثنیٰ ثمامه بن عبدالله بن انس. انسؓ ذ نبي

قَالَ ثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ اِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ اَعَادَهَا ثَـلٰثًا حَتّٰى تُفْهَمَ عَنْهُ وَ اِذَا اَتٰى عَلٰى قَوْمٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلٰثًا.

صلی اللّه علیه وسلم نه روایت کوي' چه حضورؐ به کله څه خبره کوله' نودرې خله به ئې کوله' چه خلق پرې ښه پوه شي' او کله چه به ئې خلقوته تشریف اوړلو' او هغوي ته به ئې سلام کولو' نو درې خله به ئې سلام کولو.

۹۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بَشْرٍ عَنْ يُوْسُفَ بْنِ مَاهِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو وَ قَالَ تَخَلَّفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ سَافَرْنَاهُ فَاَدْرَكْنَا وَقَدْ اَرْهَقْنَا الصَّلٰوةَ صَلٰوةَ الْعَصْرِ وَ نَحْنُ نَتَوَضَّأُ فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلٰى اَرْجُلِنَا فَنَادٰى بِاَعْلٰى صَوْتِهٖ وَيْلٌ لِّلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا.

۹۵ : مسدد. ابوعوانه. ابوبشر. یوسف بن ماهک. عبداللّه بن عمرؓ وائي' یو سفر کښې رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم خمونږ نه ورستو پاتې شوې وو' کوم وخت چه حضورؐ مونږ ته قریب شو نو ذ مازیګر ذ مونځ وخت تنګ (لږ) وو. او مونږ اودس کولو' نو (ذ تادئ نه) مونږ په خپلو پښو لوند لاس ګرځولو نو حضورؐ په اوچت آواز دوه یا درې خله او فرمائیل چه: وَيْلٌ لِّلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا (یعني ذ اُور ذ عذاب نه ذ پښو هغې ګټنوله خرابي ده' چه اودس کښې اونهٔ وینزلې شي یا اوچې پاتې شي).

## باب ۷۳: تَعْلِيْمِ الرَّجُلِ اَمَتَهٗ وَ اَهْلَهٗ.

## باب ۷۳: ذ سړي خپلې وینځې او ذ خپل کور خلقوته ذ تعلیم ورکولو بیان.

۹۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ سَلَامٍ قَالَ اَنَا الْمُحَارِبِيُّ نَا صَالِحُ بْنُ حَيَّانَ قَالَ قَالَ عَامِرٌ الشَّعْبِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ لَهُمْ اَجْرَانِ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اٰمَنَ بِنَبِيِّهٖ وَ اٰمَنَ بِمُحَمَّدٍ وَّالْعَبْدُ الْمَمْلُوْكُ اِذَا اَدّٰى حَقَّ اللّٰهِ وَ حَقَّ مَوَالِيْهِ وَ رَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهٗ اَمَةٌ يَطَؤُهَا

۹۶ : محمد بن سلام محاربي. صالح بن حیان. عامر شعبي. ابوبرده ذ خپل پلار نه روایت کوي' چه رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم او فرمائیل. درې سړي دي چه ده هغوي ذ پاره دونړه (دوچند) ثواب دې (یو) هغه سړې' چه ذ اهل کتابو نه وي. په خپل نبي ئې ایمان راوړې وي' او په محمد صلي اللّه علیه وسلم هم ایمان راوړي' او (دویم) مملوک غلام' هر کله چه هغه ذ اللّه حق او ذ خپلو مالکانو حق ادا کوي او (دریم) هغه سړې' چه هغهٔ سره ذ هغهٔ وینزه وي' چه هغې سره هغه کوروالې کوي. هغې ته ئې ادب اوښودلو اوښهٔ ادب ئې ورته اوښودلو' او هغې

فَـأَدَّبَهَـا فَـأَحْسَنَ تَـأْدِيْبَهَـا وَ عَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيْمُهَا ثُمَّ اَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا فَلَـهُ اَجْرَانِ ثُمَّ قَالَ عَامِرٌ اَعْطَيْنَا كَهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ قَدْ كَانَ يُرْكَبُ فِيْمَا دُوْنَهَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

له نې تعليم ور كړلو، او ښهٔ تعليم نې ور كړلو. بيائې هغه آزاده كړه، او ورسـره نې نكاح او كړه. هغهٔ ذ پاره دونړه ثواب دے. بيا عامر (چه ذ دے حديث راوي دے) ابو صالح ته اووے، چه دا حديث مونږ تا ته بغير ذ څهٔ قسم تكليف نه دركړلو، كني ذ دے نه كم حديث ذ پاره به مدينے پورے سفر كولے شو.

## باب ۷۴: عِـظَةِ الْاِمَامِ النِّسَآءَ وَ تَعْلِيْمِهِنَّ.

## باب ۷۴: ذ امام ښـځو ته ذ نصيحت كولو او ذ هغوي ذ تعليم بيان.

۹۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَيُّوْبَ قَالَ سَمِعْتُ عَطَـآءَ بْـنَ اَبِيْ رِبَاحٍ قَالَ سَمِعْتُ بْنَ عَبَّاسٍ قَـالَ اَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ عَطَآءٌ اَشْهَدُ عَلَـى ابْـنِ عَبَّـاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ وَ مَعَهُ بِلَالٌ فَظَنَّ اَنَّهُ لَمْ يُسْمِعِ النِّسَآءَ فَوَعَظَهُنَّ وَ اَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَتِ الْمَرْاَةُ تُلْقِي الْقُـرْطَ وَالْخَـاتَمَ وَ بِلَالٌ يَـأْخُذُ فِيْ طَرَفِ ثَوْبِهٖ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَطَـآءٍ قَـالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۷: سـليمـان بـن حـرب. شعبـه. عـطـاء بـن ابـي ربـاحؒ وائـي، ابـن عبـاسؓ قسـم سـره بيـان او كـړ، چـه (يو خلے) ذ آختـر پـه موقع چـه حـضـور اكـرمؐ ذ سـړو ذ صف نـه تيـر شـو ذ ښـځـو صفـونـوتـه اورسيـد (هـغـه وخـت) ذ حـضـورؐ ملـگـرے بـلالؓ وو. حـضـورؐ دا گـمـان او كـړ چـه شـايـد ښـځـو خـطـبـه واونـه ريـده، نـو حـضـورؐ هـغـوي تـه نـصيـحـت او كـړ، او هـغـوي تـه نـے ذ صـدقـے (وركـولـو) حـكـم او كـړ، نـو ښـځـے ښـځـو، والـيے او ځـنـے گوتـه غُرځول شروع كړل (چا څهٔ بل څهٔ كالي) او بلالؓ به ذ خپلے كپړے په اړخ كښې جمع كول.

## بـاب ۷۵: الْـحِـرْصِ عَـلَـى الْحَدِيْثِ.

## باب ۷۵: ذ حـديث نبـويؐ پـه آوريدو ذ حرص بيان.

۹۸: حَـدَّثَـنَا عَبْـدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْـدِ الـلّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ عَـمْرِو بْنِ اَبِيْ عَمْرٍو وَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِنِ الْمُقْبَرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

۹۸: عبـدالـعـزيـز بـن عبـدالـلّٰـه. سـليـمـان. عـمـرو بـن ابـي عـمـرو. سـعيـد بـن ابـي سـعيـد مقبـري. ابـوهـريـرهؓ نـه روايـت كـوي، هغهٔ اووے، يا رسـول الـلّٰـه، ذ قيـامـت پـه ورځ بـه ذ تـولـو

اَنَّهُ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِكَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ ظَنَنْتُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ اَنْ لَّا يَسْاَلَنِيْ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ اَحَدٌ اَوَّلَ مِنْكَ لِمَا رَاَيْتُ مِنْ حِرْصِكَ عَلَى الْحَدِيْثِ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ خَالِصًا مِنْ قَلْبِهٖ اَوْ نَفْسِهٖ.

خلقونه زياته حصه ستاسو دَ شفاعت نه چاته رسي. رسول اللّٰه صلعم ورته او فرمائيل، ماته يقيني طور سره خيال وو، ابوهريرهؓ چه ستانه مخکښ به دا خبره ما نه هيڅوک نهٔ تپوسي. ځکه چه ما ستا حرص دَ حديث په حقله ليدلے دے. دَ ټولو نه زيات فيضياب به ځما دَ شفاعت نه دَ قيامت په ورځ هغه سړے وي، چه دَ زړهٔ په صدق سره يا خپل خالص زړهٔ سره لَا اِلٰهَ، اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ اووائي[۱].

۱. يعني په عقايدو کښ پوخ وي او يقين ئے کچه نه وي.

## بَاب ۴۶: كَيْفَ يُقْبَضُ الْعِلْمُ

وَ كَتَبَ عُمَرُ ابْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اِلٰى اَبِيْ بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ اُنْظُرْ مَا كَانَ مِنْ حَدِيْثِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاكْتُبْهُ فَاِنِّيْ خِفْتُ دُرُوْسَ الْعِلْمِ وَ ذَهَابَ الْعُلَمَآءِ وَلَا تَقْبَلْ اِلَّا حَدِيْثَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلْيُفْشُوا الْعِلْمَ وَلْيَجْلِسُوْا حَتّٰى يُعَلَّمَ مَنْ لَّا يَعْلَمُ فَاِنَّ الْعِلْمَ لَايَهْلِكُ حَتّٰى يَكُوْنُ سِرًّا.

## باب ۴۶: علم به څنګه پورته کولے شي.

او عمر بن عبدالعزيزؒ (خپل نائب) ابوبکر بن حزم ته (مدينه کښ) دا اوليکل، چه ګوره، تاسره چه دَ رسول اللّٰه صلعم حديثونه څومره دي، هغه اوليکه، ځکه چه ماسره دَ علم دَ نابود کيدو او دَ علماؤ دَ معدوم کيدو ويره ده، او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه سوا د بل چا حديث مه قبلوه. او پکار دي، چه ټول خلق دَ علم اشاعت اوکړي، او علماء عامو مجلسونو کښ کيني، او دَ علم اشاعت کړي دَ پاره دَ دے چه څوک نهٔ پوهيږي، هغوي پوه شي، ځکه چه علم پټولو سره ورکيږي.

۹۹: حَدَّثَنَا الْعَلَآءُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ بِذٰلِكَ يَعْنِيْ حَدِيْثَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اِلٰى قَوْلِهٖ ذَهَابَ الْعُلَمَاءِ.

۹۹: علاء بن عبدالجبار. عبدالعزيز بن مسلم، عبداللّٰه بن دينار دا يعني حديث دَ عمر بن عبدالعزيز دَ: ذَهَابَ الْعُلَمَاءِ: پورے روايت کړے دے.

۱۰۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ

۱۰۰: اسمٰعيل بن ابي اويس. مالک. هشام

اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرُوْ بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ اِنْتِزَاعًا يَّنْتَزِعُهٗ مِنَ الْعِبَادِ وَلٰكِنْ يَّقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَآءِ حَتّٰى اِذَا لَمْ يَبْقَ عَالِمٌ اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوْسًا جُهَّالًا فَسُئِلُوْا فَاَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوْا وَ اَضَلُّوْا قَالَ الْعَزِيْزِيُّ نَا عَبَّاسٌ قَالَ ثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ هِشَامٍ نَحْوَهٗ.

بن عروه. عروه. عبداللّٰه بن عمرو بن عاص وائي ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا آوريدلے دي، چه اللّٰه به علم داسے نهٔ پورته کوي، چه دَ بنديانو دَ سينو نه به علم اوباسي، بلکه دَ علماؤ په مرګ به علم پورته کړي، تردے چه هيڅوک عالم به باقي پاتے نشي نو خلق به جاهلان خپل سرداران جوړ کړي، او دَ هغوي نه به (دَ ديني مسائلُ) پښتنه کيږي، او هغوي به بے علمه فتوے ورکوي (خپله هم) ګمراه به وي او نور به هم ګمراه کوي.

**باب ۷۷:** هَلْ يُجْعَلُ لِلنِّسَآءِ يَوْمٌ عَلٰى حِدَةٍ فِي الْعِلْمِ.

**باب ۷۷:** آيا دَ ښځو دَ تعليم دَ پاره څهٔ خاص ورځ مقررول پکار دي.

**١٠١:** حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ بْنُ الْاَصْبَهَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النِّسَآءُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ فَاجْعَلْ لَنَا يَوْمًا مِّنْ نَّفْسِكَ فَوَعَدَهُنَّ يَوْمًا لَقِيَهُنَّ فِيْهِ فَوَعَظَهُنَّ وَ اَمَرَهُنَّ فَكَانَ فِيْمَا قَالَ لَهُنَّ مَا مِنْكُنَّ امْرَاَةٌ تُقَدِّمُ ثَلٰثَةً مِّنْ وَّلَدِهَا اِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِّنَ النَّارِ فَقَالَتِ امْرَاَةٌ وَّاثْنَيْنِ فَقَالَ وَاثْنَيْنِ.

**١٠١:** آدم. شعبه. ابن اصبهاني. ابو صالح. ذکوان. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت کوي. وے فرمائيل ښځو، نبي صلعم ته عرض اوکړ، چه (تاسو نه فائده اوچتولو کښې) سړي خمونږ نه مخکښې شوے دي. تاسو خمونږ دَ پاره دَ خپل طرف نه څهٔ ورځ مقرر کړئے، نو حضورؐ هغوي سره دَ څهٔ ورځے وعده اوکړه. په هغه ورځ حضورؐ هغوي سره يو ځائے شو، او نصيحت ئے ورته اوکړ، او دَ هغوي دَ حال مناسب ئے ورته دَ عبادت حکم اوکړ. دَ هغے خبرو نه چه حضورؐ هغوي ته فرمائيلے وے، (يوه خبره) داوه، چه کومه ښځه تاسو نه درے بچي مخکښې اوليږي (يعني دَ هغے درے ځامن دَ هغے مخکښې مړه شي) نو هغوي به دَ هغے دَ پاره دَ دوزخ دَ اُور نه پرده شي. يوے ښځے اُوے، اَو که څوک دوه بچي (که ځامن وي که لونړه مخکښې اوليږي (يعني دوه بچي ئے مړهٔ شي) نو حضورؐ او فرمائيل، دَ دوه ؤ هم دغه حکم دے.

١ . يعني چه كوم بچے يې روي ذ هغه مرګ به د مور د پاره د بخښنے ذريعه شي اول خل ئے درے بچي اويل، بيادوه، يو بل روايت كښ د يو بچي د مرګ هم دا حكم راغلے دے.

١٠٢ : حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ ثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَصْبَهَانِيِّ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَصْبَهَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهُرَيْرَةَ قَالَ ثَلٰثَةً لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ.

١٠٢ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. عبدالرحمٰن بن اصفهاني. ذكوان. ابوسعيدؓ ذ نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا روايت كړے دے، او عبدالرحمٰن بن اصبهاني نه رايت دے. بيان ئے اوكړ چه ما ذ ابو حازم نه ذ حضرت ابوهريرهؓ روايت واوريدو، هغهٔ او فرمائيل، داسے درے بچي چه لا بالغ شوے ١ نهٔ وي.

١ . دا حديث شريف د رومبني حديث شريف تائيد دے دے روايت كښ دالاصبهاني د څوئ نوم عبدالرحمٰن هم ذكر دے د بالغ كيدونه مخكښ د ماشوم بچي د مرګ ډير غم وي له دے كبله د مور د بنبلو ذريعه شوه.

باب٧٨: مَنْ سَمِعَ شَيْئًا فَلَمْ يَفْهَمْهُ فَرَاجَعَهُ حَتّٰى يَعْرِفَهُ.

باب٧٨: ذ هغے سړي بيان چه څهٔ خبره واوري او په هغے پوه نشي. بيا دوباره تپوس او كړي، تر دے چه پوه شي.

١٠٣ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَنَا نَافِعُ ابْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَا تَسْمَعُ شَيْئًا لَّا تَعْرِفُهُ اِلَّا رَاجَعَتْ فِيْهِ حَتّٰى تَعْرِفَهُ وَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حُوْسِبَ عُذِّبَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ اَوَ لَيْسَ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا قَالَتْ فَقَالَ اِنَّمَا ذٰلِكَ الْعَرْضُ وَلٰكِنْ مَّنْ نُّوْقِشَ الْحِسَابَ يَهْلِكْ.

١٠٣ : سعيد بن ابي مريم. نافع ابن عمر. ابن ابي مليكهٔ وائي، ذ نبي عليه السلام نه بي بي عائشهؓ چه به داسے څهٔ خبره واوريده، چه په هغے به پوه نهٔ شوه، نو بيا به ئے دوباره په هغے كښ تفتيش كولو، چه ښهٔ پرے پوه شي. يو خلے نبي صلعم او فرمائيل (قيامت كښ) چه ذ چا حساب واخستے شي، په هغهٔ به (ضرور) عذاب كيږي. بي بي عائشهؓ وائي (دے آوريدو سره) ما اووے، اللّٰه پاک خو دا فرمائي چه: فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا (نوزر ده چه ذ هغهٔ نه به آسان حساب واخستے شي) حضورؐ او فرمائيل، دا (حساب چه ذ هغے ذكر دے آيت كښ دے، حقيقت كښ حساب نهٔ دے بلكه) صرف پيش كول دي. ليكن ذ كوم سړي نه چه حساب كښ جانچ پړتال اوشي، نو هغه به (يقينًا) هلاک شي.

۱. دا د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها د علم د شوق او د پوهې خبره ده. چه کومه مسئله کښې به ئې شک شو. نو زر فوراً به ئې تحقيق د پاره پښتنه کوله د الله تعالیٰ سره پيشي د هر چا کيږي. ليکن چه کله د پيشئ په وخت د حساب تحقيق شروع شي نو د سزا خطره زياته ده.

بـاب ۷۹: لِيُبَلِّغِ الْعِلْمَ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۷۹: کوم خلق چه حاضر دي هغوي دې داسې خلقوته علم اورسوي چه غائب دي. دا مضمون حضرت ابن عباسؓ د حضور صلي الله عليه وسلم نه نقل کړې دې.

۱۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدٌ هُوَابْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ اَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيْدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوْثَ اِلٰى مَكَّةَ ائْذَنْ لِيْ اَيُّهَا الْاَمِيْرُ اُحَدِّثُكَ قَوْلًا قَامَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ سَمِعَتْهُ اُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِيْ وَ اَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِيْنَ تَكَلَّمَ بِهٖ حَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ فَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ يَّسْفِكَ بِهَا دَمًا وَّلَا يَعْضِدُ بِهَا شَجَرَةً فَاِنْ اَحَدٌ تَرَخَّصَ لِقِتَالِ رَسُوْلِ اللّٰهِ فِيْهَا فَقُوْلُوْآ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ اَذِنَ لِرَسُوْلِهٖ وَلَمْ يَاْذَنْ لَكُمْ وَ اِنَّمَا اَذِنَ لِيْ فِيْهَا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ ثُمَّ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْاَمْسِ وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَقِيْلَ لِاَبِيْ شُرَيْحٍ مَا قَالَ عَمْرٌو قَالَ اَنَا

۱۰۴: عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد بن ابي اُسيد. ابو شريحؓ نه روايت دې چه عمرو بن سعيد بن عاص (دَ مدينې والي) چه ابن زبيرؓ سره دَ جنګ کولو دَ پاره لښکرې مکې طرف ته ليږلې، نو ما هغهٔ ته اووې، اې اميره، ماته اجازت راکړه، نو زهٔ تاته يوه داسې خبره اوکړم، چه هغه نبي صلي الله عليه وسلم دَ فتح په دونمه ورځ په ولاړه فرمائيلې وه، چه هغه خما دواړو غوږونو آوريدلې ده، او هغه خما زړهٔ ياده ساتلې ده، او کوم وخت چه حضورؐ دا خبره فرمائيله، نو خما سترګو حضورؐ ته کتل. حضورؐ دَ الله حمد و ثنا بيان کړه. بيائې او فرمائيل، چه مکه کښې (جنګ او قتل وغيره) خدائې حرام کړې دي او خلقو حرام نهٔ کړل، نو کوم سړې چه په الله او په قيامت ايمان لري، هغه له جائز نهٔ دي، چه مکه کښې وينې تونې کړي، او نهٔ دا جائز دي چه هلته څهٔ اُونه اووهلې شي. بيا که څوک سړې دَ رسول الله صلعم جنګ سره (دَ دې څيزونو) جواز بيان کړي نو هغهٔ ته اووايه، چه الله خپل رسول ته اجازت ورکړې وو، او تاله ئې اجازت نه دې درکړې، او ماله ئې هم هلته دَ ورځې يوه کينته قدرې اجازت راکړې وو، نو نن دَ هغې حرمت داسې دې، څنګه چه پرون وو. بيا حاضر له پکار دي، چه هغه غائب ته (دا خبر) اورسوي ابو شريح ته اوونيلې شو، چه (دې حديث آوريدو سره) عمرو څهٔ جواب اوکهٔ، نو هغهٔ اووې (دا جواب ئې اوکهٔ، چه) اې ابو شريح، زهٔ تا نه

أَعْلَمُ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ لَا تُعِيْذُ عَاصِيًا وَّلَا فَآرًّا بِدَمٍ وَّلَا فَآرًّا بِخَرْبَةٍ.

زيات پوهيږم، چه حرم يو باغي ته او، خوک چه خون او کړي او تښتي هغهٔ ته پناه نهٔ ورکوي.

۱. عمرو بن سعيد ابو شريح رضي الله عنه ته غلط جواب ورکړے وو عبدالله بن زبير رضي الله عنهما نه باغي وو نه ئے د چا بے خايه وينه توبه کړے وه نه وران کارے وو بلکے عمرو بن سعيد پخپله باغي او فسادي وو.

۱۰۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ ثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاِنَّ دِمَآءَ كُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ قَالَ مُحَمَّدٌ وَّ اَحْسِبُهُ قَالَ وَ اَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا اَلَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ مِنْكُمُ الْغَائِبَ وَ كَانَ مُحَمَّدٌ يَقُوْلُ صَدَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ ذٰلِكَ اَلَاهَلْ بَلَّغْتُ مَرَّتَيْنِ.

۱۰۵ : عبدالله بن عبدالوهاب. حماد. ايوب. محمد. ابوبكرؓ (يو خلے) ذ نبي صلعم ذكر اوكه، چه حضورؐ او فرمائيل، ستاسو وينه او ستاسو مال (محمد چه ذ دے حديث راوي دے) وائي، خما خيال دے چه (دائے هم او فرمائيل) او ستاسو عزت، په تاسو خلقو داسے حرام دے لكه ذ دے حرمت چه ستاسو دے ورځ او ستاسو دے مياشت كښ دے. آګاه اوسئے، تاسو كښ حاضر له پكار دي چه غائب ته (دا خبر) اورسوي (او محمد راوي به وے، چه رسول الله صلعم ريښتيا فرمائيلے دي هم دغسے ده) بيا دوه ځله حضورؐ او فرمائيل، آګاه شئے، آيا ما (دا حق پيغام تاسو ته) اورسولو.

ف: دا واقعه ذ حجة الوداع ذ خطبے ده. ذ دغے ورځ نه مراد ذ عرفے ورځ ده، او ذ دغے مياشتے نه مراد ماه ذي الحجة الحرام ده. بل حديث كښ ذ دے نه زيات تفصيل راغلے دے.

## باب ۸۰: اِثْمِ مَنْ كَذَبَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۸۰: هغه سړے څومره ګناه كوي چه په نبي صلي الله عليه وسلم دروغ وائي.

۱۰۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ قَالَ اَنَا شُعْبَةُ قَالَ...... اَخْبَرَنِيْ مَنْصُوْرٌ قَالَ سَمِعْتُ رِبْعِيَّ بْنَ حِرَاشٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَكْذِبُوْا عَلَيَّ فَاِنَّهُ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ فَلْيَلِجِ النَّارَ.

۱۰۶ : علي بن جعد. شعبه. منصور. ربعي بن حراش. علي كرم الله وجهه وائي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ما باندے دروغ مهٔ وائے، ځكه چه كوم سړے په ما دروغ اووائي، هغه دے دوزخ ته ننباسلے شي.

۱۰۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قُلْتُ لِلزُّبَيْرِ اِنِّيْ لَآ اَسْمَعُكَ تُحَدِّثُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا يُحَدِّثُ فُلَانٌ وَّ فُلَانٌ قَالَ اَمَا اِنِّيْ لَمْ اُفَارِقْهُ وَلٰكِنْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ فَلْيَتَبَوَّاْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

۱۰۷ : ابوالوليد، شعبه. جامع بن شداد. عامر بن عبدالله بن زبير. عبدالله بن زبيرؓ نه روايت كوي، چه يوه ورځے خپل پلار حضرت زبيرؓ ته اووے، ځنګه چه فلانے فلانے صحابي دَ حضورؐ نه كثرت سره حديثونه نقل كوي، دغسے ماتاسو نه روايت كول نهٔ دي آوريدلے. زبيرؓ ورته اووے، خبر شه، زهٔ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه جدا شوے نهٔ يم (ماته هم ډير حديثونه معلوم دي) ليكن ما دَ حضورؐ نه آوريدلے دے چه كوم سړے په ما دروغ اووائي، نو هغهٔ له پكار دي، چه ځان له دوزخ كښ ځائے اوګوري (په دے وجه دَ ډيرو حديثونو بيانولو نه ويريږم).

۱۰۸ : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِالْعَزِيْزِ قَالَ اَنَسٌ اَنَّهُ لَيَمْنَعُنِيْ اَنْ اُحَدِّثَكُمْ حَدِيْثًا كَثِيْرًا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَعَمَّدَ عَلَيَّ كَذِبًا فَلْيَتَبَوَّاْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

۱۰۸ : ابومعمر. عبدالوارث. عبدالعزيز نه روايت دے، حضرت انس بن مالك اووے، د ډير حديثونو بيانولو نه مادا امر منع كوي، چه نبي صلعم فرمائيلے دي، چه كوم سړے په ما قصداً دروغ اووائي، نو هغهٔ له پكار دي، چه خپل ځائے ځان له دوزخ كښے جوړ كړي.

۱۰۹ : حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ هُوَ ابْنُ الْاَكْوَعِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ يَّقُلْ عَلَيَّ مَالَمْ اَقُلْ فَلْيَتَبَوَّاْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

۱۰۹ : مكي بن ابراهيم. يزيد بن ابي عبيد سلمه بن اكوع نه روايت دے، فرمائي، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا آوريدلے دي، چه څوك ځما په نسبت داسے خبره اوكړي، چه هغه ما نهٔ وي كړے، نو هغهٔ له پكار دي، چه خپل ځائے اوركښ تيار كړي.

۱۱۰ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ ثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَسَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ وَمَنْ

۱۱۰ : موسٰي. ابو عوانه. ابو حصين. ابو صالح. ابوهريرهؓ دَ نبي صلعم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، ځما نوم اِږدئے، خو ځما كُنيت (چه ابوالقاسم دے) مهٔ اِږدئے. او كوم سړي چه زهٔ خوب كښ اوليدم، نو يقيناً هغه زهٔ اوليدم. ځكه

رَآنِيْ فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِيْ فَإِنَّ الشَّيْطٰنَ لَا يَتَمَثَّلُ فِيْ صُوْرَتِيْ وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

چه شيطان خما په صورت نشي جوړيدے. او څوک چه قصداً په ما دروغ اوتړي، نو هغهٔ له پکار دي، چه ' خان له دوزخ كښې ځائے اوګوري.

۱. دا پرله پسے احاديث پدے سلسله كښې وي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دے د غلطے خبرے نسبت نشي كولے چه په دنيا كښې خلق ګمراه كړي او په آخرت كښې خان له دوزخ دے نه آباذوي دا احاديث د دے خبرے دليل دي چه په عام ډول دَ وُرَان كارو خلقو د شرارت نه بچ شويدي او كوم احاديث چه خلقو د خان نه جوړ كړے وو هغه عالمانو د صحيح احاديثونه جُدا كړل. داسے نبي عليه السلام دا هم واضحه كړه كه د خوب كومه خبره چا ماته نسبت اوكړه نو هغه صحيح خبره ده ځكه چه شيطان په خوب كښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم په شكل نشي راتلے.

## بَاب ۱ ۸: كِتَابَةِ الْعِلْمِ.

## باب ۱ ۸: دَ علم دَ خبرو دَ ليكلو بيان.

۱۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هَلْ عِنْدَكُمْ كِتَابٌ قَالَ لَا إِلَّا كِتَابُ اللّٰهِ اَوْفَهْمٌ اُعْطِيَهُ رَجُلٌ مُّسْلِمٌ اَوْمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ قَالَ قُلْتُ وَمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ قَالَ الْعَقْلُ وَ فِكَاكُ الْاَسِيْرِ وَلَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ.

۱۱۱: محمد محمد بن سلام. وكيع. سفيان. مطرف. شعبي. ابوجحيفهٌ وائي، ما دَ حضرت عليٌ نه تپوس اوكړ چه تاسو سره دَ قرآن نه علاوه بل څهٔ كتاب هم شته، نو حضرت عليٌ او فرمائيل، نه. خو دَ خدائے كتاب دے يا هغه پوهَ راسره ده، چه يو مسلمان سړي ته وركولے ' شي، يا هغه (خو مسائل راسره دي) چه دے صحيفه كښې ليكلے شوے دي. ابو جحيفه وائي. ما اووے، دے صحيفه كښې څهٔ ليكلے دي، نو وے فرمائيل، دَ ديت او دَ قيدي دَ آزادولو احكام، او دا چه هيڅ مسلمان دے دَ كافر په عوض كښې نشي وژلے '.

۱. بعضے خلقو دا شک کوو چه حضرت علي رضي الله عنه سره څه پټ خاص احكام په صحيفه كښې ليكلے شوے دي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د حضرت علي رضي الله عنه نه بغير بل چا ته نبودلے ندي. په دے حديث شريف د هغے غلط فهمے ترديد شويدے.

۱۱۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ قَالَ ثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ خُزَاعَةَ قَتَلُوْا رَجُلًا مِّنْ بَنِيْ لَيْثٍ عَامَ فَتْحِ مَكَّةَ بِقَتِيْلٍ مِّنْهُمْ قَتَلُوْهُ

۱۱۲: ابونعيم. فضل بن دُكين. شيبان. يحيٰي. ابوسلمه. ابوهريرهٌ نه روايت دے، چه دَ قبيلهٔ خزاعه خلقو دَ قبيلهٔ بني ليث يو سړے دَ مكے دَ فتح په كال دَ خپل يو مقتول په عوض كښې چه هغه بني ليث قتل كړے وو، او وژلو. دَ دے خبر نبي صلعم ته وركړے شو، نو حضورٌ په خپله سورلۍ سور شولو اووے فرمائيل، الله د

فَاُخْبِرَ بِذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَكِبَ رَاحِلَتَهُ فَخَطَبَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ حَبَسَ عَنْ مَكَّةَ الْقَتْلَ اَوِ الْفِيْلَ قَالَ مُحَمَّدٌ وَّاجْعَلُوْهُ عَلَى الشَّكِّ كَذَا قَالَ اَبُوْ نُعَيْمٍ الْقَتْلَ اَوِ الْفِيْلَ وَ غَيْرُهُ يَقُوْلُ الْفِيْلَ وَ سُلِّطَ عَلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اَلَا وَ اِنَّهَا لَمْ تَحِلَّ لِاَحَدٍ قَبْلِيْ وَلَا تَحِلُّ لِاَحَدٍ بَعْدِيْ اَلَا اِنَّهَا حَلَّتْ لِيْ سَاعَةً مِّنْ نَهَارٍ اَلَا وَ اِنَّهَا سَاعَتِيْ هٰذِهٖ حَرَامٌ لَّا يُخْتَلٰى شَوْكُهَا وَلَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا تُلْتَقَطُ سَاقِطَتُهَا اِلَّا لِمُنْشِدٍ فَمَنْ قُتِلَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ اِمَّا اَنْ يُّعْقَلَ وَ اِمَّا اَنْ يُّقَادَ اَهْلُ الْقَتِيْلِ فَجَاءَ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اُكْتُبْ لِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ اكْتُبُوْا لِاَبِيْ فُلَانٍ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ اِلَّا الْاِذْخِرَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاِنَّا نَجْعَلُهٗ فِيْ بُيُوْتِنَا وَ قُبُوْرِنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا الْاِذْخِرَ اِلَّا الْاِذْخِرَ.

مکے نه فيل يا قتل منع کړلو. ابوعبدالله وائي ابونعيم اووے، چه يحيٰي شک کوي (او) يا ذ قتل لفظ وائي. ليکن ذ دۀ نه علاوه ټول خلق فيل وائي (ذ قتل لفظ نۀ وائي) خپل رسول او مسلمانان ئے په هغوي غالب کړل. آګاه شے، مکه (کښې قتل کول) نۀ خما نه مخکښې چا ذ پاره حلال کړے شوے دي او نۀ به خما نه پس چا ذ پاره حلال کړے شي. ما ذ پاره هم صرف ذ ورځے لږے حصے ذ پاره حلال کړے شوے وو. آګاه شئے، هغه دا وخت حرام دۀ. ذ هغے اونے جاړے بوټي دے نشي وهلے. او ذ هغے غرځيدلے خيزدے صرف هغه سړے اوچتوي، چه ذ هغۀ مقصد دا وي، چه هغه به ذ دے اعلان کوي او مالک ته به ئے رسوي او ذ چا چه څوک (عزيز) قتل کړے شي، نو هغه ته اختيار دے، چه دے دوو صورتونو کښې په يو صورت عمل او کړي، چه يا ديت واخلي، يا قصاص واخلي. دے کښې يو سړي ذ اهل يمن نه راغے، او هغه اووے، يا رسول الله، دا مسائل خما ذ پاره اوليکئے نو حضورؐ او فرمائيل ذ دے فلاني ذ پاره دا خبرے اوليکئ. بيا ذ قريشو يو سړي اووے، يا رسول الله، ذ اذخر ذ وښونه سوا (ذ نورو خيزونو ذ پريکولو ممانعت اوکړے او ذ سر کړے، بروزه ممانعت مۀ کوئے) ځکه چه مونږ دا خپلو کوررونو او قبرونو کښې استعمالولو، نو نبي صلعم او فرمائيل، او ذ اذخر نه سوا، اذخر نه سوا، اذخر نه سوا (ذ نورو خيزونو ذ پريکولو منعه دۀ).

۱۱۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ثَنَا عَمْرٌو قَالَ اَخْبَرَنِيْ وَهْبُ بْنُ مُنَبِّهٍ عَنْ اَخِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ مَا مِنْ اَصْحٰبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَدٌ اَكْثَرُ حَدِيْثًا عَنْهُ مِنِّيْ اِلَّا مَا كَانَ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فَاِنَّهٗ كَانَ يَكْتُبُ

۱۱۳ : علي بن عبدالله. سفيان. عمر. وهب بن منبه. ابوهريرهؓ وائي، ذ نبي صلعم اصحابو کښې ذ عبدالله بن عمرو نه علاوه مانه زيات هيڅوک ذ حديث روايت نۀ کوي. ما او عبدالله کښې دا فرق دے، چه هغه به ذ حضورؐ حديثونه ليکل او ما به

تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

زباني يادول.

۱۱۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا اشْتَدَّ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجْعُهُ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِكِتَابٍ اَكْتُبُ لَكُمْ كِتَابًا لَّا تَضِلُّوْا بَعْدَهُ قَالَ عُمَرُ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَلَبَهُ الْوَجْعُ وَ عِنْدَنَا كِتَابُ اللّٰهِ حَسْبُنَا فَاخْتَلَفُوْا وَ كَثُرَ اللَّغَطُ قَالَ قُوْمُوْا عَنِّيْ وَلَا يَنْبَغِيْ عِنْدِي التَّنَازُعُ فَخَرَجَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ كِتَابِهِ.

۱۱۴ : يحيي بن سليمان. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. ذ ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه كوم وخت ذ نبي صلي الله عليه وسلم مرض زيات شو نو حضورؐ او فرمائيل، چه ماله ذ ليكلو څيزونه راوړئ، چه تاسو ذ پاره يو ليک اوليکم، چه هغې نه پس تاسو گمراه نهٔ شئ. عمرؓ اووے چه په نبي صلي الله عليه وسلم مرض غالب دے. او موږ سره ذ الله كتاب شته، هغه موږ له كافي دے. بيا صحابهٔ اختلاف اوکهٔ، تردے چه شور زيات شو، نو حضورؐ او فرمائيل، مانه پاسئ، او ځما خوا کښ تاسوله جګړه نهٔ ده پکار (دے پورے بيان نه پس) ابن عباسؓ (ذ خپل ځائے نه) دے وينا سره بهر راووتلو، بيشکه مصيبت او لوئے مصيبت دے، چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ ليکلو مينځ کښ داڅيز حائل شو.

ف: ذ حضرت عمرؓ مقصود دا وو، چه دے سخت مرض کښ حضورؐ له تکليف ورکول نهٔ دي پکار او احاديثو نه ظاهريږي، چه حضورؐ ذ حضرت ابوبکرؓ ذ خلافت په حقله ليکل غوښتل.

## باب ۸۲ : اَلْعِلْمِ وَالْعِظَةِ بِاللَّيْلِ.

## باب ۸۲ : ذ شپې ذ علم او نصيحت كولو بيان.

۱۱۵ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدٍ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ ح وَ عَمْرٍو وَّ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ امْرَاَةٍ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتِ اسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَاذَا اُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ

۱۱۵ : صدقه. ابن عيينه. معمر. زهري. هند. ام سلمه. ح (دوئم سند) عمرو، او يحيي بن سعيد زهري. يوه ښځه اُم سلمهؓ وائي، چه يوه شپه نبي صلي الله عليه وسلم بيدار شو، نو حضورؐ او فرمائيل، سبحان الله، نن شپه څومره فتنې نازلې شوے دي، او څومره خزانې پرانستې شوے دي (خلقو) دا کوټې واله بيبيانې

الْفِتَنِ وَمَا ذَا فُتِحَ مِنَ الْخَزَآئِنِ اَيْقِظُوْا صَوَاحِبَ الْحُجَرِ فَرُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الْاٰخِرَةِ.

پاسوئې (چه عبادت او کړي) خکه چه دنيا کښې اغوستونکې ډېرې (ښځې) داسې دي، چه آخرت کښې به بربنډې وي.

ف: يعني ښځې به داسې لباس استعمالوي، چه په هغې به دا خيال کوي، چه خمونږ جسم پټ بربنډ نۀ دے ليکن هغه به لباس نشي ګڼړلے، يعني په نۀ لباس به حساب وي.

۱. مطلب ئې دا دے چه د الله تعالٰي د رحمت خزانې نازلې شوې او د الله تعالٰي عذاب هم نازل شو دويمه تـرے دا معلوميږي چه ډېرې ښځې به داسې جامې اغونديي چه بدن به ئې ترې ښکاريږي. آخرت کښې به هغې ښځې او شرمولې شي. رسوا به شي.

## بَاب ۸۳: السَّمَرِ بِالْعِلْمِ.

باب ۸۳: دَ شپې دَ علمي خبرو اترو بيان.

۱۱٦: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ مُسَافِرٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ وَّ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ صَلّٰى لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ فِيْ اٰخِرِ حَيَاتِهٖ فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ قَالَ اَرَاَيْتَكُمْ لَيْلَتَكُمْ هٰذِهٖ فَاِنَّ رَاْسَ مِائَةِ سَنَةٍ مِّنْهَا لَا يَبْقٰى مِمَّنْ هُوَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَحَدٌ.

۱۱٦: سعيد بن عفير. ليث. عبدالرحمن بن خالد بن مسافر. ابن شهاب. سالم او ابوبكر بن سليمان بن ابي حثمه. عبدالله بن عمرؓ وائي، چه نبي صلي الله عليه وسلم (يو ځلې) خپل آخري عمر کښې دَ ماسختن مونځ ورکړ بيا چه سلام ئې اوګرځولو، نو اودريدلو، اووې فرمائيل (ګورئې) دَ نن شپې نه دَ سل کالو آخر پورې چه کوم سړيه زمکه دے، ژوندے به پاتې نشي[۱].

ف: محدثين دَ دې حديث مختلف مطلبونه بيانوي. دَ هغې نه يو دادے، چه يو سل کاله تيريدو باندې به دويمه صدي شروع شي، چه هغې کښې به دَ وړمبنې صدئ هيڅ سړے پاتې نشي، خکه چه دې اُمت کښې دَ سل کالو نه زيات عمر شاذ و نادر وي.

۱. يا خو د دې مطلب دا دے چه په عام ډول د امت د خلقو عمر به د سل کالونه زيات نه وي ليکن د محققينو په نزد ددې مطلب هغه دے چه ظاهر الفاظونه معلوميږي (چه موجوده صحابهؓ به سل کاله نه زيات نه پاتې کيږي) د ټولو آخري صحابي عامر بن واثله رضي الله عنه پوره سل کاله پس وفات شو. د اُحد جنګ په ورځو کښې پيدا شوې وو. او دوه د پاسه سل کاله عمر کښې وفات شو.

۱۱۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ ثَنَا الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ

۱۱۷: آدم. شعبه. حكم. سعيد بن جبير ابن عباسؓ وائي، يو شپه زه دَ خپلې ترور بي بي ميمونه بنت

سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ فِيْ بَيْتِ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فِيْ لَيْلَتِهَا فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَآءَ ثُمَّ جَآءَ اِلٰى مَنْزِلِهٖ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ نَامَ ثُمَّ قَامَ ثُمَّ قَالَ نَامَ الْغُلَيِّمُ او كَلِمَةً تُشْبِهُهَا ثُمَّ قَامَ فَقُمْتُ عَنْ يَّسَارِهٖ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَّمِيْنِهٖ فَصَلّٰى خَمْسَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ نَامَ حَتّٰى سَمِعْتُ غَطِيْطَهٗ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الصَّلٰوةِ.

حارثؓ ذ نبي صلعم ذ تېر كور كښې اُوده شوم. او ذ نبي صلعم وار په هغه شپه هغې سره وو. نبي صلعم ذ ماسختن مونځ (جماعت كښې) اوكۀ. بيا خپل كورته راغې. څلور ركعاته ئې اوكړل، او اوده شو. بيا بيدار شو. اووې فرمائيل، چه وړوكے هلك اوده شو، يا ذ دے مثل څۀ لفظ ئې او فرمائيلو. بيا (مانځه ذ پاره) اودريدلو، نوزۀ (ذ اودس نه پس) ذ حضورؐ كس طرف ته اودريدم. نو حضورؐ زۀ خپل ښي طرف ته كړم، او پنځه ركعاته ئې اوكړل. دے نه پس ئې دوه ركعاته (ذ سحر سنت) اوكړل. بيا اوده شو، تردے چه ذ حضورؐ ذ ساه (اَخستو) آواز ما واوريدلو بيا حضورؐ (ذ سحر) مونځ ذ پاره (جماعت ته) تشريف يوړلو.

ف: يعني دوه ركعاته نفل او درے ركعاته وتر ذ دے پنځه ركعاتونه پس حضورؐ دومره ايسار شو، چه صبح صادق شو. بيا ذ سحر دوه ركعاته سنتو نه پس ئې آرام اوكړلو، چه تيارۀ كمه شوه

۱. كتاب التفسير كښې دا حديث شريف په بله واسطه ذكر كړيدے. په هغې روايت كښې دا الفاظ زيات شته "چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دځه وخت د پاره حضرت ميمونه رضي اللّٰه عنها سره خبرے اوكړے او بيا اوده شو" د دے جملے سره د حديث شريف سر ليك زيات صحيح شو "د شپے علمي خبرے كول".

## بَاب ۸۴: حِفْظِ الْعِلْمِ.

## باب ۸۴: ذ علم (ذ خبرو) ذ يادولو بيان.

۱۱۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ اَكْثَرَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَلَوْلَا اٰيَتَانِ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا حَدَّثْتُ حَدِيْثًا ثُمَّ يَتْلُوْا اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَا اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى اِلٰى قَوْلِهٖ الرَّحِيْمُ اِنَّ اِخْوَانَنَا مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ كَانَ

۱۱۸: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. مالك ابن شهاب. اعرج. ابوهريرهؓ به وئيلے، خلق وائي چه ابوهريرهؓ ډېر حديثونه بيان كړي دي. كه كتاب اللّٰه كښې دا دوه آيتونه نۀ وے، نو ما به يو حديث هم نۀ وو بيان كړے. بيا به ئې دا تلاوت كولو: اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَا اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى نه الرَّحِيْمُ پورے. دا امر يقيني دے، چه خمونږ ذ مهاجرينو ورونړو به بازارونو

يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْاَسْوَاقِ وَ اِنَّ اِخْوَانَنَا مِنَ الْاَنْصَارِ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الْعَمَلُ فِيْ اَمْوَالِهِمْ وَ اِنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ كَانَ يَلْزَمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِبَعِ بَطْنِهٖ وَ يَحْضُرُ مَالَا يَحْضُرُوْنَ وَ يَحْفَظُ مَالَا يَحْفَظُوْنَ.

كښې ذ خريد و فروخت شغل وو. او ابوهريرهؓ چه به خيټه مړه كړه نو ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به خدمت كښې به وو. او داسې وختونو كښې به حاضر وو چه نور خلق به حاضر نه وو او هغه خبرې به ئې يادولې چه هغې خلقو به نه يادولې [۱].

۱. د ابوهريره رضي اللّٰه عنه په حق كښې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ دُعا دا اثر وو چه هغه ته هر څيز ياديدو.

**۱۱۹** : حَدَّثَنَا اَبُوْ مُصْعَبٍ اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَسْمَعُ مِنْكَ حَدِيْثًا كَثِيْرًا اَنْسَاهُ قَالَ اُبْسُطْ رِدَآءَ كَ فَبَسَطْتُهٗ فَغَرَفَ بِيَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ ضُمَّ فَضَمَمْتُهٗ فَمَا نَسِيْتُ شَيْئًا حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ فُدَيْكٍ بِهٰذَا وَ قَالَ فَغَرَفَ بِيَدِهٖ فِيْهِ.

**۱۱۹** : ابو مصعب. احمد بن ابي بكر. محمد بن ابراهيم بن دينار. ابن ابي ذنب. سعيد مقبري. ابوهريرهؓ وائي، ما اووې، يا رسول اللّٰه، زهٔ تاسو نه ډير حديثونه آورم، خو هغه رانه هيرشي، نو حضورؐ اوفرمائيل، خپل څادر خور كه. ما څادر خور كهٔ، نو حضورؐ ذ خپلو دواړو لاسونونه چونګ لپه جوړه كړه (او هغې څادر كښې ئې او غُرخوله) بيائې او فرمائيل، چه (دا څادر) په خان راخور كړه، نو ما راخور كړلو. بيا دې نه پس ما نه هيڅ هير نهٔ شولو مونږ ته ابراهيم بن منذر دا حديث ذ ابن ابي فديک په واسطه روايت كهٔ، اووې ونيل، چه خپل لاس سره ئې يو چونګ لپه دې كښې واچوله.

**۱۲۰** : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِعَائَيْنِ فَاَمَّا اَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهٗ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَلَوْبَثَثْتُهٗ قُطِعَ هٰذَا الْبُلْعُوْمُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ

**۱۲۰** : اسمٰعيل. ذ اسمٰعيل ورور (عبدالحميد) ابن ابي ذنب. ابو سعيد مقبري. ابوهريرهؓ وائي ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دوه لوښي (مراد څيزونه) ياد كړې دي. هغې كښې يو خو ما ظاهر كهٔ، او كه دويم ظاهر كړم، نو دا مرئ به م پرې كړې شي (ابوعبداللّٰه وائي چه بلعوم ذ خوراک ذ تلو

اَلْبُلْعُوْمُ مَجْرَى الطَّعَامِ. خانے دے'.

ف: دے حدیث نه صوفیانے کرام (اهل تصوف) استدلال کوي' چه ذ دے دویم علم نه مراد علم حقیقت (تصوف) دے. ځکه چه د دے تعلیمات څهٔ داسے دي' چه ظاهر شریعت کښې کفر په نظر راځي' او علماء ظاهري په هغے ذ کفر فتوې لګوي او ذ قتل اعلان ئے کوي. لیکن دا صرف ذ اهل تصوف خپل یو فرضي خیال دے' ځکه چه ذ الله تعالٰی د طرف نه ذ انبیاء علیهم السلام په ذریعه د یوے داسے طریقے تبلیغ چه په ظاهره کفر وي او باطن کښې قرب الٰهي یا اصل دین وي' تصوف کښې نشي راتلے. او په دے طور لازمیږي چه ټول باطل دینونه' حق دینونه جوړ شي. او ټول به په ظاهره ذ کفر او باطن کښې د فنا في الله او دین حنفیه دعوې کوي' چه ذ هغے څه جواب نشي کیدے.

۱. د ابوهریره رضي الله عنه د دے خبرے مطلب بعضے علماؤ دا بیان کړے دے چه د ظاهري علم احادیث ابوهریره رضي الله عنه نورو خلقوته او رسول. او د باطني علم احادیث هغه د عامو خلقو د پاره فائده مند نه وو د هغے د ښورلونه د فتنے خوریدو خطره وه. له دے کبله هغه اوویل چه د دویم قسم احادیثو بیانولو کښې د مرګ خطره ده. د محققینو علماؤ دا رائے ده چه د دویم قسم احادیثونه هغه احادیث مراد دي چه په هغے کښې د ظالم جابر حاکمانو په باره کښې وعید (سزاګانے) وے او ذ فتنو حالات وؤ دا حدیث شریف ابوهریره رضي الله عنه په هغه زمانه کښې بیان کړو چه فتنے شروع شوے وے او مسلمانانو کښې ګډوډے راغلے وؤ له دے وجے نه ئے اوویل چه ددغے احادیثو بیانولو کښې د مرګ ویره ده نو ددے مصلحت په خاطر غلے (چپ) پاتے شو. او فرض که' که د علم باطن نه تصوف مراد شي نو هغه به هغه تصوف وي چه قرآن او حدیث کښې ذکر دے کوم څیز چه د قرآن و سنت موافق دي هغه منل دي او کنې منل ئے نشته.

باب ۸۵: اِلْاِنْصَاتِ لِلْعُلَمَآءِ

باب ۸۵: ذ علماؤ خبرو آوریدو ذ پاره ذ خاموش کیدو بیان.

۱۲۱: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ مُدْرِكٍ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ جَرِيْرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ اسْتَنْصِتِ النَّاسَ فَقَالَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.

۱۲۱: حجاج. شعبه. علي بن مدرک. ابوزرعه. جریرؓ نه روایت کوي' چه نبي صلے الله علیه وسلم هغه ته حجة الوداع کښې او فرمائیل' ته خلق چپ ' کړه. بیا حضورؐ او فرمائیل (اے خلقو) تاسو ځما نه پس کافر نهٔ شئے' چه د یو بل څټونه وهل شروع کړئ.

۱. رسول الله صلي الله علیه وسلم نصیحتونه کول ځکه ئے جریر رضي الله عنه ته او فرمایل چه خلق په توجه سره اوریدو ته تیار کړه.

باب ۸۶: مَا يُسْتَحَبُّ لِلْعَالِمِ

باب ۸۶: هر کله چه ذ یو عالم نه تپوس اوشي

**اِذَا سُئِلَ اَيُّ النَّاسِ اَعْلَمُ فَيَكِلُ الْعِلْمَ اِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى.** چه ټولو خلقو کښ زيات پوهيدونکے څوک دے، نو هغۀ ذ پاره دا مستحب دي چه الله تعالیٰ طرف ته ذ هغۀ علم حواله کړي.

**ف:** يعني داسے دے اووائي، چه زۀ نۀ پوهيږم، دا خبره خدائے تعالیٰ ته معلومه ده. يا داسے دے اووائي، چه ذ ټولونه زيات پوهيدونکے خدائے تعالیٰ دۓ.

**١٢٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِنِ الْمُسْنَدِيُّ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ثَنَا عَمْرٌو قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِاِبْنِ عَبَّاسٍ اِنَّ نَوْفًا الْبَكَالِيَّ يَزْعُمُ اَنَّ مُوْسٰى لَيْسَ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اِنَّمَا هُوَ مُوْسٰى اٰخَرُ فَقَالَ كَذِبَ عَدُوُّ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَامَ مُوْسَى النَّبِيُّ خَطِيْبًا فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ فَسُئِلَ اَيُّ النَّاسِ اَعْلَمُ فَقَالَ اَنَا اَعْلَمُ فَعَتَبَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَيْهِ اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَيْهِ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ اَنَّ عَبْدًا مِّنْ عِبَادِيْ بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ اَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ يَا رَبِّ وَ كَيْفَ بِهٖ فَقِيْلَ لَهٗ اِحْمَلْ حُوْتًا فِيْ مِكْتَلٍ فَاِذَا فَقَدْتَّهٗ فَهُوَ ثَمَّ فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقَ مَعَهٗ بِفَتَاهُ يُوْشَعَ بْنِ نُوْنٍ وَّ حَمَلَا حُوْتًا فِيْ مِكْتَلٍ حَتّٰى كَانَا عِنْدَ الصَّخْرَةِ وَضَعَا رَءُوْسَهُمَا فَنَامَا فَانْسَلَّ الْحُوْتُ مِنَ الْمِكْتَلِ فَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا وَّ كَانَ لِمُوْسٰى وَ فَتَاهُ عَجَبًا فَانْطَلَقَا بَقِيَّةَ**

١٢٢ : عبدالله بن محمد مسندي. سفيان. عمرو. سعيد بن جبير وائي، ما ابن عباسؓ ته اووے، نوف بکالي وائي، موسیٰؑ چه ذ خضرؑ ملګرے وو، ذ بني اسرائيلو موسیٰؑ نۀ دے. هغه څوک بل موسیٰ دے، نو ابن عباسؓ اووے، چه (هغه) ذ خدائے دشمن دروغ وائي. مونږ ته ابي بن کعب ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے، چه موسیٰؑ (يوه ورځے) بني اسرائيلو ته خطبے ذ پاره اودريد، نو ذ هغۀ نه تپوس اوشو، چه ذ ټولو نه زيات عالم څوک دے، نو هغۀ ورته اووے، چه زيات عالم زۀ يم، نو الله پاک پرے ملامتيا او فرمائيله، چه هغۀ علم خدائے ته حواله ولے نه کۀ (يعني دا چه خدائے بنۀ پوهيږي) بيا الله هغۀ ته وحي او کړه، چه مجمع البحرين کښ خما د بنديانو نه يو بنده دے، هغه ستانه زيات عالم (پوهيدونکے) دے. موسیٰؑ عرض او کۀ اے خما پروردګاره خما به هغۀ سره ملاقات څنګه اوشي، نو هغۀ ته اووئيلے شو. چه کَب (مچهلي) تهيلئ کښ واچوه (او مجمع البحرين طرف ته روان شه) کوم وخت چه هغه کب بيائۀ مومے نو (يوه شه چه) هغه بنده دغلته دے، موسیٰ عليه السلام روان شو. او خان سره ئے خپل خادم يوشع هم بوتلو. او هغوي دواړو يو کَب تهيلئ کښ واچولو، تردے چه يو ګټ ته اورسيدل، نو دواړو په هغے خپل سر کيښودلو او اُودۀ شو. دے کښ کَب د تهيلئ نه اووتلو، او په درياب کښ هغے يوه لاره جوړه کړه. ورستو (ذ کب په ژوندي کيدو) موسیٰؑ او ذ هغۀ خادم تعجب کښ پريوتل بيا هغوي دواړه باقي شپه او يوه ورځ روان وو، چه سحر شو، نو موسي خپل

لَيْلَتِهِمَا وَ يَوْمِهِمَا فَلَمَّا اَصْبَحَ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰهُ اٰتِنَا غَدَآءَ نَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا وَّلَمْ يَجِدْ مُوْسٰى مَسًّا مِنَ النَّصَبِ حَتّٰى جَاوَزَا الْمَكَانَ الَّذِيْ اُمِرَ بِهٖ فَقَالَ فَتَاهُ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ قَالَ مُوْسٰى ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا فَلَمَّا انْتَهَيَا اِلَى الصَّخْرَةِ اِذَا رَجُلٌ مُّسَجًّى بِثَوْبٍ اَوْ قَالَ تَسَجّٰى بِثَوْبِهٖ فَسَلَّمَ مُوْسٰى فَقَالَ الْخَضِرُ وَ اَنّٰى بِاَرْضِكَ السَّلَامُ فَقَالَ اَنَا مُوْسٰى فَقَالَ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَاءِيْلَ قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰى اَنْ تُعَلِّمَنِيْ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا قَالَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا يَا مُوْسٰى اِنِّيْ عَلٰى عِلْمٍ مِّنْ عِلْمِ اللّٰهِ عَلَّمَنِيْهِ لَا تَعْلَمُهٗ اَنْتَ وَ اَنْتَ عَلٰى عِلْمٍ عَلَّمَكَهُ اللّٰهُ لَا اَعْلَمُهٗ قَالَ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ صَابِرًا وَّلَآ اَعْصِيْ لَكَ اَمْرًا فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلٰى سَاحِلِ الْبَحْرِ لَيْسَ لَهُمَا سَفِيْنَةٌ فَمَرَّتْ بِهِمَا سَفِيْنَةٌ فَكَلَّمُوْهُمْ اَنْ يَّحْمِلُوْهُمَا فَعُرِفَ الْخَضِرُ فَحَمَلُوْهُمَا بِغَيْرِ نَوْلٍ فَجَآءَ عُصْفُوْرٌ فَوَقَعَ عَلٰى حَرْفِ السَّفِيْنَةِ فَنَقَرَ نَقْرَةً اَوْ نَقْرَتَيْنِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ الْخَضِرُ يَا مُوْسٰى

خادم ته اووے، چه مونږه سخت تکلیف بیاموند او موسیٰ چه څو پورے ذ هغے ځائے نه مخکښ تلے نه وو چه د هغے هغهٔ ته حکم شوے وو، نو هغے پورے هغهٔ څهٔ تکلیف نه وو محسوس کړے. د هغهٔ خادم (چه اولیدل چه کب غائب وو، نو هغهٔ موسیٰ ته) اووے که تاسوته یاد وي چه کوم وخت مونږ کټ سره ناست وو، نو مانه ذ کب واقعه هیره شوه. موسیٰ ورته اووے دغه خو هغه مقام دے چه مونږ ذ هغے په تلاش کښ یو. بیا هغوي دواړه ذ خپلو قدمونو په نښه را واپس شو، کوم وخت چه هغے کټ ته اورسیدل (نو څهٔ ګوري چه) یو سړي کپړه اغوستے ده، (یا دائے اووے چه هغهٔ کپړه په ځان اچولے ده) ناست دے. موسیٰ ورته سلام او کهٔ نو خضرٔ ورته اووے. دے ځائے کښ سلام چرته دے (یعني رواج ئې نشته) موسيٰ علیه السلام ورته اووے زهٔ (ذ دے ځائے اوسیدونکے نه یم زهٔ) موسیٰ یم. خضرٔ ورته اووے. ذ بني اسرائیلو موسیٰ. هغهٔ ورته اووے. او. موسیٰ ورته اووے، آیا زهٔ تاسره (په دے امید) ملګرے کیدے شم، چه کوم هدایت (علم) تاته ښودلے شوے دے، ماته هم هغه اوښائے. خضرٔ ورته اووے ما سره (پاتے کیدو کښ به څما په خبرو) هیڅ کله صبر اونهٔ کړے شے. اے موسیٰ، زهٔ ذ الله ذ علم نه یو داسے علم لرم، چه تهٔ په هغے نهٔ پوهیږے، او هغه (علم) خدائے ماته ښودلے دے. او تهٔ داسے علم لرے، چه خدائے تاته ښودلے دے او زهٔ په هغے نه پوهیږم. موسي ورته اووے، انشاء الله تهٔ به ما صابره بیا مومے. او زهٔ به هیڅ خبره کښ ستا نافرماني نهٔ کوم. بیا هغوي دواړه ذ دریاب په غاړه غاړه روان وو. هغوي سره څهٔ کشتئ نهٔ وه. دے کښ یوه کشتئ ئے خوا کښ تیره شوه. نو ذ کشتئ خاوندانو ته هغوي اووے، چه مونږ ځان سره کینوئے. هغوي خضرٔ او پیژند او ذ کشتئ خاوندانو ئے پیسے کینول. بیا (دے دوران کښ) یوه چړچڼړه راغله، او ذ کشتئ په غاړه کیناسته،

مَا نَقَصَ عِلْمِيْ وَ عِلْمُكَ مِنْ عِلْمِ
اللّٰهِ تَعَالٰى اِلَّا كَنَقْرَةِ هٰذِهِ الْعُصْفُوْرِ
فِي الْبَحْرِ فَعَمِدَ الْخَضِرُ اِلٰى لَوْحٍ مِّنْ
اَلْوَاحِ السَّفِيْنَةِ فَنَزَعَهٗ فَقَالَ مُوْسٰى
قَوْمٌ حَمَلُوْنَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَ اِلٰى
سَفِيْنَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا قَالَ
اَلَمْ اَقُلْ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا
قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِمَا نَسِيْتُ وَلَا
تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا قَالَ فَكَانَتِ
الْاُوْلٰى مِنْ مُّوْسٰى نِسْيَانًا فَانْطَلَقَا فَاِذَا
غُلَامٌ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَاَخَذَ
الْخَضِرُ بِرَاْسِهٖ مِنْ اَعْلَاهُ فَاقْتَلَعَ رَاْسَهٗ
بِيَدِهٖ فَقَالَ مُوْسٰى اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً
بِغَيْرِ نَفْسٍ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ
تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَ
هٰذَا اَوْكَدُ فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَا اَتَيَا اَهْلَ
قَرْيَةِ نِ اسْتَطْعَمَا اَهْلَهَا فَاَبَوْا اَنْ
يُضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ
اَنْ يَّنْقَضَّ قَالَ الْخَضِرُ بِيَدِهٖ فَاَقَامَهٗ
فَقَالَ لَهٗ مُوْسٰى لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ
عَلَيْهِ اَجْرًا قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَ
بَيْنِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوْسٰى لَوَدِدْنَا لَوْ
صَبَرَ حَتّٰى يُقَصَّ عَلَيْنَا مِنْ اَمْرِهِمَا
قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ ثَنَا بِهٖ عَلِيُّ
بْنُ خَشْرَمٍ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ

او درياب كښې ئې دوه درې ټونګې اووهلې. خضرٌ ورته اووې:
اې موسیٰ! خما علم او ستا علم د خدائے د علم نه د دې چرچنړې
د مخوکې قدرې هم څۀ کم کړې نۀ دي. بيا خضرٌ د کشتۍ د
تختو نه د يوې تختې د اوبنکلو قصد اوکۀ، او راويبنکله. موسیٰ
ورته اووې، چه دې خلقو مونږ بې پيسې کينولو، او تا د هغوي د
کشتۍ (د خرابۍ) قصد اوکۀ، او هغه دې ماته کړه، چه د هغې خلق
غرق کړې. خضرٌ ورته اووې: آيا تاته مانۀ وو وئيلې، چه تۀ به خما
په ملګرتيا کښې خما په خبرو صبر اونۀ کړې شې. موسیٰ ورته
اووې، دا ما نه هيره اوشوه، په دې م مۀ نيسه، او خما کار کښې
ماسره سختي مۀ کوه (راوي) وائي چه په ورمبي ځل د موسیٰ نه په
هيره د اعتراض دا خبره اوشوه. بيا هغوي دواړه (د کشتۍ نه کوز
شو، او) روان شو، نو يو هلک ئې اوليدلو، چه نورو هلکانو سره ئې
لوبې کولې. خضرٌ د هغۀ سر د پاسه نه راونيولو او په خپل لاس ئې
جدا کړلو. موسیٰ ورته اووې، چه يو بې ګناه بچې دې بر ناحقه
قتل کۀ. خضرٌ ورته اووې: آيا تاته مانۀ وو وئيلې، چه تۀ به ماسره
ملګرتيا کښې (خما په خبرو) هيڅ کله صبر اونۀ کړې شې ابن
عيينه وائي چه دا زياته سخته خبره وه. بيا دواړه روان شو، حتي چه
يو کلي ته اورسيدل، د هغې خائې د خلقونه ئې ډوډۍ او غوښته،
خو هغې خلقو د دوي د ميلمستيا نه انکار اوکۀ. بيائې هلته يو
ديوال اوليد چه غُرځيدونکې وو. خضرٌ په هغې خپل لاس
راښکلو، او هغه ئې سم کړلو، موسیٰ هغه ته اووې، که تا غوښتې،
نو په هغې (ديوال سمولو) به دې څۀ مزدوري آخستې شوه.
خضرٌ ورته اووې، چه (بس. اوس) خما او ستا مينځ کښې جدائي
راغله. نبي صلی الله عليه وسلم (دومره بيان نه پس) ارشاد او
فرمائيلو، چه الله دې په موسیٰ رحم اوکړي. مونږ دا غوښتل، چه
کاش موسیٰ صبر کړې وې، نو الله تعالیٰ به دهغوئ دواړو نور

بِطُوْلِهٖ.

واقعات مونږ ته بيان کړے دے.

## بَاب۸۷: مَنْ سَأَلَ وَهُوَ قَائِمٌ عَالِمًا جَالِسًا.

## باب۸۷: ذ هغے سړي بيان چه په ولاړه ولاړه د يو ناست عالم نه تپوس کوي.

۱۲۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ ثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰي قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْقِتَالُ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاِنَّ اَحَدَنَا يُقَاتِلُ غَضَبًا وَ يُقَاتِلُ حَمِيَّةً فَرَفَعَ اِلَيْهِ رَأْسَهُ قَالَ وَمَا رَفَعَ اِلَيْهِ رَأْسَهُ اِلَّا اَنَّهُ كَانَ قَآئِمًا فَقَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُوْنَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۱۲۳: عثمان. جرير. منصور. ابووائل. ابو موسیٰؓ وائي، چه يو سړے نبي صلعم له راغے، او هغهٔ اووے يا رسول اللّٰه، ذ اللّٰه په لار کښ ذ جنګ کولو څهٔ صورت دے. ځکه چه مونږ کښ څوک ذ غصے په سبب جنګيږي او څوک ذ غيرت په وجه جنګ کوي. نو حضورؐ خپل سر مبارک په دے سبب اوچت کهٔ، چه هغه سړے ولاړ وو. بيا حضورؐ او فرمائيل، کوم سړے چه په دے وجه او جنګيږي، چه د اللّٰه کلمه پورته (بلنده) شي، نو هغه د اللّٰه په لار کښ جنګيږي[۱].

۱. يعني چه کله د اللّٰه تعالیٰ د دښمنانو سره جنګ ته لاړ شي او ذ غصے او د غيرت سره جنګيږي نو دا ټول به د اللّٰه تعالیٰ د پاره حسابيږي دے ته به ذاتي يا نفساني جنګ نشي ويلے.

## بَاب۸۸: اَلسُّؤَالِ وَالْفُتْيَا عِنْدَ رَمْيِ الْجِمَارِ.

## باب۸۸: ذ رمي جمار وخت کښے ذ مسئلے پښتلو بيان.

۱۲۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عِيْسَى بْنِ طَلْحَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ الْجَمْرَةِ وَهُوَ يُسْأَلُ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَحَرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ فَقَالَ اِرْمِ وَلَا حَرَجَ قَالَ اٰخَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَنْحَرَ قَالَ

۱۲۴: ابونعيم، عبدالعزيز بن ابي سلمه. زهري. عيسٰي بن طلحه. عبداللّٰه بن عمرو وائي، چه ما نبي صلعم جمره سره اوليدلو، هغه وخت ذ حضورؐ نه مسئلے پښتلے شوے. يو سړي اووے، يا رسول اللّٰه، ما ذ رمي کولو نه مخکښ قرباني کړے ده، نو حضورؐ ورته او فرمائيل (چه اوس) رمي اوکړه، هيڅ حرج نشته. بل سړي اووے، يا رسول اللّٰه، ما ذ قربانئ کولو نه مخکښ سر اوخريلو، حضور ورته او فرمائيل، اوس قرباني اوکړه، هيڅ حرج نشته (هغه وخت) چه ذ څهٔ څيز به ذ حضورؐ نه تپوس کيده،

اٰخِرُ وَلَا حَرَجَ فَمَا سُئِلَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا اُخِّرَ اِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ.

خواه هغه مخکښ شوے وو' یا وروستو' خو حضورؐ به ورته دغه فرمائیل' چه اوس اوکړه' څهٔ حرج نشته'.

١. دا حدیث شریف وړاندے بل سر لیک سره تیر شویدے.

باب ٨٩: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی وَمَا اُوْتِیْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِیْلًا.

باب ٨٩: دَ اللّٰـه تعالٰی فرمان' چه تاسو ته صرف لږ علم درکړے شوے دے.

١٢٥: حَدَّثَنَا قَیْسُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ ثَنَا الْاَعْمَشُ سُلَیْمَانُ بْنُ مِهْرَانَ عَنْ اِبْرَاهِیْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَیْنَا اَنَا اَمْشِیْ مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ خِرَبِ الْمَدِیْنَةِ وَهُوَ یَتَوَکَّاُ عَلٰی عَسِیْبٍ مَّعَهٗ فَمَرَّ بِنَفَرٍ مِّنَ الْیَهُوْدِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَسْئَلُوْهُ لَا یَجِیْءَ فِیْهِ بِشَیْءٍ تَکْرَهُوْنَهٗ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَنَسْئَلَنَّهٗ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ یَا اَبَا الْقَاسِمِ مَا الرُّوْحُ فَسَکَتَ فَقُلْتُ اِنَّهٗ یُوْحٰی اِلَیْهِ فَقُمْتُ فَلَمَّا انْجَلٰی عَنْهُ فَقَالَ وَ یَسْئَلُوْنَکَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ وَمَا اُوْتِیْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِیْلًا قَالَ الْاَعْمَشُ هِیَ کَذَا فِیْ قِرَآءَتِنَا وَمَا اُوْتُوْا.

١٢٥: قیس بن حفص. عبدالواحد. اعمش. سلیمان بن مهران. ابراهیم. علقمه. عبدالله (ابن مسعود) وائي' چه زهٔ نبي صلعم سره ذ مدینے په کنډرونو کښ روان ووم' او حضورؐ ذ قجورے یوه لختـه په زمکه لږولو سره روان وو' چه په یو څو یهودیانو تیر شولو' نو هغوي کښ یو بل ته اووے' چه ذ حضورؐ نه ذ روح پـه حقله تپوس اوکړئ. په دے خبره بعضو ورته اووے' چه تپوس ترے مهٔ کوئ' داسے نه' چه دے کښ څهٔ داسے خبره اوکړي' چه تاسو باندے بده اولږي. بیا بعضو اووے' چه مونږ به ضرور ذ حضورؐ نه تپوس کوو. نو هغوي کښ یو سړے اودرید' اووے ونیل' چه اے ابوالقاسمه. روح څهٔ خیز دے؟ نو حضورؐ خاموشي اختیار کړه (ابن مسعودؓ وائي) ما (خپل زړهٔ کښ) اووے' چه پـه حضورؐ وحي راتلونکے دي' نوزهٔ اودریدم' بیا هغه حالت ذ حضورؐ نه لرے شو' نو حضورؐ او فرمائیل (ترجمه) اے نبيؐ' دا خلق تانه ذ روح په حقله تپوس کوي' دوي ته اووایه' چه روح خـما ذ پروردګار ذ حکم نه (پیدا شوے) دے' او د هغے په اصل حقیقت تاسو نهٔ شئ پوهیدے' ځکه چه تاسو ته کم علم درکړے شوے دے' اعمش وائي' چه خمونږ په قرأت کښ "وما اوتوا" دے "وما اوتیتم" نه دے'.

١. ذ روح ذ حقیقت پـهٔ حقلهٔ چه یهودیانو کومه پوښتنه کړے وه ذ هغے مقصد دا وو. چه په تورات کښ د روح پـه باره کښ دا بیان وو چه روح د الله د طرفنه یو خیز دے له دنے وجے نه یهودو دا معلومه ول چـه د اسلام تـعلیـم ذ تورات پشان دے او که نه دے یا د فلسفیانو په دول اخوا دیخوا ذ روح په حقله بیان کـوي. روح یو خالص لطیف څیز دے دے د پاره مونږه پخپل موجوده د کثافت نه ډک ژوند کښے د روح

حقيقت نه شو معلومولې.

**باب ۹۰: مَنْ تَرَكَ بَعْضَ الْاِخْتِيَارِ مَخَافَةَ اَنْ يَّقْصُرَفَهُمُ بَعْضِ النَّاسِ فَيَقَعُوْا فِيْ اَشَدَّ مِنْهُ.**

باب ۹۰: دَ هغې سړي بيان چه هغه ځنې جائز څيزونه دَ دې ويرې نه ترک کړل چه ځنې ناپوهه خلق به دَ دې نه زياته سخته خبره کښې آخته شي.

۱۲۶: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآءِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ الزُّبَيْرِ كَانَتْ عَآئِشَةُ تُسِرُّ اِلَيْكَ كَثِيْرًا فَمَا حَدَّثَتْكَ فِي الْكَعْبَةِ قُلْتُ قَالَتْ لِيْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَآئِشَةُ لَوْلَآ اَنَّ قَوْمَكِ حَدِيْثٌ عَهْدُهُمْ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ بِكُفْرٍ لَنَقَضْتُ الْكَعْبَةَ فَجَعَلْتُ لَهَا بَابَيْنِ بَابًا يَّدْخُلُ النَّاسُ وَ بَابًا يَّخْرُجُوْنَ مِنْهُ فَفَعَلَهُ ابْنُ الزُّبَيْرِ.

۱۲۶: عبيدالله بن موسٰي. اسرآئيل. ابو اسحق. اسودؓ وائي، چه ماته ابن زبيرؓ اووے، چه بي بي عائشےؓ به اکثر تاته دَ راز خبرے وئيلے، نو اوښايه چه دَ کعبے باره کښې هغې تاته څهٔ حديث بيان کړے دے ما اووے، چه ماته هغې وئيلے وو، چه نبي صلعم او فرمائيل اے عائشے که ستا قوم قريب العهد (دَ جاهليت زمانے ته نزدے) نه وے. ابن زبيرؓ وائي چه قريب العهد نه دَ کفر زمانے ته نزدے والے مراد دے، نو بيشکه ما به کعبه ورانه کړے وے او دَ هغې دَ پاره به مې دوه دروازے جوړے کړے وے، په يوه دروازه به خلق کعبے ته ننوتل اوپه بله دروازه به ترے بهر راوتل، نو ابن زبيرؓ (چه دا واوريدل) دغسے ئے اوکړل¹.

**ف**: ابن زبيرؓ په دے شکل دا ترميم هغه وخت کړے وو، څه وخت چه دَ حضرت عثمانؓ دَ شهادت نه پس هغهٔ ته په مکه تسلط حاصل شو.

۱. قريش نزدے زمانه کښې مسلمان شوي وو له دے کبله رسول الله صلي الله عليه وسلم د احتياط په ډول د کعبے جوړول روستو کړل. حضرت عبدالله بن زبير چه حديث شريف واوريده نو کعبه ئے دوباره جوړه کړه هغې کښې يو مشرق ته او بله مغرب ته دروازے جوړے کړے ليکن حجاج بيا کعبه ورانه کړه. د جاهليت د زمانے په شکل ئے بيا جوړه کړه. د دے باب د سر ليک لاندے ددے حديث شريف د ذکر کولو مطلب دا دے. چه د يو لويے مصلحت په خاطر رسول الله صلي الله عليه وسلم د ابراهيم عليه السلام په طرز د کعبے جوړول وروستو کړے وو داسے که چرے مستحب يا سنت څيز باندے عمل کولو نه فتنه فساد جوړيږي نو هغه روستو کول پکار دي ليکن ددے فيصله به ديندار د شريعت عالم کوي. د هر چا اختيار نشته.

**باب ۹۱: مَنْ خَصَّ بِالْعِلْمِ قَوْمًا دُوْنَ قَوْمٍ كَرَاهِيَةَ اَنْ لَّا يَفْهَمُوْا وَ قَالَ عَلِيٌّ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدِّثُوا النَّاسَ بِمَا يَعْرِفُوْنَ اَتُحِبُّوْنَ اَنْ يُّكَذَّبَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ.**

باب ۹۱: کوم سړي چه يو قوم پريښوډ، او بل قوم ئے دَ علم (دَ تعليم) دَ پاره مخصوص کړهٔ په دے خيال چه دا خلق به بغير تخصيص نه پوره طور سره پوه نشي، نو دَ دے مصلحت نه دَ هغهٔ دا کار غوره دے. او حضرت عليؓ فرمائيلي دي چه خلقو ته هغه حديث بيانوئ، چه په هغې هغوي پوهيدے شي، آيا تاسو دا خبره بنه ګنړئ، چه دَ الله او رسول دے دروغ او ګنړلے شي¹.

۱. مقصد ئې دا دے چه خلقو سره د هغوي د عقل برابر خبره کول پکار دي که چرے خلقو سره د هغوي د عقل نه بَره بَره خبره وشي هغوي به ئے او نه مني. له دے وجے د رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه احاديث بيانوه. چه خلق ورباندے پوهيږي که چرے د خلقو د پوهے نه بَره بَره خبره اوشي نو هغوي به چرته د صحيح احاديثو نه افکار او کړي او کافر به شي.

۱۲۷ : حَدَّثَنَا بِهٖ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ مَّعْرُوْفٍ عَنْ اَبِي الطُّفَيْلِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِذٰلِكَ.

۱۲۷ : مونږ ته عبيدالله بن موسیٰ په واسطه د معروف. ابوالطفيل حضرت عليؓ نه دغه روايت کړے دے.

۱۲۸ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ ثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مُعَاذٌ رَدِيْفُهٗ عَلَى الرَّحْلِ قَالَ يَا مُعَاذُ ابْنُ جَبَلٍ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ ثَلٰثًا قَالَ مَا مِنْ اَحَدٍ يَّشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ صِدْقًا مِّنْ قَلْبِهٖ اِلَّا حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا اُخْبِرُ بِهِ النَّاسَ فَيَسْتَبْشِرُوْنَ قَالَ اِذًا يَّتَّكِلُوْا وَ اَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ عِنْدَ مَوْتِهٖ تَاَثُّمًا.

۱۲۸ : اسحٰق بن ابراهيم. معاذ بن هشام. هشام. قتاده. انس بن مالک وائي، چه حضرت معاذؓ (يو خلے) حضور صلعم سره د حضورؐ په سورلي ورستو سور وو. نو حضورؐ ورته او فرمائيل اے معاذ (بن جبل)، هغه عرض او کړ چه لبيک يا رسول الله و سعديک. درے خله (داسے اوشو) حضورؐ او فرمائيل چه څوک چه د زړه د اخلاصه دا ګواهي ورکړي، چه سوا د خدائے نه بل معبود نشته، او محمد د الله رسول دے، نو الله به په هغه د دوزخ اور حرام کړي معاذؓ اووے: يا رسول الله: آيا زه خلقو ته د دے خبر ورکړم، چه خوشحاله شي، نو حضورؐ او فرمائيل په دے وخت (که ته ئے خبر کړے، نو) خلق به پرے تکيه اوکړي (او عمل به پريږدي) معاذؓ دا حديث د خپل مرګ په وخت د دے خوف نه بيان کړ، چه چرته د حديث (په پټولو) هغه ګنهګار نشي.

۱۲۹ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ ذُكِرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمُعَاذٍ

۱۲۹ : مسدد. معتمر. د معتمر پلار. انسؓ وائي. ماته بيان شوے دے، چه معاذؓ ته نبي صلعم فرمائيلے وو، چه څوک الله سره داسے حال کښې يو خائے شي (ملاقي شي) چه هغه سره څوک نه شريکوي. نو هغه به جنت له ځي. معاذؓ اووے.

مَنْ لَقِيَ اللّٰهَ لَا يُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قَالَ اَلَا اُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ لَآ اِنِّيْ اَخَافُ اَنْ يَّتَّكِلُوْا.

چه آيا زۀ خلقوته ذے زيرے ورنۀ كرم. حضورؐ ورته او فرمائيل، نه ما سره دا ويره ده، چه خلق به په دے تكيه اوكړي (او اعمال صالحه به پريږدي)[۱].

۱. يقين او اعتقاد اصلي عمل دے كه چرے دا صحيح وي نو د نورو اعمالو كمزورئ اوكمے اللّٰه تعالیٰ معاف كوي. برابره ده كه ذ بد عمل سزا برداشت كړي بيا جنت ته لاړ شي يائے په اول خل اللّٰه تعالیٰ معاف كړي او جنت ته لاړ شي.

## باب ۹۶ : اَلْحَيَاءِ فِي الْعِلْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَا يَتَعَلَّمُ مُسْتَحْيٍ وَّلَا مُسْتَكْبِرٌ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ نِعْمَ النِّسَآءُ نِسَآءُ الْاَنْصَارِ لَمْ يَمْنَعُهُنَّ الْحَيَآءُ اَنْ يَّتَفَقَّهْنَ فِي الدِّيْنِ.

باب ۹۶ : علم حاصلولو كښې ذ شرم كولو بيان.

مجاهد اووے، چه نه خو شرم كونكے علم حاصلولے شي او نۀ غرور كونكے. او بي بي عائشےؓ ونيلے دي چه ذ انصارو ښځے څۀ ښے ښځے دي، هغوي دين كښې پوهٔ حاصلولو كښې شرم نۀ كوي.

۱۳۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ جَآءَ تْ اُمُّ سُلَيْمٍ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِ مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْاَةِ مِنْ غُسْلٍ اِذَا احْتَلَمَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاَتِ الْمَآءَ فَغَطَّتْ اُمُّ سَلَمَةَ تَعْنِيْ وَجْهَهَا وَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوَ تَحْتَلِمُ الْمَرْاَةُ قَالَ نَعَمْ تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا.

۱۳۰ : محمد بن سلام. ابو معاويه. هشام. عروه. زينب بنت اُم سلمه. اُم سلمه وائي، چه اُم سليمؓ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم له راغله، او ورته ئے اووے، چه يا رسول اللّٰه، اللّٰه ذ حق خبرے نه شرم نۀ كوي، (نو دا راته او فرمائے چه) آيا ښځه چه په هغے اودس واوري، غسل (فرض) دے؟ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، او. هر كله چه هغه اوبه يعني مني (په خپلو كپړو) اُووينې نو اُم سلمهؓ خپل مخ پټ كړلو، او وے وئيل چه يا رسول اللّٰه آيا په ښځه هم اودس آوري. نو حضورؐ او فرمائيل، او. ستاښے لاس دے په خاورو ككړ شي (كه ذ ښځے نه مني نۀ خارجيدے، نو) ذ هغے ماشوم به ذ هغے شابه ولے وے[۱].

۱. د ضرورت په وخت ذ ضروري مسئلو پوښتنه كولو كښې شرم بكار نه دے. د بے ځايه شرميدونه بنده ته څه فائده نه رسي نه نورو خلقوته. د ژوند ټول ارخونه كه ځان له د پواخے وي او كه د مجلس وي

كه اولسي وي كه د بنده خان له وي. الله تعالي د ټولو د پاره حدونه مقرر كړيدي كه بنده ترې بې خبره پاتې شي نو ټكرې به وهي بدحاله به وي. له دې وجې نه د دغې اړخونو د اصولو او قانون نه خان خبره ول ضروري دي. چه هغې سره بنده مخامخ كيږي. د انصاروؓ ښخو د دين د مسئلو په حقله روايتي شرميدل پريخودلې وو چه كوم مسائل د ښخو سره تعلق لري. كه چرې هغوي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوسونه نه كول نن به مسلمانانې ښخې بې خبره وې تياره به وه. حضرت اُم سُلَيم رضي الله عنها اول د الله تعالي ثنا صفت بيان كړل چه الله تعالي په حق خبره نه شرميږي بيائې د داسې خبرې تپوس او كړو چه په ښكاره ئې د شرم سره تعلق وؤ خو د دين مسئله وه تپوس ئې ضروري وو كه چرې د عامو ښخو پشان هغې شرم كړې وؤ نو پخپله به د دين د حكم نه محرومه وه. او ټولې مسلمانانې ښخې به بې خبره پاتې شوې وې له دې وجې په ټول اُمّت اول د رسول الله صلي الله عليه وسلم احسان دې چه د ژوند ټولې مسئلې ئې بيانَ كړې چه عامو خلقو د بې ځايه شرم په وجه ويلې نه شوې. بيا د انصارو بيبيانو په ټول امت احسان دې چه هغوي د هغې ټولو مسئلو تپوسونه او كړه چه هرې ښخې ته ئې ضرورت پيښيږي تردې چه ډير خله د خاوند نه تپوس هم كولې نشي.

۱۳۱ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَّا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَهِيَ مَثَلُ الْمُسْلِمِ حَدِّثُوْنِيْ مَاهِيَ فَوَقَعَ النَّاسُ فِيْ شَجَرِ الْبَادِيَةِ وَ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ اَنَّهَا النَّخْلَةُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَاسْتَحْيَيْتُ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخْبِرْنَا بِهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَحَدَّثْتُ اَبِيْ بِمَا وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ فَقَالَ لَاَنْ تَكُوْنَ قُلْتَهَا اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ لِيْ كَذَا وَ كَذَا.

۱۳۱ : اسمعيل. مالک. عبدالله بن دينار. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم (يو ځلې) او فرمائيل، اُونو كښې يوه اُونه داسې ده چه دَ هغې پاڼړې نهٔ پريوځي (يعني هميشه سدا بهار، وي) او هغه دَ مؤمن په شان ده، نو ماته اوښائې، چه هغه كومه اُونه ده. دَ خلقو خيال دَ ځنګل اُونو ته لاړ، او خما زړهٔ كښې دا راغله، چه هغه دَ قجورې اُونه ده. خوزهٔ (دَ وئيلو نه) شرميدم. آخر ټولو خلقو عرض او كهٔ، چه يا رسول الله، خمونږ پوهٔ كښې رانغله تاسو مونږ ته هغه اُونه اُوښائې، نو رسول الله صلعم ورته او فرمائيل، چه هغه دَ قجورې اُونه ده. عبداللهؓ وائي چه ما خپل پلار (عمر فاروقؓ) ته څهٔ چه م زړهٔ كښې راغلې وو، بيان كړل، نو هغهٔ اووې، كه تادا سې وئيلې وې نو دا به خما دَ دې نه او دَ دې نه زيات خوښ وو.

ف : يعني خما به دَ دې مال نه چه دَ عربو په نزد دَ ټولونه زيات محبوب دې، ستادا جواب زيات خوښ وو.

۱. وړاندې دا حديث شريف د هل سر ليک لاندې ذكر شويدې دې باب كښې ئې دا حديث شريف

خكه بيا ذكر كړلو چه په دے كښې د شرم ذكر دے عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او شرميدو او جواب نے اونه كړو كه چرے شرم نے نه وے كړے نو د جواب هغه فضيلت به ورته حاصل شوے وو چه كوم نه عمر رضي الله عنه اشاره كړے وه پلار (عمر) ورته اويل كه تا جواب كړے وے نو دا به خما د پاره لويه خبره وه. د دے حديث شريف نه معلومه شوه چه په داسے موقعه شرم كول پكار نه دي.

## باب ۹۳ : مَنِ اسْتَحْيٰى فَاَمَرَ غَيْرَهٗ بِالسُّوَالِ.

باب ۹۳ : د هغه سړي بيان چه خپله د مسئلے تپوس كولو نه شرميږي او بل چاته د مسئلے د تپوس كولو حكم وركړي.

۱۳۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دَاوٗدَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُنْذِرٍ نِالثَّوْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَاَمَرْتُ الْمِقْدَادَ اَنْ يَّسْاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ فِيْهِ الْوُضُوْءُ.

۱۳۲ : عبدالله بن داؤد. اعمش. منذر. ثوري. محمد بن حنيفه. علي رضي الله عنه نه روايت دے هغه وائي (ماته د جريان مرض وو) مذي راته وتله. ما مقدادؓ ته اووے چه هغه د نبي صلعم نه (د دے د حكم) تپوس اوكړي. هغه تپوس اوكه، نو حضورؐ ورته او فرمائيل چه د دے وتلو كښې اودس (فرض) دے [۱].

۱. حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله صلي الله عليه وسلم زوم وو د دے مسئلے پوښتنه كښې نے خكه شرم اوكړو او د مسئلے نے د مقداد رضي الله عنه په ذريعه تپوس او كړلو خكه چه مسئله ضروري وه فطري شرم نے هم اوكړو او مسئله نے هم معلومه كړه. اصل مقصد د أحكامو معلومول دي.

## باب ۹۴ : ذِكْرِ الْعِلْمِ وَالْفُتْيَا فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۹۴ : جمات كښې علمي مسائل ښودل جائز دي.

۱۳۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ مَوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا قَامَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مِنْ اَيْنَ تَاْمُرُنَا اَنْ نُّهِلَّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ مِنْ ذِى الْحُلَيْفَةِ وَ يُهِلُّ اَهْلُ الشَّامِ مِنَ الْجُحْفَةِ وَ يُهِلُّ اَهْلُ نَجْدٍ مِّنْ قَرْنٍ وَّ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۳۳ : قتيبه بن سعيد. ليث بن سعد. نافع (د عبدالله بن عمرؓ آزاد كرده غلام). عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے، چه يو سړے جمات كښې اودريد او هغهٔ اووے، يا رسول الله، تاسو مونږ ته د احرام تړلو د كوم خائے نه حكم راكوئے، حضورؐ ورته او فرمائيل، د مدينے خلق دے د ذوالحليفه نه احرام تړي، او د شام خلق دے جحفه نه احرام تړي او د نجد خلق دے قرن نه احرام تړي. (او ابن عمرؓ اووے) او، وائي چه رسول الله صلي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ يُهِلُّ اَهْلُ الْيَمَنِ مِنْ يَلَمْلَمَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُوْلُ لَمْ اَفْقَهْ هٰذِهٖ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، چه دَ يمن خلق دے يلملم نه احرام تـړي. ليکن ماته دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا ياد نۀ دي[۱].

۱. هغه سوال کونکي جماعت کښ تپوس اوکړلو او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم جماعت کښ جواب ورکړو.

**باب۹۵ : مَنْ اَجَابَ السَّآئِلَ بِاَكْثَرَ مِمَّا سَاَلَهٗ.**

**باب۹۵ :** سائل ته دَ هغۀ دَ سوال نه دَ زيات جواب ښودلو بيان.

۱۳۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَهٗ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ فَقَالَ لَا يَلْبِسِ الْقَمِيْصَ وَلَا الْعَمَامَةَ وَلَا السَّرَاوِيْلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ الْوَرْسُ وَالزَّعْفَرَانُ فَاِنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتّٰى يَكُوْنَا تَحْتَ الْكَعْبَيْنِ.

۱۳۴ : آدم. ابن بي ذئب. نافع. ابن عمر. ح. زهري. سالم ابن عمرؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي، چه يو سړي دَ حضورؐ نه تپوس اوکۀ چه محرم به څۀ اغندي؟ حضورؐ ورته او فرمائيل، نۀ دے قميص اغندي، نۀ پټکے، نۀ پرتوګ، نۀ برقع، او نۀ څۀ داسے کپړه، چه هغے کښ ورس يا زعفران لړيدلے وي. بيا که پڼړے نۀ وي، نو موزے دے واچوي، او هغه دے کټ کړي، چه د ګټو نه لاندے شي.

**ف:** (۱) د حج د احرام تړلو نه ورستو انسان ته محرم وئيلے شي.

(۲) ورس: يو قسم خوشبودار واښۀ دي. دے سره کپړے رنګولے شي[۲].

۲. سوال کونکي لنډ مختصر تپوس کړے وو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ورله تفصيلي جواب ورکړو چه جواب نيمګړے پاتے نشي.

# كِتَابُ الْوُضُوْءِ

# (دَ اودس بيان)

**باب۹۶ : مَا جَآءَ فِيْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَ اَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَ امْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ اِلَى**

**باب۹۶ :** دَ اللّٰه تعالي دَ قول: اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَ اَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ (کله چه مانځه ته اودريږئ نو خپل مخونه او خپل لاسونه د څنګلو پورے اووينځئ. او ذخپلو سرونو مسح

الْكَعْبَيْنِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ بَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ فَرْضَ الْوُضُوْءِ مَرَّةً مَرَّةً وَّ تَوَضَّاَ اَيْضًا مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَ ثَلٰثًا وَّلَمْ يَزِدْ عَلٰى ثَلَاثٍ وَّ كَرِهَ اَهْلُ الْعِلْمِ الْاِسْرَافَ فِيْهِ اَنْ يُّجَاوِزُوْا فِعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

کړے' او خپلے پښے ذ ګټو پورے وینځئ) تفسیر: امام بخاريؒ وائي' نبي صلے الله علیه وسلم فرمائیلے دي' چه اودس کښې یو یو ځل (هر اندام وینزل) فرض دي. او حضورؐ اودس کړے دے. او (هغے کښې ئے) دوه دوه ځله او درے درے ځله (ئے هم اندامونه وینزلے دي. او ذ درے ځله نه زیات ئے نهٔ دي وینزلي. او اهل علم (اودس کښې) ذ حد نه زیاتے اوبه صرف کول او ذ نبي صلي الله علیه وسلم د فعل نه تیریدل مکروه ګڼړلے دي.

## بَابٌ ۹۷ : لَا تُقْبَلُ صَلٰوةٌ بِغَيْرِ طُهُوْرٍ.

## باب ۹۷ : هیڅ مونځ بغیر پاکي نه نهٔ قبلیږي.

۱۳۵ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ قَالَ اَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ مَنْ اَحْدَثَ حَتّٰى يَتَوَضَّاَ قَالَ رَجُلٌ مِّنْ حَضْرَ مَوْتَ مَا الْحَدَثُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ فُسَاءٌ اَوْ ضُرَاطٌ.

۱۳۵ : اسحق بن ابراهیم. حنظلي. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه. ابوهریرهؓ وائي نبي صلے الله علیه وسلم فرمائیلے دي' چه کوم سړے بے اودسه شي' د هغهٔ مونځ هغه وخت نهٔ پورے نه قبلیږي څو پورے چه اودس اونهٔ کړي. د حضر موت یو سړي اووے اے ابوهریرهؓ حدیث څهٔ څیز دے' هغهٔ ورته اووے' فساء یا ضراط.

ف: فساء یا ضراط هغے هوا ته وائي' چه د لویو ټولو د ځائے نه اوځي' چه بے آوازه وي' نو هغے ته فساء وائي او چه آواز سره وي' نو هغے ته ضراط وائي (فساء پوسکئے ضراط تیز)

مونځ یو داسے عمل دے چه هغه په حقیقت کښې د بنده او د الله په مینځ کښې تعلق ښکاره کول دي ددے تعلق د پاره زړه او ژګاره ول او یو مخصوص کیدل ضروري دي او دا بغیر د دے نه نه کیږي چه بنده خپل بدن او روح د د پلیتونه پاک کړي بوه پلیتي هغه ده چه په ښکاره بدن وي' اولیدے شي بله پلیتي هغه ده چه هغه په نظر نه ښکاري صرف بنده پرے پوهیږي د دے د پاره د دواړه قسمو پلیتو نه د پاکیدو حکم ورکړے شویدے په دے حدیث شریف کښې چه د اودس ماتیدو په کومو څیزونو خبر ورکړے شویدے هغه څیزونه په ستر ګو لیدلے نشي لیکن بنده په هغے خبریږي نو اودس پرے ماتیږي دا په حقیقت کښې عام ډول نورو خلقو ته پته نه لګي. که چرے څه ظاهري نښه د اودس د ماتیدو مقرر شوے وے نو کله چه هغه معلومیده نو بنده به د اودس تیارے کوو لیکن دے کښې د ریاکارۍ (ځان ښودلو) او دوکه ورکولو امکان وو لیکن اوس یو داسے څیز د اودس ماتیدلو سبب مقرر کړے شوے دے د کوم

تعلق چه د سړي ځهل ضمير او احساس سره دے. دا د الله تعالیٰ حكيمانه اصول دي چه الله تعالیٰ بنده ته ښودلے دي ځکه هغه هوا ته والي چه نرۍ او معمولي آواز سره د لويو بولو د خانے نه رااوزي ضُراط. هغه هوا ده چه په ښکاره آواز سره د هغه ځائے نه اوزي.

**بَابُ ۹۸ : فَضْلِ الْوُضُوْءِ وَالْغُرُّ الْمُحَجَّلُوْنَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوْءِ.**

**باب ۹۸ : ذَ اودس ذَ فضيلت بيان، او (دا چه ذَ قيامت په ورځ) خلق به ذَ اودس ذَ نښو په سبب سپين مخے، سپين لاسے او سپين پښے وي.**

**۱۳۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ نُعَيْمِ الْمُجْمِرِ قَالَ رَقِيْتُ مَعَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَلٰى ظَهْرِ الْمَسْجِدِ فَتَوَضَّأَ فَقَالَ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اُمَّتِيْ يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ غُرًّا مُحَجَّلِيْنَ مِنْ اٰثَارِ الْوُضُوْءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ اَنْ يُّطِيْلَ غُرَّتَهٗ فَلْيَفْعَلْ.**

۱۳۶ : يحيي بن بكير. ليث. خالد. سعيد بن ابي هلال. نعيم مجمرؒ نه روايت دے، هغه وائي زهٔ (يو ځلے) ابوهريرهؓ سره ذ جمات چهت ته اوختم، نو هغهٔ (هلته) اودس اوکهٔ. او، وے وئيل، ما ذَ رسول الله صلعم نه آوريدلے دي، چه خما ذ اُمت خلق به ذَ قيامت په ورځ د اودس ذَ نښو په سبب په غر محجلون بللے شي، نو تاسو کښې چه څوک دا غواړي، چه هغه په خپل چمک کښې زياتے حاصل کړي، نو دغسے (پوره اودس) دے کوي[1].

**ف** : اودس کښې چه کوم اندامونه وينزلے شي، هغه به په قيامت کښې پرقيږي. په دے وجهٔ فرښتے به هغوي ته غر محجلون وائي.

۱. کوم اندامونه چه اودس کښې وينځلے شي هغه به قيامت کښې سپين او روښانه وي او دے ته غُرًّا مُحَجَّلِيْن ويلے شي.

**بَابُ ۹۹ : لَا يَتَوَضَّأُ مِنَ الشَّكِّ حَتّٰى يَسْتَيْقِنَ.**

**باب ۹۹ : که ذيے اودس شک وي، نو صرف ذ شک په وجه اودس کول ضروري نهٔ دي، څو پورے چه يقين حاصل نهٔ وي.**

**۱۳۷ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ ثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ اَنَّهٗ شَكَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَ الَّذِيْ يُخَيَّلُ**

۱۳۷ : علي. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. عباد بن تميم. عباد بن تميم. د خپل ترهٔ (چچا) نه روايت کوي چه ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په مخکښې ذَ يو داسے سړي حالت بيان کړے شو، چه ذَ هغهٔ دا خيال پيدا شي. چه مونځ کښې هغهٔ څهٔ څيز (يعني هوا

الْمُنَادِيْ فَاٰذَنَهُ بِالصَّلٰوةِ فَقَامَ مَعَهُ اِلَى الصَّلٰوةِ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ قُلْنَا لِعَمْرٍو اِنَّ نَاسًا يَقُوْلُوْنَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَامُ عَيْنُهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُوْلُ رُؤْيَا الْاَنْبِيَآءِ وَحْيٌ ثُمَّ قَرَأَ اِنِّيْ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اَذْبَحُكَ.

مانخه اطلاع نے ورکړه نو هغهٔ سره نے مانخه ذَ پاره تشريف يوړلو. ياحضورؐ مونځ اوکړلو' او اودس نے او' نهٔ کهٔ (سفيان وائي) مونږ عمرؓ ته اووے' څهٔ خلق وائي' چه ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلم سترګے به اُودے وے' او زړهٔ به نے بيدار وو' نو عمروؓ اووے' ما ذَ عبيد بن عمر نه دا آوريدلے دي' چه ذَ انبياؤ خوب وحي وي. بيا هغه: اِنِّيْ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اَذْبَحُكَ: تلاوت کهٔ.

**ف**: دلته دا شک پيدا کيدهٔ' چه هر کله اُودهٔ کيدو سره اودس ماتيږي. نو بيا حديث کښې ذَ حضورؐ بغير ذَ نوے اودس نه مونځ کول څنګه ممکن شو. په دے وجه سفيان ددے عبارت نه خپل تاويلي خيال ظاهرولو سره ذَ هغے تصديق اوغښتلو.

۱. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه د شپے کوم اودس کړے وو هغه نے يا درے څله هر اندام وينځلے نه وو يا نے وينځلے وو خو مبرلے نه وؤ او به نے ورباندے اچولے دے مطلب دا دے چه داسے هم اودس کيږي باقي د رسول الله صلي الله عليه وسلم د پاره دا خاص حکم وؤ چه په خوب کولو نے اودس نه ماتيدلو. بل څوک که اودهٔ شي نو په خوب کولو د هغوي اودس ماتيږي.

## بَابُ ۱۰۱ : اِسْبَاغِ الْوُضُوْءِ

وَقَدْ قَالَ ابْنُ عُمَرَ اِسْبَاغُ الْوُضُوْءِ الْاِنْقَآءُ.

**باب ۱۰۱**: اودس کښې ذَ اندامونو پوره وينځلو بيان. او ابن عمرؓ اووے' چه اودس پوره کول (د دے مطلب دادے چه) صاف کول (ضروري) دي.

**۱۳۹**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ دَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِالشِّعْبِ نَزَلَ فَبَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ وَلَمْ يُسْبِغِ الْوُضُوْءَ فَقُلْتُ الصَّلٰوةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الصَّلٰوةُ اَمَامَكَ

**۱۳۹**: عبدالله بن مسلمه. مالک. موسٰي بن عقبه. کريب (ذَ ابن عباسؓ آزاد کرده غلام) اسامه بن زيد وائي' رسول الله صلي الله عليه وسلم ذَ عرفه نه روان شو' تردے چه کوم وخت شعب ته راورسيدلو' نو کوز شولو. وارهٔ بول نے اوکړهٔ بيائے اودس اوکهٔ' خو اودس نے پوره نهٔ کهٔ. نو ما ورته اووے' يا رسول الله' ذَ مونځ وخت راغے' نو حضورؐ اوفرمائيل' مونځ به مخکښې (مزدلفه کښې) کوو. بياچه

فَرَكِبَ فَلَمَّا جَآءَ الْمُزْدَلِفَةَ نَزَلَ فَتَوَضَّأَ فَأَسْبَغَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ أُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثُمَّ أَنَاخَ كُلُّ إِنْسَانٍ بَعِيْرَهُ فِي مَنْزِلِهِ ثُمَّ أُقِيْمَتِ الْعِشَآءُ فَصَلّٰى وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا.

مزدلفه ته راغلو. نو حضورؐ کوز شولو' او پوره اودس ئے اوکړ. بیا مونځ قائم کړے شو' حضورؐ د ماښام مونځ اوکړلو. بیا د ماسختن مونځ قائم کړے شو' او حضورؐ مونځ ورکړلو' او د دواړو مینځ کښې ئے څه نفل مونځ او نۀ کړ'.

۱. اول ځل اودس ئے د پاکیدو د پاره کړے وو بیائے مونځ د پاره اودس اوکړو نو اول ئے معمولي کړے وؤ. بیائے په پوره طریقه اودس اوکړه.

## بَابُ ۱۰۲ : غَسْلِ الْوَجْهِ بِالْيَدَيْنِ مِنْ غُرْفَةٍ وَّاحِدَةٍ.

## باب ۱۰۲ : د اودس اندامونه صرف يو يو لپ چونګ (چنو) سره وينځل هم روا دي.

۱۴۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ قَالَ أَنَا أَبُوْ سَلَمَةَ الْخُزَاعِيُّ مَنْصُوْرُ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ أَنَا ابْنُ بِلَالٍ يَعْنِيْ سُلَيْمَانَ عَنْ زَيْدِ ابْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ أَنَّهُ تَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنْ مَّآءٍ فَتَمَضْمَضَ بِهَا وَاسْتَنْشَقَ ثُمَّ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنْ مَّآءٍ فَجَعَلَ بِهَا هٰكَذَا أَضَافَهَا إِلٰى يَدِهِ الْأُخْرٰى فَغَسَلَ بِهَا وَجْهَهُ ثُمَّ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنْ مَّآءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُمْنٰى ثُمَّ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنْ مَّآءٍ فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُسْرٰى ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنْ مَّآءٍ فَرَشَّ عَلٰى رِجْلِهِ الْيُمْنٰى حَتّٰى غَسَلَهَا ثُمَّ أَخَذَ غُرْفَةً أُخْرٰى فَغَسَلَ بِهَا يَعْنِيْ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۴۰ : محمد بن عبدالرحیم. ابوسلمه خزاعي منصور بن سلمه. ابن بلال یعني سلیمان. زید بن اسلم. عطاء بن یسار. ابن عباسؓ نه روایت دے' چه هغه اودس اوکړ' یو چونګ اوبه ئے واخستے' او هغے سره ئے خوله کښې اوبه واچولے. بیائے یو چونګ اوبه واخستے' او هغے سره ئے داسے اوکړل' یعني دویم لاس ئے اوملولو' هغے سره ئے مخ اووینځلو. بیائے یو چونګ اوبه واخستے' او خپل ښے لاس ئے اووینځلو. بیائے یو چونګ اوبه واخستے او خپل ګس لاس ئے اووینځلو. بیائے په سر مسح اوکړه. بیائے یو چونګ اوبه واخستے' او په خپلے ښیے پښه ئے واچولے تردے چه هغه ئے اووینځله. بیائے بل چونګ د اوبو واخستو' او هغے سره ئے خپله ګسه پښه اووینځله. بیائے اووے' چه ما رسول اللّٰه صلعم په دغسے اودس کولو لیدلے دے.

١٤٥ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يُحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَمِّهٖ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ اِنَّ نَاسًا يَقُوْلُوْنَ اِذَا قَعَدْتَ عَلٰى حَاجَتِكَ فَلَا تَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا بَيْتَ الْمُقَدَّسِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ لَقَدِ ارْتَقَيْتُ يَوْمًا عَلٰى ظَهْرِ بَيْتٍ لَنَا فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلًا بَيْتَ الْمُقَدَّسِ لِحَاجَتِهٖ وَ قَالَ لَعَلَّكَ مِنَ الَّذِيْنَ يُصَلُّوْنَ عَلٰى اَوْرَاكِهِمْ فَقُلْتُ لَا اَدْرِيْ وَاللّٰهِ قَالَ مَالِكٌ يَعْنِي الَّذِيْ يُصَلِّيْ وَلَا يَرْتَفِعُ عَنِ الْاَرْضِ يَسْجُدُ وَهُوَ لَاصِقٌ بِالْاَرْضِ.

١٤٥ : عبدالله بن يوسف. مالک. يحيٰي بن سعيد. محمد بن يحيٰي بن حبان. واسع بن حبان عبدالله بن عمرؓ به وئيلے' خلق وائي' چه كله تاسو قضائے حاجت دَ پاره كينيے' نو مۀ قبلے طرف ته مخ كوے او نۀ بيت المقدس طرف ته. خوزۀ يوه ورځ (دَ خپلے كوټے) چهت ته اوختلم' نو ما اوليدل' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم قضائے حاجت دَ پاره په دوو ښختو ناست وو' او مخ ئے [١] بيت المقدس طرف ته وو. او ابن عمرؓ (دے وئيلو سره واسع ته) اووے چه شايد تۀ په هغے خلقو كښې ئے' چه په خپلو كُناتو (سينه اړدلو او سجده كولو سره) مونځ كوي (واسع وائي) ما اووے والله زۀ نه پوهيږم. امام مالک اووے (په وروښونو دَ سجده كولو) مطلب دا دے' هغه بنده چه مونځ كوي او د زمكے نه د سجدے په حالت كښې پورته نه وي او زمكے سره جُخت وي.

[١] . عبدالله بن عمر رضي الله عنها د خپل څه ضرورت د پاره په كوټه ختلے وۀ ناڅاپه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدو. د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د خبرے دا مطلب وو چه خلق په څنګون پورے ښيته پيوست كړي زمكه باندے جُخت شي وائي چه د شرمګاه مخ قبلے طرفته پذدے حال كښې منعه دے بيا چه بنده قضاء حاجت د پاره بربنډ شي بيا دا تكلف مناسب نه دے چه قبلے ته مخ يا شا نشي.

## باب١٠٨ : خُرُوْجِ النِّسَآءِ اِلَى الْبَرَازِ.

## باب١٠٨ : دَ ښځو' لويو بولو دَ پاره دَ بهر وتلو بيان.

١٤٦ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ اَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ يَخْرُجْنَ بِاللَّيْلِ اِذَا

١٤٦ : يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشهؓ نه روايت دے' چه دَ نبي صلعم بيبيانے به دَ شپے دَ قضائے حاجت دَ پاره مناصع طرف ته وتلے (او دَ مناصع معني دَ فراخے ډهيرئ دي) عمرؓ به نبي صلي الله عليه

تَبَرَّزْنَ اِلَى الْمَنَاصِعِ وَهِيَ صَعِيْدٌ اَفْيَحُ وَ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْجُبْ نِسَآءَ كَ فَلَمْ يَكُنْ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ فَخَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً مِّنَ اللَّيَالِيْ عِشَآءً وَّ كَانَتِ امْرَاَةً طَوِيْلَةً فَنَادَاهَا عُمَرُ اَلَا قَدْ عَرَفْنَاكِ يَا سَوْدَةُ حِرْصًا عَلَى اَنْ يُنْزَلَ الْحِجَابُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ الْحِجَابَ.

وسلم ته وئيلے، چه تاسو خپلے بيبيانے پرده كښې كينوئے، خو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به داسے نۀ كول. يوه شپه ذ ماسختن وخت كښې بي بي سودهؓ بنت زُمعه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم تبر (قضائے حاجت ذ پاره) اووتله، او هغه لوړه دنګه بي بي وه، نو هغے ته عمرؓ په دے خيال چه ذ پردے حكم نازل شي، آواز اوكۀ، چه اے بي بي سودےؓ مونږ ته او پيژندے بيا اللّٰه پاک ذ پردے حكم نازل كۀ.

۱۴۷ : حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ قَالَ ثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَدْ اُذِنَ لَكُنَّ اَنْ تَخْرُجْنَ فِيْ حَاجَتِكُنَّ قَالَ هِشَامٌ يَعْنِي الْبَرَازَ.

۱۴۷ : زكريا. ابو اسامه. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ ذ نبي صلعم نه روايت كوي، چه حضورؐ خپلو بيبيانو ته فرمائيلے وو، چه تاسو ته حاجت ذ پاره بهر وتلو اجازت دے (هشام اووے ذ حاجت نه مراد بَول و براز دي).

## بَابٌ ۱۰۹ : اَلتَّبَرُّزِ فِي الْبُيُوْتِ.

## باب ۱۰۹ : كورونو كښې ذ لويو بَولو كولو بيان.

۱۴۸ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ ثَنَا اَنَسُ ابْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ ارْتَقَيْتُ عَلٰى ظَهْرِ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِيْ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِيْ حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ.

۱۴۸ : ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيداللّٰه بن عمر. محمد بن يحيٰي بن حبان. واسع بن حبان عبداللّٰه بن عمرؓ وائي، چه زۀ ذ څۀ ضرورت په وجه ذ بي بي حفصےؓ ذ كور چهت ته اوختم، نو ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ قضائے حاجت په وخت اوليد چه قبلے طرف ته ئے شا كړے وه او شام طرف ته ئے مخ كړے وو.

يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا شَرِبَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْاِنَاۤءِ وَ اِذَا اَتَى الْخَلَاۤءَ فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِيْنِهٖ وَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِيْنِهٖ.

هغه وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، هر كله چه ځوک اوبه څکي، نو لوښي كښې دې ساه نه آخلي، او كله چه دَ قضائے حاجت خائے ته ځي نو شرمګاه له دې خپل ښي [1] لاس نه ور اُوړي، او نه دې خپل ښي لاس سره استنجا كوي.

[1]. ښي لاس د خوراک د ښه كار د پاره خاص دے او كينړ/ ګس لاس د ګنده كارونو او د استنجا د پاره دے. كوم لوخي كښې چه اوبه څښلے شي نو هغه كښې ساه اخستل هم منعه دي چرته اوبه مرني كښې اونه نخلي يا پوزه كښې لاړے نه شي.

بَابٌ ۱۱۴ : لَا يُمْسِكُ ذَكَرَهُ بِيَمِيْنِهٖ اِذَا بَالَ.

باب ۱۱۴ : دَ وړو بولو كولو په وخت دے خپل خاص اندام خپل ښي لاس سره نهٔ نيسي.

۱۵۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا بَالَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَاْخُذَنَّ ذَكَرَهُ بِيَمِيْنِهٖ وَلَا يَسْتَنْجِيْ بِيَمِيْنِهٖ وَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْاِنَاۤءِ.

۱۵۴ : محمد بن يوسف. اوزاعي. يحيٰى بن ابي كثير. عبداللّٰه بن ابي قتاده. ابو قتاده دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل چه كله څوک وړه بول كوي، نو خپل خاص اندام دِ ښي لاس سره نهٔ نيسي، او نهٔ دے ښي لاس سره استنجا كوي، اونهٔ دے (دَ اوبو څكلو وخت كښې) لوښي كښې ساه آخلي.

بَابٌ ۱۱۵ : اَلْاِسْتِنْجَاۤءِ بِالْحِجَارَةِ.

باب ۱۱۵ : كانړو سره دَ استنجا كولو بيان.

۱۵۵ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدِ بْنِ عَمْرٍو نِالْمَكِّيُّ عَنْ جَدِّهٖ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اتَّبَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ خَرَجَ لِحَاجَتِهٖ وَ كَانَ لَا يَلْتَفِتُ فَدَنَوْتُ مِنْهُ فَقَالَ

۱۵۵ : احمد بن محمد مكي. عمرو بن يحيٰى بن سعيد بن عمرو مكي. سعيد بن عمرو. ابوهريرةؓ وائي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم رفع حاجت دَ پاره اووتلو، او حضورؐ به اخوا ديخوا نهٔ كتل (دائے عادت وو) نوزهٔ هم ورپسے ورستو ورستو ورنزدے شوم، نو حضورؐ او فرمائيل ماله كانړي او ګوره، چه هغے سره پاكي او كړم

اَبْغِنِيْ اَحْجَارًا اَسْتَنْفِضْ بِهَا اَوْ نَحْوَهُ وَلَا تَأْتِنِيْ بِعَظْمٍ وَّلَا رَوْثٍ فَاَتَيْتُهُ بِاَحْجَارٍ بِطَرَفِ ثِيَابِيْ فَوَضَعْتُهَا اِلٰى جَنْبِهٖ وَ اَعْرَضْتُ عَنْهُ فَلَمَّا قَضٰى اَتْبَعَهُ بِهِنَّ.

(يا ددے مثال څه لفظ ئے او فرمائيلو) او هډوکي مه راوړه، او نه سوتيے (ګوبر) نو ما خپلو کپړو کښې کاڼړي کيښودل او حضورؐ له مې يوړل، او د حضورؐ خوا کښې مې کيښودل، بيا ترے زۀ لرے شوم نو د قضائے حاجت نه پس حضورؐ هغه کاڼړي استعمال کړل.

بـــاب ۱۱۶ : لَا يَسْتَنْجِيْ بِرَوْثٍ.

باب ۱۱۶ : خاشنړه (د خر، قچر، اسپے واله ګندګي) سره دِے استنجا نۀ کوي.

۱۵۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ لَيْسَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ ذَكَرَهُ وَلٰكِنْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ الْاَسْوَدِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ يَقُوْلُ اَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَائِطَ فَاَمَرَنِيْ اَنْ اٰتِيَهٗ بِثَلَاثَةِ اَحْجَارٍ فَوَجَدْتُّ حَجَرَيْنِ وَالْتَمَسْتُ الثَّالِثَ فَلَمْ اَجِدْهُ فَاَخَذْتُ رَوْثَةً فَاَتَيْتُهُ بِهَا فَاَخَذَ الْحَجَرَيْنِ وَ اَلْقَى الرَّوْثَةَ وَ قَالَ هٰذَا رِكْسٌ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ.

۱۵۶ : ابونعيم. زهير. ابو اسحٰق. عبدالرحمٰن بن اسود. اسود. عبداللّٰه (ابن مسعودؓ) وائي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم قضائے حاجت د پاره لاړلو، نو ماته ئے حکم راکه، چه درے کاڼړي حضورؐ له يو سم (دوه کاڼړي خو) ما بيا مندل. او دريم مې او لټولو، خو بيا مې نۀ مندلو. نو ما د اوچو سوتو يوه ټکړه واخسته، او هغه مې حضورؐ له يوړله. حضورؐ دواړه کاڼړي واخستل او هغه غوشے [۱] ئے اُو غورځولو، او وے فرمائيل دا پليت دے.

۱. هډوکي، خاشنړو سره استنجا کول روا نه دي که لوټيے نه وي نو په کاڼړو کيدے شي.

باب ۱۱۷ : اَلْوُضُوْءِ مَرَّةً مَرَّةً.

باب ۱۱۷ : اودس کښې د اندامونو يو يو ځل د وينزلو بيان.

۱۵۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَوَضَّاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً مَرَّةً.

۱۵۷ : مُحمد بن يوسف. سُفيان. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. ابن عباسؓ وائي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم اودس کښې هر اندام يو يو ځل [۱] وينزلے دے.

۱. دا روا دي چه يو يو ځل اندامونه اوينځي دے سره فرض اودس پوره کيږي، په سنتو عمل نه کيږي

يُوسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا تَوَضَّاَ اَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ فِيْ اَنْفِهٖ مَآءً ثُمَّ لِيَسْتَنْثِرْ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوْتِرْ وَ اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهٖ فَلْيَغْسِلْ يَدَهٗ قَبْلَ اَنْ يُدْخِلَهَا فِيْ وَضُوْٓئِهٖ فَاِنَّ اَحَدَكُمْ لَا يَدْرِيْ اَيْنَ بَاتَتْ يَدُهٗ.

اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت دے' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' هر كله چه څوک اودس كوي' نو پكار دي' چه خپله پوزه كښې اوبه واچوي. بيا دے هغه صافه كړي او څوک چه كاڼړي سره استنجا كوي' نو پكار دي' چه طاق كاڼړو سره ئے كوي' او كله چه څوک دَ خپل خوب نه بيدار شي' نو هغه دے خپل لاسونه' مخكښې دَ دے نه چه دَ اودس اوبو كښې ئے اووهي' اووينزي' په دے وجه' چه تاسو كښې هيچا ته دانۀ ده معلومه' چه دَ شپے دَ هغۀ لاس كوم ځائے پاتے شوے [۱] دي.

۱. اسلام د پاكوالي مذهب دے اسلام غواړي چه د ژوند په هر اړخ بنده د پاكوالي او صفايئ خيال اوساتي.

باب١٢٢: غَسْلِ الرِّجْلَيْنِ وَلَا يَمْسَحُ عَلَى الْقَدَمَيْنِ.

باب١٢٢: دَ دواړو پښو دَ وينزلو بيان او په دواړو قدمونو دے مسح نۀ كوي.

١٦٢: حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ ثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بَشْرٍ عَنْ يُوْسُفَ بْنِ مَاهِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ تَخَلَّفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنَّا فِيْ سَفْرَةٍ فَاَدْرَكَنَا وَقَدْ اَرْهَقْنَا الْعَصْرَ فَجَعَلْنَا نَتَوَضَّاُ وَ نَمْسَحُ عَلٰى اَرْجُلِنَا فَنَادٰى بِاَعْلٰى صَوْتِهٖ وَيْلٌ لِّلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا.

١٦٢: ابوعوانه. ابوبشر. يوسف بن مالک. عبدالله بن عمروؓ نه روايت دے' هغه وائي چه يو سفر كښې نبي صلي الله عليه وسلم څمونږ نه ورستو پاتے شو. بيا حضورؐ مونږه لاندے كړو' او مونږ باندے دَ مازيګر مونځ ناوخته شوے وو' نو مونږ اودس شروع كۀ' او دَ تادئ نه مو په پښو مسح كول شروع كړل' نو حضورؐ په اوچت آواز دوه يا درے ځله او فرمائيل: وَيْلٌ لِّلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ (پوندو [۱] وله به دَ اُور تباهي شي).

۱. د دے حديث شريف نه دا معلومه شوه چه په پښو مسحه كول صحيح نه دي لكه څرنګ چه د شيعه ګانو مسلک دے پښے هم د نورو اندامونو پشان وينځل ضروري دي.

باب١٢٣: اَلْمَضْمَضَةِ فِي الْوُضُوْءِ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

باب١٢٣: اودس كښې دَ كلي كولو (خوله كنګالولو) بيان. دا ابن عباسؓ او عبدالله بن زيد دَ نبي صلے الله عليه وسلم نه نقل كړے

وَسَلَّمَ.

۱۶۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءُ بْنُ يَزِيْدَ عَنْ حُمْرَانَ مَوْلٰى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ اَنَّهُ رَاٰى عُثْمَانَ دَعَا بِوَضُوْءٍ فَاَفْرَغَ عَلٰى يَدَيْهِ مِنْ اِنَائِهٖ فَغَسَلَهُمَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ اَدْخَلَ يَمِيْنَهُ فِي الْوَضُوْءِ ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثًا وَيَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثَلٰثًا ثُمَّ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ ثُمَّ غَسَلَ كُلَّ رِجْلٍ ثَلٰثًا ثُمَّ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّاُ نَحْوَ وُضُوْئِيْ هٰذَا وَقَالَ مَنْ تَوَضَّاَ نَحْوَ وُضُوْئِيْ هٰذَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ لَا يُحَدِّثُ فِيْهِمَا نَفْسَهُ غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ .

دي.

۱۶۳ : ابو اليمان. شعيب. زهري. عطاء بن يزيد. حمران (ذ عثمان بن عفان آزاد كرده غلام) عثمان بن عفان اوليد' چه هغه اودس ذ پاره اوبه او غوښتلې. بيائے په خپلو دواړو لاسونو ذ لوښي نه اوبه واچولې' او هغه دواړه ئے درې خلې اووينزل. بيائے خپل ښے لاس اوبو كښې دننه كه. (ذ هغې نه ئے اوبه واخستې) خوله كښې ئے واچولې. او پوزه ئے صافه كړه. بيائے خپل مخ درې خلې او لاسونه ذ څنګلو پورې درې خلې او وينزل. بيائے ذ سر مسح او كړه اوپښې ئے درې خلې او وينزلې. بيائے اووې' ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دغسې اودس كولو بانديې ليدلے دے. او حضورؐ فرمائيلې دي' چه څوک څما ذ اودس په شان اودس اوكړي' بيا اخلاص سره دوه ركعاته مونخ اوكړي' نو ذ هغهٔ مخكني ګناهونه به اُوبښلې شي.

بَابُ ۱۲۴ : غَسْلِ الْاَعْقَابِ

وَكَانَ ابْنُ سِيْرِيْنَ يَغْسِلُ مَوْضِعَ الْخَاتَمِ اِذَا تَوَضَّاَ.

باب ۱۲۴ : ذ پوندو وينزلو بيان' ابن سيرين چه به اودس كولو' نو ذ ګوتې (انګوٹھی) لاندې ځائے به ئے هم وينزلو.

۱۶۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ وَكَانَ يَمُرُّ بِنَا وَالنَّاسُ يَتَوَضَّئُوْنَ مِنَ الْمِطْهَرَةِ فَقَالَ اَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ فَاِنَّ اَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۱۶۴ : آدم بن الياس. شعبه. محمد بن زيادؒ وائي چه ما ذ ابوهريرهؓ نه واوريدل (او ذ هغهٔ مونږ سره تلنهٔ راتلنهٔ وو) خلقو به (ذ اودس) لوټې سره اودس كولو نو هغهٔ اووې' چه اودس پوره كوئې' ځكه چه ابو القاسم صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي' چه: وَيْلٌ لِّلْاَعْقَابِ

يَتَوَضَّآءُ فِيهَا فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَلْبَسَهَاوَ أَمَّا الصُّفْرَةُ فَإِنِّيْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبَغُ بِهَا فَإِنِّيْ لَمْ أَرَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ حَتّٰى تَنْبَعِثَ بِهِ رَاحِلَتُهُ.

رنګ چه دے' نو ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم دے رنګ كولو سره ليدلے دے' نو زه دے رنګ سره رنګ كول خوښوم. پاتے شو احرام تړل' نو يا رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم نۀ دے ليدلے' چه احرام به ئے تړۀ ځو پورے چه به دَ حضورؐ سورلي نۀ وه روانه شوے.

ف: ترويه: يوم الترويه. دَ ذي الحجه اتم تاريخ. ترويه ورته ځكه وائي چه ابراهيم خليل اللّٰه په دے شپه دَ اسمٰعيل عليه السلام دَ ذبح كولو خوب ليدلے وو. دا دَ بركت شپه ده.

باب ۱۲۶: اَلتَّيَمُّنُ فِي الْوُضُوْءِ وَالْغُسْلِ.

باب ۱۲۶: اودس او غسل كولو كښ دَ ښي طرف نه دَ شروع كولو بيان.

۱۶۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ ثَنَا خَالِدٌ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُنَّ فِيْ غُسْلِ ابْنَتِهِ ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَ مَوَاضِعِ الْوُضُوْءِ مِنْهَا.

۱۶۶: مسدد. اسمٰعيل. خالد. حفصه بن سيرين. اُم عطيهؓ نه روايت دے' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خپلو ببيانو ته دَ خپلے لور (بي بي زينبؓ) دَ غسل په حقله او فرمائيل' چه دَ هغے دَ ښي ' طرف نه او دَ هغے دَ اودس دَ ځايونو نه شروع او كړئے.

۱. اودس او غسل كولو (لامبلو) كښ د ښي طرف نه شروع كول سنت دي. ددے نه علاوه او نورو كارونو كښ هم د ښي طرفنه شروع سنت ده.

۱۶۷: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ التَّيَمُّنُ فِيْ تَنَعُّلِهِ وَ تَرَجُّلِهِ وَ طُهُوْرِهِ فِيْ شَأْنِهِ كُلِّهِ.

۱۶۷: حفص بن عمر. شعبه. اشعث بن سليم. سليم. مسروق. بي بي عائشهؓ فرمائي' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته پيزار اچولو كښ' ګومنځ كولو كښ او طهارت (پاكي) كولو كښ غرض ټولو كارونو كښ دَ ښي طرف نه شروع كول ښۀ معلوميدل.

باب ۱۲۷: اَلْتِمَاسُ الْوَضُوْءِ

باب ۱۲۷: چه دَ مونځ وخت راشي' نو اُوبه

إِذَا حَانَتِ الصَّلٰوةُ قَالَتْ عَائِشَةُ حَضَرَتِ الصُّبْحُ فَالْتُمِسَ الْمَآءُ فَلَمْ يُوْجَدْ فَنَزَلَ التَّيَمُّمُ.

تلاش كول، او بي بي عائشةؓ فرمائي (چه يو خلے سفر كښې) سحر شو، دَ اوبو تلاش اوكړے شو، خو بيا نه موندے شوے، نو (حكم دَ) تيمم نازل شو.

۱۶۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَانَتْ صَلٰوةُ الْعَصْرِ فَالْتَمَسَ النَّاسُ الْوَضُوْٓءَ فَلَمْ يَجِدُوْا فَاُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَضُوْءٍ فَوَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ذٰلِكَ الْاِنَآءِ يَدَهٗ وَ اَمَرَ النَّاسَ اَنْ يَّتَوَضَّأُوْا مِنْهُ قَالَ فَرَاَيْتُ الْمَآءَ يَنْبَعُ مِنْ تَحْتِ اَصَابِعِهٖ حَتّٰى تَوَضَّأُوْا مِنْ عِنْدِ اٰخِرِهِمْ.

۱۶۸ : عبدالله بن يوسف. مالك. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالك وائي، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليد، چه دَ مونځ وخت راغے، او خلقو دَ اودس دَ پاره دَ اوبو تلاش كولو، خو بيائے نه موندلے. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ته (يو لوښي كښې) اودس دَ پاره اوبه راوړلے شوے، حضورؐ هغے لوښي كښې خپل لاس (مبارك) كېښودلو، او خلقو ته ئے حكم وركړ، چه هغے نه دے اودس اوكړي، انسؓ وائي ما هغه اوبه ليدے، چه دَ حضورؐ دَ ګوتو (مباركو) نه را بهيدلے، تر دے چه ټولو خلقو پرے اودس اوكړ[1].

[1]. دا د رسول الله صلي الله عليه وسلم معجزه وه. چه يوه پياله اوبو باندے ټولو خلقو اودس اوكړلو.

باب ۱۲۸ : اَلْمَاءِ الَّذِيْ يُغْسَلُ بِهٖ شَعْرُ الْاِنْسَانِ وَ كَانَ عَطَاءٌ لَّا يَرٰى بِهٖ بَاْسًا اَنْ يُّتَّخَذَ مِنْهَا الْخُيُوْطُ وَالْحِبَالُ وَ سُؤْرِ الْكِلَابِ وَ مَمَرِّهَا فِي الْمَسْجِدِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ اِذَا وَلَغَ فِيْ اِنَآءٍ لَيْسَ لَهٗ وَضُوْٓءٌ غَيْرُهٗ يَتَوَضَّأُ بِهٖ وَ قَالَ سُفْيَانُ هٰذَا الْفِقْهُ بِعَيْنِهٖ لِقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً

باب ۱۲۸ : دَ هغے اوبو بيان، چه هغے سره دَ انسان ويښتهٔ اووينځلے شي. او عطاء دے كښې څهٔ حرج نهٔ ګڼړلو چه دَ هغے ويښتو نه دے تارونه او رسئ جوړے كړے شي. او دَ سپو جوټه، او جمات كښې دَ هغوي دَ تلو راتلو بيان. زهري وئيلے دي، چه كله سپے يو لوښي كښې خوله اُووهي، او دَ هغے نه علاوه دَ اودس اوبه نه وي، نو هغے سره دے اودس اوكړي او سفيان ثوري اووے، چه قرآن نه هم دا مسئله راوخي، څكه چه الله تعالىٰ فرمائيلے دي، كه اُوبه بيانهٔ مومے، نو تيمم اوكړے. او اُوبه خو

فَتَيَمَّمُوْا وَ هٰذَا مَآءٌ وَّ فِي النَّفْسِ مِنْهُ شَيْءٌ يَّتَوَضَّأُ بِهٖ وَ يَتَيَمَّمُ.

دادي' خو ذ دے (ذ پاکئ) په حقله څهٔ شک دے' نو دے سره دے اودس اوکړے شي. او (هغے نه پس) تیمم دے هم اوکړي.

ف: لیکن ذ امام ابوحنیفهؒ په نزد ذ سپي جوټه پلیته ده. که نورے اُوبه نهٔ پیدا کیږي' نو تیمّم دے اوکړي. اودس دے پرے نهٔ کوي. ذ دے په تائید کښ ګڼړ احادیث موجود دي. ذ راتلونکو احادیثونه هم دا ثابتیږي.

۱۶۹: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ قُلْتُ لِعُبَيْدَةَ عِنْدَنَا مِنْ شَعْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَبْنَاهُ مِنْ قِبَلِ اَنَسٍ اَوْ مِنْ قِبَلِ اَهْلِ اَنَسٍ فَقَالَ لَاَنْ تَكُوْنَ عِنْدِيْ شَعْرَةٌ مِّنْهُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

۱۶۹: مالک بن اسمٰعیل. اسرائیل. عاصم. ابن سیرین وائي' ما عبیدالله ته اووے' چه مونږ سره ذ نبي صلعم (مقدس) ویښتهٔ دي. مونږ هغه ذ انسؓ یا (دائے اووے) ذ انسؓ ذ کور والو نه بیاموندے دي' نو ابو عبیده اووے' که ذ هغے ویښتو (مبارکو) نه یو ویښتهٔ هم ماته حاصل شي' نو یقیناً ماته به ذ تمامي دُنیاوي کائنات نه زیات محبوب[۱] وي.

۱. دے حدیث شریف کښ د انسان د ویښتو د پاکوالي بیان دے بیا دے احادیثونه دا هم ثابته ده چه نبي علیه السلام خپل تبرکات' خلقو کښ تقسیم کړل. نن هم بعضے خایونو کښ د نبي علیه السلام مبارک ویښته شته. دے کښ د حیرانتیا څه خبره نشته.

۱۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ قَالَ ثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ ثَنَا عَبَّادٌ عَنْ اِبْنِ عَوْنٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا حَلَقَ رَأْسَهٗ كَانَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَوَّلَ مَنْ اَخَذَ مِنْ شَعْرِهٖ.

۱۷۰: محمد بن عبدالرحیم (یا محمد بن ابراهیم) سعید بن سلیمان. عباد. ابن عون. ابن سیرین. انسؓ نه روایت دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم کوم وخت خپل سَر (مبارک) خریلے وو' نو ذ ټولو نه مخکښ ابو طلحهؓ ذ حضورؐ ویښتهٔ (مبارک) اخستلے وو.

## بَاب ۱۲۹: اِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِي الْاِنَاءِ.

## باب ۱۲۹: کله چه سپے لوښي کښ خوله خکته کړي' او څکه اوکړي.

۱۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ

۱۷۱: عبدالله بن یوسف. مالک. ابي الزناد. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت دے' رسول اللّٰه

عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِيْ اِنَآءِ اَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعًا.

صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، هر كله چه دَ يو سړي په لوښي كښې سپے اُوبه اوڅكي، نو پكار دي، چه هغه اوه ځله اووينځي.

١٧٢ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَجُلًا رَّاٰى كَلْبًا يَّاْكُلُ الثَّرٰى مِنَ الْعَطَشِ فَاَخَذَ الرَّجُلُ خُفَّهٗ فَجَعَلَ يَغْرِفُ لَهٗ بِهٖ حَتّٰى اَرْوَاهُ فَشَكَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَاَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ وَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ شُبَيْبٍ ثَنَا اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَتِ الْكِلَابُ تُقْبِلُ وَ تُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ فِيْ زَمَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرُشُّوْنَ شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ.

١٧٢ : اسحٰق. عبدالصمد. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دينار. دينار. ابو صالح. ابوهريرهؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، (پخوا زمانه كښې) يو سړي يو سپے اوليد، چه هغه دَ تندے (پياس) نه لوندہ خټه خوړله. نو هغے سړي موزه واخسته. او دَ هغے سپي دَ پاره ئے دَ هغے دَ اوبو نه راډكول شروع كړل، تردے چه هغه سپے ئے په اُوبو موړ كۀ. نو اللّٰه تعالٰي هغه له (دَ دے) ثواب وركۀ، او هغه سړے ئے جنت كښې داخل كۀ. احمد بن شبيب اووے، چه ماته ځما پلار په واسطه دَ يونس، ابن شهاب، حمزه بن عبداللّٰه عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت اوكۀ، هغۀ او فرمائيل، دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په زمانه كښې به سپي جمات ته تلل راتلل، نو صحابهؓ وُ به دَ هغے په سبب اوبۀ نۀ چړقاؤ كولے [1].

[1] دا د اسلام دَ اولنے زمانے حال وؤ. د دے نه روستو چه كله د جُماتونو د عزت كولو او خيال ساتلو حكم راغے نو په جماتونو سپي بند شو. او جماتونه د سپو نه پاك پاتے شو. د دے وجے نه د دے حديث شريف نه وړاندے ذكر شوي حديث شريف كښې هغه حكم باقي دے چه كوم لوخي سپے جوټه كړي د هغے اوه خله وينځل او د بل روايت مطابق په بناوره پاكول هم ضروري دي او دا حكم د هميشه د پاره دے.

١٧٣ : حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنِ ابْنِ اَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

١٧٣ : حفص بن عمر. شعبه. ابن ابي السفر. شعبي. عدي بن حاتم وائي. ما دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه (دَ سپي د ښكار دَ مسئلے) تپوس اوكۀ، نو حضورؐ او فرمائيل، چه كله ته خپل تربيت يافته سپے پرېږدے، او هغه ښكار اوكړي، نو هغه

قَالَ اِذَا اَرْسَلْتَ كَلْبَكَ الْمُعَلَّمَ فَقَتَلَ فَكُلْ وَ اِذَا اَكَلَ فَلَا تَاْكُلْ فَاِنَّمَا اَمْسَكَ عَلٰى نَفْسِهٖ قُلْتُ اُرْسِلُ كَلْبِىْ فَاَجِدُ مَعَهٗ كَلْبًا اٰخَرَ قَالَ فَلَا تَاْكُلْ فَاِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلٰى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلٰى كَلْبٍ اٰخَرَ.

خوره، او كله چه هغه (سپے هغه ښكار) خپله اوخوري، نو ته ئے مه خوره، ځكه چه (هغه ښكار) هغهٔ خپل خان له نيولے دے، ما اورے (كله داسے كيږي) چه زهٔ خپل سپے پريږدم او (د ښكار په موقعه) هغه سره نور سپي يوځائے بيا مومم، نو حضورؐ او فرمائيل چه هغه (ښكار) مهٔ خوره، ځكه چه تا بسم الله په خپل سپي وئيلے وه په بل سپي دے ' نه وه وئيلے.

: . د دے تفصيلي بحث د بخاري شريف كتاب الصيد كښ دے امام بخاري رحمة الله عليه دا حديث شريف دلته د دے د پاره ذكر كړيدے چه د سپي ښكار شوے څيز پاک او حلال دے (اگر چه د سپي خوله ور پورے لگيدلے ده جوته شوے دے) نو د سپي جوته پاكه ده، ليكن دا پاكوالے د حديث شريف نه نه ثابتيږي په خپل ځائے كښ د دے پوره بحث را روان دے.

**باب ۱۳۰: مَنْ لَمْ يَرَ الْوُضُوْءَ** اِلَّا مِنَ الْمَخْرَجَيْنِ الْقُبُلِ وَالدُّبُرِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنَ الْغَآئِطِ وَ قَالَ عَطَآءٌ فِيْمَنْ يَّخْرُجُ مِنْ دُبُرِهِ الدُّوْدُ اَوْ مِنْ ذَكَرِهٖ نَحْوَ الْقَمْلَةِ يُعِيْدُ الْوُضُوْءَ وَ قَالَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اِذَا ضَحِكَ فِي الصَّلٰوةِ اَعَادَ الصَّلٰوةَ وَلَمْ يُعِدِ الْوُضُوْءَ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِنْ اَخَذَ مِنْ شَعْرِهٖ اَوْ اَظْفَارِهٖ اَوْ خَلَعَ خُفَّيْهِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ لَا وُضُوْءَ اِلَّا مِنْ حَدَثٍ وَّ يُذْكَرُ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ فَرُمِيَ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَنَزَفَهُ الدَّمُ فَرَكَعَ وَ سَجَدَ وَ مَضٰى فِيْ صَلٰوتِهٖ وَ قَالَ الْحَسَنُ مَا زَالَ الْمُسْلِمُوْنَ يُصَلُّوْنَ فِيْ جِرَاحَاتِهِمْ وَ قَالَ طَاوُسٌ وَ مُحَمَّدُ

**باب ۱۳۰:** پخوانو كښ څنے داسے خلق هم شته، چه صرف لونے يا وارهٔ بولونه پس او دس فرض گنړي، (ذ دے نه علاوه څهٔ بل څيز سره اودس فرض نهٔ گنړي) ذ هغوي دليل دا آيت دے: اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَائِطِ: عطاء ذ هغے سړي باره كښ، چه ذ هغهٔ ذ ورستو نه چينجے خارج شي، يا ذ هغهٔ ذ خاص آندام نه ذ سپږو په مثل (څهٔ څيز) اوځي، دا وئيلے دي چه اودس دے دوباره اوكړي. او جابر بن عبدالله وئيلے دي، چه څوک مونځ كښ او خاندي، نو هغه دے هغه مونځ دوباره اوكړي، او اودس دے دوباره نهٔ كوي. او حسن بصريؒ وئيلے دي، كه يو سړے خپل ويښته يا نوكونه پريكړي، يا خپلے موزے اوكاږي، نو په هغهٔ اودس فرض نهٔ دے. او ابوهريرهؓ وئيلے دي، چه اودس پرے فرض نهٔ دے، خو ذ حدث (بے اودسه كيدو) په سبب سره. او جابرؓ نه نقل كولے شي، چه نبي صلعم غزوه ذات الرقاع كښ وو، چه يو سړے په تير اولگيد، هغے سره ترے وينه راووته، خو هغهٔ ركوع اوكړله او سجده ئے اوكړله، او خپل مونځ ئے پوره كړ. حسن بصريؒ وائي، چه مسلمانانو به خپلو زخمونو كښ برابر مونځ كولو. او طاؤس

بْنُ عَلِيٍّ وَ عَطَاءٌ وَ اَهْلُ الْحِجَازِ لَيْسَ فِي الدَّمِ وُضُوْءٌ وَ عَصَرَ ابْنُ عُمَرَ بَثْرَةً فَخَرَجَ مِنْهَا دَمٌ فَلَمْ يَتَوَضَّأْ وَ بَزَقَ ابْنُ اَبِيْ اَوْفٰى دَمًا فَمَضٰى فِيْ صَلٰوتِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَالْحَسَنُ فِيْمَنِ احْتَجَمَ لَيْسَ عَلَيْهِ اِلَّا غَسْلُ مَحَاجِمِهٖ.

او محمد بن علي او عطاء او اهل حجاز وائي' چه وينے تلو سره اودس نهٔ فرض کيږي. او ابن عمرؓ خپلے يوے دانے (پھنسی) ته زور ورکړ' ذ هغے نه وينه راووته' خو هغهٔ اودس اونهٔ کړلو. او ابن ابي اوفٰي وينه او توکله' خو خپل مونځ ئے پوره کړلو. او ابن عمرؓ او حسن بصريؒ ذ هغے سري باره کښې' چه ښکر (پچھنے) او لږوي' دا وائي چه په هغهٔ صرف ذ ښکر لږولو ځايونه وينځل ضروري دي.

ف: د امام شافعيؒ په نزد ذ وينے تلو سره اودس نهٔ ماتيږي. خو ذ حنفيه په نزد اودس ماتيږي. دلائيل ذ حنفيه په کتابونو کښې دي. ذ امام بخاريؒ مقصد ذ دے آثارو ذ نقل کولو نه ذ حنفيه ردّ دے. حالانکه حنفيه ؤ سره هم داسے آثار او احاديث دي' چه ذ هغے نه ثابتيږي' چه داسے حالت کښې اودس ماتيږي.

۱۷۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ قَالَ ثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ قَالَ ثَنَا سَعِيْدُ نِالْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ الْعَبْدُ فِيْ صَلٰوةٍ مَّا كَانَ فِي الْمَسْجِدِ يَنْتَظِرُ الصَّلٰوةَ مَالَمْ يُحْدِثْ فَقَالَ رَجُلٌ اَعْجَمِيٌّ مَّا الْحَدَثُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ الصَّوْتُ يَعْنِي الضَّرْطَةَ.

۱۷۴: آدم. ابي اياس. ابن ابي ذئب. سعيدمقبري. ابوهريرهؓ وائي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي' بنده برابر په مونځ کښې کنړلے شي' څو پورے چه جمات کښې ذ مونځ انتظار کوي او بے اودسه شوے نهٔ وي. يو عجمي سړے اووے' چه اے ابو هريرهؓ حدث (بے اودسه کيدل) څهٔ څيز دے هغهٔ ورته اووے' چه آواز يعني باد وتل.

۱۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ ثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْصَرِفُ حَتّٰى يَسْمَعَ صَوْتًا اَوْ يَجِدَ رِيْحًا.

۱۷۵: ابوالوليد. ابن عيينه. زهري. عباد بن تميم ذ خپل ترهٔ (چچا) نه هغهٔ ذ نبي صلعم نه روايت کوي حضورؐ او فرمائيل' مونځ هغه وخته پورے نهٔ فاسد کيږي' څو پورے چه آواز (ذ باد وتلو) واونه ري' يا (ذ هغے) بدبوئ ورنشي[۱].

۱. مطلب ئے دادے چه تر څو دا اودس ماتيدو يقين نه وي راغلے صرف په شک باندے د مونځ نيت نه ماتوي.

۱۷۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ ثَنَا

۱۷۶: قتيبه. جرير. اعمش. منذر ابو يعلي ثوري.

جَرِيْرُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُنْذِرٍ اَبِىْ يَعْلَى الثَّوْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَاسْتَحْيَيْتُ اَنْ اَسْاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرْتُ الْمِقْدَادَ ابْنَ الْاَسْوَدِ فَسَاَلَهُ فَقَالَ فِيْهِ الْوُضُوْٓءُ وَرَوَاهُ شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ.

محمد بن حنفيه نه روايت دے، چه حضرت علي كرم الله وجهه فرمائيلي دي، چه ما نه كثرت سره مذي وتله، او ماته ذ رسول الله صلے الله ذ تپوس كولو نه شرم راتله، نو ما مقداد بن اسود ته اووے. هغه ذ حضورؐ نه (په دے حقله) تپوس اوكه، نو حضورؐ او فرمائيل، چه مذي وتلو سره اودس (فرض) دے، يعني (اودس ورسره ماتيږي).

۱۷۷ : حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ ثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ اَنَّ عَطَآءَ بْنَ يَسَارٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَاَلَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ قُلْتُ اَرَاَيْتَ اِذَا جَامَعَ وَلَمْ يُمْنِ قَالَ عُثْمَانُ يَتَوَضَّأُ كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلٰوةِ وَ يَغْسِلُ ذَكَرَهُ قَالَ عُثْمَانُ سَمِعْتُهُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ عَلِيًّا وَّالزُّبَيْرَ وَ طَلْحَةَ وَ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ فَاَمَرُوْهُ ذٰلِكَ.

۱۷۷ : سعد بن حفص. شيبان. يحيي. ابوسلمه. عطاء بن يسار. زيد بن خالدؓ د عثمان بن عفان نه تپوس اوكه (وائي) ما اووے، چه دا راته اوښايه، كه يو سړے جماع (كوروالے) اوكړي، او مني ئے خارج نشي، نو عثمانؓ اووے، څنگه چه اودس كول وي، هغسے دے اودس اوكړي، او خپل خاص اندام دے اووينزي. عثمانؓ وائي، ما ذ رسول الله صلعم نه آوريدلے دي (زيدؓ وائي) نو ما دا مسئله ذ عليؓ. زبيرؓ. طلحهؓ او ابي بن كعبؓ نه او پښتله، نو هغوي هم هغے سړي ته دغه حكم وركه.

ف : دا حكم ابتدائي دے. ذ اسلام په ابتدائي حالاتو كښې احكامو كښې زيات سخت گيري نه وه خو څومره چه زمانه تيريدله او خلق اسلامي احكامو سره آشنا كيدل، نو حقيقي احكام ثابت كيدل يعني مضبوط كيدل، اوس ذ ټول اُمت اتفاق په دِ دے، چه ښځے سره صحبت كولو باندے خواه انزال اوشي يا اونشي، غسل فرض دے.

۱۷۸ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِىْ صَالِحٍ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ نِالْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۷۸ : اسحٰق بن منصور. شعبه. حكم. ذكوان. ابوصالح. ابوسعيد خدريؓ نه روايت دے، چه رسول الله صلے الله عليه وسلم يو انصاري سړي پسے (ذ راغوښتلو ذ پاره) يو سړے اوليږهٔ، كوم وخت چه هغه راغے، نو ذ سر نه ئے ذ غسل او به بهيدلے.

وَسَلَّمَ اَرْسَلَ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ فَجَآءَ وَ رَأْسُهُ يَقْطُرُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّنَا اَعْجَلْنَاكَ فَقَالَ نَعَمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اُعْجِلْتَ اَوْ قُحِطْتَ فَعَلَيْكَ الْوُضُوْٓءُ.

نبي صلعم ورته او فرمائيل، چه شايد خونږو بالو سره تا ذ تادي نه كار واخست. هغهٔ عرض او كهٔ، چه او. حضورؐ ورته او فرمائيل، چه كله ذاسے موقعه پيښه شي، (او په څهٔ سبب) انزال نهٔ وي شوے، نو تا باندے اودس (فرض) دے [1].

ف: انزال: مني وتلو ته وائي.

١. دا ټول روايات ذ اسلام د اولے زمانے دي. اوس د ښځے سره (د جماع) د كور والي نه غسل فرض دے كه مني بهيدلے وي يا بهيدلے نه وي.

## بَابٌ ١٣١ : الرَّجُلُ يُوَضِّئُ صَاحِبَهُ.

باب ١٣١ : ذ هغے سړي بيان، چه اودس كښ د خپل ملګري مدد اوكړي. يعني اوبه ورته واچوي.

١٧٩ : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ قَالَ اَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ مُّوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا اَفَاضَ مِنْ عَرَفَةَ عَدَلَ اِلَى الشِّعْبِ فَقَضٰى حَاجَتَهُ قَالَ اُسَامَةُ فَجَعَلْتُ اَصُبُّ عَلَيْهِ وَ يَتَوَضَّاُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُصَلِّيْ قَالَ الْمُصَلّٰى اَمَامَكَ.

١٧٩ : ابن سلام. يزيد بن هارون. يحيٰي موسٰي بن عقبه. كريب (ذ ابن عباس آزاد كرده غلام) اسامه بن زيدؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذ عرفات نه روان شو، نو شعب (ذ غر، دره) طرف ته ګوزړ شولو. او خپل حاجت ئے رفع كړ. اسامهؓ وائي چه بيا ما حضورؐ ته اوبه اچولے، او حضورؐ اودس كولو ما عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، آيا تاسو به (دلته) مونځ كوئے، نو حضورؐ او فرمائيل (نه) ذ مونځ كولو ځائے ستاسو وړاندے (يعني مزدلفه كښ) دے [1].

١. ددے حديث شريف د ذكر كولو مقصد دادے چه په اودس كولو كښ د بل چانه مدد اخستل روا دي.

١٨٠ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيْدٍ يَّقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ سَعْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ

١٨٠ : عمرو بن علي. عبدالوهاب. يحيٰي بن سعيد. سعد بن ابراهيم. نافع بن جبير بن مطعم. عروه بن مغيره بن شعبه. مغيره بن شعبه نه روايت دے، چه هغهٔ رسول اللّٰه صلي

سَمِعَ عُـرُوَةَ ابْـنَ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ يُحَدِّثُ عَنِ الْمُغِيرَةِ ابْنِ شُعْبَةَ اَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ وَّ اَنَّـهُ ذَهَبَ لِحَاجَةٍ لَّهُ وَ اَنَّ الْمُغِيْرَةَ جَعَلَ يَصُبُّ الْمَآءَ عَلَيْهِ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ وَ يَدَيْهِ وَ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ وَ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ.

اللّٰـه علیـه وسـلـم سـره یـو سفر کښې ملګرے وو. نو حضورؐ ذَ رفـع حـاجـت ذَ پـاره تشـریف یوړلو (کوم وخـت چـه حـضـورؐ واپـس راغـے) نـو مغیـرهؓ حضورؐ تـه اوبـه اچـولـے. او حـضـورؐ اودس کـولو. یعني حضورؐ خپـل مـخ او لاسـونـه (مبـارک) اووینـزل او ذَ سر مسـح ئـے اوکـړلـه او پـه مـوزونـے مسـح ئـے اوکړله.

**باب ۱۳۲ : قِـرَآءَةِ الْقُرْاٰنِ بَـعْـدَ الْحَدَثِ وَ غَيْرِهٖ وَ قَالَ مَنْصُوْرٌ عَنْ اِبْـرَاهِيْمَ لَا بَـاْسَ بِـالْقِرَآءَةِ فِي الْحَـمَّـامِ وَ بِكَتْبِ الرِّسَالَةِ عَلٰى غَيْرِ وُضُـوْءٍ وَّ قَـالَ حَمَّادٌ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اِنْ كَـانَ عَـلَيْهِـمْ اِزَارٌ فَسَلِّمْ وَ اِلَّا فَلَا تُسَلِّمْ.**

بـاب ۱۳۲ : کـه اودس نـهٔ وي نـو (بے اودسـه) ذَ قـرآن ذَ تـلاوت کـولـو بیـان. او مـنـصور ذَ ابـراهیم نـه نـقـل کـړے دے، چـه حـمـام کـښې تـلاوت کـول او بے اودسـه خـط لیـکـل جائـز دي. حـمـاد ذَ ابـراهیـم نـه نـقـل کـړے دے، کـه ذَ حـمـام ذَ خلـقـو پـه بـدن اِزار (تـه بـند) وي، نو سلام ورته کوئے کني مهٔ کوے.

۱۸۱ : حَـدَّثَـنَـا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَـدَّثَـنِـيْ مَالِكٌ عَنْ مَّخْرَمَةَ بْـنِ سُلَيْمَـانَ عَنْ كُـرَيْبٍ مَّوْلٰى ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّـهٗ بَـاتَ لَيْـلَةً عِـنْـدَ مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ خَالَتُهٗ فَاضْطَجَعْتُ فِيْ عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَهْلُهٗ فِيْ طُوْلِهَا فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰـى اِذَا انْتَـصَفَ اللَّيْـلُ اَوْ قَبْلَـهٗ بِـقَلِيْلٍ اَوْ بَعْدَهٗ بِقَلِيْلٍ اِسْتَيْقَظَ

۱۸۱ : اسـمـاعیـل. مالک. مخرمه بن سلیمان. کـریـب (ذَ ابن عباسؓ آزاد کرده غلام) عبدالله بن عباسؓ وائـي، چـه یـوه شپه هغه ذَ نبي صلي الله علیه وسلم ذَ تبر بـي بـي میمونے په کور کښې پاتے وو. (او هغه ذَ دهٔ ترور وَه) (ابـن عبـاسؓ وائـي) زه ذَ سـملاستو ذَ ځائے په عرض (پـلنـوالي) کښې سملاستم او رسول الله صلي الله علیه وسلم او ذَ هغوئ بي بيؓ ذَ هغے په طول (اوږدوالي) کښې سـملاستل. رسول الله صلي الله علیه وسلم اُودهٔ شولو، چـه نیـمـه شپـه شـوه یا ذَ دے نه لږ مخکښې یا ورستو، نو رسول الله صلعم بیدار شو، او خوب تېنتولو ذَ پاره خپل مخ مبـارک ئـے خپل لاس سره اُومږلو او کیناستلو. بیا حضـورؐ ذَ سورهٔ ال عمران آخري لس آیتونه اولوستل.

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَلَسَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهٖ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَرَأَ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُوْرَةِ اٰلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ اِلٰى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا فَاَحْسَنَ وُضُوْءَهٗ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رَأْسِيْ وَ اَخَذَ بِاُذُنِي الْيُمْنٰى يَفْتِلُهَا فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى اَتَاهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

بیا یو آویزان مشک ته حضورؐ اودریدلو. او ذ هغې (ذ اوبو) نه ئې اودس اوکـهٔ. بیا مونـخ کولو ذ پاره اودریدلو. ابن عباسؓ وائي. بیا زهٔ هم پاسیدم. او څنګه چه حضورؐ کړے وو، هغسې ماهم اوکړل. او ذ حضورؐ (ګس) آړخ ته اودریدم، نو حضورؐ خپل ښے لاس مبارک خما په سر کیښود، او خما ښے غوږ ئې اونیولو، وے مړولو. (او زهٔ ئې خپل ښي طرف ته کړم) حضورؐ دوه رکعاته او کړل. بیائې دوه رکعاته اوکړل. بیائې دوه رکعاته اوکړل. بیائې دوه رکعاته اوکړل. بیائې دوه رکعاته اوکړل. بیائې دوه رکعاته اوکړل (دولس رکعاته شو) دے نه پس حضورؐ وتر اوکړل بیا حضورؐ سملاست. کوم وخت چه موذن حضورؐ له راغے) نو حضورؐ اودریدلو، او دوه مختصر رکعاته (ذ سحر سنت) ئې اوکړل. بیا حضورؐ تشریف یوړلو، او ذ سحر مونځ ئې اوکړلو.

۱. رسول الله صلي الله عليه وسلم د خوب نه ويخيدونه روستو بغير د اودس كولو نه د قرآن شريف آيتونه اولوستل ددے نه ثابته شوه چه بغير د اودس نه تلاوت روا دے بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم اودس اوكړو د تهجد دولس ركعتونه ئې ادا كړل او په هغه وخت ئې وتر هم ادا كړل بيا څملاستو. د صبا د آذان نه، روستو، چه كله مؤذن نبي عليه السلام ته خبرداري وركړو بيائے كور د صبا دوه ركعته سنت ادا كړل بيا د صبا ذ فرض مونځ د پاره ئې بهر جمات ته تشريف يوړلو.

بَـــابٌ ۱۳۳ : مَـــنْ لَـــمْ يَتَـــوَضَّـــأْ اِلَّا مِـــنَ الْـــغَشْـــيِ الْمُثْقِلِ.

باب ۱۳۳ : داسے علماء هم شته، چه ذ معمولي بیهوشي په وجه ذ اودس نهٔ ماتے کیدو، قائل نهٔ دي. (ذ هغوي په نزد څو پورے چه ذ سختې بیهوشي دوره نهٔ وي، نو اودس باقي پاتے وي)

۱۸۲ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنِ امْرَاَتِهٖ فَاطِمَةَ عَنْ جَدَّتِهَا اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّهَا قَالَتْ اَتَيْتُ عَآئِشَةَ

۱۸۲ : اسمٰعیل. مالک. هشام بن عروه. فاطمه بن منذر، ذ خپلے نیا (دادي) سماء بنت ابي بکر نه روایت اوکهٔ، بي بي اسماء او فرمائیل، چه زهٔ ذ نبي صلعم تبر، بي بي عائشےؓ له راغلم او هغه وخت نمر تندر نیولے وو، نو (څهٔ ګورم چه) خلق

زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَإِذَا النَّاسُ قِيَامٌ يُصَلُّوْنَ فَإِذَا هِيَ قَائِمَةٌ تُصَلِّيْ فَقُلْتُ مَا لِلنَّاسِ فَأَشَارَتْ بِيَدِهَا نَحْوَ السَّمَآءِ وَ قَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَقُلْتُ اٰيَةٌ فَأَشَارَتْ اَنْ نَعَمْ فَقُمْتُ حَتّٰى تَجَلَّانِي الْغَشْيُ وَ جَعَلْتُ اَصُبُّ فَوْقَ رَأْسِيْ مَآءً فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ كُنْتُ لَمْ اَرَهُ اِلَّا قَدْ رَاَيْتُهُ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا حَتّٰى الْجَنَّةَ وَالنَّارَ وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِي الْقُبُوْرِ مِثْلَ اَوْ قَرِيْبًا مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ لَآ اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ يُؤْتٰى اَحَدُكُمْ فَيُقَالُ لَهُ مَا عِلْمُكَ بِهٰذَا الرَّجُلِ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ اَوِ الْمُوْقِنُ لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ فَيَقُوْلُ هُوَ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ جَآءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَالْهُدٰى فَاَجَبْنَا وَ اٰمَنَّا وَاتَّبَعْنَا فَيُقَالُ نَمْ صٰلِحًا فَقَدْ عَلِمْنَا اِنْ كُنْتَ لَمُؤْمِنًا وَ اَمَّا الْمُنَافِقُ اَوِ الْمُرْتَابُ لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ فَيَقُوْلُ لَآ اَدْرِيْ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ شَيْئًا فَقُلْتُهٗ.

ولاړ دي، مونځ کوي او بي بي عائشهؓ هم ولاړه ده، مونځ کوي. ما اووے (نن) ذَ خلقو څۀ حال دے (دا بے وخته خنګه مونځ کوي) نو بي بي عائشےؓ خپل لاس سره آسمان طرف ته اشاره اوکړه، او وے وئیل سبحان الله. ما اووے چه (دا ذَ نمر تندر نیول څۀ (ذَ عذاب وغیره) نښه ده، هغې اشاره اوکړه، چه او، نو زۀ هم (مونځ ذَ پاره) اودریدم، تردے چه په ما بیهوشي راغله، او ما په خپل سر اُوبه اچول شروع کړل. کوم وخت چه رسول الله صلی الله علیه وسلم (ذَ مونځ نه) فارغ شو، نو ذَ الله حمد و ثنائے بیان کړه. دے نه پس حضورؐ او فرمائیل چه کوم څیز ما (اوسه پورے) نۀ وو لیدلے، هغه م (دا وخت) په خپل ځائے (په ولاړه) اولیدلو. تردے چه جنت او دوزخ هم، او بیشکه په ما دا وحي راغلے ده، چه قبرونو کښ به تاسو خلقو باندے آزمائش کیږي، په مثل یا قریب ذَ دجال ذَ آزمائش. (فاطمهؓ وائي) زۀ نه پوهیږم، چه دواړو لفظونو کښ اسماء کوم لفظ استعمال کړے وو. تاسو کښ هر یو ته به فریښتے راښیلے شي، او هغۀ ته به وئیلے شي، چه ذَ دے سړي متعلق تاته څۀ معلوم دي، مومن یا موقن، (فاطمهؓ وائي) ماته یاد نۀ دي چه اسماء دے دواړو لفظونو کښ کوم لفظ وئیلے وو، وائي به دا محمدؐ دے. ذَ الله رسول دے، مونږ ته معجزو او هدایت سره راغلے وو. مونږ ذَ دوي خبره واوریده، او ایمان مو پرے راوړلو، او پیروي مو اوکړله، نو هغۀ ته به اووئیلے شي، چه آرام سره اُودۀ شه، خکه چه مونږ ته معلومه شوه، چه تۀ مؤمن نے. لیکن منافق یا شک کونکے، (فاطمه وائي) ماته یاد، نۀ دي، چه دے دواړو لفظونو کښ اسماء کوم لفظ وئیلے وو. وائي به، چه زۀ خو ذَ (حقیقت حال نه) خبر نۀ یم. لیکن ما چه څۀ ذَ خلقو نه آوریدلے وو، هغه ما هم اووے [۱].

۱. اوله مسئله د حدیث شریف نه، دا ثابته شوه چه په لږه بیهوشئ اودس نه ماتیږي حضرت اسماء بي بي رضي الله عنها په خپل سر به اوبه هم اچولے او مونځ به ئے هم کولو. دویمه مسئله ترے دا معلومه شوه

چه ايمان او اسلام باندے پوهيدل ضروري دي تر خو چه ورباندے پوهه نه وي څه فائده نشته بغير پوهے' پوخ مؤمن نشي جوړيدے منافقانو ته قبر كښ به خكه سزا وركيږي. چه هغوي ۮ اسلام د حقيقت نه بے خبره وي. صرف د خلقو وينا بيا بيا ويلو باندے خان مسلمان گنړي. د دے وجے نه چه د كوم څيز ثبوت په شريعت كښ نه وي. خالي رسم او رواج وي هغۀ شريعت گنړل نه دي پكار. د هغے خبرو نه خان ساتل ضروري دي.

**باب ۱۳۴ : مَسۡحِ الرَّأۡسِ كُلِّهٖ لِقَوۡلِهٖ تَعَالٰى وَامۡسَحُوۡا بِرُءُ وُسِكُمۡ وَ قَالَ ابۡنُ الۡمُسَيَّبِ الۡمَرۡاَةُ بِمَنۡزِلَةِ الرَّجُلِ تَمۡسَحُ عَلٰى رَاۡسِهَا وَ سُئِلَ مَالِكٌ اَيُجۡزِئُ اَنۡ يَّمۡسَحَ بَعۡضَ رَاۡسِهٖ فَاحۡتَجَّ بِحَدِيۡثِ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ زَيۡدٍ.**

**۱۸۳ : حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنِ يُوۡسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنۡ عَمۡرِو بۡنِ يَحۡيَى الۡمَازِنِيۡ عَنۡ اَبِيۡهِ اَنَّ رَجُلًا قَالَ لِعَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ زَيۡدٍ وَّهُوَ جَدُّ عَمۡرِو بۡنِ زَيۡدٍ وَّهُوَ جَدُّ عَمۡرِو بۡنِ يَحۡيٰى تَسۡتَطِيۡعُ اَنۡ تُرِيَنِيۡ كَيۡفَ كَانَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّاُ فَقَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ زَيۡدٍ نَعَمۡ فَدَعَا بِمَآءٍ فَاَفۡرَغَ عَلٰى يَدِهٖ فَغَسَلَ يَدَهٗ مَرَّتَيۡنِ ثُمَّ مَضۡمَضَ وَ اسۡتَنۡثَرَ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ وَجۡهَهٗ ثَلٰثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَيۡهِ مَرَّتَيۡنِ اِلَى الۡمِرۡفَقَيۡنِ ثُمَّ مَسَحَ رَاۡسَهٗ بِيَدَيۡهِ فَاَقۡبَلَ بِهِمَا وَ اَدۡبَرَ بَدَاَ بِمُقَدَّمِ رَاۡسِهٖ حَتّٰى ذَهَبَ بِهِمَا اِلٰى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا اِلَى الۡمَكَانِ الَّذِيۡ بَدَاَ مِنۡهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجۡلَيۡهِ.**

**باب ۱۳۴ :** ۮ ټول سر ۮ مسح بيان. په دليل ۮ قول ۮ الله تعالي: وَامۡسَحُوۡا بِرُءُ وُسِكُمۡ : او ابن مسيب وئيلے دي' چه ښځه هم په مثل ۮ سړي ده' هغه دے هم په خپل سر مسح اوكړي. امام مالكؒ نه تپوس اوشو' چه آيا ۮ سر ۮ څۀ حصے مسح كافي ده. نو هغۀ ۮ عبدالله بن زيدؓ ۮ حديث نه استدلال اوكۀ (او وے وئيل چه كافي نۀ ده).

**۱۸۳ :** عبدالله بن يوسف. مالك. عمرو بن يحيٰي مازني. يحيٰي مازني نه روايت دے' چه يو سړے چه ۮ عمرو بن يحيٰي نيكۀ (دادا) دے' عبدالله بن زيدؓ نه ئے تپوس اوكۀ' چه آيا تاسو ماته دا ښودلے شئ' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به څنگه اودس كولو. عبدالله بن زيدؓ ورته اووے. او (زۀ ښودلے شم) بيا هغوي اُوبه راوغوښتلے اوپه خپل لاس ئے واچولے. لاس ئے دوه خله اووينزل' بيائے درے خله خوله كښ اوبه واچولے' او پوزه كښ ئے اوبه واچولے. بيائے خپل مخ درے خله اووينزلو' بيائے دواړه لاسونه' ۮ څنگلو پورے دوه خله اووينزل. بيائے ۮ خپل سر خپلو دواړو لاسونو سره مسح اوكړه. يعني هغه ئے مخكښ راوستل' او ورستونے بوتلل. ۮ سر ۮ وړمبنئ حصے نه ئے شروع اوكړه' او دواړه لاسونه ئے ۮ څټ پورے اُورسول. بيائے هغه دواړه هغے ځائے ته راواپس كړل. ۮ كوم ځائے نه چه ئے شروع كړے وه. بيائے خپلے دواړه پښے اووينزلے'.

۱. دا د امام بخاري او امام ... رحمة الله علیهما مذهب دے د احنافو او شوافعو په نزد، د سر د یو حصے مسحه فرض ده. او د پوره سر مسحه سنت ده. د احنافو په نزد، د سر د څلورمے برخے مسحه ضروري ده. لکه ذ ابو معفل رضي الله عنه روایت کېږي دي. چه نبي علیه السلام صرف په تندي (وچولي) مسحه اوکړه. په باقي سرنے او نه کړه. نو د دهغے حدیث شریف نه د پوره (ټول) سر مسحه فرض کیدل نه ثابتیږي. لیکن د ټول سر مسحه سنت ده.

## بـاب ۱۳۵ : غَسْلِ الرِّجْلَيْنِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

## باب ۱۳۵ : دواړه پښے ذ ګیټو پورے د وینزلو بیان.

۱۸۴ : حَدَّثَنَا مُوسٰى قَالَ ثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيهِ شَهِدْتُّ عَمْرَو بْنَ اَبِيْ حَسَنٍ سَاَلَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ وُّضُوْءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَكْفَأَ عَلٰى يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثَلٰثًا ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فِى التَّوْرِ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلٰثَ غُرَفَاتٍ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثًا ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَمَسَحَ رَاْسَهُ فَاَقْبَلَ بِهِمَا وَ اَدْبَرَ مَرَّةً وَّاحِدَةً ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

۱۸۴ : موسٰی. وهیب. عمرو بن یحیٰي. عمرو بن حسن. ذ عبدالله بن عمرؓ نه ذ نبي صلی الله علیه وسلم په حقله تپوس اوکړ، نو هغهٔ ذ اوبو یو لوښے راوغوښتلو، او ذ هغے خلقو ذ ښودنے ذ پاره ئے ذ نبي صلی الله علیه وسلم په شان اودس او کړلو، یعني. په خپلو دواړو لاسونوئے ذ لوښي نه اُوبه تونے کړے، اول ئے دواړه لاسونه درے خله اووینزل. بیائے لاسونه لوښي کښې دننه کړل. او (ذ هغے نه ئے اُوبه واخستے) خوله ئے کنګال کړه. او پوزه کښې ئے اوبه واچولے او صافه ئے کړه. درے چونکه اوبه ئے واخستے. بیائے خپل لاس وردننه کړل، او خپل مخ ئے درے خله او وینزلو بیائے لاس لوښي ته دننه کړو نو دواړه لاسونه ئے تر څنګلو پورے دوه ځل اووینزل. بیائے په تازه اوبو ذ خپل سر مسح او کړه، یعني هغه ئے یو ځل مخے ته راوستل او په ورستو، ئے بوتلل. بیائے خپلے دواړه پښے ذ ګیټو پورے اووینزلے.

## باب ۱۳۶ : اِسْتِعْمَالِ فَضْلِ وُضُوْءِ النَّاسِ وَ اَمَرَ جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَهْلَهُ اَنْ يَّتَوَضَّأُوْا بِفَضْلِ سَوَاكِهٖ.

## باب ۱۳۶ : ذ خلقو ذ اودس نه ذ پاتے شوے اوبو ذ استعمال بیان.

جریر بن عبدالله خپل کور والوته وئیلے وو، چه ذ هغهٔ ذ اودس نه پاتے شوے اوبو باندے باندے دے اودس او کړي.

۱۸۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ ثَنَا الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ يَقُوْلُ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ

۱۸۵ : آدم. شعبه. حکم ابو حجیفه وائي چه (یوه ورځ) نبي صلعم ذ غرمے وخت کښې مونږ پلے تشریف راوړلو، نو ذ اودس اُوبه حضورؐ ته راوړلے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْهَاجِرَةِ فَاُتِيَ بِوَضُوْءٍ فَتَوَضَّأَ فَجَعَلَ النَّاسُ يَاْخُذُوْنَ مِنْ فَضْلِ وَضُوْءِهٖ فَيَتَمَسَّحُوْنَ بِهٖ فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَالْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ وَ بَيْنَ يَدَيْهِ عَنَزَةٌ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ فِيْهِ مَآءٌ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَ وَجْهَهٗ فِيْهِ وَ مَجَّ فِيْهِ ثُمَّ قَالَ لَهُمَا اِشْرِبَا مِنْهُ وَ اَفْرِغَا عَلٰى وُجُوْهِكُمَا وَ نُحُوْرِكُمَا.

شوے. حضورؐ اودس اوکړلو (کوم وخت چه حضورؐ اودس پوره کړ نو) خلقو دَ حضورؐ نه بچ شوے اُوبه اخستے او هغه به ئے (په خپلو مخونو او سترګو) مږلے. بیا نبي صلعم دَ ماسپخین دوه رکعاته او دَ مازیګر دوه رکعاته اوکړل او دَ حضورؐ مخے ته عنزه (سُنبه دار لرګے) ښخ کړے شوے وو. ابو موسٰي اووے، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم یوه پیاله راوغوښتله، چه هغے کښې اوبه وے. اول حضورؐ هغے کښې خپل دواړه لاسونه او مخ مبارک اووینځلو، او هغے کښې ئے خوله کنګال کړه. بیا هغے دواړو (یعني ابو موسٰي او بلال) ته ئے اووے، چه دا اوبه څښ اوڅکئے او په مخونو او سینونئے[۱] واچوئے.

۱. دا د څنګل واقعه ده او خپلے استعمال شوے اوبه ئے دے حضراتو صحابؤ ته د تبرّک په طور ورکړے ددے نه معلومه شوه چه د انسان جوټه پليته نه ده چه کومے اوبه ئے خوله کښې اچولے وے د هغے اوبو د څښلو حکم نبي علیه السلام او فرمایلو.

۱۸۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ ثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ قَالَ وَهُوَ الَّذِيْ مَجَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَجْهِهٖ وَهُوَ غُلَامٌ مِّنْ بِئْرِهِمْ وَ قَالَ عُرْوَةُ عَنِ الْمِسْوَرِ وَ غَيْرِهٖ يُصَدِّقُ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا صَاحِبَهٗ وَ اِذَا تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَادُوْا يَقْتَتِلُوْنَ عَلٰى وَضُوْئِهٖ.

۱۸۶ : علي بن عبدالله. يعقوب بن ابراهيم بن سعد. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب وائي ماته محمود بن ربيع اووے، چه محمود بن ربيع هغه سړے دے چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم دَ هغهٔ په مخ باندے دَ ماشوم توب په حالت کښې دَ خپلے خولے اوبه اچولے وے، چه دَ هغهٔ دَ کوهي نه ئے اخستے وے. عروه دا حدیث دَ مسور وغیره نه روایت کړے دے، او دا دواړه روایتونه دَ یو بل تصدیق کوي، چه کله به نبي صلے اللّٰه علیه وسلم اودس کولو، نو دَ حضورؐ دَ اودس نه بچ شوے اوبو باندے به صحابهؓ جګړے کولو ته نزدے کیدل[۱].

۱. د صحابؤ کرامو نبي علیه السلام سره ډیر زیات بے اندازے مینه وه ددے مینے په وجه هغوي د نبي علیه السلام د اودس اوبه استعمال شوے زمکے باندے غورزیدو ته نه پریخودلے او په خان ئے مَخلے. د یو

بل نه وړاندے كيدل چه دا تبرك ورته حاصل شي.

باب۱۳۷ :

باب۱۳۷ : (ذ دے باب عنوان نشته)

۱۸۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنِ الْجَعْدِ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ يَقُوْلُ ذَهَبَتْ بِيْ خَالَتِيْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ ابْنَ اُخْتِيْ وَقِعٌ فَمَسَحَ رَاْسِيْ وَ دَعَالِيْ بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَّضُوْئِهٖ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهٖ فَنَظَرْتُ اِلٰى خَاتِمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ.

۱۸۷ : عبدالرحمن بن يونس. حاتم بن اسمٰعيل جعد. سائب بن زيدؓ وائي' خما ترور زۀ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له بوتلم' او عرض ئے اوكړ' يا رسول اللّٰه دا خما ذ خور خوئے ناروغه دے' نو حضورؐ خما په سر لاس راښكلو. او خما ذ پاره ئے ذ بركت دُعا اوكړله. بيا حضورؐ اودس اوكړلو' او ما ذ حضورؐ ذ اودس نه بچ شوے اوبۀ اوڅكلے. بيا زۀ حضورؐ پسے شاته اودريدم' نو ما مُهرِ نبوّت اوليدلو' چه ذ حضورؐ ذ دواړو اوږو تر مينځه په مثل ذ سپركتۍ ذ پردے ذ زونډي په شان وو[۱].

۱. د اَحنافو په صحيح قول باندے د اودس استعمال شوے اوبه پاكے دي. خو پليت بدن يا پليت څيزورباندے نه پاكيږي.

بَابٌ۱۳۸ : مَنْ مَّضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ غُرْفَةٍ وَّاحِدَةٍ.

باب۱۳۸ : يو چونګ (چلّو) اُوبو سره خوله او پوزه كښ ذ اوبو اچولو بيان.

۱۸۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ اَنَّهٗ اَفْرَغَ مِنَ الْاِنَاۤءِ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ غَسَلَ اَوْ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفَّةٍ وَّاحِدَةٍ فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلٰثًا فَغَسَلَ يَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ مَاۤ اَقْبَلَ وَمَا اَدْبَرَ غَسَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ

۱۸۸ : مسدد. خالد بن عبداللّٰه. عمرو بن يحيٰي. يحيٰي. عبداللّٰه بن زيد نه روايت دے' چه هغۀ په خپلو دواړو لاسونو ذ لوښي نه اوبه واچولے' او هغه ئے اووينزل. بيائے يو چونګ اوبو سره خوله كنګال كړه او پوزه كښ ئے اوبه واچولے. دغسے ئے درے خله اوكړل' بيا دوه خله ئے دواړه لاسونه ذ څنګلو پورے اووينزل او ذ خپل سر مسح ئے اوكړله' ذ مخكښ حصے هم' او ذ ورستو حصے هم (عرض دا چه ذ پوره سر) او خپلے دواړه پښے ئے ذ ګيټو پورے او وينزلے' دے نه پس ئے

ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا وُضُوْءُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اووے، د رسول الله صلعم اودس به دغه شان وو.

بَابٌ ۱۳۹ : مَسْحِ الرَّأْسِ مَرَّةً.

باب ۱۳۹ : ذ سر مسح يو خل ذ كولو بيان.

۱۸۹ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ ثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ شَهِدْتُ عَمْرَو بْنِ اَبِيْ حَسَنٍ سَاَلَ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ زَيْدٍ عَنْ وُضُوْءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا بِتَوْرٍ مِّنْ مَّآءٍ فَتَوَضَّأَ لَهُمْ فَكَفَأَهُ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثَلٰثًا ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْاِنَآءِ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا بِثَلَاثِ غَرَفَاتٍ مِّنْ مَّآءٍ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْاِنَآءِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْاِنَآءِ فَمَسَحَ بِرَاْسِهٖ فَاَقْبَلَ بِيَدِهٖ وَ اَدْبَرَ بِهَا ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْاِنَآءِ فَغَسَلَ رِجْلَيْهِ حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ وَّ قَالَ مَسَحَ بِرَاْسِهٖ مَرَّةً.

۱۸۹ : سليمان بن حرب. وهيب. عمرو بن يحيٰي. يحيٰي. عمرو بن ابي حسن و عبدالله بن زيد ذ نبي صلے الله عليه وسلم ذ اودس ذ كيفيت اُوپښتهٔ، نو هغهٔ ذ لاس وينځلو لوښے (لاس نونے) راوغښت او (ذ هغهٔ ذ پوهيولو ذ پاره) اودس ئے اوكه. په خپلو دواړو لاسونو ئے اوبه واچولے اودرے خله ئے هغه اووينځل. بيائے خپل لاس لوښي كښ دننه كهٔ. او درے خله ئے درے چونګه اوبو سره خوله كنګال كړه او پوزه كښ ئے اوبه واچولے او پوزه ئے پاكه كړه. بيائے خپل لاس لوښي كښ ننباسهٔ او خپل مخ ئے درے خله اووينزلو، بيائے لاس لوښي كښ دننه كه او خپل دواړه لاسونه ئے ذ څنګلو پورے دوه دوه خله اووينزل، بيائے خپل لاس سره تازه اُوبه واخستے او ذ سر مسح ئے اوكړله، يعني خپل لاسونه ئے په سر كيښودل ذ ورستو نه ئے مخے ته اُو مخكښ نه ورستو بوتلل. بيائے ذ لوښي نه اُوبه واخستے او خپلے دواړه پښے ئے اووينزلے (امام بخاريؒ وائي) مونږ ته موسٰي او هغهٔ ته وهيب حديث بيان كهٔ، اووے وئيل، چه حضورؐ ذ خپل سر يو خل مسح اوكړله.

ف : تيرو ټولو حديثونو نه لاندينے خبرے ثابتيږي.

(۱) كم نه كم يو خل ذ اودس آندامونه وينزل فرض دي. دوه خله كفايت دے. او درے خله سنت يا افضل دي.

(۲) خوله كښ اوبه اچول او پوزه كښ اوبه اچول درے خله داسے هم كيدے شي، چه يو چونګ اوبه واخلي او ذ هغے نه لږے اُوبه خوله كنګالولو ذ پاره خوله كښ واچوي او لږے شان اوبه پوزه كښ واچوي. دغه شان درے خله كولو سره به درے خله خوله كښ او درے خله پوزه كښ اوبه واچولے شي. او دا شان هم كيدے شي چه درے چونګه خوله كښ اچولو ذ پاره او درے چونګه پوزه كښ ذ اچولو ذ پاره واخلي.

(۳) ذَ سر مسح دے داسے اوکړي چه پوره سر مسح کښې شامل شي، دا افضله خبره ده، اګر که ذَ سر څلورمه حصه مسح کولو سره هم فرض اداکیږي.

(۴) ذَ سر مسح هر صورت کښې صرف يو ځل کول دي، ذَ نورو اندامونو په شان دوه، دوه درے ځله نشته.

**باب ۱۴۰ : وُضُوْءِ الرَّجُلِ مَعَ امْرَاَتِهٖ وَ فَضْلِ وَضُوْءِ الْمَرْاَةِ وَ تَوَضَّأَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِالْحَمِيْمِ وَمِنْ بَيْتِ نَصْرَانِيَّةٍ.**

**باب ۱۴۰ :** ذَ سړي ښځے سره اودس كول او ذَ ښځے ذَ اودس نه پاتے شوے اوبه استعمالول. حضرت عمرؓ ګرمو اوبو سره او ذَ نصرانيه ذَ كور اوبو سره اودس اوكړلو.

۱۹۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ قَالَ كَانَ الرِّجَالُ وَالنِّسَآءُ يَتَوَضَّأُوْنَ فِيْ زَمَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۹۰ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. ابن عمرؓ وائي، ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم زمانه كښې به سړو او ښځو ټولو (ذَ يو لوښي نه) اودس كولو.

**باب ۱۴۱ : صَبِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضُوْءَهٗ عَلَى الْمُغْمٰى عَلَيْهِ.**

**باب ۱۴۱ :** ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د خپل اودس اُوبه په بيهوشه (بيمار) ذَ چړقاؤ كولو بيان.

۱۹۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَّقُوْلُ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ وَ اَنَا مَرِيْضٌ لَّا اَعْقِلُ فَتَوَضَّأَ وَصَبَّ عَلَيَّ مِنْ وَّضُوْءِهٖ فَعَقَلْتُ وَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَنِ الْمِيْرَاثُ اِنَّمَا يَرِثُنِيْ كَلَالَةٌ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ الْفَرَآئِضِ.

۱۹۱ : ابوالوليد. شعبه. محمد بن منكدر. جابر وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خما پښتنے له راغے، او زۀ (داسے سخت) ناروغه ووم، چه (په څۀ خبره) نۀ پوهيدم. نو حضورؐ اودس اوكړلو، او ذَ خپل اودس (نه بچ شوے) اوبه ئے په ما واچولے، زۀ هوش كښې راغلم نو، ما عرض اوكۀ، يا رسول اللّٰه، خما ميراث به ذَ چا وي، خما خو صرف يو كلاله وارث دے. په دے خبره ذَ فرائض آيت نازل شولو.

**ف:** هغه سړے چه ذَ هغۀ وارثانو كښې نۀ ذَ هغۀ پلار ژوندے وي، او نۀ ئے څۀ اولاد وي، هغۀ ته كلاله وائي.

**باب ۱۴۲ : اَلْغُسْلِ وَالْوُضُوْءِ**

**باب ۱۴۲ :** لګن. پيالے. ذَ لرګي

فِي الْمِخْضَبِ وَالْقَدَحِ وَالْخَشَبِ وَالْحِجَارَةِ.

او كانړي لوښي سره دَ غسل او اودس كولو بيان.

۱۹۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ قَالَ حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَقَامَ مَنْ كَانَ قَرِيبَ الدَّارِ إِلَى أَهْلِهٖ وَ بَقِيَ قَوْمٌ فَأُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِخْضَبٍ مِنْ حِجَارَةٍ فِيهِ مَآءٌ فَصَغُرَ الْمِخْضَبُ أَنْ يَبْسُطَ فِيهِ كَفَّهُ فَتَوَضَّأَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ قُلْنَا كَمْ كُنْتُمْ قَالَ ثَمَانِينَ وَ زِيَادَةً.

۱۹۲ : عبدالله بن منير. عبدالله بن بكر. حميد. انسؓ وائي چه (يو خل) دَ مونځ وخت راغے نو دَ كوم سړي كور چه هلته نزدے وو، هغه (اودس كولو دَ پاره كورته) لاړ. او څهٔ خلق پاتے شو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دَ كانړي يو مخضب (خضاب شوے. رنګ شوے لوښے) راوړے شو، چه هغے كښې اوبه وے. مخضب كښې دا ګنجائش نهٔ وو، چه حضورؐ خپل تلے (ہتھیلی) هغے كښې خور كړے شي، نو ټولو خلقو هغے لښے اوبو سره اودس اوكهٔ (حميد وائي) مونږ (انسؓ) ته اووے، چه هغه وخت تاسو څومره خلق وے، و هغهٔ اووے، چه اتيا بلكه دَ هغے نه هم زيات وو [۱].

۱. دا دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم معجزه وه چه دومره لږو اوبو باندے دومره ډيرو خلقو اودس اوكړو.

۱۹۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ قَالَ ثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا بِقَدَحٍ فِيهِ مَآءٌ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَ وَجْهَهُ فِيهِ وَ مَجَّ فِيهِ.

۱۹۳ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بُريد. ابي برده. ابو موسٰي نه روايت دے، نبي صلي الله عليه وسلم يوه پيالئ راوغوښتله، چه هغے كښې اوبه وے. بيا هغے كښې حضورؐ خپل دواړه لاسونه او مخ اووينځلو. او هغے كښې ئے خوله كنګال كړه.

۱۹۴ : حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ ثَنَا عَمْرُوْ بْنُ يَحْيٰى عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ أَتٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْرَجْنَا لَهُ مَآءً فِيْ تَوْرٍ مِّنْ صُفْرٍ فَتَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثًا وَّ يَدَيْهِ

۱۹۴ : احمد بن يونس. عبدالعزيز بن ابي سلمه. عمرو بن يحيٰي. يحيٰي. عبدالله بن يزيد نه روايت دے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم (مونږ پله) تشريف راوړلو. مونږ دَ حضورؐ دَ پاره دَ پيتل يو لوښي كښې اوبه راوړے. حضورؐ هغے سره اودس اوكړلو. خپله خوله (مباركه) ئے درے ځله اووينځله، او دواړه لاسونه ئے دوه دوه ځله اووينځل او دَ خپل سر (مبارک) مسح ئے اوكړله. يعني په سر ئے لاس

مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَ مَسَحَ بِرَأْسِهٖ فَاَقْبَلَ بِهٖ وَ اَدْبَرَ وَ غَسَلَ رِجْلَيْهِ.

کیښود' او د ورستو نه ئې مخې ته او مخې نه ئې په ورستو بوتلل. او دواړه پښې (مبارکې) ئې اووينځلې.

۱. د تانبې په لوخي کښې اوبه لې واخستلې د هغې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم اودس اوکړو. د تانبې په لوخي کښې په اوبو اودس ترې ثابت شو.

۱۹۵ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاشْتَدَّ بِهٖ وَجْعُهُ اسْتَأْذَنَ اَزْوَاجَهُ فِيْ اَنْ يُمَرَّضَ فِيْ بَيْتِيْ فَاَذِنَّ لَهٗ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ فِي الْاَرْضِ بَيْنَ عَبَّاسٍ وَّ رَجُلٍ اٰخَرَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَاَخْبَرْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ اَتَدْرِيْ مَنِ الرَّجُلُ الْاٰخَرُ قُلْتُ لَا قَالَ هُوَ عَلِيُّ ابْنُ اَبِيْ طَالِبٍ وَّ كَانَتْ عَآئِشَةُ تُحَدِّثُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَعْدَ مَا دَخَلَ بَيْتَهٗ وَاشْتَدَّ وَ جَعُهٗ هَرِيْقُوْا عَلَيَّ مِنْ سَبْعِ قِرَبٍ لَمْ تُحْلَلْ اَوْ كِيَتُهُنَّ لَعَلِّيْ اَعْهَدُ اِلَى النَّاسِ وَ اُجْلِسَ فِيْ مِخْضَبٍ لِحَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ طَفِقْنَا نَصُبُّ عَلَيْهِ تِلْكَ حَتّٰى طَفِقَ يُشِيْرُ اِلَيْنَا اَنْ قَدْ فَعَلْتُنَّ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى النَّاسِ.

۱۹۵ : ابواليمان. شعيب. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. بي بي عائشهؓ واني' کوم وخت چه نبي صلعم (آخري) مرض کښې ناروغه شو. او مرض ئې زيات شولو' نو حضورؐ د خپلو بيبيانو نه اجازت واخست چه خما يعني بي بي عائشېؓ په کور کښې دې د حضور د بيمارئ خدمت اوکړې شي نو ټولو حضورؐ ته اجازت ورکړلو. بيا نبي صلى الله عليه وسلم (خما بي بي عائشېؓ کورته راتلو د پاره) د دوو سړو په تکيه راووتلو. او دواړه پښې مبارکې ئې په زمکه راښکلې شوې. عباسؓ او د يو بل سړي په تکيه حضورؐ راوتلے وو. عبيدالله (چه د دې حديث راوي دې) واني چه ما عبدالله ابن عباسؓ د دې. خبرې نه خبر کړ' نو هغهٔ اووې' تاته معلومه ده' چه هغه دويم سړې څوک وو. ما ورته اووې' نه. نو هغهٔ اووې' هغه حضرت عليؓ بن ابي طالب وو. د بي بي عائشېؓ بيان دې' چه نبي صلعم د هغې کورته تشريف راوړلو' او د حضورؐ مرض نور هم زياتيدلو. نو حضورؐ او فرمائيل' اُووه مشکونه چه هغه پرانستې شوې نهٔ وي' څما د پاسه واچوئې' چه زهٔ خلقوته څهٔ نصيحت اوکړم (نو د دې خبرې تعميل اوشو) او حضورؐ د بي بي حفصېؓ د حضورؐ د ټبر په مِخْضَب (د کاڼړي لوښې) کښې کينولې شو. بيا مونږ ټولو په حضورؐ اوبه اچول شروع کړل. کوم وخت چه حضورؐ اشارې سره او فرمائيل چه بس (نو بيا مونږ اوبه اچول بس کړې).دې نه پس حضورؐ خلقوته بهر تشريف راوړلو.

ف: د حضورؐ مقصد دا وو چه ډک مشکونه وي او ډ هغې نه هيڅ اوبه لا خرچ شوې نه وي.

بـــاب ۱۴۳ : اَلْـوُضُــوْءِ مِـنَ التَّوْرِ.

باب ۱۴۳ : طشت سره ډ اودس کولو بيان. (طشت: مسين خانک. ډ لاس وينزلو' لوښے' لاس ولُوني ته وائي)

۱۹۶ : حَـدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ قَـ لَ ثَـنَـا سُلَيْمٰنُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْـنُ يَحْـيٰـي عَـنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ عَمِّيْ يُـكْثِرُ مِنَ الْوُضُوْءِ فَقَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْـدٍ اَخْـبِـرْنِـيْ كَيْفَ رَاَيْتَ النَّبِيَّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّاُ فَـدَعَـا بِتَوْرٍ مِّنْ مَّآءٍ فَكَفَأَ عَلٰى يَدَيْهِ فَـغَسَـلَهُمَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهٗ فِـي التَّـوْرِ فَـمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلٰثَ مَـرَّاتٍ مِّـنْ غَـرْفَةٍ وَّاحِـدَةٍ ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَيْهِ فَاغْتَرَفَ بِهِمَا فَغَسَلَ وَجْهَهٗ ثَلٰثَ مَـرَّاتٍ ثُـمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَـرَّتَيْـنِ مَـرَّتَيْـنِ ثُمَّ اَخَذَ بِيَدَيْهِ مَآءً فَـمَسَـحَ رَاْسَـهٗ فَاَدْبَرَ يَدَيْهِ وَ اَقْبَلَ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ فَقَالَ هٰكَذَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّاُ.

۱۹۶ : خالد بن مخلد. سليمان. عمرو بن يحيي. يحيي روايت كوي' چه خما تره (چچا) به (ډير اسراف سره) اودس كولو. هغه (يوه ورځ) عبدالله بن زيد ته اووے' ماته اوښايه' چه تا رسول الله صلے الله عليه وسلم څنګه په اودس كولو ليدلے دے. نو هغهٔ ډ اوبو لاس وينزونے راوغښتلو' او هغه ئے په خپلو دواړو لاسونو راتيټ كـه' او دواړه لاسـونـه ئے درے خله اووينـزل. بيائے خپل لاس مبارک په هغے لوښي كښې دننه كۀ او هر خل ئے يو چونګ سره درے خله خوله كنګال كړه او پوزه مبارکه كښې ئے اوبه واچولے. بيائے لاس مبارک لوښي كښې دننـه كۀ. چونګ ئے ډک راوښكلو او درے خله ئے مخ مبارک اووينـزلـو. بيائے دوه دوه خله خپل لاسونه ډ څنګلو مبارکو پورے اووينزل. بيائے دواړو لاسونو كښې اوبه واخستے او ډ خپل سر مبارک مسح ئے اوكړله يعني دواړه لاسونه ئے ورستو بـوتلل او بيائے ډ ورستونه مخكښې راوستل. بيائے خپل دواړه پښے مباركے مباركے اووينزلے او وے وئيل' چه دغه شان ما نبي صلي الله عليه وسلم په اودس كولو ليدلے دے'.

۱. دا حديث شريف مخكښې تير شويدے ددے نه دا ثابته شوه چه په خانک يا هموار لوښي نه اودس د پاره اوبه اخستلے شي.

۱۹۷ : حَـدَّثَـنَـا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا حَـمَّـادٌ عَـنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا بِاِنَآءٍ مِّـنْ مَّـآءٍ فَـاُتِـيَ بِقَدَحٍ رَحْرَاحٍ فِيْهِ شَيْءٌ مِنْ مَّآءٍ فَوَضَعَ اَصَابِعَهٗ فِيْهِ قَالَ

۱۹۷ : مسـدد. حـمـاد. ثـابت ډ حضرت انسؓ نــه روايــت كــړے دے' چــه نبي صلعم ډ اُوبـو يـو لـوښـے راوغښتـلـو نـو يـوه لـويه پيالئ حضورؐ ته راوړے شـوه' هـغـے كـښې څـۀ اوبـه وے. حـضـورؐ هغے كـښې خپلے ګوتـے مبـاركـے كيښودے. انسؓ وائي. ما اوبو

اَنَسٌ فَجَعَلْتُ اَنْظُرُ اِلَى الْمَآءِ يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ اَصَابِعِهٖ قَالَ اَنَسٌ فَحَزَرْتُ مَنْ تَوَضَّأَ مَا بَيْنَ السَّبْعِيْنَ اِلَى الثَّمَانِيْنَ.

ته كتل چه د حضورؐ د گوتو د مينځ نه ئے جوش وهلو، كومو خلقو چه ئے اوبو سره اودس اوكه، ما د هغوي اندازه واخيسته، نو د اويا، اتيا په مينځ كښ[1] وو.

[1]. دا حديث د نبيّ عليه السلام معجزه ښكاره كوي چه دومره لږو اوبو باندے اتيا كسانو اودس اوكړلو.

## بـاب ۱۴۴ : اَلْوُضُوْءِ بِالْمُدِّ.

باب ۱۴۴ : يو مُدَ اوبو سره د اودس كولو بيان. (مُدَ: يو پيمانه ده چه عراق كښ دوه رطل (طل ده. نيم سيرے)

۱۹۸ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا مِسْعَرٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْسِلُ اَوْ كَانَ يَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ اِلٰى خَمْسَةِ اَمْدَادٍ وَ يَتَوَضَّاُ بِالْمُدِّ.

۱۹۸ : د ابو نعيم. مسعر. ابن جبير بيان دے، وائي ما د حضرت انسؓ نه واوريدل چه نبي صلي الله عليه وسلم به كله وينزل كول يا (دائے اووے) چه كله به ئے لامبل، نو هغے كښ به ئے د يو صاع نه پنځه صاعه پورے اوبه خرچ كولے. او اودس به ئے يو مُدَ اوبو سره كولو[1]. (صاع: د دوه سوه خلور ديرش تولے يو وزن. يا پيمانه)

[1]. مُد يوه پيمانه وه په عربو كښ رائج وه. چه په هغے كښ پنځه پاوه اوبه راتلے. دا مقدار او اندازه د اوبو په هغه لحاظ سره وؤ. چه كومه زمانه كښ دا پيمانے چليدے. دے خاص مقدار باندے اودس كول يا لامبل ضروري نه دي. د انسان د وَجود برابر چه څومره برابر اوبو اودس يا لامبلوله پكار وي. هغه هومره اوبه لګول دي. باقي چه د كوم مقدار رسول الله صلي الله عليه وسلم ته نسبت شويدے هغے ته علماء مستحب وائي.

## بـاب ۱۴۵ : اَلْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ.

بـاب ۱۴۵ : پـه موزو د مَسَحَ كولو بيان.

۱۹۹ : حَدَّثَنَا اَصْبَغُ ابْنُ الْفَرَجِ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرٌو قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو النَّضْرِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ

۱۹۹ : صبغ بن فرج. ابن وهب. عمرو. ابوالنصر. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. عبدالله بن عمر. سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت دے، چه نبي صلي الله عليه وسلم په موزو مسح اوكړه. او عبدالله بن عمرؓ د عمرؓ نه دے بابت كښ تپوس اوكه، نو هغوي

عُمَرَ سَأَلَ عُمَرَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ نَعَمْ إِذَا حَدَّثَكَ شَيْئًا سَعْدٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا تَسْأَلْ عَنْهُ غَيْرَهُ وَ قَالَ ابْنُ مُوْسَى ابْنُ عُقْبَةَ أَخْبَرَنِي أَبُو النَّضْرِ أَنَّ أَبَا سَلَمَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ سَعْدًا فَقَالَ عُمَرُ لِعَبْدِ اللّٰهِ نَحْوَهُ.

ورته اووې' او هر كله چه تاته سعد څۀ روايت دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه بيان كړي' نو دَ هغې بابت كښې بيا دَ بل چا نه تپوس مۀ كوه. او موسي بن عقبه اووې' ماته ابوالنضر بيان اُوكۀ چه عمرؓ' عبدالله ته دغسې ' اووې.

۱. اصل خبره داده چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته په موزو باندې د مسحې كولو علم نه وؤ چه كله هغه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه سره كوفې ته راغې او هغه ئې اوليدو. چه په موزوئې مسحه كوله. نو د هغې د وجې ئې تپوس اوكړو. نو حضرت سعد رضي الله عنه ورته د رسول الله صلي الله عليه وسلم د عمل حواله وركړه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په موزو مسحه كړې وه. بيا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خپل پلار عمر رضي الله عنه نه د تحقيق د پاره تپوس اوكړو. او د حضرت سعد رضي الله عنه حواله ئې وركړه. پلار ورته اويل چه كله حضرت سعد رضي الله عنه د رسول الله صلي الله عليه وسلم روايت اوكړي نو هغه صحيح خبره ده. د چا نه د تحقيق ضرورت نشته حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته د موزو د مسئلې معلومات اوشو. چه په سفر او په وطن (په كور كلي) ټولو حالاتو كښې په موزو مسحه روا ده. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خپله رائې پريخوده چه صرف په سفر كښې مسحه شته.

۲۰۰ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ الْحَرَّانِيُّ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ نَافِعِ ابْنِ جُبَيْرٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ أَبِيْهِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ خَرَجَ لِحَاجَتِهٖ فَاتَّبَعَهُ الْمُغِيْرَةُ بِإِدَاوَةٍ فِيْهَا مَاءٌ فَصَبَّ عَلَيْهِ حِيْنَ فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهٖ فَتَوَضَّأَ وَ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ.

۲۰۰ : عمرو بن خالد حراني. ليث. يحيي بن سعيد. سعد بن ابراهيم. نافع بن جبير. عروه بن مغيره دَ خپل پلار مغيره بن شعبه او هغه دَ حضورؐ نه روايت كوي' چه حضورؐ (يوه ورځ) دَ قضائے حاجت دَ پاره تشريف يوړلو' نو مغيره هم دَ اوبو يو لوښې واخست او حضورؐ پسې لاړ. كوم وخت چه حضورؐ دَ حاجت نه فارغ شو' نو مغيره دَ حضورؐ په لاس پښو اوبه اچولې. حضورؐ اودس اوكړلو او په موزوئې مسح اوكړه.

۲۰۱ : حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ أَنَّ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ رَأَى رَسُوْلَ اللّٰهِ

۲۰۱ : ابونعيم. شيبان. يحيي. ابوسلمه. جعفر بن عمرو بن اُميه ضمري. عمرو بن اُميه ضمري نه روايت دې' چه هغۀ رسول

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَ تَابَعَهُ حَرْبٌ وَّ اَبَانُ عَنْ يَّحْيٰى.

صلى اللّٰه عليه وسلم په موزو مسح كولو ليدلے دے.

۲۰۲ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو ابْنِ اُمَيَّةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلٰى عَمَامَتِهٖ وَ خُفَّيْهِ وَ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ يَّحْيٰي عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَمْرٍو رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۰۲ : عبدان. عبداللّٰه. اوزاعي. يحيٰي. ابوسلمه. جعفر بن عمرو بن اميه. عمرو بن اُميه نه روايت دے، وائي چه ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په خپل پټكي اوپه دواړو موزو باندې په مسح كولو ليدلے دے. او معمر په روايت ذ يحيٰي. ابوسلمه ذ عمرو نه ذ دے متابع حديث روايت كړے دے، چه ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم (په دغسے كولو) ليدلے [۱] دے.

۱. د خالي پټكي مسحه كافي نه ده. د دے روايت دا مطلب دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د سر په مخكني حصه مسحه اوكړه په باقي سرئے پټكے وو د پُوره (د ټول) سر د مسحے په خاطر په پټكي ئے لاس راخكلو. دا د جمهورو علماؤ مذهب دے.

## بَاب ۱۴۶ : اِذَا دَخَلَ رِجْلَيْهِ وَ هُمَا طَاهِرَتَانِ.

## باب ۱۴۶ : ذ اودس حالت كښ ذ موزو اچولو بيان.

۲۰۳ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا زَكَرِيَّا عَنْ عَامِرٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَاَهْوَيْتُ لِاَنْزِعَ خُفَّيْهِ فَقَالَ دَعْهُمَا فَاِنِّيْ اَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا.

۲۰۳ : ابونعيم. زكريا. عامر. عروه بن مغيره. مغيرهؓ وائي، زهٔ يو سفر كښ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره ملګرے ووم. ما (ذ اودس وخت كښ) اوغوښتل، چه ذ حضورؐ دواړه موزے اوكاږم، نو حضورؐ او فرمائيل، دا پريږده. ما دا ذ طهارت (پاكئ) حالت كښ اچولے وے. بيا حضورؐ په هغے مسح اوكړه [۱].

۱. په موزو د مسحے كولو روايت تقريباً څلويختو صحابؤ رضي اللّٰه عنهم بيان كړے دے په كور كلي كښ اوسيدونكي (مقيم) ته يوه ورځ او مسافر ته درے ورځے درے شپے په موزو ذ مسحے كولو اجازت دے.

## بَاب ۱۴۷ : مَنْ لَّمْ يَتَوَضَّأْ مِنْ لَحْمِ الشَّاةِ وَالسَّوِيْقِ وَ اَكَلَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ

## باب ۱۴۷ : ذ چيلي غوښه اوستوان خوړلو سره ذ اودس نه كولو بيان. ابوبكرؓ. عمرؓ او عثمانؓ

وَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ لَحْمًا فَلَمْ يَتَوَضَّئُوْا.

غوښه او خوړله او هغې نه پس نې اودس او نه کړ.

۲۰۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۲۰۴ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت دې، چه رسول اللّٰه عليه وسلم دَ چيلې يوه شانه (دَ اوږې دَ هډوکي غوښه) اوخوړله. هغې نه پس ئې مونځ اوکړ او تازه اودس ئې اونه کړ.

۲۰۵ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو بْنِ اُمَيَّةَ اَنَّ اَبَاهُ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فَدُعِيَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَلْقَى السِّكِّيْنَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۲۰۵ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. جعفر بن عمرو بن اُميه دَ هغهٔ دَ پلار عمرو بن اُميه نه روايت کوي، چه هغهٔ حضور صلعم دَ چيلې اُوږه پريکولو او خوړلو بانديې ليدلې دې. بياچه مانځه دَ پاره او غوښتلې شو، نو چاړه ئې او غورځوله او مونځ ئې اوکړ. او اودس ئې اونهٔ کړ[۱].

۱. د اسلام په ابتدا کښې چه کوم څيز ګرم وو اوپه اور پوخ شوې وو د هغې په خوړلو به اودس ماتيدو او د بيا اودس کولو حکم وو. ليکن روستو دا حکم منسوخ شو. د هيڅ روا څيز په خوړلو (خوراک) اودس نه ماتيږي.

## بَابٌ ۱۴۸ : مَنْ مَضْمَضَ مِنَ السَّوِيْقِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

باب ۱۴۸ : که چاستوان اُو خوړل، خوله ئې کنګال کړه او اودس ئې اونهٔ کړ.

۲۰۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ بُشَيْرِ ابْنِ يَسَارٍ مَوْلٰى بَنِيْ حَارِثَةَ اَنَّ سُوَيْدَ بْنَ النُّعْمَانِ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى اِذَا

۲۰۶ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. يحيي بن سعيد. بشير بن يسار (دَ بني حارثه آزاد کرده غلام) سويد بن نعمانؓ نه روايت دې، دَ خيبر دَ فتح په ورځ هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره وو، چه مقام صهباء ته اُورسيدل چه خيبر ته ډير نزدې وو، نو حضورؐ دَ مازيګر مونځ اوکړلو. او بيائې دَ لارې توښه (زادِ راه)

كَانُوْا بِالصَّهْبَآءِ وَ هِيَ اَدْنٰى خَيْبَرَ فَصَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالْاَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ اِلَّا بِالسَّوِيْقِ فَاَمَرَ بِهٖ فَثُرِّيَ فَاَكَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ اِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَ مَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

او غوبنتله (صحابهٔ ؓ) صرف ستوان حضورؐ له راوړل. حضورؐ دَ هغې اوبو کېښ دَ ګډولو حکم اوکهٔ. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم او مونږ تولو هغه ستوان او خوړل دَ هغې نه پس حضورؐ دَ ماښام دَ مونځ دَ کولو دَ پاره اودريدلو صرف خوله مبارکه ئې کنګاله کړه او مونږهم خولې کنګالې کړې. دې نه پس حضورؐ مونځ اوکړلو، او اودس ئې اونهٔ کړلو.

۲۰۷ : حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَنَا بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكَلَ عِنْدَهَا كَتِفًا ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۲۰۷ : اصبغ. ابن وهب. عمرو. بکر. کريب. بي بي ميمونهؓ نه روايت دې، چه هغې کړه نبي صلي الله عليه وسلم (دَ چيلئې) دَ پتون غوښه او خوړله. دَ هغې نه پس ئې مونځ اوکهٔ. (او تازه اودس ئې اونهٔ کهٔ).

باب ۱۴۹ : هَلْ يُمَضْمِضُ مِنَ اللَّبَنِ.

باب ۱۴۹ : چه پئې اوڅکي، نو خوله دې کنګال کړي که نه.

۲۰۸ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ وَ قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ وَ قَالَ اِنَّ لَهٗ دَسَمًا تَابَعَهٗ يُوْنُسُ وَ صَالِحُ ابْنُ كَيْسَانَ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۲۰۸ : يحيي بن بکير او قتيبه. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. ابن عباسؓ نه روايت دې، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم پئې اوڅکل، نو خوله ئې کنګال کړه، او وې فرمائيل چه پيو کښ غوړ والې وي يونس او صالح بن کيسان دَ دې متابع حديث روايت کړې دې.

باب ۱۵۰ : اَلْوُضُوْءِ مِنَ النَّوْمِ وَمَنْ لَمْ يَرَ مِنَ النَّعْسَةِ وَ النَّعْسَتَيْنِ اَوِ الْخَفْقَةِ وُضُوْءً ا.

باب ۱۵۰ : خوب سره دَ اودس کولو بيان او بعضې هغه خلق چه يو ځل يا دوه ځله دَ خوب جوتې سره يا دَ سر خوزيدلو سره اودس ضروري (فرض) نهٔ ګڼړي.

۲۰۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۲۰۹ : عبدالله بن يوسف. مالک. هشام. عروه.

يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا نَعَسَ اَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَلْيَرْقُدْ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ فَاِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا صَلّٰى وَهُوَ نَاعِسٌ لَا يَدْرِيْ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبُّ نَفْسَهُ.

بي بي عائشهؓ نه روايت دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چه كله يو سړي له خوب جوته وركړي او هغه مونځ كوي، نو هغه له پكار دي، چه سملي، تردے چه خوب ترے لاړ شي، ځكه چه ذ خوب حالت كښې څوك مونځ كوي، نو په دے نهٔ پوهيږي'' شايد چه هغه ځان د پاره ښښنه غواړي او ځان ته به كنځل (زيرے) او كړي.

۱. د خوب په اوقاتو كښې خلق عام طور نفلونه كوي لكه تهجد وغيره دنفلي مونځونو د پاره دا حكم دے فرض مونځ د خوب د پاره پريخودل ناروا دي.

۲۱۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ ثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا نَعَسَ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَنَمْ حَتّٰى يَعْلَمَ مَا يَقْرَأُ.

۲۱۰: ابومعمر. عبدالوارث. ابوقلابه. انسؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايتكوي، حضورؐ او فرمائيل، هر كله چه يو سړے ذ خوب په نشه كښې وي، نو هغهٔ له اودهٔ كيدل پكار دي، تردے چه خوب ترے لاړ شي او چه څهٔ وائي، په هغے پوهيږي.

## باب ۱۵۱: اَلْوُضُوْءِ مِنْ غَيْرِ حَدَثٍ.

## باب ۱۵۱: بغير بے اودسئ ذ اودس كولو بيان.

۲۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا وَّ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَامِرٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ قُلْتُ كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ قَالَ يُجْزِئُ اَحَدَنَا الْوُضُوْءُ مَالَمْ يُحْدِثْ.

۲۱۱: محمد بن يوسف. سفيان. عمرو بن عامر. انسؓ. ح (دويم سند) مسدد. يحيٰي. سفيان. عمرو بن عامر. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغهٔ او فرمائيل، نبي صلے الله عليه وسلم به ذ هر مونځ په وخت اودس كولو. (عمرو بن عامرؒ وائي) ما اووے، تاسو خلقو به څنگه كول، انسؓ اووے، چه مونږ كښې به هر يو له، څو پورے چه بے اودسه شوے به نه وو، يو اودس كافي وو.

۲۱۲: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ

۲۱۲: خالد بن مخلد. سليمان. يحيٰي بن سعيد.

قَالَ ثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ بُشَيْرُ بْنُ يَسَارٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُوَيْدُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَآءِ صَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَصْرَ فَلَمَّا صَلّٰى دَعَا بِالْاَطْعِمَةِ فَلَمْ يُؤْتَ اِلَّا بِالسَّوِيْقِ فَاَكَلْنَا وَ شَرِبْنَا ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ ثُمَّ صَلّٰى لَنَا الْمَغْرِبَ فَلَمْ يَتَوَضَّاْ.

بشير بن يسار. سويد بن نعمانؓ وائي' چه مونږ دَ خيبر دَ فتح په کال رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره روان شو. کوم وخت چه مونږ صهباء ته اورسيدو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ ته دَ مازيګر مونځ راکهٔ' چه مونځ اوشو' نو خوراکه ئے اوغوښتلهٔ' صحابهؓ ؤ ورله ستوان راوړل' چه مونږ تولو اوخوړل او اوڅکل' نو بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ ماښام دَ مونځ دَ پاره اودريدلو. حضورؐ صرف خوله مبارکه کنګال کړه. دے نه پس ئے مونځ ورکړلو. تازه اودس ئے اونهٔ کهٔ [1].

[1]. د هر مونځ د پاره تازه اودس کول مستحب دي. په يو اودس ډير مونځونه کول روا دي لکه د دواړو احاديثو نه معلوميږي.

## بَاب ۱۵۲ : مِنَ الْكَبَآئِرِ اَنْ لَّا يَسْتَتِرَ مِنْ بَوْلِهٖ.

## باب ۱۵۲ : دَ ورو بَولونه' نهٔ بچ کيدل ګناه کبيره کښې راځي:

۲۱۳ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ ثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحَائِطٍ مِّنْ حِيْطَانِ الْمَدِيْنَةِ اَوْ مَكَّةَ فَسَمِعَ صَوْتَ اِنْسَانَيْنِ يُعَذَّبَانِ فِيْ قُبُوْرِهِمَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ ثُمَّ قَالَ بَلٰى كَانَ اَحَدُهُمَا لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهٖ وَ كَانَ الْاٰخَرُ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ دَعَا بِجَرِيْدَةٍ فَكَسَرَهَا كِسْرَتَيْنِ عَلٰى كُلِّ

۲۱۳ : عثمان. جرير. منصور. مجاهد. ابن عباسؓ نه روايت دے. چه نبي صلعم دَ مدينے يا مکے باغونو ته تشريف يوړلو' نو دَ دوو سړو آواز' ئے واوريدلو چه قبر کښې پرے عذاب کيدلو. بيا نبي صلعم او فرمائيل' په دے دواړو عذاب کيږي' خو دَ څهٔ لوئے خبرے په وجه پرے نهٔ کيږي. بيا حضورؐ او فرمائيل. او بلکه لويه خبره ده. دوي کښې يو خو دَ خپلو ورو بولونه ځان نه بچ کولو' او دويم به چغلي خوړله. بيا حضورؐ يوه څانګه او غوښتله. هغه ئے دوه ټکړے کړه. او دَ هر يو په قبرئے يوه يوه ټکره کيښوده. حضورؐ ته عرض اوشو' يا رسول اللّٰه'

قَبْرٍ مِنْهُمَا كِسْرَةً فَقِيْلَ لَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا قَالَ لَعَلَّهُ اَنْ يُخَفَّفَ عَنْهُمَا مَالَمْ تَيْبَسَا.

دا سے تاسو ولے او کړل، نو حضورﷺ ورته او فرمائيل، اُميد دے چه څو پورے دا ټکړے اوچے نهٔ شي. په دے دواړو ' به عذاب کم وي.

۱. دا قبرونه د مسلمانانو وو يا د کافرو. په دے کښې اختلاف دے ليکن صحيح خبره دادہ چه دا د مسلمانانو وو د هغوي د عذاب کمولو د پاره رسول الله صلي الله عليهوسلم ورباندے د قجورے څانګے کيخودلے دا نبي عليه السلام ته په وحي معلومه وه. چه په دے طريقه د قبر عذاب کميږي. واړه بول پليت دي په دے وجه اسلام د هغے نه ډَ بچ کيدو او احتياط حکم کړيدے لکه حديث شريف کښې راغلے دي د متيازونه خان بچ کړئ د قبر عذاب ددے په وجه وي. متيازے زهر دي صحت د پاره نقصان دے او بدبوئ نے هم روغ بنده باندے بده لږي. چُغلي کول اخلاقي مرض دے پخپله پرے بنده بے عزته کيږي او خلقوته پرے نقصان رسي خکه د قبر ډَ عذاب سبب دے.

**باب ۱۵۳ : مَا جَآءَ فِيْ غَسْلِ الْبَوْلِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَاحِبِ الْقَبْرِ كَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهٖ وَلَمْ يَذْكُرْ سِوٰى بَوْلِ النَّاسِ.**

**باب ۱۵۳ :** دَ وړو بولو په حقله څهٔ نقل دي. نبي صلي الله عليه وسلم دَ يو قبر واله په حق کښې ارشاد فرمائيلے وو، چه دهٔ به دَ خپلو وړو بَولو نه خان نهٔ بچ کولو. دَ سړو دَ وړو بَولو نه علاوه (دَ نورو دَ وړو بَولو) بل ذکر ئے اونهٔ فرمائيلو.

**ف:** دَ حنفيه په نزد دَ سړي واړه بَول ناپاک دي، خواه نارينه وي يا زنانه، بالغ وي يا نابالغه.

**۲۱۴ :** حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءُ بْنُ اَبِيْ مَيْمُوْنَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَبَرَّزَ لِحَاجَتِهٖ اَتَيْتُهُ بِمَآءٍ فَيَغْسِلُ بِهٖ.

**۲۱۴ :** يعقوب بن ابراهيم. اسماعيل بن ابراهيم. روح بن قاسم. عطاء بن ابي ميمونه. انس بن مالک نه روايت دے، چه کله به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ رفع حاجت دَ پاره بهر ته تشريف اوړلو ما به دَ حضورﷺ دَ پاره اوبه راوړلے. او هغے سره به حضورﷺ استنجا کوله.

**باب ۱۵۴ :** حزاب القبر من البول

**باب ۱۵۴ :** (دا باب عنوان نهٔ لري)

**۲۱۵ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَازِمٍ قَالَ ثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبْرَيْنِ فَقَالَ اِنَّهُمَا

**۲۱۵ :** محمد بن مثني. محمد بن حازم. اعمش. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ وائي، (يو ځلے) نبي صلي اللّٰه عليه وسلم په دوو قبرونو تير شو، نو حضورﷺ او فرمائيل په دے دواړو عذاب کيږي، خو دَ څه لوئے ګناه په وجه

لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ اَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَكَانَ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ اَخَذَ جَرِيْدَةً رَّطْبَةً فَشَقَّهَا بِصُفَيْنِ فَغَرَزَ فِيْ كُلِّ قَبْرٍ وَّاحِدَةً قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا قَالَ لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَالَمْ يَيْبَسَا قَالَ ابْنُ الْمُثَنّٰى وَ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا مِثْلَهٗ.

پرے نـهٔ کیږي. یو خو دوي ذ وَرِو بَولونه، نهٔ بچ کیدو، او دونم به چغلي خوړله. بیا حضورؐ یو لونده لختـه واخستـه هغـه ئـې دوه ټکـړے کـهٔ، او پـه هـر قبـرئـې یـوه یـوه ټکـړه بنخـه کړلـه. صحابـهؓ ؤ عـرض اوکـهٔ، یـا رسـول اللّٰـه، داسـې تاسو ولـې اوکـړل، نو حضورؐ ورتـه او فرمائیل، اُمید دے چـه تـر څـو پـورے دا دواړه (لختـې) اوچـې شـوے نـهٔ وي، پـه دوي بـه عـذاب کـم وي.

بَاب ۱۵۵ : تَرْكِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ الْاَعْرَابِيَّ حَتّٰى فَرَغَ مِنْ بَوْلِهٖ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۱۵۵ : دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او دَ تهولو خلقو بانډیسي له مهلت ورکول، چه جمات کښې دَ وړو بولو کولونه فارغ شي.

۲۱۶ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا هَمَّامٌ قَالَ ثَنَا اِسْحٰقُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى اَعْرَابِيًّا يَّبُوْلُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ دَعُوْهُ حَتّٰى اِذَا فَرَغَ دَعَا بِمَآءٍ فَصَبَّهٗ عَلَيْهِ.

۲۱۶ : موسٰي بن اسماعيل. همام. اسحاق. انس بن مالكؓ وائي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم یو بانډیسے جمات کښې په وړو بولو کولو اولیدلو، نو حضورؐ او فرمائیل، دے پریږدئے. کوم وخت چه هغه فارغ شو، نو حضورؐ اوبه راوغوښتلے، او په هغهٔ ځائے ئے واړولے.

بَاب ۱۵۶ : صَبِّ الْمَآءِ عَلَى الْبَوْلِ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۱۵۶ : په وَړو بَولو باندے جمات کښې دَ اُوبو اچولو بیان.

۲۱۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ اَعْرَابِيٌّ فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَتَنَاوَلَهُ النَّاسُ فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۱۷ : ابو اليمان. شعيب. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود نه روايت دے. ابوهريرهؓ اووے. یو بانډیسے اودریدو. او جمات کښې ئے واړهٔ بَول اوکړل، خلقو هغه اونیولو. نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلم هغوي ته او فرمائیل، دے پریږدئے، او دَ دهٔ په وړو بَولو یوه

وَسَلَّمَ دَعُوْهُ وَ هَرِيْقُوْا عَلٰى بَوْلِهٖ سَجْلًا مِّنْ مَّآءٍ اَوْ ذَنُوْبًا مِّنْ مَّآءٍ فَاِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِيْنَ وَلَمْ تُبْعَثُوْا مُعَسِّرِيْنَ.

بورقــه خـواه كـمـه ډكـه وي يـا پـوره ډكـه وي، دَ اُوبـو واچوې خكـه چـه تـاسـو خلق دَ سختئ دَ پـاره نـه، بـلـكـه دَ نـرمـي دَ پـاره راليـږلے شـوي يئ .

۱. د متیازو کولو په وخت نبي علیه السلام منعه نه کړلو. او صحابه رضي اللّٰه عنهم ئے هم منعه کړل. چه دے پریږدئے چه اوزګار شي. ممکنه ده. چه متیازو بندولو سره ئے متیازے بند شي او نقصان ورته اورسي دا د نبي علیه السلام شفقت او مهرباني وه. بیا روستو په هغه متیازو د اوبو اچولو او صفا کولوئے حکم اوکړو.

۲۱۸: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ جَاءَ اَعْرَابِيٌّ فِيْ طَآئِفَةِ الْمَسْجِدِ فَزَجَرَهُ النَّاسُ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضٰى بَوْلَهُ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَنُوْبٍ مِّنْ مَّآءٍ فَاُهْرِيْقَ عَلَيْهِ.

۲۱۸: عبدان. عبداللّٰه. یحیٰي بن سعیدؒ. انسؓ ح. خالد بن مخلد. سلیمان. یحیٰي بن سعید. انس بن مالکؓ وائي، چه یو اعرابي (بانډیسے) راغے. او هغه دَ جمات یو کُنج کښې واړه بَول اوکړل. خلقو هغه اورټه. نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلم هغوي منع کړل. کوم وخت چه هغه دَ وړو بَولو نه فارغ شو، نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلم په هغے دَ یو بالتي اچولو حکم اوکړلو، نو اوبه پرے توئے کړے شوے.

باب ۱۵۷: بَوْلِ الصِّبْيَانِ.

باب ۱۵۷: دَ ماشومانو دَ وړو بَولو بیان.

۲۱۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا قَالَتْ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَبِيٍّ فَبَالَ عَلٰى ثَوْبِهٖ فَدَعَا بِمَآءٍ فَاَتْبَعَهُ اِيَّاهُ.

۲۱۹: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ فرمائي چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم له یو ماشوم راوستے شو، نو هغهٔ دَ حضورؐ په کپړو مبارکو واړهٔ بَول اوکړل، حضورؐ اوبه راوغوښتلے، او سمدستي ئے په هغے واچولے.

❖❖❖❖❖

۲۲۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۲۲۰: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابن شهاب.

يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ اُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ اَنَّهَا اَتَتْ بِابْنٍ لَّهَا صَغِيْرًا لَّمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَجْلَسَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجْرِهٖ فَبَالَ عَلٰى ثَوْبِهٖ فَدَعَا بِمَآءٍ فَنَضَحَهٗ وَلَمْ يَغْسِلْهُ.

عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. أم قيس بنت محصن نه روايت دي، چه هغې رسول الله صلي الله عليه وسلم له خپل ماشوم بچے راوست، چه طعام ئے لانه خوړلو، هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل غيږ کښې واخستلو، نو هغه د حضورؐ په کپړو واړه بون اوکړل. حضورؐ اوبه راوغوښتلے، په هغې ئے اوبه توئے کړے، او هغه ئے اونه وينزلے [1] (يعني نچوړې ئے نه کړلو).

ف: دَ حنفيه په نزد دَ دې مطلب دادې، چه مبالغې سره ئے مږلو سره او، نه وينزلے.

۱. واړه بول (متيازې) په هر حال پليتې دي. دواړه احاديث دا ښائي چه نبي عليه السلام په هغه کپړه اوبه واچولے بل روايت کښې دا "چه ئے اونه وينځله" د هغې مطلب دا دې چه په ښه مږلو سره ئے اونه وينځلے. بعضې علماء وائي. چه دا آخري جمله د رسول الله صلي الله عليه وسلم نده. ابن شهاب ئے مطلب بيان کړيدې صحيح خبره داده چه خومره ضروري وؤ هغه هومره هغه کپړه اوينځلے شوه دا کيدې شي چه متيازې ډيرې لږې وې چه د ډيرو وينځلو ضرورت ئے نه وو.

## بَابٌ ۱۵۸: اَلْبَوْلِ قَآئِمًا وَّ قَاعِدًا.

**باب ۱۵۸:** په ولاړه او په ناسته دَ ورو بولو بيان.

۲۲۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ اَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَآئِمًا ثُمَّ دَعَا بِمَآءٍ فَجِئْتُهٗ بِمَآءٍ فَتَوَضَّاَ.

۲۲۱: آدم. شعبه. اعمش. ابووائل. حذيفهؓ وائي نبي صلي الله عليه وسلم دَ يو قوم په ډلاؤ (ډيران) تشريف راوړلو. هلته اودريدو، او واړه بول ئے اوکړل. بيائے اوبه او غوښتلے، نو ما ورله اوبه راوړلے. بيا حضورؐ اودس اوکړلو.

## بَابٌ ۱۵۹: اَلْبَوْلِ عِنْدَ صَاحِبِهٖ وَالتَّسَتُّرِ بِالْحَآئِطِ.

**باب ۱۵۹:** دَ خپل ملګري خواکښې دَ ديوال اړخ سره واړه بول کول.

۲۲۲: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ ثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ رَاَيْتُنِيْ اَنَا

۲۲۲: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابو وائل. حذيفهؓ وائي، چه (يو ځل) زهٔ دَ حضورؐ ملګرتيا کښې روان ووم، چه حضورؐ دَ يو قوم په ډيران د ديوال

وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَمَاشٰى فَأَتٰى سُبَاطَةَ قَوْمٍ خَلْفَ حَائِطٍ فَقَامَ كَمَا يَقُوْمُ اَحَدُكُمْ فَبَالَ فَانْتَبَذْتُ مِنْهُ فَأَشَارَ اِلَيَّ فَجِئْتُهُ فَقُمْتُ عِنْدَ عَقِبِهٖ حَتّٰى فَرَغَ.

شانته راغے، او څنګه چه تاسو کښې څوک، اودریږي، هغسے اودریدلو او واړۀ بَول ئے اوکړل. نو زۀ دَ حضورؐ نه لرے شوم. حضورؐ ما پله اشاره اوکړه، نو زۀ حضورؐ له راغلم، او دَ حضورؐ پوندو سره نزدے اودریدم. ترڅو چه حضورؐ فارغ شولو.

ف: په ولاړه دَ وړو بَولو متعلق مختلف احادیث راغلي دي. دَ حضرت عمرؓ په یو حدیث کښې ممنوع ګرځولے شوے دي. لیکن دَ دواړو حدیثونو دا شان مطابقت ممکن دے، که زمکه کچه وي، او دَ څاڅکو آلوتو خوف نهٔ وي، یا ځائے داسے وي، چه ناستے سره دَ کپړو خرابیدو خطره وي، نو داسے حالت کښې په ولاړه واړهٔ بَول کول جائز دي، یا څهٔ داسے مرض ورته لګیدلے وي، چه ناسته کښې ورته تکلیف وي، نو هم جائز دي، کني په ولاړه دَ وړو بولو کولو نه پرهیز پکار دے.

## بَاب ۱۶۰ : اَلْبَوْلِ عِنْدَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ.

## باب ۱۶۰ : دَ یو قوم په ډیران دَ وړو بَولو کولو بیان.

۲۲۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ قَالَ كَانَ اَبُوْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيُّ يُشَدِّدُ فِي الْبَوْلِ وَ يَقُوْلُ اِنَّ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ كَانَ اِذَا اَصَابَ ثَوْبَ اَحَدِهِمْ قَرَضَهٗ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لَيْتَهٗ اَمْسَكَ اَتَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَائِمًا.

۲۲۳ : محمد بن عرعره. شعبه. منصور. ابو وائل نه روایت دے، چه ابو موسٰي اشعريؓ به دَ وړو بولو په باره کښې سختي کوله. وئیل به ئے، چه بني اسرائیلو کښې به دَ چا په کپړه واړه بَول اولګیدل، نو هغه به ئے پریکوله. حذیفهؓ چه دا واوریدل '' نووے وئیل، کاش چه هغهٔ د خپلے دے سختئ نه منع شوے وے (ځکه چه) رسول صلعم دَ یو قوم ډیران ته تشریف اُوړے وو، نو هلته ئے په ولاړه بَول کړي وو.

۱. د حُذیفه رضي الله عنه دا مطلب وو چه د متیازو نه د بچ کیدو احتیاط ضروري دے لیکن بے ځاید سختئ نه وهم، وسوسه پیدا کیږي ځومره چه احتیاط کیدے شي غوره خبره ده علماؤ ویلے دي چه ډیر نري معمولي څاڅکي چه لیدلے نشي او نه معلومیږي هغه معاف دي.

## بَاب ۱۶۱ : غَسْلِ الدَّمِ.

## باب ۱۶۱ : دَ وینے وینځلو بیان.

۲۲۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ فَاطِمَةُ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ

۲۲۴ : محمد بن مثنٰي. یحیٰي. هشام. بي بي فاطمه. دَ بي بي اسماء نه روایت کوي، یوه ښځه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم له راغله او هغے اووے، ماته دا

| | |
|---|---|
| جَآءَتِ امْرَاَةٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اَرَاَيْتَ اِحْدٰنَا تَحِيْضُ فِي الثَّوْبِ كَيْفَ تَصْنَعُ قَالَ تَحُتُّهُ ثُمَّ تَقْرُصُهُ بِالْمَآءِ وَ تَنْضَحُهُ بِالْمَآءِ وَ تُصَلِّيْ فِيْهِ. | اوبنائے كه مونږ كښې چاته كپړو كښې حيض راشي، نو هغه ورسره څۀ چل اوكړي. حضورؐ ورته او فرمائيل، هغه دے اومږي. بيادے اوبو سره اوتېوي، او دے وينزي، صافے دے كړي او (بيادے) هغے سره مونځ كوي[۱]. |

۱. كپړا، جامه باندے چه د حيض وينه او لږي د هغے وينځل او پاكول ضروري دي.

| | |
|---|---|
| ۲۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ اَنَا مُعَاوِيَةُ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ جَآءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ اَبِيْ حُبَيْشٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ امْرَاَةٌ اُسْتَحَاضُ فَلَا اَطْهُرُ اَفَاَدَعُ الصَّلٰوةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اِنَّمَا ذٰلِكَ عِرْقٌ وَّ لَيْسَ بِحَيْضٍ فَاِذَا اَقْبَلَتْ حَيْضَتُكِ فَدَعِيَ الصَّلٰوةَ وَ اِذَا اَدْبَرَتْ فَاغْسِلِيْ عَنْكِ الدَّمَ ثُمَّ صَلِّيْ قَالَ وَ قَالَ اَبِيْ ثُمَّ تَوَضَّأِيْ لِكُلِّ صَلٰوةٍ حَتّٰى يَجِيْءَ ذٰلِكَ الْوَقْتُ. | ۲۲۵: محمد. معاويه. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ فرمائي چه فاطمه بنت ابي حبيش نبي صلے الله عليه وسلم له راغله. او وے وئيل، يا رسول اللّٰه، زۀ يوه داسے ښځه يم، چه (اكثر) مستحاضه يم، او دَ يوے مودے پورے نۀ پاكيږم، نو آيا زۀ مونځ پرېږدم؟ رسول اللّٰه، ورته او فرمائيل، نه، دا خو (دَ يورگ) وينه ده. او حيض نۀ دے، كله چه ستا دَ حيض وخت راشي، نو مونځ پرېږده، او چه تيرشي، نو وينه دَ خپل جسم نه اووينزه. دَ هغے نه پس مونځ كوه. هشام وائي (دے حديث كښې دے نه پس) خما پلار دا هم اووے، چه بيا هر مونځ دَ پاره اودس[۱] كوه. تردے چه بيا دَ حيض وخت راشي (نو بيا مونځ پرېږده) |

ف: مستحاضه. هغه ښځه چه هغے ته دَ حيض ورخو كښې دَ معمول نه زياته موده وينه راځي.

۱. كومه ښځه چه ناجوړه وي هميشه وينه ترے بهيږي و هغے د پاره دا حكم دے چه هر مونځ د پاره به اودس كوي. او د خپل عادت مطابق د حيض په ورخو كښې مونځ پرېږدي. د هغے ورخو مونځ معاف دے دا احكام اگرچه د ښځو د ژوند پټ ارخونو سره تعلق لري. ددے مقصد د بيانولو دا دے چه ښځے د اسلامي احكامونه محرومه نشي د هغوي دين دنيا وجود، روح پاک صاف وي دَ هغوي نفسياتي اخلاقي روحاني اصلاح اوشي. د دے احاديثو په بيانولو كښې د شرميدو ضرورت نشته دٔ اسلامي هدايات دي او بيا نن صبا جنسي لټريچر كتابونه عام دي. او د نوي تعليم مشران دا ضروري گڼري چه د سړي او ښځے پټ نه پټ تعلقاتو تعليم دے وركړے شي. چه د هغے في الحقيقت هيڅ ضرورت نيشته.

بَاب ۱۶۲: غَسْلِ الْمَنِيِّ وَ — باب ۱۶۲: دَ مني دَ وينزلو، دَ هغے دَ مږلو، او دَ

فَرْكِهٖ وَ غُسْلِ مَا يُصِيْبُ مِنَ الْمَرْاَةِ.

هغې لوندوالي ذ وينزلو بيان چه ذ ښځې ذ شرمګاه نه اولږي.

۲۲۶ : حَدَّثَنَا عُبْدَانُ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُبَارَكِ قَالَ اَنَا عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنَ الْجَزَرِيُّ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْسِلُ الْجَنَابَةَ مِنْ ثَوْبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَخْرُجُ اِلَى الصَّلٰوةِ وَ اِنَّ بُقَعَ الْمَآءِ فِيْ ثَوْبِهٖ.

۲۲۶ : عبدان. عبدالله بن مبارک. عمرو بن ميمون جزري. سليمان بن يسار. بي بي عائشهؓ وائي، چه ما به ذ نبي صلي الله عليه وسلم ذ کپړونه جنابت وينزلو. حضورؐ به (هغې کپړو کښې) بهر مانځه له تشريف اوړلو. حالانکه کپړو کښې به ذ اوبو تاکنې باقي وې.

۲۲۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ ثَنَا يَزِيْدُ قَالَ ثَنَا عَمْرُو عَنْ سُلَيْمَانَ ابْنِ يَسَارٍ قَالَ سَمِعْتُ عَآئِشَةَ ح وَ ثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ سَاَلْتُ عَآئِشَةَ عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيْبُ الثَّوْبَ فَقَالَتْ كُنْتُ اَغْسِلُ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَخْرُجُ اِلَى الصَّلٰوةِ وَ اَثَرُ الْغَسْلِ فِيْ ثَوْبِهٖ بُقَعُ الْمَآءِ.

۲۲۷ : قتيبه. يزيد. عمرو. سليمان بن يسار. عائشهؓ. ح (دوئم سند) مسدد. عبدالواحد. عمرو بن ميمون. سليمان بن يسار، وائي، ما ذ بي بي عائشې نه ذ هغې مني باره کښې پښتنه اوکړه، چه په کپړه اولږي. نو هغې او فرمائيل، چه ما به ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ کپړې نه مني وينزله، او حضورؐ به (هغې کپړه کښې) بهر مانځه ذ پاره تشريف اوړلو، حالانکه ذ حضورؐ په جامو کښې ذ وينزلو اثر ذ اوبو لوند والے وو[۱].

۱. مطلب ئې دادے چه ذ پاکيدونه روستو کپړا جامه د مونځ کولو جوګه شي. اګرچه اوچه شوے نه وي.

باب ۱۶۳ : اِذَا غَسَلَ الْجَنَابَةَ اَوْ غَيْرَهَا فَلَمْ يَذْهَبْ اَثَرُهَا.

باب ۱۶۳ : جنابت (لويه بے اودسي) وغيره که او وينزي او ذ هغې داغ لاړ نشي.

۲۲۸ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنٍ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ يَسَارٍ فِي

۲۲۸ : موسي بن اسمعيل. عبدالواحد. عمرو بن ميمون وائي، چه ما ذ سليمان بن يسار نه ذ هغې کپړې باره کښې چه هغا ته جنابت

الثَّوْبِ تُصِيْبُهُ الْجَنَابَةُ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ كُنْتُ اَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَخْرُجُ اِلَى الصَّلٰوةِ وَ اَثَرُ الْغُسْلِ فِيْهِ بُقَعُ الْمَآءِ.

لرېدلے وي، آو رېدلے دي، چه بي بي عائشےؓ به فرمائيل، ما به دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ کپړے نه مني وينزله. بيا به هم په هغے کښ دَ اوبو داغونه ښکاريدل[۱].

۱. مني، هم د متيازو پشان پليته ده. د دے هم هغه حکم دے کوم چه د نورو پليتو دے. چه مني ترے لرے شي او جامه پاکه شي که چرے د اوبو داغونه ورباندے پاتے شي نو څه حرج نشته.

۲۲۹: حَدَّثَنَا عُمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ ثَنَا زُهَيْرٌ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنَ بْنِ مِهْرَانَ عَنْ سُلَيْمٰنَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تَغْسِلُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَرَاهُ فِيْهِ بُقْعَةً اَوْ بُقَعًا.

۲۲۹: عمرو بن خالد. زهير. عمرو بن ميمون بن مهران. سليمان بن يسار. دَ بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، چه هغے به دَ رسول الله صلے الله عليه وسلم دَ جامو نه مني وينزله. بيا به هم ما يو يا ګنړ داغونه[۱] جامو کښ ليدل.

۱. د کومے پليتئ چه خپل اصلي نښه ختمه شي بيا که څه لږه نښه يا رنګ پاتے شي نو هغه معاف دي ګناه پکښ نشته.

بَابُ ۱۶۴: اَبْوَالِ الْاِبِلِ وَالدَّوَآبِّ وَالْغَنَمِ وَ مَرَابِضِهَا وَ صَلّٰى اَبُوْ مُوْسٰى فِيْ دَارِ الْبَرِيْدِ وَالسِّرْقِيْنِ وَالْبَرِيَّةُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَقَالَ هٰهُنَا وَ ثَمَّ سَوَآءٌ.

باب ۱۶۴: دَ اوښ، څارو، او دَ چيلو دَ وړو بولو او دَ هغوي دَ اوسيدو دَ ځايونو بيان. ابو موسیٰ دارالبريد کښ مونځ اوکۀ او دَ هغۀ يو طرف ته سوتړے او (بل طرف ته) ځنګل وو، نو هغۀ اووے، چه دا ځائے او هغه ځائے يو برابر دے.

ف: (۱) دَ حنفيه په نزد دَ هغه څناورو، واړه بول، چه دَ هغے غوښه حلاله ده، دَ نجاست خفيفه نه دي، دَ چوتهائي کپړے په قدر معاف دي. ليکن افضله داده، چه پاک صاف ځائے وي.

(۲) دارالبريد کوفه کښ دَ يو مکان نوم دے. کوم ځائے چه څناور ترلے شو.

۲۳۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَدِمَ اُنَاسٌ مِّنْ عُكْلٍ اَوْ عُرَيْنَةَ فَاجْتَوُوا الْمَدِيْنَةَ فَاَمَرَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۲۳۰: سليمان بن حرب. حماد بن يزيد. ايوب. ابي قلابه. انسؓ وائي، چه څه خلق دَ عکل يا عرينه نه راغلل، خو هغوي مدينه کښ ناروغه شو، نو حضورؐ حکم اوکۀ، چه هغوي دے دَ صدقے او ښانوله بوتلے شي او هغوي دے دَ اوښانو واړه[۱] بول اوڅښي، نو هغوي ځنګل ته لاړل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلِقَاحٍ وَ اَنْ يَّشْرَبُوْا مِنْ اَبْوَالِهَا وَ اَلْبَانِهَا فَانْطَلَقُوْا فَلَمَّا صَحُّوْا قَتَلُوْا رَاعِيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا النَّعَمَ فَجَآءَ الْخَبَرُ فِيْ اَوَّلِ النَّهَارِ فَبَعَثَ فِيْ اٰثَارِهِمْ فَلَمَّا ارْتَفَعَ النَّهَارُ جِيْٓءَ بِهِمْ فَاَمَرَ فَقُطِعَ اَيْدِيْهِمْ وَ اَرْجُلُهُمْ وَ سُمِرَتْ اَعْيُنُهُمْ وَ اُلْقُوْا فِي الْحَرَّةِ يَسْتَسْقُوْنَ فَلَا يُسْقَوْنَ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ فَهٰؤُلَآءِ سَرَقُوْا وَ قَتَلُوْا وَ كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَ حَارَبُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ.

(هغوي دغــــے اوكړل) كوم وخت چه روغ شو، نو ذ نبي صـلـعم اُوښان خرونكي ئے قتل كړل، او څناورئے خان سره پــه مـخـه كـړل. ذ ورځـے ذ وختـه دا خبر نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له راورسيد، نو حضورؐ هغوي پسے سړي اوليږل او ذ ورځـے نـيـے هـغـوي گرفتار راوستل، حضورؐ حكم اوكۀ، نو ذ هغوي لاس پښيے پريكړے شوے او ذ هغوي په ستركو كښ گـرم سـلايـان او وهـلـے شـو، او په گرم كانړيجنه زمكه او غرخولے شو، هغوي به اُوبه غوښتلے، خو اُوبه چا نۀ وركولے (ابـو قلابه وائي) ذ دے وجه داوه، چه دغے خلقو غلا اوكړه او قتـل ئے اوكۀ، او ذ ايمان راوړلونه پس كافر شولو، او اللّٰه او ذ هغۀ رسول سره ئے جنگ اوكۀ.

**ف**: هغوي هم هغه مسلمانان قتل كړے وو، چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم اوښان خرونكي وو. نو بالكل ذ هغوي په شان عمل ورسره اوكړے شو.

۱. دے روايت كـښ چـه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم هغے خلقوته دا اوښانو د متيازو (وړو بولو) څښـلـو حـكـم كړے وؤ دا هغه عارضي علاج وؤ د متيازو استعمال حرام دے اگرچه د شوافعو مالكيانو او د بـعـضے علماؤ په نزد د دے حديث په رنړا كښ د اوښ متيازے پاكے دي ليكن د جمهور علماؤ په نزد پليتے دي ځـكـه چـه نورو احاديثو كښ ډيرے زورنے راغلي دي. هغه وخت د هغې خلقو د پاره خصوصي اجازت شـوے وؤ. باقي هغه خلقو ځلور غټ غټ جُرمونه كړي وو د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ احسان بدله ئے بے مروتئ او بيوفائي سرہ وركړے وو غلائے كړے وه قتل ئے كړے وو مُرتد شوي وؤ (واپس كافر شوي وو) اللـّٰه تعالي او د هغه رسول صلي اللّٰه عليه وسلم ورله د هغوي د جرم برابر سزا وركړه. دا څه وحشيانه سـزا نـه وه. رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰه عليه وسلم مصلح مدبر حاكم وؤ. د حالاتو د تقاضو مطابق او سياسي انتـظـامـي تـدبيرونو برابر دا سزا وركول ضروري وؤ ځكه نبي عليه السلام د خپل شفقت و رحمت خلاف فيصله كړے وه.

۲۳۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَنَا اَبُو التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ قَبْلَ اَنْ يُّبْنَى الْمَسْجِدُ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ.

۲۳۱: آدم. شعبه. ابوالتياح. انسؓ وائي ذ جـمـات ذ جوړولـو نه مخكښ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم بـه ذ چيـلـو ذ نـاسـتـے پـه ځـايـونـو كـښ مـونـځ كولو[۱].

۱. مطلب ئے دادے چه هلته به ئے څه مناسب ځيز او غوړولو په هغے به ئے مونځ كولو.

باب ۱۶۵ : مَا يَقَعُ مِنَ النَّجَاسَاتِ فِي السَّمْنِ وَالْمَآءِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ لَا بَأْسَ بِالْمَآءِ مَالَمْ يُغَيِّرْهُ طَعْمٌ اَوْ رِيْحٌ اَوْ لَوْنٌ وَ قَالَ حَمَّادٌ لَا بَأْسَ بِرِيْشِ الْمَيْتَةِ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْ عِظَامِ الْمَوْتٰى نَحْوَ الْفِيْلِ وَغَيْرِهٖ اَدْرَكْتُ نَاسًا مِّنْ سَلَفِ الْعُلَمَآءِ يَمْتَشِطُوْنَ بِهَا وَ يَدَّهِنُوْنَ فِيْهَا لَا يَرَوْنَ بِهٖ بَأْسًا وَّ قَالَ بْنُ سِيْرِيْنَ وَ اِبْرَاهِيْمُ لَا بَأْسَ بِتِجَارَةِ الْعَاجِ.

باب ۱۶۵ : كومه پليتي چه غوړو او اوبو كښ غرخيږي، دَ هغې بيان. زهري وئيلے دي، چه اوبو كښ هيڅ حرج نشته، څو پورے چه دَ هغې مزه، بوئ يا رنګ بدل نشي. حماد وئيلے دي، چه دَ مردارو (مارغانو) پَرکه اُوبو كښ او غرخيږي، نو هيڅ باک نشته. زهري دَ مړو دَ هډوكو په باره كښ په مثل دَ هاتي وغيره وئيلے دي، چه ما مخكنو علماؤ كښ دَ څنو خلقو دَ هغې ګومنزے او روغن دانړ وغيره جوړول ليدلے دي هغوي دے كښ هيڅ حرج نهٔ ګنړلو. ابراهيم او ابن سيرين وئيلے دي، چه دَ هاتي غابښ تجارت كښ هيڅ ګناه نشته.

۲۳۲ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ فَارَةٍ سَقَطَتْ فِيْ سَمْنٍ فَقَالَ اَلْقُوْهَا وَمَا حَوْلَهَا وَ كُلُوْا سَمْنَكُمْ.

۲۳۲ : اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. ابن عباسؓ. بي بي ميمونهؓ نه روايت دے، چه دَ رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم نه دَ يوے مږے باره كښ تپوس اوشو، چه غوړو كښ غرخيدلے وه، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، چه هغه ترے اوباسے، او دَ هغې خواوشا چه څومره غوړي وي، هغه ترے لرے كړئے او باقي غوړي خورئے[۱].

۱ . دواړه احاديثو كښ چه د غوړو يا دَ تيلو حكم دے چه دا كله سخت وي وئيلے شورئے نه وي كه كوم غوړي يا تيل وئيلے شوے وي د هغې دَ خوراک پخائے هغه په ډيوه (چراغ) كښ استعمالول دي.

۲۳۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا مَعْنٌ قَالَ ثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ فَارَةٍ سَقَطَتْ فِيْ سَمْنٍ فَقَالَ خُذُوْهَا

۲۳۳ : اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عقبه بن مسعود. حضرت ابن عباسؓ بي بي ميمونهؓ نه روايت كوي، چه دَ حضورؐ نه دَ هغې مږے په حقله پښتنه اوشوه، چه غوړو كښ او غرخيږي، نو حضورؐ او فرمائيل، چه هغه مږه او دَ هغې خواوشا غوړي اوكاږئے، او وے غرخوئے. معن اووے، چه

وَمَاحَوْلَهَا فَاطْرَحُوْهُ قَالَ مَعْنٌ ثَنَا مَالِكٌ مَالَا اُحْصِيْهِ يَقُوْلُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ.

مونږ ته مالک، بے شماره ځله ذ ابن عباسٌ نه او هغه ذ بي بي ميمونهٌ نه (د غسے) روايت کړے دے.

۲۳۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ كَلْمٍ يُكْلَمُهُ الْمُسْلِمُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَكُوْنُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كَهَيْئَتِهَا اِذَا طُعِنَتْ تَفَجَّرُ دَمًا اللَّوْنُ لَوْنُ الدَّمِ وَالْعَرْفُ عَرْفُ الْمِسْكِ.

۲۳۴: احمد بن محمد. معمر. همام بن منبه. ابوهريرهٌ ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضورؐ او فرمائيل، مسلمان ته چه کوم زخم ذ الله په لار کښ رسي، هغه به ذ قيامت په ورځ خپل (ذ تازګي) حالت کښ وي (ځنګه چه هغه لګيدلے وو) يعني وينه به ترے بهيږي. رنګ خو به ئے ذ وينے په شان وي، او خوشبوئي به ئے ذ مشک ' په شان وي.

۱. په ظاهره د دے حديث شريف د سر ليک سره مناسبت نشته علماؤ څه مناسبتونه ئے بيان کړي دي د شاه ولي الله صاحب په نزد دا حديث شريف دا ثابتوي چه مشک، پاک دي.

باب ۱۶۶: اَلْبَوْلِ فِي الْمَآءِ الدَّآئِمِ.

باب ۱۶۶: ولاړو اُوبو کښ ذ وړو بولو بيان.

۲۳۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ قَالَ اَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ الْاَعْرَجِ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ وَ بِاِسْنَادِهٖ قَالَ لَا يَبُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ فِي الْمَآءِ الدَّآئِمِ الَّذِيْ لَا يَجْرِيْ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ.

۲۳۵: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. عبدالرحمان بن هرمز اعرج. ابوهريرهٌ نه روايت دے، هغهٔ د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا واوريدل، چه مونږ دُنيا کښ اګر که ورستو يُو، ليکن آخرت کښ به ذ ټولو نه مخکښ يو. او دے سند سره ئے دا جمله هم روايت کړه، چه حضورؐ فرمائيلے دي، تاسو کښ دے څوک ولاړو اُوبو کښ چه جاري نهٔ وي، وارهٔ بَول نهٔ کوي، ځکه چه شايد بيا کله دغے سره غسل او کړي. (يعني ورته ئے ضرورت پيښ شي).

باب ۱۶۷: اِذَا اُلْقِيَ عَلٰى ظَهْرِ الْمُصَلِّيْ قَذَرٌ اَوْ جِيْفَةٌ لَمْ تَفْسُدْ عَلَيْهِ صَلٰوتُهُ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا رَاٰى

باب ۱۶۷: ذ مونځ ګزار په شا پليتي يا مُرداره او غرخولے شي، نو ذ هغهٔ مونځ نهٔ فاسد کيږي. ابن عمرٌ چه به خپلے کپړه کښ سپږه ليده، او مونځ به ئے کولو، نو هغه کپړه به ئے لرے کړه او خپل

فِيْ ثَوْبِهٖ دَمًا وَهُوَ يُصَلِّيْ وَضَعَهٗ وَ مَضٰى فِيْ صَلٰوتِهٖ وَ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَالشَّعْبِيُّ اِذَا صَلّٰى وَ فِيْ ثَوْبِهٖ دَمٌ اَوْ جَنَابَةٌ اَوْ لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ اَوْ تَيَمَّمَ فَصَلّٰى ثُمَّ اَدْرَكَ الْمَآءَ فِيْ وَقْتِهٖ لَا يُعِيْدُ.

مونځ به ئے پوره کړلو. ابن مسيب او شعبي وئيلي دي. کله چه يو سړے مونځ کوي او د هغهٔ کپړه کښې سپيره يا جنابت لړيدلے وي، يا د قبلے خلاف جانب ته ئے مونځ کړے وي يا تيمم سره ئے مونځ کړے وي بيا د مونځ وخت کښې دننه اُوبه بيا مومي (يا ورستو ورته د قبلے طرف معلوم شي) نو دے ټولو صورتونو کښې دے مونځ دوباره نه کوي.

۲۳۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدٌ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مُسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ عِنْدَ الْبَيْتِ وَ اَبُوْ جَهْلٍ وَّ اَصْحَابٌ لَّهٗ جُلُوْسٌ اِذْ قَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اَيُّكُمْ يُجِيْٓءُ بِسَلَا جَزُوْرِ بَنِيْ فُلَانٍ فَيَضَعَهٗ عَلٰى ظَهْرِ مُحَمَّدٍ اِذَا سَجَدَ فَانْبَعَثَ اَشْقَى الْقَوْمِ فَجَآءَ بِهٖ فَنَظَرَ حَتّٰى اِذَا سَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَهٗ عَلٰى ظَهْرِهٖ بَيْنَ كَتِفَيْهِ وَ اَنَا اَنْظُرُ لَا اُغْنِيْ شَيْئًا لَوْ كَانَتْ لِيْ مَنَعَةٌ قَالَ فَجَعَلُوْا يَضْحَكُوْنَ وَ يَمِيْلُ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۲۳۶: عبدان. عثمان. شعبه. ابو اسحاق. عمرو بن ميمون. عبداللّٰه بن مسعودؓ فرمائيلي دي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم کعبے ته نزدے مونځ کولو. او ابوجهل او د هغهٔ څو دوستان ناست وو. هغوي کښې يو بل ته اووے، چه تاسو کښې دے څوک سړے د فلانے قبيلے د اوښے لرے کولمے (د ګند بلانه ډک) راوړي او هغه دے د محمد (صلعم) په شا او غرځوي، کوم وخت چه هغه په سجده پريوځي. نو د ټولو نه زيات بدبخت (عقبه) پاسيد، هغه ئے راوړل. او کتل ئے، کوم وخت چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم سجدے ته لاړلو، نو (سمدستي) ئے هغه د حضورؐ د دواړو اوږو په مينځ کښې کيښودل. ما دا حال ليده. خو هيڅ م شو کولے. کاش چه ما سره ملګري وے (نو ما به حالت نهٔ ليدے) عبداللّٰه وائي، بيا هغه خلق (د ابوجهل ملګري) په خندا شو او د ډيرے خندا نه په يو بل غرځيدل. او رسول صلعم په سجده وو، خپل سر مبارک ئے نهٔ شو اوچتولے، تر دے چه بي بي فاطمهؓ راغله او هغے د حضورؐ د شانه هغه پيټه (ګندبلا) لرے کړل. بيا حضورؐ خپل سر مبارک اوچت کهٔ او وے وئيل، يا اللّٰه، د قريشو هلاکت يقيني کړے.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدٌ لَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ حَتّٰى جَآءَ تْهُ فَاطِمَةُ فَطَرَحَتْهُ عَنْ ظَهْرِهٖ فَرَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ اِذْ دَعَا عَلَيْهِمْ قَالَ وَ كَانُوْا يَرَوْنَ اَنَّ الدَّعْوَةَ فِيْ ذٰلِكَ الْبَلَدِ مُسْتَجَابَةٌ ثُمَّ سَمّٰى اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِأَبِيْ جَهْلٍ وَ عَلَيْكَ بِعُتْبَةَ ابْنِ اَبِيْ رَبِيْعَةَ وَ شَيْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَ اُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَ عُقْبَةَ بْنِ اَبِيْ مُعَيْطٍ وَّ عَدَّ السَّابِعَ فَلَمْ نَحْفَظْهُ فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَدْ رَاَيْتُ الَّذِيْنَ عَدَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَرْعٰى فِي الْقَلِيْبِ قَلِيْبِ بَدْرٍ.

درے خلـه ئے دغسے اوږے. دا پـه هغوي بـده اولـږيـده. خکـه چـه حضورٌ هغوي تـه بـدُعـا اوکـړه. عبـدالـلـهٔ وائي' هغوي پـه دے پـوهیدل' چـه دے ښـار (مکـه) کـښ دُعـا قبلیږي. بیـا حضورٌ ذ هـر يـو نـوم واخـسـت' چـه ایے اللـه' ذ ابوجهل هـلاکـت يـقـيـنـي کـړے' او ذ عتبـه بـن ربیعـه او ذ شيبــه بـن ربيـعـه او ذ وليـد بـن عتبـه او ذ اميـه بـن او ذ عـقـبـه بـن ابـي معيـط هـلاكت يقيني كړے او اووم كـس ئے هـم يـاد کـهٔ' خـو ذ هـغـهٔ نوم ماتـه يـاد نـهٔ پـه هـغـه ذات م دے قسم وي' ذ چا پـه لاس کښ چه خـمـا سـاه ده. مـا ذ دے خلقو لاشونه (ذ مړ بنده وجود) ذ چـا نـوم چـه رسـول اخستے وو' پـه کـوهـي کـښ يـعـنـي ذ بـدر پـه کـوهـيـکـښ غـرخـيـدلـي اوليدل[۱].

۱. دے حـديـث شريف کښ دا بيان دے چه د مکے په ژوند کښ رسول الله صلي الله عليه وسلم ډير تـكـليفونه برداشت کړيدي. امام بخاري رحمة الله عليه دا ثابتول غواړي که د مونځ کولو په دوران کښ د چـا پـه شـا پليتي پريوزي نو مونځ کيږي. دا ذ هغه وخت واقعه ده. چه د پاکوالي او د مونځ تفصيلي احکام نازل شوي نه وو د جمهور علماؤ په نزد د بدن جامے' او د مونځ د ځائے پاک والے ضروري دے.

## بَابُ ١٦٨ : اَلْبُزَاقِ وَالْمُخَاطِ وَ نَحْوِهٖ فِي الثَّوْبِ

## بـاب ١٦٨ : کپـړه کـښ ذ تـوکـانـړي او خـراشـکـي اخستـو بيـان.

وَ قَالَ عُرْوَةُ عَنِ الْمِسْوَرِ وَ مَرْوَانَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْحُدَيْبِيَّةِ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ وَمَا تَنَخَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُخَامَةً اِلَّا وَقَعَتْ فِيْ كَفِّ رَجُلٍ مِّنْهُمْ فَدَلَكَ بِهَا وَجْهَهُ وَ جِلْدَهٗ.

او عـروه ذ مسـور او مـروان نـه روايـت کـړے دے' چـه رسـول اللـه صـلـعـم ذ حديبيـه زمـانـه کـښ اووتلو. بيا هغه ذ پوره حديث ذکـر کـولـو نـه پـس اوونيـل' چـه نبي صلعم خـومـره خـلـه او تـوکـل' هغـه بـه ذ چا نـه چا سړي پـه لاس کـښ پـريـوتـل' او هـغـه بـه پـه خپل مخ او بدن او مږل[۱].

۱. د دے واقعے نه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د صحابؤ کرامو مينه څرګنديږي. دا هغوي د يو

خاص جذبے او مصلحت په خاطر كول.

۲۳۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ بَزَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ثَوْبِهٖ.

۲۳۷ : محمد بن يوسف. سفيان. حميد. انسؓ نه روايت دے، چه نبي صلي الله عليه وسلم (پو خل) خپله كپره كښي اُو توكل '.

۱. د مونځ په وخت د توكانړو تُوكلو د پاره چه ځائے نه وي په څه كپړا كښي توكل پكار دي چه مونځ گډوډ نشي او ځائے هم خراب نشي.

باب ۱۶۹ : لَا يَجُوْزُ الْوُضُوْٓءُ بِالنَّبِيْذِ وَلَا بِالْمُسْكِرِ وَ كَرِهَهُ الْحَسَنُ وَ اَبُو الْعَالِيَةِ وَ قَالَ عَطَآءٌ اَلتَّيَمُّمُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنَ الْوُضُوْٓءِ بِالنَّبِيْذِ وَاللَّبَنِ.

باب ۱۶۹ : نه نبيذ سره او نه بل څه نشه راوستونكي څيز سره اودس جائز دے. او حسن بصري او ابوالعاليه دا مكروه گنړلے دي. عطاء وئيلے دي چه ماته د انگورو رَس او پيو سره دَ اودس ' كولو نه تيمم كول ښهٔ ښكاري.

**ف**: نبيذ: دَ وربشو يا خُرما شراب يا شربت ته وئيلے شي.

۱. په پيو (شودو) خالصو اودس كول روا نه دي. د احنافو په نزد، كه په شودو كښي زياتے اوبه وي بيا وربانديے اودس كيږي.

۲۳۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ شَرَابٍ اَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ.

۲۳۸ : علي بن عبدالله. سفيان. زهري. ابوسلمه. بي بي عائشهؓ دَ حضور صلعم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل دَ څكلو كوم څيز چه نشه ' راولي. هغه حرام دے.

۱. د نشے هر څيز حرام دے كه لږه نشه راولي كه ډيره، لږ مقدارئے چه نشه نه راولي هم حرام دے خكه چه د نشے صلاحيت پكښي شته.

باب ۱۷۰ : غُسْلِ الْمَرْاَةِ اَبَاهَا الدَّمَ عَنْ وَّجْهِهٖ وَ قَالَ اَبُو الْعَالِيَةِ اِمْسَحُوْا عَلٰى رِجْلِيْ فَاِنَّهَا مَرِيْضَةٌ.

باب ۱۷۰ : دَ ښځے خپل پلار دَ مخ نه دَ وينے وينځلو بيان. او ابوالعاليه خپلو خامنو ته اووے چه څما پښے مالش كوئے، خكه چه هغه ناروغه دي.

۲۳۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ

۲۳۹ : محمد. سفيان بن عيينه. ابو حازم نه روايت دے، سهل بن سعد ساعدي نه خلقو تپوس او كه

سَمِعَ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ وَ سَأَلَهُ النَّاسُ وَمَا بَيْنِي وَ بَيْنَهُ اَحَدٌ بِاَيِّ شَيْءٍ دُوِيَ جُرْحُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَقِيَ اَحَدٌ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ كَانَ عَلِيٌّ يَجِيْءُ بِتُرْسِهٖ فِيْهِ مَآءٌ وَ فَاطِمَةُ تَغْسِلُ عَنْ وَّجْهِهِ الدَّمَ فَاُخِذَ حَصِيْرٌ فَاُحْرِقَ فَحُشِيَ بِهٖ فِيْهِ جُرْحُهُ.

(او زۀ هلته موجود ووم، آوریدل م) چه کوم څيز سره دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ زخم علاج او کړے شو؟ نو هغۀ اووے، بـه دے خـمـا نـه زيـات پوهيدونکے اوس څوک نـه دے پـاتے شـوے. حضـرت علیؓ بـه خپل ډهال کښې اُوبـه راوړلے او بي بي فاطمهؓ ا دَ حضور دَ مخ مبارک نه وينه وينزله. بيا يو پُوزے (چټائي) ئے او سوزولو، او دَ حضورؐ زخم ئے پـرے ډک کړلو.

**ف**: دا دَ جنگ اُحد واقعه ده، چه هغے کښې دَ حضورؐ مخ مبارک زخمي شوے وو.

ا. دمور پلار دَ خدمت کولو لوئے ثواب دے او بيا چه پيغمبر وي نو ثواب ئے نور هم ډير دے.

## بَابُ ١٧١ : السِّوَاكِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِتُّ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنَّ.

باب ١٧١ : دَ مسواک کولو بيان. او ابن عباسؓ اووے، چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلم سره شپه تيره کړه نو حضورؐ مسواک اوکړلو.

٢٤٠ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ ثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْتُّهُ يَسْتَنُّ بِسِوَاكٍ بِيَدِهٖ يَقُوْلُ اُعْ اُعْ وَالسِّوَاكُ فِيْ فِيْهِ كَاَنَّهُ يَتَهَوَّعُ.

٢٤٠ : ابوالنعمان. حماد بن زيد. غيلان بن جرير. ابو برده دَ خپل پلار نه روايت کوي، هغه وائي، چه زۀ نبي صلے الله عليه وسلم له راغلم، نو حضورؐ مِ اوليدلو، چه مسواک ئے لاس مبارک کښې دے، او خوله کښې ئے داسے مسواک کولو، چه دَ اُع اُع آواز ا ترے راوتلو، لکه څوک چه قے کوي.

ا. مسواک چه کله دَ ژبے طرفته ورځي نو يو خاص آواز پيدا کيږي شايد چه راوي هغے ته اشاره کوي.

٢٤١ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ ثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوْصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ.

٢٤١ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابووائل. حذيفهؓ وائي چه نبي صلے الله عليه وسلم به دَ شپے پاسيدلو، نو خوله مبارکه به ئے په مسواک صفا کوله[1].

۱. د مسواک کولو ډیر فضیلتونه احادیثو کښې بیان شویدي. رسول الله صلي الله علیه وسلم به د مسواک کولو ډیر خیال ساتلو. تردے چه کله د هغوي ذ وصال وخت راغلے نو هم ئے مسواک کړے وو. د شریعت او د صحت دواړو په لحاظ مسواک اهم دے.

**باب ۱۷۲: دَفْعِ السِّوَاكِ اِلَی الْاَكْبَرِ** وَ قَالَ عَفَّانُ حَدَّثَنَا صَخْرُ بْنُ جُوَيْرِيَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرَانِيْ اَتَسَوَّكُ بِسِوَاكٍ فَجَآءَنِيْ رَجُلَانِ اَحَدُهُمَا اَكْبَرُ مِنَ الْاٰخَرِ فَنَاوَلْتُ السِّوَاكَ الْاَصْغَرَ مِنْهُمَا فَقِيْلَ لِيْ كَبِّرْ فَدَفَعْتُهٗ اِلَی الْاَكْبَرِ مِنْهُمَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اخْتَصَرَهٗ نُعَيْمٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ اُسَامَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ.

**باب ۱۷۲: ذ مسواک مشر سړي ته ذ ورکولو بیان.** او عطاء اووے چه مونږ ته صخر بن جویریه په روایت ذ نافع. ابن عمرؓ روایت اوکړ، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، ما خوب اولید، چه زه یو مسواک سره مسواک کوم. بیا څۀ کورم، چه ماله دوه سړي راغلل یو هغے کښې ذ بل نه لوئے وو. ما هغوي کښې هغے وړوکي ته مسواک ورکړۀ، نو ماته اووئیلے شو، چه دغے لوئے له ئے ورکړه، نو ما هغه مسواک هغوي کښې هغے لوئے له ورکړۀ[۱].

۱. د دے نه معلومه شوه چه د بل چا مسواک هم استعمالیدے شي بهتره داده چه هغه اول اووینځلے شي.

**باب ۱۷۳: فَضْلِ مَنْ بَاتَ عَلَی الْوُضُوْٓءِ.**

**باب ۱۷۳: د هغے سړه ذ فضیلت بیان چه ذ شپے اودس کښې اُودۀ کیږي.**

۲۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَنَا سُفْيٰنُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنِ الْبَرَآءِ ابْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَيْتَ مَضْجَعَكَ فَتَوَضَّأْ وُضُوْٓءَكَ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلٰی شِقِّكَ الْاَيْمَنِ ثُمَّ قُلِ اللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ اِلَيْكَ وَ فَوَّضْتُ اَمْرِيْ اِلَيْكَ وَ اَلْجَاْتُ ظَهْرِيْ

۲۴۲: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. سفیان. منصور. سعد بن عبیده. براء بن عازب نه روایت دے نبي صلي اللّٰه علیه وسلم ماته او فرمائیل، کله چه ته ذ خپل خوب ځائے ته راځے، نو ذ مونځ په شان اودس کوه بیا په خپل ښي طرف اودۀ کیږه. دے نه پس داسے وایه چه (ترجمه) اے اللّٰه (تانه امیدوار او خائف شوے) ما خپل مخ ستا طرف ته ټیټ کړلو، او هر خپل کارم تاته اوسپارلو، او ما، تۀ خپل پشت پناه جوړ کړے او خما یقین دے چه ستا نه یعني ستا ذ غضب نه سوا ستا، نه ذ

اِلَيْكَ رَغْبَةً وَّ رَهْبَةً اِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ اِلَّا اِلَيْكَ اَللّٰهُمَّ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِىْ اَنْزَلْتَ وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِىْ اَرْسَلْتَ فَاِنْ مُتَّ مِنْ لَيْلَتِكَ فَاَنْتَ عَلَى الْفِطْرَةِ وَاجْعَلْهُنَّ اٰخِرَ مَا تَتَكَلَّمُ بِهٖ قَالَ فَرَدَّدْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا بَلَغْتُ اَللّٰهُمَّ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِىْ اَنْزَلْتَ قُلْتُ وَ رَسُوْلِكَ قَالَ وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِىْ اَرْسَلْتَ.

پناه بل ځائے نشته. اے اللّٰه، ما په هغې كتاب ايمان راوړے دے، چه تا نازل كړے دے، او ستا په هغې نبيِّ هم چه دَ خلقو دَ هدايت دَ پاره دے راليږلے دے. كه چرے ته په دغه شپه كښې مړ شوے نو په فطرت (يعني دين) باندې به مړ شې. او دا دعا د ټولو خبرو په آخره كښې وايه. براء وائي، ما دا كلمات دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مخكښې تير كړل، نو كوم وخت چه زهٔ: امنت بكتابك الّذى انزلت: ته اورسيدم، نو ما اووے: و رسولك: نو حضورؐ او فرمائيل، نه، بلكه: وَ نَبِيِّكَ الّذى ارسلت:[1] وايه.

۱. د دعا په الفاظو كښې ردوبدل كول مناسب نه دي. د هغې مباركو الفاظو خاص خاص اثر وي. دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مبارک الفاظ په خپل ځائے پُوره صحيح دي او تاثير لري چه هغه تاثير په نورو الفاظو كښې نه وي.

الحمدلله چه د بخاري شريف ړومبۍ پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-91

# تاج البخاري پاره ۲ دمضامينو فهرست

# پارهٔ دويم ۲

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## ۵. كِتَابُ الۡغُسۡلِ

## ۵. (دَ غسل بيان)

وَ قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوۡا اِلٰى قَوۡلِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ وَ قَوۡلِهٖ يٰاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا اِلٰى قَوۡلِهٖ عَفُوًّا غَفُوۡرًا.

او دَ اللّٰه تعالىٰ قول كه تاسو دَ جنابت حالت كښې يئے' نو غسل او كړئے : لعلّكم تشكرون؛ پورے او دَ اللّٰه تعالىٰ قول: يَا اَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا: عَفُوًّا غَفُوۡرًا: پورے'

۱ . دے آيتونو دَ ذكر كولو مقصد دا دے چه د غسل (د جنابت) فرض كيدل د قرآن شريف نه ثابت دي. او دا حكم يقيني دے اولنے آيت د سورة مائده او دويم آيت د سورة نساء دے دواړو آيتونو كښې د غسل تفصيل بيان شوے دے.

### بَابُ ۱۷۴ : اَلۡوُضُوۡءِ قَبۡلَ الۡغُسۡلِ.

### باب ۱۷۴ : د غسل نه مخكښې د اودس كولو بيان[۱]

۱ . د غسل نه وړاندے اودس كول سنت دي.

۲۴۳ : حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ يُوۡسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنۡ هِشَامٍ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنۡ عَآئِشَةَ زَوۡجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ كَانَ اغۡتَسَلَ مِنَ الۡجَنَابَةِ بَدَاَ فَغَسَلَ يَدَيۡهِ ثُمَّ يَتَوَضَّاُ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ يُدۡخِلُ اَصَابِعَهٗ فِي الۡمَآءِ فَيُخَلِّلُ بِهَا اُصُوۡلَ الشَّعۡرِ ثُمَّ يَصُبُّ عَلٰى رَاۡسِهٖ ثَلٰثَ غُرَفٍ بِيَدَيۡهِ ثُمَّ يُفِيۡضُ الۡمَآءَ عَلٰى جِلۡدِهٖ كُلِّهٖ.

۲۴۳ : عبدالله بن يوسف. مالك. هشام. عروه. اُم المؤمنين بي بي عائشہؓ نه روايت دے' چه نبي صلعم به د جنابت غسل كولو' نو شروع كښې به ئے دواړه لاسونه مبارك وينزل. بيا به ئے اودس كولو' څنګه چه به ئے د مانځه دَ پاره اودس كولو. بيا به ئے خپلے ګوتے مباركے په اُوبو كښې دننه كړے او هغے سره به ئے د ويښتو د بيخونو خلال كولو. بيا به ئے خپلو لاسونو سره درے لپے په سر باندے اچولے. بيا به ئے په خپل ټول جسم مبارك اوبه بهيولے.

۲۴۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ يُوۡسُفَ قَالَ ثَنَا سُفۡيٰنُ عَنِ الۡاَعۡمَشِ

۲۴۴ : محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. سالم بن ابي جعد. كريب. حضرت ابن عباسؓ.

عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُضُوْءَهُ لِلصَّلٰوةِ غَيْرَ رِجْلَيْهِ وَ غَسَلَ فَرْجَهُ وَمَا اَصَابَهُ مِنَ الْاَذٰى ثُمَّ اَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَآءَ ثُمَّ نَحّٰى رِجْلَيْهِ فَغَسَلَهُمَا هٰذِهٖ غُسْلُهُ مِنَ الْجَنَابَةِ.

ام المؤمنين بي بي ميمونہؓ نہ روايت، هغه فرمائي، رسول اللّٰہ صلعم ذ مانځه ذ اودس په شان اودس اوکړه، خو خپلے دواړه پښے ئے اونهٔ وينځلے، او خپل شرمګاه او هغه نجاست چه لږېدلے وو، هغه ئے اووينځلو بيائے په هغے اوبه اوبهيولے. بيائے دواړه پښے اخوا کړے، او هغه ئے اووينځلے. دا ذ حضور صلعم ذ جنابت غسل وو.

## باب ۱۷۵ : غُسْلُ الرَّجُلِ مَعَ امْرَاَتِهٖ.

## باب ۱۷۵ : ذ سړي خپلے ښځے سره ذ غسل کولو بيان.

۲۴۵ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ ثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَآءٍ وَّاحِدٍ مِّنْ قَدَحٍ يُقَالُ لَهُ الْفَرَقُ.

۲۴۵ : آدم بن اياس. ابن ابي ذئب. زهري. عروه. ذ بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. هغے او فرمائيل چه ما او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دواړو ذ يو لوښي نه يعني قدح نه چه هغے ته به ئے فرق وئے، غسل کولو.

## باب ۱۷۶ : اَلْغُسْلُ بِالصَّاعِ وَ نَحْوِهٖ.

## باب ۱۷۶ : صاع وغيره سره ذ غسل کولو بيان

(صاع: ذ دوه سوه څلور ديرش تولے يو وزن يا پيمانه)

۲۴۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ يَقُوْلُ دَخَلْتُ اَنَا وَ اَخُوْ عَآئِشَةَ عَلٰى عَآئِشَةَ فَسَاَلَهَا اَخُوْهَا عَنْ غُسْلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَتْ بِاِنَآءٍ نَحْوٍ مِّنْ صَاعٍ فَاغْتَسَلَتْ وَ اَفَاضَتْ عَلٰى رَاْسِهَا وَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهَا حِجَابٌ

۲۴۶ : عبداللّٰه بن محمد. عبدالصمد. شعبه. ابوبکر بن حفص اوړے، ما ذ ابوسلمه نه واورېدل، چه زهٔ او ذ بي بي عائشےؓ ورور، بي بي عائشے له راغلو. او هغے نه ذ هغے ورور، ذ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذ غسل ذ حال تپوس اوکړه، نو هغے يو صاع قدرے اوبه، راوغوښتے. بيا هغے غسل اوکړه، او په خپل سر ئے اوبه او بهيولے. دے حال کښې خمونږ او ذ هغے مينځ کښې پرده حائله

قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ يَزِيْدُ بْنُ هٰرُوْنَ وَ بَهْزٌ وَالْجُدِّيُّ عَنْ شُعْبَةَ قَدْرَ صَاعٍ.

وه. ابوعبدالله (بخاري) اووے چه يزيد بن هارون. بهز او جدي ذ شعبه نه: نحو من صاع په خائے: قدر صاع¹: بيان كړے دے.

۱. يو صاع كښې تقريبًا درے نيم سيره اوبه رازي. د غُسل ذ پاره د يو صاع اوبو اندازه په شريعت كښې څه اهميت نه لري. د دے وجے نه يو امام د فقهے په دے مضمون څه خاص بحث نه دے كړي يواځے امام محمد بن الحسن الشيباني يو صاع اوبه د غُسل د پاره معتبر گنړي. دا حديث شريف دليل گنړي. ليكن دَ امام محمد رحمة الله عليه دا مقصد نه دے چه د غُسل (لامبلو) د پاره يو صاع اوبه مقرره اندازه ده.

۲۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ قَالَ ثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ ثَنَا اَبُوْ جَعْفَرٍ اَنَّهٗ كَانَ عِنْدَ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ هُوَ وَ اَبُوْهُ وَ عِنْدَهٗ قَوْمٌ فَسَاَلُوْهُ عَنِ الْغُسْلِ فَقَالَ يَكْفِيْكَ صَاعٌ فَقَالَ رَجُلٌ مَا يَكْفِيْنِيْ فَقَالَ جَابِرٌ كَانَ يَكْفِيْ مَنْ هُوَ اَوْفٰى مِنْكَ شَعْرًا وَّ خَيْرًا مِّنْكَ ثُمَّ اَمَّنَا فِيْ ثَوْبٍ.

۲۴۷: عبدالله بن محمد. يحيٰي بن آدم. زهير ابي اسحٰق. ابو جعفر (امام باقر) فرمائي چه زهٔ او خما پلار (امام زين العابدين) جابر بن عبدالله سره وو، او هغهٔ سره نور خلق هم وو، هغوي ذ هغهٔ نه ذ غسل په باره تپوس اوكړ. (چه څومره اوبو سره پكار دے) هغهٔ ورته اووے، چه يو صاع تاله كافي دے. نو يو سړي (جابرؓ) ته اووے چه ما ذ پاره خو نه كافي كيږي نو جابرؓ ورته اووے چه دغه هومره اوبه ذ هغه چا ذ پاره كافي دے، ذ چا ويښتهٔ چه ستا نه زيات وو او (هره خبره كښې) ستا نه ښهٔ وو (يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم) بيا جابرؓ صرف يو كپړه واغُسته او خمونږ امامت ئے اوكړ.

۲۴۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَيْمُوْنَةَ كَانَا يَغْتَسِلَانِ مِنْ اِنَاءٍ وَاحِدٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ كَانَ ابْنُ عُيَيْنَةَ يَقُوْلُ اَخِيْرًا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ وَالصَّحِيْحُ مَا رَوٰى اَبُوْ نُعَيْمٍ.

۲۴۸: ابونعيم. ابن عيينه. جابر بن زيد. ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم او بي بي ميمونےؓ دوارو به ذ يو لوښي نه غسل كولو. امام بخاريؒ اووے چه ابن عيينه به خپل آخري عمر كښې ابن عباسؓ. بي بي ميمونهٔؓ نه روايت كولو. ليكن صحيح هغه دے چه ابونعيم روايت دے.

## بَابٌ ۱۷۷: مَنْ اَفَاضَ عَلٰى رَاْسِهٖ ثَلَاثًا.

باب ۱۷۷: ذ هغے سړي بيان چه هغه په خپل سر، درے ځله اوبه او بهولے.

۲۴۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا

۲۴۹: ابونعيم. زهير. ابواسحاق.

زُهَيْرٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا اَنَا فَاُفِيْضُ عَلٰى رَاْسِيْ ثَلٰثًا وَّ اَشَارَ بِيَدَيْهِ كِلْتَيْهِمَا.

سلیمان بن صرد. جبیر بن مطعمؓ وائي، رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمانیل: زۀ خو په خپل سر درې خله اوبه بهیوم. او (دې فرمانیلو سره) خپلو دواړو لاسونو سره ئې اشارهٔ اوکړله.

۲۵۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مِخْوَلِ بْنِ رَاشِدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْرِغُ عَلٰى رَاْسِهٖ ثَلَاثًا.

۲۵۰: محمد بن بشار. غندر. شعبه. مخول بن راشد. محمد بن علي (یعني امام باقر) جعفر بن عبدالله نه روایت کوي، هغهٔ اووې، چه نبي صلي الله علیهوسلم به په خپل سر مبارک درې خله اوبه بهیولې.

۲۵۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا مَعْمَرُ بْنُ يَحْيٰى بْنِ سَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ جَعْفَرٍ قَالَ لِيْ جَابِرٌ اَتَانِيْ ابْنُ عَمِّكَ يُعَرِّضُ بِالْحَسَنِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ كَيْفَ الْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فَقُلْتُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْخُذُ ثَلٰثَ اَكُفٍّ فَيُفِيْضُهَا عَلٰى رَاْسِهٖ ثُمَّ يُفِيْضُ عَلٰى سَائِرِ جَسَدِهٖ فَقَالَ لِيَ الْحَسَنُ اِنِّيْ رَجُلٌ كَثِيْرُ الشَّعْرِ فَقُلْتُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرَ مِنْكَ شَعْرًا.

۲۵۱: ابونعیم. معمر بن یحیی بن سام. ابوجعفر (یعني امام باقر) وائي، چه ماته جابرؓ اووې، چه ماله ستا د ترهٔ خوئې (حسن بن محمد بن حنیفه) راغې، او ماته ئې اووې، د جنابت غسل څنګه کیږي؟ ما ورته اووې، چه نبي صلي الله علیه وسلم به درې چونګه (د اوبو) اخستل، او هغه به ئې په خپل سر اچول. بیا به ئې په خپل باقي بدن بهیولې. ماته حسن اووې، په ما ډیر ویښتهٔ دي (ماله دومره لږې اوبه کافي نهٔ دي) ما ورته اووې، چه د نبي صلی الله علیه وسلم ویښتهٔ ستانه زیات وو.

## باب ۱۷۸: اَلْغُسْلُ مَرَّةً وَّاحِدَةً.

## باب ۱۷۸: غسل کولو کښې یو ځل د اندامونو د وینځلو بیان.

**۲۵۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَتْ مَيْمُوْنَةُ وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَآءً لِلْغُسْلِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ اَفْرَغَ عَلٰى شِمَالِهٖ فَغَسَلَ مَذَاكِيْرَهٗ ثُمَّ مَسَحَ يَدَهٗ بِالْاَرْضِ ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهٗ وَ يَدَيْهِ ثُمَّ اَفَاضَ عَلٰى جَسَدِهٖ ثُمَّ تَحَوَّلَ مِنْ مَكَانِهٖ فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ.**

۲۵۲ : موسي بن اسمعيل. عبدالواحد. اعمش سالم بن ابي جعد. کریب. ابن عباسؓ نه روایت دے' هغه وائي بي بي ميمونےؓ او فرمائيل' چه ما د نبي عليه السلام د غسل د پاره اوبه کيښودلے' نو حضورﷺ خپل لاس دوه يا درے ځله اووينزل. بيائے په خپل کس لاس اوبه توئے کړے خپل خاص ځايونه ئے اووينزل. بيائے خپل لاس په زمکه او مږلو' او ورے وينزلو. بيائے په خپل بدن اوبه اوبهيولے. بيا د خپل هغے مقام نه (لږ) ور ايسته شو' او دواړه پښے مبارکے ئے اووينزلے'.

۱. که سغير د څه شک شبهے نه په بدن باندے يو خل اوبه اچولو باندے د بدن ټولے حصے وينځلے شي نو د احنافو په نزد دا غسل روا دے او داسے لامبلو سره د جنابت اثر ختميږي.

## بَابُ ۱۷۹ : مَنْ بَدَاَ بِالْحِلَابِ اَوِ الطِّيْبِ عِنْدَ الْغُسْلِ.

باب ۱۷۹ : د لامبلو په وخت د حلاب او خوشبوئ نه د شروع کونکي بيان.

**۲۵۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ ثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ حَنْظَلَةَ وَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ دَعَا بِشَيْءٍ نَحْوَ الْحِلَابِ فَاَخَذَ بِكَفِّهٖ فَبَدَاَ بِشِقِّ رَاْسِهِ الْاَيْمَنِ ثُمَّ الْاَيْسَرِ فَقَالَ بِهِمَا عَلٰى وَسْطِ رَاْسِهٖ.**

۲۵۳ : محمد بن مثني. ابوعاصم. حنظله او قاسم د بي بي عائشےؓ نه روايت کوي هغے او فرمائيل چه نبي صلي الله عليه وسلم به د جنابت غسل کولو' نو څه څيز په مثل د حلاب' (يو قسم خوشبوئي) وغيره به ئے راوغستلو. هغه به ئے خپلو لاسونو کښ واخست اول به ئے د خپل سر د ښي طرف نه شروع کوله. بيا به ئے په کس طرف لړوله. بيا به ئے خپل لاسونه د سر مينځ کښ مږل.

۱. "حلاب" يو لوښے لوښے دے چه په هغے کښ به عربو خلقو د اوښے شوده (پي) لوشل دلته امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه "حلاب' لوښي کښ د پيو (شودو) څه اثر ضرور پاتے کيږي. بيا هم که دغه د شودو لوښي کښ اوبه واچوي. او ورباندے اولامبي (غسل اوکړي) نو څه ګناه پکښ نشته

خکه چه شوده (ښني) پاک دي که چرے لږ مقدار د شودو (پيو) اوبو کښې پاتے شي او اولے هم معلوميږي نو بياهم د اوبو د پاکوالي حالت کښې څه فرق نه رازي. داسے د غسل (لامبلو) نه وړاندے که په بدن څه خوشبويه څيز اومښلے شي او د غسل نه روستو اولے هم پاتي وي نو بياهم څه گناه نشته. خمونږ په وطن کښې د غسل (لامبلو) نه پس د کوم خوشبويه څيز يا د عطر لګولو رواج دے ليکن بعضے خايونو کښې د غُسل (لامبلو) نه مخکښې په خان خلق تيل لګوي او بيا غُسل کوي. دے باب کښې د دے تيلو څيزونو حکم بيان شويدے امام بخاري رحمة الله عليه بيا يو بل باب داسے ذکر کړيدے. بَابُ مَنْ تَطَيَّبَ ثُمَّ اغْتَسَلَ وَ بَقِيَ أَثَرُ الطِّيْبِ باب دے په بيان د هغه چا چه خوشبوئي او لګوي بيا اولامبي او د خوشبوئي اثر پاتے شي. د دے نه معلوميږي چه د څه پاک څيز په بدن مښلو (لګولو) باره کښې چه کوم د شريعت احکام دي هغه امام بخاري رحمة الله عليه په وضاحت سره بيانوي. کرماني او بعضے محدثينو د "حلاب" معني يو داسے لوښے بيان کړيده. چه په هغے کښې خوشبوئي پرته وي. يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم به کله د لامبلو نه وړاندے د خوشبوئي لوښے غوختلو او کله خوشبوئي' ليکن د لغت او عربي ژبے په رڼړا کښې د "حلاب" هغه ترجمه صحيح ده چه کومه مخکښې بيان شويده (د شودو لوشلو لوښے).

## ۱۸۰ : الْمَضْمَضَةِ وَالْاِسْتِنْشَاقِ فِي الْجَنَابَةِ.

۱۸۰ : دَ جنابت غسل کښې خوله او پوزه کښې د اوبو اچولو بيان.

۲۵۴ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ ابْنِ غِيَاثٍ قَالَ ثَنَا أَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَتْنَا مَيْمُوْنَةُ قَالَتْ صَبَبْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا فَأَفْرَغَ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى يَسَارِهٖ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ غَسَلَ فَرْجَهٗ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهٖ عَلَى الْأَرْضِ فَمَسَحَهَا بِالتُّرَابِ ثُمَّ غَسَلَهَا ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهٗ وَ أَفَاضَ عَلٰى رَأْسِهٖ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ ثُمَّ أُتِيَ بِمِنْدِيْلٍ فَلَمْ يَنْفُضْ بِهَا.

۲۵۴ : عمرو بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. سالم. کريب. ابن عباسؓ وائي' چه مونږ ته بي بي ميمونےؓ او فرمائيل' چه ما دَ نبي صلعم دَ غسل دَ پاره اوبه کښېودلے' نو حضورؐ په ښي لاس کس لاس بانديے اُوبه واچولے. او دواړه (لاسونه) لے اووينزل. بيائے خپل شرم گاه اووينزلو. بيائے خپل دواړه لاسونه په زمکه اومږل او' وے وينزل' او خوله نے کنګال کړه' او پوزه کښې لے اُوبه واچولے. بيائے خپل مخ مبارک اووينزلو اوپه سر' لے اُوبه او بهيولے. بيا دَ هغے خائے نه (لږ) اخواشو' او خپلے ښپے مبارکے لے اووينزلے. دے نه پس حضورؐ ته دَ بدن اُچولو (خشک کولو) دَ پاره يوه کپړه وړکړے شوه' خو حضورؐ هغے سره خان اوچ نه کړلو.

## باب ۱۸۱ : مَسْحِ الْيَدِ بِالتُّرَابِ

باب ۱۸۱ : خاورے سره دَ لاس مږلو بيان چه

لِعَكُوْنَ اَنْقٰی.

بنهٔ صفا شي.

۲۵۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ فَغَسَلَ فَرْجَهُ بِيَدِهٖ ثُمَّ دَلَكَ بِهَا الْحَائِطَ ثُمَّ غَسَلَهَا ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهٗ لِلصَّلٰوةِ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهٖ غَسَلَ رِجْلَيْهِ.

۲۵۵ : عبدالله بن زبير حميدي. سفيان اعمش. سالم بن ابي جعد. كريب. ابن عباس. ذ بي بي ميمونهٔ نه روايت كوي، چه نبي صلى الله عليه وسلم ذ جنابت نه غسل اوكهٔ نو (ذ ټولو نه مخكښ) خپل شرم ګاه ئے خپل لاس سره اووينځلو. بيا لاس ئے ديوال سره اوموږه او، وے وينځلو. ذ هغے نه پس ئے اودس اوكهٔ، څنګه چه به مونځ ذ پاره حضورؐ اودس كولو. بيا حضورؐ ذ خپل غسل نه فارغ شولو، نو خپلے دواړه پښے ئے اووينځلے.

باب ۱۸۲ : هَلْ يُدْخِلُ الْجُنُبُ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ قَبْلَ اَنْ يَّغْسِلَهَا اِذَا لَمْ يَكُنْ عَلٰى يَدِهٖ قَذَرٌ غَيْرُ الْجَنَابَةِ وَ اَدْخَلَ ابْنُ عُمَرَ وَ الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ يَدَهٗ فِي الطَّهُوْرِ وَلَمْ يَغْسِلْهَا ثُمَّ تَوَضَّأَ وَلَمْ يَرَا بْنُ عُمَرَ وَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَأْسًا بِمَا يَنْتَضِحُ مِنْ غُسْلِ الْجَنَابَةِ.

۱۸۲ : آيا جنب خپل لاس ذ وينځلو نه مخكښ لوښي كښ دننه كولے شي، هر كله چه ذ هغهٔ په لاس ذ جنابت نه علاوه څهٔ نجاست نهٔ وي. ابن عمرؓ او براء بن عازبؓ خپل لاس اُوبو كښ دننه كهٔ، حالانكه هغه ئے وينځلے نهٔ وو. بيائے اودس اوكهٔ. ابن عمرؓ او ابن عباسؓ ذ جنابت ذ غسل نه څڅيدلے اوبه څهٔ څيز سره لړيدو كښ څهٔ حرج نهٔ دے ګڼړلے.

۲۵۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ تَخْتَلِفُ اَيْدِيْنَا فِيْهِ.

۲۵۶ : عبدالله بن مسلمه. افلح بن حميد قاسم. بي بي عائشهؓ وائي، ما او نبي صلي الله عليه وسلم به ذ يو لوښي نه غسل كولو، او څمونږ لاس به هغے كښ لړيدل.

۲۵۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ

۲۵۷ : مسدد. حماد. هشام بن عروه. بي بي عائشهؓ فرمائي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به ذ جنابت غسل كولو، نو خپل لاس به ئے (اول)

الْجَنَابَةِ غسل بِهٰذهٖ.

وينزل

۲۵۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ حَفْصٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ مِّنْ جَنَابَةٍ وَّ عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ مِثْلَهٗ.

۲۵۸: ابوالوليد. شعبه. ابوبكر بن حفص عروه. بي بي عائشةؓ فرمائي: ما او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ديو لوښي نه د جنابت غسل كولو. او عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه (هم) دغسے روايت دے.

۲۵۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمَرْاَةُ مِنْ نِّسَائِهٖ يَغْتَسِلَانِ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ زَادَ مُسْلِمٌ وَّ وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ عَنْ شُعْبَةَ مِنَ الْجَنَابَةِ.

۲۵۹: ابوالوليد. شعبه. عبداللّٰه بن عبداللّٰه بن جبير. انس بن مالكؓ وائي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او د حضورؐ په بيبيانو كښ چه كومه بي بي به وه (دواړو به په يو ځائے) د يو لوښي نه غسل كولو مسلم او وهيب بن جرير په واسطه د شعبه د: مِنَ الْجَنَابَةِ: لفظ زيات كړے دے.

## باب ۱۸۳: مَنْ اَفْرَغَ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى شِمَالِهٖ فِى الْغُسْلِ.

## باب ۱۸۳: كوم سړے چه غسل كښ د ښي لاس نه په كس لاس اوبه اچوي، د هغهٔ بيان.

۲۶۰: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ قَالَ ثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ وَضَعْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا وَّ سَتَرْتُهٗ فَصَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهَا مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ قَالَ

۲۶۰: موسي بن اسمٰعيل. ابوعوانه. اعمش سالم بن ابي جعد. كريب (د ابن عباسؓ آزاد كرده غلام) ابن عباس. بي بي ميمونه بنت حارث وائي. ما د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم د غسل د پاره اوبه كيښودلے. او حضورؐ د پاره م پرده راښكته كړه. حضورؐ په خپل لاس اوبه واچولے، او هغه ئے يو يا دوه ځله اووينزلو. سليمان (د حديث راوي) وائي، ماته ياد نه دي: چه د دريم ځل ئے هم ذكر او كه يا نه. بيائے خپل ښي لاس سره په خپل كس لاس اوبه واچولے. او خپل شرم كاه

سُلَيْمَانُ لَآ اَدْرِيْ اَذْكَرَ الثَّالِثَةَ اَمْ لَا ثُمَّ اَفْرَغَ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى شِمَالِهٖ فَغَسَلَ فَرْجَهٗ ثُمَّ دَلَكَ يَدَهٗ بِالْاَرْضِ اَوْ بِالْحَآئِطِ ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَ غَسَلَ وَجْهَهٗ وَ يَدَيْهِ وَ غَسَلَ رَاْسَهٗ ثُمَّ صَبَّ عَلٰى جَسَدِهٖ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ فَنَاوَلْتُهٗ خِرْقَةً فَقَالَ بِيَدِهٖ هٰكَذَا وَلَمْ يُرِدْهَا.

نے اووینزلو دے نه پس نے خپل لاس زمکے یا دیوال سره اومږلو. بیائے خوله کنګال کړه او پوزه کښ ئے اُوبه واچولے. دے نه پس خپل مخ مبارک او دواړه لاسونه ئے اووینزل. بیائے خپل سر مبارک دړے خله اووینزلو. دے نه پس ئے (باقي) بدن باندے اُوبه اوبهیولے. او د خپل ځائے نه (لږ) اخواشو، او دواړه پښے مبارکے ئے اووینزلے. بیا ورله ما یوه کپړه ورکړه نو هغوئ خپل لاس سره اوبه اوڅے کړے او کپړه ئے وانه خسته.

**باب ۱۸۵ :** اِذَا جَامَعَ ثُمَّ عَادَ وَمَنْ دَارَ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِيْ غُسْلٍ وَّاحِدٍ.

**باب ۱۸۵ :** هر کله چه جماع او کړي. بیا دوباره کول غواړي او څوک چه یو غسل کښ ټولو بیبیانو له ورشي.

**۲۶۲ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنِ اَبِيْ عَدِيٍّ وَّ يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ ذَكَرْتُهٗ لِعَآئِشَةَ قَالَتْ يَرْحَمُ اللّٰهُ اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ كُنْتُ اُطَيِّبُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَطُوْفُ عَلٰى نِسَآءِهٖ ثُمَّ يُصْبِحُ مُحْرِمًا يَنْضَخُ طِيْبًا.

**۲۶۲ :** محمد بن بشار. ابن ابي عدي. يحيى بن سعيد. شعبه. ابراهيم. محمد بن منتشر د خپل پلار منتشر نه روايت کوي. هغه اووے، ما دا خبره بي بي عائشے ته بيان کړه، نو هغے او فرمائیل، الله دے په ابو عبدالرحمٰن رحم اوکړي. ما به رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خوشبوئ لږوله، او حضورؐ به خپلو بيبيانو نه ورتلو. بیا به ئے سحر احرام تړلو. خوشبوئ به د حضورؐ (د جسم مبارک) نه تله.

**ف:** د دے حديث تعلق دے باب سره صرف د بيبيانو د لفظ په بنا دے، کني دا حديث د حج احاديثو سره تعلق لري. او دے حديث کښ د بيبيانو لفظ جمع سره راغلے دے، چه د دے امر دليل دے، چه حضورؐ به يوه شپه او ورځ کښ د ګڼرو بيبيانو نه فائده آخستله.

**۲۶۳ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ حَدَّثَنَا

**۲۶۳ :** محمد بن بشار. معاذ بن هشام. قتاده. انس بن مالکؓ وائي، چه نبي صلے الله عليه وسلم به يو ساعت کښ

اَنَسَ بْنُ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدُوْرُ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِى السَّاعَةِ الْوَاحِدَةِ مِنَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُنَّ اِحْدٰى عَشَرَةَ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسٍ اَوَ كَانَ يُطِيْقُهٗ قَالَ كُنَّا نَتَحَدَّثُ اَنَّهٗ اُعْطِىَ قُوَّةَ ثَلَاثِيْنَ وَ قَالَ سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ اِنَّا نَتَحَدَّثُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ تِسْعَ نِسْوَةٍ.

دننه شپه او ورځ كښې خپلو ټولو بيبيانوله ورتللو. او هغوي يولس وې. قتادهؓ وائي، ما انسؓ ته اووې، چه آيا حضورؐ دَ دې ټولو طاقت لرې شو، نو هغه اووې. او مونږ به وې، چه حضورؐ ته دَ ديرشو سړو طاقت وركړې شوې دې (سعيد، دَ قتادهؓ نه نقل كړيدې، چه انسؓ هغوي كښې نهه بيبيانې بيان كړې دي).

## بـاب۱۸۶ : غُسْلِ الْمَذِيِّ وَالْوُضُوْٓءِ مِنْهُ.

باب۱۸۶ : دَ مذي دَ وينزلو، او دَ هغې په سبب دَ اودس كولو بيان.

۲۶۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّآءً فَاَمَرْتُ رَجُلًا يَّسْأَلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَكَانِ ابْنَتِهٖ فَسَاَلَ فَقَالَ تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ.

۲۶۴ : ابوالوليد. زائده. ابوحصين. ابو عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ فرمائي، خمانه به زياته مذي وتله، نو ما يو سړي (مقدادؓ) ته اووې، چه هغه دَ نبي صلى الله عليه وسلم نه دَ دې حكم تپوس اوكړي، او زهٔ به دې وجه شرميدم، چه دَ نبي صلى الله عليه وسلم لور خما په نكاح كښې وه. هغه سړي چه تپوس اوكهٔ، نو نبي صلى الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، چه اودس كوه، او خپل خاص اندام وينزه.

## بـاب۱۸۷ : مَنْ تَطَيَّبَ ثُمَّ اغْتَسَلَ وَ بَقِىَ اَثَرُ الطِّيْبِ.

باب۱۸۷ : دَ هغې سړي بيان چه هغهٔ خوشبوي اُولږوله بيائې غسل اوكهٔ او دَخوشبوي اثر پرې باقي پاتې شو.

۲۶۵ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَاَلْتُ عَآئِشَةَ وَ ذَكَرْتُ لَهَا قَوْلَ ابْنِ عُمَرَ مَآ اُحِبُّ اَنْ اُصْبِحَ مُحْرِمًا اَنْضَخُ طِيْبًا فَقَالَتْ عَآئِشَةُ اَنَا طَيَّبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ

۲۶۵ : ابوالنعمان. ابوعوانه. ابراهيم بن محمد بن منتشر دَ خپل پلار نه روايت كوي، هغه وائي، ما دَ بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكهٔ او هغې ته مې دَ ابن عمرؓ دا قول هم بيان كهٔ، چه زهٔ دا خبره نهٔ خوښوم، چه سحر كښې احرام اوتړم، داسې حالت كښې چه خما نه خوشبوئ خي. نو بي بي عائشےؓ او فرمائيل، چه ما رسول الله صلعم ته خوشبوئ اولږوله، بيا حضورؐ ټولو بيبيانوله

طَافَ فِيْ نِسَآئِهٖ ثُمَّ اَصْبَحَ مُحْرِمًا. ورځے بیانے سحر کښې احرام اوتړلو.

۱. د احرام په حالت کښې خوشبوئي لګول ګناه ده او کفاره پرے واجبیږي لیکن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به ویل "که د احرام نه وړاندے خوشبوئي استعمال شي (اولګولے شي) او د احرام نه روسته ئے اثر وي نو دا هم ګناه ده. (جنایت دے) کله چه حضرت عائشه بي بي رضي الله عنها نه دا خبره اورسیده نو هغے دا خبره رد کړه او د ابن عمر رضي الله عنهما د حکم خلاف ئے د رسول الله صلي الله علیه وسلم عمل بیان کړو ابو عبدالرحمن د ابن عمر رضي الله عنهما کنیت دے امام مالک رحمة الله علیه د ابن عمر رضي الله عنهما په مسلک دے او د جمهورو علماؤ په نزد: د احرام نه وړاندے د خوشبوئي یا عطر لګولو ګناه نشته. اګرچه د احرام نه روستو ئے اثر باقي وي.

۲. د راویانو د الفاظو نه دا معلومیږي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به عام حالاتو کښې تولو بیبیانو سره یو ځائے کیدو (د جماع) د پاره تللو. لیکن داسے واقعه صرف یو خل پیښه شوے وه. چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د ټولو بیبیانو سره حجة الوداع (آخري حج) ته تشریف اوړلے وو د ذغے نه علاوه په بله موقعه د داسے واقعے ثبوت نشته. رسول الله صلي الله علیه وسلم دا عمل د حج د بعضے مصلحتونو په خاطر کړے وو.

۳. ابن بطال وائي. چه د جماع په وخت سرې او ښځے دواړو له خوشبوئي لګول سُنت دي (فتح الباري جلد اول).

۲۶۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَبِيْصِ الطِّيْبِ فِيْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

۲۶۶: آدم بن ابي ایاس. شعبه. حکم. ابراهیم. اسود بي بي عائشےؓ نه روایت دے، هغه فرمائي چه ګویا زۀ د نبي صلي الله علیه وسلم مانګ کښې د خوشبوئي چمک (اوسه پورے) وینم، داسے حال کښې چه حضورؐ په محروم وو.

ف: (۱) مانګ: د سر د ویښتو مینځ کښې نیغه لار یا لیکه، چه د سر ګومنز کولو په وخت ویستے شي.

ف: (۲) دا حدیث د تیرو دوو حدیثونو اختصار دے، چه هغے کښې بیبیانو ته د ورتلو ذکر راغلے دے، او هغے کښې د خوشبوئ د استعمال نه پس د غسل هم ذکر وو. په دے وجه بخاري رحمة الله په دے باب کښې هم دا حدیث هم نقل کڼ.

بَابُ ۱۸۸: تَخْلِيْلُ الشَّعْرِ حَتّٰى اِذَا ظَنَّ اَنَّهٗ قَدْ اَرْوٰى بَشْرَتَهٗ اَفَاضَ عَلَيْهِ.

باب ۱۸۸: د ویښتو خلال کول، تردے چه په دے یوه شي، چه څرمن ئے لونده کړه، نو بیا دے پرے اُوبه او بهیوي.

۲۶۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامُ

۲۶۷: عبدان. عبدالله. هشام بن عروه. عروه بي بي عائشےؓ فرمائي، رسول

بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ غَسَلَ يَدَيْهِ وَ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهُ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ اغْتَسَلَ ثُمَّ تَخَلَّلَ بِيَدِهٖ شَعْرَهٗ حَتّٰى اِذَا ظَنَّ اَنَّهٗ قَدْ اَرْوٰى بَشْرَتَهٗ اَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَآءَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ غَسَلَ سَآئِرَ جَسَدِهٖ وَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَآءٍ وَّاحِدٍ نَغْرِفُ مِنْهُ جَمِيْعًا.

الله صلى الله عليه وسلم چه به د جنابت غسل كولو نو خپل دواړه لاسونه به ئے وينزل او اودس به ئے كولو. څنګه چه به د مونځ د پاره د حضورؐ اودس وو بيا به ئے غسل كښې د خپلو ويښتو خلال كولو. كوم وخت چه به پوه شو چه څرمن ئے لونده كړه، نو په هغے به ئے درے ځله اوبه بهيولے. بيا به ئے خپل بدن وينزلو. بي بي عائشےؓ او فرمائيل چه ما او رسول الله صلى الله عليه وسلم به د يو لوښي نه لامبل دواړو به د هغے نه چونګ لپه ډكوله.

## باب ۱۸۹: مَنْ تَوَضَّأَ فِى الْجَنَابَةِ ثُمَّ غَسَلَ سَائِرَ جَسَدِهٖ وَلَمْ يُعِدْ غَسْلَ مَوَاضِعِ الْوُضُوْءِ مِنْهُ مَرَّةً اُخْرٰى.

## باب ۱۸۹: د هغے سړي بيان چه د جنابت حالت كښې ئے اودس اوكړو. بيائے باقي جسم اووينزلو، او د اودس ځايونه ئے دوباره اونۀ وينزل.

۲۶۸: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى قَالَ اَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ سَالِمٍ عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ...... عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ وَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُضُوْءَ الْجَنَابَةِ فَاَكْفَاءَ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى يَسَارِهٖ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ فَرْجَهٗ ثُمَّ ضَرَبَ يَدَهٗ بِالْاَرْضِ اَوِ الْحَائِطِ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَ غَسَلَ وَجْهَهٗ وَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ اَفَاضَ

۲۶۸: يوسف بن عيسٰي. فضل بن موسٰي. اعمش. سالم. كريب (د ابن عباسؓ آزاد كرده غلام). ابن عباسؓ. بي بي ميمونهؓ نه روايت كوي. هغے او فرمائيل، چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د جنابت د غسل د پاره اوبه كيښودے شوے، حضورؐ په ښي لاس، كس لاس باندے دوه يا درے ځله اوبه واچولے، او خپل شرم ګاه ئے اووينزلو. بيائے خپل لاس په زمكه يا په ديوال دوه يا درے ځله او مږلو. بيائے خوله ګنګال كړه. او پوزه كښې ئے اوبه واچولے، او خپل دواړه لاسونه او څنګلے ئے اووينزلے. بيائے خپل باقي بدن اووينزلو. بيا د هغے ځائے نه (لږ) اخواشو او دواړه پښے ئے اووينزلے.

عَلٰى رَأْسِهِ الْمَآءَ ثُمَّ غَسَلَ جَسَدَهُ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ رِجْلَيْهِ قَالَتْ فَاَتَيْتُهُ بِخِرْقَةٍ فَلَمْ يُرِدْهَا فَجَعَلَ يَنْفُضُ بِيَدِهٖ.

بي بي ميمونهؓ فرمائي. بيا ما حضورؐ له يوه کپړه يوړله (چه خان پرے اُوچ کړي) خو حضورؐ هغه وانخستله او خپل لاس باندے به ئے دخان نه اوبه نچونړولے. (اُوچے کړے)

باب ۱۹۰ : اِذَا ذَكَرَ فِي الْمَسْجِدِ اَنَّهٗ جُنُبٌ خَرَجَ كَمَا هُوَ وَلَا يَتَيَمَّمُ.

باب ۱۹۰ : که جمات کښې ورته ياد شي، چه جنب دے نو هغے حال کښې دے بهر راوځي، او تيمم دے نهٔ کوي.

۲۶۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ قَالَ اَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ وَعُدِّلَتِ الصُّفُوْفُ قِيَامًا فَخَرَجَ اِلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ ذَكَرَ اَنَّهٗ جُنُبٌ فَقَالَ لَنَا مَكَانَكُمْ ثُمَّ رَجَعَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ خَرَجَ اِلَيْنَا وَرَاْسُهٗ يَقْطُرُ فَكَبَّرَ فَصَلَّيْنَا مَعَهٗ تَابَعَهٗ عَبْدُ الْاَعْلٰى عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَرَوَاهُ الْاَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۲۶۹ : عبدالله بن محمد. عثمان بن عمر. يونس زهري. ابوسلمه. ابوهريرهؓ نه روايت دے. چه (يوځلے) مونځ قائم شو، او صفونه برابر کړے شو. دے کښې رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ بله تشريف راوړلو. کوم وخت چه حضورؐ د خپل مونځ په ځائے اودريدلو دغه وخت ورته ياد شو. چه د غسل ضرورت دے. نو مونږ ته ئے او فرمائيل. چه تاسو په خپل ځائے اوسئے. حضورؐ واپس لاړلو. غسل ئے اوکړلو. د هغے نه پس ئے تشريف راوړلو. او د حضورؐ د سر مبارک نه اوبه څڅيدلے. بيا حضورؐ تکبير (تحريمه) اوکړو، او مونږ ټولو به جمع حضور سره مونځ اوکړلو. عبدالاعلي په واسطه د معمر. زهري. د دے متابع حديث روايت کړے دے، او هم دا اوزاعي د زهري نه روايت کړے دے.

ف: تکبير تحريمه. د مونځ د شروع کولو وخت په ورومبي ځل لاسونه اوچتول او الله اکبر وئيل.

باب ۱۹۱ : نَفْضِ الْيَدَيْنِ مِنْ غُسْلِ الْجَنَابَةِ.

باب ۱۹۱ : د جنابت د غسل نه پس لاسونه څنډل

۲۷۰ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ قَالَ سَمِعْتُ الْاَعْمَشَ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَتْ مَيْمُوْنَةُ

۲۷۰ : عبدان. ابوحمزه. اعمش. سالم بن ابي جعد. کريب. ابن عباس. د بي بي ميمونے نه روايت کوي، هغے او فرمائيل. چه ما د نبي عليه السلام د غسل د پاره اوبه کيښودے. او حضورؐ د پاره م پرده راښکته کړه. حضورؐ په

وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا فَسَتَرْتُهُ بِثَوْبٍ وَصَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ بِيَمِيْنِهِ عَلٰى شِمَالِهِ فَغَسَلَ فَرْجَهُ فَضَرَبَ بِيَدِهِ الْاَرْضَ فَمَسَحَهَا ثُمَّ غَسَلَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَ غَسَلَ وَجْهَهُ وَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ صَبَّ عَلٰى رَأْسِهٖ وَ اَفَاضَ عَلٰى جَسَدِهٖ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ فَنَاوَلْتُهُ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ فَانْطَلَقَ وَهُوَ يَنْفُضُ يَدَيْهِ.

خپلو دواړو لاسونو اوبه واچولې' هغه ئې اووینځل. بیائې په خپل ښي لاس به گس لاس باندې اوبه واچولې' او استنجائې اوکړله. بیائې خپل لاس په زمکه اومږه. بیائې هغه اووینځه. د هغې نه پس ئې خوله کنګال کړه. او پوزه کښې ئې اوبه واچولې او مخ او لاسونه ئې اووینځل. بیائې په خپل سر اوبه واچولې او په (باقي) بدن ئې اوبه اوبهولې. دې نه پس د هغې ځائې نه لږ اخوا شو' او خپلې دواړه پښې ئې اووینځلې. بیا ما یوه کپړه د بدن اوچولو د پاره حضورؐ ته ورانددې کړه. خو حضورؐ هغه وانخستله' او خپلو دواړو لاسونو سره ئې (د بدن نه) اوبه اوچولې.

## بَابٌ ۱۹۲ : مَنْ بَدَأَ بِشِقِّ رَأْسِهِ الْاَيْمَنِ فِي الْغُسْلِ.

باب ۱۹۲ : غسل کښې د خپل سر' د ښي اړخ د شروع کولو بیان.

۲۷۱ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ نَافِعٍ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنَّا اِذَا اَصَابَ اِحْدَانَا جَنَابَةٌ اَخَذَتْ بِيَدَيْهَا ثَلَاثًا فَوْقَ رَأْسِهَا ثُمَّ تَأْخُذُ بِيَدِهَا عَلٰى شِقِّهَا الْاَيْمَنِ وَ بِيَدِهَا الْاُخْرٰى عَلٰى شِقِّهَا الْاَيْسَرِ.

۲۷۱ : خلاد بن یحیی. ابراهیم بن نافع. حسن بن مسلم: صفیه بنت شیبه. بي بي عائشهؓ نه روایت دې' چه کله به مونږ کښې چاته جنابت کیدهٔ' نو هغې به (داسې غسل کولو چه) خپل دواړه لاسونو سره به ئې درې ځله په خپل سر اوبه اچولې. بیا به ئې خپل ښي لاس سره د سر ښي اړخ نیولو' اومږلو' او دویم لاس سره به ئې د سر گس اړخ مږلو.

## بَابٌ ۱۹۳ : مَنِ اغْتَسَلَ عُرْيَانًا وَّحْدَهٗ فِي الْخَلْوَةِ وَمَنْ تَسَتَّرَ وَالتَّسَتُّرُ اَفْضَلُ وَ قَالَ بَهْزٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ يُّسْتَحْيٰى مِنْهُ مِنَ النَّاسِ.

باب ۱۹۳ : د هغې سړي بیان' چه هغه یو ګوټ کښې تنهائي کښې په بربنډه غسل اوکړي او کوم سړي چه پرده اوکړه' او پرده کول افضل دي. بهز د خپل پلار نه. هغهٔ د هغهٔ د نیکهٔ (دادا) نه او هغهٔ د نبي صلعم نه روایت کړې دې' حضورؐ او فرمائیل' اللّٰه تعالٰي د دې امر د نورو خلقو نه زیات مستحق دې' چه د هغهٔ نه شرم اوکړې شي.

٢٧٢ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتْ بَنُوْا اِسْرَآءِيْلَ يَغْتَسِلُوْنَ عُرَاةً يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ وَّ كَانَ مُوْسٰى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ وَحْدَهٗ فَقَالُوْا وَاللّٰهِ مَا يَمْنَعُ مُوْسٰى اَنْ يَّغْتَسِلَ مَعَنَآ اِلَّا اَنَّهٗ اٰدَرُ فَذَهَبَ مَرَّةً يَغْتَسِلُ فَوَضَعَ ثَوْبَهٗ عَلٰى حَجَرٍ فَفَرَّ الْحَجَرُ بِثَوْبِهٖ فَجَمَعَ مُوْسٰى فِیْ اَثَرِهٖ يَقُوْلُ ثَوْبِیْ يَا حَجَرُ ثَوْبِیْ يَا حَجَرُ حَتّٰى نَظَرَتْ بَنُوْآ اِسْرَآءِيْلَ اِلٰى مُوْسٰى وَ قَالُوْا وَاللّٰهِ مَا بِمُوْسٰى مِنْ بَاْسٍ وَّ اَخَذَ ثَوْبَهٗ وَ طَفِقَ بِالْحَجَرِ ضَرْبًا قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَاللّٰهِ اِنَّهٗ لَنَدَبٌ بِالْحَجَرِ سِتَّةٌ اَوْسَبْعَةٌ ضَرْبًا بِالْحَجَرِ وَعَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَيُّوْبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا فَخَرَّ عَلَيْهِ جَرَادٌ مِّنْ ذَهَبٍ فَجَعَلَ اَيُّوْبُ يَحْتَثِیْ فِیْ ثَوْبِهٖ فَنَادَاهُ رَبُّهٗ يَآ اَيُّوْبُ اَلَمْ اَكُنْ اَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرٰى قَالَ بَلٰى وَ عِزَّتِكَ وَلٰكِنْ لَا غِنٰى بِیْ عَنْ بَرَكَتِكَ وَرَوَاهُ اِبْرَاهِيْمُ عَنْ مُوْسٰى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ صَفْوَانَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ

٢٧٢ : اسحق بن نصر، عبدالرزاق، معمر، همام بن منبه. ابوهریرهؓ د نبي صلعم نه روایت کوي، حضورؐ فرمائي چه بني اسرائیلو به په برسنده غسل کولو یو بل ته به ئې کتل، او موسي علیه السلام به تنهائي کښې غسل کولو. نو بني اسرائیلو اووې، والله موسیٰ نه مونږ خلقو سره یو ځائې غسل کولو نه صرف دا څیز مانع دې، چه هغه د خصیو باړسوب کښې آخته دې. اتفاق سره یوه ورځ موسي غسل کولو، او خپلې جامې ئې په یو کاڼي کیښودلې نو هغه کاڼي د هغه جامو سره او تښتیدلو موسي هم هغې کاڼي پسې منډې وهلې، او دائې ونیلې، چه اې کاڼیه، ځما جامې راکړه، اې کاڼیه ځما جامې راکړه تردې چه بني اسرائیلو موسیٰ اولیدلو. او، وې وئیل، واللّٰه موسیٰ ته خو هیڅ بیماري نشته. بیا (هغه کاڼي اودریدو) موسیٰ خپلې جامې واغستې او د هغې کاڼي په وهلو شروع شو. ابوهریرهؓ وائي. ځما دې په خدائې قسم وي (د موسیٰ وهلو سره) په هغې کاڼي شپږ یا اووه نښې اوس هم باقي دي. اودې سند سره ابوهریرهؓ د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي چه حضورؐ او فرمائیل یوه ورځې حضرت ایوب برېنډ لامبل، نو په هغه د سرو زرو ملخان اووریدل، نو حضرت ایوب هغه خپلو جامو کښې راغنډول شروع کړل، نو د پروردگار د طرف نه پرې آواز راغې، چه اې ایوبه، آیا ته ما د دې (سرو زرو د ملخانو) نه بې نیازه کړې نه ئې. هغهٔ عرض اوکړ چه، او، ستا په بزرګي م دې قسم وي، تا زهٔ بې نیازه کړې یم، لیکن زهٔ ستا د برکت نه بې نیازه کیدې نشم. او دا (حدیث) ابراهیم په واسطه د موسي

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَيُّوْبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا.

بن عقبه. عطاء بن يسار. ابوهريرهؓ دَ نبي عليه السلام نه روايت كۀ چه: بَيْنَا ايوب يغتسل عريانا:

۱. په پيغمبر كښې داسې عيب نه وي چه د هغې نه عام خلق كركه (نفرت) كوي. بني اسرائيلو هم دغسې عيب په موسي عليه السلام لګولو. نو خدائے تعالي دا اوغوختل چه د دغې عيب نه پاک ئې اوګرځوي او داسې صورت ئې پيدا كړو چه اګرچه هغه د شريعت په لحاظ ښه نه وؤ خو بياهم د موسي عليه السلام پاكوالے ضروري وؤ. دَ كاڼړي تختيدل ديته اشاره ده چه په هغه كښې روح (ساه) شته او دا د كاڼړي تختيدل د الله تعالي په حكم، د موسي عليه السلام معجزه هم ده كتاب الانبياء كښې به دا بحث په وضاحت بيانيږي.

## باب ۱۹۴ : التَّسَتُّرِ فِي الْغُسْلِ عِنْدَ النَّاسِ.

باب ۱۹۴ : دَ خلقو خوا كښې دَ لامبلو حالت كښې دَ پردې كولو بيان.

۲۷۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ ابْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى اُمِّ هَانِئٍ بِنْتَ اَبِيْ طَالِبٍ تَقُوْلُ ذَهَبْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَ فَاطِمَةُ تَسْتُرُهُ فَقَالَ مَنْ هٰذِهٖ فَقُلْتُ اَنَا اُمُّ هَانِئٍ.

۲۷۳ : عبدالله بن مسلمه. مالک. ابوالنضر (دَ عمر بن عبيدالله آزاد كرده غلام) ابومره (دَ اُم هاني آزاد كرده غلام). اُم هاني بنت ابي طالبؓ روايت كوي چه دَ مكې دَ فتح په كال زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلم له لاړمه، نو حضورؐ غسل كولو، او بي بي فاطمهؓ پرې پرده كړې وه. حضورؐ او فرمائيل، دا څوک دي، ما عرض اوكۀ، چه زۀ ام هاني يم.

۲۷۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَالِمِ ابْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ سَتَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثُمَّ صَبَّ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى شِمَالِهٖ فَغَسَلَ فَرْجَهُ وَمَا اَصَابَهُ ثُمَّ مَسَحَ بِيَدِهٖ عَلَى الْحَائِطِ اَوِ

۲۷۴ : عبدان. عبدالله. سفيان. اعمش. سالم بن ابي جعد. كريب. ابن عباس. بي بي ميمونهؓ روايت كوي، چه ما په نبي صلي الله عليهوسلم د جنابت د غسل دَ پاره پرده اوكړله، نو حضورؐ خپل دواړه لاسونه اووينځل. بيائې خپل ښي لاس سره په ګس اوبۀ واچولې، او خپل شرم ګاه او كوم خائے چه پليتي لګيدلې وه. هغه ئې اووينځلو. بيائې خپل لاس په ديوال يا په زمكه اومږلو. بيائې اودس اوكړلو، څنګه چه د مانځه د پاره به ئې اودس كولو. دَ پښو نه علاوه حضورؐ په خپل بدن

الْأَرْضِ ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهُ لِلصَّلٰوةِ غَيْرَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ اَفَاضَ عَلٰى جَسَدِهِ الْمَآءَ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ تَابَعَهُ اَبُوْ عَوَانَةَ وَابْنُ فُضَيْلٍ فِي السَّتْرِ.

اوبه او بهولے بيا د هغے خائے نه (لږ) اخوا شو او خپلے دواړه پښے ئے اووينځلے. ابن فضيل او ابن عوانه د ستر متعلق د دے متابع حديث روايت كړے دے.

باب ١٩٥ : إِذَا احْتَلَمَتِ الْمَرْأَةُ.

باب ١٩٥ : ښځے ته د احتلام كيدو بيان.

٢٧٥ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا قَالَتْ جَآءَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ امْرَاَةُ اَبِيْ طَلْحَةَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ عَلَى الْمَرْاَةِ عَنْ غُسْلٍ اِذَا هِيَ احْتَلَمَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ اِذَا رَاَتِ الْمَآءَ.

٢٧٥ : عبدالله بن يوسف. مالك. هشام بن عروه. زينب بنت ام سلمه. اُم المؤمنين بي بي اُم سلمهؓ روايت كوي چه د ابوطلحهؓ ښځه بي بي اُم سليمؓ رسول الله صلي الله عليه وسلم له راغله، او عرض ئے اوكړ، يا رسول الله، الله تعالي د حق خبرے كولو نه شرم نه كوي چه ښځے ته احتلام (لويه بے اودسي) اوشي نو په هغے هم غسل فرض دے. رسول الله صلعم ورته او فرمائل او، كه مني اوويني (يعني كه د مني لوند والے په كپړو اوويني، نو (غسل پرے فرض دے)

ف: احتلام: په اُوده يا په ويښه د مني وتل. نارينه ؤ ته د لامبلو حاجت پيښيدل (خوب كښ بده پيښيدل يا خطا كيدل).

باب ١٩٦ : عَرَقِ الْجُنُبِ وَ اَنَّ الْمُسْلِمَ لَا يَنْجُسُ.

باب ١٩٦ : دَ جنب دَ خولے (پسينے) بيان او مؤمن نجس (پليد) نهٔ وي.

ف: هر كله چه يو سړي ته د غسل ضرورت وي، او د غسل نه مخكښ په هغهٔ خوله (پسينه) راشي، او هغه كپړو كښ جذب شي، نو آيا كپړے به ئے پاكے وي يا پليدے.

٢٧٦ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا بَكْرٌ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ

٢٧٦ : علي بن عبدالله. يحيٰي. حميد. بكر ابورافع. ابوهريرهؓ روايت كوي، چه د مدينے په يوه كوڅه كښ رسول الله صلي الله عليه وسلم هغهٔ سره يو

أَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَهُ فِيْ بَعْضِ طَرِيْقِ الْمَدِيْنَةِ وَهُوَ جُنُبٌ فَانْخَنَسْتُ مِنْهُ فَذَهَبْتُ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جَآءَ فَقَالَ اَيْنَ كُنْتَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ كُنْتُ جُنُبًا فَكَرِهْتُ اَنْ اُجَالِسَكَ وَ اَنَا عَلٰى غَيْرِ طَهَارَةٍ قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ.

خالے شو او ابوهريرةٌ جُنب وو (هغه وائي چه) زهٔ د حضورٌ نه جُدا شوم. لاړم او غسل م او کړ. بيا راغلم' نو حضورٌ او فرمائيل اے ابوهريرةٌ تهٔ چرته تلے وے' ابوهريره ورته اووے' زهٔ جنب ووم' او د ناپاکي په حالت کښ ما تاسو سره ناسته بده گنړله' حضورٌ ورته او فرمائيل. سبحان الله. مؤمن هيڅ حال کښ نجس (پليت) نه وي.

ا. يعني بنده داسے پليت نه وي چه هغه چا سره کيناستلے نه شي د جنابت پليتي' عارضي پليتي ده. چه هغه په لامبلو (غسل) ختميږي.

باب۱۹۷ : اَلْجُنُبِ يَخْرُجُ وَ يَمْشِيْ فِي السُّوْقِ وَ غَيْرِهٖ وَ قَالَ عَطَآءٌ يَحْتَجِمُ الْجُنُبُ وَ يُقَلِّمُ اَظْفَارَهٗ وَ يَحْلِقُ رَاْسَهٗ وَ اِنْ لَّمْ يَتَوَضَّأْ.

باب۱۹۷ : د جنب د بهر وتلو او بازار وغيره کښ د تلو بيان. عطاء اووے' چه جنب ښکر لګولے شي او خپل نوکونه پريکولے شي' او خپل سر خريلے شي' اګر که هغهٔ اودس نهٔ وي کړے.

ف: جُنب: هغه څوک چه جنابت يا پليتي کښ وي. او غسل يا اودس پرے آورېدلے وي.

۲۷۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ قَالَ ثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوْفُ عَلٰى نِسَآئِهٖ فِي اللَّيْلَةِ الْوَاحِدَةِ فَلَهٗ يَوْمَئِذٍ تِسْعُ نِسْوَةٍ.

۲۷۷ : عبدالاعلي بن حماد. يزيد بن زريع. سعيد. قتادةٌ روايت کوي' چه انس بن مالکٌ دغے خلقو ته اووے' چه نبي صلي الله عليه وسلم به يوه شپه کښ خپلو ټولو بيبيانو له ورتللو. او دغه وخت د حضورٌ نهه بيبيانے وے.

۲۷۸ : حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى قَالَ ثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَقِيَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۲۷۸ : عياش. عبدالاعلي. حميد. بکر. ابورافع ابوهريرةٌ روايت کوي' چه زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره يو خائے شوم' نو حضورٌ خما لاس اُونيولو. زهٔ ورسره روان ووم' تردے چه حضورٌ (يو خائے) کيناست'

وَ أَنَا جُنُبٌ فَأَخَذَ بِيَدِي فَمَشَيْتُ مَعَهُ حَتَّى قَعَدَ فَانْسَلَلْتُ فَأَتَيْتُ الرَّحْلَ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ وَهُوَ قَاعِدٌ فَقَالَ أَيْنَ كُنْتَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ لَهُ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ.

نو زهٔ رُوغُلمے اوونلم. خپل مقام ته لاړم، غسل م اوکهٔ، بيا راغلم، حضورؐ ناست وو، نو وے فرمائيل. اے ابوهريرهؓ ته چرته تلے وے ما ورته عرض اوکهٔ، چه زهٔ ناپاک ووم، لامبلو دَ پاره تلے ووم، حضورؐ او فرمائيل، سبحان الله، مؤمن هيڅ حال کښې نه پليتيږي.

باب ١٩٨ : كَيْنُونَةِ الْجُنُبِ فِي الْبَيْتِ إِذَا تَوَضَّأَ قَبْلَ أَنْ يَغْتَسِلَ.

باب ١٩٨ : دَ جنب كور كښې دَ پاتے كيدو بيان، هر كله چه دَ غسل نه وړمبے اودس اوكړي.

٢٧٩ : حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ وَ شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ أَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْقُدُ وَهُوَ جُنُبٌ قَالَتْ نَعَمْ وَ يَتَوَضَّأُ.

٢٧٩ : ابونعيم. هشام او شيبان. يحيٰي. ابوسلمهؓ روايت كوي، ما دَ بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكهٔ چه نبي صلعم به دَ جنابت په حالت كښې اودهٔ كيدلو، هغے او فرمائيل او، صرف اودس به ئے كولو.

باب ١٩٩ : نَوْمِ الْجُنُبِ.

باب ١٩٩ : دَ جنب دَ اودهٔ كيدو بيان.

٢٨٠ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَ يَرْقُدُ أَحَدُنَا وَهُوَ جُنُبٌ قَالَ نَعَمْ إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْقُدْ وَهُوَ جُنُبٌ.

٢٨٠ : قتيبه بن سعيد. ليث. نافع. ابن عمرؓ نه روايت دے، چه عمر بن خطابؓ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكهٔ، آيا مونږ كښې څوک دَ جنابت په حالت كښې اُودهٔ كيدے شي، حضورؐ ورته او فرمائيل او. چه تاسو كښې څوک جنب شي، نو اودس دے اوكړي او اُودهٔ دے شي.

باب ٢٠٠ : الْجُنُبُ يَتَوَضَّأُ ثُمَّ يَنَامُ.

باب ٢٠٠ : دَ جنب بيان، چه اودس دِ اوكړي بيا دِ اوده شي.

٢٨١ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

٢٨١ : يحيٰي بن بكير. ليث. عبدالله بن ابوجعفر. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه. بي بي عائشهؓ روايت كوي، چه رسول الله صلعم به دَ جنابت په حالت كښې دَ اُودهٔ كيدو اراده كوله، نو خپل شرم گاه

اَرَادَ اَنْ يَّنَامَ وَهُوَ جُنُبٌ غَسَلَ فَرْجَهٗ وَ تَوَضَّأَ لِلصَّلٰوةِ.

به نے اوويـنـزلـو' او د مـونـځ پـه شـان اودس بـه نے اوكړلو.

۲۸۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اسْتَفْتٰى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيَنَامُ اَحَدُنَا وَهُوَ جُنُبٌ قَالَ نَعَمْ اِذَا تَوَضَّأَ.

۲۸۲ : موسى بن اسمٰعيل. جويريه. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ روايت كوي' چه حضرت عمرؓ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه فتوي طلب كړه' چه آيا مونږ كښې څوک ذ جنابت په حالت اُودهٔ كيدے شي' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' او' اودس دے اوكړي' اُودهٔ دے شي.

۲۸۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ قَالَ ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ تُصِيْبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ثُمَّ نَمْ.

۲۸۳ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک بن دينار. عبداللّٰه بن عمرؓ وائي' عمر بن خطابؓ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ته ذكر اوكهٔ' چه ذ شپے ماته جنابت كيږي' نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل چه اودس كوه' او خپل خاص اندام وينزه د دے نه پس اُودهٔ كيږه.

## باب ۲۰۱ : اِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ.

باب ۲۰۱ : د دے بيان چه كله (ذ سړي او ښځے) دواړه شرم گاهونه يو ځائے شي.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا مَعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ قَالَ ثَنَا هِشَامٌ ح وَ حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا جَلَسَ بَيْنَ شُعَبِهَا الْاَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ تَابَعَهٗ عَمْرٌو وَ عَنْ شُعْبَةَ وَ قَالَ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبَانُ

۲۸۴ : معاذ بن فضاله. هشام ح (دويم سند) ابونعيم. هشام. قتاده. حسن. ابورافع. حضرت ابوهريرهؓ ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي' حضورؐ او فرمائيل كله چه سړے ذ ښځې پۀ څلورو شعبو (حصو) مينځ كښې كيناست. بيائے هغے سره كوشش اوكهٔ' نو يقيناً غسل پرے واجب شولو' عمرو ذ شعبه نه ذ دے متابع حديث روايت كړيدے' او د موسي بيان دے' چه ماته ابان په واسطه د قتاده او حسن د دے په مثل روايت

قَالَ ثَنَا قَتَادَةُ قَالَ اَنَا الْحَسَنُ مِثْلَهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ هٰذَا اَجْوَدُ وَ اَوْكَدُ وَ اِنَّمَا بَيَّنَّا الْحَدِيْثَ الْاٰخَرَ لِاِخْتِلَافِهِمْ وَالْغُسْلُ اَحْوَطُ.

او كـه. او امـام بـخـاريؒ اووې، چـه دا زيات بهتـر او ضـروري دې. او مـونـږ دا بـل حديث صرف د هغوي ذ اختـلاف پـه سبـب بيـان كـړې دې، او غسل كښې زيات احتياط دې.

۱. په دې مسئله كښې د امامانو اختلاف دې كه ښځه خاوند يو بل سره كوروالې اوكړي. او د منۍ د وَتـلو نـه وړانـدې د يـو بـل نـه جُدا شي. نو په دې صورت كښې په دوي لامبل فرض دي او كه نه؟ د احنافو مـذهـب دا دي چـه د سـړي خـاص اندام د ښځې په خاص اندام (د شرم ځائې) كښې ورننوزي. نو صرف په ننـوتـلو پـه دواړو غُسـل (لامبـل) فرض دې كه مني وتلې وي (انزال شوې وي) يا نه، د دې حكم دليل، د صـحـابـؤ كـرامو اجماع (اتفاق) ده. امام طحاوي په شرح معاني الاثار كښې ډير تفصيل بيان كړيدې. چه د حـضـرت عـمر رضي اللّٰه عنه په مجلس كښې دا مسئله وړاندې شوه. صحابؤ رضي اللّٰه عنهم مختلف رائې بيـان كړې چا اويل. چه د مني د وَتلو (انزال) نه روستو غُسل (لامبل) فرض كيږي. ځكه چه حديث شريف دې اِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ بيشـكـه پـه اوبـو لامبـل د اوبـو (ذ منۍ) په وتلو دي (انزال باندې) چا اويل. چه دا حـديـث شـريف د احتـلام (د كـوروالـي خـوب ليدل) په حقله دې مسئله داده چه خالي په ننوتلو د حشفې غسـل (لامبـل) فـرض كـيږي پـه دې حـضـرت عمر رضي اللّٰه عنه او فرمائيل. چه تاسو "اهل بدر" د اُمت غوره خـلـق يئ چـه كـلـه ستاسو د دين په مسئلو كښې اختلاف وي نو څه به كيږي؟ حضرت علي كرم اللّٰه وجهه دا مشوره وركړه. چه خمونږ ميندو پاكو بيبيانو له څوك اوليږئ او د هغوي نه پوښتنه اوكړئ. ټولو ددې رائې مـنـنـه (تائيد) اوكړه يو بنده د عائشې بي بي رضي اللّٰه عنها په خدمت كښې حاضر شو. نو بي بي صاحبې او فرمايل "چه دواړه اندامونه (سنت شوي) يو بل سره يو ځائې شي نو غسل (لامبل) فرض شي" نو مور بي بيّ د دې تصديق اوكړه. چه د غسل فرض كيدو د پاره صرف د ذكر ننوتل كافي دي. د منۍ د وتلو (انـزال) ضـرورت نشـتـه پـه دې مسئله د حضرت عمر رضي اللّٰه عنه په مجلس كښې اكابرو (لويو) صحابؤ اتـفـاق اوشـو او ټـولـو د عـائشـې بـي بـي رضي اللّٰه عنها فيصله اومنله. او هيچا د دې فيصلې خلاف خبره اونـكـړه. حضـرت عمـر رضي اللّٰه عنه او فرمايل كه چا په دې مسئله كښې بيا اختلاف اوكړو نو عبرت ناكه سـزا بـه وركـړم. د دې نه معلومه شوه چه د امام ابوحنيفه رضي اللّٰه عنه مذهب په دې مسئله كښې ډير قوي دې.

## بَاب ۲۰۲ : غُسْلِ مَا يُصِيْبُ مِنْ فَرْجِ الْمَرْاَةِ.

**باب ۲۰۲ :** د هغې څيز د وينـزلو بيان، چه ذ ښځې د شرم ګاه نه اولږي.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ الْمُعَلِّمِ قَالَ يَحْيٰى وَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ زَيْدَ بْنَ

۲۸۵ : ابـو مـعـمـر. عـبـدالـوارث. حسيـن معلـم يـحـيـي. ابـو سـلـمـه. عـطـاء بن يسار، روايت كـوي چـه زيـد بـن خـالـد جهنـي ذ عثـمـان بـن عـفـانؓ نـه تپـوس اوكـه، چـه سـړې خپلې ښځې

عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَأَلَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَقَالَ أَرَأَيْتَ إِذَا جَامَعَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فَلَمْ يُمْنِ قَالَ عُثْمَانُ يَتَوَضَّأُ لِلصَّلٰوةِ وَ يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَ قَالَ عُثْمَانُ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ عَلِيَّ بْنَ أَبِيْ طَالِبٍ وَّ الزُّبَيْرَ بْنَ الْعَوَّامِ وَ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَأَمَرُوْهُ بِذٰلِكَ وَأَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا أَيُّوْبَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ ذٰلِكَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

سره جماع (كوروالے) اوكره. او انزال اونشي (خلاص نشي) نو د دے څه حكم دے. عثمانؓ ورته اووے څنگكه چه مانځه ډ پاره اودس كوي، دغسے اودس دے اوكړي. او خپل خاص اندام دے اووينزي. عثمانؓ او فرمائيل، ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلي دي. بيا ما د دے متعلق د علي بن ابي طالب، زبير بن عوام، طلحه بن عبيداللّٰه او ابي بن كعب نه تپوس اوكړ چه عروه بن زبير هغه ته او هغه ته ابو ايوب بيان اوكړ چه هغه داسے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلے دي.

۲۸۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبِيْ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ أَيُّوْبَ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِذَا جَامَعَ الْمَرْأَةَ فَلَمْ يُنْزِلْ قَالَ يَغْسِلُ مَا مَسَّ الْمَرْأَةَ مِنْهُ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وَ يُصَلِّيْ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْغُسْلُ أَحْوَطُ وَ ذٰلِكَ الْأٰخِرُ إِنَّمَا بَيَّنَّاهُ لِاخْتِلَافِهِمْ وَالْمَاءُ أَنْقٰى.

۲۸۶: مسدد. يحيٰي. هشام بن عروه. عروه. ابو ايوب. ابي بن كعبؓ روايت كوي، هغه عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، چه سړے خپلے ښځے سره كوروالے (صحبت) اوكړي او خلاص نشي، (نو څه به كوي) حضورؐ ورته او فرمائيل. ډ هغه كوم ځائے چه ښځے سره لگيدلے شوے دے، هغه دے اووينزي. بيا دے اودس اوكړي، او مونځ دے كوي ابو عبداللّٰه وائي چه غسل كښ زيات احتياط دے او مونږ دا آخري حديث صرف د خلقو ډ اختلاف په سبب بيان كړ (څمونږ په نزد) اوبه زيات پاكونكے څيز دے (يعني هر حال كښ غسل كول پكار دے. خواه خلاص شوے وي يا نۀ وي خلاص شوے)

ف: دا حديث په اتفاق ډ سلف منسوخ دے. كله چه ډ سړي او ښځے دواړه خايونه (شرم گاهونه) يو ځائے شي نو غسل بوے فرض شي، څنگكه چه ډ وړاندے ډكر شوو حديثونو نه معلوميږي.

## ٦. كِتَابُ الْحَيْضِ

## ٦. (دَ حيض: جامو كيدو بيان)

وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: وَ يَسْئَلُوْنَكَ

ډ حيض مسائل: ډ اللّٰه تعالي ارشاد: چه تانه خلق ډ

عَنِ الْمَحِيْضِ قُلْ هُوَ اَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَ يُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ.

حيض په حقله تپوس كوي' نو ورته اووايه' چه دا يو نجاست دے' نو ذ حيض حالت كښ ذ ښځو نه جُدا اوسئے' اومهٔ ورنزدے كيږئے' تردے چه هغوي پاكے شي' نو بيا هغسے ورتلهٔ كوئے' څنګه چه تاسو ته الله تعالىٰ حكم كړے دے. بيشكه الله تعالىٰ توبه كونكي او پاكان خوښوي.

## بَاب٢٠٣ : كَيْفَ كَانَ بَدْأُ الْحَيْضِ

وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا شَيْءٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ كَانَ اَوَّلُ مَا اُرْسِلَ الْحَيْضُ عَلٰى بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ حَدِيْثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرُ.

## باب٢٠٣ : ذ حيض راتلهٔ څنګه شروع شو' او

د نبي صلے الله عليه وسلم فرمائيل چه دا يو څيز دے' چه الله تعالىٰ ذ آدم د لونړو په قسمت كښ ليكلے دے. بعضے خلقو وئيلے دي' چه ذ ټولو نه ورمبے حيض په بني اسرائيلو راغلے وو. ابو عبدالله اووے' چه ذ نبي صلي الله عليه وسلم حديث كښ ټولے ښځے شاملے دي.

١. په حديث شريف كښ د بنات آدمؑ (د آدم عليه السلام د لونړو) د ذكر كولو نه دا معلومه شوه چه ذ بني اسرائيلو د زمانے نه وړاندے د ښځو د پيدا كيدو ذ وخت نه د ښځو حيض كيده. جامے به ئے راتلے داويل چه د بني اسرائيلو نه د حيض شروع شويده' مناسب خبره نه معلوميږي.

٢٨٧ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْقَاسِمِ قَالَ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَآئِشَةَ تَقُوْلُ خَرَجْنَا لَا نَرٰى اِلَّا الْحَجَّ فَلَمَّا كُنَّا بِسَرَفَ حِضْتُ فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا اَبْكِيْ فَقَالَ مَالَكِ اَنُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اِنَّ هٰذَا اَمْرٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ فَاقْضِيْ مَا يَقْضِي الْحَآجُّ غَيْرَ اَنْ لَا تَطُوْفِيْ بِالْبَيْتِ قَالَتْ

٢٨٧ : علي بن عبدالله. سفيان. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشهؓ روايت كوي' چه مونږ ټول خلق ذ مدينے نه صرف ذ حج په خيال اووتلو. چه سرف مقام ته اورسيدو' نو خما حيض شو. رسول الله صلي الله عليه وسلم ما پله تشريف راوړلو. ما ژړل' نو حضورؐ او فرمائيل' تهٔ څهٔ حال كښ ئے' آيا ستا حيض شو. ما اووے' او' نو حضورؐ او فرمائيل' دا يو داسے څيز دے چه الله تعالىٰ ذ آدمؑ ذ لونړو په قسمت كښ ليكلے دے. نو كوم افعال چه حج كونكي كوي' هغه تهٔ هم كوه' صرف ذ كعبے طواف مهٔ كوه. بي بي

وَضَحَّى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِسَآئِهٖ بِالْبَقَرِ.

عائشهٌ فرمائي او رسول اللّٰه صلعم ذ خپلو بيبيانو ذ طرف نه ذ غوا (گاۓ) قرباني کړې وه.

باب ۲۰۴: غَسْلِ الْحَآئِضِ رَأْسَ زَوْجِهَا وَ تَرْجِيْلِهٖ.

باب ۲۰۴: ذ حيض حالت کښې ذ ښځې ذ خپل خاوند سر، وينزل، او ذ هغې ذ ګومنز کولو بيان.

۲۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا حَآئِضٌ.

۲۸۸: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهٌ روايت کوي، چه ما به ذ حيض حالت کښې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سر مبارک ګومنز کولو.

۲۸۹: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّهٗ سُئِلَ اَتَخْدِمُنِي الْحَآئِضُ اَوْ تَدْنُوْا مِنِّي الْمَرْاَةُ وَ هِيَ جُنُبٌ فَقَالَ عُرْوَةُ كُلُّ ذٰلِكَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَ كُلُّ ذٰلِكَ تَخْدِمُنِيْ وَ لَيْسَ عَلٰى اَحَدٍ فِيْ ذٰلِكَ بَأْسٌ اَخْبَرَتْنِيْ عَآئِشَةُ اَنَّهَا كَانَتْ تُرَجِّلُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ حَآئِضٌ وَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَئِذٍ يُجَاوِرُ فِي الْمَسْجِدِ يُدْنِيْ لَهَا رَاْسَهٗ وَ هِيَ فِيْ حُجْرَتِهَا فَتُرَجِّلُهٗ وَ هِيَ حَآئِضٌ.

۲۸۹: ابراهيم بن موسي. هشام بن يوسف. ابن جريج. هشام بن عروه. عروه نه روايت دے، ذ هغۀ نه تپوس اوشو، چه حائضه ښځه خما خدمت کولے شي يا ښځه د جنابت په حالت کښې ماته نزدې کيدے شي؟ نو عروه اووے، دا ټولے خبرے خما په نزد آسانے دي او دا ټولے ښځے خما خدمت کوي، او دے کښې (يوازې خما د پاره تخصيص نشته بلکه) هيچا ذ پاره حرج نشته. ماته بي بي عائشےٌ فرمائيلي دي، چه هغې به ذ حيض په حالت کښې ذ نبي صلعم سر مبارک ګومنز کولو او نبي صلعم به هغه وخت جمات کښې معتکف وو. حضورؐ به خپل سر مبارک بي بي عائشےٌ ته نزدې کړلو، او بي بي عائشهٌ به خپلې حجرې (يعني کوټې) کښې وه، هغې به په حالت د حيض کښې حضورؐ له ګومنز کوله.

باب ۲۰۵: قِرَآءَةِ الرَّجُلِ فِيْ حَجْرِ امْرَاَتِهٖ وَ هِيَ حَآئِضٌ وَّ كَانَ اَبُوْ

باب ۲۰۵: د سړي ذ خپلې ښځې غيږې کښې د حيض حالت کښې سر ايښودل او د قران د تلاوت

وَآئِلُ يُرْسِلُ خَادِمَهُ وَ هِيَ حَآئِضٌ اِلَى اَبِيْ رَزِيْنٍ فَتَأْتِيْهِ بِالْمُصْحَفِ فَتُمْسِكُهُ بِعِلَاقَتِهِ.

کولو بیان الخ. ابو وائل به خپله خادمه ذَ حیض په حالت کښې ابو رزین له لیږله، نو هغې به هغهٔ ذ پاره قرآن مجید ذ هغې (ذ بستې) ذ فیتې نه نیولې راوړلو.

۲۹۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ سَمِعَ زُهَيْرًا عَنْ مَّنْصُوْرِ بْنِ صَفِيَّةَ اَنَّ اُمَّهُ حَدَّثَتْهُ اَنَّ عَآئِشَةَ حَدَّثَتْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَّكِئُ فِيْ حَجْرِيْ وَ اَنَا حَآئِضٌ ثُمَّ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ.

۲۹۰: ابونعیم. الفضل بن دکین. زهیر. منصور بن صفیه. صفیه. بي بي عائشهٔ روایت کوي چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم به خما په غیږ کښې تکیه لګوله، حالانکه خما به حیض وو. بیا به حضورٌ ذ قرآن مجید تلاوت کولو.

باب ۲۰٦: مَنْ سَمَّى النِّفَاسَ حَيْضًا.

باب ۲۰٦: حیض ته ذ نفاس وئیلو بیان.

۲۹۱: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَّحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ اُمِّ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهَا قَالَتْ بَيْنَا اَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَجِعَةٌ فِيْ خَمِيْصَةٍ اِذْ حِضْتُ فَانْسَلَلْتُ فَاَخَذْتُ ثِيَابَ حَيْضَتِيْ فَقَالَ اَنُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ فَدَعَانِيْ فَاضْطَجَعْتُ مَعَهُ فِي الْخَمِيْلَةِ.

۲۹۱: مکي بن ابراهيم. هشام. يحيى بن ابي كثير. ابوسلمه. زينب بنت ام سلمة. اُم سلمهٔ روایت کوي. دې مینځ کښې چه زهٔ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره يو څادر کښې ملاسته وم، ناساپه ماته حیض راغې. او ما د حیض کپړې واغستې. حضورٌ او فرمائیل، چه تاته نفاس راغې څه؟ ما ورته اووې، او. نو حضورٌ زهٔ راوغوښتلم، او زهٔ ورسره (هغې يو) څادر کښې سملاستم.

۱. څرنګ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم حيض ته د نفاس لفظ اُوې نو داسې نفاس ته حيض هم ويلې شي. په نوم بدلولو کښې ګناه نشته امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د لغت (عربي ژبې) فرق نه بيانوي بلکې د دې سرليک (عنوان) نه د هغه مقصد دا دې چه په اصل کښې د نفاس وينه د حيض وينه ده د حاملې (بلاربې) ښځې حيض نه کيږي. او چه کله ماشوم پيدا شي نو د رحم (د ښځې لرمون) خوله وازه شي او جمعه شوې وينه په زياته اندازه کښې بهر رااوزي. خکه چه ذ حمل (کيډه کيدلو) په وجه د رَحم خوله بنده وي وازه نه وي نو وينه بند وي. وينه د ماشوم خوراک وي او کومه وينه چه باقي پاتې شي نو هغه د ماشوم د

زيږيګيدلو نه پس بهر راواوزي. امام بخاري رحمة الله عليه دا وائي. چه نفاس هم په اصل کښې حيض دے.

باب ٢٠٧ : مُبَاشَرَةِ الْحَائِضِ.

باب ٢٠٧ : حائضے ښځے سره ذ اختلاط (ګډون) کولو بيان.

٢٩٢ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ كِلَانَا جُنُبٌ وَّ كَانَ يَأْمُرُنِيْ فَاَتَّزِرُ فَيُبَاشِرُنِيْ وَ اَنَا حَائِضٌ وَّ كَانَ يُخْرِجُ رَأْسَهُ اِلَيَّ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَاَغْسِلُهُ وَ اَنَا حَائِضٌ.

٢٩٢ : قبيصه. سفيان. منصور. ابراهيم. اسود. بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه ما او نبي صلعم به ذ يو لوښي نه غسل کولو. اومونږ دواړه به جُنُب وو. او ذ حيض حالت کښې به حضورؐ ماته حکم راکولو، نو ما به پرتوګ واغستلو. بيابه حضورؐ ما سره ګډون کولو. او (داسے به هم کيده چه) حضورؐ به ذ اعتکاف حالت کښې خپل سر مبارک را بهر کړلو، چه ما به وينزلو، حالانکه زۀ به ذ حيض حالت کښې ووم.

١. دا (مباشرت) د ښځے سره د کوروالي د خائے نه، جدا خائے کښې وي د دے وجے نه رسول الله صلي الله عليه وسلم، حضرت عائشه بي بي رضي الله عنها د لَنګ تړلو حکم ورکړه. عائشه بي بي رضي الله عنها په دے حديث شريف کښې جدا جدا واقعے او مختلف حالات بيان کړيدي د دے حديث شريف په مطلب پوهيدلو د پاره دا ضروري دي چه د جنابت نه د غسل واقعه بيله ده. بغير د کوروالي هسے د يو خائے ملاستے واقعه بيله ده. او د اعتکاف په حالت کښې د سر مبارک وينځلو واقعه جُدا ده. داسے واقعات څو خله راغلي دي. څرنګ چه ذ حديث مبارک ذ الفاظو نه ظاهريږي. ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم د دے عمل نه مقصد، د اُمت تعليم وو څکه چه په عمل کولو د مسئلے اهميت او حيثيت زيات واضح کيږي. ذ حيض په حالت کښې د لنګ تړل دا ښکاره کوي. چه د مخصوص اندام نه علاوه سره يو خائے کيدل مقصد وو. که چرے مقصد شهوت پوره کول وو نو د عائشے بي بي رضي الله عنها نه علاوه نورے بيبيانے خمونږ ميندے موجود وے. د نبي عليه السلام پاکو بيبيانو ذ نبي عليه السلام مقصد ښه پيژندلو. د دے د پاره هغوي ذ نبي عليه السلام ذاتي معامله خلقوته بيان کړه.

٢٩٣ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ هُوَ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَسْوَدِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَتْ اِحْدَانَا اِذَا كَانَتْ حَائِضًا فَاَرَادَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

٢٩٣ : اسمٰعيل بن خليل له علي بن مسهر له ابو اسحاق شيباني له عبدالرحمٰن بن اسود، له اسود له بي بي عائشےؓ نه روايت کوي (چه بي بي عائشهؓ فرمائي) مونږ کښې چه به يوے بي بي ته حيض راغے، او رسول الله صلي الله عليه وسلم به هغے سره ګډون غوښتلو،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّبَاشِرَهَا اَمَرَهَا اَنْ تَتَّزِرَ فِيْ فَوْرِ حَيْضَتِهَا ثُمَّ يُبَاشِرُهَا قَالَتْ اَيُّكُمْ يَمْلِكُ اِرْبَهُ كَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْلِكُ اِرْبَهُ تَابَعَهُ خَالِدٌ وَّ جَرِيْرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ.

نو هغې ته به نبي حکم ورکولو چه د حیض (ډ غلبې) حالت کښې واغندي. دے نه پس به حضورؐ هغې سره ګډون کولو. بي بي عائشهؓ او فرمائيل چه تاسو کښې هیڅوک خپل خواهش باندے دومره قابو نه لري. څومره چه نبي عليه السلام په خواهش قابو لرلو.

## بَابُ ٢٠٨ : تَرْكِ حَائِضِ الصَّوْمَ.

## باب ٢٠٨ : د حیض د ښځې د روژے پریښودلو بیان.

٢٩٥ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ ثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدٌ هُوَ ابْنُ اَسْلَمَ عَنْ عَيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَضْحٰى اَوْ فِطْرٍ اِلَى الْمُصَلّٰى فَمَرَّ عَلَى النِّسَآءِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ النِّسَآءِ تَصَدَّقْنَ فَاِنِّيْ اُرِيْتُكُنَّ اَكْثَرَ اَهْلِ النَّارِ فَقُلْنَ وَبِمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ وَ تَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ مَا رَاَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَّ دِيْنٍ اَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الْحَازِمِ مِنْ اِحْدَاكُنَّ قُلْنَ وَمَا نُقْصَانُ دِيْنِنَا وَ عَقْلِنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَلَيْسَ شَهَادَةُ الْمَرْاَةِ مِثْلَ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ قُلْنَ بَلٰى قَالَ فَذٰلِكَ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا اَلَيْسَ اِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ قُلْنَ بَلٰى قَالَ

٢٩٥ : سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. زيد بن اسلم. عياض بن عبدالله. ابوسعيد خدريؓ روايت کوي چه (يو ځلے) رسول الله صلي الله عليه وسلم لوئي اختر يا وړوکي اختر کښې اُووتلو. (واپسي کښې) د ښځو په یوه ډله تیریدلو، نو حضورؐ او فرمائيل، اے زنانه ؤ. صدقه ورکړئ، ځکه چه ما تاسو په دوزخ کښې زياتے ليدلے يئ، هغوي اووے، يا رسول الله، دا ولے، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، چه تاسو کثرت سره لعنت کوئے، او د خاوند ناشکري کوئے، او ستاسو نه سوا ما بل هيڅوک نهٔ دي ليدلے، چه هغه دے د يو پوخ عقل لرونکي سړي په عقل باندے غالب راشي. زنانه ؤ ورته اووے يا رسول الله، خمونږ دين کښې او خمونږ عقل کښې څهٔ نقصان دے؟ حضورؐ ورته او فرمائيل، آيا د ښځے شهادت (شرعا) د سړي د نيم شهادت برابر نهٔ دے. هغوي اووے، او (هم دغسے ده) نو حضورؐ ورته او فرمائيل، هم دغه د هغې د عقل نقصان دے. آيا داسے نهٔ ده، چه کله د ښځے حيض شي نو نهٔ مونځ کولے شي او نهٔ روژه نيولے شي؟ هغوي اووے او. (دغسے ده) نو حضورؐ او فرمائيل

فَذٰلِكَ مِنْ نُقْصَانِ دِيْنِهَا.

بس دغه د دے د دین نقصان دے.

باب ۲۰۹: تَقْضِي الْحَائِضُ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا اِلَّا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ لَا بَأْسَ اَنْ تَقْرَأَ الْاٰيَةَ وَلَمْ يَرَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِالْقِرَآءَةِ لِلْجُنُبِ بَأْسًا وَّ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ اَحْيَانِهٖ وَ قَالَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ كُنَّا نُؤْمَرُ اَنْ نُّخْرِجَ الْحُيَّضَ فَيُكَبِّرْنَ بِتَكْبِيْرِهِمْ وَ يَدْعُوْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سُفْيٰنَ اَنَّ هِرَقْلَ دَعَا بِكِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَهٗ فَاِذَا فِيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا اِلٰى قَوْلِهٖ مُسْلِمُوْنَ وَ قَالَ عَطَآءٌ عَنْ جَابِرٍ حَاضَتْ عَآئِشَةُ فَنَسَكَتِ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ الطَّوَافِ بِالْبَيْتِ وَلَا تُصَلِّيْ وَ قَالَ الْحَكَمُ اِنِّيْ لَاَذْبَحُ وَ اَنَا جُنُبٌ وَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَلَا تَاْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ.

باب ۲۰۹: د حیض ښځه د کعبے د طواف نه علاوه (باقي) د حج ټول مناسک (د حج طریقے. ارکان) ادا کولے شي. ابراهیم ونیلے دي چه حائضے ښځے ته د قرآن مجید (یو) آیت تلاوت کولو کښې هیڅ حرج نشته. او ابن عباسؓ د جُنُب د پاره تلاوت کولو کښې هیڅ حرج نه دے ګنړلے. او نبي صلي الله علیه وسلم به خپلو ټولو اوقاتو کښې الله یادولو. اُم عطیهؓ وائي مونږ ته به (د اختر په ورځ) حکم راکولے شو چه مونږ حائضه ښځے بهرته راوکاږو چه هغوي هم سرو سره تکبیر وائي او دُعا اوکړي. ابن عباسؓ فرمائي چه ماته ابو سفیان اُوے چه هرقل د نبي صلي الله علیه وسلم خط مبارک راؤغوښتو په هغے کښے ئے لیکلي وو بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط يَا اَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ اِلٰى قَوْلِهٖ مُسْلِمُوْنَ پورے. او عطاء د جابر نه نقل کړے دے چه د بي بي عائشےؓ حیض شو، نو د کعبے د طواف نه علاوه نور ټول مناسک (ارکان) ئے ادا کړل. طواف به ئے د بیت الله نه کولو مونځ به ئے هم نۀ کولو. او حکم ونیلے دي چه زۀ (په حالت د) جنابت کښې ذبح کوم او الله پاک فرمائیلے دي، هغه څیز مۀ خورئے چه (د ذبح په وخت) د الله نوم پرے نۀ وي اخستے شوے (نو بسم الله پرے ضرور وایم).

(۱) امام بخاري رحمة الله علیه د جُنب د پاره (چه جنابت کښې وي) د قرآن شریف لوستل جائز کړیدي او ثبوت کښې ددلائلو په طور د امام ابراهیم الخفي او عبدالله بن عباس رضي الله عنهم اقوال نقل کړیدي. لیکن هغه د نبي علیه السلام احادیث زیات اهم دي چه په هغ کښې په وضاحت سره د جُنب د پاره د قرآن شریف لوستل منعه دي. او د دغے صحیح احادیثو په رنړا کښې د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه مسلک دا دے چه جنب له قرآن لوستل روا نه دي. بغیر د اودس نه قرآن مجید ته لاس وراوړل منعه دي په

- د حاجي په څېر اعمال کوه حاجي ځو تړاوت کوي دا استدلال په بالعموم سوا دی -
علم کلم د استدلال بالعموم تحت بدعت علم پيدا کيږي -



قرآن سره دا حكم ثابت دې او د فقهې اكثر امامان ورباندې متفق دي. د نورو دلائلو نه علاوه دې آيت شريف كښې دا اشاره هم شته چه بغير د پاكوالي نه قرآن مجيد سره مشغوليدل مناسب نه دي. داسې دې حديث شريف كښې دا هم نشته چه نبي عليه السلام په هر وخت كښې د الله تعالي ذكر كولو او دا مطلب ترې اخستل مناسب نه دې چه نبي عليه السلام به جنابت كښې او د قضائے حاجت په وخت د الله تعالي ذكر كوو. نبي عليه السلام بغير اودس نه د سلام جواب وركول هم برداشت كړې نه وو. د دې وجې نه د دې حديث مطلب چه نبي عليه السلام به هر وخت د الله تعالي ذكر كولو. دا دې چه د خپل معمول په اوقاتو كښې به ئې د الله تعالي ذكر كولو. بياهم د امت د اكابرو علماؤ په دې مسئله كښې اختلاف دې او د دې اختلاف مقصد د اسلام فراخي ده د دې اختلاف په حقله نبي عليه السلام خوشالي ښكاره كړې وه چه خما د امت اختلاف رحمت دې.

۲. د دې روايت نه دا كله ثابتيږي چه دغې ښځو به قرآن شريف لوستلو. يا نبي عليه السلام هغوي ته د قرآن لوستلو د حيض په حالت كښې حكم وركړې وو باقي د هرقل واقعه چه كافر وو د قرآن آيت ئې لوستلې وو نو دا د امام بخاري رحمة الله عليه دليل نه جوړيږي ځكه چه هرقل كافر وو او كافر په شرعي احكامو مكلف نه دې دې سلسله كښې پخپله نبي عليه السلام څه فرمايلي هم نه دي.

۲۹۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَذْكُرُ اِلَّا الْحَجَّ فَلَمَّا جِئْنَا سَرِفَ طَمِثْتُ فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا اَبْكِيْ فَقَالَ مَا يُبْكِيْكِ قُلْتُ لَوَدِدْتُ وَاللّٰهِ اَنِّيْ لَمْ اَحُجَّ الْعَامَ قَالَ لَعَلَّكِ نُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاِنَّ ذٰلِكِ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ فَافْعَلِيْ مَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ غَيْرَ اَنْ لَا تَطُوْفِيْ بِالْبَيْتِ حَتّٰى تَطْهُرِيْ.

۲۹۶ : ابونعيم. عبدالعزيز بن ابي سلمه. عبدالرحمن بن قاسم. بي بي عائشهٔ روايت كوي چه مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره (يو ځائې) اووتلو. خمونږ صرف د حج اراده وه چه سرف (مقام) ته اورسيدو نو په ما حيض راغې ما ژړل نو حضور او فرمائيل ولې ژاړې ما عرض اوكړ خما به دا خوښه وې چه سږكال ما د حج هډو اراده نه وې كړې. حضور ورته او فرمائيل شايد ستا نفاس شوې دې. ما عرض اوكړ او نو حضور ورته او فرمائيل دا خو يو داسې څيز دې چه الله تعالي د آدم د ټولو لونړو په نصيبه كړې دې (په دې ژړا څه پكار ده) كوم كارونه چه حج كونكې كوي ته ئې هم كوه صرف د كعبې طواف مه كوه خو پورې چه پاكه نه شې.

## بَاب ۲۱۰ : اَلْاِسْتِحَاضَةِ.

باب ۲۱۰ : د استحاضه (چه د مرض وينه ئې جاري وي) بيان.

۱. استحاضه داسې وینې ته واني چه په میاشت کښې د حیض کومه وینه رازي د هغې نه علاوه وي. دا د

وینه د ناجوړتیا په وجه رازي ځکه ئې احکام د حیض نه مختلف دي.

۲۹۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ قَالَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ اَبِي حُبَيْشٍ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنِّي لَا اَطْهُرُ اَفَاَدَعُ الصَّلٰوةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا ذٰلِكَ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِالْحَيْضَةِ فَاِذَا اَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلٰوةَ فَاِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ فَصَلِّي.

۲۹۷ : عبدالله بن یوسف له مالک له هشام له عروه له بي بي عائشې نه روایت کوي چه فاطمې بنت ابي حبیش رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض او کړ، یا رسول الله، زه پاکیږم نه (حیض م برابر جاري وي) نو آیا زه مونځ پریږدم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل. دا خو صرف یو رګ دې، (د رګ وینه ده) او حیض نه دې، چه د حیض زمانه راشي، نو مونځ پریږده، او کله چه د حیض د ورځو آندازه تیره شي، نو د خپل جسم نه وینه اووینزه، او مونځ کوه.

## باب ۲۱۱ : غُسْلِ دَمِ الْحَيْضِ.

## باب ۲۱۱ : د حیض د وینې د وینځلو بیان.

۲۹۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِي بَكْرِ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهَا قَالَتْ سَاَلَتِ امْرَاَةٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ اِحْدَانَا اِذَا اَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَصَابَ ثَوْبَ اِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ

۲۹۸ : عبدالله بن یوسف له مالک له هشام بن عروه له فاطمه بنت منذر، له بي بي اسماء بنت ابي بکر صدیق نه روایت کوي، چه یوې ښځې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس او کړ، یا رسول الله، مونږ کښې چه د چا کپړې ته د حیض وینه اولږي، نو هغې له څه کول پکار دي. رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل. د چا کپړې ته چه دحیض وینه اولږي. نو هغه دې اومږي بیا دې اووینځي

الْحَيْضَةِ فَلْتَقْرُصْهُ ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ ثُمَّ لِتُصَلِّ فِيهِ. | او هغه (كپړے) سره دې مونځ كوي

۲۹۹: حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَتْ إِحْدَانَا تَحِيضُ ثُمَّ تَقْتَرِصُ الدَّمَ مِنْ ثَوْبِهَا عِنْدَ طُهْرِهَا فَتَغْسِلُهُ وَ تَنْضَحُ عَلٰى سَائِرِهٖ ثُمَّ تُصَلِّيْ فِيهِ.

۲۹۹: اصبغ بن وهب. عمرو بن حارث. عبدالرحمن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشه روايت كوي چه مونږ كښې به د چا حيض شولو نو د پاكيدو نه پس به نې د خپلے كپړے نه وينه لرے كړه او هغه به نې اووينځله او په باقي كپړے به نې اوبه تونے كړے. بيا به نې هغې كښې مونځ كولو.

## بَابٌ ۲۱۲: اَلْاِعْتِكَافُ الْمُسْتَحَاضَةِ.

## باب ۲۱۲: د استحاضے (بنځے) د اعتكاف بيان.

۳۰۰: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ شَاهِيْنَ أَبُوْ بِشْرٍ الْوَاسِطِيُّ قَالَ أَخْبَرَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِعْتَكَفَ مَعَهُ بَعْضُ نِسَائِهٖ وَ هِيَ مُسْتَحَاضَةٌ تَرَى الدَّمَ فَرُبَّمَا وَضَعَتِ الطَّسْتَ تَحْتَهَا مِنَ الدَّمِ وَ زَعَمَ أَنَّ عَائِشَةَ رَأَتْ مَاءَ الْعُصْفُرِ فَقَالَتْ كَأَنَّ هٰذَا شَيْءٌ كَانَتْ فُلَانَةُ تَجِدُهُ.

۳۰۰: اسحاق بن شاهين ابوالبشر واسطي. خالد بن عبدالله. خالد. عكرمه. بي بي عائشه روايت كوي چه نبي صلي الله عليه وسلم د حضور يوے بي بي هم اعتكاف او كړ حالانكه هغه مستحاضه وه. يعني وينه راوتل نے ليدله. اكثر به نې د خان لاندے د وينے د پاره ډيروالي په سبب) كنډولے اېښودلو عكرمه وائي. بي بي عائشے (يو خل) د كسم (د جامو رنګولو د سور رنګه) اوبه اوليدے. نو ورے ونيل چه دا رنګ بالكل داسے دے لكه فلانئے صاحبے چه به (د حيض په حالت كښې) ليده.

ف: اعتكاف: په جماعت كښې په مقرره طريقے ګوشه نشين كيدل. خپل نفس د دنياوي مزو او خواهشاتو نه منع كول په كټ كښې كيناستل.

۱ د نبي عليه السلام د حكم نه بغير بعضے بيبيانو خمونږ ميندو په مسجد نبوي كښې اعتكاف كړے وو نبي عليه السلام په دے خبر شاله نه وو خپل خفګان ے ښكاره كړے وو ليكن په ظاهر الفاظونے معه كړے نه وے د ښځو د پاره د اعتكاف خانے كور دے او په خمات كښې ښځو له اعتكاف كول مكروه

تنزيهي دي (فيض الباري ج ۱ ص ۳۹۱)

۳۰۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اعْتَكَفَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ مِّنْ أَزْوَاجِهِ فَكَانَتْ تَرَى الدَّمَ وَالصُّفْرَةَ وَالطَّسْتُ تَحْتَهَا وَ هِيَ تُصَلِّيْ.

۳۰۱: قتيبه. يزيد بن زريع. خالد. عكرمه. بي بي عائشهٔ روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د حضورٌ د بيبيانو نه يوې بي بي (باوجود، د مستحاضه كيدو) اعتكاف اوكړ، او هغې به وينه او زردي راوتل (خارجيدنه) ليدله. او د مونځ حالت كښې به ترې لاندې كنډولې (د وينې تلو د پاره) پروت وو.

۳۰۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ ثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ بَعْضَ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ اعْتَكَفَتْ وَ هِيَ مُسْتَحَاضَةٌ.

۳۰۲: مسدد. معتمر. خالد. عكرمه. بي بي عائشهٔ روايت كوي، چه اُم المؤمنين كښې يوې تنې د مستحاضه كيدو په حالت كښې اعتكاف اوكړ.

## باب ۲۱۳: هَلْ تُصَلِّي الْمَرْاَةُ فِيْ ثَوْبٍ حَاضَتْ فِيْهِ.

باب ۲۱۳: آيا ښځه هغه كپړه كښې مونځ كولې شي، چه هغې كښې پرې حيض راغلې وي.

۳۰۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ مَا كَانَ لِاِحْدَانَا اِلَّا ثَوْبٌ وَّاحِدٌ تَحِيْضُ فِيْهِ فَاِذَا اَصَابَهُ شَيْءٌ مِّنْ دَمٍ قَالَتْ بِرِيْقِهَا فَمَصَعَتْهُ بِظُفْرِهَا.

۳۰۳: ابونعيم. ابراهيم بن نافع. ابن ابي نجيح. مجاهد. بي بي عائشهٔ روايت كوي، چه مونږ كښې به چا سره د يوې كپړې نه زياته نه وه. هغې كښې به پرې حيض راتهٔ. بيا چه هغه به د وينو شوه، نو په هغې به ئې او توكل او په خپل نوك به ئې هغه او مږله.

**ف:** دا حكم د ضرورت په وخت دې. عربو كښې د اوبو كمې وو. په دې وجه د شريعت د طرفه د حديث ذكر شوې طريقه جائز اوګرځولې شوه. ليكن كوم خائې چه اوبهٔ پيدا كيږي، نو داسې صورت كښې د بلې پليتئې په شان د دې وينې ل هم ضروري دي.

۱. د امام بخاري رحمة الله عليه دا مقصد دې چه كله حديث شريف كښې ذكر دې چه مونږ سره به يوه كپړه وه (يوه جامه وه) چه په هغې كښې مونږ ته حيض راتللو. نو ظاهره ده چه مونځ به ئې په هغه جامه كښې كولو. ليكن وړاندې يو حديث شريف تير شويدې چه د نبي عليه السلام پاكو بيبيانو سره د حيض جامې جدا وې او په عام وختونو كښې داغوستلو جامې به جُدا وې. او په هغې حديث كښې دا په صراحت سره ذكر دې. دې حديث شريف كښې د هغې مخكښې ذكر شوي حديث شريف مخالفت په صراحت سره نشته بلكې د امام بخاري رحمة الله عليه د سرليک خلاف عام محدثينو دا حديث شريف به ثبوت كښې

پیش کریدے چه پاکو بیبیانو سره نورے جامے داغوستلو هم موجودے وے.

٢. د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها نه په نورو روایتونو کښ د حدیث شریف په الفاظو کښ داسے روایت راغلے دے چه مونږ به د وینے یو ځاځکے اولیدو نو په هغے به مو او تو کل تو کانړو سره به مو اومږلو. د دے نه دا معلومه شوه چه د وینے د صفا کولو دا طریقه هغه وخت وه چه وینه به ډیره لږه وه. او په تو کانړو صفا کیدے شوه. ورنه به عام طور باندے په اوبو سره د حیض د وینے پاکول نقل شویدي په عربو کښ چه اوبه کمے وے نو وینه چه کله ډیره لږه وه په تو کانړو د هغے صفاکول پاکول عیب گڼړلے نه شو. په دے حدیث شریف کښ د احنافو د مسلک پدے مسئله کښ تائید شویدے. چه په تو کانړو هم پاکوالے حاصلیږي. بعضے امامان د دے خلاف دي.

**باب ٢١٤: الطِّيْبِ لِلْمَرْأَةِ عِنْدَ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيْضِ.**

**باب ٢١٤:** د ښځے د خپل حیض د غسل په وخت د خوشبو لږولو بیان.

٣٠٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ كُنَّا نُنْهٰى اَنْ نُحِدَّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلٰثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا وَّلَا نَكْتَحِلُ وَلَا نَتَطَيَّبُ وَلَا نَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا اِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَّ قَدْ رُخِّصَ لَنَا عِنْدَ الطُّهْرِ اِذَا اغْتَسَلَتْ اِحْدَانَا فِي مَحِيْضِهَا فِيْ نُبْذَةٍ مِنْ كُسْتِ اَظْفَارٍ وَّ كُنَّا نُنْهٰى عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٣٠٤: عبدالله بن عبدالوهاب. حماد بن زید. ایوب. حفصه. اُم عطیهٔ روایت کوي چه (د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ) مونږ ته په یو مړي (میت) د درے ورځو نه زیات د ماتم کولو منعه والے وو. خو په خاوند د څلورو میاشتو اولس ورځو د ماتم کولو حکم وو. او داسے حالت کښ به مونږ نه رانجه اچول، نه به مو خوشبوي لږوله. او نهٔ به مو د عصب (یو قسم کپړه) نه علاوه رنګینه کپړه اغوسته. او کله چه به مونږ کښ څوک د حیض نه پاکه شوه، نو هغے ته به د کُست اظفار (خوشبوني) اجازت وو. او مونږه ته جنازو سره د تګ هم منعه شوے وو.

**باب ٢١٥: دَلْكِ الْمَرْاَةِ نَفْسَهَا اِذَا تَطَهَّرَتْ مِنَ الْمَحِيْضِ وَ كَيْفَ تَغْتَسِلُ وَ تَاْخُذُ فِرْصَةً مُمَسَّكَةً فَتَتَّبِعُ بِهَا اَثَرَ الدَّمِ.**

**باب ٢١٥:** ښځه چه د حیض نه پاکه شي، نو غسل کښ بدن ښکه اومږي. او هغه ښکه غسل او کړي. او ښکه مشک لږیدلے کپړه د وینے (وتلو) ځانے سره اومږي.

۳۰۵: حدثنا یحیی قال ثنا ابن عیینة عن منصور بن صفیة عن أمه عن عائشة ان امرأة سالت النبی صلی الله علیه وسلم عن غسلها من المحیض فامرها کیف تغتسل قال خذی فرصة من مسك فتطهری بها قالت کیف اتطهر بها قال تطهری بها قالت کیف قال سبحان الله تطهری فاجتذبتها الیّ فقلت تتبعی بها اثر الدم.

۳۰۵: یحیی. ابن عیینه. منصور بن صفیه. صفیه بی بی عائشه روایت کوی چه یوے ښځے د نبی صلعم نه د حیض د غسل متعلق تپوس او که نو حضور هغے ته حکم ورکه داسے غسل دے کوه چه د کپړے یوه ټکره واخله مشک پرے اولړوه او هغے سره پاکی کوه هغے عرض اوکه چه هغے سره څنګه پاکی اوکړم. حضور اوفرمائیل سبحان الله. پاکی اوکه. نو ما هغه ښځه خان طرف ته راښکله او ورته م اووے چه دا د وینے په ځائے راکاږه. د وینے اثر باندے اولړوه.

## باب ۲۱۶: غسل المحیض.

## باب ۲۱۶: د حیض د غسل بیان.

۳۰۶: حدثنا مسلم قال حدثنا وهیب قال حدثنا منصور عن أمه عن عائشة ان امرأة من الانصار قالت للنبی صلی الله علیه وسلم کیف اغتسل من المحیض قال خذی فرصة ممسکة و توضئی ثلاثا ثم ان النبی صلی الله علیه وسلم استحیی فاعرض بوجهه او قال توضئی به فاخذتها فجذبتها فاخبرتها بما یرید النبی صلی الله علیه وسلم.

۳۰۶: مسلم. وهیب. منصور. صفیه. بی بی عائشه روایت کوی چه یوے انصاری ښځے نبی صلی الله علیه وسلم ته اووے چه زه د حیض غسل څنګه اوکړم. حضور ورته او فرمائیل چه د کپړے یوه ټکړه واخله مشک پرے اولړوه او درے ځله اودس اوکړه. بیا نبی صلی الله علیه وسلم له (د صفا صفا وئیلو نه) شرم ورغے. او خپل مخ ئے واړولو او وے فرمائیل چه دے سره صفائی اوکه. نو ما هغه خان طرف ته راښکله او د نبی صلی الله علیه وسلم د مقصود نه م آګاه کړله.

## باب ۲۱۷: امتشاط المرأة عند غسلها من المحیض.

## باب ۲۱۷: د ښځے د خپل حیض د غسل په وخت د ګومنځ کولو بیان.

۳۰۷: حدثنا موسی ابن اسمعیل قال ثنا ابراهیم قال ثنا ابن

۳۰۷: موسی بن اسمعیل. ابراهیم. ابن شهاب. عروه. بی بی عائشه روایت کوی چه ما رسول الله صلی

شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ اَهْلَلْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَكُنْتُ مِمَّنْ تَمَتَّعَ وَلَمْ يَسُقِ الْهَدْيَ فَزَعَمَتْ اَنَّهَا حَاضَتْ وَلَمْ تَطْهُرْ حَتّٰى دَخَلَتْ لَيْلَةُ عَرَفَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذِهٖ لَيْلَةُ يَوْمِ عَرَفَةَ وَ اِنَّمَا كُنْتُ تَمَتَّعْتُ بِعُمْرَةٍ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْقُضِيْ رَأْسَكِ وَامْتَشِطِيْ وَ اَمْسِكِيْ عَنْ عُمْرَتِكِ فَفَعَلْتُ فَلَمَّا قَضَيْتُ الْحَجَّ اَمَرَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ لَيْلَةَ الْحَصْبَةِ فَاَعْمَرَنِيْ مِنَ التَّنْعِيْمِ مَكَانَ عُمْرَةَ الَّتِيْ نَسَكْتُ.

اللّٰه عليه وسلم سره حجة الوداع كښې احرام اوتړلو. اوزه هغې خلقو كښې ووم، چه هغوي تمتع كړے وه، او د قرباني څاروے م خان سره نه وو بوتلے. بيا هغې د خان په حقله اووے، چه حائضه شوه، او د عرفې د شپې پورے پاكه نه شوه، بيا هغې عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، دا د عرفې د ورځ شپه ده او ما عمرے سره تمتع كړے ده، نو رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم هغې ته او فرمائيل، چه ته خپل سر پرانزه، گومنز اوكړه، او عمره مه كوه (حج اوكه) نو ما دغسې اوكړل. كوم وخت چه ما حج اوكړ، نو حضورؐ عبدالرحمٰن (بن ابي بكر) ته د حصبه په شپه حكم اوكړ، نو هغه زه د هغې عمرے په بدله كښې چه ما د هغې احرام تړلے وو (او كړے م نه وه) په مائے د تنعيم نه عمره اوكړله.

**ف**: (١) تمتع: حج او عمره دواړه په يو ځائے فائده اخستل.

(٢) هدي: د قرباني څناور چه كعبې ته ئې راولي.

(٣) ايام تشريق: د لوئې اختر نه پس درے ورځې د ذي الحجه د مياشتې يولسم، دولسم او ديارلسم تاريخونه.

(٤) حصبه: د ايام تشريق نه پس شپه.

(٥) احرام: د حج په وخت د يو مقرر ځائے نه په ناگنډلو كپړو ځان پټول، او د هغه ټولو څيزونو په ځان د حراملو نيت كول چه په دے موقع حرام كړے شوے دي.

## بَابُ ٢١٨: نَقْضِ الْمَرْاَةِ شَعْرَهَا عِنْدَ غُسْلِ الْمَحِيْضِ.

## باب ٢١٨: د حيض د غسل په وخت د ښځې د خپلو ويښتو د پرانستلو بيان.

٣٠٨: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مُوَافِيْنَ لِهِلَالِ ذِي الْحِجَّةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

٣٠٨: عبيد بن اسمٰعيل. ابواسامه. هشام. عروه. بي بي عائشهؓ روايت كوي، چه مونږ خلق د ذي الحجه مياشت ليدو سره (حج له) اووتلو. رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، كه ما د قرباني څناور نه وے راوستے، نو د عمرے احرام به م تړلے وے نو بعضو

أَحَبَّ اَنْ يُهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلْيُهِلَّ فَاِنِّيْ لَوْلَا اِنِّيْ اَهْدَيْتُ لَاَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ فَاَهَلَّ بَعْضُهُمْ بِعُمْرَةٍ وَّ اَهَلَّ بَعْضُهُمْ بِحَجٍّ وَّ كُنْتُ اَنَا مِمَّنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فَاَدْرَكَنِيْ يَوْمُ عَرَفَةَ وَ اَنَا حَائِضٌ فَشَكَوْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعِيْ عُمْرَتَكِ وَانْقُضِيْ رَأْسَكِ وَامْتَشِطِيْ وَ اَهِلِّيْ بِحَجٍّ فَفَعَلْتُ حَتّٰى اِذَا كَانَ لَيْلَةَ الْحَصْبَةِ اَرْسَلَ مَعِيْ اَخِيْ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ بَكْرٍ فَخَرَجْتُ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ مَّكَانَ عُمْرَتِيْ قَالَ هِشَامٌ وَّلَمْ يَكُنْ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ ذٰلِكَ هَدْيٌ وَّلَا صَوْمٌ لَّا صَدَقَةٌ.

خو د عمرے احرام او تړلو او بعضو خلقو د حج احرام او تړلو اوزهٔ هغے خلقو کښې ووم چه هغوي د عمرے احرام تړلے وو. خو د عرفے ورځ چه راغله نوزهٔ حائضه شوے ووم. مانبي صلعم ته د دے شکایت او کهٔ. نو حضورؐ او فرمائیل چه خپله عمره (څهٔ وخته پورے) موقوف کړه او خپل سر پرانزه. ګومنز او کړه او د حج احرام اوتړه (نو ما دغسے او کړل) تردے چه د حصبه شپه راغله نو حضورؐ عبدالرحمٰن بن ابي بکرؓ خما ملګرے کهٔ. زهٔ تنعیم پورے لاړم نو ما د خپلے عمرے په عوض کښې د عمرے احرام اوتړلو. هشام وائي چه دے کښې هیڅ خبره کښې نه د قربانۍ خناور ورکول وو نه روژه نیول وو او نه صدقه ورکول وو.

## بَابٌ ٢١٩: قَوْلُ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ مُخَلَّقَةٍ وَّ غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ.

باب ٢١٩: د الله تعالیٰ د دے ارشاد: مُخَلَّقَةٍ وَّ غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ څهٔ مطلب دے.

٣٠٩: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى وَ كَّلَ بِالرَّحِمِ مَلَكًا يَّقُوْلُ يَا رَبِّ نُطْفَةٌ يَّا رَبِّ عَلَقَةٌ يَّا رَبِّ مُضْغَةٌ فَاِذَا اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّقْضِيَ خَلْقَهٗ قَالَ اَذَكَرٌ اَمْ اُنْثٰى شَقِيٌّ اَمْ سَعِيْدٌ فَمَا الرِّزْقُ وَمَا الْاَجَلُ قَالَ فَيُكْتَبُ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ.

٣٠٩: مسدد. حماد. عبیدالله بن ابي بکر. انس بن مالک د رسول الله صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضورؐ او فرمائیل چه الله تعالیٰ په رحم یو فریښته مقرر کړے دهٔ چه وائي یا ربه نطفه یا ربه علقه یا ربه مضغه. نو که الله غواړي چه د هغے خلقت پوره کړي نو هغه فریښته وائي چه نارینه (جوړ شي) یا زنانه بدبخت (وي) یا نیک بخت. بیا رزق ئے څومره وي عمر څومره؟ حضورؐ فرماني. بیا هغه فریښته (د دے تپوسونو نه پس) د هغهٔ د مور په خیټه کښې (دا هر څه هغهٔ په تندي) اولیکي.

ف: (۱) نطفه: مني. د انسان مني.

(۲) علقه: سره وينه. چکه وينه.

(۳) مضغه: د غوښې ټکړه. د غوښې پوټې. لوټې.

## بـــاب ۲۲۰: كَيُفَ تُهِــلُّ الْحَآئِضُ بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ.

۳۱۰: حَـدَّثَنَا يَحْيَى بُنُ بُكَيُرٍ قَالَ ثَـنَـا الـلَّيُثُ عَنُ عُقَيُلٍ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ عَـنُ عُـرُوَةَ عَنُ عَآئِشَةَ قَالَتُ خَـرَجُـنَـا مَـعَ الـنَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَـلَّـمَ فِـيُ حَـجَّةِ الُـوَدَاعِ فَمِنَّا مَنُ اَهَـلَّ بِـعُـمُــرَةٍ وَّ مِـنَّــا مَنُ اَهَلَّ بِحَجٍّ فَـقَدِمُنَا مَكَّةَ فَقَالَ رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيُهِ وَسَلَّمَ مَنُ اَحُرَمَ بِعُمُرَةٍ وَّلَـمُ يُهُدِ فَلُيَحُلِلُ وَمَنُ اَحُرَمَ بِعُمُرَةٍ وَّ اَهُـدٰى فَلَا يَـحِـلُّ حَتّٰى يَحِلَّ بِنَحُرِ هَـدُيِـهٖ وَمَـنُ اَهَـلَّ بِحَجٍّ فَلُيُتِمَّ حَجَّهٗ قَـالَتُ فَحِضُتُ فَلَمُ اَزَلُ حَآئِضًا حَتّٰى كَـانَ يَـوُمَ عَرَفَةَ وَلَمُ اُهُلِلُ اِلَّا بِعُمُرَةٍ فَـاَمَـرَنِـي الـنَّبِـيُّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيُـهِ وَسَـلَّـمَ اَنُ اَنُقُضَ رَاُسِيُ وَ اَمُتَشِطَ وَ اُهِلَّ بِالْحَجِّ وَ اَتُرُكَ الْعُمُرَةَ فَفَعَلُتُ ذٰلِكَ حَتّٰى قَضَيُتُ حَجَّتِيُ فَبَعَثَ مَعِيَ عَبُدَ الـرَّحُـمٰـنِ بُـنَ اَبِـيُ بَـكُرٍ فَاَمَرَنِيُ اَنُ اَعُتَمِرَ مَكَانَ عُمُرَتِيُ مِنَ التَّنْعِيُمِ.

## باب ۲۲۰: حـائـضـه ښـځه به د حج او عمرے احرام څنګه تړي.

۳۱۰: يـحيـي بـن بـكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عـروه. بـي بـي عـائشهؓ روايت كوي: چه مونږ حجة الوداع كـښې نبـي صلـے اللّـه عـليه وسلم سره اووتلو. مونږ كښې بـعـضـے هـغـه خلق وو، چه هغوي د عمرے احرام تړلے وو. كـوم وخت چه مونږ مكے ته راغلو، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عـليـه وسلم او فرمائيل، چه چا ذ عمـرے احرام تړلے وي، او د قرباني خناور نے نۀ وي راوستے، نو هغۀ له د احرام نه بهر كيـدل پـكـار دي او چـا چه د عمرے احرام تړلے وي. او ډ قرباني خناور نے راوستے وي، نو هغه دے هغه وخته پورے قـربـانـي نۀ كوي، څو پورے چه د احرام نه بهر نشي. او چا چـه د حـج احـرام تړلے وي. هغه دے خپل حج پوره كړي. بي بي عائشهؓ فرمائي. زۀ حائضه شوم. او حيض م جاري وو، تـردے چـه د عرفے ورځ راغله، او ما صرف د عمرے احرام تـړلے وو، نـو نبـي صـلـعـم ماته حكم راكۀ: چه زۀ خپل سر پـرانـزم. او كـرمـنـز اوكړم، او د حج احرام اوترم او عمره سـمـدستي پريږدم، نو ما دغسے اوكړل. كوم وخت چه ما خپـل حـج پـوره كـۀ، نـو حـضـورؐ خدا ملګرتيا كښې ما سره عبدالرحمٰن بن ابي بكرؓ اوليږۀ، او ماته نے حكم راكۀ، چه زۀ د خپلے عمرے په بدله كښې د تنعيم نه عمره اوكړم.

## باب ۲۲۱: اِقُبَالُ الْمَحِيُضِ وَ اِدُبَارِهٖ وَ كُنَّ نِسَآءٌ يَبُعَثُنَ اِلٰى عَآئِشَةَ

## باب ۲۲۱: د حيـض زمـا ــه كلـه راځي او كله ختميږي او ښځو به بي بي عائشے له د لرګي په ډبي كښې

بِالدِّرَجَةِ فِيهَا الْكُرْسُفُ فِيهِ الصُّفْرَةُ فَتَقُوْلُ لَا تَعْجَلْنَ حَتّٰى تَرَيْنَ الْقَصَّةَ الْبَيْضَآءَ تُرِيْدُ بِذٰلِكَ الطُّهْرَ مِنَ الْمَحِيْضَةِ وَ بَلَغَ بِنْتَ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ نِسَآءً يَدْعُوْنَ بِالْمَصَابِيْحِ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ يَنْظُرُوْنَ اِلَى الطُّهْرِ فَقَالَتْ مَا كَانَ النِّسَآءُ يَصْنَعْنَ هٰذَا وَ عَابَتْ عَلَيْهِنَّ.

صندوقي مالوچ راليږل هغې کښې به زردي يعني زيړوالے وو' نو بي بي عائشے به ورته فرمايل' چه تادي مه کوے' تر دې چه صفا (اوبه) اونه وينې د دے ،، د هغې مراد د حيض پاکي وه (چه څو پورے رنګ بالکل پاتے نشي' هغه وخته پورے پاکي نه کيږي) او د زيد بن ثابت لورته چه دا خبر اورسيد' چه ښځے د شپے وخت کښې ډيوه راغواړي او پاکي ګوري نو هغې ا فرمائيل چه ښځو به داسے نه کول او د هغوی (دا تکلف نے) ښه اونه ګڼړلو.

۳۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتُ اَبِيْ حُبَيْشٍ كَانَتْ تُسْتَحَاضُ فَسَاَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ذٰلِكِ عِرْقٌ وَّ لَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ فَاِذَا اَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلٰوةَ وَ اِذَا اَدْبَرَتْ فَاغْتَسِلِيْ فَصَلِّيْ.

۳۱۱: عبدالله. محمد. سفيان. هشام. عروه. بي بي عائشه روايت کوي چه فاطمه بنت ابي حبيش ته د استحاضه وينه راتله. نو هغې د نبي صلعم نه د دے (مسئلے) تپوس اوکه. حضور ورته او فرمايل' چه دا يو رګ دے (يعني د يو رګ وينه ده) حيض نه دے. چه د حيض زمانه راشي' نو مونځ پريږدنے' او د حيض زمانه چه تيره شي' نو غسل اوکړه او مونځ کوه.

## بَابٌ ۲۲۲: لَا تَقْضِي الْحَائِضُ الصَّلٰوةَ وَ قَالَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَدَعُ الصَّلٰوةَ.

## باب ۲۲۲: حائضه ښځه دے د مونځ قضا نه کوي.

جابر بن عبدالله او ابوسعيد (خدري) د نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل کړے دے' چه (حائضه) ښځه دے مونځ پريږدي.

۳۱۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا هَمَّامٌ قَالَ ثَنَا قَتَادَةُ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ مُعَاذَةُ اَنَّ امْرَاَةً قَالَتْ لِعَآئِشَةَ اَتَجْزِيْ اِحْدَانَا صَلٰوتَهَا اِذَا طَهُرَتْ فَقَالَتْ اَحَرُوْرِيَّةٌ اَنْتِ، قَدْ كُنَّا

۳۱۲: موسي بن اسمعيل. همام. قتاده. معاذه روايت کوي' چه يوے ښځے بي بي عائشے ته اووے' چه آيا مونږ کښې يوے ښځے له د هغې مونځ صرف هغے وخت کښې کافي دے' څو پورے چه هغه پاکه وي' نو بي بي عائشے ورته اووے' چه آيا ته حروريه نے. يقينا مونږ به

نَحِيضُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا يَأْمُرُنَا بِهٖ اَوْ قَالَتْ فَلَا نَفْعَلُهُ.

نبي صلعم سره ملګرې وو. او حيض به راته. ليکن حضورﷺ به مونږ ته د (قضا) مونځ کولو حکم نهٔ راکولو (يا بي بي عائشې داسې او فرمائيل: چه مونږ به قضا مونځ نهٔ کولو).

۱ "حروريه" حروْرا ښهر ته نسبت دې چه د کوفې د ښهر نه دوه ميله فاصله باندې دې. حروراء هغه ځايې دې چه د ټولو خلقو نه اول خوارجو (باغيانو) د حضرت علي کرم الله وجهه خلاف د بغاوت جهنډا او چته کړې وه د دې وجې نه خارجي ته حروري وائي. د خوارجو ډيرې فرقې دي. ليکن د ټولو فرقو دا يوه شريکه عقيده ده. "چه کومه مسئله د قرآن شريف نه ثابته ده په هغې عمل کول ضروري دي. د هغوي په نظر کښې د حديث شريف اهميت نشته. په حائضې ښځې د مونځ قضا نشته مونځ ورباندې نيشته دا مسئله د حديث شريف نه ثابته ده. او په قرآن مجيد کښې د دې حقله څه حکم نيشته د دې وجې نه چه کومې ښځې د عائشې بي بي رضي الله عنها نه پوښتنه کوله. نور بي بي عائشې دا خيال اوکړو چه شايد دا ښځه دې مسئله کښې شک کوي، او ورته نې "حروريه" اويل چه ته حروريه نې؟

## بَابٌ ۲۲۳: النَّوْمِ مَعَ الْحَائِضِ وَهِيَ فِيْ ثِيَابِهَا.

باب ۲۲۳: حائضه ښځې سره داسې حال کښې اوده کيدل چه هغه د حيض جامو کښې وي.

۳۱۳: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ ثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ قَالَتْ حِضْتُ وَ اَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمِيْلَةِ فَانْسَلَلْتُ فَخَرَجْتُ مِنْهَا فَاَخَذْتُ ثِيَابَ حَيْضَتِيْ فَلَبِسْتُهَا فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ فَدَعَانِيْ فَاَدْخَلَنِيْ مَعَهُ فِي الْخَمِيْلَةِ قَالَتْ وَ حَدَّثَتْنِيْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَائِمٌ وَ كُنْتُ اَغْتَسِلُ اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ مِّنَ الْجَنَابَةِ.

۳۱۳: سعد بن حفص. شيبان. يحيى. ابوسلمه. زينب بنت اُم سلمه. اُم سلمه روايت کوي، چه زهٔ نبي صلي الله عليه وسلم سره څادر کښې ملاسته وم، چه ناساپه به ما حيض راغې. نو زهٔ روشان څادر نه بهر شوم. بيا ما د حيض کپړې واغستې. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته او فرمائيل: چه تا ته نفاس راغې څه ما عرض اوکړو او. نو حضورﷺ زهٔ راوغوښتلم، او خان سره نې څادر کښې دننه کړم. زينبؓ وائي، ماته اُم سلمهؓ داهم بيان اوکړو، چه نبي صلعم به زهٔ ښکلولم او د حضورﷺ به روژه وه، او ما او نبي صلي الله عليه وسلم به د جنابت غسل ذ يو لوښي نه کولو.

ا . د دې تولو اعمالو مقصد د امت تعليم دې داسې نور احاديث وړاندې تير شويدي چه نبي عليه السلام به خمونږ ميندو پاکو بيبيانو سره د حيض په حالت کښې د خاص اندام نه علاوه يو ځائے کيدلو او هغوي به لنګ تړلے وو . د دې مسئلے مقصد امت ته تعليم ورکول وو له دے کبله خمونږ ميندو پاکو بيبيانو د نبي عليه السلام د ذاتي ژوند مسئلے خلقوته بيان کړے خکه چه هغوي د نبي عليه السلام مقصد پيژندلو د حيض په وخت' به عامو مشرکانو او يهوديانو خپلو ښځو سره بد سلوک کولو خان سره به ئے نزدې نه پريخودلے او هيڅ قسم تعلق به ئے ورسره نه ساتلو . اسلام کښې حيض ګندګي او پليتي ده. ليکن زياتے پکښې نشته. نو نبي عليه السلام په خپل عمل د عربو هغه سلوک ختم کړلو . دا حال د روژے په حالت کښې د خکلولو (کوکتني اخستلو) دے . وجه ئے داده چه د پيغمبر په عمل کولو د يو کار اهميت ښکاره کيږي. د دے حديث شريف نه دا هم ښودل مقصود دي چه نبي عليه السلام عظيم پيغمبر او عظيم انسان وو.

**باب ٢٢٤ : مَنِ اتَّخَذَ ثِيَابَ الْحَيْضِ سِوٰى ثِيَابَ الطُّهْرِ.**

**باب ٢٢٤ : چاچه د حيض زمانے ډ پاره جدا جامے تيارے کړے.**

٣١٤ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ ثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَتْ بَيْنَا اَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَجِعَةً فِيْ خَمِيْلَةٍ حِضْتُ فَانْسَلَلْتُ فَاَخَذْتُ ثِيَابَ حَيْضَتِيْ فَقَالَ اَنُفِسْتِ فَقُلْتُ نَعَمْ فَدَعَانِيْ فَاضْطَجَعْتُ مَعَهُ فِى الْخَمِيْلَةِ.

٣١٤ : معاذ بن فضاله. هشام. يحيي. ابوسلمه. زينب بنت ابي سلمه. ام سلمه روايت کوي' چه زۀ نبي صلعم سره (يو) خادر کښې ملاسته ووم' چه حائضه شوم' نو زۀ غلے شان تړے را بهر شوم' او ما د حيض جامے واغستے. حضور راته او فرمائيل' چه په تا نفاس راغے خۀ؟ ما عرض اوکۀ' او' نو حضور زۀ راوبللم' او زۀ حضور سره په (يو) خادر کښې سملاستم.

**باب ٢٢٥ : شُهُوْدِ الْحَائِضِ الْعِيْدَيْنِ وَ دَعْوَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ يَعْتَزِلْنَ الْمُصَلّٰى.**

**باب ٢٢٥ : د حائضے ښځے آخترونو کښې او د مسلمانانو دعا کښې د حاضريدو بيان. ښځے دے د مونځ د ځائے نه جُدا وي.**

ا . په هدايه کښې دي. چه ښځے عيدګاه ته تللے شي ليکن په موجوده زمانه کښې چه معاشره خرابه ده نو فتوي داده چه ښځے د جمعے مونځ' اختر يا د سرو په کومه ګنړه کښې به نه شريکے کيږي په دے مسئله کښې پدے هم غور پکار دے چه پخوا زمانه کښې عيدګاه به آباده نه وه صرف ميدان به وو. اوس عيدګاه د جمات په شکل آباده وي ديوالونه ئے وي د دے وجے نه حائضے ښځے دننه عيدګاه ته نشي تللے.

٣١٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

٣١٥ : محمد بن سلام. عبدالوهاب. ايوب. بي

سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ كُنَّا نَمْنَعُ عَوَاتِقَنَا اَنْ يَّخْرُجْنَ فِي الْعِيْدَيْنِ فَقَدِمَتِ امْرَاَةٌ فَنَزَلَتْ قَصْرَ بَنِيْ خَلَفٍ فَحَدَّثَتْ عَنْ اُخْتِهَا وَ كَانَ زَوْجُ اُخْتِهَا غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً وَ كَانَتْ اُخْتِيْ مَعَهُ فِيْ سِتٍّ قَالَتْ فَكُنَّا نُدَاوِي الْكَلْمٰى وَ تَقُوْمُ عَلَى الْمَرْضٰى فَسَاَلَتْ اُخْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعَلٰى اِحْدَانَا بَاْسٌ اِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ اَنْ لَّا تَخْرُجَ قَالَ لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا وَلْتَشْهَدِ الْخَيْرَ وَ دَعْوَةَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَلَمَّا قَدِمَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ سَاَلْتُهَا اَسَمِعْتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ بِاَبِيْ نَعَمْ وَ كَانَتْ لَا تَذْكُرُهُ اِلَّا قَالَتْ بِاَبِيْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ تَخْرُجُ الْعَوَاتِقُ وَ ذَوَاتُ الْخُدُوْرِ وَالْحُيَّضُ وَلْيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ وَ دَعْوَةَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ تَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ الْمُصَلّٰى قَالَتْ حَفْصَةُ فَقُلْتُ الْحُيَّضُ فَقَالَتْ اَلَيْسَتْ تَشْهَدُ عَرَفَةَ وَ كَذَا وَ كَذَا.

بي حفصه روايت کوي چه مونږ به خپلې پيغلې جينکۍ اخترونو کښې د تللو نه منع کولې. يوه ښځه راغله. او قصر بني خلف ته راغله هغې د خپلې خور نه دا خبره نقل کړه او وئيلې چه خما د خور خاوند دولس غزاګانو کښې نبي صلى الله عليه وسلم سره جهاد کړے وو، او شپږو غزاګانو کښې خما خور هغه سره وه. هغې اووے چه مونږ به د زخميانو دارو ذرمل کول او د مريضانو خدمت به مو کولو. يو ځلې خما خور د نبي صلعم نه تپوس اوکړ، چه مونږ کښې چاسره پړونے نه وي، نو د هغې بهر وتلو کښې څه حرج شته؟ حضورؐ او فرمائيل چه د هغې ملګرې له پکار دي، چه خپل پړوني کښې هغه پټه کړي. او هغې له پکار دي، چه د خير مجلسونو کښې او د مسلمانانو په دُعا کښې شريکه شي. کوم وخت چه ام عطيه راغله، نو ما هغې ته اووے، چه آيا تا د نبي صلعم نه (دے باره کښې) څه آوريدلي دي، نو هغې اووے (بِاَبِيْ نَعَمْ هو: خما پلار دے ترې قربان شي او هغې چه به کله د نبي صلعم ذکر کولو، نو بِاَبِيْ به ئې ضرور وئيلې) ما د حضورؐ نه دا آوريدلي دي، چه پيغلې پرده نشينې او حائضه ښځې دې بهر اوځي او د خير مجلسونو کښې او د مسلمانانو په دُعا کښې د شريکيږي. صرف حائضه ښځې دې د مونځ نه جدا وي، بي بي حفصهؓ وائي، ما اووے چه حائضه ښځې دې هم شريکيږي، نو هغې اووے، آيا حائضې ښځې عرفه کښې نه حاضريږي او فلاني فلاني کار کښې نۀ شريکيږي.

١. يعني د حائضې ښځې به عيدګاه ته تللو څه فائده وي د حفصې بي بي رضي الله عنها په خيال کښې عيدګاه ته د تللو مقصد، د مسلمانانو سره د اختر مونځ ادا کول دي. او حائضه مونځ نشي کولے ليکن نبي

عليه السلام دده خبرې ترديد اکړو عالمان وائي چه د حائضې ښځو د عيدګاه تللو مقصد دادې چه د مسلمانانو د رعب داب شان شوکت مظاهره اوشي

باب ۲۲۶: اذا حاضت في شهر ثلاث حيض وما يصدق النساء في الحيض والحمل فيما يمكن من الحيض لقول الله تعالى ولا يحل لهن ان يكتمن ما خلق الله في ارحامهن ويذكر عن علي و شريح ان جاءت ببينة من بطانة اهلها ممن يرضى دينه انها حاضت ثلاثا في شهر صدقت و قال عطاء اقراءها ما كانت و به قال ابراهيم و قال عطاء الحيض يوم الى خمسة عشر و قال معتمر عن ابيه قال سألت ابن سيرين عن المرأة ترى الدم بعد قرئها بخمسة ايام قال النساء اعلم بذلك.

باب ۲۲۶: هر كله چه يوه ښځه يوه مياشت كښې درې حله حائضه شي او دا چه د حيض او حمل باره كښې هر كله چه د حيض راتلل ممكن وي د ښځو په خبره دې اعتبار اوكړې شي د دې دليل د الله تعالى دا ارشاد دې چه ښځو له جائز نه دي چه الله چه څه د هغوي په رحم كښې پيدا كړي دي هغه دې پټ كړي. او د حضرت علي او شريح نه منقول دي كه د ښځې په خاص خپلوانو كښې يو داسې سړې ګواهي اوكړي چه هغه ديندار وي چه هغه مياشت كښې درې خله حائضه شوه نو د دې د تصديق اوكړې شي. عطاء وئيلې دي چه د ښځې حيض به دومره وي خومره چه مخكښې وو او ابراهيم نخعي هم د دې قائل دې. او عطاء وئيلې دي چه حيض د يوې ورځې نه پنځلسو ورځو پورې كيدې شي. معمر د خپل پلار نه نقل كړې دې چه هغه اووې ما د ابن سيرين نه د هغې ښځې باره كښې تپوس اوكه چه د خپل حيض نه پنځه ورځې پس وينه اووينې نو هغه اووې چه د دې نه ښځې ښې واقفې دي.

۱ د حيض طهر (پاكوالي) چه كومې مسئلې امامانو صاحبانو بيان كړيدي. د هيڅ يو امام په مذهب كښې دا نشته چه "د ښځې يو مياشت كښې درې خله حيض كيږي". امام بخاري رحمة الله عليه د دې سر كلمې روه ليك لاندې چه خومره دليلونه ذكر كړيدي. په هغې كښې محدثينو تاويلونه كړيدي. با خود راويانو عبارت نيمګړې دې يا دا كه دا ممكنه نه ده. چه يو مياشت كښې حيض درې خله راشي خو فرض كړئ كه چرې دا نه. كيدونكې كار اوشي نو مسئله به څرنګ وي.

۶۳۱: حدثنا احمد بن ابي رجاء قال اخبرنا ابو اسامة قال سمعت هشام ابن عروة قال اخبرني ابي عن عائشة ان فاطمة بنت ابي حبيش سألت النبي صلى الله

۶۳۱: احمد بن ابي رجاء. ابو اسامه. هشام بن عروه. بي بي عائشه روايت كوي چه فاطمه بنت ابي حبيش د نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكه چه ماته د حيض وينه راځي او په مودو نه پاكيږم نو آيا زه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِنِّيْ اُسْتَحَاضُ فَلَا اَطْهُرُ اَفَادَعُ الصَّلٰوةَ فَقَالَ لَا اِنَّ ذٰلِكَ عِرْقٌ وَّلٰكِنْ دَعِي الصَّلٰوةَ قَدْرَ الْاَيَّامِ الَّتِيْ كُنْتِ تَحِيْضِيْنَ فِيْهَا ثُمَّ اغْتَسِلِيْ وَ صَلِّيْ.

مونځ پريږدم؟ حضورؐ ورته او فرمائيل. نه. دا يو رګ دے (د يو رګ وينه ده) خو په قدر د هغې ورځو چه ته په هغې کښې حائضه کيږې مونځ پريږده. بيا (چه دومره وخت تير شي نو) غسل کوه او مونځ کوه.

باب ۲۲۷: الصُّفْرَةِ وَالْكُدْرَةِ فِيْ غَيْرِ اَيَّامِ الْحَيْضِ.

باب ۲۲۷: که د حيض زمانه نه وي نو ذ زيړ يا خړبوجن رنګ د ليدو بيان.

۱. دلته د حديث شريف د ظاهري الفاظو مختلفے معانی اخستلے شي امام بخاري رحمة الله عليه د حديث شريف دامطلب بيانول غواړي. هغه د سر ليک نه ښکاره دے چه کله د حيض معلومه مقرره موده ختمه شي نو بيا که د زيړ يا خړ رنګ څه ماده د حيض په لاره راځي نو هغے له مونږ هميت نه ورکوو حيض ئے نه ګنړو. د امام شافعي د مذهب علماؤ د حديث شريف دا مطلب وائي. چه د حيض په باره کښې په هره زمانه کښې که د حيض معلومه موده وي يا د پاکوالي وخت وي. فيصله به په رنګ کولے شي. احناف عالمان د دے مطلب دا اخلي چه مونږ رنګ له اهميت نه ورکوو بلکے د حيض د لارے نه د هر رنګ وينه چه بهر راځي هغه مونږ حيض ګنړو.

۳۱۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ كُنَّا لَا نَعُدُّ الْكُدْرَةَ وَالصُّفْرَةَ شَيْئًا.

۳۱۷: قتيبه بن سعيد. اسمعيل. ايوب. محمد. ام عطيه روايت کوی چه مونږ به خاورين رنګ يا زردي (زيړ رنګ) څه حقيقت نه ګنړلو (يعني حيض به مونږ نه ګنړلو).

باب ۲۲۸: عِرْقِ الْاِسْتِحَاضَةِ.

باب ۲۲۸: د استحاضه د رګ بيان.

۳۱۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ الْحِزَامِيُّ قَالَ ثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيْسٰى عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ وَعَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ اسْتُحِيْضَتْ سَبْعَ سِنِيْنَ فَسَاَلَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَاَمَرَهَا

۳۱۸: ابراهيم بن منذر. خزامي. معن بن عيسى ابن ابی ذئب. ابن شهاب. عروه او عمره. بی بی عائشه د نبي صلعم ښځه روايت کوی چه بي بي ام حبيبه اوه کاله پورے مستحاضه وه. هغے د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دے باره کښې تپوس او کړه نو حضور هغے ته د غسل کولو حکم ورکړلو او ورته فرمائيل چه دا د يو رګ

اَنْ تَغْتَسِلَ فَقَالَ هٰذَا عِرْقٌ فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلٰوةٍ.

وينه ده. په دے وجه به هغې د مونځ د پاره غسل کولو.

## بَاب ۲۲۹: اَلْمَرْاَةِ تَحِيْضُ بَعْدَ الْاَفَاضَةِ.

## باب ۲۲۹: د طواف افاضه (رخصتي) نه پس د ښځې د حائضه کيدو بيان.

۳۱۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَدْ حَاضَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّهَا تَحْبِسُنَا اَلَمْ تَكُنْ طَافَتْ مَعَكُنَّ فَقَالُوْا بَلٰى قَالَ فَاخْرُجِيْ.

۳۱۹: عبدالله بن يوسف. مالک. عبدالله بن ابي بکر بن محمد بن عمرو بن حزم. ابوبکر بن محمد عمره بنت عبدالرحمن. بي بي عائشهؓ د نبي صلی الله عليه وسلم ټبر روايت کوي' چه هغې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته اووے' يا رسول الله' صفيه بنت حيي ته حيض راغے' نو رسول الله صلی الله عليه وسلم او فرمائيل. شايد چه هغه مونږ پاتے کړي. آيا هغې تاسو سره طواف نۀ وو کړے. خلقو ورته اووے' او. کړے نے وو. نو حضورؐ او فرمائيل (بيا (څۀ حرج نشته) ځئې چه ځو) نو روانه ئې شي.

۱. اول نبي عليه السلام ته دا معلومه نه وه چه صفيه بي بي رضي الله عنها طواف زيارت کړے دے د دے رجے نه چه کله عائشے بي بي رضي الله عنها ورته د صفيے بي بي رضي الله عنها د حيض راتللو اويل نو نبي عليه السلام او فرمايل شايد مونږ به د تللو نه منعه کړي. ليکن کله چه نبي عليه السلام ته معلومه شوه چه صفيے بي بي رضي الله عنها طواف زيارت کړے دے او يواځے طواف صدر باقي دے نو نبي عليه السلام او فرمايل چه روان شئ (څه تکليف نشته)

۳۲۰: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ قَالَ ثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ رُخِّصَ لِلْحَائِضِ اَنْ تَنْفِرَ اِذَا حَاضَتْ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُوْلُ فِيْ اَوَّلِ اَمْرِهٖ اَنَّهَا لَا تَنْفِرُ ثُمَّ سَمِعْتُهُ

۳۲۰: معلي بن اسد. وهيب. عبدالله بن طاوس. ابن عباسؓ روايت کوي' چه ښځے له (د رخصتي د طواف نه پس) حيض راشي' نو هغے ته (خپل کورته) د واپسي اجازت ورکړے شوے دے. ابن عمرؓ به خپلے ابتدائي زمانه کښې وئيلے' چه واپس دے نۀ ځي. بيا ما د هغۀ نه دا واوريدل' چه واپس تلے شي. بيشکه رسول

يَقُولُ تَنفِرُ انّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لَهُنّ.
الله صلعم هغوي له (يعني داسے ښخو له) اجازت ورکړے دے

بـــــاب ۲۳۰ : اِذَا رَأَتِ الْمُسْتَحَاضَةُ الطُّهْرَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تَغْتَسِلُ وَ تُصَلِّيْ وَلَوْ سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ وَّ يَأْتِيْهَا زَوْجُهَا اِذَا صَلَّتِ الصَّلٰوةَ اَعْظَمُ.

باب ۲۳۰ : هر کله چه مستحاضه (هغه ښځه چه د حيض ورځو کښې ورنه د معمول نه زياته وينه راځي) پاکي اووينې نو څه به کوي؟ ابن عباس وائي چه غسل دې اوکړي او مونځ دې کوي خواه (صرف) د ورځې يوه کهړئ باقي وي او د هغې خاوند هم هغې له راتلے شي. هر کله چه هغې مونځ کړے وي او مونځ ډير لوئے خير دے

**ف**: يعني هر کله چه د حيض زيئه لږے موده د پاره راشي او بيا بنده شي نو خوند هغه وخت ښځے له ورتلے شي، چه هغه غسل اوکړي. د غسل نه مخکښې ورسره صحبت نشي کولے.

۳۲۱ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ ثَنَا زَهِيْرٌ قَالَ ثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِى الصَّلٰوةَ وَ اِذَا اَدْبَرَتْ فَاغْسِلِيْ عَنْكِ الدَّمَ وَصَلِّيْ

۳۲۱ : احمد بن يونس. زهير. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشه روايت کوي، نبي صلعم او فرمائيل چه کله د حيض وخت راشي، نو مونځ پريږده، او چه هغه وخت تير شي نو د خپل جسم نه وينه اووينزه او مونځ کوه.

بـــاب ۲۳۱ : اَلصَّلٰوةِ عَلَى النُّفَسَاۤءِ وَ سُنَّتِهَا.

باب ۲۳۱ : د نفاس واله ښځے په جنازه مونځ او د هغې د طريقے بيان.

**ف**: نفاس: هغه وينه چه د زنانه د ماشوم پيدا کيدونه پس زيات نه زيات څويښت ورځو پورے بهيږي.

۳۲۲ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ سُرَيْجٍ قَالَ ثَنَا شُبَابَةُ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُسَيْنِ الْمُعَلِّمِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ اَنَّ امْرَاَةً مَّاتَتْ فِيْ بَطْنٍ فَصَلّٰى عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ وَسْطَهَا.

۳۲۲ : احمد بن ابي سريح. شبابه. شعبه. حسين. معلم. عبدالله بن بريده. سمره بن جندب روايت کوي چه يوه ښځه د خيټے بيمارئ کښې مړه شوه، نو نبي صلے الله عليه وسلم د هغے (د جنازے) مونځ کښې اودريدلو، او په هغے نيے مونځ اوکړلو.

۱. بعضے عالمانو په امام بخاري دا اعتراض کړيدے چه حديث شريف د باب د سر ليک مطابق نه دے ځکه چه حديث شريف کښې دا الفاظ دي چه هغه ښځه په کيدو کښې (حمل کښې) مړه شوے وه او د

امام بخاري سره لیک دا دے چه په هغه نسخه جاره کول چه د بچي زیږیدلو کښې مړه شوی وي. لیکن دا اعتراض د هغوی صحیح نه دے د دے حدیث شریف بل روایت امام بخاري رحمة الله علیه کتاب الجنائز کښې ذکر کړیدے په هغې کښې وضاحت سره بیان دے چه هغه ښځه د بچي زیږیدلو (پیدا کیدو) کښې مړه شوے وه. نو دلته د "في بطن" نه مراد "في نفاس" دے

باب ۲۳۲: | باب ۲۳۲: (دا باب عنوان نه لري)

۳۲۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ قَالَ ثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ قَالَ اَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ مِنْ كِتَابِهٖ فَقَالَ اَخْبَرَنَا سُلَيْمٰنُ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا كَانَتْ تَكُوْنُ حَائِضًا لَا تُصَلِّيْ وَهِيَ مُفْتَرِشَةٌ بِحِذَاءِ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ عَلٰى خُمْرَتِهٖ اِذَا سَجَدَ اَصَابَنِيْ بَعْضُ ثَوْبِهٖ.

۳۲۳: حسن بن مدرک. یحیی بن حماد. ابو عوانه. سلیمان. شیباني. عبدالله بن شداد روایت کوي. ما د ترور بي بي میمونے د نبي صلي الله علیه وسلم د ښځې نه آوریدلے دي چه د حائضه کیدو په حالت کښې به هغې مونځ نه کولو او د رسول الله صلي الله علیه وسلم د جمات مخکښې غوړولي فرش بانډے به ناسته وه. حضور به په خپل څادر مونځ کولو. کوم وخت چه سجده به ئے کوله نو د حضور څه کپړه به (بي بي میمونهؓ فرمائي) خما جسم سره لږیدله.

## كِتَابُ التَّيَمُّمِ (د تیمم بیان)

باب ۲۳۳: وَقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ.

باب ۲۳۳: د تیمم احکام. د الله تعالی ارشاد دے چه تاسو پاکے خاورے سره تیمم کوئے او په خپل مخ او لاسونو ئے راکاږئے

۳۲۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۳۲۴: عبدالله بن یوسف. مالک. عبدالرحمن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشهؓ د نبي صلي الله علیه وسلم ښځه روایت کوي چه مونږ یو سفر کښې نبي صلي الله علیه وسلم سره ملګرے وو. کوم وخت چه

وسلم في بعض اسفاره حتّي اذا كنّا بالبيداء او بذات الجيش انقطع عقدٌ لي فاقام رسول الله صلي الله عليه وسلم علي التماسه و اقام النّاس معه وليسوا علي ماءٍ فاتي النّاس الي ابي بكر الصدّيق فقالوا الا ترٰي ما صنعت عآئشة برسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم والنّاس وليسوا علي مآءٍ وليس معهم مآءٌ فجآء ابوبكر و رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم واضعٌ راسه علي فخذي قد نام فقال حبست رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم والنّاس وليسوا علي مآءٍ و ليس معهم مآءٌ فقالت عآئشة فعاتبني ابوبكر و قال ما شآء اللّٰه ان يقول و جعل يطعنني بيده في خاصرتي فلا يمنعني من التحرّك الا مكان رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم علٰي فخذي فقام رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم حين اصبح علي غير مآءٍ فانزل اللّٰه عزّ و جلّ اٰية التّيمّم فتيمّموا فقال اسيد بن الحضير ماهي باوّل بركتكم يا اٰل ابي بكر قالت فبعثنا البعير الّذي كنت عليه فاصبنا العقد تحته.

[illegible] ... سو خما هار اوغورځيدلو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغې د لټون د پاره قيام اوكړلو نور خلق هم حضور سره پاتې شو دغې مقام كښې چرته اوبه نه وې نو خلق حضرت ابوبكر صديق له ورغلل او ورته يې اووې ته اوسه گورې چه بي بي عائشې څه اوكړل څه رسول الله صلي الله عليه وسلم او نول خلق يې ايسار كړل او هغوى سره اوبه نشته. بي بي عائشه وائي چه ابوبكر صديق ماته غصه شو او څه چه خدائې ته منظوره وه چه هغه دې اووائي هغه (ماته) اووې او په خپل لاس يې خما تونبي سكندل شروع كړل. خو رسول الله صلى الله عليه وسلم خما په زنگون سر مبارك ايښې وو آرام نيې كولو په دې وجه ما حركت اونه كړې شو. او حضور په داسې مقام ايسار شوې وو چه هلته اوبه نه وې نو الله تعالي د تيمم آيت نازل كړلو نو هغوى تيمم اوكړلو نو اسيد بن حضير اووې اې آل ابوبكر دا ستاسو ومبنې بركت نه دې (چه د هغې نه مؤمنان فيض ياب كيږي بلكه د دې نه مخكښې هم فيضيات شوې دي) بي بي عائشه وائي چه په كوم اوښ زه سوره ووم چه هغه اخوا كړې شو نو د هغه لاندې هار پيامدې شو.

۳۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ هُوَ الْعَوْفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ ح قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ النَّضْرِ قَالَ اَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ قَالَ اَخْبَرَنَا سَيَّارٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ الْفَقِيْرُ قَالَ اَخْبَرَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُعْطِيْتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ اَحَدٌ قَبْلِيْ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيْرَةَ شَهْرٍ وَّجُعِلَتْ لِيَ الْاَرْضُ مَسْجِدًا وَّ طَهُوْرًا فَاَيُّمَا رَجُلٌ مِّنْ اُمَّتِيْ اَدْرَكَتْهُ الصَّلٰوةُ فَلْيُصَلِّ وَ اُحِلَّتْ لِيَ الْمَغَانِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِاَحَدٍ قَبْلِيْ وَ اُعْطِيْتُ الشَّفَاعَةَ وَ كَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ اِلٰى قَوْمِهٖ خَاصَّةً وَّ بُعِثْتُ اِلَى النَّاسِ عَامَّةً.

۳۲۵: محمد بن سنان عوفي هشيم ح (دوئم سند) سعيد بن نضر هشيم سيار يزيد فقير جابر بن عبدالله روايت كوي: چه نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل: ماته پنځه خيزونه داسې راكړې شوې دي چه خما نه مخكښ هيچا ته نه وو وركړې شوې. (۱) خما د يوې مياشتې د لارې نه د رعب په ذريعه مدد اوكړې شو. (۲) او زمكه خما د پاره جمات او پاكه جوړې كړې شوه: نو خما امت كښې چه په چا كوم ځائې د مونځ وخت راشي: هغه له پكار دي چه په زمكه مونځ اوكړي (۳) او ما د پاره دَ غنيمت مال حلال كړې شو. حالانكه ما نه مخكښ يو نبي د پاره حلال كړې شوې نه وو (۴) او ماته دَ شفاعت اجازت راكړې شو. (۵) او هر نبي به خاص خپل قوم ته راليږلې شو، اوزهٔ ټولو خلقو ته راليږلې شوې يم.

## باب ۲۳۴: اِذَا لَمْ يَجِدْ مَآءً وَّلَا تُرَابًا.

## باب ۲۳۴: كه يو سړې نه اوبه بياموږي او نه خاوره: نو بيا به څهٔ كوي.

۱. په حديث شريف كښې چه كومه واقعه ذكر شويده. په هغې كښې د خاورې نه مونځ كيدو ذكر نشته. بلكې په هغه وخت كښې لا، د تيمم آيت نازل شوې نه وو. صحابه رضي الله عنهم د "هار" (اميل) په لټولو پسې ګرځيدل. د مونځ وخت راغې اوبه نه وې هغوي بې اودسه مونځ اوكړو. ددې وجې نه د حديث شريف دا سر ليک صحيح نه دې "چه كله نه اوبه بياموږي نهٔ خاوره" ليكن امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه څرنګ په دغه زمانه كښې د تيمم حكم نازل شوې نه وو. صرف د اوبو نه پيدا كيدو په صورت كښې چه كوم حكم وؤ هغه حكم هغه ضورت كښې هم پكار دې چه كله اوبه بناوره دواړه نه وي نو چه كله دواړه نه وي نو مونځ كيدې شي. د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه دا مسلک دې چه د مونځ په وخت نهٔ اوبه وي نه بناوره نو په مونځ به اودريږي قرأت به نه لولي، صرف ولاړ به وي بيا به ركوع او سجده اوكړي لكه يو بنده په رمضان كښې روژې نيولې نشي بيا د ورځې په څه حصه كښې د روژې نيولو قابل شو: نو د روژه دارو صورت به جوړ كړي خوراک به نه كوي. داسې كه د چا حج خراب شي نو بيا به هم د نورو حاجيانو په شان ټول د حج اعمال به ادا كوي.

۳۲۶: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ بْنُ يَحْيٰى قَالَ ثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ قَالَ ثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا اسْتَعَارَتْ مِنْ اَسْمَآءَ قِلَادَةً فَهَلَكَتْ فَبَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا فَوَجَدَهَا فَاَدْرَكَتْهُمُ الصَّلٰوةُ وَ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ فَصَلُّوْا فَشَكَوْا ذٰلِكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ فَقَالَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ لِعَآئِشَةَ جَزَاكِ اللّٰهُ خَيْرًا فَوَاللّٰهِ مَا نَزَلَ بِكِ اَمْرٌ تَكْرَهِيْنَهُ اِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ لَكِ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ فِيْهِ خَيْرًا.

۳۲۶: زكريا بن يحيي عبدالله بن نمير هشام بن عروه عروه بي بي عائشهؓ روايت كوي چه هغے د خپلے خور اسماء نه هار غوښتے وو او (هغے ي واچولو او حضورؐ سره په سفر روانه شوه) هغه هار ورک شولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم يو سړے د هغے هار د لټون د پاره اوليږه. هار خوني بيامند. ليكن د مونځ وخت راغے او خلقو سره اوبه نه وے نو هغوي (بے اودسه) مونځ اوكړلو او رسول الله صلے الله عليه وسلم ته ئے ددے شكايت اوكړلو نو الله پاک د تيمم آيت نازل كړلو. بيا اُسيد بن حضير بي بي عائشےؓ ته اووے چه الله د تالره جزائے خير دركړي. په الله م دے قسم وي چه كله په تا څه داسے خبره راغلے ده چه تاته سخته ښكاريده نو الله تعالي په هغے كښې ستا د پاره او د ټولو مسلمانو د پاره فائده ايښے ده.

## بَاب ۲۳۵: اَلتَّيَمُّمِ فِي الْحَضَرِ

اِذَا لَمْ يَجِدِ الْمَآءَ وَ خَافَ فَوْتَ الصَّلٰوةِ وَبِهٖ قَالَ عَطَآءٌ وَ قَالَ الْحَسَنُ فِي الْمَرِيْضِ عِنْدَهُ الْمَآءُ وَلَا يَجِدُ مَنْ يُنَاوِلُهٗ يَتَيَمَّمُ وَ اَقْبَلَ ابْنُ عُمَرَ مِنْ اَرْضِهٖ بِالْجُرُفِ فَحَضَرَتِ الْعَصْرُ بِمَرْبَدِ النَّعَمِ فَصَلّٰى ثُمَّ دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ فَلَمْ يُعِدْ.

باب ۲۳۵: د قيام حالت كښې چه اوبه بيانه مومي او د مونځ د فوت كيدو خوف وي نو د تيمم كولو بيان. او عطاء د دے قائل دے. او حسن بصري د هغے مريض متعلق چه هغه سره اوبه وي خو دومره طاقت نه لري چه پاسي و اوبه راواخلي او داسے سړے هم بيانه مومي چه هغه له اوبه وركړي دائے وئيلے دي چه هغه دے تيمم اوكړي. ابن عمرؓ د خپلے زمكے نه چه مقام جرف كښې وه راغے او د مازيكر وخت پرے مقام مربد النعم كښې راغے نو هغه تيمم اوكه او مونځ ئے اوكه. بيا مدينے ته داسے وخت كښې راوسيد چه نمر اوچت ولاړ وو او مونځ ئے دوباره اونه كه.

١. جُرُف د مدينے منورے نه مغرب طرفته د تبوک په لاره تقريبا اته ميله لرے دے دلته به د غزا د پاره اسلامي لښكر تياريدو. دلته د حضرت عمر رضي الله عنه زمكه وه. "مَرْبَدِ نَعَم" كوم ځائے كښې چه عبدالله بن عمر رضي الله عنها د مازيگر مونځ كړے وو هغه د مدينے منورے نه يو ميل لرے وو د دے نه معلوميږي چه د عبدالله بن عمر رضي الله عنها په نزد د اقامت په حالت كښې تيمم جائز وو هغوی او كړو او مونځ ئے ادا كړو لكه بل روايت كښې دا وضاحت سره شته.

۳۲۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ عَنِ الْاَعْرَجِ قَالَ سَمِعْتُ عُمَيْرًا مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَقْبَلْتُ اَنَا وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَسَارٍ مَوْلَى مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى دَخَلْنَا عَلٰى اَبِيْ جُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ الْاَنْصَارِيِّ فَقَالَ اَبُوْ جُهَيْمٍ اَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نَّحْوِ بِئْرِ جَمَلٍ فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَقْبَلَ عَلَى الْجِدَارِ فَمَسَحَ بِوَجْهِهٖ وَ يَدَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ.

۳۲۷: یحیی بن بکیر. لیث. جعفر بن ربیعه. اعرج د ابن عباسؓ آزاد کرده غلام عمیر روایت کوی: چه زهٔ او عبداللّٰه بن یسار. د بي بي میمونےؓ د حضورؐ د تبر د آزاد کرده غلام ابوجهیم بن حارث بن صمهٔ انصاري له ورغلو: نو ابوجهیم اووے: چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم بیر جمل طرف ته را روان دے. حضورؐ سره یو سړے یو خانے شو. نو هغهٔ حضورؐ ته سلام اوکهٔ: نبي صلے اللّٰه علیه وسلم هغهٔ له جواب ورنهٔ کهٔ. بلکه حضورؐ دیوال طرف ته متوجه شو: او هغے سره نے د خپل مخ او لاسونو مسح اوکړه. بیانے هغهٔ له د سلام جواب ورکړلو.

## باب ۲۳۶: هَلْ يَنْفُخُ فِيْ يَدَيْهِ بَعْدَ مَا يَضْرِبُ بِهِمَا الصَّعِيْدَ لِلتَّيَمُّمِ.

## باب ۲۳۶: تیمم د پاره چه په زمکه لاس او وهي: نو آیا دا جائز دي چه په پوزکي ترے خاوره والوخي.

۳۲۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ ثَنَا الْحَكَمُ عَنْ ذَرٍّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِؓ فَقَالَ اِنِّيْ اَجْنَبْتُ فَلَمْ اُصِبِ الْمَآءَ فَقَالَ عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِؓ اَمَا تَذْكُرُ اَنَّا كُنَّا فِيْ سَفَرٍ اَنَا وَ اَنْتَ فَاَجْنَبْنَا فَاَمَّا اَنْتَ فَلَمْ تُصَلِّ وَ اَمَّا اَنَا فَتَمَعَّكْتُ فَصَلَّيْتُ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ

۳۲۸: آدم. شعبه. حکم. ذر. سعید بن عبدالرحمن بن ابزي د خپل پلار نه روایت کوي: هغه اووے: چه حضرت عمر بن خطابؓ له یو سړے راغے: او وے ونیل: چه ماته د غسل ضرورت شو: او اوبه م بیانه مونده: نو عمار بن یاسر حضرت عمر بن خطابؓ ته اووے: تاسو ته یاد نه دي: چه موږ او تاسو سفر کښې وو: او جنب شولو: نو تاسو خو مونځ اونه کهٔ: او زهٔ (خاوره کښې) واوریدم: راواوریدم: او مونځ م اوکه. بیا ما نبي صلے اللّٰه علیه وسلم ته د دے بیان اوکهٔ: نو حضورؐ او

لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وسلم فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَفَّيْهِ الْاَرْضَ وَنَفَخَ فِيْهِمَا ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ.

فرمايل تاله دومره كافي وه (دے فرمانيلو سره) حضور دواړه لاسونه په زمكه اووهل او هغے له ئے پوكے وركړه بيائے هغے سره په خپل مخ او لاسونو مسح اوكړه.

۱ حضرت عمار رضي الله عنهما دا خيال اوكړو. چه څرنګ د اودس د پاره په تيمم كښې به لاس او مخه بناورد مسحه كول ضروري ده. داسے د غسل په تيمم كښې په ټول بدن بناوره مړل پكار دي. د دے نه دا معلوميږي چه د نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه كښې به صحابؤ كرامو رضي الله عنهم اجمعين احتهاد كولو. اګرچه د عمار رضي الله عنه اجتهاد غلط شو.

## باب ۲۳۷: التَّيَمُّمِ لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ.

## باب ۲۳۷: يوازے د مخ او لاسونو د تيمم بيان.

۳۲۹: حدثنا حجاج قَالَ ثنا شُعْبَةُ قَالَ اخبرنِى الْحكم عَنْ زِرٍّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَمَّارٌ بِهٰذَا وَضَرَبَ شُعْبَةُ بِيَدَيْهِ الْاَرْضَ ثُمَّ اَدْنَاهُمَا مِنْ فِيْهِ ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ وَقَالَ النَّضْرُ اَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ سَمِعْتُ ذَرًّا عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى قَالَ الْحَكَمُ وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَمَّارٌ.

۳۲۹: حجاج. شعبه. حكم. زر. سعيد بن عبدالرحمن بن ابزي د خپل پلار نه روايت كوي. عمار دا ټوله واقعه بيان كړه. او شعبه (چه د دے راوي دے) دواړه لاسونه په زمكه اووهل. بيائے هغه خپل مخ ته نزدے كړل او هغے سره ئے د خپل مخ او لاسونو مسح اوكړه. او نضر اووے چه ماته شعبه او شعبه د حكم نه روايت كړے دے. حكم اووے چه ما د ذر نه د ابن عبدالرحمن ابزي روايت كول واوريدل. حكم اووے چه ما دا د ابن عبدالرحمن ابزى نه هم اوريدلے دي. هغه د خپل پلار نه روايت اوكه چه عمار اووے.

۳۳۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ ذَرٍّ عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ شَهِدَ عُمَرَ وَقَالَ لَهُ عَمَّارٌ كُنَّا فِيْ سَرِيَّةٍ فَاَجْنَبْنَا وَقَالَ تَفَلَ فِيْهِمَا.

۳۳۰: سليمان بن حرب. شعبه. حكم. ذر. ابن عبدالرحمن ابزى د خپل پلار نه روايت كوي چه هغه حضرت عمر سره حاضر وو. هغه ته عمار اووے چه مونږ يو سريه (وړه غزا) كښې تللے وو. چه مونږ ته د غسل ضرورت شو. او (د نفخ فيهما په ځائے) تفل فيهما ئے اووے

۳۳۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ ذَرٍّ عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ عَمَّارٌ لِعُمَرَ تَمَعَّكْتُ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَكْفِيْكَ الْوَجْهُ وَالْكَفَّيْنِ.

۳۳۱: محمد بن كثير. شعبه. حكم. ذر. ابن عبدالرحمن ابزي د خپل پلار عبدالرحمن نه روايت كوي: هغه او فرمائيل: عمار حضرت عمرؓ ته بيان اوكړ: چه زۀ (دجنابت د تيمم د پاره په زمكه) واوړيدم راواوړيدم. بيا نبي صلى الله عليه وسلم ته حاضر شوم: نو حضورؐ او فرمائيل: چه تاله د مخ او دواړو لاسونو مسح كول كافي وو.

۳۳۲: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ ذَرٍّ عَنِ ابنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى عَنْ اَبِيْهِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ عَمَّارٌ لِعُمَرَ تَمَعَّكْتُ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَكْفِيْكَ الْوَجْهُ وَالْكَفَّيْنِ.

۳۳۲: مسلم بن ابراهيم. شعبه. حكم. ذر. ابن عبدالرحمن ابزي. عبدالرحمن نه روايت كوي: هغه اووے چه زۀ حضرت عمرؓ ته حاضر شوم او باقي پوره حديث ئے بيان كۀ.

۳۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ ثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ ذَرٍّ عَنِ ابُو عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰے عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَمَّارٌ فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وسلم بِيَدِهِ الْاَرْضَ فَمَسَحَ وَجْهَهٗ وَ كَفَّيْهِ.

۳۳۳: محمد بن بشار. غندر. شعبه. حكم. ذر. ابن عبدالرحمن ابزي د خپل پلار نه روايت كوي. عمار اووے: چه نبي صلے الله عليه وسلم خپل لاس په زمكه اووهلو: اوپه خپل مخ او دواړو لاسونوئے مسح كړے وه.

باب ۲۳۸: اَلصَّعِيْدُ الطَّيِّبُ وُضُوْٓءُ الْمُسْلِمِ يَكْفِيْهِ مِنَ الْمَآءِ وَ قَالَ الْحَسَنُ يَجْزِيْهِ التَّيَمُّمُ مَالَمْ يُحْدِثْ وَ اَمَّ ابْنُ عَبَّاسٍؓ وَهُوَ مُتَيَمِّمٌ وَ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ لَا بَاْسَ بِالصَّلٰوةِ عَلَى السَّبْخَةِ وَ التَّيَمُّمِ بِهَا.

باب ۲۳۸: پاكه خاوره (تيمم د پاره) د يو مسلمان په حق كښې اُوبو سره د اودس كولو كار وركوي. حسن بصري وئيلي دي: چه تيمم به د هغے وخته پورے كافي وي: څو پورے چه دوباره بے اودسه شوے نۀ وي. ابن عباس د تيمم په حالت كښې امامتي اوكړه. او يحيي بن سعيد وئيلي دي: چه شورا زمكه باندے مونځ كولو او هغے سره تيمم كولو كښې هيڅ حرج نشته. (شوره زمكه: بنوره زمكه).

۳۴۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا عَوْفٌ قَالَ ثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَّعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنَّا اَسْرَيْنَا حَتّٰى كُنَّا فِيْ اٰخِرِ اللَّيْلِ وَقَعْنَا وَقْعَةً وَّلَا وَقْعَةَ اَحْلٰى عِنْدَ الْمُسَافِرِ مِنْهَا فَمَا اَيْقَظَنَا اِلَّا حَرُّ الشَّمْسِ فَكَانَ اَوَّلَ مَنِ اسْتَيْقَظَ فُلَانٌ ثُمَّ فُلَانٌ ثُمَّ فُلَانٌ يُسَمِّيْهِمْ اَبُوْ رَجَاءٍ فَنَسِيَ عَوْفٌ ثُمَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ الرَّابِعُ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا نَامَ لَمْ نُوْقِظْهُ حَتّٰى يَكُوْنَ هُوَ يَسْتَيْقِظُ لِاَنَّا لَا نَدْرِيْ مَا يَحْدُثُ لَهٗ فِيْ نَوْمِهٖ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ عُمَرُ وَ رَاٰى مَآ اَصَابَ النَّاسَ و كَانَ رَجُلًا جَلِيْدًا فَكَبَّرَ وَ رَفَعَ صَوْتَهٗ بِالتَّكْبِيْرِ فَمَا زَالَ يُكَبِّرُ وَ يَرْفَعُ صَوْتَهٗ بِالتَّكْبِيْرِ حَتّٰى اسْتَيْقَظَ لِصَوْتِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ شَكَوْا اِلَيْهِ الَّذِيْ اَصَابَهُمْ فَقَالَ لَا ضَيْرَ اَوْ لَا يَضِيْرُ ارْتَحِلُوْا فَارْتَحَلَ فَسَارَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ثُمَّ نَزَلَ فَدَعَا بِالْوَضُوْءِ فَتَوَضَّاَ وَ نُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فَلَمَّا انْفَتَلَ مِنْ صَلٰوتِهٖ اِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُّعْتَزِلٍ لَمْ يُصَلِّ مَعَ الْقَوْمِ قَالَ اَصَابَتْنِيْ جَنَابَةٌ وَّلَا

۳۴۴: مسدد. يحيي بن سعيد. عوف. ابورجاء. حضرت عمرانؓ روايت كوي، چه مونږ يو سفر كښې ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ملګري وو. مونږ ذ شپے تلو. چه آخيره شپه شوه نو هغه وخت مونږ مقيم شو. او ذ مسافر په نزذ خوب نه زيات هيڅ څيز خوږنۀ وي. اوس لا مونږ لږ ساعت اُودۀ شوي وۀ، چه ذ نمر ګرمۍ مونږ را بيدار كړلو. ذ ټولو نه مخكښې چه كوم سړے بيدار شو. فلانے سړے وو. بيا فلانے بيا فلانے سړے (ابو رجاء د هغوي ټولو نومونه آخستے وو، خو عوف نه هير شول) بيا عمر بن خطاب بيدار شو و كښې خلورم سړے وو، او نبي صلے اللّٰه عليه وسلم چه به آرام كولو، نو چا به نۀ بيدارولو څو پورے چه خپله به بيدار شوے نۀ وو، ځكه چه مونږ به دے نۀ پوهيدو، چه حضورؐ ذ پاره خوب كښې كوم امور پيښيدونكي دي. خو كوم وخت چه عمرؓ بيدار شو، او هغۀ هغه حالت اوليد، چه په خلقو خور وو، او هغه سخت مزاجه سړے وو، نو هغۀ تكبير اووے. او تكبير سره ئے خپل آواز اوچت كۀ، او برابر تكبيرونه وئيلو، او تكبير سره ئے خپل آواز اوچتولو، تردے چه ذ هغۀ ذ آواز په سبب نبي صلے اللّٰه عليه وسلم بيدار شولو. حضورؐ چه بيدار شو، نو كوم مصيبت چه په خلقو تير شوے وو، د هغے شكايت حضورؐ ته اوكړے شو. نبي صلعم او فرمائيل، هيڅ نقصان نشته يا (دائے او فرمائيل چه) هيڅ نقصان به نۀ كيږي. ځئ بيا روان شو. او لږ لرے چه لاړل، نو كوز شولو. اودس ذ پاره اوبه ئے اوغوښتلے. بيائے اودس اوكړلو. او مونځ ذ پاره اذان اوشولو. حضورؐ خلقوته مونځ وركړلو. كوم وخت چه حضورؐ ذ مونځ نه فارغ شولو، نو ناساپه په يو داسے سړي ئے نظر پريوتلو چه ګُټ كښې ناست وو. خلقو سره هغۀ مونځ اونۀ كۀ. حضورؐ ورته او فرمائيل، اے فلانيه. تا خلقو سره (يو ځائے) مونځ ولے اونۀ كړلو. هغۀ عرض اوكۀ، چه ما ته ذ غسل ضرورت

مَـآءَ قَالَ فَعَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ فَاِنَّهُ يَكْفِيْكَ
ثُمَّ سَـارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَـاشْتَكٰى اِلَيْـهِ النَّـاسُ مِنَ
الْعَطْشِ فَنَزَلَ فَدَعَا فُلَانًا كَانَ يُسَمِّيْهِ
اَبُوْ رَجَـآءٍ نَسِيَـهُ عَوْفٌ وَّ دَعَا عَلِيًّا
فَقَـالَ اذْهَبَـا فَـابْتَغِيَـا الْمَآءَ فَانْطَلَقَا
فَتَـلَـقَّيَـا امْرَاَةً بَيْـنَ مَـزَادَتَيْـنِ اَوْ
سَطِيْحَتَيْـنِ مِـنْ مَّآءٍ عَلٰى بَعِيْرٍ لَّهَا
فَقَـالَ لَهَـآ اَيْـنَ الْمَآءُ قَـالَتْ عَهْدِيْ
بِـالْمَـآءِ اَمْــسِ هٰذِهِ السَّاعَةَ وَ نَفَرُنَا
خُـلُـوْفًـا قَالَا لَهَا انْطَلِقِيْ اِذًا قَالَتْ اِلٰى
اَيْـنَ قَـالَآ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ قَـالَتِ الَّذِيْ يُقَالُ لَهُ
الـصَّـابِئُ قَـالَ هُـوَ الَّـذِيْ تَـعْـنِيْـنَ
فَـانْطَلِقِيْ فَجَآءَ ا بِهَآ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَاهُ
الْحَدِيْثَ قَالَ فَاسْتَنْزَلُوْهَا عَنْ بَعِيْرِهَا
وَ دَعَـا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
بِـاِنَـآءٍ فَفَرَّغَ فِيْهِ مِنْ اَفْوَاهِ الْمَزَادَتَيْنِ
اَوِ السَّـطِيْحَتَيْـنِ وَ اَوْكَـاَ اَفْـوَاهَهُمَـا
وَاُطْـلِـقَ الْـعَزَالِي وَ نُوْدِي فِي النَّاسِ
اسْـقُـوْا وَاسْتَـقُـوْا فَسَقٰـى مَنْ سَقٰـى
وَاسْتَقٰـى مَنْ شَآءَ وَ كَانَ اٰخِرُ ذَاكَ اَنْ
اُعْـطِيَ الَّذِيْ اَصَابَتْهُ الْجَنَابَةُ اِنَـآءً مِّنْ
مَّـآءٍ قَـالَ اذْهَبْ فَاَفْرِغْهُ عَلَيْكَ وَ هِيَ
قَـائِـمَةٌ تَـنْـظُرُ اِلٰى مَا يُفْعَلُ بِمَآءِ هَا وَ

شوے وو او اوسه نه وے حضورؐ ورته او فرمائیل ستا د پاره به
خاوره تیمم کول کافي دي بيا نبي صلعم روان شو نو خلقو
حضورؐ ته د تندے (پیاس) شکایت اوکه. حضورؐ کوز شولو او
فلانے سړے نے راوبلو (ابو رجاء د هغه نوم اخستے وو خو د عوف
نه هیر شوے وو چه دواړه لاړ شئے. اوبه تلاش کړئے. دوي دواړه
روان شو نو یوه ښځه ئے اولیده چه د اوبو دوه تهیلئ یا دوه
مشکیزے ئے د اوښ په دواړه طرفه آویزانده کړے وے. او خپله
په مینځ کښې ئے ناسته وه تله سوره وه. دوي دواړو د هغے ښځے
نه تپوس اوکه چه اوبه کوم خائے دي هغے ورته اووے چه پرون
دا وخت زه په اوبو ووم. او خمونږ سړي ورک شوے دي. دوي
دواړو هغے ته اووے چه (بنه ده) اوس روانه شه. هغے اووے کوم
خائے ته. هغوي ورته اووے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته.
هغے اووے هغه سړے چه بے دینه بللے شي هغوی ورته اووے او
هم هغه دے چه تاسو ورته داسے وائے هغه روانه شوه نو هغوي
دواړو هغه ښځه رسول الله صلی الله علیه وسلم له راوسته او
حضورؐ ته ئے ټول حال بیان که. عمران وائي چه بیا خلقو هغه د
هغے د اوښ نه راکوزه کړه. او نبي صلی الله علیه وسلم یو لوښے
راوغوښتلو او د دواړو تهیلو یا مشکیزو خولے ئے هغے کښې
راپرانستے او (پس د هغے) د هغے لوئے خولے ئے بندے کړے او
وړے خولے ئے ورله آزادے کړے. او خلقو ته آواز اوکړے شو
چه راځئے اوبه اوڅکئے او خپل خاروهم اوبه کړئے. چا چه
غوښتل خپله ئے هم اوبه اوڅکلے او چا چه غوښتل خپلو
خناورو له ئے هم ورکړلے. آخیر ته داسے اوشوه چه کوم سړي نه
د غسل ضرورت شوے وو هغه ته د اوبو لوښے ورکړے شو
حضورؐ ورته او فرمائیل لاړ شه او دا (اوبه) په خان واچوه. هغه
ښځه ولاړه وه کتل ئے چه د هغے اوبو سره څه څه کیږي. به

أَيْمُ اللّٰهِ لَقَدْ أُقْلِعَ عَنْهَا وَ إِنَّهُ لَيُخَيَّلُ
إِلَيْنَا أَنَّهَا أَشَدُّ مِلْأَةً مِنْهَا حِيْنَ ابْتَدَأَ
فِيْهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ اجْمَعُوْا لَهَا فَجَمَعُوْا لَهَا مِنْ
بَيْنِ عَجْوَةٍ وَّ دَقِيْقَةٍ وَّ سَوِيْقَةٍ حَتّٰى
جَمَعُوْا لَهَا طَعَامًا فَجَعَلُوْهُ فِيْ ثَوْبٍ وَّ
حَمَلُوْهَا عَلٰى بَعِيْرِهَا وَ وَضَعُوْا
الثَّوْبَ بَيْنَ يَدَيْهَا فَقَالَ لَهَا تَعْلَمِيْنَ
مَا رَزِئْنَا مِنْ مَّائِكِ شَيْئًا وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ
هُوَ الَّذِيْ أَسْقَانَا فَأَتَتْ أَهْلَهَا وَقَدِ
احْتَبَسَتْ عَنْهُمْ قَالُوْا مَا حَبَسَكِ يَا
فُلَانَةُ قَالَتِ الْعَجَبُ لَقِيَنِيْ رَجُلَانِ
فَذَهَبَا بِيْ إِلَى هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يُقَالُ
لَهُ الصَّابِئُ فَفَعَلَ كَذَا وَ كَذَا فَوَاللّٰهِ
إِنَّهُ لَأَسْحَرُ النَّاسِ مِنْ بَيْنِ هٰذِهِ وَ هٰذِهِ
وَ قَالَتْ بِإِصْبَعَيْهَا الْوُسْطٰى وَ السَّبَّابَةِ
فَرَفَعَتْهُمَا إِلَى السَّمَاءِ تَعْنِي السَّمَاءَ
وَالْأَرْضَ أَوْ إِنَّهُ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ حَقًّا
فَكَانَ الْمُسْلِمُوْنَ بَعْدُ يُغِيْرُوْنَ عَلٰى
مَنْ حَوْلَهَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَلَا
يُصِيْبُوْنَ الصِّرْمَ الَّذِيْ هِيَ مِنْهُ
فَقَالَتْ يَوْمًا لِقَوْمِهَا مَا أُرٰى أَنَّ هٰؤُلَاءِ
الْقَوْمَ قَدْ يَدْعُوْنَكُمْ عَمْدًا فَهَلْ لَّكُمْ
فِي الْإِسْلَامِ فَأَطَاعُوْهَا فَدَخَلُوْا فِي
الْإِسْلَامِ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ صَبَا خَرَجَ
مِنْ دِيْنٍ إِلٰى غَيْرِهِ وَ قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ

اللّٰه م دے قسم وي هر كله چه د هغے تهيلئ (د اوبو اخستونه)
بنده شوه نو دا حال وو چه خمونږ په خيال كښې هغه د هغې
وخت نه هم زياته ډكه وه كوم وخت چه حضورؐ د هغے نه اوبه
اخستل شروع كړل. بيا نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل دے د
پاره څه جمع كړئ. نو خلقو ورله قجورے . ميده اوړه اوستوان
جمع كړل چه ښۀ مقدار كښې جمع شو. هغه ئے په يوه كپړه كښې
او تړل او هغه ښځه ئے په اوښ سوره كړه او هغه كپړه ئے ورته
مخے ته كيښوده. بيا حضورؐ هغے ښځے ته او فرمائيل چه ته څه
پوهيږے ستا د اوبو نه مونږ هيڅ هم نۀ دي كم كړے. خو الله په
مونږ اوبه اوڅكولے . اوس چه ښځه خپل كورته واپس راغله او د
هغے په واپسي كښې تاخير شوے وو نو هغوي (يعني د كور خلقو)
ورته اووے چه اے فلانئے ته څه څيز ايساره كړے وے. هغے ورته
اووے چه ډيو تعجب خبره ده. ماسره دوه سړي يو خائے شو او
هغوي زۀ هغے سړي له بوتلم چه هغۀ ته بے دين ونيلے شي هغه
داسے داسے كار او كړ خما دے په خدائے قسم وي چه هغه سړے
ټولو خلقو كښې لوئے جادو گر دے. او هغے خپلو دواړو گوتو
يعني د شهادت او مينځنۍ گوتے سره اشاره او كړه. بيا هغه ئے
آسمان طرف ته اوچتے كړے. مراد د هغے آسمان او زمكه وه يا دا
چه هغه په رښتيا د الله رسول دے. دے نه پس به مسلمانانو د
هغے د خواوشا مشركان لوټ كول او كوم مكاناتو سره چه هغه
(ښځه) وه هغے له به ئے گوتے نۀ وړ اوړلے. نو يو ورځے هغے خپل
قوم ته اووے زۀ په دے پوهيږم چه دا خلق قصدا تاسو پريږدي
(يعني دا مسلمانان تاسو نۀ لوټ كوي) اوس هم اسلام كښې ستاسو
څۀ شك شبهه شته. نو هغوي د هغے خبره اومنله. او اسلام كښې
داخل شو. (ابوعبدالله واني چه د "صبا" معني دي: د يو دين نه بل
دين طرف ته لاړ. او ابو العاليه وئيلے دي چه صابئين د اهل

الصَّابِئِيْنَ فِرْقَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ يَقْرَءُ وْنَ الزَّبُوْرَ اَصْبُ اَمِلْ. کتابـو یوه فرقه ده' چه زبور لولي. او دَاَصْبُ معني: زۀ به مائل شم.

۱. نقصـان په دې وجه اونشو چه نبي علیه السلام او صحابۀ کرامو رضي الله عنهم اجمعین دَ مونځ پـریخودلو نیت او اراده نه وه کړې' اګرچه مونځ قضا شو او په خپل اصلي وخت کښې ادا نه شو. دا آخري نقـصـان خواوشو. حدیث شریف کښې چه د نقصان نیشتوالي ذکر دے هغه' هغه نقصان دے چه د نیت سره وي د دے آخري نـقـصـان د نیشـت ذکـر نشته. رسول الله صلي الله علیه وسلم او صحابۀ کرام رضي الله عنهم پـه دے سـفـر کـښې د بې خبرئي په خوب اوده وو چه "نَمر" (نور) رااوختلو. او بیاهم څوک ویخ نه شـو. دا د الـلّـه تـعالٰي د لوبې' او د بې نیازئ ثبوت دے. چه د پیغمبر ئي د ټولو فضیلتونو سره سره نبي علیه السـلام د عـامـو بـنـیادمو پشان مجبوره کړے شو. اللّٰه تعالٰي نبي علیه السلام دنیا ته معلم رالیکلے وۀ او چه کـومـے خبـرے کـوم کـارونـه ضـروري وۀ نبي علیه السلام' امت ته د هغے تعلیم د عمل په ذریعه اوکړو. دا مـمـکنه ده چه اللّٰه تعالٰي په نبي علیه السلام باندے د غفلت دا خوب د دے مقصد د پاره راوستے وو حال دا دے چه صحیح حدیث شریف کښې راغلي دي چه د خوب په حالت کښې به د نبي علیه السلام مبارک زړه ویـخ او بیدار وو او هیڅ قسم غفلت ورباندے نه راتللو. کوم ځائے کښې چه نبي علیه السلام شپه تیره کړے وه د مـونـځ د پاره د هغه ځائے نه ئے لاړو او هلته ئے مونځ په جمعه ادا کړو. یا خو هغه د خوب ځائے کښې د نمر د راختلو وخت وو هغه وخت کښې مونځ کول مکروه دي. یائے دا وجه وه چه پ[illegible] ادا کولو کښې د بې خبرئ په وجه کوتاهي شوے وه. نو په هغه ځائے کښې نبي علیه السلام مونځ ادا کول مناسب نه ګنړل. لـکـه څرنګ چه حکم دے چه د جمعے د خطبے په وخت په چا د خوب چپه رازي هغي دے پاسي' او ځائے دے بدل کړي.

۲. د دے حـدیـث شـریف پـه بعضے روایتونو کښې راغلي دي چه نبي علیه السلام په لوښي کښې اوبه واخستے خپله خوله ئے کنګال کړه او بیائے د خپلے مبارکے خولے اوبه هغے وړو کې مشـک کښې واچولے' پـه هـغـه اوبـو کـښې دا بـرکـت' د نـبـي عـلیـه السلام د مبارکو توکانړو سره راغلے وۀ. دا د نبي علیه السلام معجزه وه. دے روایت باندے د مشک د خولے د ترلو فائده واضحه کیږي.

**بَاب ۲۳۹: اِذَا خَافَ الْجُنُبُ عَلٰى نَفْسِهِ الْمَرَضَ اَوِ الْمَوْتَ اَوْ خَافَ الْعَطْشَ تَيَمَّمَ وَ يُذْكَرُ اَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ اَجْنَبَ فِيْ لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ فَتَيَمَّمَ وَ تَلَا وَلَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُعَنِّفْ.**

**باب ۲۳۹:** کـوم سـړي ته چه د غسل ضرورت شـي' کـه هغۀ ته د مریض کیدو یا مړ کیدو خوف وي' نو تیـمـم دے اوکـړي. بیـانـولے شي چه عمرو بن عاص دَ یـخـنـئ په یوه شپه کښې جُنب شو' نو هغۀ تیمم اوکۀ' او: وَلَا تَـقْـتُـلُـوْا اَنْفُسَكُمْ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا: (او تاسو خپـل ځـانونه مۀ قتلوئے بیشکه الله په تاسو مهربانه دے) ئے تـلاوت کـۀ. بیـا دا واقـعـه رسـول الله صلعم ته بیان کړے شوه' نو حضور پرے ملامته اونه کړه.

۳۳۵: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ غُنْدُرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ اِذَا لَمْ يَجِدِ الْمَآءَ لَا يُصَلِّيْ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ نَعَمْ اِنْ لَّمْ اَجِدِ الْمَآءَ شَهْرًا لَّمْ اُصَلِّ لَوْ رَخَّصْتُ لَهُمْ فِيْ هٰذَا كَانَ اِذَا وَجَدَ اَحَدُهُمُ الْبَرْدَ قَالَ هٰكَذَا يَعْنِيْ تَيَمَّمَ وَصَلّٰى قَالَ قُلْتُ فَاَيْنَ قَوْلُ عَمَّارٍ لِعُمَرَ قَالَ اِنِّيْ لَمْ اَرَ عُمَرَ قَنِعَ بِقَوْلِ عَمَّارٍ.

۳۳۵: بشر بن خالد. محمد بن جعفر غندر. شعبه. سلیمان. ابووائل روایت کوي، چه ابو موسٰي، عبداللّٰه بن مسعودؓ ته اووے، که (د غسل ضرورت پوره کونکے) اُوبه بیانهٔ مومي، نو مونځ دے نهٔ کوي. عبداللّٰه اووے، او، که یو میاشتے پورے اوبه بیانه مومي، نو هم مونځ دے نهٔ کوي، زهٔ که هغهٔ ته دے باره کښې اجازت ورکړم، نو که هغوي کښې یخني اووینې نو هم تیمم سره به بیا مونځ کوي، ابو موسٰي وائي. ما اووے چه د عمار، عمرؓ ته وینا څهٔ شوله، عبداللّٰه اووے، چه عمرؓ د عمار په قول باور نهٔ دے کړے.

۳۳۶: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَبِيْ مُوْسٰى فَقَالَ لَهُ اَبُوْ مُوْسٰى اَرَاَيْتَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِذَا اَجْنَبَ فَلَمْ يَجِدْ مَآءً كَيْفَ يَصْنَعُ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَا يُصَلِّيْ حَتّٰى يَجِدَ الْمَآءَ فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى فَكَيْفَ تَصْنَعُ بِقَوْلِ عَمَّارٍ حِيْنَ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَكْفِيْكَ قَالَ اَلَمْ تَرَ عُمَرَ لَمْ يَقْنَعْ بِذٰلِكَ مِنْهُ فَقَالَ تَصْنَعُ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ فَمَادَرٰى عَبْدُ اللّٰهِ مَا يَقُوْلُ فَقَالَ اِنَّا لَوْ رَخَّصْنَا لَهُمْ فِيْ هٰذَا لَاَوْشَكَ اِذَا بَرَدَ عَلٰى اَحَدِهِمُ الْمَآءُ اَنْ يَّدَعَهُ وَ يَتَيَمَّمَ فَقُلْتُ لِشَقِيْقٍ فَاِنَّمَا كَرِهَ عَبْدُ اللّٰهِ لِهٰذَا فَقَالَ نَعَمْ.

۳۳۶: عمر بن حفص. حفص بن غیاث. اعمش. شقیق بن سلمه روایت کوي، چه زهٔ عبداللّٰه بن مسعودؓ او ابو موسٰيؓ سره ووم، نو ابو موسٰي، عبداللّٰه ته اووے چه، اے عبدالرحمانه، اووایه، چه کله یو سړي ته د غسل ضرورت شي او، اوبه بیانهٔ مومي، نو څهٔ به کوي؟ عبداللّٰه ورته اووے، مونځ دے نهٔ کوي، ځو پورے چه اوبه بیانهٔ مومي. ابو موسي ورته اووے، نه د عمار د واقعے متعلق څهٔ وائے، چه هغهٔ ته نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، تاله تیمم کول کافي وو. عبداللّٰه ورته اووے، تااونه لیدل، چه عمرؓ د عمار په دے قول باور اونهٔ کړ. ابو موسٰي ورته اووے، ښهٔ ده د عمار قول هم پریږده، تهٔ به د تیمم د آیت متعلق څهٔ وائے؟ نو د عبداللّٰه په پوهٔ کښې رانغله. چه څهٔ جواب ورکړي. بیاهم هغهٔ دا اووے، که مونږ دے خلقوله دے باره کښې اجازت ورکړو، نو بس که هغوي کښې چاته اُوبهٔ یخے معلومیږي، نو هغه به پریږدي و تیمم به کوي (سلیمان وائي) ما شقیق ته اووے چه عبداللّٰه بن مسعودؓ د تیمم اجازت صرف په دغے وجه ورنهٔ کهٔ، نو هغهٔ اووے چه او.

۱. معلوميږي چه حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت عمار رضي الله عنهما په خبره کښې خپل سوچ د دے مصلحت د خاطره ښکاره کړے وو. ليکن قرآن مجيد، احاديث، او د صحابو رضي الله عنهم اجمعين په طرز عمل کښې د جنابت د پاره د تيمم کولو دلائل شته دے او د جنابت تيمم په هغه څيزونو ماتيږي په کومو چه غسل واجبيږي.

## بـاب ۲۴۰: التَّيَمُّمِ ضَرْبَةٌ.

## باب ۲۴۰: تيمم کښې صرف يو ضرب دے

(يعني يو ځل زمکه وغيره وهل دي)

۳۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَّعَ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَبِیْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ فَقَالَ لَهٗ اَبُوْ مُوْسٰى لَوْ اَنَّ رَجُلًا اَجْنَبَ فَلَمْ يَجِدِ الْمَآءَ شَهْرًا اَمَا كَانَ يَتَيَمَّمُ وَ يُصَلِّيْ قَالَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَا يَتَيَمَّمُ وَ اِنْ كَانَ لَمْ يَجِدْ شَهْرًا فَقَالَ لَهٗ اَبُوْ مُوْسٰى فَكَيْفَ تَصْنَعُوْنَ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ فِیْ سُوْرَةِ الْمَآئِدَةِ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَوْ رُخِّصَ فِیْ هٰذَا لَهُمْ لَاَوْشَكُوْا اِذْ اَبْرَدَ عَلَيْهِمُ الْمَآءُ اَنْ يَّتَيَمَّمُوا الصَّعِيْدَ قُلْتُ وَ اِنَّمَا كَرِهْتُمْ هٰذَا لِذَا قَالَ نَعَمْ فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى اَلَمْ تَسْمَعْ قَوْلَ عَمَّارٍ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ بَعَثَنِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِیْ حَاجَةٍ فَاَجْنَبْتُ فَلَمْ اَجِدِ الْمَآءَ فَتَمَرَّغْتُ فِی الصَّعِيْدِ كَمَا تَمَرَّغُ الدَّآبَّةُ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۳۳۷: محمد بن سلام، ابومعاويه، اعمش، شفيق روايت کوي، چه زهٔ (يوه ورځ) عبدالله بن مسعود او ابو موسي اشعري سره ناست ووم، نو عبدالله ته ابو موسي اووے، که يو سړے جُنب شي، او يوه مياشت پورے اُوبه بيانهٔ مومي، نو آيا هغه تيمم سره مونځ کولے شي. شقيق وائي، عبدالله ورته اووے چه تيمم دے نهٔ کوي، اګر که مياشت پورے اوبه بيانهٔ مومي، نو هغهٔ ته ابوموسي اووے، چه تهٔ د سورة مائده دا آيت نهٔ وينے: فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا: نو عبدالله اووے، که خلقو ته دے باره کښې اجازت ورکړے شي، نو بس هغوي ته چه کله اوبه يخے ښکاره شي، نو خاورے سره به تيمم کوي (سليمان وائي) ما (شقيق ته) اووے، چه تا د تيمم اجازت صرف په دغے خيال ورنهٔ کړ، نو هغهٔ اووے، چه او. بيا ابو موسي اووے، آيا تا د عمار نه عمر بن خطاب ته دا وينا نهٔ ده آوريدلے، چه رسول الله صلے الله عليه وسلم زهٔ څهٔ کار د پاره بهر اوليږلم. نو (لار کښې) ما ته د غسل ضرورت شو، او ما اوبه بيا نهٔ موندلے، نو زهٔ (تيمم د پاره) په زمکه د ځناور په شان اورغړيدم، بيا ما رسول الله صلے الله عليه وسلم ته د دے ذکر اوکهٔ، نو حضورؐ راته او فرمائيل، تاله صرف دا شان کول کافي وو، او حضورؐ خپل تلي (ښځيلي) سره زمکه يو ځل

وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّمَا يَكْفِيكَ اَنْ تَصْنَعَ هٰكَذَا وَ ضَرَبَ بِكَفِّهِ ضَرْبَةً عَلَى الْاَرْضِ ثُمَّ نَفَضَهَا ثُمَّ مَسَحَ بِهَا ظَهْرَ كَفِّهِ بِشِمَالِهِ اَوْ ظَهْرَ شِمَالِهِ بِكَفِّهِ ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اَلَمْ تَرَ عُمَرَ لَمْ يَقْنَعْ بِقَوْلِ عَمَّارٍ وَّ زَادَ يَعْلٰى عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَبِيْ مُوْسٰى فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى اَلَمْ تَسْمَعْ قَوْلَ عَمَّارٍ لِعُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَنِيْ اَنَا وَ اَنْتَ فَاَجْنَبْتُ فَتَمَعَّكْتُ بِالصَّعِيْدِ فَاَتَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْنَاهُ فَقَالَ اِنَّمَا كَانَ يَكْفِيْكَ هٰكَذَا وَ مَسَحَ وَجْهَهُ وَ كَفَّيْهِ وَاحِدَةً.

او وهله. بیائے تلے او ئخندلو. دے نه پس نے د خپل لاس شا گس لاس سره مسح کړه (یا دائے اووے' چه د خپل گس لاس شا' نے لاس سره مسح کړه. بیائے هغے لاسونو سره خپل مخ مسح کړ. عبدالله اووے' آیا تا اونه لیدل چه عمرؓ د عمار په قول مطمئن نه شو. یعلي د اعمش نه او هغهٔ د شقیق نه دومره زیات روایت اوکړ' شقیق اووے' چه زهٔ عبدالله او ابو موسي سره ملګرے ووم' نو ابو موسي' عبدالله ته اووے' چه تا د عمار وینا عمرؓ ته نه ده آوریدلے' چه رسول الله صلے الله علیه وسلم زهٔ اوتهٔ (چرته بهرته) لیږلے وو. نو (د سفر دوران کښ) زهٔ جُنب شوم. زه (د تیمم په غرض) په زمکه اورغړیدم بیا مونږ رسول الله صلے الله علیه وسلم له راغلو' او حضورؐ مو خبر کړلو. نو حضورؐ راته او فرمائیل' تاله صرف داسے کول کافي وو' او حضورؐ خپل مخ او لاسونه یو ځل مسح کړل.

۱. په دے روایت کښ دا ذکر شویدي چه نبي علیه الصلاة والسلام یو ځل په بناوره لاس کیخودل او بیائے په مخ او لاسونو مسحه اوکړه. نورو روایاتو کښ دا په تفصیل سره بیان دے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم دوه ځله په بناوره لاس وهل نو هغے روایاتو له په دے روایت ترجیح ورکړے شویده.

## باب ۲۴۱:

## باب ۲۴۱: (دا باب بے عنوانه دے)

۳۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا عَوْفٌ عَنْ اَبِيْ رَجَاءٍ قَالَ ثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ الْخُزَاعِيُّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا مُّعْتَزِلًا لَّمْ يُصَلِّ فِي الْقَوْمِ فَقَالَ يَا فُلَانُ مَا مَنَعَكَ اَنْ تُصَلِّيَ فِي الْقَوْمِ فَقَالَ يَا

۳۳۸: عبدان. عبدالله. عوف. ابورجاء. عمران بن حصین خزاعي روایت کوي' چه رسول الله صلے الله علیه وسلم یو سړے کُټ کښ ناست اولید' چه هغهٔ خلقو سره (یو ځائے) مونځ ادا نه کړ' نو حضورؐ ورته او فرمائیل. اے فلانیه' تا خلقو سره په جمع ولے مونځ اونهٔ کړلو. نو هغهٔ عرض اوکړ' یا رسول الله' ماته جنابت

رَسُوْلَ اللّٰهِ اَصَابَتْنِيْ جَنَابَةٌ وَّلَا مَآءَ قَالَ عَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ فَاِنَّهٗ يَكْفِيْكَ.

شوے دے' او اوبه نشته' نو حضورﷺ ورته او فرمائيل' ستا د پاره خاورے سره تيمم كول كافي دي.

# كِتَابُ الصَّلٰوةِ

## (دَ مونځ بيان)

۱. صلوٰة هر هغه عبادت ته ويلے شي چه د الله تعالىٰ د لوئي او د هغه د ويرے نه ادا كولے شي. د صلوٰة د معنىٰ په فراخئ چه غور او كړے شي نو ټول مخلوق كښې دا صفت شته د هر مخلوق (مونځ) صلوٰة طريقه د هغه د شكل و صورت مناسب ده. قرآن مجيد كښې الله فرمائي. كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَ تَسْبِيْحَهٗ ټول (مخلوق) ته د خپل مونځ (صلوٰة) او تسبيح طريقه معلومه ده. د دے آيت نه معلومه شوه. چه په ټول مخلوق مونځ شته' صرف طريقه او شكل ئے جدا جدا دے داسے ټول مخلوق الله تعالىٰ ته سجده كوي. قرآن مجيد كښې الله تعالىٰ فرمائي. وَ لِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ او الله تعالىٰ ته هغه (ټول) مخلوق سجده كوي كوم چه په آسمانونو او زمكه كښې دي. د صلوٰة (مونځ) په معنىٰ كښې دومره خوروالے او فراخي ده. چه الله تعالىٰ هم صلوٰة ادا كوي. علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه د معراج په واقعه كښې يو حديث بيان كړيدے چه په هغے كښې دي. "اے محمد (صلي الله عليه وسلم). اودريږه (صبر او كړه) ستا رب په صلوٰة (مونځ) كښې مشغول دے' د الله تعالىٰ مونځ د هغه شان سره مناسب دے د خالق مونځ او د مخلوق مونځ جدا جدا دي. مخكني امتونو به هم مونځ كولو ليكن خمونږ په شريعت كښې مونځ د يو خاص عبادت نوم دے چه د هغے خاص اعمال او اركان دي په صف كښې (قطار) ادا كول دي دا د دے امت يو خصوصيت دے چه په صفونو په امامت سره مونځ په يو ځائے ادا كوي. نورو اُمتونو به صفونو كښې مونځ نه كوؤ اګرچه په امامتي سره يو ځائے به ئے مونځ كولو.

بَابُ ۲۴۲: كَيْفَ فُرِضَتِ الصَّلٰوةُ فِي الْاِسْرَآءِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ فِيْ حَدِيْثِ هِرَقْلَ فَقَالَ يَاْمُرُنَا يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّلٰوةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ.

باب ۲۴۲: دَ معراج په شپه مونځ څنګه فرض شو. ابن عباسؓ وئيلے دي' چه ماته ابوسفيان بن حرب دَ هرقل په حديث كښې بيان او كړ' چه هغهٔ (يعني نبي صلے الله عليه وسلم) مونږ ته دَ مونځ او د رښتياؤ او پاكدامنئے حكم راكوي.

۱. د دے نه د امام بخاري رحمة الله عليه دا مقصد دے چه مونځ دَ موجوده تفصيلاتو سره د معراج په شپه فرض شوے وؤ ليكن د هغے نه وړاندے به مسلمانانو هم مونځ كولو ځكه چه د ابوسفيان رضي الله عنه ملاقات دَ هرقل سره او د رسول الله صلي الله عليه وسلم په حقله خبره دَ معراج دَ واقعے نه وړاندے وه. او ابوسفيان (رضي الله عنه) ملاقات كښې هرقل ته ويلے وو "چه هغه مونږ ته دَ مونځ حكم راكوي.

۳۳۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

۳۳۹: يحيي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب.

قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ اَبُوْ ذَرٍّ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُرِجَ عَنْ سَقْفِ بَيْتِيْ وَ اَنَا بِمَكَّةَ فَنَزَلَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَفَرَجَ صَدْرِيْ ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِّنْ ذَهَبٍ مُّمْتَلِئٍ حِكْمَةً وَّ اِيْمَانًا فَاَفْرَغَهُ فِيْ صَدْرِيْ ثُمَّ اَطْبَقَهُ ثُمَّ اَخَذَ بِيَدِيْ فَعَرَجَ بِيْ اِلَى السَّمَاءِ فَلَمَّا جِئْتُ اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا قَالَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ افْتَحْ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا جِبْرِيْلُ قَالَ هَلْ مَعَكَ اَحَدٌ قَالَ نَعَمْ مَّعِيَ مُحَمَّدٌ فَقَالَ ءَ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا فَتَحَ عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا فَاِذَا رَجُلٌ قَاعِدٌ عَلٰى يَمِيْنِهٖ اَسْوِدَةٌ وَّ عَلٰى يَسَارِهٖ اَسْوِدَةٌ اِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِيْنِهٖ ضَحِكَ وَ اِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهٖ بَكٰى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاِبْنِ الصَّالِحِ قُلْتُ لِجِبْرِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا اٰدَمُ وَ هٰذِهِ الْاَسْوِدَةُ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَ شِمَالِهٖ نَسَمُ بَنِيْهِ فَاَهْلُ الْيَمِيْنِ مِنْهُمْ اَهْلُ الْجَنَّةِ وَالْاَسْوِدَةُ الَّتِيْ عَنْ شِمَالِهٖ اَهْلُ النَّارِ فَاِذَا نَظَرَ عَنْ يَمِيْنِهٖ ضَحِكَ وَ اِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهٖ بَكٰى حَتّٰى عَرَجَ

انس بن مالكؓ روايت كوي، ابوذر به بيان كولو: چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل (بوه شپه) خما د كور چهت اوشليدلو. اوزهٔ مكه كښې ووم. بيا جبرائيل عليه السلام راغے، او هغهٔ خما سينه څيرے كړه. بيائے د زمزم په اوبو اووينزله. بيائے د سرو يوه پيالئے د حكمت او ايمان نه ډكه راوړله، او هغه ئے خما په سينه كښې تونے كړه. بيائے خما سينه بنده كړه. بيائے خما لاس اونيولو، او زهٔ ئے آسمان ته اوخيژولم. كوم وخت چه زهٔ د دُنيا آسمان ته اُورسيدم. نو جبرائيلؑ د آسمان داروغه ته اووے، دروازه لرے كړه. هغهٔ اووے څوك دے، دهٔ اووے، جبرئيلؑ دے. بيا هغهٔ اووے، آيا تاسره نور څوك هم شته. جبرئيل اووے. او. ماسره ملګرے محمدؐ دے. هغهٔ اووے، آيا دے بللے شوے دے، جبرائيلؑ اووے. او. كوم وخت چه دروازه پرانستے شوه، نو مونږ د دُنيا آسمان ته پورته اوختو. ناساپه په يو داسے سړي مو نظر پريوتلو، چه ناست وو، د هغهٔ ښي طرف ته هم څنے خلق وو، او كس طرف ته ئے هم خلق هغهٔ چه به خپل ښي طرف ته اوكتل، نو خاندل به ئے، او چه كس طرف ته به ئے اوكتل، نو ژړل به ئے، هغهٔ چه زهٔ اوليدم، نو وے وئيل: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاِبْنِ الصَّالِحِ: ما جبرائيلؑ نه تپوس اوكهٔ، دا څوك دے. هغهٔ اووے، دا آدم عليه السلام دے او دا خلق چه ددهٔ ښي او كس طرف ته دي، د دهٔ د اولاد رُوحونه دي، چه هغے كښې د ښي طرف خلق جنتيان دي او كس طرف ته دوزخيان دي، په دے وجه چه هغه خپل ښي طرف ته او ګوري نو اوخاندي، او چه كس طرف ته اوګوري، نو اوژاړي، تردے چه زهٔ ئے دوئم آسمان ته بوتلم، او د هغے داروغه ته ئے اووے، دروازه پرانزه، نو هغهٔ سره داروغه هغه قسم خبرے اترے اوكړے، څنګه چه

بِىْ اِلَى السَّمَآءِ الثَّانِيَةِ فَقَالَ لِخَازِنِهَا افْتَحْ فَقَالَ لَهٗ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُ فَفَتَحَ قَالَ اَنَسٌ فَذَكَرَ اَنَّهٗ وَجَدَ فِى السَّمٰوٰتِ اٰدَمَ وَ اِدْرِيْسَ وَ مُوْسٰى وَ عِيْسٰى وَ اِبْرَاهِيْمَ وَلَمْ يُثْبِتْ كَيْفَ مَنَازِلُهُمْ غَيْرَ اَنَّهٗ ذَكَرَ اَنَّهٗ وَجَدَ اٰدَمَ فِى السَّمَآءِ الدُّنْيَا وَ اِبْرَاهِيْمَ فِى السَّمَآءِ السَّادِسَةِ قَالَ اَنَسٌ فَلَمَّا مَرَّ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاِدْرِيْسَ قَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا اِدْرِيْسُ ثُمَّ مَرَرْتُ بِمُوْسٰى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا مُوْسٰى ثُمَّ مَرَرْتُ بِعِيْسٰى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا عِيْسٰى ثُمَّ مَرَرْتُ بِاِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاِبْنِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ اِبْرَاهِيْمُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِىْ ابْنُ حَزْمٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَّ اَبَا حَبَّةَ الْاَنْصَارِىَّ كَانَا يَقُوْلَانِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عَرَجَ بِىْ حَتّٰى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى اَسْمَعُ فِيْهِ صَرِيْفَ الْاَقْلَامِ قَالَ ابْنُ حَزْمٍ وَّ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

مخکښي داروغه کړے وے. بیا دروازه پرانستے شوه. انسؓ وائي چه بیا ابوذرؓ ذکر اوکۀ چه حضورؐ آسمانونو کښې آدمؑ، ادریسؑ، موسیٰؑ، عیسیٰؑ او ابراهیمؑ اولیدلو، او دا بیان ئے اونۀ کۀ، چه ذ هغوي درجے څنګه دي، سوا ذ دے نه چه هغوي دا ذکر کړے دے چه آدمؑ م ذ دُنیا آسمان کښې او ابراهیم علیه السلام م شپږم آسمان کښې اولید. انسؓ وائي بیا چه جبرائیلؑ نبي صلعم واخست اوپه ادریس علیه السلام تیریدلو، نو هغۀ ورته اووے: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ . (حضورؐ فرمائي) ما جبرائیلؑ نه تپوس اوکۀ، دا څوک دے، نو جبرائیلؑ اووے، دا ادریسؑ دے. بیا زۀ په موسیٰؑ تیر شوم. هغۀ چه ماته اوکتل، نووے وئیل: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ: ما جبرائیلؑ نه تپوس اوکۀ، دا څوک دے، نو جبرائیلؑ اووے، دا موسیٰؑ دے. بیا زۀ په عیسیٰؑ تیریدم، نو هغۀ راته اووے: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ: ما تپوس اوکۀ دا څوک دے، جبرائیل راته اووے، دا عیسیٰؑ دے. بیا زۀ په ابراهیم علیه السلام تیریدم، نو هغۀ راته اووے: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ: ما تپوس اوکۀ، دا څوک دے، نو جبرائیلؑ اووے. دا ابراهیم علیه السلام دے. ابن شهاب وائي. ماته ابن حزم خبر راکۀ، چه ابن عباسؓ او ابوحبه انصاري اوئي، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل. بیائے زۀ پورته بوتلم، تردے چه زۀ یو داسے اوچت مقام ته اورسیدم، چه هلته ما (ذَ فریښتو) ذ قلمونو (ذَ کشکش) آواز اوریدلو. ابن حزم او انس بن مالکؓ وائي، چه نبي صلعم او فرمائیل. بیا اللّٰه تعالیٰ څما په اُمت پنځوس مونځونه فرض کړل. دے فریضے سره چه زۀ راواپس شوم. او په موسیٰؑ تیریدم، نو موسیٰؑ اووے چه اللّٰه ستاسو ذَ پاره ستاسو په اُمت څۀ فرض کړل. ما ورته اووے، پنځوس مونځونه ئے فرض

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَرَضَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ
عَلٰى اُمَّتِيْ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً فَرَجَعْتُ
بِذٰلِكَ حَتّٰى مَرَرْتُ عَلٰى مُوْسٰى
فَقَالَ مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَكَ عَلٰى اُمَّتِكَ
قُلْتُ فَرَضَ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً قَالَ
فَارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَاِنَّ اُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ
فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ اِلٰى
مُوْسٰى قُلْتُ وَضَعَ شَطْرَهَا فَقَالَ رَاجِعْ
رَبَّكَ فَاِنَّ اُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ ذٰلِكَ فَرَجَعْتُ
فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ اِلَيْهِ فَقَالَ
ارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَاِنَّ اُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ
ذٰلِكَ فَرَاجَعْتُهُ فَقَالَ هِيَ خَمْسٌ وَّ هِيَ
خَمْسُوْنَ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ فَرَجَعْتُ
اِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَقُلْتُ
اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَّبِّيْ ثُمَّ انْطَلَقَ بِيْ
حَتّٰى انْتَهٰى بِيْ اِلَى السِّدْرَةِ الْمُنْتَهٰى
وَ غَشِيَهَا اَلْوَانٌ لَّا اَدْرِيْ مَاهِيَ ثُمَّ
اُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ فَاِذَا فِيْهَا حَبَائِلُ
اللُّؤْلُؤِ وَ اِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ.

کړل، هغهٔ چه دا واوریدل نو ورې ونیل چه خپل الله ته بیا
واپس لاړ شه، په دې چه ستا اُمت د دومره عبادت کولو طاقت
نهٔ لري زهٔ واپس لاړم، نو الله د هغې یوه حصه معاف کړه. بیا
زهٔ موسیٰ له راغلم، او ورته م اووې، چه الله د دې یوه حصه
معاف کړه. موسیٰ بیا هغسې اووې، چه خپل پروردګار ته
رجوع اوکړه، ځکه چه ستاسو اُمت د دې هم طاقت نهٔ لري.
بیا ما رجوع اوکړه، نو الله د هغې یوه بله حصه هم معاف کړه،
بیا زهٔ هغهٔ له واپس راغلم (او بیان م ورته اوکړ) نو هغهٔ اووې،
چه خپل پروردګار له واپس لاړ شه، ځکه چه ستاسو اُمت د
دې هم طاقت نهٔ لري. نو ما بیا الله ته رجوع اوکړه، نو الله او
فرمائیل بنهٔ ده، اوس دې پنځه (مونځونه) وي. او دا (حقیقت
کښې په اعتبار د ثواب) پنځوس دي، ما سره خبره بدلیږي نه.
بیا زهٔ موسیٰ له راغلم. هغهٔ راته اووې. بیا خپل پروردګار ته
رجوع اوکړه. ما ورته اووې، اوس ماله د خپل پروردګار نه
(په بیابیا ونیلو) شرم راځي. بیا زهٔ روان کړې شوم، تر دې چه
زهٔ سدرة المنتهیٰ ته اورسولې شوم، او په هغې ډیر رنګونه
خوارهٔ شوې وو، زهٔ پوهه نهٔ شوم، چه دا څهٔ دي. بیا زهٔ جنت
کښې داخل کړې شوم، نو (څهٔ ګورم چه) هغې کښې د ملغلرو
لړئ (لړیان) دي او د هغې خاوره د مشک ده.

١. د زمکې نه چه آسمان طرفته روان شي نو د ټولونه وړاندې چه د آسمان طبقه رازي هغې ته "د دُنیا آسمان" ویلې شي. د احادیثو نه معلومیږي چه د آسمان اوه طبقې دي دا طبقې د انسان د طاقت نه بهر دي. په اسلام کښې د آسمان څه خاص مقرر والې بیان نه دې چه دا جوهر یا عرض دې قرآن مجید او احادیثو کښې د دې څه بیان نشته. د آسمان په حقله د سائنس ماهرانو مختلفو زمانو کښې مختلف طریقو سره تحقیقات کړیدي د موجوده زمانې د فلکیاتو د ماهرینو دا خیال دې چه آسمان یو لطیف (باریکه) فضا ده چه د هغې څه حد نشته او مختلف سیارې اوستورې پکښې چورلې راچورلي. د دې نظریې د پاره هغوي سره څه واضح دلیل نشته هغوي د خپل فکر او هوښیارتیا په رڼرا کښې دا نظریه وړاندې کړیده. هم دائې وجه ده چه مختلفو اوقاتو کښې خلقو مختلفې نظریې پیش کړیدي. علامه شاه انور شاه کشمیري رحمة الله

عليه د موجوده زمانے د ماهرانو رائے څه حده پورے صحيح منلے ده. هغه ليکلے دي چه مونږ د دے نظريے، د اسلامي تصريحاتو او بيان سره به داسے وضاحت کوؤ. چه دا فضا چه څه حد نه لري نه خلاصيدونکے ده دا په مختلف طبقاتو کښې تقسيم ده او د هر طبقے نوم آسمان دے نو داسے د اسلامي تصريحاتو مطابق د اوه آسمانونو تقسيم آسانيدے شي. (د مترجم دا نظريه ده چه احاديثو صحيحو کښې د اوه آسمانونو ذکر دے د هغے د پاره د دروازو، او دروانچيانو ذکر دے چه د هغوي په اجازت سره حضرت جبرائيل او رسول الله عليهم الصلاة والسلام د آسمانونو سفر کړے وؤ. مونږ چه کله دغه احاديث صحيح منو نو بيا مونږ د فلکياتو د ماهرينو نظريے نشو منلے ‌ذ دغے خلقو نظريه "د كُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ" هم مخالفه ده).

۲. اول پنځوس مونځونه فرض شو. بيا پنځه پاتے شو. دا منسوخ کيدل د حکم نه وؤ دا د الله تعالیٰ مرضي وه چه پدے امت پنځه مونځونه فرض کړي. دا طريقه ځکه غوره کړے شوه. چه مقصدئے زيات بنکاره شي چه مونځونه پنځه دي او ثواب د پنځوسو ورکول دي. دے روايت کښې څه خاص د کميدو اندازه ذکر شوے نه ده صرف د "شطر" لفظ دے د هغے معني ده، نيمه، حصه، بعض رواياتو کښې د لسو د کمي ذکر دے. صحيح خبره داده. چه د پنځو سونه پنځه پنځه به کميدل تردے چه آخر کښې پنځه پاتے شو. بيا نبي عليه الصلاة والسلام د بيا ورتلونه حيامحسوس کړه ځکه چه بيا د تلو مطلب داوؤ چه هړو مونځ دے معاف شي. بيا نبي عليه السلام ته د الله تعالیٰ دا وينا معلومه شوے وه مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ..... خما وينا ما سره نه بدليږي. او د الله تعالیٰ رضا دا ده چه پنځه مونځه پاتے شي.

**۳۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَتْ فَرَضَ اللّٰهُ الصَّلٰوةَ حِيْنَ فَرَضَهَا رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ فَأُقِرَّتْ صَلٰوةُ السَّفَرِ وَزِيْدَ فِيْ صَلٰوةِ الْحَضَرِ.**

۳۴۰: عبدالله بن يوسف. مالک. صالح بن کيسان. عروه بن زبير. اُم المؤمنين بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه الله کوم وخت مونځ فرض کړے وو، نو دوه رکعاتہ ئے فرض کړے وو. په حضر (قيام) کښې هم او سفر کښې هم. خو د سفر مونځ (په خپل اصلي حالت) قائم پاتے شو، او د حضر يعني په خپل وطن کښې مونځ کښې زياتے او کړے شو.

**باب ۲۴۳: وُجُوْبِ الصَّلٰوةِ فِي الثِّيَابِ وَ قَوْلُ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّمَنْ صَلّٰى مُلْتَحِفًا فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ وَّ يُذْكَرُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَزُرُّهٗ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ وَّ فِيْ اِسْنَادِهٖ نَظَرٌ**

**باب ۲۴۳:** کپړے اغستلے مونځ کول (فرض) دي. ‌ذ الله تعالیٰ ارشاد "تاسو د هر مونځ په وخت خپل زينت (يعني لباس) اغندئے: په دے دليل دے. او کوم سړے چه يوه کپړه ‌د ځان نه راتاؤ کړي او مونځ او کړي، نو دا هم درست ده. او سلمه بن اکوع نه روايت دے، چه نبي صلی الله عليه وسلم او فرمائيل، خپله قبا او ګنډئے اګر که آزغي سره وي. او د دے په اسناد کښې اعتراض دے، او کوم

وَمَنْ صَلّٰى فِي الثَّوْبِ الَّذِيْ يُجَامِعُ فِيْهِ مَالَمْ يَرَ فِيْهِ اَذًى وَ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ لَا يَطُوفَ فِي الْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

سړے چه هغه جامو کښې مونځ اوکړي چه هغې کښې کور والے (صحبت) کوي خو پورے چه هغې کښې پلیدي اونه وینې او نبي کریم صلي الله علیه وسلم حکم کړے وو چه هیڅوک لغړ د د بیت الله طواف نه کوي.

۱. آیت کښې د مونځ (صلوٰة) په ځائے د جمات (مسجد) لفظ ذکر دے خکه چه د مونځ ادا کولو حقیقي او مناسب ځائے جمات دے عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دے چه یوے ښځے به بربنډه طواف کولو په بربنډه طواف کولونه د منع کولو د پاره دا آیت شریف نازل شو. د قرآن مشهور مفسر حضرت مجاهد رحمة الله علیه په دے خبره د امت اتفاق نقل کړے دے چه د خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ مطلب عورت پټول دي مشرکانو په بربنډه طواف کول ثواب ګنړلو. د "زینة" په لفظ کښې دیته اشاره ده. چه د مونځ په وخت جامے کپړے د کاروبار د اوقاتو نه زیاتے ښے پکار دي. احادیثو کښې هم دیته اشاره شویده او فقهاؤ هم ددے تاکید کړیدے. د مونځ په وخت انسان د الله په دربار کښې خپله عاجزي او عرض وړاندے کوي. ظاهره ده. چه د مونځ د پاره زیاته صفائي او پاکوالے پکار دے او پدے سره زیات ثواب ور کیږي.

۳۴۱: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ اُمِرْنَا اَنْ نُّخْرِجَ الْحُيَّضَ يَوْمَ الْعِيْدَيْنِ وَ ذَوَاتِ الْخُدُوْرِ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ دَعْوَتَهُمْ وَ تَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ عَنْ مُصَلَّاهُنَّ قَالَتِ امْرَاَةٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِحْدَانَا لَيْسَ لَهَا جِلْبَابٌ قَالَ لِتَلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا.

۳۴۱: موسٰي بن اسمٰعیل. یزید بن ابراهیم. محمد. اُم عطیهؓ روایت کوي چه مونږ ته حضورؐ حکم راکړے وو چه د اختر په ورځ دے حائضے او پرده نشینے ښځے بهر اوخي چه د مسلمانانو په جماعت کښې او د هغوي دُعا کښې شریکے شي. او حائضے ښځے دے د مونځ د ځائے نه جدا اوسي (یعني مونځ دے نهٔ کوي) یو ښځے عرض اوکړ یا رسول اللهؐ که مونږ کښې چا سره لوپټه نهٔ وي (هغه څهٔ اوکړي) نو حضورؐ ورته او فرمائیل د هغے ملګرے له پکار دي چه خپله لوپټه پرے واچوي.

## بَاب ۲۴۴: عَقْدِ الْاِزَارِ عَلَى الْقَفَا فِي الصَّلٰوةِ وَ قَالَ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ صَلَّوْا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَاقِدِيْ اُزُرِهِمْ عَلٰى عَوَاتِقِهِمْ.

باب ۲۴۴: مونځ کښې د تهبند (لنګ. دهوتي) په شا د تړلو بیان. او ابو حازم د سهل بن سعد نه روایت کړے دے چه صحابه د نبي صلعم سره تهبندونه په اوږو تړلو سره مونځ کړے دے.

**٣٤٢:** حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ ثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ وَاقِدُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ صَلّٰى جَابِرٌ فِيْ إِزَارٍ وَاحِدٍ فَقَالَ إِنَّمَا صَنَعْتُ ذٰلِكَ لِيَرَانِيْ أَحْمَقُ مِثْلُكَ وَ أَيُّنَا كَانَ لَهٗ ثَوْبَانِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**٣٤٢:** احمد بن يونس. عاصم بن محمد. واقد بن محمد. محمد بن منكدر روايت كوي چه (يو ځلې) جابرؓ خپل تهبند كښې چه هغه په خپله شا تړلې وو، مونځ اوكړ سره د دې چه د هغهٔ كپړې په ميخ پرتې وې. نو يو ويونكي ورته اووې، چه تاسو يو پرتوګ كښې مونځ كوې، هغه ورته اووې، داسې ما خكه اوكړل، چه ستا غندې كم عقل ما اوويني او (تهٔ دومره هم نه پوهيږې چه) د رسول الله په زمانه كښې به مونږ كښې هيچا سره دوه كپړې نه وې.

**ف:** كونتي: (ميخ يا موړې د اوسپنې يا د لرګي چه كپړې پرې آويزاندولې شي)

**٣٤٣:** حَدَّثَنَا مُطَرِّفُ أَبُوْ مُصْعَبٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِيْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُنْكَدِرٍ قَالَ رَأَيْتُ جَابِرًا يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ وَّ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ.

**٣٤٣:** مطرف. ابو مصعب. عبدالرحمٰن بن ابي الموالي. محمد بن منكدرؒ روايت كوي، چه ما جابرؓ يوه كپړه كښې مونځ كونكې ليدلې دې، او هغهٔ وئيلي دي چه ما نبي صلي الله عليه وسلم يوه كپړه كښې مونځ كونكې ليدلې دې.

## باب ٢٤٥: الصَّلٰوةُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ مُلْتَحِفًا بِهٖ

وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْ حَدِيْثِهٖ الْمُلْتَحِفُ الْمُتَوَشِّحُ وَهُوَ الْمُخَالِفُ بَيْنَ طَرَفَيْهِ عَلٰى عَاتِقَيْهِ وَهُوَ الْاِشْتِمَالُ عَلٰى مَنْكِبَيْهِ وَ قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ اِلْتَحَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَوْبٍ لَهٗ وَ خَالَفَ بَيْنَ طَرَفَيْهِ عَلٰى عَاتِقَيْهِ.

**باب ٢٤٥:** صرف يوه كپړه رانغښتلو كښې د مونځ كولو بيان. او زهري خپل حديث كښې بيان كړې دې. چه د ملتحف معني د متوشح دي او متوشح هغه سړې دې، چه د څادر دواړه سرونه په خپلو دواړو اوږو واچوي، او هم دا د اشتمال علىٰ منكبيه، مطلب دې او ام هاني وئيلي دي، چه نبي صلي الله عليه وسلم خپلې يوې كپړې سره التحاف اوكړ، چه د هغې دواړه سرونه ئې په خپلو دواړو اوږو واچول.

**٣٤٤:** حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى قَالَ أَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِيْ سَلَمَةَ أَنَّ

**٣٤٤:** عبيد الله بن موسٰي. هشام بن عروه عروه. عمرو بن ابي سلمهٔ نه روايت كوي، چه نبي صلى الله عليه وسلم يوه كپړه كښې

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ قَدْ خَالَفَ بَيْنَ طَرَفَيْهِ.

مونځ او کړ. ذ هغې دواړو سرونو کښې نې فرق پیدا کړ، چه یو سر، نې په یوه اوږه او بل سر نې په بله اوږه واچولو.

۳۴۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ ثَنَا هَشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عُمَرَ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّهُ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ فِيْ بَيْتِ اُمِّ سَلَمَةَ قَدْ اَلْقٰى طَرَفَيْهِ عَلٰى عَاتِقَيْهِ.

۳۴۵: محمد بن مثنی. یحیٰی. هشام. عروه. عمر بن ابي سلمهؓ نه روایت کوي، هغه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم ذ اُم هاني کور کښې یوه کپړه کښې مونځ کونکې اولیدلو، چه حضورؐ ذ هغې دواړه سرونه په خپلو دواړو اوږو اچولي وو.

۳۴۶: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَهُ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ مُشْتَمِلًا بِهٖ فِيْ بَيْتِ اُمِّ سَلَمَةَ وَاضِعًا طَرَفَيْهِ عَلٰى عَاتِقَيْهِ.

۳۴۶: عبید بن اسمٰعیل. ابو اسامه. هشام. عروه. عمر بن ابي سلمهؓ روایت کوي، چه ما ذ اُم سلمه کور کښې نبي صلی اللّٰه علیه وسلم سره یوه کپړه کښې مونځ کونکې لیدلې دې. حضورؐ ذ هغې اشتمال کړې وو، یعني ذ هغې دواړه سرونه نې په خپلو دواړو اوږو اچولي وو.

۳۴۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى اُمِّ هَانِيءٍ بِنْتِ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اُمَّ هَانِيءٍ بِنْتَ اَبِيْ طَالِبٍ تَقُوْلُ ذَهَبْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُّهُ يَغْتَسِلُ وَ فَاطِمَةُ اِبْنَتُهُ تَسْتُرُهُ قَالَتْ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ

۳۴۷: اسمٰعیل بن ابي اویس. مالک بن انس ابو النضر (ذ عمر بن عبیداللّٰه آزاده کړده غلام). ابو مره (ذ اُم هاني بنت ابي طالب آزاد کړده غلام) اُم هاني بنت ابو طالب روایت کوي، زهٔ رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم له ذ مکې ذ فتح په کال ورغلم، نو حضورؐ غسل کولو، او ذ حضورؐ لور بي بي فاطمهؓ په حضورؐ پرده کړې وه. اُم هاني وائي. ما حضورؐ ته سلام او کړ. حضورؐ او فرمائیل، خوک دي. ما عرض او کړ زهٔ اُم هاني ذ ابي طالب

فَقَالَ مَنْ هٰذِهِ فَقُلْتُ اَنَا اُمُّ هَانِيءٍ بِنْتُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ مَرْحَبًا بِاُمِّ هَانِيءٍ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهٖ قَامَ فَصَلّٰى ثَمَانَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَلَمَّا انْصَرَفَ، قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زَعَمَ ابْنُ اُمِّيْ اَنَّهٗ قَاتِلٌ رَجُلًا قَدْ اَجَرْتُهٗ فُلَانُ بْنُ هُبَيْرَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَجَرْنَا مَنْ اَجَرْتِ يَا اُمَّ هَانِيءٍ قَالَتْ اُمُّ هَانِيءٍ وَّ ذَاكَ ضُحًى.

نو ربـه حـضـور ﷺ نو فرمائيل: مرحبا (په خير راغلې) ام هاني ساجـه حـضـورﷺ د غسل نه فارغ شولو، نو اودريدلو او يـوه كپـړه ئـې د خـانـه جاپيره كړه، او اته ركعاته مونځ ئـې اوكړلو. چه فارغ شـو، نو ما عرض اوكـه: يـا رسـول الـلـه، خما د پلار خوئې (علي مرتضیؓ) وائي چه زه بـه يـو سـړے وژنـم، حالانكه ما هغه له پناه وركړے ده. د هبيـره فلاني خوئ له نو رسول الله صلعم او فـرمـائـيـل: ام هـانيّ، چاله چه تا پناه وركړے ده، هغه له مونږ هم پناه وركړے ده. اُم هانيؓ وائي، دغه (مونځ د) څاخت وو.

۱. بعضے علماؤ ليكلي دي چه دا د څاخت مونځ نه وو بلكه نبي عليه السلام د مكے د فتحه كيدو د شـكـريـے ادا كـولـو د پـاره مونځ كوو. د ابو داؤد په روايت كښ دي. چه نبي عليه السلام اته ركعاته مونځ كړے وو. او هـر دوو ركعاتونه پس ئے سلام گرځولے وو. د څاخت د مونځ د ثواب په حقله ډير احاديث موجود دي. ليكن پخپله نبي عليه السلام د څاخت مونځ ډير كم اوقاتو كښ ادا كړے وو دے كښ حكمت او مصلحت وو.

۳۴۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ سَائِلًا سَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلٰوةِ فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَ لِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ.

۳۴۸: عبدالـلّـٰـه بـن يوسف. مـالك ابن شهـاب. سـعيـد بـن مسيـب. ابـو هـريـرهؓ روايـت كـوي، دَ رسـول الـلّٰـه نـه چـا يوه كپړه كښ دَ مـونـځ كـولـو حـكـم او غـوښـتـلـو، نـو رسـول الـلّـٰـه صلي الـلّٰـه عليـه وسلـم ورتـه او فـرمائيل آيـا تـاسـو كـښ هـر چـا سـره دوه كپـړے شتـه. (يعني يوه كپړه كښ مونځ جائز دے).

## بَابٌ ۲۴۶ : اِذَا صَلّٰى فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَلْيَجْعَلْ عَلٰى عَاتِقَيْهِ.

## بـاب ۲۴۶ : چـه يـوه كپـړه كـښ مونځ كوي، نو پكـار دي، چـه دَ هغـے څـهٔ حصه پـه اوږه واچوي.

۳۴۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۳۴۹: ابـوعـاصـم. مـالـك. ابـوالـزنـاد. عبدالرحمن. اعرج. ابوهريرهؓ روايت كوي. رسول الله

اَلْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّيْ اَحَدُكُمْ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلٰى عَاتِقَيْهِ شَيْءٌ.

صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' تاسو كښې دې هيڅوک داسې يوه كپړه كښې مونځ نه كوي' چه هغې كښې دَ هغهٔ په اُوږه هيڅ نه وي (يعني دَ هغې څهٔ حصه نې په اوږه نهٔ وي).

٣٥٠: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ ثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عِكْرَمَةَ قَالَ سَمِعْتُهُ اَوْ كُنْتُ سَاَلْتُهُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ يَقُوْلُ مَنْ صَلّٰى فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ.

٣٥٠: ابونعيم. شيبان. يحيٰي بن ابي كثير. عكرمه. ابوهريره روايت كوي' زهٔ گواهي كوم چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نا ما دا آوريدلې دي' چه كوم سړې يوه كپړه كښې مونځ كوي' نو دَ هغې دَ دواړو سرونو په مينځ كښې فرق كول پكار دي (چه دواړه سرونه په اُوږو واچوي)

## بَابُ ٢٣٧: اِذَا كَانَ الثَّوْبُ ضَيِّقًا.

## باب ٢٣٧: چه كپړه تنګه وي (نو مونځ به څنګه كوي)

٣٥١: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ صَالِحٍ قَالَ ثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ سَاَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ الصَّلٰوةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَقَالَ خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ فَجِئْتُ لَيْلَةً لِبَعْضِ اَمْرِيْ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّيْ وَ عَلَيَّ ثَوْبٌ وَّاحِدٌ فَاشْتَمَلْتُ بِهٖ وَصَلَّيْتُ اِلٰى جَانِبِهٖ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ مَا السُّرٰى يَا جَابِرُ فَاَخْبَرْتُهُ بِحَاجَتِيْ فَلَمَّا فَرَغْتُ قَالَ مَا هٰذَا الْاِشْتِمَالُ الَّذِيْ رَاَيْتُ قُلْتُ كَانَ ثَوْبًا قَالَ فَاِنْ كَانَ وَاسِعًا فَالْتَحِفْ بِهٖ

٣٥١: يحيٰي بن صالح. فليح بن سليمان. سعيد بن حارث وائي' چه مونږ دَ جابر بن عبداللّٰهؓ نه يوه كپړه كښې دَ مونځ كولو حكم اوپښتهٔ' نو هغهٔ اووې' زهٔ نبي صلعم سره يو سفر كښې لاړم' يوه شپه دَ خپل څهٔ ضرورت دَ مخه حضورؐ له راغلم' نو حضورؐ م په مونځ كولو اوليد. او ځما په جسم يوه كپړه وه' نو ما هغه دَ ځان نه راتاؤ كړه' او دَ حضورؐ په آړخ كښې اودريدم' ما هم ورسره مونځ اوكړ' كوم وخت چه حضورؐ فارغ شو' نو ورې فرمائيل' اې جابره' دَ شپې څنګه راتلل اوشو' نو ما حضورؐ ته خپل ضرورت بيان كړ' كوم وخت چه زهٔ فارغ شوم' نو حضورؐ او فرمائيل' دا كپړه را تاويدل (له تانه) چه ما اوليدل' دا څنګه وو' ما عرض اوكړ بس يوه كپړه وه. نو حضور او فرمائيل كه كپړه فراخه وي' نو هغې سره التحاف كوه (يعني دوه سرونه نې په اوږو واچوه. يو سر په يوه اوږه او بل سر په بله

وَ اِنْ كَانَ ضَيِّقًا فَاتَّزِرْبِهٖ.　　اُو (ه) اوكه كپړه تنكه وي، نو ذ هغې نه لنګ جوړوه.

١. حضرت جابر رضي الله عنه ته مسئله معلومه نه وه له دے كبله هغه د جامے (كپړے) غاړے خپلے خنے لاندے كلكے كړے وے داسے بنده تنګيږي پكار داوۀ چه كپړا ئے ترلے وه ځكه چه كپړه ئے تنكه وه. ارته نه وه.

٣٥٢: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيٰنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ كَانَ رِجَالٌ يُّصَلُّوْنَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَاقِدِيْ اُزْرِهِمْ عَلٰى اَعْنَاقِهِمْ كَهَيْئَةِ الصِّبْيَانِ وَ يُقَالُ لِلنِّسَاۤءِ لَا تَرْفَعْنَ رُءُ وْسَكُنَّ حَتّٰى يَسْتَوِى الرِّجَالُ جُلُوْسًا.

٣٥٢: مسدد. يحيي. سفيان. ابوحازم. سهل روايت كوي چه ځنے خلقو به نبي صلي الله عليه وسلم سره داسے مونځ كولو، لكه هلكان چه خپل تهبندونه په خپلو اوږو تړي او ښځو ته به وئيلے شو، چه څو پورے سړي نيغ كينني، نو خپل سرونه مۀ اوچتوئے.

باب٢٤٨: الصَّلٰوةِ فِي الْجُبَّةِ الشَّامِيَّةِ وَ قَالَ الْحَسَنُ فِي الثِّيَابِ يَنْسَجُهَا الْمَجُوْسُ لَمْ يَرَبِهَا بَأْسًا وَّ قَالَ مَعْمَرٌ رَّاَيْتُ الزُّهْرِيَّ يَلْبَسُ مِنْ ثِيَابِ الْيَمَنِ مَا صُبِغَ بِالْبَوْلِ وَ صَلّٰى عَلِيُّ بْنُ اَبِي طَالِبٍ فِيْ ثَوْبٍ غَيْرِ مَقْصُوْرٍ.

باب٢٤٨: جُبه شاميه كښې ذ مونځ كولو بيان. حسن بصري وئيلے دي، هغه كپړو كښې مونځ كول، چه هغه مجوسيان جوړوي، هيڅ حرج نشته. او معمر وئيلے دي، چه ما زهري ذ يمن دوه كپړے اغوستے ليدلے دے چه وړو بولو سره به رنګولے شوے. او عليّ بن ابي طالب ناوينځلے كپړه كښې مونځ كړے دے.

١. امام بخاري رحمة الله عليه دا مسئله بيانوي. چه كومے جامے (كپړے) به عربي طرز ډول جوړے شوے نه وي. په هغے كښې مونځ ادا كولو كښې څه ګناه نشته. نبي عليه الصلاة والسلام شامي جُبه (چوغه) كښې مونځ كړے وۀ. كه په دے كښې څه ګناه وے نو نبي عليه الصلاة والسلام به پكښې ولے مونځ ادا كولو. امام بخاري دلته د پاكئ پليتئ بيان نه كوي امام زهري رحمة الله عليه د اكثر اماموانو د فقهے د مسلك مطابق وارۀ بول پليت كنړي. پاک ئے نه ګنړي. مصنف عبدالرزاق كښې د امام زهري مسلک ئے دا ليكلے دے او د صحيح بخاري بعضے بابونو كښې دے طرفته اشاره شته. د حضرت معمر رضي الله عنه په دے روايت داسے ويلے شي چه امام زهري به كپړے ښے اُوينزلے بيا به ئے اغوستلے.

٣٥٣: حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ ثَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ مُغِيْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

٣٥٣: يحيي. ابومعاويه. اعمش. مسلم. مسروق. مغيره بن شعبهؓ روايت كوي: زۀ نبي صلي الله عليه وسلم سره يو سفر كښې ووم. حضورؐ او فرمائيل: اے مغيره، ذ اُوبو لوښے پورته

وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَقَالَ يَا مُغِيْرَةُ خُذِ الْاِدَاوَةَ فَاَخَذْتُهَا فَانْطَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تَوَارٰى عَنِّيْ فَقَضٰى حَاجَتَهٗ وَ عَلَيْهِ جُبَّةٌ شَامِيَّةٌ فَذَهَبَ لِيُخْرِجَ يَدَهٗ مِنْ كُمِّهَا فَضَاقَتْ فَاَخْرَجَ يَدَهٗ مِنْ اَسْفَلِهَا فَصَبَبْتُ عَلَيْهِ فَتَوَضَّأَ وُضُوْٓءَهٗ لِلصَّلٰوةِ وَ مَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ ثُمَّ صَلّٰى.

کړه، ما پورته کړه. بیا حضورؐ روان شو، تردې چه خما نه پناه شو، او حضورؐ خپل ضرورت رفع کړه. دغه وخت دَ حضورؐ په جسم جبه شامیه وه. حضورؐ خپل لاس دَ هغې دَ لستونړي نه راوبنکل، خو هغه دَ تنګئ په وجه پورته نهٔ ختل نو حضورؐ خپل لاس د هغې دَ دننه نه راوبنکلو. بیا ما دَ حضورؐ په اندامونو مبارکو اوبه واچولې، او حضورؐ دَ مونځ دَ اودس په شان اودس اوکړ، او په موزونې مسح اوکړه. بیائې مونځ اوکړ.

## بَابُ ۲۴۹ : كَرَاهِيَةِ التَّعَرِّيْ فِي الصَّلٰوةِ وَ غَيْرِهَا.

## باب ۲۴۹ : مانځه او بې مانځه کښې دَ بربنډ کیدو دَ کراهت بیان.

۳۵۴: حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ ثَنَا رَوْحٌ ثَنَا زَكَرِيَّآءُ بْنُ اِسْحَاقَ قَالَ ثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْقُلُ مَعَهُمُ الْحِجَارَةَ لِلْكَعْبَةِ وَ عَلَيْهِ اِزَارُهٗ فَقَالَ لَهُ الْعَبَّاسُ عَمُّهٗ يَا ابْنَ اَخِيْ لَوْ حَلَلْتَ اِزَارَكَ فَجَعَلْتَ عَلٰى مَنْكِبَيْكَ دُوْنَ الْحِجَارَةِ قَالَ فَحَلَّهٗ فَجَعَلَهٗ عَلٰى مَنْكِبَيْهِ فَسَقَطَ مَغْشِيًّا عَلَيْهِ فَمَا رُئِيَ بَعْدَ ذٰلِكَ عُرْيَانًا.

۳۵۴: مطر بن فضل. روح. زکریا بن اسحاق عمرو بن دینار. جابر بن عبداللّٰهؓ روایت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم دَ کعبې (دَ تعمیر) دَ پاره قریشو سره کانړي اوچتول. او د حضورؐ په جسم تهبند تړلې وو، نو حضورؐ ته خپل تره عباسؓ اووې، کاش چه تا خپل تهبند لرې کړې وې، او هغه دې په خپلو اوږو دَ کانړو لاندې ایښې وې. جابرؓ وائي چه حضورؐ تهبند پرانست، په اوږونې واچولو، نو بیهوشه شو او راوغرځیدلو. دې نه پس حضورؐ هیڅ کله بې جامې نه دې لیدلې شوې.

١. دا دَ نبي علیه السلام د بعثت نه وړاندې واقعه ده. او خدائے تعالي په دغه وخت هم د نبي علیه السلام حفاظت اوکړو په روایتو کښې چه کله نبي علیه السلام ته لنګ اوتړلې شو نو هغه په هوش کښې راغلې وو فقهاؤ لیکلې دي چه په انسان باندې اولنې فرض ایمان دې بیا خپل د عورت خایونه پټول دي. په عام حالاتو کښې هم فرض دي او د مونځ د پاره شرط هم دې.

## بَابُ ۲۵۰ : اَلصَّلٰوةُ فِيْ

## باب ۲۵۰ : قمیص. پرتوګ. تُبّان (لنګوټ).

الْقَمِيصِ وَ السَّرَاوِيلِ وَالتُّبَّانِ وَالْقَبَاءِ.

نیکر) او قبا کښې ذ مونځ کولو بیان.

۳۵۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ ثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ عَنِ الصَّلٰوةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَقَالَ أَوَ كُلُّكُمْ يَجِدُ ثَوْبَيْنِ ثُمَّ سَأَلَ رَجُلٌ عُمَرَ فَقَالَ إِذَا وَسَّعَ اللّٰهُ فَأَوْسِعُوا جَمَعَ رَجُلٌ عَلَيْهِ ثِيَابَهُ صَلّٰى رَجُلٌ فِي إِزَارٍ وَرِدَاءٍ فِي إِزَارٍ وَ قَمِيصٍ فِي إِزَارٍ وَ قَبَاءٍ فِي سَرَاوِيلَ وَ رِدَاءٍ فِي سَرَاوِيلَ وَ قَمِيصٍ فِي سَرَاوِيلَ وَ قَبَاءٍ فِي تُبَّانٍ وَ قَبَاءٍ فِي تُبَّانٍ وَ قَمِيصٍ قَالَ وَ فِي أَحْسِبُهُ قَالَ فِي تُبَّانٍ وَرِدَاءٍ.

۳۵۵: سلیمان بن حرب. حماد بن یزید. ایوب محمد.
ابوهریرهؓ روایت کوي، چه یو سړے نبي صلے الله علیه وسلم ته (متوجه شو، او) اودرید، او ذ حضورؐ نه ئې یوه کپړه کښې ذ مونځ کولو حکم اوپښتنه، نو حضورؐ ورته او فرمائیل آیا تاسو کښې هر سړي سره دوه کپړے شته. بیاهم دغه مسئله یو سړي د عمرؓ نه اوپښتله، نو هغهٔ ورته او فرمائیل چه الله دربانديے فراخي راولي، نو تۀ هم ذ فراخي نه کار آخله (اوس) پکار دي، چه هر سړے خپلے کپړے (دوه دوه) اغندي. څوک دے تهبند او څادر کښې مونځ کوي، څوک دے تهبند او قمیص کښې. څوک دے تهبند او قبا کښې څوک دے پرتوک او څادر کښې. څوک دے پرتوک او قمیص کښې. څوک دے پرتوک او قبا کښې. څوک دے لنګوټ او قبا کښې او څوک دے لنګوټ (یا نیکر) او قمیص کښې مونځ کوي. ابو هریرهؓ وائي، حضرت عمرؓ دا هم اوويے، چه څوک دے لنګوټ او څادر کښې مونځ کوي.

۳۵۶: حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ فَقَالَ لَا يَلْبَسُ الْقَمِيصَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ فَمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتّٰى يَكُوْنَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۳۵۶: عاصم بن علي. ابن ذئب. زهري.
سالم ابن عمرؓ روایت کوي، یو سړي ذ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوکهٔ، محرم به څهٔ واغندي، نو حضورؐ ورته او فرمائیل نهٔ دے قمیص اغندي، نهٔ پرتوک، نهٔ برقع اونهٔ داسے کپړه، چه زعفران پرے لړیدلے وي، اونهٔ داسے کپړه چه ورس پرے لړیدلے وي. بیاکه څوک پنړے بیانهٔ مومي، نو موزے دے واچوي. او هغه پریکول پکار دي چه ذ ګیټو نه لاندے شي (نافع ذ ابن عمرؓ نه هغه ذ نبي صلے الله علیه وسلم نه ذ دے په مثل روایت کړے

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

دے)

ف: ورس: يو قسم رنګ دے.

بَابُ ٢٥١ : مَا يُسْتَرُ مِنَ الْعَوْرَةِ.

باب ٢٥١ : دَ سترِ عورت بيان.

٣٥٧: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّهُ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اِشْتِمَالِ الصَّمَّآءِ وَ أَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ.

٣٥٧: قتيبه بن سعيد. ليث. ابن شهاب. عبيد اللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. ابو سعيد خدريؓ روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ اشتمال صماء نه او داسے کپړے اغوستو نه (چه شرم ګاه ورسره څرګند پاتے شي او مونځ ورسره کوي) منع فرمائيلے ده.

٣٥٨: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ عَنِ اللِّمَاسِ وَالنِّبَاذِ وَ أَنْ يَشْتَمِلَ الصَّمَّآءَ وَ أَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ.

٣٥٨: قبيصه بن عقبه. سفيان. ابو الزناد. اعرج. ابوهريرهؓ روايت کوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ دوه قسمه بيع نه منع فرمائيلے ده. لماس او نباذ او دغه شان دَ اشتمال صماء نه او احتباء نه (دَ دے دواړو معني تيرے شوے دي).

١. په لغت عربي کښ ټول بدن په کپړو جامو پټولو ته صماء ويلے شي چه يو طرفته پرانستلے نه وي او بهر طرفته لاس را اوباسل هم ګران وي. ليکن فقهاؤ د دے صورت داسے ليکلے دے چه کپړا په ټول بدن خوره کړے شي بدن پکښ پټ شي. بيا د کپړے يوه غاړه په اوږه واچولے شي نو په داسے صورت کښ شرمګاه ښکاري. فقهاء چه کوم د صماء صورت بيانوي دا د حديث شريف تفسير مطابق دے او په داسے طريقه مونځ کول حرام دي. په عربي لغت کښ چه څه ته صماء وائي په هغے کښ مونځ مکروه دے.

٢. اِحتباء ديته ويلے شي چه بنده کيني خپلے پنډۍ او ګيډه په يوه کپړا او تړي بيا بله کپړه په خان بنوره کړي. عرب خلق به خپل مجلسونو کښ داسے کيناستل په دے طريقه د عورت خايونه پوره نه پټيږي نو اسلام پدے طريقه کيناستل منعه کړيدي.

٣. په عربو کښ د خرڅولو اخستلو يوه طريقه دا وه چه اخستونکي به سترږے پټے کړے په څه څيز به ئے لاس او لګولو ديته لماس ويلے شي. بله طريقه داوه چه خرڅګونکي به څه څيز اخستونکي ته اويشتلو د خرڅونکي سترږے به پټے وے ديته نباذ وائي دا دواړه طريقے اسلام کښ منعه دي. چه خرڅولو اخستلو کښ د اسلام اصول دا دي. چه په داسے طريقه دے معامله اوشي چه خرڅونکے او اخستونکے په بے خبرۍ کښ دهوکه نشي.

۳۵۹: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ قَالَ ثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَنَّ ابْنَ اَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِيْ اَبُوْبَكْرٍ فِيْ تِلْكَ الْحَجَّةِ فِيْ مُؤَذِّنِيْنَ يَوْمَ النَّحْرِ نُؤَذِّنُ بِمِنًى اَنْ لَّا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَّلَا يَطُوْفَ فِي الْبَيْتِ عُرْيَانٌ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ثُمَّ اَرْدَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا فَاَمَرَهٗ اَنْ يُّؤَذِّنَ بِبَرَآءَةٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَاَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ فِيْ اَهْلِ مِنًى يَّوْمَ النَّحْرِ لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَّلَا يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

۳۵۹: اسحاق. یعقوب بن ابراهیم. د ابن شهاب وراره (محمد بن عبدالله) زهري. حمید بن عبدالرحمن بن عوف. ابوهریرهٔ روایت کوي چه زهٔ ابوبکرؓ د خپل امیر حج کیدو په ورځ د مؤذنانو په زمره کښې اولیږم' مونږ مني کښې دا اعلان اوکړو' چه دے کال نه پس به هیڅ مشرک حج نهٔ کوي' او نه به څوک په بربنډه طواف کوي. حمید بن عبدالرحمن (چه د ابو هریرهٔ دا حدیث روایت کوي) وائي' بیا رسول الله صلعم (ابوبکر پسے) عليؓ اولیږلو' او هغه ته ئې حکم ورکهٔ' چه د سورت برأت اعلان اوکړي. عليؓ د قرباني په ورځ مونږ سره منٰي کښې خلقوته اعلان اوکهٔ' چه دے کال نه پس دے هیڅ مشرک حج نهٔ کوي او نهٔ دے څوک په بربنډه طواف کوي.

## بَاب ۲۵۲: الصَّلٰوةِ بِغَيْرِ رِدَآءٍ.

## باب ۲۵۲: بے څادره دَ مونځ کولو بیان.

۳۶۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ بْنُ اَبِي الْمَوَالِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَهُوَ يُصَلِّيْ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ مُلْتَحِفًا بِهٖ وَ رِدَآءُهٗ مَوْضُوْعٌ فَلَمَّا انْصَرَفَ قُلْنَا يَا اَبَا عَبْدِ اللّٰهِ تُصَلِّيْ وَرِدَآءُكَ مَوْضُوْعٌ قَالَ نَعَمْ اَحْبَبْتُ اَنْ يَّرَانِي الْجُهَّالُ مِثْلُكُمْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ كَذَا.

۳۶۰: عبدالعزیز بن عبدالله. ابن ابي الموالي. محمد بن منکدر روایت کوي' چه زهٔ جابر بن عبدالله له لاړم' هغهٔ یوه کپړه کښې التحاف کړے مونځ کولو. او دَ هغهٔ څادر پروت وو. کوم وخت چه فارغ شو' نو مونږ ورته اووے' اے ابو عبدالله' تاسو مونځ کوئے' او څادر موجد اپروت دے. هغهٔ اووے او. ما دا غوښتل' چه ستاسو غندے جاهلان ما اووینی (واورئے) ما نبي صلي الله علیه وسلم دغسے مونځ کولو باندے لیدلے دے.

## بَاب ۲۵۳: مَا يُذْكَرُ فِي

## باب ۲۵۳: دَ ورونر (پتون) باره کښې چه کوم

الْفَخِذِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ يُرْوٰى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَّ جَرْهَدٍ وَّ مُحَمَّدِ بْنِ جُحْشٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْفَخِذُ عَوْرَةٌ وَّ قَالَ اَنَسٌ حَسَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ فَخِذِهٖ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ حَدِيْثُ اَنَسٍ اَسْنَدُ وَ حَدِيْثُ جَرْهَدٍ اَحْوَطُ حَتّٰى نَخْرُجَ مِنْ اِخْتِلَافِهِمْ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى غَطَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُكْبَتَيْهِ حِيْنَ دَخَلَ عُثْمَانُ وَ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فَخِذُهٗ عَلٰى فَخِذِىْ فَثَقُلَتْ عَلَيَّ حَتّٰى خِفْتُ اَنْ تَرُضَّ فَخِذِىْ.

روايتونه راغلي دي، ذَ هغې بيان (يعني ذَ هغې پټول ضروري دي يا نه) امام بخاريؒ وائي، ذَ ابن عباسؓ او جرهد او محمد بن حجش روايت د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه دا دې چه ورونږ عورت (ستر) دې. انس وائي، چه (يو ځلې) نبي صلعم خپل ورونږ پرانستې وو. ابو عبداللّٰه وائي. ذَ انس حديث قوي السند دې. او ذَ جرهد حديث کښې احتياط زيات دې، چه ذَ علماؤ ذَ اعتراض نه بهر کيږي. ابو موسٰي وائي، کوم وخت چه عثمانؓ راغې، نو نبي صلې اللّٰه عليه وسلم خپلې کنډې پټې کړې. او زيد بن ثابت وائي، چه (يو ځلې) اللّٰه پاک په خپل رسول صلعم وحي نازلې کړې، او ذَ حضورؐ پتون پتون خما په پتون پروت وو، نو هغه په ما دروند شو، تر دې چه ما سره دا ويره پيدا شوه، چه چرته هډوکې مِ مات نشي.

**ف**: دې باب کښې چه امام بخاري ذَ حضرت انس د کوم حديث حواله ور کړې ده. هغې نه دا نۀ ثابتيږي، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم د عامو خلقو په مخکښې داسې کړې وو. بلکه هغه موقع ذَ تنهائي وه، او بې مانخه حالت وو.

١. د امام مالک رحمة اللّٰه عليه په نزد صرف د "شرمګاه" د خاص اندامونو پټول فرض دي ليکن د امام ابوحنيفه او نورو امامانو صاحبانو په نزد د نامه (نوم) نه ترپتونه، پټول فرض دي پتون عورت دې دا په کښې شامل دې په احاديثو کښې د دې تفصيل شته د امام داؤد ظاهري نه تر امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه پورې داسې يوه مسئله نشته ،چه د هغې دليل قرآن او حديث کښې نه وي. دا ټول د حق امامان وۀ هغوي دلائل د قرآن او حديث نه اخستل اللّٰه تعالٰي پخپله دې امت د پاره فراخي پيدا کوله د دې د پاره ئې قرآن او حديث کښې داسې دلائل رااوليږل. د دې اختلافاتو مطلب داوي چه آساني پيدا کړې شي. د شريعت د حکم مطابق چه مونږ خومره اعمال ادا کوؤ فقهاؤ د هغې مختلف درجې، مرتبې بيان کړيدي بعض فرض بعضې واجب، څه سنت څه مستحب څه مباح دي نبي عليه السلام ته اللّٰه "مذکر" وائي نصيحت کونکې يادونکې، نبي عليه السلام امت ذَ اعمالو ادا کولو د پاره تيار کړل او د اعمالو د درجو مرتبونې وضاحت ضروري اونه ګڼړو. اوس د مجتهدينو دا ذمه واري شوه چه د اعمالو د مرتبو وضاحت او کړي ذَ فقهي اختلاف سبب دا نه دې چه ګنې په شريعت کښې اختلافي احکام دي د يو بل ضد دي بلکې د فقهاؤ د رائې او د هغوي د فکر د اختلاف په سبب فقهي اختلاف پيدا شو. دا د اللّٰه تعالٰي د مرضئ مطابق دي او هغه په

دے اختلاف رضا دے د دے دلائل احاديثو او آثارو كښې موجود دي. چه نبي عليه السلام به دور خبرو كښې د ہوے خبرے د غوره كولو اجازت وركړے دے د بدن چه كومے حصے پټول ضروري دي د هغے په حقله د امام ابوحنيفه او امام مالک رحمة الله عليهما د دواړو د مسلک دلائل احاديثو كښې موجود دي. د ټولو امامانو په دے اتفاق دے چه خاص شرمګاه پټول ضروري او فرض دي. دورون پټون مختلف احاديث شته. امام مالک رحمة الله عليه ترے دا حكم واخست چه دورون پټون پټول فرض نه دي. امام ابوحنيفه او فرمايل د پټون وړون پټول فرض دي. د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مسلک كښې احتياط دے امام بخاري د امام مالک رحمة الله عليهما مسلک خوښ كړے دے.

۳٦۱: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ ثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ عُلَيَّةَ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا خَيْبَرَ فَصَلَّيْنَا عِنْدَهَا صَلٰوةَ الْغَدَاةِ بِغَلَسٍ فَرَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكِبَ أَبُو طَلْحَةَ وَأَنَا رَدِيفُ أَبِي طَلْحَةَ فَأَجْرٰى نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي زُقَاقِ خَيْبَرَ وَإِنَّ رُكْبَتِي لَتَمَسُّ فَخِذَ نَبِيِّ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ حَسَرَ الْإِزَارَ عَنْ فَخِذِهِ حَتّٰى إِنِّي أَنْظُرُ إِلٰى بَيَاضِ فَخِذِ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا دَخَلَ الْقَرْيَةَ قَالَ اللّٰهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ قَالَهَا ثَلَاثًا قَالَ وَخَرَجَ الْقَوْمُ إِلٰى أَعْمَالِهِمْ فَقَالُوا مُحَمَّدٌ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ وَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِنَا وَالْخَمِيسُ يَعْنِي الْجَيْشَ قَالَ فَأَصَبْنَاهَا عَنْوَةً فَجُمِعَ السَّبْيُ فَجَآءَ دِحْيَةُ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ أَعْطِنِي جَارِيَةً مِّنَ

۳٦۱: يعقوب بن ابراهيم. اسمٰعيل بن عليه. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالکؓ نه روايت دے چه رسول الله صلے الله عليه وسلم خيبر طرف ته جهاد اوکړ، نو مونږ ذَ سحر مونځ ذَ خيبر خوا كښې تيارهٔ كښې اُوكړ. بيا نبي صلعم سور شولو. او ابو طلحه هم سور شولو. او زهٔ ابو طلحه پسے سور ووم. نبي صلعم ذَ خيبر په كوڅو كښې روان وو، او خما ګُنډئ به ذَ نبي صلعم ورونږ مس كولو. حضورؐ تهبند ذَ خپل رونږ نه بيرته كړ، تردے چه ما ذَ حضورؐ ذَ ورونږ سپيدي اوليدله. بيا حضورؐ كلي كښې دننه داخل شو، نو حضورؐ او فرمائيل: اَللّٰهُ اَكْبَر، خَرِبَتْ خَيْبَر اِنَّا اِذَا اَنْزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ: درے ځله ئے دغسے او فرمائيل. انسؓ وائي. (ذَ كلي) خلق چه ذ خپلو كارونو ذ پاره راووتل نو هغوي اووے. محمدؐ (راغے) عبدالعزيز وائي. څمونږ بعضے دوستانو اووے. چه هغے خلقو دا هم اووے، چه لښكرهم راغے. نو مونږ د تورے په زور خيبر واخست. بيا قيديان جمع كړے شو نو، دحيه راغے او هغهٔ اووے، يا نبي الله، دے قيديانو كښې ماله يوه وينزه راكړه، حضورؐ ورته او فرمائيل، لاړشه، او يوه وينزه واخله. هغه صفيه بنت حُيي واخسته بيا يو سړے نبي صلي الله عليه

السَّبْيِ فَقَالَ اذْهَبْ فَخُذْ جَارِيَةً فَأَخَذَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ فَجَآءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ أَعْطَيْتَ دِحْيَةَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ سَيِّدَةَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرِ لَا تَصْلُحُ إِلَّا لَكَ قَالَ ادْعُوهُ بِهَا فَجَآءَ بِهَا فَلَمَّا نَظَرَ إِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُذْ جَارِيَةً مِنَ السَّبْيِ غَيْرَهَا قَالَ فَأَعْتَقَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَزَوَّجَهَا فَقَالَ لَهُ ثَابِتٌ يَا أَبَا حَمْزَةَ مَا أَصْدَقَهَا قَالَ نَفْسَهَا أَعْتَقَهَا وَ تَزَوَّجَهَا حَتَّى إِذَا كَانَ بِالطَّرِيقِ جَهَّزَتْهَا لَهُ أُمُّ سُلَيْمٍ فَأَهْدَتْهَا لَهُ مِنَ اللَّيْلِ فَأَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرُوسًا فَقَالَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ شَيْءٌ فَلْيَجِئْ بِهِ وَ بَسَطَ نِطَعًا فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِالتَّمْرِ وَ جَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِالسَّمْنِ قَالَ وَ أَحْسِبُهُ قَدْ ذَكَرَ السَّوِيقَ قَالَ فَحَاسُوا حَيْسًا فَكَانَتْ وَلِيمَةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وسلم له راغے او هغهٔ اووے' يا نبي الله' تاسو صفيه بنت حي ذ قبيله قريظه او نضير سرداره' دِحيه له ورکړله' هغه ستاسو نه سوا بل چا سره نهٔ ښائي. حضورؐ او فرمائيل' هغه سره د صفيے راولئے. نبي صلي الله عليه وسلم چه صفيے ته نظر اوکهٔ' نو وے فرمائيل' چه د دے نه علاوه بله يوه وينزه قيديانو کښ واخله. انس وائي. بيا نبي صلي الله عليه وسلم صفيه آزاده کړه' او هغے سره نے نکاح اوکړه. ثابت' انس ته اووے' اے ابوحمزه' رسول الله صلعم ذ صفيے مهر څهٔ ايښے وو. انسؓ اووے' چه آزادول ذ هغے مهر او ګرځولے شو. تردے چه په لاره وو' نو أم سليمؓ' صفيهؓ ذ حضورؐ د پاره ناوے کړه (ذُلهن بنايا) او ذ شپے ئے حضورؐ ته اوليګله سحر وخت کښ حضورؐ او فرمائيل. چا سره چه څهٔ وي' هغه دے راوړي او حضورؐ ذ څرمنے يو دسترخوان خور کړلو. چا چهوهارے راوړے. چا غوړي راوړل. عبدالعزيز وائي. څما خيال دے' چه انسؓ ذ ستوانوهم ذکر اوکړ. غرض دا چه هغے خلقو حيس تيار کړ او دغه ذ رسول الله صلعم وليمه وه.

ف: (۱) حيس: يو قسم طعام چه ذ قجورو' غوړو اوستوانو نه تياريږي.

(۲) وليمه: ذ وادهٔ روټي يا دعوت' خوچه وړمبے شپه تيره شي. د نکاح ضيافت.

## بَابٌ ۲۵۴: فِيْ كَمْ تُصَلِّي الْمَرْأَةُ مِنَ الثِّيَابِ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ لَوْ وَارَتْ جَسَدَهَا فِيْ ثَوْبٍ جَازَ.

## باب ۲۵۴: ښځه به څومره کپړو کښ مونځ کوي' او عکرمهٔ فرمائي که يوه کپړه کښ بدن پټ کړي' نو جائز دي.

۱. د احنافو په نزد د ښځے مخ' لاس او خپے نه علاوه ټول بدن ښځے له پټول ضروري دي.

۳۶۲: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ

۳۶۲: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه'

اَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَـآئِـشَـةَ قَـالَتْ لَقَدْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْفَجْرَ فَشَهِدَ مَعَهُ نِسَآءٌ مِّنَ الْمُؤْمِنَاتِ مُتَلَفِّعَاتٍ فِيْ مُرُوْطِهِنَّ ثُمَّ يَرْجِعْنَ اِلٰى بُيُوْتِهِنَّ مَا يَعْرِفُهُنَّ اَحَدٌ.

بـي بـي عائشـهٔ روايت كوي ذ رسول اللّٰـه صلي اللّٰـه عليـه وسلـم ذ سحر مونخ كښې څنې مسلمانانې ښځې هم څادرونو كښې پټې حضورؐ سره (مانځه كښې) شامليدې، او كوم وخت چه به كورونوته واپس كيدې، نو دومره تيارهٔ به وه، چه چا سري به ښځې نهٔ شوې پيژندې.

باب۲۵۵ : اِذَا صَـلّٰـى فِيْ ثَوْبٍ لَهُ اَعْلَامٌ وَّ نَظَرَ اِلٰى عَلَمِهَا.

باب۲۵۵ : داسې كپړو كښې ذ مونځ كولو بيان، چه هغې كښې نقش و نګار، وي او نظر پرې پريوځي.

۳۶۳: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَـدُ بْـنُ يُـوْنُـسَ اَنَـا اِبْـرَاهِيْـمُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَـنَـا ابْـنُ شِهَـابٍ عَـنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ الـنَّبِيَّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّـمَ صَلّٰـى فِيْ خَمِيْصَةٍ لَهَا اَعْلَامٌ فَـنَظَرَ اِلٰى اَعْلَامِهَا نَظْرَةً فَلَمَّا انْصَرَفَ قَـالَ اذْهَبُـوْا بِقَمِيْصَتِيْ هٰذِهٖ اِلٰى اَبِيْ جَهْـمٍ وَّاْتُـوْنِـيْ بِـاَنْـبِجَانِيَّةِ اَبِيْ جَهْمٍ فَـاِنَّهَا اَلْهَتْنِيْ اٰنِفًا عَنْ صَلٰوتِيْ وَ قَالَ هِشَـامُ بْـنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَـالَ النَّبِـيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُـنْـتُ اَنْـظُـرُ اِلٰى عَـلَـمِهَـا وَ اَنَـا فِي الصَّـلٰـوةِ فَـاَخَـافُ اَنْ يَّـفْتِـنَـنِـيْ.

۳۶۳: احـمـد بـن يـونـس. ابـراهيم بن سعيد. ابـن شهـاب. عـروه. بـي بـي عـائشـهٔ روايت كوي، نبي صـلي اللّٰـه عليـه وسلـم يو داسې څادر كښې مونځ اوكـهٔ چـه پـه هغې نقـش و نكار وو. ذ حضورؐ نظر ذ هغې نقوش طـرف تـه لاړ، كوم وخت چه فارغ شو، نو وې فرمائيل چه څما دا څادر ابوجهم له يوسئې، او مـالـه ذ ابـوجهـم انجـانيـه څادر راوړې، ځكه چـه دې څـادر زهٔ ذ مونځ نـه غـافل كړم او ذ هشام بـن عـروه روايـت كـښې دي، چـه رسـول اللّٰـه صـلي اللّٰـه عليـه وسلـم او فرمائيل، ما مانځه كښې ذ دې پـه نـقـش نـظر كولو، نو ماسره دا خوف پيدا شو چـه دا مې چرتـه فتنـه كـښې اونـهٔ غرځوي.

ف : انجانيه: يو قسم ساده څادر

۱ . حضرت ابوجهم رضي اللّٰه عنه نبي عليه الصلاة والسلام ته دا څادر تحفه كښې ور كړې وو نو چه كله هغه څادر نبي عليه الصلاة والسلام واپس كولو نو د ابوجهم رضي اللّٰه عنه د زړه خوشالولو د پاره ئې د هغه بل څادر اوغوختلو چه ابوجهم رضي اللّٰه عنه دا خيال اونه كړي چه نبي عليه الصلاة والسلام په خفګان څادر واپس كړېدې بعضې رواياتو كښې دي چه نبي عليه الصلاة والسلام فرمايلې وو چه د دې څادر نقش

و نګار جوړ نه څما خيال خان ته نه کړي. د رالتونکي ممکنه خطره خيال ته کړه وړ هسې به چه مانځه کښ به توجهي راشي.

بـاب ۲۵٦ : اِنْ صَـلّـٰى فِيْ ثَـوْبٍ مُـصَـلَّبٍ اَوْ تَصَاوِيْرَ هَلْ تَفْسُدُ صَلٰوتُهٗ وَمَا يُنْهٰى عَنْ ذٰلِكَ.

باب ۲۵٦ : که يوه کپړه کښ صليب يا نور تصويرونه وي او هغې کښ مونځ اوکړه، نو آيا مونځ به ئې فاسد شي. او هغه روايات چه ددې په منع والي کښې راغلي دي.

۳٦۴ : حَـدَّثَـنَـا اَبُوْ مَعْمَرٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ نَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ نَـا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ قَـالَ كَـانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهٖ جَانِبَ بَيْتِهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمِيْطِيْ عَنَّا قِرَامَكِ هٰذَا فَاِنَّهٗ لَا تَزَالُ تَصَاوِيْرُهٗ تَعْرِضُ فِيْ صَلٰوتِيْ.

۳٦۴. ابـو مـعـمـر. عبـدالـلّٰـه بـن عـمـر. عبـدالـوارث. عبـدالـعـزيـز بن صهيب. انسؓ روايـت کـوي چـه بـي بي عـائشهؓ سره يوه پرده وه، چـه د کـور يـو کُـټ کـښ ئـې اچـولـې وه، نو نبـي صلـي اللّٰـه او فـرمـائـيل، چـه څما د مخې نه دا پـرده لـرې کـه، ځـکـه چـه د دې تـصـويـرونـه بـرابـر څـمـا مـخـې تـه راځي.

ف: صليب: سُولي. مکرک. د لرګي يوه اوږده او مضبوطه ستن وي، او پاس په سر، ئې يو بل لونې لرګے برابرًا ټک وهلے شوي وي، لکه په دې شکل. د عيسايانو دا يو غلط خيال دے، چه عيسٰي عليه السلام په دے سُولۍ خيژولے شوے وو. نو په دې سبب صليب د هغوي په خيال ډير متبرک او مقدس څيز دے. په دے وجه د رُومن کيتولک د عقيدې عيسايان د مختلفو دهاتونو وارۀ صليبونه خان سره ساتي اوپه غاړه کښ ئې هم آويزاندوي.

بـاب ۲۵۷ : مَـنْ صَلّٰى فِيْ فَرُّوْجِ حَرِيْرٍ ثُمَّ نَزَعَهٗ.

بـاب ۲۵۷ : د ريښمو جبه اغستل او مونځ کول.

۳٦۵ : حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَـالَ نَـا اللَّيْثُ عَنْ يَّزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ اُهْدِيَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُّوْجُ حَرِيْرٍ فَلَبِسَهٗ فَصَلّٰى فِيْهِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهٗ نَزْعًا شَدِيْدًا كَـالْـكَـارِهِ لَـهٗ وَ قَـالَ لَا يَنْبَغِيْ هٰذَا

۳٦۵ : عبـدالـلّٰـه بـن يوسف. ليث. يـزيـد. ابـي الـخير. عقبه بن عامر روايت کوي، چه د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم خدمت کښ يوه ريښمي جُبّه هديه کړے شوه. حضورؐ هغه واغستله او هغې کښ ئې مونځ اوکۀ. کـوم وخـت چه فارغ شو، نو هغه ئې زور سره راښکـلـه او لـرے ئـے کـړه، ګويا حضورؐ هغه ناخوښه او ګنړله، او، وے فرمائيل چه پرهيزګارو سره دا (کپړه) نه

لِلْمُتَّقِيْنَ.

بنائي.

**بَاب ٢٥٨ : اَلصَّلٰوةِ فِي الثَّوْبِ الْاَحْمَرِ.**

**باب ٢٥٨ :** سره (سرخ) کپړه کښې د مونځ کولو بیان.

**٣٦٦:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ بْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنْ عَوْنِ بْنِ اَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قُبَّةٍ حَمْرَآءَ مِنْ اَدَمٍ وَّ رَاَيْتُ بِلَالًا اَخَذَ وَضُوْءَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَاَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُوْنَ ذٰلِكَ الْوَضُوْٓءَ فَمَنْ اَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهٖ وَمَنْ لَّمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا اَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهٖ ثُمَّ رَاَيْتُ بِلَالًا اَخَذَ عَنَزَةً لَّهٗ فَرَكَزَهَا وَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حُلَّةٍ حَمْرَآءَ مُشَمِّرًا صَلّٰى اِلَى الْعَنَزَةِ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ وَ رَاَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَآبَّ يَمُرُّوْنَ مِنْ بَيْنِ يَدَيِ الْعَنَزَةِ.

**٣٦٦:** محمد بن عرعره. عمر بن ابي زائده. عون ابي حجيفه. ابو حجيفهؓ روایت کوي' چه ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم د څرمنې په یوه سره (سُرخ) خیمه کښې اولیدلو. او بلال م اولید' چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم د اودس د پاره ئې اوبه تیارې کړې' او خلق م اولیدل چه هغوي به د اودس هغه اوبه لاس په لاس آخستې' چاته چه به لږې هم په لاس ورغلې' نو په خپل خان به ئې اومښلې او که چاته به ملاؤ نه شوې نو هغه به خواکښې د سړي د لاس نه لوند والې حاصلولو' (او هغه به ئې په مخ مږولو) بیا ما بلال اولیدلو' چه هغهٔ د حضورؐ یوه سُنبه داره نیزه ښخه کړه او نبي صلي اللّٰه علیه وسلم یوه سره (سُرخ) حُلّه کښې بهر راغې او نیزې طرف ته ئې خلقو سره دوه رکعاته مونځ اوکړ. ما خلق او څناور اولیدل' چه هغوي به د نیزې مخکښې وتل (او حضورؐ بدستور مونځ کولو).

**ف:** حُلّه. جُبّه. خلکه. قباء. (شارحین فرمائي چه دغه جامې ترلې سرې نه وې بلکه په هغې کښې سرې کرښې وې. عارف)

**بَاب ٢٥٩ : اَلصَّلٰوةِ فِي السُّطُوْحِ وَالْمِنْبَرِ وَالْخَشَبِ** قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَلَمْ يَرَ الْحَسَنُ بَاْسًا اَنْ يُّصَلّٰى عَلَى الْجَمَدِ وَالْقَنَاطِيْرِ وَ اِنْ جَرٰى تَحْتَهَا بَوْلٌ اَوْ فَوْقَهَا اَوْ اَمَامَهَا

**باب ٢٥٩ :** په چهتونو' منبر او لرګو د مونځ کولو بیان. امام بخاريؒ وائي' حسن بصري په واؤره او پلونو مونځ کول جائز ګنړلې دي. اګر که د پلونو لاندې یا د هغې د پاسه یا د هغې مخې ته واړهٔ بول بهیږي' هر کله چه د دې دوارو مینځ کښې څهٔ

اِذَا كَانَ بَيْنَهُمَا سُتْرَةٌ وَ صَلَّى اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَلٰى ظَهْرِ الْمَسْجِدِ بِصَلٰوةِ الْاِمَامِ وَ صَلَّى ابْنُ عُمَرَ عَلَى الثَّلْجِ. حائل وي. ابوهريرهٔ د جمات په چهت امام سره شريک شو، مونځ ئے اوكړ. ابن عمرؓ په واوره (برف) مونځ اوكړ.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دا بنودل غواړي چه امام مونځ وركوي د هغه د پاسه چهت وي او مقتدي د چهت د پاسه ورپسے اقتداء اوكړي نو دا اقتداء يے صحيح ده ابوهريره رضي الله عنه امام پسے مونځ كړے وو او دے بره په چهت ولاړ وو داسے اقتداء صحيح ده چه كله مقتدي ته د امام د ركوع او د سجدے خبر وُرسي دا ضروري نه ده چه چهت دے سورے وي.

۳۶۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَا سُفْيَانُ قَالَ نَا اَبُوْ حَازِمٍ قَالَ سَأَلُوْا سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ مِّنْ اَيِّ شَيْءٍ...... الْمِنْبَرُ فَقَالَ مَا بَقِيَ فِي النَّاسِ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ هُوَ مِنْ اَثْلِ الْغَابَةِ عَمِلَهُ فُلَانٌ مَّوْلٰى فُلَانَةَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَامَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ عُمِلَ وَ وُضِعَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ كَبَّرَ وَ قَامَ النَّاسُ خَلْفَهُ فَقَرَأَ وَ رَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهُ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى فَسَجَدَ عَلَى الْاَرْضِ ثُمَّ عَادَ عَلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ قَرَأَ رَكَعَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ رَجَعَ قَهْقَرٰى حَتّٰى سَجَدَ بِالْاَرْضِ فَهٰذَا شَأْنُهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ سَأَلَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ قَالَ فَاِنَّمَا اَرَدْتُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اَعْلٰى مِنَ النَّاسِ فَلَا بَأْسَ اَنْ يَّكُوْنَ الْاِمَامُ اَعْلٰى مِنَ

۳۶۷: علي بن عبدالله. سفيان. ابوحازمؒ روايت كوي، خلقو د سهل بن سعد نه تپوس اوكړ، چه منبر نبويؐ د څهٔ څيز وو، نو هغهٔ اووے. په دے خبره خلقو كښې څما نه زيات پوهيدونكے اوس څوك باقي نهٔ دے پاتے. هغه د مقام غابه د غز د يوے اُونے نه جوړ وو، چه د فلانئے ښځے فلاني غلام، رسول الله صلي الله عليه وسلم د پاره جوړ كړے وو كله چه هغه تيار شو او كيخودے شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغے اودريدلو. او مخ په قبله شو او تكبير (تحريمه) ئے اوكړ. او خلق حضور پسے اودريدل. بيا حضورؐ قرأت اوكړ او ركوع ئے اوكړله، او خلقو حضورؐ پسے ركوع اوكړله بيا حضورؐ خپل سر اوچت كړ. دے نه پس په ورستو شو تردے چه په زمكه ئے سجده اوكړه. امام بخاري وائي، علي بن عبدالله اووے، چه امام احمد بن حنبل ما نه دا حديث اوپښتهٔ، او، ورته ونيل، څما مقصود، دا دے، چه نبي صلعم د خلقونه پورته وو، نو دا حديث د دے دليل دے، چه دے كښې څهٔ حرج نشته، كه امام د خلقونه پورته وي. علي بن عبدالله وائي،

النَّاسِ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ قَالَ فَقُلْتُ فَإِنَّ سُفْيٰنَ بْنَ عُيَيْنَةَ كَانَ يُسْئَلُ عَنْ هٰذَا كَثِيْرًا فَلَمْ تَسْمَعْهُ مِنْهُ قَالَ لَا.

ما اوريے' چه ستا ذ استاذ' سفيان بن عيينه نه به اكثر دا حديث پُښتلے شو' آيا تا دا ذ هغهٔ نه' نهٔ دے آوريدلے' نو هغهٔ اووے چه نه.

٣٦٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ قَالَ اَنَا يَزِيْدُ بْنُ هٰرُوْنَ قَالَ اَنَا حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَقَطَ عَنْ فَرَسِهٖ فَجُحِشَتْ سَاقُهُ اَوْ كَتِفُهُ وَ اٰلٰى مِنْ نِّسَآئِهٖ شَهْرًا فَجَلَسَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَّهُ دَرَجَتُهَا مِنْ جُذُوْعِ النَّخْلِ فَاَتَاهُ اَصْحَابُهُ يَعُوْدُوْنَهُ فَصَلّٰى بِهِمْ جَالِسًا وَّهُمْ قِيَامٌ فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا وَ اِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَ اِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا وَ اِنْ صَلّٰى قَآئِمًا فَصَلُّوْا قِيَامًا وَّ نزل لِتِسْعٍ وَّ عِشْرِيْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ اٰلَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ اِنَّ الشَّهْرَ تِسْعٌ وَّ عِشْرُوْنَ.

٣٦٨: محمد بن عبدالرحيم. يزيد بن هارون. حميد طويل. انس بن مالكؓ روايت كوي' چه رسول الله صلي الله عليه وسلم (يو خل) ذ خپل آس نه راوغرځيدلو' نو ذ حضورؐ پنډئ يا اُوږه اوخته' او هغه زمانه كښ حضورؐ خپلو بيبيانو ته يو مياشت پورے ذ نهٔ ورتلو عهد كړے وو' نو حضورؐ خپلے يوه بالا خانه كښ كيناست' چه ذ هغے اندرپايه ذ قجورو ذ تنو وه' نو ذ حضورؐ اصحاب' ئے پښتنے له راغلل' حضورؐ په ناسته ناسته هغوي ته مونځ وركړلو' او هغوي ولاړ وو. كوم وخت چه حضورؐ سلام اوګرځولو' نو وے فرمانيل' امام دے ذ پاره جوړ شوے دے' چه ذ هغهٔ دے اقتدا اوكړے شي' هغه چه تكبير اووائي' نو تاسو هم تكبير اووائے' او چه هغه ركوع اوكړي نو تاسو ركوع اوكړئے' اوكه هغه په ولاړه مونځ كوي' نو تاسو هم په ولاړه مونځ كوئے' او حضورؐ په يو كم ديرشم تاريخ راكوز شولو' نو خلقو ورته اووے' تاسو خو ذ يوے مياشتے عهد كړے وو (چه كورته به نهٔ ورځئے) نو حضورؐ او فرمانيل' دا مياشت ذ يو كم ديرش ورخوده (قمري مياشت ذ ٢٩' يا ٣٠ وي او عيسوي مياشت ذ ٢٨' ٢٩' ٣١ هم وي).

١. ابن حبان ليكلے دي چه د هجرت په پنځم كال نبي عليه الصلاة والسلام د اَس نه غورزيدلے وو او بيا په نهم كال د هجرت نبي عليه السلام د پاكو بيبيانو نه يو مياشت عارضي جدائي خوښه كړے وه. دواړه خله نبي عليه الصلاة والسلام بالا خانه كښ اوسيدلو د زخمي كيدو په حالت دا خيال وو چه صحابهٔ كرام رضي الله عنهم د تپوس (بيمار پرسي) د پاره په آسانه راتللے شي. او دويم خل د پاكو بيبيانو نه د جدائي په وخت چه فكر خيال يو طرفته وي نو بالاخانه كښ وؤ. دواړو واقعاتو كښ د زمانے ډيره فاصله وه خو دواړه خله نبي عليه الصلاة والسلام بالاخانه كښ وؤ. راوي دواړه واقعات يو ځائے بيان كړيدي. بعضے عالمان دے كښ غلط پوهه شويدي چه ګنړے دواړه واقعات د يو كال دي.

## بَابٌ ٢٦٠: اِذَا اَصَابَ ثَوْبُ الْمُصَلِّيْ اِمْرَاَتَهٗ اِذَا سَجَدَ. جائز

## باب ٢٦٠: هر كله چه ذ مونځ ګزار كپړه ذ سجدے په وخت ذ هغهٔ ښځے سره اولږي.

ابن مسعود ... آ ... من حيث آ ... الله



۳۶۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ خَالِدٍ قَالَ نَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ اَنَا حِذَآءَهٗ وَ اَنَا حَائِضٌ وَ رُبَمَا اَصَابَنِيْ ثَوْبُهٗ اِذَا سَجَدَ قَالَتْ وَ كَانَ يُصَلِّيْ عَلَى الْخُمْرَةِ.

۳۶۹: مسدد، خالد، سليمان، شيبان، عبدالله بن شداد، بي بي ميمونهٔ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونخ كولو اوزهٔ به ذ حضورٌ مقابل ناسته ووم، حالانكه زهٔ به حائضه ووم، اكثر چه حضورٌ سجده كوله، نو ذ حضورٌ كپره به په ما لګيدله. بي بي ميمونهٔ فرمائي چه حضورٌ به وړوكي بوړ، باندې مونخ كولو.

باب ۲۶۱: الصَّلٰوةِ عَلَى الْحَصِيْرِ وَ صَلّٰى جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فِي السَّفِيْنَةِ قَآئِمًا وَّ قَالَ الْحَسَنُ تُصَلِّيْ قَآئِمًا مَّالَمْ تَشُقَّ عَلٰى اَصْحَابِكَ تَدُوْرُ مَعَهَا وَ اِلَّا فَقَاعِدًا.

باب ۲۶۱: پوزي باندې ذ مونخ كولو بيان، او جابر بن عبدالله او ابو سعيد خدري كشتۍ كښې په ولاړه مونخ اوكه. حسن بصري وئيلي دي چه كشتۍ كښې په ولاړه مونخ كولے شے، ترڅو چه ستاسو ملګروته تكليف نهٔ وي. كشتۍ سره به تاوېږې، كني په ناسته (مونخ كوه).

۳۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ جَدَّتَهٗ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ لَهٗ فَاَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَالَ قُوْمُوْا فَلِاُصَلِّيَ لَكُمْ قَالَ اَنَسٌ فَقُمْتُ اِلٰى حَصِيْرٍ لَّنَا قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُوْلِ مَا لُبِسَ فَنَضَحْتُهٗ بِمَآءٍ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَفَفْتُ وَالْيَتِيْمُ وَرَآءَهٗ وَالْعَجُوْزُ مِنْ وَّرَآئِنَا فَصَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ.

۳۷۰: عبدالله بن يوسف. مالك. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالكٌ روايت كوي، چه ذ هغهٔ نيا (دادی) رسول الله صلي الله عليه وسلم له ډوډۍ كړے وه او خاص حضورٌ ذ پاره نے تياره كړے وه، كوم وخت چه حضورٌ ډوډۍ او خوړه، نو وې فرمائيل، پاسئے، زهٔ ستاسو كور كښې مونخ كوم. انسٌ وائي، زهٔ خپل يو پوزي ته متوجه شوم، چه ذ زيات استعمال په وجه تور شوے وو. ما هغه اُوبو سره اووينځلو بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغې اودريدلو ما او يتيم حضورٌ پسے صف جوړ كهٔ. او بوډئ ځمونږ شاته اودريده. او رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ټولو سره دوه ركعاته مونخ اوكړلو. بيا حضورٌ تشريف يوړلو.

**باب ٢٦٢: الصَّلٰوةِ عَلَى الْخُمْرَةِ.**

**باب ٢٦٢: وړوکي بوړ باندې د مونځ کولو بيان.**

٣٧١: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ نَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ عَلَى الْخُمْرَةِ.

٣٧١: ابوالوليد. شعبه. سليمان شيباني. عبدالله بن شداد. بي بي ميمونهؓ روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به وړوکي بوړ (پوزي) مونځ کولو.

**باب ٢٦٣: الصَّلٰوةِ عَلَى الْفِرَاشِ**

**باب ٢٦٣: فرش باندې د مونځ کولو بيان.**

وَ صَلّٰى اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَلٰى فِرَاشِهٖ وَ قَالَ اَنَسٌ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْجُدُ اَحَدُنَا عَلٰى ثَوْبِهٖ.

او انس بن مالکؓ فرش باندې مونځ اوکړ، او وې وئيل چه مونږ به نبي صلے الله عليه وسلم سره مونځ کولو، نو مونږ کښې به بعضو په خپله کپړه هم سجده کوله.

٣٧٢: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ كُنْتُ اَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رِجْلَايَ فِيْ قِبْلَتِهٖ فَاِذَا سَجَدَ غَمَزَنِيْ فَقَبَضْتُ رِجْلَيَّ وَ اِذَا قَامَ بَسَطْتُهُمَا قَالَتْ وَالْبُيُوْتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيْهَا مَصَابِيْحُ.

٣٧٢: اسمعيل. مالک. ابوالنضر (د عمر بن عبيدالله آزاد کرده غلام) ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه زۀ به د رسول الله صلي الله عليه وسلم مخکښې ملاسته ووم، او خما دواړه پښې به د حضورؐ قبلے جانب ته وې، چه حضورؐ به سجده کوله، زۀ به ئې دباؤ کړم، نو ما به خپله پښه راغونډه کړه او کوم وخت چه به حضورؐ اودريدلو، نو ما به پښې اوغزولې. بي بي عائشهؓ فرمائي، دغه وخته پورې په کورونو کښې ډيوې نۀ وې.

٣٧٣: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ اَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٣٧٣: يحيي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب عروه. بي بي عائشهؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونځ کولو. او هغه به د حضورؐ او د قبلے په مينځ کښې

كَانَ يُصَلِّيْ وَهِيَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ عَلٰى فِرَاشِ اَهْلِهٖ اِعْتِرَاضَ الْجَنَازَةِ.

ذ حضورٌ دَ کور پـه فـرش ذ جنازے پـه شان پرته وه.

۳۷۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ نَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ وَ عَآئِشَةُ مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ عَلَى الْفِرَاشِ الَّذِيْ يَنَامَانِ عَلَيْهِ.

۳۷۴: عبدالله بن يوسف. ليث. يزيد. عراک. عروه روايت کوي. چه نبي صلي الله عليه وسلم به مونځ کولو، او بي بي عائشهؓ به دَ حضورٌ او قبلے په مينځ کښ په هغے فرش، چه دواړه به پرے اوده کيدل، په جانب دَ عرض (پلنوالي) ملاسته وه.

باب ۲۶۴: اَلسُّجُوْدِ عَلَى الثَّوْبِ فِيْ شِدَّةِ الْحَرِّ وَ قَالَ الْحَسَنُ كَانَ الْقَوْمُ يَسْجُدُوْنَ عَلَى الْعِمَامَةِ وَالْقَلَنْسُوَةِ وَ يَدَاهُ فِيْ كُمِّهٖ.

باب ۲۶۴: سخته گرمي کښ په کپړه باندے دَ سجدے کولو بيان. حسن بصري وئيلے دي چه خلقو به په پټکي او ټوپئي سجده کوله؛ او دَ هغوي لاسونه به دَ هغوي په لستوڼړو کښ وو.

۳۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ نَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ قَالَ حَدَّثَنِيْ غَالِبُ الْقَطَّانُ عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ اَحَدُنَا طَرَفَ الثَّوْبِ مِنْ شِدَّةِ الْحَرِّ فِيْ مَكَانِ السُّجُوْدِ.

۳۷۵: ابوالوليد. هشام بن عبدالملک. بشر بن مفضل. غالب. قطان. بکر بن عبدالله. انس بن مالکؓ روايت کوي، مونږ به نبي صلي الله عليه وسلم سره يو ځائے مونځ کولو، نو مونږ کښ به بعضو خلقو دَ سختے گرمي نه دَ سجدے په ځائے دَ کپړے پيسکے غوړولو.

باب ۲۶۵: اَلصَّلٰوةِ فِي النِّعَالِ.

باب ۲۶۵: پيزار سره دَ مونځ کولو بيان.

۳۷۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ نَا اَبُوْ مُسْلَمَةَ سَعِيْدُ بْنُ يَزِيْدَ الْاَزْدِيُّ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ نَعْلَيْهِ قَالَ نَعَمْ.

۳۷۶: آدم بن ابي اياس. شعبه. ابومسلمه. سعيد بن يزيد ازدي روايت کوي، چه ما دَ انس بن مالک نه تپوس او کړ، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلو پڼړو سره مونځ کولو، نو هغهٔ جواب راکړ، چه او.

۱. نعل عربي ژبه کښ پيزارته ويلے شي پڼړے، څپلئ، چپړے ټولوته. عربو به خاص قسم پيزار په

خپو كولو، كوم چه تر ډيره حده پورې جهلو سره شا به وو. او په هغې به د كعل اطلاق كيدلو. د شريعت په نظر كښې پيزار كښې مونځ كول صرف مباح او جائز دي، مطلوب هر گز نه دي. ددې تاريخ دا دې چه موسٰي عليه السلام كله د طور غرته لاړو. هغه پيزار اچولې وو په قرآن مجيد كښې دي چه الله تعالىٰ ورته حكم وركړو "چه خپل پيزار وباسه" يهوديانو ترې دا مطلب واخست چه پيزار سره مونځ كول ناروا دي. هغوي پدې عمل شروع كړو. نبي عليه السلام په خپل عمل دا ثابته كړه چه پيزار سره مونځ كول روا دي. يو روايت كښې دا هم شته "چه د يهودو مخالفت كوئي" د دې تاريخي واقعې نه دا ښكاره شوه چه دا ضروري نه ده چه پيزار سره دې مونځ ادا كولې شي بلكې مقصد صرف د يهودو عقيده رد كول وو حضرت موسٰي عليه السلام ته چه دا حكم شوې وو چه پنړې اوباسه د دې ډيرې وجې خلقو بيان كړيدي ليكن د قرآن مجيد د ظاهرو الفاظونه دا معلوميږي چه د پنړو اوباسلو مقصد ادب كول وو لكه قرآن مجيد كښې د دې حكم نه مخكښې "اَنَا رَبُّكَ" زه ستا رب يم، بيا ورپسې اوويلې شو "فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ" نو پنړې اوباسه، او كاړه نو دَ پنړو اوكاړلو وجه داوه. "چه ته، دَ خپل رب دربار ته راغلې ني. د حديث شريف نه د پنړو سره مونځ كول روا دي خكه چه د نبي عليه الصلاة والسلام عمل دې. ليكن د موسٰي عليه السلام دَ واقعې نه دا معلوميږي چه ادب دا دې چه پيزار اوباسلې شي او مونځ ادا كړې شي. ليكن د دې زمانې پيزار كښې د مونځ كولو په وخت احتياط پكار دې خكه چه دَ سجدې په وخت په زمكه خپې كيخودل ضروري دي او په زمكه چه خپلې لگيدلې نه وي مونځ نه صحيح كيږي د موجوده (نن) زمانې پيزار كښې د سجدې په وخت د خپې او د زمكې په مينځ كښې خرمن رازي او د خپو گوتې په زمكه نه لږي.

**باب ۲۶۶: اَلصَّلٰوةِ فِي الْخِفَافِ.**

**باب ۲۶۶: موزو سره دَ مونځ كولو بيان.**

۳۷۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ نَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ اِبْرَاهِيْمَ يُحَدِّثُ عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ رَاَيْتُ جَرِيْرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بَالَ ثُمَّ تَوَضَّاَ وَ مَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى فَسُئِلَ فَقَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مِثْلَ هٰذَا قَالَ اِبْرَاهِيْمُ فَكَانَ يُعْجِبُهُمْ لِاَنَّ جَرِيْرًا كَانَ مِنْ اٰخِرِ مَنْ اَسْلَمَ.

۳۷۷: آدم. شعبه. اعمش. ابراهيم. همام بن حارث روايت كوي، ما جرير بن عبدالله اوليد، هغه واړهٔ بول اوكړل. دَ هغې نه پس ئې اودس اوكهٔ اوپه خپلو موزو ئې مسحه اوكړه. بيا مانځه دَ پاره اودريدلو. په دې حقله دَ هغهٔ نه تپوس اوشو، نو هغهٔ ورته اووې، چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دغسې كولو باندې ليدلې دې. ابراهيم وائي، چه د محدثينو دا حديث ډير خوښ وو په دې چه جرير دَ ټولو نه آخر كښې اسلام راوړې وو.

۳۷۸: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ اَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ

۳۷۸: اسحاق بن نصر. ابو اسامه. اعمش. مسلم. مسروق. مغيره بن شعبه

عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنِ الْمُغِيْرَةِ ابْنِ شُعْبَةَ قَالَ وَضَأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ وَ صَلّٰى.

روايت كوي' چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اودس كولو كښې اوبه اچولې' نو حضورؐ په موزو مسحه اوكړله.

بـــاب ۲۶۷: اِذَا لَــمْ يُتِــمَّ السُّجُوْدَ.

باب ۲۶۷: هر كله چه يو سړے سجده پوره نه كړي.

۳۷۹: حَـدَّثَـنَـا الصَّلْتُ بْنُ مُحَـمَّدٍ قَالَ نَا مَهْدِيٌّ عَنْ وَّاصِلٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِـلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ اَنَّهُ رَاٰى رَجُلًا لَّا يُتِمُّ رُكُوْعَهُ وَلَا سُجُوْدَهُ فَلَمَّا قَضٰى صَلٰوتَهُ قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ مَا صَلَّيْتَ قَالَ وَ اَحْسِبُهُ قَـالَ لَـوْمُتَّ مُتَّ عَلٰى غَيْرِ سُنَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۷۹: صلت بن محمد. مهدي. واصل. ابو وائل. حذيفهؓ نه روايت كوي' هغهٔ يو سړے اوليد' چه هغهٔ خپله ركوع او سجده پوره نهٔ كوله. كوم وخت چه هغهٔ خپل مونځ ختم كړ' نو حذيفهؓ ورته اووے' تاخو مونځ اونهٔ كړ. (مسروق وائي) خما دا خيال دے' چه هغهٔ دا هم اووے' كه تهٔ مړ شے' نو دَ محمد صلي الله عليه وسلم په طريقه به مړ نهٔ شے.

باب ۲۶۸: يُبْدِيْ ضَبْعَيْهِ وَ يُجَافِيْ جَنْبَيْهِ فِي السُّجُوْدِ.

بـاب ۲۶۸: سجده كښې دے خپلے اوږے پرانستے او خپلدواړه اړخونه جُدا ساتي.

۳۸۰: حَـدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ اِبْـنِ هُرْمُزَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُحَيْـنَةَ اَنَّ الـنَّبِـيَّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا صَلّٰى فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتّٰى يَبْدُوَ بَيَاضُ اِبْطَيْهِ.

۳۸۰: يحيي بن بكير. بكر بن مضر. جعفر. ابن هرمز. عبدالله بن مالك بن بحينهؓ روايت كوي' چه نبي صلے الله عليه وسلم به مونځ كولو' نو دَ خپلو دواړو لاسونو مينځ كښې به ئے دومره كشادگي ساتله' چه دَ حضورؐ دَ ترخونو سپيدي به ظاهريدله.

باب ۲۶۹: فَضْلِ اِسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ يَسْتَقْبِلُ بِاَطْرَافِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ قَالَـهُ اَبُوْ حُمَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۶۹: قبلے ته دَ مخ كولو دَ فضيلت بيان دَ خپلو پښو گوتے هم قبله رُخ (مخ په قبله) ساتل پكار دي دا ابوحميد دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل كړے دي.

۳۸۱: حَـدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ قَالَ نَا ابْنُ مَهْدِيٍّ قَالَ ثَنَا مَنْصُوْرُ بْنُ

۳۸۱: عمرو بن عباس. ابن مهدي. منصور بن سعد. ميمون بن سياه. انس بن مالك روايت

سَعْدٍ عَنْ مَيْمُوْنِ بْنِ سِيَاهٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى صَلٰوتَنَا وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا وَ اَكَلَ ذَبِيْحَتَنَا فَذٰلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِىْ لَهٗ ذِمَّةُ اللّٰهِ وَ ذِمَّةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ فَلَا تُخْفِرُوا اللّٰهَ فِىْ ذِمَّتِهٖ.

كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، څوک چه خمونږ په شان مونځ كوي او خمونږ قبلے ته مخ كوي، او خمونږ حلاله (ذبيحه) خوري، نو هغه مسلمان دے، چه هغه دَ پاره دَ اللّٰه او دَ اللّٰه دَ رسول ذمه ده، نو تاسو دَ اللّٰه ذمه وارئ كښ خيانت مهٔ كوئے.

۳۸۲: حَدَّثَنَا نُعَيْمٌ قَالَ نَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَاِذَا قَالُوْهَا وَ صَلَّوْا صَلٰوتَنَا وَاسْتَقْبَلُوْا قِبْلَتَنَا وَ اَكَلُوْا ذَبِيْحَتَنَا فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْنَا دِمَآؤُهُمْ وَ اَمْوَالُهُمْ اِلَّا بِحَقِّهَا وَ حِسَابُهُمْ عَلَى اللّٰهِ وَ قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ قَالَ نَا حُمَيْدٌ قَالَ سَاَلَ مَيْمُوْنُ بْنُ سِيَاهٍ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ فَقَالَ يَا اَبَا حَمْزَةَ وَمَا يُحَرِّمُ دَمَ الْعَبْدِ وَمَالَهٗ فَقَالَ مَنْ شَهِدَ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا وَ صَلّٰى صَلٰوتَنَا وَ اَكَلَ ذَبِيْحَتَنَا فَهُوَ الْمُسْلِمُ لَهٗ مَا لِلْمُسْلِمِ وَ عَلَيْهِ مَا عَلَى الْمُسْلِمِ وَ قَالَ ابْنُ اَبِىْ مَرْيَمَ اَنَا يَحْيَى بْنُ اَيُّوْبَ قَالَ نَا حُمَيْدٌ قَالَ نَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۸۲: نعيم. ابن مبارک. حميد. طويل. انس بن مالکؓ روايت كوي، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ماته هغه وخته پورے خلقو سره دَ جنګ كولو حكم راکړے شوے دے، څو پورے چه هغوي لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه او نهٔ وائي. بيا چه هغوي دا اووائي، او خمونږ په شان مونځ كوي او خمونږ قبلے ته مخ كوي او خمونږ حلاله خوري، نو يقيناً دَ هغوي وينه او مال حرام شو، خو دَ هغے حق په بنا چه اسلام په هغوي مقرر كړے دے، باقي دَ هغوئ حساب دَ اللّٰه په حواله دے. او علي بن عبدالله ونيلے دي، چه مونږ ته خالد بن حارث بيان اوكهٔ، هغه وائي، مونږ ته حميد طويل اووے، ميمون بن سياه دَ انس بن مالک نه تپوس اوكهٔ، اے ابوحمزه، هغه كوم څيز دے، چه هغے سره دَ سړي جان او مال دواړه (دست درازئ نه) محفوظ شي. نو هغهٔ اووے، كوم سړے چه ددے خبرے ګواهي وركړي، چه دَ خدائے نه سوا بل معبود نشته، او خمونږ قبلے ته مخ كوي، او خمونږ په شان مونځ كوي او خمونږ حلاله خوري نو هغه مسلمان دے. دَ هغهٔ، هغه حقوق دي، كوم چه دَ يو مسلمان وي، او دَ هغهٔ په ذمه هغه خبرے واجب دي، كومے چه دَ مسلمان په ذمه وي. او ابن ابي مريم اووے، ماته حميد بيان اوكهٔ چه هغهٔ ته انس او هغهٔ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت اوكهٔ.

١. يعني هغه قومونه چه مونږ ورسره د جنګ حالت کښې يو، که چرے هغوي اسلام قبول کړي نو بيا خمونږ ذ هغوي سره هيڅ قسم جنګ نشته. د دوي معامله خمونږ پشان ده. که چرے هغوي اسلام نه قبلوي نو د جنګ دا حالت د دغې کافرو سره د فتح يا شکست يو خاص مقام ته: رسيدو نه پس به هم دا قائم وي. د حديث شريف دا حکم د امن د اوقاتو د پاره نه دے بلکے د امن حالت کښې کافر قومونو سره د صلح او د روغے ساتلو حکم دے. د وعدے د پوره کيدو د تاکيد سره دا ويلے شي. دے حديث شريف د اسلام او د کفر حالاتو کښې چه کوم فرق دے هغه واضح کړيدے که کوم يو بنده د دشمن قوم نه وي ذ اسلام قبلولو نه پس د هغه روح او مال د عام مسلمانانو پشان به محفوظ وي.

باب ٢٧٠: قِبْلَةَ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ وَ اَهْلِ الشَّامِ وَالْمَشْرِقِ لَيْسَ فِي الْمَشْرِقِ وَلَا فِي الْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ اَوْ بَوْلٍ وَلٰكِنْ شَرِّقُوْا اَوْ غَرِّبُوْا.

باب ٢٧٠: ذ مدينے او شام ذ خلقو قبله، او ذَ مشرق دَ خلقو قبله نهٔ مشرق کښې ده او نهٔ مغرب کښې، بلکه نورو طرفونو کښې ده، چه ذَ هغے دليل ذ نبي صلعم دا قول دے چه لويو بولو يا وړو بولو کښې قبلے ته مهٔ مخ کوئے، ليکن مشرق طرف ته مخ کوئے يا مغرب طرف ته.

٣٨٣: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَاسُفْيٰنُ قَالَ نَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدِ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبِ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَتَيْتُمُ الْغَآئِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا وَلٰكِنْ شَرِّقُوْا اَوْ غَرِّبُوْا قَالَ اَبُوْ اَيُّوْبَ فَقَدِمْنَا الشَّامَ فَوَجَدْنَا مَرَا حِيْضَ بُنِيَتْ قِبَلَ الْقِبْلَةِ فَنَنْحَرِفُ وَ نَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ.

٣٨٣: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. عطاء بن يزيد ليثي. ابو ايوب انصاري روايت کوي، نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل چه قضائے حاجت له راشے، نو قبلے طرف ته مهٔ مخ کوئے، او مهٔ هغے طرف ته شا کوئے بلکه مشرق طرف ته مخ کوئے يا مغرب طرف ته. ابو ايوب وائي، کوم وخت چه مونږ شام ته راغلو، مونږ ذ قضائے حاجت څو ځايونه داسے اوليدل، چه قبلے طرف ته جوړ شوے وو، نو مونږ به مجبوراً ذ ضروري حاجت ذ پاره تلو، او الله تعالٰي ته به مو استغفار کولو.

باب ٢٧١: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّے.

باب ٢٧١: ذ الله تعالٰي فرمان، چه مقام ابراهيم مصلے کړئے.

٣٨٤: حَدَّثَنَا اَلْحُمَيْدِيُّ قَالَ نَا سُفْيٰنُ قَالَ نَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ

٣٨٤: حميدي. سفيان. عمرو بن دينار روايت کوي، ما ذ ابن عمر نه ذ يو سړي باره کښې تپوس او کهٔ، چه

سَـأَلْـنَـا ابْـنَ عُـمَـرَ عَنْ رَّجُلٍ طَـافَ بِـالْبَيْتِ لِلْعُمْرَةِ وَلَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْـمَـرْوَةِ اَيَـاتِـي امْرَاَتَهُ فَقَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَافَ بِـالْبَيْـتِ سَبْـعًا وَّ صَلّٰى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْـعَتَيْـنِ وَطَـافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَقَـدْ كَـانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَـنَةٌ وَّ سَـأَلْـنَـا جَـابِـرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ فَـقَـالَ لَا يَـقْـرَبَـنَّهَا حَتّٰى يَطُوْفَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

هغه عمرے دَ پاره دَ كعبے طواف اوكړ، او دَ صفا مروه مينځ كښې ئے طواف اونهٔ كړ، نو آيا هغه خپلے بي بي له راتلے شي (كه نه) هغهٔ ورته اووے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ مدينے نه تشريف راوړلو، نو اوه خله ئے دَ كعبے طواف اوكړ، او دَ مقام ابراهيم شاته ئے دوه ركعاته مونځ اوكړ او دَ صفا او مروه مينځ كښې ئے طواف اوكړ. نو اوس صرف دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذات كښې ستاسو د پاره ښهٔ پيروي ده. او مونږ دَ جابر بن عبداللّٰه نه دا مسئله او پښتله، نو هغهٔ اووے، څو پورے چه دَ صفا او مروه مينځ كښې طواف اونهٔ كړي، نو هغے پورے دے خپلے بي بي ته نهٔ نزدے كيږي.

۳۸۵: حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ قَـالَ نَـا يَـحْيٰـى عَنْ سَيْفٍ يَعْنِـي ابْـنَ اَبِـيْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا قَالَ اُتِيَ ابْنُ عُمَرَ فَقِيْلَ لَهُ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ فَقَالَ ابْـنُ عُـمَـرَ فَـاَقْبَلْتُ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ قَـدْ خَرَجَ وَ اَجِدُ بِلَالًا قَـآئِـمًا بَيْنَ الْبَابَيْنِ فَسَأَلْتُ بِلَالًا فَقُلْتُ اَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِـي الْـكَـعْبَةِ قَـالَ نَـعَـمْ رَكْعَتَيْنِ بَيْنَ السَّـارِيَتَيْـنِ الَّتَيْـنِ عَلٰى يَسَارِهٖ اِذَا دَخَلْـتَ ثُـمَّ خَـرَجَ فَـصَـلّٰـى فِيْ وَجْـهِ الْكَعْبَةِ رَكْعَتَيْنِ.

۳۸۵: مسدد. يحيي. سيف بن ابي سلمان. مجاهد روايت كوي، چه ابن عمر له څوك راغلل او هغهٔ ته ئے اووے، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم كعبه كښې داخل شوے دے. ابن عمرؓ وائي. زهٔ هم هلته اورسيدم، خو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم وتلے وو. ما بلال اوليد، چه داوړو دروازو ته مخامخ ولاړ دے زما د بلالؓ نه تپوس اوكړو چه آيا نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم كعبه كښې مونځ كړے وو، هغهٔ اووے او. دَ دے دوو ستنو مينځ كښې ئے دوه ركعاته مونځ كړے وو، چه كعبے ته دَ راتلو په وخت كس طرف ته پريوځي. بيا حضورؐ بهر راووتلو، او دَ كعبے مخے ته ئے دوه ركعاته مونځ اوكړ.

۳۸۶: حَـدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ قَـالَ نَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَـنْ عَـطَـآءٍ قَـالَ سَـمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍؓ

۳۸۶: اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. ابن جريج. عطاء. ابن عباسؓ روايت كوي، كوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم كعبه

قَالَ لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ دَعَا فِيْ نَوَاحِيْهِ كُلِّهَا وَلَمْ يُصَلِّ حَتّٰى خَرَجَ مِنْهُ فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِيْ قُبُلِ الْكَعْبَةِ وَ قَالَ هٰذِهِ الْقِبْلَةُ.

كښې داخل شو، نو حضورؐ ذ كعبې تـولـو ګـټـونو كښې دُعـا اوكـړه او مـونـځ ئـې اونـه كـړ، تـر دې چـې حـضـور ذ كعبې نـه بهـر راووتـلو، نو ذ كعبې مخې تـه ئـې دوه ركعاتـه مونځ اوكړ، او وې فرمائيل، دا قبله ده.

۱. حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما خپل روايت كښې دا وائي چه نبي عليه الصلاة والسلام خانه كعبه كښې دَننه مونځ نه دې كړې ليكن بل روايت كښې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د حضرت بلال رضي الله عنه نه نقل كړيدي. چه نبي عليه السلام خانه كعبه كښې دَننه مونځ كړې وو او حضرت بلال نور زياتي واقعات هم نقل كړيدي نو كعبه كښې دننه د نبي عليه الصلاة والسلام مونځ كول يقيني او صحيح واقعه ده. امام بخاري رحمة الله عليه دا زياتې په روايت كښې صحيح مني او تطبيق يې داسې دې چه ذ بلال رضي اللـه عنه د روايت مطابق خانه كعبه كښې دَننه مونځ كول روا دي. او ذ ابن عباس رضي الله عنهما د روايت مطابق خانه كعبه كښې دَننه تكبير او تسبيح ويل پكار دي.

## بـاب ۲۷۲: التَّـوَجُّـهِ نَحْـوَ الْقِبْـلَةِ حَيْـثُ كَـانَ

وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ النَّـبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَ كَبِّر.

باب ۲۷۲: كوم ځائې چه وي، قبلې ته مخ كولو بيـان. او ابـوهـريـرهؓ وائـي، نبـي صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم فـرمـائـيـلـې دي، چـه قبلې تـه مخ كـه او تكبير اوكه.

۳۸۷: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَـاءٍ قَـالَ نَـا اِسْـرَآءِ يْلُ عَنْ اَبِـيْ اِسْحٰـقَ عَـنِ الْبَـرَاءِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ شَهْرًا اَوْ سَبْعَةَ عَشَـرَ شَهْرًا وَّ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَـلَّى الـلّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ اَنْ يُّوَجَّـهَ اِلَـى الْـكَـعْبَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَـلَّ قَـدْ نَـرٰى تَـقَـلُّـبَ وَجْهِكَ فِـي السَّـمَـآءِ فَتَـوَجَّـهَ نَـحْوَ الْقِبْلَةِ وَ قَالَ السُّـفَهَـآءُ مِـنَ الـنَّاسِ وَهُمُ الْيَهُوْدُ مَا

۳۸۷: عـبـدالـلّٰـه بـن رجـاء. اسـرائـيـل. ابـو اسـحـاق. بـراء (بـن عـازبؓ) روايت كوي، رسول اللّٰه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلم بيت المقدس طرف ته شپاړس يـا اوولـس مياشتـې مـونـځ اوكـړ، او رسول اللّٰه صلي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم غـوښـتـل، چـه كعبې طرف تـه مخ كـړي، نـو الـلّٰـه تـعـالٰي (دا فرمـان) نـازل كـړ: قَدْ نَرٰى تَـقَـلُّـبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ: نـو حـضـورؐ نـوې قبلې طرف تـه اوګـرځـيـدلو. بـعـضـې بيـوقـوفـانو خلقوچـه يهـوديـان وو، هغـوي اووې، چـه مسلـمـانـان ذ هغوي ذ قبلې نـه، چـه اوسـه پـورې هغوي پـه هغې وو، څـه څيـز او ګـرځـول. (نـو الـلّٰـه تعالٰي او فـرمـائيل چـه)

وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ فَصَلّٰى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ ثُمَّ خَرَجَ بَعْدَ مَا صَلّٰى فَمَرَّ عَلٰى قَوْمٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فِيْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ يُصَلُّوْنَ نَحْوَ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ فَقَالَ هُوَ يَشْهَدُ اَنَّهُ صَلّٰى مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَّهُ تَوَجَّهَ نَحْوَ الْقِبْلَةِ فَتَحَرَّفَ الْقَوْمُ حَتّٰى تَوَجَّهُوْا نَحْوَ الْكَعْبَةِ.

"ورته اوواېه، مشرق او مغرب د الله دي، هغه چه څوک غواړي، نو د نېغې لارې هدايت ورته کوي". بيا نبي صلعم سره يو سړي مونځ اوکړ، او د مونځ نه پس لاړ، او د انصارو په ځنو خلقو، چه د مازيګر مونځ ئې کواو، تير شو، چه هغوي بيت المقدس طرف ته مونځ کولو، نو هغه (د ځپل خان په نسبت) اووې، زه ګواهي کوم، چه ما رسول الله صلي الله عليه وسلم سره مونځ کړې دې. او حضورؐ کعبې طرف ته مخ کړې دې. بيا تولو خلقو کعبې طرف ته مخ او کرځولو.

٣٨٨: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ نَا هِشَامُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهٖ فَاِذَا اَرَادَ الْفَرِيْضَةَ نَزَلَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ.

٣٨٨: مسلم بن ابراهيم. هشام بن عبدالله. يحيٰي بن ابي كثير. محمد بن عبدالرحمٰن. حضرت جابر بن عبدالله روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم به په خپلې سورلئ چه کوم طرف ته به هغې حضورؐ اوړلو (هغې طرف ته به ئې) مونځ کولو، او کوم وخت چه به ئې د فرض مونځ اراده اوکړه، نو د سورلئ نه به راکوز شولو، او قبلې ته به ئې مخ کولو.

٣٨٩: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ نَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ لَآ اَدْرِيْ زَادَ اَوْ نَقَصَ فَلَمَّا سَلَّمَ قِيْلَ لَهٗ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَحَدَثَ فِي الصَّلٰوةِ شَيْءٌ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوْا صَلَّيْتَ كَذَا وَ كَذَا

٣٨٩: عثمان. جرير. منصور. ابراهيم. علقمه. عبدالله (بن مسعود) روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم مونځ اوکړ. ابراهيم اووې. دا ماته ياد نۀ دي، چه حضورؐ مونځ زيات اوکړ يا کم. خو کوم وخت چه حضورؐ سلام او کرځولو، نو حضورؐ ته عرض اوکړې شو، يا رسول الله، آيا مونځ کښې څۀ نوې خبره راغله څۀ؟ حضورؐ او فرمائيل، هغه څنګه، خلقو عرض اوکړ، چه تاسو دومره مونځ اوکړ، نو

فَثَنٰى رِجْلَيْهِ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمَّا أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ قَالَ إِنَّهُ لَوْ حَدَثَ فِي الصَّلٰوةِ شَيْءٌ لَنَبَّأْتُكُمْ بِهٖ وَلٰكِنْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ أَنْسٰى كَمَا تَنْسَوْنَ فَإِذَا نَسِيْتُ فَذَكِّرُوْنِيْ وَ إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ ثُمَّ لِيُسَلِّمْ ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ.

حضورؐ خپلې دواړه پښې راغبرګې کړې' قبلې ته ئې مخ کړلو او دوه سجدې ئې اوکړې. دې نه پس ئې سلام او ګرځولو. بیاچه ئې مونږ ته مخ کړو' نو وې فرمائیل' که مونځ کښې څۀ نوې حکم راغلې وې' نو ما به تاسو خبر کړې وې' لیکن زۀ ستاسو پشان یو بشر یم څنګه چه تاسو نه هیره کیږي' دغسې خما نه هم هیره کیږي. چه ما نه هیره اوشي' نو ماته ئې یادونې. او که تاسو کښې چاته مانځه کښې شک شي' نو هغۀ له پکار دي' چه ذَ صحیح معلومولو کوشش اوکړي اوپه هغې مونځ تمام کړي. بیا سلام ګرځولو نه پس دې دوه سجدې اوکړي.

١. دې روايت کښې د نبي عليه الصلاة والسلام د هيريدو (ذَ سهو) او د سجدهٔ سهو بيان دې ماته دا معلومه نه ده چه دا سجده نبي عليه الصلاة والسلام د کوم څيز په پريخودو کړې وه يا ئې د مونځ نه بَهر کار په مونځ کښې کړې وۀ. ليکن ددې نه روستو د بخاري په بل حديث کښې روايت دې چه نبي عليه الصلاة والسلام د څلورو رکعاتو پځائې پنځه رکعاته ادا کړي وۀ. د دې وجې نه ئې سجده سهو کړې وه. هغه روايت د ابراهيم نخعي شاګرد حَکَم نقل کړيدې د هغې حديث باقي سند ددې سند پشان دې په هغه روايت کښې د شک ذکر نشته. نو معلومه دا شوه چه مونځ کښې د کمي يا زياتي شک ابراهيم نخعي ته نه وۀ شوې. بلکې شک ذَ هغه شاګرد منصور ته شوې وۀ. چه هغه د ابراهيم نخعي نه روايت کړې دې دې روايت کښې دي. چه دغه مونځ د ماسپخين وۀ.

## بَاب ٢٧٣ : مَا جَآءَ فِي الْقِبْلَةِ وَمَنْ لَّمْ يَرَ الْإِعَادَةَ عَلٰى مَنْ سَهَا فَصَلّٰى إِلٰى غَيْرِ الْقِبْلَةِ وَقَدْ سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَكْعَتَيِ الظُّهْرِ وَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ بِوَجْهِهٖ ثُمَّ أَتَمَّ مَا بَقِيَ.

باب ٢٧٣ : ذَ قبلې متعلق چه نقل دې چه چا په هيره غير قبلې طرف ته مونځ اوکړۀ' نو دوباره مونځ وله ضروري نۀ دې. او بې شکه نبي صلى الله عليه وسلم ذَ ماسپخين په دوه رکعاتو کښې سلام ګرځولو نه پس خلقو ته مخ کړې وو. دې نه پس چه څۀ باقي پاتې شوې وو. هغه ئې پوره کۀ.

٣٩٠ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ قَالَ نَا هُشَيْمٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَافَقْتُ رَبِّيْ فِيْ ثَلٰثٍ قُلْتُ يَا

٣٩٠ : عمرو بن عون. هشيم. حميد. انس بن مالکؓ روايت کوي. عمرؓ او فرمائيل. خما خپل پروردګار سره درې خبرو کښې موافقت اوشو (يو ځل) ما اووې' يا رسول اللّٰه' کاش چه مونږ مقام ابراهيم ذَ مونځ ځائې مقرر

رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوِ اتَّخَذْنَا مِنْ مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى فَنَزَلَتْ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى وَ اٰيَةُ الْحِجَابِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَمَرْتَ نِسَآءَكَ اَنْ تَحْتَجِبْنَ فَاِنَّهُ يُكَلِّمُهُنَّ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ الْحِجَابِ وَاجْتَمَعَ نِسَآءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ فَقُلْتُ لَهُنَّ عَسٰى رَبُّهُ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهُ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمَاتٍ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ يَحْيٰى بْنُ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا بِهٰذَا.

کړے وے. نو په دے خبره دا آیت نازل شو: وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى: او ذ حجاب (پردے) آیت (هم خما ذ خواهش مطابق نازل شو) خکه چه ما عرض اوکۀ' یا رسول اللّٰه' کاش' چه تاسو خپلو بیبیانوٴ ته ذ پردے حکم ورکړے' خکه چه هغوي سره هر نیک او بد خبرے اترے کوي. نو ذ حجاب آیت نازل شو. او (او مل) ذ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم بیبیانے حضور ته په خپلو بعضو مطالبو سره راجمع شوے' نو ما هغوي ته اووے' که حضورؐ تاسو له طلاق ورکړي' نو خپل پروردګار به ورله بدله کښې ستاسو نه بهترے بیبیانے ورکړي' چه مسلمانانے (فرمانبردارے) به وي. نو بیا دا آیت نازل شو. ابن ابي مریم داحدیث داسے روایت کړۀ' چه مونږ ته یحیٰي بن ایوب هغۀ ته حمید اووے' چه ما دا حدیث ذ حضرت انس نه آوریدلے دے.

۳۹۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَآءٍ فِيْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ اِذْ جَآءَهُمْ اٰتٍ فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْاٰنٌ وَّقَدْ اُمِرَ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبَلُوْهَا وَ كَانَتْ وُجُوْهُهُمْ اِلَى الشَّامِ فَاسْتَدَارُوْا اِلَى الْكَعْبَةِ.

۳۹۱: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. عبداللّٰه بن دینار. عبداللّٰه بن عمرؓ روایت کوي' چه (یو خلے) خلقو مقام قبا کښې د سحر مونځ کولو' چه ناساپه څوک راغے' هغۀ اووے' په رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نن شپه یو آیت نازل شوے دے. حضورؐ ته حکم ورکړے شوے دے چه کعبے طرف ته مخ کړي. دے آوریدو سره ټولو خلقو (مانځه کښې) کعبے طرف ته مخ کړو (دے نه مخکښې) ذ هغوي مخ شام طرف ته وو.

۳۹۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۳۹۲: مسدد. یحیٰي. شعبه. حکم. ابراهیم. علقمه. عبداللّٰه بن مسعودؓ روایت کوي' چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم (یو خلے) ذ ماسپخین پنځه رکعاته اوکړل' صحابه ؤ عرض اوکۀ' ایا مونځ کښې زیاتے

وَسَلَّمَ الظُّهْرَ خَمْسًا فَقَالُوْا اَزِيْدَ فِي الصَّلٰوةِ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوْا صَلَّيْتَ خَمْسًا قَالَ فَثَنٰى رِجْلَهٗ وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ.

راغلے دے؟ نو حضورؐ او فرمائيل' هغه څنګه؟ خلقو عرض اوکړ' چه تاسو پينځه رکعاته اوکړل. عبدالله والي' بيا حضورؐ پښے اوګرځولے او دوه سجدے ئے اوکړے.

## باب ۲۷۴: حَكِّ الْبُزَاقِ بِالْيَدِ مِنَ الْمَسْجِدِ.

## باب ۲۷۴: تو کانړے ذ لاس په ذريعه ذ جمات نه ذ صاف کولو بيان.

۳۹۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ نَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِ حَتّٰى رُءِيَ فِيْ وَجْهِهٖ فَقَامَ فَحَكَّهٗ بِيَدِهٖ فَقَالَ اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا قَامَ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَاِنَّهٗ يُنَاجِيْ رَبَّهٗ اَوْ اِنَّ رَبَّهٗ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ فَلَا يَبْزُقَنَّ اَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهٖ ثُمَّ اَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهٖ فَبَصَقَ فِيْهِ ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهٗ عَلٰى بَعْضٍ فَقَالَ اَوْ يَفْعَلُ هٰكَذَا.

۳۹۳: قتيبه. اسمعيل بن جعفر. حميد. انس بن مالکؓ روايت کوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم قبلے طرف ته څۀ تو کانړے اوليدلے' نو دا حرکت لے خوښ نۀ کۀ' تر دے چه ذ غصے اثر ذ حضورؐ په مخ ظاهر شولو' نو حضورؐ اودريدلو او هغه تو کانړے ئے خپل لاس مبارک سره صاف کړلے. بيائے او فرمائيل' تاسو کښې چه څوک مونځ ته اودريږي' نو هغه خپل پرودګار سره مناجات کوي' يا (حضور داسے او فرمائيل چه) ذ هغۀ پروردګار ذ هغۀ او قبلے په مينځ کښې وي' نو هغۀ له ذ قبلے مخے ته تو کل نۀ دي پکار' بلکه خپل ګس طرف ته يا ذ خپل قدم لاندے دے تو کي. بيا حضورؐ ذ خپل څادر پيسکے واخست هغے کښې لے اوتو کل' ورے مېولو' او' ورے فرمائيل چه يا دغسے دے کوي.

۳۹۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى بُصَاقًا فِيْ جِدَارِ الْقِبْلَةِ فَحَكَّهٗ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ اِذَا كَانَ اَحَدُكُمْ يُصَلِّيْ فَلَا يَبْصُقْ قِبَلَ وَجْهِهٖ فَاِنَّ اللّٰهَ

۳۹۴: عبدالله بن يوسف. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم (پو ځل) قبلے طرف ته ديوال کښې څۀ تو کانړے اوليدلے' نو حضورؐ هغه صاف کړلے' بيا خلقو ته لے مخ کړے او' ورے فرمائيل' کله چه تاسو کښې څوک مونځ کوي' سر مخ ئے خپل مخ ته مخامخ نۀ تو کي' ځکه چه هغه مونځ کوي' نو الله سبحانه' ذ هغۀ مخ ته مخامخ

سُبْحَانَهُ قِبَلَ وَجْهِهِ اِذَا صَلّٰی. وي.

۱. د بنده د خپل رب سره بيټي بيټي خبرے كول ښكاره دي ليكن ذ رب العزت خبرو كښ ذ شريكوالي مطلب د الله د رحمت او رضا مخامخ كيدل دي دے حديث شريف كښ دي "چه ربّ العزت د بنده او ذ هغه د قبلے په مينځ كښ وي". خطابي ددے معني دا بيان كړيده چه كله بنده مانځه كښ قبلے ته مخ كړي نو هغه په حقيقت كښ الله تعالٰي ته مخ كړے وي. له دے وجے نه دا ويلے شي چه د بنده مقصد ذ هغه او د قبلے په مينځ كښ دے بعضے محدثينو ويلے دي چه دلته عبارت كښ مضاف حذف شوے دے يعني د خدائے تعالٰي لوئي او د هغه ثواب د بنده او د قبلے په مينځ كښ دے ابن عبدالبر ليكلے دي چه دے حديث شريف د قبلے تعظيم او ادب كولو د پاره په دے طريقه بيان شويدے د مونځ نه بغير په نورو وختونو كښ هم په جُمات كښ توكانړي توكل د جمات د تعظيم او د ادب خلاف عمل دے ذ اسلام ابتداء كښ ډير خلق د دے احكامونه بے خبره وو په دے وجه داسے واقعات پيښ شو.

۳۹۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى فِيْ جِدَارِ الْقِبْلَةِ مُخَاطًا اَوْ بُصَاقًا اَوْ نُخَامَةً فَحَكَّهُ.

۳۹۵: عبدالله بن يوسف. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشه اُمّ المومنينؓ روايت كوي چه رسول الله صلے الله عليه وسلم (يو ځل) قبلے طرف ته ديوال كښ ذ پوزے ځه لعاب يا بلغم يا توكانړے اوليد، نو حضورؐ هغه صاف كړلو.

باب۲۷۵: حَكِّ الْمُخَاطِ بِالْحَصٰى مِنَ الْمَسْجِدِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنْ وَطِئْتَ عَلٰى قَذِرٍ رَّطْبٍ فَاَغْسِلْهُ وَ اِنْ كَانَ يَابِسًا فَلَا.

باب۲۷۵: ذ قنړ ذ كِټكو په ذريعه ذ جمات نه ذ صاف كولو بيان. ابن عباسؓ وئيلے دي، كه تهٔ په لوند نجاست لاړشے، نو هغه اوينزه او كه اوچ (خشک) وي، نومه ئے وينزه.

۱. د دے نه مخكښ تير شوي حديث كښ داوؤ "چه توكانړي پخپل لاس صفا كول" بعضے علماؤ دا ليكلي دي چه بخاري رحمة الله عليه يو باب كښ "توكانړي په لاس صفا كول" بل باب كښ په كټكو صفا كول ذكر كړيدي. د ړومبي باب دا مطلب دے چه توكانړي نبي عليه الصلاة والسلام په خپل مبارک لاس صفا كړل (پاک كړل) د دويم باب دا مطلب دے چه توكانړي، قنړ (خراشكي) په كټكي صفا كړل د امام بخاري رحمة الله عليه دا عادت دے چه مختلف روايات مناسب بابونو كښ ذكر كوي. نو دواړه واقعات پيښ شوي د جُدا جُدا، سرليک نه غلط فهمي كيدل پكار نه دي.

۳۹۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ نَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ اَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ

۳۹۶: موسىٰ بن اسمٰعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن روايت كوي، ابو هريره او ابو سعيد خدري هغهٔ

الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ وَ اَبَا سَعِيْدٍ حَدَّثَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى نُخَامَةً فِيْ جِدَارِ الْمَسْجِدِ فَتَنَاوَلَ حَصَاةً فَحَتَّهَا فَقَالَ اِذَا تَنَخَّمَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَخَّمَنَّ قِبَلَ وَجْهِهٖ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى.

تـه اووې چـه رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عليـه وسلم (يـو خـل) ذ جـمـات پـه ديوال څـه بلغم اوليد' نو حضورؐ كـتـكـو سـره هغه اومږلو' اووې فرمائيل' تاسـو كـبنې چـه څوک بلغم توكي' نو نـهٔ دې خپلې مخې تـه تـوكي اونـهٔ خپل ښي طرف تـه' بلكـه خپل كـس طـرف تـه دې تـوكـي. يـا ذ خپلې كسې پښې لاندې دې توكي.

## بـاب ۲۷٦: لَا يَبْصُقُ عَنْ يَّمِيْنِهٖ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۲۷٦: مونځ كـبنې دې ښي طرف ته نهٔ توكي.

۳۹۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ نَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ وَ اَبَا سَعِيْدٍ اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى نُخَامَةً فِيْ حَآئِطِ الْمَسْجِدِ فَتَنَاوَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَصَاةً فَحَتَّهَا ثُمَّ قَالَ اِذَا تَنَخَّمَ اَحَدُكُمْ فَلَا تَنَخَّمْ قِبَلَ وَجْهِهٖ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى.

۳۹۷: يـحـيـي بـن بـكـيـر. ليـث. عـقـيـل. ابـن شـهـاب. حـمـيـد بـن عبدالـرحـمٰـن نـه روايت كوي' ابـوهـريـره او ابـو سـعيـد هغـهٔ تـه اووې' (يو خلې) رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عليـه وسـلم ذ جـمـات پـه ديـوال څـه بـلـغـم اوليد' نو كـتـكـو سـره ئې هـغـه او مـږلـو او وې فـرمـائيـل' تـاسـو كـبنې چـه څـوک بـلـغـم تـوكـي' نو نـهٔ دې خپلې مـخـې تـه تـوكـي' او نـهٔ دې خپل ښـي طـرف تـه. بـلـكـه خپل كـس طـرف تـه يـا ذ خپلې پښې لاندې دې توكي.

۳۹۸: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتْفُلَنَّ اَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ رِجْلِهِ الْيُسْرٰى.

۳۹۸: حـفـص بـن عـمـر. شعبـه. قتـاده. حضـرت انسؓ روايـت كـوي' نبـي صلي اللّٰـه عليـه وسـلـم او فـرمـائيـل' تـاسـو كـبنې دې څـوک خپلې مـخـې تـه او ښـي طـرف تـه نـهٔ توكي' خپل كـس طـرف تـه يـا ذ خپلې كسې پښې لاندې دې توكي.

## باب ۲۷۷: لِيَبْصُقْ عَنْ يَّسَارِهٖ

## باب ۲۷۷: كه مونځ كبنې ذ توكلو ضرورت شي' نو

اَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى.

خپل ګس طرف ته یا د خپلې ګسې پښې لاندې توکل پکار دي.

٣٩٩: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ نَا بْنُ قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْمُؤْمِنَ اِذَا كَانَ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّمَا يُنَاجِيْ رَبَّهُ فَلَا يَبْزُقَنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ يَسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهٖ.

٣٩٩: ادم. شعبه. قتاده. انس بن مالکؓ روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، مؤمن مونځ کښې خپل پروردګار سره مناجات کوي، په دې وجه نه دې خپلې مخې ته توکي او نه خپل ښي طرف ته، بلکه خپل ګس طرف ته یا د خپلې پښې لاندې دې توکي.

٤٠٠: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ نَا سُفْيٰنُ قَالَ نَا الزُّهْرِيُّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْصَرَ نُخَامَةً فِيْ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَحَكَّهَا بِحَصَاةٍ ثُمَّ نَهٰى اَنْ يَبْزُقَ الرَّجُلُ بَيْنَ يَدَيْهِ اَوْ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ يَسَارِهٖ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعَ حُمَيْدًا عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ نَحْوَهٗ.

٤٠٠: علي. سفیان. زهري. حمید بن عبدالرحمٰن. ابو سعید خدري نه روایت دې، چه نبي صلي الله علیه وسلم د جمات قبلې جانب ته څه بلغم اولید. نو یو کنټکي سره ئې هغه او مرلو، بیا حضورؐ د دې نه منع اوکړه، چه څوک دې خپلې مخې ته یا خپل ښي طرف ته اونه توکي، بلکه خپل ګس طرف ته یا د خپلې ګسې پښې لاندې دې توکي. او زهري نه روایت دې، چه هغه د حمید نه او هغه د ابو سعیدؓ نه دغسې اوریدلې دي.

باب ٢٧٨: كَفَّارَةِ الْبُزَاقِ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ٢٧٨: جمات کښې د توکلو د کفارې بیان.

٤٠١: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ نَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيْئَةٌ وَّ كَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا.

٤٠١: آدم. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلم او فرمائیل چه جمات کښې توکل ګناه ده، او د هغې کفاره داده، چه هغه ښخ (دفن) کړې شي.

باب ٢٧٩: دَفْنِ النُّخَامَةِ فِي

باب ٢٧٩: جمات کښې د بلغم ښخولو

الْمَسْجِدِ.

بیان.

۴۰۲: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ أَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللّٰهَ مَادَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ وَلَا عَنْ يَمِيْنِهِ فَإِنَّ عَنْ يَمِيْنِهِ مَلَكًا وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ فَيَدْفِنُهَا.

۴۰۲: اسحق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام. ابوهريره د نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل کوي، حضورؐ او فرمائيل، تاسو کښ چه څوک مونځ د پاره او درېږي نو هغه دې خپلے مخے ته نه تو کي، ځکه چه څو پورے هغه مونځ کښ دے، نو الله سره مناجات کوي، او نهٔ دے خپل ښي طرف ته تو کي، ځکه چه د هغهٔ ښي طرف ته يوه فرښته وي. بلکه خپل کس طرف يا د خپلے پښے لاندے دے تو کي، بيا دے هغه ښخ کړي.

ف: مناجات: دُعا: عرض. زاري. التجا. خواست. د الله پاک په بارگاه کښ د خپلے عاجزئ کلمات.

باب ۲۸۰: إِذَا بَدَرَهُ الْبُزَاقُ فَلْيَأْخُذْ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ.

باب ۲۸۰: چه په تو کلو مجبور شي، نو هغه د خپلے کپړے يو طرف کښ اخستل پکار دي.

۴۰۳: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمٰعِيْلَ قَالَ نَا زُهَيْرٌ قَالَ نَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ فَحَكَّهَا بِيَدِهِ وَرُئِيَ مِنْهُ كَرَاهِيَةٌ أَوْ رُئِيَ كَرَاهِيَتُهُ لِذٰلِكَ وَشِدَّتُهُ عَلَيْهِ وَقَالَ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ فِيْ صَلٰوتِهِ فَإِنَّمَا يُنَاجِيْ رَبَّهُ أَوْ رَبُّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قِبْلَتِهِ فَلَا يَبْزُقَنَّ فِيْ قِبْلَتِهِ وَلٰكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ ثُمَّ أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَزَقَ فِيْهِ وَرَدَّ بَعْضَهُ عَلٰى بَعْضٍ قَالَ أَوْ يَفْعَلُ هٰكَذَا.

۴۰۳: مالک بن اسمٰعيل. زهير. حميد. انس بن مالکؓ روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم قبلے طرف ته څهٔ بلغم اوليد، نو خپل لاس مبارک سره ئے صاف کهٔ، او د حضورؐ په طبيعتي ترے ظاهره شوه (يا دائے اووے) چه د هغے په سبب حضورؐ په طبيعته شو، نو حضورؐ او فرمائيل، کله چه تاسو کښ څوک مونځ کوي، نو هغه خپل پروردگار سره مناجات کوي يا (دائے او فرمائيل چه پروردگار د هغه او قبلے په مينځ کښ وي، نو قبلے ته دے نهٔ تو کي، بلکه خپل کس طرف يا د پښے لاندے دے تو کي. بيا حضورؐ د خپل څادر پيسکے اوچت کهٔ هغے کښ ئے او تو کل او، وړے فرمائيل، يا داسے دے کوي.

**باب ۲۸۱ : عِظَةِ الْإِمَامِ النَّاسَ فِي إِتْمَامِ الصَّلٰوةِ وَ ذِكْرِ الْقِبْلَةِ.**

**باب ۲۸۱: ذَ امام خلقوته نصيحت كول چه هغوي خپل مونځ مكمل كړي او ذَ قبلے ذكر.**

۴۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلْ تَرَوْنَ قِبْلَتِي هٰهُنَا فَوَاللّٰهِ مَا يَخْفٰى عَلَيَّ خُشُوعُكُمْ وَلَا رُكُوعُكُمْ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي.

۴۰۴: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، تاسو خما مخ دے طرف ته گنړئے، حالانكه په اللّٰه مِ دے قسم وي، ما نه ستاسو خشوع او ستاسو ركوع هيڅ هم پټ نۀ دي. بلكه زۀ يقيناً تاسو ذَ خپل شا ذَ طرف نه هم وينم.

۴۰۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ قَالَ نَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلّٰى لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ فِي الصَّلٰوةِ وَ فِي الرُّكُوعِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ وَرَائِي كَمَا أَرَاكُمْ.

۴۰۵: يحيي بن صالح. فليح بن سليمان. هلال بن علي. انس بن مالک روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه زۀ تاسو ذَ ورستو نه هم داسے وينم، څنګه چه تاسو ذَ مخے نه وينم.

۱. بعضے علماؤ ويلے دي چه نبي عليه الصلاة والسلام ته به ذَ وحي يا الهام په ذريعه معلوميدل چه خما نه روستو مونځ كونكے په څه حال دے او څه كار كوي. حافظ ابن حجر رحمة اللّٰه عليه د حديث شريف مطلب دا ليكلے دے چه دلته د ليدلو نه مراد يقيني او واقعي ليدل دي. دا د نبي عليه السلام معجزه وه چه د خلقو د اعمالو نګراني نبي عليه السلام د شا د طرفه ليدل دا د عادت او تجربے خلاف خبره ده خكه ديته معجزه ويلے شي.

**باب ۲۸۲ : هَلْ يُقَالُ مَسْجِدُ بَنِي فُلَانٍ.**

**باب ۲۸۲ : آيا ذَ بني فلان جمات ونيل جائز دي (يا نه)**

۴۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي أُضْمِرَتْ مِنَ الْحَفْيَاءِ وَ أَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ وَ سَابَقَ بَيْنَ

۴۰۶: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع عبداللّٰه بن عمرؓ روايت كوي، چه (يو ځلے) رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذَ هغے آسونو په مينځ كښې چه تيار كړے شوي وو. ذَ مقام حفياء نه ثنية الوداع پورے منډه اوكړه، او كوم آسونه چه تيار شوي نۀ وو، ذَ هغوي مينځ كښې ذَ ثنيه او بني زريق ذَ

الْعَمَلِ الَّتِيْ لَمْ تُضْمَرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ اِلٰى مَسْجِدِ بَنِيْ زُرَيْقٍ وَّ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ فِيْمَنْ سَابَقَ بِهَا.

جماعت پورے ذ آسونو زغل اوکړ. او عبدالله بن عمرؓ د اسونو په دغه زغلولو کښے شرکت کړے وو.

ف: (۱) ګهوړ دوړ: آسونه زغلول.

(۲) دلته اصيل نه مطلب تړبنډ يا تربيت يافته.

۱. د دينه معلومه شوه چه د نبي عليه السلام په مبارکه زمانه کښ د جمات نسبت نور چاله هم کيدو. لکه د بني زريق جُمات اګرچه په قرآن مجيد کښ دي "چه جماتونه د الله تعالٰي دي" ليکن بياهم د جُمات مونځ کونکو يا جوړونکوته نسبت کولو کښ ګناه نشته. لکه څرنګ چه داسونو زغلولو حديث شريف کښ ذکر دے دے منډه کښ هغه اسونه شريک وو چه کوم د جهاد د پاره تياريدل. د دے تفصيل به کتاب الجهاد کښ رازي.

## باب ۲۸۳: اَلْقِسْمَةِ وَ تَعْلِيْقِ الْقِنْوِ فِي الْمَسْجِدِ

قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْقِنْوُ الْعِذْقُ وَالِاثْنَانِ قِنْوَانٌ وَالْجَمَاعَةُ اَيْضًا قِنْوَانٌ مِّثْلُ صِنْوٍ وَّ صِنْوَانٍ وَّ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ يَعْنِي ابْنَ طَهْمَانَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَقَالَ انْثُرُوْهُ فِي الْمَسْجِدِ وَ كَانَ اَكْثَرَ مَالٍ اُتِيَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الصَّلٰوةِ وَلَمْ يَلْتَفِتْ اِلَيْهِ فَلَمَّا قَضَى الصَّلٰوةَ جَآءَ فَجَلَسَ اِلَيْهِ فَمَا كَانَ يَرٰى اَحَدًا اِلَّا اَعْطَاهُ اِذْ جَآءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطِنِيْ فَاِنِّيْ فَادَيْتُ نَفْسِيْ وَفَادَيْتُ عَقِيْلًا فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ

باب ۲۸۳: جمات کښ د يو څيز تقسيمول او ذ غنچک آويزاندلو بيان. امام بخاري وائي' چه قنو (او) غدق يو څيز دے. او دوروته قنوان او جمع ته هم قنوان وائي. څنګه چه صنو او صنوان وئيلے شي. ابراهيم يعني ذ طهمان خوئ ذ عبدالعزيز بن صهيب نه نقل کړے دے' چه نبي صلعم ته ذ بحرين نه څۀ مال راوړے شو' نو حضورؐ او فرمائيل' چه دا جمات کښ خور کړئ' او دا مال ذ هغے ټولو مالونو نه زيات وو' کوم چه اوسه پورے رسول الله صلے الله عليه وسلم ته راوړلے شوے وو. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم مانځه ذ پاره لاړلو' او هغے مال طرف ته ئے توجه هم اونۀ کړه. کوم وخت چه حضورؐ مونځ اوکۀ' نو راغے' او هغے سره کيناست' او څوک چه به ئے ليدلو' هغۀ ته به ئے ضرور ورکولو. دے کښ حضورؐ له حضرت عباسؓ راغے' هغۀ اووے' يا رسول اللهؐ ماله هم (ذ دے مال نه) راکړه' ځکه چه ما خپله فديه هم ورکړے ده' او ذ عقيل فديه مې هم ورکړے ده' هغۀ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' چه واخله' نو هغۀ خپله کپړه کښ په دواړه لاسه (مال) راواخست' بيائے هغه اوچتولو' نو اوچتولے ئے نۀ شو. بيا هغۀ اووے' يا رسول اللهؐ دوي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْ فَحَثَا فِيْ ثَوْبِهٖ ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهٗ فَلَمْ يَسْتَطِعْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ اِلَيَّ قَالَ لَا قَالَ فَارْفَعْهُ اَنْتَ عَلَيَّ قَالَ لَا فَنَثَرَ مِنْهُ ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهٗ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ عَلَيَّ قَالَ لَا قَالَ فَارْفَعْهُ اَنْتَ عَلَيَّ قَالَ لَا فَنَثَرَ مِنْهُ ثُمَّ احْتَمَلَهٗ فَاَلْقَاهُ عَلٰى كَاهِلِهٖ ثُمَّ انْطَلَقَ فَمَا زَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُتْبِعُهٗ بَصَرَهٗ حَتّٰى خَفِيَ عَلَيْنَا عَجَبًا مِّنْ حِرْصِهٖ فَمَا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَثَمَّ مِنْهَا دِرْهَمٌ.

کښ چه حکم ور کړه چه تا ته ئې راوچت کړي. حضور ورته او فرمائيل نه (يعني داسې مشر کېدې) نو عباسؓ ورته اووې چه تاسو ئې په خپله خما د پاسه راواچولې حضور ورته او فرمائيل نه نو عباسؓ د هغې نه څه (مال) او غورځولو او باقي ئې اوچتولو خو اوچت ئې نه کړې شو نو وې وئيل يا رسول الله دوي کښې چاته حکم ور کړه چه ماته ئې راوچت کړي. حضورؐ ورته او فرمائيل نه نو هغه ورته اووې چه تاسو ئې خپله راوچت کړئ. حضورؐ د دې نه انکار او کړه. بيا عباسؓ د هغې نه څه نور (مال) هم او غورځولو. بيائې هغه باقي په خپله اوږه کېښودلو او روان شولو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغهٔ په حرص تعجب کولو او هغه پسې ئې برابر کتل تر دې چه هغه خمونږ (د نظر نه) غائب شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغې ځائې نه هغه وخت پاسېدلو څهٔ وخت چه ټولمال ختم شو او يو درهم هم باقي پاتې نهٔ شو.

## بَابٌ ۲۸۴ : مَنْ دُعِيَ لِطَعَامٍ فِي الْمَسْجِدِ وَمَنْ اَجَابَ مِنْهُ.

## باب ۲۸۴ : چاته چه د طعام دعوت جمات کښې ور کړې شي او څوک چه ئې قبول کړي.

۴۰۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسًا قَالَ وَجَدْتُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَمَعَهٗ نَاسٌ فَقُمْتُ فَقَالَ لِيْ اَرْسَلَكَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ لِطَعَامٍ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ لِمَنْ حَوْلَهٗ قُوْمُوْا فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ.

۴۰۷ : عبدالله بن يوسف. مالک. اسحاق بن عبدالله. حضرت انسؓ روايت کوي، ما نبي صلي الله عليه وسلم جمات کښې اوليد، نور خلق هم ورسره وو. زهٔ اودرېدم نو حضورؐ ماته او فرمائيل، تهٔ ابو طلحه رالېږلې ئې. ما اووې. او. حضورؐ او فرمائيل، طعام د پاره. ما عرض او کړهٔ او. حضورؐ خپلو ملګرو ته او فرمائيل، چه پاسئې، حضورؐ روان شو، او زه د هغوئ نه مخکښې روان شوم.

## بَابٌ ۲۸۵ : اَلْقَضَاءِ وَاللِّعَانِ

## باب ۲۸۵ : جمات کښې د مقدمو فيصله او د

فِي الْمَسْجِدِ بِمَنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ. سړو او ښځو مينځ کښې دَ لعان کولو بيان.

۱. لِعان ديته وائي. چه کله خاوند، ښځه باندې زنا تور اولګوي، يا ورته يقين اوشي خو ګواه ورسره نه وي. نو شريعت کښې د ښځې خاوند د تعلقاتو خيال ساتلو په وجه اجازت دې چه دواړه قاضي سره خپله دعوه وړاندې کړي او خاوند، پنځل لعنت اوائي که چرې دې دروغژن وي او ښځه دې پنځل د الله غضب اوائي که چرې خاوند ئې رښتينې وي نو هغې نه پس به قاضي د دواړو په مينځ کښې د جُدائي فيصله اوکړي.

۴۰۸: حَدَّثَنَا يَحْيٰى نَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ نَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَيْتَ رَجُلًا وَّجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا اَيَقْتُلُهٗ فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَ اَنَا شَاهِدٌ.

۴۰۸: يحيٰي. عبدالرزاق. ابن جريج. ابن شهاب. سهل بن سعدؓ روايت کوي، چه يو سړي عرض اوکړه يا رسول الله، په دې م پوهه کړئې، که يو سړې خپلې بي بي سره (غير) سړې اووينې، نو آيا هغهٔ له جائز دي، چه هغه قتل کړي بيا هغې دواړو (ښځې خاوند) په جومات کښې لِعان اوکړو، اوزهٔ هغه وخت موجود ووم.

(ملاعنه: په يو بل چه لعنت اوکړې شي. لعان اوکړې شي).

بـاب ۲۸۶: اِذَا دَخَلَ بَيْتًا يُصَلِّيْ حَيْثُ شَآءَ اَوْ حَيْثُ اُمِرَ وَلَا يَتَجَسَّسُ.

باب ۲۸۶: که څوک دَ چا کورته ورشي. نو کوم ځائې چه غواړي، مونځ دې اوکړي يا کوم ځائې چه ورته اووئيلې شي زيات تحقيق دې نهٔ کوي.

۴۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ نَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَحْمُوْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَاهُ فِيْ مَنْزِلِهٖ فَقَالَ اَيْنَ تُحِبُّ اَنْ اُصَلِّيَ لَكَ مِنْ بَيْتِكَ قَالَ فَاَشَرْتُ لَهٗ اِلٰى مَكَانٍ فَكَبَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَفَفْنَا خَلْفَهٗ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

۴۰۹: عبدالله بن مسلمه. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. محمود بن ربيع. حضرت عتبان بن مالکؓ روايت کوي، چه نبي عليه السلام دَ هغهٔ مکان ته راغې، او، وې فرمائيل، تاسو خپل کور کښې کوم ځائې غواړې، چه زهٔ ستاسو دَ پاره (هلته) مونځ اوکړم. هغه وائي، ما يو مقام طرف ته اشاره اوکړه نبي صلي الله عليه وسلم تکبير اوکهٔ او مونږ حضورؐ پسې صف جوړ کهٔ. بيا حضورؐ دوه رکعاته اوکړل.

بـاب ۲۸۷: اَلْمَسَاجِدِ فِي الْبُيُوْتِ وَ صَلَّى الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ فِيْ

باب ۲۸۷: کورونو کښې دَ جماتونو جوړولو بيان. او براء بن عازبؓ دَ خپل کور په جمات کښې

**مَسْجِدٍ فِيْ دَارِهٖ جَمَاعَةً.** جماعت سره مونځ کړے دے.

۱. دلته د جُمات نه مراد دا دے چه کور کښې د مونځ کولو د پاره څه ځائے خاص کړي. په دے د جماتونو احکام نه نافذ کیږي. او چاته چه دغه کور په وراثت کښې ورکړے شي نو دغه د کور جمات به ورته هم ورکیږي. په مُنْيَةُ الْمُصَلِّي کښې لیکلے دي که چرے کوم بنده د کور په جمات کښې په امامتۍ سره مونځ اوکړي. نو هغه به جمات کښې د مونځ ادا کولو ثواب نه ورکیږي. فیض الباري ص ۴۱ ج ۲

۴۱۰: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ نَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ وَّهُوَ مِنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِّنَ الْاَنْصَارِ اَنَّهٗ اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ اَنْكَرْتُ بَصَرِيْ وَ اَنَا اُصَلِّيْ لِقَوْمِيْ فَاِذَا كَانَتِ الْاَمْطَارُ سَالَ الْوَادِي الَّذِيْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُمْ لَمْ اَسْتَطِعْ اَنْ اٰتِيَ مَسْجِدَهُمْ فَاُصَلِّيَ بِهِمْ وَ وَدِدْتُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ تَأْتِيْنِيْ فَتُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ فَاَتَّخِذَهٗ مُصَلًّى قَالَ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَفْعَلُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰى قَالَ عِتْبَانُ فَغَدَا عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ حِيْنَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ فَاسْتَاْذَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَذِنْتُ لَهٗ فَلَمْ يَجْلِسْ حِيْنَ دَخَلَ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ اَيْنَ تُحِبُّ

۴۱۰: سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. محمود بن ربیع انصاري روایت کوي، عتبان بن مالکؓ چه بدر کښې شریک شوے انصاري صحابي وو، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم له راغے، او وے وئیل، یا رسول اللّٰه، څما نظر خراب شوے دے، او زه خپل قوم ته مونځ ورکوم، کوم وخت چه باران وریږي نو هغه میدان چه څما او د هغوي په مینځ کښې دے، هغے کښې اوبه راشي، په دے وجه زهٔ د هغوي جمات ته نشم تلے، چه هغوي ته مونځ ورکړم، نو یا رسول اللّٰه، څما دا خواهش دے چه تاسو څما کورته تشریف راوړئے، او څما کور کښې مونځ اوکړئے، چه هغه ځائے زهٔ د مونځ ځائے جوړ کړم. عتبان وائي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلم هغهٔ ته او فرمائیل، انشاء اللّٰه زر، به زهٔ داسے اوکړم. عتبان وائي چه، بله ورځ راوخته، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم (دننه د راتلو) اجازت طلب کهٔ. ما حضورؐ ته اجازت ورکړلو، کوم وخت چه حضورؐ کورته راداخل شو، ناست لا نهٔ وو، چه وے فرمائیل، ته خپل کور کښې کوم ځائے غواړے، چه زهٔ هلته مونځ اوکړم، عتبان وائي، ما د کور یو مقام

أَنْ أُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ قَالَ فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى نَاحِيَةٍ مِّنَ الْبَيْتِ فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرَ فَقُمْنَا فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ قَالَ وَ حَبَسْنَاهُ عَلَى خَزِيْرَةٍ صَنَعْنَا هَالَهُ قَالَ فَثَابَ فِي الْبَيْتِ رِجَالٌ مِّنْ أَهْلِ الدَّارِ ذُوُوْ عَدَدٍ فَاجْتَمَعُوْا فَقَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ أَيْنَ مَالِكُ ابْنُ الدُّخَيْشِنِ أَوِ ابْنُ الدُّخْشُنِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ ذٰلِكَ مُنَافِقٌ لَا يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُلْ ذٰلِكَ أَلَا تَرَاهُ قَدْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ قَالَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّا نَرٰى وَجْهَهُ وَ نَصِيْحَتَهُ إِلَى الْمُنَافِقِيْنَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ قَدْ حَرَّمَ عَلَى النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَأَلْتُ الْحُصَيْنَ ابْنَ مُحَمَّدٍ الْأَنْصَارِيَّ وَهُوَ أَحَدُ بَنِيْ سَالِمٍ وَهُوَ مِنْ سَرَاتِهِمْ عَنْ حَدِيْثِ مَحْمُوْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ فَصَدَّقَهُ بِذٰلِكَ.

طرف ته حضورؐ ته اشاره اوکړه، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هلته اودريدلو تکبير ئے اوکۀ، او مونږ حضورؐ پسے صف سم کۀ. حضورؐ دوه رکعاته مونځ اوکۀ. بيائے سلام اوګرځولو. عتبان وائي، چه مونږ حضور صلي الله عليه وسلم خزيره (يو قسم طعام) خوړلو ذ پاره ايسار کړلو، چه حضورؐ ذ پاره تيار کړے شوے وو. عتبان وائي، ذ محلے خلقو کښې اکثر کور کښې راجمع شو، نو هغوي کښې يو کس اووے چه مالک بن دخيشن کوم ځائے دے، يا دائے اووے، چه ابن دخيشن کوم ځائے دے، نو هغوي کښې يو کس اووے، هغه منافق دے. الله او ذ هغۀ رسولؐ سره محبت نۀ لري. رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، داسے مۀ وايه، آيا تا هغه نۀ دے ليدلے، چه هغه ذ الله ذ خوشحالولو ذ پاره لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه وئيلے دي. نو هغے سړي اووے، الله او ذ هغۀ رسول ښۀ پوهيږي، هغۀ اووے، مونږ ذ هغۀ توجه او ذ هغۀ خير خواهي ذ منافقانو په حق کښې زياته ليدلے ده، نو رسول الله صلعم ورته او فرمائيل، الله تعالیٰ په هغے سړي اُور حرام کړے دے، چه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه او وائي او دے نه ذ هغۀ ذ الله رضا مندي مقصود وي. ابن شهاب (زهري) وائي، بيا ما ذ حصين بن محمد انصاري چه ذ بني سالم نه يو سړے دے بلکه ذ هغوي ذ سردارانو نه دے، ذ محمود بن ربيع ذ حديث متعلق تپوس اوکۀ، نو هغۀ ذ دے حديث تصديق اوکۀ.

۱. بل روايت کښې دي. چه عتبان بن مالک اوويل أَصَابَنِيْ فِيْ بَصَرِيْ بَعْضُ الشَّيْءِ خما نظر کښې څه نقصان راغلے دے د دے نه معلوميږي چه پوره نظرئے ختم شوے نه وو څه کمے پکښې راغلے وو. عتبان بن مالک رضي الله عنه ته د باران وريدو په ورځ په جمات کښې د جمعے (د امامتې) مونځ ته د نه ورتلو اجازت کړے وو. ليکن نبي عليه الصلاة والسلام عبدالله بن أمّ مکتوم رضي الله عنه ته اجازت ور کړے نه

وؤ ځکه چه هغه د موره ړوند پيدا وؤ. او د عتبان بن مالک رضي الله عنه روستو نظر خراب شوے وو.

۲. خزيره د عربو داسے يو خوراک دے چه د غوښے قيمه جوړه شي هغے کښې اوبه واچوي بيا پرے اوړه (آټا) دوړوي او پښخوي يے. بعض حضرات وائي چه د شپے غوښه کچه پريږدي د ورخيے په دغه طريقه پخه کړي. ديته عرب خزيره وائي.

۳. حاطب ابن ابي بلتعه رضي الله عنه رښتينے مؤمن وو ليکن د خپلے ښځے او د بچو د مينے په خاطر' چه مکه کښې وؤ د نبي عليه الصلاة والسلام د مکے د فتحه کولو په حقله ذ حملے' د مکے مشرکانو ته خبر ورکړے وؤ. د دے گناه په وجه د هغه په ايمان اسلام کښې څه فرق نه وؤ راغلے. ځکه چه هغه د بدر غزا کښې شريک وؤ او هغوي ته الله تعالیٰ هر څه معاف کړي دي' ممکنه ده. چه د مالک بن الدخشين رضي الله عنه د دنيا همدردئي منافقو سره وے د دے وجے نه صحابؤ رضي الله عنهم په هغه شک کولو چه منافق دے. ليکن د نبي کريم صلي الله عليه وسلم د دے وينا چه هغه مؤمن دے د هغه په ايمان اسلام کښې څه شک پاتے نشو. د ابوهريره رضي الله عنه روايت کښې شته. چه کله بعضے صحابؤ ذ مالک بن الدخشين رضي الله عنه د منافقو خلقو سره د همدردئ په وجه په هغه د منافقئ شک کولو نو نبي عليه السلام فرمايلے وؤ "آيا هغه د بدر په غزا کښې شريک نه وو"؟

## بَاب ۲۸۸ : التَّيَمُّنِ فِيْ دُخُوْلِ الْمَسْجِدِ وَ غَيْرِهٖ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَبْدَاُ بِرِجْلِهِ الْيُمْنٰى فَاِذَا خَرَجَ بَدَاَ بِرِجْلِهِ الْيُسْرٰى.

باب ۲۸۸ : جمات کښې ذ داخليدو او نورو کارونو کښې ذ ښي طرف نه ذ شروع کولو بيان' او ابن عمرؓ چه به جمات ته ننوتلو' نو خپله ښے پښه به ئے مخکښې ايښودله' او کوم وخت چه به راوتلو' نو خپله گسه پښه به ئے وړمبے کوله.

۴۱۱ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ نَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِيْ شَاْنِهٖ كُلِّهٖ فِيْ طُهُوْرِهٖ وَ تَرَجُّلِهٖ وَ تَنَعُّلِهٖ.

۴۱۱ : سليمان بن حرب. شعبه. اشعث. بن سليم سليم. مسرق. بي بي عائشهؓ روايت کوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم نه به ښومره کيدے شوه' نو خپلو کارونو کښې به ئے ذ ښي طرف نه شروع کول خوښول' خپلے پاکئ کښې' گومنز کولو کښې او خپلو پڼړو اچولو کښې (يعني دے ټولو کارونو کښې به ئے ذ ښي اړخ نه شروع کوله).

## بَاب ۲۸۹ : هَلْ يُنْبَشُ قُبُوْرُ مُشْرِكِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ يُتَّخَذَ مَكَانُهَا مَسَاجِدَ بِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَآئِهِمْ مَسَاجِدَ وَمَا يُكْرَهُ مِنَ

باب ۲۸۹ : آيا ذ جاهليت (ذ زمانے) مشرکانو قبرونو کنول او ذ هغے په ځائے جمات جوړول جائز دي' په دے چه نبي صلے الله عليه وسلم فرمائيلے دي: الله دے په يهودو لعنت اوکړي چه هغوي ذ خپلو پيغمبرانو ذ قبرونو نه جماتونه جوړ کړل او (آيا) قبرو

الصَّلٰوةِ فِي الْقُبُوْرِ وَ رَاٰى عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يُصَلِّيْ عِنْدَ قَبْرٍ فَقَالَ الْقَبْرَ الْقَبْرَ وَلَمْ يَاْمُرْ بِالْاِعَادَةِ.

كښې مونځ مكروه دے. او عمر بن خطابؓ انس بن مالك بو قبر سره په مونځ كولو اوليد نو ورته ئے او فرمائيل چه قبر دے قبر او هغه ئے د دوباره مونځ كولو حكم ورنه كړ.

۱. د انبياؤ عليهم الصلاة والسلام د قبرونو بخوا كښې مونځ كولو كښې د هغوي د تعظيم او د عزت كولو يوه طريقه ده. كافران او يهود كافران هم په دے مرض أخته وو نبي عليه الصلاة والسلام به يهود د لعنت اوړے چه دوي د پيغمبرانو قبرونو سره مونځ كوي. ليكن د مشركانو قبرونه وراښول د هغوي هډوكي بهر غورزولو كښې څه ګناه نشته چه دے عمل كښې د مشركانو د تعظيم او عزت حيال نه رازي د مشركانو د قبرونو سپكاوے روا دے د دے وجے نه د حديث شريف او د رسول الله صلي الله عليه وسلم د عمل به مينځ كښې څه اختلاف نشته.

۴۱۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ نَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ وَ اُمَّ سَلَمَةَ ذَكَرَتَا كَنِيْسَةً رَّاَيْنَهَا بِالْحَبْشَةِ فِيْهَا تَصَاوِيْرُ فَذَكَرَتَا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اُولٰٓئِكَ اِذَا كَانَ فِيْهِمَا الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَمَاتَ بَنَوْا عَلٰى قَبْرِهٖ مَسْجِدًا وَّ صَوَّرُوْا فِيْهِ تِيْكَ الصُّوَرَ فَاُولٰٓئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

۴۱۲: محمد بن مثنى. يحيى. هشام. عروه. بي بي عائشةؓ روايت كوي، چه أم حبيبهؓ او أم سلمهؓ حبش كښې يوه كرجه ليدلے وه، هغے كښې تصويرونه وو، هغوئ نبي صلے الله عليه وسلم ته ذ هغے ذكر اوكړ، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، هغے خلقو كښې به چه يو نيك سړے مړ شو، نو ذ هغه په قبر به ئے يو جمات جوړ كړ، او هغے كښې به ئے ذ غسے تصويرونه جوړول. دا خلق به ذ الله په نزد ذ قيامت په ورځ بدترين خلق وي.

۴۱۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَنَزَلَ اَعْلَى الْمَدِيْنَةِ فِيْ حَيٍّ يُّقَالُ لَهُمْ بَنُوْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ فَاَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِمْ اَرْبَعًا وَّ

۴۱۳: مسدد. عبدالوارث. ابوالتياح. انس بن مالكؓ روايت كوي چه نبي صلے الله عليه وسلم مدينے ته (په هجرت) تشريف راوړلو، نو د مدينے په اوچته علاقه كښې چه هغے ته بني عمرو بن عوف وائي، كوز شولو، او هغے خلقو كښې نبي صلے الله عليه وسلم څليريشت شپے قيام اوكړ. بيا حضورؐ بني نجار راوغښتل، نو هغوي تورے آويزانده كړے راورسيدل.

عِشْرِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اَرْسَلَ اِلٰى بَنِي النَّجَّارِ فَجَآءُ وْا مُتَقَلِّدِيْنَ السُّيُوْفَ فَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ وَ اَبُوْ بَكْرٍ رِدْفُهٗ وَ مَلَأُ بَنِي النَّجَّارِ حَوْلَهٗ اَلْقٰى بِفِنَآءِ اَبِيْ اَيُّوْبَ وَ كَانَ يُحِبُّ اَنْ يُّصَلِّيَ حَيْثُ اَدْرَكَتْهُ الصَّلٰوةُ وَ يُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ وَ اِنَّهٗ اَمَرَ بِبِنَآءِ الْمَسْجِدِ فَاَرْسَلَ اِلٰى مَلَاِبَنِي النَّجَّارِ فَقَالَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ بِحَآئِطِكُمْ هٰذَا قَالُوْا لَا وَاللّٰهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهٗ اِلَّا اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ قَالَ اَنَسٌ فَكَانَ فِيْهِ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ قُبُوْرُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ فِيْهِ خَرِبٌ وَّ فِيْهِ نَخْلٌ فَاَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُوْرِ الْمُشْرِكِيْنَ فَنُبِشَتْ ثُمَّ بِالْخَرِبِ فَسُوِّيَتْ وَ بِالنَّخْلِ فَقُطِعَ فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ وَ جَعَلُوْا عِضَادَتَيْهِ الْحِجَارَةَ وَ جَعَلُوْا يَنْقُلُوْنَ الصَّخْرَ وَهُمْ يَرْتَجِزُوْنَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُمْ وَهُوَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ لَا خَيْرَ اِلَّا خَيْرُ الْاٰخِرَةِ فَاغْفِرِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ.

اوس ګويا ما حضورؐ ته کتل چه حضورؐ په خپله سورلئ سور دے، او ابوبکرؓ د حضورؐ هم رديف (يعني وروسته سور) دے، او ذ بني نجار جماعت ذ حضورؐ نه چاپيره دے. غرض دا چه حضورؐ ذ ابو ايوبؓ مکان کښې خپل اسباب کوز کړلو. حضورؐ ته دا ښهٔ ښکاريده، چه کوم ځائے ذ مونځ وخت راشي، هم هلته به مونځ اوکړي، او حضورؐ ذ چيلو تړلو په ځائے کښې هم مونځ کولو. او کوم وخت چه حضورؐ ذ جمات ذ جوړولو حکم اوکهٔ، نو ذ بني نجار خلق ئے راوغښتل، او ورته ئے او فرمائيل، اے بني نجار، تاسو دا خپل باغ په ما خرڅ کړئے. هغوي عرض اوکهٔ، په خدائے مو ذے قسم وي، مونږ به ذ دے قيمت وانخلو، خو ذ اللّٰه تعالیٰ نه. انسؓ وائي دے باغ کښې هغه څيزونه وو، چه زه ئے تاسو ته وايم، يعني ذ مشرکانو قبرونه، او دے کښې شاړه (غير آباده) زمکه وه. او دے کښې ذ قجورو اُونے وے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ذ مشرکانو ذ قبرونو ذ کنولو حکم اوکهٔ او شاړه زمکه ئے برابره کړه، او اُونے ئے اووهلے، او ذ جمات قبلے جانب ته ئے او لړولے. او کاڼړي ئے په کښې اولګول. صحابهؓ ؤ به کاڼړي راوړل. او هغوي به رجز وے. او نبي صلعم به هغوي سره فرمائيل چه اے خدا اللّٰه، ښيګړه خو صرف ذ آخرت ښيګړه (نيکي) ده، نو انصار او مهاجرين اوبښے.

ف: رجز: هغه اشعار چه اهل عربو به ميدان جنګ کښې ذ دشمن ذ مقابلے په وخت ذ خپلے بهادرئ او شرافت ظاهر ولو د پاره فخريه طور سره وے.

۱. د عربو دا يو دستور وو چه کله به د يو لوئے عزتمند مشر سره ملاقات له تلل نو هغوي به تورے خپل څټ سره آويزانده ولے.

۲. حافظ ابن حجر رحمة الله علیه لیکلي دي چه د فحورو د دے اومونه د حوات قبلے طرفته دیوال جوړ کړے وو اونے نې اودرولے وے او په بنختو اوختو نې دیوال بنخ او هوار کړے وو او دا هم ویلے شي چه چهت جوړولو کښې نے هم دغه د فحورو اړے لګولے وے

۳. رجز د شعر یو خاص طرز وو او دے قسم شعر ته دا نوم عربو د جاهلیت په زمانه کښې کیخودلے وو.

**بَابٌ ۲۹۰: الصَّلٰوةِ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ.**

**باب ۲۹۰: د چیلو (بکریوں) تړلو په خائے کښې ذ مونځ کولو بیان.**

۴۱۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ ثُمَّ سَمِعْتُهٗ بَعْدُ يَقُوْلُ كَانَ يُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ قَبْلَ اَنْ يُبْنَى الْمَسْجِدُ.

۴۱۴: سلیمان بن حرب. شعبه. ابن التیاح. انس بن مالک روایت کوي چه نبي صلي الله علیه وسلم به د چیلو تړلو په خائے کښې مونځ کولو (ابوالتیاح ددے حدیث راوي وائي) بیا ما د انسؓ نه دا واوریدل چه حضور صلي الله علیه وسلم به د چیلو تړلو په خائیکښې ذ تعمیر نه مخکښې مونځ کولو.

۱. عربو به چیلي کلیے اوبنان ساتل دا د هغوي ګذران وو. د شپے به نے د صحرا نه راوستل او تړل به نے یو طرفته به نے صفا پاک خائے هم ساتلو. چه په هغے کښې به اوسیدل. "مسجد نبوي" لا جوړ شوے نه وو نور جماتونه هم نه وو. د مونځ د پاره اسلام کښې د کوم خاص خائے شرط نه وو ددے وجے نبي علیه الصلاة او صحابه ؤ د چیلو تړلو خائے کښې په پاکه صفا حصه کښې مونځ کولو د څه خاص خائے تخصیص نه وو. چرته چه به د مونځ وخت راغے نو هغه وخت به نے ادا کولو چه کله جُمات (مسجدنبوي) جوړ شو. او نور جماتونه آباد شو نو په جمات کښې مونځ ادا کول ضروري شو.

**بَابٌ ۲۹۱: الصَّلٰوةِ فِيْ مَوَاضِعِ الْاِبِلِ.**

**باب ۲۹۱: ذ اوبنانو تړلو په خائے کښې ذ مونځ کولو بیان.**

۴۱۵: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَيَّانَ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ قَالَ رَاَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يُصَلِّيْ اِلٰى بَعِيْرِهٖ وَقَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهٗ.

۴۱۵: صدقه بن فضل. سلیمان بن حیان. عبیدالله. نافع روایت کوي چه ما ابن عمرؓ خپل اوبن طرف ته په مونځ کولو اولید، هغه اووے چه ما نبي صلي الله علیه وسلم په دغسے کولو لیدلے دے.

باب ۲۹۲: مَنْ صَلّٰی وَقُدَّامَهُ تَنُّوْرٌ اَوْ نَارٌ اَوْ شَيْءٌ مِّمَّا يُعْبَدُ فَاَرَادَ بِهٖ وَجْهَ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ ابْنُ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ النَّارُ وَ اَنَا اُصَلِّيْ.

باب ۲۹۲: كوم سړي چه تنور، يا اُور يا داسے خيز چه د هغې عبادت كيږي، مخے ته اودريد، او مونځ ئې اوكړ، او هغې مونځ كښې ئې ذَ ذات الٰهي رضامندي پيش نظر وي، زهري وئيلي دي چه، ماته انس بن مالكؓ خبر راكړ، نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چه كوم وخت ما مونځ كولو، نو خما مخكښې دوزخ پيش كړے شو.

۴۱۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْخَسَفَتِ الشَّمْسُ فَصَلّٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اُرِيْتُ النَّارَ فَلَمْ اَرَ مَنْظَرًا كَالْيَوْمِ قَطُّ اَفْظَعَ.

۴۱۶: عبداللّٰه بن مسلمه. مالك. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. عبداللّٰه بن عباسؓ روايت كوي، چه (يو ځلي) نمر تندر اونيولو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مونځ اوكړ. بيائے او فرمائيل، ماته دے وخت كښې دوزخ او ښودلې شو. ما په مثل ذَ نن ورځ هيڅ بد منظر نۀ دے ليدلے.

باب ۲۹۳: كِرَاهِيَةِ الصَّلٰوةِ فِي الْمَقَابِرِ.

باب ۲۹۳: مقبرو كښې د مونځ كولو ذ كراهت بيان.

۴۱۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰي عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْعَلُوْا فِيْ بُيُوْتِكُمْ مِنْ صَلٰوتِكُمْ وَلَا تَتَّخِذُوْهَا قُبُوْرًا.

۴۱۷: مسدد. يحيٰي. عبيداللّٰه بن عمر. نافع ابن عمرؓ ذَ نبي صلي اللّٰه عليه و آله وسلم روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، څۀ مونځ خپلو كورونو كښې كوئې، او د هغې نه قبرونه مۀ جوړوئې.

باب ۲۹۴: اَلصَّلٰوةُ فِيْ مَوَاضِعِ الْخَسْفِ وَ الْعَذَابِ وَ يُذْكَرُ اَنَّ عَلِيًّا رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَرِهَ الصَّلٰوةَ بِخَسْفِ بَابِلَ.

باب ۲۹۴: ذَ خسف او عذاب ځايونو كښې ذ مونځ كولو بيان. او وئيلے شي چه علي رضي اللّٰه عنه خسف بابل كښې مونځ كول مكروه كڼړلي دي.

ف: خسف: زمكه كښې ښخيدل، ذَ عذاب په وجه زمكه كښې په خكته تلل. ذَ ژوندي په زمكه ښخيدل.

۱. د عذاب په ځايونو كښې مونځ كول مكروه دي. پدے حديث كښې دا بيان شويدے چه كله يو

مومن به داسې ځاے [illegible] د عذاب په [illegible] كښې [illegible] حديث شريف [illegible] كښې [illegible] ذكر [illegible] كښې [illegible] عليه الصلوٰة والسلام د صحابو رضي الله عنهم سره [illegible] او هغوى [illegible] عليه الصلوٰة والسلام صحابو ته حكم وركړو چه د دې ځاے نه [illegible] لاړ شي [illegible] كښې د شيطان [illegible] هغوى [illegible] لاړ او بل ځاے مونځ ادا كړو. د دې [illegible] نه [illegible] كوم ځاے [illegible] د الله تعالى عذاب نازل شوے وي هغه ځاے كښې د شيطان اثرونه به ضرور وي.

٤١٨: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَدْخُلُوْا عَلٰى هٰؤُلَاءِ الْمُعَذَّبِيْنَ اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ فَلَا تَدْخُلُوْا عَلَيْهِمْ لَا يُصِيْبُكُمْ مَا اَصَابَهُمْ.

٤١٨: اسمعيل بن عبدالله. مالک. عبدالله بن دينار. عبدالله بن عمر روايت كوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمايل هغې معذب (عذاب وهلي) ځايونو ته مه ورځئ مګر په دې صورت كښې چه ژړيدونكي يئ. او كه ژړيږئ نه نو هغه ته نزدې مه ورځئ. داسې نه چه تاسو ته هم هغه (عذاب) اورسي كوم چه هغوى ته رسيدلے وو.

باب ۲۹۵: الصَّلٰوةِ فِي الْبِيْعَةِ وَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِنَّا لَا نَدْخُلُ كَنَائِسَكُمْ مِّنْ اَجْلِ التَّمَاثِيْلِ الَّتِيْ فِيْهَا الصُّوَرُ وَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُصَلِّيْ فِي الْبِيْعَةِ اِلَّا بِيْعَةً فِيْهَا التَّمَاثِيْلُ.

باب ۲۹۵: ګرجا كښې د مونځ كولو بيان. او عمر رضي الله عنه او فرمايل چه مونږ ستاسو ګرجو ته ځكه نه ځو چه هغې كښې تصويرونه وي. ابن عباس به داسې ګرجا كښې مونځ كولو چه هغې كښې به تصويرونه (بتان) نه وو.

٤١٩: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ ذَكَرَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَنِيْسَةً رَاَتْهَا بِاَرْضِ الْحَبَشَةِ يُقَالُ لَهَا مَارِيَةُ فَذَكَرَتْ لَهُ مَا

٤١٩: محمد بن سلام. عبده. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشه روايت كوي چه ام سلمه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د يوې ګرجې ذكر اوكړو چه هغې ملک حبشه كښې ليدلې وه. چه هغې ته ماريه وئيلے شو. هغې چه كوم تصويرونه هلته ليدلي وو حضورﷺ ته ئې د هغې بيان

رَأَتْ فِيْهَا مِنَ الصُّوَرِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُولٰٓئِكَ قَوْمٌ إِذَا مَاتَ فِيْهِمُ الْعَبْدُ الصَّالِحُ أَوِ الرَّجُلُ الصَّالِحُ بَنَوْا عَلٰى قَبْرِهٖ مَسْجِدًا وَّصَوَّرُوْا تِلْكَ الصُّوَرَ أُولٰٓئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللّٰهِ.

اوکړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل هغوي داسے خلق دي چه هغوي کښې يو نيک بنده (يا نيک سړے) مړ شي نو ذ هغه په قبر جماعت جوړ کړي او هغے کښې د هغوي صورتونه جوړوي. دا خلق ذ الله په نزد بدترين خلق دي.

**باب ٢٩٢ :** (دا باب عنوان نه لري)

**٤٢٠:** حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَائِشَةَ وَعَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ قَالَا لَمَّا نَزَلَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيْصَةً لَهٗ عَلٰى وَجْهِهٖ فَإِذَا اغْتَمَّ بِهٖ كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهٖ فَقَالَ وَهُوَ كَذٰلِكَ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُوْدِ وَالنَّصٰرٰى اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ أَنْبِيَآئِهِمْ مَسَاجِدَ يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوْا.

**٤٢٠:** ابواليمان. شعيب. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. بي بي عائشةؓ او عبدالله بن عباسؓ دواړه روايت کوي چه کوم وخت رسول الله صلي الله عليه وسلم ته (ذ وفات) بيماري اولږيده نو حضورؐ به خپل څادر په بيا بيا په خپل مخ اچولو. کوم وخت چه به هغے سره ورته ګرمي محسوسيدله نو هغه به ئے د خپل مخ نه لرے کولو. دے حالت کښې حضورؐ او فرمائيل په يهودو او نصاراؤ دے ذ خدائے لعنت وي هغوي ذ خپلو نبيانو قبرونه سجده ګاه (جماتونه) جوړ کړل. حضورؐ به ذ هغوي ذ افعالو نه ممانعت فرمائيلو.

١. نبي عليه الصلاة والسلام به خپل مرض وصال کښې د يهودو او عيسايانو د دے بدعت ذکر اوکړو او په هغوي ئے لعنت اوليږه بي عليه الصلاة والسلام هم پيغمبر وو. ځکه ني پيغمبرانو صالحانو سره چه کومه معامله شوے وه. نبي عليه الصلاة والسلام دا غوښتل چه خپل اُمت ددے بدعت نه منعه کړي.

**٤٢١:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ

**٤٢١.** عبدالله بن مسلمه. مالک ابن شهاب. سعيد بن مسيب. ابوهريرةؓ روايت کوي رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل الله دے يهوديان تباه کړي چه هغوي د خپلو پيغمبرانو د قبرونو نه جماتونه جوړ

أَنْبِيَآئِهِمْ مَسَاجِدَ.

كړل.

**بَاب۲۹۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَّ طَهُوْرًا.**

**باب۲۹۷:** دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم دا فرمائيل، چه زمکه خما دَ پاره جمات او پاکونکے جوړه شوے ده.

**۴۲۲:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ قَالَ حَدَّثَنَا سَيَّارٌ هُوَ اَبُو الْحَكَمِ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ الْفَقِيْرُ قَالَ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُعْطِيْتُ خَمْسًا لَّمْ يُعْطَهُنَّ اَحَدٌ مِّنَ الْاَنْبِيَآءِ قَبْلِيْ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيْرَةَ شَهْرٍ وَّ جُعِلَتْ لِيَ الْاَرْضُ مَسْجِدًا وَّ طَهُوْرًا وَّ اَيُّمَا رَجُلٍ مِّنْ اُمَّتِيْ اَدْرَكَتْهُ الصَّلٰوةُ فَلْيُصَلِّ وَ اُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَآئِمُ وَ كَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ اِلٰى قَوْمِهٖ خَاصَّةً وَّ بُعِثْتُ اِلَى النَّاسِ كَآفَّةً وَّ اُعْطِيْتُ الشَّفَاعَةَ.

**۴۲۲:** محمد بن سنان. هشيم. سيار ابوالحكم. يزيد الفقير. جابر بن عبداللهؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ماته پنځه خيزونه داسے راکړے شوے دي، چه خما نه مخکښ هيڅ نبي ته نهٔ دي ورکړے شوے، دَ يوے مياشتے دَ لارے (مسافت) نه دَ رُعب په ذريعه خما مدد کړے شوے دے او زمکه خما دَ پاره جمات او پاکه جوړه شوے ده، او (دا اجازت راکړے شو چه) خما اُمت کښ چه کوم سړي باندے کوم ځائے د مونځ وخت راشي، نو هلته دې مونځ کوي، او ما د پاره د غنيمت مال حلال کړے شو. او نورِ نبيان خاص خپل قوم ته ليږلے شوي وو او زهٔ (دَ دنيا) ټولو خلقوته راليږلے شوے يم. او ما ته دَ شفاعت اجازت راکړے شوے دے.

۱. دا يو خاص واقعه ده او زيات نه زيات د رخصت په درجه کښ ددے نه څه مسئله اخذ کيدلے شي ولې چه د خوب وخت کښ د جومات واقعي احترام قائم نشي ساتلے کيدے. د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کښ چه کوم دوو بهرنو سړو په جُمات کښ په اوچت آواز خبرے کولے حضرت عمر رضي الله عنه هغه دواړه را اوغوختل او ورته يے اويل "که چرے د مدينے منورے اوسيدونکے وے نو ما به ضرور سزا درکړے وه. د نبي کريم عليه السلام په جمات کښ په زوره خبرے کوني؟ کله چه د جمات د عزت حُرمت دا حالت دے نو په عام حالاتو کښ د اوده کيدو. د خوب کولو جُمات کښ څرنګ اجازت ورکولے شي او بيا بنځوته؟ د احنافو په نزد مسافر خلق جُمات کښ اوده کيدے شي او په عام حالاتو کښ د سړو د پاره په جمات کښ خوب کول د هغوي په نزد مکروهه دي.

**بَاب۲۹۸: نَوْمِ الْمَرْاَةِ فِي الْمَسْجِدِ.**

**باب۲۹۸:** دَ ښځے جمات کښ دَ اُودهٔ کيدو بيان.

۴۲۳: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمٰعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ وَلِيدَةً كَانَتْ سَوْدَآءَ لِحَيٍّ مِّنَ الْعَرَبِ فَأَعْتَقُوهَا فَكَانَتْ مَعَهُمْ قَالَتْ فَخَرَجَتْ صَبِيَّةٌ لَّهُمْ عَلَيْهَا وِشَاحٌ أَحْمَرُ مِنْ سُيُورٍ قَالَتْ فَوَضَعَتْهُ أَوْ وَقَعَ مِنْهَا فَمَرَّتْ بِهِ حُدَيَّاةٌ وَّهُوَ مُلْقًى فَحَسِبَتْهُ لَحْمًا فَخَطِفَتْهُ قَالَتْ فَالْتَمَسُوهُ فَلَمْ يَجِدُوهُ قَالَتْ فَاتَّهَمُونِي بِهِ قَالَتْ فَطَفِقُوا يُفَتِّشُونِي حَتّٰى فَتَّشُوا قُبُلَهَا قَالَتْ وَاللّٰهِ إِنِّي لَقَائِمَةٌ مَّعَهُمْ إِذْ مَرَّتِ الْحُدَيَّاةُ فَأَلْقَتْهُ قَالَتْ فَوَقَعَ بَيْنَهُمْ قَالَتْ فَقُلْتُ هٰذَا الَّذِي اتَّهَمْتُمُونِي بِهِ زَعَمْتُمْ وَأَنَا مِنْهُ بَرِيئَةٌ وَّهُوَ ذَا هُوَ قَالَتْ فَجَآءَتْ إِلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَتْ وَقَالَتْ عَائِشَةُ فَكَانَتْ لَهَا خِبَآءٌ فِي الْمَسْجِدِ أَوْ حِفْشٌ قَالَتْ فَكَانَتْ تَأْتِينِي فَتَحَدَّثُ عِنْدِي قَالَتْ فَلَا تَجْلِسُ عِنْدِي مَجْلِسًا إِلَّا قَالَتْ وَيَوْمُ الْوِشَاحِ مِنْ تَعَاجِيبِ رَبِّنَا أَلَآ إِنَّهُ مِنْ بَلْدَةِ الْكُفْرِ أَنْجَانِي قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ لَهَا مَا شَأْنُكِ لَا تَقْعُدِينَ مَعِي مَقْعَدًا إِلَّا قُلْتِ هٰذَا قَالَتْ فَحَدَّثَتْنِي بِهٰذَا الْحَدِيثِ.

۴۲۳: عبيد بن اسماعيل ابو اسامه. هشام عروه. بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه د عربو د يوې قبيلې حبشي وينزه وه هغوي هغه آزاده کړه، خو هغه به هغوي سره اوسيده. د هغې بيان دے چه (يو خلې) د هغې قبيلې يوه جينۍ بهر اووتله، او د هغې په جسم د سرے څرمنې يو حمائل (هار) وو. هغه وائي، چه هغه هغې څپله کوز کۀ، يا هغه د هغې نه اُغرځيدۀ. بيا يو تيپوس په هغې طرف تيريدۀ، او حمائل پروت وو، تيپوس ته هغه غوښه ښکاره شوه، او يوړې حملې سره ئې اوچت کړلو. هغه وائي چه هغې خلقو د هغې هار تلاش شروع کۀ، خو هغه ئې بيا نۀ موندلو، نو په ما باندې ئې د هغې د علاتور اولږولو هغه وائي چه هغې خلقو څما تالاشي اخستل شروع کړل، تر دے چه د هغې شرم ګاه ئې هم اوکتلو، هغه وائي، په اللّٰه م دے قسم وي، زۀ لا هغوي سره ولاړه ووم، چه ناساپه هغه تيپوس راغے، او هغه (هار) ئې راوغرځولو. نو هغه د هغوي مينځ کښ راوغرځيدلو. هغه وائي، ما اووے، دا هغه هار دے، چه د هغې تاسو په ما تور لږولے وو. تاسو بدګماني اوکړه، حالانکه زۀ د دے نه بري ووم، بي بي عائشهؓ وائي، بيا هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په خدمت کښ حاضره شوه او اسلام ئې راوړلو. بي بي عائشهؓ فرماني، چه جمات کښ د هغې يوه خيمه وه يا (دائې اووے چه) يوه وړه حجره (کوټګئې) وه، هغه به ماله تله راتله او ماسره به ئې خبرے کولے، ما سره چه به کوم وخت هم کيناسته، نو دا به ئې ضرور وئيلے چه د حمائل ورځ څمونږ د پروردګار د عجيبه قدرتونونه ده، واورئې، هغې زۀ د کفر د ښار نه خلاصه کړے يم. بي بي عائشهؓ وائي، ما هغې ته اووے، چه دا څۀ خبره ده، چه کله ته ما سره کينې، نو دا ضرور وائې. بي بي عائشهؓ وائي په دے هغې ماته دا قصه بيان کړه.

**باب ٢٩٩: نَوْمِ الرِّجَالِ فِي الْمَسْجِدِ** وَ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَدِمَ رَهْطٌ مِّنْ عُكْلٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانُوْا فِي الصُّفَّةِ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ كَانَ اَصْحَابُ الصُّفَّةِ الْفُقَرَاءَ.

**باب ٢٩٩: جمات كښې د سړو د اُودهٔ كيدو بيان** او ابو قلابه د انس بن مالكؓ نه نقل كړے دے، چه د قبيلے عكل څهٔ خلق نبي صلي الله عليه وسلم له راغلل او صُفّه كښې اوسيدل، عبدالرحمٰن بن ابوبكرؓ وائي چه اصحاب صُفّه فقيران وو.

**ف**: صُفه: د كور مخكښې ډيوډئ يا بيټكې. دالان. اصحاب صفه هغه غريبان مسلمانان وو، چه د رسالت زمانه كښې ئے كور، نهٔ وو. د جمات صحن او خيمو كښې به اوسيدل.

١. صفه، مسجد نبوي كښې يو داسے ځائے وو چه په هغے سورے (سايا) وو فقيران او مسكينان صحابهؓ پكښې اوسيدل عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په راتلونكي حديث شريف كښې چه كومه د خپلے خوانئ واقعه بيان كړيده هغه هم په جُمات كښې د خوب كولو د پاره دليل نشي جوړيدے ځكه چه په هغه زمانه كښې هغه ډير غريب او مسكين وؤ مدينے كښې خپل كورنه وؤ مهاجر وؤ. په غريبئ كښې ئے ژوند تيريدلو ځكه به جُمات كښې اوده كيدلو.

٤٢٤: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ اَنَّهٗ كَانَ يَنَامُ وَهُوَ شَابٌّ اَعْزَبُ لَا اَهْلَ لَهٗ فِيْ مَسْجِدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٤٢٤: مسدد. يحيي. عبيدالله. نافع. عبدالله بن عمرؓ روايت كوي، چه هغه به د نبي صلي الله عليه وسلم په جمات كښې اُوده كيدهٔ، حالانكه هغه نا وادهٔ ځلمے وو.

٤٢٥: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْتَ فَاطِمَةَ فَلَمْ يَجِدْ عَلِيًّا فِي الْبَيْتِ فَقَالَ اَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ قَالَتْ كَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ شَيْءٌ فَغَاضَبَنِيْ فَخَرَجَ فَلَمْ يَقِلْ عِنْدِيْ

٤٢٥: قتيبه بن سعيد. عبدالعزيز بن ابي حازم. سهل بن سعدؓ روايت كوي، يو ځلے رسول الله صلے الله عليه وسلم د بي بي فاطمےؓ كورته راغے، نو عليؓ ئے كور كښې بيانهٔ مندو. حضورؐ (فاطمےؓ ته) اووے، ستا د ترهٔ خوئے چرته دے، هغے ورته اووے، څما او د هغهٔ مينځ كښې څهٔ جګړه اوشوه، هغه ماته غصه شو، نو لاړ او دلته اُودهٔ نه شو. رسول الله صلي الله عليه وسلم يو سړي ته او فرمائيل، لاړ

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاِنْسَانٍ اُنْظُرْ اَيْنَ هُوَ فَجَآءَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ رَاقِدٌ فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُضْطَجِعٌ قَدْ سَقَطَ رِدَآءُهُ مَنْ شِقِّهٖ وَ اَصَابَهُ تُرَابٌ فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُهُ عَنْهُ وَ يَقُوْلُ قُمْ اَبَا تُرَابٍ قُمْ اَبَا تُرَابٍ.

شه اُوګوره، چه هغه کوم ځائے دے. هغه راغے، او وې وئيل چه هغه جمات کښې اُوده دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم چه جمات ته ورغے، نو هغه ملاست وو، د هغه څادر د هغه د آړخ نه خويدلے وو، او په بدن نے خاورے پريوتے وې، (دے ليدو سره) رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د هغهٔ د بدن نه خاورے څنډلے، او فرمائيل ئے، اے ابو ترابَ پاسه. اے ابو ترابَ پاسه.

۱. د علي كرم اللّٰه وجهہ په بدن مبارک خاوره لګيدلے وه په دے مناسبت ئے ورته ابو تراب اوے تراب خاورے ته وائي. حضرت علي رضي اللّٰه عنه ته که چا به ابوتراب اوے نو هغه به ډير خوشاليدلو. نبي كريم عليه الصلٰوة والسلام هغه ددوي ناچاقي خفګان لرے کول غوښتل. د دے واقعے نه په اسلام کښې د زوم والي د خپلولئ اهميت معلوميږي د شپے په وخت اوده کيدلو او د غرمے خوب کولو کښې ډير فرق دے.

۴۲۶: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَقَدْ رَاَيْتُ سَبْعِيْنَ مِنْ اَصْحَابِ الصُّفَةِ مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ عَلَيْهِ رِدَآءٌ اِمَّا اِزَارٌ وَّ اِمَّا كِسَآءٌ قَدْ رَبَطُوْا فِيْ اَعْنَاقِهِمْ فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ نِصْفَ السَّاقَيْنِ وَ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الْكَعْبَيْنِ فَيَجْمَعُهُ بِيَدِهٖ كِرَاهِيَةَ اَنْ تُرٰى عَوْرَتُهٗ.

۴۲۶: يوسف بن عيسي. ابن فضيل. فضيل. ابوحازم. ابوهريرةؓ روايت کوي چه ما اصحاب صفه کښې اويا کسان اوليدل، هغوي کښې هر چا سره څادرنهٔ وو، يا به تهبند وو، يا کند (ګدړۍ) چه خپله غاړه کښې به ئے اچولو. هغے کښې څنے څادر به د پنډۍ نيمے ته رسيدهٔ، او څنے به ګيټو پورے رسيدهٔ او هغه به ئے لاس سره نيولے وو، چه چرته ستر ئے ترے ښکاره نهٔ شي.

۱. رِدَاء، څادر ته وائي چه د قميص پځائے اغوستلے شي. د دے نه په صفه کښې د اوسيدونکو غريبي او فقيري معلوميږي.

## بَابٌ ۳۰۰: اَلصَّلٰوةِ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ

## باب ۳۰۰: د سفر نه په واپسي د مونځ كولو بيان

وَّ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ كَانَ

او کعب بن مالکؓ وائي چه

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ بَدَاَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلّٰى فِيْهِ.

نبي صلي اللّٰه عليهوسلم به دَ سفر نه واپس راتلو، نو مخکښې به جمات ته راتلو، او هلته به ئې مونځ کولو.

۴۲۷: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ ابْنُ دِثَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَالَ مِسْعَرٌ اَرَاهُ قَالَ ضُحًى فَقَالَ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ لِيْ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَقَضَانِيْ وَزَادَنِيْ

۴۲۷: خلاد بن يحيٰي. مسعر. محارب بن دثار. جابر بن عبداللّٰهؓ روايت کوي چه زهٔ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم له راغلم. دغه وخت حضورؐ جمات کښې وو (مسعر دَ حديث راوي) وائي زهٔ پوهيږم، محارب ونيلے وو، دَ چاښت وخت وو، نو حضورؐ او فرمائيل چه دوه رکعاته مونځ اوکه، او څما په حضورؐ څهٔ قرض وو، چه حضورؐ ماته ادا کهٔ او دَ خپل طرف نه ئې ماله زيات راکړلو.

باب ۳۰۱: اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَّجْلِسَ.

باب ۳۰۱: هر کله چه څوک جمات کښې داخل شي، نو دَ ناستے نه مخکښې دے دوه رکعاته اوکړي.

۴۲۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ السَّلَمِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَّجْلِسَ.

۴۲۸: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. عامر بن عبداللّٰه بن زبير. عمرو بن سليم رزقي. ابو قتاده سلمي روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه کله تاسو کښې څوک جمات کښې داخل شي، نو هغهٔ له پکار دي، چه دَ ناستے نه مخکښې دِ دوه رکعاته مونځ اوکړي.

بَابٌ ۳۰۲: الْحَدَثُ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۳۰۲: جمات کښې دِ بے اودسه کيدو بيان.

۴۲۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۴۲۹: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، تاسو کښې هر يو دَ پاره ملائکے دُعا کوي، څو پورے چه هغه په هغه

قَالَ اِنَّ الْمَلٰٓئِكَةَ تُصَلِّيْ عَلٰى اَحَدِكُمْ مَادَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ مَالَمْ يُحْدِثْ تَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهُ اللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ.

ځانے ناستوي، كوم ځائے چه هغه مونځ كړے وي، تر څو چه هغه بے اودسه شوے نه وي. فرېښتے وائي: اے الله ده ته اوبښے اے الله په ده رحم اوكړے.

**باب ۳۰۳: بُنْيَانِ الْمَسْجِدِ وَ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ كَانَ سَقْفُ الْمَسْجِدِ مِنْ جَرِيْدِ النَّخْلِ وَ اَمَرَ عُمَرُ بِبِنَاۤءِ الْمَسْجِدِ وَ قَالَ اَكِنَّ النَّاسَ مِنَ الْمَطَرِ وَ اِيَّاكَ اَنْ تُحَمِّرَ اَوْ تُصَفِّرَ فَتَفْتِنَ النَّاسَ وَ قَالَ اَنَسٌ يَتَبَاهَوْنَ بِهَا ثُمَّ لَا يَعْمُرُوْنَهَا اِلَّا قَلِيْلًا وَّ قَالَ اِبْنُ عَبَّاسٍ لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى.**

**باب ۳۰۳:** د جمات د جوړيدو بيان. ابو سعيد خدري وئيلے دي، چه د مسجد نبويؐ چهت د چهوهارو قجورو د ځانګو نه جوړ وو، او حضرت عمرؓ د جمات د تعمير حكم اوكړ، هغه اووے: زه غواړم، چه خلق د باران نه بچ كړم. ليكن خبردار، چه جمات كښې د زردئ يا سرخئ استعمال اونۀ كړے چه خلق فتنه كښې پرے نۀ وځي. انسؓ وائي چه (د عمر فاروقؓ مطلب دا وو) خلق به هغے سره فخر راواخلي. او ابن عباسؓ وئيلے دي، چه يقيناً تاسو به جماتونه داسے خائسته كوئ، څنګه چه يهود او نصارىٰ خپل عبادت ګاهونه خائسته كوي.

۱. ابن بطّال وئيلے دي. چه شايد حضرت عمر رضي الله عنه ته دا خيال د هغے واقعے نه پيښ شوي وي. چه نبي عليه الصلاة والسلام د ابوجهم رضي الله عنه هغه څادر واپس كړے وو چه په هغے رنګدارے كرښے وے اول د هغه څادر سره نبي عليه السلام مونځ كړے وو. بيائے واپس كړو. چه دا څادر ما د مونځ نه غافل كوي حافظ ابن حجر رحمة الله عليه د دے واقعے نه روستو ليكلے دي. چه ممكنه ده حضرت عمر رضي الله عنه سره د دے په حقله څه خاص علم وي. د ابن ماجه په يو روايت كښې دي چه حضرت عمر رضي الله عنه وئيلے دي "كله چه يو قوم كښې بدعملي خوريږي نو هغوي خپل د عبادت ځايونه ښايسته كوي. په ګڼرو احاديثو مباركو كښې جمات پوخ جوړول د قيامت علامه (نښه) بيان كړے ده دے احاديثو او آثارونه په ظاهره دا معلوميږي چه جماتونه پاخه جوړول ښه كار نه دے دا وجه ده چه كله حضرت عثمان رضي الله عنه په اول ځله مسجد نبوي پوخ جوړوۀ نو بعضو صحابو رضي الله عنهم پرے اعتراض كړے وۀ. ليكن حضرت عثمان رضي الله عنه د دغے صحابۀ ونه د دين په مسائلو زيات خبرو د مسجد نبوي د پوخ جوړيدونه روستو چه ابوهريره رضي الله عنه راغے او هغه ته د دے حالاتو پته اولګيده نو هغه يو حديث شريف بيان كړو. چه په هغے كښې دا پيشين ګوئي وه "چه يوه ورځ به راشي او دا ځما جُمات به په پوخ بنيادونو جوړ شوي وي. حضرت عثمان رضي الله عنه مسجد نبوي په خپل ذاتي خرڅ پوخ كړے وۀ او كله چه ابوهريره رضي الله عنه دا حديث بيان كړو. نو حضرت عثمان رضي الله عنه ورته د خپل جيب نه پنځه سوه دينار (اشرفئ) وركړے. او كله چه بعضے صحابۀ رضي الله عنهم اعتراض كړے وۀ نو حضرت عثمان رضي الله عنه دا حديث شريف بيان كړو "چا چه يو جُمات جوړ كړو. نو الله تعالىٰ به ورته جنت

کښې هغه شان کور جوړ کړي". د هغه په نزد د جمات د آبادولو أجر مراد دے : جماتونو ښکلول ځائسته کولو په حقله چه کوم احاديث راغلي دي نو د هغے وجه داده چه د پېغمبرانو منصب دا دے. چه د دنيا نه د بے رغبتئ او د آخرت د نعمتونو ته اصلولو ترغيب او شوق ورکوي. جماتونه او داسے د دين کارونو ښکاره ښايست په خلقو کښې د فخر کولو او د سيالئ کولو سبب جوړيږي. د دين اصل مقصد د الله تعالي په مخکښې عاجري زاري کول دي نه آبادي نه ښکاره ډول سنګار. د دے وجے نه نبي عليه السلام دے طرفته د خلقو مخه کړه. چه هغوي دے د ښکاره ډول په وجه د اصلي مقصد نه غافله بے پرواه نشي. او خبره داسے ده چه خلق بيا د تقوئ او عبادت نه زيات په ډول سنګار لګياوي. که د جُمات ښانسته کول د جمات د تعظيم د پاره وي. او يو بنده ورباندے خپل ذاتي مال اولګوي نو د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد روا دي ابن المنير وئيلے دي چه خلق خپل کورونه پاخه جوړوي او د هغے په ډول خايست خپلے روپئ لګوي. نو بيا که جُمات جماتونه ښائسته جوړشي نو دے کښې څه ګناه نشته چه جماتونوته خلق سپک اونه ګوري. په اصل کښې جُمات ساده جوړول وو خو زمانه بدله شوه نو د جُمات پوخ جوړولو او خائسته کولو کښې هم ګناه نشته.

۲ دے ټولو مسئلو کښې بُنيادي خبره داده چه ظاهري ښکاره ډول خائيست د روح او د تقوئ د پاره خطرناک عمل دے چه د دے په وجه يهود و نصاريٰ د خپل مذهب د روح نه غافل شو. او رسمو رواج له ئے زور ورکړو. د دے احاديثو او آثارو بنيادي مقصد دا دے چه بنده د عاجزئ کولو نه بے خبره نشي.

۴۳۰ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا اَبِیْ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ ثَنَا نَافِعٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ الْمَسْجِدَ كَانَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَبْنِيًّا بِاللَّبِنِ وَ سَقْفُهُ الْجَرِيْدُ وَ عَمَدُهٗ خَشَبُ النَّخْلِ فَلَمْ يَزِدْ فِيْهِ اَبُوْ بَكْرٍ شَيْئًا وَ زَادَ فِيْهِ عُمَرُ وَ بَنَاهُ عَلٰى بُنْيَانِهٖ فِیْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّبِنِ وَالْجَرِيْدِ وَ اَعَادَ عَمَدَهٗ خَشَبًا ثُمَّ غَيَّرَهٗ عُثْمَانُ فَزَادَ فِيْهِ زِيَادَةً كَثِيْرَةً وَّ بَنٰى جِدَارَهٗ بِالْحِجَارَةِ الْمَنْقُوْشَةِ وَالْقَصَّةِ وَ جَعَلَ

۴۳۰ : علي بن عبدالله. يعقوب بن ابراهيم بن سعيد. ابراهيم بن سعيد. صالح بن کيسان. نافع بن عبدالله بن عمرؓ روايت کوي چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کښې جمات د کچه ښختونه جوړوو او دَ هغے چهت دَ قجورو چهوهارو دَ څانګو وو. او دَ هغے ستنے (ستون) دَ قجورو چهوهارو دَ لرګو وے. ابوبکرؓ هغے کښې هيڅ زياتے اونهٔ کړ. البته عمرؓ هغے کښې زياتے اوکهٔ او هغه ئے دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ زمانے دَ عمارت موافق دَ کچه ښختو او دَ چهوهارو دَ څانګو نه جوړ کړ او د هغے ستنے ئے بياهم دَ لرګي او لرولېږ. دَ هغے نه پس عثمانؓ بدل کړ. او هغے کښې ئے ډير ردوبدل اوکړه. دَ هغے ديوالونه ئے دَ نقش

عُمُدَهٗ مِنَ الْحِجَارَةِ مَنْقُوْشَةٍ وَّ سَقْفُهٗ بِالسَّاجِ. دارو كانړو اوچونه كچ جوړ كړل او ذ هغې چهت ئې ذ ساګوان نه جوړ كۀ.

۱. مسجد نبوي ذ نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه كښې دوه خله جوړ شوې وۀ په اول خل د هغې اوږدوالې پلن والې شپېته شپېته ګزه وو په دويم خل د خيبر د غزانه پس بيا جوړښو. او اوږدوالې پلن والې ئې سل سل ګزه شو حضرت عمر رضي الله عنه خپله زمانه كښې جُمات نور لوئې كړو. حضرت عثمان رضي الله عنه په خپل دورِ خلافت كښې جُمات ډېر زيات لوئې كړو او د اُمّهات المؤمنين كوورونه ئې پكښې شامل كړل. د تُركو بعضې بادشاهانو د مسجد نبوي په ستنو باندې خاص نښې لګولې دي چه د هغې نه دا پته لګي چه د نبي عليه السلام په زمانه كښې جُمات څومره وو يا د حضرت عمرؓ او حضرت عثمان رضي اللّٰه عنهما په زمانه كښې جُمات، څومره وۀ. بيا مسجد نبوي كښې نورو بادشاهانو او آخري كښې سعودي بادشاهانو جُمات ډېر لوئې او ښائسته كړو.

## بَاب ۳۰۴: التَّعَاوُنِ فِيْ بِنَآءِ الْمَسْجِدِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يَّعْمُرُوْا مَسٰجِدَ اللّٰهِ الْاٰيَة.

باب ۳۰۴: ذَ جمات پـه تعمير كښې ذَ يو بـل ذَ مدد كـولـو بيان. ذَ اللّٰـه تعالٰي ارشاد دې، چه مشركانو لـه دا جائز نـۀ دي، چه ذَ اللّٰه جماتونه آباد كړي.

۴۳۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ مُخْتَارٍ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ الْحَذَّآءُ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ قَالَ لِيَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّلِابْنِهٖ عَلِيّ انْطَلِقَا اِلٰى اَبِيْ سَعِيْدٍ فَاسْمَعَا مِنْ حَدِيْثِهٖ فَانْطَلَقْنَا فَاِذَا هُوَ فِيْ حَائِطٍ يُصْلِحُهٗ فَاَخَذَ رِدَآءَهٗ فَاحْتَبٰى ثُمَّ اَنْشَاَ يُحَدِّثُنَا حَتّٰى اَتٰى عَلٰى ذِكْرِ بِنَآءِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ كُنَّا نَحْمِلُ لَبِنَةً لَبِنَةً وَّ عَمَّارٌ لَبِنَتَيْنِ لَبِنَتَيْنِ وَرَاٰهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَنْفُضُ التُّرَابَ عَنْهُ وَ يَقُوْلُ وَيْحَ عَمَّارٍ تَقْتُلُهُ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ يَدْعُوْهُمْ

۴۳۱: مسدد. عبدالعزيز بن مختار. خالد بن حذاء عكرمه روايت كوي، (يوه ورځې) ابن عباسؓ ماته او خپل خوئې علي ته اووې، چه ابوسعيد خدري له لاړ شئې، او ذَ هغۀ حديث واورئې نو مونږ ورروان شو او هغۀ خپل باغ كښې څۀ درستي كوله. كوم وخت چه مونږ ورارورسيدو نو هغۀ خپل څادر او چت كۀ هغه ئې ذَ خان نه راتاؤ كۀ اومونږ ته ئې حديث بيانول شروع كړل. كوم وخت چه ذَ مسجدِ نبويّ ذَ تعمير بيان ته راغې، نو وې ونيل، چه مونږ به يوه يوه ښخته اوچتوله، او عمار، به دوه دوه اوچتولې، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم چه هغه اوليدلو، نو حضورً ذَ هغۀ ذَ جسم نه خاورې څنډلې او فرمائيل ئې، په عمارؓ به مصيبت راځي، هغه به يو باغي ډله قتل كړي. دې بـه هغوي جنت پله بلي او هغوي به دې

اِلَى الْجَنَّةِ وَ يَدْعُوْنَهٗ اِلَى النَّارِ قَالَ يَقُوْلُ عَمَّارٌ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ.

دوزخ ېلـه بـلـي. ابو سعيد وائي، عمار به ونيلې: اعوذ بالله من الفِتَنِ پناه غوارم په الله سره ذ فتنونه.

باب ٣٠٥: اَلْاِسْتِعَانَةِ بِالنَّجَّارِ وَالصُّنَّاعِ فِيْ اَعْوَادِ الْمِنْبَرِ وَالْمَسْجِدِ.

باب ٣٠٥: ذ منبـر او جـمـات لـرګـو كـښې تـركـانـړ او كـاريګرانو نـه ذ مدد اخستو بيان.

٤٣٢: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى امْرَاَةٍ مُرِيْ غُلَامَكِ النَّجَّارِ يَعْمَلُ لِيْ اَعْوَادًا اَجْلِسُ عَلَيْهِنَّ.

٤٣٢: قتيبه بـن سـعـيـد. عبـدالعـزيـز. ابو حـازم. سهلؓ روايـت كـوي، رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليـه وسـلـم يوې ښځې تـه دا خبـر واستـو، چـه تـهٔ خپـل غـلام تـه چـه تـركـانـړ دې، او وايـه چـه خـمـا ذ پـاره څـهٔ لـرګي د.ست كړي، چـه زهٔ بـه پرې كينم.

٤٣٣: حَدَّثَنَا خَلَّادُ ابْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدُ بْنُ اَيْمَنَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ امْرَاَةً قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَجْعَلُ لَكَ شَيْئًا تَقْعُدُ عَلَيْهِ فَاِنَّ لِيْ غُلَامًا نَجَّارًا قَالَ اِنْ شِئْتِ فَعَمِلَتِ الْمِنْبَرَ.

٤٣٣: خـلاد بـن يـحـيٰي. عبـدالـواحد بن ايمن. جابـر بـن عبـداللّٰهؓ روايت كوي چه يوې ښځې اووې، يا رسول اللّٰه، زهٔ ستاسو ذ پاره څهٔ داسې څيز جوړ كړم، چه تاسـو پـرې كـيـنـئـې، ځكه چه خما يو غلام تركانړ دې. حضور ورته او فرمائيل، كه تهٔ غواړې، نو ښه خبره ده نو هغې منبر جوړ كړهٔ.

باب ٣٠٦: مَنْ بَنٰى مَسْجِدًا.

باب ٣٠٦: څوک چه جمات جوړ كړي، ذ هغهٔ بيان.

٤٣٤: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّ بُكَيْرًا حَدَّثَهٗ اَنَّ عَاصِمَ بْنَ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ عُبَيْدَ اللّٰهِ الْخَوْلَانِيَّ اَنَّهٗ سَمِعَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ عِنْدَ قَوْلِ النَّاسِ فِيْهِ حِيْنَ بَنٰى

٤٣٤: يـحـيـي بـن سـليـمـان. ابـن وهـب. عـمـرو. بـكـيـر عـاصـم بـن عـمـرو بن قتـاده. عبيد اللّٰه خولاني روايـت كـوي، چـه ذ حـضـرت عثمانؓ جمات تـعـمـيـر كـولـو كـښې خلـقو خبـرې شـروع كـړې، نو حـضـرت عثـمـانؓ او فـرمـائيل، تاسو خلق خما حق كښې ډيـر څـهٔ وايـئـې، ليـكـن مـا ذ حضور انور صلي اللّٰه عليه وسـلـم نـه آوريـدلې دي چـه كوم سړې ذ الـلّٰـه ذ

مَسْجِدًا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكُمْ اَكْثَرْتُمْ وَ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ بَنٰى مَسْجِدًا قَالَ بُكَيْرٌ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ يَبْتَغِيْ بِهٖ وَجْهَ اللّٰهِ بَنَى اللّٰهُ لَهُ مِثْلَهُ فِي الْجَنَّةِ.

رضامندئ ذ پاره جمات تعمير كړي نو الله تعالي ذ هغې په عوض كښ هغه شان يو مكان ورله جنتكښ تيار كړي (بكير ذ دې حديث راوي) وائي چه دا الفاظ "ذ الله ذ رضامندئ ذ پاره" خما په خيال كښ عاصم نقل كړې دي (چه هغې كښ خما څهٔ شبهه شان پيدا شوې ده).

**بَابُ ۳۰۷: يَأْخُذُ بِنُصُوْلِ النَّبْلِ اِذَا مَرَّ فِي الْمَسْجِدِ.**

**باب ۳۰۷: چه جمات كښ تيريږي نو ذ تير (غشي) څوكه دې نيسلې لري.**

۴۳۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قُلْتُ لِعَمْرٍو اَسَمِعْتَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ مَرَّ رَجُلٌ فِي الْمَسْجِدِ وَ مَعَهُ سِهَامٌ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْسِكْ بِنِصَالِهَا.

۴۳۵: قتيبه بن سعيد. سفيان روايت كوي، ما عمرو ته اووې، چه تا ذ جابر بن عبدالله نه دا آوريدلې وي چه يو سړې جمات كښ تيريدهٔ، هغهٔ سره څهٔ تيرونه (غشي) وو، نو هغهٔ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چه ذ هغې څوكې اُونيسه (چه څوك پرې اُونه لږي).

**بَابُ ۳۰۸: اَلْمُرُوْرِ فِي الْمَسْجِدِ.**

**باب ۳۰۸: جمات كښ څنګه تيريدل پكار دي.**

۴۳۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ مَرَّ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ مَّسَاجِدِنَا اَوْ اَسْوَاقِنَا بِنَبْلٍ فَلْيَاْخُذْ عَلٰى نِصَالِهَا لَا يَعْقِرُ بِكَفِّهٖ مُسْلِمًا.

۴۳۶: موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. ابوبرده ذ خپل پلار نه او هغه ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي حضورؐ او فرمائيل، څوك چه خمونږ جماتونو كښ يا بازار ونو كښ تيرونو سره تيريږي، نو هغهٔ له پكار دي چه ذ هغې څوكې دې اُونيسي، داسې نه چه يو مسلمان زخمي كړي.

**بَابُ ۳۰۹: اَلشِّعْرِ فِي الْمَسْجِدِ.**

**باب ۳۰۹: جمات كښ ذ شعر وئيلو بيان.**

۴۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

۴۳۷: ابواليمان حكم بن نافع. شعيب. زهري.

الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهُ سَمِعَ حَسَّانَ بْنَ ثَابِتِ الْاَنْصَارِيَّ يَسْتَشْهِدُ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنْشُدُكَ اللّٰهَ هَلْ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَا حَسَّانُ اَجِبْ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اَيِّدْهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ نَعَمْ.

ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف روايت كوي' چه ما ذ حسان بن ثابت انصاري نه واويدل' هغهٔ ابو هريرهؓ ته ونيلے' چه زهٔ تاله په اللّٰه قسم دركوم' دا او وايه' چه آيا تا ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي' چه حضورؐ به ما ته دا فرمائيل' چه اے حسانَ' ذ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم ذ طرف نه مشركانوله جواب وركه. اے اللّٰه' ذَ حسان' روح القدس سره تائيد اوكړے. ابو هريرهٌ اووے. او (ما آوريدلے دي)

۱. عربو مشركانو شاعرانو به خپلو اشعارو كښې په نبي عليه السلام بد ويل. حضرت حسّان رضي اللّٰه عنه به په خپل اشعارو د هغوي جواب كوؤ. هغه د نبي عليه الصلاة والسلام د دربار لوئے شاعر وؤ او مشركانو ته به ئے ښه سخت جواب وركوؤ نبي عليه الصلاة والسلام ډير خله دهغه په جواب خوشاله شوے وو او دعائے ورته كړے وه مسجد نبوي كښې به ذ هغه د پاره خاص منبر اولګولے شو. هغه به ورباندے اودريدو او په ولاړه به ئے اشعار لوستل صحابه رضي اللّٰه عنهم او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به مجلس كښې موجود وؤ. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي. چه په جُمات كښې په اشعارو ويلو كښې ګناه نشته پدے شرط چه د شريعت ذ حد نه بهَر نه وي نبي عليه الصلاة والسلام د عربو د خاص مزاج او ذ دستور مطابق مشركانو ته د حسان رضي اللّٰه عنه په ذريعه جواب وركوؤ.

## بَاب ۳۱۰: اَصْحَابِ الْحِرَابِ فِي الْمَسْجِدِ.

## باب ۳۱۰: ذ وړے نيزے والؤ جمات كښې ذَ داخليدو بيان.

۴۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ ابْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ لَقَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا عَلٰى بَابِ حُجْرَتِيْ وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُوْنَ فِي الْمَسْجِدِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا عَلٰى بَابِ حُجْرَتِيْ وَالْحَبَشَةُ

۴۳۸: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح بن كيسان. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشهٌ روايت كوي' ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو ورځے ذَ خپلے حجرے (كوټے) په دروازه اوليدلو. او ذَ حبش خلقو جمات كښې (جنګي) لوبے كولے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم زهٔ هم خپل څادر كښې پټه كړم' او ماته ئے ذ هغوي

يَلْعَبُوْنَ فِي الْمَسْجِدِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِيْ بِرِدَآئِهٖ اَنْظُرُ اِلٰى لَعِبِهِمْ زَادَ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُوْنَ بِحِرَابِهِمْ.

(جنګي) لوبې اوښودلې. ابراهيم بن منذر، دې روايت کښې زياتې اوکړه او وې وئيل چه ماته ابن وهب په واسطه دَ يونس. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشې روايت اوکړ، هغې او فرمائيل، چه ما نبي صلی اللّٰه عليه وسلم ليدلو او حبشانو خپلو وړو نيزو سره لوبې کولې.

۱. د مالکي مذهب بعضې عالمانو د امام مالک رحمة اللّٰه عليه نه نقل کړيدي. چه دغې خلقو په جُمات کښې لوبې نه کولې بلکې د جُمات نه بَهر ئې لوبې کولې. ابن حجر رحمة اللّٰه عليه ويلې دي چه دا روايت د امام مالک رحمة اللّٰه عليه نه ثابت نه دې بعضې رواياتو کښې دي چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه په دې لوبو خفه شوې وؤ. نو نبي عليه الصلاة والسلام ورته او فرمايل چه نيزه پراخې د لوبو څيز نه دې. بلکې جنګي مهارتونه ترې بيداريږي. کوم چه د اسلام د دښمنانو خلاف پکار رازي. مُهَلب رحمة اللّٰه عليه ويلې دي. چه جماتونه د دين اجتماعي کارونو د پاره جوړدي. هغه ټول کارونه جُمات کښې روا دي د کومونه چه دين ته فائده رسيږي. بعضې پخوانو عالمانو ليکلې دي. چه په جُمات کښې د داسې لوبو کولو حکم منسوخ شوې دې، ددې واقعې نه دا هم معلوميږي چه د نبي عليه الصلاة والسلام سلوک خپلو بيبيانو سره ډير زيات ښه وؤ او هغوي ئې خفه کړې نه دي.

باب ۳۱۱: ذِكْرِ الْبَيْعِ وَالشِّرَآءِ عَلَى الْمِنْبَرِ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۳۱۱: دَ جمات په منبر دَ خريد و فروخت ذکر جائز دې.

۴۳۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَتَتْهَا بَرِيْرَةُ تَسْاَلُهَا فِيْ كِتَابَتِهَا فَقَالَتْ اِنْ شِئْتِ اَعْطَيْتُ اَهْلَكِ وَ يَكُوْنُ الْوَلَآءُ لِيْ وَ قَالَ اَهْلُهَا اِنْ شِئْتِ اَعْطَيْتِهَا مَا بَقِيَ وَ قَالَ سُفْيٰنُ مَرَّةً اِنْ شِئْتِ اَعْتَقْتِهَا وَ يَكُوْنُ الْوَلَآءُ لَنَا فَلَمَّا جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُهُ ذٰلِكَ فَقَالَ ابْتَاعِيْهَا فَاَعْتِقِيْهَا

۴۳۹: علي بن عبداللّٰه. سفيان. يحيٰي. عمره. بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه بريره دَ خپل کتابت باره کښې څما نه دَ تپوس کولو په حقله ماله راغله، نو بي بي عائشې ورته اووې، که تهٔ غواړې، نو زهٔ به ستا قيمت ستا خلقوله ورکړم (او تا به آزاده کړم) ليکن دَ ولاء حق به څما وي. دَبريره مالکانو (صديقې ته) اووې. که تهٔ غواړې، نو څهٔ چه باقي دي، هغه پريږده، او سفيان به کله داسې وئيلې، که تهٔ غواړې، نو هغه آزاده کړه. ليکن دَ ولاء حق به څمونږ وي. کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم راغې. نو ما حضورؐ ته دَ دې ذکر اوکهٔ.

فَـاِنَّمَـا الْـوَلَاءُ لِـمَـنْ اَعْتَقَ ثُمَّ قَـامَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْـمِنْبَرِ وَ قَـالَ سُفْيَـانُ مَـرَّةً فَصَعِدَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْـمِنْبَرِ فَقَالَ مَا بَالُ اَقْوَامٍ يَشْتَرِطُوْنَ شُـرُوْطًا لَيْـسَ فِـيْ كِتَـابِ اللّٰهِ مَنِ اشْتَـرَطَ شَـرْطًا لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَـلَيْـسَ لَهُ وَ اِنِ اشْتَـرَطَ مِائَةَ مَرَّةٍ وَّ رَوَاهُ مَـالِكٌ عَـنْ يَّحْيٰى عَنْ عَمْرَةَ اَنَّ بَـرِيْـرَةَ وَلَـمْ يَـذْكُرْ صَعِدَ الْمِنْبَرَ الخ.

حضورؐ او فرمائيل' چه ته هغه واخله' بيائے آزاده کړه' او ولاء خو بـه ذ هـغه چاوي' چه آزاده ئے کړي. بيا رسول اللّٰـه صلـي اللّٰه عليه وسلم په منبر اودريدلو' او سفيان به کله داسے وئيلے' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم منبر ته اوختلو. بيائے او فرمائيل' ذ هغے خلقو څۀ حال دے' چه داسے شـرطونه لږوي چه کتاب اللّٰه کښ نشته (ياد لرئے) څوک چه داسے شرط اُو تړي' چه کتاب اللّٰه کښ نۀ وي' نـو هـغـه بـه هـغۀ ته نشي ورکيدے' اگر که سل خله شرط اوتـړي. او مـالـک د يـحيٰي عمره نه روايت کړے دے چه بـريـره. او دائـے ذکـر کـړے نـه دي چـه منـبر ته اوختلو.

۱. کـلـه چـه يـو غـلام يا وينزه د خپل مالک سره دا فيصله اوکړي چه دومره مقرره موده پورے مال دولـت پـه مـقـرر انـدازے سره ادا کړي نوکه هغه مرئي يا وينځه په هغه موده کښ خپله وعده پوره کړي نو آزاد بـه شـي دے ته کتابت او مکاتبت ويلے شي د آزاديدونه پس بياهم د مالک' د مرئي او وينځے په مينځ کښ يو شرعي تعلق دے چه هغے نه "ولاء" ويلے شي او د هغے هم څه حقونه دي.

## بَـــابٌ ۳۱۲: التَّـــقَــــاضِــيْ وَالْمُلَازَمَةِ فِي الْمَسْجِدِ.

بـاب ۳۱۲: جـمـات کـښ تـقـاضـا کـول او قرضداري پسے ذلږيدلو بيان.

۴۴۰: حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ اللّٰهِ بْنُ مُـحَـمَّـدٍ قَـالَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُـمَرَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ ابْنِ مَالِكٍ عَنْ كَعْبٍ اَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ اَبِيْ حَدْرَدٍ دَيْنًا كَـانَ لَـهُ عَلَيْهِ فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ اَصْـوَاتُـهُـمَـا حَتّٰى سَمِعَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ بَيْتِـهٖ فَـخَـرَجَ اِلَيْهِـمَـا حَتّٰـى كَشَفَ سِجْفَ حُـجْـرَتِـهٖ فَنَادٰى يَا كَعْبُ قَالَ لَبَّيْكَ يَـا رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ قَـالَ ضَعْ مِنْ

۴۴۰: عـبـدالـلّٰـه بـن مـحـمـد. عثمـان بن عـمـر. يـونـس. زهـري. عبدالـلّٰـه بـن کعب بن مـالک. حـضـرت کعب روايت کوي' چـه هـغـه جـمـات کـښ ذ ابـن ابـي حـدرد' نـه ذ هـغے قـرض تـقـاضـا اوکـړه' چـه ذ هـغـۀ پـه ذمه وو' دے تقاضا کښ ذ دواړو آوازونـه اوچـت شـو' چـه هـغـه رسول کـريم صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم خپـل کور کـښ واوريدل. حـضـورؐ هـغـوي تـه نـزدے ذ خپـلے حجرے پرده اخوا کـړه او تـشـريف ئـے راوړلو' او آواز ئـے ورکـۀ' چـه اے کعبؓ' هغۀ عرض اوکۀ لبيک يا رسول اللّٰه' حضورؐ ورته او فـرمـائيل' ذ خپل قرض نه څۀ کم کړه او هغۀ طرف ته

دَيۡنِكَ هٰذَا وَ اَوۡمَآ اِلَيۡهِ اَيِ الشَّطۡرَ قَالَ لَقَدۡ فَعَلۡتُ يَا رَسُوۡلَ اللّٰهِ قَالَ قُمۡ فَاقۡضِهٖ.

ئې اشاره اوكړه يعني نيم (كم كړه) كعب اووے. يا رسول اللّٰه، ما كم كه. حضورؐ ابن ابي حدرد ته او فرمائيل، پاسه دا باقي ادا كړه.

۱. نبي عليه السلام په دَ هغه وخت اعتكاف كښې وۀ او په مسجد نبوي كښې د كهجورے د پوزي نه پرده د اعتكاف د پاره جوړه كړے وه دا واقعه غالباً د شپے پيښه شوے وه.

**باب ۳۱۳: كَنۡسِ الۡمَسۡجِدِ وَالۡتِقَاطِ الۡخِرَقِ وَالۡقَذٰى وَالۡعِيۡدَانِ.**

**باب ۳۱۳:** جمات كښې جارووهل، دَ چيرو، خاورے خځلے او لرګو لرے كولو بيان.

۱۴۴: حَدَّثَنَا سُلَيۡمَانُ بۡنُ حَرۡبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بۡنُ زَيۡدٍ عَنۡ ثَابِتٍ عَنۡ اَبِيۡ رَافِعٍ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ اَنَّ رَجُلًا اَسۡوَدَ اَوِ امۡرَاَةً سَوۡدَآءَ كَانَ يَقُمُّ الۡمَسۡجِدَ فَمَاتَ فَسَاَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَنۡهُ فَقَالُوۡا مَاتَ فَقَالَ اَفَلَا كُنۡتُمۡ اٰذَنۡتُمُوۡنِيۡ بِهٖ دُلُّوۡنِيۡ عَلٰى قَبۡرِهٖ اَوۡ قَالَ قَبۡرِهَا فَاَتٰى قَبۡرَهٗ فَصَلّٰى عَلَيۡهَا.

۱۴۴: سليمان بن حرب. حماد بن يزيد. ثابت. ابو رافع. ابوهريرهؓ روايت كوي، چه يو حبشي سړي يا حبشي ښځے به جمات كښې جارو وهله. كوم وخت چه هغه مړه شو، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ هغے په حقله تپوس اوكۀ، خلقو ورته اووے، چه هغه مړه شوے ده. نو حضورؐ او فرمائيل، تاسو ماته اطلاع ولے نۀ ده راكړے (بنۀ ده) اوس ما ته دَ هغے قبر اوښائيے. خلقو ورته دَ هغے قبر اوښودلو. بيا حضورؐ په هغے قبر (دَ جنازے) مونځ اوكۀ.

**باب ۳۱۴: تَحۡرِيۡمِ تِجَارَةِ الۡخَمۡرِ فِي الۡمَسۡجِدِ.**

**باب ۳۱۴:** جمات كښې دَ شرابو تجارت ته دَ حرامولو بيان.

۲۴۴: حَدَّثَنَا عَبۡدَانُ عَنۡ اَبِيۡ حَمۡزَةَ عَنِ الۡاَعۡمَشِ عَنۡ مُسۡلِمٍ عَنۡ مَسۡرُوۡقٍ عَنۡ عَآئِشَةَ قَالَتۡ لَمَّا اُنۡزِلَتِ الۡاٰيَاتُ مِنۡ سُوۡرَةِ الۡبَقَرَةِ فِي الرِّبٰوا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِلَى الۡمَسۡجِدِ فَقَرَاَهُنَّ عَلَى النَّاسِ ثُمَّ حَرَّمَ تِجَارَةَ الۡخَمۡرِ.

۲۴۴: عبدان. ابوحمزه. اعمش. مسلم. مسروق. بي بي عائشهؓ روايت كوي، كوم وخت چه دَ سود باره كښې دَ سورۀ بقره آيتونه نازل شو، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم جمات طرف ته تشريف يوړلو، او دغه آيتونه ئې دَ خلقو مخكښې تلاوت كړل، بيا حضورؐ دَ شرابو تجارت حرام كړلو.

**باب ۳۱۵: الۡخَدَمِ الۡمَسۡجِدِ**

**باب ۳۱۵:** جمات دَ پاره دَ خادم مقررولو بيان. او ابن عباسؓ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِيْ بَطْنِيْ مُحَرَّرًا لِّلْمَسْجِدِ يَخْدُمُهٗ.

ونیلي دي: د: نَذَرْتُ لَكَ مَافِيْ بَطْنِيْ مُحَرَّرًا: معني دادي چه ما دا اولاد چه خما پر ګنډه دېڅ آزادولو نذر منلی دی، چه د جمات خدمت به کوي.

۱ . د حضرت عمران د بي بي د حضرت مریم علیهما السلام د مور واقعه ده چه هغې نذر (منخته) کړی وو که چرې خما بچی پیدا شو. نو زه به ئې د جمات (مسجد اقصٰي) د خدمت د پاره وقف کړم امام بخاري رحمة الله علیه دا بنودل غواړي چه تیر شوې امتونو کښ د جماتونو د تعظیم د پاره خپل خدمتونه به خلقو پیش کول تردې پورې چه خپل اولاد به ئې د جمات د خدمت د پاره وقف کول. د دې نه دا معلومه شوه. چه په پخوانې امتونو کښ د خپل اولاد منخته کول روا وو خلقو به د خامنو منخته کوله خو چه د عمران د ښځې (بي بي) جینئي مریم بي بي پیدا شوه نو هغې خپل عذر کولو چه خما لور پیدا شوه خو بیائې هم مریم بي بي د جمات د خدمت د پاره وقف کړه.

۴۴۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ وَاقِدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ امْرَاَةً اَوْ رَجُلًا كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ وَلَآ اَرَاهُ اِلَّا امْرَاَةً فَذَكَرَ حَدِيْثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ صَلّٰى عَلٰى قَبْرِهَا.

۴۴۳: احمد بن واقد. حماد. ثابت ابو رافع. ابوهریرهؓ روایت کوي چه یو سړي یا یوې ښځې به جمات جارو کولو، او خما خیال دی، چه هغه ښځه وه. بیا ابو هریرهؓ د حضور صلي الله علیه وسلم حدیث بیان کړ، چه حضور صلي الله علیه وسلم د هغې په قبر مونځ اوکړ.

## باب ۳۱۶: اَلْاَسِيْرِ اَوِ الْغَرِيْمِ يُرْبَطُ فِي الْمَسْجِدِ.

## باب ۳۱۶: د قیدي او قرضداري جمات کښ د تړلو بیان.

۴۴۴: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَنَا رَوْحٌ وَّ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُّحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْهُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عِفْرِيْتًا مِّنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ عَلَيَّ الْبَارِحَةَ اَوْ كَلِمَةً نَّحْوَهَا لِيَقْطَعَ عَلَيَّ الصَّلٰوةَ فَاَمْكَنَنِي اللّٰهُ مِنْهُ وَ اَرَدْتُّ اَنْ اَرْبِطَهٗ اِلٰى سَارِيَةٍ مِّنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتّٰى تُصْبِحُوْا وَ تَنْظُرُوْا اِلَيْهِ كُلُّكُمْ فَذَكَرْتُ قَوْلَ

۴۴۴: اسحاق بن ابراهیم. روح او محمد بن جعفر. شعبه. محمد بن زیاد. ابوهریرهؓ د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. یو سرکش پیری (جن) تیره شپه ماله راغې (یا ددې په مثل څه کلمه ئې او فرمائیله) چه خما مونځ مات کړي. لیکن الله ماله په هغه قابو راکړلو ما اوغوښتل چه زه هغه اونیسم، چه تاسو خلق ئې هم اووینئ. بیا ما د خپل ورور سلیمانؑ وینا رایاده که: رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْ بَعْدِيْ اې خما ربه ماته ته داسې بادشاهي راکړه چه خما نه

حتىٰ سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِنْ بَعْدِيْ قَالَ رَوْحٌ فَرَدَّهُ خَاسِئًا.

روستو هيڅ نه مناسب نه وي (روح د حديث راوي) وائي. بيا حضورﷺ هغه پېرے ذليل کړے واپس کړلو.

بَابُ ۳۱۷: اَلْاِغْتِسَالِ اِذَا اَسْلَمَ وَ رَبْطِ الْاَسِيْرِ اَيْضًا فِي الْمَسْجِدِ وَ كَانَ شُرَيْحٌ يَّأْمُرُ الْغَرِيْمَ اَنْ يُّحْبَسَ اِلٰى سَارِيَةِ الْمَسْجِدِ.

باب ۳۱۷: چه اسلام راوړي، نو د غسل کولو او جمات کښې د قيدي تړلو بيان. شريح به قرضداري له حکم ورکولو، چه هغه دې د جمات په ستن پورے او تړلے شي.

۴۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَآءَتْ بِرَجُلٍ مِّنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهٗ ثُمَامَةُ ابْنُ اُثَالٍ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِّنْ سَوَارِى الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَطْلِقُوْا ثُمَامَةَ فَانْطَلَقَ اِلٰى نَخْلٍ قَرِيْبٍ مِّنَ الْمَسْجِدِ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

۴۴۵: عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد بن ابي سعيد. حضرت ابوهريرهؓ روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم نجد طرف ته څه سوارهٔ اوليږل. هغوي د قبيلهٔ بني حنيفه يو سړے اُنيولو او راېوستلو، او د هغهٔ نوم ثمامه بن اثال وو خلقو هغه د جمات يو ستن سره او تړلو. بيا نبي صلي الله عليه وسلم هغه پله تشريف راوړلو. حضورﷺ ورته او فرمائيل، چه ثمامه پريږدئي، هغه پريښودو سره جمات ته نزدے يوې اُونې له ورغے، غسل ئے اوکړ او جمات کښې داخل شو، او وې ونيل: اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

بَابُ ۳۱۸: اَلْخَيْمَةِ فِي الْمَسْجِدِ لِلْمَرْضٰى وَ غَيْرِهِمْ.

باب ۳۱۸: جمات کښې بيمارانو وغيره د پاره د خيمے لږولو بيان.

۴۴۶: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اُصِيْبَ سَعْدٌ يَّوْمَ الْخَنْدَقِ فِي الْاَكْحَلِ فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۴۴۶: زکريا بن يحيٰي. عبدالله بن نمير. هشام. عروه. بي بي عائشهؓ روايت کوي. د جنګ خندق په ورځ د سعد، اکحل (رګ هفت اندام) زخمي شوے وو. نبي صلي الله عليه وسلم جمات کښې يوه خيمه اولږوله، چه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْمَةً فِي الْمَسْجِدِ لِيَعُوْدَهُ مِنْ قَرِيْبٍ فَلَمْ يَرُعْهُمْ وَ فِي الْمَسْجِدِ خَيْمَةٌ مِنْ بَنِيْ غِفَارٍ اِلَّا الدَّمُ يَسِيْلُ اِلَيْهِمْ فَقَالُوْا يَا اَهْلَ الْخَيْمَةِ مَا هٰذَا الَّذِيْ يَأْتِيْنَا مِنْ قِبَلِكُمْ فَاِذَا سَعْدٌ يَغْذُوْ جُرْحُهُ دَمًا فَمَاتَ مِنْهَا.

ذ نـزدے نـه ذ هغـه پـښتنـه كوي، جمـات كـښ ذ بنـي غفـار هم خيمـه لـږيـردلے وه، هغوي پـله وينـه بهيده، نو هغے خلقو اوويے، اے خيمے والو، دا وينـه څنگـه ذهغے طرف نه مونږ تـه راځي (چه اوكتـلے شـو)نـو څـه گوري چـه ذ سـعـد ذ زخم نـه وينـه راروانـه ده. نو هغـه هم ذ هغے نـه وفات شو.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه د جمات په حقله د ډيرے فراخئ او ازادئ قائل دے هغه دے حديث شريف سره دا ثابتول غواړي چه زخميان او مريضان هم جُمات كښ ساتلي شي. په بنكاره دا معلوميږي چه دا د مسجد نبوي واقعه ده. ليكن "سيرة اسحاق" كښ چه دا واقعه په كوم طرز بيان شويده. د هغے نه دا معلوميږي چه دا د مسجد نبوي واقعه نه ده. بلكے د بل جمات واقعه ده. نبي كريم صلي الله عليه وسلم به چه كله غذا گانوته تشريف اوړلو خو د مونځ د پاره به ئے يو خاص ځائے مقرره ولو او هغه ځائے ته به ئے جمات وے. حالانكه هغه به عام جمات نه وو. نبي عليه السلام د غزوهٔ خندق نه پس سمدستي د بنو قريظه نه گيره اچولے وه. او په هغه علاقه كښ يو ځائے د جمات د پاره مقرر كړے وو. حضرت سعد رضي الله عنه د بنو قريظه سره په غزا كښ زخمي شوے وو د غذا په دوران كښ په هغه جمات كښ په خيمه كښ د علاج د پاره ساتلے شوے وو چه نبي عليه السلام ئے په آسانه خبر اخستلے شي. دغه يو عارضي جمات وو. هغه باندے د جمات احكام نه نافذ كيږي. زخمي يامريض بغير د عذر نه په جمات كښ د يره كولے نشي ذ بنو قريظه علاقه د مسجد نبوي نه شپږ ميله لرے ده. نو په مسجد نبوي كښ د حضرت سعد د ديره كولو سوال نه پيدا كيږي. دويم دليل دا دے چه د حضرت سعد ذ قبيلے او بنو قريظه د يو بل سره معاهده وه او حضرت سعد د قبيلے سردار وو حضرت سعد رضي الله عنه د هغوي فيصلے له تشريف اوړے وو نو په زخمي حالت كښ حضرت سعد رضي الله عنهٗ دومره لرے څرنگ تلے وو. نو حضرت سعد رضي الله عنه په هغه عارضي جمات كښ په خيمه كښ ساتلے شوے وو او مسجد نبوي كښ نه رو.

## بَاب ۳۱۹: اِدْخَالِ الْبَعِيْرِ فِي الْمَسْجِدِ لِلْعِلَّةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَعِيْرِهٖ.

باب ۳۱۹: ذ ضـرورت پـه وخت جـمات تـه ذ اوښ بوتـلـو بيـان. ۱ ابـن عبـاسؓ وئيـلے دي، چـه نبـي صـلـعـم پـه ـه ـيل اوښ طـواف اوكه.

۴۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ

۴۴۷: عبـدالـلّٰـه بـن يـوسف مـالك. مـحـمـد بـن عبـدالـرحـمٰن بـن نـوفـل. عـروه بـن زبيـر. زيـنـب بـنـت ابـي سلـمـهؓ روايت كـوي، مـا

الزُّبَيْرِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّيْ اَشْتَكِيْ قَالَ طُوْفِيْ مِنْ وَّرَآءِ النَّاسِ وَ اَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ اِلٰى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَأُ بِالطُّوْرِ وَ كِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم ته شكايت اوكړه، چه زهٔ ناروغه يم، نو حضورؐ او فرمائيل چه ته په سورلي دَ خلقونه ورستو طواف اوكړهٔ، نو ما طواف اوكړهٔ، او رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ كعبې په يو كُټ كښې مونځ كولو، او هغې كښې ئې دَ سورهٔ طور تلاوت فرمائيلو.

١. امام بخاري رحمة اللهٔ عليه دا ثابتول غواړي "چه كله بيت الله مسجد حرام كښې دے نو د بيت الله طواف كول په سورلئ سره دا ثابتول چه د ضرورت په وخت كښې اوښ وغيره دننه جمات ته بوتلل روا دي". ليكن ذ نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه كښې د بيت الله شريف نه علاوه بل آبادے نه وؤ صرف چار چاپيره د خلقو كورونه وؤ بيا حضرت عمر رضي الله عنه د خانه كعبې نه چار چاپيره ديوال جوړ كړو. او دروازے ئے جوړے كړے نو بيا د حضرت ام سلمه بي بي رضي الله عنها اوښ دننه جمات ته څرنګ لاړلو؟ نو بيا به حضرت اُم سلمه رضي الله عنها د مانځه په دوران كښې د نبي عليه الصلاة والسلامنه وړاندے په لاره تلے وي څكه چه طواف ئے كولو. او طواف د مونځ په حكم كښې دے.

## بَاب ٣٢٠:

## باب ٣٢٠: (دا باب عنوان نهٔ لري)

٤٤٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَدُهُمَا عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ وَّ اَحْسِبُ الثَّانِيَ اُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ فِيْ لَيْلَةٍ مُّظْلِمَةٍ وَّ مَعَهُمَا مِثْلُ الْمِصْبَاحَيْنِ يُضِيْئَانِ بَيْنَ اَيْدِيْهِمَا فَلَمَّا افْتَرَقَا صَارَ مَعَ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا وَاحِدٌ حَتّٰى اَتٰى اَهْلَهٗ.

٤٤٨: محمد بن مثنٰي. معاذ بن هشام. هشام. قتاده. انسؓ روايت كوي، چه دَ نبي صلي الله عليه وسلم اصحابو كښې دوه سړي دَ شپے تيارهٔ كښې حضورؐ نه رارروان شو. هغوي كښې يو عباد بن بشير وو، او دويم خما خيال دے، چه اسيد بن حضير وو، د دے دواړو ملګرتيا كښې دَ دُوو ډيوو په مثل رنړا ګانے وے، چه دَ هغوي مخكښې روښانه وے. بيا چه دواړه جدا شو نو هغوي كښې هر يو سره يوه يوه رنړا پاتے شوه. تردے چه هر يو خپل كور ته اورسيدلو.

۱. دا دواړه (صحابه کرام) صحابيان رضي الله عنهما د ماسختن د مونځ ادا کولو نه روستو د ډير وخت د پاره په مسجد نبوي کښې د نبي عليه الصلاة والسلام په خدمت کښې حاضر وو بيا چه دا دواړه د جمات نه بهر راووتل' نو شپه تياره وه او د نبي عليه الصلاة والسلام دملګرتيا په برکت سره ورته ټوله لاره روخانه شوې وه.

## بَاب ۳۲۱: الْخَوْخَةِ وَالْمَمَرِّ فِي الْمَسْجِدِ.

۴۴۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ قَالَ نَا فُلَيْحٌ قَالَ نَا اَبُو النَّضْرِ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ خَيَّرَ عَبْدًا بَيْنَ الدُّنْيَا وَ بَيْنَ مَا عِنْدَهٗ فَاخْتَارَ مَا عِنْدَ اللّٰهِ فَبَكٰى اَبُوْ بَكْرٍ فَقُلْتُ فِيْ نَفْسِيْ مَا يُبْكِيْ هٰذَا الشَّيْخَ اِنْ يَّكُنِ اللّٰهُ خَيَّرَ عَبْدًا بَيْنَ الدُّنْيَا وَ بَيْنَ مَا عِنْدَهٗ فَاخْتَارَ مَا عِنْدَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ الْعَبْدُ وَ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ اَعْلَمَنَا فَقَالَ يَا اَبَا بَكْرٍ لَّا تَبْكِ اِنَّ اَمَنَّ النَّاسِ عَلَيَّ فِيْ صُحْبَتِهٖ وَ مَالِهٖ اَبُوْ بَكْرٍ وَّلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِّنْ اُمَّتِيْ خَلِيْلًا لَّا تَّخَذْتُ اَبَا بَكْرٍ وَّلٰكِنْ اُخُوَّةُ الْاِسْلَامِ وَ مَوَدَّتُهٗ لَا يُبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ بَابٌ اِلَّا سُدَّ اِلَّا بَابُ اَبِيْ بَكْرٍ.

## باب ۳۲۱: جمات کښې ذ کهړکۍ او لارې ساتلو بيان.

۴۴۹: محمد بن سنان. فليح. ابو النضر. عبيد بن حنين. بشر بن سعيد. ابو سعيد خدريؓ روايت کوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم يوه ورځ خطبه اولوسته' نو وې فرمائيل' يقين او کړئ' چه الله سبحانه' خپل يو بنده ته ذ دُنيا او آخرت اختيار ورکهٔ (چه کوم يو غواړي هغه دې خوښ کړي) نو هغهٔ هغه څيز اختيار که' کوم چه الله سره دې. ابوبکرؓ چه دا واوريدل' نو په ژړا شو. ما خپل زړهٔ کښې اووې' چه داسې څهٔ څيز دې' چه دا بوډا ژړه وي' که الله يو بنده ته ذ دُنيا او ذ هغې عالم مينځ کښې چه الله سره دې' اختيار ورکهٔ' او هغهٔ هغه عالم اختيار که' چه الله سره دې (نو دې کښې ذ ژړا څهٔ خبره دهٔ' خو آخر کښې معلومه شوه چه) هغه بنده رسول الله صلي الله عليه وسلم وو. او ابوبکرؓ موږ ټولو کښې ذ زيات علم خاوند وو. بيا حضورؐ او فرمائيل' اې ابوبکرؓ' تهٔ مهٔ ژاړه' څکه چه دا خبره يقيني دهٔ' چه ټولو خلقو کښې په ما زيات احسان کونکې خپل صحبت او خپل مال کښې ابوبکرؓ دې' او که ما خپل امت کښې څوک خليل جوړولې' نو يقيناً ابوبکرؓ به م جوړ کړې وې ليکن ذ اسلام اخوت (وروروالي) اوَ ذدې محبت کافي دې. ګورئ' جمات کښې ذ ابوبکرؓ ذ دروازې نه سِوا بله دروازه دې بې بندولو پرې نهٔ ښودې شي.

۱. نبي عليه الصلاة والسلام په دې حديث شريف کښې فرمايلي دي که 'ما څوک "خليل" (زيات قريبي دوست) جوړوو نو ما به ابوبکر رضي الله عنه جوړ کړې وو". علماؤ په دې ډير بحث کړيدې چه د

خليل مطلب څه دے؟ او حبيب از خليل كښې څه فرق دے؟ او د هغې ټولو بحثونو مختصر (لنډ) مطلب دادے چه دَ (خُلّة) دوستۍ نه مراد هغه تعلق دے چه د بنده او د اللّٰه تعالىٰ په مينځ كښې وي. د دے وجې نه نبي عليه السلام داسے مبارک الفاظ او فرمايل چه د هغې نه دا معلوميږي چه د ابوبكر صديق رضي اللّٰه عنه او د نبي عليه الصلاة والسلام په مينځ كښې دغه تعلق ناممكن دے. خو بياهم د اسلامي رورولۍ او د مينې محبت چه د اعلىٰ نه اعلىٰ درجه وي هغه د ابوبكر رضي اللّٰه عنه او د رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم په مينځ كښې شته دے.

۲. كله چه مسجد نبوي په اول ځل جوړشو نو قبله بيت المقدس طرفته وه (شمال طرفته) بيا قبله خانه كعبه بيت اللّٰه الحرام مقرر شوه هغه د مدينې جنوب طرفته وه نو ځكه د مسجد نبوي لويے دروازے شمال طرفته جوړے شوے. د صحابه كرامو رضي اللّٰه عنهم اجمعين كورونه د جمات نه چار چاپيره خلورو وارو طرفونوته وو او مسجد نبوي ته ئے د تلو راتلو د پاره د خپلو كورونو كړكئي دروازے جمات طرفته جوړے كړے وے نو نبي عليه الصلاة والسلام مشرق او مغرب (نمر خاته' نمبر پريواته) اطرافوته د دروازو بندولو حكم او كړو شمال ته ئے يوه دروازه آزاده پريخوده د مسجد نبوي مغرب طرفته د حضرت ابوبكر صديق رضي اللّٰه عنه يوه كړكئي يواځے نبي عليه الصلاة والسلام د ازادے پريخودو حكم او فرمايلو په دے كښې دا اشاره وه چه كله حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه امام شي نو مسجد نبوي ته د تلو راتلو آساني به ورته وي.

| | |
|---|---|
| ۴۵۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ قَالَ ثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ قَالَ نَا اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ يَعْلَى بْنَ حَكِيْمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ عَاصِبًا رَّأْسَهُ بِخِرْقَةٍ فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّهُ لَيْسَ مِنَ النَّاسِ اَحَدٌ اَمَنَّ عَلَيَّ فِيْ نَفْسِهِ وَمَالِهِ مِنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَبِيْ قُحَافَةَ وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِّنَ النَّاسِ خَلِيْلًا لَّا تَّخَذْتُ اَبَا بَكْرٍ خَلِيْلًا وَلٰكِنْ خُلَّةُ الْإِسْلَامِ اَفْضَلُ سُدُّوْا عَنِّيْ كُلَّ خَوْخَةٍ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ | ۴۵۰: عبداللّٰه بن محمد جعفي. ........... جرير. جرير. يعلي بن حكيم. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ روايت كوي چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم دَ وفات مرض كښې په خپل سر يوه پټنۍ تړلے وه' او بهر راووتلو. اوپه منبر كيناستلو. بيا دَ اللّٰه دَ حمد و ثنا نه پس ئے او فرمائيل' خلقو' دَ ابوبكرؓ نه زيات جان و مال سره په ما باندے احسان كونكے هيڅوك نشته. او كه ما خلقو كښې څوک خليل (دوست) جوړولے' نو يقيناً ابوبكرؓ به مې خليل جوړ كړے وو. ليكن دَ اسلام دوستي افضله ده' ځما دَ طرف نه هره كهړكۍ چه دے جمات كښې ده سوا دَ ابوبكرؓ دَ كهړكۍ نه ټولے بندے |

عُمَرَ خَوْخَةِ أَبِیْ بَکْرٍ.

کړی.

بَابُ ۳۲۲: اَلْاَبْوَابِ وَالْغَلَقِ لِلْکَعْبَةِ وَالْمَسَاجِدِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ لِیْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْیٰنُ عَنِ ابْنِ جُرَیْجٍ قَالَ قَالَ لِیَ ابْنُ اَبِیْ مُلَیْکَةَ یَا عَبْدَ الْمَلِكِ لَوْ رَاَیْتَ مَسَاجِدَ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَ اَبْوَابَهَا.

باب ۳۲۲: کعبه او جماتونو کښې دروازې سوکل او د هغې د بندولو بیان. امام بخاریؒ وائي' ماته عبدالله بن محمد اووې' هغه وائي' ماته سفیان د ابن جریج نه نقل او کړ' هغه وائي' ماته ابن ابي ملیکه اووې' چه اې عبدالملک' که تا د ابن عباسؓ جماتونه لیدلې وې نو تاته به معلومه شوې وې' چه هغې کښې څومره دروازې وې او هغه به څنګه بندولې شوې.

۴۵۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ النُّعْمَانِ وَ قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیْدٍ قَالَ نَا حَمَّادُ بْنُ زَیْدٍ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَ مَکَّةَ فَدَعَا عُثْمَانَ بْنَ طَلْحَةَ فَفَتَحَ الْبَابَ فَدَخَلَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ بِلَالٌ وَّ اُسَامَةُ بْنُ زَیْدٍ وَّ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ ثُمَّ اُغْلِقَ الْبَابُ فَلَبِثَ فِیْهِ سَاعَةً ثُمَّ خَرَجُوْا قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَبَدَرْتُ فَسَاَلْتُ بِلَالًا فَقَالَ صَلّٰی فِیْهِ فَقُلْتُ فِیْ اَیٍّ فَقَالَ بَیْنَ الْاُسْطُوَانَتَیْنِ قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَذَهَبَ عَلَیَّ اَنْ اَسْاَلَهٗ کَمْ صَلّٰی.

۴۵۱: ابوالنعمان او قتیبه بن سعید. حماد بن یزید. ایوب. نافع. ابن عمرؓ روایت کوي' چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم مکې ته تشریف راوړلو. نو عثمان بن طلحه ئې راوبلهٔ. هغهٔ دروازه پرانسته. نبي صلي اللّٰه علیه وسلم' بلال' اسامه بن یزید او عثمان بن طلحه دننه لاړل. بیا دروازه (د کعبې) بنده کړې شوه. حضورؐ هلته لږ ساعت د پاره دننه وو. بیا ټول خلق راووتل. ابن عمرؓ وائي' ما تادي او کړه او بلالؓ نه مې تپوس او کړ' نو هغهٔ اووې' چه حضورؐ کعبه کښې مونځ او کړهٔ. ما اووې' کرم ځائې کښې' نو هغهٔ اووې' د دواړو ستنو مینځ کښې. ابن عمرؓ وائي' مانه دا خبره پاتې شوه' چه دا تپوس مې ترې کړې وې' چه حضور څومره مونځ او کړهٔ.

بَابُ ۳۲۳: دُخُوْلِ الْمُشْرِكِ فِی الْمَسْجِدِ.

باب ۳۲۳: جمات کښې د مشرک د داخلیدو بیان.

۱. د کوم مشرک یا کافر جمات ته په ننوتلو کښې څه ګناه نشته. دا د احنافو مذهب دې.

۴۵۲: حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ قَالَ نَا اللَّیْثُ عَنْ سَعِیْدِ ابْنِ اَبِیْ سَعِیْدٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَیْرَةَ یَقُوْلُ بَعَثَ رَسُوْلُ

۴۵۲: قتیبه. لیث. سعید بن ابي سعید. حضرت ابو هریرهؓ روایت کوي چه (یو ځلې) رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَآءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ اُثَالٍ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِى الْمَسْجِدِ.

خــه سـوارهٔ نـجـد طـرف تـه اوليـږل، نو هغوي دَ بـنـي حـنيـفـه يو سړے ثـمـامـه بـن اثـال نيـولے راوستـلـو. بيـائـے هـغـه دَ جـمـات سـتن سـره او تړلو.

باب ٣٢٤: رَفْعِ الصَّوْتِ فِي الْمَسْجِدِ.

بـاب ٣٢٤: جـمـات کـښ دَ آواز اوچتولو بيان.

٤٥٣: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ نَجِيْحٍ الْمَدِيْنِيُّ قَالَ نَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ الْقَطَّانُ قَالَ نَا الْجُعَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ خُصَيْفَةَ عَنِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كُنْتُ قَآئِمًا فِي الْمَسْجِدِ فَحَصَبَنِيْ رَجُلٌ فَنَظَرْتُ اِلَيْهِ فَاِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ اذْهَبْ فَأْتِنِيْ بِهٰذَيْنِ فَجِئْتُهُ بِهِمَا فَقَالَ مِمَّنْ اَنْتُمَا اَوْ مِنْ اَيْنَ اَنْتُمَا قَالَا مِنْ اَهْلِ الطَّآئِفِ قَالَ لَوْ كُنْتُمَا مِنْ اَهْلِ الْبَلَدِ لَاَوْجَعْتُكُمَا تَرْفَعَانِ اَصْوَاتَكُمَا فِيْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٤٥٣: علـي بـن عبـدالـلّٰـه بـن جعفر بن نجيح مـديـنـي. يـحـيـي بـن سعيد قطّان. جعيد بن عبدالرحمٰن. يـزيـد بـن خـصيـفـه. سائب بن زيد، روايت کوي، چه زهٔ جـمـات کـښ ولاړ ووم. نـو يـو سـړي زهٔ پـه کـټـکـي اوويشتم. مـا چه هـغـه طـرف ته اوکتل، نو هغه عمر بن خـطـابؓ وو. هـغه ماته اووے، چه :غه دواړه (چه جمات کـښ ئـے آوازونـه اوچـت کړل) ماته راوله، نو ما هغوي دواړه هـغـه تـه بـوتـلل. عمرؓ هغوي ته اووے، چه تاسو دَ کومے قبيلے ئے يا (داسے ئے اووے چه) تاسو دَ کوم مقام (اوسيـدونـکـے) ئے. هـغـوي اووے، مـونـږ دَ طـائف اوسيـدونـکـي يـو. عمرؓ ورته اووے، که تاسو دَ دے ښار اوسيدونکي وے، نو ما به تاسوله سزا درکړے وه، تاسو دَ رسول اللّٰه صلعم په جمات کښ آوازونه اوچتوئے.

٤٥٤: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ قَالَ نَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ اَبِيْ حَدْرَدٍ دَيْنًا كَانَ لَهُ عَلَيْهِ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٤٥٤: احـمـد بـن صـالـح. ابن وهب. يونس بن يـزيد. ابن شهاب. عبدالله بن کعب بن مالک. حضرت بـن مـالـکؓ روايـت کـوي، چه هغه دَ ابن ابي حدرد، نه دَ خپـلـے يوے قرضے چه په هغهٔ وه، دَ رسول الله صلي الله عـلـيـه وسـلـم پـه زمـانـه کـښ په جمات کښ دننه تقاضا اوکـړه نو (خپلو کښ خبرو اترو کښ) دَ دواړو آوازونه اوچـت شـو، چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم هم

فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ اَصْوَاتُهُمَا حَتّٰى سَمِعَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ بَيْتِهٖ فَخَرَجَ اِلَيْهِمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهٖ وَ نَادٰى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ فَقَالَ يَا كَعْبُ فَقَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاَشَارَ بِيَدِهٖ اَنْ ضَعِ الشَّطْرَ مِنْ دَيْنِكَ قَالَ كَعْبٌ قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُمْ فَاقْضِهٖ.

واوريدل، حالانکه رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل کور کښې وو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورو اُوتو، او دَ خپلے حجرے (کوټے) پرده ئے بيرته کړه. او کعب بن مالک ته ئے آواز او کړه، چه اے کعب، هغهٔ اووے، لبيک (حاضريم) يا رسول اللّٰه، حضورؐ ورته خپل لاس سره اشاره او کړه، چه نيم قرض ورته معاف کړه. کعب اووے، يا رسول اللّٰه، ما معاف کړلو، بيا حضور صلي الله عليه وسلم ابن ابي حدرد ته او فرمائيل، پاسه او باقي قرض ادا کړه.

## باب ۳۲۵: اَلْحِلَقِ وَالْجُلُوْسِ فِي الْمَسْجِدِ.

## باب ۳۲۵: جماعت کښې دَ حلقے (دائرے) جوړولو او کيناستلو بيان.

۴۵۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَاَلَ رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ مَا تَرٰى فِيْ صَلٰوةِ اللَّيْلِ قَالَ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا خَشِيَ اَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلّٰى وَاحِدَةً فَاَوْتَرَتْ لَهٗ مَا صَلّٰے وَ اِنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ اجْعَلُوْا اٰخِرَ صَلٰوتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِهٖ.

۴۵۵: مسدد. بشر بن مفضل. عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ روايت کوي، چه يو سړي دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس او کړهٔ. او دغه وخت حضورؐ په منبر وو، چه دَ شپے دَ مونځ په حقله تاسو څهٔ حکم کوئے. حضورؐ ورته او فرمائيل، دوه، دوه رکعاته کول پکار دي. بيا چه تاسو کښې چاته دَ سحر کيدو خوف وي، نو يو رکعت دے بل او کړي، او هغه يو رکعت به هغهٔ دَ پاره چه څومره مونځ ئے کړے وي، ټول وتر کړي. او ابن عمرؓ به وئيلے، چه دَ شپے خپل آخري مونځ وِتر جوړ کړئے، ځکه چه نبي صلے الله عليه وسلم دَ دے حکم کړے دے.

۴۵۶: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّے اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ

۴۵۶: ابوالنعمان. عماد بن يزيد. ايوب. نافع. ابن عمرؓ روايت کوي، چه (يو ځلے) نبي صلے الله عليه وسلم خطبه ورکوله. دے کښې يو سړے حاضر شو، او عرض ئے او کړه، چه دَ شپے مونځ څنګه کيږي، نو حضور

يَخْطُبُ فَقَالَ كَيْفَ صَلٰوةُ اللَّيْلِ فَقَالَ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا خَشِيْتَ الصُّبْحَ فَاَوْتِرْ بِوَاحِدَةٍ تُوْتِرُ لَكَ مَا قَدْ صَلَّيْتَ وَ قَالَ الْوَلِيْدُ بْنُ كَثِيْرٍ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُمْ اَنَّ رَجُلًا نَادَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ.

ورته او فرمائيل' چه دوه دوه رکعاته' او کوم وخت چه تاسره دَ سحر کيدو' ويره شي' نو يو رکعت ورسره بل اوکړه' هغه به ستا دَ پاره' چه څومره مونځ دے کړے وي' ټول وتر کړي. او وليد بن کثير وئيلے دي' ماته عبيدالله بن عبدالله اووے' چه ابن عمرؓ هغهٔ ته بيان اوکه' چه يو سړي نبي صلعم ته آواز اُوکهٔ او حضورؐ جمات کښې وو.

٤٥٧: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى عَقِيْلِ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ عَنْ اَبِيْ وَاقِدِ اللَّيْثِيِّ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَاَقْبَلَ نَفَرٌ ثَلٰثَةٌ فَاَقْبَلَ اثْنَانِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَهَبَ وَاحِدٌ فَاَمَّا اَحَدُهُمَا فَرَاٰى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَجَلَسَ خَلْفَهُمْ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَاَدْبَرَ ذَاهِبًا فَلَمَّا فَرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا اُخْبِرُكُمْ عَنِ النَّفَرِ الثَّلٰثَةِ اَمَّا اَحَدُهُمْ فَاَوٰى اِلَى اللّٰهِ فَاٰوَاهُ اللّٰهُ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَاسْتَحْيٰى فَاسْتَحْيَى اللّٰهُ مِنْهُ وَ اَمَّا الْاٰخَرُ فَاَعْرَضَ فَاَعْرَضَ اللّٰهُ عَنْهُ.

٢٥٧: عبدالله بن يوسف مالک. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه ابومره (دَ عقيل بن ابي طالب آزاد کرده غلام). ابو واقد ليثيؓ روايت کوي' يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم جمات کښې وو' چه درے سړي راغلل. نو هغوي کښې دوه کسان رسول الله صلے الله عليه وسلم ته مخے ته راغلل او دريم لاړلو. بيادے دوو کښې يو کس حلقه کښې گنجائش اوليد' نو حلقه (دائره کښې کيناست او هغه دويم دَ ټولو نه ورستو کيناست. کوم وخت چه رسول الله صلے الله عليه وسلم (دَ وعظ نه) فارغ شو' نو وے فرمائيل' آيا زهٔ تاسو دَ درے سړو دَ حال نه خبر نهٔ کړم' چه يو دَ هغوي نه الله طرف ته راغے' او الله هغهٔ له ځائے ورکهٔ. او دويم حيا اوکړه' نو الله هم دَ هغه نه حيا اوکړه. او دريم مخ واړولو' نو الله هم دَ هغهٔ نه مخ واړولو.

باب ٣٢٦: اَلْاِسْتِلْقَاءِ فِي

بـاب ٣٢٦: جمـات کښې دَ ملاستے

الْمَسْجِدِ. بيان.

۴۵۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مُسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ اَنَّهٗ رَاٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَلْقِيًا فِي الْمَسْجِدِ وَاضِعًا اِحْدٰى رِجْلَيْهِ عَلَى الْاُخْرٰى وَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ كَانَ عُمَرُ وَ عُثْمَانُ يَفْعَلَانِ ذٰلِكَ.

۴۵۸: عبدالله بن مسلمه. مالک ابن شهاب. عباد بن تميم دَ خپل تره نه روايت کوي چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم په جمات کښې ملاست اوليد، چه حضورﷺ يوه پښه په بله اچولې وه، او ابن شهاب دَ سعيد بن مسيب نه روايت کوي، چه عمرؓ او عثمانؓ به هم دغسې کول.

١. په جمات کښې د خملاستو او د يوې خپې په بله راچولو په حقله منعه هم راغلې ده. خو په دې حديث شريف کښې دا واقعه ده چه نبي عليه الصلاة والسلام، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهما دا رنګ خملاستل چه يوه خپه به ئې په بله خپه اچولې وه. نو په جمات کښې چه داسې طريقه خملاستل په هغه صورت کښې منعه دي چه کله د عورت د پټيدو اهتمام نشي کيدې. ليکن که يو سړې خپل عورت پټ ساتي او په دې طريقه خملي نو په داسې ملاسته کښې ګناه نشته بل په دې غور پکار دې چه د عامو خلقو مخکښې به نبي عليه الصلاة والسلام داسې نه خملاستلو ليکن چه کله به خلق وو نو نبي عليه الصلاة والسلام به آرام پدې طريقه کولو. نبي عليه الصلاة والسلام چه عام مجالسو کښې په ډير درناوي وقار سره به ناست وو د هغې تفصيل په احاديثو کښې موجود دې بله دا خبره ياد ساتل ضروري دي چه په هغه (دغه) زمانه کښې به عربو، او نبي عليه الصلاة والسلام لنګ وهلو چه په هغ کښې په داسې خملاستلو کښې د عورت ښکاره کيدو خطره ده البته پرتوګ اچولو کښې دغه خطره نشته.

بَابُ ۳۲۷: الْمَسْجِدِ يَكُوْنُ فِي الطَّرِيْقِ مِنْ غَيْرِ ضَرَرٍ بِالنَّاسِ فِيْهِ وَبِهٖ قَالَ الْحَسَنُ وَ اَيُّوْبُ وَ مَالِكٌ.

باب ۳۲۷: که جمات لار کښې جوړ شوې وي، او هغې کښې دَ خلقو نقصان نهٔ وي (نو هيڅ حرج نشته) او حسن بصري او ايوب او امام مالکؒ دَ دې قائل دي.

۴۵۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ نَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمْ اَعْقِلْ اَبَوَيَّ اِلَّا وَهُمَا يَدِيْنَانِ الدِّيْنَ وَلَمْ يَمُرَّ عَلَيْنَا

۴۵۹: يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. عروه بن زبير، بي بي عائشهؓ د نبي صلعم بي بي روايت کوي، زه په بنه بد پوئې شوم نو خپل مور پلار م ددين پيروي کونکي اوليدل، او هيڅ ورځ به په مونږ داسې نهٔ تيريده، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به دَ ورځې دوه ځله سحر او مابنام مونږ کره نهٔ راتلو. يو ځلې

يَوْمٌ اِلَّا يَأْتِيْنَا فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَفَيِ النَّهَارِ بُكْرَةً وَّ عَشِيَّةً ثُمَّ بَدَا لِاَبِيْ بَكْرٍ فَابْتَنٰى مَسْجِدًا بِفِنَآءِ دَارِهٖ فَكَانَ يُصَلِّيْ فِيْهِ وَ يَقْرَؤُا الْقُرْاٰنَ فَيَقِفُ عَلَيْهِ نِسَآءُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ اَبْنَآءُ هُمْ يَعْجَبُوْنَ مِنْهُ وَ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْهِ وَ كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّجُلًا بَكَّاءً وَلَا يَمْلِكُ عَيْنَيْهِ اِذَا قَرَأَ الْقُرْاٰنَ فَاَفْزَعَ ذٰلِكَ اَشْرَافَ قُرَيْشٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ.

ابوبكرؓ ته خيال راغے او هغه ذَ خپل مكان په احاطه كښې جمات جوړ كڼ. هغے كښې ئے مونځ كول شروع كړل او ذَ قرآن تلاوت به ئے په كښې كولو، نو ذَ مشركانو ښځے او ذَ هغوئ هلكان به ورسره اُودريدل، او ذَ هغه تلاوت به خوند وركولو، او هغه ته به ئے كتل، ابوبكرؓ ډير ژړيدونكے سړے وو، ترڅو چه قرآن به ئے لوستلو، نو په خپلو سترګوئے اختيار نۀ لرلو. نو دے خبرے ذَ قريشو اشرافو په خوف كښې او غرخول چه چرته هغوي ټول مسلمانان نشي.

## بَابٌ ٣٢٨: اَلصَّلٰوةِ فِيْ مَسْجِدِ السُّوْقِ وَ صَلّٰى ابْنُ عَوْنٍ فِيْ مَسْجِدٍ فِيْ دَارٍ يُغْلَقُ عَلَيْهِمُ الْبَابُ.

باب ٣٢٨: ذَ بازار مقام كښې ذَ مونځ كولو بيان. ابن عون ذَ يو كورپه جمات كښې مونځ اوكۀ، چه ذَ هغے دروازه به په خلقو بندولے شوه.

٤٦٠: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلٰوةُ الْجَمِيْعِ تَزِيْدُ عَلٰى صَلٰوتِهٖ فِيْ بَيْتِهٖ وَ صَلٰوتِهٖ فِيْ سُوْقِهٖ خَمْسًا وَّ عِشْرِيْنَ دَرَجَةً فَاِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْٓءَ وَ اَتَى الْمَسْجِدَ لَا يُرِيْدُ اِلَّا الصَّلٰوةَ لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً اِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ بِهَا دَرَجَةً وَّ حَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيْئَةً حَتّٰى يَدْخُلَ الْمَسْجِدَ وَ اِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ كَانَ فِيْ صَلٰوةٍ مَّا كَانَتْ تَحْبِسُهٗ وَ تُصَلِّي الْمَلٰٓئِكَةُ عَلَيْهِ مَادَامَ فِيْ مَجْلِسِهٖ

٤٦٠: مسدد. ابو معاويه. اعمش. ابو صالح.

حضرت ابوهريرةؓ ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل، ذَ جمات مونځ ذَ خپل كور ذَ مونځ نه او ذَ خپل بازار ذَ مونځ نه پنځويشت درجے زيات ثواب لري. نو تاسو كښې چه څوک په ښۀ شان سره اودس اوكړي او جمات ته محض ذ مونځ په اراده راشي، نو كوم قدم چه هغه اردي، په هغے اللّٰه ذ هغه يوه درجه اوچتوي، يا ذهغۀ يوه ګناه معاف كوي، ترڅو چه هغه جمات كښې داخل شي، نو مونځ كښې ګڼړلے شي، څو پورے چه ذَ مونځ په وجه جمات كښې وي، او فريښتے ذَ هغۀ ذَ پاره دعا كوي، څو پورے چه هغه په هغه مقام وي، كوم ځائے چه مونځ كوي (فريښتے هغۀ ذَ پاره دا رنګ دعا كوي) چه اے اللّٰه دے اوبښے. اے اللّٰه په

الَّذِيْ يُصَلِّيْ فِيْهِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهٗ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ مَالَمْ يُؤْذِ يُحْدِثْ فِيْهِ. — ده رحم او كړې او (دا دعا) د هغې وخته پورې جاري وي، څو پورې چه هغه بې اودسه شوې نه وي.

۱. دې حديث شريف کښې دا بيان دې چه په امامتي سره په جمعه مونځ کولو په کور کښې يا د بازار په جوماتونو کښې د هغې د ثواب نه په جماعت کښې د مونځ کولو ثواب پنځويشت درجې زيات دې په حقيقت کښې دلته د خان له مونځ کولو او په جمعه سره د مونځ کولو د ثواب فرق بيانول وو ځکه چه د نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه کښې بازارونه د محلونه جدا وو او په بازار کښې جوماتونه نه وو. له دې وجې نه که چا په بازار کښې مونځ کولو نو ښکاره ده چه يواځې خان له به ئې مونځ ادا کولو. خو په نني زمانه کښې بازار آبادئ سره يو ځائې او نزدې وي او په بازارونو کښې مسلمانان جوماتونه آبادوي. خيال نې ساتي. له دې وجې نه که څوک د بازار په جومات کښې مونځ په جمعه، امامتي سره ادا کړي. نو انشاء الله د پوره ثواب به حقدار وي.

## بَاب ۳۲۹: تَشْبِيْكِ الْاَصَابِعِ فِي الْمَسْجِدِ وَغَيْرِهٖ.

## باب ۳۲۹: جمات کښې ګوتو کښې د پنجې اچولو بيان.

۱. په جومات کښې د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې ورکولو نه ځکه منعه شويده چه دا يو بې مقصده فضول او بې فائدې عمل دې، ښه هم نه ښکاري. خو بيا هم که چرې يو بنده د مثال بيانولو د پاره د يو لاس ګوتې د بل لاس ګوتو کښې ورکړي. نو پکښې څه ګناه نشته. ځکه چه نبي عليه الصلاة والسلام د بعضې خيزونو د مثال بيانولو د پاره، د يو لاس ګوتې د بل لاس ګوتو کښې ورکړې وې ليکن بې مقصده او بې ضرورته د جومات نه بهر هم د، کار ښه نه دې.

۴۶۱: حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ عُمَرَ عَنْ بِشْرٍ نَا عَاصِمٌ نَا وَاقِدٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَوِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ شَبَّكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَابِعَهٗ وَ قَالَ عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ نَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ مِنْ اَبِيْ فَلَمْ اَحْفَظْهُ فَقَوَّمَهٗ لِيْ وَاقِدٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ وَهُوَ يَقُوْلُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو كَيْفَ

۴۶۱: حامد بن عمر. بشر. عاصم. واقد محمد. ابن عمر، يا ابن عمرو، روايت کوي، چه نبي صلى الله عليه وسلم خپلو ګوتو کښې پنجه واچوله. او عاصم بن علي وئيلې دي، چه مونږ ته عاصم بن محمد بيان او کړ، چه ما دا حديث د خپل پلار نه آوريدلې دې (خو ماته ياد پاتې نه شو) بيا دا واقد د خپل پلار نه نقل کړ، او ما د پاره ئې ټيک کړلو، هغه وائي، چه ما د خپل پلار نه واوريدل، هغه وئيل، عبدالله بن عمرو اووې، رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، اې

بِكَ اِذَا بَقِيْتَ فِيْ حُثَالَةٍ مِنَ النَّاسِ بِهٰذَا.

عبداللّٰه بن عمرهؓ، ستا به څۀ حال وي، چه ته خرابو خلقو کښې پاتې شے.

**۴۶۲:** حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى قَالَ نَا سُفْيٰنُ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهٖ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهٗ بَعْضًا وَ شَبَّكَ اَصَابِعَهٗ.

**۴۶۲:** خلاد بن یحیٰي. سفیان. ابوبرده بن عبداللّٰه بن ابوبرده. ابوبرده. حضرت ابو موسیٰؓ دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي، حضورؐ او فرمائیل مؤمن (دَبل) مؤمن دَ پاره په مثل دَ عمارت دے، چه دَ هغے یوه حصه بلے حصے له مضبوطه وي. او حضورؐ خپلو ګوتو کښې پنجه واچوله (وے ښودل چه دغسے).

**۴۶۳:** حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَنَا ابْنُ شُمَيْلٍ قَالَ اَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِحْدٰى صَلٰوتَيِ الْعَشِيِّ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ قَدْ سَمَّاهَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَلٰكِنْ نَسِيْتُ اَنَا قَالَ فَصَلّٰى بِنَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ اِلٰى خَشَبَةٍ مَعْرُوْضَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَاتَّكَاَ عَلَيْهَا كَاَنَّهٗ غَضْبَانُ وَ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى وَ شَبَّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ وَوَضَعَ خَدَّهُ الْاَيْمَنَ عَلٰى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرٰى وَ خَرَجَتِ السَّرْعَانُ مِنْ اَبْوَابِ الْمَسْجِدِ فَقَالُوْا قُصِرَتِ الصَّلٰوةُ وَ فِي الْقَوْمِ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَهَابَاهُ اَنْ يُّكَلِّمَاهُ وَ فِي الْقَوْمِ رَجُلٌ فِيْ يَدَيْهِ طُوْلٌ يُّقَالُ لَهٗ ذُو الْيَدَيْنِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَسِيْتَ

**۴۶۳:** اسحاق. ابن شمیل. ابن عون. ابن سیرین. حضرت ابو هریرهؓ روایت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم مونږ ته دَ زوال نه پس دوو مونځونو کښې یو مونځ راکه. ابن سیرین وائي، چه ابوهریرهؓ دَ هغې نوم اخستے وو، چه حضورؐ مونږ ته دوه رکعاته مونځ اوکه او سلام ئے او ګرځولو. بیا حضورؐ یو لرګي سره اودریدلو، چه په پرتو (عرضاً) په جمات کښې پروت وو. او حضورؐ په هغے تکیه اولږوله (داسے معلومیده) لکه چه حضورؐ غصه کښې وو، دغه وخت حضورؐ خپلو دواړو لاسونو کښې پنجه اچولے وه او خپل ښے اننګي (رخسار) ئے دَ خپل ګس تلي (ہتھیلی) په شا ایښے وو. جلد باز خلق دَ جمات په دروازه اووتل، نو صحابهؓ ؤ عرض اوکه، چه آیا مونځ کښې څه کمي راغے څه. او خلقو کښې ابوبکرؓ او عمرؓ هم وو، خو هغوي دواړه دَ حضورؐ نه تپوس کولو کښې ویره کوله دغے خلقو کښې یو سړے وو، چه دَ هغۀ لاسونه اوږدۀ وو، نو هغه ته به ئے ذوالیدین وے. هغۀ اووے، یا رسول اللّٰه، تاسوَ نه هیره اوشوه یا مونځ کښې څۀ کمي راغے؟ حضورؐ ورته او فرمائیل، چه زۀ خپل خیال کښې تیروتے نۀ یم او نۀ مونځ کښې کمي راغلے دے. بیا حضورؐ خلقوته او فرمائیل چه آیا

اَمْ قُصِرَتِ الصَّلٰوةُ قَالَ لَمْ اَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ فَقَالَ اَكَمَا يَقُوْلُ ذُوالْيَدَيْنِ فَقَالُوْا نَعَمْ فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى مَا تَرَكَ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ وَ سَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ وَ كَبَّرَ ثُمَّ كَبَّرَ وَ سَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْاَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ وَ كَبَّرَ فَرُبَمَا سَاَلُوْهُ ثُمَّ سَلَّمَ فَيَقُوْلُ نُبِّئْتُ اَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ ثُمَّ سَلَّمَ.

دغسے ده' څنګه چه ذوالیدین وائي' نو خلقو ورته اووے' او دغسے ده. بیا حضورؐ مخکښ شو' او څومره مونځ چه پریښے شوے' هغه ئے پوره که. هغے نه پس ئے سلام او ګرځولو تکبیر' ئے اووے. او په مثل د مخکنو سجدو' ئے سجده او کړه یا هغه سجده څۀ زیاته اوږده وه. بیا حضورؐ خپل سر ارچت کۀ او تکبیرئے او که (دے نه پس) ابن سیرین (د حدیث د راوي) نه خلقو تپوس او کۀ' چه آیا د دے نه پس بیاهم حضورؐ سلام او ګرځولو. ابن سیرین اووے. او. عمران بن حصین نه زۀ خبر شوے یم چه (دے نه پس) حضورؐ سلام او ګرځولو.

۱. دا حدیث' د حدیث ذوالیدین په نوم مشهور دے د احنافو او شوافعو په مینځ کښ یو اختلافي مسئله کښے بنیادي حیثیت لري. تفصیلي بحث به په خپل موقعه بیانیږي.

## بَابٌ ۳۳۰: اَلْمَسَاجِدِ الَّتِيْ عَلٰى طُرُقِ الْمَدِيْنَةِ وَالْمَوَاضِعِ الَّتِيْ صَلّٰى فِيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۳۳۰: هغه جماتونه چه د مدینے په لارو کښ دي او هغه ځایونه چه هغے کښ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم مونځ کړے دے.

۴۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ قَالَ ثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ ثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ رَاَيْتُ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَتَحَرّٰى اَمَاكِنَ مِنَ الطَّرِيْقِ فَيُصَلِّيْ فِيْهَا وَ يُحَدِّثُ اَنَّ اَبَاهُ كَانَ يُصَلِّيْ فِيْهَا وَ اَنَّهٗ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ تِلْكَ الْاَمْكِنَةِ قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ كَانَ يُصَلِّيْ فِيْ تِلْكَ الْاَمْكِنَةِ وَ سَاَلْتُ سَالِمًا فَلَا اَعْلَمُهٗ اِلَّا وَافَقَ نَافِعًا فِيْ

۴۶۴: محمد بن ابي بکر مقدمي. فضیل بن سلیمان. موسٰي بن عقبهؒ روایت کوي' چه ما سالم بن عبداللّٰه اولید' چه هغه لاره کښ د ځنے مقاماتو تالاش کولو' او هلته به ئے مونځ کولو. او بنان به ئے کولو' چه د هغۀ پلار به دغلته مونځ کولو' او هغۀ دغلته نبي صلے اللّٰه علیه وسلم په مونځ کولو لیدلے وو. موسٰي بن عقبه وائي' ماته نافع د ابن عمرؓ نه نقل کړے دے' چه هغۀ به دغه مقاماتو کښ مونځ کولو. او ما د سالم نه تپوس او کۀ' نو زۀ په دے پوهیږم چه هغه هم دے ټولو مقاماتو کښ د نافع موافقت کړے دے البته کوم جمات چه

الْاَكَمَةَ كُلِّهَا اِلَّا اَنَّهُمَا اخْتَلَفَا فِيْ مَسْجِدٍ بِشَرَفِ الرَّوْحَاءِ.

د روحاء په بلندي واقع وو هغې کښې د دواړو اختلاف وو.

۴۶۵: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ الْحِزَامِيُّ قَالَ نَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ قَالَ نَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْزِلُ بِذِى الْحُلَيْفَةِ حِيْنَ يَعْتَمِرُ وَفِيْ حَجَّتِهٖ حِيْنَ حَجَّ تَحْتَ سَمُرَةٍ فِيْ مَوْضِعِ الْمَسْجِدِ الَّذِىْ بِذِى الْحُلَيْفَةِ وَ كَانَ اِذَا رَجَعَ مِنْ غَزْوَةٍ وَّ كَانَ فِيْ تِلْكَ الطَّرِيْقِ اَوْحَجٍّ اَوْ عُمْرَةٍ هَبَطَ بَطْنَ وَادٍ فَاِذَا ظَهَرَ مِنْ بَطْنِ وَادٍ اَنَاخَ بِالْبَطْحَاءِ الَّتِيْ عَلٰى شَفِيْرِ الْوَادِى الشَّرْقِيَّةِ فَعَرَّسَ ثُمَّ حَتّٰى يُصْبِحَ لَيْسَ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الَّذِىْ بِحِجَارَةٍ وَّلَا عَلَى الْاَكَمَةِ الَّتِيْ عَلَيْهَا الْمَسْجِدُ كَانَ ثَمَّ خَلِيْجٌ يُصَلِّيْ عَبْدُ اللّٰهِ عِنْدَهٗ فِيْ بَطْنِهٖ كُثُبٌ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَّ يُصَلِّيْ فَدَحَا فِيْهِ السَّيْلُ بِالْبَطْحَاءِ حَتّٰى دَفَنَ ذٰلِكَ الْمَكَانَ الَّذِىْ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يُصَلِّيْ فِيْهِ وَ اَنَّ بْنِ عَبْدَ اللّٰهِ عُمَرَ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى حَيْثُ الْمَسْجِدُ الصَّغِيْرُ الَّذِىْ دُوْنَ الْمَسْجِدِ

۴۶۵: ابراهيم بن منذر حزامي. انس بن عياض. موسي بن عقبه. نافع. عبدالله بن عمر روايت کوي چه رسول الله صلے الله عليه وسلم به کله عمره کوله يا حج به ئے کولو، نو مقام ذوالحليفه کښې به کوزيدو. او چه کله به د يوې غزا نه واپس راغې، او په هغه لار به راتلو، يا حج يا عمره کښې به وو، نو وادي کښې دننه به کوزيدلو. بيا چه د وادي د ژوروالي نه به پورته راغې، نو اوښ به ئے هغې بطحا کښې کينولو، چه د وادي په غاړه مشرق ته وه (بطحاء: د مکې معظمې نوم) او د شپې آخر کښې د صبا پورې به ئے هلته آرام کولو. دا مقام (کوم ځائې چه به نبي صلى الله عليه وسلم آرام کولو) هغې جمات سره نه دې، چه په کاڼرو دې او نه په هغه ډهيرئ دې چه په هغې جمات جوړ دې. بلکه په هغه ځائې يوه چينه وه، چه عبدالله به هلته مونځ کولو، او هغې کښې دننه د شګو (ريت) ډهيرئ وې. رسول الله صلى الله عليه وسلم به هلته مونځ کولو. بيا هغې کښې د بطحانه سيلاب راغې. تر دې چه هغه مقام کوم ځائې چه به عبدالله مونځ کولو. ډک شولو. او عبدالله بن عمر د نافع نه بيان اوکه، چه نبي صلى الله عليه وسلم په هغې ځائې هم مونځ کړې دې، کوم ځائې چه وړوکې جمات دې، چه هغې جمات سره نزدې دې، چه د روحاء په بلندئ دې. او عبدالله هغه مقام هم پيژندلو، کوم ځائې چه نبي صلے الله عليه وسلم مونځ کړې وو. هغهٔ به وئيلې، چه هلتي ستاسو ښي طرف دې، کوم وخت چه

الَّذِيْ بِشَرَفِ الرَّوْحَاءِ وَقَدْ كَانَ عَبْدُ
اللّٰهِ يَعْلَمُ مَكَانَ الَّذِيْ كَانَ صَلّٰى
فِيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
يَقُوْلُ ثَمَّ عَنْ يَمِيْنِكَ حِيْنَ تَقُوْمُ فِي
الْمَسْجِدِ تُصَلِّيْ وَ ذٰلِكَ الْمَسْجِدُ عَلٰى
حَافَةِ الطَّرِيْقِ الْيُمْنٰى وَ اَنْتَ ذَاهِبٌ
اِلٰى مَكَّةَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْمَسْجِدِ الْاَكْبَرِ
رِمْيَةٌ بِحَجَرٍ اَوْ نَحْوَ ذٰلِكَ وَ اَنَّ ابْنَ
عُمَرَ كَانَ يُصَلِّيْ اِلَى الْعِرْقِ الَّذِيْ
عِنْدَ مُنْصَرَفِ الرَّوْحَاءِ وَ ذٰلِكَ الْعِرْقُ
انْتَهٰى طَرَفُهُ عَلٰى حَافَّةِ الطَّرِيْقِ دُوْنَ
الْمَسْجِدِ الَّذِيْ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْمُنْصَرَفِ
وَ اَنْتَ ذَاهِبٌ اِلٰى مَكَّةَ وَ قَدِابْتُنِيَ ثَمَّ
مَسْجِدٌ فَلَمْ يَكُنْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ
يُصَلِّيْ فِيْ ذٰلِكَ الْمَسْجِدِ كَانَ يَتْرُكُهُ
عَنْ يَسَارِهٖ وَ وَرَآءِهٖ وَ يُصَلِّيْ اَمَامَهُ
اِلَى الْعِرْقِ نَفْسِهٖ وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ
يَرُوْحُ مِنَ الرَّوْحَآءِ فَلَا يُصَلِّي الظُّهْرَ
حَتّٰى يَأْتِيَ ذٰلِكَ الْمَكَانَ فَيُصَلِّيْ فِيْهِ
الظُّهْرَ وَ اِذَا اَقْبَلَ مِنْ مَكَّةَ فَاِنْ مَرَّ بِهٖ
قَبْلَ الصُّبْحِ بِسَاعَةٍ اَوْ مِنْ اٰخِرِ السَّحَرِ
عَرَّسَ حَتّٰى يُصَلِّيَ بِهَا الصُّبْحَ وَ اَنَّ
عَبْدَ اللّٰهِ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْزِلُ تَحْتَ سَرْحَةٍ
ضَخْمَةٍ دُوْنَ الرُّوَيْثَةِ عَنْ يَمِيْنِ
الطَّرِيْقِ وَ وِجَاهَ الطَّرِيْقِ فِيْ مَكَانٍ

تاسو جمات کښې مانځه د پاره ولاړ یئ او دا جمات د
لارې په ښي طرف دې، کوم وخت چه تاسو مکې ته
ځئې. د دې او لوئې جمات په مینځ کښې د یو کاڼړي
نښه ده یا ددې نزدې دې. او ابن عمرؓ هغې غنډئ سره
هم مونځ کولو، چه د روحاء خاتمې سره ده. او د هغې
غنډئ غاړه د جمات قریب کښې ده. هغه جمات
چه د دغې غنډئ او روحاء نه د واپسي په
مینځ کښې دې. او دغه ځائې یو بل جمات
جوړ شوې دې. خو عبدالله بن عمرؓ به دې
جمات کښې مونځ نه کولو دا به ئې خپل ورستو
کس طرف ته پریښودلو. او د دې نه وړاندې
خاص غنډئ سره به ئې مونځ کولو. او عبدالله
به د روحاء نه صبا وخت کښې روانیدلو. بیا
به ئې د ماسپخین مونځ نه کولو. حتٰي چه دې
مقام ته به راورسیدلو. نو دلته به ئې، د ماسپخین
مونځ کولو. او کله چه به د مکې نه راتلو، نو که
د سحر نه به لږ مخکښې یا د شپې آخر ته به دې
مقام ته راورسیدو، نو د صبا پورې به دلته ایسار شولو، او
د سحر مونځ به ئې کولو. او عبدالله
د نافع نه دا بیان هم اوکړ، چه رسول الله صلي
الله علیه وسلم به مقام رُوثیه سره نزدې د
لارې ښي جانب ته او د لارې مخې ته د یوې
ګورې اونې لاندې یو فراخه او نرم مقام کښې
کوزیدلو، تردې چه حضورؐ به د هغې ډهیرئ نه
چه بُرید روثیه ته قریب دوه میله ده، بهر راغې، اوس
د هغې اونې پاسنئ حصه ماته شوې ده چه خپل

بَطْحِ سَهْلٍ حَتّٰى يُفْضِيَ مِنْ اَكَمَةٍ دُوَيْنَ بَرِيْدِ الرُّوَيْثَةِ بِمِيْلَيْنِ وَقَدِ انْكَسَرَ اَعْلَاهَا فَانْثَنٰى فِيْ جَوْفِهَا وَهِيَ قَائِمَةٌ عَلٰى سَاقٍ وَفِيْ سَاقِهَا كُثُبٌ كَثِيْرَةٌ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِيْ طَرَفِ تَلْعَةٍ مِّنْ وَّرَآءِ الْعَرْجِ وَ اَنْتَ ذَاهِبٌ اِلٰى هَضْبَةٍ عِنْدَ ذٰلِكَ الْمَسْجِدِ قَبْرَانِ اَوْ ثَلَاثَةٌ عَلَى الْقُبُوْرِ رَضَمٌ مِنْ حِجَارَةٍ عَنْ يَّمِيْنِ الطَّرِيْقِ عِنْدَ سَلِمَاتِ الطَّرِيْقِ بَيْنَ اُولٰٓئِكَ السَّلِمَاتِ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَرُوْحُ مِنَ الْعَرْجِ بَعْدَ اَنْ تَمِيْلَ الشَّمْسُ بِالْهَاجِرَةِ فَيُصَلِّي الظُّهْرَ فِيْ ذٰلِكَ الْمَسْجِدِ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ عِنْدَ سَرَحَاتٍ عَنْ يَّسَارِ الطَّرِيْقِ فِيْ مَسِيْلٍ دُوْنَ هَرْشٰى ذٰلِكَ الْمَسِيْلُ لَاصِقٌ بِكُرَاعِ هَرْشٰى بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الطَّرِيْقِ قَرِيْبٌ مِّنْ غَلْوَةٍ وَّ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ اِلٰى سَرْحَةٍ هِيَ اَقْرَبُ السَّرَحَاتِ اِلَى الطَّرِيْقِ وَ هِيَ اَطْوَلُهُنَّ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْزِلُ فِي الْمَسِيْلِ الَّذِيْ فِيْ اَدْنٰى مَرِّ الظَّهْرَانِ قَبْلَ الْمَدِيْنَةِ

ډډ کښې غر خېدلې ده، صرف دَ تنې په زور ولاړه ده. او تَنه کښې نې ډېر ريک دې. او عبداللّٰه بن عمرؓ دَ نافع نه دا هم بيان کړې دې، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم په هغې ډهيرئ هم مونځ کړې، چه دَ مقام عرج نه شاته ده. کله چه تاسو هضبه (کلي) طرف ته ځنې) نو هغې جمات سره دوه يا درې قبرونه دي. په قبرونو کانړي پراتهٔ دي. هلته حضورؐ دَ لارې ښي جانب ته دَ لارې کانړو سره (خوا کښې) مونځ کړې دې. دَ دغې کانړو مينځ ته به عبداللّٰه راتلو. دَ هغې نه پس چه نمر به په زوال شو. يا به هغهٔ دَ ماسپخين مونځ دغه جمات کښې کولو او عبداللّٰه بن عمرؓ دَ نافع نه دا بيان هم کړې دې، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم دې مسيل (دَ اُوبو بهيدو ځائې) کښې چه هر شا (غر) سره نزدې دې د لارې ښي طرف ته اُونو سره کوز شولو. مسيل دَ هر شا (غر) غاړې سره لګيدلې دې. دَ هغې او دَ لارې په مينځ کښې دَ يو تير دَ نښې قريب فاصله ده. او عبداللّٰه به دې اُونې سره مونځ کولو، چه دَ ټولو اونو نه زياته لارې ته نزدې وه او دَ دې ټولونه اوږده وه. عبداللّٰه بن عمرؓ دَ نافع نه دا بيان هم کړې دې. چه نبي صلعم دې سيل کښې هم کوز شوې وو، چه دَ مقام مر الظهران آخر کښې مدينې طرف ته دې. هر کله چه څوک دَ صفراوات (غرونو) نه زا کوز شي نو

حِيْنَ تَهْبِطُ مِنَ الصَّفْرَاوَاتِ تَنْزِلُ فِيْ بَطْنِ ذٰلِكَ الْمَسِيْلِ عَنْ يَسَارِ الطَّرِيْقِ وَ اَنْتَ ذَاهِبٌ اِلٰى مَكَّةَ لَيْسَ بَيْنَ مَنْزِلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ الطَّرِيْقِ اِلَّا رَمْيَةٌ بِحَجَرٍ وَّ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْزِلُ بِذِيْ طُوًى وَّ يَبِيْتُ حَتّٰى يُصْبِحَ يُصَلِّيُ الصُّبْحَ حِيْنَ يَقْدَمُ مَكَّةَ وَ مُصَلّٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ عَلٰى اَكَمَةٍ غَلِيْظَةٍ لَيْسَ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِيْ بُنِيَ ثَمَّهٗ وَلٰكِنْ اَسْفَلَ مِنْ ذٰلِكَ عَلٰى اَكَمَةٍ غَلِيْظَةٍ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَقْبَلَ فُرْضَتَيِ الْجَبَلِ الَّذِيْ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْجَبَلِ الطَّوِيْلِ نَحْوَ الْكَعْبَةِ فَجَعَلَ الْمَسْجِدَ الَّذِيْ بُنِيَ ثَمَّ يَسَارَ الْمَسْجِدِ بِطَرَفِ الْاَكَمَةِ وَ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْفَلَ مِنْهُ عَلَى الْاَكَمَةِ السَّوْدَاۤءِ تَدَعُ مِنَ الْاَكَمَةِ عَشْرَةَ اَذْرُعٍ اَوْ نَحْوَهَا ثُمَّ تُصَلِّيْ مُسْتَقْبِلَ الْفُرْضَتَيْنِ مِنَ الْجَبَلِ الَّذِيْ بَيْنَكَ وَ بَيْنَ الْكَعْبَةِ.

حضورً بـه ذ دې مسيل پـه ژور والـي كښې ذ لارې كـس جـانـب تـه، كـلـه چـه تـهٔ مكې تـه ځې، نـزول فـرمـانـيلـو (يعـنـي راكـوزيـدلو) ذ رسول اللّٰه صلې اللّٰـه عـلـيـه وسـلـم ذ كـوزيـدو خـائـې او ذ لارې مينـځ كښې صـرف ذ يـو كـانړي نبنه ده. او عبداللّٰه بن عمرؓ ذ نـافـع نـه دا هـم بيـان كړې دې، چـه نبي صلي اللّٰـه عـليـه وسـلـم بـه مقام ذي طوٰي كـښې كوزيدلو. شپـه بـه نـې تـيـرولـه. چـه سـحـر بـه شـو، او ذ سـحـر مونـځ بـه نـې اوكـړلـو، دا هغـه وخـت چـه حـضـورً بـه مـكـې تـه تشـريف راوړلـو. او ذ رسـول اللّٰـه صـلـې اللّٰـه عـلـيـه وسلم ذ مونځ كولو دا خـائې پـه يـوه سختـه ډهيـرئ دې، نـه هغـه جمات كـښې چـه هلتـه جوړ شـوې دې بـلـكـه ذ هغې نـه خكتـه پـه هغې سختې ډهيرئ. او عـبداللّٰه بن عمرؓ نافع نـه دا بيـان هـم كـړې دې، چـه نبـي صـلـې اللّٰـه عـلـيـه وسلم ذ هغې غـر غـاښـي مخې تـه راغې، هغه غاښې چـه ذ هغې غـر او ذ لـوئـې غـر پـه مينځ كښې كعبې طـرف تـه دې. بيـا حـضـورً هغـه جـمـات چه هلته جوړ شـوې دې، پـه كـس اړخ پـريښـودلو، چـه ډهيـرئ طـرف تـه دې. او ذ نبـي صـلـې اللّٰـه عـلـيـه وسلم ذ مـونـځ كـولـو خـائـې ذ هغې نـه لانـدې ذ تـورې ډهيـرئ ذ پـاسـه دې. ذ ډهيـرئ نـه لس گزه يا ذ هغې قـريـب پـريـږده، بيـا ذ غـر هـغـې غـاښـي طرف تـه چـه ستا او ذ كعبې تر مينځه دې، مخ كه او مونځ كوه.

١. دې اوږد حـديث شريف، كښې چه د كومو خايونو بيان دې چه هغې كښې نبي عليه الصلاة والسلام مونـځـونه كړيدي په اكثرو خايونو كښې د هغې نښې نښانې ورانې شويدي. حافظ ابن حجر رحمة اللّٰه عليه

ليکلې دي. چه اوس په هغې کښې يو اخرې مسجد ذوالحليفه (بير علي) او د روحاء جومات باقي پاتې دي او خلقوته معلوم دي په دې حديث کښې چه د سفر د مونځونو ذکر دې دغه سفر اوه ورځې جاري وؤ. او نبي عليه السلام (عبدالله بن عمر رضي الله عنهما) پکښې پنځه ديرش مونځونه ادا کړي وؤ. ليکن د حديث شريف راويانو د اکثرو مونځونو بيان نه دې کړې په حديث شريف کښې دي. چه په وادي روحاء کښې نبي عليه السلام مونځ ادا کړو. بيائې او فرمايل چه په دې ځائې کښې اوياؤ پيغمبرانو مونځونه کړي وؤ د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د عمل نه معلوميږي چه کومو ځايونو کښې نبي عليه السلام مونځونه کړي وي په هغې کښې مونځ د پاره تلل او د هغې نه تبرک حاصلول مستحب دي. عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د نبي عليه السلام په سنتو عمل کولو کښې مشهور دې ليکن بل خواته د عمر رضي الله عنه نه دا روايت دې چه په يو سفر کښې هغه اوليدل چه خلق په يو ځائې کښې د مونځ کولو د پاره د يو بل نه د مخکښې کيدلو کوشش کوو نو هغه پوښتنه اوکړه. چه دا څه خبره ده. خلقو ورته اويل چه نبي عليه السلام دلته مونځ ادا کړې وو په دې هغه او فرمايل "چه کله د چا د مونځ وخت راغې نو مونځ دې اوکړي کنې وړاندې دې لاړ شي. اهل کتاب خکه هلاک شوي وؤ چه هغوي د پيغمبرانو عليهم السلام يادګارونه کتل او په هغې يې عبادت خانې جوړولې" ابن حجر رحمة الله عليه ددې نه روستو نقل کړيدي چه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا فرمان د عامو خلقو د زيارت په حقله دې چه هغوي د دغې ځايونو نه بغير بل ځائې مونځ کول نه خوښول' حضرت عمر رضي الله عنه دا خطره محسوس کړې وه چه هسې نه' دا خلق دغې ځايونو کښې مونځ کول لازم اونه ګنړي. پاتې شو د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما پشان خلق' نو د هغوي د دې عمل نه څه خطره نشته. د دې نه وړاندې د حضرت عتبان رضي الله عنه حديث شريف تير شويدې چه نبي عليه الصلاة والسلام د هغه په کور کښې په يو ځائې کښې د دې د پاره مونځ کړې وو چه په هغه ځائې به عتبان رضي الله عنه مونځ کوي.

## بَابُ ۳۳۱: سُتْرَةُ الْاِمَامِ سُتْرَةُ مَنْ خَلْفَهٗ.

باب ۳۳۱: د امام ستره د ټولو د ورستو خلقو د پاره کافي ده (ستره: مونځ د پاره د پناهي لرګي وغيره ته وائي چه څوک ترې يا مخې نه تيريدې شي او ګناه کښې نه راځي)

۴۶۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ نَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ قَالَ اَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلٰى حِمَارٍ اَتَانٍ وَّ اَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الْاِحْتِلَامَ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ بِمِنًى اِلٰى غَيْرِ جِدَارٍ فَمَرَرْتُ

۴۶۶: عبدالله بن يوسف. مالک. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. عبدالله بن عباسؓ روايت کوي' چه زۀ په خپله خره (ګدهی) سور راغلم. هغه وخت زۀ بلوغ ته نزدې ووم. د رسول الله صلے الله عليه وسلم د ديوال نه علاوه د څۀ بل څيز ستره (پناه) قانسه وه. زۀ د صف د څۀ حصے د مخے نه د سورلۍ په حالت کښې تير شوم بيا راکوز شوم. خره م پريښوده' نو هغه

بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ فَنَزَلْتُ وَ اَرْسَلْتُ الْاَتَانَ تَرْتَعُ وَ دَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَلَيَّ اَحَدٌ.

په خرنده لګيا شوه، او زه خپله (د مونځ په) صف کښې شامل شوم. خو خما کار ليدو سره زه چا منع نه کړم.

۴٦٧: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ نَا عَبْدُاللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ قَالَ نَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيْدِ اَمَرَ بِالْحَرْبَةِ فَتُوْضَعُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَيُصَلِّيْ اِلَيْهَا وَالنَّاسُ وَرَآءَهٗ وَ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السَّفَرِ فَمِنْ ثَمَّ اتَّخَذَهَا الْاُمَرَآءُ.

۴٦٧: اسحاق. عبدالله بن نمير. عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ روايت کوي، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د اختر په ورځ (مونځ د پاره) وتلو نو حکم به ئې کولو، چه نيزه دې د حضورؐ مخې ته ښخه کړې شي. حضورؐ به هغې طرف ته مخ کړې مونځ کولو. او نور خلق به حضورؐ پسې وو. سفر کښې به هم حضورؐ دغسې کولو. د دې ځائې نه اُمراؤ دا طريقه اختيار کړې ده.

۴٦٨: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ نَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ ابْنِ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمْ بِالْبَطْحَآءِ وَ بَيْنَ يَدَيْهِ عَنَزَةٌ اَلظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ تَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ الْمَرْاَةُ وَالْحِمَارُ.

۴٦٨: ابوالوليد. شعبه. عون بن ابي حجيفه روايت کوي، ما د خپل پلار نه دا آوريدلې دي، چه نبي صلى الله عليه وسلم بطحا (مکه) کښې خلقوته د نيزې سُتره قائمولو سره مونځ ورکه. د ماسپخين دوه رکعاته او د مازيګر دوه رکعاته (ځکه چه حضورؐ مسافر وو) د حضورؐ مخې ته ښځې او خره (ګدهے) تيريدل.

ا. په حديث شريف کښې دي چه تور سپے، خر يا ښځه که د مونځ کونکي مخکښې تير شي نو مونځ ته نقصان رسيږي د دې وجې نه راوي په خاص ډول دا بيان کوي. چه ښځې اوپه خر باندې سواره خلق د مونځ ګذارو وړاندې تيريدل. په دې حديث شريف کښې په يو ځائې مختلف څيزونه جمع کړيدي او بيان کړيدي. چه دې دې څيزونو د مونځ ګذارو وړاندې تيريدو سره مونځ کښې نقصان رازي د دې د وجې تفصيل نشته چه ولې نقصان رسيږي خو د دې وجه داده چه که چرې دا څيزونه په مانځه کښې د بنده وړاندې تير شي نو د هغه توجه خرابيږي. او په ذهن کښې وسوسې رازي. حديث شريف کښې ښځې ئې د خر برابر ګرځولې نه دي بلکې مقصد ئې دا دې چه ښځې، سړي خپل ځان طرفته متوجه کوي. دا يو فطري حقيقت دې نو په دې وجه د ښځې د مونځ کونکي مخکښې راتللو سره د هغه مونځ ته نقصان رسوي. د مونځ د پاره ضرر دې د حديث شريف مبارک الفاظ دا دي چه د دې څيزونو وړاندې تيريدو سره مونځ ماتيږي. خو د مونځ ماتيدو حقيقي مطلب دا دې چه مونځ ته پوره نقصان رسيږي.

**باب ۳۳۲: قَدْرِ كَمْ يَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ بَيْنَ الْمُصَلِّيْ وَالسُّتْرَةِ.**

**باب ۳۳۲:** د مونځ ګزار او سُتره مينځ کښې څومره فاصله پکار ده.

۴۶۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ قَالَ نَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كَانَ بَيْنَ مُصَلّٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْجِدَارِ مَمَرُّ الشَّاةِ.

۴۶۹: عمرو بن زراره. عبدالعزيز بن ابي حازم. ابو حازم. سهل بن سعدؓ روايت کوي، چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ مونځ ځائے او ديوال مينځ کښې به دَ يوے چيلئے دَ وتلو په قدر فاصله وه.

۴۷۰: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ نَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ جِدَارُ الْمَسْجِدِ عِنْدَ الْمِنْبَرِ مَا كَادَتِ الشَّاةُ تَجُوْزُهَا.

۴۷۰: مکي بن ابراهيم. يزيد بن ابي عبيد. سلمه (ابن اکوع) روايت کوي، چه دَ جمات جانب ته دَ قبلے ديوال منبر سره وو. او دَ دواړو په مينځ کښې دومره فاصله وه، چه يوه چيلئے دَ هغے نه وتلے شوه.

۱. مسجد نبوي کښې په هغه وخت کښې محراب نه وو او نبي عليه الصلوٰة والسلام به د منبر ګس طرفته اودريدو او مونځ به ئے کولو د منبر او د ديوال فاصله دومره وه څومره چه د نبي عليه السلام او د ديوال مينځ کښې وه.

**باب ۳۳۳: الصَّلٰوةِ اِلَى الْحَرْبَةِ.**

**باب ۳۳۳:** وړے نيزے طرف ته د مخ کولو او مونځ کولو بيان

۴۷۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُرْكَزُ لَهُ الْحَرْبَةُ فَيُصَلِّيْ اِلَيْهَا.

۴۷۱: مسدد. يحيي. عبيداللّٰه. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم د پاره به وړه نيزه ښخولے شوه او حضورؐ به هغے ته مخ کړے مونځ کولو.

**باب ۳۳۴: الصَّلٰوةِ اِلَى الْعَنْزَةِ.**

**باب ۳۳۴:** سُنبه دارے نيزے طرف د مخ کولو او مونځ کولو بيان.

۴۷۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ نَا شُعْبَةُ قَالَ نَا عَوْنُ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ خَرَجَ اِلَيْنَا النَّبِيُّ بِالْهَاجِرَةِ

۴۷۲: آدم. شعبه. عون بن ابي حجيفهؓ روايت کوي، ما دَ پلار نه واوريدل، هغه ونيلے چه غرمه کښې حضورؐ مونږ خلقو بله تشريف راوړلو. اودس د پاره حضورؐ ته اُوبه راوړے

فَاُتِیَ بِوَضُوْءٍ فَتَوَضَّأَ فَصَلّٰی بِنَا الظُّھْرَ وَالْعَصْرَ وَ بَیْنَ یَدَیْهِ عَنَزَةٌ وَّالْمَرْأَةُ وَالْحِمَارُ یَمُرَّانِ مِنْ وَّرَآئِھَا.

شوے. حضورؐ اودس اوکړلو. او مونږ ته ئے ذ ماسپخین او مازیګر مونځ راکۀ. دغه وخت ذ حضورؐ مخکښ نیزه ښخه کړے شوه. ښځے اوخره (ګډے) به ذ هغے شاته تلل.

۴۷۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِیْعٍ قَالَ نَا شَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ اَبِیْ مَیْمُوْنَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا خَرَجَ لِحَاجَتِهٖ تَبِعْتُهُ اَنَا وَ غُلَامٌ وَّ مَعَنَا عُکَّازَةٌ اَوْ عَصًا اَوْ عَنَزَةٌ وَّ مَعَنَا اِدَاوَةٌ فَاِذَا فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهٖ نَاوَلْنَاهُ الْاِدَاوَةَ.

۴۷۳: محمد بن حاتم بن بزیع. شاذان. شعبه. عطاء بن ابي میمونه. انس بن مالکؓ روایت کوي، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم به کله د خپل حاجت رفع کولو ذ پاره بهرته وتلو، نو زۀ او یو هلک به حضورؐ پسے تلو. مونږ سره به یوه لخته یا همسایا وړه شان نیزه وه، او ذ اوبو یو لوښے به هم راسرے وو. کوم وخت چه به حضورؐ ذ خپل حاجت نه فارغ شو، نو مونږ به هغه (ذ اوبو) لوښے حضورؐ له ورکولو.

## باب ۳۳۵: السُّتْرَةِ بِمَکَّةَ وَ غَیْرِھَا.

## باب ۳۳۵: مکه او نورو مقاماتو کښ ذ سُترے بیان.

۱. امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا ښودل غواړي چه د "سُترے" په مسئله کښ مکه او نورو ځایونو کښ څه فرق نشته خو بیاهم په دے غور پکار دے چه خاص د بیت اللّٰه مخکښ که څوک مونځ ادا کوي. او طواف کونکے ترے مخکښ تیریږي راتیریږي ځکه چه د بیت اللّٰه طواف هم د مونځ په حکم کښ دے دا مسئله امام طحاوي رحمة اللّٰه علیه په خپل کتاب مشکل الاثار کښ ذکر کړیده (فیض الباري جلد دوم ص ۸۱)

۴۷۴: حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ نَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَکَمِ عَنْ اَبِیْ جُحَیْفَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَیْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِالْھَاجِرَةِ فَصَلّٰی بِالْبَطْحَآءِ الظُّھْرَ وَالْعَصْرَ رَکْعَتَیْنِ وَ نُصِبَ بَیْنَ یَدَیْهِ عَنَزَةٌ وَ تَوَضَّأَ فَجَعَلَ النَّاسُ یَتَمَسَّحُوْنَ بِوَضُوْءِهٖ.

۴۷۴: سلیمان بن حرب. شعبه. حکم ابو حجیفه روایت کوي، چه ذ غرمے وخت کښ حضورؐ مونږ پله تشریف راوړلو. بطحا (مکه) کښ حضورؐ ذ ماسپخین او مازیګر دوه دوه رکعاته اوکړل. او نیزه ذ حضورؐ مخے ته ښخه کړے شوے ده. حضورؐ اودس کړے وو. او خلقو ذ حضورؐ ذ اودس اُوبه (تبرکاً په خپلو مخونو) مږلے.

## بَابٌ ۳۳۶: الصَّلٰوةِ اِلَی

## باب ۳۳۶: ستن طرف ته ذ مخ کولو او مونځ کولو

الْاُسْطُوَانَةِ وَ قَالَ عُمَرُ الْمُصَلُّوْنَ اَحَقُّ بِالسَّوَارِيْ مِنَ الْمُتَحَدِّثِيْنَ اِلَيْهَا وَرَاٰى ابْنُ عُمَرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بَيْنَ اُسْطُوَانَتَيْنِ فَاَدْنَاهُ اِلٰى سَارِيَةٍ فَقَالَ صَلِّ اِلَيْهَا.

بيا ابن عمر فرمايلي دي چه لمونځ كونكي انسان ستنه ته د مونځ كونكو نه د الفضله دي چه د ستنې په پناه كښې مونځ اوكړي. ابن عمر يو سړي د دوو ستنو مينځ كښې مونځ كوونكے اوليدلو نو هغه يې يوې ستنې ته قريب كه او ورته فرمايل چه د دې پناه كښې مونځ كوه.

۴۷۵: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ نَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ كُنْتُ اٰتِيْ مَعَ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ فَيُصَلِّيْ عِنْدَ الْاُسْطُوَانَةِ الَّتِيْ عِنْدَ الْمُصْحَفِ فَقُلْتُ يَا اَبَا مُسْلِمٍ اَرَاكَ تَتَحَرَّى الصَّلٰوةَ عِنْدَ هٰذِهِ الْاُسْطُوَانَةِ قَالَ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَرَّى الصَّلٰوةَ عِنْدَهَا.

۴۷۵: مكي بن ابراهيم. يزيد بن ابي عبيد روايت كوي چه زه د سلمه بن اكوع سره مسجد نبوي ته راتلم. هغه به هغې ستنې سره مونځ كولو چه مصحف ته نزدې وه. ما ورته اووې. اې ابو مسلم زه ګورم چه ته دې ستنې سره د مونځ كولو كوشش كوې. نو هغه راته اووې. دا په دې چه ما نبي صلي الله عليه وسلم دې سره د مونځ كولو كوشش كښې ليدلے دے.

۴۷۶: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ قَالَ سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَقَدْ اَدْرَكْتُ كِبَارَ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْتَدِرُوْنَ السَّوَارِيَ عِنْدَ الْمَغْرِبِ وَ زَادَ شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَنَسٍ حَتّٰى يَخْرُجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۷۶: قبيصه. سفيان. عمرو بن عامر انس بن مالك روايت كوي چه ما د نبي صلي الله عليه وسلم لويو لويو صحابهٔ سره ملاقات كړے دے. هغوي به د ماښام وخت كښې ستنو طرف ته سبقت كولو چه د هغې په پناه كښې مونځ اوكړي. او شعبه د عمرو نه او هغه د انس نه دومره عبارت زيات روايت كړے دے. حتي چه نبي صلي الله عليه وسلم به بهر ته تشريف راوړلو.

۱. د ماښام د آذان او د مونځ تر مينځه دوه ركعته نفل مختصر مونځ د اسلام په اولنئ زمانه كښې حلفو ادا كول بيا دا كار پريخودے شو څكه چه په شريعت كښې د ماښام د آذان او د مونځ په مينځ كښې زيات پيوستوالے مطلوب دے. د شوافعو په نزد دا دوه ركعته مونځ مستحب دے او د احنافو او مالكيو په نزد صرف مباح دي.

## بَابٌ ۳۳۷: الصَّلٰوةِ بَيْنَ　　　باب ۳۳۷: كه يوازے وي نو د ستنو مينځ كښې

السَّوَارِيْ فِيْ غَيْرِ جَمَاعَةٍ.

ذ مونځ کولو بيان.

۴۷۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلُ قَالَ نَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ وَ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَّ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ وَ بِلَالٌ فَاَطَالَ ثُمَّ خَرَجَ وَ كُنْتُ اَوَّلَ النَّاسِ دَخَلَ عَلٰى اَثَرِهٖ فَسَاَلْتُ بِلَالًا اَيْنَ صَلّٰى فَقَالَ بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ الْمُقَدَّمَيْنِ.

۴۷۷: موسى بن اسمعيل. جويريه. نافع. ابن عمرؓ روايت کوي، چه نبي صلي اللّه عليه وسلم، اسامه بن زيد. عثمان بن طلحه او بلالؓ کعبې ته ورننوتل. بيا بهر راووتل. اوږه حضورؐ پسې د ټولونه مخکښې داخلشوم، نو ما ذ بلالؓ نه تپوس اوکه، چه حضورؐ کوم ځائې مونځ کړې دې. بلالؓ اووې، د مخکښنو دواړو ستنو په مينځ کښې.

۴۷۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ وَ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَّ بِلَالٌ وَّ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ فَاَغْلَقَهَا عَلَيْهِ وَ مَكَثَ فِيْهَا وَ سَاَلْتُ بِلَالًا حِيْنَ خَرَجَ مَا صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَعَلَ عَمُوْدًا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَ ثَلٰثَةَ اَعْمِدَةٍ وَّرَآءَهٗ وَ كَانَ الْبَيْتُ يَوْمَئِذٍ عَلٰى سِتَّةِ اَعْمِدَةٍ ثُمَّ صَلّٰى وَ قَالَ لَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ فَقَالَ عَمُوْدَيْنِ عَنْ يَّمِيْنِهٖ.

۴۷۸: عبداللّه بن يوسف. مالک بن انس نافع. عبداللّه بن عمرؓ روايت کوي، چه رسول اللّه صلې اللّه عليه وسلم، اسامه بن زيد، بلال او عثمان بن طلحه حجبي کعبه کښې داخل شو، نو عثمان کعبه کښې ذ ننوتلو نه ورستو دروازه بنده کړه. او هلته حصار وو چه حضورؐ بهرته راووتلو، نو ما د بلالؓ نه تپوس اوکه، چه نبي صلعم (کعبه کښې دننه) څه اوکړل. بلال اووې، چه حضورؐ يوه ستن خپل ښي طرف ته او درې ستنې ورستو کړې. هغه وخت کعبه کښې شپږ ستنې وې بيا حضورؐ مونځ اوکه. او مونږ ته اسماعيل وئيلې دي. چه ما ته امام مالک دا حديث بيان که، نو وې وئيل چه دوه ستنې ئې خپل ښي جانب ته کړې.

باب۳۳۸:

باب۳۳۸: (ذ دې باب عنوان نشته)

۴۷۹: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ نَا اَبُوْ ضَمْرَةَ قَالَ نَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ كَانَ

۴۷۹: ابراهيم بن منذر. ابوضمره. موسى بن عقبه. نافع روايت کوي، چه عبداللّه بن عمرؓ به کعبې ته تلو، نو ذ داخليدو په وخت به

اِذَا دَخَلَ الْكَعْبَةَ مَشٰى قِبَلَ وَجْهِهٖ حِيْنَ يَدْخُلُ وَ جَعَلَ الْبَابَ قِبَلَ ظَهْرِهٖ فَمَشٰى حَتّٰى يَكُوْنَ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْجِدَارِ الَّذِىْ قِبَلَ وَجْهِهٖ قَرِيْبًا مِّنْ ثَلٰثَةِ اَذْرُعٍ صَلّٰى يَتَوَخّٰى الْمَكَانَ الَّذِىْ اَخْبَرَهٗ بِهٖ بِلَالٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِيْهِ قَالَ وَ لَيْسَ عَلٰى اَحَدِنَا بَأْسٌ اِنْ صَلّٰى فِيْ اَيِّ نَوَاحِي الْبَيْتِ شَآءَ.

نیغ تلو. چه دننه به ورغے، دروازه به نے خپل شا طرف ته کړه، نو وړاندے به تلو، تردے چه د هغهٔ او د هغے دیوال په مینځ کښې چه د هغهٔ مخے ته به وو، ذ درے گزو فاصله پاتے کیده نو مونځ به نے کولو. هغه به هغے مقام کښې ذ مونځ کولو کوشش کولو، چه ذ هغے په حقله بلال هغهٔ له خبر ورکړے وو چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم دلته مونځ کړے وو. هغوئ به فرمائیل چه په بیت اللّٰه کښې مونږ کوم خانے غواړو مونځ کولے شو په دے کښې څه بدیَت نشته.

## باب ۳۳۹: اَلصَّلٰوةِ عَلَى الرَّاحِلَةِ وَالْبَعِيْرِ وَالشَّجَرِ وَالرَّحْلِ.

## باب ۳۳۹: اُوښه. اُوښ. اُونه او کجاوه ذ پناه جوړولو او مونځ کولو بیان.

۴۸۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ الْبَصْرِيُّ قَالَ نَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ كَانَ يُعَرِّضُ رَاحِلَتَهٗ فَيُصَلِّيْ اِلَيْهَا قُلْتُ اَفَرَاَيْتَ اِذَا هَبَّتِ الرِّكَابُ قَالَ كَانَ يَأْخُذُ الرَّحْلَ فَيُعَدِّلُهٗ فَيُصَلِّيْ اِلٰى اٰخِرَتِهٖ اَوْ قَالَ مُؤَخَّرِهٖ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهٗ.

۴۸۰: محمد بن ابي بکر مقدمي بصري. معتمر بن سلیمان. عبیدالله بن عمر. نافع. عمرؓ ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي چه حضورؐ به خپله سورلي په پرتو (عرضا) کینوله، او ذ هغے طرف ته به نے مخ کړے مونځ کولو (نافع رائي) ما اوے. آیا تاسو لیدلے دي چه سورلئ به روانے شوے (نو حضورؐ به څهٔ کول) وے وئیل چه حضورؐ به کجاوه واخسته. بیا به نے ذ هغے ورستنے حصے طرفو ته یا (دائے اووے چه) آخر طرف ته مونځ کولو. او ابن عمرؓ به هم دغسے فرمائیل.

## باب ۳۴۰: اَلصَّلٰوةِ اِلَى السَّرِيْرِ.

## باب ۳۴۰: تخت طرف ته ذ مخ کولو او مونځ کولو بیان.

۴۸۱: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ نَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ

۴۸۱: عثمان بن ابي شیبه. جریر. منصور. ابراهیم. اسود. بي بي عائشهؓ روایت کوي چه (یو خلے) هغے اووے چه تاسو مونږ ذ سپو او خرو برابر کړوو، ما

اَعْدَلْتُمُوْنَا بِالْكَلْبِ وَالْحِمَارِ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ مُضْطَجِعَةً عَلَى السَّرِيْرِ فَيَجِيْءُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَتَوَسَّطُ السَّرِيْرَ فَيُصَلِّيْ فَاَكْرَهُ اَنْ اَسْنَحَهُ اَنْسَلُّ مِنْ قِبَلِ رِجْلِ السَّرِيْرِ حَتّٰى اَنْسَلَّ مِنْ لِحَافِيْ.

خو دا ليدلے دي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم به تشريف راوړلو، نو ډ تخت په مينځ به او درېدلو. مونځ به ئے كولو، او په تخت به مخے ته زه ملاسته ووم، نو ماته به دا خبره بده ښكاريده، چه مونځ كښ دے ډ حضورؐ مخے ته يم، نو زه به ډ تخت ډ پښو طرف نه وتلمه او ډ خپلے برستنے نه به بهر كيدلمه.

۱. په عربستان كښ كټ (پالنگ) ډ قجورو ډ څانګو او رسئ نه جوړيدل. دے حديث شريف كښ دا بيان دے چه نبي عليه السلام به كټ ډ "سُتره" په طور كيخودلو او خمونږ مور بي بي عائشه رضي اللّٰه عنها به كټ كښ ملاسته وه او نبي عليه الصلاة والسلام ډ هغے په څملاستلو څه بدي نه ګڼړله امام بخاري رحمة اللّٰه عليه بل حديث كښ روايت كړيدے. چه څو بابه روستو رازي. په هغے حديث كښ دا حكم دے چه ښځه سپے يا خر كه ډ مونځ كونكي وړاندے تير شي نو ډ هغه مونځ ماتيږي دا ډ هغه ډ حديث مبارك ظاهري الفاظ دي. ډ دے حديث مبارك ډ ظاهري الفاظو نه چه كومه غلط فهمي پيدا شوے وه خمونږ مور بي بي هغے خلقوته چه كوم موجود وو ډ هغوي غلط فهمي لرے كړه.

**باب ۳۴۱: لِيَرُدَّ الْمُصَلِّيْ مَنْ مَّرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَ رَدَّ ابْنُ عُمَرَ فِي التَّشَهُّدِ وَ فِي الْكَعْبَةِ وَ قَالَ اِنْ اَبٰى اِلَّا اَنْ يُّقَاتِلَهُ قَاتَلَهُ.**

باب ۳۴۱: مونځ ګزارله پكار دي، چه څوك ئے مخے ته تيريږي، هغه دے منع كړي. او ابن عمرؓ ډ تشهد په حالت كښ، چه هغه كعبه كښ وو، يو سړے ډ مخے نه واپس كړ او وے وئيل، كه چرے هغه بغير جنګ نه نه مني. نو جنګ دے ورسره او كړي.

۱. ډ احنافو په نزد مسئله دا ده كه جهري مونځ كوي نو آواز دے تيز كړي. په ډ غه طريقه دے تيريدونكے منعه كړي او كه سري (په رو ډ قرآت ويلو) مونځ وي. نو پدے كښ ډ بزرګانو مختلف اقوال دي. غوره داده. چه يو آيت دے په زوره اولولي. چه تيريدونكے پوهه شي عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما چه كوم ډ تيريدونكي سره ډ جنګ كولو حكم كړيدے دے ته هغوي مبالغه واني. يعني ډ تيريدونكي سره ډ جنګ كولو اجازت نشته ليكن شوافع اجازت وركوي.

**۴۸۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ اَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ نَا يُوْنُسُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَ حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ نَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيْرَةِ قَالَ نَا حُمَيْدٌ**

۴۸۲: ابو معمر. عبدالوارث. يونس. حميد بن هلال. ابو صالح. ح. آدم بن ابي اياس. سليمان بن مغيره. حميد بن هلال عدوي. ابو صالح سمان روايت كوي چه ما ابو سعيد خدري ډ جمعے په ورځ اوليد، چه هغه يو څيز ته مخ كړے دے، مونځ كوي. نو يو ځلمي چه ډ قبيله بني ابي معيط نه وو، دا غوښتل، چه ډ هغه

بْنُ هِلَالٍ الْعَدَوِيُّ قَالَ نَا اَبُو صَالِحٍ السَّمَّانُ قَالَ رَاَيْتُ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ يُصَلِّيْ اِلٰى شَيْءٍ يَسْتُرُهٗ مِنَ النَّاسِ فَاَرَادَ شَابٌّ مِنْ بَنِيْ اَبِيْ مُعَيْطٍ اَنْ يَّجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَدَفَعَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فِيْ صَدْرِهٖ فَنَظَرَ الشَّابُّ فَلَمْ يَجِدْ مَسَاغًا اِلَّا بَيْنَ يَدَيْهِ فَعَادَ لِيَجْتَازَ فَدَفَعَهٗ اَبُوْ سَعِيْدٍ اَشَدَّ مِنَ الْاُوْلٰى فَنَالَ مِنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ ثُمَّ دَخَلَ عَلٰى مَرْوَانَ فَشَكَا اِلَيْهِ مَا لَقِيَ مِنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَدَخَلَ اَبُوْ سَعِيْدٍ خَلْفَهٗ عَلٰى مَرْوَانَ فَقَالَ مَالَكَ وَلِابْنِ اَخِيْكَ يَا اَبَا سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ اِلٰى شَيْءٍ يَسْتُرُهٗ مِنَ النَّاسِ فَاَرَادَ اَحَدٌ اَنْ يَّجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلْيَدْفَعْهُ فَاِنْ اَبٰى فَلْيُقَاتِلْهُ فَاِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ.

مخے ته تیرشي. نو ابو سعید هغهٔ له سینه کښې یوه دهکا ورکړه نو هغې خلمي بله لار بیانهٔ منده سواله دے نه چه د هغهٔ مخے ته تیر شي، نو هغهٔ او غوښتل چه اوځي. ابو سعید ورله د مخکښې نه زیاته سخته دهکا ورکړه. په دے خبره هغهٔ د ابو سعید بے حرمتي اوکړه. دے نه پس هغه مروان له ورغے او ابو سعید سره چه څهٔ معامله شوے وه د هغے ئے مروان ته شکایت اوکهٔ، او هغهٔ پسے ورستو ورستو ابو سعید هم مروان (حاکم وخت) له ورغے. نو مروان ورته اووے، چه اے ابو سعیده، ستا او ستا د دے ورارهٔ مینځ کښې څهٔ معامله ده. ابو سعید ورته اووے ما د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نه دا آوریدلے دي چه هر کله تاسو کښې څوک سړے یو داسے څیز طرف ته مونځ کوي، چه هغه د خلقو نه پناني کښې کړي. بیا څوک سړے د هغهٔ مخے ته تیریدل غواړي، نو هغه له پکار دي، چه هغه منع کړي، او که هغه اونهٔ مني، نو هغهٔ سره دے جنګ اوکړي ځکه چه هغه شیطان دے.

۱. مطلب ئے دادے که څوک د "ستره او د مونځ کونکي په مینځ کښې تیریږي. کښي د ستره نه مخکښې تیریږي نو په هغې کښې څه ګناه نشته ځکه چه ستره د دے د پاره وي چه په لاره تلونکو ته څه تکلیف اونشي د نبي علیه الصلاة والسلام دا فرمان که چرے تیریدونکے نه منعه کیږي نو ورسره دے جنګ اوکړے شي، د دے خبرے مقصد دادے چه دا کار دے بد او ګنړلے شي. باقي د مونځ په حالت کښې چاسره د جنګ کولو حکم نشته. د مونځ کونکي مخکښې تیریدونکي ته شیطان ځکه اوویلے شو چه دغه تیریدونکے د اللّٰه تعالی او د بنده په مینځ کښې بندیز (رکاوټ) جوړیږي. او دغه د شیطان کار دے.

## بَابٌ ۳۴۲: اِثْمُ الْمَارِّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ.

## باب ۳۴۲: د مونځ ګزار مخکښې د تیریدو د ګناه بیان.

۴۸۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۴۸۳: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابوالنضر (د

يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ اَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ اَرْسَلَهٗ اِلٰى اَبِي جُهَيْمٍ يَسْاَلُهٗ مَاذَا سَمِعَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَارِّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ فَقَالَ اَبُوْ جُهَيْمٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ اَنْ يَّقِفَ اَرْبَعِيْنَ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ اَنْ يَّمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ قَالَ اَبُو النَّضْرِ لَا اَدْرِيْ قَالَ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا اَوْ شَهْرًا اَوْ سَنَةً.

عمر بن عبدالله آزاد کرده غلام)۔ بسر بن سعید روایت کوي' چه زید بن خالد هغه ابو جهیم له اولیږه چه هغه ذ هغهٔ نه تپوس او کړي چه هغه ذ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه د مونځ ګزار مخکښ د تیریدونکي په باره کښ څهٔ آوریدلے دي۔نو' ابو جهیم ورته اووے رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلے دي' که ذ مونځ ګزار مخکښ تیریدونکے سړے په دے پوهیدے' چه هغه څومره ګناه کوي' نو ذ مونځ ګزار مخکښ د تیریدو په ځائے به ئے څلویښت کاله ' میاشتے یا ورځے او دریدل (انتظار کول) زیات خوښول ابو النضر (ذ حدیث راوي) وائي' زهٔ نهٔ پوهیږم چه څلویښت ورځے ئے اووے یا څلویښت میاشتے یا څلویښت کاله.

## باب ۳۴۳: اِسْتِقْبَالِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ وَهُوَ يُصَلِّيْ

وَكَرِهَ عُثْمَانُ اَنْ يُّسْتَقْبَلَ الرَّجُلُ وَهُوَ يُصَلِّيْ وَ هٰذَا اِذَا اشْتَغَلَ بِهٖ اَمَّا اِذَا لَمْ يَشْتَغِلْ بِهٖ فَقَدْ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ مَّا بَالَيْتُ اِنَّ الرَّجُلَ لَا يَقْطَعُ صَلٰوةَ الرَّجُلِ.

باب ۳۴۳: ذ مونځ کولو حالت کښ ذ یو سړي بل سړي ته ذ مخ کولو بیان. او حضرت عثمانؓ دا خبره مکروه ګڼړلے ده' چه ذ مونځ کولو حالت کښ دے څوک ذ چا مخے ته راشي او دا کراهت هغه وخت دے' چه مونځ ګزار هغهٔ پله مشغول شي' او که مشغول نشي' نو ذ زید بن ثابت قول دے' چه څما په دے څهٔ پرواه نشته' ځکه چه څوک ذ چا مونځ فاسد کولے نشي.

۴۸۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ قَالَ اَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهٗ ذُكِرَ عِنْدَهَا مَا يَقْطَعُ الصَّلٰوةَ فَقَالُوْا يَقْطَعُهَا الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْمَرْاَةُ فَقَالَتْ لَقَدْ جَعَلْتُمُوْنَا كِلَابًا لَقَدْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ اِنِّيْ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ

۴۸۴: اسمٰعیل بن خلیل. علي بن مسهر. اعمش. مسلم. مسروق. بي بي عائشهؓ روایت کوي' چه ذهغے مخکښ ذ هغے څیزونو ذکر اوشو' چه مونځ فاسد کوي' نو خلقو بیان اوکهٔ چه سپے' خر او ښځه مونځ فاسد کوي' نو بي بي عائشےؓ اووے' بیشکه تاسو خلقو مونږ نه سپي جوړ کړل' حالانکه ما رسول الله صلي الله علیه وسلم مونځ کولو باندے لیدلے

الْقِبْلَةِ وَ اَنَا مُضْطَجِعَةٌ عَلَى السَّرِيْرِ فَتَكُوْنَ لِيَ الْحَاجَةُ وَ اَكْرَهُ اَنْ اَسْتَقْبِلَهُ فَاَنْسَلُّ اِنْسِلَالًا وَّ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ.

دے، داسے حالت کښې چه زهٔ به دَ حضورؐ او قبلے په مینځ کښې په تخت ملاسته ووم. بیا به ما ته څهٔ ضرورت شو، نو دا خبره به ماته بده ښکاریده، چه دَ حضورؐ مخے ته تیره شم، نو زهٔ به غلے (رُو) شان اووتلم.

باب ۳۴۴: الصَّلٰوةِ خَلْفَ النَّائِمِ.

باب ۳۴۴: دَ اُودهٔ سړي شاته دَ مونځ کولو بیان.

۴۸۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا يَحْيٰى قَالَ نَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ اَنَا رَاقِدَةٌ مُعْتَرِضَةٌ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يُّوْتِرَ اَيْقَظَنِيْ فَاَوْتَرْتُ.

۴۸۵: مسدد. یحیي. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ روایت کوي، چه نبي صلے اللّٰه علیه وسلم به مونځ کولو، او زهٔ به دَ حضورؐ په فرش په پرتو (عرضًا) اُودهٔ ووم، بیا چه حضورؐ به غوښتل، چه وتر اوکړي، نو زهٔ به ئے ویښه کړم نو ما به هم وتر کول.

باب ۳۴۵: التَّطَوُّعِ خَلْفَ الْمَرْاَةِ.

باب ۳۴۵: چه ښځه مخے ته وي، نو دَ نفل مونځ کولو بیان.

۴۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ كُنْتُ اَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رِجْلَايَ فِيْ قِبْلَتِهٖ فَاِذَا سَجَدَ غَمَزَنِيْ فَقَبَضْتُ رِجْلَيَّ فَاِذَا قَامَ بَسَطْتُهُمَا قَالَتْ وَ الْبُيُوْتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيْهَا مَصَابِيْحُ.

۴۸۶: عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابوالنضر (دَ عمر بن عبیداللّٰه ازاد کرده غلام) ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشهؓ دَ نبي صلے اللّٰه علیه وسلم ښېر روایت کوي، چه زهٔ دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم مخکښې اُودهٔ وُوم، او خپا پښې به دَ حضورؐ قبلے طرف ته وے. کوم وخت چه به حضورؐ سجده کوله، زهٔ به ئے دباؤ کړم، نو ما به خپلے پښے راغونډے کړے. بیا چه حضورؐ به اودریدلو، نو ما به پښے اوغزولے. بي بي عائشهؓ فرمائي، هغه وخت په کوروںو کښې ډیوے نهٔ بلیدلے.

**باب ٣٤٦: مَنْ قَالَ لَا يَقْطَعُ الصَّلٰوةَ شَيْءٌ.**

**باب ٣٤٦: د هغه سړي دليل، چه وئيلي دي، چه هيڅ څيز مونځ نه ماتوي.**

٤٨٧: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ ثَنَا أَبِيْ قَالَ نَا الْأَعْمَشُ قَالَ نَا إِبْرَاهِيْمُ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ ح قَالَ الْأَعْمَشُ وَ حَدَّثَنِيْ مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ ذُكِرَ عِنْدَهَا مَا يَقْطَعُ الصَّلٰوةَ الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْمَرْأَةُ فَقَالَتْ شَبَّهْتُمُوْنَا بِالْحُمُرِ وَالْكِلَابِ وَاللّٰهِ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ إِنِّيْ عَلَى السَّرِيْرِ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ مُضْطَجِعَةً فَتَبْدُوْا لِيَ الْحَاجَةُ فَأَكْرَهُ أَنْ أَجْلِسَ فَأُوْذِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْسَلُّ مِنْ عِنْدِ رِجْلَيْهِ.

٤٨٧: عمرو بن حفص بن غياث. حفص بن غياث. اعمش. ابراهيم. اسود. بي بي عائشہؓ. ح (دويم سند) اعمش. مسلم. مسرق. بي بي عائشہؓ نه روايتکوي، چه د هغې مخکښې هغه څيزونه ذکر کړے شو. کوم چه مونځ ماتوي يعني د سپو او خرونو او ښځو ذکر اوشو، نو بي بي عائشہؓ اوويے، چه تاسو خلقو مونږ د سپو او خرونو برابرے کړو. واللّٰه ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلم په مونځ کولو ليدلے دے. داسے حال کښې چه زۀ به په تخت د حضورؐ او قبلے مينځ کښې ملاسته ووم. بيا به ماته څۀ ضرورت پيښ شو، نو ما به دا خبره بده ګڼړله، چه پاسم کينم او نبي صلے اللّٰه عليه وسلم له تکليف ورکړم. نو زۀ به د حضورؐ د پښو خوا کښې اووتلم.

١. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د هغه حديث شريف جواب، کوي چه هغے کښې دا حکم دے چه "سپي، خره او ښځه که د مونځ کونکي وړاندے تير شي د هغه مونځ ماتيږي". دغه هم صحيح حديث شريف دے ددے مقصد دا دے چه ددوي مخکښې تيريدو سره د مونځ په خشوع خضوع (خاص توجه) کښې فرق رازي. دائے مطلب نه دے. چه ګنے ددوي مخکښې تيريدو سره مونځ ماتيږي. بعضے خلقو د حديث شريف په ښکاره الفاظو حکم لګولے وۀ ددے وجے څمونږ مور بي بي حضرت عائشه رضي اللّٰه عنها د هغے ترديد اوکړو بله دا چه ددغه حديث شريف نه دا شک هم پيدا کيدو چه د يو بنده مونځ د بل بنده په عمل هم ماتيږي د دے وجے نه امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا سرليک کيخود چه هيڅ څيز مونځ نه ماتوي د بل چا عمل ئے هم نه ماتوي که د چا مخکښې څۀ تير شي هم ئے مونځ نه ماتيږي.

٤٨٨: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ أَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ نَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ أَنَّهُ سَأَلَ

٤٨٨: اسحٰق بن ابراهيم. يعقوب بن ابراهيم د ابن شهاب وراره (محمد بن عبداللّٰه) د خپل تره (ابن شهاب) نه د مونځ متعلق تپوس اوکۀ چه هغه په کوم څيز

عَمَّهُ عَنِ الصَّلٰوةِ يَقْطَعُهَا شَيْءٌ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَقَدْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْمُ فَيُصَلِّيْ مِنَ الَّيْلِ وَ إِنِّيْ لَمُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ عَلٰى فِرَاشِ أَهْلِهِ.

ماتيږي، نو هغهٔ ورته اوويے، چه هغه هيڅ څيز نهٔ شي ماتولے. ماته عروه بن زبير بيان اوکهٔ، چه بي بي عائشے ؓ د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم تېر او فرمائيل، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم به د شپے اودريدلو، مونځ به ئے کولو، او زهٔ به د حضورؐ او قبلے مينځ کښ د حضورؐ د کور په فرش په پرتو (عرضًا) ملاسته ووم.

باب۳۴۷: إِذَا حَمَلَ جَارِيَةً صَغِيْرَةً عَلٰى عُنُقِهِ فِي الصَّلٰوةِ.

باب۳۴۷: د مونځ حالت کښ د ماشومے جينئ په خپل ګردن د اوچتولو بيان.

۴۸۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَنَا مَالِكٌ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَمْرِو بْنِ الزُّرَقِيِّ عَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيْ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ وَهُوَ حَامِلٌ أُمَامَةَ بِنْتَ زَيْنَبَ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِأَبِي الْعَاصِ بْنِ رَبِيْعَةَ بْنِ عَبْدِ شَمْسٍ فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَهَا وَ إِذَا قَامَ حَمَلَهَا.

۴۸۹: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. عامر بن عبداللّٰه بن زبير. عمرو بن سليم زُرَقي. ابو قتاده انصاريؓ روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم مونځ کولو، او حضورؐ به دغه حالت کښ د زينب بنت رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او د ابو العاص بن ربيعه بن عبدالشمس لور امامهؓ اوچتوله. کله چه به ئے سجده کوله، نو هغه به ئے کوزوله، او چه حضورؐ به اودريدلو، نو هغه (امامهؓ) به ئے اوچتوله.

۱. امامه بنت زينب رضي اللّٰه عنهما پخپله د نبي عليه الصلاة والسلام په اوږه مبارکه ختله (سوريدله) او چه کله به نبي عليه الصلاة والسلام سجدے ته تللو نو نبي عليه الصلاة والسلام به ورته اشاره اوکړه هغه ډيره هوښياره وه هغه ساعت به کوزيدله د راوي عبارت دا دے چه نبي عليه السلام به مونځ کو... او نبي عليه السلام به امامه رضي اللّٰه عنها په غيږ کښ اوچته کړے وه دا لږ کار دے او په دے مونځ نه ماتيږي. د نبي عليه الصلاة والسلام دا عمل هم د اُمّت د تعليم د پاره وو. د عمل په ذريعه د يو خبرے تعليم فطري طور باندے په آسانه کيږي. څرنګ چه اولاد (بچي) د ژوند طور طريقے د مور پلار د عمل په ذريعه زده کوي. امتيان هم د خپل نبي عليه السلام په عمل سره د دين طور طريقے زده ک...

باب۳۴۸: إِذَا صَلّٰى إِلٰى

باب۳۴۸: داسے فرش ت... مخ کو...

فِرَاشٍ فِيهِ حَائِضٌ.

کولو بيان چه هلته حائضه ښځه ملاسته وي.

۴۹۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ قَالَ نَا هُشَيْمٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ قَالَ اَخْبَرَتْنِيْ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ قَالَتْ كَانَ فِرَاشِيْ حِيَالَ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُبَّمَا وَقَعَ ثَوْبُهُ عَلَيَّ وَ اَنَا عَلٰى فِرَاشِيْ.

۴۹۰: عمرو بن زراره. هشيم. شيباني. عبداللّٰه بن شداد بن هاد. بي بي ميمونهؓ بنت حارث روايت کوي، چه خما فرش به دَ رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم دَ مصلي برابرو. اکثر به دَ حضورؐ کپړه (دَ مونځ کولو په وخت) په ما لږيده، او زۀ به په خپل فرش ووم.

۴۹۱: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ نَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ قَالَ نَا الشَّيْبَانِيُّ سُلَيْمَانُ قَالَ نَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ قَالَ سَمِعْتُ مَيْمُوْنَةَ تَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ اَنَا فِيْ جَنْبِهِ نَائِمَةٌ فَاِذَا سَجَدَ اَصَابَنِيْ ثَوْبُهُ وَ اَنَا حَائِضٌ.

۴۹۱: ابو النعمان. عبدالواحد بن زياد. شيباني. سليمان. عبداللّٰه بن شداد بن هاد. بي بي ميمونهؓ روايت کوي، چه نبي صلى اللّٰه عليه وسلم به مونځ کولو، زه به دَ حضورؐ برابر اُودۀ کيدم. کوم وخت چه به حضورؐ سجده کوله، نو دَ حضورؐ کپړه به په ما لګيدله. حالانکه زۀ به حائضه ووم.

۳۴۹: هَلْ يَغْمِزُ الرَّجُلُ امْرَاَتَهُ عِنْدَ السُّجُوْدِ لِكَيْ يَسْجُدَ.

۳۴۹: آيا دا جائز دي، چه سړے خپله ښځه دَ سجدے په وخت اوسکونډي، چه سجده او کړي.

۴۹۲: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ نَا يَحْيٰى قَالَ نَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ نَا الْقَاسِمُ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ بِئْسَمَا عَدَلْتُمُوْنَا بِالْكَلْبِ وَالْحِمَارِ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَ اَنَا مُضْطَجِعَةٌ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَّسْجُدَ غَمَزَ رِجْلَيَّ فَقَبَضْتُهُمَا.

۴۹۲: عمرو بن علي. يحيٰي. عبيداللّٰه. قاسم. بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه تاسو دا بد اوکړل، چه مونږ مو دَ سپو او خرونو سره برابر کړوو. ما اوليدل چه رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم به مونځ کولو، او زۀ به دَ حضورؐ او قبلے په مينځ کښې ملاسته ووم. کوم وخت چه حضورؐ به سجده کول غوښتل، خما ښپې به ئې اوسکونډے نو ما به هغه راغونډے کړے.

**باب ٣٥٠: اَلْمَرْأَةُ تَطْرَحُ عَنِ الْمُصَلِّیْ شَیْئًا مِّنَ الْاَذٰی.**

**٤٩٣:** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اِسْحَاقَ...... السُّورمَارِي قَالَ نَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰی قَالَ نَا اِسْرَآءِيْلُ عَنْ اَبِیْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ يُّصَلِّیْ عِنْدَ الْكَعْبَةِ وَ جَمْعُ قُرَيْشٍ فِیْ مَجَالِسِهِمْ اِذَا قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ اَلَا تَنْظُرُوْنَ اِلٰی هٰذَا الْمُرَآئِیْ اَيُّكُمْ يَقُوْمُ اِلٰی جَزُوْرِ اٰلِ فُلَانٍ فَيَعْمِدُ اِلٰی فَرْثِهَا وَ دَمِهَا وَ سَلَاهَا فَيَجِیْٓءُ بِهٖ ثُمَّ يُمْهِلُهٗ حَتّٰی اِذَا سَجَدَ وَضَعَهٗ بَيْنَ كَتِفَيْهِ فَانْبَعَثَ اَشْقَاهُمْ فَلَمَّا سَجَدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَهٗ بَيْنَ كَتِفَيْهِ وَ ثَبَتَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدًا فَضَحِكُوْا حَتّٰی مَالَ بَعْضُهُمْ عَلٰی بَعْضٍ مِّنَ الضِّحْكِ فَانْطَلَقَ مُنْطَلِقٌ اِلٰی فَاطِمَةَ وَهِیَ جُوَيْرِيَةٌ فَاَقْبَلَتْ تَسْعٰی وَ ثَبَتَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدًا حَتّٰی اَلْقَتْهُ عَنْهُ وَ اَقْبَلَتْ عَلَيْهِمْ فَلَمَّا قَضٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلٰوةَ قَالَ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ

**باب ٣٥٠: دَ دې امر بيان چه ښځه دَ مونځ گزار دَ جسم نه پليتي لرې کړي.**

**٤٩٣:** احمد بن اسحاق سرماري. عبيدالله بن موسیٰ. اسرائيل. ابواسحاق. عمرو بن ميمون. عبدالله (بن مسعودؓ) روايت کوي، چه يو ځلې رسول الله صلی الله عليه وسلم کعبې سره ولاړ وو، مونځ ئې کولو، دَ قريشو جماعت خپلو مجلسونو کښې لګيا وو، ناست وو، هغوي کښې چا اووې، چه تاسو دې رياکار ته نهٔ ګورئې، تاسو کښې داسې څوک شته، چه دَ فلانې قبيلې دَ (ذبح شوې) اوښ خائې ته لاړ شي، او دَ هغهٔ پچې، وينه اولړې کولمې راوړي. بيا انتظار اوکړي، چه کوم وخت دا سړې (محمدؐ) سجدې ته لاړ شي، نو هغه (گند بلا) دَهغهٔ دَ دواړو اوږو په مينځ کښې کيږدي. نو هغوي کښې يو لوئې بدبخت (عقبه) را پاسيد، هغه لړې کولمې يعني پيتهه ئې راوړله او کوم وخت چه رسول الله صلی الله عليه وسلم په سجده پريوت، نو هغهٔ دَ حضورؐ دَ دواړو اوږو په مينځ کښې هغه پيتهه کيښوده. په دې وجه حضورؐ سجده کښې پاتې شو (يعني پاسيدې نهٔ شو) نو هغوي خندا شروع کړه، تر دې چه هغوي دَ ډيرې خندا نه په يو بل پريوتل. دې کښې يو تلونکې فاطمېؓ له ورغې. هغه وخت هغه ماشومه بچۍ وه، هغه په منډه منډه راغله، او نبي صلی الله عليه وسلم سجده کښې وو، حتي چه فاطمېؓ هغه (پيتهه) دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ جسم مبارک نه لرې کړه، او هغې قريشو ته ئې بد، رد، وئيل شروع کړل. کوم وخت چه رسول الله صلی الله عليه وسلم مونځ پوره کړ، نو وې

اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ ثُمَّ سَمّٰى اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِعَمْرِو بْنِ هِشَامٍ وَّ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَ شَيْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَ اُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَّ عُقْبَةَ بْنِ اَبِىْ مُعِيْطٍ وَّ عُمَارَةَ بْنِ الْوَلِيْدِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَوَاللّٰهِ لَقَدْ رَاَيْتُهُمْ صَرْعٰى يَوْمَ بَدْرٍ ثُمَّ سُحِبُوْآ اِلَى الْقَلِيْبِ قَلِيْبِ بَدْرٍ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُتْبِعَ اَصْحَابُ الْقَلِيْبِ لَعْنَةً.

فرمائيل' يا اللّٰه' قريش هلاک کړے درے خله ئے او فرمائيل. بيائے دَ هر يو نوم اخستل شروع کړل' چه اے اللّٰه' عمرو بن هشام. عتبه بن ربيعه. وليد بن عتبه. اُميه بن خلف عقبه بن ابي معيط او عماره بن وليد هلاک کړے. عبدالله بن مسعودؓ وائي چه ما دغه (آزار وهلي) خلق دَ بده ورځ په زمکه غرځيدلے اوليدل. بيا هغوي په راکښلو راکښلو دَ بدر کوهي کښې او غرځولے شو. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم دَ هغوي په حق کښې او فرمائيل چه په دے کوهي والو لعنت کړے شوے دے.

الحمدللّٰه والشکر للّٰه

دوئمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۳

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دار العلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-24

# تاج البخاري پاره ۳ دمضامينو فهرست

فهرست پاره سوم ختم شد

# دريمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## كِتَابُ مَوَاقِيۡتِ الصَّلٰوةِ

بَاب ۳۵۱: مَوَاقِيۡتِ الصَّلٰوةِ وَ فَضۡلِهَا وَ قَوۡلِهٖ تَعَالٰى اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتۡ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ كِتٰبًا مَّوۡقُوۡتًا وَّقَّتَهٗ عَلَيۡهِمۡ.

حديث ۴۹۴: حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مَسۡلَمَةَ قَالَ قَرَاۡتُ عَلٰى مَالِكٍ عَنِ ابۡنِ شِهَابٍ اَنَّ عُمَرَ بۡنَ عَبۡدِ الۡعَزِيۡزِ اَخَّرَ الصَّلٰوةَ يَوۡمًا فَدَخَلَ عَلَيۡهِ عُرۡوَةُ بۡنُ الزُّبَيۡرِ فَاَخۡبَرَهٗ اَنَّ الۡمُغِيۡرَةَ بۡنَ شُعۡبَةَ اَخَّرَ الصَّلٰوةَ يَوۡمًا وَّهُوَ بِالۡعِرَاقِ فَدَخَلَ عَلَيۡهِ اَبُوۡ مَسۡعُوۡدِ الۡاَنۡصَارِيُّ فَقَالَ مَا هٰذَا يَا مُغِيۡرَةُ اَلَيۡسَ قَدۡ عَلِمۡتَ اَنَّ جِبۡرِيۡلَ عَلَيۡهِ السَّلَامُ نَزَلَ فَصَلّٰى فَصَلّٰى رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَلّٰى فَصَلّٰى رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَلّٰى فَصَلّٰى رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَلّٰى فَصَلّٰى رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ بِهٰذَا اُمِرۡتُ فَقَالَ عُمَرُ لِعُرۡوَةَ اِعۡلَمۡ مَّا تُحَدِّثُ بِهٖ اَوَ اِنَّ جِبۡرِيۡلَ هُوَ

## (دمونځ دَ وختونو بيان)

باب ۳۵۱: دَ مونځ وختونه او دَ هغې دَ فضيلت بيان. او دَ الله تعالى قول: اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتۡ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ كِتٰبًا مَّوۡقُوۡتًا (بيشکه په مسلمانانو په وخت وخت مونځ فرض شوے دے) يعني خدائے پاک د هغې وختونه مقرر کړي دي.

۴۹۴: عبدالله بن مسلمه. مالک بن شهاب روايت کوي، چه عمر بن عبدالعزيز يو ورځے مونځ تا خير سره او کړ، نو عروه بن زبير ورله راغے او هغهٔ ته ئے بيان او کړ، چه مغيره بن شعبه يوه ورځ چه هغه په عراق کښې وو، ناوخته ئے مونځ او کړ، نو ابو مسعود انصاري ورله راغے، او ورته ئے اوونيل: اے مغيره، داڅهٔ خبره کوے آيا تا ته معلومه نهٔ ده، چه جبرائيلؑ راغے او هغهٔ مونځ او کړ، نو رسول الله صلے الله عليه وسلم مونځ وکړ. بيا هغهٔ مونځ او کړ، نو رسول الله صلے الله عليه وسلم هم مونځ او کړ. بيا هغهٔ مونځ او کړ، نو رسول الله صلے الله عليه وسلم هم مونځ او کړ، بيا هغهٔ مونځ او کړ نو رسول صلي الله عليه وسلم هم مونځ او کړ. بيا هغهٔ مونځ او کړ، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هم مونځ او کړ. بيا جبرائيل عليه السّلام اووے، چه ما ته دغسے حکم شوے دے، نو عمر بن عبدالعزيز، عروه ته اووے، ته پوهه شه، چه څهٔ بيان کوے. آيا جبرائيلؑ دَ رسول الله

اَقَامَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقْتَ الصَّلٰوةِ قَالَ عُرْوَةُ كَذٰلِكَ كَانَ بَشِيْرُ بْنُ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عُرْوَةُ وَلَقَدْ حَدَّثَتْنِيْ عَائِشَةُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ فِيْ حُجْرَتِهَا قَبْلَ اَنْ تَظْهَرَ.

صلى اللّٰه عليه وسلم ذَ مونځ وختونه مقرر كړي وو. عروه اووې، چه بشير بن ابي مسعود، ذَ خپل پلار نه دغسې حديث بيانولو. عروه اووې، ما ته بي بي عائشې اووې، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به ذَ ما زيګر مونځ داسې حالت كښې كولو، چه نمر به ذَ بي بي عائشې په حجرې وو، پخوا ذَ دې نه چه ښكاره شي.

۱. هر كله چه د معراج په شپه پنځه مونځونه فرض شو نو د هغې د وختونو د تعليم او د طريقو ښودلو د پاره حضرت جبرائيل عليه السلام رااوليګلې شو د امام شافعي رحمة اللّٰه عليه روايت دې. چه حضرت جبرائيل عليه السلام مقام ابراهيمؑ سره نبي عليه الصلاة والسلام سره راغې او په مسجد حرام كښې دغه خائې د جمعې مونځ ادا كړو. حضرت جبرائيل عليه السلام امام وو او نبي عليه الصلاة والسلام ئې مقتدي وؤ. دواړو مونځ ادا كړو. د بخاري شريف نه علاوه نورو د احاديثو كتابونو كښې تفصيل موجود دې چه حضرت جبرائيل عليه السلام د هر وخت دوه دوه مونځونه په امامتئ سره ادا كړي وؤ. هغې سره د وخت اندازه كول ښودل وؤ. د اولې ورځ پنځه مونځونه په اولني وخت كښې د دويمې ورځې پنځه مونځونه په آخري وخت كښې ادا كړي وو. مقصد داوو چه د اولني او آخري وخت مينځ كښې د مونځ اصلي وخت دې. دې روايت كښې دي چه عمر بن عبدالعزيز رحمه اللّٰه تعالي، عروه بن الزبير رضي اللّٰه عنهما ته ويلې وؤ. "ته پوهيږې څرنګ بيان كوې. د عملي لمونځ ضرورت څه وؤ دا خو په وينا سره د وخت معلوميدل هم آسان وؤ ښا عمر بن عبدالعزيز رحمة اللّٰه عليه دا ويلې وؤ. آيا جبريل عليه السلام د مونځ امام وو؟ عمر بن عبدالعزيز رحمة اللّٰه عليه ته په دې حقله كوم حديث شريف معلوم نه وو او كله چه عمر بن عبدالعزيز رحمة اللّٰه عليه د عروه بن الزبير رضي اللّٰه عنهما حديث واوريدو نو په سوچ كښې پريوتو، حضرت عروه رضي اللّٰه عنهما ورته د حديث شريف سند بيان كړو. چه د خليقه پوره تسلي اوشي ذَ مونځ تعليم د وينا په خائې په عمل ځكه اوكړې شو چه په وينا سره پوره پوره د وخت اندازه نه معلوميږي هم دا وجه ده چه په احاديثو مباركو كښې د صحابؤ رضي اللّٰه عنهم بيان مختلف وي. نو له دې وجې د مونځ د تعليم عملي ضرورت وؤ.

باب ۳۵۲: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ وَ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ.

باب ۳۵۲: ذَ اللّٰه تعالي قول، چه خدائې پله رجوع كوئ او ذَ هغهٔ نه ويره كوئ، او مونځ كوئ او ذَ مشركانو نه مهٔ كيږئ.

۴۹۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ نَا عَبَّادُ وَ هُوَ ابْنُ عَبَّادٍ عَنْ اَبِيْ

۴۹۵: دقتيبه بن سعيد. عباد بن عباد. ابو جمره. ابن عباسؓ روايت كروي، چه ذَ عبدالقيس وفد ذَ حضور

جَمْرَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اِنَّا هٰذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيْعَةَ وَلَسْنَا نَصِلُ اِلَيْكَ اِلَّا فِيْ الشَّهْرِ الْحَرَامِ فَمُرْنَا بِشَيْءٍ نَأْخُذُهُ عَنْكَ وَ نَدْعُوْا اِلَيْهِ مَنْ وَّرَآءَ نَا فَقَالَ اٰمُرُكُمْ بِاَرْبَعٍ وَّ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَلْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ ثُمَّ فَسَّرَهَا لَهُمْ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءُ الزَّكٰوةِ وَ اَنْ تُؤَدُّوْا اِلَيَّ خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَ اَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّآءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُقَيَّرِ وَالنَّقِيْرِ.

صلي الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو. هغې خلقو اووے، چه مونږ ذَ قبيلهٔ ربيعه يو شاخ يو او مونږ تاسو سره صرف ذَ حرام په مياشت کښې يو ځائے کيدے شو، لو مونږ ته داسے خبره او ښائے، چه په هغې مونږ عمل اوکړو، او خپلو ورستو خلقو ته ذَ هغې دعوت ورکړو. حضورٌ ورته او فرمائيل ...... زهٔ تاسو ته ذَ څلورو خبرو حکم در کوم او ذَ څلورو خبرو نه مو منع کوم. الله تعالي باندے ايمان راوړل او ذَ هغې تفسير ئے بيان کهٔ، ذَ دے خبرے شهادت کول چه ذَ الله نه سوا بل معبود نشته، او داچه زهٔ ذَ الله رسول يم. او مونځ کول او زکٰوة ورکول او ذَ مالِ غنيمت پنځمه حصه ورکول او زهٔ تاسو ذَ دُبّاء حنتم، مقيرِ او ذَ نقير ذَ استعمال نه منع کوم[1].

ف: ذَ کدو او قجورے تنه به ئے خالي کړه او ذَ شراب لوشي په کار به ئے راوسته. او ذَ دے ذَ استعمال نه په دے وجه ممانعت اوکړے شو، چه ذَدے حرمت زړونو کښې پوخ شي. دباء. حنتم. مقير او نقير ذَ دے ذَلو بنونو مونه وو.

۱. دا د عبدالقيس قبيلے وفد دوه ځله د نبي عليه الصلاة والسلام په خدمت کښې حاضر شوے وو اول: په شپږم هجري کال کښې دويم ځل د فتح مکے په وخت. د دے لوښو د استعمال نه خلق ځکه منعه کړے شو. چه عربو به په دے کښې شراب جوړول عرب، د جاهليت په زمانه کښې په شرابو ډير مين وو د دے وجے نه چه کله شراب حرام شو نو د شرابو د لوښو د استعمال نه هم خلق منعه کړے شو. چه د شرابو خيال د هغوي د زړه نه لرے شي د دغے لوښو شرابو به ډير زر نشه راوستله، بيا روستو د دے لوښو د استعمال اجازت اوشو.

## باب ۳۵۳: اَلْبَيْعَةِ عَلٰى اِقَامِ الصَّلٰوةِ.

## باب ۳۵۳: په مونځ کولو ذَ بيعت اخستو بيان.

۴۹۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ ثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ ثَنَا قَيْسٌ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى

۴۹۶: محمد بن مثنٰي، يحيٰي، اسمٰعيل قيس، جرير بن عبدالله روايت کوي، چه ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه ذَ مونځ کولو، زکٰوة ورکولو! او هر مسلمان

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

سره د خیر خواهئ کولو بیعت کړے وو.

## باب ۳۵۴: الصَّلٰوةُ كَفَّارَةٌ.

## باب ۳۵۴: مونځ د ګناهونو کفاره ده.

۴۹۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ قَالَ سَمِعْتُ حُذَيْفَةَ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ اَيُّكُمْ يَحْفَظُ قَوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّكُمْ يَحْفَظُ قَوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْفِتْنَةِ قُلْتُ اَنَا كَمَا قَالَهُ قَالَ اِنَّكَ عَلَيْهِ اَوْ عَلَيْهَا لَجَرِيْءٌ قُلْتُ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِيْ اَهْلِهِ وَمَالِهِ وَوَلَدِهِ وَجَارِهِ تُكَفِّرُهَا الصَّلٰوةُ وَالصَّوْمُ وَالصَّدَقَةُ وَالْاَمْرُ وَالنَّهْيُ قَالَ لَيْسَ هٰذَا اُرِيْدُ وَلٰكِنِ الْفِتْنَةُ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَا يَمُوْجُ الْبَحْرُ قَالَ لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْهَا بَأْسٌ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ بَيْنَكَ وَبَيْنَهَا لَبَابًا مُغْلَقًا قَالَ اَيُكْسَرُ اَمْ يُفْتَحُ قَالَ يُكْسَرُ قَالَ اِذًا لَا يُغْلَقُ اَبَدًا قُلْنَا اَكَانَ عُمَرُ يَعْلَمُ الْبَابَ قَالَ نَعَمْ كَمَا اَنَّ دُوْنَ الْغَدِ اللَّيْلَةَ اِنِّيْ حَدَّثْتُهُ بِحَدِيْثٍ لَيْسَ بِالْاَغَالِيْطِ فَهِبْنَا اَنْ نَسْاَلَ حُذَيْفَةَ فَاَمَرْنَا مَسْرُوْقًا فَسَاَلَهُ

۴۹۷: مسدد' یحیي' اعمش' شقیق' حذیفهؓ روایت کوي' چه مونږ عمرؓ سره ناست وو. هغهٔ او فرمائیل' د فتنے باره کښې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم حدیث تاسو کښې چا ته یاد دے' ما ورته اووے' ما ته (بالکل) داسے یاد دے' څنګه چه حضورؐ فرمائیلے دے. عمرؓ اووے' چه تا نه د دے جرأت اُمید بیشکه کیدے شتي. ما ورته اووے' چه د سړي هغه فتنه! چه د هغهٔ بي بي او د هغهٔ مال او آولاد کښې وي' هغه مونځ' روژه صدقه او امر بالمعروف او نهي عن المنکر سره لرے کیږي. عمرؓ اووے' زهٔ دا تپوس نه کوم' بلکه هغه فتنه چه دَ دریاب په شان به جوش کښې راځي. حذیفهؓ اووے. اے امیر المؤمنین' دَ هغے فتنے نه تاسو ته هیڅ ویره نشته ځکه چه ستاسو او دَ هغے مینځ کښې بند دروازه ده. عمرؓ اووے' خه نو' هغه دروازه به ماته کړے شي یا به پرانستے شي. حذیفهؓ اووے' ماته به کړے شي' عمرؓ اوے نو بیا به هیچرے بنده نشي. مونږ خلقو (حذیفهؓ ته) اووے. آیا عمرؓ دروازه پیژندله هغهٔ اووے. او. (داسے ئے پیژندله) څنګه چه تا سو د صبانه پس شپه پیژنئے ږ) ما هغهٔ ته هغه حدیث بیان کړه' چه غلط نه وو (د دروازے متعلق) مونږ خلقو ته د حضرت حذیفهؓ نه دریافت کولو کښې ویره معلوم شوه لیکن مسروق اووے. چه هغهٔ د حذیفهؓ نه تپوس او کړه' (چه دروازے نه مراد څوک وو) حذیفهؓ او وے' چه

فَقَالَ الْبَابُ عُمَرُ. دروازه عمرؓ وو.

۱. په قرآن مجید کښې راغلي دي اِنَّمَا اَمْوَالُکُمْ وَ اَوْلَادُکُمْ فِتْنَةٌ بے شکه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد د ازمیخت سبب دي. مطلب ئے دا دے چه بنده ددوي په وجه پریشان او بے قابو کیږي او بیا د دین د احکامو د حدودو پرواه نه کوي. که یو بنده ددین اسلام په واقعي ډول پابند وي. او بیا ترے ددین په احکامو کښې د مال اولاد د پریشانۍ په وجه څه غلطي اوشي نو بیا د مونځ روژے او د نورو روزانه عباداتو په وجه دغه غلطي او ګناهونه معاف کیږي په اصل کښې مونځ روژه او نور عبادات، خو عبادتونه دي لیکن دا د ګناهونو کفاره هم کیږي.

۲. حضرت حذیفه رضي الله عنه ته د فتنو په حقله د نورو صحابهٔ کرامو په نسبت زیات احادیث معلوم وو هغه د رسول الله صلي الله علیه وسلم د راز ملګرے وو حضرت عمر رضي الله عنه به د هغه نه اکثر د فتنو په حقله د احادیثو پښتنے کولے دے حدیث شریف کښې چه د کومے فتنے ذکر دے دا هغه فتنه ده چه د حضرت عمر رضي الله عنه د وفات نه روستو د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کښې شروع شوے وه. رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلے وو. چه دروازه به ماتولے شي. یعني چه کله یو خل فتنے شروع شي بیا به هغه فتنے بندیدے نشي په امت کښې به اختلافات شروع شي نوے نوے فتنے به رازي.

۴۹۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُبْنُ زُرَيْعٍ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ رَجُلًا اَصَابَ مِنِ امْرَاَةٍ قُبْلَةً فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ فَقَالَ الرَّجُلُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَلِيْ هٰذَا قَالَ لِجَمِيْعِ اُمَّتِيْ كُلِّهِمْ.

۴۹۸: قتیبه، یزید بن زیع، سلیمان تیمي، ابو عثمان نهدي، ابو مسعودؓ روایت کوي چه یو سړي د یوے اجنبي ښځے نه کوکئے (بوسه) واخسته دے نه پس هغه نبي صلي الله علیه وسلم ته حاضر شو. او حضورؐ ته ئے دغه بیان اوکه، نو الله تعالي دا فرمان نازل کړ: اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَ زُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ (مونځ د ورځے دواړو طرفونو کښې او څه د شپے کوه، بلکه نیکي لرې بدي خوري) نو هغے سړي اووے یا رسول الله آیا دا فرمان خاص خما د پاره دے حضورؐ ورته او فرمائیل خما د ټول امت د پاره دے.

## باب ۳۵۵: فَضْلِ الصَّلٰوةِ لِوَقْتِهَا.

باب ۳۵۵: د مونځ په خپل وخت د کولو د فضیلت بیان.

۴۹۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ

۴۹۹: ابو الولید، هشام بن عبدالملک شعبه، ولید بن عیرار، ابو عمرو شیباني د عبدالله بن مسعودؓ

الْوَلِيْدُ بْنُ الْعَيْزَارِ اَخْبَرَنِيْ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا عَمْرٍو الشَّيْبَانِيَّ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا صَاحِبُ هٰذِهِ الدَّارِ وَاَشَارَ اِلٰى دَارِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْعَمَلِ اَحَبُّ اِلَى اللّٰهِ قَالَ الصَّلٰوةُ عَلٰى وَقْتِهَا قَالَ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ بِرُّ الْوَالِدَيْنِ قَالَ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ بِهِنَّ وَلَوِ اسْتَزَدْتُهٗ لَزَادَنِيْ.

كور طرف ته اشاره اوكړه' او وې وئيل چه مونږ ته دَ دې كور مالک بيان او كړ' چه ما دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړ' دَ اللّٰه په نزد كوم عمل زيات محبوب دې' حضورؐ او فرمائيل' په خپل وخت مونځ كول. ابن مسعودؓ اووې دَ دې نه پس كوم عمل. حضورؐ او فرمائيل' دې نه پس دَ مور پلار تابعداري كول. ابن مسعودؓ اووې' دې نه پس كوم عمل. حضورؐا و فرمائيل (دې نه پس) دَ الله په لار كښې جهاد كول. ابن مسعودؓ وائي' كه ما دَدې نه زيات تپوس دَ حضورؐ نه كړې وې نو (اُميد دې) چه زياته بنود نه به ئې راته كړې وه.

## بـاب ٣٥٦: الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ كَفَّارَةٌ لِّلْخَطَايَا اِذَا صَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ فِي الْجَمَاعَةِ وَغَيْرِهَا.

## باب ٣٥٦: هر كله چه څوک پنځه مونځونه په خپل وخت جماعت سره يا خان له او كړي نو دا دَ هغهٔ دَ گناهونو كفاره شي.

٥٠٠: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ وَّالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَّزِيْدَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ مُّحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَرَءَ يْتُمْ لَوْاَنَّ نَهْرًا بِبَابِ اَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ فِيْهِ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسًا مَّا تَقُوْلُ ذٰلِكَ يُبْقِيْ مِنْ دَرَنِهٖ قَالُوْا لَايُبْقِيْ مِنْ دَرَنِهٖ شَيْئًا قَالَ فَذٰلِكَ مِثْلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ يَمْحُو اللّٰهُ بِهَا الْخَطَايَا.

٥٠٠: ابراهيم بن حمزه' ابن ابي حازم او دراوري يزيد بن عبداللّٰه محمد بن ابراهيم' ابو سلمه بن عبدالرحمن' حضرت ابو هريرهؓ روايت كوي' چه هغه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلي دي كه دَ چا په دروازه نهر جاري وي' او هغه په هغې كښې روزانه پنځه ځله لامبي' نو تاسو څهٔ وائې' چه دا لامبل به دَ هغهٔ خيرې (مَيل) باقي پريږدي' صحابهؓ عرض اوكړ" چه نه' دَ هغهٔ په جسم به خيرې بالكل پاتې نشي. نو حضورؐ او فرمائيل' چه دَ پنځو مانځونو هم دغه مثال دې. اللّٰه تعالي دَ دې په ذريعه گناهونه رژوي.

## بـاب ٣٥٧: فِيْ تَضْيِيْعِ

## بـاب ٣٥٧: دَ بې وخته مونځ كولو

الصَّلٰوةِ عَنْ وَقْتِهَا.

بيان.

٥٠١: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ عَنْ غَيْلَانَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَآ اَعْرِفُ شَيْئًا مِّمَّا كَانَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ الصَّلٰوةُ قَالَ اَلَيْسَ صَنَعْتُمْ مَّا صَنَعْتُمْ فِيْهَا.

٥٠١: موسى بن اسماعيل، مهدي، غيلان، حضرت انسؓ روايت كوي چه كومے خبرے دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښې وے. هغے كښې زهٔ اوس يوه خبره هم نهٔ بيا مومم. چا اووے چه مونځ خو اوسه پورے باقي دے حضرت انسؓ ورته اووے، چه (دا خو ستاسو خيال دے) مونځ كښې تاسو څهٔ كړي دي، هغه تاسو ته معلوم نهٔ دي (چه تاسو څه اوكړل).

٥٠٢: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ وَاصِلٍ اَبُوْ عُبَيْدَةَ الْحَدَّادُ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ اَبِيْ رَوَّادٍ اَخِيْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يَقُوْلُ دَخَلْتُ عَلٰى اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِدَمِشْقَ وَهُوَ يَبْكِيْ فَقُلْتُ مَا يُبْكِيْكَ فَقَالَ لَآ اَعْرِفُ شَيْئًا مِّمَّا اَدْرَكْتُ اِلَّا هٰذِهِ الصَّلٰوةَ وَهٰذِهِ الصَّلٰوةُ قَدْ ضُيِّعَتْ وَقَالَ بَكْرُ بْنُ خَلَفٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ بَكْرِ الْبُرْسَانِيُّ قَالَ اَخْبَرَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ رَوَّادٍ نَحْوَهٗ.

٥٠٢: عمرو بن زراره. عبدالواحد بن واصل ابو عبيده حداد، دَ عبدالعزيز ورور عثمان بن ابي روافه زهري روايت كوي، چه زهٔ د مشق كښې انس بن مالك له ورغلم، هغهٔ ژړل، ما ترے تپوس اكهٔ (خير خو دے) ولے ژاړے، نو هغهٔ او فرمائيل، چه كومے خبرے ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښې ليدلے دي اوس په هغے كښې يوه خبره هم نهٔ وينم. صرف يو مونځ دے .(خو كه او كتلے شي) نو هغه هم ضائع كيږي. او بكر بن خلف اووے، چه ما ته محمد بن بكر برساني اووے چه ماته عثمان بن ابي رواد دغسے بيانؒ اوكهٔ.

١. حضرت انس رضي الله عنه دا خكه فرمايلي وو چه مونځ د خپل وخت نه روستو شوے وو. او د وخت د تيريدونه پس ادا شوے وو امام زهري رحمة الله عليه دا حديث د حضرت انس رضي الله عنه نه په دمشق كښې اوريدلے وو حضرت انس رضي الله عنه دمشق ته د خليفه وليد بن عبدالملك ملاقات له تشريف وړے وؤ. او هغه د حجاز د امير، حجاج بن يوسف خلاف شكايت كولو د پاره تلے وو خكه چه حجاج به مونځ د خپل وخت نه روستو كولو حجاج په خپله په جومات كښې امام هم وو خكه چه د حجاز امير وو. او مونځ ئے ناوخته كړے وؤ. حضرت انس رضي الله عنه دا خوښه كړه چه اودريږي او د حجاج په دے عمل هغه ته سختے خبرے اوكړي ليكن خپلو ملګرو منعه كړو. او كله چه د جماعت نه بهر راغلے نو

اونیے فرمایل "اوس د رسول الله صلي الله عليه وسلم د زمانے هیڅ یو څیز سیوا د کلمے طیبے نه په خپل اصلي حالت باقي پاتے نه شو". د هغه پدے وینا چا اویل "مونځ خو کیږي"؟ حضرت انس رضي الله عنه او فرمایل "تاسو د ماسپخین مونځ د ماښام په وخت ادا کوئي آیا دا د رسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ وو؟ امام بخاري رحمة الله عليه د دے تفصیلي روایاتو په رڼړا کښې د باب سر ټیک مقرر کړے دے.

## باب ۳۵۸: اَلْمُصَلِّيْ يُنَاجِيْ رَبَّهٗ.

## باب ۳۵۸: مونځ گزار خپل پروردګار سره سرګوشي (غوږ کښې خبرے) کوي.

۵۰۳: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا صَلّٰى يُنَاجِيْ رَبَّهٗ فَلَا يَبْزُقَنَّ عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى.

۵۰۳: موسى مسلم بن ابراهيم، هشام، قتاده، حضرت انسؓ روايت کوي" نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائیل کله چه تاسو کښې څوک مونځ کوي، نو هغه وخت هغه خپل پروردګار سره مناجات کوي. نو هغه له پکار دي، چه خپل ښي طرف ته نهٔ توکي، بلکه ذ خپلے ګسے پښے ذ لاندے دے توکي.

۵۰۴: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اعْتَدِلُوْا فِي السُّجُوْدِ وَلَايَبْسُطْ اَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ كَالْكَلْبِ وَاِذَا بَزَقَ فَلَا يَبْزُقَنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَمِيْنِهٖ فَاِنَّهٗ يُنَاجِيْ رَبَّهٗ وَقَالَ سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ لَايَتْفُلُ قُدَّامَهٗ اَوْبَيْنَ يَدَيْهِ وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْتَحْتَ قَدَمِهٖ وَقَالَ......شُعْبَةُ لَا يَبْزُقُ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهٖ اَوْتَحْتَ قَدَمِهٖ وَقَالَ حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبْزُقُ فِي الْقِبْلَةِ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ

۵۰۴: حفص بن عمر، یزید بن ابراهیم، قتاده، حضرت انسؓ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضورؐ او فرمائیل، سجده کښې اعتدال کوئ او تاسو کښې دے هیڅوک خپل لاسونه د سپي په شان نهٔ غزوي او کم وخت چه توکي، نو نهٔ دے خپلے مخے ته توکي او نه خپل ښي اړخ ته، ځکه چه هغه خپل پروردګار سره مناجات کوي. او سعید ذ قتاده نه روايت کړے دے، چه خپلے مخے ته دے نهٔ توکي بلکه خپل ګس طرف ته ذ پښے لاندے دے توکي، او شعبه وئیلے دي، چه نهٔ دے خپلے مخے ته توکي او نهٔ ښي اړخ ته بلکه ګس اړخ ته یا ذ پښے لاندے دے توکي. او حمید د انس نه او هغهٔ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے، چه قبلے آړخ ته دے نهٔ توکي، او نه خپل ښي آړخ ته، بلکه خپل ګس آړخ ته یا د قدم لاندے

وَلٰكِنْ عَنْ يَّسَارِهٖٓ اَوْ تَحْتَ قَدَمِهٖ.

دے تو كي.

## بَاب ۳۵۹: اَلْاِبْرَادِ بِالظُّهْرِفِيْ شِدَّةِ الْحَرِّ.

## باب ۳۵۹: سخته گرمئ كښې ذَ ماسپخين مونځ يخ وخت كښې ذَ كولو بيان.

۵۰۵: حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْبَكْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ حَدَّثَنَا الْاَعْرَجُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَغَيْرُهٗ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَنَافِعٌ مَّوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُمَا حَدَّثَا عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَاَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَاِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ.

۵۰۵: ايوب بن سليمان، ابو بكر، سليمان، صالح بن كيسان، عبدالرحمن وغيره، ذَ ابو هريرةؓ نه او ذَ عبداللّٰه بن عمرؓ آزاد كرده غلام نافع ذَ عبداللّٰه بن عمرؓ نه او دواړو (ابو هريرةؓ او ابن عمرؓ) ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كړے دے، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، هر كله چه گرمي زياته شي، نو مونځ يخ وخت كښې كوئ، په دے وجه چه ذَ گرمئ تيزي ذَ جهنم ذَ جوش نه كيږي[۱].

۱. كله چه د جهنم اور تيزه ولے شي نو د هغے گرمئ اثر دنيا ته رارسي. د حديث مبارك د ظاهر الفاظو هم دا مطلب دے او دا هم ويلے شي چه د غرمے د گرمئ تشبيه د جهنم د اور سره وركړے شوے ده. چه دغه وخت كښې گرمي زياته وي. لكه چه د جهنَم بړاس دے د دينه معلوميږي چه د گرمئ په موسم كښې د ماسپخين مونځ لګ روستو پكار دے.

۵۰۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُهَاجِرِ اَبِي الْحَسَنِ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ اَذَّنَ مُؤَذِّنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فَقَالَ اَبْرِدْ اَبْرِدْ اَوْ قَالَ انْتَظِرْ وَ قَالَ شِدَّةُ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَاَبْرِدُوْا عَنِ الصَّلٰوةِ حَتّٰى رَاَيْنَا فَيْءَ التُّلُوْلِ.

۵۰۶: محمد بن بشار، غندر، شعبه، مهاجرا ابو الحسن، زيد بن وهب، ابو ذر روايت كوي چه (يو ځلے گرمي كښې) ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مؤذن (بلالؓ) ذَ ماسپخين آذان كول غوښتل، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، صبر او كه چه لږه يخني شي لږه يخني شي. يا دائے او فرمائيل، ايسار شه، ايسار شه، چه ذَ گرمئ تيزي ذَ جهنم ذَ جوش نه كيږي، نو كله چه سخته گرمي شي، مونځ يخ وخت كښې كوئ (بيا دومره تاخير او كړے شو) چه مونږه دغونډو سوري اوليدل.

۵۰۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْمَدِيْنِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَاَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَاِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ وَاشْتَكَتِ النَّارُ اِلٰى رَبِّهَا فَقَالَتْ يَارَبِّ اَكَلَ بَعْضِيْ بَعْضًا فَاَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ نَفَسٍ فِي الشِّتَآءِ وَنَفَسٍ فِي الصَّيْفِ وَهُوَ اَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الْحَرِّ وَهُوَ اَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الزَّمْهَرِيْرِ.

۵۰۷: علي بن عبداللّٰه مديني' سفيان' زهري' سعيد بن مسيب' ابو هريرةؓ ذَ نبي صلى اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي' حضورﷺ او فرمائيل' هر كله چه كرمي زياته شي' نو مونځ يخ وخت كښې كوئ' په دې چه ذَ كرمي زياتې ذَ جهنم ذَ جوش نه كيږي' او اُور خپل پروردګار ته شكايت (عرض نې) اوكړ' چه اے خما پروردګاره. خما يو بے حصے بله حصه او خوړله. نو اللّٰه ورله دوه ځله ذَ ساه اخستو اجازت وركړ. يوه ساه په يخني كښې آخلي. او دغه سخته كرمي ده' چه هغه تاسو محسوسوئ او سخته يخني ده' چه تاسو ته معلوميږي.

۵۰۸: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْصَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْرِدُوْا بِالظُّهْرِ فَاِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ تَابَعَهُ سُفْيٰنُ وَيَحْيٰى وَاَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ.

۵۰۸: عمرو بن حفص' اعمش ابو صالح' ابو سعيدؓ روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' ذَ ماسپخين مونځ يخ وخت كښې كوئ' په دې چه ذَ كرمئ سختي ذَ جهنم ذَ جوش نه راځي.

## باب ۳۶۰: اَلْاِبْرَادِ بِالظُّهْرِ فِي السَّفَرِ.

## باب ۳۶۰: سفر كښې ذَ ماسپخين مونځ يخ وخت كښې ذَ كولو بيان.

۵۰۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مُهَاجِرُ اَبُو الْحَسَنِ بَنِيْ تَيْمِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ عَنْ اَبِيْ ذَرِّ الْغِفَارِيِّ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَاَرَادَ الْمُؤَذِّنُ اَنْ

۵۰۹: شعبه' مهاجرا ابوالحسن' (ذَ بني تيم اللّٰه آزاد كرده غلام) زيد بن وهب' ابو ذر غفاريؓ روايت كوي' چه مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره يو سفر كښې وو. مؤذن غوښتل' چه ذَ ماسپخين آذان او كړي. خو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل لږ صبر او كه

يُؤَذِّنَ لِلظُّهْرِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْرِدُهُمْ اَرَادَ اَنْ يُؤَذِّنَ فَقَالَ لَهُ اَبْرِدُ حَتّٰى رَاَيْنَا فَيْءَ التُّلُوْلِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَاَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَتَفَيَّؤُ يَتَمَيَّلُ.

چه يخني شي. تر دې چه مونږ ته د غنډو سورې په نظر راغي. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه د گرمي تيزي د جهنم د جوش نه راځي، نو کله چه سخته گرمي شي، د ماسپخين مونځ يخ وخت کښې کوئ، او ابن عباسؓ د يَتَفَيَّأُ تفسير يَتَمَيَّلُ بيان که يعني لړې شي.

## باب ۳۶۱: وَقْتِ الظُّهْرِ عِنْدَ الزَّوَالِ وَ قَالَ جَابِرٌ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِالْهَاجِرَةِ.

باب ۳۶۱: د ماسپخين وخت د زوال وخت دې. د جابر بيان دې چه نبي صلي الله عليه وسلم به تيک د زوال په وخت مونځ کولو.

۵۱۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ حِيْنَ زَاغَتِ الشَّمْسُ فَصَلَّى الظُّهْرَ فَقَامَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَذَكَرَ السَّاعَةَ وَذَكَرَ اَنَّ فِيْهَا اُمُوْرًا عِظَامًا ثُمَّ قَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّسْئَلَ عَنْ شَيْءٍ فَلْيَسْئَلْ فَلَا تَسْاَلُوْنِيْ عَنْ شَيْءٍ اِلَّا اَخْبَرْتُكُمْ مَّا دُمْتُ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا فَاَكْثَرَ النَّاسُ فِي الْبُكَاءِ وَاَكْثَرَ اَنْ يَّقُوْلَ سَلُوْنِيْ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُذَافَةَ السَّهْمِيُّ فَقَالَ مَنْ اَبِيْ قَالَ اَبُوْكَ حُذَافَةُ ثُمَّ اَكْثَرَ اَنْ يَّقُوْلَ سَلُوْنِيْ فَبَرَكَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَّ

۵۱۰: ابو اليمان، شعيب، زهري، انس بن مالكؓ روايت كوي چه (يوه ورځې) چه زوال او شو، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم بهر تشريف راوړلو. او د ماسپخين مونځ ئې اوكړلو. بيا حضورؐ منبر ته تشريف راوړلو، او د قيامت ذكر ئې شروع كه. وې فرمائيل، دې كښې به لوئې لوئې حادثات وي. دې نه پس حضورؐ او فرمائيل، كوم سړې چه څۀ تپوس كول غواړي نو تپوس دې اوكړي، څو پورې چه زۀ په دې خپل مقام كښې يم. خوك چه ما نه څۀ تپوس كول غواړي، زۀ به ئې ورته بنائيم، نو خلقو كثرت سره ژړا شروع كړه، او حضورؐ دا قول كثرت سره اووې، چه "سلوني" بيا عبدالله بن حذافه سهمي او دريد، او تپوس ئې اوكۀ، چه څما پلار څوك دې. حضورؐ ورته او فرمائيل، ستا پلار حذافه دې حضورؐ په بيا بيا دا فرمائيل شروع كړل چه "سلوني" بيا حضرت عمرؓ په ګنډو كيناست او عرض ئې اوكۀ، مونږ د الله نه راضي يو، چه څمونږ پروردګار دې، او د اسلام نه چه څمونږ دين دې، او د محمد صلي الله عليه وسلم نه چه څمونږ نبي دې، دې وخت كښې حضورؐ خاموش شو. دې نه پس ئې او فرمائيل،

بِالْإِسْلَامِ دِيْنًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا فَسَكَتَ ثُمَّ قَالَ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ انِفًا فِيْ عُرْضِ هٰذَا الْحَائِطِ فَلَمْ اَرَ كَالْخَيْرِ وَالشَّرِّ.

چه جنت او دوزخ خما مخکښې اوس ۵ دے دیوال کُټ کښې پیش کړے شو داسے بنکلے څیز (لکه چه جنت دے) او داسے بد څیز (لکه چه دوزخ دے)هیڅ کله خما په لیدو کښې نه وو راغلے.

۵۱۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالِ عَنْ اَبِيْ بَرْزَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الصُّبْحَ وَاَحَدُنَا يَعْرِفُ جَلِيْسَهُ وَيَقْرَاُ فِيْهَا مَابَيْنَ السِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ وَيُصَلِّي الظُّهْرَ اِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَالْعَصْرَ وَاَحَدُنَا يَذْهَبُ اِلٰى اَقْصَى الْمَدِيْنَةِ رَجَعَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَّنَسِيْتُ مَاقَالَ فِي الْمَغْرِبِ وَلَا يُبَالِيْ بِتَاخِيْرِ الْعِشَآءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ ثُمَّ قَالَ اِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ وَقَالَ مُعَاذٌ قَالَ شُعْبَةُ ثُمَّ لَقِيْتُهُ مَرَّةً فَقَالَ اَوْثُلُثِ اللَّيْلِ.

۵۱۱: حفص بن عمر، شعبه، ابو المنهال او برزه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم به ۵ سحر مونځ داسے وخت کښې کولو چه مونږ کښې به هر یو خان سره ناست سړے پیژندلو. هغے کښې به ئے ۵ شپیتو او سلو آیتونو تر مینځه قرأت کولو ۵ ماسپخین مونځ به حضورؐ ۵ زوال نه پس کولو، او ۵ مازیګر مونځ داسے وخت کښې چه مونږ کښې څوک ۵ مدینے آخري غاړے ته لاړ شي او بیا واپس راشي، او نمر به لا ډوب شوے نه وي (ابو منهال وائي) او ۵ ماښام ۵ مونځ باره کښې څه چه ابو هریرهؓ وئیلي وو، هغه ما نه هیر شولو، او ۵ ماسختن ۵ مونځ تاخیر کښې ۵ شپے ۵ دریمے حصے پورے به حضورؐ څۀ پروا نۀ کوله، ۵ هغے نه پس ابو هریرهؓ او وے، چه نیمے شپے پورے او معاذ وائي چه شعبه بیان او کۀ چه دے نه پس یو ځلے ما ابو منهال سره ملاقات او کۀ، نو هغۀ او وے یا ۵ شپے دریمے حصے پورے.

۵۱۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ غَالِبُ نِ الْقَطَّانُ عَنْ بَكْرِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُزَنِيِّ عَنِ الْقَطَّانُ عَنْ بَكْرِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُزَنِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا اِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالظَّهَائِرِ فَسَجَدْنَا عَلٰى ثِيَابِنَا اِتِّقَاءَ الْحَرِّ

۵۱۲: محمد بن ماتل، عبداللّٰه، خالد بن عبدالرحمن، غالب قطان، بکر بن عبداللّٰه مزني، انس بن مالکؓ روایت کوي چه مونږ به رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم پسے ۵ ماسپخین مونځ کولو، نو ۵ ګرمئ ۵ تکلیف نه بچ کیدو ۵ پاره به مو اکثر په کپړو سجده کوله.

ف: تیرو حدیثونو کښې ۵ګرمئ ۵ زیاتوالي په موقعه یخ وخت کښې ۵ مونځ کولو حکم شوے دے، او دے حدیث کښې په ظاهره تضاد په نظر راځي. لیکن خمونږ ۵ نظر مخکښې دے ۵ احادیثو موقعه، محل یا ماحول

نشته، دے نه تشویش پیدا کیږي. خو کیدے شي چه ابتداء کښ ذ حضورؐ دغه عمل وو، چه زوال کیدو سره ئے مونځ ادا کولو. لیکن څۀ موده پس چه حضورؐ ته ذ صحابهؓ ؤ ذ تکلیف احساس شوے وي، نو حکم ئے ورکړے وي، چه ذ ماسپخین مونځ یخ وخت کښ کوئ، په دے شان دا حدیث وړاندے بڼو او اولنے روستے شو او قابل عمل حدیث روستے وي. ذ حنفیه دا مسلک دے او احادیث اول قول دے او ثاني عمل دے قولي حدیث ذ عملي نه عمل کولو کښ وړاندے دے.

۱. ښکاره د حدیث شریف نه دا معلومیږي چه کومے جامے (کپړے) اغوستے وے په هغے ئے سجده کوله ذ امام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد په کپړا (په جامو) سجده کول روا دي. که بنده اغوستے وي او که ئے خوره کړے وي. یا یوه حصه ئے وړاندے کړي. یائے په مزکه اچولے وي. د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په زمانه کښ به کپړے د مانخه د پاره په مزکه اچولے نشوے. د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په هغه کپړا سجده کولے شي چه اغوستلے ئے نه وي او په مزکه خوره کړے شوي وي. هغه د حدیث شریف دا مطلب اخلي او دا مطلب د حدیث شریف نه هم اغستلے شي.

## بَاب ۳۶۲: تَاخِيْرِ الظُّهْرِ اِلَى الْعَصْرِ.

باب ۳۶۲: ذ ماسپخین مونځ ذ مازیګر د وخته پورے ذ ورستو کولو بیان.

۵۱۳: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرِبْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِالْمَدِيْنَةِ سَبْعًاوَّ ثَمَانِيًا الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَآءَ فَقَالَ اَيُّوْبُ لَعَلَّهٗ فِيْ لَيْلَةٍ مَطِيْرَةٍ قَالَ عَسٰى.

۵۱۳: ابو النعمان، حماد بن یزد، عمرو بن دینار، جابر بن زید، ابن عباسؓ روایت کوي، چه نبي صلي الله علیه وسلم مدینه کښ ذ ماسپخین او مازیګر اته رکعاته او ذ ماښام او ماسختن اوه رکعاته (یو ځائے) اوکړل، نو ایوب (جابر ته) او وے چه شاید دا ذ باران په شپه شوے وي. نو جابر اووے، چه شاید۱.

۱. د مسلم شریف په روایت کښ دي چه حضرت سعید رضي الله عنه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه پوښتنه اوکړه چه نبي علیه الصلاة والسلام د ماسپخین مونځ روستو کړے وو او داسے د ماښام مونځ هم دومره روستو کړے وؤ. عبدالله بن عباس رضي الله عنهما جواب ورکړو. چه نبي علیه الصلاة والسلام دا غوښتل چه امّت په تنګسیا کښ اخته نشي ددے نه زیات وضاحت بل حدیث شریف کښ دے چه ددے حدیث شریف راوي جابر بن زید ابوالشعثاء رضي الله عنه نه روایت دے چه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما خاص شاګرد دے. ددے جابر رضي الله عنه نه تپوس اوشو "داسے کیدے شي چه غالباً نبي علیه الصلاة والسلام د ماسپخین مونځ په آخري وخت کښ او د مازیګر مونځ په اول کښ ادا کړے وي او داسے د ماښام مونځ په آخري وخت کښ او د ماسختن مونځ په اول وخت کښ ادا کړي وي" پدے باندے ابوالشعثاء رضي الله عنه او فرمایل "چه خما هم دا خیال دے" د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه په نسائي شریف کښ هم داسے روایت دے او دے ټولو روایاتو نه دا معلومیږي چه نبي علیه

الصلاة والسلام چه کله دوه مونخه په يو وخت کښ ادا کړي دي د هغې عبارت داسې دے: عَجَّلَ الْعِشَاءَ وَ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَ أَخَّرَ الظُّهْرَ وَ عَجَّلَ الْعَصْرَ د ماسختن مونځ ئے زر کړو او ماښام ئے روستو کړو د ماسپخين مونځ ئے روستو کړو او مازيګر ئے زر کړو. د فقهاؤ په اصطلاح کښ ديته "جَمْعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ" ويلے شي (دوه مونځه جمع کول په يو وخت ادا کول) د دے جمعے دا مطلب نه دے چه د ماسپخين مونځ ئے د مازيګر په وخت ادا کړل. يائے د ماښام مونځ ذ ماسختن په وخت او کړو. لکه څرنګ چه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په روايت کښ وضاحت سره شته چه د ماسپخين مونځ ئے په آخري وخت کښ او د مازيګر په اولکښ او د ماښام په آخر وخت کښ او ذ ماسختن په اول وخت کښ ادا کړل. د دے مقصد دا وو چه اُمت ته معلومه شي چه د عذر په وخت داسے مونځ کولو کښ ګناه نشته د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه هم دا مذهب دے دا د غور خبره ده. چه داسے واقعه چرے نه ده راغلے چه مونځ ئے د خپل وخت نه وړاندے ادا کړے وي.

باب ۳۶۳: وَقْتِ الْعَصْرِ.

باب ۳۶۳: ذ مازيګر ذ وخت بيان.

۵۱۴: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ ثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ فِيْ حُجْرَتِهَا لَمْ تَخْرُجْ مِنْ حُجْرَتِهَا.

۵۱۴: ابراهيم بن منذر، انس بن عياض، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم به ذ مازيګر مونځ داسے وخت کښ کولو، چه نمر به ذ هغوي ذ حجرے نه لا بهر شوے نه وو.

۵۱۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ صَلَّى الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ فِيْ حُجْرَتِهَا لَمْ يَظْهَرِ الْفَيْءُ مِنْ حُجْرَتِهَا.

۵۱۵: قتيبه، ليث ابن شهاب، عروه بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ مازيګر مونځ داسے وخت کښ او کهٔ، چه نمر به لا ذ حضورؐ په حجرے کښ وو، او سورے به ذ هغوي ذ حجرے نه اوچت وو.

۵۱۶: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ صَلٰوةَ الْعَصْرِ وَالشَّمْسُ طَالِعَةٌ فِيْ حُجْرَتِيْ وَلَمْ يَظْهَرِ الْفَيْءُ بَعْدُ قَالَ أَبُو

۵۱۶: ابو نعيم، ابن عيينه، زهري، عروه، بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم به ذ مازيګر مونځ داسے وخت کښ کولو، چه نمر به خما حجره (کوټه) کښ لګيدلو، او لا سورے به اوچت شوے نهٔ وو. امام بخاريؒ اووے، چه مالک او يحيي بن

عَبْدِ اللّٰهِ وَقَالَ مَالِكٌ وَّيَحْيَ بْنُ سَعِيْدٍ وَّ شُعَيْبٌ وَّابْنُ اَبِيْ حَفْصَةَ وَالشَّمْسُ قَبْلَ اَنْ تَظْهَرَ.

سعید شعیب او ابن ابي حفصه په دے الفاظو روایت کړے دے. والشمس قبل ان تظهر پخوا ددے نه چه نمر ښکاره شي.

۵۱۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا عَوْفٌ عَنْ سَيَّارِ بْنِ سَلَامَةَ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَاَبِيْ عَلٰى اَبِيْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ فَقَالَ لَهٗ اَبِيْ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ الْمَكْتُوْبَةَ فَقَالَ كَانَ يُصَلِّي الْهَجِيْرَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْاُوْلٰى حِيْنَ تَدْحَضُ الشَّمْسُ وَيُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَرْجِعُ اَحَدُنَا اِلٰى رَحْلِهٖ فِيْ اَقْصَى الْمَدِيْنَةِ والشَّمْسُ حَيَّةٌ وَّ نَسِيْتُ مَا قَالَ فِي الْمَغْرِبِ وَكَانَ يَسْتَحِبُّ اَنْ يُّؤَخِّرَ مِنَ الْعِشَآءِ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْعَتَمَةَ وَكَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيْثَ بَعْدَهَا وَكَانَ يَنْفَتِلُ مِنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ حِيْنَ يَعْرِفُ الرَّجُلُ جَلِيْسَه وَيَقْرَأُ بِالسِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ.

۵۱۷: محمد بن مقاتل، عبدالله عوف، سیار بن سلامه روایت کوي، چه زهٔ او خما پلار ابو برزه اسلمي له ورغلو، هغهٔ ته خما پلار اووے، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به فرض نمونځ څنګه کولو، هغهٔ اووے، هجیر (یعني ماسپخین) چه هغے ته تاسو اولٰي وائے[1] به ئے هغه وخت کولو، چه نمر به په زوال شو، او دَ مازیګر مونځ به ئے داسے وخت کښ کولو، چه دَ هغے نه پس به مونږ څوک خپل اقامت ګاه ته چه دَ مدینے په غاړه به وو، رسیدے شو. او نمر به تیز وو (سیار وائي) او مانه هیر شولو چه دَ ماښام (دَ مانځ په) باره کښ ابو برزه څهٔ اووے، او حضورؐ به دا خوښوله، چه عشاء (ماسختن) چه هغے ته تاسو عتمه[2] وائے، ورستو اوکړي، او دَ دے نه مخکښ اودهٔ کیدل او دَ دے نه پس خبرے کول به ئے ښهٔ نهٔ ګڼړل، او دَ سحر دَ مونځ نه (فارغ کیدو سره به) داسے وخت واپس کیدلو، چه سړي به خوا کښ ناست سړے پیژندلو. او دَ سحر مونځ کښ به حضورؐ دَ شپیتو نه سلو پورے آیتونه لوستل[3].

۱. صَلاةِ اُوْلٰی یعني اولنے مونځ، کله چه پنځه مونځه فرض شو نو د وختونو د تعلیم د پاره چه حضرت جبرائیل علیه السلام نبي علیه الصلاة والسلام سره راغلے وو نو اول ئے د ماسپخین مونځ نه شروع کړے وه او اول ئے د ماسپخین مونځ ادا کړے وو څکه د حدیث شریف راوي د ماسپخین د مونځ نه بیان شروع کړو.

۲. عتمه په جاهلیت کښ ددے وخت نوم وو اسلام کښ د دے نوم عشا دے د ماسختن د مونځ نه وړاندے اوده کیدلو نه نبي علیه الصلاة والسلام منعه کړے ده. څکه چه په هغے کښ د مونځ پاتے کیدو خطره ده د ماسختن د مونځ نه روستو د خبرو اترو ګپ شپ نه څکه منعه شویده. چه اسلام غواړي چه د

بيدا رېدو شروع او آخر دواړه د عبير او عادت سره وي چه صبا كښې راتوېنې شي نو د صبا د مونځ تيارئ شروع كړي او د شپې چه كله اوده كيږي نو اول د ماسخوتن مونځ اوكړي

| | |
|---|---|
| ۵۱۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَخْرُجُ الْاِنْسَانُ اِلٰي بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ فَيَجِدُ هُمْ يُصَلُّوْنَ الْعَصْرَ. | ۵۱۸ : عبدالله بن سلمه، مالک، اسحاق بن عبدالله بن طلحه، انس بن مالک روايت كوي، چه مونږ به د مازيګر مونځ كړے وو، هغے نه پس به سړے د بني عمرو بن عوف (قبيلے) پورے تلو، نو هغوي به ئے د مازيګر په مونځ ليدل. |

۱. په دے باب كښې د مازيګر د مونځ په حقله څو احاديث دي چه هغه د مازيګر د مونځ وخت ظاهر وي. په هغے كښې د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها درے روايته دي په هغے ټولو كښې دا يو خبره ده چه نبي عليه الصلاة والسلام د مازيګر مونځ په داسے وخت كوؤ. چه نور (نمر) به دهغے په كمره كښې باقي وؤ د احنافو په نزد دا مستحب دي. چه د مازيګر مونځ دے روستو اوكړے شي او د شوافعو په نزد باندے د مازيګر مونځ په اول وخت زرتر زره كول پكار دي. د عائشے بي بي رضي الله عنها د روايت نه په ظاهره هم دا معلوميږي. چه نبي عليه الصلاة والسلام به د مازيګر مونځ په اول وخت كښې ادا كولو. ليكن امام طحاوي رحمة الله عليه ليكلي دي چه د ازواج مطهراتو رضي الله عنه د كوټو (كمرو) ديوالونه ډير واړه وؤ له دے وجے نه د نمر ډوبيدو نه وړاندے هم څه نه څه نمر (نور) به برابر د هغوي په كمرو كښې موجود وؤ. نو د دے وجے نه دا نه ثابتيږي چه نبي عليه الصلاة والسلام به د مازيګر مونځ د وخته ادا كولو. د مونځ د اوقاتو په حقله په احاديثو مباركو كښې دا غور پكار دے چه صحابه رضي الله عنهم خپل د ستر ګو ليدلو حالات بيانوي او د مونځ اولنے او آخري وخت بيان په مختلفو الفاظو سره كوي. مثلاً د ماسپخين د مونځ په حقله وائي. حَتّٰى رَأَيْنَا فَيْءُ التَّلُوْل (د ماسپخين مونځ په داسے وخت اوشو) چه د ډيرو سوري مونږ اوليدل. د مازيګر په حقله يو صحابي رضي الله عنه فرمائي: وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ د مازيګر د مونځ په وخت به نمر (نور) اوچت ژوندے او روښانه وؤ. حضرت عائشي بي بي رضي الله عنه فرمائي د مازيګر د مونځ په وخت نمر (نور) په خما كمره كښې وؤ. يو صحابي رضي الله عنه فرمائي چه د مازيګر مونځ نه پس زۀ خپل كورته راغلم چه د مدينے منورے په آخري ګوټ كښې وو او نمر بياهم ولاړ وؤ. د ماښام په حقله يو صحابي رضي الله عنه فرمائي. "چه مونږ به د ماښام مونځ ادا كړو او واپس به كورته تلو، نو مونږ به د غشي د پرېوتو ځائے ليدلو. بغضو داسے ويلے دي. چه څرنګ به ماښام شو نو مونږ به مونځ كولو. هر يو د خپل علم مطابق په مختلف الفاظو سره د مانځه وختونه بيان كړے دي. او د نورو علامو په رڼړا كښې امامانو صاحبانو د مونځ اوقات بيان كړيدي. په دے كښې د بنعلوني معمولي اختلاف هم شته ليكن په دے سلسله كښے چه څومره احاديث راځي هغه به همدے رڼړا كښې كتل پكار دي.

| | |
|---|---|
| ۵۱۹ : حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ | ۵۱۹ : ابن مقاتل، عبدالله، ابو بكر بن |

اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْبَكْرِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا اُمَامَةَ يَقُوْلُ صَلَّيْنَا مَعَ عُمَرَبْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ الظُّهْرَثُمَّ خَرَجْنَا حَتّٰى دَخَلْنَا عَلٰى اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَوَجَدْنَاهُ يُصَلِّي الْعَصْرَ فَقُلْتُ يَاعَمِّ مَاهٰذِهِ الصَّلٰوةُ الَّتِيْ صَلَّيْتَ قَالَ الْعَصْرُ وَهٰذِهٖ صَلٰوةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَهٗ.

عثمان بن سهل بن حنيف، ابو امامهؓ روايت كوي، چه مونږ عمر بن عبدالعزيز سره ذَ ماسپخين مونځ او كړ، بهر او وتلو، او انس بن مالك له ورغلو نو هغه مو ذَ مازيكر په مونځ اوليدلو ما اووے اے ځما تره، دا كوم مونځ تاسو او كړ، نو هغهٔ اووے، ذَ مازيكر، دا ذَ رسولِ اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذَ مونځ وخت دے، چه مونږ به حضور صلي اللّٰه عليه وسلم سره كولو[۱].

۱. د دے حديث شريف نه معلوميږي چه د حضرت انس رضي اللّٰه عنه رائے د مازيكر د مونځ په سلسله كښ د نورو صحابوؓ نه مختلف وه. او هغه به د مازيكر د مونځ وختي ادا كولو ترغيب وركوو او حال داوو چه د حضرت عمر بن عبدالعزيز خليفه په زمانه كښ مازيكر مونځ به خلقو روستو وخت كښ ادا كوو.

۵۲۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَذْهَبُ الذَّاهِبُ مِنَّآ اِلٰى قُبَآءٍ فَيَأْتِيْهِمْ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ.

۵۲۰: عبداللّٰه بن يوسف، مالك، ابن شهاب، انس بن مالكؓ روايت كوي، چه مونږ خلقو به ذَ مازيكر مونځ كړے وو، بيا به مونږ كښ څوك تلونكے مقام قبا پورے تلو، او هلته به داسے وخت رسيدو، چه نمر به لا اوچت ولاړ وو.

۵۲۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْعَصْرَوَ الشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ فَيَذْهَبُ الذَّاهِبُ اِلَى الْعَوَالِيْ فَيَأْتِيْهِمْ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ وَبَعْضُ الْعَوَالِيْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ عَلٰى اَرْبَعَةِ اَمْيَالٍ اَوْنَحْوِهٖ.

۵۲۱: ابو اليمان، شعيب، زهري انس بن مالك روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به ذَ مازيكر مونځ داسے وخت كښ كولو، چه نمر به لا اوچت او تيز وو، بيا به تلونكے عوالي پورے تلو، او هغے خلقو ته به داسے وخت رسيدلو، چه نمر به لا اوچت ولاړ وو، ذَ عوالي ځنے مقامات ذَ مدينے نه تقريباً څلور ميله لرے دي.

باب ۳٦۴: اِثْمِ مَنْ فَاتَتْهُ الْعَصْرُ.

باب ۳٦۴: هغه سړي څومره ګناه او کړه چه دَ مازيګر مونځ ترې لاړ.

۵۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الَّذِىْ تَفُوْتُهُ صَلٰوةُ الْعَصْرِ فَكَاَنَّمَا وُتِرَاَهْلُهُ وَمَالُهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ يَتِرَكُمْ وَتَرْتُ الرَّجُلَ قَتَلْتُ لَهُ قَتِيْلًا اَوْ اَخَذْتُ مَالَهُ.

۵۲۲: عبدالله بن يوسف، مالک، نافع، عبدالله بن عمرؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، دَ کوم سړي نه چه دَ مازيګر مونځ لاړ، نو دا داسې ده، لکه چه اهل و مال ئې ضائع شولو. امام بخاريؒ وائي يترکم و ترت الرجل ما سړې تباه کړو. ما د هغه (څوک) او وژلو يا مې د هغه مال واخستلو.

باب ۳٦۵: اِثْمِ مَنْ تَرَكَ الْعَصْرَ.

باب ۳٦۵: دَ هغې سړي ګناه چه دَ مازيګر مونځ پريږدي.

۵۲۳: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِىْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِىْ قِلَابَةَ عَنْ اَبِى الْمَلِيْحِ قَالَ كُنَّا مَعَ بُرَيْدَةَ فِىْ غَزْوَةٍ فِىْ يَوْمٍ ذِىْ غَيْمٍ فَقَالَ بَكِّرُوْا بِصَلٰوةِ الْعَصْرِ فَاِنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَكَ صَلٰوةَ الْعَصْرِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ.

۵۲۳: مسلم بن ابراهيم، هشام، يحيٰي بن ابي کثير، ابو قلابه، ابو مليح روايت کوي، چه مونږ يوه غزا کښې دَ وريځې په ورځ بريده سره ملګري وو، نو هغهٔ اوويل، چه دَ مازيګر مونځ دَ وخته او کړئ، ځکه چه نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چه کوم سړې دَ مازيګر مونځ پريږدي، نو پوهه شي، چه دَ هغهٔ (نيک) عمل ضائع شو.

باب ۳٦٦: فَضْلِ صَلٰوةِ الْعَصْرِ.

باب ۳٦٦: دَ مازيګر دَ مونځ دَ فضيلت بيان.

۵۲۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِىُّ قَالَ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ

۵۲۴: حميدي، مروان بن معاويه، اسماعيل قيس، جرير بن عبدالله روايت کوي، چه مونږ دَ نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر و، چه حضورؐ يوه شپه سپوږمۍ طرف ته نظر او کړهٔ، او

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ اِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةً فَقَالَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرِ لَاتُضَامُّوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهٖ فَاِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ لَّا تُغْلَبُوْا عَلٰى صَلٰوةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا فَافْعَلُوْا ثُمَّ قَرَأَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ افْعَلُوْا لَا تَفُوْ تَنَّكُمْ.

وے فرمائیل چه تاسو به خپل پروردګار یقینا داسے او وینئ، څنګه چه دا سپوږمۍ وینے چه ذ دے په لیدو کښې شک نهٔ کوئ، نو که تاسو داسے کولے شے چه دَ نمر ختو نه مخکښې او د نمر د ډوبیدو نه مخکښې کمزوري نشئ مونځ ادا کوئ، نو ضرور ئے ادا کوئ. بیا حضورؑ "فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَطُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ" تلاوت کهٔ اسماعیل ویلے دي ادا کړئ قضا درنه، نه شي.

۵۲۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتَعَاقَبُوْنَ فِيْكُمْ مَلٰٓئِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَمَلٰٓئِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَيَجْتَمِعُوْنَ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَصَلٰوةِ الْعَصْرِ ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِيْنَ يَأْتُوْا فِيْكُمْ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ اَعْلَمُ بِهِمْ كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِيْ فَيَقُوْلُوْنَ تَرَكْنَا هُمْ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ وَاَتَيْنَا هُمْ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ.

۵۲۵ : عبداللّٰه بن یوسف، مالک ابو الزناد، اعرج، ابو هریرهؓ روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، چه شپه او ورځ کښې دَ فریښتو ډیوټي بدلیږي. کومو فریښتو چه تاسو سره شپه تیره کړے وي چه (آسمان ته) او خیژي، نو پروردګار ترے تپوس کوي. حالانکه هغه دَ خپلو بندګانو نه ښهٔ واقف دے، چه تاسو خما بندګان په کوم حال کښې پریښودل، هغوي (فریښتے ورته وائي چه مونږ هغوي بندیان) دَ مونځ کولو په حالت کښې پریښودل او کوم وخت چه مونږ هغوي ته اورسیدُو (نو هم) هغوي مونځ کولو ۱.

۱. دا ښکاره خبره ده چه د فریښتو جواب به د هغے بندګانو په حقله وي. چه کوم د مونځ پابند وي. او د صبا او د مازیګر د مونځ خیال ساتي. لیکن چه کوم خلق د مانځه پابند نه وي د هغوي په حقله به فریښتے څه وائي؟

## بَابٌ ۳۶۷: مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِّنَ الْعَصْرِ قَبْلَ الْغُرُوْبِ.

## باب۳۶۷: دَ هغه سړي بیان چه دَ نمر پریوتو نه مخکښې دَ مازیګر یو رکعت لاندے کړي.

۵۲۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ

۵۲۶ : ابو نعیم، شیبان، یحیی، ابو سلمه ابو هریرهؓ روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، تاسو کښې چه

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَدْرَكَ أَحَدُكُمْ سَجْدَةً مِّنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلٰوتَهُ وَإِذَا أَدْرَكَ سَجْدَةً مِّنْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلٰوتَهُ.

څوک دَ مازيګر دَ مونځ يو رکعت دَ نمر پريوتو نه مخکښې لاندې کړي، نو باقي مونځ دې هغه پوره کړي، او هر کله چه دَ سحر دَ مونځ يو رکعت دَ نمر ختو نه مخکښې لاندې کړي، نو باقي مونځ دې (دغه شان) پوره کړي[1].

ف: دَا حنافو په نزد که دَ سحر يو رکعت دَ نمر ختو نه مخکښې لاندې کړي، نو مونځ ئې مات شي، او که دَ مازيګر يو رکعت دَ نمر پريوتو نه مخکښې لاندې کړي، نو مونځ نهٔ ماتيږي دَ دې تفصيل دَ فقې کتابونو کښې دليل سره ذکر دې.

۱. بعضې عالمانو د دې حديث شريف دا مطلب بيان کړيدې لکه مثلاً يو بنده نابالغ وؤ يا ليونې وؤ يا داسې عذر چه د هغې په سبب مونځ معاف کيږي. کله چه هغه عذر ختم شو. نو هغه وخت دومره وو چه يو رکعت مونځ پکښې کيدې شو نو په هغې بنده د مونځ قضا واجب شوه. په بل حديث شريف دا تفصيل هم شته چه کله يو بنده يو رکعت امام سره لاندې کړو نو هغه ته د ټول مونځ په جماعت سره د ادا کولو ثواب ورکيږي داسې نور احاديث شته چه په هغې کښې د صبا او د مازيګر د مونځونو ذکر نشته او په هغې کښې دا بنودلې شويده چه د امام سره چا يو رکعت لاندې کړو نو هغه ته د جماعت د مونځ ثواب او فضيلت حاصليږي. فيض الباري جلد دويم کښې دا بحث په ډير وضاحت او تفصيل سره موجود دې.

۵۲۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ إِبْرَاهِيمُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّمَا بَقَاؤُكُمْ فِيمَا سَلَفَ قَبْلَكُمْ مِّنَ الْأُمَمِ كَمَا بَيْنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ إِلَى غُرُوبِ الشَّمْسِ أُوتِيَ أَهْلُ التَّوْرٰةِ التَّوْرٰةَ فَعَمِلُوا حَتّٰى إِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ عَجَزُوا فَأُعْطُوا قِيرَاطًا قِيرَاطًا ثُمَّ أُوتِيَ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ الْإِنْجِيلَ فَعَمِلُوا إِلَى صَلٰوةِ الْعَصْرِ ثُمَّ عَجَزُوا فَأُعْطُوا قِيرَاطًا قِيرَاطًا ثُمَّ أُوتِينَا

۵۲۷: عبدالعزيز بن عبدالله، ابراهيم ابن شهاب، سالم بن عبدالله (بن عمرؓ) دَ خپل پلار نه روايت کوي، هغهٔ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا واوريدل، چه ستاسو بقا دَ هغې امتونو په مقابله کښې چه ستاسو نه مخکښې تير شوې دي، داسې ده لکه دَ مازيګر دَ مونځ نه واخله دَ نمر پريوتو پورې چه تورات والو ته تورات ورکړې شو، او هغوي په هغې عمل اوکړ، تردې چه دَ زوال وخت راغې، نو هغوي ستړې شو، او هغوي، ته يو يو قيراط ورکړې شو. هغې نه پس انجيل والو ته انجيل ورکړې شو، او هغوي دَ مازيګر دَ مونځ پورې کار اوکړ، بيا هغوي ستړي شو، نو هغوي ته يو يو قيراط ورکړې شو. هغې نه پس مونږ خلقو ته قرآن راکړې شو، او مونږ

الْقُرْاٰنَ فَعَمِلْنَا اِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ فَاُعْطِيْنَا قِيْرَاطَيْنِ قِيْرَاطَيْنِ فَقَالَ اَهْلُ الْكِتَابَيْنِ اَىْ رَبَّنَا اُعْطَيْتَ هٰؤُلَآءِ قِيْرَاطَيْنِ وَاَعْطَيْتَنَا قِيْرَاطًا قِيْرَاطًا وَّنَحْنُ كُنَّا اَكْثَرَ عَمَلًا قَالَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِّنْ اَجْرِكُمْ مِّنْ شَيْءٍ قَالُوْا لَاقَالَ وَهُوَ فَضْلِيْ اُوْتِيْهِ مَنْ اَشَآءُ.

ذَ نمر پريوتو پورے كار اوكه' نو مونږ ته دوه دوه قيراط راكړے شو په دے خبرے دواړو اهل كتابو او وے چه خمونږ پروردګاره' تا هغوي ته دوه دوه قيراط وركړل' او مونږ ته دے يو يو قيراط راكۀ' حالانكه ذَ كار په اعتبار سره مونږ زيات يو. نو اللّٰه عزوجل ورته او فرمائيل' آيا ما ستاسو په مزدورئ كښ څۀ كمي اوكۀ هغوي اووے' نه' نو اللّٰه تعالٰي ورته او فرمائيل' دا زما فضل دے' چا ته چه غواړم' وركوم.

ف: دا په اُمت محمديه ذَ خدائے فضل او احسان دے چه ذَ مخكنو امتونو په مقابله كښ ذَ كار كولو ذَ موقعو ذَ كمي باوجود ثواب ئے دوچند دے.

۵۲۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ كُرَيْبٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْيَهُوْدِ وَالنَّصٰرٰى كَمَثَلِ رَجُلٍ نِ اسْتَاْجَرَ قَوْمًا يَّعْمَلُوْنَ لَهٗ عَمَلًا اِلَى اللَّيْلِ فَعَمِلُوْا اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ فَقَالُوْا لَا حَاجَةَ لَنَا اِلٰى اَجْرِكُمْ فَاسْتَاْجَرَ اٰخَرِيْنَ فَقَالَ اَكْمِلُوْا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمْ وَلَكُمُ الَّذِيْ شَرَطْتُّ فَعَمِلُوْا حَتّٰى اِذَا كَانَ حِيْنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ قَالُوْا لَكَ مَا عَمِلْنَا فَاسْتَاْجَرَ قَوْمًا فَعَمِلُوْا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمْ حَتّٰى غَابَتِ الشَّمْسُ فَاسْتَكْمَلُوْا اَجْرَ الْفَرِيْقَيْنِ.

۵۲۸: ابو كريب' ابو اسامه' بريد' ابو برده' ابو موسٰي ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي' حضورؐ او فرمائيل' ذَ مسلمانانو او يهودو نصارٰي داسے مثال دے لكه يو سړي څۀ خلق په مزدوري او لېږول' او هغوي ته ئے اووے' چه باقي ورځ خپله پوره كړئ' او څۀ مزدوري چه ما مقرر كړے ده' تاسو له به ئے دركړم' نو هغوي كار اوكۀ' تر دے چه ذَ مازيګر ذَ مونځ وخت راغے' نو هغے خلقو اووے' چه څۀ چه مونږ كار اوكۀ' هغه ستا ذَ پاره دومره قدرے دے. بيا هغۀ نور خلق په مزدورئ او لېږول نو هغوي باقي ورځ كار اوكۀ' تر دے چه نمر پريوت' او هغے خلقو ذَ دواړو فريقو برابر پوره مزدوري واخسته.

باب ۳۶۸: وَقْتِ الْمَغْرِبِ وَ قَالَ عَطَآءٌ يَجْمَعُ الْمَرِيْضُ بَيْنَ

باب ۳۶۸: ذَ ماښام ذَ وخت بيان عطاء وئيلي دي چه بيمار ذَ ماښام او ماسختن مونځ (يو ځائے) كولے

الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ.

شي.

۵۲۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو النَّجَاشِيِّ اسْمُهُ عَطَاءُ بْنُ صُهَيْبٍ مَوْلَى رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ يَقُولُ كُنَّا نُصَلِّي الْمَغْرِبَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْصَرِفُ أَحَدُنَا وَإِنَّهُ لَيُبْصِرُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِ.

۵۲۹ : محمد بن مهران، ولید، اوزاعي، ابو النجاشي، عطاء بن صهیب (دَ رافع بن خدیج آزاد کرده غلام) روایت کوي، ما دَ رافع بن خدیج نه آوریدلے دي، چه مونږ به نبي صلي الله علیه وسلم سره دَ ماښام مونځ کولو، نو مونږ کښې به هر یو (دَ مونځ کولو نه پس) داسے وخت واپس کیدلو، چه هغه به دَ خپل عشي غُرځیدو مقامات لیدے شو.[1]

[1] مدینه منوره کښې به د ماښام د نمر پریوتو سره مونځ کولے شو. چه چرته غوک به اودریدو او غشے به ئے اویشتلو خو هغے بنده به د خپل غشي د غورزیدو ځائے د خپل ځائے نه لیدلو دومره رنړا به وه. د انصارو رضي الله عنهم کورونه د مدینے منورے نه چار چاپیره آباد وۆ د چا علاقے نزدے وے د چا لرے. خو د دغے اصحابو رضي الله عنهم بیان دے "مونږ چه کله د ماښام مونځ ادا کولونه روستو خپلو کورونو ته تللو. نو د خپلو غشو د غورزیدو ځایونه مونږ د خپل ځائے نه لیدل" د دے نه معلومیږي چه د ماښام مونځ به فوراً د نمر (نور) ډوبیدونه پس ادا کولے شو. او ناوخته کوۆ به ئے نه، د دے سره سره دا مُتواتر طریقه ده چه د ماښام مونځ کښې ئے لنډ لنډ سورتونه لوستل.

۵۳۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَدِمَ الْحَجَّاجُ فَسَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ نَقِيَّةٌ وَالْمَغْرِبَ إِذَا وَجَبَتْ وَالْعِشَاءَ أَحْيَانًا وَأَحْيَانًا إِذَا رَآهُمُ اجْتَمَعُوا عَجَّلَ وَإِذَا رَآهُمْ أَبْطَأُوا

۵۳۰ : محمد بن بشار، محمد بن جعفر شعبه، سعد، محمد بن عمرو بن حسن بن عليؓ (ابن ابي طالب) روایت کوي، چه حجاج به مونځ کښې ډیر تاخیرؒ کولو، مونږ دَ جابر بن عبدالله نه په دے حقله تپوس او کۀ، نو هغۀ اووے، چه نبي صلي الله علیه وسلم دَ ماسپخین مونځ دَ زوال په وخت کولو، او دَ مازیګر مونځ په داسے وخت کښې، چه نمر به صاف وو، او دَ ماښام (داسے وخت کښې) چه نمر به پریوت، او دَ ماسختن کله څۀ وخت، او کله څۀ وخت کوم وخت چه به حضورؐ اولیدل، چه خلق راجمع شوے دي، نو زر به ئے مونځ او کړو، او

أَخَّرَ وَالصُّبْحَ كَانُوْا أَوْكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْهَا بِغَلَسٍ.

كه حضورؐ ته به معلومه شوه، چه خلقو تاخير او كړ، نو تاخير كښې به ئې كولو، او دَ سحر مونځ به هغې خلقو يا دالې اوويے، چه نبي صلي الله عليه وسلم په تيارۀ كښې كولو.

۵۳۱ : حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ أَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَغْرِبَ إِذَا تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ.

۵۳۱ : مكي بن ابراهيم، يزيد بن ابي عبيد، سلمه (بن اكوعؓ) روايت كوي، چه نمر پريوتو سره به مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره دَ ماښام مونځ كولو.

۵۳۲ : حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَبْنَ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعًا جَمِيْعًا وَّثَمَانِيًا جَمِيْعًا.

۵۳۲ : آدم، شعبه، عمرو بن دينار، جابر بن زيد، حضرت ابن عباسؓ روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم دَ ماښام او ماسختن اوه ركعاته يو ځائے اوكړل، او دَ ماسپخين او مازيګر اتۀ ركعاته ئے يو ځائے اوكړل.

۱. د دے حديث شريف تشريح، د ماسپخين د مازيګر د مونځ د وخت په باب كښې تيره شويده.

## بَاب ۳۶۹: مَنْ كَرِهَ أَنْ يُّقَالَ لِلْمَغْرِبِ الْعِشَآءُ.

## باب ۳۶۹: دَ هغے سړي بيان چه هغه دا مكروه ګنړلے دي چه ماښام ته دے ماسختن اوونيلے شي.

۵۳۳ : حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ هُوَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ بُرَيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ الْمُزَنِيُّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَايَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلٰوتِكُمُ الْمَغْرِبِ قَالَ وَيَقُوْلُ الْأَعْرَابُ هِيَ الْعِشَآءُ.

۵۳۳ : ابو معمر، عبدالله بن عمرو، عبدالوارث، حسين، عبدالله بن بريده، عبدالله مزني روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل اعراب (بانډيسيان) دَ ماښام مونځ ته ماسختن وائي. چرته داسے نۀ وي، چه هغوي تاسو باندے (دے اصطلاح كښې) غالب راشي، نو تاسو دَ نمر پريوتو نه پس مونځ ته ماښام او دَ هغے نه پس مونځ ته ماسختن۱ وايئے.

۱. د شريعت په اصطلاح كښې چه كوم مونځونو ته مغرب او عشاء ويلے شي هغے ته به عرب بدوانو (د بانډے خلقو) عشاء او عتمه ويل. مغرب ته عشاء او عشاء ته عتمه، شريعت دا غواړي چه د شريعت مقرر شوے نومونه دے خلق وائي. د دے وجے نه په دے حديث شريف كښې هم دا تعليم دے. دَ مدينے منورے

زوړ نوم يثرب وو د رسول الله صلي الله عليه وسلم د هجرت نه پس د هغې نوم مدينة النبي (د پيغمبر ښهر) شو احاديثو كښې راغلي دي. چه دې ښهر ته يثرب مه وائي بلكې ورته مدينه وائي. دا د خبرو اترو د وينا آداب دي دلته د جائز او ناجائز (روا، ناروا) بحث نه دے چه كوم ته اسلامي شريعت روا يا ناروا وائي. دلته صرف دومره خبره ده چه زوړ نوم اخستل مكروهه دي دا وجه ده عتمه لفظ په ځائې، شريعت د عشاء لفظ خوښ كړے دے ليكن بيا هم بعضے احاديثو كښې عشاء ته عتمه ويلے شوے دے خو ډير كم.

## بَاب ۳۷۰: ذِكْرِ الْعِشَآءِ وَالْعَتَمَةِ

وَمَنْ رَّاٰهُ وَاسِعًاوَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَثْقَلُ الصَّلٰوةِ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ الْعِشَآءُ وَالْفَجْرُ وَ قَالَ لَوْيَعْلَمُوْنَ مَافِي الْعَتَمَةِ وَالْفَجْرِ وَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَالْاِخْتِيَارُ اَنْ يَّقُوْلَ الْعِشَآءُ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ وَيُذْ كَرُعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كُنَّا نَتَنَاوَبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ فَاَعْتَمَ بِهَاوَقَالَ بْنُ عَبَّاسٍؓ وَّ عَائِشَةُ اَعْتَمَ النَّبِيُّ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعِشَآءِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ عَنْ عَائِشَةُ اَعْتَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَتَمَةِ وَقَالَ جَابِرٌ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْعِشَآءَ وَقَالَ اَبُوْ بَرْزَةَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤَخِّرُ الْعِشَآءَ وَقَالَ اَنَسٌ اَخَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَآءَ الْاٰخِرَةَ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَوَاَبُوْ اَيُّوْبَ وَابْنُ عَبَّاسٍ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## بَاب ۳۷۰: دَ عشاء او عتمه ذكر، او

چاچه عشاء او عتمه دواړه وئيل جائز خيال كړے دي، او ابو هريرهؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل كړے دے، چه منافقينو باندے دَ ماسختن او سحر مونځ دَ ټولو مونځونو نه زيات گران دے، او وے فرمائيل، كاش چه هغوي پويدلے چه عتمه او سحر كښې څومره ثواب دے، امام بخاريؒ وائي، بهتره داده، چه عشاء ورته اووائي، ځكه چه اللّٰه تعالٰي فرمائيلے دي "وَ مِنْۢ بَعْدِ الصلٰوة العشاء" ابو موسي نه منقول دي، هغهٔ اووے چه مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم له دَ ماسختن مونځ دَ پاره په وار، وارتلو. (يو ځلے) حضورؐ دا عتمه كښې اوكړلو، ابن عباسؓ او بي بي عائشهؓ فرمائي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ عشاء مونځ عتمه كښې اوكهٔ ابو برزه وائي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به عشاء كښې تاخير كولو، انسؓ وائي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم (يو ځلے) ورستنے عشاء كښې تاخير اوكهٔ، ابن عمر، ابو ايوب او ابن عباسؓ وئيلے دي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دَ ماښام او ماسختن مونځ

**الْمَغْرِبُ وَالْعِشَاءَ.** او كڼه.

۱ . حضرت ابو موسىٰ اشعري رضي الله عنه چه كله د حبشه نه مدينې ته راغلے نو نبي عليه الصلاة والسلام په مدينه كښې چه كوم ځائے اوسيدلو نو هغه ځائے د ابو موسىٰ اشعري رضي الله عنه د كور نه لرے وؤ. پدے وجه هغه د خپلو ملګرو صحابو رضي الله عنهم سره د ماسختن مونځ د نبي عليه الصلاة والسلام د مونځ كولو وار مقرر كړو. كله به دے تللو كله ئے ملګري' مسجد نبوي نه چه د كومو صحابؤ رضي الله عنهم كورونه لرے وؤ د هغه ټولو دا طريقه وه. ځكه چه د لرے خايونو نه د هر مانځه د پاره مسجد نبوي ته حاضريدل ګران وؤ د نبي عليه الصلاة والسلام د نَوو نؤو (نيا) تعليماتو نه خان خبرول هم ضروري وؤ د دے د پاره اصحابؤ رضي الله عنهم به خپلو ګاونډيانو سره وار مقرر كړو. چه هغوي په دے طريقه به خپل ګاونډيان او ملګري د احاديثو او نورے نورے خبرونه خبره ول. په دے خاص واقعه كښې ابو موسي اشعري رضي الله عنه بيان كوي. چه د ماسختن مونځ ځكه ناوخته (روستو) شوے وؤ چه ابوبكر صديق رضي الله عنه مسلمانانو سره بعضے ضروري معاملو كښې مشغوله وؤ. ابو موسىٰ اشعري رضي الله عنه عشاء ته عتمه ويلے نه دي بلكے د اعتم لفظ ئے ويلے دے چه د هغے مطلب دا دے چه د ماسختن مونځ ډير روستو ادا شوے وؤ.

۵۳۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَالِمٌ أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ صَلَّى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً صَلٰوةَ الْعِشَاءِ وَهِيَ الَّتِيْ يَدْعُوا النَّاسُ الْعَتَمَةَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَرَأَيْتَكُمْ لَيْلَتَكُمْ هٰذِهِ فَإِنَّ رَأْسَ مِائَةِ سَنَةٍ مِنْهَا لَا يَبْقٰى مِمَّنْ هُوَ الْيَوْمَ عَلٰى ظَهْرِ الْأَرْضِ أَحَدٌ.

۵۳۴ : عبدان' عبدالله' يونس زهري' سالم' عبدالله (ابن عمر رضي الله عنه) روايت كوي چه يوه شپه حضورﷺ مونږ ته د ماسختن مونځ راكه' او دا هغه مونځ دے' چه خلق ورته عتمه وائي' د مونځ نه چه فارغ شو' نو حضورﷺ مونږ پلو متوجه شو' او وے فرمائيل' زۀ تاسو ته د دے شپے خبر دركړم' د نن نه سل كاله پس چه كوم خلق د زمكے د پاسه دي' هغے كښې به هيڅوک باقي پاتے نشي۱.

۱ . ددے حديث شريف دا مطلب دے چه د مزكے په مخ چه نن كوم خلق ژوندي دي سل كاله كښې به د دوئ ټول وفات شي او سل كاله پس به دوي كښې هيڅ څوک ژوندي نه وي.

**باب ۳۷۱: وَقْتِ الْعِشَاءِ إِذَا اجْتَمَعَ النَّاسُ أَوْتَأَخَّرُوْا.**

باب ۳۷۱: د ماسختن د مونځ وخت چه خلق جمع شي' نو كوي' يا كه هغوي ورستو راشي' نو ورستو به ئے كوي.

۱ . بعضے خلقو دا ويلے وو. چه د ماسختن مونځ وختي ادا شي نو ورته عشاء به ويلے شي. او كه روستو شي نو ورته عتمه ويلے شي. امام بخاري رحمة الله عليه د دے خيال ترديد كوي. او وائي كه مونځ

وختي او شي يا وروستو نو په هر حال نوم ئې عشاء دے.

۵۳۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِبْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو وَهُوَا بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍؓ قَالَ سَأَلْنَا جَابِرَ ابْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ صَلٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَالْعَصْرِ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَّالْمَغْرِبَ اِذَا وَجَبَتْ وَالْعِشَآءَ اِذَا كَثُرَ النَّاسُ عَجَّلَ وَاِذَا اَقَلُّوْآ اَخَّرَ وَالصُّبْحَ بِغَلَسٍ.

۵۳۵: مسلم بن ابراهيم، شعبه، سعد بن ابراهيم، محمد بن عمرو بن حسن بن علي بن ابي طالبؓ روايت كوي، چه مونږ دِ جابر بن عبدالله نه دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ مونځ تپوس اوكهٔ، نو هغهٔ اووے، دَ ماسپخين مونځ به حضورؐ دَ زوال په وخت كولو، او دَ مازيگر داسے وخت كښ چه نمر به لاصاف وو. او دَ مابنام داسے وخت كښ، چه نمر به ډوب شو. او دَ ماسختن مونځ داسے وخت كښ چه خلق به ډير شو، نو زر به ئې او كړلو، او چه خلق به كم وو، نو ورستو به ئې كولو. او د سحر مونځ به ئې تيارهٔ كښ كولو.

## باب ۳۷۲: فَضْلِ الْعِشَآءِ.

باب ۳۷۲: دَ ماسختن دَ مونځ دَ فضيلت بيان.

۵۳۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ قَالَتْ اَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً بِالْعِشَآءِ وَذٰلِكَ قَبْلَ اَنْ يَفْشُوَا لْاِسْلَامُ فَلَمْ يَخْرُجْ حَتّٰى قَالَ عُمَرُؓ نَامَ النِّسَآءُ وَالصِّبْيَانُ فَخَرَجَ فَقَالَ لِاَهْلِ الْمَسْجِدِ مَايَنْتَظِرُهَا اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ الْاَرْضِ غَيْرُكُمْ.

۵۳۶: يحيي بن بكير، ليث، عقيل ابن شهاب، عروه، بي بي عائشهؓ رويت كوي، چه يوه شپه دَ ماسختن مونځ كښ رسول الله صلي الله عليه وسلم تاخير اوكهٔ دا واقعه دَ اسلام خوريدو نه مخكښ ده. حضورؐ هغه وخت راووتلو كوم وخت چه حضرت عمرؓ حضورؐ ته اووے، چه ښځے او بچي اودهٔ شول، حضورؐ بهر تشريف راوړلو، او ږے فرمائيل، چه دَ زمكے خلقو كښ بے ستاسو نه څوك ددے مونځ انتظار كونكي نشته.

۵۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كُنْتُ اَنَا وَ اَصْحَابِيَ الَّذِيْنَ قَدِمُوْا مَعِيَ فِي السَّفِيْنَةِ نُزُوْلًافِيْ بَقِيْعِ بُطْحَانَ وَ

۵۳۷: محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد، ابو برده" حضرت ابو موسيٰؓ روايت كوي، چه زهٔ او خما هغه ملگري، چه كشتئ كښ ماسره يو ځائے راغلي وو، بقيعِ بطحان كښ مقيم وو، او نبي صلي الله عليه وسلم مدينه كښ وو، نو هغوي كښ به

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ فَكَانَ يَتَنَا وَبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ كُلَّ لَيْلَةٍ نَفَرٌ مِّنْهُمْ فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَاوَ اَصْحَابِيْ وَلَهُ بَعْضُ الشُّغُلِ فِيْ بَعْضِ اَمْرِهٖ فَاَعْتَمَ بِالصَّلٰوةِ حَتّٰى ابْهَآرَّ اللَّيْلُ ثُمَّ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى بِهِمْ فَلَمَّا قَضٰى صَلٰوتَهُ قَالَ لِمَنْ حَضَرَهُ عَلٰى رِسْلِكُمْ اَبْشِرُوْا اِنَّ مِنْ نِعْمَةِ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اَنَّهُ لَيْسَ اَحَدٌ مِّنَ النَّاسِ يُصَلِّيْ هٰذِهِ السَّاعَةَ غَيْرُكُمْ اَوْقَالَ مَاهٰذِهِ السَّاعَةَ اَحَدٌ غَيْرُكُمْ لَايَدْرِيْ اَيَّ الْكَلِمَتَيْنِ قَالَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى فَرَجَعْنَا فَرِحْيٰ بِمَا سَمِعْنَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

يو يو سړے وار په وار نبي صلي اللّٰه عليه وسلم له راتـلو (يوه ورځ) مونږ ټول يعني زهٔ او خما ملګري نبي صلي اللّٰه عليه وسلم له راغلو او حضورٌ خپل څهٔ کار کښې داسې مصروف وو، چه دَ ماسختن مانځه کښې حضورٌ تاخير او کهٔ، تر دې چه نيمه شپه شوه. هغې نه پس نبي صلي اللّٰه عليه وسلم بهر تـه تشريف راوړلو، او خلقو تـه ئې مونـځ ورکـهٔ، کـوم وخت چه حضورٌ مونـځ ختم کهٔ، نو کوم خلق چه هلته موجود وو، هغوي ته ئې او فرمائيل، خوشحاله شئې، ځکه چه په تا سو دَ اللّٰه دا احسان دې، چه ستاسو نه سِوا بل هيڅوک دا وخت مونځ نهٔ کوي يا دائې او فرمائيل، چه دې وخت کښې بې ستاسو نه بل هيچا مونځ، او نهٔ کهٔ، معلومه نهٔ ده چه حضورٌ دې دوو جملو کښې کومه (جملـه) او فرمائيلـه، ابو موسيٰؓ وائي، چه مونږ په دې خبره چه دَرسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه موواوريده، په خوشحالئ‌ۍ واپس شو.

۱. "بَقِيع" هر هغه ځائې ته ويلې شي چرته چه ډير قسمه اونې (درخت) وي. داسې ځايونه په عربو کښې ډير دي. ځکه ورسره ابو موسي اشعري رضي اللّٰه عنه د بطحان لفظ يو ځائې کړو.

## بَاب ۳۷۳: مَايُكْرَهُ مِنَ النَّوْمِ قَبْلَ الْعِشَآءِ.

## باب ۳۷۳: دَ ماسختن دَ مونځ نه مخکښې اُودهٔ کيدل مکروه دي.

۱. يعني رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د ماسختن د مونځ د انتظار په وجه چه کوم غوره والې بيان کړو په هغې مونږ ډير خوشحاله شو. په ډير اوږد انتظار سره ډيره سستي پيدا شوې وه. د نبي عليه الصلاة والسلام په قيمتي بيان سره هغه سستي هم لرې شوه. سيوطئ رحمة اللّٰه عليه دلته ليکلې دي. چه په پخواني امتونو بانـدې د مـاسختن مونځ فرض نه وو پدې وجه د دې امت مسلمانانوته دا خوش خبري ورکړې شوه چه دا ستاسو يو خاص غوره والې دې. دويمه خبره داوه چه دغه وخت پورې اسلام د عربستان په ټولو اطرافو کښې خور شوې نه وو. پدې وجه د کافرو په مقابله کښې دا فضيلت هم حاصل شو چه په مسلمانانو د اللّٰه تعالٰي لوئې نعمت او احسان دې چه دومره ناوخته پورې د اللّٰه تعالٰي عبادت کوي او

د مونځ انتظار کښې ناست دي. مدينه منوره کښې په دغه وخت نهه جوماتونه وو نو په مسجد نبوي کښې مونځ کونکو ته دا فضيلت همېه برخه کښې ورکړے شو چه نورو جوماتونو کښې د ماسختن مونځ شوے وو. ليکن مسجد نبوي کښې دا اصحاب رضي الله عنهم د ماسختن د مونځ په انتظار کښې ناست وو. دلته دا خيال ساتل پکار دي چه د ماسختن مونځ روستو کولو کښې ډير ثواب دے. په حديث شريف کښې دي "که چرے خما امّت ته نه گرانيده نو ما به د ماسختن مونځ د شپے دريمے خصے تيريدو پورے وروستو کولو.

۵۳۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ نِ الْحَذَّآءِ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ عَنْ أَبِي بَرْزَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيْثَ بَعْدَهَا.

۵۳۸: محمد بن سلام، عبدالوهاب ثقفي، خالد حذاء، ابو المنهال، ابو برزةؓ روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به د ماسختن نه مخکښې اوده کيدل او د دے نه پس خبرے کول مکروه گنړل.

## بَابُ ۳۷۴: النَّوْمِ قَبْلَ الْعِشَآءِ لِمَنْ غُلِبَ.

## باب ۳۷۴: په کوم سړي چه خوب غلبه اوکړي د هغهٔ په حقله د ماسختن نه مخکښې د اوده کيدو بيان.

۱. د ماسختن مونځ نه مخکښې خوب کول او د مونځ نه روستو خبرے کول ځکه مکروه دي چه د مونځ نه مخکښې اوده کيدلو سره د جماعت مونځ (د امامتي مونځ) د پاتے کيدو خطره ده او که د ماسختن د مونځ نه روستو خبرے اترے ګپ شپ جاري وي نو په ناوخته اوده کيدو سره د صبا مونځ له پاسيدل به خطره کښې شي او مونځ به ترے پاتے شي او که د ضرورت يا د نيک مقصد د پاره د ماسختن د مونځ نه روستو خبرے کيږي يا ويخ پاتے شي نو دے کښې څه گناه نشته روستو بل حديث شريف رازي چه په هغے کښې دا واقعه ده چه نبي عليه الصلاة والسلام به د ماسختن د مونځ نه روستو ديني تعليمات بيانول. اسلام دا غواړي چه د بيدارئ شروع او د بيدارئ آخر دواړه عبادت سره وي وړاندے دا بحث تير شويدے.

۵۳۹: حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ بَكْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ أَخْبَرَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ أَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعِشَآءِ حَتّٰى نَادَاهُ عُمَرُ الصَّلٰوةَ نَامَ النِّسَآءُ وَالصِّبْيَانُ فَخَرَجَ فَقَالَ مَا يَنْتَظِرُهَا مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ أَحَدٌ كُمْ غَيْرُكُمْ قَالَ وَلَا يُصَلّٰى يَوْمَئِذٍ إِلَّا بِالْمَدِيْنَةِ

۵۳۹: ايوب بن سليمان، ابو بکر" سليمان صالح بن کيسان، ابن شهاب، عروه، بي بي عائشهؓ روايت کوي چه (يو ځلے) رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د ماسختن مونځ کښې تاخير اوکړ، چه حضرت عمرؓ حضورؐ ته آواز اوکړ چه مونځ تيار دے، ښځے او بچي اوده شو. بيا حضورؐ بهر ته تشريف راوړلو، او وے فرمائيل چه د دے مونځ ستاسو نه سوا بل هيڅوک انتظار نهٔ کوي (ابو برزهؓ) وائي، چه دے وخته پورے د مدينے نه سوا بل ځائے مونځ نهٔ کيدهٔ هغه وائي چه

قَالَ وَكَانُوْا يُصَلُّوْنَ فِيْمَا بَيْنَ اَنْ يَّغِيْبَ الشَّفَقُ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ الْاَوَّلِ.

۵۴۰ : حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شُغِلَ عَنْهَا لَيْلَةً فَاَخَّرَهَا حَتّٰى رَقَدْنَا فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ اسْتَيْقَظْنَا ثُمَّ رَقَدْنَا ثُمَّ اسْتَيْقَظْنَا ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لَيْسَ اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ الْاَرْضِ يَنْتَظِرُ الصَّلٰوةَ غَيْرُكُمْ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يُبَالِيْ اَقَدَّمَهَا اَمْ اَخَّرَهَا اِذَا كَانَ لَا يَخْشٰى اَنْ يَّغْلِبَهُ النَّوْمُ عَنْ وَّقْتِهَا وَقَدْ كَانَ يَرْقُدُ قَبْلَهَا قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ فَقَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً بِالْعِشَاءِ حَتّٰى رَقَدَ النَّاسُ وَاسْتَيْقَظُوْا وَرَقَدُوْا وَاسْتَيْقَظُوْا فَقَامَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ فَقَالَ الصَّلٰوةُ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَخَرَجَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ الْاٰنَ يَقْطُرُ رَأْسُهٗ مَآءً وَّاضِعًا يَدَهٗ عَلٰى رَأْسِهٖ فَقَالَ لَوْلَآ اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ

صحابه ږ به (دَ ماسختن مونځ) دَ شفق (سُرخي) دَغائبيدونه پس دَ شپے دَ وړمبنے دريمه حصے پورے کولو.

۵۴۰ : محمود، عبدالرزاق، ابن جريج نافع، عبدالله بن عمرؓ روايت کوي، چه دَ شپے رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دَ ماسختن په وخت څهٔ ضرورت پيښ شو، په دے وجه حضورؐ نه دَ ماسختن مونځ ته راتلو کښې تاخير اوشو، تر دے چه مونږ په جمات کښې اُدهٔ شو. بيا ويښ شو. بيا اودهٔ شو. بيا ويښ شو دے نه پس نبي صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو، او وے فرمائيل چه دے وخت دَ زمکے په خلقو کښې ستاسو نه سِوا دَدے مونځ بل څوک انتظار نه کوي، او ابن عمر به څهٔ پروا نه کوله، چه دَ ماسختن مونځ زراو کړي، يا تاخير سره او کړي، خو په شرط دَ دے چه دَ مونځ دَ فوت کيدو خطره به نهٔ وه. او کله به هغه دَ ماسختن نه مخکښې اودهٔ شولو، ابن جريج وائي، ما عطاء ته دا حديث بيان کهٔ، نو هغهٔ اووے، چه ما دَ ابن عباسؓ نه واوريدل هغهٔ اووے، چه يوه شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ ماسختن په مونځ کښې دومره تاخير او کهٔ، چه خلق اوده شو، او بيا ويښ شو، او بيا اوده شو، او بيا ويښ شو، نو عمر بن خطابؓ اودريدۀ او حضورؐ ته ئے آواز او کهٔ، چه مونځ تيار دے، عطاء وائي، ابن عباسؓ اووے بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم بهر تشريف راوړلو ګويا زهٔ حضورؐ طرف ته دغه وخت ګورم چه دَ حضورؐ دَ سر مبارک نه اُوبه څاڅي، او حضورؐ خپل لاس په سر مبارک ايښے دے حضورؐ او فرمائيل، که ما په خپل امت ګرانه نهٔ ګنړلے، نو يقيناً هغوي ته به مِ حکم ور کړے وو، چه دَ ماسختن مونځ دا شان په دے وخت کوي (ابن جريج وائي) بيا ما دَ عطاء نه دَ تحقيق په طور

لَاَمَرْتُهُمْ اَنْ يُصَلُّوْهَا هٰكَذَا فَاسْتَثْبَتُّ عَطَاءً كَيْفَ وَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَأْسِهٖ يَدَهٗ كَمَآ اَنْبَأَهٗ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَبَدَّدَ لِيْ عَطَاءٌ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ شَيْئًا مِّنْ تَبْدِيْدٍ ثُمَّ وَضَعَ اَطْرَافَ اَصَابِعِهٖ عَلٰى قَرْنِ الرَّأْسِ ثُمَّ ضَمَّهَا يَمُرُّهَا كَذٰلِكَ عَلَى الرَّأْسِ حَتّٰى مَسَّتْ اِبْهَامُهٗ طَرَفَ الْاُذُنِ مِمَّا يَلِي الْوَجْهَ عَلَى الصُّدْغِ وَنَاحِيَةِ اللِّحْيَةِ لَا يُقَصِّرُ وَلَا يَبْطُشُ اِلَّا كَذٰلِكَ وَقَالَ لَوْلَآ اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ لَاَمَرْتُهُمْ اَنْ يُّصَلُّوْا هٰكَذَا.

تیوس او کۂ، چه نبي صلي الله علیه وسلیم خپل لاس په خپل سر مبارک څنګه ایښے وو، څنګه چه ابن عباسؓ هغۀ ته خبر ورکړۀ، نو عطاء (خما د ښودنے دَ پاره) دَ خپلو ګوتو مینځ کښې څۀ قدرے جداوالے راوست، بیائے دَ خپلو ګوتو سرونه دَ خپل سر په یو اړخ کیښودل بیائے هغه یو ځائے کړے، دا شان ئے په سر راکښلے، تر دے چه دَ هغه قته ګوته دَ هغۀ دَ غوږ نرمئے سره چه مخ سره نزدے ده، دَ کیړے غاړے سره یو ځائے شوله. هغوئ چه به کله او به دَ ویښتونه نچوړولے، او تا دي به ئے کوله، نو دغسے به ئے فرمائیل، حضورؐ او فرمائیل که ما په خپل اُمت ګرانه نۀ ګنړلے، نو بے شکه هغوي ته به مِ حکم ورکړے وے، چه هغوي دے دَ ماسختن مونځ دغه شان په دے وخت کوي.

باب ۳۷۵: وَقْتِ الْعِشَاءِ اِلٰى نِصْفِ اللَّيْلِ وَقَالَ اَبُوْ بَرْزَةَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ تَاخِيْرَهَا.

باب ۳۷۵: دَ ماسختن وخت دَ نیمے شپے پورے دے، او دَ ابو برزهؓ بیان دے چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم دَ دے تاخیر بهتر ګنړلوړ.

۱. د ماسختن مونځ د شپے اولنے دریمے برخے پورے روستو کول مستحب دي. او د نیمے شپے پورے روستو کول بغیر د کراهت نه، روا دي لیکن د نیمے شپے نه د ماسختن روستو کول مکروه تنزیهي دي. مسافر د دینه مستثني دے د هغه د پاره مکروهه نه دي.

۵۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيْمِ الْمُحَارِبِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ حُمَيْدِ نِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اَخَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الْعِشَاءِ اِلٰى نِصْفِ اللَّيْلِ ثُمَّ صَلّٰى ثُمَّ قَالَ قَدْ صَلَّى النَّاسُ وَنَامُوْآ اَمَآ اِنَّكُمْ فِيْ صَلٰوةٍ مَّا انْتَظَرْتُمُوْهَا

۵۴۱: عبدالرحیم محاربي، زائده، حمید طویل، انس روایت کوي، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم دَ ماسختن مونځ کښې (یو ځلے) دَ نیمے شپے پورے تاخیر او کړلو. دَ هغے نه پس ئے مونځ او کۀ، او وے فرمائیل، چه خلقو مونځ او کۀ، او ده شو، او تاسو مونځ کښې یئے، څو پورے چه تاسو دَ هغے انتظار او کۀ، او ابن ابي مریم دومره خبره زیاته

وَزَادَابْنُ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ اَيُّوبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ سَمِعَ اَنَسًا كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَبِيْصِ خَاتَمِهٖ لَيْلَتَئِذٍ.

روايت كړے ده، هغه والي چه موږ ته يحيٰي بن ايوب اووے، هغه وائي، ما ته حميد بيان او كړ، هغهٔ دَ انس نه واوريدل، چه ګويا زهٔ دے شپه كښې دَ حضورؐ دَ ګوتمے چمك وينم.

## باب ۳۷٦: فَضْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ.

## باب ۳۷٦: دَ سحر دَ مونځ دَ فضيلت بيان.

۵۴۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ قَالَ لِيْ جَرِيْرُبْنُ عَبْدِ اللّٰهِ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ نَظَرَ اِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ فَقَالَ اَمَآ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا لَا تُضَآمُّوْنَ اَوْ لَا تُضَاهُوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهٖ فَاِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَلَّا تُغْلَبُوْا عَلٰى صَلٰوةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا فَافْعَلُوْا ثُمَّ قَالَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ زَادَابْنُ شِهَابٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عِيَانًا.

۵۴۲: مسدد يحيٰي، اسماعيل، قيس جرير بن عبدالله روايت كوي، چه موږ يوه شپه كښې نبي صلي الله عليه وسلم سره وو، چه حضورؐ سپوږمۍ طرف ته نظر اوكړ، او وے فرمائيل، واورئ، نزدے ده چه تاسو خلق به خپل پروردګار بے شك شبهے داسے اووينئے، څنګه چه دے وخت دَ څوارلسمے دا سپوږمۍ وينئے، كه تاسو داسے كولے شے، نو (شيطان نه) مغلوب كيږئ مه، دَ نمر ختو نه مخكښې مونځ كوئ، بيا حضورا او فرمائيل، "فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ غُرُوْبِهَا" امام بخاريؒ وائي چه ابن شهاب دَ اسماعيل نه، هغه دَ قيس نه، هغه دَ جرير نه دومره لفظ زيات روايت كړے دے، چه عنقريب تاسو به خپل پروردګار علانيه او وينئے[1].

[1]. سيوطي رحمة الله عليه ليكلے دي چه د مازيګر او د صبا د مونځ خاص ذكر ځكه شوے دے چه الله تعالیٰ به ځيمے وختونو كښې ليدلے شي "حَادِي الْاَرْوَاح" كښې ليكلے دي چه جنت كښې به شپه او ورځ داسے رازي چه د جنتيانو او د الله تعالیٰ په مينځ كښې به پرده راشي نو شپه به شي اوچه كله پرده لرے كړے شي نو ورځ به شي. (فيض الباري جلد دوم ص ۱۳۳)

٥٤٣: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْجَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ بَكْرِبْنِ اَبِيْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ صَلَّى الْبَرْدَيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ وَقَالَ ابْنُ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ اَخْبَرَهُ بِهٰذَا.

٥٤٣: هدبه بن خالد، همام، ابو جمره ابو بكر بن ابي موسي ذَ خپل پلار نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه كوم سړئ دوه يخ مونځونه اوكړي، هغه به جنت كښې داخليږي او ابن رجاء اووے، چه مونږ له همام په واسطه ذَ ابو جمره او ابو بكر بن عبداللّٰه بن قيس دغه بيان اوكه.

٥٤٤: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ حَدَّثَنَا حَبَّانُ قَالَ ثَنَا هَمَّامٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْجَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ بَكْرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

٥٤٤: مونږ ته اسحاق په واسطه ذَ حبان ابو جمره، ابو بكر بن عبداللّٰه، عبداللّٰه، ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه ذَ دغے په مثل روايت اوكه.

## باب ٣٧٧: وَقْتِ الْفَجْرِ.

## باب ٣٧٧: ذَ سحر ذَ مونځ ذَ وخت بيان.

٥٤٥: حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ عَاصِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ حَدَّثَهُ اَنَّهُمْ تَسَحَّرُوْا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَامُوْا اِلَى الصَّلٰوةِ قُلْتُ كَمْ بَيْنَهُمَا قَالَ قَدْرُ خَمْسِيْنَ اَوْسِتِّيْنَ يَعْنِيْ اٰيَةً.

٥٤٥: عمرو بن عاصم، همام، قتاده، انسؓ روايت كوي، زيد بن ثابت ماته بيان اوكه، چه صحابو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه سره پيشمنے اوكه. بيا مونځ ته اودريدل. ما تپوس اوكه. چه دے دواړو كښې څومره فاصله وه، زيد اووے ذَ پنځوس يا شپيتو آيتونو (ذَ تلاوت په اندازه فاصله وه).

٥٤٦: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ سَمِعَ رَوْحَ بْنَ عُبَادَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَزَيْدَبْنَ ثَابِتٍ تَسَحَّرَا فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ سُحُوْرِهِمَا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى

٥٤٦: حسن بن صباح، روح بن عباده، سعيد، قتاده، انس بن مالكؓ روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او زيد بن ثابت دواړو پيشمنے اوكه كوم وخت چه ذَ پيشمنے نه فارغ شو" نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ذَ مانځه ذَ پاره اودريدلو. او مونځ ئے اوكه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَصَلّٰى قُلْنَا لِاَنَسٍؓ كَمْ كَانَ بَيْنَ فَرَاغِهِمَا مِنْ سُحُوْرِ هِمَا وَدُخُوْلِهِمَا فِي الصَّلٰوةِ قَالَ قَدْرَمَا يَقْرَؤُ الرَّجُلُ خَمْسِيْنَ اٰيَةً.

مونږ ۀ هغهٔ نه تپوس اوكړ، چه دَ پيشمني او مونځ دواړو په مينځ كښې څومره وختوو. نو انسؓ اووے، دومره چه يو سړے هغے كښې پنځوس آيتونه ونيلے شي.

۵۴۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ عَنْ اَخِيْهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ اَنَّهُ سَمِعَ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ يَقُوْلُ كُنْتُ اَتَسَحَّرُ فِيْ اَهْلِيْ ثُمَّ تَكُوْنُ سُرْعَةٌ بِيْ اَنْ اُدْرِكَ صَلٰوةَ الْفَجْرِ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۴۷: اسماعيل بن ابي اويس، عبدالحميد بن ابي اويس، سليمان، ابو حازم، سهل بن سعدؓ روايت كوي، چه زهٔ به دَ خپل كور خلقو كښې ناست ووم، پيشمنني به مِ خوړلو، بيا به به ماتا دي وه، چه په څهٔ طريقه زهٔ دَ سحر مونځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره اوكړم.

۵۴۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَخْبَرَتْهُ قَالَتْ كُنَّا نِسَآءُ الْمُؤْمِنَاتِ يَشْهَدْنَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الْفَجْرِ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوْطِهِنَّ ثُمَّ يَنْقَلِبْنَ اِلٰى بُيُوْتِهِنَّ حِيْنَ يَقْضِيْنَ الصَّلٰوةَ لَايَعْرِفُهُنَّ اَحَدٌ مِّنَ الْغَلَسِ.

۵۴۸: يحيي بن بكير، ليث عقيل، ابن شهاب، عروه بن زبير، بي بي عائشه رضي اللّٰه عنها روايت كوي، چه مونږ مسلمانانے ښځے به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره دَ سحر مونځ كښې څادرونو كښې پټے حاضريدلے، چه مونځ به ختم شو، نو بيا به خپلو خپلو كورونو ته واپس كيدلے. او هيچا به دَ تيرے په سبب نهٔ پيژندلےؓ[1].

[1]. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه چه دے باب كښې څومره احاديث روايت كړيدي د هغے ټولو نه دا معلوميږي چه نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم به د صبح صادق (رونړ صبا) ختو سره فوراً د صبا مونځ شروع كوۀ. او د حضرت عائشه رضي اللّٰه عنها د دے آخري حديث نه دا خبره ښكاري كيږي. چه د مونځ ختميدونه روستو به هم تياره باقي وه د امام مالک امام احمد بن حنبل او د امام شافعي رحمة اللّٰه عليهم دا مذهب دے چه د صبا مونځ دے د صبح صادق ختونه پس شروع كړے شي او د دے به دواړو ركعتونو كښې د قرآن مجيد اوږده اوږده آيتونه اولوستلے شي او غوره داده چه د مونځ د ختميدو وخت كښې دے تياره موجوده وي. په احنافو كښې د امام محمد رحمة اللّٰه عليه دا مذهب دے چه د صبا مونځ دے په تياره كښې شروع كړي. ليكن قراء ت دے دومره اوږد كړے شي چه د مونځ ختميدو په وخت رڼړا بنوره شوي وي. امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمة اللّٰه عليهما فرمائي. چه د صبا مونځ دے هله شروع كوي. چه رڼړا

ښوره شي او هله دې خصوصي چه رڼرا آخري حد ته اورسي او آخري حد دادې چه کله هم مونځ نه فارغ شي که په څه وجه د مونځ دوباره کول راشي چه ښه په تسلي سره د نور (نمر) د ختلو نه وړاندې مونځ سرته اورسي. دا اختلاف صرف په دې کښې دې چه مستحب وخت کوم یو دې روا کېدلو کښې اختلاف نشته د اسفار په حقله (چه ښه رڼرا ښوره شي) نو هله دې د صبا مونځ ادا شي). ډېر احادیث موجود دي د هغې ټولو ذکر کول ممکن نه دي. اختصار سره څو احادیث دادي "مثلا د صبا مونځ په رڼرا ښوریدو کښې ادا کوئي په دې کښې اجر ثواب زیات دې" د حضرت علي رضي الله عنه یو روایت طحاوي کښې دې "چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم به کله د صبا مونځ کوؤ نو مونږ به (نمر) نور ته کتل' چه چرته نمر راختلې نه وي حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په یو روایت کښې دي "چه ما رسول الله صلي الله علیه وسلم صرف یو ځل اولیدلو چه هغه د صبا مونځ د نور کله نه په بدل وخت کښې ادا کړو. چه په مزدلفه کښې ئې د صبا مونځ په تیارهٔ کښې ادا کړې وؤ. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د نبي علیه الصلاة والسلام سره د هغوي د کور د یو بنده پښان اوسیدلو. په مکه او مدینه دواړو کښې ورسره یو ځائې اوسیدلو. او ډیر کم ترې جدا اوسیدلې وؤ د هغه دا ګواهي کافي ده چه نبي علیه الصلاة والسلام د خپل عادت نه خلاف' په مزدلفه کښې په تیاره کښې د صبا مونځ ادا کړې وؤ د احنافو د مذهب په تائید کښې واضحه او صفا دلیل دې امام بخاري رحمة الله علیه چه کوم احادیث ذکر کړیدي. په هغې کښې رومبني درې احادیث د رمضان په میاشت کښې د صبا د مونځ په حقله دي. په دې درې واړو احادیثو کښې دي. چه مونږ د پیشمني د خوراک نه پس د صبا مونځ کوؤ. دا ممکنه ده چه د رمضان د ضرورت دَ وجې نه ئې پیشمني نه پس د صبا مونځ کوؤ. ځکه چه د پیشمني د خوراک د پاره بد خلق د شپې بیداریدل. دا خطره وه "که مونځ رڼرا خوریدو پورې روستو کړي. نو کیدې شي چه د غفلت په خوب اوده شي او د صبا مونځ ترې قضا شي" په دارالعلوم دیوبند کښې د اکابرو د وخت نه په دې عمل کیږي. چه په رمضان کښې د پیشمني ختمیدو نه پس د صبا مونځ شروع کیږي. دا هم ویلې شویدي. چه د اسلام په اولني وخت کښې مسلمانان لږ وو نو د صبا مونځ ئې تیاره کښې ادا کوؤ. او ټول به دَ وخته جومات ته رسیدل. لیکن چه کله مسلمانان ډیر شو. نو بیا د صبا د مونځ د خلقو د انتظار په وجه په رڼرا کښې ادا کېدو.

**بـاب ۳۷۸: مَنْ اَدْرَكَ مِنَ الْفَجْرِ رَكْعَةً.**

**باب۳۷۸: دَ هغـا سـړي بیان چـه دَ سحر یو رکعت لاندې کړي.**

**۵۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ وَّ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ وَّ عَنِ الْاَعْرَجِ يُحَدِّثُوْنَهُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَدْرَكَ مِنَ الصُّبْحِ رَكْعَةً**

۵۴۹: عبدالله بن مسلمه' مالک' یزید بن اسلم' عطاء بن یسار' بسر بن سعید' اعرج' ابو هریرهؓ روایت کوي' رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل' کوم سړې چه دَ نمر ختو نه مخکښې یو رکعت لاندې کړي' نو هغه دَ سحر مونځ لاندې که' او څوک

قَبْلَ اَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ اَدْرَكَ الصُّبْحَ وَمَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِّنَ الْعَصْرِ قَبْلَ اَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ اَدْرَكَ الْعَصْرَ.

چه ذ نمر پرېوتو نه مخکښې ذ مازيگر يو رکعت لاندې کړي، نو بې شکه هغه ذ مازيگر مونځ لاندې کۀ.

## بَابٌ ۳۷۹: مَنْ اَدْرَكَ مِنَ الصَّلٰوةِ رَكْعَةً.

## باب ۳۷۹: ذ هغې سړي بيان چه ذ مونځ يو رکعت لاندې کړي.

۵۵۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِّنَ الصَّلٰوةِ فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلٰوةَ.

۵۵۰: عبدالله بن يوسف، مالک، ابن شهاب، ابو سلمه بن عبدالرحمن، حضرت ابو هريرهؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم سړې چه ذ مونځ يو رکعت لاندې کړي نو هغۀ (پوره) مونځ لاندې کۀ.

## بَابٌ ۳۸۰: الصَّلٰوةِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰى تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ.

## باب ۳۸۰: ذ سحر نه پس ذ نمر اوچتيدو پورې ذ مونځ کولو بيان.

۵۵۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدَ عِنْدِيْ رِجَالٌ مَّرْضِيُّوْنَ وَاَرْضَاهُمْ عِنْدِيْ عُمَرُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تُشْرِقَ الشَّمْسُ وَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ.

۵۵۱: حفص بن عمرو، هشام، قتاده، ابو العاليه، ابن عباسؓ روايت کوي، چه څما مخکښې ښې غوره خلقو چه هغوي کښې څما په نزد ذ ټولو نه زيات غوره عمرؓ وو، دا بيان او کۀ، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ سحر ذ مونځ نه پس ذ نمر ختو نه مخکښې او ذ مازيگر (ذ مونځ) نه پس ذ نمر پريوتو نه مخکښې مونځ کول منع کړې دي.

۵۵۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ اَبَا الْعَالِيَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَاسٌ بِهٰذَا.

۵۵۲: مسدد، يحيي، شعبه، قتاده ابو العاليه، حضرت ابن عباسؓ روايت کوي، چه ما ته څو کسانو دغه حديث روايت کۀ.

۵۵۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ

۵۵۳: حفص بن مسدد، يحيي بن سعيد، هشام،

حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحَرَّوْا بِصَلٰوتِكُمْ طُلُوْعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبَهَا قَالَ وَحَدَّثَنِي ابْنُ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَاَخِّرُوا الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَغِيْبَ تَابَعَهُ عَبْدَةُ.

عروه، ابن عمرؓ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، چه تاسو خپل مونځونه د نمر ختو په وخت كښې مه كوئ، او نه د نمر پريوتو په وخت. عروه وائي، ماته ابن عمرؓ دا هم اووې، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چه كله د نمر كناره (څنډه) ښكاره شي، نو د نمر اوچتيدو پورې مونځ موقوف كړئ، او كله چه د نمر څنډه پټه شي، نو ځو پورې چه پوره پټه شوې نه وي، هغه وخته پورې مونځ مه كوئ عبده ددې تابع حديث روايت كړې دې.

۵۵۴: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ بَيْعَتَيْنِ وَعَنْ لِبْسَتَيْنِ وَعَنْ صَلٰوتَيْنِ نَهٰى عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَعَنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّآءِ وَعَنِ الْاِحْتِبَآءِ فِي ثَوْبٍ وَّاحِدٍ يُفْضِيْ بِفَرْجِهٖ اِلَى السَّمَآءِ وَعَنِ الْمُنَابَذَةِ وَالْمُلَامَسَةِ.

۵۵۴: عبيد بن اسماعيل، ابو اسامه، عبيد الله، حبيب بن عبدالرحمن، حفص بن عاصم، ابو هريرهؓ روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د دوه قسمه بيع نه، د دوه قسمه لباس نه، او د دوو مونځونو نه منع فرمائيلې ده، د سحر نه پس د مونځ نه، ځو پورې چه نمر ښۀ راونه خيژي، او د مازيگر نه پس د مونځ نه، ځو پورې چه په ښۀ شان نمر ډوب نشي. او يوه كپړه كښې د اشتمال صماء او احتباء نه، چه پوره طور سره شرمگاه د پاره پرده او نه كړې شي او (بيع) منابذه او ملامسه نه (ئې هم منع كړيده)ط.

۱. پنځه وخته داسې دي چه په هغې كښې مونځ ادا كول پكار نه دي. (۱) چه كله نمر راخيژي (۲) چه كله نمر پريوځي (۳) او خالص په غرمه كښې چه نمر د سر د پاسه وي. په دې دريو وختونو كښې هيڅ قسم مونځ روانه دې نه د جنازې مونځ نه د تلاوت سجده. (۴) د صبا د مونځ نه ترنمر ختلو پورې (۵) د مازيگر د مونځ نه پس ترمابنامه پورې ليكن كه چانه په څه وجه د مازيگر مونځ پاتې وي. نو هغه د نمر ډوبيدو په وخت ادا كولې شي. ليكن د بلې ورځې قضا د مازيگر مونځ د نمر د پريوتو په وخت نشي ادا كولې، د صبا د مونځ نه روستو، د نمر د ختلو نه مخكښې، د مازيگر د مونځ نه روستو نفلي مونځونه مكروهه دي. قضا مونځ د تلاوت سجده، او د جنازې مونځ پكښې كيدې شي. دا د احنافو مسلك دې په دې

مسئله كښې د فقهاؤ اختلاف شته د هغے تفصيل د فقے مبارکے کتابونو کښې شته' د حديث شريف آخر کښې د اخسعلو خرخولو او د کپړو جامو متعلق' چه کومه حصه ده د هغے تفصيل به کتاب البوع او کتاب اللباس کښې رازي.

باب ۳۸۱: لَا تُتَحَرّٰى الصَّلٰوةَ قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ.

باب ۳۸۱: ذَ نمر پريوتو نه مخکښې دے ذَ مونځ قصد نهٔ کوي.

۵۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَايَتَحَرّٰى اَحَدُكُمْ فَيُصَلِّيْ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَلَا عِنْدَ غُرُوْبِهَا.

۵۵۵: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع ابن عمر روايت کوي' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' تاسو کښې دے هيڅوک ذَ نمر ختو او ذَ نمر پريوتو په وخت ذَ مونځ کولو اراده نهٔ کوي.

۵۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ حُمْرَانَ بْنَ اَبَانٍ يُحَدِّثُ عَنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اِنَّكُمْ لَتُصَلُّوْنَ صَلٰوةً لَقَدْ صَحِبْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَاَيْنَاهُ يُصَلِّيْهِمَا وَلَقَدْ نَهٰى عَنْهُمَا يَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ.

۵۵۷: محمد بن ابان' غندر' شعبه ابو التياح. حمران بن ابان. معاويهؓ نه روايت کوي' هغهٔ اووے (اے خلقو) تاسو يو داسے مونځ کوئ' چه مونږ ذَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذَ صحبت بيامندو باوجود حضورؐ په دے مونځ کولو نه دے ليدلے او يقيناً حضورؐ ذَ دے نه ممانعت فرمائيلے دے' يعني ذَ مازيگر نه پس ذَ دوه رکعاتونه.

۵۵۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ خُبَيْبٍ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلٰوتَيْنِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ.

۵۵۸: محمد بن سلام. عبده. عبيداللّٰه خبيب. حفص بن عاصم. ابوهريرهؓ روايت کوي هغهٔ اووے' چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذَ دوو مونځونو نه ممانعت فرمائيلے دے. ذَ سحر نه پس ذَ نمر ختو پورے' او ذَ مازيگر نه پس ذَ نمر ډوبيدو پورے.

باب ۳۸۲: مَنْ لَمْ يَكْرَهِ الصَّلٰوةَ اِلَّا بَعْدَ الْعَصْرِ وَالْفَجْرِ رَوَاهُ عُمَرُ وَابْنُ عُمَرَ وَاَبُوْ سَعِيْدٍ وَّ اَبُوْ هُرَيْرَةَ.

باب ۳۸۲: دَهغې سړي بيان چه هغه صرف دَ مازيګر او سحر دَ فرض نه پس مونځ کول مکروه ګنړلي دي. دا عمر، ابن عمر، ابو سعيد او ابوهريرهؓ روايت کړې دي.

۵۵۹: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اُصَلِّيْ كَمَا رَاَيْتُ اَصْحَابِيْ يُصَلُّوْنَ لَا اَنْهٰى اَحَدًا يُصَلِّيْ بِلَيْلٍ اَوْ نَهَارٍ مَا شَاءَ غَيْرَ اَنْ لَا تَحَرَّوْا طُلُوْعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبَهَا اَصْحَابِيْ يُصَلُّوْنَ لَا اَنْهٰى اَحَدًا يُصَلِّيْ بِلَيْلٍ اَوْ نَهَارٍ مَاشَاءَ غَيْرَ اَنْ لَا تَحَرَّوْا طُلُوْعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبَهَا.

۵۵۹: ابوالنعمان. حماد بن زيد. ايوب نافع. ابن عمرؓ روايت کوي، هغه اووې، څنګه چه ما خپل ملګري په مونځ کولو ليدلي دي، هغسې ئې زه ادا کوم. زه څوک نه منع کوم، چه ورځ او شپه کښې څومره غواړي، مونځ دې کوي. البته دا ضرور وايم چه دَ نمر ختو په وخت دَ مونځ قصد مه کوئ او نه دَ نمر پريوتو په وخت دَ دې قصد کوئ [۱].

۱. د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب د اوقاتو مکروهه په حقله مخکښې بيان شويدې د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د زوال وخت په مکروه وختونو کښې داخل نه دې د امام مالک د مسلک څلور وخته دي چه په هغې کښې مونځ مکروهه دې. امام بخاري رحمة الله عليه د امام مالک رحمة الله عليه د مسلک د تائيد د پاره د باب سر ليک کښې د دوو وختونو ذکر کړيدې د صبا او د مازيګر د مونځ نه روستو، ليکن پدې کښې د نمر د ختلو او د نمر د پريوتلو وختونه ښکاره رازي. د زوال په وخت د مونځ کولو نه منعه په صحيح احاديثو سره ثابته ده. خو امام بخاري رحمة الله عليه ته داسې روايت ملاؤ شوې نه دې چه دَده په شرطونو پوره وي.

باب ۳۸۳: مَا يُصَلِّيْ بَعْدَ الْعَصْرِ مِنَ الْفَوَائِتِ وَنَحْوِهَا وَقَالَ كُرَيْبٌ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الْعَصْرِ الرَّكْعَتَيْنِ وَقَالَ شَغَلَنِيْ نَاسٌ مِّنْ عَبْدِ الْقَيْسِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ.

باب ۳۸۳: دَ مازيګر دَ مونځ نه پس دَ قضا مونځونو او دَدې په ان دَ نورو مونځونو کولو بيان. او کريب دَ ام سلمهؓ نه نقل کړې دې، چه نبي صلي الله عليه وسلم دَ مازيګر (دَ مونځ) نه پس دوه رکعته اوکړل، او، وې فرمائيل، چه ماته دَ (قبيلهٔ) عبدالقيس خلقو دَ ماسپښين نه پس دَ دوو رکعتو موقع رانه کړه.

۵۶۰: حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ ابْنُ اَيْمَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ اَنَّهٗ سَمِعَ عَآئِشَةَ قَالَتْ وَالَّذِيْ ذَهَبَ بِهٖ مَاتَرَكَهُمَا حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ وَمَا لَقِيَ اللّٰهَ حَتّٰى ثَقُلَ عَنِ الصَّلٰوةِ وَكَانَ يُصَلِّيْ كَثِيْرًا مِّنْ صَلٰوتِهٖ قَاعِدًا تَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْهِمَا وَلَا يُصَلِّيْهِمَا فِي الْمَسْجِدِ مَخَافَةَ اَنْ يُّثَقِّلَ عَلٰى اُمَّتِهٖ وَكَانَ يُحِبُّ مَايُخَفِّفُ عَنْهُمْ.

۵۶۰: ابو نعيم، عبدالواحد بن ايمن، ايمن ذ بي بي عائشےؓ نه واوريدل، چه په هغه (ذات) م ذي قسم وي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ئي ذ دُنيا نه واخست، حضورؐ ذ خپل وفات وخت پورے ذ مازيگر (ذ مونځ) نه پس دوه رکعاته ادا كول هيڅ كله نهٔ وو پريښي، او كوم وخت چه حضورؐ الله سره يو ځائے شو (يعني ذ وفات ذ وخت پورے) ذ عمر ذ ضُعف په وجه ذ حضورؐ دا حالت وو، چه حضورؐ مونځ كښې ستړے كيدو، نو خپل ډير مونځونه به ئي په ناسته كول، او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دا دواړه يعني ذ مازيگر نه پس دوه ركعاته (هميشه) كول، خو كور كښې به ئي كول، ذ دے خوف نه چه ذ حضورؐ اُمت ته گرانه نهٔ شي، ځكه چه حضورؐ به هغه خبره خوښوله، چه ذ هغوي په امت آسانه وي.

۵۶۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا يَابْنَ اُخْتِيْ مَاتَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّجْدَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ عِنْدِيْ قَطُّ.

۵۶۱: مسدد، يحيٰي، هشام، عروهؓ روايت كوي، چه بي بي عائشےؓ او فرمائيل، اے خما وراره، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ذ مازيگر نه پس دوه ركعاته خما كور كښې هيڅ كله نهٔ دي پريخولي.

۵۶۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ ثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَسْوَدِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ رَكْعَتَانِ لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَعُهُمَا سِرًّا وَّ لَاعَلَانِيَةً رَكْعَتَانِ قَبْلَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ وَرَكْعَتَانِ بَعْدَ الْعَصْرِ.

۵۶۲: موسٰي بن اسماعيل، عبدالواحد، شيباني، عبدالرحمن بن اسود، بي بي عائشهؓ روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به دوه ركعاته پټ او ښكاره هيڅ كله نهٔ پريخودل دوه ركعاته ذ سحر ذ مونځ نه مخكښې او دوه ركعاته ذ مازيگر ذ مونځ نه پس....

۵۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۵۶۳: محمد بن عرعره، شعبه، ابو

عَـرْعَـرَةَ قَـالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَـالَ رَاَيْتُ الْاَسْوَدَ وَمَسْرُوْقًا شَهِدَا عَـلٰى عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايَاْتِيْنِيْ فِيْ يَوْمٍ بَعْدَ الْعَصْرِ اِلَّا صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

اسـحـاق روايـت كـوي چـه مـا اسـود او مـسـروق دَ بـي بـي عـائشـےؓ دَدے قـول گـواهـي وركونكي اوليدل' هغـے او فـرمـائيل' نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دَ مازيگر نـه پـس چـه كـلـه مـالـه راتلونو دوه ركعاته به ئے ضرور ادا كول(۱).

۱ . د مـازيـگـر د مونخ نه روسعو دَ دوو ركعاتونو ادا كولو' امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دے باب كښ څلور روايته ذكر كړيدي. او دے ټولو كښ آخري واسطه حضرت عائشه بي بي رضي اللّٰه عنها ده. د دے نـه مـعـلـوميږي چه نبي عليه الصلاة والسلام به د مازيگر نه روستو دا دوه ركعته پوره پابندئ سره ادا كول. لـيـكـن پـخپـلـه د حـضرت عائشے بي بي رضي اللّٰه عنها نه دا روايت دے . چه دا د نبي عليه الصلاة والسلام خـصـوصيت وو ډير عبادتونه داسے وو چه نبي عليه الصلاة والسلام به هغه پخپله ادا كول ليكن د امت نورو خـلـقـوتـه د هـغـے اجـازت نـه وو لكه څو ورځے پرله پسے روژه نيول' چه هغے كښ به مابنام روژه ماتے او پيشـمـنے نه وو. چه هغے ته "صوم الوصال" ويلے شي. د نبي عليه الصلاة والسلام نه علاوه دا چاته د داسے روژے اجازت نشـتـه بـعـضـے رواياتو كښ دا هم شته چه پخپله حضرت عائشے بي بي رضي اللّٰه عنها ته دا معلومات نه وو بلكے هغے دا د اُم سلمه بي بي رضي اللّٰه عنها نه اوريدلے وو. يو ځلے څو كسانو د حضرت عـائـشـه بـي بي رضي اللّٰه عنها نه د دے په حقله پښتنه اوكړه نو هغے هغه كسان حضرت اُمِّ سلمة رضي اللّٰه عنها سره اوليږل. ام سلمه بي بي رضي اللّٰه عنها وائي چه دوه سنت ركعتونه د ماسپخين د مانځه نه روستني ئے د قضا په طور د مازيگر د مونخ نه روستو ادا كړي وو اَمِّ سلمه بي بي رضي اللّٰه عنها تپوس اوكړو. اے د اللّٰه رسوله كه خمونږ نه دا دوه ركعاته سنت قضا شي نو بيا په دے وخت (د مازيگر نه روستو) مونږ ته د ادا كـولـو اجـازت دے؟ نـبـي عليه الصلاة والسلام او فرمايل "نه" حضرت عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنهما نه هم دے باب كښ يو روايت شته هغه فرمايلے دي". "يو ځلے د نا اوزګارتيا په وجه نبي عليه الصلاة والسلام د مـاسـپـخـين دوه ركـعـتـه سـنت مونخ نه وو ادا كړے . بيائے د مازيگر د مونخ نه روستو قضا ادا كړے وو". بيائے دا مونخ چرے نه وو ادا كړے د حضرت عائشے بي بي رضي اللّٰه عنها نه چه كوم احاديث په دے حقله نـقـل شـويـدي. هغے نه دا ثابتيږي چه نبي عليه الصلاة والسلام هميشه دا دوه ركعته پابندئ سره ادا كول. ډيـرو لـويـو محدّثينو په دے حقله شك كړيدے او ددے په څوراويانوئے تنقيد كړيدے . ترمذي رحمة اللّٰه عـلـيـه ليكلے دي. چه په دے مسئله د علماؤ اجماع او اتفاق دے چه د مازيگر نه روستو د نمر پريوتلو' او د صبا دمـونـخ نه روستو تر نمر ختلو پورے مونخ مكروهه دے سيوا د څو خاص مونځونونه وجه ئے داده. چه د نـمـر د پـريـوتـلو او د نمر د ختلو وخت دا د مشركانو د عبادت وختونه دي. د صبا دمونخ او د مازيگر د مـونـخ نـه روسـتـو مـونـخ كولو كښ دا خطره ده چه هسے نه چرته په دغه منعه شوي وختونو (د نمر د ختلو' پـريـوتـلـو) كـښ څوك عبادت اونه كړي. خكه چه د مشركانو سره مشابهت به راشي. په دے وجه ئے به پوره وختونو پابندي اولگوله. نبي عليه الصلاة والسلام د شرعي احكامو نه پوره خبردار وي. نو ددے وجے د هغه د پاره اجازت دے.

باب ۳۸۴: اَلتَّبْكِيْرِ بِالصَّلٰوةِ فِيْ يَوْمٍ غَيْمٍ.

باب ۳۸۴: دَ وريځې په ورځو کښې مونځ دَ وخته کولو بيان.

۵۶۴: حَدَّثَنَا مُعَاذُبْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى هُوَا بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّ اَبَا الْمَلِيْحِ حَدَّثَهُ قَالَ كُنَّا مَعَ بُرَيْدَةَ فِيْ يَوْمٍ ذِيْ غَيْمٍ فَقَالَ بَكِّرُوْا بِالصَّلٰوةِ فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَكَ صَلٰوةَ الْعَصْرِ حَبِطَ عَمَلُهُ.

۵۶۴: معاذ بن فضاله، هشام، يحيٰي بن ابي كثير، ابو قلابه ابو المليح روايت كوي، چه يوه ورځ مونږ د باران په ورځ بريده سره ملګري وو، او مونځ مو دَ وخته او كۀ ځكه چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، چه چا دَ مازيګر مونځ پريښود، نو پوه شه، چه دَ هغه نيک عمل ضائع شو.

باب ۳۸۵: اَلْاَذَانِ بَعْدَ ذَهَابِ الْوَقْتِ.

باب ۳۸۵: دَ وخت تيريدو نه پس دَ مونځ دَ پاره دَ آذان كولو بيان.

۵۶۵: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ قَالَ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سِرْ نَامَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ لَوْ عَرَّسْتَ بِنَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَخَافُ اَنْ تَنَامُوْا عَنِ الصَّلٰوةِ قَالَ بِلَالٌ اَنَا اُوْقِظُكُمْ فَاضْطَجَعُوْا وَاَسْنَدَ بِلَالٌ ظَهْرَهُ اِلٰى رَاحِلَتِهِ فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ فَنَامَ فَاسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ طَلَعَ حَجِبُ الشَّمْسِ فَقَالَ يَابِلَالُ اَيْنَ مَاقُلْتَ قَالَ مَا اُلْقِيَتْ عَلَيَّ نَوْمَةٌ مِثْلُهَا قَطُّ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَبَضَ

۵۶۵: عمران بن ميسره، محمد بن فضيل حصين، عبداللّٰه بن ابي قتادة، ابو قتاده روايت كوي چه يو ځل مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره دَ شپې سفر او كۀ، نو بعضې خلقو اووې، كاش چه حضورؐ آخير شپې نه مونږ ته ولو سره آرم كړې وې (نو څو مره به ښۀ وې) حضورؐ او فرمائيل، ما سره دا ويره ده چه تا سو چرته دَ سحر د مونځ نه غافل شئې او اودۀ نه شئې. بلالؓ اووې، چه زۀ به تاسو ته ول پاسوم، نو ټول سملاستل، او بلالؓ خپله شا اوښې سره اولږوله او كيناست خو په هغۀ باندې هم خوب غالب شو، او هغه هم اوده شو. نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم داسې وخت را بيدار شو، چه دَ نمر څنډه راختلې وه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، اې بلالؓ ستا هغه وينا څۀ شوله. هغۀ عرض اوكړو يا رسول اللّٰه، داسې خوب هيڅرې په ما غالب شوې نۀ وو (لكه چه نن شپه په ما غالب شو) حضورؐ او فرمائيل (ربښتيا دي) اللّٰه چه كله ستاسو روحونه او غوښتل، قبض ئې كړل، او كوم

ازواحکم حین شآء یا بلال قم فاذن بالناس بالصلوة فتوضأ فلما ارتفعت الشمس وابیاضت قام فصلی.

وخت خو درے غوښتل نو واپس نے کړل. اے بلاله پاسه او مونځ د پاره آذان اوکه. بیا حضور اودس اوکړو او کوم وخت چه نمر اوچت او سپین شو نو حضور اودریده او مونځ نے اوکه.

۱. ابو داود شریف کښې یو حدیث شریف کښې دي "که چرے چا بنده نه مونځ هیر شو نو چه کله ورته یاد شي هغه وخت دے ادا کړی. په دویمه ورځ چه کله هغه وخت راشي نو بیا دے دوباره د قضا په طور ادا کړی" امام بخاري رحمة الله علیه ددے باب د سر لیک د هغې روایت د تردید د پاره لیکلے دے علماو دا حدیث شریف ضعیف کړلے دے او لیکلے دي چه سلفو (پخواني عالمانو) کښې هیڅ چا دوباره قضا ادا کول مستحب نه گڼرو. صرف علامه خطابي دوباره قضا ادا کول مستحب گڼري. او علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه د علامه خطابي د رائے تائید کوي. هغه لیکلي دي "چه د حضرت امام ابو حنیفه رحمة الله علیه نه یو ځل یو مونځ قضا شوے وو نو هغه به دهغې مونځ په وخت د څه زمانے پورے هغه مونځ بیا بیا قضا ادا کوو". د دے وجے نه په وخت باندے د مونځ ادا کولو اهمیت زبات واضح کیږي.

۲. مونځ په اصل کښې ذکر دے (د الله تعالي یادول دي) ددے حدیث بیانولو په وخت نبی علیه الصلاة والسلام ددے آیت شریف حکه تلاوت اوکړو. "چه څرنګ د الله تعالي دد یادولو د پاره څه خاص وخت مقرر نه دے چه کله د بنده خوښه وي الله تعالي دے یاد کړي. دغسے چه کله مونځ قضا شي او بیا کله یاد شي نو ادا دے کړي". لیکن دا خیال ضرور ساتل دي. چه د یادیدو وخت دے داسے نه وي چه په کومو وختونو کښې مونځ ادا کول منعه دي. دا شرط احنافو علماؤ لګولے دے لیکن ډیر عالمان د قضا مونځ د پاره دا شرط نه مني

## باب ۳۸۶: مَنْ صَلّٰى بِالنَّاسِ جَمَاعَةً بَعْدَ ذَهَابِ الْوَقت.

باب ۳۸۶: د هغے سړي بیان چه د وخت تیریدو نه پس خلقو ته جماعت سره مونځ ورکړي.

۵۲۲: حَدَّثَنَا مُعَاذُبْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ جَآءَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ بَعْدَ مَاغَرَبَتِ الشَّمْسُ فَجَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ قَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا كِدْتُ اُصَلِّى الْعَصْرَ حَتّٰى كَادَتِ الشَّمْسُ تَغْرُبُ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا صَلَّيْتُهَا فَقُمْنَا اِلٰى بُطْحَانَ ...... فَتَوَضَّأَ لِلصَّلٰوةِ

۵۲۲: معاذ بن فضاله، هشام، یحیي، ابو سلمه، جابر بن عبدالله روایت کوي چه غزوه خندق کښې د نمر پریوتو نه پس حضرت عمر قریشو ته بد رد وئیلے د حضور خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکه یا رسول الله ما د ما زیګر مونځ او سه پورے نه دے کړے. نبي صلي الله علیه وسلم ورته او فرمائیل چه ما هم والله د مازیګر مونځ نه دے کړے. بیا مونږ ټول بطحان طرف ته متوجه شو. حضور او مونږ ټولو هم د مانځه د پاره اودس اوکه.

وَتَوَضَّأْ نَالَهَا فَصَلَّى الْعَصْرَ بَعْدَ مَاغَرَبَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ.

بیا حضور د نمر پریوتو نه پس اول د مازیګر مونځ اوکه او هغے نه پس نے د ماښام مونځ ادا کړ.

**باب ۳۸۷: مَنْ نَسِيَ صَلٰوةً فَلْيُصَلِّ اِذَا ذَكَرَ وَلَا يُعِيْدُ اِلَّا تِلْكَ الصَّلٰوةَ** وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ مَنْ تَرَكَ صَلٰوةً وَّاحِدَةً عِشْرِيْنَ سَنَةً لَمْ يُعِدْ اِلَّا تِلْكَ الصَّلٰوةَ الْوَاحِدَةَ.

**باب ۳۸۷:** د هغے سړی بیان چه یو مونځ ترے هیر شي نو څه وخت چه ورته یاد شي او دے کړي او صرف دغه مونځ دے اوکړي. ابراهیم اووے چه کوم سړے یو مونځ ترک کړي او شل کاله پورے هغه مونځ ادا نه کړي نو بیا به هم هغه صرف دغه مونځ کوي

۵۶۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ وَمُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَا حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نَسِيَ صَلٰوةً فَلْيُصَلِّ اِذَا ذَكَرَ لَا كَفَّارَةَ لَهَا اِلَّا ذٰلِكَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ قَالَ مُوْسٰى قَالَ هَمَّامٌ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ بَعْدَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ وَقَالَ حَبَّانُ ثَنَا هَمَّامٌ ثَنَا قَتَادَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

۵۶۷: ابو نعیم او موسي بن اسماعیل همام، قتاده، انس بن مالک د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوی. حضور او فرمائیل د چا نه چه یو مونځ هیر شي نو هغه له پکار دي چه کله ورته یاد شي او د ګزاري. د دے کفاره دغه ده. اللّٰه پاک فرمائي چه خما د یاد د پاره مونځ کوئے. او حبان اووے چه موږ د همام نه، هغه د قتاده نه، هغه د انس بن مالک نه او هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه د دے په مثل روایت کړے دے.

**باب ۳۸۸: قَضَاءِ الصَّلَوَاتِ الْاُوْلٰى فَالْاُوْلٰى**

**باب ۳۸۸:** د قضا مونځونو ترتیب سره د کولو بیان

۵۶۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى هُوَ ابْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ جَعَلَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ يَسُبُّ

۵۶۸: مسدد، یحیي، هشام، یحیي بن ابي کثیر، ابو سلمه، جابر روایت کوي چه حضرت عمر د غزوه خندق په ورځ قریشو ته بد رد ونیل شروع کړل او وے ونیل چه ما د نمر پریوتو پورے (د هغوي په وجه) د مازیګر

كُفَّارَهُمْ فَقَالَ مَا كِدْتُ أُصَلِّي الْعَصْرَ حَتّٰى غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ فَنَزَلْنَا بُطْحَانَ فَصَلّٰى بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى الْمَغْرِبَ.

مونخ او نه كړے شو جابرٌ وائي. بيا مونږ خلق مقام بطحان ته لاړو، بيا هغوي نمر پريوا ته نه پس دَ مازيګر مونخ او كړهٔ، او هغے پسے ئے دَ ماښام مونخ او كړهٔ.

ا . كله چه ډير مونخونه قضا شوي وي. نو ددے حديث شريف د وجے نه امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په قضا شوؤ مونخونو كښ ترتيب واجب ګڼړي. لكه مثلا اول د ماسپخين مونځ قضا وؤ. اول به هغه ادا كړي بيا د مازيګر بيا د ماښام او داسے وړپسے . د امام مالك رحمة الله عليه هم دا مذهب دے ليكن نور امامان صاحبان ترتيب مستحب ګڼړي. واجب ئے نه مني. نبي عليه الصلاة والسلام د خندق د غزا په موقعه ترتيب سره مونځونه ادا كړي وؤ ليكن د ترتيب واجب يا مستحب كيدو فيصله مجتهدينو امامانو رحمة الله عليهم د شرعي دلائلو په رڼړا كښ كړيده.

## بَاب ۳۸۹: مَا يُكْرَهُ مِنَ السَّمَرِ بَعْدَ الْعِشَآءِ اَلسَّامِرُ مِنَ السَّمَرِ وَالْجَمِيْعُ السُّمَّارُ وَالسَّامِرُ هٰهُنَا فِيْ مَوْضِعِ الْجَمِيْعِ.

باب ۳۸۹: دَ ماسختن دَ مونځ نه پس خبرے كول مكروه دي، سامر، دَ سمر، نه ما خوذ دے. او جمع ئے سمّار ده، او سامر دلته دَ جمع په معنو كښ راغلے دے ١.

ا . امام ترمذي رحمة الله عليه د حضرت عمر رضي الله عنه د يو حديث شريف روايت كړيدے. "چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر صديق رضي الله عنه به د ماسختن د مونځ نه روستو د مسلمانانو د معاملاتو په حقله خبرے كولے اوزهٔ به پكښ هم شريك وم" په عامو حالاتو كښ د ماسختن د مونځ نه پس اوده كيدل پكار دي. كه چرے څه د نيكئ كار پيښ شي يا څه د علم او د دين كار وي. نو بيا د ماسختن د مونځ نه پس ويخ پاتے كيدلو كښ ګناه نشته په دے شرط چه پكښ دا خطره نه وي چه د صبا د جمعے مونځ به پاتے شي.

۵۲۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الْمِنْهَالِ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ اَبِيْ اِلٰى اَبِيْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ فَقَالَ لَهٗ اَبِيْ حَدِّثْنَا كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ الْمَكْتُوْبَةَ قَالَ كَانَ يُصَلِّي الْهَجِيْرَ وَهِيَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْاُوْلٰى

۵۲۹: مسدد، يحيٰي، عوف، ابو منهال روايت كوي، چه زهٔ خپل پلار سره ابو برزه اسلمي له ورغلم، هغه ته خما پلار اووے، مونږ ته بيان او كړه، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به فرض مونځ څنګه كولو. هغهٔ اووے، هجير چه هغے ته تاسو وړمبنے مونځ وائے، دَ نمر زوال سره به ئے ادا كولو، او دَ مازيګر مونځ به ئے داسے وخت كولو، چه مونږ كښ به څوا حضورٌ سره مونځ او كړهٔ او دَ مدينے اطرافو ته به خپل كور ته واپس كيدلو، نو هم نمر به بالكل

حِيْنَ تَدْحَضُ الشَّمْسُ وَيُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَرْجِعُ اَحَدُنَآ اِلٰى اَهْلِهٖ فِيْ اَقْصَى الْمَدِيْنَةِ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَّنَسِيْتُ مَاقَالَ فِي الْمَغْرِبِ قَالَ وَكَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَالْحَدِيْثَ بَعْدَ هَا وَكَانَ يَنْفَتِلُ مِنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ حِيْنَ يَعْرِفُ اَحَدُنَا جَلِيْسَهٗ وَيَقْرَاُ مِنَ السِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ.

صاف وو (ابو منهال وائي) ما نه هير شو' چه ذَ ماښام باره كښې هغهٔ څهٔ اووے' ابو برزه وائي' چه حضورٌ به ذَ ماسختن مونځ تخير سره كول خوښول' او وے وئيل چه ذَ ماسختن نه مخكښې اودهٔ كيدل او ذَ هغے نه پس خبرے كول ئے مكروه ګڼړل' او ذَ سحر ذَ مونځ نه (فراغت نه) پس به حضورٌ داسے وخت واپس كيدلو' چه مونږ كښې به هر يو خوا كښې سرے پيژندلو او ذَ سحر مونځ كښې به حضورٌ ذَ شپيتو آيتونو نه تر سلو آيتونو پورے لوستل.

## بَاب ۳۹۰: السَّمَرِ فِي الْفِقْهِ وَالْخَيْرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ.

## باب ۳۹۰: ذَ دينـي مسائلو او ذَ نيكئے خبرے متعلق ذَ ماسختن ذَ مونځ نه پس ذَ خبرو اترو كولو بيان.

۵۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الصَّبَّاحِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَلِيِّ نِ الْحَنَفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ انْتَظَرْنَا الْحَسَنَ وَرَاثَ عَلَيْنَا حَتّٰى قَرُبْنَا مِنْ وَقْتِ قِيَامِهٖ فَجَآءَ فَقَالَ دَعَانَا جِيْرَانُنَا هٰؤُلَآءِ ثُمَّ قَالَ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ نَظَرْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ حَتّٰى كَانَ شَطْرُ اللَّيْلِ يَبْلُغُهٗ فَجَآءَ فَصَلّٰى لَنَا ثُمَّ خَطَبَنَا فَقَالَ اَلَآ اِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلُّوْا ثُمَّ رَقَدُوْا وَاِنَّكُمْ لَمْ تَزَالُوْا فِيْ صَلٰوةٍ مَّا انْتَظَرْتُمُ الصَّلٰوةَ قَالَ الْحَسَنُ وَاِنَّ الْقَوْمَ لَايَزَالُوْنَ فِيْ خَيْرٍ مَّا انْتَظَرُوا الْخَيْرَ قَالَ قُرَّةُ هُوَمِنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۷۰: عبداللّٰه بن صباح' ابو علي حنفي' قره بن خالد روايت كوي' چه مونږ ذَ حسن بصري انتظار كولو' هغهٔ راتلو كښې دومره تاخير اوكهٔ' چه ذَ هغهٔ جمات نه ذَ پاسيدو وخت نزدے شو. بيا هغه راغے او وے وئيلﷺ' چه زهٔ خپلو ګوانډيانو غوښتے ووم' په دے وجه را باندے ناوخته شو. بيا هغهٔ اووے' انس بن مالكؓ ما ته اووے' چه مونږ يوه شپه ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم انتظار اوكهٔ' تر دے چه نيمه شپه شوه. بيا حضورٌ تشريف راوړلو' او مونږ ته ئے مونځ راكه. بيا حضورٌ مونږ ته مخاطب شو' او' دے فرمائيل' چه تاسو ذَ مانځه انتظار كښې يئے ذَ دے حديث ذَ مخه خپله ذَ حسن بصري قول دے' چه څو پورے خلق ذَ نيكئ كولو په انتظار كښې وي' نو هغوي ذَ هغے نيكي كولو ثواب بيا مومي۲ قره اووے' ذَ حسن دا قول ذَ انس په حديث كښې داخل دے.

۱ د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه دا عادت وو چه د ماسختن د مونځ نه پس به ئې جومات کښې درس ورکولو. يو شپه دومره ناوخته راغې چه د نورو شپو په حساب د هغه د درس د ختميدو وخت وو بيا حضرت حسن بصري رحمة الله عليه خلقو ته صحبت شروع کړو. او وې فرمايل: چه يو ځل نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو ځل د ماسختن مونځ ډير روستو کړو. بيا يې اوويل: خلقو مونځ ادا کړو يا اوده شو. او تاسو چه څومره انتظار اوکړو دا ټول انتظار په مونځ کښې حساب دے. دا حديث شريف محکښې تير شويدے. د دغه ناښيري چه د ماسختن د مونځ نه روستو د دين او د فائدے خبرے کول روا دی.

۲ دا د شريعت مستقل اصول دي چه د څيګړے د کار د پاره انتظار کونکے په هغه عمل کښې داخل او د هغے کار کونکے حسابيږی. (فيض الباري جلد ۲ ص ۱۵۲)

۱۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ وَاَبُوْبَكْرِ بْنُ اَبِيْ حَثْمَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الْعِشَآءِ فِيْ اٰخِرِ حَيٰوتِهٖ فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَرَءَيْتَكُمْ لَيْلَتَكُمْ هٰذِهٖ فَاِنَّ رَاْسَ مِائَةِ سَنَةٍ لَّا يَبْقٰى مَنْ هُوَ الْيَوْمَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَحَدٌ فَوَهَلَ النَّاسُ فِيْ مَقَالَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى مَا يَتَحَدَّثُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْاَحَادِيْثِ عَنْ مِّائَةِ سَنَةٍ وَاِنَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبْقٰى مِمَّنْ هُوَ الْيَوْمَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ اَنَّمَا تَخْرِمُ ذٰلِكَ الْقَرْنُ.

۱۷۵: ابو اليمان. شعيب. زهري. سالم بن عبدالله بن عمرو بن ابوبکر بن ابي حثمه. عبدالله بن عمر روايت کوي چه نبي صلے الله عليه وسلم (يو ځلے) د ماسختن مونځ خپل آخري ژوند کښې اوکه. چه سلام ئے اوګرځولو، نو نبي صلے الله عليه وسلم اودريدلو او وے فرمايل: چه تاسو د خپلے دے شپے د حال متعلق خمانه واورئ، چه سل کاله پس کوم سړے چه نن د زمکے په مخ دے، هيڅوک به په کښې باقي پاتے نشي. (ابن عمرؓ) وائي چه خلقو د نبي صلے الله عليه وسلم د دے ارشاد په پوهيدلو کښې غلطي اوکړه. او د سلو کالو وضاحت کولو کښې نورو خبرو ته ئے خيال زغلول شروع کړل. دغه خيال هغوي (د حديث په تفسير کښې) بيانوي، حالانکه نبي صلے الله عليه وسلم دا فرمايلے وو، چه څوک نن په زمکه (موجود) دي، هغوي کښې به هيڅوک باقي پاتے نشي. د دے نه د حضورؐ مراد دا وو چه دا صدي (قرن) به تيره شي[۱].

۱. د نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا حديث مبارک چه عامو خلقو ته معلوم شو. نو ډيرو خلقو دا دينا شروع کړه. چه سل کاله پس به قيامت رازي. اصحابو رضي الله عنهم ددے ترديد اوکړو. چه دا غلط خيال دے په ټولو اصحابو رضي الله عنهم کښې د وفات په لحاظ، آخري صحابي ابو الطفيل عامر بن واثله

رضي الله عنـه دے چه هغه ١٠١ه د هجرت يو سل لسم كال كښې وفات شوے وو د نبي كريم صلى الله عليـه وسلـم د پيشين كوئي پوره سل كاله پس. بعضے عالمان دا دليل ددے د پاره پيش كوي چه حضرت خضر عليه السلام وفات شوے دے. حديث شريف كښې بيان د هغے عامو بنديانو په حقله دے چه په مخ د مزكے موجود وو. د حضر عليه السلام په باره كښې دا مشهوره ده چه هغه ژوندے دے.

## بَاب ٣٩١: السَّمَرِ مَعَ الْأَهْلِ وَالضَّيْفِ.

## باب ٣٩١: كـور بـنو او ميلمنو سره د ماسختن نه پس د خبرو اترو كولو بيان.

٥٧٢ : حَـدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَـدَّثَـنَا مُعْتَمِرُبْنُ سُلَيْمَانَ ثَنَا أَبِيْ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا أَبُوْ عُثْمَـانَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰـنِ بْـنِ أَبِـيْ بَـكْرٍ أَنَّ أَصْحَابَ الصُّـفَّةِ كَانُوْا أُنَاسًا فُقَرَآءَ وَأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَـانَ عِـنْـدَهُ طَـعَـامُ اثْنَيْنِ فَلْيَذْهَبْ بِثَـالِثٍ وَإِنْ أَرْبَعٌ فَخَامِسٌ أَوْسَادِسٌ وَإِنَّ أَبَا بَـكْرٍ جَآءَ بِثَلَاثَةٍ وَانْطَلَقَ النَّبِيُّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَشْرَةٍ قَالَ فَهُوَ أَنَا وَأَبِيْ وَأُمِّيْ وَلَآ أَدْرِيْ هَلْ قَالَ وَامْـرَأَتِـيْ وَخَـادِمٌ بَيْـنَ بَيْتِنَا وَبَيْتِ أَبِـيْ بَـكْـرٍ وَإِنَّ أَبَـابَـكْـرٍ تَعَشَّى عِنْدَ الـنَّبِـيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لَبِـثَ حَيْـثُ صُـلِّيَتِ الْعِشَآءُ ثُمَّ رَجَعَ فَـلَبِثَ حَتّٰى صُلِّيَتِ الْعِشَآءُ ثُمَّ رَجَعَ فَـلَبِثَ حَتّٰى تَغَشَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ بَعْدَ مَا مَضٰى مِنَ الـلَّيْـلِ مَاشَآءَ اللّٰهُ قَالَتْ لَهُ امْرَأَتُهُ مَا حَبَسَكَ عَـنْ أَضْيَـافِكَ أَوْقَـالَتْ ضَيْفِكَ قَـالَ أَوَمَـا عَشَّيْتِهِـمْ قَـالَتْ أَبَوْا حَتّٰى

٥٧٢ : ابـو النعمان، معتمر بن سليمان، سليمان، ابو عثمـان، عبـدالرحمن بن ابو بكر روايت كوي چه اصحاب صفـه غريب خلق وو، او نبي صلى الله عليه وسلم فرمانيلے وو، چه چا سره د دوو سړو طعام وي، هغه دے دريم (د دوي نه بوځي) او كه د څلورو كسانو طعام وي، نو پنځم يا شپږم دے (دوي كښې) بوځي. ابو بكر درے كسان بوتلل، او نبي صلى الله عليه وسلم لس كسان بوتلل. عبدالرحمن واني چه زه وم، خما پلار وو او خما مور وه، او زه نه پوهيږم چه هغه دا هم اووے (يا نه) چه خما بي بي او خما خادم هم وو، چه خموږ په كور كښې او د ابو بكر په كور كښې مشترك خادم وو (يو ورځ) ابو بكر حضور سره ډوډئ او خوړه او هلته يې د ماسختن مونځ هم اوكړ، دے نه پس هم دومره ايسار شو لو، چه حضور آرام هم اوكړلو، بيا خپل كور ته راغے. يا سو هغه ته د هغه بي بي اووے، چه ته ستا د ميلمنو نه چا ايسار كړے وے، يا داسے اووے، چه ستا د ميلمه نه هغه ورته اووے، آيا تا هغوي بانديے طعام نه دے خوړولے. هغے ورته اووے، هغوي انكار اوكړ، چه څو پورے تاسو نه يے راغلے، نو هغے پورے به ډوډئ نه خوري. هغوي ته ډوډئ پيش كړے شوه، خو هغوي او نه خوړله. عبدالرحمن واني چه زه خو د ويرے نه لاړم، پټ شوم، او ابو بكر د غصے نه ما ته بيوقوف او ډيرے رټے سپورے اووے. دے خوړے

ــ

تَجِیٓءَ قَدْ عُرِضُوا فَاَبَوْا قَالَ فَذَهَبْتُ اَنَا فَاخْتَبَأْتُ فَقَالَ يَاغُنْثَرُ فَجَدَّعَ وَسَبَّ وَ قَالَ كُلُوْا لَا هَنِيْئًا لَكُمْ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَطْعَمُهُ اَبَدًا وَّاَيْمُ اللّٰهِ مَا كُنَّا نَأْخُذُ مِنْ لُقْمَةٍ اِلَّا رَبَا مِنْ اَسْفَلِهَا اَكْثَرَ مِنْهَا قَالَ شَبِعُوْا وَصَارَتْ اَكْثَرُ مِمَّا كَانَتْ قَبْلَ ذٰلِكَ فَنَظَرَ اِلَيْهَا اَبُوْ بَكْرٍ فَاِذَا هِيَ كَمَا هِيَ اَوْ اَكْثَرَ فَقَالَ لِامْرَاَتِهٖ يَآ اُخْتُ بَنِيْ فِرَاسٍ مَّا هٰذَا قَالَتْ لَاوَقُرَّةِ عَيْنِيْ لَهِيَ الْاٰنَ اَكْثَرُ مِنْهَا قَبْلَ ذٰلِكَ بِثَلَاثِ مِرَارٍ فَاَكَلَ مِنْهَا اَبُوْبَكْرٍ وَّقَالَ اِنَّمَا كَانَ ذٰلِكَ مِنَ الشَّيْطَانِ يَعْنِيْ يَمِيْنَهٗ ثُمَّ اَكَلَ مِنْهَا لُقْمَةً ثُمَّ حَمَلَهَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَصْبَحَتْ عِنْدَهٗ وَكَانَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمٍ عَقْدٌ فَمَضَى الْاَجَلُ فَفَرَّقْنَا اِثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا مَّعَ كُلِّ رَجُلٍ مِّنْهُمْ اُنَاسٌ وَّاللّٰهُ اَعْلَمُ كَمْ مَّعَ كُلِّ رَجُلٍ فَاَكَلُوْا مِنْهَا اَجْمَعُوْنَ اَوْ كَمَا قَالَ.

ناسوته دِ مبارک شي دے نه پس نے اووے، په الله م دے قسم وي، زه خو به هيڅ کله دا او نه خورم، وائي، په خدائے مودے قسم وي، زه خو به هيڅ کله او نه خورم، وائي، په خدائے مودے قسم وي مونږ چه به کومه نوړۍ آخسته، نو دَ هغے لاندے به هغه زياتيده، عبدالرحمن وائي، چه ميلمانه تـول آسوده شول او طعام چه څومره مخکښ وو، دَ هغے نه زيات پـاتے شو، ابو بکرؓ هغے ته اوکتل، نو هغه هغو مره وو، څـومره چـه مخکښ وو، يا دَ هغے نه هم زيات، نو خپلے بي بي ته ئے او وے، چه اے دَ بني فراس خورے، داڅه معامله ده (هغے ورته اووے) دَ خپلے سترګے په يخ والي م دے قسم وي. يقيناً دا (طعام) دا وخت دَ مخکښ نه درے چنده دے. بيا دَ هغے نه ابو بکرؓ خوراک اوکڅ، او، وے وئيل دا قَسم دَ شيطان دَ طرف نه وو. آخر دَ هغے نه ئے يوه نوړئے اُو خوړله، بيا ئے هغه (طعام) نبي صلي الله عليه وسلم له يوړلو هغه سحر هلته ورسيدلو، او څمونږ او دَ يو قوم په مينځ کښ څۀ عهد وو، دَ هغے موده تيره شوے وه، نو مونږ دولس سړي جدا جدا کړل، هغے کښ هر يو سره څو څو سړي وو، والله اعلم چه هر سړي سره څومره سړي وو، غرض دا چه دَ هغے طعام نه ټولو خوراک اوکڅ (يا عبدالرحمن چه څنګه بيان کړے وي).

۱. حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ميلمانه خپل کورته اوليږل او د کور بنديانو ته ئے خبر اوليږه چه ميلمنوله ډوډۍ خوراک ورکړي. ليکن ميلمانو داغوختله چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه راشي هغه سره به يو ځائے ډوډۍ ته کينو دلته د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا تسلي وه چه ميلمنو ډوډۍ خوړلے ده په دے وجه دا واقعه پيښه شوه.

۲. بل روايت کښ دي چه ټولو په مړه ګيډه ډوډۍ او خوړله او بياهم خوراککښ کمے رانغے. ان شاء الله په دے حديث شريف به تفصيلي بيان بَابُ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ کښ راشي.

# كِتَابُ الْاَذَانِ — دَ آذان بيان

۱. قرطبي رحمة الله عليه ليكلے دي. چه د اَذان كلمات (الفاظ) اگرچه ډير لږ دي خو دا الفاظ د دين بنيادي عقيدے او اعمال ظاهره وي. د ټولونه اولنے لفظ "اَللّٰهُ اَكْبَرُ" دا ښائي. چه الله تعالىٰ موجود دے' شته دے د ټولو نه لوئے دے دا كلمات د لوئے الله تعالىٰ لوئي' عظمت او د ټولو نه د لوئے والي بيان كوي. "اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ" دا كلمه پخپله د اسلام بنيادي عقيده ده او دا كلمه وضاحت كوي چه الله يو' يواځے دے هغه يواځے د عبادت لائق دے بل هيڅوک د عبادت حقدار نشته "اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ" دے كلمه كښې د محمد رسول الله صلي الله عليه وسلم د نبوّت او د رسالت گواهي ده. "حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ" دعوت دے هغه چا ته چه څوک الله تعالىٰ يو مني او محمد صلي الله عليه وسلم د الله تعالىٰ رسول مني هغه دے جومات ته مانځه د پاره راشي چه مونځ په جماعت او امامئ سره ادا كيږي. ددے مونځ د طريقو تعليم رسول الله صلي الله عليه وسلم په خپلے وينا او عمل سره مونږ ته ښودلے دے ددے وجے نه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د رسالت منلونه پس زر دعوت وركړے شو. چه مونځ له راشئ او كله چه بنده مونځ په پوره آدابو سره ادا كړو نو هغه ته كاميابي حاصله شوه. "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" كښې دا بيان دے چه مونځ له راشئ دے كښې ستاسو د پاره' هميشه بقاده او د هميشه ژوند د آخرت د خوشالو او نعمتونو ضمانت وركيږي. راشئ' د الله تعالىٰ نه علاوه بل څوک د عبادت لائق نشته' د الله تعالىٰ د لويئ عظمت او كبريائئ په سوري كښې تاسو ته د دنيا او د آخرت د بدو حالاتو شرونو فسادونو نه پناه دركولے شي. اول هم الله دے آخر هم الله دے د ټول مخلوق خالق او مالک دے يو دے او يواځے د عبادت لائق او حقدار دے. د الله تعالىٰ د ضامن كيدو نه علاوه بل لوئے ضمانت او ذمه واري نشته اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

**باب ۳۹۲: بَدْءِ الْاَذَانِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّ لَعِبًا ج ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ○ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ.**

باب ۳۹۲: دَ آذان شروع كولو بيان. او دَ الله تعالىٰ ارشاد دے' او كله چه تاسو دَ مانځه دَ پاره اعلان كوئ' نو هغوي دے پورے ټوقے مسخرے كوي' دا په دے سبب چه هغوي نادانان[۱] خلق دي او دَ الله تعالىٰ قول: چه هر كله دَ جُمعے په ورځ دَ (جمعے) دَ مونځ اذان اوشي.

۱. بعضے مفسرينو ليكلے دي چه كله اذان اول اول شروع شو. نو يهوديانو اوويل. چه محمد صلي الله عليه وسلم داسے نوے كار (بدعت) شروع كړيدے چه پخوا نه وؤ نو ددے په رد كښې الله تعالىٰ دا آيت شريف نازل كړو.

**۵۷۳: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ**

۵۷۳: عمران بن ميسره' عبدالوارث خالد' ابو قلابه' انس روايت كوي' چه دَ مونځ (دَ اعلان) دَ پاره خلقو اُور او ناقوس تجويز كه' بيا يهود او نصاري ته ذهن

قَالَ ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوسَ فَذَكَرُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰى فَأُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَّشْفَعَ الْأَذَانَ وَأَنْ يُّوْتِرَ الْإِقَامَةَ.

او ګرځید (چه دا کارونه هغوي کوي) بیا بلالؓ ته حکم اوشو. چه د آذان کلمات دوه دوه ځله اوکړي او اقامت یویو ځل.

۵۷۴: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدُ بْنُ غَيْلَانَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُوْلُ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ حِيْنَ قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ يَجْتَمِعُوْنَ فَيَتَحَيَّنُوْنَ الصَّلٰوةَ لَيْسَ يُنَادٰى لَهَا فَتَكَلَّمُوْا يَوْمًا فِيْ ذٰلِكَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ اتَّخِذُوْا نَاقُوْسًا مِّثْلَ نَاقُوْسِ النَّصَارٰى وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ بُوْقًا مِّثْلَ قَرْنِ الْيَهُوْدِ فَقَالَ عُمَرُ أَوَلَا تَبْعَثُوْنَ رَجُلًا يُّنَادِيْ بِالصَّلٰوةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَابِلَالُ قُمْ فَنَادِ بِالصَّلٰوةِ.

۵۷۴: محمود بن غیلان، عبدالرزاق ابن جریج، نافع، ابن عمرؓ روایت کوي، چه مسلمانان مدینې ته راغلل، نو مونځ د پاره به د مونځ د وخت په آندازه راجمع کیدل، دغه وخته پورې د مونځ د پاره اعلان نه کیده. په دې حقله مسلمانانو یوه ورځ خبرې اترې اوکړې (چه څه اعلان ضرور پکار دې) بعضو اووې، چه د نصارا او د ناقوس (ټلې) په شان ناقوس جوړ کړې. او بعضو او وې، چه نه، بلکه د یهودو د بیګل (لونې دډکوجې یا ښکر چه بامبران نې د پوجا نه محښ د بتانو وړاندې غږوی) په شان بیګل جوړ کړې. عمرؓ اووې، چه یو سړے دې ولې مقرر نه کړے شي چه هغه د اذان اعلان کوي نو رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل اے بلال، پاسه او د مونځ د پاره اذان اوکړه.ا

۱. دا واقعه داسے پیښه شوه چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله مدینې منورې ته تشریف راوړو. نو یوه ورځ په دې مشوره اوشوه چه د مانځه په وخت د (اعلان) خلقو خبره ولو به څه طریقه وي. په یو روایت کښې دي چه بعضې خلقو دا مشوره ورکړه. چه "ناقوس" (ټلې) دے اوغږولے شي. نبي کریم صلي الله علیه وسلم او فرمایل چه دا د عیسایانو (نصارې) طریقه ده. چا اویل چه لونې دډکوجې یا ښکر دے او غږولے شي نبي علیه الصلاة والسلام او فرمایل دا د یهودو طریقه ده چا اویل ډیر زیات اور به بلولے شي نبي کریم صلي الله علیه وسلم او فرمایل دا د مجوسیانو (د اور د عبادت کونکو) طریقه ده. دا ټولې د کافرو طریقې وې نبي کریم صلي الله علیه وسلم خوښې نه کړې حضرت عمر رضي الله عنه او فرمایل چه سړے به اولیګلے شي هغه به خلق خبر کړي نبي کریم علیه الصلاة والسلام دا طریقه خوښه کړه حضرت بلال رضي الله عنه ته رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل. چه لاړشه او خلق خبر کړه. بیاهم مسلمانانو پدې حقله فکر کولو چه کومه مناسب او آسانه طریقه د خبره ولو د همیشه د پاره معلومه شي. د شورې اجلاس ختم شو. په هغوي کښې حضرت عبدالله بن زید رضي الله عنه چه کله د شپې اوده کیدو. هغه خوب اولیدو. چه یو بنده الله اکبر تر آخره پورې د أذان کلمات ویل اذان نې کولو. هغه ټول کلمات په

خوب كښې عبدالله بن زيد رضي الله عنه ياد كړل. او سحر چه كله راويښ شو نو نبي كريم عليه الصلاة والسلام ته ئے خوب بيان كړو. او د اذان كلمات ئے واورول. نبي عليه الصلاة والسلام دا خوبښ كړل د وحي په ذريعه يا پخپل اجتهاد حضرت نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددے كلماتو د اذان د پاره مقررولو حكم جاري كړو. حضرت بلال رضي الله عنه ذا كلمات ياد كړل هغه به بيا اذان كولو. بيا حضرت عمر رضي الله عنه هم خوب كښې دا اوليدل چه يو سړي په دے كلماتو سره آذان كولو. هغه هم نبي عليه الصلاة والسلام ته خپل خوب بيان كړو او اذان كول د هر مونځ د پاره سنت دے او د اسلام خاصه ښه ده.

## بـاب ۳۹۳: اَلْاَذَانُ مَثْنٰى مَثْنٰى.

## بـاب ۳۹۳: د اذان د الفاظو دوه دوه خله د وئيلو بيان.

۵۷۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُبْنُ زَيْدٍ عَنْ سِمَاكِ بْنِ عَطِيَّةَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اُمِرَ بِلَالٌ اَنْ يَّشْفَعَ الْاَذَانَ وَاَنْ يُّوْتِرَ الْاِقَامَةَ اِلَّا الْاِقَامَةَ.

۵۷۵: سليمان بن حرب، حماد بن زيد، سماك بن عطيه، ايوب، قلابه، انسؓ روايت كوي: چه بلال ته دا حكم وركړے شو، چه اذان كښې جفت كلمات وائي او اقامت كښې سوا ذ قد قامت الصلوٰة طاق كلمات وائي. (جفت تكړے، طاق: ناتكړے)

۵۷۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَبْنُ سَلَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ نِ الْحَذَّآءُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا كَثُرَ النَّاسُ قَالَ ذَكَرُوْا اَنْ تَعْلَمُوْا وَقْتَ الصَّلٰوةِ بِشَيْءٍ يَّعْرِ فُوْنَهُ فَذَكَرُوْا اَنْ يُّوْرُوْا نَارًا اَوْ يَضْرِبُوْا نَاقُوْسًا فَاُمِرَبِلَالٌ اَنْ يَّشْفَعَ الْاَذَانَ وَاَنْ يُّوْتِرَ الْاِقَامَةَ.

۵۷۶: محمد بن سلام، عبدالوهاب ثقفي، خالد حذاء، ابو قلابه، انس بن مالكؓ روايت كوي: كوم وخت چه خلق زيات مسلمانان شو، نو هغوي، دا تجويز او كړ، چه د مونځ د وخت دے څه داسے علامت مقرر كړے شي، چه هغوي ته پته لږي (چه اوس مونځ تيار دے) بعضو اووے، چه اور دے روښانه كوي يا ښكر دے غږوي، نو بلالؓ ته حكم وركړے شو، چه هغه دے اذان كښې جفت كلمات وائي او اقامت كښې طاق.

## باب ۳۹۴: اَلْاِقَامَةُ وَاحِدَةٌ اِلَّا قَوْلَهُ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ.

## ۳۹۴: ذ قد قامت الصلوٰة ذ الفاظونه علاوه ذ اقامت د الفاظو د يو يو خل وئيلو بيان.

۵۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ

۵۷۷: علي بن عبدالله اسماعيل بن ابراهيم، خالد حذاء ابو قلابه، انسؓ روايت كوي چه بلالؓ ته دا

قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ الْحَذَّاءُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اُمِرَ بِلَالٌ اَنْ يَّشْفَعَ الْاَذَانَ وَاَنْ يُّوْتِرَ الْاِقَامَةَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ فَذَكَرْتُهُ لِاَيُّوْبَ فَقَالَ اِلَّا الْاِقَامَةَ.

حکم ورکړے شوے وو، چه اذان کښې دے جفت کلمات وائي او اقامت کښې طاق، اسماعيل (دَ حديث راوي) وائي، چه ما ايوب سره دَ دے ذکر او کړه نو هغهٔ اوويے (او) اقامت يو خل پکار دے البته قَد قَامَتِ الصَّلٰوة دوه دوه خله وئيل پکار دي[۱].

۱ . د اذان او د اقامت په حقله د امامانو رحمة الله عليهم اختلافات دي. د احنافو په نزد د اذان پنځلس کلمات دي. طريقه هغه ده څرنګ چه نن صبا اذان کولے شي. د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د اذان نولس کلمات دي. د هغه په نزد اذان کښې "ترجيع" کول دي. د ترجيع مطلب دا دے چه دواړه کلمات د شهادت مثلاً اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ څلور خله ويل دي دوه خله په زوره (جهر سره) او دوه خله په رو، داسے اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، څلور ځله ويل دي دوه خله په زوره دوه خله په رو. دواړه شهادته خمونږ د احنافو په نزد څلور کلمات او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد اته کلمات دي. باقي کلماتو کښې امام شافعي رحمة الله عليه د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه سره موافق دے. د امام مالک رحمة الله عليه مسلک په اذان کښې د امام شافعي رحمة الله عليه موافق دے صرف تکبير ويلو کښې په اول کښې هغه دوه خله اَللّٰهُ اَكْبَرُ وائي او باقي امامان صاحبان څلور ځله. د امام مالک په نزد د اذان کلمات اولس دي. احاديثو مبارکو کښې دا ټولے طريقے شته دے. حضرت ابو محذوره رضي الله عنه، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د مکے د فتحه کيدو نه پس، د مسجد حرام مؤذن مقرر کړے وو د هغه د اذان طريقه، د امام شافعي رحمة الله عليه مسلک دے. د ابو محذوره رضي الله عنه دا بيان دے چه هغه ته نبي عليه الصلاة والسلام اذان ښودلے وو د نبي کريم صلي الله عليه وسلم د زمانے په دوران کښې هغه په دغه طريقه اذان کوو. بيا د صحابه کرامو رضي الله عنهم په زمانه کښې په مسجد حرام کښې همدغه طريقه ده. هيڅ څوک چا منعه کړي نه وو. د هغوي نه پس، په مکه مکرمه کښې هم دغه طريقه وه د امام شافعي خاندان هم د مکے مکرمے دے د هغه په زمانه کښې په مسجد حرام کښې هم دغه طريقه اذان وو. کوم چه د ابو محذوره رضي الله عنه طريقه ده. د دے وجے نه د اذان دا طريقه هم مکروهه نه ده. د بحر الرائق د مصنف هم دا رائے ده. او په آخري دور کښې د احنافو او د حديث امام حضرت علامه شاه انور شاه کشميري رحمة الله عليه هم دا صحيح ګڼړي. په مسجد نبوي کښې د اذان طريقه د احنافو په نزد غوره طريقه ده. هغه طريقه د حضرت بلال رضي الله عنه طريقه ده حضرت بلال رضي الله دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په موجودګئ کښې هم دغسے اذان کولو کوم چه د امام ابوحنيفه رضي الله عنه مذهب دے. ښکاره خبره ده چه کومه طريقه د اذان د رسول الله صلي الله عليه وسلم په جومات کښې د هغه مخکښې وه. هغه د ټولو نه غوره او بهتره ده. دا طريقه امام ابوحنيفه خوښه کړيده دغه د حضرت بلال رضي الله عنه د اذان طريقه عبدالله بن زيد رضي الله عنه په خوب کښې ليدلے وه دغه احنافو غوره کړيده. د دے باب په احاديثو کښې د اقامت ذکر راغلے دے چه يو يو خل د اذان د کلماتو په اقامت کښې د ويلو حضرت بلال رضي الله عنه ته حکم وو. د امام شافعي رحمة الله عليه دا مسلک دے. چه په اقامت کښې د اذان کلمات دوه دوه خله نهٔ يو يو خل ويل

صرف "قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ" دوه ځله ويل دي، امام ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائي چه په اقامت او اذان كښې فرق نشته په اذان كښې چه څومره كلمات څو ځله ويل دي دغسې اقامت دې، ابو محذوره رضي الله عنه به د اقامت كلمات د اذان پشان ويل دوه، دوه ځله، دغه شان فرښتې چه اذان عبدالله بن زيد رضي الله عنه نه په خوب كښې ښودلې وو. د هغه اقامت كښې هم دوه، دوه ځله كلمات ويل وو. څرنګ چه مذهب حنفي دې، امام طحاوي رضي الله عنه بعض روايات داسې نقل كړيدي. چه دهغې نه معلوميږي چه حضرت بلال رضي الله عنه به د اذان پشان د اقامت كلمات دوه دوه ځله ويل. په كوم روايت كښې چه د اقامت د كلماتو يو ځل وينا ده. هغه رواياتو مختصر كړيدې. د امام مالک رحمة الله عليه هم دا مسلک دې چه قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ دوه ځله ويل دي.

## بَاب ۳۹۵: فَضْلِ التَّاذِيْنِ.

باب ۳۹۵: دَ اذان وئيلو دَ فضيلت بيان

۵۷۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ اَدْبَرَ الشَّيْطٰنُ لَهٗ ضُرَاطٌ حَتّٰى لَايَسْمَعَ التَّاذِيْنَ فَاِذَا قَضَى النِّدَآءَ اَقْبَلَ حَتّٰى اِذَاثُوِّبَ بِالصَّلٰوةِ اَدْبَرَ حَتّٰى اِذَا قَضَى التَّثْوِيْبَ اَقْبَلَ حَتّٰى يَخْطِرَ بَيْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهٖ يَقُوْلُ اذْكُرْ كَذَااذْكُرْ كَذَا لِمَا لَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ حَتّٰى يَظَلَّ الرَّجُلُ لَايَدْرِيْ كَمْ صَلّٰى.

۵۷۸: عبدالله بن يوسف، مالک، ابو الزناد، اعرج، ابو هريرةؓ روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، كوم وخت چه دَ مونځ اذان كيږي، نو شيطان په شاتښتي، او (دَ ويرې نه) تيزونه اچوي، او دَ هغې حده پورې تښتي چه هلته دَ آذان آواز نشتي آوريدې، كوم وخت چه آذان ختم شي، نو بيا واپس راشي، تر دې چه دَ مونځ اقامت كيږي، نو بيا په شاتښتي حتٰي چه اقامت ختم شي، نو بيا واپس راشي، چه دَ سړي په زړهٔ كښې وسوسې واچوي ورته وائي، چه فلانئې خبره ياده كړه، فلانئې خبره ياده كړه، نو هغه ټولې خبرې چه هغهٔ ته يادې نهٔ وي، هغه وريادوي، تر دې چه دَ سړی نه هير شي چه هغهٔ څو ركعاته مونځ اُو كړهٔ.

## بَـاب ۳۹۶: رَفْعِ الصَّوْتِ بِالنِّدَآءِ وَقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اَذِّنْ اَذَانًا سَمْحًا وَ اِلَّا فَاعْتَزِلْنَا.

۳۹۶: آذان كښې دَ آواز وچتولو بيان او عمر بن عبدالعزيز خپل مؤذن ته وئيلې وو، چه صفا او واضحه اذان كوه. ګنې څمونږ نه جُدا شه.

۵۷۹: عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ

۵۷۹: عبدالله بن يوسف، مالک، عبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن بن صعصعه انصاري مازني عبدالله بن

أَبِيْ صَعْصَعَةَ الْاَنْصَارِيِّ ثُمَّ الْمَازِنِيِّ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ لَهُ اِنِّيْ اَرَاكَ تُحِبُّ الْغَنَمَ وَالْبَادِيَةَ فَاِذَا كُنْتَ فِيْ غَنَمِكَ اَوْبَادِيَتِكَ فَاَذَّنْتَ لِلصَّلٰوةِ فَارْفَعْ صَوْتَكَ بِالنِّدَآءِ فَاِنَّهُ لَايَسْمَعُ مَدٰى صَوْتَ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَّلَا اِنْسٌ وَّلَا شَيْءٌ اِلَّا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ اَبُوْسَعِيْدٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عبدالرحمن روايت كوي' هغه ته ابو سعيد خدريّ اووے' زۀ تاوينم چه ته چيلے او خنګل خوښوے (نو خما يو نصيحت ياد لره) كله چه ته خپلو چيلو يا خنګل كښ ئے' او مونځ د پاره آذان كوے' نو د اذان په وخت خپل آواز اوچتوه' ځكه چه د مؤذن آواز پيريان يا بني آدم يا نور څوک واوري' نو د قيامت په ورځ به د هغۀ د پاره ګواهي وركوي. ابو سعيد وائي' چه ما دا د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم نه آوريدلے وو[1].

١ . مطلب ئے دادے چه آواز نيغ او روان پكار دے ليكن د اوچت آواز سره چه وقار باقي وي نو ښومره چه آواز اوچتيدے شي نو غوره ده. آذان د ګانو' غزلو په وزن كولو نه خان ساتل ضروري دي.

## باب ٣٩٧: مَايُحْقَنُ بِالْاَذَانِ مِنَ الدِّمَآءِ.

## باب ٣٩٧: آذان آوريدو سره جنګ او خونريزي بندول پكار دي.

٥٨٠: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ ثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرَ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ اِذَا غَزَا بِنَا قَوْمًا لَمْ يَكُنْ يُغِيْرُ بِنَا حَتّٰى يُصْبِحَ وَيَنْظُرَ فَاِنْ سَمِعَ اَذَانًا كَفَّ عَنْهُمْ وَاِنْ لَّمْ يَسْمَعْ اَذَانًا اَغَارَ عَلَيْهِمْ قَالَ فَخَرَجْنَا اِلٰى خَيْبَرَ فَانْتَهَيْنَا اِلَيْهِمْ لَيْلًا فَلَمَّا اَصْبَحَ وَلَمْ يَسْمَعْ اَذَانًا رَكِبَ وَرَكِبْتُ خَلْفَ اَبِيْ طَلْحَةَ وَاِنَّ قَدَمِيْ لَتَمَسُّ قَدَمَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَخَرَجُوْآ اِلَيْنَا بِمَكَاتِلِهِمْ وَمَسَاحِيْهِمْ

٥٨٠: قتيبه' اسماعيل بن جعفر' حميد حضرت انسؓ د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم نه روايت كوي' چه كله به حضور څمونږ ملګرتيا كښ يو قوم سره جهاد كولو' نو په مونږ به ئے لوټ مار نۀ كولو' تر دے چه سحر به شو' او حضورؐ به انتظار كولو' كه اذان به ئے واوريدلو نو د هغے خلقو د قتل نه به منع شولو' او كه اذان به ئے وا نه ريدلو نو په هغوي به ئے حمله[1] كوله. انسؓ وائي. مونږ خيبر طرف ته جهاد له او وتلو' نو مونږ د شپے هغوي ته نږدے ور اورسيدلو كوم وخت چه صبا شو' او حضورؐ اذان وا نه ريدلو' نو سور شولو' او زۀ ابو طلحه پسے سور سوم' څما پښے به د نبي صلي اللّه عليه وسلم پښے مباركه مس كوله' انسؓ وائي' د خيبر خلقو خپلے تبر كري او كودالے رآخستے مونږ پله راغلل' كوم وخت چه

فَلَمَّا رَاٰوُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْ مُحَمَّدٌ وَّالْخَمِیْسُ قَالَ فَلَمَّا رَاٰهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُ اَکْبَرُ اللّٰهُ اَکْبَرُ خَرِبَتْ خَیْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِیْنَ.

هغوی نبي صلي الله علیه وسلم اولید نو وې وئیل چه محمد په الله مو دې قسم وي محمد او د هغه لښکر راغے انس وائي کوم وخت چه رسول الله صلي الله علیه وسلم هغوی اولیدل نو وې فرمائیل الله اکبر الله اکبر خیبر برباد شو بیشکه مونږ چه د یو قوم میدان ته (د جنګ په اراده) راکوز شو نو د هغې و یرولې شو و سحر خراب شي.

۱. که چرې یو قبیله کښې مسلمانان وي. او د دین احکام بغیر د څه ویرې نه ادا کولې شي نو بیا جنګ کول پکار نه دي.

## باب ۳۹۸: مَایَقُوْلُ اِذَا سَمِعَ الْمُنَادِیَ.

باب ۳۹۸: د آذان آوریدو په وخت څه وئیل پکار دي.

۵۸۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ یَزِیْدَ اللَّیْثِیِّ عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ نِ الْخُدْرِیِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا سَمِعْتُمُ النِّدَآءَ فَقُوْلُوْا مِثْلَ مَا یَقُوْلُ الْمُؤَذِّنُ.

۵۸۱: عبدالله بن یوسف. مالک، ابن شهاب، عطاء بن یزید لیثي ابو سعید خدري روایت کوي چه کله تاسو اذان واورئي نو چه څرنګ مؤذن وائي هغسې تاسو هم وایئ.

۵۸۲: حَدَّثَنَا مُعَاذُبْنُ فُضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ یَحْیٰی عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِیْمَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ حَدَّثَنِیْ عِیْسَی بْنُ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِیَةَ یَوْمًا فَقَالَ بِمِثْلِهِ اِلٰی قَوْلِهِ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

۵۸۲: معاذ بن فضاله. هشام. یحیی. محمد بن ابراهیم بن حارث. عیسی بن طلحه روایت کوي ما د معاویه نه یو ورځ دا واوریدل چه هغه اشهد ان محمدا رسول الله پورې داسې اووې څنګه چه مؤذن اووې.

۵۸۳: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جُرَیْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ یَحْیٰی نَحْوَهٗ قَالَ یَحْیٰی وَحَدَّثَنِیْ بَعْضُ اِخْوَانِنَا اَنَّهٗ قَالَ لَمَّا

۵۸۳: اسحاق، وهب بن جریر، هشام، یحیی د دغې مثل روایت کوي او د یحیی بیان دې چه ماته خما و رونړو بیان او کړ چه مؤذن کوم وخت حي علي الصلوة ووې

قَالَ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ قَالَ لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ وَقَالَ هٰكَذَا سَمِعْنَا نَبِيَّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ.

نو معاويهؓ لا حول ولا قوة الا بالله اووے، او وے وئيل چه ما ستاسو د نبي صلي الله عليه وسلم دغسے آوريدلے دي.

## بَابُ ٣٩٩: اَلدُّعَاءِ عِنْدَ النِّدَآءِ.

## باب ٣٩٩: دَ اذان په وخت دَ دُعا کولو بيان.

٥٨٤: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ النِّدَآءَ اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّآمَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَآئِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَ نِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَا نِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ حَلَّتْ لَهٗ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

٥٨٤: علي بن عياش، شعيب بن ابي حمزه، محمد بن منكدر، جابر بن عبدالله روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم سړے چه دَ اذان آوريدو په وخت دا دعا کوي اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامِّ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَ نِ الْوَسِيلَ وَالْفَضِيلَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُودَانِ الَّذِى وَعَدتَّهٗ[١] : نو دَ قيامت په ورځ به ئے خما شفاعت نصيب وي.

١. ددے دُعا سنت طريقه دا ده. چه لاس به نه اوچتوي. خکه چه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دے دُعا سره لاس اوچتول ثابت نه دي. اگرچه د عامو دُعاگانو سره لاس اوچتول ثابت دي ليکن چه کله نبي عليه الصلاة والسلام ددے دُعا د پاره لاس اوچت کړي نه دي. نو مونږ له هغه طريقه خوښول پکار دي.

## بَابُ ٤٠٠: اَلْاِسْتِهَامِ فِي الْاَذَانِ وَيُذْكَرُ اَنَّ قَوْمًا اِخْتَلَفُوْا فِي الْاَذَانِ فَاَقْرَعَ بَيْنَهُمْ سَعْدٌ.

## باب ٤٠٠: آذان وئيلو دَ پاره دَ قرعه (پچه) اچولو بيان، او وئيلے شي چه ځينے خلقو اذان کولو کښې جګړه او کړه، نو سعد قُرعه واچوله او دَ هغوي په مينځ کښې ئے فيصله او کړه[٢].

٢. د کومے جګړے د ختمولو د پاره قرعه اچول د احنافو په نزد هم معتبر دي. ليکن دا څه شرعي دليل نه دے او د دے په وجے سره يو فريق په فيصلے منلو باندے مجبورولے نشي.

٥٨٥: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ

٥٨٥: عبدالله بن يوسف، مالک سمي (دَ ابو بکر آزاد کړده غلام) ابو صالح، ابو هريرهؓ روايت کوي.

مَوْلٰى اَبِىْ بَكْرٍ عَنْ اَبِىْ صَالِحٍ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْيَعْلَمُ النَّاسُ مَافِى النِّدَآءِ وَالصَّفِّ الْاَوَّلِ ثُمَّ لَايَجِدُوْنَ اِلَّا اَنْ يَّسْتَهِمُوْا عَلَيْهِ لَا اسْتَهَمُوْا وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَافِى التَّهْجِيْرِ لَا اسْتَبَقُوْآ اِلَيْهِ وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَافِى الْعَتَمَةِ وَالصُّبْحِ لَاَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا.

رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمايل كه خلقو ته دا معلومه شي چه اذان او اول صف كښې د شامليدو څومره ثواب دے بيا ئې ايسكي اچولو ئې بغير دا حاصل نشي نو ضرور به قرعه اچوي او كه دا ورته معلومه شي چه د اول وخت مونځ كښې څومره ثواب دے نو ډير كوشش سره به راځي او كه په دے پوهـ شي چه د ماسختن او سحر مونځ (جماعت سره) كولو كښې څومره ثواب دے نو ضرور به دے دواړو له راځي خواه كه په كنډو ورته راتلل وي.

**باب ۴۰۱: اَلْكَلَامِ فِى الْاَذَانِ**

**باب ۴۰۱**: آذان كښې د خبرو كولو بيان

وَتَكَلَّمَ سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ فِىْ اَذَانِهٖ وَقَالَ الْحَسَنُ لَابَاْسَ اَنْ يَّضْحَكَ وَهُوَ يُؤَذِّنُ اَوْيُقِيْمُ.

سليمان بن صرد خپل آذان كښې خبرے او كړے او حسن بصري وئيلي دي چه د آذان يا اقامت كولو په وخت خندا كښې څه ګناه نشته.

**۵۸۲**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ وَعَبْدِ الْحَمِيْدِ صَاحِبِ الزِّيَادِىِّ وَعَاصِمِ ن الْاَحْوَلِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ خَطَبَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ فِىْ يَوْمٍ رَزْغٍ فَلَمَّا بَلَغَ الْمُؤَذِّنُ حَىَّ عَلَى الصَّلٰوةِ فَاَمَرَهٗ اَنْ يُّنَادِىَ الصَّلٰوةُ فِى الرِّحَالِ فَنَظَرَ الْقَوْمُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ فَقَالَ فَعَلَ هٰذَا مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِّنْهُ وَاِنَّهَا عَزْمَةٌ.[1]

**۵۸۲**: مسدد، حماد، ايوب او عبدالحميد صاحب الزيادي، عاصم احول، عبدالله بن حارث روايت كوي چه يوه ورځ بحتي كښې د باران په ورځ ابن عباس حضرت محكښې خطبه اولوسته دے كښې اذان شروع شو) كوم وخت چه مؤذن حي على الصلوٰة ته اورسيد نو هغوي هغه ته حكم او كه اعلان (آواز) او كړه چه خپل خپل ځايونو كښې مونځ او كړي. جماعت ته دے نه راځي دے آوريدو سره خلقو يو بل ته كتل شروع كړل ابن عباس اووے دا خبره هغه چا كړے ده چه خما نه بهتر وو (يعني نبي صلى الله عليه وسلم) او دا افضله ده!

[1] د احنافو په نزد په اذان كښې خبرے كول مكروهه دي كه چرے يو مؤذن د اذان وېلو په دوران كښې څه خبرے او كړے نو د بعضے احنافو عالمانو په نزد به اذان بيا سر دوباره كوي. او بعضے عالمان د سر دوباره كولو حكم نه كوي. ددے باب احاديثو او آثارو نه دا معلوميږي چه د اذان كولو په دوران كښې مؤذن خبرے كولے شي او خندلے هم شي ليكن د امت د شروع نه دا عمل دے چه خلق په اذان كښې خبرے او خندا نه كوي څنګه چه د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په حكم خلقو يو بل ته كتل شروع كړل

(تعجبا) ددې نه معلوميږي چه د هغه دا حکم خلقو ته نوې ښکاريده چه مؤذن دې اعلان او کړي چه خلق دې خپلو کورونو کښې مونځ او کړي خو نړ دين مونګ ته په روايت رارسيدلې دې نو کله چه په هره زمانه کښې خاص طور په اولنۍ صدۍ کښې چه خلقو په اذان کښې خبرې او خندا کول بد ګڼړي نو ضرور پکښې څه حده پورې کراهت شته.

## باب ۴۰۲: اَذَانِ الْاَعْمٰى اِذَا كَانَ لَهٗ مَنْ يُّخْبِرُهٗ.

باب ۴۰۲: نابينا سړه که داسې سړي وي چه وخت ورته اوښائي نو بيا دَ هغه آذان کول درست دي.

۵۸۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ بِلَالًا يُّؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يُنَادِىَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ قَالَ وَكَانَ رَجُلٌ اَعْمٰى لَايُنَادِىْ حَتّٰى يُقَالَ لَهٗ اَصْبَحْتَ اَصْبَحْتَ.

۵۸۵: عبداللّٰه بن مسلمه، مالک، ابن شهاب، سالم بن عبداللّٰه، عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه بلالؓ دَ شپې آذان کوي نو تاسو خلق خورئ، څکئ تر دې چه ابن مکتومؓ آذان اوکړي. عبداللّٰه بن عمرؓ وائي، ابن مکتومؓ يو نابينا سړې وو، هغه به دَ هغې وخته پورې آذان نه کولو، چه څو پورې به خلقو نه وو وئيلې چه صبا شو صبا شو.

## بـــاب ۴۰۳: اَلْاَذَانِ بَعْدَ الْفَجْرِ.

باب ۴۰۳: د سحر ختو نه پس دَ آذان کولو بيان.

۵۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اَخْبَرَتْنِىْ حَفْصَةُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اعْتَكَفَ الْمُؤَذِّنُ لِلصُّبْحِ وَبَدَا الصُّبْحُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ تُقَامَ الصَّلٰوةُ.

۵۸۸: عبداللّٰه بن يوسف، مالک، نافع، عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي، ماته بي بي حفصېؓ اووې، د رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم عادت وو، چه مؤذن به د سحر آذان کولو د پاره اودريدو، او د سحر اذان به اوشولو، نو دوه رکعاتونه به ئې آسان شان د فرض نه مخکښې اوکړل.

۵۸۹: حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهَا

۵۸۹: ابو نعيم، شيبان، يحيي، ابو سلمه، بي بي عائشهؓ روايت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به د سحر د مونځ په وخت د

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ الْمُؤَذِّنُ لِلصُّبْحِ وَبَدَا الصُّبْحُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ تُقَامَ الصَّلٰوةُ.

آذان او اقامت په مینځ کښې دوه آسان رکعاتونه کول (چه مونږ ورته د سحر سنت وايو). (آسان نه مراد مختصر يا خفيف رکعاتونه دي چه لږ وخت پرې لږي).

٥٩٠: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ بِلَالًا يُنَادِي بِلَيْلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتّٰى يُنَادِيَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُومٍ.

٥٩٠: عبدالله بن يوسف مالک، عبدالله بن دينار، عبدالله بن عمرؓ روايت کوي: نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چه بلال د شپې آذان کوي نو تاسو خلق خورئ څکئ، تر دې چه ابن مکتومؓ آذان او کړي.[1]

۱. د دې احاديثو مبارکو نه دا معلوميږي چه د رمضان مياشت کښې د صبا د مونځ د پاره دوه اذانه کيدل اول د صبا د ختلو نه وړاندې چه ددې خبرې اطلاع وه چه اوس د پيشمني لږ وخت پاتې دې خوراک څکاک کولې شي بيا به د صبا د ختلونه روستو دويم اذان کيدلو رومبۍ اذان به حضرت بلال رضي الله عنه کولو. او دويم به حضرت عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه کولو او کله به اول اذان عبدالله بن ام مکتوب رضي الله عنه کولو. او دويم حضرت بلال رضي الله عنه.

## بَابٌ ٤٠٤: اَلْاَذَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ.

## باب ٤٠٤: د سحر اذان د صبا کيدو نه مخکښې د ونيلو بيان.

ف: د دې باب د عنوان نه معلوميږي چه د سحر د مونځ آذان د سحر کيدو نه مخکښې ونيل جائز دي. حالانکه د باب لاندې حديث نه دا ثابته نه ده، چه دا اذان د سحر د مونځ د پاره کيدلو، بلکه حديث صفاطور سره ښائي، چه دا اذان د پيش مني او تهجد د پاره کيدلو، او د سحر آذان به ابن مکتوم کولو، چه د سحر وخت کښې به کيدلو، لکه تيرو حديثونو کښې د دې وضاحت شوې دې، پکار دا وو، چه د دې باب عنوان داسې مقرر شوې وې چه د سحر نه مخکښې د پيش مني او تهجد له بيداري د پاره اذان کول هم جائز دي.

٥٩١: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ قَالَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمْنَعَنَّ

٥٩١: احمد بن يونس، زهير، سليمان تيمي، ابو عثمان نهدي، عبدالله بن مسعودؓ د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضورؐ او فرمائيل، تاسو کښې چه څوک د بلال اذان واوري نو پيش منې خوړل دې نه پريږدي ځکه چه هغه د شپې اذان کوي، چه تاسو

اَحَدَكُمْ اَوْ اَحَدًا مِّنْكُمْ اَذَانُ بِلَالٍ مِنْ سُحُوْرِهٖ فَاِنَّهٗ يُؤَذِّنُ اَوْ يُنَادِيْ بِلَيْلٍ لِيَرْجِعَ قَآئِمَكُمْ وَلِيُنَبِّهَ نَآئِمَكُمْ وَلَيْسَ اَنْ يَقُوْلَ الْفَجْرُ اَوِ الصُّبْحُ وَقَالَ بِاَصَابِعِهٖ وَرَفَعَهَا اِلٰى فَوْقُ وَطَأْطَأَ اِلٰى اَسْفَلَ حَتّٰى يَقُوْلَ هٰكَذَا وَقَالَ زُهَيْرٌ بِسَبَّابَتَيْهِ اِحْدَاهُمَا فَوْقَ الْاُخْرٰى ثُمَّ مَدَّهُمَا عَنْ يَمِيْنِهٖ وَشِمَالِهٖ.

کښې تبجد کونکے د خوب نه را پاسوي. او داسے نه چه څوک دا اوکړي چه کښې سحر شو. او حضورؐ خپلو ګوتو مبارکو سره اشاره اوکړله او هغه ئے پورته طرف ته اوچتے کړے او بیائے لاندے طرف ته رابنکته کړے. تردے چه داسے (یعني سپین والے خورشي) او زهیرؒ خپلې دواړه د شهادت ګوتے د یو بل د پاسه کیښودے. بیائے دواړه چپ ښي طرف ته او کس طرف ته خورے کړے (یعني داسے چه هر طرف ته سپین والے خورشي. بیا پوهه شئے چه صبا شو).

۵۹۲ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح قَالَ وَحَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا الْفَضْلُ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يُؤَذِّنَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ.

۵۹۲ : اسحاق. ابو اسامه. عبدالله. قاسم بن محمد. عائشهؓ. نافع. ابن عمرؓ ح (دویم سند) یوسف بن عیسي. فضل. عبید الله بن عمرؓ. قاسم بن محمد. بي بي عائشهؓ د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضورؐ او فرمائیل. چه بلالؓ د شپے اذان کوي. نو تاسو د ابن ام مکتومؓ د آذان پورے خوراک څکاک کوئ.

۱ دا اختلافي مسئله ده چه د یو مونځ د پاره د دوو اذانونو څه شرعي حیثیت شته یا نشته. امام شافعي رحمة الله علیه ددے احادیثو مبارکو په وجه روا کړي. له دے وجے هغه د صبا د مونځ د پاره د وخت نه وړاندے اذان کول روا ګنړي. لیکن دے ټولو احادیثو کښې د پیشمني او د خوراک ذکر دے د دینه معلومیږي چه خاص رمضان کښې د اولني اذان انتظام کیدلو او دا اذان د مونځ د پاره نه وو بلکے د پیشمني د وخت ښودلو د پاره وو. له دے وجے نه امام ابو حنیفه رحمة الله علیه د نورو مونځونو پشان د صبا د مونځ د پاره د وخت نه وړاندے د اذان کولو اجازت ورکړے نه دے. نور امامان رحمة الله علیهم وائي چه د صبا د مونځ نه بغیر باقي مونځونو د پاره د وخت نه وړاندے اذان کول روانه دي. لیکن امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په صبا او نورو کښې جدا حکم نه واني او وجه ئے ښکاره ده.

## بَاب ۴۰۵ : كَمْ بَيْنَ الْاَذَانِ وَالْاِقَامَةِ.

## باب ۴۰۵ : د اذان او اقامت مینځ کښې څومره فاصله پکار ده.

۵۹۳ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ

۵۹۳ : اسحاق واسطي. خالد جریري.

الْوَاسِطِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ مُغَفَّلِ نِ الْمُزَنِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَ كُلِّ اَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ ثَلَاثًا لِمَنْ شَآءَ.

ابن بريده، عبدالله بن مغفل مزني روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم درې ځله او فرمائيل، كه څوک كول غواړي نو د دوؤ اذانونو مينځ كښې د يو مونځ برابر فاصله پكار ده[۱].

۱ . نورو تفصيلي رواياتو كښې د مابښام د مونځ جدا حكم دے خكه چه مابښام كښې وخت لږ وي. ددے وجے نه د اذان نه پس د مونځ د پاره اقامت كول پكار دي. ابن الجوزي رحمة الله عليه ويلے دي چه ددے حديث شريف په ذريعه دا راښودلي شويدي چه چاته دا غلط فهمي اونشي چه د كوم مونځ د پاره اذان شويدے د هغے نه علاوه بل مونځ پدے وخت نشي كيدے دے حديث شريف كښې اوښودلے شو چه نفل مونځ پكښې په مينځ كښې روا دے.

۵۹۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرِ نِ الْاَنْصَارِيَّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ الْمُؤَذِّنُ اِذَا اَذَّنَ قَامَ نَاسٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْتَدِرُوْنَ السَّوَارِيَ حَتّٰى يَخْرُجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ كَذٰلِكَ يُصَلُّوْنَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ وَلَمْ يَكُنْ بَيْنَ الْاَذَانِ وَالْاِقَامَةِ شَيْءٌ وَّ قَالَ عُثْمَانُ بْنُ جَبَلَةَ وَاَبُوْدَاؤُدَ عَنْ شُعْبَةَ لَمْ يَكُنْ بَيْنَهُمَا اِلَّاقَلِيْلٌ.

۵۹۴ : محمد بن بشار، غندر، شعبه، عمرو بن عامر انصاري، انس بن مالک روايت كوي، چه كله به مؤذن اذان كولو، نو ځنے خلق به د نبي صلي الله عليه وسلم اصحابو كښې ستنو، له ورتلل، تر دے چه نبي صلي الله عليه وسلم به تشريف راوړلو، او هغوي به دغه شان د مابښام نه مخكښې دوه ركعاته مونځ كولو، او د اذان او اقامت مينځ كښې به څه فاصله نه وه، او عثمان بن جبله او ابو داؤد، د شعبه نه نقل كوي، چه ددے دواړو مينځ كښې به ډيره لږه فاصله وه[۱].

۱ . د مابښام د اذان او اقامت په مينځ كښې د دوو مختصر ركعتونو په حقله روايتونه راغلي دي. بعضے علماؤ ويلے دي چه په شروع كښې كله د مازيګر د مونځ نه پس مونځ كول منعه شو. نو ددے خبرے ښودنے د پاره، دوه ركعته نفل كيخودلے شو. چه د مونځ د روا كيدو وخت د نمر (نور) د پريوتلونه شروع كيږي. ليكن كله چه مابښام كښې تلوار كول دي. له دے وجے نه صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم اذان كيدو سره متصل دوه ركعته نفل مونځ كوؤ. رسول اكرم صلي الله عليه وسلم به جومات ته تشريف راوړلو نو دا حضرات به لا مونځ كښې وؤ. ددے وجے نه دا دوه ركعته بيا منعه شو. عبدالله بن عمر رضي الله عنهما

واني "ما د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ څوک نه وو ليدلے چه دا دوه ركعته نفل به ئے ادا كول. د احنافو په نزد دا دوه ركعته روا او د شوافعو په نزد مستحب دي

بـــاب ۴۰۶: مَـنِ انْتَـظَـرَ الْاِقَامَةَ.

باب ۴۰۶: د هغې سړي بيان چه د اقامت انتظار اوكړي.

۵۹۵: حَدَّثَـنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِـيْ عُـرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِـيَ الـلّٰـهُ عَـنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَكَتَ الْمُـؤَذِّنُ بِـالْاُوْلٰى مِنْ صَلٰوةِ الْفَجْـرِ بَـعْدَ اَنْ يَّسْتَبِيْـنَ الْفَجْرُ ثُمَّ اضْطَجَـعَ عَـلٰـى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ حَتّٰى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ لِلْاِقَامَةِ.

۵۹۵: ابـو اليـمـان، شعيـب، زهـري عـروه بن زبيـر، بـي بـي عـائشهٔ روايت كوي، د رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عـليـه وسـلـم دا عـادت وو، چـه مـوذن بـه دَ سـحـر اذان او كـهٔ، اوچپ بـه شـو، نو حضورؐ بـه دَ سـحـر دَ فـرض نـه مخكـښ دَ سـحـر كيـدو نـه پـس دوه آسـان (مـخـتـصـر) ركعـاتونـه كول، بيا بـه ئے پـه خپـل بـنـي آړخ آرام كـولـو، او مـؤذن چـه بـه كـلـه اقـامـت دَ پـاره حضـورؐ تـه راغـے، نـو بيا بـه حضورؐ پاسيدلو.

۱. دے آخري جـمـلے دا واضحه كړه چه بيابيا د دے دوو ركعاتو نفلو ادا كولو حكم رازي ددے دا مطلب نه دے چه دا دوه ركعاته لازمي دي بلكے صرف ددے تاكيد دے چه دا مستحب دي.

باب ۴۰۷: بَيْـنَ كُلِّ اَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ لِّمَنْ شَآءَ.

باب ۴۰۷: كه څوک غواړي نو د هر آذان او اقامت مينځ كښ مونځ كولے شي.

۵۹۶: حَدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يَـزِيْدَ قَالَ حَدَّثَنَا كَهْمَسُ بْنُ الْحَسَنِ عَـنْ عَبْـدِ اللّٰـهِ بْـنِ بُرَيْدَ ةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰـهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ كُلِّ اَذَا نَيْنِ صَـلٰوةٌ بَيْنَ كُلِّ اَذَا نَيْنِ صَلٰوةٌ ثُمَّ قَالَ فِى الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَآءَ.

۵۹۶: عـبـداللّٰـه بـن يـزيـد، كـهـمـس بـن حسـن، عـبـداللّٰـه بـن بـريـده، عبداللّٰه بن مغفل، روايت كـوي، نبي صـلـي اللّٰـه عـليـه وسلم فرمائيلے دي، دَ هر دوو اذانـونـو (يـعـنـي اذان او اقـامـت) مينـځ كـښ يو مـونـځ دے (دوه خـلـه ئے دغسے او فرمائيل) پـه دريم خـل ئـے او فـرمـائـيـل كـه څـوک ئـے كـول غواړي۱.

باب ۴۰۸: مَـنْ قَـالَ لِيُؤَذِّنْ فِى السَّفَرِ مُؤَذِّنٌ وَّاحِدٌ.

باب ۴۰۸: آيا پـه سـفـر كښ يومؤذن له آذان كول پكار دي.

ف: يعني څنګه چه حضر كښ دَ دوو مؤذنانو اذان كول درست دي، يو دَ پيشمني دَ اطلاع دَ پاره او بل دَ

مونږ د پاره، نو آيا داسې سفر کښې هم کول پکار دي.

**٥٩٧: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَفَرٍ مِّنْ قَوْمِيْ فَاَقَمْنَا عِنْدَهُ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَّكَانَ رَحِيْمًا رَفِيْقًا فَلَمَّا رَاٰى شَوْقَنَا اِلٰى اَهَالِيْنَا قَالَ ارْجِعُوْا فَكُوْنُوْا فِيْهِمْ وَعَلِّمُوْهُمْ وَصَلُّوْا فَاِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ اَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ اَكْبَرُكُمْ.**

٥٩٧: معلي بن اسد، وهيب، ابو ايوب ابو قلابه، مالک بن حويرث روايت کوي: زه د خپل قوم يو جماعت سره د نبي صلي الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم. شل ورځو پورې مقيم وو، مونږ حضور صلي الله عليه وسلم ډير رحم دله او مهربانه بيامند (نو دومره موده د مقيم کيدو نه پس) چه حضورؐ خپلو کوروني طرف ته خمونږ شوق محسوس که، نو ارشاد ئې اوفرمائيلو: چه تاسو واپس لاړشئې، او خپل کور والو سره اوسئې، او هغوي ته د دين تعليم ورکړئې، تاسو مونځ کوئې کوم وخت چه د مونځ وخت شي، نو تاسو کښې دې څوک آذان کوي او تاسو ټولو کښې بزرګ (مشر) سړے دې ستاسو امام وي.

**ف:** د حضورؐ د رحمدلئ دا دليل دے، چه کوم وخت حضورؐ ته دا محسوسه شوه، چه مونږ خپلو کوروني ته واپس تلل غواړو، نو خمونږ د خواهش مطابق خپله ئې سمدستي مونږ ته اجازت راکړو.

**باب ٤٠٩: اَلْاَذَانِ لِلْمُسَافِرِ اِذَا كَانُوْا جَمَاعَةً وَّ الْاِقَامَةِ وَكَذٰلِكَ بِعَرَفَةَ وَجَمْعٍ وَّقَوْلِ الْمُؤَذِّنِ الصَّلٰوةُ فِي الرِّحَالِ فِي اللَّيْلَةِ الْبَارِدَةِ اَوِ الْمَطِيْرَةِ.**

باب ٤٠٩: مسافر د پاره که جماعت وي نو د اذان او اقامت کولو بيان، او دغه شان (مقام عرفات او) مزدلفه کښې هم، او د يخنئ په شپه يا د باران شپه کښې د مؤذن دا وئيل چه: الصلٰوة في الرّحال) (مونځ خپلو کوروني کښې او کړئې).

**٥٩٨: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُهَاجِرِ اَبِي الْحَسَنِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَاَرَادَ الْمُؤَذِّنُ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهُ اَبْرِدْ ثُمَّ اَرَادَ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهُ اَبْرِدْ ثُمَّ اَرَادَ اَنْ يُّؤَذِّنَ فَقَالَ لَهُ اَبْرِدْ حَتّٰى**

٥٩٨: مسلم بن ابراهيم، شعبه، مهاجر، ابو الحسن، زيد بن وهب، ابو ذرؓ وائي، مونږ يو سفر کښې نبي صلي الله عليه وسلم سره ملګري وو، مؤذن د ماسپخين اذان کول غوښتل، نو حضورؐ ورته او فرمائيل پريږده چه لږه يخني شي هغه بيا اذان کول اوغوښتل، حضورؐ ورته بيا او فرمائيل، لږ ايسار شه چه يخني شي، هغه بيا اذان کول غوښتل، حضورؐ ورته بيا او فرمائيل، لږ صبر او کړه، چه يخني شي، تردے چه سورے د ډهير کو

ساوى الظل التلول فقال النبي صلى الله عليه وسلم ان شدة الحر من فيح جهنم.

سره برابر شو بیا نبي صلی الله علیه وسلم او فرمایل چه د ګرمۍ سختي د جهنم د ساه نه ده

ف: دا حدیث د حنفي مذهب قوي مؤید دے چه د ګرمۍ موسم کښې یخ وخت کښې مونځ کول مستحب دي او د دے حدیث نه داهم ثابتیږي چه کوم احادیثو کښې د ماسپښین زر کېدو نه سمدستي پس د حضور د ماسپښین مونځ د ادا کولو ذکر راغلے دے او داهم ذکر راغلے دے چه بعضے صحابه ؓ به د ګرمۍ د زمانو الي په وخت خپله کپړه خوره کړه او سجده به ئې پرے کوله نو دغه احادیث د ابتدائي حالاتو دي. ځکه چه دے حدیث کښې د مؤذن د اذان اراده کول او د حضور هغه منعه کول په بیا بیا د ابنائي چه مؤذن د مدینے د سابقه عمل پیش نظر دلته هم هغے عمل کول غوښتل په دے وجه حضور انور منع کړلو. او دېره ممکنه ده چه ددے نه پس د حضور عمل دا راغلے وي چه د یخۍ موسم کښې ئې اول وخت کښې مونځ کولو او د ګرمۍ د سختۍ په زمانه کښې ئې یخ وخت کښې کولو. دا ونیل چه دا واقعه د سفر ده په دے وجه د سفر په موقع اجازت راوخي ځکه چه بعضے نور امور سفر سره مخصوص دي دا هم یو خصوصیت دے درست نه دے ځکه چه یخ وخت کښې د مونځ کولو علت سفر او حضر دواړو کښې یو شان دے او هغه د ګرمۍ شدت دے. د ګرمۍ شدت چه ځنګه سفر کښې د تکلیف باعث دے دغسے حضر کښې هم دے.

۱. دا د ماسپښین وخت وو د دینه معلومه شوه چه د ګرمۍ په وخت د ماسپښین مونځ په آخري وخت کښې ادا کول دي. امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه کله مسافر یو ټولے وي. نو هغوي له پکار دي چه اذان اقامت او امامتي (جمعه) دے داسے کوي لکه ځوک چه خپل کلي کښې وي مسافر نه وي.

۵۹۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ خَالِدِ نِ الْحَذَّاءِ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ مَّالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ اَتَى رَجُلَانِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدَانِ السَّفَرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَنْتُمَا خَرَجْتُمَا فَاَذِّنَا ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمَا اَكْبَرُكُمَا.

۵۹۹: محمد بن یوسف سفیان خالد حذا ابو قلابه مالک بن حویرث وائي دوه سړي نبي صلی الله علیه وسلم ته د سفر په اراده راغلل نو هغوي ته نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه تاسو او ځئے او د مونځ وخت شي نو اذان و کړئے بیا اقامت او کړئے بیا چه تاسو کښې کوم بزرګ (یعني مشر) وي هغه دِ امام شي.

۶۰۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ قَالَ اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى

۶۰۰: محمد بن مثنی عبدالوهاب ایوب ابو قلابه مالک بن حویریث وائي چه مونږ نبي صلی الله علیه وسلم له راغلو او مونږ یو څو د برابر عمر ځلمي وو شل شپے ورځے مونږ د حضور خدمت کښې وو. او

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شُبَبَةٌ مُتَقَارِبُوْنَ فَاَقَمْنَا عِنْدَهُ عِشْرِيْنَ يَوْمًا وَّ لَيْلَةً وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِيْمًا رَّفِيْقًا فَلَمَّا ظَنَّ اَنَّا قَدِ اشْتَهَيْنَآ اَهْلَنَا اَوْقَدِ اشْتَقْنَا سَاَلَنَا عَمَّنْ تَرَكْنَا بَعْدَنَا فَاَخْبَرْنَاهُ فَقَالَ ارْجِعُوْآ اِلَى اَهْلِيْكُمْ فَاَقِيْمُوْا فِيْهِمْ وَعَلِّمُوْهُمْ وَمُرُوْهُمْ وَذَكَرَ اَشْيَآءَ اَحْفَظُهَا اَوْلَآ اَحْفَظُهَا وَصَلُّوْا كَمَا رَاَيْتُمُوْنِيْ اُصَلِّيْ فَاِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ اَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ اَكْبَرُكُمْ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم نرم زړے او مهربان وو. كوم وخت چه حضورؐ خيال او كه، چه مونږ خپل كور والو ته د ورتلو په شوق كښې يو. نومونږ نه ئې د هغوي حال او پښتۀ چه مونږ ورستو پريښے وُو. مونږ حضورؐ ته هر څۀ بيان كړل. نو حضورؐ او فرمائيل واپس لاړ شئ او هغے خلقو كښې اوسئ، او هغوي ته تعليم وركړئ، او دَ ښو خبرو حكم وركړئ، او څو خبرے حضورؐ بيان كړلے (چه دَ هغے په حقله مالكؓ اووے چه) ما ته يادے دي يا دائے اووے چه راته يادے نۀ دي. او څنګه چه زۀ تاسو په مونځ كولو ليدلے يم. دغسے مونځ كوئ او كله چه دَ مونځ وخت راشي، نو تاسو كښې دے څوك اذان كوي، او تاسو كښې مشر دے ستا سو امام وي.

٦٠١: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ قَالَ اَذَّنَ ابْنُ عُمَرَ فِيْ لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ بِضَجْنَانَ ثُمَّ قَالَ صَلُّوْا فِيْ رِحَالِكُمْ وَ اَخْبَرَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَاْمُرُ مُؤَذِّنًا يُّؤَذِّنُ ثُمَّ يَقُوْلُ عَلٰى اَثَرِهٖ اَلَا صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ فِي اللَّيْلَةِ الْبَارِدَةِ اَوِ الْمَطِيْرَةِ فِي السَّفَرِ.

٦٠١: مسدد، يحيٰي، عبيد اللّٰه بن عمر، نافع روايت كوي، چه ابن عمرؓ دَ يخنے په يوه شپه ضبحنان (نومے غُنډۍ) باندے اذان او كۀ، او دَ اذان نه پس ئې اووے: الصلوة في رحالكم، او مونږ ته ئې بيان او كۀ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به دَ يخنۍ يا باران په شپه دَ سفر په حالت كښې مؤذن ته حكم كولو، چه دَ آذان نه مخكښې او دَ آذان نه پس دے وائي چه. اَلا صَلُّوْا فِيْ الرِّحَالِ. خپلو كورونو كښې مونځ او كړي.

٦٠٢: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَخْبَرَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الْعُمَيْسِ عَنْ عَوْنِ ابْنِ اَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاَبْطَحِ فَجَآءَهٗ بِلَالٌ فَاٰذَنَهٗ بِالصَّلٰوةِ ثُمَّ خَرَجَ بِلَالٌ بِالْعَنَزَةِ حَتّٰى

٦٠٢: اسحاق، جعفر بن عون، ابو العميش، عون بن ابي جحيفه، ابو جحيفه روايت كوي چه ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم (وادي) ابطح كښې اوليد، چه بلالؓ ورله راغے او، دَ مونځ اطلاع ئې وركړه، بيا نيزه ئې واخسته لاړ. او هغه ئې دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه

رَكَزَهَا بَيْنَ يَدَىْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاَبْطَحِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ.

عليه وسلم مخکښې وادئ ابطح کښې ښخه کړه، او حضورؐ مونځ ورکړلو.

بَابٌ ۴۱۰: هَلْ يَتَتَبَّعُ الْمُؤَذِّنُ فَاهُ هٰهُنَا وَهٰهُنَا وَهَلْ يَلْتَفِتُ فِى الْاَذَانِ يُذْكَرُ عَنْ بِلَالٍؓ اَنَّهُ جَعَلَ اِصْبَعَيْهِ فِىْ اُذُنَيْهِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَجْعَلُ اِصْبَعَيْهِ فِىْ اُذُنَيْهِ وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ لَابَأْسَ اَنْ يُؤَذِّنَ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ وَقَالَ عَطَآءٌ اَلْوُضُوْءُ حَقٌّ وَسُنَّةٌ وَقَالَتْ عَآئِشَةُ كَانَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ اَحْيَانِهٖ.

باب ۴۱۰: آيا موذن خپل مخ اخوا، ديخوا اوګرځوي او آيا هغه آذان کښې اخوا، ديخوا کتلے شي، بلالؓ نه نقل دے، چه هغۀ خپلے دواړه ګوتے خپلو غوږونو کښې ورکړے، او ابن عمرؓ به خپلو غوږونو کښې ګوتے نه ورکولے، ابراهيم وائي، چه بے اودسه اذان کولو کښې څۀ حرج نشته، ذَ عطاء قول دے، چه (اذان ذَ پاره) اودس ثابت دے، او مسنون دے، او بي بي عائشهؓ فرمائي، چه نبي صلي الله عليه وسلم به خپلو ټولو او قاتو کښې ذَ الله تعالٰي ذکر کولو (الله پاک دے دا فيض څمونږ هم نصيب کړي اللّٰهم آمين.

۶۰۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَوْنِ بْنِ اَبِىْ جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ رَاٰى بِلَالًا يُؤَذِّنُ فَجَعَلْتُ اَتَتَبَّعُ فَاهُ هٰهُنَا هٰهُنَا بِالْاَذَانِ.

۶۰۳: محمد بن يوسف، سفيان، عون بن ابي جحيفهؓ روايت کوي، ما بلالؓ اوليد، چه ذَ آذان کولو په وخت ئے خپل مخ اخوا، ديخوا کولو[۱].

۱. نورو رواياتو کښې دي چه حَىَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَىَّ عَلَى الْفَلَاحِ ويلو په وخت به ئے ښي طرفته او کس طرفته مخ کوۀ لکه څرنګ چه په اذان کښې څمونږ طريقه ده.

بَابٌ ۴۱۱: قَوْلُ الرَّجُلِ فَاتَتْنَا الصَّلٰوةُ وَكَرِهَ ابْنُ سِيْرِيْنَ اَنْ يَّقُوْلَ فَاتَتْنَا الصَّلٰوةُ وَلْيَقُلْ لَمْ نُدْرِكْ وَقَوْلُ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَحُّ.

باب ۴۱۱: ذَ سړي دا وئيل چه څمونږ مونځ لاړ، او ابن سيرين دا، وئيل، چه څمونږ مونځ لاړ، مکروه ګنړلے دي، داسے وئيل پکار دي چه مونږ مونځ لاندے نۀ کړه. خو، ذَ نبي صلي الله عليه وسلم قول ډير درست دے.

۶۰۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِىْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ بَيْنَمَا

۶۰۴: ابو نعيم، شيبان، يحيٰي، عبدالله بن ابي قتاده. ابو قتادهؓ روايت کوي، چه يو خلے مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره مونځ کولو. حضورؐ ذَ څنو خلقو آواز واوريدلو.

نَحْنُ نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْسَمِعَ جَلْبَةَ رِجَالٍ فَلَمَّا صَلّٰى قَالَ مَا شَأْنُكُمْ قَالُوا اسْتَعْجَلْنَا اِلَى الصَّلٰوةِ قَالَ فَلَاتَفْعَلُوْا اِذَآ اَتَيْتُمُ الصَّلٰوةَ فَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةَ فَمَآ اَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْاوَمَا فَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا.

كوم وخت چه حضورؐ مونځ اوكړو نو ورې فرمائيل ستاسو څۀ حال دې (يعني دا شور ولې اوشو) هغوي عرض اوكړ چه مونږ مونځ ډ پاره تادي كوله (په دې وجه شور اوشو) حضورؐ ورته او فرمائيل بيا داسې مۀ كوئې كوم وخت چه تاسو مانځه ډ پاره راځئې نو ډېر اطمينان سره راځئې بيا چه څومره مونځ لاندې كړئې هغه او كړئې او څومره مونځ چه درنه لاړ شي هغه پوره كړئې ۱.

بَابٌ ۴۱۲: مَآ اَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْاوَ مَافَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا قَالَهُ اَبُوْ قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۱۲: څومره مونځ چه تاسو بيا مومئې هغه او كړئې او څومره چه درنه لاړ شي هغه پوره كړئې. دا ابو قتادهؓ ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه نقل كړې دې.

۶۰۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَمِعْتُمُ الْاِقَامَةَ فَامْشُوْا اِلَى الصَّلٰوةِ وَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةَ والْوَ قَارَوَلَا تُسْرِعُوْا فَمَا اَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْا وَمَافَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا.

۶۰۵: آدم، بن ابي ذئب، زهري، سعيد بن مسيب، ابو هريرهؓ ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، كله چه تاسو اقامت واورئې، نو مانځكه ډ پاره وقار او اطمينان سره ورځئې او منډې مۀ وهئې بيا څومره مونځ چه لاندې كړئې، هغه او كړئې، او څومره مونځ چه درنه لاړ شي، هغه پوره كړئې.

۱. نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائي كه چرې تاسو مونځ اونه موند (لاندې نه كړو) داسې اونه فرمايلكه مونځ تاسو پريږدي يا مونځ په لاس رانشي. امام بخاري رحمة الله عليه د خبرو ادب بنائي چه د مونځ پريښودونكې پخپله انسان دې مونځ څوک د خپل بركت، فيض نه، نه محرومه كوي.

بَابٌ ۴۱۳: مَتٰى يَقُوْمُ النَّاسُ اِذَا رَاَوُا الْاِمَامَ عِنْدَ الْاِقَامَةِ.

باب ۴۱۳: ډ تكبير په وخت چه خلق امام اووينې، نو څۀ وخت به اودريږي.

۶۰۶: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ كَتَبَ اِلَيَّ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَبِيْ قَتَادَةَ

۶۰۶: مسلم بن ابراهيم، هشام، يحيٰي عبداللّٰه بن ابي قتاده، ابو قتادهؓ روايت كوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي،

عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا تَقُوْمُوْا حَتّٰى تَرَوْنِيْ.

ذ مونځ ذ اقامت په وخت څو پورې چه ما او نه وينئ، نو هغه وخته پورې مه اودريږئ.

١. عامو حالاتو كښې به منافقان د جمعې (امامتې) مونځ ته نه حاضريدل په دې حديث شريف كښې هغوي ته زورنه كيږي. د دينه معلوميږي چه د جمعې مونځ په اسلام كښې څومره ضروري دې د بعض احنافو په نزد د جمعې مونځ (امامتې سره مونځ) واجب دې او د بعضو په نزد سنت موكد دې.

٢. د ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې د جمعې د مونځ ثواب پنځه ويشت درجې، او د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت كښې اويشت درجې دې بعضې محدثينو ليكلې دي چه د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت زيات قوي دې ددې وجې نه دهغه روايت ته به ترجيح وركولې شي ليكن دې سلسله كښې زيات صحيح مسلك دادې چه دواړه روايته صحيح منل دي د جماعت (د جمعې) مونځ واجب يا سنت مؤكد دې خو يو د فضيلت وجه ئې داده چه ثواب ئې زيات دې څوك چه په جمعه مونځ كوي د هغوي اخلاص او تقوئ كښې به هم فرق وي. د هغې برابر ثواب به ئې هم زيات وي. د عربو د محاورې مطابق مقصد د پنځويشت اُويشت درجونه د ثواب زيات والې دې.

باب ٤١٤: لَا يَقُوْمُ اِلَى الصَّلٰوةِ مُسْتَعْجِلًا وَّلْيَقُمْ اِلَيْهَا بِالسَّكِيْنَةِ وَالْوَقَارِ.

باب ٤١٤: مونځ ذ پاره دې تادي سره نه، بلكه اطمينان او وقار سره پاسي.

٦٠٧: حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا تَقُوْمُوْا حَتّٰى تَرَوْنِيْ وَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةَ تَابَعَهُ عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ.

٦٠٧: ابو نعيم، شيباني، يحيٰي، عبدالله بن ابي قتاده، ابو قتادهؓ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، كوم وخت چه ذ مانځه اقامت كيږي نو تاسو هغه وخته پورې مه پاسې، څو پورې چه ما او نهٔ وينې، او په خپل ځان اطمينان لازم اوګنړئ (علي بن مبارك ذ دې متابعت كړې دې).

باب ٤١٥: هَلْ يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ لِعِلَّةٍ.

باب ٤١٥: آيا ذ جمات نه ذ څهٔ عذر په وجه بهر وتلې شي؟

٦٠٨: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ

٦٠٨: عبدالعزيز بن عبدالله، ابراهيم بن سعد، صالح بن كيسان، ابن شهاب، ابو سلمه، ابو هريرهؓ روايت كوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم (يو

شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ وَقَدْ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ وَعُدِّلَتِ الصُّفُوْفُ حَتّٰى اِذَا قَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ انْتَظَرْنَا اَنْ يُكَبِّرَ انْصَرَفَ قَالَ عَلٰى مَكَانَتِكُمْ فَمَكَثْنَا عَلٰى هَيْئَتِنَا حَتّٰى خَرَجَ اِلَيْنَا يَنْطُفُ رَاْسُهُ مَآءً وَقَدِ اغْتَسَلَ.

خلكے د جماعت نه) بهر اووتلو. حالانكه د مونځ اقامت شوے وو. او صفونه هم برابر شوے وو. كوم وخت چه حضورٌ (واپس راغلے او) په خپله مصلے اودريدلو نو مونږ انتظار كولو. چه اوس به حضورٌ تكبير اوكړى. ليكن حضورٌ بيا لاړلو او مونږ ته ئے اوفرمائيل چه په خپل ځائے اوسئے. مونږ په خپل حال ولاړ وو. چه (لږ وخت كښې) حضورٌ تشريف راوړلو. او د حضورٌ د سر مبارک نه او به څڅيدلے حضورٌ غسل كړے وو.

بَابُ ۴۱۶: اِذَا قَالَ الْاِمَامُ مَكَانَكُمْ حَتّٰى يَرْجِعَ انْتَظَرُوْا.

باب ۴۱۶: كه امام اووائي چه په خپل ځائے ولاړ اوسئے، څو پورے چه زه واپس نه يم راغلے نو مقتديان دے د هغه انتظار كوي.

۶۰۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اُقِيْمَةِ الصَّلٰوةُ فَسَوَّى النَّاسُ صُفُوْفَهُمْ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَقَدَّمَ وَهُوَ جُنُبٌ ثُمَّ قَالَ عَلٰى مَكَانِكُمْ فَرَجَعَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ خَرَجَ وَرَاْسُهُ يَقْطُرُ مَآءً فَصَلّٰى بِهِمْ.

۶۰۹: اسحاق له محمد بن يوسف. له اوزاعي. له زهري. له ابو سلمه بن عبدالرحمن. له حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي. چه يو ځلې د مونځ اقامت اوشو. او خلقو خپل صفونه برابر كړل. دے كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم بهرته اووت او مخكښې لاړ. حالانكه حضورٌ جُنب وو (چه ورته ياد شو) نو وے فرمائيل چه تاسو خلق په خپل ځائے ولاړ اوسئے. نو حضور واپس شو غسل ئے اوكړ. بيائے بهرته تشريف راوړلو. نو د حضور د سر مبارک نه اوبه څڅيدلے بيا حضور مونځ وكړلو.

بَابُ ۴۱۷: قَوْلِ الرَّجُلِ مَا صَلَّيْنَا.

باب ۴۱۷: د سړي دا وئيل چه مونږ مونځ نه دے كړے.

۶۱۰: حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ يَقُوْلُ اَنَا جَابِرُبْنُ عَبْدِ اللّٰهِ

۶۱۰: ابو نعيم. شيباني. يحيي. ابو سلمه. جابر بن عبداللّٰه روايت كوي. چه د خندق په ورځ عمر بن خطاب نبي صلي اللّٰه عليه وسلم له

اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ جَآءَهٗ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ یَوْمَ الْخَنْدَقِ فَقَالَ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَاکِدْتُ اَنْ اُصَلِّیَ حَتّٰی کَادَتِ الشَّمْسُ تَغْرُبُ وَذٰلِكَ بَعْدَمَا اَفْطَرَ الصَّآئِمُ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا صَلَّیْتُهَا فَنَزَلَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِلٰی بُطْحَانَ وَاَنَا مَعَهٗ فَتَوَضَّاَ ثُمَّ صَلَّی الْعَصْرَ بَعْدَ مَاغَرَبَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلّٰی بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ.

راغے او عرض ئے اوکړو، یا رسول اللّٰه، واللّٰه، ما اوسه پورے د مازیګر مونځ نه دے کړے، او نمر پریوتے دے. (د حضرت عمرؓ) دا وئیل، داسے وخت وو، چه د روژه دار د روژه ماتے وخت وي. نبي صلي اللّٰه علیه وسلم ورته او فرمائیل، واللّٰه ما هم د مازیګر مونځ نه دے کړے، نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلم بطحان کښ کوز شولو، او زهٔ حضورؐ سره ووم. حضورؐ اودس اوکړو، او د نمر پریوتو نه پس ئے اول د مازیګر مونځ او د هغے نه پس ئے د ماښام مونځ اوکړو.

**باب ۴۱۸: اَلْاِمَامِ تَعْرِضُ لَهٗ الْحَاجَةُ بَعْدَ الْاِقَامَةِ.**

**باب ۴۱۸:** اقامت نه پس که امام ته څهٔ ضرورت پیښ شي.

۶۱۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِیْزِ هُوَابْنُ صُهَیْبٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اُقِیْمَتِ الصَّلٰوةُ وَالنَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یُنَاجِیْ رَجُلًا فِیْ جَانِبِ الْمَسْجِدِ فَمَا قَامَ اِلَی الصَّلٰوةِ حَتّٰی نَامَ الْقَوْمُ.

۶۱۱: ابو معمر عبداللّٰه بن عمر، عبدالوارث، عبدالعزیز بن صهیب، انسؓ روایت کوي، چه یو ځل د مونځ اقامت او شو، او نبي صلي اللّٰه علیه وسلم د جماعت کټ کښ یو سړي سره په رو (مزه) سره خبرے کولے نو حضورؐ مانځه د پاره ادریدلو تر دے چه بعضے خلقو له خوب جوتے ورکولے.

**باب ۴۱۹: اَلْکَلَامِ اِذَا اُقِیْمَتِ الصَّلٰوةُ.**

**باب ۴۱۹:** اقامت نه پس د کلام کولو بیان.

۶۱۲: حَدَّثَنَا عَیَّاشُ بْنُ الْوَلِیْدِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰی ثَنَا حُمَیْدٌ قَالَ سَاَلْتُ ثَابِتَ نِ الْبُنَانِیَّ عَنِ الرَّجُلِ یَتَکَلَّمُ بَعْدَ مَا تُقَامُ الصَّلٰوةُ فَحَدَّثَنِیْ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ

۶۱۲: عیاش بن ولید، عبدالاعلیٰ، حمید روایت کوي، چه ما د ثابت بناني نه د هغے سړي په حقله تپوس اوکړو، چه د مونځ د اقامت کولو نه پس خبرے اوکړي، نو هغه ماته د انس بن مالکؓ حدیث بیان کړو، چه هغه اوویے (یو خلے) د مونځ اقامت شوے وو دے کښ نبي

قَالَ أُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَعَرَضَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَحَبَسَهُ بَعْدَمَا أُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ.

صلي الله عليه وسلم له يو سړي ژغږ' هغه حضور د اقامت کيدو نه پس ايسار کړلو (او خبرې ورسره کولې).

## بَاب ۴۲۰: وُجُوْبِ صَلٰوةِ الْجَمَاعَةِ وَقَالَ الْحَسَنُ إِنْ مَنَعَتْهُ أُمُّهُ عَنِ الْعِشَآءِ فِي الْجَمَاعَةِ شَفَقَةً لَمْ يُطِعْهَا.

## باب ۴۲۰: مونځ جماعت سره ذ واجب کيدو بيان، حسن بصري ونيلے دي، که ذيو سړي مور' د محبت د مخۀ جماعت سره د مونځ نه هغه منع کړي' نو هغه دے ذ هغې دا خبره نۀ مني.

۶۱۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أٰمُرَ بِحَطَبٍ لِيُحْطَبَ ثُمَّ أٰمُرَ بِالصَّلٰوةِ فَيُؤَذَّنَ لَهَا ثُمَّ أٰمُرَ رَجُلًا فَيَؤُمَّ النَّاسَ ثُمَّ أُخَالِفَ إِلٰى رِجَالٍ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوْتَهُمْ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ يَعْلَمُ أَحَدُهُمْ أَنَّهٗ يَجِدُ عَرْقًا سَمِيْنًا أَوْ مِرْمَاتَيْنِ حَسَنَتَيْنِ لَشَهِدَ الْعِشَآءَ.

۶۱۳: عبدالله بن يوسف' مالک' ابو الزناد' اعرج' ابو هريرةؓ روايت کوي' (يو خلے) رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' په هغه ذات م دے قسم وي' چه ذ هغۀ په قبضه کښې خما ساه ده' خما دا اراده ده' چه اول ذ لرګو جمع کولو حکم (و کړم' او هغې نه پس او کړم' چه ذ ماسختن مونځ بل څوک ورکړي او زۀ خپله څنې خلقو سره د داسې خلقو کوررونو ته اورسم (چه ذ ماسختن مونځ جماعت سره نه کوي) او د هغوي کوررونو ته اُور ورته کړم. خما دے په هغه ذات قسم وي چه ذ هغۀ په لاس کښې خما ساه ده' که هغوي کښې چاته دا معلومه شي چه هغه به سُرب هډوکے يا دښې غوښې هډوکي بيا مومي' نو يقينا به دماسختن مونځ له راخي.

## بَابُ ۴۲۱: فَضْلِ صَلٰوةِ الْجَمَاعَةِ.

## باب ۴۲۱: جماعت سره د مونځ د فضيلت بيان.

۶۱۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلٰوةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِيْنَ دَرَجَةً.

۶۱۴: عبدالله بن يوسف' مالک' نافع' عبدالله بن عمرؓ روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' د جماعت مونځ د خان له مونځ نه اوويشت درجې (ثواب کښې) زيات دے.

۶۱۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنِيَ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٌ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلٰوةَ الْفَذِّ بِخَمْسٍ وَّعِشْرِيْنَ دَرَجَةً.

۶۱۵ : عبدالله بن يوسف، ليث، يزيد بن هاد، عبدالله بن خباب، ابو سعيدؓ روايت كوي هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل چه د جماعت مونځ د يوازې سرې د مونځ نه پنځويشت درجې زيات فضيلت لري.

۶۱۶ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ يَّقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَاهُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ تُضَعَّفُ عَلٰى صَلٰوتِهٖ فِيْ بَيْتِهٖ وَفِيْ سُوْقِهٖ خَمْسَةً وَّ عِشْرِيْنَ ضِعْفًاوَّ ذٰلِكَ اَنَّهُ اِذَاتَوَضَّاَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْٓءَ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الْمَسْجِدِ لَا يُخْرِجُهُ اِلَّا الصَّلٰوةُ لَمْ يَخْطُ خَطْوَةً اِلَّا رُفِعَتْ بِهَا دَرَجَةٌ وَّحُطَّ عَنْهُ بِهَاخَطِيْئَةٌ فَاِذَا صَلّٰى لَمْ تَزَلِ الْمَلٰٓئِكَةُ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ مَادَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ وَلَايَزَالُ اَحَدُكُمْ فِيْ صَلٰوةٍ مَّاانْتَظَرَا الصَّلٰوةَ.

۶۱۶ : موسي بن اسماعيل، عبدالواحد اعمش، ابو صالح، ابو هريرهؓ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلې دي، ذ سړي جماعت سره مونځ كول د هغهٔ خپل كور كښې او بازار كښې ذ مونځ كولو نه پنځويشت درجې (ثواب كښې) زيات دې، هر كله چه ښهٔ طور سره اودس اوكړي او جماعت طرف ته لاړ شي او صرف ذ مانځه ذ پاره لاړ شي، نو كوم قدم چه هغه اږدي د هغې په عوض كښې د هغهٔ يوه درجه او چته كيږي. او يو ګناه ئې معاف كيږي. بيا كوم وخت چه هغه مونځ اوكړي، نو برابر فريښتې د هغه د پاره دعا كوي، څو پورې چه هغه په خپله مصلي ناست وي، چه يا الله، په دهٔ رحمت نازل كړې، يا الله، په دهٔ مهرباني اوكړې، او تاسو كښې هر سړې څو پورې چه د مونځ انتظار كوي، مانځه كښې ګڼلې شي۔

**ف**: حضرت ابو هريرهؓ پنځويشت درجې زيات ثواب روايت كوي او حضرت ابن عمرؓ اويشت درجې، او دا روايت زيات قوي دې.

بـاب ۴۲۲: فَضْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ فِيْ جَمَاعَةٍ.

باب ۴۲۲: ذ سحر مونځ جماعت سره د كولو د فضيلت بيان.

۶۱۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ

۶۱۷ : ابو اليمان، شعيب، زهري،

| | |
|---|---|
| اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَاَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تَفْضُلُ صَلٰوةُ الْجَمِيْعِ صَلٰوةَ اَحَدِكُمْ وَحْدَهٗ بِخَمْسَةٍ وَّعِشْرِيْنَ جُزْءً وَّتَجْتَمِعُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَمَلَائِكَةُ النَّهَارِ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ ثُمَّ يَقُوْلُ اَبُوْهُرَيْرَةَ وَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا قَالَ شُعَيْبٌ وَّحَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ تَفْضُلُهَا بِسَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ دَرَجَةً. | سعيد بن مسيب، ابو سلمه بن عبدالرحمن، ابو هريرهٗ روايت كوي ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل حضورٌ فرمائيل تاسو كښې د هر سړي جماعت سره مونځ د خان له مونځ نه پنځويشت درجې (ثواب كښې) زيات دې، او د شپې فريښتې او د ورځې فريښتې د سحر په مونځ كښې جمع كيږي، دې نه پس ابو هريرهٗ ونيلې، كه غواړئې، نو (د دې دليل كښې) اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا او لولئې شعيب، وائي ماته نافع له عبداللّٰه بن عمرٌ نه نقل كړې دې چه د جماعت مونځ د خان له مونځ نه اوويشت درجې ثواب كښې زيات دې. |
| ۲۱۸ : حَدَّثَنَا عُمَرُبْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمًا قَالَ سَمِعْتُ اُمَّ الدَّرْدَآءِ تَقُوْلُ دَخَلَ عَلَيَّ اَبُو الدَّرْدَآءُ وَهُوَ مُغْضَبٌ فَقُلْتُ مَآ اَغْضَبَكَ قَالَ وَاللّٰهِ مَآ اَعْرِفُ مِنْ اَمْرِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا اِلَّا اَنَّهُمْ يُصَلُّوْنَ جَمِيْعًا. | ۲۱۸ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، سالم روايت كوي، ما د ام درداء نه واوريدل، هغې ونيلې يوه ورځ ابو درداء ما كره په غصه راغې، ما ورته اووې، چه تا په څه دومره غصه شوې، هغهٔ اووې، په اللّٰه م دې قسم وي. د محمد صلي اللّٰه عليه وسلم د دين هيڅ خبره زهٔ اوس نه وينم صرف دومره ضرور ده، چه هغوئي جماعت سره مونځ كوي (خو اوس دې كښې هم كوتاهي راغلې ده. مترجم) |
| ۲۱۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْاُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْظَمُ النَّاسِ اَجْرًا فِي | ۲۱۹ : محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد بن عبداللّٰه ابو برده، ابو موسي روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، د ټولو خلقو نه زيات ثواب هغه خلق حاصلوي، څوك چه (جومات ته) د ډير لرې نه راخي |

الصَّلٰوةِ اَبۡعَدُ هُمۡ فَاَبۡعَدُ هُمۡ مَمۡشًى وَّ الَّذِيۡ يَنۡتَظِرُ الصَّلٰوةَ حَتّٰى يُصَلِّيَهَا مَعَ الۡاِمَامِ اَعۡظَمُ اَجۡرًا مِّنَ الَّذِيۡ يُصَلِّيۡ ثُمَّ يَنَامُ.

کوم سړے چه د جماعت انتظار کښې وي چه امام سره مونځ اوکړي، نو د ثواب د مخه د هغې مونځ نه زيات دے کوم چه (تا دئ سره) اوکړي او اوده شي.

## بـاب ۴۲۳: فَضۡلِ التَّهۡجِيۡرِ اِلَى الظُّهۡرِ.

## باب ۴۲۳: د ماسپخين مونځ اول وخت کښې د کولو د فضيلت بيان.

۶۲۰: حَدَّثَنِيۡ قُتَيۡبَةُ عَنۡ مَّالِكٍ عَنۡ سُمَيٍّ مَّوۡلٰى اَبِيۡ بَكۡرِبۡنِ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ عَنۡ اَبِيۡ صَالِحِ نِ السَّمَّانِ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ اَنَّ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيۡنَمَا رَجُلٌ يَّمۡشِيۡ بِطَرِيۡقٍ وَّجَدَ غُصۡنَ شَوۡكٍ عَلَى الطَّرِيۡقِ فَاَخَّرَهٗ فَشَكَرَ اللّٰهُ لَهٗ فَغَفَرَلَهٗ ثُمَّ قَالَ الشُّهَدَاءُ خَمۡسَةٌ اَلۡمَطۡعُوۡنُ وَالۡمَبۡطُوۡنُ وَالۡغَرِيۡقُ وَصَاحِبُ الۡهَدۡمِ وَ الشَّهِيۡدُ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَقَالَ لَوۡيَعۡلَمُ النَّاسُ مَافِي النِّدَآءِ وَالصَّفِّ الۡاَوَّلِ ثُمَّ لَمۡ يَجِدُوۡآ اِلَّآ اَنۡ يَّسۡتَهِمُوۡا عَلَيۡهِ لَاسۡتَهَمُوۡا عَلَيۡهِ وَلَوۡ يَعۡلَمُوۡنَ مَافِي التَّهۡجِيۡرِ لَاسۡتَبَقُوۡآ اِلَيۡهِ وَلَوۡ يَعۡلَمُوۡنَ مَافِي الۡعَتَمَةِ وَالصُّبۡحِ لَاَتَوۡهُمَا وَلَوۡ حَبۡوًا.

۶۲۰: قتيبه، مالک، سمي (د ابو بکر بن عبدالرحمن آزاد کرده غلام) ابو صالح سمان، ابو هريرهٔ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، يو سړے يوه لار کښې روان وو، هغهٔ لاره کښې د ازغو يوه خانګه اوليده، هغه ئے لرے کړه، نو الله تعالي د هغې هغهٔ له دا ثواب ورکهٔ، چه هغه ئے اوبښهٔ بيا حضورٌ او فرمائيل، چه شهيدان پنځه قسمه خلق دي، چه طاعون سره مړ شي چه د خيټې مرض کښې مړ شي، چه ډوب شي مړ شي، چه ښخ شي (دب کړ) مړ شي او خوک چه د الله په لار کښې" شهيد شي، او حضورٌ او فرمائيل، که خلقو ته معلومه شي چه آذان کولو کښې او وړمبي صف کښې شامليدو کښې څومره ثواب دے او بيا دا نيک کار به بغير د قرعې (پچې) اچولو نه حاصل نشي، نو يقيناً هغوي به دے د پاره قرعه اچوي، او که خلقو ته معلومه شي چه د وخته مونځ کولو کښې څومره فضيلت دے نو بيشکه دے طرف ته به سبقت کوي، او که خلقو ته معلومه شي، چه د ماسختن او سحر مونځ جماعت سره کولو کښې څومره ثواب دے نو يقينا هغې کښې به شريکيږي اګر که په ګنډو ورته راتلل وي.

۱. دے حديث شريف کښې درے احاديث يو ځائے کړے دي. يو، هغه واقعه چه د ازغي دار ښاخ د لارے نه په لرے کولو ورته ښښنه شوے ده. دويم حديث شريف کښې د شهيدانو قسمونه بيان شويدي. دريم حديث شريف کښې د اذان او مونځ ته د وختي راتلو د ثواب او فضيلت بيان دے. ليکن راوي درے واړه حديثه يو ځائے جمع کړيدي امام بخاري رحمة الله عليه دے ځائے کښې دا حديث شريف خکه بيان کړيدے چه په دے کښې په اول وخت کښې د مونځ ادا کولو ثواب بيان شويدے. ليکن ددے حديث شريف نه

مخکښې امام بخاري رحمة الله عليه د ماسپخين د مونځ په حقله په يخ وخت کښې د ادا کولو حديث روايت کړيدے چه هغه د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه د مسلک مطابق دے د حديث د عام والي په وجه دا ويل پکار نه دي. چه ټول مونځونه په اول وخت کښې ادا کول مستحب دي. پدے سلسله کښې هغه ټول احاديث په نظر کښې ساتل دي. چه په هغے کښې په تفصيل سره د مونځونو مستحب وختونه بيان شويدي.

## بــــاب ٤٢٤: اِحْتِسَـــابِ الْاٰثَارِ.

باب ٤٢٤: نيک کار کښې هر قدم باندے د ثواب بيا مندو بيان.

٦٢١: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ حَوْشَبٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَابَنِي سَلِمَةَ اَلَا تَحْتَسِبُوْنَ اٰثَارَكُمْ وَزَادَ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسٌ اَنَّ بَنِيْ سَلِمَةَ اَرَادُوْا اَنْ يَتَحَوَّلُوْا عن مَنَازِلِهِمْ فَيَنْزِلُوْا قَرِيْبًا مِنَ النَّبِيِّ صَلَى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَكَرِهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُعْرُوا الْمَدِيْنَةَ فَقَالَ اَلَاتَحْتَسِبُوْنَ اٰثَارَكُمْ قَالَ مُجَاهِدٌ خُطَاهُمْ اٰثَارُ الْمَشْيِ فِي الْاَرْضِ بِاَرْجُلِهِمْ.

٦٢١: محمد بن عبدالله بن حوشب، عبدالوهاب، حميد، انس بن مالکؓ روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اے بني سلمه، آيا تاسو خپلو قدمونو کښې (جماعت ته راتلو سره) ثواب نه ګنړئے، او ابن ابي مريم په واسطه د يحيي د انس نه دومره روايت نور زيات کړے دے، بني سلمه او غوښتل چه د خپلو مکانونو نه لاړ شي او نبي صلي الله عليه وسلم سره نزدے چرته قيام او کړي نو نبي صلي الله عليه وسلم دا خبره ښۀ او نه ګنړله، چه مدينه ورانه کړي. نو حضورؐ او فرمائيل، آيا تاسو خپلو قدمونو کښې (جماعت ته راتلو سره) ثواب نۀ ګنړئے، او مجاهد وئيلے دي چه د "خُطَاهُمْ" معني زمکه کښې خپلو پښو سره د تلو نښے دي¹.

١. رسول الله صلي الله عليه وسلم دا غوښتل چه د مدينے منورے خواوشا علاقے پوره ابادے وي ددے وجے نه ئے د بنو سلمه رائے خوښه نه کړه. دين اسلام کښې د ژوند د ټولو مسئلو حل موجود دے. دنيا کښې چه انسان کوم کار او کړي که هغه ښه وي او که بد، د ټولو ښو کارونو د الله تعالي په دربار کښې اجر او ثواب ورکيږي. که يو سړے د جهاد د پاره اس او ساتي د هغے اس خوراک څکاک متيازے خاشنړه د هر څه ثواب به ورکيږي. چه کله ئے نيت خالص د الله تعالي د رضا د پاره وي. د مونځ په ارادے سره په لارے چه څومره قدمونه واخستے شي هر قدم ثواب دے څومره چه د لرے نه راشي دومره به ئے ثواب زيات

وي.

باب ۴۲۵: فَضلِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ فِي الْجَمَاعَةِ.

باب۴۲۵: دَ ماسختن مونځ جماعت سره دَ كولو د فضيلت بيان.

۶۲۲: حَدَّثَنَا عُمَرُبْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ صَلٰوةٌ اَثْقَلَ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ مِنَ الْفَجْرِ وَالْعِشَآءِ وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا لَاَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ اٰمُرَ الْمُؤَذِّنَ فَيُقِيْمَ ثُمَّ اٰمُرَ رَجُلًا يَؤُمُّ النَّاسَ ثُمَّ اٰخُذُ شُعَلًا مِّنْ نَّارٍ فَاُحَرِّقَ عَلٰى مَنْ لَّا يَخْرُجُ اِلَى الصَّلٰوةِ بَعْدُ.

۶۲۲: عمر بن حفص، حفص، اعمش ابو صالح، ابو هريرهؓ روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، دَ سحر او ماسختن دَ مونځ نه زيات ګران په منافقانو بل هيڅ مونځ نشته، خو كه هغوئ ته دا معلومه شي چه دَ دې دواړو په وخت كولو كښې څومره ثواب دے، نو ضرور به دې ته راځي، خواه په ګُنډو راتلل وي، ما دا (پخه) اراده كړې وه، چه مؤذن ته دَ آذان كولو حكم وركړم، بيا چاته اووايم، چه هغه دَ خلقو امامت اوكړي. او زۀ دَ اور شعلې واخلم او كوم خلق چه مونځ دَ پاره اوسه پورې دَ كور نه، نه دي راوتلې دَ هغوي كورونه (سره دَ هغوي) او سوزوم (ليكن دَ هغوي دَ اهل و عيال خيال راتلو سره مِ دغه اراده پريخودله)

باب ۴۲۶: اِثْنَانِ وَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ.

باب۴۲۶: دوه يا دوونه زيات سړي دَ جماعت په حكم كښې داخل دي.

۶۲۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَاَذِّنَا وَاَقِيْمَا ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمَا اَكْبَرُكُمَا.

۶۲۳: مسدد، زيد بن زريع، خالد ابو قلابه، مالک بن حويرثؓ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، دوه سړي د حضورؐ نه رخصت شو نو حضورؐ او فرمائيل كوم وخت چه د مونځ وخت راشي نو آذان كوئې، او تاسو كښې چه كوم مشر وي هغه دے ستاسو امام جوړ شي[1].

[1] ددې نه وړاندې تفصيلي حديث شريف تير شويدې چه دوه كسان د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو. هغوي د سفر اراده كړې وه هغې دواړو ته نبي عليه الصلاة والسلام دا حكم وركړې وو چه په امامتي سره مونځ كوني كوم چه تاسو دواړو كښې مشر دې هغه به امام وي. د دينه نه دا مسئله واضحه شوه چه دوه كسان په جمعه امامتي سره مونځ كولې شي.

**باب ۴۶۷: مَنۡ جَلَسَ فِي الۡمَسۡجِدِ يَنۡتَظِرُ الصَّلٰوةَ وَفَضۡلِ الۡمَسَاجِدِ.**

باب ۴۲۷: جماعات کښې دَ مونځ په انتظار کښې ناست او دَ جماتونو دَ فضیلت بیان.

**۶۲۴: حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مَسۡلَمَةَ عَنۡ مَّالِكٍ عَنۡ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الۡاَعۡرَجِ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ اَنَّ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ الۡمَلٰٓئِكَةُ تُصَلِّيۡ عَلٰى اَحَدِكُمۡ مَّادَامَ فِيۡ مُصَلَّاهُ مَالَمۡ يُحۡدِثۡ اَللّٰهُمَّ اغۡفِرۡلَهٗ اَللّٰهُمَّ ارۡحَمۡهُ لَايَزَالُ اَحَدُكُمۡ فِيۡ صَلٰوةٍ مَّاكَانَتِ الصَّلٰوةُ تَحۡبِسُهٗ لَايَمۡنَعُهٗٓ اَنۡ يَّنۡقَلِبَ اِلٰٓى اَهۡلِهٖٓ اِلَّا الصَّلٰوةُ.**

۶۲۴: عبدالله بن مسلمه، مالک، ابو الزناد اعرج، ابو هریرهؓ روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، هر کله چه یو سړے اودس کښې په مصلٰے (د مونځ په انتظار کښې) ناست وي، نو فریښتے ورته دُعا کوي (وائي) اے اللّٰه، دے او ښښے، اے اللّٰه، په دهٔ رحم اوکړے او (واورئے) تاسو کښې هر سړے ګویا مانځه کښې دے، څو پورے چه کورته دَ واپس کیدو نه ئے دَ مونځ نه علاوه بل څیز جمات کښې دَ ناستے سبب نهٔ وي (صرف دَ مانځه دَ پاره ناست وي).

**۶۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحۡيٰى عَنۡ عُبَيۡدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيۡ خُبَيۡبُ بۡنُ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ عَنۡ حَفۡصِ بۡنِ عَاصِمٍ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبۡعَةٌ يُّظِلُّهُمُ اللّٰهُ فِيۡ ظِلِّهٖ يَوۡمَ لَاظِلَّ اِلَّاظِلُّهُ اَلۡاِمَامُ الۡعَادِلُ وَشَابٌّ نَشَاَفِيۡ عِبَادَةِ رَبِّهٖ وَرَجُلٌ قَلۡبُهٗ مُعَلَّقٌ فِي الۡمَسَاجِدِ وَرَجُلَانِ تَحَآبَّافِي اللّٰهِ اجۡتَمَعَا عَلَيۡهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيۡهِ وَرَجُلٌ طَلَبَتۡهُ امۡرَاَةٌ ذَاتُ مَنۡصَبٍ وَّ جِمَالٍ فَقَالَ اِنِّيۡٓ اَخَافُ اللّٰهَ وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ اِخۡفَآءً حَتّٰى لَاتَعۡلَمُ شِمَالُهٗ مَاتُنۡفِقُ**

۶۲۵: محمد بن بشار، عبید اللّٰه، خبیب بن عبدالرحمن، حفص بن عاصم، ابو هریرهؓ دَ نبي صلعم نه روایت کوي، حضورؐ او فرمائیل، اوه سړي به اللّٰه پاک د خپل سوري دَ لاندے لري، په هغه ورځ چه دَ هغهٔ دَ سوري نه سوا بل هیڅ سورے به نهٔ وي، عادل حاکم او هغه ځلمے چه دَ خپل پروردګار عبادت کښې (دَ وړو کوالي نه) لوئے شوے وي، او هغه سړے چه دَ هغهٔ زړهٔ جماتونو کښې لږیدلے وي، او هغه دوه سړي چه خپلو کښې صرف دَ خدائے دَ پاره دوستي کوي، کله چه یو ځائے کیږي، نو دَ هغهٔ د پاره، او کله چه جدا کیږي، نو د هغهٔ یعني دَ اللّٰه دَ پاره، او هغه سړے چه هغهٔ ته ښهٔ منصب داره او ښائسته ښځه (زنا دَ پاره) بلنه ورکړي، او هغه دا اووائي، چه زهٔ دَ اللّٰه نه ویریږم (په دے وجه نشم راتلے)، او هغه سړے چه په پټه صدقه ورکړي، تر دے چه دَ هغهٔ ګس لاس ته هم معلوم نشي، چه دَ هغهٔ ښي لاس څهٔ څهٔ خرڅ کړل او هغه سړے چه خلوت کښې اللّٰه یادوي او دَ هغهٔ سترګے

يَمِيْنُهُ وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ.

(ذ اوښكو نه) لوندې شي (الله پاک دې دا صفات خمونږ هم نصيب كړي، اللّهم آمين، فقير محمد عباس قادريه)

۶۲۶ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سُئِلَ اَنَسٌ هَلِ اتَّخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتِمًا فَقَالَ نَعَمْ اَخَّرَ لَيْلَةً صَلٰوةَ الْعِشَآءِ اِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ بَعْدَ مَاصَلّٰى فَقَالَ صَلَّى النَّاسُ وَرَقَدُوْا وَلَمْ تَزَالُوْا فِيْ صَلٰوةٍ مُّنْذُ انْتَظَرْتُمُوْهَا قَالَ فَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَبِيْصِ خَاتَمِهٖ.

۶۲۶ : قيتبه، اسماعيل بن جعفر، حميد روايت كوي، ذ انسؓ نه تپوس اوشو، چه آيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ګوته (انګوټي) اچولې وه (يا نه) هغهٔ ورته اووې، چه هاؤ يوه شپه حضورؐ ذ ماسختن مونځ كښې ذ نيمې سپې پورې تاخير اوكهٔ، بيا ذ مونځ وركولو نه پس حضورؐ خپل مخ مبارک مونږ طرف ته كړلو، او وې فرمائيل خلقو مونځ او كهٔ او اودهٔ شو، ليكن څو پورې چه (د مونځ په) انتظار كښې وو، نو ګويا مانځه كښې وو انسؓ وائي ګويا زهٔ اوس هم ذ حضورؐ ذ ګوتې (انګوټي) پرق وينم.

## باب ۴۲۸ : فَضْلِ مَنْ خَرَجَ اِلَى الْمَسْجِدِ وَمَنْ رَّاحَ.

## باب ۴۲۸ : ذ هغې سړي ذ فضيلت بيان چه سحر، ماښام جمات له ځي.

۶۲۷ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ قَالَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ غَدَآ اِلَى الْمَسْجِدِ اَوْرَاحَ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُ نُزُلَهُ مِنَ الْجَنَّةِ كُلَّمَا غَدَا اَوْرَاحَ.

۶۲۷ : علي بن عبدالله يزيد بن هارون محمد بن مطرف، زيد بن اسلم، عطاء بن يسار، ابو هريرهؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، كوم سړې چه سحر، ماښام (دواړه وخته) جمات له ځي، نو الله تعالىٰ به هغهٔ له جنت كښې (دومره) ميلمستيا وركړي، څومره چه هغه تلې وي.

## باب ۴۲۹ : اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا صَلٰوةَ اِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ.

## باب ۴۲۹ : چه ذ مونځ تكبير اوشي نو سوا ذ فرض مونځ نه بل هيڅ مونځ نشته.

۶۲۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ

۶۲۸ : عبدالعزيز بن عبدالله، ابراهيم بن سعد، سعد، حفص بن عاصم، مالک

عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مَالِكٍ بْنِ بُحَيْنَةَ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ ح قَالَ وَحَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ سَمِعْتُ حَفْصَ بْنَ عَاصِمٍ قَالَ سَمِعْتُ رَجُلًا مِّنَ الْاَزْدِ يُقَالُ لَهُ مَالِكُ بْنُ بُحَيْنَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا وَقَدْ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاثَ بِهِ النَّاسُ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ اَرْبَعًا اَلصُّبْحَ اَرْبَعًا تَابَعَهُ غُنْدُرٌ وَّمُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ فِيْ مَالِكٍ وَّقَالَ ابْنُ اِسْحَاقَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُحَيْنَةَ وَقَالَ حَمَّادُ اَخْبَرَنَا سَعْدٌ عَنْ حَفْصٍ عَنْ مَّالِكٍ.

بن بحينه (ح) (دونم سند) عبدالرحمن، بهز بن اسد، شعبه سعد بن ابراهيم، حفص بن عاصم، عبدالله بن مالک بن بحينهٌ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم يو سړي دوه ركعاته مونځ كونكے اوليد، حالانكه د مونځ اقامت شوے وو، كوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فارغ شو، نو خلق دَ حضورٌ نه گير چاپيره راجمع شو. رسول الله صلي الله عليه وسلم هغۀ ته او فرمائيل، آيا دَ سحر څلور ركعاته دي؟ آيا دَ سحر څلور ركعاته دي؟ او دَ مالک په حديث كښې غندر او معاذ دَ شعبه نه دَ دے متابع حديث روايت كړے دے، او ابن اسحاق دَ سعد بن حفص، عبدالله بن بحينه نه روايت كه ا حماد اوو ے، چه مونږ ته سعد، هغه دَ حفص نه او هغه دَ مالک نه (دا حديث) روايت كړے.

۱. ددے حديث شريف نه دا ښكاره معلوميږي چه كله د فرض مونځ د پاره اقامت اوشي نو بيا سنت مونځ ادا كول روا نه دي. بعضے خلقو ددے حديث شريف دا مطلب اخستے دے كه كوم بنده سنت ادا كول په دے كښ د فرض مونځ د پاره اقامت اوشو نو د هغه سنت فاسد شي. ليكن څلور واړو امامانو كښ هيڅوک دا نۀ وائي د جمهورو دا مذهب دے چه كله د فرض مونځ د پاره اقامت شروع شي نو سنت شروع كول پكار نه دي. ليكن د صبا د سنتو په حقله اختلاف دے د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه دا مسلک دے كه چرے فرض مونځ شروع شي او بيا سنت ادا كولو نه پس د يو ركعت امام سره موقع په لاس رازي نو بيا دے د جومات نه بَهر سنت ادا كړي. د دے حديث شريف د ظاهري ښكاره معني څلورواړه امامان قائل نه دي. دا يو اجتهادي مسئله ده. ځكه چه په احاديثو كښ شته. كه چا يو ركعت امام سره بيامونډ نو هغه ته د امامتې د مونځ ثواب وركيږي. ددے وجے نه امام ابوحنيفه رحمة الله عليه د يو ركعت شرط لګولے دے. بيا پكښ امام محمد رحمة الله عليه نوره فراخي پيدا كړه. او وائي كه چاته دا خيرے قعدے اميدوي نو بيا دے هم د صبا سنت اداكړي. اول د ادا كولو دا صورت وو چه سنت دے د جومات نه بَهر ادا كړي. خو بيا پكښ احنافو عالمانو اويل: چه جومات كښ دننه د امام نه لرے اودريږي او

د صا سنت دے ادا کړي

**باب ۴۳۰ : حَدِّ الْمَرِيضِ أَنْ يَشْهَدَ الْجَمَاعَةَ**

۶۲۹ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ إِبْرَاهِيمَ قَالَ الْأَسْوَدُ كُنَّا عِنْدَ عَائِشَةَ فَذَكَرْنَا الْمُوَاظَبَةَ عَلَى الصَّلٰوةِ وَالتَّعْظِيمِ لَهَا قَالَتْ لَمَّا مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَضَهُ الَّذِي مَاتَ فِيهِ فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَأُذِّنَ فَقَالَ مُرُوْا أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقِيلَ لَهُ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ رَجُلٌ أَسِيفٌ إِذَا قَامَ مَقَامَكَ لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ وَأَعَادَ فَأَعَادُوا لَهُ فَأَعَادَ الثَّالِثَةَ فَقَالَ إِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوسُفَ مُرُوْا أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَخَرَجَ أَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي فَوَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نَفْسِهِ خِفَّةً فَخَرَجَ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رِجْلَيْهِ تَخُطَّانِ الْأَرْضَ مِنَ الْوَجَعِ فَأَرَادَ أَبُوبَكْرٍ أَنْ يَتَأَخَّرَ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ مَكَانَكَ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ حَتَّى جَلَسَ إِلَى جَنْبِهِ فَقِيلَ لِلْأَعْمَشِ فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي وَأَبُوبَكْرٍ يُصَلِّي بِصَلٰوتِهِ وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوةِ أَبِي بَكْرٍ فَقَالَ بِرَأْسِهِ

**باب ۴۳۰ : مريض له د کوم حده پور بيماري کښې جماعت کښې حاضريدل پکار دي.**

۶۲۹ : عمرو بن حفص بن غياث، اعمش، ابراهيم، اسودؒ روايت کوي چه مونږ بي بي عائشے سره (ناست وو) د مونځ د پابندي او د هغے د بزرګي بيان مو کولو. نو هغے اووے، کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم باندے هغه مرض راغے کوم کښې چه وفات شو، او د مونځ وخت راغے نو حضورؐ او فرمائيل، ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي، حضورؐ ته عرض اوشو، چه ابو بکر نرم زړے سړے دے، کوم وخت چه ستاسو په ځائے او دريږي، نو (د ډير غم نه) مونځ به ور نه کړے شي. دوباره بيا حضورؐ او فرمائيل، بيا خلقو هغه عرض اوکۀ. په دريم وار حضورؐ او فرمائيل، تاسو دَ يوسف ګيرونکو ښځو په شان معلوميږئے. ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي، نو (ورته اوونيلے شو) ابو بکرؓ مونځ ورکولو دَ پاره لاړ، دے کښې حضورؐ خپل مرض کښې څۀ کمي محسوس کۀ، نو حضورؐ دَ دوو سړو په تکيه اووت، ګويا زۀ اوس هم دَ حضورؐ دواړو پښو طرف ته ګورم چه دَ مرض دَ کمزورئ په سبب راکښلے شوے، نو ابو بکرؓ او غوښتل چه ورستو شي خو نبي عليه السلام ورته اشارے سره او فرمائيل، چه ته په خپل ځائے اوسه بيا حضورؐ راوستے شو، تر دے چه حضورؐ دَ ابو بکرؓ په خوا کښې کيناست اعمش نه تپوس اوشو، چه آيا نبي صلي الله عليه وسلم مونځ ورکولو، او ابوبکرؓ دَ حضورؐ دَ مونځ اقتدا کوله، او خلقو دَ ابو بکر دَ

نَعَمْ رَوَاهُ اَبُوداوُد عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ بَعْضَهُ وَزَادَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ جَلَسَ عَنْ يَّسَارِ اَبِیْ بَكْرٍ فَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ يُصَلِّیْ قَآئِمًا.

مونځ اقتدا کوله' نو اعمش خپل سر سره اشاره اوکړه چه او. او ابو معاويه دومره الفاظ زيات روايت کړي دي' چه ابو بکرؓ دَ حضورؐ کس طرف ته کيناست او ابو بکرؓ په ولاړه مونځ کولو.

ف: دې حديث نه معلومه شوه' چه څو پورې دومره طاقت باقي وي' چه دَ چا په تکيه سره جمات ته تلے شي' نو هغه وخته پورې هغه له جمات پريخودل نهٔ دي پکار.

۶۳۰: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاشْتَدَّ وَجَعُهُ اِسْتَأْذَنَ اَزْوَاجَهُ اَنْ يُّمَرَّضَ فِیْ بَيْتِیْ فَاَذِنَّ لَهُ فَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ الْاَرْضَ وَكَانَ بَيْنَ الْعَبَّاسِ وَبَيْنَ رَجُلٍ اٰخَرَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِاِبْنِ عَبَّاسٍ مَّاقَالَتْ عَآئِشَةُ فَقَالَ لِیْ وَهَلْ تَدْرِیْ مَنِ الرَّجُلُ الَّذِیْ لَمْ تُسَمِّ عَآئِشَةُ قُلْتُ لَاقَالَ هُوَعَلِيُّ بْنُ اَبِیْ طَالِبٍؓ.

۶۳۰: ابراهيم بن موسٰي هشام بن يوسف معمر' زهري' عبيد الله بن عبدالله' بي بي عائشهؓ روايت کوي کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم ناروغه شو او مرض ئې زيات شو. نو حضورؐ دَ خپلو بيبيانو نه اجازت واخست چه څما (عائشېؓ) په کور کښې دې دَ حضورؐ خدمت اوکړے شي' ټولو اجازت ورکړهٔ' نو حضورؐ دَ دوو سړو په تکيه (مانځه له) را ووتلو دَ حضورؐ دواړه پښې مبارک په زمکه (دَ کمزورتيا نه) راکښلے شوې. او حضورؐ دَ عباسؓ او دَ يو بل سړي (مينځ کښې) په تکيه وو عبيد الله وائي چه ما ته بي بي عائشېؓ څهٔ بيان کړے وو' دَ هغې ذکر ما ابن عباسؓ ته اوکهٔ. نو هغهٔ اووے' تا ته پته ده' چه هغه دوئم سړے څوک وو' چه دَ هغهٔ نوم بي بي عائشې وانخست ما ورته اووے' نه' نو هغه اووے' چه هغه علي بن ابي طالبؓ وو.

بَاب ۴۳۱: الرُّخْصَةِ فِی الْمَطَرِ وَالْعِلَّةِ اَنْ يُّصَلِّیَ فِیْ رَحْلِهٖ.

باب ۴۳۱: دَ باران او عذر په وجه خپل کور کښې دَ مونځ کولو دَ اجازت بيان.

۶۳۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ اِبْنَ عُمَرَ اَذَّنَ بِالصَّلٰوةِ فِیْ لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَّرِيْحٍ ثُمَّ قَالَ اَلَا صَلُّوْا فِی

۶۳۱: عبدالله بن يوسف' مالک' نافع روايت کوي چه ابن عمرؓ يوه يخه او هوادارې شپه کښې دَ مونځ آذان اوکهٔ' هغې کښې ئې دا هم اووے چه خلقو' خپلو خپلو کورونو کښې مونځ اوکړئ. دَ هغې نه پس

الرِّحَالِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ اِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ ذَاتُ بَرْدٍ وَّ مَطَرٍ يَّقُوْلُ اَلَا صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ.

ئې اووې، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به مؤذن ته حكم وركولو، كله چه شپه يخه او دَ باران وي، نو وايه چه، اَلا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ، (كورونو كښې مونځ اوكړئې).

٦٣٢ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَحْمُوْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ كَانَ يَؤُمُّ قَوْمَهٗ وَهُوَ اَعْمٰى وَاَنَّهٗ قَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا تَكُوْنُ الظُّلْمَةُ وَالسَّيْلُ وَاَنَا رَجُلٌ ضَرِيْرُ الْبَصَرِ فَصَلِّ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَيْنَ تُحِبُّ اَنْ اُصَلِّيَ فَاَشَارَ اِلٰى مَكَانٍ مِّنَ الْبَيْتِ فَصَلّٰى فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٦٣٢ : اسماعيل، مالك، ابن شهاب محمود بن ربيع انصاري روايت كوي چه عتبان دَ خپل قوم امامت كولو، هغه نابينا (ړوند) وو، نو هغهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خواست اوكهٔ، چه يا رسول اللّٰه، كله تيارهٔ وي او باران وريږي او زهٔ نابينا سړے يم (داسے وخت كښې نشم راتلے) نو يا رسول اللّٰه، تاسو ځما كور كښې يو ځائے كښې مونځ او كړئې، چه زهٔ هغه دَ مونځ ځائے جوړ كړم، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ هغهٔ ځائے ته تشريف يوړلو او وے فرمائيل، چه تهٔ كوم ځائے غواړے، هلته به زهٔ مونځ اوكړم، نو هغهٔ دَ كور يو مقام ته اشاره اوكړه هلته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مونځ اوكړلو.

ف : معلومه شوه چه باران كښې هر كله چه لار خرا به وي، نو جماعت پريخودل جائز دي، خلق خپلو كورونو كښې مونځ كولے شي.

باب ۴۳۲ : هَلْ يُصَلِّي الْاِمَامُ بِمَنْ حَضَرَ وَهَلْ يَخْطِبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي الْمَطَرِ.

باب ۴۳۲ : آيا امام چه څومره خلق موجود وي، هغوي سره مونځ اوكړي، او آيا دَ جمعے په ورځ باران كښې هم خطبه وركړي (كه نه).

٦٣٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيْدِ صَاحِبُ الزِّيَادِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الْحَارِثِ قَالَ خَطَبَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ ...

٦٣٣ : عبدالله بن عبدالوهاب، حماد بن زيد صاحب الزيادي، دَ عبدالله بن حارثؒ بيان دے چه (يو ځلے دَ باران په وجه) ختمے شوے وے. حضرت ابن عباس په هغه ورځ خطبه وركړه، او مؤذن ته ئې ونهلے ... چه خپلو خپلو كورونو

يَوْمٍ ذِيْ رَدْغٍ فَاَمَرَ الْمُؤَذِّنَ لَمَّا بَلَغَ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ قَالَ قُلِ الصَّلٰوةُ فِي الرِّحَالِ فَنَظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ كَاَنَّهُمْ اَنْكَرُوْا فَقَالَ كَاَنَّكُمْ اَنْكَرْتُمْ هٰذَا اِنَّ هٰذَا فَعَلَهُ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِّنِّيْ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهَا عَزْمَةٌ وَّاِنِّيْ كَرِهْتُ اَنْ اُحَرِّجَكُمْ وَعَنْ حَمَّادٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ نَّحْوَهُ غَيْرَ اَنَّهُ قَالَ كَرِهْتُ اَنْ اُؤَثِّمَكُمْ فَتَجِيْئُوْنَ تَدُوْسُوْنَ الطِّيْنَ اِلٰى رُكَبِكُمْ.

کښې مونځ اوکړی، دے آوریدو سره خلقو يو بل ته کتل شروع کړل، ګویا چه هغوي دا خبره بنهٔ او نهٔ ګنړله، نو ابن عباس اووے، داسے معلومیږي، چه تاسو دا خبره بده او ګنړله، دا خبره هغه چا کړے ده، چه خما نه بهتر وو، یعنی نبي صلي الله علیه وسلم، دا یقیني امر دے، چه آذان سره جماعت ته راتلل واجب کیږي، او ما دا خبره بنهٔ او نهٔ ګنړله، چه تاسو تکلیف کښې واچوم، حضرت عاصم هم دَ حضرت ابن عباسؓ نه دغه شان نقل کړے دے صرف دومره فرق دے، هغهٔ اووے، چه ما ته بنهٔ معلومه نهٔ شوه، چه تاسو ګنهکار کړم، یا تاسو دَ ګنډو پورے ختهو کښې بوخت شے.

٦٣٤ : حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيَّ جَآءَتْ سَحَابَةٌ فَمَطَرَتْ حَتّٰى سَالَ السَّقْفُ وَكَانَ مِنْ جَرِيْدِ النَّخْلِ فَاُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِي الْمَآءِ وَالطِّيْنِ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ الطِّيْنِ فِيْ جَبْهَتِهٖ.

٦٣٤ : مسلمه، هشام، یحیٰی، ابو سلمهؓ روایت کوي، ما دَ ابو سعید خدريؓ نه تپوس اوکهٔ نو هغهٔ اووے. يو ځلے وریځ راغله او هغه په وریدو شوه، تردے چه چهت په څڅیدو شولو. او چهت به (دغه وخته پورے) دَ قجورو دَ څانګو نه تیاریدلو بیا دَ مونځ اقامت اوشو، نو ما رسول الله صلي الله علیه وسلم اولید، چه اوبو او خاوره کښې سجده کوله، تردے چه دَ ختې اثر ما دَ رسول الله صلي الله علیه وسلم په تندي مبارک اولیدلو.

٦٣٥ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ سِيْرِيْنَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَّقُوْلُ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ اِنِّيْ لَآ اَسْتَطِيْعُ الصَّلٰوةَ مَعَكَ وَكَانَ رَجُلًا ضَخْمًا فَصَنَعَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا فَدَعَاهُ

٦٣٥ : آدم، شعبه، انس بن سیرین، انسؓ روایت کوي، چه انصارو کښې يو سړي نبي صلي الله علیه وسلم ته عرض اوکهٔ چه زهٔ معذوره یم، تاسو سره مونځ کښې نشم حاضریدے، او هغه غټ سړے وو، دے نه پس هغه دَ نبي صلي الله علیه وسلم دَ پاره طعام تیار کړلو او حضور صلي الله علیه

اِلٰی مَنْزِلِهٖ فَبَسَطَ لَهٗ حَصِيْرًا وَّ نَضَحَ طَرَفَ الْحَصِيْرِ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْ اٰلِ الْجَارُوْدِ لِاَنَسٍ اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحٰى قَالَ مَا رَاَيْتُهٗ صَلَّاهَا اِلَّا يَوْمَئِذٍ.

وسلم ئے خپل مکان ته راوست. حضورؐ ذ هاره ئے پوړ او غوړولو، او ذ پوړ یوه غاړه ئے اوویںزله. په هغے حضورؐ دوه رکعاته مونځ اوکړلو. دے کښی ذ آلِ جارودیو سړي ذ انسؓ نه تپوس اوکه، چه نبي صلي الله علیه وسلم به ذ څاښت مونځ کولو؟ نو هغوئي اُفرمائیل چه د دغے ورځے نه سِوا ما حضورؐ په دے مونځ نه دے لیدلے.

## باب ۴۳۳: اِذَا حَضَرَ الطَّعَامُ وَاُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَبْدَاُ بِالْعَشَآءِ وَقَالَ اَبُو الدَّرْدَاۗءِ مِنْ فِقْهِ الْمَرْءِ اِقْبَالُهٗ عَلٰى حَاجَتِهٖ حَتّٰى يُقْبِلَ عَلٰى صَلٰوتِهٖ وَقَلْبُهٗ فَارِغٌ.

## باب ۴۳۳: که طعام راشي او ذ مونځ اقامت اوشي، ابن عمرؓ به مخکښی طعام خوړلو، او ذ ابو درداؓ قول دے چه ذ سړي ذ عقلمند کیدو علامت دا دے چه اول خپل ضرورت پوره کړي، چه مانځه ته ذ زړهٔ اطمینان سره متوجه شي.

۶۳۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ سَمِعْتُ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ اِذَا وُضِعَ الْعَشَآءُ وَاُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَابْدَءُوْا بِالْعِشَآءِ.

۶۳۶: مسدد، یحیي، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشةؓ ذ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي، حضورؐ او فرمائیل، کوم وخت چه طعام مخکښی کیښودے شي، او ذ مونځ اقامت اوشي، نو اول طعام خورئے.

۶۳۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ بْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قُدِّمَ الْعَشَآءُ فَابْدَءُوْا بِهٖ قَبْلَ اَنْ تُصَلُّوْا صَلٰوةَ الْمَغْرِبِ وَلَا تَعْجَلُوْا عَنْ عِشَآئِكُمْ.

۶۳۷: یحیي بن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب، حضرت انس بن مالکؓ روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، کله چه طعام مخکښی کیښودے شي، نو ذ ماښام ذ مونځ نه مخکښی طعام خورئے او خپل خوراک کښی تادي مه کوئے.

۶۳۸: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ

۶۳۸: عبید الله بن اسماعیلا بو اسامه عبید الله، نافع، ابن عمرؓ روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه

اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا وُضِعَ عِشَآءُ اَحَدِكُمْ وَاُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَابْدَءُوْا بِالْعَشَآءِ وَلَا يَعْجَلْ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُوْضَعُ لَهُ الطَّعَامُ وَ تُقَامُ الصَّلٰوةُ فَلَا يَأْتِيْهَا حَتّٰى يَفْرُغَ وَاِنَّهُ لَيَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْاِمَامِ وَقَالَ زُهَيْرٌ وَّوَهْبُ بْنُ عُثْمَانَ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ اَحَدُكُمْ عَلَى الطَّعَامِ فَلَا يَعْجَلْ حَتّٰى يَقْضِيَ حَاجَتَهُ مِنْهُ وَ اِنْ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَحَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ عَنْ وَّهْبِ بْنِ عُثْمَانَ وَوَهْبٌ مَدَنِيٌّ.

وسلم او فرمائيل' هر كله چه تاسو كښې چا ته ډوډئ مخې ته كېښودې شي' او دَ مونځ اقامت هم اوشي' نو اول دې ډوډئ اوخوري' او تادي دې نهٔ كوي' تر دې چه دَ هغې نه فارغ شي دَ ابن عمرؓ عادت وو' چه كله به هغهٔ ته ډوډئ مخې ته يښودې شوه' او جماعت به هم اودريدلو. نو څو پورې چه به دَ ډوډئ نه فارغ شوې نهٔ وو' مانځه له به نهٔ تلو' حالانكه هغه به يقيناً دَ امام قرات آوريدلو' او زبير او وهب بن عثمان په سند دَ موسٰي بن عقبه' نافع' ابن نقل كړې دې' چه نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل هر كله چه تاسو كښې څوک ډوډئ ته كيني' نو تادي دې نهٔ كوي' تر دې چه خپله اشتها هغې سره پوره كړي' اګر كه جماعت ولاړوي' امام بخاريؒ اووې چه ماته ابراهيم بن منذر' دَ وهب بن عثمان نه روايت اوكهٔ' او وهب دَ مدينې اوسيدونكې وو.

۱. دې احاديثو كښې چه كوم حكم بيان شويدې ددې په حقله "مشكل الاثار" كښې دي چه دا حكم د روژه دار په حقله دې او خاص د مابنام د مونځ په باره كښې دي د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما عمل چه كوم پدې روايت كښې ذكر دې ددې په حقله ويلې شويدي چه ده به اكثر روژې نيولې' دا حكم هله دې چه د خوراک نه كونو په وجه مونځ كښې د خوراک پحقله خيال رازي. د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه دا وينا ډيره خوندناكه ده. او خما خوراک دې ټول مونځ شي دا دينه خما زياته خوښه ده چه خما مونځ خوراک شي". ددې وجې نه پدې كښې زياته فراخي پكار نده.

## باب ۴۳۴: اِذَا دُعِيَ الْاِمَامُ اِلَى الصَّلٰوةِ وَبِيَدِهٖ مَا يَأْكُلُ.

باب ۴۳۴: هر كله چه مونځ دَ پاره امام راونستې شي' او دَ هغهٔ په لاس كښې هغه څيز وي' چه خوري ئې.

۶۳۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ

۶۳۹: عبدالعزيز بن عبدالله' ابراهيم بن سعد' صالح' ابن شهاب' جعفر بن عمروؔ بن اميه' عمرو بن اميهؔ روايت كوي' ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليد'

أَخْبَرَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ أَبَاهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ ذِرَاعًا يَحْتَزُّ مِنْهَا فَدُعِيَ إِلَى الصَّلٰوةِ فَقَامَ فَطَرَحَ السِّكِّيْنَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

چه يو پټون ئې خوړلو. د هغې نه حضورؐ غوښه پريكوله، دې كښې حضورؐ مانځه د پاره او بللې شو، نو حضورؐ اودريدلو، او چاړه ئې لاندې كيښوده بيا حضورؐ مونځ اوكړو او اودس ئې او نه كړه (يعني د غوښې خوړلو نه پس).

بَابُ ۴۳۵: مَنْ كَانَ فِيْ حَاجَةِ أَهْلِهٖ فَأُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَخَرَجَ.

باب ۴۳۵: كوم سړې چه د كور كار روزګار كښې وي، او د مونځ تكبير اوشي، نو مانځه د پاره دې بهرته اوځي.

۶۴۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِيْ بَيْتِهٖ قَالَتْ كَانَ يَكُوْنُ فِيْ مِهْنَةِ أَهْلِهٖ تَعْنِيْ خِدْمَةَ أَهْلِهٖ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلٰوةِ.

۶۴۰: آدم، شعبه، حكم، ابراهيم، اسودؒ روايت كوي، ما د بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكړ، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم، به خپل كور كښې څه څه كول هغې اووې چه د خپل كور، د خلقو محنت كښې به مشغول وو. او كوم وخت چه به د مونځ وخت راغے. نو حضورؐ به مانځه د پاره لاړلو.

بَابُ ۴۳۶: مَنْ صَلّٰى بِالنَّاسِ وَهُوَ لَا يُرِيْدُ إِلَّا أَنْ يُّعَلِّمَهُمْ صَلٰوةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسُنَّتَهٗ.

باب ۴۳۶: د هغه سړي بيان چه خلقو ته صرف دې د پاره مونځ وركوي. چه هغوي ته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مونځ او سنت اوښائي.

۶۴۱: حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ جَآءَنَا مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ فِيْ مَسْجِدِنَا هٰذَا قَالَ إِنِّيْ لَأُصَلِّيْ بِكُمْ وَمَا أُرِيْدُ الصَّلٰوةَ أُصَلِّيْ كَيْفَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فَقُلْتُ لِأَبِيْ قِلَابَةَ كَيْفَ كَانَ يُصَلِّيْ

۶۴۱: موسي بن اسمٰعيل، وهيب، ايوب ابو قلابهؒ روايت كوي چه مونږ پله مالك بن حويرث خمونږ دې جمات ته راغے او هغه اووې، زه ستاسو مخكښې مونځ كوم، او خما مقصود مونځ كول نه دي. بلكه څنګه چه محمد صلي الله عليه وسلم ما په مونځ كولو ليدلے دے هغه شان تاسو ته د ښودنې د پاره كوم. ايوب وائي، ما ابو قلابه ته اووې، چه هغه څنګه مونځ كولو، هغه اووے چه خمونږ

قَالَ مِثْلَ شَيْخِنَا هٰذَا وَكَانَ الشَّيْخُ يَجْلِسُ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُوْدِ قَبْلَ أَنْ تَنْهَضَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى.

د دې شيخ په مثل. او د شيخ دا عادت وو. چه به ؤ رمبي ركعت كښې چه د سجدې نه به يې سر اوچت كړلو نو د اودريدو نه مخكښې به كيناستلو۱.

۱. دا د ارام كولو ناسته ده. د احنافو په نزد دا غوره ده. چه داسې اونه كړے شي. د اسلام په شروع كښې دا طريقه وه. بيا روستو دا ناسته پريخودے شوه. بعض احاديثو مباركو كښې ديته اشاره شويده. امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه نه داسې روايت شوے دے چه اكثر احاديث دا بنائي چه دا كيناستل پريخودلے شويدي. دا اختلاف صرف د غوره والي په حقله دے د بحر الرائق مصنف. د شمس الائمه حلواني رحمة الله عليه نه دا نقل كړيدي.

## بَابُ ۴۳۷: أَهْلُ الْعِلْمِ وَالْفَضْلِ أَحَقُّ بِالْإِمَامَةِ.

باب ۴۳۷: د علم او فضل خاوند د امامت زيات حقدار دے.

۶۴۲ : حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ ثَنَا حُسَيْنٌ عَنْ زَآئِدَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَدَّ مَرَضُهُ فَقَالَ مُرُوْا أَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ قَالَتْ عَآئِشَةُ إِنَّهُ رَجُلٌ رَقِيْقٌ إِذَا قَامَ مَقَامَكَ لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ قَالَ مُرِيْ أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَعَادَتْ فَقَالَ مُرِيْ أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَإِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ فَأَتَاهُ الرَّسُوْلُ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فِيْ حَيٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۴۲ : اسحق بن نصر، حسين زائده، عبدالملك بن عمير، ابو برده، ابو موسي روايت كوي، كوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم ناروغه شو، او د حضورؐ مرض زيات شولو. نو وې فرمائيل ابو بكرؓ ته اووائې. چه خلقو ته مونځ وركړي. بي بي عائشےؓ ورته اووې. حضورؐ، هغه يو نرم زړے سړے دے. چه ستاسو په ځائې اودريږي، نو خلقو ته به مونځ ورنه كړے شي ليكن بيا هم حضورؐ او فرمائيل ابو بكرؓ ته اووائې چه خلقو ته مونځ وركړي. او تاسو خو هغه ښځے معلوميږئے. چه هغوي يوسف كير كړے وو نو ابو بكرؓ ته قاصد دغه حكم او رسولو. او هغه د نبي صلي الله عليه وسلم په ژوند كښې خلقو ته مونځ وركړلو.

ف: يعني څنګه چه حضرت يوسف عليه السلام سره د مصر ښځو د هغهٔ د مرضي خلاف خبرے كولے. دغسے تاسو هم ما سره څما د مرضي خلاف خبرے كوئے. يا داچه حضرت يوسف عليه السلام په څه بل خيال كښې وو. او هغه ښځے په څه بل خيال كښې وے.

۶۴۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا قَالَتْ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ مَرَضِهٖ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ قَالَتْ عَآئِشَةُ قُلْتُ اِنَّ اَبَابَكْرٍ اِذَا قَامَ فِيْ مَقَامِكَ لَمْ يُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُكَآءِ فَمُرْ عُمَرَ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَتْ قُلْتُ لِحَفْصَةَ قُوْلِيْ لَهٗ اِنَّ اَبَابَكْرٍ اِذَا قَامَ فِيْ مَقَامِكَ لَمْ يُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُكَآءِ فَمُرْ عُمَرَ فَلْيُصَلِّ لِلنَّاسِ فَفَعَلَتْ حَفْصَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْ اِنَّكُنَّ لَاَنْتُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ لِلنَّاسِ فَقَالَتْ حَفْصَةُ لِعَآئِشَةَ مَاكُنْتُ لِاُصِيْبَ مِنْكِ خَيْرًا.

۶۴۳: عبدالله بن يوسف، مالک هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشهؓ روايت کوي، هغه وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلے بيمارئ کښې او فرمائيل، ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي، بي بي عائشهؓ وائي، ما بي بي حفصےؓ ته اووے، چه ته حضورؐ ته عرض او که، که ابو بکرؓ ستاسو په ځائے اودريږي، نو د ژړا په وجه به خلقو ته خپل قرات و او نه رولے شي، نو تاسو عمرؓ ته حکم اوکړئے، چه هغه خلقو ته مونځ ورکړي، بي بي حفصےؓ ورته دغسے عرض اوکه، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، يقيناً تاسو هغسے ښځے يئے، چه يوسفؑ ئے ګير کړے وو، ابو بکرؓ ته حکم او کړئے، چه هغهؓ خلقوته مونځ ورکړي، نو بي بي حفصےؓ بي بي عائشےؓ ته اووے چه ما تا نه هيڅ کله فائده بيا نه مُندهٔ[۱] (يعني ستا په وجه راته پيغمبرؐ زورنه راکړه (عارف)

۱. ددے واقعے په حقله د "صَوَاحِبُ يُوْسُفَ" لفظ راغلے دے صَوَاحِبُ د صَاحِبَةٌ جمع ده. ليکن ددے نه يواځے زليخا بي بي مراد ده، داسے "اَنْتُنَّ" د جمع ضمير دے ددينه يواځے عائشه بي بي رضي الله عنها مراد ده زليخا بي بي د مصر د ښځو د اعتراض بندولو د پاره، هغے ښځو په ښکاره دعوت ورکړو. "چه زهٔ ستاسو عزت کوم" ليکن د هغے مقصد د يوسف عليه السلام ښائست ښکاره کول وو. چه تاسو هسے بيسه ما ملامته کوني او خبره داسے ده چه زهٔ مجبوره يم" څرنګ چه زليخا بي بي د خپل زړه خبره پټه ساتلے وه. داسے د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها دا خوښه وه. "چه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دے امام وي، د نبي عليه الصلاة والسلام د طرفه د خبرے زياتے پخولو د پاره، په بل سر ليک سره خبره روستو کوله (د حضرت عمر رضي الله عنه نوم به ئے اخستلو) په اولکښې حضرت حفصه بي بي رضي الله عنها په خبره پوهه شوے نه وه. ليکن چه کله نبي عليه الصلاة والسلام په زور سره حکم او کړو. نو بيا حفصه بي بي رضي الله عنها د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها په مقصد پوهه شوه نو اوئے فرمايل "ماته به ستا د طرفه څنګه ښاده، ښيګړه راکړے شي".

۶۴۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكِ نِ الْاَنْصَارِيُّ وَ كَانَ تَبِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَدَمَهُ وَصَحِبَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَانَ يُصَلِّيْ لَهُمْ فِيْ وَجَعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ حَتّٰى اِذَا كَانَ يَوْمُ الْاِثْنَيْنِ وَهُمْ صُفُوْفٌ فِي الصَّلٰوةِ فَكَشَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتْرَا لْحُجْرَةِ يَنْظُرُ اِلَيْنَا وَهُوَ قَآئِمٌ كَاَنَّ وَجْهَهٗ وَرَقَةُ مُصْحَفٍ ثُمَّ تَبَسَّمَ يَضْحَكُ فَهَمَمْنَا اَنْ نَفْتَتِنَ مِنَ الْفَرَحِ بِرُؤْيَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَكَصَ اَبُوْبَكْرٍ عَلٰى عَقِبَيْهِ لِيَصِلَ الصَّفَّ وَظَنَّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَارِجٌ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَشَارَ اِلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَتِمُّوْا صَلٰوتَكُمْ وَاَرْخَى السِّتْرَ فَتُوُفِّيَ مِنْ يَوْمِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۴۴ : ابو اليمان، شعيب، زهري، انس بن مالک چه ذ حضورؐ پيروي کونکے، ذ حضورؐ خادم او صحابي وو، روايت کوي، چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ذ وفات مرض کښې به ابو بکرؓ خلقو ته مونځ ورکولو تر دے چه کله ذ ګل (دو شنبه) ورځ شوه، او خلق مونځ کښې صفونو کښې اودريدل شو، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د حجرے پرده اوچته کړه، او مونږ خلقو ته ئے په ولاړه کتل، دغه وخت ذ حضورؐ مخ مبارک ګويا ذ مصحف (قرآن) صفحه وه. بيا حضورؐ ذ خوشحالي نه مُسکے شو، مونږ خلقو ذ خوشحالي په وجه او غوښتل، چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم په ديدن مشغول شو، او ابو بکر ذ خپلو پښو په شا ورستو شو، چه صف سره يو ځائے شي، هغه پوه شو، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مونځ له راځي، ليکن حضورؐ خمونږ طرف ته اشاره اوکړه، چه خپل مونځ پوره کړئے او حضورؐ پرده او غرځوله، او هم په دغه ورځ حضورؐ وفات شولو.

۶۴۵ : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمْ يَخْرُجِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثًا فَاُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَذَهَبَ اَبُوْ بَكْرٍ يَتَقَدَّمُ فَقَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحِجَابِ فَرَفَعَهٗ فَلَمَّا وَضَحَ وَجْهُ

۶۴۵ : ابومعمر. عبدالوارث. عبدالعزيز انسؓ روايت، ذ وفات مرض کښې حضور صلے اللّٰه عليه وسلم درے ورځے بهر راووتلو. يو ورځ ذ مونځ اقامت اوشو او ابوبکرؓ مخکښے شو. دے کښې حضورؐ پرده اونيوله هغه ئے اوچته کړه. ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم مخ مبارک چه خمونږ

النَّبِيِّ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَانَظَرْنَا مَنْظَرًا كَانَ اَعْجَبَ اِلَيْنَا مِنْ وَّجْهِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ وَضَحَ لَنَا فَاَوْمَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ اَنْ يَّتَقَدَّمَ وَاَرْخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحِجَابِ فَلَمْ يُقْدَرْ عَلَيْهِ حَتّٰى مَاتَ.

په نظر شو، نو داسې خوشحالونکې نظاره مو اوليدله، چه ذ دې نه زياته مو هيڅ کله نه وه ليدلې. بيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خپل لاس مبارک سره ابوبکرؓ ته اشاره اوکړه چه مخکښې شي او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم پرده او غورځوله. بيائې پرې وس رانغې، تردې چه حضورؐ وفات شولو.

٦٤٦: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي بْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمَّا اشْتَدَّتْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجْعُهٗ قِيْلَ لَهٗ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ قَالَتْ عَائِشَةُ اِنَّ اَبَابَكْرٍ رَّجُلٌ رَّقِيْقٌ اِذَا قَرَاَ غَلَبَهُ الْبُكَاءُ قَالَ مُرُوْهُ فَلْيُصَلِّ فَعَاوَدَتْهُ فَقَالَ مُرُوْهُ فَلْيُصَلِّ اِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَابْنُ الزُّهْرِيِّ وَاِسْحٰقُ ابْنُ يَحْيٰى عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ عُقَيْلٌ وَمَعْمَرٌ عَنْ زُهْرِيِّ عَنْ حَمْزَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٦٤٦: يحيي بن سليمان، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، حمزه بن عبداللّٰه ذ خپل پلار نه روايت کوي، هغهٔ اووې، کوم وخت چه ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مرض زيات شو، نو حضورؐ ته ذ مونځ ذ امامت باره کښې عرض اوشو، حضورؐ او فرمائيل ابو بکرؓ ته اووائې، چه هغه خلقو ته مونځ ورکړي، بي بي عائشېؓ اووې ابو بکرؓ يو نرم زړې سړې دې، (چه مونځ کښې قرآن مجيد) لولي، نوژړا به پرې غالبه شي، خو حضورؐ او فرمائيل، هم هغه ته اووائې، چه مونځ ورکړي، تاسو ذ يوسفؑ ذ زمانې د ښځو په شان معلوميږئې. زُبيدي او زهري ورا رهٔ ذ دې متابع حديث روايت کړې دې او عقيل او معمر په مسند ذ زهري له حمزه نه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم روايت کړې [۱] دې.

۱. دا ټول احاديث دا ښائي. چه "عالمان فاضلان" د نورو خلقو نه زيات د امامت حقدار دي. د امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه هم دا مسلک دې. چه عالم، د قاري نه زيات د امامت حقدار دې وجه ئې ښکاره ده. چه حضرت ابوبکر صديق رضي اللّٰه عنه د باقي صحابه کرامونه د علم و فضل په وجه غوره وؤ. او نبي عليه الصلاة والسلام په خپل ژوند مبارک کښې هغه امام مقرر کړې وؤ. که چرې د قرآن مجيد، قاري د

امامت زيات حقدار وي نو په حديث شريف كښې دي چه حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه په صحابه كرامو كښې د ټولونه ښه قاري وو هغه نبي عليه الصلاة والسلام د امامت د پاره خوښ نه كړو. دا ددې حقيقت ښكاره دليل دے چه عالم د قاري نه د امامت د پاره زيات حقدار دے د امام شافعي رحمة الله عليه دا مسلک دے چه قاري د امامت زيات حقدار دے هغه هم څه دليلونه وړاندې كوي. ليكن د امام بخاري رحمة الله عليه د دليل طريقه زياته مضبوطه ده. په اسلامي حكومت كښې امير المؤمنين امام وي ظاهرى ده چه د امير المؤمنين د امامت د پاره د هغه علم و فضل ته كتلې شي. عامو امامانو او د امير المؤمنين په امامت كښې فرق دے ليكن بيا هم ددې نه د اسلام حكم واضح كيږي.

## بـاب ۴۳۸: مَـنُ قَـامَ اِلٰـى جَنْبِ الْاِمَامِ لِعِلَّةٍ.

باب ۴۳۸: د څه عذر په وجه ذ مقتدي د امام په خوا كښې ذ اودريدو بيان.

۶۴۷: حَـدَّثَـنَـا زَكَـرِيَّـآءُ بُنُ يَـحْيٰـى قَـالَ حَـدَّثَـنَـا ابْـنُ نُمَيْرٍ قَالَ اَخْبَـرَنَـا هِشَامُ بُنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَـآئِشَةَ قَـالَتْ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَابَكْرٍ اَنْ يُّصَلِّيَ بِـالنَّاسِ فِيْ مَرَضِهٖ فَكَانَ يُصَلِّيْ بِهِمْ قَـالَ عُـرْوَةُ فَوَجَدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ مِنْ نَّفْسِهٖ خِفَّةً فَـخَـرَجَ فَـاِذَا اَبُوْبَكْرٍ يَّؤُمُّ النَّاسَ فَلَمَّا رَاٰهُ اَبُوْبَكْرٍ اِسْتَاْخَرَ فَاَشَارَ اِلَيْهِ اَنْ كَمَا اَنْـتَ فَـجَلَـسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ حِـذَآءَ اَبِيْ بَكْرٍ اِلٰى جَنْبِهٖ فَكَانَ اَبُـوْبَـكْـرٍ يُّصَلِّيْ بِصَلٰوةِ رَسُـوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوةِ اَبِيْ بَكْرٍ.

۶۴۷: زكريا بن يحيي، ابن نمير، هشام بن عروه، بي بي عائشةً روايت كوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپلې بيمارۍ كښې ابوبكر ته حكم او كړ، چه هغه خلقو ته مونځ وركوي. نو هغهٔ خلقو ته مونځ وركولو عروه (د حديث راوي) وائي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل بدن كښې (ذ مرض نه) څهٔ كمي اوليدلو. نو بهر ته ئې تشريف راوړلو دغه وخت ابو بكرؓ ذ خلقو امام وو ليكن كوم وخت چه ابو بكرؓ حضورؐ اوليد، نو ورستو كيدل ئې او غوښتل، خو حضورؐ ورته اشارې سره او فرمائيل، چه ته دغسې اُسه. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ ابو بكرؓ برابر ذ هغهٔ اړخ سره اودريدلو نو ابو بكرؓ به ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ مونځ اقتدا كوله، او خلقو به ذ ابوبكر د مونځ اقتدا كوله.

## بـاب ۴۳۹: مَـنْ دَخَـلَ لِيَؤُمَّ الـنَّـاسَ فَـجَآءَ الْاِمَـامُ الْاَوَّلُ فَتَـاَخَّرَ الْاَوَّلُ اَوْلَمْ يَتَاَخَرُ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ فِيْهِ

باب ۴۳۹: كه يو سړے ذ خلقو ذ امامت د پاره لاړ شي، بيا مخكنے امام راشي، نو وړومبے سړے كه ورستو شي يا نشي، ذ هغهٔ مونځ اوشي، دے مضمون كښې

غَائِشَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

بي بي عائشےؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه يو روايت نقل كړے دے.

۶۴۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ اِلٰى بَنِيْ عَمْرِوبْنِ عَوْفٍ لِيُصْلِحَ بَيْنَهُمْ فَحَانَتِ الصَّلٰوةُ فَجَآءَ الْمُؤَذِّنُ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ اَتُصَلِّيْ لِلنَّاسِ فَاُقِيْمَ قَالَ نَعَمْ فَصَلّٰى اَبُوْ بَكْرٍ فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ فِي الصَّلٰوةِ فَتَخَلَّصَ حَتّٰى وَقَفَ فِي الصَّفِّ فَصَفَّقَ النَّاسُ وَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ لَّا يَلْتَفِتُ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلَمَّا اَكْثَرَ النَّاسُ التَّصْفِيْقَ الْتَفَتَ فَرَاٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَشَارَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِ امْكُثْ مَكَانَكَ فَرَفَعَ اَبُوْ بَكْرٍ يَّدَيْهِ فَحَمِدَ اللّٰهَ عَلٰى مَآ اَمَرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ذٰلِكَ ثُمَّ اسْتَاْخَرَ اَبُوْبَكْرٍ حَتَّى اسْتَوٰى فِي الصَّفِّ وَتَقَدَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ يَا اَبَا بَكْرٍ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَثْبُتَ اِذْ اَمَرْتُكَ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ مَا كَانَ لِابْنِ اَبِيْ قُحَافَةَ اَنْ يُّصَلِّيَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

۶۴۸ : عبدالله بن يوسف مالك، ابو حازم بن دينار، سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم بني عمرو بن عوف كښ صلح كولو ذ پاره تشريف يوړلو، دے كښ ذ مونځ وخت شو، نو مؤذن ابو بكر له راغے او هغه ته ئے اووے كه تاسو خلقو ته مونځ وركوئے، نو زهٔ به اقامت اوكړم، هغهٔ ورته اووے، بنه، نو ابو بكر مونځ وركول شروع كړل دے كښ رسول الله صلي الله عليه وسلم راغے، او خلق مونځ كښ وو، نو حضورؐ (صفونو كښ) داخل شو، تر دے چه (وړمبي) صف كښ اودريدلو، خلقو لاس وهل شروع كړل، هغه غلے (دُزديده) نظر سره اوكتل، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ئے اوليدلو. حضورؐ ورته اشاره اوكړه، چه ته په خپل ځائے ولاړ اوسه، نو ابو بكرؓ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل او ذ حضور صلي الله عليه وسلم ذ ارشاد شكريه ئے ادا كړله، بيا په ورستو شو، نو وے فرمائيل، اے ابو بكرؓ، هر كله چه ما تاته حكم دركړے وو، نو تهٔ ولے ولاړ پاتے نهٔ شوے ابوبكر عرض اوكه، ذ ابو قحافهؓ ذ ځوئے دا مجال نشته" چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم مخكښ دے مونځ وركړي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم خلقو ته او فرمائيل، څهٔ سبب دے، چه ما تاسو اوليدئے نو كثرت سره مو لاسونه وهل (ګورے)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالِيْ رَأَيْتُكُمْ اَكْثَرْتُمُ التَّصْفِيْقَ مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلْيُسَبِّحْ فَاِنَّهُ اِذَا سَبَّحَ الْتُفِتَ اِلَيْهِ وَاِنَّمَا التَّصْفِيْقُ لِلنِّسَآءِ.

هر كله چه مانځه كه چاته څه خبره پيښه شي، نو هغه له پكار دي، چه سبحان الله او وائي، ځكه چه هغه سبحان الله او وائي، نو هغه ته به توجه او كړے شي. او لاسونه وهل صرف ښځو له پاره دي.

۱. مصنف عبدالرزاق كښې روايت دے چه دا واقعه د هجري دريم كال ده. دا وجه ده چه د مانځه دوران كښې صحابه كرامو څه كارونه او كړل چه هغه نبي عليه الصلاة والسلام منعه كړل. مثلا "په لاسونو پرقولو چه دا د ښځو عمل دے". داسے روايت كښې هم شته چه نبي عليه الصلاة والسلام، حضرت ابوبكر صديق رضي اللّٰه عنه د لاسونو اوچتولو نه منعه كړے وو. بيا مانځه كښې لاس اوچتول، يا د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم د صفونو په مينځ كښې تلل، اول صف ته خان رَسَول دا ټول د نبوّت د اولنۍ زمانے خصوصيات وو. اوس هم دغه رنګ عمل كول پكار نه دي. په دے موقعه دا خبره ضروري بيانول دي "چه د پيغمبر په موجودګۍ كښې يو اُمّتي، امام نشي جوړيدے. د عيسيٰ عليه السلام د راكوزيدونه روستو، حضرت امام مهدي عليه السلام به يو ځل امام وي او هغه به پدے وجه وي چه امام مهدي به د امام په ځائے ولاړ وي او اقامت به ورته شوي وي بيا به هم يو دوه ځله داسے واقعات پيښيږي چه د نبي په موجودګۍ كښې به امّتي امام وي. مسند الامام احمد كښې يو حديث شريف دے چه پيغمبر تر هغه وخته پوري نه وفات كيږي تر څو چه يو امّتي د پيغمبر په موجودګۍ كښې د مونځ امام شوے نه وي. نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم څو ځله د صحابه كرامو په اقتداء كښې مونځ كړيدے. يو ځل غزوه تبوک كښې عبدالرحمٰن بن عوف رضي اللّٰه عنه امام وو نبي عليه الصلاة والسلام د صلحے كولو د پاره تلے وو. دريم ځل په مرض وصال كښې د حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه په امامت كښې ئے مونځ ادا كړے وو. تفصيل ئے دا دے چه نبي عليه الصلاة والسلام حكم كړے وو كه په صلحه كولو كښې ناوخته شي، او د مونځ وخت راشي نو حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه دے امام شي ابوبكر رضي اللّٰه عنه په دے پوهه وو چه دا حكم د ابوبكر رضي اللّٰه عنه د عزت او اكرام د پاره وو لازمي حكم نه وو نو حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه مانځه كښې روستو شو او نبي عليه السلام باقي مونځ وركړو.

**بَاب ۴۴۰: اِذَا اسْتَوَوْا فِي الْقِرَآءَةِ فَلْيَؤُمَّهُمْ اَكْبَرُهُمْ.**

باب ۴۴۰: كه څه خلق قرأت كښې برابر وي، نو هغوي كښې چه څوک د زيات عمر خاوند وي، هغه دے امامت او كړي.

۶۳۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ اَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شَبَبَةٌ

۶۳۹: سليمان بن حرب، حماد بن زيد، ايوب، ابو قلابه، مالک بن حويرث روايت كوي، مونږ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو، او مونږ څو ځلمي وو تخميناً مونږ خلق شل ورځو پورے مقيم وو، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم لوئے رحم دل وو، نو

فَلَبِثْنَا عِنْدَهُ نَحْوًا مِنْ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِيْمًا فَقَالَ لَوْرَجَعْتُمْ اِلٰى بِلَادِكُمْ فَعَلَّمْتُمُوْ هُمْ مُرُوْهُمْ فَلْيُصَلُّوْا صَلٰوةَ كَذَا فِيْ حِيْنَ كَذَاوَ صَلٰوةَ كَذَا فِيْ حِيْنِ كَذَافَاِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ اَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ اَكْبَرُكُمْ.

خمونږ ۀ كور نـه بهر اوسيدل ئے خوبښ نه كړل، او مونږ ته نے او فرمائيل، كه تاسو خپل وطن ته واپس شئے، نو هغوي ته دَ دين تعليم وركړئے، او ورته اووائے، چـه دے طريقے سره دے وخت كښ او دے طريقے سره دے وخت كښ مونځ كوئے، او كله چه دۀ مونځ وخت شي، نو تاسو كښ دے يو سړے آذان اوكړي او كوم يو چه عمر كښ زيات وي، هغه دے امامت اوكړي[۱].

ف: دا حديث مخكښ دوه درے ځايه تير شوے دے دَ دے آخر كښ دا ټكړه هم ده، چه كله دَ مونځ وخت شي ون تاسو كښ دے يو سړے آذان اوكړي او كوم چه مشر وي هغه دے امامت اوكړي، دَدے آخر حصے دَ اعتبار نه دا حديث دے باب سره متعلق كيدو كښ بالكل واضحه كيږي.

۱. د امام بخاري رحمة الله عليه دا مقصد دے چه د امامت د پاره په اول كښ د ټولو نه زيات حقدار هغه دے چه علم و فضل كښ زيات وي كه په علم كښ ټول برابر دي نو د قراء ت خيال دے او ساتلي شي چه ټولو كښ ښه قاري كوم يو دے. كه پدے صفت كښ ټول برابر وي نو د چا چه عمر زيات وي هغه دے امام شي. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه د اَكْبَرُهُمْ نه مراد دے چه څوك د عمر په لحاظ مشر وي.

## بـاب ۴۲۱: اِذَا زَارَا لْاِمَـامُ قَوْمًا فَاَمَّهُمْ.

## باب ۴۴۱: كـه امام دَ چاليدو له لاړ شي، نو دَ هغوي امام كيدے شي.

۶۵۰: حَدَّثَـنَـا مُعَاذُبْنُ اَسَدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مُعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ قَالَ سَمِعْتُ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ اسْتَأْذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَذِنْتُ لَهُ فَقَالَ اَيْنَ تُحِبُّ اَنْ اُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ فَاَشَرْتُ لَـهُ اِلَى الْمَكَانِ الَّذِيْ اُحِبُّ فَقَامَ وَصَفَفْنَا خَلْفَهُ ثُمَّ سَلَّمَ وَسَلَّمْنَا.

۶۵۰: معاذ بن اسد، عبدالله، معمر، زهري، محمود بن ربيع، عتبان بن مالك انصاري روايت كوي چه نبي صلي الله عليه وسلم خما كورته دَ راتلو اجازت طلب كه، نو ما حضورﷺ له اجازت وركړلو. بيا حضورﷺ او فرمائيل: چه تۀ خپل كور كښ يو ځائے كښ (خما) مونځ كول غواړے كوم ځائے چه ما غوښتلو، هغے ته م اشاره اوكړه، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اودريدلو، او مونږ حضور پسے صف اوتړلو، دے نه پس حضورﷺ او مونږ مونځ نه پس سلام اوګرځولو.

باب ٤٤٢: اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ وَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ بِالنَّاسِ وَهُوَ جَالِسٌ وَّقَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ اِذَا رَفَعَ قَبْلَ الْاِمَامِ يَعُوْدُ فَيَمْكُثُ بِقَدْرِ مَا رَفَعَ ثُمَّ يَتْبَعُ الْاِمَامَ وَقَالَ الْحَسَنُ فِيْمَنْ يَّرْكَعُ مَعَ الْاِمَامِ رَكْعَتَيْنِ وَلَا يَقْدِرُ عَلَى السُّجُوْدِ يَسْجُدُ لِلرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ يَقْضِي الرَّكْعَةَ الْاُوْلٰى بِسُجُوْدِهَا وَفِيْمَنْ نَّسِيَ سَجْدَةً حَتّٰى قَامَ يَسْجُدُ.

باب ٤٤٢: امام دے د یا، د مقرر کړے شوے دے چه دَ هغهٔ اقتدا اوکړے شي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ خپل وفات په مرض کښې خلقو ته په ناسته مونځ ورکړلو' او خلق ولاړ وو او دَ ابن مسعودٌ قول دے که څوک مقتدي دَ امام نه مخکښې سر اوچت کړي' نو هغهٔ له پکار دي' چه واپس راشي او په قدر دَ هغے وقت چه هغے کښې هغهٔ سر اوچت کړے وو' هلته دے توقف اوکړي دے نه پس دِ دَ امام اتباع اوکړي' او حسن بصري دَ هغے سړي باره کښې چه امام سره دوه رکعاته اوکړي او (دَ خلقو دَ کثرت په سبب) په سجده قادر نه وي' دا وئيلے دي چه آخر رکعت کښې دے دوه سجدے اوکړي او کوم سړي نه چه سجده هيره شي او' اودريږي' دَ هغهٔ باره کښې ئے وئيلے دي' چه هغه دے سجده اوکړي.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دے باب کښې دا ښودل غواړي چه امام په کومو کارونو کښې د مقتدي د پاره کافي کيږي او مقتدي ته د خپل امام اقتدا څومره پکار ده. امام بخاري رحمة الله عليه چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د حسن بصري رحمة الله عليه چه کوم آثارئے نقل کړيدي دا د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مسلک دے "چه امام ددے د پاره دے چه د هغه اقتداء اوکړے شي" دا پخپله د حديث شريف يوه حصه ده. او ټول د فقې امام حضرات د امني. ليکن دوي خپله کښې اختلاف کوي. د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مسلک د امام' د امامت دَ حيثيت په حقله زيات قوي دے احاديث پدے سلسله کښې مختلف دي او د يو بنيادي خبرے د منلو نه پس په تفصيلاتو کښې چه کوم اختلافات دي هغه د امامانو حضراتو د اجتهاد په وجه دي.

۶۵۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ اَخْبَرَنَا زَآئِدَةُ عَنْ مُّوْسَى بْنِ اَبِيْ عَآئِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَآئِشَةَ فَقُلْتُ اَلَا تُحَدِّثِيْنِيْ عَنْ مَّرَضِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ بَلٰى ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَصَلَّى النَّاسُ

۶۵۱: احمد بن يونس' زائده' موسي بن ابي عائشه' عبيد الله بن عبدالله بن عتبهٌ روايت کوي' زهٔ بي بي عائشےؓ له ورغلم او ما ورته اووے' تهٔ ما ته دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ (آخري) مرض حال ولے نهٔ بيانوے' هغے اووے ښهٔ ده' واوره' زهٔ ئے درته بيا نوم' رسول الله صلي الله عليه وسلم ناروغه شو' بيا حضورؐ تپوس اوکهٔ' چه خلقو مونځ او کهٔ' مونږ ورته اُوے چه نه يا رسول الله! خلق ستاسو انتظار کښې دي' حضورؐ او

قُلْنَا لَا هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ ضَعُوْا لِيْ مَآءً فِي الْمِخْضَبِ قَالَتْ فَفَعَلْنَا فَاغْتَسَلَ فَذَهَبَ لِيَنُوْٓءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلْنَا لَا هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ ضَعُوْا لِيْ مَآءً فِي الْمِخْضَبِ قَالَتْ فَفَعَلْنَا فَاغْتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوْٓءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلْنَا لَهُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ ضَعُوْا لِيْ مَآءً فِي الْمِخْضَبِ فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوْٓءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلْنَا لَا هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالنَّاسُ عُكُوْفٌ فِي الْمَسْجِدِ يَنْتَظِرُوْنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَلٰوةِ الْعِشَآءِ الْاٰخِرَةِ فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى أَبِيْ بَكْرٍ بِأَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَأَتَاهُ الرَّسُوْلُ فَقَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ وَّكَانَ رَجُلًا رَقِيْقًا يَا عُمَرُ صَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَ لَهٗ عُمَرُ أَنْتَ أَحَقُّ بِذٰلِكَ فَصَلّٰى أَبُوْبَكْرٍ تِلْكَ الْأَيَّامَ ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ مِنْ نَّفْسِهٖ خِفَّةً فَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ لِصَلٰوةِ

فرمائيل: ما د پاره لوښي کښې اوبه کيږدئې. زه لاسم. بي بي عائشهؓ وائي: مونږ دغسې اوکړل، نو حضورؐ غسل اوکړلو. بيا اودريدل ئې غوښتل، خو حضورؐ بيهوشه شولو. بيا چه هوش کښې شو، نو وې فرمائيل: آيا خلقو مونځ کړے دے. مونږ عرض اوکه: نه، يا رسول الله، هغوي ستاسو انتظار کوي. حضورؐ او فرمائيل: ما ذ پاره لوښي کښې اوبه کيږدئې. اوبه ورله کيښودے شوے نو حضورؐ غسل اوکه بيا اودريدل ئې غوښتل، خو بيهوشه شولو بيائې او فرمائيل: آيا خلقو مونځ کړے دے؟ مونږ ورته عرض اوکه. نه يا رسول الله خلق ستاسو انتظار کوي. حضورؐ بيا او فرمائيل ما د پاره لوښي کښې اوبه کيږدئې، مونږ ذ حکم تعميل اوکړو، هغوي په ناسته غسل اوکړو. بيائې د پاسيدو کوشش اوکړو خو بيا بيهوشه شو، چه کله په هوش کښې شو نو تپوس ئې اوکړو چه آيا خلقو مونځ کړے دے؟ مونږه عرض اوکړو چه نه يا رسول الله هغوئي ستاسو انتظار کوي. او خلقو جُمات کښې د نبي صلي الله عليه وسلم ذ ماسختن مونځ کښې انتظار کولو، نو نبي صلي الله عليه وسلم ابوبکرؓ ته خبر واستولو، چه خلقو ته مونځ ورکړي، يعني قاصد ورغے او ورته ئې اووے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم تاسو ته حکم درکوي، چه خلقو ته مونځ ورکړئے. ابوبکرؓ اووے (او هغه نرم زړے سړے وو) اے عمرهؓ تهٔ خلقو ته مونځ ورکړه، عمرؓ ورته اووے، چه تهٔ ذ دے زيات حقدار ئې، بيا ابوبکرؓ هغے ورځو کښې مونځ ورکړلو، بيا کله چه نبي صلي الله عليه وسلم خپل مرض کښې کمي اوليد" نو ذ دوو سړو په تکيه ذ ماسپخين ذ

الظُّهْرِ وَاَبُوْ بَكْرٍ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ فَلَمَّا رَاٰهُ اَبُوْبَكْرٍ ذَهَبَ لِيَتَأَخَّرَ فَاَوْمٰى اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَنْ لَا يَتَأَخَّرَ فَقَالَ اَجْلِسَانِي اِلٰى جَنْبِهٖ فَاَجْلَسَاهُ اِلٰى جَنْبِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ فَجَعَلَ اَبُوْبَكْرٍ يُصَلِّيْ وَهُوَ يَأْتَمُّ بِصَلٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ بِصَلٰوةِ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَدَخَلْتُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ لَهٗ اَلَا اَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا حَدَّثَتْنِيْ عَائِشَةُ عَنْ مَرَضِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَاتِ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَدِيْثَهَا فَمَا اَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا غَيْرَ اَنَّهٗ قَالَ اَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِيْ كَانَ مَعَ الْعَبَّاسِ قُلْتُ لَا قَالَ هُوَ عَلِيٌّ.

مونځ د پاره اووتلو، هغوی کښې به عباسؓ وو. دغه وخت ابوبکرؓ خلقو ته مونځ ورکولو کوم وخت چه ابوبکرؓ، حضورؐ اوليدلو، نو په ورستو شو، خو حضورؐ ورته اشاره اوکړه، چه مه ورستو کيږه، بيا حضور او فرمائيل چه ما ذ هغه په اړخ کښې کينوئ، نو هغې دواړو سړو حضورؐ ذ ابوبکرؓ په خوا کښې کينولو عبدالله اووے چه ابوبکرؓ به مونځ کښے د نبي صلي الله عليه وسلم اقتدا کوله او نورو خلقو د ابوبکرؓ د مونځ اقتدا کوله او نبي صلي الله عليه وسلم په ناسته مونځ کولو. عبيد الله وائي بيا زۀ عبدالله بن عباسؓ له ورغلم او هغۀ ته م اووے، زۀ تا ته هغه حديث پيش نۀ کړم، کوم چه ما ته بي بي عائشےؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلم ذ مرض متعلق بيان کړے دے، هغۀ اووے، واؤروه، نو ما ذ هغۀ مخکښې ذ بي بي عائشےؓ حديث پيش کۀ، ابن عباسؓ دے کښې ذ څۀ خبرے انکار اونۀ کۀ، صرف دومره قدرے ئے اووے، چه بي بي عائشےؓ تاته ذ هغې سړي نوم هم اوښودلو، چه ذ عباسؓ ملګرے وو ما ورته اووے، نه، نو ابن عباسؓ اووے، هغه حضرت عليؓ وو.

۱. دے حديث شريف کښې دي چه نبي کريم صلي الله عليه وسلم کله تشريف راوړو نو هغه پخپله امام شو او حضرت ابوبکر رضي الله عنه مقتدي شو. نبي کريم صلي الله عليه وسلم به ناستے مونځ کوو (د ناجوړتيا په وجه) حضرت ابوبکر رضي الله عنه او ټول مقتديان ولاړ وو. ددے نه معلومه شوه چه کله امام د مجبورئ په وجه اودريدے نشو به ناستے ئے مونځ ورکوؤ او مقتديانو به ولاړے مونځ کولو نو دا روا دي.

۶۵۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا قَالَتْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِهٖ وَهُوَ شَاكٍ فَصَلّٰى جَالِسًا وَّصَلّٰى

۶۵۲: عبدالله بن يوسف، مالک، هشام بن عروه، بي بي عائشهؓ روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم، ذ مرض په حالت کښې خپل کور کښې په ناسته مونځ اوکۀ، او خلقو حضور پسے ورستو په ولاړه مونځ اوکۀ حضورؐ چه دا اوليدل، نو ورته ئے او فرمائيل، چه کينئ، بيا چه حضورؐ ذ مونځ نه فارغ شو، نو

وَرَآءَهُ قَوْمٌ قِيَامًا فَأَشَارَ إِلَيْهِمْ أَنِ اجْلِسُوْا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَإِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا أَجْمَعُوْنَ.

وې فرمائيل، امام ځکه مقرر شوې دې چه دَ هغهٔ اقتدا اوکړې شي، کله چه هغه رکوع کوي، نو تاسو هم رکوع کوئې، او کله چه هغه سر اوچت کړي نو تاسو هم سر اوچت کړئې، او کله چه هغه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَن حَمِدَه اووائي، نو تاسو رَبَّنَا وَلَکَ الحمد وائې، او کله چه هغه په ناسته مونځ کوي، نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ کوئې.

۶۵۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا فَصُرِعَ فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ فَصَلّٰى صَلٰوةً مِّنَ الصَّلَوَاتِ وَهُوَ قَاعِدٌ فَصَلَّيْنَا وَرَآءَهُ قُعُوْدًا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَإِذَا صَلّٰى قَائِمًا فَصَلُّوْا قِيَامًا وَ إِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَإِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا أَجْمَعُوْنَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ وَ إِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا هُوَ فِيْ مَرَضِهِ الْقَدِيْمِ ثُمَّ صَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا وَّالنَّاسُ خَلْفَهٗ قِيَامٌ لَمْ يَأْمُرْ هُمْ بِالْقُعُوْدِ وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۶۵۳ : عبدالله بن يوسف، مالک، ابن شهاب، انس بن مالکؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم يو خل په اَس سور شولو، او دَ هغې نه پريوتلو، نو دَ حضورؐ دَ بدن مبارک ښي طرف هغې سره څهٔ قدرې زخمي شو، په دې وجه حضورؐ يو مونځ په ناسته اوکهٔ، کوم وخت چه حضورؐ فارغ شو، نو وې فرمائيل، امام ځکه مقرر شوې دې، چه اقتدائې اوکړې شي، که هغه په ولاړه مونځ کوي، نو تاسو هم ورسره په ولاړه مونځ کوئې، او کوم وخت چه رکوع کوي نو تاسو هم رکوع کوئې، او کوم وخت چه هغه سَر اوچت کړي، نو تاسو هم سر اوچت کړئې، او که چه هغه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَن حَمِدَه اووائي، نو تاسو رَبَّنَا لَکَ الحَمد وائې، او کله چه هغه په ناسته مونځ کوي، نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ کوئې، امام بخاريؒ وائي حميدي وئيلې دي، دَ حضورؐ دا قول "کله چه امام په ناسته مونځ کوي، نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ کوې" دا دَ حضورؐ اولنئې بيمارئ کښې وو، دې نه پس نبي صلي الله عليه وسلم دَ وفات دَ مرض په موقع په ناسته مونځ اوکهٔ او خلق حضورؐ پسې ولاړ وو. حضورؐ هغوي ته دَ ناستې حکم ورنه کړلو، او دا فيصله شوې امر دې چه دَ نبي صلي الله عليه وسلم دَ آخري نه آخري فعل باندې عمل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. كيږي وړ.

۱. دا دواړه حديثونه د يو واقعې پحقله دي. اولني حديث شريف كښ چه د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها نه روايت دے هغې كښ بيان دے "چه خلقو په ولاړې مونځ ادا كړو" ليكن دويم حديث شريف كښ دي "چه خلقو په ناستې مونځ اوكړو" صحيح واقعه داده "چه اول خلق ولاړ وو د نبي عليه الصلاة والسلام اقتداء ئے كوله" لكه څرنګ چه په اولني حديث كښ دي چه نبي عليه الصلاة والسلام خلقوته د كيناستلو اشاره اوكړه بيكاره خبره ده. چه صحابه به ناست وي. او دويم حديث شريف كښ آخري كيفيت بيان كړيدے. پخپله امام بخاري رحمة الله عليه د خپل استاذ حضرت حميدي رحمة الله عليه فيصله نقل كړه د مسئلے وضاحت ئے اوكړو. "چه مرض وصال كښ رسول الله صلي الله عليه وسلم په ناستے مونځ كوؤ امام وو او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او نور خلق ولاړ وو اقتداء ئے كوله. نبي عليه الصلاة والسلام په هغه موقعه هيڅ او نه فرمايل، د دينه معلوميږي "كه چرے امام په څه عذر په ناستے مونځ كوؤ. نو مقتديان به په ولاړے د هغه اقتداء كوي". دلته په دے خبره هم غور پكار دے چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په غزوهٔ اُحد كښ زخمي شوے وو او په هغه ورځو كښ مسجد نبوي ته نشو تللے، بلكے نبي عليه الصلاة والسلام به خپله بالا خانه كښ مونځ كولو. په دغه ورځو كښ به نبي عليه السلام په مسجد نبوي كښ ضرور څوک امام مقرر كړے وؤ چه هغه خلقوته مونځ وركوي. خكه چه نبي عليه السلام د مجبورئ په وجه پخپله بالاخانه كښ مونځ كولو. داسے معلوميږي چه صحابهٔ كرام رضي الله عنهم تپوس (عيادت) له راغلل هغوي اوليدل، چه نبي عليه السلام مونځ كوي. او هغوي په مونځ ډير مين وو نو هغوي وروسے د اقتداء نيت اوكړو. او ظاهره ده چه صحابه كرامو فرض مونځ په مسجد نبوي كښ كړے وؤ دا مونځ د نبي عليه الصلاة والسلام فرض مونځ وو او صحابه كرامو وروسے د نفلونيت ترلے وؤ. ددے حديث شريف د واقعے نه دا معلوميږي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا خبرداري وركولو چه بغير د ضرورت نه داسے مونځ كول پكار نه دي بلكے په خپل وس داسے امام پسے مونځ كول پكار دي چه معذوره نه وي. او په ولاړے امامت كولے شي.

بَاب ۴۴۳: مَتَى يَسْجُدُ مَنْ خَلْفَ الْإِمَامِ وَقَالَ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا.

باب ۴۴۳: كوم خلق چه امام پسے وي هغوي كله سجده اوكړي، او انسؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه نقل كړے دے، چه كله امام سجده اوكړي نو تاسو هم سجده اوكړئے.

۶۵۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَلْبَرَاءُ وَهُوَ غَيْرُ كَذُوْبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۶۵۴: مسدد، يحيي بن سعيد، سفيان، ابواسحاق، عبدالله بن يزيد روايت كوي، ما ته براء بن عازبؓ بيان اوكهٔ (او هغه ريښتني وو) چه كله به نبي صلي الله عليه وسلم سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اووے نو مونږ به

وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ لَمْ يَحْنِ أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتَّى يَقَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدًا ثُمَّ نَقَعُ سُجُودًا بَعْدَهُ.

هيڅ يو كس هغه پورے شا" نه خكته كوله' څو پورے چه به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سجدے ته نه وو تلے' ذ حضورؐ نه پس به سجدے ته تلو.

## بَاب ۴۴۴: إِثْمِ مَنْ رَفَعَ رَأْسَهُ قَبْلَ الْإِمَامِ.

## باب ۴۴۴: ذ هغه سړي ذ گناه بيان چه ذ امام نه ئے مخکښ سر اوچت كه.

۶۵۵: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمَا يَخْشَى أَحَدُكُمْ أَوْلَا يَخْشَى أَحَدُكُمْ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ قَبْلَ الْإِمَامِ أَنْ يَجْعَلَ اللّٰهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ أَوْيُجْعَلَ اللّٰهُ صُورَتَهُ صُورَةَ حِمَارٍ.

۶۵۵: حجاج بن منهال' شعبه' محمد بن زياد' ابو هريرهؓ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي' حضورؐ او فرمائيل' آيا تاسو كښ چه څوك سړے خپل سر ذ امام نه مخكښ اوچتوي' هغه ذ دے خبرے نه خوف نۀ كوي' چه اللّٰه ذ هغۀ سر ذ خر ذ سر په شان جوړ كړي' يا داچه اللّٰه ذ هغۀ صورت ذ خر ذ صورت په شانتے كړي.

## بَاب ۴۴۵: إِمَامَةُ الْعَبْدِ وَالْمَوْلٰى

وَكَانَتْ عَائِشَةُ يَؤُمُّهَا عَبْدُهَا ذَكْوَانُ مِنَ الْمُصْحَفِ وَوَلَدُ الْبَغِيِّ وَالْأَعْرَابِيِّ وَالْغُلَامِ الَّذِيْ لَمْ يَحْتَلِمْ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّهُمْ أَقْرَءُهُمْ لِكِتَابِ اللّٰهِ وَلَا يُمْنَعُ الْعَبْدُ مِنَ الْجَمَاعَةِ بِغَيْرِ عِلَّةٍ.

## باب ۴۴۵: ذ غلام او ذ آزاده كرده غلام ذ امامت بيان'

ذ عائشے امامت ذ هغے غلام ذكوان ذ مصحف (قرآن) نه په كتلو كتلو كولو او ولد الزنا' او بانديسي او ذ هغے هلك امامت چه بالغ شوے نۀ وي (درست دے) څكه چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلے دي' ذ خلقو امامت دے هغے سړے كوي چه هغے تولو كښ ذ كتاب اللّٰه قرات زيات پيژني او بے وجے ۱ دے ذ جماعت نه نشي منع كولے.

۱. د حضرت ذكوان رضي اللّٰه عنه په مونځ د قرآن مجيد نه د لوستلو مطلب دادے چه هغه به د ورځے آياتونه يادول او د شپے به ئے په يادو مانځه كښ لوستل' قرآن مجيد ته په كتلو كتلو مونځ كښ قرات ويل د احنافو په نزد مونځ ماتوي (فاسد كوي) حضرت عمر رضي اللّٰه عنه به ددے كار نه خلق منعه كول' تول امّت كښ چه عامه طريقه رائج ده. چه خلق په مونځ كښ په يادو قرآن مجيد لولي. دا عمل د هغے هم خلاف دے حرامي (د زنا بچے) كه چرے نيك وي نو د هغه امامت هم مكروهه دے څكه چه عامو

خلقوته په نظر کښې بد رازي. داسې د جاهل امامت، او د نابالغه هلک هم، مکروهه دې امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا ثابتول غواړي. چه د نابالغه هلک امامت روا دې د شوافعو هم دا مسلک دې. لیکن چه کله حدیث شریف کښې دي. "چه د ټولونه غوره د قرآن مجید قاري دې امامت کوي" دا مسئله تری ښکاره ثابتیږي. دا یو عام حکم دې او د نابالغه هلک امامت ځان له جُدا مسئله ده. اګرچه ددې په حق کښې بعضې دلیلونه شته. لیکن احنافو سره د هغې معقول جواب هم شته.

۲۵۶ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ الْعُصْبَةَ مَوْضِعًا بِقُبَاءٍ قَبْلَ مَقْدَمِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ وَكَانَ اَكْثَرَهُمْ قُرْاٰنًا.

۲۵۶ : ابراهیم بن منذر، انس بن عیاض عبید اللّٰه، نافع، عبداللّٰه بن عمرؓ وائي، دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم دَ تشریف راوړلو نه مخکښې چه اولین مهاجرین محلهٔ قباء کښې مقام عصبه کښې مقیم وو، نو دَ هغوي امامت به دَ ابو حذیفه آزاد کرده غلام حضرت سالم کولو، ځکه چه هغهٔ دَ قرآن علم دَ ټولو نه زیات لرلو.

۲۵۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْمَعُوْا وَاَطِيْعُوْا وَاِنِ اسْتُعْمِلَ حَبَشِيٌّ كَاَنَّ رَاْسَهٗ زَبِيْبَةٌ.

۲۵۷ : محمد بن بشار، یحیي، شعبه، ابو التیاح، انس بن مالک، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه نقل کوي. حضورَ او فرمائیل، که څوک حبشي په تاسو باندې حاکم جوړ کړې شي، او هغه داسې بد مخې وي، چه ګویا د هغه سر انګور وي، نو بیا هم د هغهٔ آورئې او اطاعت ئې کوئې

باب ۴۴۶ : اِذَا لَمْ يُتِمَّ الْاِمَامُ وَاَتَمَّ مَنْ خَلْفَهٗ.

باب ۴۴۶ : که امام خپل مونځ پوره نه کړي او مقتدي پوره کړي

۲۵۸ : حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوْسٰى الْاَشْيَبُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۵۸ : فضل بن سهل، حسن بن موسی اشیب، عبدالرحمن بن عبداللّٰه بن دینار، زید بن اسلم عطاء بن یسار، حضرت ابو هریرهٔ روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل. داخلق چه تاسو ته مونځ درکوي. که ټیک ټیک مونځ درکړي، نو

وَسَلَّمَ قَالَ يُصَلُّوْنَ لَكُمْ فَاِنْ اَصَابُوْا فَلَكُمْ وَاِنْ اَخْطَاُوْا فَلَكُمْ وَعَلَيْهِمْ.

ستاسو ذَ پاره ثواب دے، او كه هغوي غلطي اوكړي، نو ستاسو ذَ پاره خو ثواب شته، او په هغوي ګناه ده.

باب ۴۴۷: اِمَامَةِ الْمَفْتُوْنِ وَ الْمُبْتَدِعِ وَقَالَ الْحَسَنُ صَلِّ وَعَلَيْهِ بِدْعَتُهُ وَقَالَ لَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ اَنَّهُ دَخَلَ عَلٰى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَهُوَ مَحْصُوْرٌ فَقَالَ اِنَّكَ اِمَامُ عَامَّةٍ وَّنَزَلَ بِكَ مَاتَرٰى وَيُصَلِّيْ لَنَآ اِمَامُ فِتْنَةٍ وَنَتَحَرَّجُ فَقَالَ الصَّلٰوةُ اَحْسَنُ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ فَاِذَا اَحْسَنَ النَّاسُ فَاَحْسِنْ مَعَهُمْ وَاِذَا اَسَآءُوْا فَاجْتَنِبْ اِسَآءَتَهُمْ وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ قَالَ الزُّهْرِيُّ لَانَرٰى اَنْ يُّصَلّٰى خَلْفَ الْمُخَنَّثِ اِلَّا مِنْ ضَرُوْرَةٍ لَّا بُدَّمِنْهَا.

باب ۴۴۷: فتنه کښې ذَ آخته شوي او ذَ بدعتي ذَ امامت بيان ذَ حسن قول دے چه (بدعتي پسے مونځ) کوئے، ذَ هغهٔ ذَبدعت ګناه په هغه ده. مونږ ته محمد بن يوسف په واسطه ذَ اوزاعي، زهري حميد بن عبدالرحمن، ذَ عبداللّٰه بن عدي بن خيار نه روايت کړے دے، چه هغه عثمان بن عفان ته داسے حالت کښې لاړ، چه هغه خپل کور کښې قلعه‌بند وو (باغيانو ذَ هر طرف نه محاصره کړے وه) هغهٔ ته دے اوو‌ے، چه تاسو امام کل، ئے، او ستاسو دا کيفيت ئے، چه تاسوئے وينے، مونږ ته امام فتنه مونځ راکوي، چه هغے سره مونږ تنګ دله کيږو، نو حضرت عثمانؓ ورته او فرمائيل، چه مونځ ذَ سړي په ټولو افعالو کښې ذَ ټولو نه ښهٔ څيز دے هر کله چه خلق ښهٔ کار کوي، نو تاسو هم هغوي سره ښهٔ کار کوئے او کله چه هغوي بد کار کوي، نو تاسو ذَ هغوي ذَ بدي نه لرےﷲ اوسئے. او زبيدي وائي، ذَ زهري قول دے چه مونږ مخنّث پسے مونځ کول جائز نهٔ ګنړو، ليکن چه مجبوري شي (مخنّث) (هيجړا).

۱. صحابهٔ کرام رضي اللّٰه عنهم په دے حالت ډير خفه وو هغوي دا غوښتل. که چرے امير المؤمنين حکم اوکړي نو دا موجوده صورت به ختم شي، امير المؤمنين حضرت عثمان رضي اللّٰه عنه داسے خکه او فرمايل چه د خلقو تسلي اوشي. د دے هيچرے دا مطلب نه دے چه داسے قسم خلقو پسے مونځ کولو کښې نقصان نشته د امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه په نزد په فاسق او بدعتي پسے مونځ کول مکروهه دي. خکه چه په ډيرو کارونو کښې امام ذَ مقتدي ذمه وار وي. او د امام د مونځ د ښه والي بدوالي اثر په مقتدي پريوزي. ليکن د امام شافعي رحمة اللّٰه عليه په نزد د امامت او د اقتداء تعلق ډير کمزورے دے د دے وجے نه د فاسق بدعتي د مونځ اثر په مقتدي نه پريوزي د امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه په نزد د امام او د مقتدي تعلق ډير قوي دے ددے وجے نه د امام د مونځ د خرابۍ اثر د مقتدي په مونځ ضرور پريوزي.

٦٥٩ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ ذَرٍّ اِسْمَعْ وَاَطِعْ وَلَوْ لِحَبَشِيٍّ كَاَنَّ رَأْسَهُ زَبِيْبَةٌ.

٦٥٩ : محمد بن ابان، غندر شعبه، ابو التياح، انس بن مالكؓ روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم ابو ذرؓ ته او فرمائيل، كه ذ يو داسے حبشي ذ اطاعت ذ پاره تاته اوونيلے شي، چه ذ هغهٔ سر ذ انګور په مثل وي، نو بيا هم ذ هغهٔ آوره او اطاعت ئے كوه.

باب ٤٤٨ : يَقُوْمُ عَنْ يَمِيْنِ الْاِمَامِ بِحِذَآئِهٖ سَوَآءً اِذَا كَانَ اثْنَيْنِ.

باب ٤٤٨ : هر كله چه دوه مونخ ګزار، وي نو مقتدي دے ذ امام ښي طرف ته اودريږي.

٦٦٠ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ بِتُّ فِيْ بَيْتِ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَآءَ ثُمَّ جَآءَ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ ثُمَّ نَامَ ثُمَّ قَامَ فَجِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ فَصَلّٰى خَمْسَ رَكْعَاتٍ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ نَامَ حَتّٰى سَمِعْتُ غَطِيْطَهٗ اَوْ قَالَ خَطِيْطَهٗ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الصَّلٰوةِ.

٦٦٠ : سليمان بن حرب، شعبه، حكم سعيد بن جبير، ابن عباسؓ روايت كوي، چه زهٔ يوه شپه ذ خپلے ترور بي بي ميمونےؓ په كور كښ پاتے شوم (نو ما اوليدل چه) رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ ماسختن مونخ (جمات كښ) او كهٔ او تشريف ئے راوړلو، او خلور ركعاته ئے اوكړل، بيا اودهٔ شولو هغے نه پس پاسيدلو. (او مونخ ته اودريدلو) زه راغلم او ذ حضورؐ كس طرف ته اودريدم، نو حضورؐ زهٔ خپل ښي طرف ته كړم، بيا حضورؐ پنځه ركعاته اوكړل بيائے دوه ركعاته اوكړل هغے نه پس اودهٔ شولو، تر دے چه ما ذ حضورؐ ذ خر خر، آواز واوريدلو هغے نه پس حضورؐ ذ سحر ذ مونخ ذ پاره بهر ته تشريف يوړلو.

باب ٤٤٩ : اِذَا قَامَ الرَّجُلُ عَنْ يَّسَارِ الْاِمَامِ فَحَوَّلَهُ الْاِمَامُ اِلٰى يَمِيْنِهٖ لَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهُمَا.

باب ٤٤٩ : كه يو سړے ذ امام كس طرف ته ولاړوي، او امام هغه خپل ښي طرف ته اوګرځوي، نو ذ هيچا مونخ به فاسد نهٔ وي.

٦٦١ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عَبْدِ رَبِّهٖ ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ مَخْرَمَةَ

٦٦١ : احمد، ابن وهب، عمرو، عبد ربه بن سعيد، محرمه بن سليمان، كريب زد ابن عباسؓ آزاد كرده غلام) ابن عباسؓ روايت كوي، چه يوه شپه زهٔ

بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نِمْتُ عِنْدَ ...... مَيْمُوْنَةَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ هَاتِلْكَ اللَّيْلَةَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ فَاَخَذَ نِيْ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ فَصَلّٰى ثَلٰثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ نَامَ حَتّٰى نَفَخَ وَكَانَ اِذَانَامَ نَفَخَ ثُمَّ اَتَاهُ الْمُؤَذِّنُ فَخَرَجَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ قَالَ عَمْرُو فَحَدَّثْتُ بِهٖ بُكَيْرًا فَقَالَ حَدَّثَنِيْ كُرَيْبٌ بِذٰلِكَ.

بي بي ميمونې کره اوده شوم، او رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغه شپه هغې سره وو، نو ما اوليدل، چه حضورؐ اودس اوکړلو، بيا حضورؐ اودريدلو، او مونځ ئې شروع کړه زۀ هم دَ حضورؐ کس طرف ته اودريدم، حضورؐ زۀ اونيولم او خپل ښي طرف ته ئې کړم، او ټول ديارلس رکعاته حضورؐ او کړل، بيا اودۀ شولو، تر دې چه دَ حضورؐ دَ ساه اخستو آواز به راتلو او کله چه حضورؐ اودۀ کيدلو، نو دَ ساه آواز به ئې (ضرور) راتلو. دې نه پس مؤذن حضورؐ له راغې، نو حضور بهر ته تشريف يوړلو، او دَ سحر مونځ ئې اوکۀ.

بَابُ ۴۵۰: اِذَا لَمْ يَنْوِى الْاِمَامُ اَنْ يَّؤُمَّ ثُمَّ جَآءَ قَوْمٌ فَاَمَّهُمْ.

باب ۴۵۰: که امام دَ امامت نيت نۀ وي کړې بيا څۀ خلق راشي، او هغه دَ هغوي امامت اوکړي.

۶۶۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ فَقُمْتُ اُصَلِّيْ مَعَهٗ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ فَاَخَذَ بِرَاْسِيْ وَاَقَامَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ.

۶۶۲: مسدد، اسماعيل بنا براهيم، ايوب، عبدالرحمن بن سعيد بن جبير، سعيد بن جبير، ابن عباسؓ روايت کوي، چه يوه شپه زۀ خپلې ترور بي بي ميمونې کره اودۀ شوم، ما اوليدل چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم دَ شپې دَ مونځ کولو دَ پاره اودريدلو، زۀ هم دَ حضورؐ کس طرف ته اودريدم، نو حضورؐ خما سر اونيولو، او زۀ ئې خپل ښي طرف ته اودرولم.

بَابُ ۴۵۱: اِذَا طَوَّلَ الْاِمَامُ وَكَانَ لِلرَّجُلِ حَاجَةٌ فَخَرَجَ وَصَلّٰى.

باب ۴۵۱: امام مونځ اوږد کړي او څوک سړې دَ خپل ضرورت په وجه مونځ مات کړي، لاړ شي، او مونځ اوکړي.

۶۶۳: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ

۶۶۳: مسلم، شعبه، عمرو، جابر بن عبداللّٰهؓ روايت کوي، چه معاذ بن جبل

أَنَّ مُعَاذَ ابْنَ جَبَلٍ كَانَ يُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ ح وَحَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ ثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ مُعَاذُبْنُ جَبَلٍ يُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ فَصَلَّى الْعِشَاءَ فَقَرَأَ بِالْبَقَرَةِ فَانْصَرَفَ الرَّجُلُ فَكَانَ مُعَاذٌ تَنَالَ مِنْهُ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ فَتَّانٌ فَتَّانٌ فَتَّانٌ ثَلٰثَ مِرَارٍ اَوْقَالَ فَاتِنًا فَاتِنًا فَاتِنًا و اَمَرَه بِسُوْرَتَيْنِ مِنْ اَوْسَطِ الْمُفَصَّلِ قَالَ عَمْرٌ ولَا اَحْفَظُهُمَا.

به نبي صلي الله عليه وسلم سره د ماسختن مونځ كولو. هغې نه پس به خپل كور ته واپس كيدلو، او د خپل قوم امامتي به ئې كوله، بو خلې هغه د ماسختن مونځ وركړه، نو سورة بقره ئې شروع كړه. يو سړے تړے لاړ، نو معاذ ته به دے خفګان اورسيد، دا خبر نبي صلي الله عليه وسلم ته اورسيد، نو حضورؐ معاذ ته درے ځله او فرمائيل چه فتان فتان يا، وے فرمائيل فاتن فاتن فاتن، او حضورؐ هغه ته د اوساط مفصل د وړو سورتونو (د وئيلو) حكم وركړه عمرو (د حديث راوي) وائي، چه ما نه هغه هير شولو۔.

**ف**: د فتان معني خلق فتنه كښ غرځونكے او د فاتن هم دغه معني دي، فرق صرف دا دے چه فتان كښ د مبالغې معني بيا مندے شي.

۱. حضرت معاذ رضي الله عنه د بنو سلمه قبيلے وؤ. د بنو سلمه محله د مدينے منورے په آخري حصه كښ وه حضرت معاذ رضي الله عنه او د هغه د قوم نورو خلقو به نبي عليه الصلاة والسلام سره د مابنام مونځ كولو. او بيا به خپلو كورونو ته واپس تلل. بيا به خلقو د ماسختن مونځ د خپلے قبيلے په جومات كښ ادا كوؤ. حضرت معاذ رضي الله عنه به هم ددغے خلقو سره واپس خپلے محلے ته تللو. يوه ورځ اتفاقي طور باندے د مابنام مونځ نه روستو حضرت معاذ رضي الله عنه د نبي كريم عليه الصلاة والسلام په مجلس كښ كيناستلو او ډير ناوخته ئې كړو. بيائے د ماسختن مونځ نبي عليه الصلاة والسلام سره ادا كړو. بيا خپلے قبيلے نه لاړو. او دے د خپلے قبيلے امام وؤ بيا د هغوي د ماسختن مونځ كښ هم امام شو. (نبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ئې د ماسختن كړے وؤ او خپل قوم سره ئې بيا د ماسختن د امام په صورت كښ ادا كړو) حضرت معاذ رضي الله عنه عادت وؤ چه مونځ كښ ئې به اوږده سورتونه لوستل. نن اګرچه مونځ ناوخته شوے وو بيائے هم اوږده سورتونه اولوستل، نو وخت نورهم ډير روستو شو. يو صاحب چه د هغه څه ضروري كار وؤ هغه خپل مونځ د امامتئ مات كړو. او خان له ئې مونځ ادا كړو. دے واقعه كښ چه كوم حديث شريف دے هغے كښ د امام شافعي رحمة الله عليه د مسلک څه دليل نشته. د هغه مسلک دا دے "چه امام نفل مونځ كوي او مقتدي ورپسے د فرض مونځ نيت اوكړي. د هغه مقتدي دا اقتداء صحيح ده" هغه وائي. "چه د حضرت معاذ رضي الله عنه دا عادت وو چه د ماسختن مونځ

بـه ئے نبي عليه الصلاة والسلام سره ادا كوؤ. او بيا به خپلے قبيلے ته لاړو. او بيا به ئے هلته د ماسختن مونځ خلقو تـه پـه امامتئ سـره ادا كوؤ ظاهره ده چه معاذ رضي الله عنه د نفلو نيت كوؤ. د دے وجے نه د نفل كـونـكي پـه امامت كښ فرض مونځ ادا كيدے شي". ليكن څرنګ چه په حديث شريف كښ تفصيل دے چه حضرت معاذ رضي الله عنه د نبي عليه الصلاة والسلام سره د ماسختن مونځ نه ادا كوؤ. بلكے د ماښام مونـځ به ئے نبي عليه الصلاة والسلام سره اوكړو واپس به خپلے قبيلے ته تللو، يو خل ئے صرف د نبي عليه الـصـلاة والسلام سره د ماسختن مونځ ادا كړے وؤ بيائے خپل قوم ته دوباره د ماسختن مونځ وركړے وو" ددے پـه حقـلـه دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم پرے خفګان ظاهر كړے وؤ ممكنه ده چه پدے خفه وؤ چه ولے ئے دوباره مونځ اوكړو. د دے حديث شريف پحقله تفصيلي بحث فيض الباري دويم جلد كښ دے باب كښ دے په دے حديث باندے هغه يو بے مثاله تحقيق دے لوستل ئے پكار دي.

**باب ۴۵۲: تَخْفِيْفِ الْاِمَامِ فِي الْقِيَامِ وَاِتْمَامِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُوْدِ.**

**باب ۴۵۲:** قيام كښ ذ امام ذ تخفيف كولو او ذ ركوع او سجدے پوره كولو بيان.

۶۶۴: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ ثَنَا زُهَيْرٌ قَالَ ثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ سَمِعْتُ قَيْسًا قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْمَسْعُوْدٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ وَاللّٰهِ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَاَ تَاَخَّرُ عَنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ مِنْ اَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا فَمَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَوْعِظَةٍ اَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ ثُمَّ قَالَ اِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ فَاَيُّكُمْ مَا صَلّٰى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ فَاِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ وَذَاالْحَاجَةِ.

۶۶۴: احـمـد بـن يونس، زهير، اسماعيل، قيس، ابـو مسـعـودؓ روايت كوي، يو سړي اووے، يا رسول الله، پـه خدائے م دے قَسَم وي، زهٔ ذ سحر ذ مونځ نه صرف ذ فـلانـي سـړي په سبب پاتے شم، ځكه چه هغه مونځ اوږد كـوي، نـو مـا رسول الله صلي الله عليه وسلم هيڅ كله ذ نـصـيـحـت پـه وخـت د دے ورځے نه زيات غضبناک نهٔ دے ليـدلـے دے نه پس حضورؐ او فرمائيل، چه تاسو كښ خـنـے سـړے (خـلـقـو تـه ذ عبادت نه) نفرت وركوي، نو تـاسـو كښ كوم سړے چه خلقو ته مونځ وركوي، هغهٔ له پـكـار دي چـه خـلـقـو تـه آسان مونځ وركړي، ځكه چه مـقـتـديانو كښ ضعيف، بوډا، او صاحب حاجت هر قسم خلق وي.

**باب ۴۵۳: اِذَا صَلّٰى لِنَفْسِهٖ فَلْيُطَوِّلْ مَاشَآءَ.**

**باب ۴۵۳:** هـر كـلـه چـه يو سړے خان له مونځ كوي، نو هر څومره چه غواړي اوږد دے كړي.

۶۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُف قَالَ اَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اَنَّ

۶۶۵: عـبـدالـلّٰـه بـن يـوسف، مـالـک، ابـو الـزنـاد، اعـرج، ابـو هـريـرةؓ روايـت كـوي. رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم او فـرمـائـيـل. هـر كـلـه چـه يو

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَاِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالسَّقِيْمَ وَالْكَبِيْرَ وَ اِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ لِنَفْسِهٖ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَآءَ.

سړے خلقو ته مونځ ورکوي نو هغهٔ له تخفيف کول پکار دي' ځکه چه مقتديانو کښې کمزورے' بيمار او بوډا هر قسم خلق وي' او هر کله چه څوک تاسو کښې خان لـه مونځ کوي' نو څومره چه غواړي' اوږد دے کړي.

باب ۴۵۴: مَنْ شَكٰى اِمَامَهٗ اِذَا طَوَّلَ وَ قَالَ اَبُوْ اُسَيْدٍ طَوَّلْتَ بِنَا يَابُنَيَّ.

باب ۴۵۴: کوم سړے چه د خپل امام نه هر کله چه هغه مونځ اوږد کړي شکايت اوکړي' او ابو اسيد خپل خوي ته يو خل اووے' چه خويه' تا خمونږ مونځ اوږد کهٔ.

۶۶۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ ثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ ابْنَ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَّارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَاَتَاَخَّرُ عَنِ الصَّلٰوةِ فِي الْفَجْرِ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَافُلَانٌ فِيْهَا فَغَضِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَارَاَيْتُهٗ غَضِبَ فِيْ مَوْعِظَةٍ كَانَ اَشَدَّ غَضَبًا مِّنْهُ يَوْمَئِذٍ ثُمَّ قَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ مِنْكُمْ مُّنَفِّرِيْنَ فَمَنْ اَمَّ مِنْكُمُ النَّاسَ فَلْيَتَجَوَّزْ فَاِنَّ خَلْفَهُ الضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ وَذَا الْحَاجَةِ.

۶۶۶: محمد بن يوسف' سفيان' اسماعيل بن ابي خالد' قيس بن ابي حازم' ابو مسعودؓ روايت کوي يو خلے يو سړے راغے' او' وے وئيل' يا رسول اللّٰه' زهٔ د سحر دَ مونځ نه پاتے شم' ځکه چه فلانے سړے مونځ له طول ورکوي' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم غضبناک شو' چه ما حضورؐ دَ دغے ورځے نه زيات غصه کيدونکے دَ نصيحت په وخت چرته نه وو ليدلے هغے نه پس حضورؐ او فرمائيل' خلقو تاسو کښې ځنے کسان' خلق دَ عبادت نه متنفر کوي' نو کوم سړے چه دَ خلقو امام شي' هغه له دَ تخفيف نه کار اخستل پکار دي' ځکه چه هغهٔ پسے کمزورے بوډا او صاحب حاجت هر قسم خلق وي.

۶۶۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ قَالَ ثَنَا شُعْبَةُ قَالَ ثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ اَقْبَلَ رَجُلٌ بِنَاضِحَيْنِ وَقَدْ جَنَحَ اللَّيْلُ فَوَافَقَ مُعَاذًا يُصَلِّيْ فَتَبَرَّكَ نَاضِحَهٗ وَاَقْبَلَ اِلٰى

۶۶۷: آدم بن ابي اياس' شعبه' محارب بن دثار' جابر بن عبداللّٰه روايت کوي' يو سړي دوه اوښان د اوبو نه ډک بوتلل' د شپے اول وخت وو' هغهٔ چه معاذ په مونځ کولو اوليد' نو خپل دواړه اوښان ئے کينول' او معاذ ته متوجه شو' معاذ سورة بقره يا سورة نسآء شروع

مُعَاذٍ فَقَرَأَ سُورَةَ الْبَقَرَةِ أَوِ النِّسَاءِ فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ وَبَلَغَهُ أَنَّ مُعَاذًا نَالَ مِنْهُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَكَا إِلَيْهِ مُعَاذًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مُعَاذُ أَفَتَّانٌ أَنْتَ أَوْ قَالَ أَفَاتِنٌ أَنْتَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَلَوْلَا صَلَّيْتَ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى فَإِنَّهُ يُصَلِّي وَرَاءَكَ الْكَبِيرُ وَالضَّعِيفُ وَذُو الْحَاجَةِ أَحْسِبُ هَذَا فِي الْحَدِيثِ وَتَابَعَهُ سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ وَمِسْعَرٌ وَالشَّيْبَانِيُّ وَقَالَ عَمْرٌو وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مِقْسَمٍ وَأَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ قَرَأَ مُعَاذٌ فِي الْعِشَاءِ بِالْبَقَرَةِ وَتَابَعَهُ الْأَعْمَشُ عَنْ مُحَارِبٍ.

کړ، نو هغې سړي نیت مات کړ او لاړ بیا هغه ته دا خبر اورسید چه معاذؓ د هغه نه خفه دے، نو هغه نبي صلی الله علیه وسلم له راغے او حضورؐ ته ئے د معاذ شکایت اوکړ، نو حضورؐ درے ځله اوفرمائیل، اے معاذؓ! آیا ته فتنه پرور ته کونکے ئے (که داسې نه وي) نو تا په سَبِّحِ اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی او وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا او وَاللَّیْلِ اِذَا یَغْشٰی سره مونځ ولے او نه کړلو. ځکه چه تا پسے بوډا کمزورے او صاحب حاجت هر قسم خلق مونځ کوي. او عمرو او عبید الله بن مقسم او ابو الزبیر د جابر نه روایت کړے دے چه معاذ ماسخوتن کښ سورة بقره لوستے وو او اعمش د محارب نه د هغه متابعت کښ روایت اوکړ.

۱ امام بخاري رحمة الله علیه دې احادیثو مبارکو سره د دې واضحه کولو [illegible] د هغې په حقله شکایت کړے شو [illegible] دے [illegible] نبي صلی الله علیه وسلم [illegible] نبي علیه السلام هغه ته توجه او غور [illegible] د هغې په حقله حکم ئې بیان کړو [illegible] معاملاتو کښې معقول او مناسب [illegible] دے

## باب ۴۵۵: الْإِيجَازِ فِي الصَّلَاةِ وَإِكْمَالِهَا.

باب ۴۵۵: مونځ مختصر [illegible] او پوره کول.

۶۶۸: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوجِزُ الصَّلَاةَ وَيُكْمِلُهَا.

۶۶۸: ابو معمر، عبد الوارث، عبد العزیز، انس بن مالک روایت کوي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به مونځ مختصر او پوره کولو.

## باب ۴۵۶: مَنْ أَخَفَّ الصَّلَاةَ

باب ۴۵۶: د هغه سړي بیان چه د بچي د ژړا

عِنْدَ بُكَاءِ الصَّبِيِّ.

۶۶۹ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ لَاَقُوْمُ فِي الصَّلٰوةِ اُرِيْدُ اَنْ اُطَوِّلَ فِيْهَا فَاَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَاَتَجَوَّزُ فِيْ صَلٰوتِيْ كَرَاهِيَةَ اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمِّهٖ. تَابَعَهٗ بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ وَّ بَقِيَّةُ وَابْنُ الْمُبَارَكِ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ.

آواز واوري، او مونخ مختصر کړي.

۶۶۹ : ابراهيم بن موسي، وليد بن مسلم اوزاعي، يحيي بن ابي کثير، عبدالله بن ابي قتاده، ابو قتاده د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. حضورﷺ او فرمائيل، زهٔ چه په مونځ ولاړيم، نو غواړم چه اوږدئے کړم. ليکن د ماشوم د ژړا آواز واورم، نو خپل مونځ مختصر کړم، او دا امر بد گنړم، چه زهٔ د هغهٔ د مور د تکليف باعث جوړ شم، بشر بن بکر، بقيه او ابن مبارک د اوزاعي نه د دے متابع حديث روايت کړے دے.

۶۷۰ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَرِيْكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ مَا صَلَّيْتُ وَرَآءَ اِمَامٍ قَطُّ اَخَفَّ صَلٰوةً وَّ لَا اَتَمَّ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ اَنْ تُفْتَنَ اُمُّهٗ.

۶۷۰ : خالد بن مخلد، سليمان بن بلال، شريک بن عبدالله، انس بن مالکؓ روايت کوي، چه ما هيڅ امام پسے د نبي صلي الله عليه وسلم نه زيات آسان او کامل مونځ نهٔ دے کړے، او بيشکه حضورﷺ چه به د بچي ژړا واوريده، نو د دے خوف نه چه د هغهٔ مور پريشانه نهٔ کړي، مونځ به ئے مختصر کړلو.

۶۷۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ لَاَدْخُلُ فِي الصَّلٰوةِ وَاَنَا اُرِيْدُ اِطَالَتَهَا فَاَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَاَتَجَوَّزُ

۶۷۱ : علي بن عبدالله، يزيد بن زريع، سعيد، قتاده، انس بن مالکؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، زهٔ چه کله مونځ کوم نو غواړم، چه اوږد ئے کړم، خو د بچي د ژړا آواز چه واورم، نو خپل مونځ کښې تخفيف او کړم، ځکه چه

فِيْ صَلٰوتِيْ مِمَّا اَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ اُمِّهٖ مِنْ بُكَآئِهٖ.

زهٔ د هغهٔ ژړا سره د هغهٔ د مور سخته پريشاني محسوسوم.

٦٧٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُبْنُ بَشَّارٍ قَالَ اَنَا ابْنُ عَدِيٍّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَدْخُلُ فِي الصَّلٰوةِ فَاُرِيْدُ اِطَالَتَهَا فَاَسْمَعُ بُكَآءَ الصَّبِيِّ فَاَتَجَوَّزُ مِمَّا اَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ اُمِّهٖ مِنْ بُكَآئِهٖ وَقَالَ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبَانُ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ نَا اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ.

٦٧٢: محمد بن بشار، ابن عدي، سعيد قتاده، انس بن مالكؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل، زهٔ مونځ شروع كړم، هغې له طول وركول غواړم، خو د بچي د ژړا آواز آوريدو سره هغه مختصر كړم، ځكه چه د هغهٔ ژړا سره ما ته خيال راشي، چه د هغهٔ مور به سخته پريشانه شي، او موسٰي وئيلي دي، چه مونږ د ابان نه په سند د قتاده، انس ده رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت اوكړ.

باب ۴٥٧: اِذَا صَلّٰى ثُمَّ اَمَّ قَوْمًا.

باب ۴٥٧: چه خپله ئې فرض, مونځ كړې وي د هغې نه پس دې د خلقو امامت كوي.

٦٧٣: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ وَّ اَبُو النُّعْمَانِ قَالَا نَا حَمَّادُبْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَاْتِيْ قَوْمَهٗ فَيُصَلِّيْ بِهِمْ.

٦٧٣: سليمان بن حرب او ابو النعمان حماد بن زيد، ايوب، عمرو بن دينار، حضرت جابرؓ روايت كوي چه معاذؓ به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره يو ځائې مونځ كولو هغې نه پس به خپل قوم ته تلو، او هغوي ته به ئې مونځ وركولو.

باب ۴٥٨: مَنْ اَسْمَعَ النَّاسَ تَكْبِيْرَ الْاِمَامِ.

باب ۴٥٨: د هغې سړي بيان چه مقتديانو ته د امام تكبير واوروي.

٦٧٤: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ نَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دَاوٗدَ قَالَ نَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَمَّا مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

٦٧٤: مسدد، عبداللّٰه بن داؤد، اعمش ابراهيم، اسود، بي بي عائشهؓ روايت كوي، چه كوم وخت رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د مرګ په مرض پريوت، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته بلالؓ د مونځ د اطلاع د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَضَهُ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ اَتَاهُ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلٰوةِ قَالَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ قُلْتُ اِنَّ اَبَابَكْرٍ رَّجُلٌ اَسِيْفٌ اِنْ يَّقُمْ مَقَامَكَ يَبْكِ فَلَا يَقْدِرُ عَلَى الْقِرَآئَةِ فَقَالَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ فَقُلْتُ مِثْلَهُ فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ اِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ فَصَلّٰى وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهَادٰى بَيْنَ رَجُلَيْنِ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ يَخُطُّ بِرِجْلَيْهِ الْاَرْضَ فَلَمَّا رَاٰهُ اَبُوْبَكْرٍ ذَهَبَ يَتَاَخَّرُ فَاَشَارَ اِلَيْهِ اَنْ صَلِّ فَتَاَخَّرَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ قَعَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى جَنْبِهٖ وَاَبُوْ بَكْرٍ يُّسْمِعُ النَّاسَ التَّكْبِيْرَ تَابَعَهُ مُحَاضِرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ.

باره راغے حضورؐ ورته او فرمائيل ابو بکرؓ ته اووايه چه خلقو ته مونځ ورکړي. ما عرض اوکړو، ابو بکرؓ يو نرم زړے سړے دے. که ستاسو په ځائے اودريږي نو په ژړا به شي او قرأت به او نه کړے شي. حضورؐ او فرمائيل ابو بکرؓ ته اووائے چه مونځ ورکړي. ما بيا همه عرض اوکه، نو په دريم يا څلورم ځل حضورؐ دا او فرمائيل چه تاسو د يوسفؑ د ښځو په مثل ئے ابو بکرؓ ته اووائے چه مونځ ورکړي، نو ابو بکرؓ مونځ شروع که (دے کښې نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مرض کښې څه کمي محسوس کړه) او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د دوو سړو مينځ کښې د هغوي په تکيه بهر تشريف راوړلو، ګويا زه دے وخت هم حضورؐ ته ګورم، چه دواړه پښے مبارکے ئے په زمکه راکښلے شي کوم وخت چه ابو بکرؓ حضورؐ اوليدو، نو په ورستو شو، خو حضورؐ ورته اشاره اوکړه، چه مونځ کوه. نو ابو بکرؓ څه قدرے ورستو شو او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د هغهٔ په خوا کښې کيناستلو او ابو بکرؓ به خلقو ته تکبير آورولو۔

۱. بيا نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم امام شو ليکن د ناجوړتيا او د کمزورئ په وجه د نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم تکبير خلقو نشو اوريدلے نو بيا به حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه په زوره تکبير ويلو. چه مقتديانو ته د مونځ د حالاتو پته لګي.

## بَاب ۴۵۹: اَلرَّجُلِ يَأْتَمُّ بِالْاِمَامِ وَيَأْتَمُّ النَّاسُ بِالْمَأْمُوْمِ وَيُذْكَرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ائْتَمُّوْا بِيْ وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ.

## باب ۴۵۹: که يو سړے د امام اقتدا اوکړي او باقي خلق د هغے مقتدي اقتدا اوکړي، او د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه منقول دي چه حضورؐ او فرمائيل تاسو خلق خما اقتدا کوئے او ستاسو نه روستو خلق به ستاسو اقتدا کوي.

۶۷۵ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ ثَنَا اَبُو مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ بِلَالٌ يُؤَذِّنُهُ بِالصَّلٰوةِ فَقَالَ مُرُوْآ اَبَابَكْرٍ اَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَقُلْتُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَابَكْرٍ رَّجُلٌ اَسِيْفٌ وَّاِنَّهُ مَتٰى يَقُوْمُ مَقَامَكَ لَايُسْمِعُ النَّاسَ فَلَوْاَ مَرْتَ عُمَرَ فَقَالَ مُرُوْآ اَبَابَكْرٍ اَنْ يُّصَلِّيْ بِالنَّاسِ فَقُلْتُ لِحَفْصَةَ قُوْلِيْ لَهُ اِنَّ اَبَابَكْرٍ رَّجُلٌ اَسِيْفٌ وَّ اِنَّهُ مَتٰى مَايَقُوْمُ مَقَامَكَ لَايُسْمِعُ النَّاسَ لَوْ اَمَرْتَ عُمَرَ فَقَالَ اِنَّكُنَّ لَاَنْتُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ اَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَلَمَّا دَخَلَ فِي الصَّلٰوةِ وَجَدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَفْسِهٖ خِفَّةً فَقَامَ يُهَادٰى بَيْنَ رَجُلَيْنِ وَرِجْلَاهُ يَخُطَّانِ فِي الْاَرْضِ حَتّٰى دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلَمَّا سَمِعَ اَبُوْبَكْرٍ حِسَّهٗ ذَهَبَ اَبُوْبَكْرٍ يَّتَاَخَّرُ فَاَوْمَاَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى جَلَسَ عَنْ يَّسَارِ اَبِيْ بَكْرٍ فَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ يُّصَلِّيْ قَآئِمًا وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ

۶۷۵ : قتيبه بن سعيد، ابو معاويه، اعمش، ابراهيم، اسود، بي بي عائشهؓ روايت كوي چه كوم وخت نبيَّ ناروغه شو، نو بلالؓ ورته دَ مونځ دَ اطلاع كولو دَ پاره راغے، حضورؐ ورته او فرمائيل، ابو بكرؓ ته اووايئ، چه خلقو ته مونځ وركړي، ما اووے، يا رسول اللّٰه، ابوبكرؓ يو نرم زړے سړے دے، كوم وخت چه ستاسو په ځائے اودريږي، نو خلقو ته به قرات واونه رولے شي، كاش چه تاسو عمرؓ ته حكم وركړے وے. بيا حضورؐ او فرمائيل، ابوبكرؓ ته اووائے چه خلقو ته مونځ وركوي، نو ما بي بي حفصےؓ ته اووے، چه ته حضورؐ ته عرض او كړه، چه ابو بكرؓ نرم مزاجه سړے دے، چه ستاسو په ځائے اودريږي، نو خلقو ته به خپل آواز واونه رولے شي، كاش چه تاسو حضرت عمرؓ ته حكم وركړے وے بي بي حفصےؓ حضورؐ ته عرض اوكۀ، نو حضورؐ ورته او فرمائيل، چه تاسو دَ هغے ښځو په شان ئے چه يوسفؑ ئے گير كړے وو، ابو بكرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ وركړي، بيا چه هغۀ مونځ شروع كۀ، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل مرض كښې څۀ كمي محسوس كه، او دَ دوو سړو مينځ كښې دَ هغوي په تكيه ئے بهر تشريف راوړلو، او دَ حضورؐ دواړه پښے مباركے په زمكه راښكلے شوے، تر دے چه حضورؐ جمات كښې داخل شولو. كوم وخت چه ابو بكرؓ دَ حضورؐ په راتلو پوهه شو، نو ابو بكرؓ په ورستو كيدو شو، خو حضورؐ ورته اشاره اوكړله، چه مۀ ورستو كيږه. بيا حضورؐ راغے او دَ ابو بكر كس طرف ته كيناستلو، ابو بكرؓ په ولاړه مونځ كولو، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په ناسته

قَاعِدًا يَقْتَدِيْ اَبُوْبَكْرٍ بِصَلٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مُقْتَدُوْنَ بِصَلٰوةِ اَبِيْ بَكْرٍ.

مونځ ور كولو . ابو بكرؓ د رسول الله صلي الله عليه وسلم اقتدا كوله، او خلق د ابو بكرؓ د مونځ مقتديان وو.

**باب ۴۶۰ : هَلْ يَأْخُذُ الْإِمَامُ اِذَاشَكَّ بِقَوْلِ النَّاسِ.**

**باب ۴۶۰ : امام ته چه شک شي، نو هغه دے د مقتديانو په وينا عمل اوكړي؟**

۶۷۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَيُّوْبَ بْنِ اَبِيْ تَمِيْمَةَ السَّخْتِيَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنَ اثْنَتَيْنِ فَقَالَ لَهُ ذُو الْيَدَيْنِ اَقُصِرَتِ الصَّلٰوةُ اَمْ نَسِيْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَدَقَ ذُوالْيَدَيْنِ فَقَالَ النَّاسُ نَعَمْ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى اثْنَتَيْنِ اُخْرَيَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ سَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ.

۶۷۶ : عبدالله بن مسلمه، مالک بن انس ایوب بن ابي تيمه سختياني، محمد بن سيرين، ابو هريرةؓ روايت كوي. يو خلے د ځلور ركعاتو مونځ كښې رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه ركعاته اوكړل، نو حضورؐ ته ذواليدين عرض اوكه، يا رسول الله، آيا مونځ كښې كمے راغے، يا تاسونه هيره اوشوه، رسول الله صلي الله عليه وسلم هغې نورو ته اوفرمائيل، آيا ذواليدين ريښتيا وائي؟ خلقو ورته اووے، او، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم او دريدلو، او دوه ركعاته ئے نور اوكړل، بيائے سلام او ګرځولو، او د معمول مطابق د خپلو سجدو پشان ئے سجدے اوكړے، يا د هغې نه به ئے اوږدے وے. (ذواليدين: يو صحابي چه لاسونه ئے اوږده وو، په ذواليدين مشهور وو).

۶۷۷ : حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِيْدِ قَالَ نَاشُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ فَقِيْلَ قَدْ صَلَّيْتَ رَكْعَتَيْنِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ.

۶۷۷ : ابوالوليد. سعد بن ابراهيم. ابو سلمه. ابوهريره روايت كوي، نبي صلے الله عليه وسلم د ماسپخين دوه ركعاته اوكړل. نو حضورؐ ته اووئيلے شو، چه تاسو دوه ركعاته اوكړل، نو حضورؐ دوه ركعاته نور اوكړل. بيائے سلام اوګرځولو. او (د سهو) دوه سجدے ئے اوكړلے[۱].

۱ . د ذواليدين رضي الله عنه د دے حديث واقعه د اسلام د ابتدا ده. چه مونځ كښې ډير كارونه خبرے

اترے منعه نه وي. بیا روستو خبرے او نور کارونه منعه شو. څکه اولنئے واقعه ده. چه ذوالیدین رضي الله عنه بدر کښې شهید شوے وو.

**باب ۴۲۱: اِذَا بَکَی الْاِمَامُ فِی الصَّلٰوۃِ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰہِ بْنُ شَدَّادٍ سَمِعْتُ نَشِیْجَ عُمَرَ وَ اَنَا فِیْ اٰخِرِ الصُّفُوْفِ یَقْرَأُ اِنَّمَا اَشْکُوْا بَثِّیْ وَحُزْنِیْ اِلَی اللّٰہِ.**

باب ۴۲۱: کله چه امام مونځ کښې اوژاړي، عبدالله بن شداد وائي، چه ما د عمرؓ د ژړا آواز واوریدلو، حالانکه زۀ د ټولو نه ورستنئ صف کښې وم، هغه: اِنَّمَا اَشْکُوْ بَثِّیْ وَ حُزْنِیْ اِلَی اللّٰہِ: ئے قرأت کولو.

۶۷۸: اِسْمٰعِیْلُ قَالَ حَدَّثَنِیْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ اَبِیْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِیْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِیْ مَرَضِهٖ مُرُوْا اَبَا بَکْرٍ یُّصَلِّیْ بِالنَّاسِ قَالَتْ عَآئِشَةُ قُلْتُ لَهٗ اِنَّ اَبَا بَکْرٍ اِذَا قَامَ فِیْ مَقَامِكَ لَمْ یُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُکَآءِ فَمُرْ عُمَرَ یُصَلِّیْ بِالنَّاسِ فَقَالَ مُرُوْا اَبَا بَکْرٍ فَلْیُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَتْ عَآئِشَةُ فَقُلْتُ لِحَفْصَةَ قُوْلِیْ لَهٗ اِنَّ اَبَا بَکْرٍ اِذَا قَامَ فِیْ مَقَامِكَ لَمْ یُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُکَآءِ فَمُرْ عُمَرَ فَلْیُصَلِّ لِلنَّاسِ فَفَعَلَتْ حَفْصَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَهْ اِنَّکُنَّ لَاَنْتُنَّ صَوَاحِبُ یُوْسُفَ مُرُوْا اَبَا بَکْرٍ فَلْیُصَلِّ لِلنَّاسِ فَقَالَتْ حَفْصَةُ لِعَآئِشَةَ مَا کُنْتُ لِاُصِیْبَ مِنْكِ خَیْرًا.

۶۷۸: اسماعیل، مالک بن انس، هشام بن عروه، ام المومنین بي بي عائشهؓ روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلم خپل آخري مرض کښې او فرمائیل، ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي، بي بي عائشهؓ فرمائي، ما حضورؐ ته اووے، که ابو بکرؓ ستاسو په ځائے اودریږي، نو د ژړا په سبب به خلقو ته خپل قرأت و او نه رولے شي، نو تاسو عمرؓ ته حکم اوکړئ، چه خلقو ته مونځ ورکړي، بیا حضورؐ او فرمائیل، ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي بي بي عائشهؓ فرمائي، ما بي بي حفصې ته اووے چه ته حضورؐ ته عرض او که، که ابو بکرؓ ستاسو په ځائے کیني، نو د ژړا په سبب به خلقو ته خپل قرأت واونه رولے شي، نو تاسو عمرؓ ته حکم ورکړئ، چه خلقو ته مونځ ورکړي، بي بي حفصېؓ دغسې اوکړل، نو رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل چه تاسو د یوسف د لمسونکو ښځو په شان معلومیږئ. ابو بکرؓ ته اووائے، چه خلقو ته مونځ ورکړي. بیا بي بي حفصېؓ بي بي عائشېؓ ته اووے چه ما هیچرے تا نه ښاده نه ده بیا مونده[۱].

۱. د دے نه امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي چه ژړا سره مونځ کښې نقصان نه راځي. لیکن که چرے د خپلے پریشانئ یا د مصیبت په وجه څوک مونځ کښې ژاړي. نو د هغې مونځ ماتیږي. او که د جنت یا دوزخ یادولو سره څوک په مونځ کښې ژاړي نو دا ښه خبره ده په حدیث شریف کښې دا ثابته

ده چه مانځه کښې نبي عليه الصلاة والسلام ژړلی وړ.

باب ۴۶۲: تَسْوِيَةِ الصُّفُوْفِ عِنْدَ الْإِقَامَةِ وَبَعْدَهَا.

باب ۴۶۲: ذَ اقامت په وخت يا' دے نه پس ذَ صفونو برابرولو بيان.

۶۷۹: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ أَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمَ ابْنَ أَبِي الْجَعْدِ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ ابْنَ بَشِيْرٍ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتُسَوُّنَّ صُفُوْفَكُمْ أَوْلَيُخَالِفَنَّ اللّٰهُ بَيْنَ وُجُوْهِكُمْ.

۶۷۹: ابو الوليد' هشام بن عبدالملک' شعبه' عمرو بن مره' سالم بن ابي الجعد' نعمان بن بشيرؓ وائي' نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل خپل صفونه برابر وئے' کني اللّٰه تعالي به ستاسو په زړونو کښې اختلاف اوغرځوي.

۶۸۰: حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ أَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَقِيْمُوا الصُّفُوْفَ فَإِنِّيْ أَرَاكُمْ خَلْفَ ظَهْرِيْ.

۶۸۰: ابو معمر' عبدالوارث' عبدالعزيز بن صهيب' حضرت انسؓ روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' صفونه درست کړئے' زهٔ تاسو ذَ شانه ورستو هم وينمه۱.

۱. د اقامت ويلو دوران کښې صفونه برابره ولو کښې څه ګناه نشته د اقامت نه روستو' د تکبير تحريمه نه مخکښې هم صفونه سمول روا دي. د امام ابوحنيفه رحمة اللّٰه عليه په نزد صفونه سمول واجب دي. چه اوږے سره اوږه لګيدلے وي. مينځ کښې خالي خانے نه وي. او صفونه نيغ وي. د حضرت عمر رضي اللّٰه عنه د خلافت په دور کښې به مستقل يو سړے صفونو کښې ګرځيدلو او صفونه به ئے سَمول' نيغول.

باب ۴۶۳: إِقْبَالِ الْإِمَامِ عَلَى النَّاسِ عِنْدَ تَسْوِيَةِ الصُّفُوْفِ.

باب ۴۶۳: ذَ صفونو برابرولو په وخت ذَ امام خلقو طرف ته ذَ متوجه کيدو بيان.

۶۸۱: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِيْ رَجَاءٍ قَالَ أَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ أَنَا زَائِدَةُ بْنُ قُدَامَةَ قَالَ أَنَا حُمَيْدُنِ الطَّوِيْلُ قَالَ أَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ أُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَجْهِهٖ فَقَالَ أَقِيْمُوْا صُفُوْفَكُمْ وَتَرَاصُّوْا فَإِنِّيْ

۶۸۱: احمد بن ابي رجاء' معاويه بن عمرو زائده بن قدامهؒ' حميد طويل' انس بن مالکؓ روايت کوي. يو ځلے مونځ تيار شو' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل مخ مبارک مونږ طرف ته کړو' او وے فرمائيل چه تاسو خلق خپل صفونه درست کړئے او جخت اودريږئے' ځکه چه زهٔ تاسو ذَ خپل ورستو نه هم

اَرَاکُمْ مِنْ وَّرَاءِ ظَهْرِيْ.

وینم.

**باب ۴٦۴: اَلصَّفِ الْاَوَّلِ.**

**باب ۴٦۴: دَ وړومبي صف بیان.**

٦٨٢: حَدَّثَنَا اَبُوْعَاصِمٍ بْنِ مَالِكِ بْنِ اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشُّهَدَآءُ الْغَرِقُ وَ الْمَبْطُوْنُ وَالْمَطْعُوْنُ وَالْهَدِمُ وَقَالَ لَوْيَعْلَمُوْنَ مَافِي التَّهْجِيْرِ لَا اسْتَبَقُوْا اِلَيْهِ وَلَوْ يَعْلَمُوْنَ مَافِي الْعَتَمَةِ وَ الصُّبْحِ لَاَتَوْهُمَا وَ لَوْ حَبْوًا وَّ لَوْ يَعْلَمُوْنَ مَافِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ لَا اسْتَهَمُوْا.

٦٨٢: ابو عاصم، مالک، ابو صالح، ابو هریرهٔ وائي، نبي صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي، شهیدان (دا خلق دي) چه ډوب شي، مړ شي، او څوک چه دَ خیټې په مرض کښې مړ شي، او څوک چه طاعون کښې مړ شي او څوک چه زمکه کښې ښخ شي (دب کړ) مړ شي. او حضورؐ او فرمائیل، که خلقو ته معلومه شي، چه اول وخت کښې مونځ کولو کښې څومره فضیلت دے، نو بیشکه دے پله به سبقت او کړي، او که هغوي ته پته اولږي، چه دَ ماسختن او سحر (دَ جماعت) مونځ کښې څومره ثواب دے، نو یقیناً دے کښې به شریکیږي، اګر که په ګنډو ورته راتلل پریوځي، او که هغوي ته معلومه شي، چه وړمبي صف کښې څومره فضیلت دے نو بیا هغې دَ پاره به قرعه اندازي کوي.

**باب ۴٦۵: اِقَامَةُ الصَّفِّ مِنْ تَمَامِ الصَّلٰوةِ.**

**باب ۴٦۵: دَ صف درست کول دَ مونځ پوره کول دي.**

٦٨٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ اَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَلَا تَخْتَلِفُوْا عَلَيْهِ فَاِذَارَكَعَ فَارْكَعُوْا وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَاِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا وَاِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا اَجْمَعُوْنَ وَاَقِيْمُوا الصَّفَّ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّ اِقَامَةَ الصَّفِّ مِنْ حُسْنِ الصَّلٰوةِ.

٦٨٣: عبدالله بن محمد، عبدالرزاق معمر، همام، ابو هریرهٔ دَ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضورؐ او فرمائیل، امام دے دَ پاره جوړ شوے دے، چه دَ هغهٔ اقتدا او کړے شي، نو هغهٔ سره اختلاف مهٔ کوئے، کله چه هغه رکوع کوي، نو تاسو هم رکوع کوے، او کله چه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه اووائي، نو تاسو خلق رَبَّنَا لَکَ الْحَمْد وائے، او کله چه هغه په ناسته مونځ کوي نو تاسو هم په ناسته مونځ کوئے، او مونځ کښې صف درست کړئے، ځکه چه دَ صف درست کول دَ مونځ دَ خوبئ یو جُز دے.

٦٨۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ اَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ

٦٨۴: ابو الولید، شعبه، قتاده، حضرت انسؓ دَ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي، حضورؐ او

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ فَاِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ اِقَامَةِ الصَّلٰوةِ.

فرمائيل' خپل صفونه برابر کړئ' ځکه چه صفونه برابرول د مونځ د درست کولو حصه ده (برخه).

باب ۴۶۶: اِثْمُ مَنْ لَمْ يُتِمِّ الصُّفُوْفَ.

باب ۴۶۶: د هغې سړي ګناه چه صفونه پوره نۀ کړي.

۶۸۵: حَدَّثَنَا مُعَاذُبْنُ اَسَدٍ قَالَ اَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُبَيْدِ نِ الطَّائِيُّ عَنْ بَشِيْرِبْنِ يَسَارٍ الْاَنْصَارِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهٗ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ فَقِيْلَ لَهٗ مَآاَنْكَرْتَ مِنَّا مُنْذُ يَوْمِ عَهِدْتَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَنْكَرْتُ شَيْئًا اِلَّا اَنَّكُمْ لَاتُقِيْمُوْنَ الصُّفُوْفَ وَقَالَ عُقْبَةُ عَنْ بَشِيْرِ بْنِ يَسَارٍ قَدِمَ عَلَيْنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ الْمَدِيْنَةَ بِهٰذَا.

۶۸۵: معاذ بن اسد' فضل بن موسٰي سعيد بن عبيد طائي' بشير بن يسار انصاري' انس بن مالکؓ روايت کوي' چه کوم وخت هغه مدينې ته راغې' نو هغۀ ته اوونيلې شو' چه تا مونږ کښې کومه خبره د هغې خلاف بيا منده چه تا د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په زمانه کښې ليدلې وه' نو هغۀ اووې' ما بغير د دې نه هيڅ څيز خلاف بيا نۀ مُند' چه تاسو صفونه' نه درست کوئ' او عقبه بن عبيد د بشير بن يسار نه داسې روايت کړې دې' چه مونږ خلقو له کوم وخت حضرت انسؓ مدينې ته راغې الخ.

باب ۴۶۷: اَلْزَاقِ الْمَنْكِبِ بِالْمَنْكِبِ وَالْقَدَمِ بِالْقَدَمِ فِي الصَّفِّ وَ قَالَ النُّعْمَانُ بْنُ بَشِيْرٍ رَاَيْتُ الرَّجُلَ مِنَّا يُلْزِقُ كَعْبَهٗ بِكَعْبِ صَاحِبِهٖ.

باب ۴۶۷: صف کښې اوږه د اوږې سره او قدم د قدم سره د يو ځائې کولو بيان' او نعمان بن بشيرؓ وائي ماليدلې دي چه مونږ به هر سړي خپله ګيټۍ خوا کښې د سړي ګيټۍ سره يو ځائې کوله .

۶۸۶: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ اَنَا زُهَيْرٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَقِيْمُوْا صُفُوْفَكُمْ فَاِنِّيْ اَرَاكُمْ مِنْ وَّرَآءِ ظَهْرِيْ وَكَانَ اَحَدُنَا يُلْزِقُ مَنْكِبَهٗ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهٖ وَقَدَمَهٗ

۶۸۶: عمرو بن خالد' زهير' حميد' حضرت انسؓ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي' حضورؐ او فرمائيل' خپل صفونه درست کوئ' ځکه چه زه تاسو د خپل شا د طرف نه هم وينم' او مونږ کښې هر سړي خپل اوږه خوا کښې د بل اوږې سره او خپل قدم د هغۀ قدم سره يو

بِقَدَمِهٖ. خائے كولو.

۱. د دے مقصد په پوره طريقه صفونه سمول دي. چه په مينځ كښ خالي خائے پاتے نشي د ځلورو امامانو په نزد د دوو سرو په مينځ كښ ځلور ګوتے فرق پكار دے. امام بخاري رحمة الله عليه د نعمان بن بشير رضي الله عنه قول نقل كړے دے "چه ماليدل چه يو سړي خپلے ګيټئ د نزدے سړي ګيټئ سره يو خائے كړے وه" ليكن په ابوداود كښ د اوږے د بل د اوږے سره او د ځنګون د بل د ځنګون سره د يو خائے كولو بيان دے (ص ۹۷ جلد اول) او دا د رسول الله صلي الله عليه وسلم حديث مبارك هم نه دے. ځكه چه نُعمان بن بشير رضي الله عنه د نبي عليه الصلاة والسلام په زمانه كښ د شپږ اوه كالو ماشوم وؤ چه په روستنو صفونو كښ به اُودريدو كيدے شي چه هغه څوک په آخري صف كښ ليدلے دي. ليكن ګيټئ د ګيټئ سره يو خائے كول نه د نبي عليه الصلاة والسلام قول دے نه عمل نه تقرير. امام بخاري رحمة الله عليه دَ حضرت اَنس بن مالک رضي الله عنه يو روايت هم نقل كړيدے. حضرت انس رضي الله عنه هم د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ نابالغه وؤ او په روستنو صفونو كښ به ولاړ وو. امام بخاري رحمة الله عليه د هغه قول هم مكمل نقل كړے نه دے دده استاذ ابوبكر بن ابي شيبه رحمة الله عليه ددے نه روستو دا عبارت نقل كړيدے. وَلَوْ ذَهَبْتَ تَفْعَلُ ذٰلِكَ لَتَرٰى اَحَدَهُمْ كَاَنَّهٗ بَغْلٌ شَمُوْسٌ كه چرے ته داسے ګيټئ يوخائے كړے او تا څوک اويني نو دا صحابه او تابعين به تانه لكه د تريدلي قچر او تختي. ښكاره خبره ده. چه د لوئے عمر عقل مند سړے د نابالغ عمل نه خوښوي حضرت انس رضي الله عنه چه په وړو كوالي كښ د نورو ماشومانو سره كوم كار كړے وؤ هغه ئے بيان كړو ليكن چه كله لوئے شو. نو صحابه او تابعين د هغه د ماشوم والي د عادت نه بيزاره وؤ. د دينه معلومه شوه چه ګيټئ يو خائے كول نه د نبي عليه السلام سنت دي نه د صحابهٔ كرامو' كه چرے دا سنت يا مستحب وے نو صحابهٔ كرام او تابعين به ترے بيزاره نه وؤ.

بَاب ۴۶۸: إِذَا قَامَ الرَّجُلُ عَنْ يَسَارِ الْإِمَامِ وَحَوَّلَهُ الْإِمَامُ خَلْفَهٗ إِلٰى يَمِيْنِهٖ تَمَّتْ صَلٰوتُهٗ.

۴۶۸: كه يو سړے دَ امام كس طرف ته ولاړ وي' او امام هغه دَ خپل شا طرفه' ښي طرف ته كړي' نو دَ هغهٔ مونځ صحيح شولو.

۶۸۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ نَادَا وُدُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَأْسِيْ مِنْ وَّرَآءِيْ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ فَصَلّٰى وَرَقَدَ

۶۸۷: قتيبه بن سعيد' داؤد' عمرو بن دينار' كريب (دَ ابن عباسؓ آزاد كرده غلام) ابن عباسؓ روايت كوي' يوه شپه ما نبي صلي الله عليه وسلم سره دَ تهجد) مونځ او كه' زهٔ (دَ نا واقفيت په بنا) دَ حضور صلي الله عليه وسلم كس طرف ته اودريدم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم خما سر خما دَ ورستو طرف نه او نيولو' او زهٔ ئے خپل ښي طرف ته كړم. حضورؐ مونځ اوكه' هغے نه پس اوده شو'

فَجَآءَهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ يُصَلِّيْ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

بیا حضورٌ لـه موذن راغے نو حضورٌ مانځه ذ پاره پاسیدلو او اودس ئے او نه کړلو.

## بـاب ۴۶۹: اَلْمَرْاَةُ وَحْدَهَا تَكُوْنُ صَفًّا.

## باب ۴۶۹: یوازې ښځه هم ذ یوصف په شان ده.

۶۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ ثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْحٰقَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّيْتُ اَنَا وَيَتِيْمٌ فِيْ بَيْتِنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُمِّيْ اُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا.

۶۸۸: عبداللّٰه بن محمد، سفيان، اسحاق، انس بن مالكؓ روايت كوي، چه ما اويو يتيم بچي خپل كور كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم پسے مونځ اوكـړ، نو خـما مور، اُمّ سليم ذ ټولو نه ورستو وه.

## باب ۴۷۰: مَيْمَنَةِ الْمَسْجِدِ وَالْاِمَامِ.

## باب ۴۷۰: يو مقتدي دے ذ امام ښي طرف ته اودريږي.

۶۸۹: حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ نَاثَابِتُ بْنُ يَزِيْدَ نَا عَاصِمٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قُمْتُ لَيْلَةً اُصَلِّيْ عَنْ يَّسَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخَذَ بِيَدِيْ اَوْ بِعَضُدِيْ حَتّٰى اَقَامَنِيْ عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَقَالَ بِيَدِهٖ مِنْ وَّرَآءِيْ.

۶۸۹: موسي، ثابت بن يزيد، عاصم، شعبي، ابن عباسؓ روايت كوي، يوه شپه (ذ تهجد) مونځ ذ پاره زۀ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم كس جانب ته اودريدم، نو حضورٌ خما لاس يا خما مټ او نيولو او زۀ ئے خپل ښي طرف ته اودرولم، او خپل لاس سره ئے خما شاته اشاره اوكړه.

## بـاب ۴۷۱: اِذَا كَانَ بَيْنَ الْاِمَامِ وَبَيْنَ الْقَوْمِ حَآئِطٌ اَوْسُتْرَةٌ

وَقَالَ الْحَسَنُ لَابَأْسَ اَنْ تُصَلِّيَ وَبَيْنَكَ وَبَيْنَهُ نَهْرٌ وَقَالَ اَبُوْ مِجْلَزٍ يَاْتَمُّ بِالْاِمَامِ وَاِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا طَرِيْقٌ اَوْجِدَارٌ اِذَا سَمِعَ تَكْبِيْرَ الْاِمَامِ.

## باب ۴۷۱: كه ذ امام او خلقو مينځ كښې څه ديوال يا سُتره وي،

او ذ حسن بصري قول دے كه ستاسو او امام تر مينځه نهر حائل وي، نو هم اقتدائے كوے دے كښې هيڅ حرج نشته، او ابو مجلز وائي، ذ امام اقتدا كوے، اگر كه ذ دواړو مينځ كښې لار يا ديوال وي، په شرط ذ دے چه ذ امام تكبير ا آوري.

۱. د احنافو په نزد مسئله داده چه ټول جومات د يو مكان په حكم كښې دے كه د امام او د مقتديانو په مينځ كښې ديوال وي. نو دا ضروري ده چه د امام د ركوع قيام سجدے قراء ت قعدے سلام، د ټولو

حالانکو خبر مقتديانو ته رسيږي. په صحراء کښې د امام او د مقتدي تر مينځه د درے صفونو فاصلے پورے، مونځ روا دے که چرے د امام يا د مقتديانو ترمينځ کومه لاره يا نهر وي (وَله وي) يا درياب وي چه کشتئ پکښې روانے وي نو بيا اقتداء صحيح نه ده.

۶۹۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ نَا عَبْدَةُ عَنْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدِنِ الْاَنْصَارِيّ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ فِيْ حُجْرَتِهٖ وَجِدَارُ الْحُجْرَةِ قَصِيْرٌ فَرَاَى النَّاسُ شَخْصَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنَاسٌ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوتِهٖ فَاَصْبَحُوْا فَتَحَدَّثُوْا بِذٰلِكَ فَقَامَ لَيْلَةَ الثَّانِيَةِ فَقَامَ مَعَهٗ اُنَاسٌ يُصَلُّوْنَ بِصَلٰوتِهٖ صَنَعُوْا ذٰلِكَ لَيْلَتَيْنِ اَوْثَلَاثًا حَتّٰى اِذَا كَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ جَلَسَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَخْرُجْ فَلَمَّا اَصْبَحَ ذَكَرَ ذٰلِكَ النَّاسُ فَقَالَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تُكْتَبَ عَلَيْكُمْ صَلٰوةُ اللَّيْلِ.

۶۹۰: محمد بن سلام، عبده، يحيٰي بن سعيد انصاري، عمرو، بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به دَ شپے مونځ خپلے حجرے کښې کولو، او دَ حجرے ديوال وړوکے وو، نو خلقو دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم جسم مبارک اوليدلو او څنے خلقو دَ حضورؐ دَ مونځ اقتدا اوکړه او دريدل، چه صبا شو، نو هغوي دَدے مشهورتيا اوکړه، بيا په دوئمه شپه حضورؐ (مانځه ته) اودريدلو، دوه يا درے شپے خلقو دغسے اوکړل، حتّٰے چه دے پسے شپه راغله، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم کيناست او مونځ ئے او نهٔ کهٔ صبا ته ئے خلقو ته دَ دے ذکر اوکهٔ، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، ماسره دا خوف پيدا شو، چه (دَ دے هميشګي په وجه په تاسو چرته دَ شپے مونځ فرض نهٔ شي. (حجره کوټګے وړه کمره، کوټه کور).

## باب ۴۷۲: صَلٰوةِ اللَّيْلِ.

## باب ۴۷۲: دَ شپے دَ مونځ بيان.

۶۹۱: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ نَا ابْنُ اَبِيْ فُدَيْكٍ قَالَ نَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَهٗ حَصِيْرٌ يَبْسُطُهٗ بِالنَّهَارِ

۶۹۱: ابراهيم بن منذر، ابن ابي فديک، ابن ابي ذئب، مقبري، ابو سلمه بن عبدالرحمن بي بي عائشةؓ روايت کوي، چه نبي صلعم سره يو پوزِ وو، چه دَ ورځے به ئے غوړولے وو، او دَ شپے به ئے دَ هغے پرده اچوله، نو څنے خلق حضورؐ سره جمع شو او

وَيَحْتَجِرُهُ بِالَّلْيلِ فَثَابَ اِلَيْهِ نَاسٌ فَصَلُّوْا وَرَآئَهُ.

هغوي حضورﷺ پسې مونځ کول شروع کړل.

**٦٩٢** : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى ابْنُ حَمَّادٍ قَالَ نَاوُهَيْبٌ قَالَ نَامُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ اَبِى النَّضْرِ عَنْ بُسْرِبْنِ سَعِيْدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ حُجْرَةً قَالَ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ مِنْ حَصِيْرٍ فِىْ رَمَضَانَ فَصَلّٰى فِيْهِ لَيَالِىْ فَصَلّٰى بِصَلٰوتِهٖ نَاسٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَلَمَّا عَلِمَ بِهِمْ جَعَلَ يَقْعُدُ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ قَدْ عَرَفْتُ الَّذِىْ رَاَيْتُ مِنْ صَنِيْعِكُمْ فَصَلُّوْا اَيُّهَا النَّاسُ فِىْ بُيُوْتِكُمْ فَاِنَّ اَفْضَلَ الصَّلٰوةِ صَلٰوةُ الْمَرْءِ فِىْ بَيْتِهٖ اِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ وَقَالَ عُثْمَانُ نَاوُهَيْبٌ قَالَ نَامُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ اَبَا النَّضْرِ عَنْ بُسْرٍ عَنْ زَيْدٍ عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**٦٩٢** : عبدالاعلي بن حماد، وهيب، موسي بن عقبه، سالم، ابو النصر، بسر بن سعيد، زيد بن ثابتؓ روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم رمضان کښ يوه حجره جوړه کړې وه (سعيد وائي) خما خيال دے، چه زيد بن ثابت دا وئيلے وو، چه هغه د پوزو، او هغې کښ څو شپې حضورﷺ مونځ اوکړ، اصحابوؓ ته ذدے پته اولږيده، نو هغوي ذ حضورﷺ ذ مونځ اقتدا اوکړه، خو کوم وخت چه حضورﷺ ته دا معلومه شوه" نو حضورﷺ کيناست، بيا سحر ته هغوي پله ئے تشريف راوړلو، او وې فرمائيل ما ستاسو فعل اوليد، په هغې پوهه شوم (يعني چه ستاسو عبادت سره شوق دے) نو اے خلقو، خپلو کورونو کښ مونځ کوئے، ځکه چه ذ فرض مونځ نه علاوه ذ سړي مونځونو کښ افضل مونځ هغه دے، چه ذ هغهٔ کور کښ وي، او عفان په سند ذ وهيب، موسي، ابو النصر بسر، زيد، ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

**باب ٣٧٣** : اِيْجَابِ التَّكْبِيْرِ وَافْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ.

**باب ٣٧٣** : ذ تکبير تحريمه ذ واجب کيدو او د مونځ شروع کولو بيان.

**٦٩٣** : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِىِّ قَالَ اَخْبَرَنِىْ اَنَسُ بْنُ مَالِكِ نِ الْاَنْصَارِىِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا فَجُحِشَ شِقَّهُ الْاَيْمَنُ وَقَالَ اَنَسٌ فَصَلّٰى لَنَا يَوْمَئِذٍ صَلٰوةً

**٦٩٣** : ابو اليمان، شعيب، زهري، انس بن مالک انصاري، روايت کوي، يو خلے رسول الله صلي الله عليه وسلم په آس سور شولو (او او غرځيدلو) نو ذ حضورﷺ ښے آړخ لږ زخمي شولو، انسؓ وائي، په دغه ورځ ئے مونږ ته څهٔ مونځ په ناسته راکړو، نو مونږ هم حضورﷺ پسې په ناسته او کهٔ بيا چه حضورﷺ سلام اوګرځولو، نو

مِنَ الصَّلَوَاتِ وَهُوَ قَاعِدٌ فَصَلَّيْنَا وَرَآءَهُ قُعُوْدًا ثُمَّ قَالَ لَمَّا سَلَّمَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا صَلّٰى قَائِمًا فَصَلُّوْا قِيَامًا وَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَاِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَاِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ.

وړے فرمائيل' امام دے د پاره جوړ شوے دے' چه ذ هغهٔ اقتدا او کړے شي' او کله چه هغه په ولاړه مونځ کوي' نو تاسو هم په ولاړه مونځ کوئے' او کله چه هغه رکوع کوي' نو تاسو هم رکوع کوئے' او کله چه هغه سر اوچت کړي' نو تاسو نے هم سر اوچت کړئے او کله چه هغه سجده او کړي نو تاسو هم سجده او کړئے او کله چه هغه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اووائي' نو تاسو رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ وائے.

۱. دا د نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرض مونځ وو ليکن صحابهٔ کرامو د ډير شوق نه' د نفل مونځ نيت او تړو او په مانځه او دريدل. اقتدائے او کړه هغوي د دينه مخکښ مسجد نبوي کښ فرض مونځ ادا کړے وو ددے وجے نه ئے په ناسته نفل مونځ ادا کړو. د دے حديث تفصيل وړاندے تير شويدے.

۶۹۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ نَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهٗ قَالَ خَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ فَرَسٍ فَجُحِشَ فَصَلّٰى لَنَا قَاعِدًا فَصَلَّيْنَا مَعَهٗ قُعُوْدًا ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ اِنَّمَا الْاِمَامُ اَوْ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا وَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَاِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَاِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا.

۶۹۴: قتيبه بن سعيد' ليث' ابن شهاب' انس بن مالک رض روايت کوي' يو ځلے رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ اس نه پريوتلو' نو (څهٔ بدن ئے) زخمي شولو' په دے وجه حضور مونږ ته په ناسته مونځ راکړ' نو مونږ هم ورسره په ناسته مونځ او کړ' حضور چه فارغ شو' نو وړے فرمائيل' امام دے ذ پاره جوړ شوے دے' چه ذ هغهٔ اقتدا او کړے شي هر کله چه هغه تکبير اووائي' نو تاسو هم تکبير اووائے' او کله چه هغه رکوع او کړي' نو تاسو هم رکوع او کړئے او کله چه هغه سر اوچت کړي' نو تاسو هم سر اوچت کړئے او کله چه هغه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اووائي' نو تاسو رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْد اووائے' او کله چه هغه سجده او کړي' نو تاسو هم سجده او کړے.

۶۹۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا كَبَّرَ

۶۹۵: ابو اليمان' شعيب' ابو الزناد' اعرج' حضرت ابو هريره رض روايت کوي' نبي صلي لله عليه وسلم او فرمائيل' امام دے ذ پاره جوړ شوے دے' چه ذ هغهٔ اقتدا او کړے شي' کله چه هغه تکبير اووائي نو تاسو هم تکبير اووائے' او کله چه رکوع او کړي نو تاسو هم

فَكَبِّرُوْا وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا وَإِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا أَجْمَعُوْنَ.

رکوع اوکړنے او کله چه هغه سَمِعَ اللّٰه لِمَنْ حَمِدَهٗ اووائي، نو تاسو رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْد اووائے، او کله چه هغه سجده اوکړي، نو تاسو هم سجده اوکړئے، او کله چه هغه په ناسته مونځ کوي، نو تاسو ټول هم ورسره په ناسته مونځ کوئے.

**باب ۴۷۴: رَفْعُ الْيَدَيْنِ فِي التَّكْبِيْرَةِ الْأُوْلٰى مَعَ الْإِفْتِتَاحِ سَوَآءً.**

**باب ۴۷۴:** ورمبي تکبير کښ مونځ شروع کولو سره دَ دواړو لاسونو دَ اوچتولو بيان.

۶۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوْعِ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ رَفَعَهُمَا كَذٰلِكَ أَيْضًا وَقَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَكَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُوْدِ.

۶۹۶: عبداللّٰه بن مسلمه، مالک ابن شهاب، سالم بن عبداللّٰه، عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم چه به مونځ شروع کړ، نو خپل دواړه لاسونه به ئے دَ خپلو دواړو اوږو برابر اوچتول، او کله چه به ئے رکوع دَ پاره تکبير کولو، او کله چه به ئے خپل سر دَ رکوع نه اوچتولو نو هم خپل دواړه لاسونه به ئے دغسے اوچتول، او سَمِعَ اللّٰه لِمَنْ حَمِدَه رَبَّنَا لَکَ الْحَمد دواړه به ئے وئيل، ليکن سجده کښ به ئے دا عمل نه کولو.

**باب ۴۷۵: رَفْعُ الْيَدَيْنِ إِذَا كَبَّرَ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ.**

**باب ۴۷۵:** دَ دواړو لاسونو اوچتولو بيان. کوم وخت چه تکبير تحريمه اووائي، او کوم وخت چه رکوع اوکړي، او کوم وخت چه دَ رکوع نه سر اوچت کړي.

۶۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُبَارَكِ قَالَ أَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ فِي

۶۹۷: محمد بن مقاتل، عبداللّٰه بن مبارک، يونس، زهري، سالم بن عبداللّٰه، عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ليدلے دے، چه حضورؐ به مونځ کښ خپل دواړه لاسونه د اوږو پورے اوچتول، او رکوع دَ پاره چه تکبير به ئے کولو، نو

الصَّلٰوةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى تَكُوْنَا حَذْوَمَنْكِبَيْهِ وَكَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ حِيْنَ يُكَبِّرُ لِلرُّكُوْعِ وَيَفْعَلُ ذٰلِكَ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ وَيَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ وَلَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُوْدِ.

هغه وخت به ئے هم دغسے كول، او د ركوع نه چه به ئے سر اوچت كړلو، نو هم دغسے به ئے كول او سمع الله لمن حمده به ئے وئيلے، ليكن سجده كښې به حضور صلي الله عليه وسلم دا عمل نه كولو.

۶۹۸ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ الْوَاسِطِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّهُ رَاٰى مَالِكَ بْنَ الْحُوَيْرِثِ اِذَا صَلّٰى كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَّرْكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَاِذَا رَفَعَ رَأْسَهَا مِنَ الرَّكوعِ رَفَعَ يَدَيْهِ وَحَدَّثَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ هٰكَذَا.

۶۹۸ : اسحاق، واسطي، خالد بن عبداله، خالد (حذاء) ابو قلابه روايت كوي، هغهٔ مالک بن حويرث اوليد، چه كله به هغهٔ مونځ شروع كولو، نو دَ تكبير په وخت به ئے خپل دواړه لاسونه اوچتول. او كله چه به ركوع ته تلو نو رفع اليدين به ئے كولو او كله چه به ئے د ركوع نه سر پورته كړو نو رفع اليدين به ئے كولو اور وئيل ئے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم هم دغه شان كړي وو[۱].

۱. ابوبكر جصاص رحمة الله عليه په احكام القرآن كښې ليكلي دي كه چرے كومه مسئله كښې صحيح احاديث مختلف وي يا پكښې د يو بل خلاف حكم دي. نو په هغے كښې د امامانو صاحبانو اختلاف، صرف په مستحب والي اوغوره والي كښې وي د شارع (رسول الله صلي الله عليه وسلم) مقصد په دے موقعو كښې داوي چه امت په تكليف او تنگسيا كښې نه پريوزي. ددے وجے نه د فرائضو شميرئے كم كيخودلے دے چه كوم قطعي او يقيني دي. په هغے كښې د اختلاف هيڅ خبره د شارع نه نقل شوے نه ده. مستحبات او سنت كارونه ډير دي. چه په هغے كښې اختلاف نقل شوے دے باقي د ركوع او د قومے په وخت لاسونه اوچتول (رَفْعُ الْيَدَيْن) د احنافو په نزد سنت نه دي. خكه چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ددے به حقله صحيح مرفوع حديث موجود دے چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا عمل پريخودلے وو. عبدالله بن مسعود د لويو صحابؤ نه دے او په مكه معظمه او مدينه منوره كښې به هر وخت د نبي عليه الصلاة والسلام ملګرے وو د نبي عليه السلام د كور دروازے سره به ناست وو ډيرو خلقو هغه، د نبي عليه الصلاة والسلام د كور بنده منلو. نبي كريم صلي الله عليه وسلم د هغه ډير قدر كولو. نبي كريم صلي الله عليه وسلم د هغه په حقله ويلے وو "چه څوک دا غواړي چه داسے قرآن مجيد اولولي، نو هغه دے د عبدالله بن مسعود پشان قرآن اولولي. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه لوئے عالم وو طريقه داوه چه عالمان صحابه به اولني صف كښې اودريدل. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به نبي كريم صلي الله عليه وسلم سره خواكښې اودريدلو. ددے وجے نه دهغه په وينا زيات اعتبار او يقين كول دي. د لاس اوچتولو په

سلسله کښې ښخلس مستند صحیح احادیث راغلي دي. د هغې په وجه مونږ دا ویلې شو. چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د روايت شوي حديث شريف په رڼړا کښې (رفع اليدين) د ركوع او قومې په وخت لاس نه اوچتول مستحب دي. مونږ سره د شمير د ډير والي اعتبار نشته. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په ټولو صحابه كرامو كښې د دين د پوهې او د سند په حيثيت سره ډير لوړ مقام لري تر دې چه د رفع اليدين د روايت كونكونه د هغه شان ډير اوچت دې. د دې وجې نه د هغه د علمي اوچتوالي، دين كښې مهارت، او په هغې باندې د نبي كريم صلي الله عليه وسلم اعتماد، په هغه باندې د حضرت عمر او حضرت علي او حضرت عثمان او حضرت ابوبكر رضي الله عنهم اعتماد دا مونږ له تسلي راكوي چه دهغه روايت كړي حديث شريف باندې عمل اوكړو. په دې خبره هم غور پكار دې چه د اسلام ابتداء كښې په مونځ كښې داسې كارونه ووچه هغه روستو د شريعت په حكم منسوخ شو. په آخر كښې مونځ د قلارتيا او د اطمينان مظهر شو.

**باب ۴۷۶: اِلٰی اَیۡنَ یَرۡفَعُ یَدَیۡهِ وَقَالَ اَبُوۡ حُمَیۡدٍ فِیۡ اَصۡحٰبِهٖ رَفَعَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ حَذۡوَ مَنۡکِبَیۡهِ.**

باب ۴۷۶: تكبير تحريمه كښې لاسونه كوم ځائې پورې اوچت كړي. او ابوحميد خپلو ملګرو كښې (كيناست او) دا بيان ئې اوكړ، چه نبي صلی الله عليه وسلم به خپل دواړه لاسونه دَ دواړو اوږو پورې اوچتول۱.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه د اوږو پورې د لاس اوچتولو احاديث روايت كړې دي. دغوږونو پورې د لاس اوچتولو احاديث ئې نه دي ذكر كړي. حضرت وائل رضي الله عنه فرمائي "چه ماته نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي "چه تهٔ كله مونځ له اودرېږې نو غوږونو پورې لاسونه اوچتوه. او ښځې دې سينې (ميمو) پورې لاس پورته كوي (طبراني) په دې حديث شريف نبي كريم صلي الله عليه وسلم د سړو او د ښځو دواړو د لاسونو پورته كولو ځايونه ښكاره بيان فرمايلي دي.

**۶۹۹: حَدَّثَنَا اَبُو الۡیَمَانِ قَالَ اَخۡبَرَنَا شُعَیۡبٌ عَنِ الزُّهۡرِیِّ قَالَ اَخۡبَرَنِیۡ سَالِمُ بۡنُ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ عُمَرَ اَنَّ عَبۡدَ اللّٰهِ ابۡنَ عُمَرَ قَالَ رَاَیۡتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ افۡتَتَحَ التَّکۡبِیۡرَ فِی الصَّلٰوةِ فَرَفَعَ یَدَیۡهِ حِیۡنَ یُکَبِّرُ حَتّٰی یَجۡعَلَهُمَا حَذۡوَمَنۡکَبَیۡهِ وَاِذَا کَبَّرَ لِلرُّکُوۡعِ فَعَلَ مِثۡلَهٗ وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنۡ حَمِدَهٗ فَعَلَ مِثۡلَهٗ وَ قَالَ رَبَّنَا وَلَكَ الۡحَمۡدُ وَلَا یَفۡعَلُ ذٰلِكَ**

۶۹۹: ابو اليمان، شعيب، زهري، سالم بن عبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرؓ روايت كوي، ما نبي صلي الله عليه وسلم اوليد لو، چه حضورؐ مونځ كښې تكبير شروع كړ، نو دَ تكبير وئيلو وخت كښې حضورؐ خپل دواړه لاسونه دومره اوچت كړل، چه هغه ئې دَ خپلو دواړو اوږو برابر كړل او كوم وخت چه حضورؐ دَ ركوع دَ پاره تكبير اوكړ، نو بيا ئې هم دغسې اوكړل، او كوم وخت چه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنۡ حَمِدَه ئې اووے، تو بيائې هم دغسې اوكړل او ربنا لك الحمد ئې اووے، او دا عمل به حضورؐ دَ سجدې په وخت نهٔ كولو، او نهٔ هغه

حِيْنَ يَسْجُدُ وَلَاحِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُوْدِ. وخت كوم وخت چه به ئے ذ سجدے نه خپل سر اوچتولو.

**بـاب ۴۷۷: رَفْعِ الْيَدَيْنِ اِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ.** باب۴۷۷: ذ دواړو لاسونو اوچتولو بيان' كوم وخت چه دوو ركعاتو نه پس پاسيږي.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه د لاسونو اوچتولو (رفع اليدين) په حقله خلور بابه ليكلي دي او په خلورو واړو بابونو كښ صرف دوه حديثونه ذكر كړيدي. د رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم وو. "چه خما سره په نزدے صفونو كښ به مهاجر او انصار اودريږي چه خما نه مونځ زده كړي او نور خلق بيا ددوي نه مونځ زده كړي" (ابن ماجه او طحاوي) مگر امام بخاري په دے باب كښ د يو مهاجر يا انصاري روايت نقل نه كړو. صرف يو حديث د عبدالله بن عمر رضي الله عنهمانه روايت كړيدے. چه هغه كم عمر يا وړوكو صحابهٔ كرامو كښ دے چه هغه به روستو صفونو كښ اودريدو. يو حديث ئے د حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه يو روايت ذكر كړيدے چه هغه مسافر وو. د سفر په حالت كښ ئے په مدينه منوره كښے شل شپے وخت تير كړے وو خلق عموماً دا وائي چه امام بخاري د هغه چا حديث نقل كوي. چه د راوي حافظه ئے ښه وي. او بل زيات وخت ورسره يو خائے اوسيدلے وي. امام بخاري د "رفع اليدين" د لاس اوچتولو په مسئله كښ دا شرط پوره نه كړو. د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث ئے نقل نه كړو چه هغه ټول عمر نبي عليه الصلاة والسلام سره يو خايے اوسيدلو. د حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه حديث ئے نقل كړو. چه هغه ډير لږ وخت يعني شل شپے نبي عليه السلام سره تيرے كړے وے دا بدل والے د امام بخاري رحمة الله عليه د ذاتي رائے په وجه دے چه هغه د رفع اليدين قائل وو حالانكه حكم دا دے چه د مهاجرينو او د انصارو رواياتو له به اهميت وركولے شي. امام بخاري رحمة الله عليه د اولني باب سر ليك دا دے بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِي التَّكْبِيْرَةِ الْاُوْلٰى مَعَ الْاِفْتِتَاحِ سَوَاءً باب دے په بيان د لاسونو اوچتولو د اولني تكبير سره د مونځ شروع كولو سره يو خائے په دے باب كښ د امام مالك رحمة الله عليه په روايت سره د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث نقل كړيدے امام مالك رحمة الله عليه په خپل كتاب "المؤطا" كښ دے حديث سره "بَابُ افْتِتَاحِ الصَّلٰوة" شروع كړيدے د دواړو روايتونو الفاظو كښ فرق باندے غور كول پكار دي.

| الموطا للامام مالك | صحيح البخاري |
|---|---|
| اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ رَفَعَهُمَا كَذَالِكَ اَيْضًا وَ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَ كَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُوْدِ الْمُوَطَّا ص ۲۰ | اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَ اِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوْعِ وَ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ يَرْفَعُهُمَا كَذٰلِكَ اَيْضًا وَ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وَ كَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُوْدِ ص ۱۰۲ |

دے دواړو رواياتو كښ دا فرق دے چه امام مالك رحمة الله عليه د امام بخاري رحمة الله عليه د استاذانو استاذ دے هغه پخپل كتاب "موطا" د ركوع كولو په وخت د رفع اليدين (د لاسونو اوچتولو) ذكر

نه دے کړے او امام بخاري رحمة الله عليه رکوع کولو په وخت د رفع اليدين ذکر کړيدے مثلاً که يو سنده څلور رکعته مونځ کوي. نو د امام مالک رحمة الله عليه په روايت به پنځه خله رفع اليدين کوي او د امام بخاري رحمة الله عليه په روايت به نهه خله رفع اليدين کوي. احناف يواځے د مونځ شروع کولو په وخت اولني تکبير (تکبير تحريمه) سره "رفع اليدين" لاسونه اوچتوي د هغے نه روستو بل هيڅ يو ځائے کښې رفع اليدين نه کوي هغوي سره د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه او د نورو مهاجرينو او انصارو روايات موجود دي. چه يواځے د تکبير تحريمه په وخت به رسول کريم صلي الله عليه وسلم لاسونه اوچتول (رفع اليدين به ئے کوو) او بيا به ئے هيڅ ځائے کښې رفع اليدين نه کولو. د احنافو په دے مستندو رواياتو عمل دے. د دے خلاف غير مقلدين (څوک چه څلور امامان نه مني په عام عرف کښې وهابيان) په څلور رکعته مونځ کښې لس خله رفع اليدين کوي. اتلس خله رفع اليدين پريږدي. نو ددوي دعوے د پاره داسے حديث شريف پکار دے چه په هغے کښې لس خله رفع اليدين او اتلس خله رفع اليدين پريخودل ذکر وي. داسے حديث شريف نشته کوم حديث شريف چه امام بخاري يا امام مالک روايت کړيدے په هغے کښې لاسو په ځائے پنځه خله يا نهه خله د رفع اليدين ذکر دے ليکن د اتلس خلو رفع اليدين پريخودلو ذکر نشته نو دے حديث شريف نه ددوي دعوي نه ثابتيږي بلکے ددوي عمل د ذکر شوي حديث مطابق خلاف سنت دے. دا حديث شريف چه امام بخاري رحمة الله عليه ذکر کړيدے ددے سند د مدينے منورے د راويانو دے. ځکه چه امام مالک امام زهري سالم او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهم د مدينے اوسيدونکي دي امام مالک رحمة الله عليه ۹۵هجري کښے پيدا شوے وؤ او وصال ئے ۱۷۹ هجري کښې شويدے هغه فرمائي. "چه د اولني تکبير (تکبير تحريمه) نه روستو زهٔ په هيڅ ځائے کښې رفع اليدين (لاس پورته کول) نه پيژنم" (الْمُدَوَّنَةُ الكبرى جلد اول ص ۷۰) د امام مالک رحمة الله عليه ددے بيان نه دا ښکاره معلومه شوه چه د مدينے منورے د اوسيدونکو په خير القرون کښې عمل په تواتر سره د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ددے حديث خلاف وؤ او هيچا په رکوع او قومه کښې رفع اليدين نه کولو. بلکے مدينے منورے ته د هرے علاقے خلق د رسول الله صلي الله عليه وسلم پاکے روضے شريف ته زيارت د پاره راتلل. که چرے امام مالک رحمة الله عليه د مدينے منورے يا دَ بهر علاقو نه څوک راتلونکے داسے ليدلے وے چه هغه د تکبير تحريمه (اولني تکبير) نه پس رفع اليدين په رکوع يا قومه کښې کولو نو ضرور به ئے ذکر کړے وو خو هغه داسے اويل "چه د تکبير تحريمه نه علاوه بل ځائے کښې زهٔ هيڅوک نه پيژنم چه هغه رفع اليدين کړے وي ددے واقعاتو نه معلومه شوه چه په خير القرون کوم مونځ په عملي جوګه متواتر وو په هغے کښې صرف يواځے تکبير تحريمه سره لاس اوچتول وو بيا رفع اليدين په نورو ځايونو کښې پريخودل متواتر عمل وو. امام مالک رحمة الله عليه' د مدينے منورے خلقو او د خير القرون خلقو اولني تکبير سره لاس اوچتول بيانئے د هغے نه روستو رفع اليدين په رکوع قومه کښې پريخودلے وو چه هغوي د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په حديث شريف او د تمام مهاجرينو او انصارو په رواياتو يقين وو د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت هغوي شک کولو. ځکه چه هغه د کم عمر وو او آخري صفونو کښې به مانځه ته اودريدلو.

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د حديث شريف دوه راويان دي حضرت سالم روايت ته مرفوع

واني او حضرت نافع ورته موقوف واني. د امام بخاري رحمة الله عليه د استاذانو استاذ، امام محمد رحمة الله عليه "موطاء امام محمد" كښې ددې روايت د مرفوع او موقوف كيدو مخالفت كړيدې. امام محمد رحمة الله عليه دا ثابته كړيده چه ددې حديث راوي حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به يواځې تكبير تحريمه سره رفع اليدين كوؤ او بيا به هغه ركوع، قومه او هيڅ ځائې كښې رفع اليدين نه كولو. (موطاء امام محمد ص ۹۰) ذَ امام محمد رحمة الله عليه دا روايت دليل نيول ددې روايت د صحت دليل دې. د امام بخاري رحمة الله عليه د حديث استاذ، امام ابوبكر بن ابي شيبه رحمة الله عليه متوفي ۲۳۵ هـ خپل د حديثو كتاب كښې په صحيح سند سره ثابته كړيده چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به د ړومبي تكبير نه روستو په مونځ كښې رفع اليدين نه كوؤ. (مصنف ابن ابي شيبه جلد اول ص ۲۳۷) حضرت امام طحاوي رحمة الله عليه هم د مدينې منورې د خلقو د امام مالك امام محمد او امام ابن أبي شيبه رحمة الله عليهم ددې تائيد كړيدې چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما پخپله د رفع اليدين د حديث شريف روايت كړيدې. او پخپله ئې پرې عمل نه كوؤ. ددې دوه صورته كيدې شي. دائې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د حديث په مطلب پوهيدو. چه رفع اليدين سنت مؤكد دي. او بيائې هم خلاف سنت مونځ كولو. دا د هغوي د شان سره نه ښائيګي. بيا به ئې روايات نه قبليږي. دويم دا چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په حديث شريف پوهيدلو يو ځل ئې رفع اليدين ئې كړې وو خو بيائې هميشه رفع اليدين پريخودلې وؤ نو دا ذَ رفع اليدين د منسوخ كيدو دليل دې اول صورت د امام بخاري رحمة الله عليه او د هغه د غير مقلدينو ملګرو (وهابيانو) رائې ده. په دې رائې باندې د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما، ذَ خير القرون ذَ ټولو خلقو او د مدينې د اوسيدونكو مونځونه د سنتو خلاف وؤ. دويم صورت د احنافو دې دا رائې د صحابهٔ كرامو او د خير القرون ذَ خلقو رضي الله عنهم د شان مناسب صورت دې چه په ركوع او قومه كښې رفع اليدين كول منسوخ دي. ددې وجې نه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ركوع او قومه كښې رفع اليدين پريخودلې وو.

۷۰۰: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بُنُ الْوَلِيُدِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبُدُ الْاَعُلٰى قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيُدُ اللّٰهِ عَنُ نَّافِعٍ اَنَّ ابُنَ عُمَرَ كَانَ اِذَا دَخَلَ فِي الصَّلٰوةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيُهِ وَاِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيُهِ وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنُ حَمِدَهٗ رَفَعَ يَدَيُهِ وَاِذَا قَامَ مِنَ الرَّكُعَتَيُنِ رَفَعَ يَدَيُهِ وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابُنُ عُمَرَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ.

۷۰۰: عياش بن وليد، عبدالاعلیٰ، عبيد الله نافع روايت كوي، چه ابن عمرؓ به ذَ مونځ شروع كولو په وخت تكبير كولو، نو خپل دواړه لاسونه به ئې اوچتول، او كوم وخت چه ركوع به ئې كوله، نو بيا به ئې هم خپل دواړه لاسونه اوچتول، او كوم وخت چه ركوع به ئې كوله، نو بيا به ئې هم خپل دواړه لاسونه اوچتول، او كوم وخت چه سمع الله لمن حمده به ئې وئيلې، نو بيا به ئې هم خپل دواړه لاسونه اوچتول او دا خبره ابن عمرؓ نبي صلي الله عليه وسلم ته منسوب كړې ده.

١ . امام بخاري رحمة الله عليه بل باب كښې ذكر كړيدي.

رَفْـعُ الْيَـدَيْـنِ اِذَا كَبَّـرَ وَ اِذَا رَكَـعَ وَ اِذَا رَفَعَ — رفع اليدين د اولني تكبير په وخت او د ركوع په وخت او د ركوع نه د سر پورته كولو په وخت.

په دے باب كښې دوه حديثه ذكر كړيدي. يو د ماشوم حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما. چه د هغه پحقله صحيح بخاري جلد اول صفحه ١٧ كښې د اَصْغَرُ القوم لفظ موجود دے يعني په قوم كښې د ټولونه وركوټے' دويم روايت د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنه. چه د هغه په باره كښې په صحيح بخاري جلد اول ص ٨٨ كښې دي. چه هغه صرف شل شپې د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم په خدمت كښې پاتے شوي وو.

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت د امام زهري رحمة الله عليه نه د هغه د شاګرد يونس رحمة الله عليه روايت دے د يونس په مقابله كښې سفيان بن عيينه رحمة الله عليه د امام زهري مستند او زيات قابل اعتماد شاګرد دے د امام بخاري رحمة الله عليه استاذ' امام حميدي رحمة الله عليه دا حديث شريف د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د سفيان بن عيينه په روايت نقل كړيدے چه هغے كښې په ركوع' قومه كښې ذ رفع اليدين ذكر نشته. (مسند الحميدي دويم جلد ص ٢٧٧)

دويم دا' چه د حضرت مالک بن الحويرث د روايت دارومدار په "ابوقلابه" راوي باندے دے چه هغه نَاصِبِيَّت خوښوؤ (تقريب) (د ناصبيت د تنظيم مقصد د اهل بيت مخالفت وو) د "ابو قلابه" نه دوه شاګردانو روايت كړدے (١) خالد بن مهران' چه د هغه حافظه بغداد ته د راتلونه پس خرابه شوے وه (تقريب) دويم شاګردئے ايوب سختياني دے چه هغه "ثقه" راوي دے ددے ايوب روايت چه په صحيح بخاري جلد اول ص ١١٣ باندے دے په هغے كښې په ركوع' قومه كښې د رفع اليدين ذكر نشته. خالد بن مهران چه د هغه حافظه خرابه شوے وه هغه د رفع اليدين ذكر كړيدے. بيائے درے شاګردان دي (١) هشيم: د هغه په روايت كښې د "رفع اليدين" ذكر نشته (صحيح بخاري جلد اول ص ١١٣) (٢) "ابن عليه" هغه "رفع اليدين' ذَ ابو قلابه ناصبي عمل ګرځولے دے او د نبي پاک صلي الله عليه وسلم عمل ئے نه مني (مصنف ابن ابي شيبه جلد اول ص ٢٢۵) (٣) خالد الطحان دے چه هغه د ابو قلابه په واسطے سره "رفع اليدين" د مالک بن الحويرث رضي الله عنه عمل ګرځولے دے او "مُرْسَلًا" ئے نبي پاک صلي الله عليه وسلم ته نسبت كړيدے (صحيح بخاري جلد اول ص ١٠٢) كه چرے دا دواړه حديثونه صحيح اومنلے شي' نو بيا هم ذ رفع اليدين د طرفدارو (حاميانو) د دعوے سره ددے احاديثو تعلق نشته څكه چه په دے روايتونو كښې پوره لس ځله د رفع اليدين د ثابتولو ذكر نشته او نه پكښې د اتلس ځلو د رفع اليدين پريخودلو ذكر شته. دے دواړو احاديثو نه' صرف دومره خبره ثابتيږي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ټول ژوند كښې صرف يو ځل د ركوع په وخت' رفع اليدين كړے وو. چه هغه امام بخاري رحمة الله عليه نه د كوم خليفه راشد' نه د عشره مبشرۇ نه' نه د مشرانو مهاجرينو او انصارو نه' روايت كړيدے. بلكے د يو وركوټي صحابي او د يو مسافر صحابي نه روايت كړے دے بيا دے احاديثو كښې دا ذكر هم نشته' چه ددے يو ځل نه پس' بيا نبي كريم صلي الله عليه وسلم' ركوع او قومه كښې "رفع اليدين" كوۆ يائے پريخودلے وو پس دے غير مقلدينو ترے دا مطلب واخستلو چه "رفع اليدين" به ئے كولو. ليكن ددے خلقو

د قياس خلاف احاديث موجود دي. چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم د تكبير تحريمه نه روستلو رفع اليدين پرېښودلے وؤ ددې تفصيل خمونږ كتاب "حديث اور اهل حديث" كښې او ګورئ. بيا دا دواړه احاديث د يو بل مخالف دي. د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت كښې دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم به لاسونه تر اوږو اوچتول (بخاري) او د مالک بن الحويرث رضي الله عنه روايت كښې دي. چه لاسونه به ئے تر غوږونو پورته كول (مسلم نسائي) بيا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت كښې دي چه "د سجدے په وخت به ئے رفع اليدين نه كولو" (بخاري) او د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنه په روايت كښې دي. "چه رسول پاک صلي الله عليه وسلم به د سجدے په وخت "رفع اليدين" كولو. (نسائي) امام بخاري رحمة الله عليه د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنه په روايت كښې د سجدے په وخت د رفع اليدين كولو ذكر نه دے كړے. په ركوع، قومه كښې د رفع اليدين طرفدار "اَلْبَانِيُ" په خپل كتاب صِفَةُ صَلٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كښې تردے حده ليكلي دي. "چه د سجدو په وخت د نبي كريم صلي الله عليه وسلم د "رفع اليدين" لس صحابهٔ كرامو روايت كړيدے" او په "فتاوئ علماء حديث" كښې دا دعوه كړيده "چه د سجدو په وخت كښې د "رفع اليدين" كولو حديث صحيح دے او پدے طريقه مونځ كول، د نبي كريم صلي الله عليه وسلم آخري مونځ دے". د دے لازمي نتيجه دا شوه "چه امام بخاري رحمة الله عليه د نبي پاک صلي الله عليه وسلم د آخري عمر د مونځ طريقه نه ده نقل كړے بلكې د نبي عليه الصلاة والسلام د مونځ منسوخ طريقه ئے نقل كړيده". امام بخاري رحمة الله عليه دريم باب داسے ليكلے دے:

اِلٰى اَيْنَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ تر كوم ځائے پورے به لاس پورته كوي

په دے باب كښې ئے د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت په واسطه د شعيت د زهري نه نقل كړيدے ليكن د سنن بيهقي نه معلوميږي چه د امام بخاري رحمة الله عليه په سند كښې تدلقيس دے هغے كښې د حديث شريف سند داسے دے 'شعيب د ابو حمزه نه' هغه د زهري نه روايت كړيدے. د امام بخاري رحمة الله عليه روايت كښې "تر اوږو لاسونه پورته كول دي". او د امام بخاري رحمة الله عليه د استاد ابوبكر بن ابي شيبه رحمة الله عليه روايت كښې په صحيح احاديثو سره د حضرت وائل، دَ حضرت اَلبراء، او د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنهم په رواياتو كښې "تر غوږونو لاسونه پورته كول" ثابت دي. عالمانو نه، دا خبره پټه نه ده. چه څرنګ د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سنتو باندے عمل كول لويه نيک بختياده، داسے په رسول اكرم صلي الله عليه وسلم باندے دروغ ويل ډيره لويه بدبختيا ده. په څو مثالونو به دا خبره څرګنده او ښكاره شي. په بخاري جلد اول ص ۳۵، مسلم جلد اول ص ۱۳۲ كښې حديث شريف دے چه "نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ولاړے متيازے (واړه بول) او كړے" دا حديث شريف متفق عليه دے ليكن دا بيانول "چه نبي پاک صلي الله عليه وسلم په خپل مبارک ژوند كښې كله چه به ئے متيازے كولے په ولاړے به ئے كولے" په خپل ټول ژوند كښې ئے چرے په ناسته واړه بول (متيازے) نه دي كړے. كوم بنده (سړے يا ښځه) كه په ناستے متيازے (واړه بول) او كړي نو هغه د سنتو مخالف دے" دا د خندا دعوه كول د رسول الله صلي الله عليه وسلم حديث نه دے بلكه د كوم بنده خپل حديث دے دعوے ته د رسول الله صلي الله عليه وسلم حديث ويل په هغه دروغ ويل دي. داسے په بخاري

شريف جلد اول ص ۷۴ او مسلم شريف جلد اول ص ۲۰۵ كښ حديث مبارك دے "چه رسول اكرم صلي الله عليه وسلم به خپله نمسئ (نوسي) په غيږ كښ اوچته كړه او مونځ به ئے كولو' دا حديث شريف متفق عليه دے ليكن دا ويل چه رسول پاک صلي الله عليه وسلم خپل ټول ژوند كښ به نمسئ (نوسي)' د لور لور) په غيږ كښ اوچتوله او مونځ به ئے كولو' يو مونځ ئے هم بغير د نوسئ (نمسئ) اوچتولو ادا كړے نه دے . كوم بنده چه بغير د ماشوم په غيږ كولو مونځ ادا كوي. د هغه مونځ برباد دے او د نبي پاک صلي الله عليه وسلم د مونځ مخالف مونځ دے' دا بيان د رسول الله صلي الله عليه وسلم حديث نه دے بلكے د چا د زړه حديث دے او په نبي پاک صلي الله عليه وسلم دروغ ويل دي. داسے په بخاري شريف جلد اول ص ۵۲ او مسلم شريف جلد اول ص ۲۰۸ كښ حديث شريف دے چه رسول پاک صلي الله عليه وسلم پنړے (پيزار) په پښو كړل او د پيزار سره به ئے مونځ ادا كولو' دا حديث شريف هم متفق عليه دے . ليكن په عمومي ډول د امت عمل دا دے چه پيزار اوباسي او مونځ ادا كوي. "اوس دا ټول امت گمراه گنړل چه نبي پاک صلي الله عليه وسلم به ټول عمر' سره د پنړو او پيزار سره مونځ ادا كولو. يو مونځ ئے بغير د پيزاره ادا كړے نه دے . اوس دا ټول امت د بخاري او د مسلم متفق عليه حديث شريف خلاف پيزار اوباسي او مونځ ادا كوي. څوک دے د بخاري او مسلم شريف داسے يو حديث شريف اوښائي چه نبي پاک صلي الله عليه وسلم يو مونځ بغير پيزاره ادا كړے وي". دا بيان د چا حديث كيدے شي د ابليس شيطان وهم كيدے شي دے ته د رسول صلي الله عليه وسلم حديث ويل خالص دروغ دي. دا كارونه ثابت دي. ليكن سنت هيچرے نه دي. په يوه جامه كښ مونځ ادا كول حديث متواتر دے د پيزار په پښو كولو سره مونځ ادا كول هم حديث متواتر دے نو دا ټول امت دا متواتر سنت اعمال ولے پريږدي او د سنت خلاف مونځ كوي؟ د دے نه وروستو امام بخاري رحمة الله عليه د څلورم باب سرليک ليكلے دے .

رَفْعُ الْيَدَيْنِ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ — د دوو ركعتونو نه پس ذَ اودريدلو په وخت دواړه لاسونه پورته كول

پدے باب كښ د امام نافع په روايت سره د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث ذكر كړيدے . د امام بخاري په نزد د ټولونه غوره سند د امام مالک روايت' د امام نافع نه' چه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت كوي. دا روايت په مؤطا امام مالک كښ په ص ۶۱ او په مؤطا امام محمد ص ۸۷ كښ پدے الفاظو سره دے .

أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ رَفَعَهُمَا دُوْنَ ذٰلِكَ

چه كله عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به مونځ شروع كولو نو دواړه لاسونه تر اوږو پورته كړل' او كله چه به ئے د ركوع نه سر اوچت كړو. نو بيا به ئے د هغے نه كم پورته كړل.

او په مصنف عبدالرزاق جلد دويم ص ۶۸ كښ دا ابن جريج په روايت د امام نافع نه په حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما موقوف دے امام ابو داود رحمة الله عليه فرمائي.

الصَّحِيْحُ قَوْلُ ابْنِ عُمَرَ لَيْسَ بِمَرْفُوْعٍ — صحيح داده چه دا قول د ابن عمر رضي الله عنهما دے مرفوع حديث نه دے .

امام ابو داود رحمة الله عليه دا هم ويلي دي. چه اَللَّيْثُ بن سعد' امام مالک' ايوب' ابن جريج ټول ئے موقوف روايت مني او د ابن عمر رضي الله عنهما عمل او قول ئے گڼري. ليكن امام بخاري دا روايت د

حديث نبوي په حيثيت ئې روايت كړيدے. امام ابو داود وائي چه عبيدالله ددے روايت پحقله شک كوي، ثقفي هم دا روايت موقوف نقل كړيدے. خلاصه د تحقيق داده چه مؤطا امام مالک او مؤطاء امام محمد كښې ددے حديث نسبت د رسول الله صلي الله عليه وسلم ته نه دے كړے بلكې دا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما عمل دے مصنف عبدالرزاق كښې دا حديث نبوي نه دے بلكې د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما عمل دے ليكن لاس پورته كول (رفع اليدين) لس ځايه دي. او څومره لاس پورته كول دي د سينے نه لاندے خكته پورے. بخاري كښې د پنځو ځايونو په ځائے په لس ځايونو كښې د رفع اليدين ذكر دے. او د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د عمل قول پځائے مرفوع حديث منلے دے او څنګه چه امام بخاري رحمة الله عليه په اولني باب كښې تر اوږو پورے د لاس پورته كولو (رفع اليدين) ذكر كړيدے او دا روايت چه كوم نورو محدثينو امامانو مكمل ليكلے دے او په دے روايت كښې چه كله لاس پورته كول تر سينے پورے يا د هغے نه خكته ځائے پورے ذكر دے او دا د امام بخاري رحمة الله عليه د اولني باب خلاف دے ددے وجے نه هغه دا روايت حذف كړو (يائے پريخود) او په آخر كښې ئې ديته اشاره اوكړه چه دا روايت په ابن عمر رضي الله عنهما باندے موقوف دے ځه د هغے نه دا خبره واضحه شوه. چه امام نافع رحمة الله عليه روايت موقوف مني او حضرت سالم رحمة الله عليه ئې مرفوع ګنړي. نو د بخاري روايت په اتفاق سره مرفوع نه شو. مقصدئے دا دے چه صحيح بخاري كښې د رفع اليدين ثبوت ددے نه زيات نشته. څومره زيات ثبوت چه په ولاړے د متيازو (ورو بولو) كولو، د ماشومے جينئ په غيږ كولو او ورسره مونځ كولو، د پيزار پنړو سره مونځ كولو. او د حيض په حالت كښې د ښځے سره د څملاستلو، موجود دے. دا ټول كارونه ثابت دي مګر نه سنت نه مستحب.

## دَ رفع اليدين په حقله د تحقيق خلاصه

(۱) د احاديثو په كتابونو كښې د تكبير تحريمه (د مونځ شروع كولو د اولني تكبير) په وخت دواړه لاسونه پورته كول (رفع اليدين په تواتر سره ثابت دي. او په دے باندے د ټول امت متواتر عمل دے ددے تواتر خلاف كوم ضعيف حديث هم نشته چه په دے وخت رفع اليدين پريخودلے شي. او په دے وخت كښې رفع اليدن (دواړه لاسونه پورته كول) باندے د ټول امت اتفاق او اجماع ده. نو كله چه د دے د خلاف په حقله كوم نص (قرآن، حديث) يا د امت څه خلاف عمل نشته نو ئې څوک مخالفت كوي. نو پدے مسئله كښې نه د اجتهاد ضرورت شته نه د تقليد.

(۲) د تكبير تحريمه دوخت نه علاوه بل وخت كښې د رفع اليدين د احاديثو په حقله په ښكاره ډول اختلاف دے په بعضے احاديثو كښې د هر تكبير سره د رفع اليدين ذكر دے مثلاً په څلور ركعاته مونځ كښې اته ويشت (اتيشت) ځايه رفع اليدين كول دي. لكه په ''مسند احمد'' كښې د حضرت جابر رضي الله عنه نه ''سنن ابن ماجه'' كښې د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه، او د عمير بن حبيب رضي الله عنه، تقريباً لس صحابة كرامو رضي الله عنهم د سجدو په وخت كښې هم د رفع اليدين روايت كړے دے چه په هغوي كښې حضرت مالک بن الحويرث، حضرت وائل بن حجر، حضرت ابوهريره حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهم شامل دي. او په يو حديث شريف كښې د سجدو په وكت د رفع اليدين پريخودلو (نه كولو) ذكر شته دے. په بعضے احاديثو كښې د تكبير تحريمه د وخت نه علاوه بل

هيڅ ځائے کښې د رفع اليدين پريخودلو (نه کولو) حکم دے.

د اهل سنت والجماعت په نزد دے احاديثو کښې د يو بل داسے مخالف حکم نشته چه د يو طرف احاديثو منلو سره د بل طرف د احاديثو نه انکار لازم شي ځکه چه دا اختلاف په مختلفو اوقاتو کښې دے (کله څرنګ رسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ کړے دے. او کله بل شان) په دے اختلافي رواياتو کښې څه فيصله الله تعالیٰ يا د هغه رسول صلي الله عليه وسلم نه ده کړے. که چرے کومه فيصله وے. نو بيا د اجتهاد ضرورت نه وو. لکه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي وو "ما اول' د درے ورځونه زيات د قربانئ د غوښو ساتلونه تاسو منع کړے وئے اوس څه اجازت د ورکوم" نو پدے احاديثو کښې د اولني او د وروستني حکم وضاحت شته. اوس که چرے د رفع اليدين په حقله څه داسے روايت وے "چه اول د رفع اليدين کولو ما حکم درکړے وو اوس مه کوئ" "يا ما اول رفع اليدين نه کول اوس کوم" نو ددے حديث په حقله به فيصله موجوده وه. په کښې د څه اجتهاد او تقليد ضرورت نه وؤ. نو کله چه دے اختلافي احاديثو کښې په يو حديث د عمل کولو او په بل حديث د عمل نه کولو فيصله نشته نو بيا په يو حديث عمل کولو او په نورو احاديثو عمل نه کولو ځان ته اهل حديث ويل په نبي پاک صلي الله عليه وسلم دروغ ويل دي. غير مقلدين خلقو (کوم خلق چه د اهل سنت والجماعت مشهور څلور امامان نه مني) سره چه د اهل سنت و الجماعت کوم اختلاف دے په هغے ځان پوهه کول ضروري دي تاسو ته د احاديثو مبارکونه معلومه شوه. چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به لاسونه تر اوږو پورته کول، نورو احاديثو مبارکونه دا معلومه شوه چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به لاسونه تر غوږونو پورته کول. نو دا د مختلفو اوقاتو کارونه دي. نو په دے کښې په حقيقت کښې تعارض (اختلاف) نشته نو که څوک دَ اولني احاديثو ترجمه داسے کوي. "چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به لاسونه هميشه تر اوږو پورته کول" نو د نورو احاديثو سره د هغے اختلاف پيدا شو. "چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به لاسونه تر غوږونو پورته کول" نو اوس د هغه د پاره دوه لارے دے (۱) يا خو د دروغے غلطے) ترجمے نه توبه اوباسي او دا دے تسليم کړي چه دا د مختلفو اوقاتو کارونه دي. (۲) يا دا چه په خپله غلطه ترجمه کلک اودريږي. نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم د نورو احاديثو مخالفت به او کړي. او هغے نورو احاديثو ته دروغ او غلط به اووائي. دا دويمه لاره ډيره خطرناکه او ډيره غلطه ده. پدے لاره کښې د رسول اکرم صلي الله عليه وسلم نه دوه خله بغاوت دے (۱) يو دا په رسول الله صلي الله عليه وسلم دروغ ويل "چه هغه به هميشه په مانځه کښې لس خله رفع اليدين کولو ځان له دوزخ کښې خپل کور جوړول دي. (۲) او دا ويل "چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اتلس ځايه رفع اليدين نه دي کړي. په کومو احاديثو کښې د اتلس ځايونو رفع اليدين ذکر دے هغه ټول احاديث دروغ دي" داسے وينا کول، عقيده ساتل د صحيح احاديثونه انکار دے او د صحيح حديث شريف نه انکار کول کفر دے. د احنافو مسلک د داسے احاديثو پحقله دا دے چه دواړه قسمه احاديث د مختلفو وختونو اعمال مني. تر څو چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه پدے سلسله کښې څه وضاحت نه وي چه کوم عمل ته په کوم عمل غوره والے ورکړے شي. نو مجتهدين حضرات د اجتهاد نه فائده اخلي. امام ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائي. چه په داسے حالاتو اول زۀ قرآن شريف نه رهنمائي اخلم قرآن کښې الله تعالیٰ فرمائي.

قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ — الله تعالي ته په سكون آرام سره او دريږئ.

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ○ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ — يقيناً هغه مسلمانان كامياب دي څوک چه په خپل مونځ كښې عاجزئ' سكون سره وي.

او صحيح مسلم جلد اول ص ١٨١ كښې دي چه په مونځ كښې رفع اليدين د مونځ د سكون خلاف عمل دے. اوس چه كوم ځائے كښې د رفع اليدين ثبوت وي او د رفع يدين نه كولو ثبوت نه وي. نو هغه ځائے كښې به رفع اليدين د مسلم شريف د قاعدے (چه رفع اليدين خلاف سكون دے) نه مستثنٰي (جدا) گنړلے شي لكه د تكبير تحريمه او د قنوت وتر په وخت رفع اليدين كول' ليكن چه كوم ځائے كښې د رفع اليدين كولو او د نه كولو دواړه قسمه احاديث موجود وي. نو هلته كښې د مونځ د سكون په وجه رفع اليدين نه كول غوره وي. او د رفع اليدين كولو احاديث به د مونځ د سكون په وجه مخكښې گنړلے شي. بيا په احاديثو مباركو كښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه فرمان باندے به عمل كولے شي. "چه ځما او ځما دَ خلفاء راشدينو طريقه په تاسو لازمه ده". نو معلومه شوه چه د خلفاء راشدينو كښې د يونه هم په مونځ كښې اتلس ځايه رفع اليدين نه كول او لس ځايه رفع اليدين كول ثابت نه دي. نو كله چه د يو خليفه راشد نه هم د اولني تكبير نه وروستو رفع اليدين ثابت نه دي پدے وجه هغے احاديثو له ترجيح وركړے شوه چه د خلفاء راشدينو سنت ئے تائيد كولو. بيا د نورو صحابهٔ كرامو حالات مو معلوم كړل. نو د احاديثو كتابونو نه معلومه شوه چه كومو صحابهٔ كرامو په ركوع' قومه كښې د رَفع اليدين د احاديثو روايت كړيدے هغوي كښې اكثر صحابهٔ كرامو ركوع او قومه كښې رفع اليدين نه كولو نو دغے صحابهٔ كرامو چه كومه طريقه خوښه كړے وه هغه احنافو غوره كړه مثلاً حضرت علي خليفه راشد كرم الله وجهه' د رفع اليدين د يو حديث راوي دے ليكن حضرت علي رضي الله عنه پخپله او په زرگونو صحابهٔ كرامو رفع اليدين نه كولو. (ابن ابي شيبه جلد اول ص ٢٣٦) بيا مو د اصول فقهے اجماعي قاعدو باندے غور او كړو نو په شريعت كښې قاعده داده. چه اول يو عمل رواوي بيا حرام شي. اول شراب حلال وو بيا حرام شو. اول متعه روا وه بيا حرامه شوه. سود اول حلال وو بيا حرام شو اول په مونځ كښې سلام كول د هغے جواب كول خبرے اترے كول حلال وو بيا حرام شو نو ددے ټولونه يوه قاعده معلومه شوه چه كله په يو عمل كښې مختلف احاديث وي. يو حديث كښې يو كار روا وي او بل حديث كښې حرام وي نو د دېّ قاعدے مطابق د جائز كيدو حديث به اولنے گنړلے شي او د حراميدو حديث به وروستنے گنړلے شي. ددے وجے نه اهل سنت والجماعت احنافو د قرآن' د سنت او د صحابهٔ كرامو عمل او اجماعي د فقهے قاعدو باندے غور كولونه پس ركوع او قومه كښې رفع اليدين نه كولو له ترجيح وركړه. چه ركوع او قومه كښې رفع اليدين نه كول غوره عمل دے (امين اوكاړويؒ)

## بـاب ٤٧٨: وَضْعِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى فِي الصَّلٰوةِ.

باب ٤٦٨: مونځ كښې دَ ښي لاس په كس لاس په ايښودو بيان.

٧٠١: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ — ٧٠١: عبدالله بن مسلمه' مالك' ابو حازم سهل بن سعدؓ روايت كوي' خلقو

سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كَانَ نَاسٌ يُؤْمَرُوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ الْيَدُ الْيُمْنٰى عَلٰى ذِرَاعِهِ الْيُسْرٰى فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ أَبُو حَازِمٍ لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا يَنْمِيْ ذٰلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

تـه بـه دا حكـم وركـولـے شـو' چه مونـخ كـښې ښـے لاس د كـيـن لاس پـه مـړونـد ايږدے' او ابـو حـازم ونـيـلـے دي' زهٔ پـوهـيـږم' چـه دا حـكـم نبي صلي اللّٰه عليه وسلم طرف تـه منسوب دے.

## بـاب ۴۷۹: الْخُشُوْعِ فِي الصَّلٰوةِ.

## بـاب ۴۷۹: مـونـځ كـښې د خشـوع بيان.

۷۰۲: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلْ تَرَوْنَ قِبْلَتِيْ هٰهُنَا وَاللّٰهِ مَا يَخْفٰى عَلَيَّ رُكُوْعُكُمْ وَلَا خُشُوْعُكُمْ وَ إِنِّيْ لَأَرَاكُمْ وَرَآءَ ظَهْرِيْ.

۷۰۲: اسـمـاعـيـل' مـالـک' ابـو الـزنـاد' اعـرج ابـو هـريـرهؓ روايـت كـوي' رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عـلـيـه وسـلـم يـو ځـل مـونـږ تـه او فـرمـائـيـل' تـاسـو خـلـق دا ګـنـړئـے چـه زمـا مـخ قـبـلـے تـه دے. لـيـكـن پـه خـدائـے مِ دے قَسـم وي' سـتـاسـو ركـوع' سـتـاسـو خـشـوع زهٔ د شـانـه هـم داسـے ويـنـم' څـنـګـه د مـخـے نه.

۷۰۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَقِيْمُوا الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ فَوَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأَرَاكُمْ مِنْ بَعْدِيْ وَ رُبَّمَا قَالَ مِنْ بَعْدِ ظَهْرِيْ إِذَا رَكَعْتُمْ وَسَجَدْتُمْ.

۷۰۳: مـحـمـد بـن بشـار' غـنـدر' شـعـبـه' قـتـاده انـس بـن مـالـکؓ د رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عـلـيـه وسـلـم نـه روايـت كـوي' حـضـورؐ او فـرمـائـيـل' ركـوع او سـجـدے پـه درست طريقه كوئـے' څـكـه چـه كـوم وخـت تـاسـو ركـوع سـجـده كـوئـے' نـو زهٔ د شـا د طـرف نـه هـم تـاسـو داسـے ويـنـم' څـنـګـه چـه د مـخـے نـه مـو وينم.

## بـاب ۴۸۰: مَا يُقْرَأُ بَعْدَ التَّكْبِيْرِ.

## بـاب ۴۸۰: تـكـبـيـر تـحـريـمه نه پس څهٔ ونيل پكار دي.

۷۰۴: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ

۷۰۴: حـفـص بـن عـمـر' شـعـبـه' قـتـاده

حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبَابَكْرٍ وَّعُمَرَ كَانُوْا يَفْتَتِحُوْنَ الصَّلٰوةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ.

حضرت انسؓ روایت کوي، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم ابو بکرؓ او عمرؓ به د مونځ شروع الحمد للّٰه رب العٰلمین نه کوله.

۷۰۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ زُرْعَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْكُتُ بَيْنَ التَّكْبِيْرِ وَبَيْنَ الْقِرَآئَةِ اِسْكَاتَةً قَالَ اَحْسِبُهُ قَالَ هُنَيَّةً فَقُلْتُ بِاَبِيْ اَنْتَ وَاُمِّيْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِسْكَاتُكَ بَيْنَ التَّكْبِيْرِ وَبَيْنَ الْقِرَآئَةِ مَاتَقُوْلُ قَالَ اَقُوْلُ اللّٰهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِيْ وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اَللّٰهُمَّ نَقِّنِيْ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْاَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِالْمَآءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ.

۷۰۵: موسٰي بن اسماعیل، عبدالواحد بن زیاد، عماره بن قعقاع، ابو زرعه، ابو هریرهؓ روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم به د تکبیر او قرأت مینځ کښې څهٔ سکوت کولو (ابو زرعه وائي) څما خیال دے، ابو هریرهؓ اووے، لږ ساعت، نو ما عرض او که، یا رسول اللّٰه، څما مور پلار دې په تاسو قربان وي، د تکبیر او قرأت مینځ کښې چه سکوت کوې، نو تاسو څهٔ وائې حضورؐ او فرمائیل زهٔ وائیم، اے اللّٰه، څما او څما د ګناهونو مینځ کښې داسے لرے والے راولے، څنګه چه تا د مشرق او مغرب مینځ کښې لرے والے راوستلے دے. اے اللّٰه ما د ګناهونو نه پاک کړے، څنګه چه سپینه کپړه د خیرې (میل) نه پاکولے شي. اے اللّٰه څما ګناهونه اوبو، واورے، ګلې سره اووینځې (یا اللّٰه دا دعا څمونږ په حق کښې هم قبوله کړې اللّٰهمّ آمین)

۱. احناف او حنابله دا غوره ګڼړي چه مونځ د سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ نه شروع کړي. شوافع دا دعا خوښوي کومه چه امام بخاري رحمة اللّٰه علیه روایت کړیده. په احادیثو کښې د دواړو دعاګانو روایات شته. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه یو ځل سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ په زوره مانځه کښې اولوستله چه خلق پوهه شي چه دا د مونځ شروع کولو دعا ده. ددے باب اولني حدیث کښې دا دي چه نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم ابوبکر او عمر رضي اللّٰه عنهما به مونځ د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، نه شروع کولو ددے مطلب دا دے چه جهري مونځ کښې قرأت په جهر سره د اَلْحَمْدُ" نه شروع کیږي. د تکبیر او د قرأت په مینځ کښې دعا به دوي په رو (سرې) ویله.

## باب ۴۸۱:

۷۰۲: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ اَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى صَلٰوةَ الْكُسُوْفِ فَقَامَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ رَكَعَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ ثُمَّ قَامَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ رَكَعَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ ثُمَّ قَامَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ رَكَعَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ ثُمَّ رَفَعَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ رَفَعَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ ثُمَّ رَفَعَ فَسَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ قَدْ دَنَتْ مِنِّي الْجَنَّةُ حَتّٰى لَوِاجْتَرَأْتُ عَلَيْهَا جِئْتُكُمْ بِقِطَافٍ مِّنْ اَقْطَافِهَا وَدَنَتْ مِنِّي النَّارُ حَتّٰى قُلْتُ اَيْ رَبِّ اَوَاَنَا مَعَهُمْ فَاِذَا امْرَاَةٌ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ تَخْدِشُهَا هِرَّةٌ قُلْتُ مَا شَاْنُ هٰذِهٖ قَالُوْا حَبَسَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ جُوْعًا لَّا اَطْعَمَتْهَا وَلَا اَرْ سَلَتْهَا تَاْكُلُ قَالَ نَافِعٌ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ مِنْ خَشِيْشِ الْاَرْضِ اَوْخَشَاشِ.

## باب ۴۸۱: (دے باب كښې هيڅ عنوان نشته)

۷۰۲: ابن ابي مريم' نافع بن عمر' ابن ابي مليكه' اسماء بنت ابي بكرؓ روايت كوي نبي صلي الله عليه وسلم د نمر تندرلږ نيولو مونځ د پاره اودريدلو' نو حضورؐ اوږد قيام اوكړ بيا اوږده ركوع ئې اوكړه' هغې نه پس ئې قيام اوكړ' او قيام ئې هم اوږود كړ' بيائې ركوع اوكړه' او ركوع ئې هم اوږده كړه' بيائې سر اوچت كه هغې نه پس ئې دويمه سجده اوكړه' او دا سجده ئې هم اوږده كړه بيا دوئم ركعت د پاره حضورؐ اودريدلو او قيام ئې اوږود كړ. هغې نه پس ئې ركوع اوكړه' او ركوع ئې اوږده كړه بيائې ركوع اوكړه او ركوع ئې اوږده كړه بيائې سر اوچت كړ' سجده ئې اوكړه' سجده ئې هم اوږده كړه. هغې نه پس ئې بيا سر اوچت كړ' نو دويمه سجده ئې اوكړه' دې نه پس حضور د مونځ نه فارغ شو' او وې فرمائيل' دغه وخت جنت ماته دومره نزدې كړې شو كه ما غوښتلې' نو د هغې د غنچكونه به م څه غنچك تا سوله راوړې وې' او دوزخ هم ماته دومره نزدې كړې شو' چه ما اووې' اې خما پروردګاره آيا زۀ به دې خلقو سره ساتلې شم' نو ناساپه به يوه ښځه م نظر پريوت' خما خيال دې' حضورؐ او فرمائيل چه هغه' يوې پشو (بلې) په پنجه وهله' ما اووې' د دې څه حال دې' خلقو راته اووې' چه دې پيشو ساتلې وه' نه ئې خوراك وركولو' او نه ئې پريښودله' چه خپله څۀ او خوري' د نافع په روايت كښې داسې راغلې دي' نه ئې هغه پريښودله' چه د زمكې نه چينجي وغيره او خوري (او خپله خيټه ډكه كړي).

۱. پدې حديث شريف كښې د صلوٰة كسوف (چه نمر تندر اونيسي د هغې تكليف د لرې كولو د پاره مونځ) د واقعې بيان دې. ددې نه معلوميږي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په هر ركعت كښې دوه

دوه رکوع کړے دي بعضے روایاتو کښې د دریے رکوع او بعضو کښې په هر رکعت کښې د پنځو رکوع ذکر دے د نورو روایاتو په مقابله کښې د بخاري دا روایت صحیح دے لیکن مسئله داده چه په دے روایت عمل نشته او په هر رکعت کښې یو رکوع کول دي اګرچه نبي کریم صلي الله علیه وسلم په هر رکعت کښې د دے روایت مطابق دوه دوه رکوع اوکړے. لیکن ددے مونځ ادا کولو نه پس ئے او فرمایل "څرنګ چه تاسو لیدلي دے چه زۀ د صبا مونځ کوم دغسے د کسوف مونځ هم کوئ" ددے نه معلومه شوه چه په هر رکعت کښې دوه رکوع کول د نبي کریم صلي الله علیه وسلم خصوصیت وو.

**باب ۴۸۲: رَفْعِ الْبَصَرِ إِلَي الْإِمَامِ فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ رَاَيْتُ جَهَنَّمَ يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا حِيْنَ رَاَيْتُمُوْنِيْ تَاَخَّرْتُ.**

**باب ۴۷۲:** مونځ کښې امام پله دَ نظر اوچتولو بیان، بي بي عائشه وائي، رسول الله صلي الله علیه وسلم دَ نمر دَ تندر نیولو باره کښې او فرمائیل، ما جهنم کښې اولیدل، چه دَ هغې یوه حصه بله حصه دباؤ کوي، کله چه تاسو زۀ اولیدم، چه زۀ په ورستو شوے ووم.

۱. ابن منیر رحمة الله علیه فرمایلي دي چه د مقتدي، خپل مانځه کښې امام ته کتل د جماعت (د امامتي) د مونځ مقصد کښې شامل دے که چرے امام مخکښې په نظر رازي.

۷۰۷: حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَمَّارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ قَالَ قُلْنَا لِخَبَّابٍ اَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ قَالَ نَعَمْ فَقُلْنَا بِمَ كُنْتُمْ تَعْرِفُوْنَ ذَاكَ قَالَ بِاضْطِرَابِ لِحْيَتِهٖ.

۷۰۷: موسٰي، عبدالواحد، اعمش، عماره بن عمیر، ابو معمرؒ روایت کوي، مونږ خبابؓ ته اووے آیا رسول الله صلي الله علیه وسلم به دَ ماسپخین او مازیګر په مونځ کښې څۀ وئیلے، خبابؓ اووے، او مونږ ترے تپوس اوکۀ، چه تاته دا څنګه معلومه شوه، نو خبابؓ اووے، دَ حضور صلي الله علیه وسلم دَ ګیرے مبارکے دَ خوزیدو نه.

۷۰۸: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَنْبَاَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ يَخْطُبُ قَالَ حَدَّثَنَا الْبَرَآءُ وَكَانَ غَيْرَ كَذُوْبٍ اَنَّهُمْ كَانُوْا اِذَا صَلَّوْا مَعَ

۷۰۸: حجاج، شعبه، ابو اسحاق روایت کوي، ما دَ عبدالله بن یزید نه خطبه کښې د او اوریدل چه مونږ ته براء بن عازب بیان اوکۀ او هغه دروغجن نه وو) چه صحابهٔ به مونځ کولو، نو صحابهٌ به ولاړوو، تر دے چه حضورؐ به خپل سر مبارک

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَامُوا قِيَامًا حَتّٰى يَرَوْهُ قَدْ سَجَدَ.

د رکوع نه اوچت کړلو، او هغوي به چه حضورؐ په سجده کولو اولیدلو نو بیا به ئې سجده کوله.

۷۰۹: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِبْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ رَاَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِيْ مَقَامِكَ ثُمَّ رَاَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ فَقَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُ الْجَنَّةَ فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُوْدًا وَلَوْ اَخَذْتُهٗ لَاَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا.

۷۰۹: اسماعیل، مالک، زید بن اسلم، عطاء بن یسار، عبداللّٰه بن عباسؓ روایت کوي، دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلم زمانه کښې نمر تندر اونیولو، نو حضورؐ دَ نمر دَ تندر نیولو مونځ اوکړهٔ صحابه ؤ عرض ورته اوکړهٔ، مونږ تاسو اولیدئې، چه څهٔ څیز تاسو په خپل ځائې (په ولاړه) اخستې وو. بیا مونږ تاسو اولیدئې چه تاسو په ورستو شوئې حضورؐ ورته او فرمائیل، ما جنت اولید، دَ هغې نه یو غنچک اخستل ما او غوښتل، که هغه ما اخستې وې، نو تاسو به دَ هغې نه خوړلې، څو پورې چه دُنیا باقي وې.

۷۱۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُبْنُ سِنَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلّٰى لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَاَشَارَ بِيَدَيْهِ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ قَالَ لَقَدْ رَاَيْتُ الْاٰنَ مُنْذُ صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلٰوةَ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِيْ قِبْلَةِ هٰذَا الْجِدَارِ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ ثَلَاثًا.

۷۱۰: محمد بن سنان، بفلیح، هلال بن علي، انس بن مالکؓ روایت کوي، چه یو ځلې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم مونږ ته مونځ راکړهٔ، هغې نه پس منبر ته اوخت او خپلو دواړو لاسونو سره ئې قبلې طرف ته اشاره اوکړه بیائې او فرمائیل، مادې وخت کښې چه تاسو ته مونځ درکول شروع کړل، نو دَ جنت او دوزخ مثال م دَ دې دیوال په قبله کښې اولید دَ نن ورځې په شان خیر او شر ما هیڅ کله نهٔ وولیدلې. دا حضورؐ درې ځله او فرمائیل.

## باب ۴۷۳: رَفْعِ الْبَصَرِ اِلَى السَّمَآءِ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۴۸۳: مونځ کښې آسمان پله دَ نظر اوچتولو بیان.

۷۱۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدُ

۷۱۱: علي بن عبداللّٰه یحیي بن سعید

اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُرُوبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَابَالُ اَقْوَامٍ يَرْفَعُوْنَ اَبْصَارَهُمْ اِلَى السَّمَآءِ فِي صَلٰوتِهِمْ فَاشْتَدَّ قَوْلُهُ فِيْ ذٰلِكَ حَتّٰى قَالَ لَيَنْتَهُنَّ عَنْ ذٰلِكَ اَوْ لَتُخْطَفَنَّ اَبْصَارُهُمْ.

ابي ابي عروبه، قتاده، انس بن مالكؓ روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه خلق دا څۀ كوي، چه مونځ كښې خپل نظر آسمان طرف ته اوچتوي نودې باره كښې دَ حضورؐ خبرې سختې شوې، تر دې چه حضورؐ او فرمائيل، دَدې نه منع شئي، كني نظرونه به ئې ختم شي.

## بـاب ۴۸۴: اَلْاِلْتِفَاتِ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۴۸۴: مونځ كښې دَ يو خواه بل خواه كتلو بيان.

۷۱۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوالْاَحْوَصِ قَالَ حَدَّثَنَا اَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْاِلْتِفَاتِ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ هُوَا خْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلٰوةِ الْعَبْدِ.

۷۱۲: مسدد، ابو الاحوص، اشعث بن سليم، سليم، مسروق، بي بي عائشهؓ روايت كوي، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه مونځ كښې دَ اخوا ډخوا كتلو په حقله تپوس اوكۀ، نو حضورؐ او فرمائيل، چه دا يو قسم غلاده، چه شيطان ئې دَ بنده دَ مونځ نه كوي.

۷۱۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ......صَلّٰى فِيْ خَمِيْصَةٍ لَّهَا اَعْلَامٌ فَقَالَ شَغَلَتْنِيْ اَعْلَامُ هٰذِهٖ اذْهَبُوْا بِهَا اِلٰى اَبِيْ جَهْمٍ وَّائْتُوْنِيْ بِاَنْبِجَانِيَّةٍ.

۷۱۳: قُتيبه، سُفيان، زهري، عروه، بي بي عائشهؓ روايت كوي، چه نبي صلعم يو ورځ نقش داره كپړه كښې مونځ اوكۀ (مونځ نه چه فارغ شو، نو) حضورؐ او فرمائيل، زۀ دَ دې كپړې نقشونو خپل طرف ته متوجه كړم، دا ابو جهم (سوداګر) له يو ځئ (چه دَ هغۀ نه دا كپړه راغلې وه) او ماله انجنانيه (يو قِسم ساده كپړه) راوړئې.

## باب ۴۸۵: هَلْ يَلْتَفِتُ لِاَمْرٍ

## باب ۴۸۵: كه مونځ كښې څۀ خاص واقعه

يُنْزِلُ بِهٖ اَوْيَرٰى شَمْئًا اَوْبُصَاقًا فِى الْقِبْلَةِ وَقَالَ سَهْلُ الْتَفَتَ اَبُوْ بَكْرٍ فَرَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

پيبنه شي، يا مخې ته تو كانړے يا بل څه اووينې نو آيا دا جائز دي، چه د غل په نظر ورته او ګوري، او سهل وائي، چه ابو بكرؓ راوګرځيد نو هغه نبي صلي الله عليه وسلم اوليدلو.

٧١٤: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ قَالَ رَاٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُخَامَةً فِيْ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ وَهُوَ يُصَلِّيْ بَيْنَ يَدَيِ النَّاسِ فَحَتَّهَا ثُمَّ قَالَ حِيْنَ انْصَرَفَ اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا كَانَ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّ اللّٰهَ قِبَلَ وَجْهِهٖ فَلَا يَتَنَخَّمَنَّ اَحَدٌ قِبَلَ وَجْهِهٖ فِي الصَّلٰوةِ رَوَاهُ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ وَابْنُ اَبِيْ رَوَّادٍ عَنْ نَافِعٍ.

٧١٤: قُتيبه، ليث، نافع، ابن عمرؓ روايت كوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د جمات قبلے طرف ته څه تو كانړے اوليدے، دغه وخت حضورؐ د خلقو مخكښ (ولاړوو) مونځ وركولو، حضورؐ هغه اوګرولو، بيا چه مونځ نه فارغ شو، نو وے فرمائيل كله چه يو سړے په مانځه كښ وي نو دا خيال دے كوي چه الله د هغه مخے ته دے، نو هيڅوك دے مانځه كښ خپلے مخے ته نهٔ توكي، دا موسي بن عقبه، او ابن ابي رواد د نافع نه روايت كړے دے.

٧١٥: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ بَيْنَمَا الْمُسْلِمُوْنَ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ لَمْ يَفْجَاْهُمْ اِلَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَشَفَ سِتْرَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَنَظَرَ اِلَيْهِمْ وَهُمْ صُفُوْفٌ فَتَبَسَّمَ يَضْحَكُ وَنَكَصَ اَبُوْبَكْرٍ عَلٰى عَقِبَيْهِ لِيَصِلَ لَهُ الصَّفَّ فَظَنَّ اَنَّهٗ يُرِيْدُ الْخُرُوْجَ وَهَمَّ الْمُسْلِمُوْنَ اَنْ يَّفْتَتِنُوْا فِيْ صَلٰوتِهِمْ فَاَشَارَ اِلَيْهِمْ اَتِمُّوْا صَلٰوتَكُمْ وَاَرْخَى

٧١٥: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، انس بن مالكؓ روايت كوي چه (يو ورځے) مسلمانان د سحر مونځ كښ مشغول وو، چه ناساپه رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته ښكاره شو، حضورؐ د بي بي عائشےؓ د حجرے پرده اوچته كره، او د مسلمانانو طرف ته ئے اوكتل، دغه وخت هغوي صف تړلے وو نو حضورؐ د خوشحالي نه مسكے شولو، ابو بكرؓ په ورستو شو، چه حضورؐ د پاره د امامت ځائے خالي كړي، او خپله صف كښ شامل شي، ځكه چه هغه په دے پوهيدلو، چه حضورؐ بهر ته راتلل غواړي او مسلمانانو د خوشحالي نه دا قصد او كړ، چه خپل مونځ مات كړي، خو حضورؐ هغوي ته اشاره اوكړله، چه تاسو خپل مونځ پوره كړئ، او حضورؐ پرده راو غورځوله،

السِّتْرَ وَتُوُفِّيَ مِنْ اٰخِرِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ . او ذ دغې ورځې آخر کښې حضورؐ وفات شولو۱ .

۱ . عـام روايـاتو کښې داسې دي چه د مونځ دوران کښې نبي کريم صلي الله عليه وسلم هغه صفا کړې (يا رولې) نه وې. بلکې د هغې د صفا کولو' لړې کولو په وخت نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مونځ ولاړ نه وو. امام بخاري رحمة الله عليه د حديث د عبارت (سياق و سباق) د وجې نه د مونځ دوران کښې د صفا کولو د باب سر ليک جوړ کړو.

## باب ۴۸۶: وُجُوْبِ الْقِرَاءَةِ لِلْاِمَامِ وَالْمَاْمُوْمِ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَافِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِوَ مَايُجْهَرُ فِيْهَا وَمَا يُخَافَتُ.

باب ۴۸۶: ټـولـو مـونـځـونـو کـښې خـواه هـغـه سـفـر کـښې وي يـا حـضـر کـښې' سرّي وي يـا جهـري' امـام او مـقـتـدي دَ پـاره قـرأت دَ واجـب کيدو بيان۲ .

دَ دې بـاب لانـدې چـه کـوم حديثو نه منقول دي' دې نه دا' نۀ واضحه کيږي' چه مقتديانو دَ پاره امام پسې قـرأت واجب دې' وړمبـنـې حـديـث دَ حضرت سعدؓ دې' چه هغې کښې حضرت سعدؓ صرف دَ خپل مونـځ طـريـقـه بيـان کـړې ده' او هـغـۀ به خپله امامت کولو او امام دَ پاره بالاتفاق قرأت واجب دې' دويم حـديـث دَ عبادهؓ دې چه هغې کښې دَ فاتحه لوستو حکم دې ليکن دا تفصيل نشته' چه کوم کوم حالاتو کښې اوچا' چا دَ پاره' درئيم حديث دَ ابو هريرهؓ دې' چه هغې کښې دَ منفرد بيان دې او په منفرد هم په اتفاق سره قرأت واجب دې.

۱ . مـونـځ د ايـمـان نـه پس د دين اهم عبادت دې د مونځ کولو دوه طريقې دي. يا به ځان له مونځ ادا کـولې شي يا په امامتئ (جماعت) سره او قرآن پاک کښې دَ قرأت په حقله دوه آيتونه دي يو سورت مزمل کښې دې:

فَاقْرَءُ وْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ د قرآن نه هغه اولولئي چه تاسو ته آسان وي

دويم سورت اعراف کښې دې:

وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَ اَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ او کله چه قرآن لوستې شي نو تاسوئې اورئ او چُپ (غلې) اوسئ چه په تاسو رحم اوشي.

دا دواړه پـه پـاک رسول الله صلي الله عليه وسلم باندې (ځما پلار مور او ځما روح دې ترې قربان شـي) نـازل شوې وو. د رسول اکرم صلي الله عليه وسلم نه زيات چا ددې آيتونو موقعه او ځائې نه پيژندو. رسـول اکرم صلي الله عليه وسلم چه کله د ځان له مونځ ادا کولو طريقه ښودله ورته ئې او فرمايل چه تکبير تحريمه به اوائي او بيا:

اِقْرَءْ مَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنَ څه چه تا ته قرآن لوستل آسان وي اولوله'

دا هغه حکم دې چه سورة مزمل کښې دې:

فَاقْرَءُ وْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ د قرآن نه هغه اولولئي چه تاسو ته آسان وي.

يـواځې مـونـځ کـونکې ته د مونځ طريقه چه کومه رسول الله صلي الله عليه وسلم ښودلې ده. هغه په بـخاري کښې حديث نمبر ۷۱۸ کښې موجود ده. بيا چه ئې کله امت ته د امامتئ (د جماعت) د مونځ طريقه

اوښودله نو د مونځ په فرائضو کښې شراکت بیان کړو ۔ هغه پدې طریقه' چه امام تکبیر او وائي نو تاسو تکبیر او وائئ چه امام رکوع او کړي تاسو رکوع او کړئ چه امام سجده او کړي تاسو سجده او کړئ. لیکن چه کله نې د قرأت مسئله بیان کړه نو داسې نې او نه فرمایل چه امام قرأت او کړي نو تاسو قرأت او کړئ. بلکې داسې نې او فرمایل "چه کله امام قرأت کوي نو تاسو چُپ (خاموش) اوسئ" او دا هغه حکم دې چه سورة اعراف کښې دې:

وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَ اَنْصِتُوْا — او کله چه قرآن لوستلے شي نو تاسو ئې په توجه اورئ او چپ (غلي) اوسئ

امام ابن تیمیه رحمة الله علیه د امام احمد رحمة الله علیه نه روایت کړیدې "چه پدې خبره د امت اجماع ده چه دا آیت شریف د مونځ په باره کښې نازل شویدې ۔ او رسول اقدس صلي الله علیه وسلم چه د امامتئ (د جماعت) د مونځ کومه طریقه ښودلې ده هغه په صحیح مسلم جلد اول ص ۱۷۴ کښې د حضرت ابو موسٰی اشعري رضي الله عنه نه روایت شویده. امام مسلم رحمة الله علیه ددې حدیث شریف په حقله فرمایلي دي چه ددې حدیث شریف په صحت باندې د محدثینو اجماع ده. ددې نه معلومه شوه چه الله تعالٰي او دهغه رسول صلي الله علیه وسلم د امامتئ (د جماعت) په مونځ کښې قرأت تقسیم کړیدې امام به قرأت وائي او مقتدي به چُپ (غلې) وي. په قرأت کښې شریک نه کړل وضاحت. کله چه د جمعې مبارکې مونځ کیږي نو ډیرو کارونو کښې امام او مقتدي شریک وي. امام او دس کوي مقتدي هم اودس کوي دوه رکعته مونځ امام کوي او مقتدي هم ورسره دوه رکعته مونځ ادا کوي لیکن په خطبه کښې شراکت نشته امام خطبه وائي او مقتدي ئې اوري. چُپ ناست وي دا خبره منلې شویده چه د خطبې نه بغیر د جمعې مونځ نه کیږي داسې دا خبره هم منلې شویده. چه د خطیب خطبه د ټولو د طرفنه ادا کیږي. د خطیب آواز که اوري یا نه اوري که خطیب ورته ښکاري یا ئې نه ویني. بلکې که کوم سړې د خطیب د خطبې په وخت موجود نه وؤ وروستو د جماعت په آخر کښې شریک شو دغه خطبه دهغه د طرفنه هم ادا شوه. هغه سړې به دا نه وائي. چه ما بغیر د خطبې د جمعې مونځ ادا کړو بلکې چه چا پوره خطبه واوریده یائې نیمه واوریده یا یو لفظ ئې وانه وریده صرف جماعت (امامتئ) کښې شریک شو د ټولو جُمعه سره د خطبې ادا شوه.

دَغسې مسئله په مونځ کښې د قرأت ده مونږ وایو. "چه د قرأت نه بغیر مونځ نه کیږي" لیکن د جماعت (د امامتئ) مونځ کښې د امام قرأت د ټولو د طرفنه ادا کیږي. که څوک د امام قرأت اوري یا نه اوري امام ورته ښکاري چه قرأت وائي یا نه ښکاري تردې که کوم مقتدي په رکوع کښې د امام سره په جماعت کښې شریک شو چه هغه یو لفظ هم د امام د قرأت نه وي اوریدلې. داسې یو مقتدي به هم دا نه وائي چه ما بغیر د قرأت نه مونځ ادا کړیدې. ټول مقتدیان دا وائي چه مونږ د قرأت سره مونځ کړیدې. پدې باندې د څلورو امامانو رحمة الله علیهم اتفاق دې چه په رکوع کښې کوم مقتدي شریک شي نو د هغه پوره رکعت شمیرلې شي. په قرآن او احادیثو کښې په مونځ د قرآن ویلو حکم دې قرآن یوسل څوارلس سورتونه دي. څرنګ چه سورت یٰسٓ قرآن دې سورة احزاب قرآن دې داسې سوره فاتحه هم قرآن دې نو معلومه شوه چه دا حکم د قرات سورة فاتحه او نورو سورتونو ټولو باندې شامل دې. په ټول قرآن کښې قرأت د امام حق دې او خاموش (چُپ) اوسیدل دا د مقتدي حق دې. په حدیث شریف کښې دي

راغلي دي چه حائضه او جنب (په چا چه غسل اوړيدلے وي) به قرآن شريف نه لولي. څرنګک چه د هغوي د پاره د سورت تغابن لوستل منع دي د سورت فاتحه لوستل د هغوي د پاره هم منعه دي څرنګک چه حديث شريف کښې دي "چه زۀ په رکوع او سجده کښې د قرآن پاک د لوستلو نه منعه کړے شوے يم نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم خپل ټول مبارک عمر کښې رکوع يا سجده کښې نه سورة بقره لوستلے وو نه سورت فاتحه دے وجے نه د قرآن و حديث مطابق په مونځ کښې د قرأت حکم دے د امام سورت فاتحه لوستل د ټولو مقتديانو د طرفنه سورت فاتحه لوستل دي او سورت هم' اوس د مقتدي په باره کښې دا ويل چه دده مونځ بغير د سورت فاتح شويدے دا داسے دروغ دي لکه چه څوک اووائي "چه د خطيب نه علاوه ټولو مقتديانو د جُمعے مونځ بغير د خطبے نه کړيدے خکه چه هغوي ټولو خطبه ويلے نه ده. ددے وجے نه د هغوي د جُمعے مونځ شوے نه دے". په دے پوهيدل پکار دي کله چه مونږ وايو د خطيب' خطبه د ټولو مقتديانو د طرفنه ادا شويده. نو دا حکم د خطيب دواړو خطبوته شامل دے څرنګک چه خطبے دوه دي داسے په مونځ کښې د قرأت هم دوه حصے دي. مطلق قرأت فرض دے او په دے کښې سورتِ فاتحه خاص واجب مقرر دے او د سورت فاتحه نه علاوه زيات قرآن لوستل واجب دي او په هغے کښې بنده' ته اختيار دے چه د کوم ځائے نه خوښوي هغه لوستلے شي. دا مونږ داسے وايو. چه کوم مونځ کښې قرأت نه دي يعني سورت فاتحه' او د هغه نه علاوه د قرآن څه حصه' نو د هغه مونځ کامل نه دے ليکن د جماعت د امامتۍ مونځ کښې د امام قرأت يعني سورت فاتحه او د قرآن څه حصه ويل' د ټولو مقتديانو د پاره کافي کيږي. ددے تفصيل نه دا واضحه شوه چه د کومو احاديثو په ذريعه ساده خلقوله دهوکه ورکولے شي چه فاتحه او د هغے نه علاوه څه حصه لوستلو بغير مونځ نه کيږي. د هغے احاديثو مونږ خلاف نه يو' هغه احاديث خو خمونږ د اولنے حصے دلائل دي. څرنګک چه خمونږ د اهل سنت والجماعة په نزد د فاتحه او غير فاتحه د ټول قرآن د قرأت يو حکم دے چه د امام د قرآن لوستل د فاتحه او غير فاتحه د ټولو مقتديانو د طرفنه پوره کيږي. داسے خمونږ په نزد د جهري مونځ (چه قرأت پکښې په زوره ويلے شي) او د سِرِي مونځ (چه قرأت پکښې پټ لوستلے شي) د ټولو يو حکم دے څرنګک چه کوم بنده د خطيب خطبه اوري په هغه باندے چپ (خاموش) اوسيدل واجب دي. او کوم بنده چه خطبه نه اوري په هغه باندے هم چپ (خاموش) اوسيدل واجب دي. ددے وجے نه الله تعالي داسے نه دي فرمايلي:

وَ اِذَا جُهِرَ الْقُرْآن — او کله چه قرآن په زوره ويلے شي

بلکے الله تعالي او فرمايل:

وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآن — او کله چه قرآن ويلے شي

که په زوره وي او که په رو چپ اوسيدل ضروري دي او رسول الله صلي الله عليه وسلم داسے او نه فرمايل:

اِذَا جَهَرَ فَاَنْصِتُوْا — چه کله امام په جهر قرأت لولي نو چَپ اوسئ

بلکے نبي عليه السلام داسے او فرمايل:

اِذَا قَرَءَ فَاَنْصَتُوْا — کله چه امام قرأت وائي (که په جهر وي او که سر) نو چپ اوسئ

او نبي کريم صلي الله عليه وسلم داسے او فرمايل:

قِرَاءَةُ الْإِمَامِ قِرَاءَةٌ لَهُ — د امام قرأت (كه په جهر وي كه سر) د مقتدي د پاره قرات دے

او داسے ئے او نه فرمايل:

جَهْرُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ — د امام جهر په قرات سره د مقتدي د پاره قرات دے

او امام قرأت د هر مونځ په هر ركعت كښ وائي كه د صبا مونځ وي كه ماسپخين' كه مازيگر كه ماښام كه ماسختن' كه د جمعے مونځ وي كه د اخترونو' په ټولو مونځونو كښ د امام قرات د مقتدي د طرفنه كافي كيږي. بعضے خلق' د قرآن پاک د يوسل ديارلس سورتونو باره كښ د قرآن و حديث دا حكم مني اووائي چه امام كله دے يو سل ديارلس سورتونو كښ د كوم سورت تلاوت كوي. نو مقتدي به چُپ (غلے' خاموش) اوسيږي د امام قرات ددے سورتونو د هغه د پاره كافي كيږي. ليكن د سورت فاتحه په حقله د قرآن و حديث دے حكم نه انكار كوي. او وائي چه مقتدي به سورت فاتحه ضرور وائي او نور سورتونه چه امام وائي نو چَپ به وي. ددوي دا خبره داسے ده چه څوک اووائي "دا صحيح خبره ده چه كله خطيب خطبه وائي نو ټول مقتديان به چَپ (خاموش) وي. دا خطبه د ټولو د طرفته ادا كيږي. ليكن دا حكم د دويمے خطبے په حقله منو. ليكن دَ اولنئ خطبے ويل په ټولو مقتديانو فرض دي. څوک چه اولنئ خطبه پخپله اونه وائي د هغه جمعه ادا كيږي ځكه چه پخپله ئے خطبه اونه ويله". بنكاره خبره ده چه د داسے قسم خبرے نه ټول مسلمانان به پريشانه شي. كوم مجبوره مسلمانان چه د دويمے خطبے په وخت رااورسي' هغوي به د خطيب دويمه خطبه اوري كه خپله اولنئ خطبه به وائي كه چرے دويمه خطبه نه اوري خپله خطبه وائي نو د دويمے خطبے اوريدل واجب وؤ نو هغه خطبه تيره شوه كه خپله خطبه نه وائي نو د جمعے مونځ ئے اونشو. داسے كوم خلق' چه د جمعے مباركے جمعے ته حاضر وؤ هغوي خپله اولنئ اونه ويله' نو د هغوي جمع ضائع او برباده شوه. نو ددے سرِي د فتوے په وجه په سلو كښ د لس كم سل مسلمانانو جمعه برباده شوه. د دے وجے نه مونږ د دغے خلقو نه ددے مسئلے په حقله د څو سوالونو حل غواړو. (۱) امام فاتحه ختمه كړه په جهري مونځ كښ' سورت لولي. دغے وخت كښ مقتدي په مونځ كښ شريک شو دغه مقتدي به سورت اوري كه خپله فاتحه به لولي كه چرے فاتحه وائي هغه سورت نشي اوريدلے نو هغے مقتدي د باقي قرآن يو سل ديارلس سورتونو په حقله د كتاب و سنت حكم شاته اوغورځؤ او د دواړو د حكم نه ئے انكار اوكړو. آيا دغه خلق په قرآني آيت دا جدا والے ثابتولے شي. چه سورت به نه اوري يا داسے يو متواتر حديث چه د آيت "وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآن" نه روستو وي. چه هغے كښ دا بيان وي چه كله نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم په جهري مونځ كښ د فاتحه لوستلو نه پس سورت لوستلو نو په هغه وخت په مانځه كښ شريک كيدونكو صحابهٔ كرامو د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم قرأت نه اوريده پخپله به ئے فاتحه لوستله. (۲) يو مقتدي تكبير تحريمه اوے امام چه د كوم سورت تلاوت كوؤ هغه ئے وانه وريدو. دريمه برخه سورت فاتحه ئے اولوستله پدے وخت كښ امام ركوع ته لاړو نو دغه مقتدي به باقي پاتے فاتحه په ركوع كښ پوره كوي دا د حديث مبارک خلاف عمل دے په ركوع كښ د قرآن تلاوت منع دے كه دا مقتدي په ولاړه فاتحه اوائي امام د ركوع نه سجدے ته لاړو او دا مقتدي تر اوسه فاتحه وائي نو د صريح حديث شريف نه د دے حكم اوښايئ. (۳) مقتدي تر اوسه نيمه فاتحه لوستے وه امام فاتحه ختمه كړه سورت ئے شروع كړو اوس دا مقتدي به په (انصات) چپ اوسيدو عمل كوي هغه نيمه فاتحه به كافي گڼري يا به

باقي نيمه فاتحه وائي د قرآن مجيد د (انصات) چپ اوسيدو د حكم به مخالفت كوي. (۴) كوم مقتدي چه امام سره ركوع كښې شريک شو هغه' نه د امام فاتحه اوريدلې ده نه ئې خپله ويلې ده. په دې باندې د څلورو امامانو اتفاق دې چه هغه ركعت بيا موندو ركعت ئې صحيح دې "فتاوي ستاريه (مطبوعه جمعيت غربائے اهل حديث) كښې هم د احاديثو او د خلفائے راشدينو د قول و عمل نه ئې ثابت كړيده چه ددغې مقتدي دا ركعت مكمل دې نه به ئې واپس ادا كوي. نو دغه غير مقلدين د كوم صحيح حديث نه دا ثابتولې شي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم او خلفائے راشدينو په ركوع كښې د شامليدو سره د ركعت دَ دوباره ادا كولو حكم كړيدې. (۵) لوئې جُمات (مسجد) كښې يو مقتدي په جهري مونځ كښې په آخري صف كښې شريک شو. په هغه ځائے كښې د امام د قرأت آواز نشي اوريدې. اوس هغه مقتدي فكر كوي "كه چرې په دې وخت كښې امام سورت وائي كه زۀ سورت فاتحه وايم نو د الله تعالىٰ د حكم (انصات) چپ' خاموش كيدو خلاف ورزي كيږي. كه چرې فاتحه نه وايم نو مونځ نه كيږي" په دې باره كښې صحيح حديث شريف سره دې دوي حكم اوښائي. (۶) داسې په سِري مونځ كښې (چه امام پكښې قرأت په زوره نه وائي مقتدي د قيامِ (چه خلق په مانځه ولاړ وي) په حالت كښې شريک شو. هغه ته دا معلومه نه ده چه امام فاتحه وائي يا بل سورت' اوس به هغه مقتدي څه كوي؟ واضح حديث شريف سره حكم څه دې.

خلاصه د بحث داده چه ددې غير مقلدينو (وهابيانو) دا مسئله دَ قرآن نه ثابته نه ده. بلكې د قرآن خلاف ده. داسې ددوي دا مسئله په وضاحت سره د بخاري شريف او مسلم شريف نه ثابته نده. بلكې د بخاري او د مسلم مخالفت دې. (۱) امام بخاري رحمة الله عليه فاتحه په قرآن كښې شامل گڼړي (صحيح بخاري جلد دويم احاديث نمبر ۴۶۴۲، ۴۸۳) او ډير غير مقلدين فاتحه د قرآن حصه نه مني. (۲) امام بخاري رحمة الله عليه د آيت شريف وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ شان نزول مونځ مني (جزء القرأة) او غير مقلدين وائي "دا حكم كافروته دې او مونږ ته نه دې. (۳) امام بخاري رحمة الله عليه د انصات دا معني روايت كوي چه نه شونډې خوزي نه ژبه (بخاري جلد نمبر ۱ ص۳) او غير مقلدين وائي چه په ژبه او په شونډو قرآن ويل د انصات خلاف نه دي. (۴) امام بخاري رحمة الله عليه په ركوع كښې د ركعت حاصليدو په حقله (بخاري جلد نمبر ۱ ص ۱۰۸) د حضرت ابوبكره رضي الله عنه حديث شريف ذكر كړيدې چه هغه ته نبي كريم صلي الله عليه وسلم هغه ته (په ركوع كښې د حاصل شوي ركعت) د دوباره ادا كولو حكم نه وۀ كړې ليكن غير مقلدين د بخاري شريف دا حديث شريف نه مني. (۵) امام بخاري رحمة الله عليه دا حديث شريف روايت كړيدې:

اِذَا أَمَّنَ الْقَارِئُ فَأَمِّنُوْا بخاری جلد نمبر ۲ ص ۹۴۷ — چه كله لوستونكې (يعني امام) "آمين" اووائي نو تاسو هم آمين اووايئ

په دې حديث شريف كښې په ټول جماعت كښې د فاتحه په حقله قاري يو اځې امام ته ويلې شويدې. په ټول بخاري شريف كښې داسې حديث نشته چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم "قاري" مقتدي ته ويلې وي. (۶) امام بخاري رحمة الله عليه حديث شريف روايت كړې دې چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په مونځ كښې قرأت په اوچت آواز لوستلو' چه صحابه رضي الله عنهم قرآن واوري (بخاري جلد نمبر ۲ ص ۶۸۲) معلومه شوه چه صحابه رضي الله عنهم د نبي كريم صلي الله عليه وسلم وروستو د قرآن مجيد

اوريدو د پاره او دريدل' نه چه د قرآن لوستلو د پاره. (۷) امام بخاري رحمة الله عليه دا احاديث هم روايت كړيدي. چه د هغې نه دا ثابته شويده. چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په مكه مكرمه كښې په امامتئ سره په جماعت مونځ كولو (بخاري جلد نمبر ۲ ص ۶۸۲) مګر غير مقلدين دا احاديث نه مني او وائي چه په مكه مكرمه كښې په جماعت سره په امامتئ سره مونځ چرې نه دې شوې. (۸) امام بخاري رحمة الله عليه (بخاري جلد اول ص ۲۶۹) كښې د حضرت عمر رضي الله عنه هغه واقعه نقل كړيده. چه د تراويح په مونځ كښې ټول خلق په يو امام پسې جمع كړې وو. په هغې روايت كښې دا الفاظ دي "كه چرې زۀ ټول خلق په يو "قاري" جمع كړم "په دويمه ورځ حضرت عمر رضي الله عنه اوليدل چه خلق خپل قاري (اُبي بن كعب رضي اللّٰه عنه) سره د تراويح مونځ كوي". ددې روايت نه صفا معلوميږي. چه په امامتئ (جماعت) سره مونځ كښې "قاري" صرف امام وي. او د هغه قرأت د ټولو د طرفنه منظوريږي ددې وجې نه امام ته قاري ويلې شي. (۹) امام بخاري رحمة الله عليه په بخاري جلد نمبر۱ ص ۱۰۸ باندې حديث شريف نقل كړيدې "چه امام كله غَيۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّيۡنَ" اووائي نو تاسو آمين اوايئ ددې روايت نه هم معلوميږي چه "فاتحه" به صرف امام وائي او مقتدي به "آمين" كښې شريك كيږي. (۱۰) امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا حديث شريف هم روايت كړيدې چه فريښتې په "آمين" ويلو كښې هم شريك كيږي. دا ښكاره خبره ده چه فرښتو ته قرآن ياد نه دې. هغوي فاتحه نه وائي. په رو سره "آمين" وائي. اهل سنت والجماعت هم داسې په رو آمين وائي او په امام پسې روستو "فاتحه نه وائي مګر غير مقلدين د فرښتو د موافقت په ځائې مخالفت كوي. كله چه دا معلومه شوه چه د غير مقلدينو عمل د قرآن او د بخاري او مسلم خلاف دې نو د احاديثو نورو صحيح كتابونو حال واورئ. مونږ روزانه امام پسې اولس ركعته مونځ كوو. په هغې كښې په يوولس ركعتونو كښې امام په رو قرأت لولي او په شپږ ركعتونو كښې په زوره قرأت وائي. نو په دې څلورو صحيح كتابونو كښې ددې يوولس ركعتونو په حقله يو زيات ضعيف حديث هم نشته چه په هغې كښې دا حكم وي چه په (سري) ركعتونو كښې (چه كوم كښې امام په رو قرأت وائي) د امام نه روستو د قرآن ۱۱۳ سورتونه ويل حرام دي. او صرف فاتحه ويل فرض دي د "فاتحه" ويلو نه بغير مونځ باطل' او بې كاره دې باقي پاتې شو' شپږ جهري ركعتونه' (چه هغې كښې امام په زوره قرأت وائي ددې په حقله په دې كتابونو كښې ډير زيات ضعيف حديث موجود دې "چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمايلي دي "چه كله زۀ په زوره قرأت وايم نو تاسو هيڅ مه وايئ مګر فاتحه" د مكحول څلور شاګردان هم دغه قدر حديث روايت كوي صرف يو شاګرديې دا روايت كړې دې "چه چا فاتحه اونه لوستله دهغه مونځ نه كيږي" د غير مقلدينو دلائل د "فاتحه" د لوستلو په حقله ددوه قسمه دي. (۱) صحيح حديث چه په هغې كښې د امامتئ (جماعت) د مونځ وضاحت نه وي. مثلاً د نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان "چه هغه مونځ نه كيږي كوم كښې چه فاتحه او نور قرآن اونه لوستلې شي (۲) دويم دا چه حديث كښې وضاحت وي چه د جماعت (د امامتئ) د مونځ په حقله دې خو حديث صحيح نه وي مثلاً "خما روستو هيڅ څيز مه وائي مګر فاتحه". اوس تاسو غور اوكړئ دا دواړه احاديث د يو بل مخالف دي اولني كښې دا' چه مونځ كښې فاتحه او بل سورت ويل واجب دي او دويم حديث كښې دا حكم دې چه د فاتحه نه بغير بل سورت ويل حرام دي. ښكاره خبره ده. چه واجب او حرام د يو بل مخالف وي دې

مخالفت پښتولو د پاره دا غير مقلدين حضرات، "فاتحه فاتحه" شور کوي. ددينه د هغوي مقصد صرف دهوکه ورکول وي د باقي قرآن لوسعلو په حقله د هغوي په دلائلو کښې په خپله کښې مخالفت دے په هغے پرده اچولے شي. دويمه دهوکه چه د فاتحه په لفظ ورکولے شي هغه ددے نه هم لويه دهوکه ده. د اهل سنت والجماعت مسئله د ټول قرآن مسئله ده هغوي په خپله دعوه کښې چه کوم دلائل وړاندے کوي هغے کښې به يقيناً د قرآن، او د قرأت لفظ وي. هغے دلائلو کښې د سورة يٰسٓ د سورت احزاب د سورتِ فاتحه لفظ راتلل ضروري نه دي. دا غير مقلدين به د اهل سنت والجماعت دلائل په دے وينا سره رد کوي چه په دے کښې "د فاتحه" لفظ اوښايئ. تاسو غور اوکړئ دا يو داسے دهوکه ده لکه يو بنده دا دعوه اوکړي چه د حائضے ښځے او د جنب (په چا چه غسل اوړيدلے وي) د پاره د قرآن مجيد تلاوت منعه دے او د خپلے دعوے مطابق حديث شريف هم اوروي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي "حائضه او جُنب دے قرآن نه لولي. ظاهره ده چه دا دعوي لکه د نمر (نور) پشان ثابته او منلے شويده. ليکن يو غير مقلد دا دعوه کوي چه يو مسلمان دے يو آيت يا يو حديث صحيح مرفوع واضح چه چا پرے جرحه نه وي کړے. وړاندے دے کړي چه په هغے کښې داوي چه د حائضے يا د جُنب د پاره په خصوصي طور "فاتحه" ويل حرام دي. ښکاره ده چه دا په دين کښې يو لوئے فراډ او دهوکه ده اوس به تاسو ښه پوهه شوے يئ. چه دا خلق بيا بيا "فاتحه فاتحه" ولے وائي. حقيقت دا دے چه ددے خلقو مقصد ددين خدمت نه دے بلکے داسے فتنے او فساد ښوروي چه خلق د دين نه بيزاره کړي. اوس په آخر کښې د غير مقلدينو په دلائلو غور اوکړئ څرنګ چه مخکښې ذکر شويدي د غير مقلدينو دوه قسمه دلائل دي (۱) صحيح چه پکښې وضاحت نشته (۲) واضح حديث چه صحيح نه دے اولني دلائلو سره چه کله احاديث صحيح دي ددوي د دعوے سره د هغے هيڅ تعلق نشته بلکے هغه احاديث څمونږ د اهل سنت والجماعت د دعوے د اولنے حصے دلائل دي. څرنګ چه د هغے نه دا ثابتيږي چه فاتحه ويل واجب دي. داسے د فاتحه ويلو نه روستو د قرآن د څه حصے ويل ترے هم واجب ثابتيږي او په ټول امت کښې يو مجتهد هم په مقتدي باندے د فاتحه نه روستو قرأت واجب نه وائي. ښکاره خبره ده چه د دهغے احاديثو باندے هغه خلق مخاطب دي کوم باندے چه د فاتحه نه علاوه نور قرأت هم واجب دے او دا هغه خلق دے چه بغير د جماعت نه (امامتئ نه) ځان له مونځ ادا کوي. ددے وجے نه جليل القدر صحابي حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه فرمائي "چه مونځ کښې څوک "فاتحه" اونه لولي د هغه مونځ نه کيږي. ليکن که امام پسے ولاړ وي (مقتدي وي) نو "فاتحه" به نه وائي. د امام بخاري رحمة الله عليه د استاذانو استاذ امام سفيان بن عيينه رحمة الله عليه فرمائي چه "حديث لَا صَلَاةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ" د هغه چا په حقله دے چه ځان له يواځے مونځ کوي د مقتدي په حقله نه دے. (ابوداؤد) د امام بخاري رحمة الله عليه استاذ امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه فرمائي. چه دا حديث د يواځے ځان له مونځ کونکي په حقله دے. (ترمذي) د امام بخاري رحمة الله عليه شاګرد امام ترمذي رحمة الله عليه هم دا حديث د ځان له يواځے مونځ کونکي په باره کښې مني ددے وجے نه داسے قسم دلائل د غير مقلدينو د دعوے سره لرے تعلق هم نشته. باقي پاتے شو دويم قسم دلائل (چه واضح غير صحيح دي) په هغے کښې د غير مقلدينو په غاړه دوه خبرے ثابتول دي (۱) اول دا چه حديث صحيح او متواتر دے ځکه چه د کتاب الله او د حديث متواتر خلاف متواتر حديث اوريدے شي نه خبر واحد منلے شي نه ضعيف حديث (۲) دويم

په دوي دا ثابتول دي چه ددوي دليل حديث آيت وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ نه د روستو زمانې دے او كله چه دا دواړه ثبوتونه نه وي نو ددوي هغه ضعيف احاديث نه په حنفي اصولو صحيح دي نه په شافعي اصولو. په حنفي اصولو ځكه' چه د احنافو په نزد اول دا ضروري قاعده ده. چه خبر واحد' د كتاب الله خلاف نه وي. او ددوي دليل په واضح ډول د كتاب الله خلاف دے ځكه چه د كتاب الله آيت' د اُمّت په اجماع سره د مونځ په حقله نازل شويدے پدے آيت كښې د قرات په وخت (د انصات) د چپ اوسيدو حكم دے په دے حديث كښې د قرأت په وخت د لوستلو حكم دے بيا دا حديث د متواتر سنتو خلاف دے ځكه چه صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم په مانځه كښې د نبي عليه الصلاة والسلام قرأت اوريدو (بخاري جلد اول ص ۶۸۲) دا حديث د اجماع امت هم خلاف دے د څلورو واړو امامانو په دے اجماع ده چه كوم مقتدي په ركوع كښې شامل شو هغه ركعت بيا موندو. (هغه فاتحه نه ويلے ده نه ئے اوريدلے ده) د شافعي اصولو مطابق ددے حديث سند ګډوډ دے دَ نافع حالت معلوم نه دے .د عباده د استاذ ذكر نشته او د محمد بن اسحاق' عدالت او حفظ باندے خلقو بد ويلے دي (مجروح العدالة والحفظ دے) نو دا حديث شاذ او منكر دے ددے تفصيل د آثار السنن په حاشيو ليكلے شته ددے وجے نه دا خبر واحد صحيح هم نه دے او كه چرے صحيح اومنلے شي. نو بيا دا ثابتول هم ګران دي چه دا حديث د آيت وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْآن نه روستو دے له دے كبله ډير روايات كه صحيح هم وو منسوخ شويدي. د عمل قابل نه دي. مثلاً په صحيح احاديثو كښې دي (۱) چه رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم به مانځه كښې بيت المقدس ته مخ كوو. او كله چه بيت اللّه طرفته په مانځه كښې د مخ كولو حكم قرآن كښې راغے نو ټولو په دے آيت عمل شروع كړو. د بيت المقدس طرفته د مخ كولو احاديث پخواني او مخكني او كنړلے شو. (۲) په مانځه كښې د يو بل سره د خبرو كولو احاديث صحيح دي ليكن روستو چه:

قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ اللّٰه ته (خاموش) غلے او دريږئ

آيت نازل شو نو د خبرو كولو اجازت والا احاديثو باندے عمل باقي پاتے نشو. (۳) د اسلام په اولني دور كښې د بعضے صحابهٔ كرامو متعه كول او شراب څښل په بخاري او مسلم كښې موجود دي ليكن دغه واقعات د متعه او د شرابو د حرام والي نه د مخكښې زمانے دي. نو داسے دلته كښې هم دا صورت دے چه مقتدي ته فاتحه ويل دا پخوانے حكم دے اوس منسوخ دے كه چرے غير مقلدين د آياتونو د نازليدونه مخكني احاديثو باندے عمل كوي. نو د خپل جماتونو (مسجدونو) محراب دے بيت المقدس طرفته كړي. په مونځ كښې دِ يو بل سره خبرے هم كوي. چه خلق دهوكه كښې پاتے نشي اوپه دے پوهه شي چه دا غير مقلدين په پخواني احاديثو عمل كوي. او د اسلام د مكمل كيدو د اعمالو نه منكر دي. ددے تفصيل نه دا په ښكاره ډول واضحه شوه. چه د احنافو مسلك چه مقتدي به فاتحه او نور قرأت نه واني د قرآن و سنت نه ثابت حقيقت دے او د مخالفينو مسلك كمزور او منسوخ دلائلو باندے عمل كول دي. (امين اوكاړوي)

۷۱۶: حَدَّثَنَا مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ

۷۱۶: موسي' ابو عوانه' عبدالملك بن عمير' جابر بن سمرهؓ روايت كوي' چه د كوفے خلقو عمرؓ ته د سعدؓ

الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ جَابِرِبْنِ سَمُرَةَ قَالَ شَكَى اَهْلُ الْكُوفَةِ سَعْدًا اِلَى عُمَرَ فَعَزَلَهُ وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْهِمْ عَمَّارًا فَشَكَوْا حَتّٰى ذَكَرُوْا اَنَّهُ لَايُحْسِنُ يُصَلِّيْ فَاَرْسَلَ اِلَيْهِ فَقَالَ يَا اَبَا اِسْحَاقَ اِنَّ هٰؤُلَاءِ يَزْعُمُوْنَ اَنَّكَ لَا تُحْسِنُ تُصَلِّيْ قَالَ اَمَّا اَنَا وَاللّٰهِ فَاِنِّيْ كُنْتُ اُصَلِّيْ بِهِمْ صَلٰوةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَااَخْرِمُ عَنْهَا اُصَلِّيْ صَلٰوةَ الْعِشَاءِ فَاَرْكُدُ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَاُخِفُّ فِي الْاُخْرَيَيْنِ قَالَ ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ يَا اَبَا اِسْحَاقَ فَاَرْسَلَ مَعَهُ رَجُلًا اَوْ رِجَالًا اِلَى الْكُوْفَةِ يَسْأَلُ عَنْهُ اَهْلَ الْكُوْفَةِ وَلَمْ يَدَعْ مَسْجِدًا اِلَّا سَاَلَ عَنْهُ وَيُثْنُوْنَ عَلَيْهِ مَعْرُوْفًا حَتّٰى دَخَلَ مَسْجِدًا لِبَنِيْ عَبْسٍ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ يُقَالُ لَهُ اُسَامَةُ بْنُ قَتَادَةَ يُكْنٰى اَبَا سَعْدَةَ فَقَالَ اَمَّا اِذَا نَشَدْتَّنَا فَاِنَّ سَعْدًا لَّايَسِيْرُ بِالسَّرِيَّةِ وَلَا يَقْسِمُ بِالسَّوِيَّةِ وَلَا يَعْدِلُ فِي الْقَضِيَّةِ قَالَ سَعْدٌ اَمَاوَاللّٰهِ لَاَدْعُوَنَّ بِثَلَاثٍ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ عَبْدُكَ هٰذَا كَاذِبًا قَامَ رِيَاءً وَّ سُمْعَةً فَاَطِلْ عُمْرَهُ وَاَطِلْ فَقْرَهُ وَ عَرِّضْهُ بِالْفِتَنِ وَكَانَ بَعْدُ اِذَا سُئِلَ يَقُوْلُ شَيْخٌ كَبِيْرٌ مَفْتُوْنٌ اَصَابَتْنِيْ دَعْوَةُ سَعْدٍ قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ فَاَنَا رَاَيْتُهُ

شکایت او کړه، نو عمرؓ سعدؓ مات کړلو، او عمار ئے ذ هغے خلقو حاکم جوړ کړلو هغے خلقو ذ سعد ډیر شکایتونه او کړل، دے پورے ئے بیان او کړه، چه هغه مونځ په ښه شان سره نه کوي، نو عمرؓ هغه را او بلهٔ، او ورته ئے اووے، اے ابو اسحاقه، دا خلق وائي، چه ته مونځ ښهٔ شان سره نه کوے، هغه ورته اووے، واوره، په خدائے م دے قسم وي دوي سره ما داسے مونځ ادا کړے دے، څنګه چه به ذ حضورؐ مونځ وو، وړمبنو دوو رکعاتو کښ به م زيات وخت اخستو، او آخر دوو رکعاتو کښ به م تخفيف کولو، عمرؓ ورته او فرمائيل، اے ابو اسحاقه، ستا نه هم دغه اميد وو. بيا عمرؓ يو سړے يا څو سړي، سعدؓ سره کوفے ته اوليږل، چه ذ کوفے والو نه ذ سعدؓ باره کښ پښتنه اوکړي، نو هغوي لاړل او داسے يو جمات ئے پرے نه ښودلو، چه هغے کس ئے ذ سعدؓ کيفيت پښتلے نهٔ وي، او ټولو خلقو ذ هغهٔ ښهٔ تعريف کولو، تر دے چه ذ بني عبس جمات ته لاړل، نو هغوي کښ يو سړے اودريد، هغه ته به ئے اسامه بن قتاده وے، ذ هغهٔ کُنيت ابو سعده وو، هغهٔ اووے، واورئے هر کله چه تاسو مونږ له قسم را کړو، نو مجبوراً زه دا وايم، چه سعد به لښکر سره جهاد له خپله نه تلو او ذ غنيمت تقسيم به ئے نهٔ برابرولو او فيصله کښ به ئے انصاف نه کولو، سعد دے آوريدو سره اووے، واوره، زهٔ تاته درے بد دُعاګانے کوم، اے اللّٰه، که ستا دا بنده دروغجن وي، ذ نمود او نمائش ذ پاره دے وخت ولاړ وي، نو ذ دهٔ عمر زيات کړے او خواري نيستي کښ ئے آخته کړے او فتنو کښ ئے واچوے (نو هم دغسے او شوه) او ذ دے نه پس چه به ذ هغه نه ذ حال احوال پښتنه کولے شوه، نو وئيل به ئے چه ذ ايولوئے عمر بوډايم، فتنو کښ آخته يم، ماته ذ سعد بد دُعا لږيدلے ده، عبدالملک (ذ حديث راوي) وائي، ما هغه

بَعْدُ قَدْ سَقَطَ حَاجِبَاهُ عَلٰى عَيْنَيْهِ مِنَ الْكِبَرِ وَاِنَّهُ لَيَتَعَرَّضُ لِلْجَوَارِيْ فِي الطُّرُقِ يَغْمِزُهُنَّ.

ليدلے وو چه، دَ هغهٔ دواړه ورروځے دَ هغهٔ په سترګو دَ بوډا توب په سبب را پريوتے وے، هغه نه په لارو کښې جينکو سره چيړ کولو، او دست درازي به ئے پرے کوله.

۷۱۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ مَحْمُوْدِبْنِ الرَّبِيْعِ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَاصَلٰوةَ لِمَنْ لَّمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ.

۷۱۷: علي بن عبداللّٰه، سفيان، زهري، محمود بن ربيع، عباده بن صامتؓ روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، دَ هغے سړي مونځ نهٔ کيږي چه سورهٔ فاتحه او نهٔ وائي.

۷۱۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُبْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَدَخَلَ رَجُلٌ يُّصَلِّيْ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ فَقَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَرَجَعَ فَصَلّٰى كَمَا صَلّٰى ثُمَّ جَآءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ثَلَاثًا فَقَالَ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَآ اُحْسِنُ غَيْرَهٗ فَعَلِّمْنِيْ فَقَالَ اِذَا قُمْتَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ مَاتَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّا رْفَعْ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ جَالِسًاوَّا فْعَلْ فِيْ صَلٰوتِكَ كُلِّهَا.

۷۱۸: محمد بن بشار، يحيٰي، عبيد اللّٰه سعيد بن ابي سعيد، ابي سعيد (مقبري) ابو هريرهؓ روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو ځلے جمات ته تشريف يوړلو، نو هغه وخت يو سړے راغے، او مونځ ئے او کهٔ هغے نه پس ئے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته سلام او کهٔ حضورؐ دَ سلام جواب ورکړلو، او، وے فرمائيل، لاړ شه، مونځ او که، ځکه چه تا مونځ نهٔ دے کړے، هغه لاړ او مونځ ئے او که، څنګه چه مخکښې ځل ئے کړے وو بيا راغے او نبي صلي اللّٰه ته ئے سلام او کهٔ حضورؐ ورته او فرمائيل، ځه لاړ شه، او مونځ او کهٔ، ځکه چه تا مونځ نهٔ دے کړے دغه شان درے ځله او شو، بيا هغهٔ اووے ځما دے په هغه ذات قسم وي چه تاسوئے په حقه را ليږلے ئے. زهٔ دَ دے نه بهتر مونځ نشم کولے، نو ما ته تعليم راکړئے. حضورؐ ورته او فرمائيل، کوم وخت چه تهٔ مانځه دَ پاره اودريږے، نو تکبير او وايه، هغے نه پس چه څومره قرآن تا ته يادوي، هغه اولوله، بيا رکوع او کړه، تر دے چه رکوع کښې اطمينان سره شے، بيا سر اوچت کړه، تر دے چه نيغ اودريږے بيا سجده او کړه، تر دے چه سجده کښې اطمينان سره شے بيا سر اوچت کړه، تر دے چه اطمينان سره کينے او خپل ټول مونځ کښې دغسے کوه.

۱. دے ټولو رواياتو كښې چرته دا ذكر نشته چه امام مونځ كښې قرأت وائي نو د مقتدي د پاره د قرآن قرأت ضروري دے دے احاديثو كښې چه كوم احكام بيان دي. احناف د هغې نه انكار نه كوي. او په دے احاديثو كښې د غير مقلدينو د پاره څه واضح دليل هم نشته. د جماعت (د امامتي) په مونځ كښې د امام او د مقتدي تعلق د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد ډير كمزورے دے ارد امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دا تعلق ډير قوي دے دَ امامتي (د جماعت) په حقله چه كوم احاديث دي امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د هغې په رڼا كښې دا اصول جوړ كړيدي. د امام شافعي رحمة الله عليه مسلک هم د احاديثو نه بَهر نه دے ليكن امام ابو حنيفه رحمة الله عليه چه د كوم احاديثو او د قرآن په رڼا كښې چه كوم فيصله كړيده هغه په دے حقله ډيره واضحه او روښانه ده. د امامانو رحمة الله عليهم د وخت نه تر اوسه پورے په دے ډير ليكل شويدي په لويو اوړدو كتابونو كښې تفصيل ډير دے هغه مطالعه كول پكار دي.

## بـــاب ۴۸۷: اَلْقِـرَأَةِ فِـي الظُّهْرِ.

## باب ۴۸۷: دَ ماسپخين مونځ كښې دَ قرأت بيان.

۷۱۹: حَـدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَـدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُـمَيْرٍ عَـنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَعْدٌ كُـنْتُ اُصَلِّيْ بِهِمْ صَلٰوةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوتِي الْعَشِيِّ لَآ اَخْرِمُ عَنْهَا كُنْتُ اَرْكُدُ فِي الْاُوْلَيَيْـنِ اَحْذِفُ فِي الْاُخْرَيَيْنِ فَقَالَ عُمَرُ ذٰلِكَ الظَّنُّ بِكَ.

۷۱۹: ابو النعمان، ابو عوانه، عبدالملک بن عمير، جابر بن سمره عوايت كوي، سعد (عمرؓ ته دَ خپل شكايت په جوابكښې) اووے، چه ما به كوفه والو ته دَ عشي دواړه مونځونه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ مونځ په مثل كول، هغې كښې به مِ دَ هيڅ قِسم نقصان نهٔ كولو" وړمبو دوو ركعاتو كښې به مِ وخت اخستو، او ورستني دوو ركعاتو كښې به مِ تخفيف كولو، نو عمرؓ اووے، چه ستا په حقله څما هم دغه خيال وو.

۷۲۰: حَـدَّثَـنَا اَبُـوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَـدَّثَـنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ يَـقْـرَاُفِـي الـرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ عَنْ صَلٰوةِ الـظُّـهْرِ بِـفَـاتِـحَـةِ الْـكِتَابِ وَسُوْرَتَيْنِ يُطَوِّلُ فِي الْاُوْلٰى وَيُقَصِّرُ فِـي الثَّانِيَةِ وَيُسْمِعُ الْاٰيَةَ اَحْيَا نًاوَ كَانَ

۷۲۰: ابو نعيم، شيبان، يحيي، عبدالله بن ابي قتادة، ابو قتاده روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم به دَ ماسپخين وړمبنو دوو ركعاتو كښې سورة فاتحه او (څه نور) دوه سورتونه لوستل وړمبني ركعت كښې به ئے لوئے سورت لوستلو او دويم ركعت كښې به ئے دَ هغې نه وړوكے سورت لوستلو او دَ سحر په

يَقْرَأُ فِي الْعَصْرِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَتَيْنِ وَكَانَ يُطَوِّلُ فِي الْاُوْلٰى وَكَانَ يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى مِنْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ وَيُقَصِّرُ فِي الثَّانِيَةِ.

ورمبي رکعات کښې (هم) لونے سورت لوستلو، او دويم رکعت کښې به نے ذ هغے نه وړوکے سورت لوستلو.

۷۲۱: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَارَةُ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ قَالَ سَاَلْنَا خَبَّابًا اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ قَالَ نَعَمْ قُلْنَا بِاَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تَعْرِفُوْنَ قَالَ بِاضْطِرَابِ لِحْيَتِهٖ.

۷۲۱: عمرو بن حفص، حفص بن غياث اعمش، عماره بن عمير، ابو معمر بيان كوي، ما حباب بن ارت ته اووے، آيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين او مازيګر مونځ کښې قرآن لوستلو نو هغۀ اووے، او مونږ ورته اووے تا ته څنګه معلومه شوه هغۀ اووے ذ حضورؐ ذ ږيرے ذ حرکت په وجه.

## باب ۴۸۸: اَلْقِرَأَةِ فِي الْعَصْرِ.

## باب ۴۸۸: ذ مازيګر مونځ کښې ذ قرأت بيان.

۷۲۲: حَدَّثَنَا محمد بن يوسف قَالَ حَدَّثَنَا سفيان عن الاعمش عن عمارة بن عمير عن ابي معمر قلت لِخَبَّابِ بْنِ الْاَرَتِّ اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ بِاَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ قِرَآءَتَهٗ قَالَ بِاضْطِرَابِ لِحْيَتِهٖ.

۷۲۲: محمد بن يوسف، سفيان، اعمش، عماره بن عمير، ابو معمر بيان كوي، ما حباب بن ارت ته اووے آيا نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين او مازيګر مونځ کښې قرآن لوستلو، هغه اووے او ما ورته اووے، تا ته څنګه ذ حضورؐ قرآن لوستل معلوم شو، هغۀ اووے، ذ حضورؐ د ږيرے مبارکے ذ خوزيدونه.

۷۲۳: حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَةٍ وَّيُسْمِعُنَا الْاٰيَةَ اَحْيَانًا.

۷۲۳: مكي بن ابراهيم، هشام، يحيٰي بن ابي كثير، عبداللّٰه بن ابي قتادةؓ روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين او مازيګر دوو رکعاتونو کښې سورۀ فاتحه اوڅه، يو، يو بل سورت لوستلو، او کله کله به يو آيت نيم خمونږ په آوريدو کښې هم راتلو.

**باب ۴۸۹: اَلْقِرَأَةِ فِي الْمَغْرِبِ.**

**باب ۴۸۹: دَ ماښام مونځ کښې دَ قرات بيان.**

۷۲۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ اِنَّ اُمَّ الْفَضْلِ سَمِعَتْهُ وَهُوَ يَقْرَأُ وَالْمُرْسَلَاتِ عُرُفًا فَقَالَتْ يَا بُنَيَّ لَقَدْ ذَكَرْتَنِيْ بِقِرَآتِكَ هٰذِهِ السُّوْرَةِ اِنَّهَا الْاٰخِرُ مَاسَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَافِي الْمَغْرِبِ.

۷۲۴: عبداللّٰه بن يوسف، مالک ابن شهاب، عبد اللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه، ابن عباسؓ روايت کوي، خمـا مور ام فضل (يوخلے مونځ کښې) خمـا نه وَالْمُرْسَلَاتِ عُرفًا واوريدلو، نو وے وئيل اے خما بچيه، ستا دے سورة لوستو سره ماته راياد شو، دا آخري سورت دے، چه ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدلو حضورؐ به دا ماښام کښې لوستلو.

۷۲۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَ لِيْ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ مَّالَكَ تَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارٍ وَّ قَدْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِطُوْلِ الطُّوْلَيَيْنِ.

۷۲۵: ابو عاصم، ابن جريج، ابن ابي مليکه، عروه بن زبير، مروان بن حکم روايت کوي ماته يزيد بن ثابتؓ اووے، دا څنګه خبره ده، چه تهٔ ماښام کښې واړهٔ واړهٔ سورتونه لولے، حالانکه ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه دَ دوو لويو سورتونو نه هم لوئے سورتونه لوستل آوريدلے دي.

**باب ۴۹۰: اَلْجَهْرِ فِي الْمَغْرِبِ.**

**باب ۴۹۰: دَ ماښام مونځ کښې اوچت آواز سره دَ قرآن لوستو بيان.**

۷۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَفِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ.

۷۲۶: عبداللّٰه بن يوسف، مالک، ابن شهاب، محمد بن جبير بن مطعمؓ، جبير بن مطعمؓ روايت کوي، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه ماښام کښې "وَالطُّور" لوستل واوريدل.

**باب ۴۹۱: اَلْجَهْرِ فِي**

**باب ۴۹۱: دَ ماسختن مونځ کښې او چت آواز**

الْعِشَاءِ.

سره دَ قران لوستو بيان.

۷۲۷: حَدَّثَنَا اَبُوا لنُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ الْعَتَمَةَ فَقَرَأَ اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ فَسَجَدَ فَقُلْتُ لَهٗ قَالَ سَجَدْتُ خَلْفَ اَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا اَزَالُ اَسْجُدُ بِهَا حَتّٰى اَلْقَاهُ.

۷۲۷: ابو النعمان، معتمر، سليمان، بكر، ابو رافع روايت كوي، يو خلے ما ابو هريرهٌ سره د ماسختن مونخ او كۀ، نو هغۀ، اذا السمآء انشقت" اولوستو او سجده ئے اوكړله، ما هغۀ ته اووے (چه دا تا څۀ اوكړل) هغۀ ونيلے، چه ما ابو القاسم صلي اللّٰه عليه وسلم پسے (ددے سورت په دے مقام) سجده كړے ده، نوزۀ به هميشه دے كښې سجده كوم، تر دے چه حضورؐ سره يو ځائے شم.

۷۲۸: حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَآءِ فِيْ اِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ.

۷۲۸: ابو الوليد، شعبه، عدي بيان كوي ما دَ براء نه واوريدل، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم يو سفر كښې وو، نو حضورؐ دَ ماسختن مونخ كښې "والتين وَالزَّيتون" اولوستو.

## باب ۴۹۲: الْقِرَاءَةِ فِي الْعِشَآءِ بِالسَّجْدَةِ.

## باب ۴۹۲: ماسختن كښې دَ سجدے دَ سورت لوستو بيان.

۷۲۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ ثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ ثَنَا التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ الْعَتَمَةَ فَقَرَأَ اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ فَسَجَدَ فَقُلْتُ مَاهٰذِهٖ قَالَ سَجَدْتُ فِيْهَا خَلْفَ اَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا اَزَالُ اَسْجُدُ فِيْهَا حَتّٰى اَلْقَاهُ.

۷۲۹: مسدد، يزيد بن زريع، تيمي، ابو بكر، ابو رافع روايت كوي، ما يو ځلے ابو هريرهٌ سره دَ ماسختن مونخ اوكۀ، نو هغۀ " اِذا السَّمَآءُ انشقَّتُ " اولوست، او سجده ئے اوكړه، ما هغۀ ته اووے، داڅۀ دے اوكړل، نو هغۀ اووے، ما دے سورت كښې ابو القاسم صلي اللّٰه عليه وسلم پسے سجده كړے ده، نوزۀ به دے كښې هميشه سجده كوم تر دے چه نبيؐ سره يو ځائے شم.

## بـاب ۴۹۳: الْقِرَاءَةِ فِي الْعِشَآءِ.

## باب ۴۹۳: دَ ماسختن مونخ كښې دَ قرأت بيان.

۷۳۰: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى

۷۳۰: خلاد بن يحيي، مِسعر، عدي

ثَنَا مِسْعَرٌ ثَنِيْ عَدِيُّ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّهُ سَمِعَ الْبَرَآءَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِشَآءِ بِالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ وَمَاسَمِعْتُ اَحَدًا اَحْسَنَ صَوْتًا مِّنْهُ اَوْ قِرَآئَةً.

بن ثابت، براءَ روايت كوي، چه ما ذ نبي صلي الله عليه وسلم نه ذ ماسختن مونخ كښې وَالتِّيْنِ والزَّيْتُوْنِ، لوستل واوريدل، او ما ذ حضورؐ نه زيات خوش آواز اوښه لوستونكے نۀ دے ليدلے.

بـــاب ۴۹۴: يُطَوِّلُ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَيَحْذِفُ فِي الْاُخْرَيَيْنِ.

باب ۴۹۴: ورمبني دوه ركعاته دے اوږده كړي او ورستي دوه ركعاته دے مختصر كړي.

۷۳۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ عَوْنٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَبْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ عُمَرُ لِسَعْدٍ لَقَدْ شَكَوُكَ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى الصَّلٰوةِ قَالَ اَمَّا اَنَا فَاَمُدُّ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَاَحْذِفُ فِي الْاُخْرَيَيْنِ وَلَا اٰلُوْمَا اقْتَدَيْتُ بِهٖ مِنْ صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَدَقْتَ ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ اَوْظَنِّيْ بِكَ.

۷۳۱: سليمان بن حرب، شعبه، ابو عون، جابر بن سمرهؓ روايت كوي، عمرؓ، سعدؓ ته اووے، ذ كوفے خلقو هره خبره كښې ستا شكايت كړے دے، تر دے چه مونخ كښې هم، سعد اووے واوره، ما به ورمبي دوه ركعاته اوږده كول، او ورستي دوه ركعاته به م مختصر كول او ما (ذ هغوي ذ شكايت څه) پرواه نۀ ساتله، په دے چه ما ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم ذ مونځ متابعت كړے دے. عمرؓ اووے ريښتيا وائے ستا په حقله م هم دغه خيال دے، يا (دائے اووے، چه) څما خيال ستا متعلق هم داسے دے.

باب ۴۹۵: اَلْقِرَأَةِ فِي الْفَجْرِ وَقَالَتْ اُمُّ سَلَمَةَ قَرَاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالطُّوْرِ.

باب ۴۹۵: ذ سحر مونخ كښې ذ قرأت بيان و ام سلمهؓ وائي چه نبي صلي الله عليه وسلم ذ سحر مانخه كښې وَالطُّورِ اولوست.

۷۳۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سَيَّارُبْنُ سَلَامَةَ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَاَبِيْ عَلٰى اَبِيْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ فَسَاَلْنَاهُ عَنْ وَقْتِ الصَّلٰوةِ فَقَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ حِيْنَ تَزُوْلُ

۷۳۲: آدم، شعبه، سيار بن سلامه بيان كوي، زۀ او څما پلار، ابو برزه اسلمي له ورغلو، او د هغۀ نه موذ مونځونو ذ وختونو تپوس اوكۀ، نو هغۀ اووے، نبي صلي الله عليه وسلم به ذ ماسپخين مونځ هغه وخت كولو چه نمر به په زوال شولو، او د مازيگر مونځ به ئے داسے وخت كولو، چه سړے به ذ مدينے انتها پورے واپس

الشَّمْسُ وَالْعَصْرَ وَيَرْجِعُ الرَّجُلُ اِلٰى اَقْصَى الْمَدِيْنَةِ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَنَسِيْتُ مَا قَالَ فِى الْمَغْرِبِ وَلَا يُبَالِىْ بِتَاخِيْرِ الْعِشَاءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ وَلَا يُحِبُّ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَلَا الْحَدِيْثَ بَعْدَهَا وَيُصَلِّى الصُّبْحَ فَيَنْصَرِفُ الرَّجُلُ فَيَعْرِفُ جَلِيْسَهُ وَكَانَ يَقْرَأُ فِى الرَّكْعَتَيْنِ اَوْ اِحْدٰهُمَا مَابَيْنَ السِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ.

كيدے شو' او نمر كښې به لازېروالے نه وو راغلے (سيار) وائي' او ما نه هير شو' چه ډ مابنام ډ مونځ په حقله ابو برزه څه اووے' او حضورﷺ به ډ ماسختن مونځ په تاخير كښې ډ شپے ډ دريمے حصے پورے څه پروا نه كوله' او ډ ماسختن نه مخكښې اودۀ كيدل او ډ هغے نه پس خبرے كول ئے نۀ خوښول' او ډ سحر مونځ به ئے داسے وخت كولو' چه سړے به فارغ شو' نو خوا كښې سړے به ئے پيژندلو' او حضورﷺ به دواړو ركعتونو يا هر يو ركعت كښې شپيتو آيتونو نه سلو آيتونو پورے لوستل.

۷۳۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ عَطَآءٌ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَاهُرَيْرَةَ يَقُوْلُ فِىْ كُلِّ صَلٰوةٍ يَقْرَأُفَمَا اَسْمَعَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْمَعْنَا كُمْ وَمَآ اَخْفٰى عَنَّآ اَخْفَيْنَا عَنْكُمْ وَاِنْ لَّمْ تَزِدْ عَلٰى اُمِّ الْقُرْاٰنِ اَجْزَاَتْ وَاِنْ زِدْتَّ فَهُوَ خَيْرٌ.

۷۳۳: مسدد' اسماعيل بن ابراهيم' ابن جريج' عطاء' ابو هريرهؓ وائي' ټولو مونځونو كښې قرآن لوستے شي'' كومو مونځونو كښې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم (په اوچت آواز قرأت) مونږ ته واورولو' هغے كښې مونږ هم (په اوچت آواز) تاسو ته آوروو' او كومو مونځونو كښې چه مونږ نه په پټه قرأت اوكۀ' هغے كښې مونږ هم (غلے آواز سره قرأت) ستا سو نه پټ كوو' او كه ډ سورة فاتحه نه زيات قرأت او نۀ كړے' نو هنم كافي دے' او كه زيات اوكړے' نو بهتر دے.

**ف**: دے نه معلوميږي چه حضرت ابو هريرهؓ ډ سورة فاتحه قرأت ضروري ګڼړلو صحابهؓ دے مسئله كښې مختلف وو' بعضو به مقتديانو ډ پاره قرأت ضروري نۀ ګڼړلو' بلكه مكروه به ئے ګڼړلو' او بعضو به ضروري ګڼړلو او نۀ مكروه' او بعضو به ضروري ګڼړلو' په دے وجه كوم وخت چه ډ ابو بكرؓ نوسي جناب قاسم نه دا مسئله وُپښتلے شوه' نو هغۀ اووے' چه ډيرو پيشوايانو منع كړے ده' او ډيرو پيشوايانو ډ دے حكم كړے دے ډ خپل طرفه ئے هيڅ جواب ورنۀ كړلو' ګويا جناب قاسم دے طرف ته اشاره اوكړه' چه دا ټول ډ رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابهؓ وو' ډ چا اقتدا چه كوے هدايت يافته به ګڼړلے شے.

## بَابٌ ۴۹۶: اَلْجَهْرُ بِقِرَاءَةِ الصَّلٰوةِ الْفَجْرِ وَقَالَتْ اُمُّ سَلَمَةَ طُفْتُ وَرَآءَ النَّاسِ وَالنَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

باب ۴۹۶: ډ سحر مونځ كښې اوچت آواز سره ډ قرات كولو بيان او ام سلمهؓ وائي' چه مونږ ډ خلقو ډ ورستو نه طواف اوكۀ' دغه وخت نبي صلي الله عليه وسلم

وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ يَقْرَأُ بِالطُّوْرِ.

۷۳۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْعَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ طَآئِفَةٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ عَامِدِيْنَ اِلٰى سُوْقِ عُكَاظٍ وَّقَدْ حِيْلَ بَيْنَ الشَّيٰطِيْنِ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ وَاُرْسِلَتْ عَلَيْهِمُ الشُّهُبُ فَرَجَعَتِ الشَّيَاطِيْنُ اِلٰى قَوْمِهِمْ فَقَالُوْا مَالَكُمْ قَالُوْا حِيْلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ وَاُرْسِلَتْ عَلَيْهَا الشُّهُبُ قَالُوْا مَا حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ اِلَّا شَيْءٌ حَدَثَ فَاضْرِبُوْا مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا فَانْظُرُوْا مَا هٰذَا الَّذِيْ حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ فَانْصَرَفَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ تَوَجَّهُوْا نَحْوَ تِهَامَةَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِنَخْلَةَ عَامِدِيْنَ اِلٰى سُوْقِ عُكَاظٍ وَّهُوَ يُصَلِّيْ بِاَصْحَابِهٖ صَلٰوةَ الْفَجْرِ فَلَمَّا سَمِعُوا الْقُرْاٰنَ اسْتَمَعُوْا لَهٗ فَقَالُوْا هٰذَا وَاللّٰهِ الَّذِيْ حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ فَهُنَا لِكَ حِيْنَ رَجَعُوْٓا اِلٰى قَوْمِهِمْ قَالُوْا يٰقَوْمَنَآ اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا يَّهْدِيْٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ اَحَدًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى

دَ سحر مونځ كعبه كښې ادا كولو او "والطور" ئے لوستلو.

۷۳۴: مسدد، ابو عوانه، ابو بشر، سعيد بن جبير، ابن عباسؓ روايت كوي، يوه ورځ نبي صلي الله عليه وسلم خپلے صحابهٔ ژ سره عكاظ بازار طرف ته روان شو، او (دغه وخت) شيطانان دَ آسمان خبرونو راوړلو نه بند كړے شوے وو، او په هغوي به شعلے غرځولے شوے. نو شيطانان خپل قوم ته واپس راغلل، قوم ورته اووے، ستاسو څهٔ حال دے (دے خل له مو هيڅ خبر راونه ړلو) شيطانانو ورته اووے، مونږ دَ پاره آسمان پورے تلل منع كړے شو، او اوس په مونږ شعلے را غرځولے شي، قوم ورته اووے چه ستاسو دَ آسمان پورے دَ بنديز څهٔ خاص داسے وجه پيدا شوے ده، چه حال كښې ظاهره شوے ده، نو دَ زمكے دَ مشرق او مغرب تولو آړخونو كښې سفر اوكړے، او اوګورئے، هغه څهٔ څيز دے، چه هغے ستاسو او دَ آسماني خبر مينځ كښې بنديز راوستے دے، (هغوي دغه تلاش كښې اووتل) نو كوم خلق چه دوي كښې تِهامه طرف ته راغلے وو، هغوي نبي صلي الله عليه وسلم له راغلل، او حضورؐ دغه وخت مقام نخله كښې عكاظ بازار ته روان وو، كوم وخت چه دغه پيريان هلته او رسيدل، نو حضورؐ دغه وخت خپلو اصحابو سره د سحر مونځ كولو، دغے پيريانو چه قران واوريدلو، نو وے وئيل، په خدائے مو دے قسم وي، هم دادے، چه ستاسو او دَ آسمان دَ خبرونو په مينځ كښې ئے بنديز پيدا كړے دے نو دَ هغے ځائے نه خپل قوم ته واپس لاړل، او وے وئيل، اے خمونږ قوم مونږ يوه عجيبه قرآن آوريدلے دے، چه دَ هدايت لار ښائي، نو مونږ په هغے ايمان راوړلو، اوس به مونږ خپل پروردګار سره هيڅوك نهٔ شريكوو، نو الله پاك په خپل

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَاِنَّمَا اُوْحِيَ اِلَيْهِ قَوْلُ الْجِنِّ.

نبي صلي الله عليه وسلم دا آيتونه نازل كړل "قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ الخ: او حضور ته دَ جنّاتو خبرے اترے نقل كړے شوے.

**۷۳۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا اُمِرَ وَسَكَتَ فِيْمَآ اُمِرَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا وَ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.**

۷۳۵: مسدد، اسماعيل، ايوب، عكرمه، ابن عباسؓ روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم ته چه كومو مونځونو كښې (دَ جهر) حكم وركړے شوے وو، هغے كښې حضورؐ قرأت اوكړ، او كومو كښې (چه دَ خاموشي) حكم وركړے شوے وو هغے كښې ئے سكوت اوكړ، او ستا پروردګار هيرونكے نه دے (چه په هيره څه غلط حكم وركړي) او يقينا تاسو خلقو دَ پاره (افعالو او اقوالو، د) رسول الله صلي الله عليه وسلم كښې يوه ښه پيروي ده.

**بَابُ ۴۹۷: اَلْجَمْعُ بَيْنَ السُّوْرَتَيْنِ فِيْ رَكْعَةٍ وَّ الْقِرَآءَةِ بِالْخَوَاتِيْمِ وَبِسُوْرَةٍ قَبْلَ سُوْرَةٍ وَ يُذْكَرُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ السَّآئِبِ قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُوْنَ فِي الصُّبْحِ حَتّٰى اِذَا جَآءَ ذِكْرُ مُوْسٰى وَهَارُوْنَ اَوْذِكْرُ عِيْسٰى اَخَذَتْهُ سَعْلَةٌ فَرَكَعَ وَقَرَأَ عُمَرُ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى بِمِائَةٍ وَّعِشْرِيْنَ اٰيَةً مِّنَ الْبَقَرَةِ وَفِي الثَّانِيَةِ بِسُوْرَةٍ مِّنَ الْمَثَانِيْ وَقَرَأَ الْاَحْنَفُ بِالْكَهْفِ فِي الْاُوْلٰى وَفِي الثَّانِيَةِ بِيُوْسُفَ اَوْيُوْنُسَ وَذَكَرَ اَنَّهُ صَلّٰى عُمَرَ الصُّبْحَ بِهِمَا وَقَرَأَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ بِاَرْبَعِيْنَ اٰيَةً مِّنَ الْاَنْفَالِ وَفِي الثَّانِيَةِ بِسُوْرَةٍ مِّنَ الْمُفَصَّلِ وَقَالَ قَتَادَةُ فِيْمَنْ يَقْرَأُ بِسُوْرَةٍ وَّاحِدَةٍ فِيْ رَكْعَتَيْنِ اَوْيُرَدِّدُ**

باب ۴۹۷: يو ركعت كښې دَ دوو سورتونو دَ آخري ايتونو او دَ يو سورت مخكښې دَ يو سورت او دَ سورت دَ ابتدائي آيتونو لوستو بيان، عبدالله بن سائب نه منقول دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ سحر مونځ كښې سورهٔ مؤمنون او لوست، تر دے چه كوم وخت حضورؐ دَ موسٰي او هارونؑ ذكر ته اورسيد، نو حضورؐ له ټوخے (كهانسي) راغے، او حضورؐ ركوع او كړله، عمرؓ ورمبي ركعت كښې شپږ شلے آيتونه دَ سورهٔ بقره او دويم ركعت كښې يو سورت دَ مثاني اووے او احنف ورمبي ركعت كښې سورهٔ كهف او دوئم كښې سورهٔ يوسف يا يونس اووے، او بيان ئے او كړ، چه ما عمرؓ سره دَ سحر مونځ دے دوو سورتونو سره كړے دے او ابن مسعودؓ ورمبي ركعت كښې دَ انفال څلويښت آيتونه او دويم ركعت كښې يو ركعت مفصل اووے قتادهؓ دَ هغې سړي باره كښې چه يو سورت (دوو حصو كښې) دوو ركعاتو كښې اولولي، يا يو سورت پوره پوره دواړو ركعاتو كښې او لولي، دا اووے چه ټول دَ اللّٰه كتاب دے (ځنګه چه غواړئے، هغسے لولئے) او عبيد الله دَ ثابت نه او هغه دَ انسؓ نه دا روايت كړے دے چه يو انصاري سړي مسجد قبا كښې دَ انصارو امامت كولو، دَ هغهٔ دا

سُوْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فِيْ رَكْعَتَيْنِ كُلُّ كِتَابُ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ كَانَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ يَؤُمُّهُمْ فِيْ مَسْجِدِ قُبَآءَ وَكَانَ كُلَّمَا افْتَتَحَ سُوْرَةً يَّقْرَأُ بِهَا لَهُمْ فِي الصَّلٰوةِ مِمَّا يَقْرَأُ بِهٖ افْتَتَحَ بِقُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهَا ثُمَّ يَقْرَأُ بِسُوْرَةٍ اُخْرٰى مَعَهَا وَ كَانَ يَصْنَعُ ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَكَلَّمَهٗ اَصْحَابُهٗ وَ قَالُوْا اِنَّكَ تَفْتَتِحُ بِهٰذِهِ السُّوْرَةِ ثُمَّ لَاتَرٰى اَنَّهَا تُجْزِئُكَ حَتّٰى تَقْرَأَ بِاُخْرٰى فَاِمَّا تَقْرَأُ بِهَا وَ اِمَّا اَنْ تَدَعَهَا وَتَقْرَأُ بِاُخْرٰى فَقَالَ مَآاَنَا بِتَارِكِهَا اِنْ اَحْبَبْتُمْ اَنْ اَؤُمَّكُمْ بِذٰلِكَ فَعَلْتُ وَاِنْ كَرِهْتُمْ تَرَكْتُكُمْ وَ كَانُوْا يَرَوْنَ اَنَّهٗ مِنْ اَفْضَلِهِمْ وَ كَرِهُوْآ اَنْ يَّؤُمَّهُمْ غَيْرُهٗ فَلَمَّآ اَتٰهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرُوْهُ الْخَبَرَ فَقَالَ يَافُلَانُ مَايَمْنَعُكَ اَنْ تَفْعَلَ مَا يَاْمُرُكَ بِهٖ اَصْحَابُكَ وَمَايَحْمِلُكَ عَلٰى لُزُوْمِ هٰذِهِ السُّوْرَةِ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَقَالَ اِنِّيْ اُحِبُّهَا قَالَ حُبُّكَ اِيَّاهَا اَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ.

عادت وو چه کومو مونځونو کښې به قرأت (اوچت آواز سره) کیدلو هغې کښې چه به کله هغه یو سورت شروع کول غوښتل چه د هغوي مخکښې ئې اولولي نو د "قُل هُوَ اللّٰهُ احد" نه به ئې شروع کولو دے نه پس به ئې بل سورت دے سره ونیلو. هغه به هر رکعت کښې دغسې کول. د هغه ملګرو په دے حقله هغه سره خبرے اترے اوکړے او ورته ئې اووے چه ته ذدے سورت نه شروع کوے او بیا ته په دے نه پوهیږے چه دا درله کافي دے تر دے چه بل سورت لولې نو یا خو ته بس دا سورت (قل هوالله احد) وایه (بل سورت ورسره مه یو ځائے کوه) یا دا پریږده او بل سورت وایه هغې سرې اووے چه زۀ دا (سورت) نه پریږدم که تاسو دے سره ما خپل امام جوړول غواړئے تو خیر کنې زۀ به ستاسو امامت پریږدم او هغه خلق په دے پوهیدل چه هغه ذدے ټولو نه افضل دے او هغوي دا خبره بنۀ او نه ګنړله چه بل څوک دے د هغوي امام جوړ شي کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم (د معمول مطابق) هغوئي پله تشریف یوړلو او هغے خلقو دا کیفیت حضورؐ ته بیان کۀ نو نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائیل اے فلانیه په دے حقله ستا په لاره کښې څۀ خنډدے چه ته هغه او کړے چه ستا ملګري ئې تاته وائي او تۀ کومے خبرے دے ته تیار کړے ئې چه هر رکعت کښې دا سورت (قُل هوالله احد) وائې نو هغې سړي اووے خما دے سورت سره محبت دے نو حضورؐ ورته او فرمائیل د دے محبت به تا جنت کښې داخل کړي (الله پاک دے خمونږ هم دے سورت سره محبت او جنت نصیب کړي اللّٰهم آمین).

**ف**: د قرآن مجید سورتونه په اعتبار د تعداد د آیتونو علماؤ څلور قسمونو کښې تقسیم کړے دي کومو سورتونو کښې چه د سل ایتونو نه زیات دي هغے ته طوال وائي او کومو کښې چه سل یا د سلو قریب آیتونه دي هغے ته ذوات المئين وائي او کومو سورتونو کښې چه د سلو نه ډیر کم آیتونه دي هغے ته مثاني وائي او سورۀ حجرات نه آخر قرآن پورے چه کوم سورتونه وي هغے ته مفصل وائي.

۱. په دې باب كښې څلور مسئلې بيان شوېدې. دوه سورتونه په يو ركعت كښې ويل د احنافو په نزد روا دي. په بعضې حالاتو كښې ډيره غوره خبره ده د احنافو په نزد دا مستحب دي چه په يو ركعت كښې پوره سورت اولوستلې شي. څه حصه ويل څه برخه پريخودل اګرچه روا دي د قرآن د ترتيب نه خلاف اولنې سورت روستو ويل اوروستنې سورت وړاندې ويل مكروهه دي. ابن نجيم ليكلي دي چه د قرآن په تلاوت كښې د ترتيب خيال ساتل واجب دي خو په مونځ كښې ترتيب واجب نه دې د ترتيب په پريخودلو سره سجده سهو نه واجبيږي. څومره روايات چه ددې متعلق راغلي دي هغه د قرآن د ترتيب نه مخكښې دي. ددې وجې نه دغه روايات د حنفي مسلک خلاف نه دي.

۷۳۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ وَآئِلٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى ابْنِ مَسْعُوْدٍ فَقَالَ قَرَأْتُ الْمُفَصَّلَ اللَّيْلَةَ فِيْ رَكْعَةٍ فَقَالَ هَذًّا كَهَذِّ الشِّعْرِ لَقَدْ عَرَفْتُ النَّظَائِرَ الَّتِيْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرِنُ بَيْنَهُنَّ فَذَكَرَ عِشْرِيْنَ سُوْرَةً مِّنَ الْمُفَصَّلِ سُوْرَتَيْنِ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ.

۷۳۶: آدم شعبه، عمرو بن مره، ابو وائلؒ بيان كوي، چه ابن مسعودؓ ته يو سړے راغے، او هغهٔ اووے چه ما ذ شپے ذ مفصل سورت يو ركعت كښې او لوست، او وئيلے چه ما ذ شپے ذ مفصل سورت يو ركعت كښې اولوست، او، وئيلے ما دومره زر اولوست، څنګه چه شعر زر وئيلے شي، زهٔ هغه هم معنې سورتونه پيژنم، چه هغه به رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ځائے لوستل، بيا هغهٔ مفصل شل سورتونه ذكر كړل چه (هغے كښې) دوه سورتونه هر ركعت كښې رسول الله صلي الله عليه وسلم لوستل.

## بَاب ۴۹۸: يَقْرَأُ فِي الْاُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ.

## باب ۴۹۸: آخري دوو ركعاتو كښې دے صرف سورة فاتحه لولي.

۷۳۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا هُمَّامٌ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْاُوْلَيَيْنِ بِاُمِّ الْكِتَابِ وَسُوْرَتَيْنِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُخْرَيَيْنِ بِاُمِّ الْكِتَابِ وَيُسْمِعُنَا الْاٰيَةَ وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى مَا لَايُطِيْلُ

۷۳۷: موسٰي بن اسماعيل، همام، يحيٰي، عبداللّٰه، بن ابي قتاده، ابو قتادهؓ روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه و سلم به ذماسپخين دوو ركعاتو كښې سوره فاتحه او دوه نور سورتونه دے سره لوستل، او آخري دوو ركعاتو كښې به ئے صرف سورة لوستل، او آخري دوو ركعاتو كښې به ئے صرف سورة فاتحه لوستله، او مونږ ته به ئے يو نيم آيت كله كله اورؤلو هم، او وړمبي ركعت له به ئے دومره طول وركولو، چه دوئيم ركعت له به ئے نهٔ

فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهٰكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهٰكَذَا فِي الصُّبْحِ.

ورکولو، او ذ مازيګر او سحر مونځ کښې به هم دغه صورت وو.

باب ۴۹۹: مَنْ خَافَتَ الْقِرَآءَةَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ.

باب ۴۹۹: چاچه ذ ماسپخين او مازيګر مونځ کښې رو (آهسته) قرات او کړ، ذ هغهٔ بيان.

۷۳۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ قَالَ قُلْنَا لِخَبَّابٍ اَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ قَالَ نَعَمْ قُلْنَا مِنْ اَيْنَ عَلِمْتَ قَالَ بِاِضْطِرَابِ لِحْيَتِهٖ.

۷۳۸: قتيبه، جرير، اعمش، عماره بن عمير ابو معمر روايت کوي، مونږ خبابؓ ته اووے، آيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين او مازيګر مونځ کښې قرات کولو خباب اووے، او، مونږ ترے تپوس او کړ، تاته څنګه معلومه شوه، خبابؓ اووے ذ ګيرے مبارکے خوزيدو نه.

باب ۵۰۰: اِذَا اَسْمَعَ الْاِمَامُ الْاٰيَةَ.

باب ۵۰۰: امام که مقتدي ته څهٔ آيت واوروي.

۷۳۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ بِاُمِّ الْكِتَابِ وَسُوْرَةٍ مَّعَهَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ مِنْ صَلٰوةِ الظُّهْرِ وَصَلٰوةِ الْعَصْرِ وَيُسْمِعُنَا الْاٰيَةَ اَحْيَانًا وَّ كَانَ يُطِيْلُ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى.

۷۳۹: محمد بن يوسف، اوزاعي يحيٰي بن ابي كثير، عبداللّٰه بن ابي قتاده، ابو قتاده روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين او مازيګر ورمبي دوو رکعاتو کښې سورة فاتحه او دے سره يو بل سورة زياتولو، او کله کله به يو آيت مونږ واوريدلو، او ورمبي رکعت ته به ئے (زيات) طول ورکولو.

باب ۵۰۱: يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى.

باب ۵۰۱: ورمبے رکعت دے اوږد کړي.

۷۴۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ

۷۴۰: ابو نعيم، هشام، يحيٰي بن ابي كثير، عبداللّٰه بنا بي قتاده، ابو قتاده روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به ذ ماسپخين

أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولٰى مِنْ صَلٰوةِ الظُّهْرِ وَيُقَصِّرُ فِي الثَّانِيَةِ وَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي صَلٰوةِ الصُّبْحِ.

د موسخ ورمبي ركعت اوږد اوا كولو او دويم ركعت به (د ورمبي ركعت نه) كم وو. او دغسي به ئي د سحر به مونخ كښې هم كولو

۱. امام بخاري رحمة الله عليه د آمين به زوره ويلو باب ليكلے دے ليكن به دے سلسله كښې ئے كوم مرفوع حديث ذكر كړے نه دے خكه چه به دے حقله كوم صحيح مرفوع حديث نشته. قرآن پاک نه ثابته ده. چه "آمين" دعا ده. د آيت قد أُجِيبَتْ دَعْوَتُكُمَا (ستاسو د دواړو دعا قبوله شويده) تفسير دا دے چه موسٰي عليه السلام دعا غوښتلے وه او هارون عليه السلام به هغے دعا "آمين" ويلے وو. ددے وجے نه الله تعالٰي دواړو ته دعا كونكي اوويل (الدرالمنثور جلد دريم ص ۳۱۵) امام بخاري رحمة الله عليه د "عطاء" رحمة الله عليه نه دا روايت نقل كړيدي عطاءً فرمايلي دي "آمين دعا ده" بيا به قرآن مجيد كښې د الله تعالٰي حكم دے:

أُدْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ

تاسو الله تعالٰي نه دعا به عاجزئ او به پټه (خاموشئ) غواړئ بے شكه الله تعالٰي د حد نه تجاوز كونكي نه خوښوي.

په بل ځائے كښې الله تعالٰي فرمايلي دي.

إِذْ نَادٰى رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا

چه كله هغه خپل رب ته به پټه آواز اوكړو

دواړه خبرے قرآن مجيد نه ثابت شوے چه "آمين" دعا ده. او به اصل كښې دعا به پټه ويل دي. د امام بخاري رحمة الله عليه استاذ امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه به صحيح سند سره د حديث شريف روايت كړے دے "چه كله نبي كريم صلي الله عليه وسلم به امام وو آمين به ئے پټ آواز (په رو سره) وايه.

أَخْفٰى بِهَا صَوْتَهُ

خپل آواز به ئے آمين سره رو كړو.

(مسند احمد جلد ۴ ص ۳۱۶)

بيا د يو خليفه راشد رضي الله عنهم نه آمين به زوره ويل ثابت نه دي حضرت عمر او حضرت علي رضي الله عنهما به په اوچت آواز "آمين" نه ويلو. (طحاوي جلد اول ص ۱۴۰ امين اكاړوي)

## بَابُ ۵۰۲: جَهْرِ الْإِمَامِ بِالتَّامِينِ

## باب ۵۰۲: دَ امام اوچت آواز سره دَ آمين ونيلو بيان

وَقَالَ عَطَاءٌ أٰمِينَ دُعَاءٌ أَمَّنَ ابْنُ الزُّبَيْرِ وَ مَنْ وَّرَاءَهُ حَتّٰى إِنَّ لِلْمَسْجِدِ لَلَجَّةً وَّ كَانَ أَبُوْهُرَيْرَةَ يُنَادِي الْإِمَامَ لَا تَفُتْنِي بِأٰمِينَ وَقَالَ نَافِعٌ كَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَدَعُهُ وَيَحُضُّهُمْ وَسَمِعْتُ مِنْهُ فِي ذٰلِكَ خَبَرًا.

او عطاء ونيلے دي چه آمين يوه دُعا ده ابن زبير او هغے خلقو چه دَ هغهٔ نه ورستو وو، دومره (اوچت آواز سره) آمين اووے، چه جمات كښې كړنګا شوه، او ابو هريرهؓ به امام ته ونيلے چه خما آمين مهٔ ضائع كوه، نافع وائي، ابن عمرؓ به آمين نهٔ ترک كولو، او خلقو ته به ئے ترغيب وركولو او ما دَ هغهٔ نه دے باره كښې يو حديث آوريدلے دے.

۷۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَاَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهُمَا اَخْبَرَاهُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَمَّنَ الْاِمَامُ فَاَمِّنُوْا. فَاِنَّهُ مَنْ وَّافَقَ تَاْمِيْنُهُ تَاْمِيْنَ الْمَلٰٓئِكَةِ غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ آمِيْن.

۷۴۱: عبدالله بن يوسف، مالک ابن شهاب، سعيد بن مسيب و ابو سلمه بن عبدالرحمن ابو هريرةؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم وخت چه امام آمين اووائي، نو تاسو هم آمين اووائي، خکه چه ذ چا آمين ذ ملائکو آمين سره يو خائے شي، نو ذ هغه مخکنني گناه معاف شي ابن شهاب وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم به آمين ونيلے.

ف: ذ امام ابو حنيفهؒ په نزد آمين رو آواز سره ونيل مسنون دي، ذ هغوي دا خيال دے، چه حديث ذ هغوي ذ قول هم تائيد کوي، ځنګه چه ذ فقي په کتابونو کښ ذکر دي، په دے حقله هم روايات مختلف دي، خوذ چا په نزد چه کوم حديث قوي طريقے سره ثابت شوے دے نو هغۀ په هغے عمل کړے دے.

۱. په مونځ کښ "آمين" د سورت فاتحه ختمولو نه پس ويل دي په دے کښ د هيڅا اختلاف نشته. د بعضے امامانو رحمة الله عليهم دا مسلک دے چه "آمين" په زوره ويل دي. ليکن د امام ابو حنيفه او امام مالک رحمة الله عليهما په نزد "آمين" په رو (غلے) ويل دي. امام بخاري رحمة الله عليه چه په دے موقعه کوم حديث نقل کړيدے د هغے نه دا نه ثابتيږي چه په مونځ کښ "آمين" په زوره ويل دي. د بعض صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم عمل يے نقل کړيدے چه عبدالله بن زبير رضي الله عنهما او د هغه ملګرو په مونځ کښ آمين په دومره زوره ويلو چه جمات (جومات) کښ به ګړنګاوه. علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي "دا غالباً" د هغه زمانے واقعه ده. چه عبدالله بن زبير رضي الله عنهما به عبدالملک بن مروان پسے قنوت ويلو (خيرے به يے کولے) او عبدالملک بن مروان به عبدالله بن زبير رضي الله عنهما پسے قنوت ويلو. د هغے زمانے حالات داسے وو چه هغے کښ به بے احتياطي او مبالغه کيده. ددينه علاوه چه امام بخاري رحمة الله عليه کوم آثار نقل کړيدي د هغے نه د "آمين" په زوره يا په رو سره ويل نه معلوميږي. امام بخاري رحمة الله عليه دے باب کښ يو حديث نقل کړيدے ددينه علاوه دوه صحيح احاديث نور هم شته. ليکن په واضح ډول ددينه دانه معلوميږي چه آمين به مانخه کښ په زوره يا په رو ويلے شي. ددے وجے نه امامانو رحمة الله عليهم په خپل اجتهاد سره چه کوم مطلب د حديث باندے پوهه شويدي. هغه مطلب يے بيان کړيدے.

## باب ۵۰۳: فَضْلِ التَّاْمِيْنِ.

باب ۵۰۳: ذ آمين ونيلو ذ فضيلت بيان.

۷۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۷۴۲: عبدالله بن يوسف، مالک، ابو

يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَالَ اَحَدُكُمْ اٰمِيْنَ وَقَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ فِي السَّمَآءِ اٰمِيْنَ فَوَافَقَتْ اِحْدٰهُمَا الْاُخْرٰى غُفِرَلَهُ مَاتَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

الزناد، اعرج، ابو هريرةؓ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، كله چه تاسو كښې څوک آمين وائي، نو ملائكې آسمان كښې آمين وائي، بيا دې دواړو كښې چه ذَ چا (آمين) ذ يو بل موافق شي، نو ذ هغه مخكني ګناهونه معاف شي.

## بَاب ٥٠۴: جَهْرِ الْمَامُوْمِ بِالتَّاْمِيْن.

باب ٥٠۴: ذَ مقتديانو وچت آواز سره د آمين ونيلو بيان.

٧۴٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَ لَا الضَّآلِّيْنَ فَقُوْلُوْا اٰمِيْنَ فَاِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلَ الْمَلٰٓئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَاتَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

٧۴٣: عبدالله بن مسلمه، مالک، سمي (ذ ابو بكر آزاد كرده غلام) ابو صالح سمان، ابو هريرةؓ روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. كله چه امام، غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلا الضَّآلِّيْن: اووائي، نو تاسو آمين وائې، ځكه چه د چا وينا ذَ ملائكو وينا سره يو ځائې شي، نو ذ هغه مخكني ګناهونه معاف شي.

ف: دې حديث نه ذَ باب عنوان (اوچت آواز سره آمين ونيل) نهٔ ثابتيږي، ځكه چه حديث كښې داسې الفاظ موجود نهٔ دي، چه ذَ هغې دا مطلب وي (چه اوچت آواز سره اٰمين وائې) بلكه صرف دومره ده، چه تاسو آمين وائې.

١. دا دويم حديث دې چه ددينه د آمين په زوره ويلو د ثابتولو كوشش كولې شي. صرف دې حديث شريف كښې دومره حكم دې چه كله امام "وَلَا الضَّآلِّيْن" تـه اورسي نو تاسو آمين وايئ. دا غير مقلدين وائي. چه مقتديانو ته به دا څرنګ معلوميږي چه امام "ولا الضَّآلِّيْن" تـه اورسيدو تر څو چه امام په زوره "آمين" ويلې نه وي. ددينه معلوميږي چه "آمين" په زوره ويل پكار دي. ليكن مونږ احناف دا وايو چه دې حديث شريف كښې يو حكم بنودلې شويدې چه "وَلَا الضَّآلِّيْن" تـه امام اورسيږي نو تاسو تـه "آمين" ويل پكار دي. اوس كه چرې د ماسختن او د صبا او د ماښام مونځونو كښې وَلَا الضَّآلِّيْن واورئ نو آمين اوايئ ليكن د ماسپخين او د مازيګر مونځونو كښې چه په اوچت آواز قرأت نشته چا ولا الضّالين اوريدلې نه دې نو څه به وائي؟ حديث شريف كښې اصول بنودلې شويدې د عمل كولو د صورت بيان پكښې نشته ددې وجې نه د

حديث شريف نه د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مسلک خلاف ترېے څه نه ثابتيږي (امين اکاړوي)

باب ۵۰۵: إِذَا رَكَعَ دُوْنَ الصَّفِّ.

باب ۵۰۵: صف ته د رسيدو نه مخکښې د رکوع کولو بيان.

۷۴۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنِ الْاَعْلَمِ وَهُوَ زَيَادٌ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ اَنَّهُ انْتَهٰى اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَاكِعٌ فَرَكَعَ قَبْلَ اَنْ يَّصِلَ اِلَى الصَّفِّ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ زَادَكَ اللّٰهُ حِرْصًا وَّ لَا تَعُدْ.

۷۴۴: موسى بن اسماعيل، همام، زياد، حسن، ابو بكرؓ روايت كوي، چه هغه نبي صلي الله عليه وسلم ته قريب داسې حالت كښې اورسيد، چه حضورؐ ركوع كښې وو، نو هغه مخكښې ددې نه چه صف كښې شامل شي، ركوع اوكړه، ددې ذكر نبي صلي الله عليه وسلم ته او شولو، نو حضورؐ ...... او فرمائيل، الله دې ستا شوق زيات كړي خو بيا داسې مه كوه.

باب ۵۰۶: اِتْمَامِ التَّكْبِيْرِ فِي الرُّكُوْعِ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْهِ مَالِكُ ابْنُ الْحُوَيْرِثِ.

باب ۵۰۶: ركوع كښې د تكبير پوره كولو بيان، دا ابن عباسؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كړې دې، او د دې حديث په راويانو كښې مالک بن حويرث هم شامل دې.

۷۴۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ اَبِي الْعَلَاءِ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ قَالَ صَلّٰى مَعَ عَلِيٍّ بِالْبَصْرَةِ فَقَالَ ذَكَّرَنَا هٰذَا الرَّجُلُ صَلٰوةً كُنَّا نُصَلِّيْهَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ اَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَفَعَ وَكُلَّمَا وَضَعَ.

۷۴۵: اسحاق، واسطي، خالد، حريري، ابو العلاء، مطرف، عمران بن حصينؓ بيان كوي، ما بصره كښې عليؓ سره مونځ اوكړ، عمرانؓ وائي چه هغه (علي مرتضىؓ) مونږ ته هغه مونځ را ياد كړ، چه مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره كولو، بيا عمرانؓ اووې، چه كله به حضورؐ هغه پاسيدۀ او كله به ښكته كيدۀ نو تكبير به ئې وئيلو.

۷۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ

۷۴۶: عبدالله بن يوسف، مالک، ابن شهاب، ابو سلمه، د حضرت ابو هريرهؓ روايت كوي، چه هغۀ به

شِهَابٍ عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّهٗ کَانَ یُصَلِّیْ بِهِمْ فَیُکَبِّرُ کُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ فَاِذَا انْصَرَفَ قَالَ اِنِّیْ لَاَشْبَهُکُمْ صَلٰوةً بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

خلقو ته مونځ ورکولو، کله چه به خکته کیده او پاسیده، نو تکبیر به ئے وئیلو، او کوم وخت چه به دَ مانځه نه فارغ شو، نو وئیل به ئے چه زهٔ مونځ کښې رسول الله صلي الله و علیه وسلم سره ستاسو دَ ټولو نه زیات مشابه یم.

## بَاب ۵۰۷ : اِتْمَامِ التَّکْبِیْرِ فِی السُّجُوْدِ.

## باب ۵۰۷ : سجدو کښې دَ تکبیر پوره کولو بیان.

۷۴۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَیْدٍ عَنْ غَیْلَانَ بْنِ جَرِیْرٍ عَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ صَلَّیْتُ خَلْفَ عَلِیِّ ابْنِ طَالِبٍ اَنَا وَعِمْرَانُ ابْنُ حُصَیْنٍ فَکَانَ اِذَا سَجَدَ کَبَّرَ وَاِذَا رَفَعَ رَأْسَهٗ کَبَّرَ وَاِذَا نَهَضَ مِنَ الرَّکْعَتَیْنِ کَبَّرَ فَلَمَّا قَضَی الصَّلٰوةَ اَخَذَ بِیَدِیْ عِمْرَانُ ابْنُ حُصَیْنٍ فَقَالَ قَدْ ذَکَّرَنِیْ هٰذَا صَلٰوةَ مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ لَقَدْ صَلّٰی بِنَا صَلٰوةَ مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

۷۴۷: ابو النعمان، حماد بن زید، غیلان بن جریر، مطرف بن عبدالله روایت کوي، ما او عمران بن حصین، علي بن ابي طالب پسے مونځ او کهٔ، نو هغه ما اولید، چه کوم وخت به ئے سجده کوله، نو تکبیر به ئے کولو او کوم وخت چه به ئے سر (دَ سجدے نه) اوچتولو، نو تکبیر به ئے وئیلو، او کوم وخت چه به ئے دوه رکعاته اوکړل او دریم رکعت دَ پاره به پاسیدلو، نو تکبیر به ئے کولو کوم وخت چه مونږ مونځ اوکهٔ، نو عمران بن حصین خما لاس او نیولو، او ماته ئے اووے چه دے شري (عليؓ) ما ته دَ محمد صلي الله علیه وسلم مونځ را یاد کړلو یا دائے اووے چه بیشکه دهٔ مونږ ته دَ نبي صلي الله علیه وسلم په شان مونځ را کهٔ.

۷۴۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ قَالَ اَخْبَرَنَا هُشَیْمٌ عَنْ اَبِیْ بِشْرٍ عَنْ عِکْرِمَةَ قَالَ رَاَیْتُ رَجُلًا عِنْدَ الْمُقَامِ یُکَبِّرُ فِیْ کُلِّ خَفْضٍ وَّرَفْعٍ وَاِذَا قَامَ وَضَعَ فَاَخْبَرْتُ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَقَالَ اَوَلَیْسَ تِلْکَ صَلٰوةُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا اُمَّ لَکَ.

۷۴۸: عمرو بن عون، هشیم، ابو بشر، دَ عکرمه بیان دے، ما یو سړے مقامِ ابراهیم سره اولید، چه هغه به هر خل دَ خکته کیدو، پاسیدو، او دریدو او کیناستو په وخت تکبیر وئیلو، ما ابن عباسؓ ته بیان او کهٔ (چه دا څنګه مونځ دے) هغه اووے د مور نه خلاص شے، دا دَ نبي صلي الله علیه وسلم په شان مونځ نه دے څه؟

۱. نبي کریم صلي الله علیه وسلم به تولو انتقالاتو (پاسیدو کیناستو' رکوع له تلل سجدې له تلل وغیره) کښې تکبیر (الله اکبر) ویلو. لیکن د صحابهٔ کرامو رضوان الله علیهم په زمانه کښې په دې کښې څه آسانتیا او کړې شوه. حضرت عثمان رضي الله عنه د ډیر بوډاوالي او کمزورتیا په وجه د امامت په وخت کښې بعض تکبیرونه داسې په رو ویل چه اوریدې به نشو' بیا حضرت معاویه رضي الله عنه هم داسې کول' د بنو اُمیه خلیفه ګانو په مونځ کښې د تکبیرونو خیال پریخودلو. تکبیرونه به نې چا نه اوریدل. که چا به د تکبیر خیال ساتلو هغه ته به خلقو "مُتَمِّمُ التَّکْبِیْر" (د تکبیر پوره کونکې) ویل بعض صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم چه کله دا حالت اولیدو' نو هغوي د تکبیر ډیر اهتمام او خیال اوکړلو او خلقوته نې بیان کړل چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم به مونځ خو تکبیرونه ویل.

باب ۵۰۸: التَّکْبِیْرِ اِذَا قَامَ مِنَ السُّجُوْدِ.

باب ۵۰۸: دَ سجدو نه چه فارغ شي اودریږي نو هغه وخت دَ تکبیر ونیلو بیان.

۷۴۹: حَدَّثَنَا مُوْسَی بْنُ اِسْمٰعِیْلَ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِکْرَمَةَ قَالَ صَلَّیْتُ خَلْفَ شَیْخٍ بِمَکَّةَ فَکَبَّرَ ثِنْتَیْنِ وَعِشْرِیْنَ تَکْبِیْرَةً فَقُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ اَحْمَقُ فَقَالَ ثَکِلَتْكَ اُمُّكَ سُنَّةُ اَبِي الْقَاسِمِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ مُوْسٰی حَدَّثَنَا اَبَانُ قَالَ قَتَادَةُ حَدَّثَنَا عِکْرَمَةُ.

۷۴۹: موسٰي بن اسماعیل' همام' قتاده عکرمه روایت کوي' ما یو سړي پسې مونځ او کړ هغه دویشت تکبیرونه اوکړل' نو ما ابن عباسؓ ته اووې' چه هغه احمق دې ابن عباسؓ راته اووې مور دربانديې بوره شه' دَ ابو القاسم سنت هم دادي' او موسٰي اووې مونږ ته ابان په سند دَ قتاده' عکرمه روایت کوي.

۷۵۰: حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ بُکَیْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ عَنْ عُقَیْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ اَبُوْبَکْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَاهُرَیْرَةَ یَقُوْلُ کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ اِلَی الصَّلٰوةِ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَقُوْمُ ثُمَّ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَرْکَعُ ثُمَّ یَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ حِیْنَ یَرْفَعُ صُلْبَهٗ مِنَ الرَّکْعَةِ ثُمَّ یَقُوْلُ وَهُوَقَآئِمٌ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ ثُمَّ یُکَبِّرُ

۷۵۰: یحیٰي بن بکیر' لیث' عقیل ابن شهاب' ابو بکر بن عبدالرحمن بن حارثؒ روایت کوي' ما دَ ابو بکرؓ دا آوریدلې دي' چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به کوم وخت دَ مانځه دَ پاره اودریدلو' نو تکبیر به نې کولو بیا چه رکوع نه به نې سر اوچت کړه' نو سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ به نې ونیلې بیا به نې دَ ولاړې په حالت کښې رَبَّنَا لَكَ الْحَمْد ونیلې. بیا چه سجدې

حِيْنَ يَهْوِيْ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهٗ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَسْجُدُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهٗ ثُمَّ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي الصَّلٰوةِ كُلِّهَا حَتّٰى يَقْضِيَهَا وَ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَقُوْمُ مِنَ الثِّنْتَيْنِ بَعْدَ الْجُلُوْسِ وَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ صَالِحٍ عَنِ اللَّيْثِ وَلَكَ الْحَمْدُ.

د پاره په خکته کیدلو نو تکبیر به یې کولو بیا چه سر به یې د سجدې نه اوچتولو نو تکبیر به یې ونیلو پوره مونځ به یې دغسې کولو او ختمولو او هر کله چه به دوه رکعاتو کښې د ناستې نه پس پاسیدلو نو بیا به یې هم تکبیر کولو.

## بـــاب ٥٠٩: وَضْعِ الْاَكُفِّ عَلَى الرُّكَبِ فِي الرُّكُوْعِ وَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ فِيْ اَصْحَابِهٖ اَمْكَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ.

باب ٥٠٩: رکوع کښې د لاس تلي په ګنډو د ایښودلو بیان. ابو حمید د خپلو دوستانو په یو جلسه کښې بیان اوکړ چه نبي صلي الله علیه وسلم (رکوع کښې) خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو ګنډو ایښودلې وو

٧٥١: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ يَعْفُوْرٍ قَالَ سَمِعْتُ مُصْعَبَ بْنَ سَعْدٍ صَلَّيْتُ اِلٰى جَنْبِ اَبِيْ فَطَبَّقْتُ بَيْنَ كَفَّيَّ ثُمَّ وَضَعْتُهُمَا بَيْنَ فَخِذَيَّ فَنَهَانِيْ اَبِيْ وَقَالَ كُنَّا نَفْعَلُهٗ فَنُهِيْنَا عَنْهُ وَاُمِرْنَا اَنْ نَضَعَ اَيْدِيَنَا عَلَى الرُّكَبِ.

٧٥١: ابو الولید، شعبه ابو یعفور، مصعب بن سعد روایت کوی، ما د خپل پلار په خوا کښې یو ځل مونځ اوکړ نو ما د دواړو لاسونو تلي یو ځائې کړل او د خپلو ګنډو په مینځ کښې مې دباؤ کړل، نو خما پلار زه منع کړم او وئیلې مونږ به داسې کول، نو مونږ ددې نه منع کړے شو، او مونږ ته حکم را کړے شو، چه مونږ خپل لاسونه (رکوع کښې) په ګنډو کیږدو.

## بـــاب ٥١٠: اِذَا لَمْ يُتِمَّ الرُّكُوْعَ.

باب ٥١٠: کله یو سړے رکوع پوره نه کړي.

٧٥٢: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ قَالَ رَاٰى حُذَيْفَةُ رَجُلًا لَّا يُتِمُّ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ وَقَالَ مَا صَلَّيْتَ وَلَوْ مُتَّ مُتَّ عَلٰى غَيْرِ الْفِطْرَةِ الَّتِيْ فَطَرَ اللّٰهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٧٥٢: حفص بن عمر، شعبه، سلیمان، د زید بن وهب بیان دے حذیفه یو سړے اولید، چه هغه رکوع او سجدې پوره نه کولې، نو هغه ورته اووے، چه تا مونځ او نه کړ، او که ته مړ شې نو د هغې دین خلاف به مړ شې، په کوم چه الله، محمد صلی الله علیه وسلم پیدا کړے دے

**باب ۵۱۱: اِسْتِوَاءِ الظُّهْرِ فِي الرُّكُوْعِ وَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ فِيْ اَصْحَابِهٖ رَكَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ حَصَرَ ظَهْرَهٗ.**

**باب ۵۱۱:** رکوع کښې د شا برابر ولو بيان او ابو حميد د خپلو دوستانو جلسه کښې دا بيان اوکړ چه نبي صلي الله عليه وسلم رکوع اوکړله هغې نه پس ئے شا خکته کړه.

**باب ۵۱۲: حَدِّ اِتْمَامِ الرُّكُوْعِ وَ الْاِعْتِدَالِ فِيْهِ وَ الْاِطْمَانِيْنَةِ.**

**باب ۵۱۲:** د رکوع پوره کولو او هغې کښې د اعتدال او اطمينان د حد بيان.

**۷۵۳:** حَدَّثَنَا بَدَلُ ابْنُ الْمُحَبَّرِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِي الْحَكَمُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كَانَ رُكُوْعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسُجُوْدُهٗ وَبَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَاِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوْعِ مَاخَلَا الْقِيَامَ وَالْقُعُوْدَ قَرِيْبًا مِنَ السَّوَآءِ.

**۷۵۳:** بدل بن محبر، شعبه، حکم ابن ابي ليلي، حضرت براءؓ روايت کوي چه د نبي صلي الله عليه وسلم رکوع او د حضورؐ د سجدې او سجدو مينځ کښې د ناستې او هغه حالت چه حضورؐ به د رکوع نه خپل سر اوچتولو، تقريبا برابر وو، البته قيام او قعود به طويل وو.

**باب ۵۱۳: اَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ لَايُتِمُّ رُكُوْعَهٗ بِالْاِعَادَةِ.**

**باب ۵۱۳:** د رسول الله صلي الله عليه وسلم هغې سړي ته چه رکوع پوره نه کړي د مونځ دوباره کولو د حکم ورکولو بيان.

**۷۵۴:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلّٰى ثُمَّ جَآءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلسَّلَامَ فَقَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ثَلَاثًا فَقَالَ

**۷۵۴:** مسدد، يحيي بن سعيد، عبيد الله سعيد مقبري، ابو سعيد، ابو هريرهؓ روايت کوي، يو خلے نبي صلي الله عليه وسلم جمات ته تشريف يوړلو، دے کښې يو سړے راغے او هغه مونځ اوکړ هغې نه پس د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شو او سلام ئے عرض کړ، نو نبي صلي الله عليه وسلم جواب ورکړ او وے فرمايل، لاړ شه او مونځ اوکړه، ځکه چه تا مونځ او نه کړ. هغه بيا مونځ اوکړ هغې نه پس راغے، او نبي صلي الله عليه وسلم ته ئے سلام اوکړ، حضورؐ ورته او فرمايل، لاړ شه، مونځ اوکړه، ځکه چه تا مونځ نه دے کړے دغه شان درې ځله ورته حضورؐ او فرمايل بيا هغې سړي اووے خما دې په هغې ذات قسم وي، چه تاسو ئے په حقه رالېږلي ئے، زه ددې نه بهتر

يَـزِيْـدَ بْـنَ أَبِـيْ حَبِيْبٍ وَيَـزِيْدُ مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَلْحَلَةَ وَابْنُ حَلْحَلَةَ مِنَ ابْـنِ عَـطَآءٍ وَقَالَ أَبُوْ صَالِحٍ عَنِ اللَّيْثِ كُـلُّ فَـقَـارٍ مَّـكَانَهُ وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَّحْـمَى ابْـنِ أَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَـزِيْـدُ بْـنُ أَبِيْ حَبِيْبٍ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ حَدَّثَهُ كُلُّ فَقَارٍ.

ابـن حـلـحـلـه د عـطـاء نـه آوریدلے دي. او ابو صـالـح د لیث نه "كلُ فقـار مَكـانـهٗ" نقل كړے دي او ابـــن مـبــــارک د یـــحـیـــي بـــن ابـــوب نـــه روایـــت کــړے دي. وانـــي چـــه مـــا تـــه یـــزید بـــن ابـــي حبیـــب بیـــان او کـــه هـغـــه تـــه محـمـد بـن عـمـر بـن حـلـحـلـه "کل فقـاره"<sup></sup>(۱) لـفـظ سـره روایت او که.

۱. دا حـدیـث شـریف پـه مـختـلف سـنـدونو سره روایت شویدے لیکن د ټولو روایتونو دارومدار په مـحـمـد بن عمرو بن عطاء دے لیکن هغه پخپله ابو حمید ساعدي رضي الله عنه په مونخ ادا کولو لیدلے نه وؤ. لیکن ابو حمید الساعدي رضي الله عنه نه يو بل سړي روایت کړے دے لیکن اکثرو رواياتو کښې دهغه سړي نوم نشته صرف څو رواياتو کښې دهغه نوم ذکر شویدے.

## بَاب ۵۳۶: مَنْ لَّمْ يَرَ التَّشَهُّدَ الْأَوَّلَ وَاجِبًا لِأَنَّ النَّبِـيَّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ وَلَمْ يَرْجِعْ.

باب ۵۳۶: د هـغـے چـابیـان چه اول تشـهـد ئے واجب او نهٔ گنړلو(۱) په دے چه نبي صلي الله عليه وسلم دوو رکعـاتـونـه پـس اودریدلو، او تشهد تـه واپـس نـه شولو.

۱. ددے نـه مـراد اوله قعده ده. او واجب د فرضو په معني دے یعني چه د چا په نزد اوله قعده فرض نه ده. پـه دے حدیث شریف کښې دا واقعه ذکر ده چه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه اوله قعده پاتے شوے وه دهـغـے د پاره ئے سجده سهو او کړه. که چرے اوله قعده فرض وے نو په سجده سهو کار نه کیدو. بلکے مـونـځ بـه ئـے مـات شـوے وو. که چرے اوله قعده سنت وے نو بیا د سجده سهوے ضرورت نه وؤ ددے نه مـعـلـومـه شـوه. چـه د واجب نه مراد په بخاري کښې فرض دے او اوله قعده نه دومره ضروري ده چه پاتے کیدو سره ئے مونځ ماتیږي او نه داسے غیر ضروري ده چه پاتے کیدو سره ئے د سجده سهو ضرورت نشته بلکے د اهم او غیر اهم په مینځ کښې ده او داسے عمل ته احناف واجب وائي، محدثین او شوافع حضرات د واجب اصطلاح نه مني لیکن بیا هم د سجده سهوے نه انکار کولے نه شي. احنافو چه کله اولیدل چه داسے اعمال شته چه نه فرض دي نه سنت، مینځ مینځ کښې دي هغوي ورته واجب نوم کیخودلو.

۷۸۸: حَـدَّثَـنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْـنُ هُرْمُزَ مَوْلٰى بَنِيْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَقَالَ مَرَّةً مَوْلٰى رَبِيْعَةَ بْنِ

۷۸۸: ابـو الیـمـان، شعیب، زهري، عبدالرحمن بـن هـرمـز (د نبـي عبـدالمطلب آزاد کـرده غـرم) یـا د ربیـعــه بــن حـــارث آزاد کــرده غـلام عبـدالـلّــه بـن بـحیـنــه وائـي (چــه د قبیـلـه ازد شنوعـه او بني عبد

الْحارِث اَنَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بُحَيْنَةَ قَالَ وَهُوَ مِنْ اَزْدِ شَنُوْءَةَ وَ هُوَ حَلِيْفُ لِبَنِيْ عَبْدِ مَنَافٍ وَّكَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمُ الظُّهْرَ فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ لَمْ يَجْلِسْ فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ حَتّٰى اِذَا قَضَى الصَّلٰوةَ وَ انْتَظَرَ النَّاسُ تَسْلِيْمَهُ كَبَّرَ وَهُوَ جَالِسٌ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يُسَلِّمَ ثُمَّ سَلَّمَ.

مناف نه وو۔ او د نبی صلی الله علیه وسلم اصحابو کښې وو)۔ وائي چه نبي صلی الله علیه وسلم (یو ورځې) خلقو ته د ماسپخین مونځ ورکه. نو په هیره په ورمبي دوو رکعاتونو (دختمیدو) او دریدلو. او قیعده ئې او نه کړه. نو خلق هم حضور سره او دریدل. تر دې چه کوم وخت حضور مونځ ختم که. او خلق د حضور د سلام ګرځولو په انتظار کښې شو. نو حضور په ناسته ناسته تکبیر او کړه. او د سلام ګرځولو نه مخکښې ئې دوه سجدې او کړې دې نه پس ئې سلام او ګرځولو.

## بَابٌ ۵۳۷: اَلتَّشَهُّدُ فِي الْاُوْلٰى.

## باب ۵۳۷: ورمبنۍ قعده کښې د تشهد لوستو بیان.

۷۸۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا بَكْرٌ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فَقَامَ وَعَلَيْهِ جُلُوْسٌ فَلَمَّا كَانَ فِيْ اٰخِرِ صَلٰوتِهِ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ.

۷۸۹: قتیبه، بکر، جعفر بن ربیعه، اعرج د عبدالله بن مالک بن بحینه نه روایت کوي. هغه اووې، یوه ورځ مونږ ته رسول الله صلي الله علیه وسلم د ماسپخین مونځ راکه. نو د دونیم رکعت د سجدو نه پس اودریدلو حالانکه حضور له ناسته ضروري وه. خو کوم وخت چه حضور د مونځ آخري قعده او کړه نو دوه سجدې (سهو) ئې او کړې.

## بَابٌ ۵۳۸: اَلتَّشَهُّدُ فِي الْاٰخِرَةِ.

## باب ۵۳۸: آخري قعیده کښې د تشهد لوستو بیان.

۷۹۰: حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقِ بْنِ سَلَمَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كُنَّا اِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا السَّلَامُ عَلٰى جِبْرِيْلَ

۷۹۰: ابو نعیم، اعمش، شفیق بن سلمه د عبدالله (بن مسعود) نه روایت کوي. هغه اووې چه هر کله مونږ به د نبي صلي الله علیه وسلم پسې مونځ کښې دالوستل "السلام علي جبرئیل و میکائیل السلام علي فلان و فلان" نو

وَمِيْكَائِيْلَ السَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ وَّ فُلَانٍ فَالْتَفَتَ اِلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ فَاِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَ الصَّلَوٰةُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ فَاِنَّكُمْ اِذَا قُلْتُمُوْهَا اَصَابَتْ كُلَّ عَبْدٍ لِلّٰهِ صَالِحٍ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ.

يو خلې رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم مونږ طرف ته اوكتل او وې فرمائيل چه اللّه خو خپله سلام دے (په هغه د سلام ليږ لو څه ضرورت) تاسو كښې چه كله څوک مونځ كوى نو وائي دے " التحيات للّه والصلواة والطيبات السلام عليک ايها النبیّ و رحمة اللّه و بركاته السلام علينا و على عباد اللّه الصّلحين " (څكه چه كله دا تاسو اووائے نو دا دعا به د اللّه هر نيک بنده ته رسي يا څوك هغه آسمان كښې وي يا زمكه كښې) اشهد ان لا اله الا اللّه و اشهد ان محمدا عبده و رسوله

۱. دا د قعدے دعا ده دېته تشهد ويلے شي بنده اول وائي تحيات صلوات طيبات اللّه تعالي د پاره دي. دا درے الفاظ د عمل د وينا په ټولو خايستونو مشتمل دي. يعنى ټول غوره والے ټولے نيكئ د اللّه د پاره دي. چه ډير پاک دے په دے كښې بيا نبى كريم صلي اللّه عليه وسلم باندے سلام ويل دي او په سلام ويلو كښې د خطاب لفظ "عليک" (په تا باندے) راغلے دے صحابهٔ كرام رضي اللّه عنهم ته دا ذعا څكه ښودلے شوېده. چه په هغه وخت كښې نبي كريم صلي اللّه عليه وسلم د هغوي په مينځ كښې موجود وو اوس چه مونږ ته دا دعا څرنګ رسيدلے ده. هغسے ويل دي ددے دعا ترتيب دا دے چه كله بنده التَّحِيَّاتُ والصَّلَوٰاتُ والطيّبات سره د مَلَكُوْت دروازه په لاس او وهله او د اللّه تعالي د پاک حرم نه اجازت بنده ته وركړے شو. نو دے لوئے كاميابى سره بنده ته ياد شو چه دا ټول هر څه د نبي پاک صلي اللّه عليه وسلم د رحمت په بركت او د هغه په لاره د تلو په بركت شوے دي. نو بنده په ډير شوق سره نبي پاک صلي اللّه عليه وسلم ته په داسے طريقه سلام كوي لكه چه هغه ورته مخامخ دے وائي السّلامُ عليْكَ ايُّهَا النَّبِيُّ و رحمةُ اللّه و بركَاتُهٗ د بخاري شريف دا دعا د احنافو په نزد ويل مستحب دي. په احاديثو مباركو كښې نورے دعاكانے هم شته.

## بَابُ ۵۳۹: اَلدُّعَآءِ قَبْلَ السَّلَامِ.

## باب ۵۳۹: سلام كرخولو نه مخكښې د ذعا كولو بيان.

۷۹۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنَا عُرْوَةُ

۷۹۱: ابو اليمان شعيب زهري عروه بن زبير بي بي عائشه د نبي صلي اللّه

بْـنُ الـزُّبَـيْـرِ عَنْ عَآئِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّـٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْـهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُـوْا فِـى الصَّلٰوةِ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِـنْ عَذَابِ الْقَبْـرِ وَاَعُـوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الـدَّجَّـالِ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَـا وَفِتْـنَةِ الْمَمَـاتِ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُـوْذُبِكَ مِـنَ الْمَـأْثَـمِ وَالْمَغْرَمِ فَقَالَ لَهٗ قَـآئِلٌ مَّاَاَكْثَرَمَا تَسْتَعِيْذُ مِنَ الْمَغْرَمِ فَقَالَ اِنَّ الرَّجُـلَ اِذَا غَـرِمَ حَـدَّثَ فَكَذَبَ وَاِذَا وَعَـدَ اَخْـلَفَ وَعَـنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَعِيْذُ فِيْ صَلٰوتِهٖ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ.

عليـه وسـلـم نـبـر روايـت كـوي. هغـه فـرمـائي چـه رسـول الـلّٰــه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم بـه مـونـځ كــښې دا دُعـا كـولـه. الـلّٰهُـمَّ اِنِّـيْ اعُـوْذُبكَ مِنْ فِتْـنَةِ مسِيْـحِ الـدَّجَّــالِ و اعُـوْذُبكَ مِـن الْمَــاثمِ وَالْـمغْرمِ. نـو چـا حـضـورؐ تـه عـرض اوكـه چـه تـاسو د قـرض نـه ډيـره پـنـاه غـواړئـې (د دې څـه وجـه ده) حـضـورؐ ورتـــه او فـرمـائيـل، چـــه سړے قـرضـدار شـي نـو كـلـه چـه خبـري كـوي دروغ وائـي اوچـه كـلـه وعـده اوكـړي نـو وعـده خـلافـي كـوي. او زهـري بيـان اوكـه. مـا تـه عـروه بـن زبيـر اووې چـه بـي بـي عـائشـې اووې. مـا د رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم نـه مـونـځ كـښې د دجـال د فـتـنې نـه پـنـاه غـوښتـل واوريدل.

۷۹۲: حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَـالَ حَـدَّثَـنَـا اللَّيْثُ عَنْ يَّزِيْدِ ابْنِ اَبِيْ حَبِيْـبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَـمْرٍو عَـنْ اَبِيْ بَكْرِ نِ الصِّدِّيْقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ قَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِّمْنِيْ دُعَآءً اَدْعُوْابِهٖ فِيْ صَـلٰوتِـيْ قَـالَ قُـلِ الـلّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَـفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَّلَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْـــتَ فَـاغْـفِـرْلِـيْ مَـغْـفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ.

۷۹۲: قتيبـه بـن سـعيـد، ليـث، يـزيـد بـن ابـي حبيـب، ابـو الـخيـر، عـبدالـلّٰـه بـن عـمـرو د ابـوبـكـر صـديـقؓ متـعلـق روايـت كـوي. چـه هغـه رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليـه وسلم تـه عرض اوكـه، مـا تـه يـوه داسې دعـا اوښـائـې چـه خپـل مونځ كـښې يې كـوم. حضـورؐ ورتـه او فـرمـائيـل دا دعـا كـوه. الـلّٰهُـمَّ اِنِّـيْ ظـلـمْـتُ نـفْسِـيْ ظُـلْـمًـا كثِيْـرًا ولا يـغْـفِـرُ الـذُّنُـوب الّا انْـت فـاغْـفـرْلـيْ مـغْـفـرةً مّنْ عـنْـدِك وارْحـمْـنِـيْ اِنّك انْـت الْغفُورُ الرَّحِيْمُ.

**بَـاب ۵۴۰: مَـايُتَـخَيَّـرُ مِنَ الدُّعَآءِ بَعْدَ التَّشَهُّدِ وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ.**

**باب ۵۴۰: كومه دعا چه غواړي تشهد نه پس** ئې غوښتلې شي او دعا لوستل واجب نه دي.

٧٩٣: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا اِذَا كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلٰوةِ قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ عِبَادِهِ السَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ وَّفُلَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاتَقُوْلُوْا السَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ وَلٰكِنْ قُوْلُوْا اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ فَاِنَّكُمْ اِذَا قُلْتُمْ ذٰلِكَ اَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ فِي السَّمَآءِ اَوْبَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ مِنَ الدُّعَآءِ اَعْجَبَهٗ اِلَيْهِ فَيَدْعُوْا.

٧٩٣: مسدد، يحيىٰ، اعمش، شقيق د عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، چه مونږ به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره د مونځ قعده كښې وئيلے: اَلسَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ عِبَادِهٖ اَلسَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه السّلام علي اللّٰه مه وائے ځکه چه اللّٰه خو خپله سلام دے بلكه وائے اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ. (ځکه چه كله دا تاسو وائے نو دا دعا د اللّٰه هر نيک بنده ته رسي خواه هغه په آسمان كښې وي يا په زمكه) اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ، دے نه پس چه كومه دعا ورته ښه معلوميږي هغه دے كوي او هغه دے غواړي.[۱]

۱. د تشهد چه كومے دعاگانے د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم نه مونږ ته رسيدلے دي. د بنده چه كومه خوښه شي هغه ويلے شي. زياته غوره داده چه هغه دعا اوائي. چه هغے كښې هر قسم غوره والے او كاميابي موجود وي.

## باب ۵۴۱: مَنْ لَّمْ يَمْسَحْ جَبْهَتَهٗ وَاَنْفَهٗ حَتّٰى صَلّٰى قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ رَاَيْتُ الْحُمَيْدِيَّ يَحْتَجُّ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْ لَّا يَمْسَحَ الْجَبْهَةَ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۵۴۱: خپل تندے او پوزه دے د مونځ ختمولو پورے نه صاف كوي.

٧٩۴: حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيَّ فَقَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ

٧٩۴: مسلم بن ابراهيم، هشام، يحيىٰ د ابو سلمه نه روايت كوي. هغه او فرمائيل، ما د ابو سعيد خدريؓ نه تپوس او كه نو هغهٔ اووے ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوبو او خاوره كښې په سجده كولو

فِى الْمَآءِ وَالطِّيْنِ حَتّٰى رَأَيْتُ اَثَرَ الطِّيْنِ فِىْ جَبْهَتِهٖ.

اوليدلو تر دے چه د حاورو اثر م د حضور صلى الله عليه وسلم په تندي مبارک اوليدلو.

باب ۵۴۲: التَّسْلِيْمِ.

باب ۵۴۲: د سلام كرځولو بيان.

۷۹۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ هِنْدٍ بِنْتِ الْحَارِثِ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَلَّمَ قَامَ النِّسَاءُ حِيْنَ يَقْضِيْ تَسْلِيْمَهٗ وَمَكَثَ يَسِيْرًا قَبْلَ اَنْ يَقُوْمَ قَالَ بْنُ شِهَابٍ فَاَرٰى وَاللّٰهُ اَعْلَمُ اَنَّ مَكْثَهٗ لِكَيْ تَنْفُذَ النِّسَآءُ قَبْلَ اَنْ يُدْرِكَهُنَّ مَنِ انْصَرَفَ مِنَ الْقَوْمِ.

۷۹۵: موسى بن اسماعيل، ابراهيم بن سعد، زهري، هند بنت حارث روايت كوي ام سلمه او فرمائيل: رسول الله صلي الله عليه وسلم چه به سلام كرځولو. او كوم وخت به ئے سلام پوره كړلو. نو ښځے به اودريدلے، او حضور به د خپلو اودريدلو نه لږ مخكښې ايسار شولو. (ابن شهاب وائي. ماته داسے ښكاري. والله اعلم. چه د حضور ايساريدل په دے غرض وو. چه ښځے لاړے شي د پاره ددے چه د قوم كومو خلقو مونځ ختم كړے وي د هغوي نه جدا شي.

بَابٌ ۵۴۳: يُسَلِّمُ حِيْنَ يُسَلِّمُ الْاِمَامُ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَسْتَحِبُّ اِذَا سَلَّمَ الْاِمَامُ اَنْ يُسَلِّمَ مَنْ خَلْفَهٗ.

باب ۵۴۳: چه امام سلام او كرځوي هغه وخت دے مقتدي سلام او كرځوي او ابن عمرؓ دا خوښوله چه كوم وخت امام سلام او كرځوي، هغه وخت د مقتديان سلام او كرځوي.

۷۹۶: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَحْمُوْدٍ هُوَ ابْنُ الرَّبِيْعِ عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّيْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ سَلَّمَ.

۷۹۶: حبان بن موسى، عبدالله، معمر، زهري محمود بن الربيع، عتبان بن مالک روايت كوي، چه مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره مونځ او كه حضور سره سره مو سلام او كرځولو.

بَابٌ ۵۴۴: مَنْ لَّمْ يَرُدَّ السَّلَامَ عَلَى الْاِمَامِ وَاكْتَفٰى بِتَسْلِيْمِ الصَّلٰوةِ.

باب ۵۴۴: بعضے خلق (مانخه كښې) امام ته د سلام كولو قائل نه دي او د مونځ سلام كافي گنړي.

١. د جمهور فقهاؤ په نزد به مونځ کښې دوه سلامه دي يو ښي طرف ته بو کس (چپ) طرف ته. لیکن د امام مالک رحمة الله عليه په نزد خاص له (تواخی) مونځ کونکي د باره يو سلام کافي دے او کله چه مونځ په جماعت سره (امامتی سره) کیږي نو دوه سلامه بکار دی. يو د امام د پاره يا د مقتدی د باره. لیکن که مقتدي د امام شاته ولاړ دے نه ښي طرف ته کيږ (کس) طرفته نو بدے صورت کښې به مقتدی درے سلامه کوي (درے خله به السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَةُ اللّٰه وائی) يو ښي طرفته مونځ گذارو د پاره یا کس (کیږ) طرفته مونځ کونکو د پاره. دريم سلام د امام د پاره امام مالک رحمة الله عليه بدے سلام کښې د ملاقات کولو د سلام د طريقو (د آدابو) خيال ساتلے دے. امام بخاري رحمة الله عليه د جمهورو د مسلک روايات نقل کړيدي.

٧٩٧: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنَا مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ وَزَعَمَ اَنَّهُ عَقَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَقَلَ مَجَّةً مَجَّهَا مِنْ بِئْرٍ كَانَتْ فِيْ دَارِهِمْ قَالَ سَمِعْتُ عِتْبَانَ ابْنَ مَالِكِ نِ الْاَنْصَارِيَّ ثُمَّ اَحَدَبَنِيْ سَالِمٍ قَالَ كُنْتُ اُصَلِّيْ لِقَوْمِيْ بَنِيْ سَالِمٍ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اَنْكَرْتُ بَصَرِيْ وَاِنَّ السُّيُوْلَ تَحُوْلُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ مَسْجِدِ قَوْمِيْ فَلَوَدِدْتُّ اَنَّكَ جِئْتَ فَصَلَّيْتَ فِيْ بَيْتِيْ مَكَانًا اَتَّخِذُهُ مَسْجِدًا فَقَالَ اَفْعَلُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَغَدَا عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْبَكْرٍ مَّعَهُ بَعْدَ مَااشْتَدَّ النَّهَارُ فَاسْتَاْذَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَذِنْتُ لَهُ فَلَمْ يَجْلِسْ حَتّٰى قَالَ اَيْنَ تُحِبُّ اَنْ

٧٩٧: عبدان، عبدالله، معمر، زهري محمود بن ربيع روايت کوي، ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم يا ددے چه زما په کور کښې ئے خما (د کوهي د ډول (بورقے) نه خپله خوله مبارکه کښې اوبه واچولے بيا (د برکت د پاره) ئے چه هغه خما په مخ واچولے نو هغه هم ماته ياد دي. هغه واني ما د عتبان بن مالک نه بيا د بني سالم د يو سړي نه دا واوريدل. هغه ونيلے چه ما به د خپل قوم بني سالم امامت کولو. نو زه نبي صلي الله عليه وسلم له راغلم او ما اووے زما بيناني کمزورے بنکاري. خما او خما د قوم د جماعت په مينځ کښې د اوبو ډير مقامات حائل دي. نو زه غواړم. چه تاسو (يا رسول اللّٰه) تشريف راوړئے او خما کور کښې يو ځائے کښې تاسو مونځ اوکړئے چه زه هغه جماعت جوړ کړم. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمانيل زه به انشاء الله دغسے اوکړم نو په دونيمه ورځ رسول اللّٰه ما پله تشريف راوړلو حضور سره ابو بکرؓ هم وو. نبيؐ اجازت طلب کړ نو ما اجازت ورکړ. د ناستے نه مخکښې حضورؐ او فرمانيل چه ته د خپل کور کوم ځائے کښې مونځ کول غواړے چه هلته زه مونځ اوکړم. نو ما حضورؐ ته د هغے

اُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ فَأَشَارَ اِلَيْهِ مِنَ الْمَكَانِ الَّذِيْ اَحَبَّ اَنْ يُّصَلِّيَ فِيْهِ فَقَامَ وَصَفَفْنَا خَلْفَهُ ثُمَّ سَلَّمَ وَسَلَّمْنَا حِيْنَ سَلَّمَ.

مقام طرفته اشاره او کړه ' کوم ځائے کښې چه ما د حضورؐ مونځ کول خوښول نو حضورؐ اودریدلو او مونږ خلقو ور پسے صف اوتړلو هغے نه پس حضورؐ سلام اوګرځولو نو مونږ هم حضورؐ سره سلام او ګرځولو .

## بـاب ۵۴۵: الذِّكْرِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ.

## بـاب ۵۴۵: مـونـځ نـه پـس ذِ ذکـر بيان.

۷۹۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو اَنَّ اَبَا مَعْبَدٍ مَّوْلٰى ابْنِ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَفْعَ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ حِيْنَ يَنْصَرِفُ النَّاسُ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ كَانَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُنْتُ اَعْلَمُ اِذَا نْصَرَفُوْا بِذٰلِكَ اِذَا سَمِعْتُهُ.

۷۹۸: اسحاق بن نصر ' عبدالرزاق ابن جريج ' عمرو ' ابو معبد (د ابن عباس آزاد کړده غلام) روايت کوي ' ابن عباسؓ هغه ته اووے چه کوم وخت به خلق د فرض مونځ نه فارغ شو نو هغه وخت اوچت اواز سره ذکر کول د نبيؐ په زمانه کښې رائج وو . او ابن عباسؓ فرمائي . کله چه به ما واوريدل چه خلق ذکر کولو سره واپس شو نو ما ته به معلومه شوه چه مونځ ختم شو .

۷۹۹: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرو قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ اَعْرِفُ انْقِضَاءَ صَلٰوةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّكْبِيْرِ قَالَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ كَانَ اَبُوْ مَعْبَدٍ اَصْدَقَ مَوَالِى ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ عَلِيٌّ وَ اسْمُهُ نَافِذٌ.

۷۹۹: علي ' سفيان ' عمرو ' ابو معبد ' ابن عباسؓ روايت کوي ' چه ما به د نبي صلي الله عليه وسلم د مونځ ختميدل ذِ تکبير نه معلومولل علي بن مديني اووے . مونږ ته سفيان او هغه ذِ عمرو بن دينار نه بيان اوکړ چه ذِ ابن عباسؓ په غلامانو کښې د ټولو نه ريښتينے ابو معبد وو علي اووے ' د هغه نوم نافذ وو .

۱ . د مونځ نه روستو ' ذکر کول د نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ثابت دي . او د فرض مونځ د ختميدونه روستو او د سنتو نه وړاندے هم ډير ذکرونه ثابت دي . ددے تفصيل په احاديثو مبارکو کښې شته . امام بخاري رحمة الله عليه دے باب کښې هغه ذکرونه بيانوي کوم به چه نبي کريم صلي الله عله وسلم د فرض مونځ ختميدو او د سنتو ادا کولو نه وړاندے لوستل ' دے احاديثو نه دا معلوميږي چه نبي کريم صلي

الله عليه وسلم به د فرض مونځ ختميدو سره فورا تكبير يا ذكر په اوچت آواز ويل. ليكن د جمهورو مسلک دا دے چه په اوچت آواز ذکر کول بهتر نه دي. نور احاديث د جمهورو د مسلک تائيد کوي. ددے ز ...ے نه جمهورو ددے احاديثو مختلف توجيهات بيان کړيدي. مثلاً چه کوم تکبيرونه به نبي کريم صلي الله عليه وسلم د ارکانو ادا کولو په وخت ويل نو کله چه به د تکبيرونو سلسله ختم شوه نو راوي ددے حديث به د مونځ په ختميدو پوهه شو.

۸۰۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَآءَ الْفُقَرَاءُ اِلَي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا ذَهَبَ اَهْلُ الدُّثُوْرِ مِنَ الْاَمْوَالِ بِالدَّرَجَاتِ الْعُلٰى وَالنَّعِيْمِ الْمُقِيْمِ يُصَلُّوْنَ كَمَا نُصَلِّيْ وَيَصُوْمُوْنَ كَمَا نَصُوْمُ وَلَهُمْ فَضْلٌ مِنْ اَمْوَالٍ يَحُجُّوْنَ بِهَا وَيَعْتَمِرُوْنَ وَيُجَاهِدُوْنَ وَيَتَصَدَّقُوْنَ فَقَالَ اَلَا اُحَدِّثُكُمْ بِمَا اِنْ اَخَذْتُمْ بِهٖ اَدْرَكْتُمْ مَنْ سَبَقَكُمْ وَلَمْ يُدْرِكْكُمْ اَحَدٌ بَعْدَكُمْ وَكُنْتُمْ خَيْرَ مَنْ اَنْتُمْ بَيْنَ ظَهْرَانِيْهِمْ اِلَّا مَنْ عَمِلَ مِثْلَهٗ تُسَبِّحُوْنَ وَتَحْمَدُوْنَ وَتُكَبِّرُوْنَ خَلْفَ كُلِّ صَلٰوةٍ ثَلَاثًا وَّثَلٰثِيْنَ فَاخْتَلَفْنَا بَيْنَنَا فَقَالَ بَعْضُنَا نُسَبِّحُ ثَلَاثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَنَحْمَدُ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَنُكَبِّرُ اَرْبَعًا وَّثَلٰثِيْنَ فَرَجَعْتُ اِلَيْهِ فَقَالَ تَقُوْلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ حَتّٰى يَكُوْنَ مِنْهُنَّ كُلِّهِنَّ ثَلَاثٌ وَّثَلٰثُوْنَ.

۸۰۰: محمد بن ابي بكر، معتمر، عبيد الله، سمي، ابو صالح، د ابو هريرةؓ نه روايت کوي، هغه او فرمائيل، چه نبي صلي الله عليه وسلم ته څنے فقيران راغلل، هغوي اووے چه مالدار خلق لوئے لوئے درجے او دائمي عيش حاصلوي څکه چه هغوي مونځ هم کوي، څنگه چه مونږ مونځ کوو، او روژه هم ساتي څنگه چه مونږ ساتو. (غرض دا چه کوم عبادت مونږ کوو، هغوي هم دے کښ شريک دي) او هغوي سره د مال زياتے دے. چه هغے سره حج کوي او عمره کوي، جهاد کوي، صدقه ورکوي. حضور صلعم او فرمائيل آيا زه تاسو ته داسے خبره او نه ښايم چه په هغے عمل او کړئے، چه کوم خلق تاسو نه مخکښ شوے دي تاسو هم هغوي ته اورسئے او تاسو ته ستاسو نه پس هيڅوک اونه رسي او تاسو به ټولو خلقو کښ بهتر شئے. خو د هغه نه سوا چه ددے په مثل عمل او کړي نو تاسو هر مونځ پسے درے ديرش ځله سبحان الله، الحمد الله، او الله اکبر وايئے دے نه پس مونږ خلقو اختلاف او کړ او مونږ کښ بعضو اووے. چه مونږ به درے ديرش ځله سبحان الله وايو او درے ديرش ځله به الحمد لله وايو او الله اکبر به څلور ديرش ځله وايو. ما بيا د حضورؐ نه تپوس او کړ. نو حضورؐ او فرمائيل سبحان الله الحمد لله او الله اکبر وائے تر دے چه دے کښ هر يو درے ديرش ځله شي.

۸۰۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَنُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ وَرَّادٍ كَاتِبِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ اَمْلٰى عَلَيَّ الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ فِيْ كِتَابٍ اِلَى الْمُعَاوِيَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ مَّكْتُوْبَةٍ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَآ اَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَاالْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ وَقَالَ شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بِهٰذَا وَقَالَ الْحَسَنُ جَدٌّ غِنًى رَوٰى عَنِ الْحَكَمِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُخَيْمَرَةَ عَنْ وَرَّادٍ بِهٰذَا.

۸۰۱: محمد بن یوسف، سفیان، عبدالملک بن عمیر، وراد، د مغیرهٔ منشي روایت کوي، چه ما یو خط کښې معاویهٔ ته دا اولیکل چه نبیؐ به هر فرض مونځ پسې لا اله الّا اللّٰه الخ وئیلے یعني "د اللّٰه تعالیٰ نه سوا بل څوک معبود نشته، یو دے، هیڅوک د هغه شریک نشته، بادشاهي او تعریف هغهٔ لره دے، او هغه په هر څیز قادر دے، اے اللّٰه، څهٔ چه ته ورکړې د هغے څوک منع کونکے نشته او څه چه ته منع کړې د هغے څوک ورکونکے نشته او د کوشش واله کوشش ستا مخکښې هیڅ فائده نه لري" او شعبه د عبدالملک نه هم دغسے روایت کړے دے، او حسن بصري اووے، "جدّ" مالداري ته وائي او شعبه دے حدیث کښې د حکم بن عتبه نه او هغه د قاسم بن مخمیره او هغه د وراد نه دا روایت کړے دے.

## باب ۵۴۶: يَسْتَقْبِلُ الْاِمَامُ النَّاسَ اِذَا سَلَّمَ.

## باب ۵۴۶: امام دے خلقو ته مخ کړي کوم وخت چه سلام او ګرځوي ۱.

۱. امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا ښودل غواړي چه د مونځ فارغیدونه پس که امام ځپل کورته خي، نو لاړ دے شي لیکن که چرے جومات کښې کیني، نو سنت طریقه داده چه جومات کښې موجود خلقو ته دے مخ کړي او بیا دے ناست وي. په عام ډول به رسول اکرم صلي اللّٰه علیه وسلم پدے وخت کښې صحابهٔ کرامو ته د دین احکام ښودل لکه چه ددے باب د نورو احادیثونه معلومیږي.

۸۰۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ ثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْرَجَآءٍ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلّٰى صَلٰوةً اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ.

۸۰۲: موسى بن اسماعیل، جریر بن حازم، ابو رجاء، سمره بن جندب نه روایت کوي رسولؐ به چه مونځ اوکړلو، نو ځپل مخ به ئے مونږ طرفته کړلو.

۸۰۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۸۰۳: عبداللّٰه بن مسلمه، صالح بن کیسان،

مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ زَيْدِبْنِ خَالِدِ نِ الْجُهَنِيِّ اَنَّهٗ قَالَ صَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَةِ عَلٰى اِثْرِسَمَآءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا انْصَرَفَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ قَالُوْا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ اَصْبَحَ مِنْ عِبَادِيْ مُؤْمِنٌ بِيْ وَ كَافِرٌ فَاَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللّٰهِ وَرَحْمَتِهٖ فَذٰلِكَ مُؤْمِنٌ بِيْ وَ كَافِرٌ بِالْكَوَاكِبِ وَ اَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَاوَ كَذَا فَذٰلِكَ كَافِرٌ بِيْ وَ مُؤْمِنٌ بِالْكَوَاكِبِ.

عبيد الله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود زيد بن خالد جهنيٌ روايت كوي چه مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم حديبيه كښې د باران نه پس د شپې چه شوے وو. د سحر مونځ راكړ كوم وخت چه حضورٌ د مونځ نه فارغ شو نو خلقو ته ئے مخ كړلو. وے فرمائيل آيا تاسو ته معلومه ده چه ستاسو پرورد كار څه فرمائيلي دي هغوي اووے الله او د هغه رسول ښه پوهيږي (حضورٌ او فرمائيل) الله پاك دا ارشاد فرمائيلي دے چه ستاسو كښې څنې خلق مومنان جوړ شو او څنې كافر جوړ شو چا چه اووے چه په مونږ د الله په فضل او رحمت باران او شو نو دا ئے خلق به ما [illegible] جوړ شو [illegible] منكر شو [illegible] چا چه [illegible] او څوك چه [illegible] هغه [illegible] منكر جوړ شو او [illegible] ستوري [illegible].

١. [illegible] ستوري فحط [illegible] اسلام [illegible] كوم [illegible] حقيقت [illegible] عقل [illegible] تجربې خلاف [illegible] چه [illegible] موسمي باران [illegible] تجربې [illegible] وايي چه [illegible] باران [illegible] باران [illegible] موسمي [illegible] قائل [illegible] دي

٨٠٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ يَزِيْدَ بْنَ هَارُوْنَ قَالَ اَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ اَخَّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلٰوةَ ذَاتَ لَيْلَةٍ اِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَلَمَّا صَلّٰى

٨٠٤: عبدالله بن منير [illegible] يزيد بن هارون [illegible] حميد [illegible] انس بن مالك روايت كوي چه يو شپه رسول الله صلي الله عليه وسلم د ماسخوتن [illegible] د شپې [illegible] پورے [illegible] او بيا [illegible] راووتلو [illegible] چه مونځ [illegible] حضور [illegible] مونږ ته مخ كړو [illegible]

اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَقَالَ اِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلُّوْا وَرَقَدُوْا وَاِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوْ فِيْ صَلٰوةٍ مَّا انْتَظَرْتُمُ الصَّلٰوةَ.

فرمائيل چه خلقو مونځ او كه' او ده شو. او تاسو برابر مانځه كښې ئې. څو پورې چه تاسو د مانځه انتظار او كه.

## باب ۵۴۷: مَكْثِ الْاِمَامِ فِيْ مُصَلَّاهُ بَعْدَ السَّلَامِ

وَقَالَ لَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ فِيْ مَكَانِهِ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ الْفَرِيْضَةَ وَفَعَلَهُ الْقَاسِمُ وَيُذْكَرُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَفَعَهٗ لَا يَتَطَوَّعُ الْاِمَامُ فِيْ مَكَانِهٖ وَلَمْ يَصِحَّ.

## باب ۵۴۷: د امام د سلام نه پس په خپله مصلې د ايساريدو بيان

او مونږته آدم په واسطه د شعبه ايوب نافع بيان او كه' چه ابن عمرؓ به دې مقام كښې نفل مونځ هم كولو او دغسې قاسم هم كړي دي البته د ابو هريرهؓ نه مرفوعا منقولي دي چه امام دې هغه ځائې كښې كوم ځائې چه ئې فرض مونځ كړې وي نفل نه كوي' خو دا صحيح خبره نه ده.

۱. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم عام طريقه داوه چه د فرض مونځ نه پس' چه كله به ښځې د جومات د دروازې نه باهر لاړې نو بيا به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم جومات كښې د كيناستلو بغير' خپل كورته تشريف اوړلو او سنت مونځ به ئې هلته كور ادا كول' دې باب كښې امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي' چه كوم ځائې كښې فرض مونځ ادا شوي وي. هغه ځائې باندې نفل مونځ كيدې شي. د احنافو مذهب دا دې چه بنده دې د فرض مونځ د ځائې نه جدا بل ځائې كښې نفل ادا كړي. د احنافو د مذهب تائيد كښې ډير احاديث موجود دي مثلاً مسلم شريف كښې روايت دې چه معاويه رضي اللّٰه عنه فرمايلي دي چه د يو مونځ نه پس فورا بل مونځ كول پكار نه دي. يا دې خبرې او كړي يا دې ځائې بدل كړي. ددې وجې نه سنت دا دي چه دوه مونځونو كښې جدائي پكار ده. كه د خبرو كولو په ذريعه وي. يا ځائې بدل كړي.

۸۰۵: حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِيْدِ هِشَامُ ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ هِنْدَ بِنْتِ الْحَارِثِ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْكُثُ فِيْ مَكَانِهٖ يَسِيْرًا قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَنَرٰى وَاللّٰهُ اَعْلَمُ لِكَيْ يَنْفُذَ مَنْ يَّنْصَرِفُ مِنَ النِّسَآءِ وَقَالَ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ يَزِيْدَ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ اَنَّ بْنَ شِهَابٍ كَتَبَ اِلَيْهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۸۰۵: ابو الوليد' هشام بن عبدالملك ابراهيم بن سعد' زهري هند بنت حارث روايت كوي چه نبيّ به د سلام گرځولو نه پس لږ ساعت په خپل ځائې ايساريدلو. ابن شهاب وائي. خما خيال دې خو اللّٰه ښه پوهيږي حضورؐ به ځكه ايساريدلو چه كومې ښځې د مانځه نه فارغې شي' هغوي لاړې شي' او ابن ابي مريم وائي مونږ ته نافع خبر راكه نافع وائي. ماته جعفر بن ربيعه اووې ماته

هِنْدُ بِنْتِ الْحَارِثِ الْفِرَاسِيَّةُ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ مِنْ صَوَاحِبَاتِهَا قَالَتْ كَانَ يُسَلِّمُ فَيَنْصَرِفُ النِّسَاءُ فَيَدْخُلْنَ بُيُوتَهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَنْصَرِفَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَتْنِي هِنْدُ الْفِرَاسِيَّةُ وَقَالَ عُثْمَانُ ابْنُ عُمَرَ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَتْنِي هِنْدُ الْقُرَشِيَّةُ وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ أَنَّ هِنْدًا بِنْتَ الْحَارِثِ الْقُرَشِيَّةَ أَخْبَرَتْهُ وَكَانَتْ تَحْتَ مَعْبَدِ بْنِ الْمِقْدَادِ وَهُوَ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ وَكَانَتْ تَدْخُلُ عَلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَتْنِي هِنْدُ الْقُرَشِيَّةُ وَقَالَ ابْنُ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدِ الْقُرَشِيَّةِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَهُ ابْنُ شِهَابٍ عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ حَدَّثَتْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ابن شهاب دا اوليکل چه ما ته هند د ام سلمهؓ د نبيﷺ د تبر نه روايت اوکه او دا هند به ام سلمهؓ سره کيناسته پاسيده. هغه وائي. چه حضورﷺ به سلام او ګرځولو نو اول به ښځے واپس شوے. خپلو کورونو ته به لاړے قبل دد نه چه رسول اللهﷺ واپس شي. او ابن وهب په واسطه د يونس ابن شهاب هند فراسيه روايت اوکه عثمان بن عمر په واسطه د يونس زهري هند قرشيه روايت او که زبيدي اووے چه ما ته زهري بيان اوکه چه هغه ته هند بنت حارث قرشيه بيان اوکه او هغه د بني زهره د حليف د معبد بن مقداد ښځه وه. او د حضور صلى الله عليه وسلم بيبيانو له به تله راتله. او شعيب په واسطه د زهري هند قرشيه روايت اوکه ابن عتيق به واسطه د زهري هند قرشيه روايت اوکه او ليث اووے چه ما ته يحيى بن سعيد اووے. هغه ته ابن شهاب او ابن شهاب د قريش د يو ښځے نه او هغه ښځے د رسول اللهﷺ نه روايت اوکه[1].

١ . د امام بخاري رحمة الله عليه مقصد د سند د مختلف طريقو بيان کولو دا دے چه د ''هند'' رضي الله عنها نسب بيان کړي بعض راويان ئے قريشو ته نسبت کوي. ''هند قرشيه'' وائي او بعضے ئے بنو فراس ته نسبت کوي ''فراسيه'' وائي. ابن حجر رحمة الله عليه په دوارو کښې ديو اوږد بيان په ذريعه تطبيق کړيدے (فتح الباري جلد دويم ص٢٢٨) علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي چه ممکنه ده. چه هند رضي الله عنها د بنو فراس نه وي او د قريشو سره ئے د موالاة تعلق وي او يا د قريشو نه دي او بنو فراس سره ئے د موالات تعلق وي.

## باب ٥٤٨ : مَنْ صَلَّى بِالنَّاسِ

باب ٥٤٨ : د موبح کولو نه پس که چاته حيل ضرورت ياد

فذكر حاجته فتخطاهم.

شي او په خلقو بوب وهلو (د انګولو) سره خي (نو جائز دی یا نه).

۸۰۶: حدثنا محمد بن عبيد قال حدثنا عيسى ابن يونس عن عمر بن سعيد قال اخبرني ابن ابي مليكة عن عقبة قال صليت وراء النبي صلى الله عليه وسلم بالمدينة العصر فسلم فقام مسرعا فتخطى رقاب الناس الى بعض حجر نسائه ففزع الناس من سرعته فخرج اليهم فراى انهم قد عجبوا من سرعته قال ذكرت شيئا من تبر عندنا فكرهت ان يحبسني فامرت بقسمته.

۸۰۶: محمد بن عبيد، عيسى بن يونس، عمر بن سعيد، ابن ابي مليكه عقبه روايت کوي، ما مدينه کښې نبي پسې د مازيګر مونځ او کړه، نو حضور سلام او ګرځولو، او تادی سره پاسيدلو. او د خلقو د ګردنونو د پاسه واوړيدو، او د خپلو بيبيانو يوې حجرې ته ئې تشريف يوړلو. خلق د حضور ددې تادئ نه اويريدل. بيا حضور هغوی ته تشريف راوړلو، نووې ليدل چه خلق د تادي نه تعجب کښې پراته دي حضور او فرمانيل، ماته څه سره زر (سونا) را ياد شوي وو چه مونږ کره پراته وو ما دا خبره بده او ګڼړله چه هغه ما د خدائ د ياد نه منع کړي، نو ما د هغې تقسيمولو حکم ورکړلو.

۱. ددې نه مقصد دادې چه د مونځ نه فارغ کيدو نه پس، چه کوم طرفته خپل کور ته د تلو آسانتيا وي مخ کولې شي. په دې کښې د ښې طرف يا د ګس طرف شرط نشته. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ازواج مطهراتو کورونه ګس طرفته وو په دې وجه به اکثر د مونځ د فرعت نه روستو، ګس طرفته مخ کولو او بيا به ئې کورته تشريف اوړلو هغوي ته په دې کښې آسانتيا وه ددې عمل نه دا نه ثابتيږي چه ښې طرفته مخ کول يا ګس طرفته مخ کول سنت يا مستحب دي.

## باب ۵۴۹: الانفتال والانصراف عن اليمين والشمال

وكان انس بن مالك ينفتل عن يمينه وعن يساره ويعيب على من يتوخى او من تعمد الانفتال عن يمينه.

باب ۵۴۹: د مونځ نه د فارغ کيدو نه پس ښي او ګس طرف ته د مخ کولو بيان انس بن مالک به کله خپل ښي طرف ته او کله خپل ګس طرف ته ګرځيدلو او کوم سړي چه به خاص خپل ښي طرف ته د ګرزيدو قصد کولو، نو دا به ئې معيوب ګنړلو.۱

۸۰۷: حدثنا ابو الوليد قال حدثنا شعبة عن سليمان عن عمارة بن عمير عن الاسود قال عبد الله

۸۰۷: ابو الوليد، شعبه، سليمان عمارة بن عمير، اسود روايت کوي (يو خلي) عبدالله (بن مسعود) اووې، کوې، داسې نه چه تاسو کښې څوک سړې

لا يجعل احدكم للشيطان شيئا من صلوته يرى ان حقا عليه ان لاينصرف الا عن يمينه لقد رأيت النبي صلى الله عليه وسلم كثيرا ينصرف عن يساره.

حیا موبح کښې د شیطان څه حصه نه جوړوي چه د ښان جه د موبح نه بس حق سي ځرف نه جوړوي ما سي اکثر حیا کښې ضرف نه کرحه لیدلے دے (حو دا نه جه همیشه سي دے ضرف نه مخ کړے دے)

## باب ۵۵۰ : ماجاء في الثوم النيّ والبصل والكرّاث وقول النبيّ صلى الله عليه وسلم من اكل الثوم او البصل من الجوع او غيره فلايقربنّ مسجدنا.

## باب ۵۵۰ : د هغه روایتونو بیان چه د کچه پیاز او اوږے باره کښې بیان شوے دی او نبي فرمائيل چه کوم سړي د لوږے یا بغیر د لوږے نه اوږه یا پیاز خوړلے وي هغه د خمونږ جمات ته نږدے نه راځي.

۸۰۸ : عبد الله بن محمد قال حدثنا ابو عاصم قال اخبرنا ابن جريج قال اخبرني عطاء قال سمعت جابر بن عبد الله قال قال النبيّ صلى الله عليه وسلم من اكل من هذه الشجرة يريد الثوم فلا يغشانا في مسجدنا قلت ما يعني به قال ما اراه يعني الا نيئه و قال مخلد بن يزيد عن ابن جريج الا نتنه.

۸۰۸ : عبد الله بن محمد، ابو عاصم، ابن جریج، عطاء، جابر بن عبد الله روایت کوي نبيّ او فرمائيل څوک چه دا بوټي "اوږه" او خوري نو هغه دے خمونږ جماعت کښې مونږ سره نه یو ځاے کیږي (عطاء وائي) ما اووے ددے نه څه قسم اوږه مراد ده. جابر اووے زه خو داسے پوهیږم چه کچه اوږه ترے مراد ده. او مخلد بن یزید د ابن جریج نه داسے روایت کړے دے چه ددے بوني[۱] ترے مراد دے.

[۱] جومات ته کوم بدبویه څیز اوږل یا د هغے د استعمال نه روستو جومات ته تلل مکروهه دي بنکاره خبره ده چه خلقو ته به د بدبویۍ نه تکلیف او ضرر رسیږي بیا جومات یو پاک او مقدس ځاے دے په هغے کښې د الله تعالي ذکر کیږي نو که داسے څوک بنده وي چه دهغه نه بدبوني حي هغه د جومات نه بهر اوباسل روا دي. ددے نه معلومیږي چه د بدبویه څیز د استعمال نه روستو جومات ته تلل دبر زیات مکروهه دي. د اوږے وغیره استعمال ... خو د ذکر او د مونځ په اوقاتو کښې مکروهه دے. که چرے په داسے طریقه استعمال شي چه بدبوني ترے لاړه شي نو د هغے د استعمال نه روستو ذکر کول مونځ کول یا جومات ته تلل مکروهه نه دي. ځکه چه د کراهت بنیادي سبب ختم شو چه هغه بدبوني وه اسلام کښې د عبادت او د الله تعالي د ذکر د پاره د ډیر پاکوالي او صفایۍ خیال ساتلے شویدے او په دے موقعو ساندے سنده ضرور پاک او صفا پکار دے په حدیث شریف کښې دي چه د سحر پاسیدو نه پس (حوله)

حلته سه صحابه کرام ښکاري دي حکه چه د ننه تعبي د ذکر دوه دوه کلمه لومړنی جملې بنسته (ګیبه) کي سحالوي ددنه د الله تعالی د نوي وي په کوي نه زه ښکته شي

**۸۰۹:** حدثنا مسدد قال حدثنا يحيى عن عبيد الله قال حدثني نافع عن ابن عمر ان النبي صلى الله عليه وسلم قال في غزوة خيبر من اكل من هذه الشجرة يعني الثوم فلا يقربن مسجدنا

**۸۰۹:** مسدد يحيى عبيد الله نافع ابن عمر ته روايت دے نبي حكك خيبر كښې او فرمائيل چه كوم سړے اوږه او خوري نو خموږ جماعت ته دې نه راځي

**۸۱۰:** سَعِيدُبْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا بْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ زَعَمَ عَطَاءٌ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِاللّٰهِ زَعَمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَكَلَ ثُوْمًا اَوْبَصَلًا فَلْيَعْتَزِلْنَا اَوْ فَلْيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا وَلْيَقْعُدْ فِيْ بَيْتِهٖ وَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِقِدْرٍ فِيْهِ خَضِرَاتٌ مِنْ بَقُوْلٍ فَوَجَدَ لَهَارِيْحًا فَسَاَلَ فَاَخْبَرَ بِهَا فِيْهَامِنَ الْبُقُوْلِ فَقَالَ قَرِّبُوْهَا اِلٰى بَعْضِ اَصْحَابِهٖ كَانَ مَعَهٗ فَلَمَّا رَاٰهُ كَرِهَ اَكْلَهَا فَقَالَ كُلْ فَاِنِّيْ اُنَاجِيْ مَنْ لَاتُنَاجِيْ وَقَالَ اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ اُتِيَ بِبَدْرٍ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ يَعْنِيْ طَبْقًا فِيْهِ خَضِرَاتٌ وَلَمْ يَذْكُرِ اللَّيْثُ وَ اَبُوْ صَفْوَانَ عَنْ يُوْنُسَ قِصَّةَ الْقِدْرِ فَلَااَدْرِيْ هُوَ مِنْ قَوْلِ الزُّهْرِيِّ اَوْفِي الْحَدِيْثِ.

**۸۱۰:** سعيد بن عفير ابن وهب يونس ابن شهاب عطاء جابر بن عبداله روايت كوي نبي او فرمائيل چه كوم سړے اوږه يا پياز او خوري نو هغه دے خموږ نه جدا اوسي يا دائے او فرمائيل چه خموږ د جمات نه دے جدا اوسي او خپل كور كښې دے وي (يو حلے) نبي ته يو ديګ راوړے شو چه هغے كښې څو سبزي پخے شوے وے حضورؐ هغے كښې څه بوئي بيامند نو تپوس ئے او كه چه دے كښې څه دي نو څومره تر كاري چه هغے كښې وے هغه ورته اوښودلے شوے حضورؐ او فرمائيل چه دا خما بعضے اصحابوؓ ته (چه هغه وخت حضورؐ سره وو) نزدے كړئے خكه چه حضورؐ هغه اوليدو. نو د هغے خوراك ئے نا خوښه كه او وے فرمائيل چه تاسوئے خورئے (زهٔ ئے نه خورم) خكه چه زه هغے ذات سره غلے غلے خبرے كوم. چه تاسو ورسره خبرے نه كوئ. او احمد بن صالح د ابن وهب نه داسے نقل كړي دي چه د حضورؐ مخكښې يو طباق راوړے شو. چه هغے كښې تر كارئے وے. او ليث او ابو صفوان د يونس نه د كټوئے (هانډۍ) قصه بيان نه كړه. امام بخاري اووے زهٔ نه پوهيږم چه دا د زهري كلام دے يا حديث دے.

۱ ددے نه مراد لړښتے دي يو بل حديث شريف كښې دي "چه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم خدمت كښې يو ښځ كړے وراندے كړے شو. د هغے نه نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته بدبوئي ورغله نو

د خوړلو نه ئے انکار اوکړو. د وجے پښتنه ترے اوکړے شوه. چه د الله تعالي د فرښتونه ماته شرم (حيا) راځي او دا خوراک حرام نه دے" علامه ابن حزم رحمة الله عليه ليکلے دي. "چه هغه خوراکونه چه د هغے نه بدبوئي لرې کړے شوي نه وي بدبويه وي د هغے خوړل حرام دي ځکه چه دغه خوراک بنده د امامتي (د جماعت) د مونځ نه منعه کوي. او د جمعے (د امامتي) مونځ د هغه په نزد فرض عين دے ليکن ظاهره ده چه ددے واضحو احاديثو په وجه چه نبي عليه الصلاة والسلام پخپله فرمايلي دي چه دغه خوراکونه پخ کړي حرام نه دي. او په هغه پاکه زمانه کښ دغسے د اوږے او د پيازو خوراکونه پخ کړي خوړلے شو. نو څرنګ د هغے حرام والے منلے شي.

**٨١١: حَدَّثَنَا اَبُوْمَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ سَاَلَ رَجُلٌ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ مَا سَمِعْتَ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الثُّوْمِ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَكَلَ هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَلَا يَقْرَبَنَّا اَوْ لَا يُصَلِّيَنَّ مَعَنَا.**

٨١١: ابو معمر، عبدالوارث عبدالعزيز بن صهيب روايت کوي، انس بن مالک د يو سړي نه تپوس اوکه: چه تا نبيؐ نه د اوږے باره کښ څه اوريدلے دي. هغه اووے په دے حقله نبيؐ دا فرمائيلے دي چه څوک دا بوټے اوخوري نو نه دے مونږ ته نزدے کيږي او نه دے مونږ سره مونځ کوي.

**باب ٥٥١: وُضُوْءِ الصِّبْيَانِ وَمَتٰى يَجِبُ عَلَيْهِمُ الْغُسْلُ وَالطُّهُوْرُ وَحُضُوْرِهِمُ الْجَمَاعَةَ وَالْعِيْدَيْنِ وَالْجَنَآئِزِ وَصُفُوْفِهِمْ.**

باب ٥٥١: د ماشومانو اودس کولو بيان او کله په هغوي غسل او پاکي او جماعت کښ او اخترونو کښ او جنازو کښ حاضريدل واجب دي، او د هغوي د صفونو بيان.

١. ماشومانو باندے هيڅ عمل فرض نه دے (په څه مکلف نه دي) او کله چه بالغ شي نو بيا ورباندے ټول احکام فرض کيږي. چه کوم د هغوي سره تعلق لري او د ماشوم والي په هغوي ښه کارونه شروع کول پکار دي چه عادت ئے جوړ شي.

**٨١٢: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ الشَّيْبَانِيَّ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَنْ مَرَّ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرٍ مَنْبُوْذٍ فَاَمَّهُمْ وَصَفُّوْا عَلَيْهِ فَقُلْتُ يَا اَبَاعَمْرٍو وَمَنْ حَدَّثَكَ قَالَ**

٨١٢: محمد بن مثنى، غندر، شعبه، سليمان شيباني، شعبي روايت کوي. ماته هغه سړي بيان اوکه، چه نبيؐ سره يو منبوذ قبر (د نورو نه جدا قبر) ته ورغلے وو. حضورؐ د خلقو امامت اوکه او حضورؐ پسے خلقو صف اوتړلو. (او د هغه مونځ ئے اوکه سليمان وائي) ما اووے چه اے ابا عمرو تا ته دا بيان چا اوکه. نو هغه اووے، ابن

ابْنَ عَبَّاسٍ. عباسؓ ؤ.

۱. څرنګ چه په نورو احاديثو کښې دي چه عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په دغه وخت (زمانه) کښې نابالغ وو او هغه په وړوکوالي کښې د نورو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم سره د جمعې مونځ کښې شريک کيده. ددې نه دا ثابتيږي چه نابالغه له مونځ کول پکار دي.

۸۱۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ ثَنِيْ صَفْوَانُ ابْنُ سَلَيْمٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْغُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ.

۸۱۳: علي بن عبدالله" سفيان' صفوان بن سليم' عطاء بن يسار' حضرت ابو سعيد خدريؓ د نبيؐ نه روايت کوي' حضورؐ او فرمائيل چه د جمعې په ورځ په هر ؤ بالغ غسل واجب دې.

۱. د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د جمعې په ورځ لامبل (غسل) واجب دي د احنافو په نزد سنت دې ليکن په بعضې صورتونو کښې د احنافو په نزد هم واجب دې. يعني چه کله د چا د بدن نه د خولو وغيره په وجه بدبوئي خي. او عامُ خلقوته د هغې نه تکليف رسيږي نو لامبل (غسل) واجب دې عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې "چه د اسلام په اولنۍ زمانه کښې د خلقو سره کپړې (جامې) کمې وې. د کار کسب د کولو په وجه د خولو (پسينه) په وجه د خلقو د جامو نه بدبوئي تلله' ددغې بدبوئي لرې کولو د پاره په دغه زمانه کښې لامبل (غسل) واجب وو. بيا الله تعالٰى په مسلمانانو د مال فراخي راوستله. نو دا واجب والې پاتې نشو". ددينه دا معلومه شوه چه د واجب والي وجه بدبوئي خلقوته تکليف رسول وو ددې وجې نه په هغه چا غسل (لامبل) واجب دي. چه د چا د جامو کپړو او د خولې (پسينه) نه بدبوئي خي خلقوته ترې تکليف رسيږي. لامبل (غسل) صرف په بالغو واجب دې ددې د بيانولو د پاره دا حديث شريف دلته ذکر شو.

۸۱۴: عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ اَخْبَرَنِيْ كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ لَيْلَةً فَنَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا كَانَ فِيْ بَعْضِ اللَّيْلِ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَوَضَّأَ مِنْ شَنٍّ مُّعَلَّقٍ وُضُوْءً خَفِيْفًا يُخَفِّفُهُ عَمْرٌو وَّيُقَلِّلُهُ جِدًّا ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ فَقُمْتُ فَتَوَضَّأْتُ

۸۱۴: علي' سفيان' عمرو' کريب ابن عباسؓ روايت کوي' يوه شپه زهٔ خپلې ترور بي بي ميمونهؓ کره پاتې شوم ما اوليدل چه څه شپه پاتې شوه نو رسول پاسيدلو او يو اويزان مشک سره ئې آسان شان اودس او کړه (عمرو راوي به دې اودس ته ډير خفيف او لږ اودس وې) دې نه پس حضورؐ مانځه ته اودريدلو نوزه هم پاسيدلم. او څنګه چه حضورؐ اودس کړې وو. ما هم هغسې او کړه' بيازه راغلم او د حضورؐ ګس طرفته اودريدم' نو حضورؐ زه خپل ښي طرف ته کړم. بيا څومره

نَحْوًا مِمَّا تَوَضَّأَ ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ فَحَوَّلَنِيْ فَجَعَلَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ ثُمَّ صَلّٰى مَاشَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ فَاَتَاهُ الْمُنَادِيْ يُؤْذِنُهٗ بِالصَّلٰوةِ فَقَامَ مَعَهٗ اِلَى الصَّلٰوةِ فَصَلّٰى وَ لَمْ يَتَوَضَّأْ قُلْنَا لِعَمْرٍو اِنَّ نَاسًا يَقُوْلُوْنَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَامُ عَيْنُهٗ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهٗ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُوْلُ اِنَّ رُؤْيَا الْاَنْبِيَآءِ وَحْيٌ ثُمَّ قَرَاَ اِنِّيْ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اَذْبَحُكَ.

چه الله ته منظوره وه، حضورؐ هغومره مونځ اوکړلو. بيا حضورؐ آرام اوکړلو. او اوده شولو، تر دے چه د ساه اخستو آوازونه راتلو، بيا مؤذن حضورؐ ته د سحر مونځ د اطلاع د پاره راغے او حضورؐ هغه سره مونځ د پاره تشريف يوړلو. بيا حضورؐ اودس او نه کړلو سفيان وائي. مونږ عمرو ته اووے خنے خلق داسے وائي چه د نبيؐ سترګے به اوده کيدلے خو د حضورؐ زړه به نه اوده کيدلو، عمرو اووے ما د عبيد بن عمير نه دغسے اوريدلے دي چه د انبياؤ خوب وحي وي بيا هغه اووے اِنّي اَرٰى فِي المنام اَنّي اذبحک.

٨١٥: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ جَدَّتَهٗ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ فَاَكَلَ مِنْهُ فَقَالَ قُوْمُوْا فَلْاُصَلِّيَ بِكُمْ فَقُمْتُ اِلٰى حَصِيْرٍ لَنَا قَدِاسْوَدَّ مِنْ طُوْلِ مَالُبِسَ فَنَضَحْتُهٗ بِمَآءٍ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْيَتِيْمُ مَعِيْ وَ الْعَجُوْزُ مِنْ وَّرَآءِنَا فَصَلّٰى بِنَا رَكْعَتَيْنِ.

٨١٥: اسماعيل، مالک، اسحاق بن ابي طلحه انس بن مالک روايت کوي، چه د هغه نيا (دادي) مُليکهٔ رسول اللهؐ د پاره کوم طعام تيار کړے وو هغے د پاره نے راوغبنتلو نو حضورؐ د هغے نه خوراک او کړلو، او وے فرمائيل، اودريږئے چه زهٔ درته مونځ درکړم، نو زهٔ د خپل پوزي (پوړ) په يو طرف اودريدم چه زيات استعمال سره تور شوے وو، نو ما هغه په او بو صاف کړه بيا رسول اللهؐ اودريدلو او يو يتيم خما ملګرے وو. او بوډئي خمونږ ورستو اودريده، نو حضورؐ مونږ سره دوه رکعاته مونځ او کړلو.

١. دا حديث شريف وړاندے تير شويدے دلته امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه د "يتيم" د لفظ نه ماشوم والے معلوميږي. خکه چه بالغ ته يتيم نه شي ويلے، مقصدنے دادے چه يو ماشوم هلک د امامتي (د جمعے) مونځ کښ شريک شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم پرے بد اونه ګنړل.

٨١٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

٨١٦: عبدالله بن مسلمه، مالک، ابن

مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ اَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلٰى حِمَارٍ اَتَانٍ وَ اَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْنَا هَزْتُ الْاِحْتِلَامَ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ بِمِنًى اِلٰى غَيْرِ جِدَارٍ فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ فَنَزَلْتُ وَاَرْسَلْتُ الْاَتَانَ تَرْتَعُ وَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَلَيَّ اَحَدٌ.

شهاب، عبید الله بن عبدالله بن عتبه، عبدالله بن عباسؓ روایت کوي چه زه په خره (کدې) سور مخے ته راغلم. او زۀ هغه وخت بلوغ ته نزدے وم، او رسول اللهؐ مقام منی کښې د دیوال د پناه نه بغیر خلقو ته مونځ کولو نوزه د بعضے صفونو مخکښې تیر شوم، او (د خرے نه) کوز شوم او خره م پریښوده چه څرند اوکړي. او زه صف کښې شامل شوم، بیا زه چا په دے ملامت نه کړم.

۸۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ اَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَيَّاشٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى قَالَ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعِشَاءِ حَتّٰى نَادَاهُ عُمَرُ قَدْ نَامَ النِّسَاءُ وَالصِّبْيَانُ قَالَتْ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّهُ لَيْسَ اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ الْاَرْضِ يُصَلِّيْ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ غَيْرَكُمْ وَلَمْ يَكُنْ اَحَدٌ يَوْمَئِذٍ يُصَلِّيْ غَيْرَ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ.

۸۱۷: ابو الیمان، شعیب، زهري، عروه بن زبیر، بي بي عائشهؓ روایت کوي، یوه ورځے رسول اللهؐ د ماسختن مونځ کښې تاخیر اوکه، او عیاش په واسطه د عبدالاعلي، معمر، زهري، عروه بي بي عائشےؓ روایت اوکه، ‌ه هغے بیان دے یوه ورځے رسول اللهؐ د ماسختن مونځ کښې تاخیر اوکه تر دے چه عمرؓ حضورؐ ته آواز اوکړلو. چه ښځے او بچي اوده شو بي بي عائشهؓ وائی بیا رسول اللهؐ تشریف بهر یوړلو. او حضورؐ او فرمائیل، د زمکے خلقو کښې سیوا، ستاسو نه داسے هیڅوک نشته، چه دے وخت کښې مونځ اوکړي او دغه وخت کښې سیوا، د مدینے د خلقو نه بل چا مونځ نه کولو.

۱. امام بخاري رحمه الله علیه دا ښودل غواړی چه په هغه وخت کښې به ماشومان (واړه هلکان) د

ماسختن مونځ د پاره راتلل. ددې وجې نه حضرت عمر رضي الله عنه او فرمايل چه ښځې او ماشومان اوده شو.

٨١٨: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ وَقَالَ لَهُ رَجُلٌ شَهِدْتَ الْخُرُوْجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ وَلَوْ لَا مَكَانِيْ مِنْهُ مَا شَهِدْتُهُ يَعْنِيْ مِنْ صِغَرِهِ اِلَى الْعَلَمِ الَّذِيْ عِنْدَ دَارِ كَثِيْرِ بْنِ الصَّلْتِ ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ فَوَعَظَهُنَّ وَ وَذَكَّرَهُنَّ وَ اَمَرَهُنَّ اَنْ يَتَصَدَّقْنَ فَجَعَلَتِ الْمَرْءَةُ تَهْوِيْ بِيَدِهَا اِلٰى حَلْقِهَا تُلْقِيْ فِيْ ثَوْبِ بِلَالٍ ثُمَّ اَتٰى هُوَ وَبِلَالٌ نِ الْبَيْتَ.

٨١٨: عمرو بن علي يحيى سفيان عبد الرحمن بن عابس روايت کوي ابن عباس نه يو سړي اووې تاسو نبيﷺ سره عيدګاه ته تلو ته حاضر شوي يې هغه ورته اووې او که خپل قرابت حضورﷺ سره نه وې نو زه به سره حاضريدې. (يعني د کم عمري په سبب) حضورﷺ هغې نښان له راغې چه د کثير بن صلت مکان سره دې نو حضور خطبه اولوسته هغې نه پس حضورﷺ زنانه و طرف ته راغلو او هغوي ته ئې نصيحت او که هغوي ته ئې د خدائې احکام ور ياد کړل او حکم ئې ورکړ چه صدقه ورکړئ نو بعضو ښځو خپل لاس خپلې غاړې ته اوږد کړو. چا خپلې والۍ ته او چا بل څه کالي (زيور) ته هغه به ئې اوښکل. او د بلال څادر کښې به ئې غورځولو. بيا حضورﷺ او بلال کور ډيرې راغلل.

## بَابُ ٥٥٢: خُرُوْجِ النِّسَآءِ اِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ.

## باب ٥٥٢: د شپې وخت او تياره کښې د ښځو جماعت ته د تلو بيان.

٨١٩: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اَعْتَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَتَمَةِ حَتّٰى نَادَاهُ عُمَرُ نَامَ النِّسَآءُ وَالصِّبْيَانُ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا يَنْتَظِرُهَا اَحَدٌ غَيْرُكُمْ مِّنْ اَهْلِ الْاَرْضِ وَلَا يُصَلِّيْ يَوْمَئِذٍ اِلَّا

٨١٩: ابو اليمان، شعيب، زهري، عروه بن زبير بي بي عائشه روايت کوي. نبي (يو ځلې) د ماسختن مونځ کښې تاخير او که. تر دې چه عمر حضورﷺ ته آواز او که چه ښځې او بچي اوده شو. نو نبيﷺ بهر تشريف راوړلو. او وې فرمايل. د زمکې خلقو کښې تاسو نه سوا هيڅوک ددې مونځ انتظار کښې نه دی. او دغه وخت د مدينې نه سوا هيچرته مونځ

بِالْمَدِيْنَةِ وَكَانُوْا يُصَلُّوْنَ الْعَتَمَةَ فِيْمَا بَيْنَ اَنْ يَّغِيْبَ الشَّفَقُ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ الْاَوَّلِ.

به كېدلو او د ماسختن مونځ به يې د شفق (سرخي) د غائب كېدو نه د شپې د دريمې حصې پورې كولو

۸۲۰: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ حَنْظَلَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَاْذَنَكُمْ نِسَآءُكُمْ بِاللَّيْلِ اِلَى الْمَسْجِدِ فَاْذَنُوْا لَهُنَّ تَابَعَهُ شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۲۰: عبيد الله بن موسى، حنظله، سالم بن عبدالله ابن عمرؓ د نبي اكرمؐ نه روايت كوي حضورؐ او فرمائيل كوم وخت چه تاسو نه ستاسو ښځې د شپې جماعت ته د تلو اجازت او غواړي نو هغوي له اجازت وركوئ، شعبه په سند، د اعمش، مجاهد ابن عمرؓ د نبيؐ نه ددې متابع حديث روايت كړې دې.

۸۲۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ عُمَرَ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ هِنْدُ بِنْتُ الْحَارِثِ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهَا اَنَّ النِّسَآءَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ اِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلّٰى مِنَ الرِّجَالِ مَاشَآءَ اللّٰهُ فَاِذَا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ.

۸۲۱: عبدالله بن محمد، عثمان بن عمر يونس، زهري، هند بنت حارث، بي بي ام سلمهؓ د نبيؐ تېر روايت كوي، د نبيؐ زمانه كښې چه به ښځو د فرض (مونځ) سلام كرخولو. نو سمدستي به پاسيدې او رسول اللهؐ او كومو نارينه ؤ چه به مونځ كولو. خومره چه به الله ته منظوره وه هغوي به ايسار وو. بيا چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به پاسيدلو. نو ټول سړي به پاسيدل.

۸۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ ح وَحَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكٌ عَنْ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۸۲۲: عبدالله بن مسلمه، مالک (ح) عبدالله بن يوسف، مالک، يحيى بن سعيد، عمره بنت عبدالرحمن بي بي عائشهؓ روايت كوي، رسول اللهؐ چه به د سحر مونځ اوكړلو. نو ښځې به خپلو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّي الصُّبْحَ فَيَنْصَرِفُ النِّسَآءُ مُتَلَفِّعَاتٍ..... بِمُرُوْطِهِنَّ مَايُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ.

خادرونو كښې پټې واپس كيدلې. او د تيرې په وجه به پيژندې نه شوې.

۸۲۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِيْنٍ قَالَ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ الْاَنْصَارِيِّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَقُوْمُ اِلَى الصَّلٰوةِ وَ اَنَا اُرِيْدُ اَنْ اُطَوِّلَ فِيْهَا فَاَسْمَعُ بُكَآءَ الصَّبِيِّ فَاَتَجَوَّزُ فِيْ صَلٰوتِيْ كَرَاهِيَةَ اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمِّهٖ.

۸۲۳: محمد بن مسكين، بشر بن بكر اوزاعي، يحيٰي بن ابي كثير، عبداللّٰه بنا بي قتاده انصاري د خپل پلار ابو قتاده نه روايت كوي، رسول اللّٰهؐ او فرمائيل چه زه مونځ ته اودريږم نو غواړم چه اوږدئې كړم خو د بچي د ژړا آواز چه واورم نو خپل مونځ كښې تخفيف او كړم. دا خبره راته بده ښكاري چه د هغه په مور سختي اوكړم.

۸۲۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَوْ اَدْرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَحْدَثَ النِّسَآءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا مُنِعَتْ نِسَآءُ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ فَقُلْتُ لِعَمْرَةَ اَوَمُنِعْنَ قَالَتْ نَعَمْ.

۸۲۴: عبداللّٰه بن يوسف، مالك، يحيٰي بن سعيد، عمره، بي بي عائشه فرمائي، كه رسول اللّٰهؐ ته هغه حالت معلوم شوې وې چه ښځو راوښكلې دې نو بيشكه هغوي به ئې د جماعت تلو نه منع كړې وې څنګكه چه د بني اسرائيلو ښځې منع كړې شوې وې (يحيٰي بن سعيد وائي) ما عمره ته اووې آيا د بني اسرائيلو ښځې منع كړې شوې وې هغې اووې، او.

باب ۵۵۳: صَلٰوةِ النِّسَآءِ خَلْفَ الرِّجَالِ.

باب ۵۵۳: سړو پسې د ښځو د مونځ كولو بيان.

۸۲۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزْعَةَ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدٍ بِنْتِ الْحَارِثِ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۸۲۵: يحيٰي بن قزعه، ابراهيم بن سعد، زهري، هند بنت حارث، بي بي ام سلمه روايت كوي، رسول اللّٰهؐ چه به سلام كرخولو نو د حضورؐ سلام كرخولو سره به ښځې پاسيدلې

صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ قَامَ النِّسَآءُ حِيْنَ يَقْضِيْ تَسْلِيْمَهُ وَيَمْكُثُ هُوَ فِيْ مَقَامِهٖ يَسِيْرًا قَبْلَ اَنْ يَقُوْمَ قَالَ نَرٰى وَاللّٰهُ اَعْلَمُ اَنَّ ذَالِكَ لِكَيْ تَنْصَرِفَ النِّسَآءُ قَبْلَ اَنْ يُدْرِكَهُنَّ مِنَ الرِّجَالِ.

او حضورﷺ به د پاسيدو نه مخکښې په خپل ځائے لږ شان ايساريدلو (زهري وائي) خمونږ دا خيال دے والله اعلم: چه د حضورﷺ دا ايساريدل دے د پاره وو چه دے وخت کښې ښځے قبل ددے نه چه سړي هغوي سره يو ځائے شي هغوي (کورونو ته) واپس لاړے شي.

٨٢٦: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ اِسْحٰقَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِ اُمِّ سُلَيْمٍ فَقُمْتُ وَيَتِيْمٌ خَلْفَهٗ وَاُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا.

٨٢٦: ابو نعيم، ابن عيينه، اسحاق، حضرت انس نه روايت کوي، رسول اللهﷺ (يو ورځے) د ام سليم کور کښې مونځ اوکړه: نو زه او يو يتيم حضورﷺ پسے ورستو اودريدلو او ام سليم خمونږ ورستو اودريدله.

## بَابُ ٥٥٤: سُرْعَةِ انْصِرَافِ النِّسَآءِ مِنَ الصُّبْحِ وَقِلَّةِ مَقَامِهِنَّ فِي الْمَسْجِدِ.

## باب ٥٥٤: د سحر مونځ کولو نه پس د ښځو زر، د، واپسي او جماعت کښې د کم ايساريدلو بيان.

٨٢٧: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مَنْصُوْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الصُّبْحَ بِغَلَسٍ فَيَنْصَرِفْنَ نِسَآءُ الْمُؤْمِنِيْنَ لَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ اَوْلَا يَعْرِفُ بَعْضُهُنَّ بَعْضًا.

٨٢٧: يحيى بن موسي، سعيد بن منصور فليح عبدالرحمن بن قاسم، قاسم بن محمد، بي بي عائشے نه روايت کوي، چه رسول اللهﷺ به د سحر مونځ په تيرے کښې کولو نو مسلمانے ښځے به داسے وخت کښې واپس کيدے. چه د تيرے (تيارے) په وجه به پيژندے نه شوے يا (دائے اووے) چه خپلو کښې به ئے يو بله نه پيژندله[١].

[١]. څرنګ چه به د صبا مونځ خلاص شو. نو ښځے به سمدستي خپلو کورونو ته واپس روانے شوے او حومات کښې به نه ايساريدلے. د ښځو د واپس تلو په وخت به دومره تياره وه چه هغوي به يو بل نه پيژندل. البته د سړو حال جدا وو. هغوي به جومات کښې د څه وخت د پاره ناست وو ذکر به ئے کولو. ددے نه وړاندے نورو احاديثو مبارکو کښې د ښځو په مسجد نبوي کښې د مونځ کولو ذکر راغلے دے (فن

هم هغے کښې ښځې هم مونځونه کوي).

**بَاب ۵۵۵: اِسْتِيْذَانِ الْمَرْاَةِ زَوْجَهَا بِالْخُرُوْجِ اِلَى الْمَسْجِدِ.**

باب ۵۵۵: د ښځے د خپل خاوند نه جماعت ته د تلو' د اجازت اخستو بیان.

۸۲۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَاَةُ اَحَدِكُمْ فَلَا يَمْنَعُهَا.

۸۲۸: مسدد' یزید بن زریع' معمر' زهري سالم بن عبدالله' بن عمرؓ نبي نه روایت کوي' حضورؐ او فرمائیل' تاسو کښې چه د چا ښځه جماعت ته د تلو اجازت او غواړي' نو هغه مه منع کوئے.

## کِتَابُ الْجُمُعَةِ (د جمعے بیان)[1]

۱. جمعه د هغے مجلس (ټولنے) یاد دے چه آخرت کښې به کیږي او په هغے کښې به ټول پیغمبران رسولان' صدیقین مؤمنان په خپلو د ناستې خایونو کښې جمعه کیږي. په هغه ورځ به د الله تعالي دیدار کیږي. د حالي ورځ د یهودو' د اتوار ورځ د عیسایانو (نصارئ) او د مسلمانانو جمعه ده. د ورځو د ترتیب په لحاظ په کومه ورځ چه به جمعه راتله. هغه د اهل کتابو (یهود و نصارئ) د تعظیم' د عبادت ورځ وه. لیکن هغوي په خپلو کتابونو کښې تحریف (ردوبدل) او کړو. د هغوي د عبادت د حالي او د اتوار ورځے شوے د "سبت" عربي لفظ معنٰي د خالي ورځ ده. په عبرانئ کښې سبت' رخصت او چهټئ ته وائي. علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه لیکلي دي چه د تورات د مطالعے نه روستو ما دا فیصله او کړه چه "سبت" جمعے ته وائي په تورات کښې دي چه موسٰي علیه السلام بني اسرائیلو ته د جمعے په ورځ نصیحت کولو او هغوي ته به ئے د سبتي پیغمبر د راتلو زیرے ورکوو. په انجیل کښې دي چه بني اسرائیلو بو سرے د زیارت په ورځ په سولئ او خیژولو. او د هغه د زرمړ کولو کوشش ئے کولو چه هسے نه د سبت ورځ راشي. ښکاره خبره ده چه د زیارت نه پس جمعه رازي. او د جمعے د ورځے د بے عزتئ نه ویریدل. ددینه معلومیږي چه سبت به یهودو د جمعے ورځے ته وے.

**بَاب ۵۵۶: فَرْضِ الْجُمُعَةِ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ فَاسْعَوْا فَامْضُوْا.**

باب ۵۵۶: د جمعے د فرضیت بیان خکه چه الله تعالي فرمائیلے دي د جمعے په ورځ چه مانځه د پاره' اذان اوشي' نو د الله تعالي ذکر پله ورزغلئ' دا ستاسو په حق کښې بهتره خبره ده' که تاسو پوهیږئ. فاسْعَوْا' د' فامْضُوا په معني کښې دے.

۸۲۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْزِنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ الْاَعْرَجِ مَوْلٰى رَبِيْعَةَ ابْنِ الْحَارِثِ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ بَيْدَ اَنَّهُمْ اُوْتُوْا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا ثُمَّ هٰذَا يَوْمُهُمُ الَّذِيْ فُرِضَ عَلَيْهِمْ فَاخْتَلَفُوْا فِيْهِ هَدَانَا اللّٰهُ لَهُ فَالنَّاسُ لَنَا فِيْهِ تَبَعٌ اَلْيَهُوْدُ غَدًا وَّالنَّصَارٰى بَعْدَ غَدٍ.

۸۲۹: ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، عبدالرحمن بن هرمز، اعجر (د ربيعه بن حارث آزاد كرده غلام) د حضرت ابو هريرهؓ متعلق روايت كوي هغه د رسول اللّٰهؐ نه واوريدل مونږ دنيا ته د، راتلونكو د اعتبار نه ورستو يو ليكن د قيامت په ورځ به مخكښ يو، سِوا ددې نه چه هغوي ته كتاب خمونږ نه مخكښ وركړې شوې دې، بيا دا د هغوي ورځ هم ده. چه هغې كښې په هغوي عبادت فرض شوې[۱] دې هغې خلقو خودې كښې اختلاف اوكه ليكن مونږ خلقو ته اللّٰه تعالىٰ ددې هدايت اوكه، نو خلق دې كښې خمونږ نه ورستو دي صباله د يهودو د عبادت ورځ ده (يعني د خالي ورځ) او صبا نه بله[۲] ورځ د نصاراؤ د عبادت ورځ ده (يعني د اتوار ورځ).

۱. ددې په حقله علماؤ كښې اختلاف دې. چه آيا د جمعې په ورځ عبادت په هغوي فرض شوې وؤ او بيا هغوي د خپل طبيعت مطابق، د تعظيم او د عبادت د پاره، د اللّٰه تعالىٰ د مرضئ خلاف بله ورځ خوښه كړه. او بعضې علماؤ ليكلې دي. چه اللّٰه تعالىٰ دوي ته هدايات وركړل او د ورځ مقرره ول نې د دوي په اجتهاد پريخودل، نو اهل كتابو صحيح ورځ مقرر نه كړه هغوي پكښې اختلاف اوكړو خطا شُو.

۲. قيامت كښې به د ورځو او د اطرافو حساب ددينا د حساب نه جدا وي. دنيا كښې اوله ورځ د خالي ده. او آخره ورځ جمعه ده. ليكن په آخرت كښې به اوله ورځ جمعه وي ددې وجې نه د امت محمدي حساب به ټولو نه وړاندې كيږي. او د باقي امتونو به وروستو حساب كيږي.

## باب ۵۵۷: فَضْلُ الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهَلْ عَلَى الصَّبِيِّ الشُّهُوْدُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ اَوْعَلَى النِّسَآءِ.

## باب ۵۵۷: د جمعې په ورځ د غسل د فضيلت بيان. او دا چه آيا په بچو او ښځو باندې د جمعې مونځ كښې حاضريدل فرض دي.

۸۳۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا جَآءَ اَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ.

۸۳۰: عبداللّٰه بن يوسف، مالك، نافع عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰهؐ او فرمائيل هر كله چه تاسو كښې څوك د جمعې د مانځه د پاره راشي نو پكار دي چه غسل اوكړي.

۸۳۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَآءَ قَالَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بَيْنَمَا هُوَ قَآئِمٌ فِي الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اِذَا جَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُ عُمَرُ اَيَّةُ سَاعَةٍ هٰذِهٖ قَالَ اِنِّيْ شُغِلْتُ فَلَمْ اَنْقَلِبْ اِلٰى اَهْلِيْ حَتّٰى سَمِعْتُ التَّأْذِيْنَ فَلَمْ اَزِدْ اَنْ تَوَضَّأْتُ قَالَ وَالْوُضُوْءُ اَيْضًا وَقَدْ عَلِمْتَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَاْمُرُ بِالْغُسْلِ.

۸۳۱: عبدالله بن محمد بن اسماء، جويريه، مالک، زهري، سالم بن عبدالله بن عمر ابن عمرؓ روايت کوي، چه حضرت عمر بن خطابؓ د جمعې په ورځ خطبه لوسته چه د رسول الله صلعم د صحابهؓ او د مخکنو مهاجرينو نه يو سړے راغے نو هغه ته حضرت عمرؓ آواز ورکه چه دَ راتلو دا کوم وخت دے هغه جواب ورکه چه زهٔ د څه ضرورت په وجه ايسار شوے ووم. نوزهٔ لا کورته اوس واپس شوے نه ووم، چه ما د اذان آواز واؤريدلو. نو صرف اودس قدرے م اوکړے شو. حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل، صرف اودس دے اوکه حالانکه تاته معلومه ده چه رسول الله صلعم به د غسل حکم ورکولو۱.

۱. حضرت عمر رضي الله عنه هغه مشر صحابي رضي الله عنه ته زور نه اوکړه. چه ته ولې ناوخته راغلے، هغه مشر خپل عذر بيان کړو. چه وخت نه وؤ ما غسل هم اونکړو کور ته هم تللے نه شوم صرف يواځې اودس قدرے مې اوکړے شو. حضرت عمر رضي الله عنه او فرمايل چه يواځې خطبه اوريدو ته ناوخته نه يې راغلې بلکې يو بل فضيلت د جمعې مبارکې غسل دے هم پريخودلے دے. په دے موقعه دا د غور خبره ده چه حضرت عمر رضي الله عنه هغې مشر ته بيا د غسل کولو حکم اونکړو. که د جمعې په ورځ غسل فرض يا واجب وے. نو حضرت عمر رضي الله عنه ته ضرور ويل پکار وو. او دا وجه وه. چه هغه مشر صحابي چه په نورو رواياتو کښې د هغه نوم حضرت عثمان رضي الله عنه دے، هغه غسل کول ضروري اونه گنړه. صرف اودس کول ئې کافي اوگنړه. د حضرت عمر رضي الله عنه د عمل نه معلوميږي چه د خطبې په دوران کښې امام خلقوته حکم ورکولے شي او منعه کولے ئې هم شي. ليکن عام خلقوته ددے اجازت نشته هغوي به غلي چپ ناست وي او خطبه به بنه په اهتمام سره اوري.

۸۳۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ

۸۳۲: عبدالله بن يوسف مالک، صفوان بن سليم، عطاء بن يسار، حضرت ابو سعيد خدريؓ روايت کوي،

اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ.

رسول اللّه او فرمائيل: هر بالغ بانديے د جمعے د ورځے غسل واجب دے.

**بَـــابٌ ٥٥٨ : اَلطِّيْبُ لِلْجُمُعَةِ.**

**باب ٥٥٨ : د جمعے په ورځ د خوشبو لګولو بيان.**

٨٣٣ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ اَخْبَرَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عَمَارَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ سُلَيْمٍ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ اَشْهَدُ عَلٰى اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ اَشْهَدُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْغُسْلُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ وَ اَنْ يَسْتَنَّ وَ اَنْ يَمَسَّ طِيْبًا اِنْ وَجَدَ قَالَ عَمْرٌو اَمَّا الْغُسْلُ فَاَشْهَدُ اَنَّهُ وَاجِبٌ وَاَمَّا الْاِسْتِنَانُ وَالطِّيْبُ فَاللّٰهُ اَعْلَمُ وَاجِبٌ هُوَ اَمْ لَا وَلٰكِنْ هٰكَذَا فِي الْحَدِيْثِ قَالَ اَبُوْ عَبْدُ اللّٰهِ هُوَ اَخُوْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ وَلَمْ يُسَمِّ اَبُوْبَكْرٍ هٰذَا رَوٰى عَنْهُ بُكَيْرُ ابْنُ الْاَشَجِّ وَسَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ هِلَالٍ وَّ عِدَّةٌ وَّ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ يُكْنٰى بِاَبِيْ بَكْرٍ وَّ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ.

٨٣٣ : علي، حرمي بن عماره، شعبه ابوبكر بن منكدر، عمرو بن سليم انصاري اووے، زه په ابو سعيد خدريؓ ګواهي وركوم، هغه اووے زه په رسول اللّه ګواهي وركوم حضورؐ او فرمائيل د جمعے په ورځ په هر بالغ بانديے غسل كول واجب دي او دا چه مسواك او كړي او كه بيا منديے شي نو خوشبوئي د اولګوي. عمرو بن سليم بيان اوكه د غسل متعلق زه ګواهي وركوم. چه دا واجب دے ليكن مسواك كول او خوشبوئي لګول نو ددے متعلق اللّه ښه پوهيږي چه دا واجب دي يا نه خو حديث كښې داشان دي ابو عبداللّه (بخاري) اووے چه هغه (ابوبكر بن منكدر) د محمد بن منكدر ورور دے. او د ابو بكر نوم معلوم نه كړے شو. او د هغه نه بكير بن اشج، سعيد بن ابي هلال او مختلفو خلقو روايت كړے دے.

**بَابٌ ٥٥٩ . فَضْلِ الْجُمُعَةِ.**

**باب ٥٥٩ : د جمعے د فضيلت بيان.**

٨٣٤ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ

٨٣٤ : عبداللّه بن يوسف، مالك، سمي (دَ ابو بكر بن عبدالرحمن آزاد كرده غلام) ابو صالح سمان، حضرت ابو هريرهؓ نه

أَبِيْ صَالِحِ نِ السَّمَّانِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ رَاحَ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً وَّ مَنْ رَّاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً وَّ مَنْ رَّاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّالِثَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ كَبْشًا أَقْرَنَ وَمَنْ رَّاحَ فِي السَّاعَةِ الرَّابِعَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ دَجَاجَةً وَّ مَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الْخَامِسَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَيْضَةً فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ حَضَرَتِ الْمَلٰئِكَةُ يَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ.

روايت كوي: رسول الله ﷺ او فرمايل: چا چه د جمعې په ورځ د جنابت غسل او كه بيا مانځه د پاره لاړ نو گويا هغه د يو اوښ قرباني او كړه، او كوم سړي چه دويم ساعت كښې لاړ نو گويا هغه يوه غوا قرباني كړه او څوك چه دريم ساعت كښې لاړ نو گويا ښكر والا يو كډ (ډنب) ئې قرباني كړه. او څوك چه څلورم ساعت كښې لاړ. نو گويا يوه چرگه ئې قرباني كړه. او څوك چه پنځم ساعت كښې لاړ نو گويا يوه آگئ (انډه) ئې د الله په لار كښې ور كړه بيا چه امام د خطبې د پاره راوځي نو فرښتې د ذكر اوريدو د پاره حاضرې شي[۱].

۱. په دې حديث شريف كښې د ثواب پنځه درجې بيان شويدي د جمعې مانځه د پاره د حاضريدو وخت د صبا نه شروع كيږي او د ټولو نه زيات ثواب به هغه چاته ور كيږي څوك چه د صبا په وخت جومات ته راشي. د سلف صالحينو په دې عمل وو چه د جمعې په ورځ سحر د وخته جومات ته تلل او د مونځ ادا كولو نه پس به كورته تلل نو بيا به ئې خوراك كوو او قيلوله (د غرمې خوب) به ئې كونه. په نورو احاديثو كښې دي "چه كله امام خطبه ويلو د پاره منبر ته راشي نو فرښتې حپل رجسټر بند كړي او د الله تعالٰي ذكر كښې مشغولې شي.

## بَاب ۵٦۰:

## باب ۵٦۰: (دې باب كښې څه عنوان نشته).

۸۳۵: حَدَّثَنَا أَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى هُوَابْنُ أَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ بَيْنَمَا هُوَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِمَ تَحْتَبِسُوْنَ عَنِ الصَّلٰوةِ فَقَالَ الرَّجُلُ مَا هُوَ إِلَّا سَمِعْتُ النِّدَآءَ تَوَضَّأْتُ فَقَالَ أَلَمْ تَسْمَعُوْا

۸۳۵: ابو نعيم، شيبان، يحيي بن كثير ابو سلمه، ابو هريرة روايت كوي: عمر بن خطاب يو ځل د جمعې خطبه لوسته، دې دوران كښې يو سړې راغې نو حضرت عمر ورته اووې چه ته د مانځه نه ولې پاتې كيږې هغې سړي اووې د آذان آواز سره ما اودس او كړه (او راغلم) حضرت عمر ورته اووې آيا تا د نبيﷺ نه دي

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا رَاحَ اَحَدُكُمْ اِلَى الْجُمُعَةِ فَلْيَغْتَسِلْ.

اوريدلے چه تاسو کښې څوک د جمعے د ماسخته د پاره ځي، نو غسل دې کوي.

بَابُ ۵۶۱: الدُّهْنِ لِلْجُمُعَةِ.

باب ۵۶۱: د جمعے د ماسخته د پاره د تيل لږولو بيان.

۸۳۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ نِ الْمَقْبَرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنِ ابْنِ وَدِيْعَةَ عَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْتَسِلُ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَتَطَهَّرُ مَااسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ وَّيُدَّهِنُ مِنْ دُهْنِهٖ وَيَمَسُّ مِنْ طِيْبِ بَيْتِهٖ ثُمَّ يَخْرُجُ فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ ثُمَّ يُصَلِّيْ مَاكُتِبَ لَهٗ ثُمَّ يُنْصِتُ اِذَا تَكَلَّمَ الْاِمَامُ اِلَّاغُفِرَ لَهٗ مَابَيْنَهٗ وَمَا بَيْنَ الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى.

۸۳۶: آدم، ابن ابي ذئب، سعيد جعفري ابو سعيد مقبري، عبد الله بن وديعه، سليمان فارسيؓ روايت کوي، نبيؐ او فرمانيل څوک چه د جمعے په ورځ غسل کوي، او څومره چه ممکنه وي پاکيزګي حاصلوي. او خپلو تيلو نه تيل[۱] لږه وي يا د خپل کور د خوشبوئي نه خوشبوئي لږوي، بيا مانخه د پاره داسے اوځي چه د دوو سړو په مينځ کښې نه ور ننوځي او څومره چه دده مقدر کښې وي مونځ اوکړي، او کوم وخت چه امام خطبه لولي. نو خاموش اوسي، نو د هغے جمعے نه بلے جمعے پورے ګناه ئے بښلے شي.

۱. ددے مطلب دا دے چه خپل ويښته برابر کړي ګډوډي ئے ختمه کړي. ددينه معلوميږي چه د جمعے په ورځ زياته صفائي او پاکوالے ضروري دے.

۸۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ طَاوٗسٌ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ ذَكَرُوْا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اغْتَسِلُوْا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْسِلُوْا رُؤُسَكُمْ وَاِنْ لَمْ تَكُوْنُوْا جُنُبًا وَّ اَصِيْبُوْا مِنَ الطِّيْبِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَمَّا الْغُسْلُ فَنَعَمْ وَاَمَّا الطِّيْبُ فَلَا اَدْرِيْ.

۸۳۷: ابو اليمان، شعيب، زهري، طاؤس روايت کوي، ما ابن عباسؓ ته اووے، د خلقو بيان دے نبيؐ فرمائيلے دي چه د جمعے په ورځ غسل کوئے او خپل سرونه وينزئے اګر که تاسو ته د لامبلو ضرورت نه وي او خوشبوئي لږوئے، نو ابن عباسؓ جواب ورکه چه د غسل حکم خو صحيح دے ليکن د خوشبوئي متعلق ماته نه ده معلومه.

۸۳۸: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰي قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ ذَكَرَ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَيَمَسُّ طِيْبًا اَوْ دُهْنًا اِنْ كَانَ عِنْدَ اَهْلِهٖ فَقَالَ لَا اَعْلَمُهُ.

۸۳۸: ابراهیم بن موسیٰ هشام جریج ابراهیم بن میسره طاؤس حضرت ابن عباس نه روایت کوي چه هغه د رسولﷺ قول د جمعې په ورځ د غسل متعلق بیان که نو ما د حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوکه چه آیا هغه تیل یا خوشبوئي او لږوي که د هغه کور والو سره وي نو هغه جواب راکه چه ماته دا نه ده معلومه.

باب ۵۶۲: يَلْبَسُ اَحْسَنَ مَا يَجِدُ.

باب ۵۶۲: د جمعې په ورځ د ښه نه ښه کپړې د اغستو بیان، که بیا مونده شي.

۸۳۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَاٰى حُلَّةً سِيَرَاءَ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوِ اشْتَرَيْتَ هٰذِهٖ فَلَبِسْتَهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلِلْوَفْدِ اِذَا قَدِمُوْا عَلَيْكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا يَلْبَسُ هٰذِهٖ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ ثُمَّ جَاءَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا حُلَلٌ فَاَعْطٰى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ مِنْهَا حُلَّةً فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَسَوْتَنِيْهَا وَقَدْ قُلْتَ فِيْ حُلَّةِ عُطَارِدٍ مَا قُلْتَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَمْ اَكْسُكَهَا لِتَلْبَسَهَا فَكَسَاهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ

۸۳۹: عبدالله بن یوسف، مالک نافع، عبدالله بن عمرؓ روایت کوي چه عمر بن خطابؓ یوه ریښمینه خلکه مسجد نبوي سره خرڅدونکې اولیده، نو وې وئیل، یا رسول الله کاش چه دا تاسو اخستې وې چه د جمعې په ورځ او د ورفد د راتلو په ورځ مو اغستلې وا. نو رسول اللهﷺ او فرمائیل، دا هغه سړې اغندي چه د هغه اخرت کښې څه حصه نه وي بیا دغه شان یو څو ځغې (یا خلکې) حضورﷺ له راغلې نو حضور په کښې یوه حضرت عمرؓ له او لیږله عمرؓ عرض او که یا رسول الله، دا تاسوﷺ ماته اغستو د پاره راکړه. حالانکه تاسوﷺ د حله عطارد باره کښې فرمائیلې دي (چه ددې داغستونکي اخرت کښې څه حصه نشته) نو رسول اللهﷺ ورته او فرمائیل، ما تاته دې د پاره نه وه درکړې چه ته دې واغندې نو عمر بن خطابؓ هغه ځغه خپل یو مشرک

اَخَا لَهٗ بِمَكَّةَ مُشْرِكًا.

وروړ له اغوستو د پاره ورکړه چه هغه مکه کښې وو.

۱ . د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم يو پټکے (عمامه) وو کله به چه کوم وفد راتللو . نو رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم هغه پئسررو.

بَاب ۵٦۳: اَلسِّوَاکُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَنُّ.

باب ۵٦۳ : د جمعے په ورخ د مسواک کولو بيان او ابو سعيد د نبيّ نه روايت کړے دے چه مسواک اوکړئ.

۸۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ اَوْ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلَى النَّاسِ لَاَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ مَعَ كُلِّ صَلٰوةٍ.

۸۴۰: عبداللّه بن يوسف، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريرهؓ روايت کوي رسول اللّهؐ او فرمائيل، که ما د خپل امت د پاره ګرانه، نه ګنړلے نو هغوي ته به م حکم ورکړے وو چه هر مونځ د پاره مسواک کوئے.

۸۴۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ الْحَبْحَابِ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ .

۸۴۱: ابو معمر، عبدالوارث، شعيب بن حجاب، حضرت انسؓ روايت کوي، رسول اللّهؐ او فرمائيل، چه ما تاسو خلقو ته د مسواک متعلق ډير زيات بيان کړے دے.

۸۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ عَنْ مَنْصُوْرٍ وَحُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوْصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ .

۸۴۲: محمد بن کثير، سفيان، منصور او، حصين ابو وائل، حضرت حذيفهؓ نه روايت کوي چه رسول اللّهؐ به د شپے د خوب نه پاسيدلو نو خپله خوله به ئے مسواک سره صاف کوله.

بَاب ۵٦۴: مَنْ تَسَوَّكَ بِسِوَاكِ غَيْرِهٖ.

باب ۵٦۴ : د بل مسواک سره د مسواک کولو بيان.

۸۴۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ قَالَ

۸۴۳: اسماعيل، سليمان بن بلال، هشام بن عروه بن زبير، بي بي عائشهؓ

هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ مَعَهُ سِوَاكٌ يَّسْتَنُّ بِهٖ فَنَظَرَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ اَعْطِنِيْ هٰذَا السِّوَاكَ يَاعَبْدَ الرَّحْمٰنِ فَاَعْطَانِيْهِ فَقَصَمْتُهُ ثُمَّ مَضَغْتُهُ فَاَعْطَيْتُهُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنَّ بِهٖ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ اِلٰى صَدْرِيْ.

روایت کوي چه عبدالرحمن ابی بکر راغے او د هغه سره مسواک چه هغه به ئے استعمالولو رسول الله هغه مسواک ته اوکتل نو ما هغه ته اووے چه اے عبدالرحمانه دا مسواک ماله راکړه ما هغه پریکړو او اوو م ژویلو بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ورکړلو نو حضور هغه استعمال کړلو داسے حال کښې چه حضور خما سینے سره ډډه وهلے وه.

۱. دا د نبی علیه السلام د مرض وصال (وفات) واقعه ده او دا حدیث شریف به دوباره د وصال د مرض په باب کښې راځي

## بَابُ ۵۶۵: مَا يُقْرَاُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.

## باب ۵۶۵: د جمعے په ورځ د سحر مونځ کښې څه لوستل پکار دي.

۸۴۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ الٓمٓ تَنْزِيْلُ وَهَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ.

۸۴۴: ابو نعیم، سفیان، سعد بن ابراهیم، عبدالرحمن بن هرمز ابو هریره د روایت کوي. رسول الله به د جمعے په ورځ د سحر مونځ کښې سورة الم تنزيل او هل اتی علی الانسان (یعنی سورة سجده او سورة د هر) تلاوت کولو.

## بَابُ ۵۶۶: اَلْجُمُعَةُ فِي الْقُرٰى وَالْمُدُنِ.

## باب ۵۶۶: کلو او ښارونو کښې د جمعے د مونځ بیان.

۸۴۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ الضُّبَعِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

۸۴۵: محمد بن مثنی، ابو عامر عقدي ابراهیم بن طهمان، ابی جمره ضبعی، حضرت ابن عباس نه روایت کوی. هغه او فرمائیل، د رسول الله د

قَالَ اِنَّ اَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ فِيْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثٰى مِنَ الْبَحْرَيْنِ.

جماعت نه پس د ټولو نه وړمبے جمعه د بحرین په مقام جواثٰي ۱ کښې د قبیلهٔ عبدالقیس په جماعت کښې ادا کړے شوه.

۱. بعضے روایاتو کښې دي چه جواثي د بحرین یو قریه ده او قریه عربۍ کښې کلي ته واني. لیکن دا صحیح نه ده عربۍ کښې قریه ښار ته هم واني پخپله په قرآن مجید کښې مکے او طائف لویو ښارونو ته قریه ویلے شوے ده د عربو په اشعارو کښې او نورو واقعاتو نه دا معلومیږي چه جواثي نهٔ یواځے د بحرین لوئے ښهر (ښار) وو بلکې هلته یو قلعه هم وه د امرؤ القیس په یو شعر کښې دیته اشاره شویده. چه جواثي یو تجارتي مرکز دے دے حدیث شریف کښې دا بیان دے چه اوله جمعه (د جمعے مونځ) د مسجد نبوي نه روستو په جواثي کښې شوے وه. بنو عبدالقیس ددے ځائے اوسیدونکے وو. دوه خله ددوي وفد د نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم په دربار کښې حاضر شوے وؤ اول خل په شپږم کال د هجرت (۶هـ) او دوباره په اتم کال د هجرت ۸ هـ. ښکاره ده چه جمعه دلته روستو شروع شوے وه. لیکن اسلام په دے دوران کښې د مدینے منورے په ښو او شا کښې ښور شوے وو. او هیچرته به د جمعے مونځ بغیر د مسجد نبوي نه نه کیدلو. د ټولو نه اوله جمعه په مسجد الجمعه کښې د بنو عوف بن مالک په محله کښې د قبا علاقے سره نزدے ادا شوے وه. د هغے نه پس به مسجد نبوي کښې د جمعے مونځ کیدلو د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم په زمانه کښې په بانډو کلو کښې د جمعے مونځ نه کیده لیکن جواثي یو لوئے ښهر (ښار) وو د هغے اوسیدونکي چه کله مسلمانان شو نو خکه هلته کښې په اول خل جمعه اوشوه.

۸۴۶: حَدَّثَنِيْ بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَّزَادَ اللَّيْثُ قَالَ يُوْنُسُ كَتَبَ رُزَيْقُ بْنُ حَكِيْمٍ اِلَى ابْنِ شِهَابٍ وَّاَنَا مَعَهٗ يَوْمَئِذٍ بِوَادِ الْقُرٰى هَلْ تَرٰى اَنْ اُجَمِّعَ وَرُزَيْقٌ عَامِلٌ عَلٰى اَرْضٍ يَعْمَلُهَا وَفِيْهَا جَمَاعَةٌ مِنَ السُّوْدَانِ وَغَيْرِهِمْ وَرُزَيْقٌ يَوْمَئِذٍ

۸۴۶: بشر بن محمد، عبداللّٰه، یونس، زهري، سالم، ابن عمرؓ نه روایت کوي، هغه اوفرمائیل ما د رسول اللّٰهؐ نه واوریدل چه تاسو کښې هر سړے نګران دے لیث زیاتوالي سره بیان که، چه د یونس قول دے زه هغے ورځو کښې وادي القرٰي کښې ابن شهاب سره ووم، نو رزیق بن حکیم، ابن شهاب ته اولیکل، ستا څه خیال دے چه زه دلته جمعه قایمه کړم، او رزیق یوه زمکه کښې کاشتکاري کوله او هلته ذ حبشیانو او نورو خلقو یو جماعت وو، او رزیق ۱ دغه ورځو کښې ایله کښې حاکم وو، نو ابن شهاب ورته اولیکل چه جمعه قایمه کړه

عَلٰى اَيْلَةَ فَكَتَبَ ابْنُ شِهَابٍ وَّاَنَا اَسْمَعُ يَاْمُرُهٗ اَنْ يُّجَمِّعَ يُخْبِرُهٗ اَنَّ سَالِمًا حَدَّثَهٗ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ اَلْاِمَامُ رَاعٍ وَمَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِيْ اَهْلِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالْمَرْاَةُ رَاعِيَةٌ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْئُوْلَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ رَاعٍ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ وَمَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ قَالَ وَحَسِبْتُ اَنْ قَدْ قَالَ وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِيْ مَالِ اَبِيْهِ وَمَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ وَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ كُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ.

(يعنـي د جمعے مونـخ كوه) او دا حكم ور كولو سره ما اوريـدلو او د هغه خبر دے چه سالم هغه ته بيان او كه چه عبـداللّٰـه بن عمرؓ به فرمائيل ما د رسول اللّٰهؐ نه واوريدل چه تاسو كښ هر سړے نګران دے او د هر سړي نه به د هغه د رعيت په حقله تپوس كيږي سړے په خپل اهل نګران دے او د هغه نه به د هغے متعلق تپوس كيږي ښځه د خپل خاوند د كور نګرانه ده هغے نه به د هغے د رعيت متعلق پښتنه كيږي خادم د خپل آقا د مال محافظ دے او هغه نه به د هغه د رعيت باره كښ تپوس كيږي ابن شهاب اووے خما خيال دے چه شايد دا ئے هم اووے چه سړے د خپل پلار ذ مال نګهبان دے او هغه نه به د هغه د رعيت پښتنه كيږي او تاسو كښ هر سړے نګهبان دے او هر سړي نه به د هغه د رعيت متعلق تپوس كيږي.

۱. ايلـه يـو مـركـزي ښار دے هلته كښ د جمعے د مونځ د پاره د پوښتنے كولو ضرورت نه وو ليكن رُزيـق د ايـلـه ګورنر (حاكم) وو. د هغه د ايله ښار په اطرافو كښ مزكه وه او رُزيق به هلته اوسيدلو. او دغه عـلاقـه (د مـصـر پـه فـنـا) د ښهـر په طرف كښ وه د ښهر اطراف د ښهر په حكم كښ داخل دي. پكښ د جـمـعے مونځ روا دے. دلته كښ اصل خبره داده چه هغه دا پوښتنه د ښار او بانډه كښ د ادا كولو د پاره نه وه كـړے ليكن هغه دا تپوس خكه كړے وو "چه امير المؤمنين خه د ايله حاكم مقرر كړے يم او ماته صرف ايـلـه كـښ د جـمـعے د مونځ اجازت دے". نو امام محمد بن شهاب الزهري رحمة اللّٰه عليه ورته دا جواب وركړو چه د ايله اطرافو كښ جمعه ادا كول روا دي. په حديث شريف كښ د ښهر او د بانډے ذكر نشته بلكے د ښهر د امير د فرائضو ذكر دے.

## بَاب ۵۶۷: هَلْ عَلٰى مَنْ لَّا يَشْهَدُ الْجُمُعَةَ غُسْلٌ مِّنَ النِّسَآءِ وَالصِّبْيَانِ وَغَيْرِهِمْ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ اِنَّمَا الْغُسْلُ عَلٰى مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ الْجُمُعَةُ.

## بـاب ۵۶۷: څـوک چـه د جمعے مونـخ كښ شـريک نشـي يعنـي بـچي او ښځے وغيره نو آيا پـه دے خلقـو هـم غسل واجب دے ابـن عـمرؓ وئيلي دي غسل پـه هغـه چـا واجـب دے چـه جمعه پـرے واجب دا ده.

۱. د امام بخاري رحمة الله عليه اشاره دے طرفته ده چه لامبل (غسل كول) د جمعے د ورځے د پاره سنت دي با د جمعے د مونځ د پاره، مشهوره داده چه د مونځ د پاره سنت دي. په داسے وخت كښې غسل كول بكار دى. چه د هغے غسل په اودس باندے د جمعے مونځ ادا شي.

ف: ددينه روستو امام بخاري رحمة الله عليه حديث شريف ذكر كړيدے چه د جمعے لامبل په هر بالغ فرض دي.

۸۴۷: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ جَآءَ مِنْكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ.

۸۴۷: ابو اليمان، شيعب، زهري، سالم بن عبدالله، عبد بن عمر نه روايت دے هغه او فرمائيل ما د رسول الله نه اوريدلے دي چه تاسو كښې څوک د جمعے مونځ له راځي نو غسل دے كوي.

۸۴۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ صَفْوَانَ ابْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ.

۸۴۸: عبدالله بن مسلمه، مالک، صفوان بن سليم، عطاء بن يسار، ابو سعيد خدريؓ روايت كوي، رسول اللهؐ او فرمائيل، د جمعے په ورځ غسل كول هر بالغ سړي باندے واجب دي.

۸۴۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بَيْدَ أَنَّهُمْ أُوْتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا وَ أُوْتِيْنَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ فَهٰذَا الْيَوْمُ الَّذِىْ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ فَغَدًا لِلْيَهُوْدِ وَبَعْدَ غَدٍ لِلنَّصَارٰى فَسَكَتَ ثُمَّ قَالَ حَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ أَنْ يَغْتَسِلَ فِىْ كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَوْمًا

۸۴۹: مسلم بن ابراهيم، وهيب ابن طاوس، طاوس، ابو هريرةؓ نه روايت دے رسول اللهؐ او فرمائيل چه مونږ راتلو كښې آخري يو ليكن قيامت كښې به د ټولو نه مخكښې يو، سوا ددے نه چه هغوي ته څمونږ نه مخكښې كتاب وركړے شوے دے او مونږ ته وروستو كتاب راكړے شوے دے. نو دا هغه ورځ ده چه ددے متعلق هغوي اختلاف اوكه، ليكن مونږ ته الله هدايت اوكه نو صبا ورځ (خالي) يهوديانو د پاره ده، او صبا نه بله ورځ (اتوار) د نصاراؤ د پاره ده بيا لږ ساعت خاموش وو او وے فرمائيل په هر مسلمان واجب دي

يُغْتَسَلُ فِيْهِ رَأْسَهُ وَجَسَدَهُ رَوَاهُ اَبَانُ ابْنُ صَالِحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلّٰهِ تَعَالٰى عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ حَقٌّ اَنْ يَّغْتَسِلَ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ اَيَّامٍ يَوْمًا.

چه هر اوه ورځے کښې يو ورځ غسل او کړی د ... چه خپل سر او جسم او وينځي او دا حديث ابان بن صالح هم په سند د مجاهد طاوس ابو هريره نه روايت کړو چه رسول الله او فرمايل د الله تعالى په هر مسلمان حق دے چه په هر د اوو ورځ غسل او کړي.

١ د حديث شريف دا ټوټه امام بخاري رحمه الله عليه په خپل کتاب کښې بيا بيا ذکر کوي او چرته سے چه مناسبت نه وي نو د حديث شريف شرحه کونکي مختلفے خبرے کوي لکن ددے بيا بيا د ذکر کولو وجه داده. چه امام بخاري رحمة الله عليه سره يو صحيفه وه هغے ورو کي کتاب کښې يے سل احاديث ليکلے وو د هغے اولنے (ړومبے) حديث دا وو. کله چه امام بخاري رحمة الله عليه د هغے صحيفے نه حديث په دے صحيح البخاري کښې ليکي نو د نښے او علامے په دول د هغے دا اولنے حديث يکښې د بل حديث شريف په اول کښې ليکي.

٨٥٠: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ قَالَ حَدَّثَنَا وَرْقَآءُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ائْذَنُوْا النِّسَآءَ بِاللَّيْلِ اِلَى الْمَسَاجِدِ.

٨٥٠: عبدالله بن محمد، شبابه، عمرو بن دينار، مجاهد، ابن عمر د رسول الله نه روايت کوي، حضور او فرمايل، چه ښځو ته د شپے جومات ته د تلو اجازت ورکړئے.

٨٥١: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ ثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَتِ امْرَاَةٌ لِعُمَرَ تَشْهَدُ صَلٰوةَ الصُّبْحِ وَالْعِشَآءِ فِي الْجَمَاعَةِ فِي الْمَسْجِدِ فَقِيْلَ لَهَا لِمَ تَخْرُجِيْنَ وَقَدْ تَعْلَمِيْنَ اَنَّ عُمَرَ يَكْرَهُ ذَالِكَ وَيَغَارُ قَالَتْ فَمَا يَمْنَعُهُ اَنْ يَّنْهَانِيْ قَالَ يَمْنَعُهُ قَوْلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاتَمْنَعُوْا اِمَآءَ اللّٰهِ

٨٥١: يوسف بن موسي، ابو اسامه، عبيد الله بن عمر، نافع، ابن عمر نه روايت کوي چه د حضرت عمر يوه بي بي د سحر او ماسختن مونځ د پاره جمات ته جماعت کښې شريکيدو د پاره تله نو هغے ته اوونيلے شو چه ته ولے بهر اوځے هر کله چه تا ته معلومه ده چه عمر دا خبره بده ګنړي او هغه ته په دے غيرت ورځي نو هغے بي بي اووے نو بيا څه څيز هغه ددے خبرے نه منع کوي چه ما هغه ددے نه منع کړي. خلقو ورته اووے چه د رسول الله فرمان هغه ددے خبرے نه منع کوي. چه د الله وينزے د الله د جماتونو نه مه منع

مَسَاجِدِ اللّٰهِ.

کوي.

**بَابٌ ۵۶۸: اَلرُّخْصَةِ اِنْ لَّمْ يَحْضُرِ الْجُمُعَةِ فِي الْمَطَرِ.**

**باب ۵۶۸:** كه باران وريږي، نو جمعه كښې دنه حاضريدو، د اجازت بيان.

۸۵۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْحَمِيْدِ صَاحِبُ الزِّيَادِيِّ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَمِّ مُحَمَّدِبْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِمُؤَذِّنِهٖ فِيْ يَوْمٍ مَّطِيْرٍ اِذَا قُلْتَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلَ اللّٰهِ فَلَاتَقُلْ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ قُلْ صَلُّوْا فِيْ بُيُوْتِكُمْ فَكَاَنَّ النَّاسَ اسْتَنْكَرُوْا فَقَالَ فَعَلَهٗ مَنْ هُوَخَيْرٌ مِّنِّيْ اِنَّ الْجُمُعَةَ عَزْمَةٌ وَّ اِنِّيْ كَرِهْتُ اَنْ اُخْرِجَكُمْ فَتَمْشُوْنَ فِي الطِّيْنِ وَالدَّحْضِ.

۸۵۲: مسدد، اسماعيل، عبدالحميد صاحب الزيادي، عبدالله بن حارث (د محمد بن سرين د تره خوي) روايت كوي چه حضرت ابن عباسؓ د باران په ورځ خپل موذن ته اووے چه كله ته اشهد ان محمد رسول الله اووائے، نو (دے نه پس) حي علي الصلوٰة مه وايه بلكه اووايهٔ في بيوتكم (خپلو كورنو كښې مونځ اوكړے) خلقو ته په دے خبره تعجب شو نو هغه ورته اووے. چه دا خبره هغه سړي كړے ده چه څما نه بهتر وو[۱] و د جمعے مونځ اګر كه فرض دے ليكن زه دانه خوښوم، چه تاسو راوكاږم، چه ختو او خاورو كښې روان شئے.

**بَابٌ ۵۶۹: مِنْ اَيْنَ تُؤْتَى الْجُمُعَةَ وَعَلٰى مَنْ تَجِبُ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ وَقَالَ عَطَآءٌ اِذا كُنْتَ فِيْ قَرْيَةٍ جَامِعَةٍ فَنُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَحَقٌّ عَلَيْكَ اَنْ تَشْهَدَهَا سَمِعْتَ النِّدَآءَ اَوْلَمْ تَسْمَعْهُ وَ كَانَ اَنَسٌ فِيْ قَصْرِهٖ اَحْيَانًا تُجَمِّعُ وَاَحْيَانًا لَايُجَمِّعُ وَ هُوَ بِالزَّاوِيَةِ عَلٰى فَرْسَخَيْنِ.**

**باب ۵۶۹:** د جمعے د مونځ د پاره د څومره لرے نه راتلل پكار دي، او جمعه په چا واجب ده، د الله تعالىٰ ددے قول په بنا، چه كوم وخت د جمعے په ورځ د مونځ د پاره آذان اوشي، الخ او عطاء وئيلے دي هر كله چه تاسو يو داسے ښار كښې ئے چه هلته د جمعے مونځ كيږي، او د جمعے د مونځ د پاره اذان اوشي، نو په تاسو د جمعے د مونځ د پاره حاضريدل واجب دي خواه تاسو آذان واورے يا واونه رے او انسؓ به خپل مكان كښې كله د جمعے مونځ كولو او كله به ئے نه كولو او د هغه كور د بصرے ښار په يو ګټ كښې په دوه ميله فاصله باندے وو.

۱. دے باب كښې دا مسئله ښودلے شويده. چه كله كوم خانے كښې د جمعے د مونځ د صحت پوره

شي. او هلته د جمعې مونځ كيږي. نو د كومو خلقو د پاره د جمعې مونځ ادا كول ضروري دي. او د خومره لرې خائې نه به د جمعې د مونځ د پاره راتلل ضروري وي. د احنافو دا مذهب دے چه يواځې د هغې ښهر په خلقو د جمعې مونځ ادا كول واجب دي. د هغې خواوشا باندو كښې چه كوم خلق اوسيږي په هغوي د جمعې مونځ فرض نه دے كه هغه خلق نزدې وي يا لرې. ليكن زياته غوره داده. چه د ښهر په ټولو خلقو د جمعې مباركې مونځ واجب دے. د ښهر خواوشا باندو علاقو كښې چرته چه د اذان آواز رسيږي. په هغوي هم واجب دے (فيض الباري جلد دويم) غالباً امام بخاري رحمة الله عليه چه كوم آيت شريف ذكر كړيدے هغه ددے مقصد دپاره دے.

**۸۵۳:** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ اَنَّ مُحَمَّدَبْنَ جَعْفَرِ بْنُ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ النَّاسُ يَنْتَابُوْنَ الْجُمُعَةَ مِنْ مَّنَا زِلِهِمْ وَالْعَوَالِيْ فَيَأْتُوْنَ فِيْ الْغُبَارِ يُصِيْبُهُمُ الْغُبَارُ وَ الْعَرَقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُمُ الْعَرَقُ فَاَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْسَانٌ مِنْهُمْ وَهُوَ عِنْدِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْاَنَّكُمْ تَطَهَّرْ تُمْ لِيَوْ مِكُمْ هٰذَا.

**۸۵۳:** احمد بن صالح، عبدالله بن وهب عمرو بن حارث، عبيد الله بن ابي جعفر. محمد بن جعفر بن زبير، عروه بن زبير، ام المومنين بي بي عائشةؓ روايت كوي چه خلق د جمعې په ورځ د خپلو كورونو او عوالي نه وار په وار راتلل هغوي به گرد كښې گرخيدل نو گرد به پرې لگيدلو او خوَلَه (پسينه) به ترې بهيدله هغوي كښې يو سړے رسول اللهؐ له راغے حضورؐ ما سره ناست وو نو رسول اللهؐ او فرمائيل. كاش چه نن ورځ تاسو صفائي كړې وے. (يعني غسل مو كړې وے نو ښه به وے).

### باب ۵۷۰: وَقْتُ الْجُمُعَةِ اِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَذٰلِكَ يُذْكَرُ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيِّ وَّالنُّعْمَانِ بْنُ بَشِيْرٍ وَّعَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ.

### باب ۵۷۰: د جمعې وخت د نمر زوال باندې پكار ؤ دے عمرؓ عليؓ نعمان بن بشير او عمرو بن حريث نه دغسې منقول دي.

۱. د اُمت دعا مو عالمانو په نزد د جمعې او د ماسپخين د مونځ وخت يو دے د امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه د جمعې مونځ، د اختر د مونځ په وخت ادا كول روا دي هغي وائي جمعه هم يو اختر دے دخاښت په وخت ادا كولو كښې هيڅ گناه نشته.

**۸۵۴:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ

**۸۵۴:** عبدان، عبدالله، يحيي بن سعيد

أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ أَنَّهُ سَأَلَ عَمْرَةَ عَنِ الْغُسْلِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَقَالَتْ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ النَّاسُ مَهَنَةَ أَنْفُسِهِمْ وَكَانُوْا إِذَا رَاحُوْا إِلَى الْجُمُعَةِ رَاحُوْا فِيْ هَيْئَتِهِمْ فَقِيْلَ لَهُمْ لَوِ اغْتَسَلْتُمْ.

روایت کوی هغه د عمره نه د جمعې د غسل متعلق تپوس او کړو نو هغه جواب ورکړو: بي بي عائشه فرمائي: خلقو به خپل کاروبار کولو چه د جمعې مونځ له به راتلل نو هغې هينت کښې به راتلل: هغوی ته او وئيلې شو کاش: چه تاسو غسل کړې وې.

۸۵۵: حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ عُثْمَانَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عُثْمَانَ تَيْمِيٍّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِيْنَ تَمِيْلُ الشَّمْسُ.

۸۵۵: شریح بن نعمان: فليح بن سليمان عثمان بن عبدالرحمن بن عثمان تيمي: حضرت انس بن مالک روایت کوی رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم به هغه وخت د جمعې مونځ کولو کوم وخت چه به نمر په زوال شو.

۸۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نُبَكِّرُ بِالْجُمُعَةِ وَنَقِيْلُ بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

۸۵۶: عبدان: عبداللّه: حميد: حضرت انس بن مالک نه روايت کوی: چه مونږ خلق به د جمعې په ورځ د: وخته: وتلو: او د جمعې د مانځه نه پس به سملاستلو.

## بَابٌ ۵۷۱: إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.

## باب ۵۷۱: د جمعې په ورځ د سختي ګرمي بيان[۱]

۱. د امام بخاري رحمة اللّه عليه دا رائې ده چه د ګرمي په موسم کښې د جمعې مونځ د ماسپخين د مانځه په شان په يخ وخت کښې ادا کول غوره دي ليکن هغه: په يقين سره فيصله او نه کړې شوه خکه چه په حديث شريف کښې د "يعني الْجُمُعَةَ" په حقله پته نه لګي چه دا د چا وينا ده. علامه انور شاه کشميري رحمة اللّه عليه وائي دا د راوی وينا ده او حديث شريف د ماسپخين د مانځه په باره کښې دې.

۸۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرِنِ الْمُقَدَّمِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عَمَارَةَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ خُلْدَةَ هُوَ

۸۵۷: محمد بن ابي بکر مقدمي حرمي بن عماره: ابو خلده: خالد بن دينار: حضرت انس بن مالک فرمائي چه يخني

خَالِدُ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلٰوةِ وَاِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ اَبْرَدَ بِالصَّلٰوةِ يَعْنِي الْجُمُعَةَ وَقَالَ يُوْنُسُ بْنُ بُكَيْرٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ خَلْدَةَ وَقَالَ بِالصَّلٰوةِ وَلَمْ يَذْكُرِ الْجُمُعَةَ فَقَالَ بِشْرُ بْنُ ثَابِتٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ خَلْدَةَ صَلّٰى بِنَا اَمِيْرُ الْجُمُعَةِ ثُمَّ قَالَ اَنَسٌ كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ.

به ډېره زياته شوه نو رسول اللّهٔ به د وخته مونځ کولو، او چه ګرمي به ډېره زياته شوه نو مونځ به يعني د جمعې مونځ به يې په يخ وخت کښې کولو. او د يونس بن بکير بيان دے چه ابو خلده مونږ ته د بالصّلٰوة لفظ بيان که. او د جمعې لفظ يې بيان نه که. او بشر بن ثابت اووے مونږ ته ابو خلده بيان اوکه چه مونږ ته امير د جمعې مونځ راکه بيا يې انسؓ نه تپوس اوکه چه رسول اللّهٔ د ماسختن مونځ څنګه کولو.

بَابُ ۵۷۲: الْمَشْيِ اِلَى الْجُمُعَةِ وَقَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَمَنْ قَالَ السَّعْيُ الْعَمَلُ وَالذَّهَابُ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَحْرُمُ الْبَيْعُ حِيْنَئِذٍ وَقَالَ عَطَاءٌ تَحْرُمُ الصِّنَاعَاتُ كُلُّهَا وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اِذَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهُوَ مُسَافِرٌ فَعَلَيْهِ اَنْ يَشْهَدَ.

باب ۵۷۲: د جمعې د مونځ د پاره د تلو بيان.

او د اللّه تعالي قول چه ذکر الهي ته رازغلئ. او د بعضو قول دے چه د وسعي نه مراد عمل کول او تلل دي ددے دليل ارشاد باري وسعى لها سعيها دے. او ابن عباسؓ او فرمائيل چه دغه وخت خر څول اغستل حرام دي د عطاء قول دے چه ټول کارونه[1] حرام دي. او د ابراهيم بن سعد نه نقل دے چه کله موذن د جمعې د مونځ د پاره آذان اوکړي او هغه مسافر وي. نو هغه د پاره د جمعې مونځ کښې حاضريدل واجب دي.

١. په هدايه کښې دي چه دغه وخت ټول کاروبارونه حرام دي. د اذان اوريدو سره سمدستي د جمعې د مونځ د پاره تلل پکار دي. ليکن په مسافر باندې جمعه فرض نه ده. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه د "سعي" نه مراد منډه وهل نه دي بلکې د اللّه تعالي د حکم په وجه د جمعې د مونځ د پاره سمدستي تلل ضروري دي

۸۵۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ

۸۵۸: علي بن عبداللّه، وليد بن مسلم يزيد بن ابي مريم، عبايه بن رفاعه روايت کوي چه زه د جمعې د مانځه

حَدَّثَنَا عَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ قَالَ اَدْرَكَنِي اَبُوْا عَبْسٍ وَّاَنَا اَذْهَبُ اِلَى الْجُمُعَةِ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ.

د پـاره راتـلـم نـو مـاسـره ابـو عبـس يو خـائـے شـو او ورے ونيـل مـا د رسـول الـلّٰـهؐ نـه اوريـدلے دي د چـاچـه دواړه پښـے د خـدائـے ﷻ پـه لار کـښ گـرد' او وهـي نـو ...... الـلّٰـه تعـالٰي په هغه دوزخ حرام کړي.

۱. د "سبيل الله" لفظ چه کله په حديث کښ راشي نو د حديث امامان د هغې مطلب جهاد وائي. او عامو محدثينو دا حديث د جهاد په حقله ذکر کوي. ليکن امام بخاري رحمة الله عليه (د الله لاره) عامه گنړي خکه هغه دا حديث شريف د جمعے د مانځه د تللو په حقله ذکر کړو.

۸۵۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدٍ وَّاَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَحَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا تَاْتُوْهَا تَسْعَوْنَ وَاْتُوْهَا تَمْشُوْنَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةُ فَمَا اَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْا وَمَا فَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا.

۸۵۹: ادم ابـن ذيـب' زهـري' سـعيـد ابـي سـلـمـه' ابـو هـريـره (ح) ابـو اليـمـان' شعيب' زهـري' ابـو سـلـمـه بـن عبـدالـرحـمـن' حضـرت ابـو هـريـرهؓ روايـت کـوي' مـا د رسـول الـلّٰـهؐ نـه واوريـدل کـوم وخـت چـه د مـونـځ تـکبيـر اوشـي نو مـانـخـه د پـاره پـه منډه مه ځئ. بلکه پـه قـلار ورځئ' او پـه تـاسـو اطـمينـان لازم دے نـو څـومـره مـونـځ چـه لانـدے کـړئے' هـغـه اوکـړئ' او څـومـره چـه لانـدے نـه کړئے' هغه پوره کړئے.

۸۶۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ قُتَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَّحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَتَادَةَ لَا اَعْلَمُهُ اِلَّا عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُوْا حَتّٰى تَرَوْنِيْ وَعَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةُ.

۸۶۰: عـمـرو بـن عـلـي ابـو قيبـه علـي بـن مبـارک يـحيـي بـن ابـي کثيـر' عبدالـه بـن ابـي قتـاده د خپـل پـلار ابـو قتـاده نـه او هـغـه د نبـيؐ نـه روايـت کـوي' حضـورؐ اوفـرمـائيـل' څو پـورے چـه تـاسـو خلق مـا اونـه وينـئے هغه وخته پـورے مـه اودريږئے او تـاسـو پـه ځان اطمينان لازم کړئے.

بَابٌ ۵۷۳: لَا يُفَرِّقُ بَيْنَ

باب ۵۷۳: د جمعے په ورځ د دوو سړو مينځ

اثْنَيْنِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.

کښ دے (د هغوي جدا کولو سره) نه کینيٍ۱.

۱. دوه کسان ناست دي د دريم د پاره خائے نشته لیکن بیا که کوم یو بنده ددوي په مینځ کښ خان له د خائے جوړولو کوشش کوئ کوي نو دا ډیره بد تهذیبي ده. اسلام دا خبره نه خوښوي خکه چه ددے نه دوو کسانو ته تکلیف رسیږي عبادت په داسے طریقه ادا کول پکار دي چه هیچا ته تکلیف یا ضرر اونه رسي.

۸۶۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ وَدِيْعَةَ عَنْ سُلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَتَطَهَّرَ بِمَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ ثُمَّ ادَّهَنَ اَوْ مَسَّ مِنْ طِيْبٍ ثُمَّ رَاحَ وَلَمْ يُفَرِّقْ بَيْنَ اثْنَيْنِ فَصَلّٰى مَا كُتِبَ لَهُ ثُمَّ اِذَا خَرَجَ الْاِمَامُ اَنْصَتَ غُفِرَلَهُ مَا بَيْنَهُ وَمَا بَيْنَ الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى.

۸۶۱: عبدان، عبدالله ابن ابي ذئب سعيد مقبري، ابو سعيد، ابن وديعه، سلمان وارسيؓ روايت كوي رسول اللّٰهؐ او فرمائيل چا چه د جمعے په ورځ غسل اوكه، او خومره چه ممكن وي پاكي اوكړي بيا تيل يا خوشبوئي اولږه وي او جماعت ته داسے لاړ شي چه دوه سړي جدا كولو سره كيني، او خومره چه د هغه قسمت كښ وي مونځ اوكړي، بيا چه امام خطبے له راشي دے خاموش شي نو دهغے جمعے نه دبلے جمعے پورے د ده گناه او ښښلے شي.

باب ۵۷۴: لَا يُقِيْمُ الرَّجُلُ اَخَاهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَقْعُدُ فِيْ مَكَانِهٖ

باب ۵۷۴: هيڅوک دے د جمعے په ورځ يوررور نه پاسوي چه د هغه په خائے كيني.

۸۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا مُخَلَّدُ بْنُ يَزِيْدَ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُقِيْمَ الرَّجُلَ اَخَاهُ مِنْ مَقْعَدِهٖ وَيَجْلِسُ فِيْهِ قُلْتُ لِنَافِعِ الْجُمُعَةَ قَالَ الْجُمُعَةَ وَغَيْرَهَا.

۸۶۳: محمد بن سلام مخلد بن يزيد ابن جريج، نافع ابن عمرؓ روايت كوي، نبيؐ د دے خبرے نه منع فرمائيلے ده چه يو سړے دے يو ورور د هغه خائے نه نه پاسوي چه خپله دے د هغه په خائے كيني، ما د نافع نه تپوس اوكه چه آيا دا د جمعے حكم دے نو هغه جواب راكه چه دا حكم د جمعے او غير د جمعے دواړو د پاره دے.

بـاب ۵۷۵: الْاَذَانُ يَوْمَ

باب ۵۷۵: د جمعے په ورځ د آذان كولو

الْجُمُعَةِ.
بيان.

۸۶۳: حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ وَكَثُرَ النَّاسُ زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الزَّوْرَاءُ مَوْضِعٌ بِالسُّوْقِ بِالْمَدِيْنَةِ.

۸۶۳: آدم ابن ابي ذئب، زهري، سائب بن يزيد روايت كوي، چه د رسول الله ابو بكرؓ او عمرؓ په عهد كښې د جمعې په ورځ ورمبنے آذان به هغه وخت ويلے شو كوم وخت چه امام به په منبر كيناستلو. د حضرت عثمانؓ زمانه چه راغله. او خلق زيات شو نو دريم آذان مقام زوراء كښې زيات كړے شو ابو عبدالله (بخاري) وائي زوراء د مدينے بازار كښې يو مقام[۱] دے.

۱. خرنګ چه حديث مبارک کښې دي د نبي کريم صلي الله عليه وسلم او د حضرت ابوبكر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما په زمانه كښې د جمعې د مونځ د پاره يو اذان وو. دا اذان به د مسجد نبوي نه بهر كولے شو. د ابو داود شريف په يو حديث كښې دي. چه كله د مسلمانانو شمير زيات شو. نو دويم اذان به "زوراء" كښې د مدينے منورے په بازار كښې كولے شو چه خلق خبرشي او غسل او خپل كاروبار بند كړي. ددے نه په ښكاره معلوميږي چه كوم اذان د نبي كريم صلي الله عليه وسلم او د حضرت ابوبكر صديقؓ او حضرت عمر رضي الله عنهما په زمانه كښې د مسجد نبوي نه بهر چه كوم اذان كولے شو. هغه بيا مسجد نبوي كښې امام ته مخامخ كيدلو. دا دويم اذان شو. او د دينه اول به په بازار كښې د "زوراء" په مقام كښې د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه كښې اولنے اذان كيدلو. او په دے طريقه د امت عمل جاري پاتے شو. او دا طريقه د حالاتو مناسب وه ددے وجے روستو خليفه ګانو او امامانو په دے عمل جاري اوساته. يو حديث شريف كښې دي چه حضرت عثمان رضي الله عنه دريم اذان زيات كړلو. راوي په دغه حديث كښې اقامت، اذان شمارلے دے د جمعې مباركے دوه اذانه دي او دريم اقامت دے.

## بَابٌ ۵۷۶: اَلْمُؤَذِّنُ الْوَاحِدُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

## باب ۵۷۶: د جمعې په ورځ د يو موذن، د آذان كولو بيان.

۸۶۴: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ أَبِيْ سَلَمَةَ الْمَاجِشُوْنَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ أَنَّ الَّذِيْ زَادَ التَّأْذِيْنَ الثَّالِثَ

۸۶۴: ابو نعيم، عبدالعزيز بن ابي سلمه ماجشون، زهري، سائب بن يزيد روايت كوي چه د اهل مدينه تعداد زيات شو نو هغه وخت د جمعې د ورځے

يَوْمَ الْجُمُعَةِ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ حِيْنَ كَثُرَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ وَلَمْ يَكُنْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤَذِّنٌ غَيْرَ وَاحِدٍ وَّكَانَ التَّاذِيْنُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ حِيْنَ يَجْلِسُ الْاِمَامُ يَعْنِيْ عَلَى الْمِنْبَرِ.

د دريم اذان اضافه چه چا اوكړه هغه حضرت عثمان وو او د نبي په زمانه كښې ماسوا د يو نه بل موذن نه وو او د جمعې په ورځ به اذان هغه وخت كيدلو چه امام به په منبر كيناستلو

## بَابُ ۵۷۷: يُجِيْبُ الْاِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ اِذَا سَمِعَ النِّدَآءَ.

## باب ۵۷۷: چه د آذان آواز واوري نو امام دې په منبر جواب ورکړي

۸۶۵: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بَكْرِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ اَبِيْ سُفْيَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَهُوَ جَالِسٌ عَلَى الْمِنْبَرِ اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ فَقَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ وَاَنَا قَالَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ مُعَاوِيَةُ وَاَنَا فَلَمَّا اَنْ قَضَى التَّاْذِيْنَ قَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى هٰذَا الْمَجْلِسِ حِيْنَ اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ مَا سَمِعْتُمْ مِّنِّيْ مِنْ مَّقَالَتِيْ.

۸۶۵: ابن مقاتل، عبدالله، ابو بكر بن عثمان بن سهل بن حنيف، ابو امامه بن سهل بن حنيف بيان كوي، كوم وخت چه موذن اذان اوكړه نو ما د معاويه بن ابي سفيان نه په منبر جواب وركول واوريدل چه موذن الله اكبر الله اكبر اووې نو معاويه هم الله اكبر الله اكبر اووې بيا موذن اشهد ان لا اله الا الله اووې و انا (يعني زه هم) بيا چه موذن اشهد ان محمد الرسول الله اووې نو معاويه اووې و انا (يعني زه هم داسې وايم) كله چه آذان ختم شو نو معاويه اووې چه ما د رسول الله نه په دې ځائې د موذن د آذان په وخت هغه څيز اوريدلے وو كوم چه تاسو زما نه واوريدلو.

## بَابُ ۵۷۸: اَلْجُلُوْسُ عَلَى الْمِنْبَرِ عِنْدَ التَّاْذِيْنِ.

## باب ۵۷۸: د اذان كولو په وخت په منبر د ناستې بيان.

۸۶۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ

۸۶۶: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب روايت كوي، هغه له سائب بن يزيد

شِهَابٍ اَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ اَخْبَرَهُ اَنَّ التَّاذِيْنَ الثَّانِيَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَمَرَ بِهٖ عُثْمَانُ حِيْنَ كَثُرَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ وَكَانَ التَّاذِيْنُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ حِيْنَ يَجْلِسُ الْاِمَامُ.

بيان اوکه چه د جمعې په ورځ د دويم اذان حکم حضرت عثمانؓ اوکړلو، چه د جماعت د خلقو تعداد زيات شولو او د جمعې په ورځ به اذان هغه وخت کيدلو چه امام به په منبر کيناستلو[۱].

۱. ددې مطلب دا دې چه د جمعې د اذان طريقه د پنځو وختونو د مونځونو د اذان د طريقې نه مختلفه وه د نورو مونځونو اذان به د مانځه نه وړاندې کيدلو ليکن د جمعې اذان سره به متصل خطبه شروع شوه. او سمدستي به بيا مونځ ادا کولې شو. دا خبره ياد ساتل پکار دي چه د جمعې اذان به بهر د يو انصاري د کوټې د چهت د پاسه کيده. دا اذان د مونځ د پاره وو د خطبې د پاره به کوم اذان نه کيدلو.

## بَاب ۵۷۹: اَلتَّاذِيْنُ عِنْدَ الْخُطْبَةِ.

## باب ۵۷۹: د خطبې په وخت د آذان کولو بيان.

۸۲۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ يَقُوْلُ اِنَّ الْاَذَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ كَانَ اَوَّلُهٗ حِيْنَ يَجْلِسُ الْاِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ فَلَمَّا كَانَ فِيْ خِلَافَةِ عُثْمَانَ وَكَثُرُوْا اَمَرَ عُثْمَانُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِالْاَذَانِ الثَّالِثِ فَاُذِّنَ بِهٖ عَلَى الزَّوْرَاءِ فَثَبَتَ الْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ.

۸۲۷: محمد بن مقاتل، عبدالله بن مبارک يونس، زهري روايت کوي، ما د سائب بن يزيد نه واوريدل، د جمعې په ورځ به وړمبنې آذان هغه وخت کيدلو چه امام به د جمعې په منبر کيناستلو د رسول اللهؐ، ابو بکرؓ او عمرؓ د، زمانې پورې دغه حال وو، او چه خلق ډير زيات شو نو حضرت عثمانؓ د جمعې دَ دريم آذان حکم اوکه او زوراء بانديې آذان ورکړې شو بيا دا سلسله قائمه کړې شوه.

## بَاب ۵۸۰: اَلْخُطْبَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ وَقَالَ اَنَسٌ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ.

## باب ۵۸۰: په منبر د خطبې لوستو بيان او انسؓ اووې چه نبيؐ په منبر خطبه ورکړه.

۸۲۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۸۲۸: قتيبه بن سعيد، يعقوب بن عبدالرحمن بن محمد بن عبدالله بن عبدالباري قرشي، سکندراني، ابو

بْنِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيِّ الْقُرَشِيُّ الْاَسْكَنْدَرَانِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَازِمِ بْنُ دِيْنَارٍ اَنَّ رِجَالًا اَتَوْ سَهْلَ بْنَ سَعْدِنِ السَّاعِدِيَّ وَقَدِ مُتَرَوْا فِي الْمِنْبَرِ مِمَّ عُوْدُهُ فَسَأَلُوْهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ وَاللّٰهُ اِنِّي لَاَعْرِفُ مِمَّا هُوَ لَقَدْ رَاَيْتُهُ اَوَّلَ يَوْمًا وُّضِعَ وَاَوَّلَ يَوْمِ جَلَسَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى فُلَانَةِ امْرَاَةٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ قَدْ سَمَّاهَا سَهْلٌ مُرِىْ غُلَامَكِ النَّجَّارَ اَنْ يَعْمَلَ لِيْ اَعْوَادًا اَجْلِسُ عَلَيْهِنَّ اِذَا كَلَّمْتُ النَّاسَ فَاَمَرَتْهُ فَعَمَلَهَا مِنْ طَرْفَاءِ الْغَابَةِ ثُمَّ جَآءَ بِهَا فَاَرْسَلَتْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ بِهَا فَوُضِعَتْ هٰهُنَا ثُمَّ رَاَيْتُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى عَلَيْهَا وَكَبَّرَ وَهُوَ عَلَيْهَا ثُمَّ رَكَعَ وَهُوَ عَلَيْهَا ثُمَّ نَزَلَ الْقَهْقَرٰى فَسَجَدَ فِيْ اَصْلِ الْمِنْبَرِ ثُمَّ عَادَ فَلَمَّا فَرَغَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا صَنَعْتُ هٰذَا لِتَاْتَمُّوْا بِيْ وَلِتَعَلَّمُوْا صَلٰوتِيْ.

حازم بن دینار روایت کوي' چه څه خلق سهل بن سعد ساعدي له راغلل' او هغوي د منبر متعلق اختلاف کولو' چه د هغے لرګے د کومے اونے دے نو هغے خلقو د هغه (سهل بن سعد) نه ددے متعلق پښتنه او کړه هغه جواب ورکه. والله زه پوهیږم' چه منبر د کومے اونے دلرګي وو' او په خدائے (م دے قسم وي) چه ما هغه په وړمبے ورځ لیدلے وو کوم وخت چه کیښودے شو او د ټولو نه وړمبے ورځ چه رسول اللّٰهؐ په هغے کیناستلو رسول اللّٰه د انصارو فلانئے ښځے (چه د هغے سهل نوم هم بیان که) ته خبر اولیږلو' ته خپل ترکاڼ غلام ته حکم ورکړه چه هغه ما د پاره داسے لرګي جوړ کړي چه کله زه خلق مخاطب کوم' نو په هغے به کینم' نو هغے ښځے هغے غلام ته ددے د جوړولو حکم ورکه' نو د غابه د جهاؤ د اونے نے جوړ کړو ځنے واني چه دا اونه د غز په مثل ده یا د غز اونه ده) بیائے هغے ښځے له راوړلو نو هغے رسول اللّٰه صلعم ته واستولو حضورؐ حکم او که نو هلته کیښولے شو بیا ما اولیدل' چه رسول اللّٰه صلعم په هغے مونځ اوکه' او تکبیر نے اوکه بیا په هغے نے رکوع اوکړله بیا را په شاشو او د منبر په ویخ (جړ) کښن نے سجده اوکړه بیا واپس خپل ځائے ته لاړ کوم وخت چه فارغ شولو نو خلقو ته متوجه شو وے فرمائیل چه اے خلقو ما داسے ځکه اوکړل' چه تاسو خما اقتدا اوکړئے او خما مونځ زده کړئے.

۸۶۹ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ بْنُ اَنَسٍ اَنَّهُ سَمِعَ

۸۶۹ : سعید بن ابي مریم محمد بن جعفر بن ابي کثیر' یحیی بن سعید' ابن انس جابر بن عبداللّٰه روایت کوي' د قجورے یوه تنه وه چه په هغے به رسول اللّٰهؐ اودریدلو

جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ جِذْعٌ يَقُوْمُ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا وُضِعَ لَهُ الْمِنْبَرُ سَمِعْنَا لِلْجِذْعِ مِثْلَ اَصْوَاتِ الْعِشَارِ حَتّٰى نَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَيْهِ وَقَالَ سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيٰى اَخْبَرَنِيْ حَفْصُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ سَمِعَ جَابِرًا.

او خطبه به يې ورکوله کوم وخت چه حضورؐ د پاره منبر تيار شو نو مونږ د هغې تنې نه د ژړا داسې آواز واوريدلو لکه لس مياشتنۍ بلاربه اوښه چه آواز کوي تر دې چه نبيؐ را کوز شولو او په هغه تنه يې خپل لاس کينښودلو او سليمان په سند د يحيي حفص بن عبيد الله بن انس جابر دا حديث روايت کړ.

٨٧٠: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ مَنْ جَآءَ اِلَى الْجُمُعَةِ فَلْيَغْتَسِلْ.

٨٧٠: آدم ابن ابي اياس ابن ابي ذئب زهري سالم د خپل پلار عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي چه ما د نبيؐ نه په منبر خطبه واوريدله حضورؐ هغې کښې اوفرمائيل کوم سړے چه د جمعې د مانځه د پاره راشي نو هغه له پکار دي چه غسل اوکړي.

## باب ٥٨١: اَلْخُطْبَةُ قَآئِمًا

وَقَالَ اَنَسٌ بَيْنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ قَآئِمًا.

## باب ٥٨١: په ولاړه د خطبې ورکولو

بيان انس اووے چه يو ځلې نبيؐ ولاړ وو او خطبه يې ورکوله.

٨٧١: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ الْقَوَارِيْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحٰرِثِ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَقْعُدُ ثُمَّ يَقُوْمُ كَمَا تَفْعَلُوْنَ الْاٰنَ

٨٧١: عبيد الله بن عمر قواريري خالد بن حارث عبيد الله بن عمر نافع ابن عمرؓ نه روايت کوي چه نبيؐ په ولاړه خطبه ورکوله بيا به کيناستلو بيا به پاسيدلو حرکت چه تاسو کوئ.

## باب ٥٨٢: اِسْتِقْبَالُ النَّاسِ الْاِمَامَ اِذَا خَطَبَ وَاسْتَقْبَلَ ابْنُ عُمَرَ وَاَنَسٌ الْاِمَامَ.

## باب ٥٨٢: د خلقو امام ته مخ کولو د ناستې

بيان کله چه هغه خطبه ورکوي او ابن عمرؓ او انسؓ به امام ته متوجه کيدل.

٨٧٢: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ هِلَالِ بْنِ

٨٧٢: معاذ بن فضاله هشام يحيي هلال بن ابي ميمونه عطاء بن يسار

أَبِيْ مَيْمُوْنَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَطَآءُ بْنُ يَسَارٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى الْمِنْبَرِ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ.

حضرت ابو سعيد خدري روايت كوي چه نبيّ يوه ورځ په منبر كيناستلو او مونږ ترې ګير چاپېره كيناستلو ١.

١. د سلف صالحينو په دور كښې د خطبې د اوريدو د پاره د ناستې داسې طريقه وه لكه څرنګ چه خلق تقرير يا وعظ اوريدو د پاره كيني په صفونو كښې نه كيناستل. راوي دا طريقه بيانول غواړي. ليكن روستو د صفونو جوړولو طريقه خلقو شروع كړه. دا بدعت نه دے. نه په دے كښې څه بدي شته نه ګناه. بلكې مقصد صرف دا دے چه د خطبې اوريدلو په وخت' مخ امام طرفته وي.

## بَابُ ٥٨٣ : مَنْ قَالَ فِي الْخُطْبَةِ بَعْدَ الثَّنَآءِ أَمَّا بَعْدُ. رَوَاهُ عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## باب ٥٨٣ : د هغې سړي بيان' چه هغه د ثنا نه پس خطبه كښې "اما بعد" اووې دا عكرمه د ابن عباسؓ نه او هغه د نبيؐ نه روايت كړے دے.

٨٧٣ : وَقَالَ مَحْمُوْدُ حَدَّثَنَا أُسَامَةُ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ قَالَ أَخْبَرَتْنِيْ فَاطِمَةُ بِنْتُ الْمُنْذِرِ عَنْ أَسْمَآءَ بِنْتِ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ دَخَلْتُ عَلٰى عَآئِشَةَ وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ قُلْتُ مَا شَأْنُ النَّاسِ فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا إِلَى السَّمَآءِ فَقُلْتُ آيَةٌ فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا إِلَى السَّمَآءِ فَقُلْتُ آيَةٌ فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا أَيْ نَعَمْ قَالَتْ فَأَطَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِدًّا حَتّٰى تَجَلَّانِيَ الْغَشْيُ وَإِلٰى جَنْبِيْ قِرْبَةٌ فِيْهَا مَآءٌ فَفَتَحْتُهَا فَجَعَلْتُ أَصُبُّ مِنْهَا عَلٰى رَأْسِيْ فَانْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا

٨٧٣ : محمود اسامه' هشام بن عروه فاطمه بنت منذر' اسماء بنت ابي بكرؓ روايت كوي' زه بي بي عائشې له راغلم او خلقو مونځ كولو ما ورے چه خلقو ته څه شوي دي نو هغې آسمان طرف ته خپل سر سره اشاره او كړو' ما اووے څه نښه شته نو هغې (بي بي عائشې) خپل سر' سره اشاره او كړه' يعني او نې اووے بيا نې اووے چه رسول اللّٰهؐ ډير اوږد مونځ او كړلو' تر دے چه په ما بيهوشي راغله خما خوا كښې د اوبو يو مشك وو' هغه ما پرانستلو د هغې نه م اوبه په سر واچولې او رسول اللّٰهؐ د مونځ نه فارغ شو داسې حال كښې چه نمر روښانه شوے وو بيائې خطبه وركړه د اللّٰه تعالٰي حمد و ثنائې بيان كړلو چه د هغې هغه مستحق دے هغې نه پس نې "اما بعد" اوفرمائيل د انصار و خنو ښځو شور جوړ كړه' نو زه د هغوي د خاموش كولو د پاره هغوي ته متوجه شوم بي بي اسماءؓ وائي' ما بي بي عائشې ته اووے چه رسول اللّٰهؐ څه اوفرمائيل بي بي عائشې

بَعْدُ قَالَتْ وَلَغَطَ نِسْوَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَانْكَفَاتُ اِلَيْهِنَّ لِاُسَكِّتَهُنَّ فَقُلْتُ لِعَائِشَةَ مَا قَالَ قَالَتْ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ لَمْ اَكُنْ اُرِيْتُهٗ اِلَّا وَقَدْ رَاَيْتُهٗ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا حَتّٰى الْجَنَّةِ وَالنَّارِ وَاَنَّهٗ قَدْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِي الْقُبُوْرِ مِثْلَ اَوْ قَرِيْبًا مِّنْ فِتْنَةِ مَسِيْحِ الدَّجَّالِ يُؤْتٰى اَحَدُكُمْ فَيُقَالُ لَهٗ مَا عِلْمُكَ بِهٰذَا الرَّجُلِ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ اَوْ قَالَ الْمُوْمِنُ شَكَّ هِشَامٌ فَيَقُوْلُ هُوَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ مُحَمَّدٌ جَآءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَالْهُدٰى فَاٰمَنَّا فَاَجَبْنَا وَاتَّبَعْنَا وَصَدَّقْنَا فَيُقَالُ لَهٗ نَمْ صَالِحًا قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ اِنْ كُنْتَ لَمُؤْمِنًا بِهٖ وَاَمَّا الْمُنَافِقُ اَوِ الْمُرْتَابُ شَكَّ هِشَامٌ فَيُقَالُ لَهٗ مَا عِلْمُكَ بِهٰذَا الرَّجُلِ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ شَيْئًا فَقُلْتُ قَالَ هِشَامٌ فَلَقَدْ قَالَتْ لِيْ فَاطِمَةُ فَاَوْعَيْتُهٗ غَيْرَ اَنَّهَا ذَكَرَتْ مَا يُغَلِّظُ عَلَيْهِ.

اووے حضورؐ او فرمائيل: داسے څيز نشته چه ما ته نه دے ښودلے شوے ليکن نن ما هغه په دے خپل ځائے اوليدلو. تر دے چه دوزخ او جنت م هم اوليدل او ما ته وحي اوشوه چه قبر کښې به تاسو د مسيح دجال د فتنے قريب قريب يا' ددے په مثل آزمائيلے شئے تاته به يو سرے راوستے شي' او د هغه متعلق به درنه تپوس کولے شي چه ددے سړي (محمدؐ) متعلق تاته څۀ معلومات دي نو څوک چه مومن يا موقن (هشام ته شک شو' چه مومن يا موقن الفاظ نے اووے) وي هغه به وائي چه دا د اللّٰه رسول محمدؐ دے' مونږ ته د هدايت خبرو او څرګندو دليلونو سره راغے نو مونږ پرے ايمان راوړلو قبول مو کړلو د هغه تصديق او پيروي مو اوکړله بيا هغے سړي ته اووئيلے شي چه اے صالح سړيه اوده شه مونږ ته پته وه چه ته مومن وے او کوم خلق چه منافق يا شک کونکي (هشام ته شک شو' چه د منافق يا مرتاب الفاظ نے اووے) وي نو تپوس به ترے اوکړے شي' چه ته' ددے سړي (محمدؐ) متعلق څۀ معلومات لرے نو هغه به وائي ماته خو هيڅ پته نشته ما چه د خلقو نه څه اوريدلي وو نو ما هم هغه اووے د هشام بيان دے چه فاطمه بنت منذر' څۀ اووے هغه ما ياد او ساتل ما سوا دَ منافقانو په سختو د آخته کيدو نه چه هغے بيان کړے.

۱. دا لوئے حديث شريف ددے سر ليک لاندے ځکه ذکر شويدے چه دے کښې دا بيان دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په خطبه کښې "اَمَّا بَعْدُ" ويلے وۀ. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا ښودل غواړي. چه "اَمَّا بَعْدُ" په خطبه کښې ويل سنت دي. خلق وائي. چه د ټولو نه اول' حضرت داؤد عليه السلام په خطبه کښې "اَمَّا بَعْدُ" ويلے وۀ او په دے ورته د "فَصْلُ الْخِطَابِ" لقب ورکړے شوے وو. خطبه کښې اول' د اللّٰه تعالي حمد و ثنا ويل' بيا په رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم درود شريف ويل' او "اَمَّا بَعْدُ" ويلو نه روستو اصل خطبه (تقرير) شروع کيږي. اما بعد' د حمد و ثنا او درود شريف نه اصل خطبه جدا

کوي. دے حدیث شریف کښې بعض اهم مسائل بیان دي. چه د هغے ذکر به په خپله موقعه دوباره راز ي او دا حدیث شریف به بیا راځي.

۸۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُوْتِيَ بِمَالٍ اَوْ سَبْيٍ فَقَسَمَهُ فَاَعْطٰى رِجَالًا وَّتَرَكَ رِجَالًا فَبَلَغَهُ اَنَّ الَّذِيْنَ تَرَكَ عَتَبُوْا فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَوَ اللّٰهِ اِنِّيْ اُعْطِي الرَّجُلَ وَاَدَعُ الرَّجُلَ وَالَّذِيْ اَدَعُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنَ الَّذِيْ اُعْطِيْ وَلٰكِنْ اُعْطِيْ اَقْوَامًا لِمَا اَرٰى فِيْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الْجَزَعِ وَالْهَلَعِ وَاَكِلُ اَقْوَامًا اِلٰى مَا جَعَلَ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الْغِنٰى وَالْخَيْرِ فِيْهِمْ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ فَوَ اللّٰهِ مَا اُحِبُّ اَنَّ لِيْ بِكَلِمَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُمْرَ النَّعَمِ.

۸۷۴: محمد بن عمر، ابو عاصم، جریر بن خازم، حسن بصري، عمرو بن تغلب روایت کوي رسول اللّٰه ته څه مال یا قیدیان راوستے شو، نو حضورؐ څه خلقو له ورکړل او څهٔ لره ئے ورنه کړل حضورؐ ته خبر ورکړے شو چه کومو خلقو ته څه نه دي ورکړے شوي هغوي ناراض دي نو حضورؐ د اللّٰه تعالیٰ حمد و ثنا بیان کړلو بیائے اوفرمائیل امابعد، په خدائے چه، زه چاته ورکوم، او چاته نه ورکوم، او چاته چه نه ورکوم، هغه ما په نزد، د هغه نه زیات محبوب دے چا ته چه زه ورکوم. لیکن زه هغے خلقو ته ورکوم چه د هغوي زړونو کښې بے آرامي او ویره وینم (او کومو خلقو ته چه زه نه ورکوم) هغه خلق زه غني او ښېګړے (خیر) ته حواله کوم چه اللّٰه تعالیٰ د هغوي زړونو کښې ایښے ده او هغوي کښې عمرو بن تغلب هم دے (عمرو بن تغلب اووے) واللّٰه د رسول اللّٰه د، ارشاد په عوض کښې ماته سره (سرخ) او ښنان[1] هم محبوب نه دي.

۱. په عربو کښې سره اوښنان ډیر قیمتي وي. او کله چه کوم خلق د څه څیز لوئي او عزت والے بیانوي نو د سرو اوښنانو مثال سره ئے واضح کوي.

۸۷۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً مِّنْ جَوْفِ اللَّيْلِ فَصَلّٰى فِي الْمَسْجِدِ فَصَلّٰى

۸۷۵: یحیٰي بن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب، عروه بن زبیر، بي بي عائشه بیان کوي، رسول اللّٰه یو خلے نیمه شپه اووتلو، او جمات کښې ئے مونځ اوکړلو نو خلقو هم حضورؐ سره مونځ اوکړه صبا ته خلقو ددے بیان اوکه نو په دویمه ورځ د هغے نه زیات سړي راجمع شو او

رِجَالٌ بِصَلٰوتِهٖ فَاَصْبَحَ النَّاسُ فَتَحَدَّثُوْا فَاجْتَمَعَ اَكْثَرُ مِنْهُمْ فَصَلُّوْا مَعَهٗ فَاَصْبَحَ النَّاسُ فَتَحَدَّثُوْا فَكَثُرَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ مِنَ اللَّيْلَةِ الثَّالِثَةِ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلُّوْا بِصَلٰوتِهٖ فَلَمَّا كَانَتِ اللَّيْلَةُ الرَّابِعَةُ عَجَزَ الْمَسْجِدُ مِنْ اَهْلِهٖ حَتّٰى خَرَجَ لِصَلٰوةِ الصُّبْحِ فَلَمَّا قَضَى الْفَجْرَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَتَشَهَّدَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّهٗ لَمْ يَخْفَ عَلَيَّ مَكَانُكُمْ لٰكِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تُفْرَضَ عَلَيْكُمْ فَتَعْجِزُوا عَنْهَا تَابَعَهٗ يُوْنُسُ.

حضورﷺ سره نے مونځ او کړلو. صبا ته خلقو دے هم يو بل ته بيان او که په دريمه شپه دے نه هم زيات خلق راجمع شو نو رسول اللهﷺ بهر راووتلو او خلقو حضورﷺ سره مونځ او کړلو چه خلورمه شپه راغله، نو جمات کښې خائے پاتے نه شو تر دے چه د سحر مانخه د پاره بهر راووتلو. د سحر مونځ چه ئے او کړلو نو حضورﷺ خلقو ته متوجه شو بيا تشهد ئے او فرمائيل: اما بعد ستاسو خلقو دلته شته والے خمونږ نه پټه نه وه، ليکن ما سره ويره پيدا شوه چه چرته دربانديے (دا مونځ) فرض نشي، او تاسو به ئے ادا، نه کړے شے يونس ددے متابع حديث روايت کړے دے.

۱. په جماعت (امامتي) سره د مونځ ادا کولو يو خاصيت د مونځ فرض کيدل دي. ددے وجے نه رسول الله صلي الله عليه وسلم ددے مونځ په کورونو کښې خان له، خان له د ادا کولو حکم او کړو. اوله دے کله هغوي به دا مونځ خان له يواځے ادا کول خوښول. په دے به تاسو پوهه شوئے يئ. چه دا د تهجدو د مونځ بيان دے.

۸۷۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَشِيَّةً بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَتَشَهَّدَ وَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ مَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ تَابَعَهٗ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَمَّا بَعْدُ وَتَابَعَهُ الْعَدَنِيُّ عَنْ سُفْيَانَ فِيْ اَمَّا بَعْدُ.

۸۷۶: ابو اليمان، شعيب، زهري، عروه ابو حميد، ساعدي روايت کوي، رسول اللهﷺ يوه شپه د ماسختن مونځ نه پس اودريدلو او تشهد ئے اووے او د اللهﷺ تعريف ئے بيان کـه چه د هغے هغه مستحق دے بيائے او فرمائيل، اما بعد، ابو معاويه او ابو اسامه، د هشام عروه، ابو حميد، نبي کريمﷺ نه ددے متابع حديث روايت کړے دے او د اما بعد لفظ ئے بيان کړے دے او عدي د، سفيان، نه د اما بعد متعلق متابع حديث کړے دے.

۸۷۷ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعْتُهُ حِينَ تَشَهَّدَ يَقُولُ أَمَّا بَعْدُ تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۸۷۷ : ابو اليمان شعيب زهري علي بن حسين مسور بن مخرمه روايت كوي چه رسول الله او دربدلو چه تشهد نے اووے نو د هغے نه پس موترے "اما بعد" واوريدلو زبيدي د زهري نه ددے متابع حديث روايت كړے دے.

۸۷۸ : حَدَّثَنَا إِسْمَعِيلُ بْنُ أَبَانَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْغَسِيلِ قَالَ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِنْبَرَ وَكَانَ آخِرُ مَجْلِسٍ جَلَسَهُ مُتَعَطِّفًا مِلْحَفَةً عَلَى مَنْكِبَيْهِ وَقَدْ عَصَبَ رَأْسَهُ بِعِصَابَةٍ دَسِمَةٍ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ هٰذَا الْحَيَّ مِنَ الْأَنْصَارِ يَقِلُّونَ وَيَكْثُرُ النَّاسُ فَمَنْ وَلِيَ شَيْئًا مِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ فَاسْتَطَاعَ أَنْ يَضُرَّ فِيهِ أَحَدًا وَيَنْفَعَ فِيهِ أَحَدًا فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَيَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيئِهِمْ.

۸۷۸ : اسماعيل بن ابان ابن الغسيل عكرمه ابن عباسؓ روايت كوي رسول اللهؐ منبر ته اوختلو او دا د حضورؐ آخري مجلس وو داسے حال كښې چه حضورؐ په خپلو دواړو اوږو مبارك خادر اچولے وو او په خپل سر ئے پټنے تړلے وه، د الله حمد و ثنائے بيان كړه بيانے او فرمائيل اے خلقو ما پله راشئ نو خلق حضورؐ طرفته متوجه شولو بيانے اوفرمائيل اما بعد د انصارو دا جماعت به كميږي او خلق به زيات شي په دے وجه امت محمديه كښې چه كوم سړے حاكم جوړ كړے شي او هغه چا ته نقصان يا نفع رسولو باندے قادر شي نو د انصارو د نيكو كارو نيكي (ښيګړه) دے قبوله كړي او د خرابو د خرابئ نه دے مخ واړه وي (معافي دے او كړي) ﴿۱﴾.

۱ . دا د رسول كريم صلي الله عليه وسلم په مسجد نبوي كښې آخري خطبه وه. د نبي كريم صلي الله عليه وسلم دا پيشين ګوني د دنيا د واقعاتو په رڼرا كښې ډيره زياته صحيح ده. انصار اوس په دنيا كښې ډير كم كم ملاويږي د مهاجرينو او د نورو عربو نسلونه په ټوله اسلامي نړئ كښې خواره واره دي. د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم دے د كرم شان باندے قربانيدل پكار دي د هغے احسان په بدله كښې كوم احسان چه انصارو د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم او د اسلام د كمزورئ او د مصيبت په وخت كړے وو. نبي كريم صلي الله عليه وسلم ټول امّت ته دا حكم او كړو "چه انصار خپل محسن او ګڼړئ په دوي كښې چه كوم بنه دي د هغوي سره ډير زيات بنه سلوك او كړئ. او كه پكښې څوک بد دي هغوي معاف

كوني. څكه چه ددوي پلارانو (پلرونو) د اسلام د مصيبت په وخت مدد كړيدے. په دے باب كښ چه څومره احاديث راغلي دي پكښ مختلف مسائل بيان دي. دلته څكه ذكر شوي دي چه په خطبه كښ "أمّا بَعْد" راغلے دے څه احاديث دے كښ وړاندے ذكر شوي وو او څه به بيا راځي.

باب ۵۸۴: اَلْقَعْدَةِ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.

باب ۵۸۴: د جمعے په ورځ د دوو خطبو منځ كښ د ناستے بيان.

۸۷۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ يَقْعُدُ بَيْنَهُمَا.

۸۷۹: مسدد بشر بن مفضل، عبيد اللّٰه نافع، حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ روايت كوي چه رسول اللّٰهؐ به دوه خطبے لوستے، او د هغے په مينځ كښ به كيناستلو.

باب ۵۸۵: اَلْاِسْتِمَاعِ اِلَى الْخُطْبَةِ.

باب ۵۸۵: خطبے ته د غوږ ايښودلو بيان.

۱. په ټولو مونځ كذارو خطبه اوريدل واجب دي امام د ضرورت په وجه چاته حكم كولے شي او څوک منعه كولے شي كه مونځ كونكو كښ څوک شور وراڼے كوي هغه په اشاره منعه كولے شي.

۸۸۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَغَرِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ وَقَفَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ يَكْتُبُوْنَ الْاَوَّلَ فَالْاَوَّلَ وَمَثَلُ الْمُهَجِّرِ كَمَثَلِ الَّذِيْ يُهْدِيْ بَدَنَةً ثُمَّ كَالَّذِيْ يُهْدِيْ بَقَرَةً ثُمَّ كَبْشًا ثُمَّ دَجَاجَةً ثُمَّ بَيْضَةً فَاِذَا خَرَجَ الْاِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ وَيَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ.

۸۸۰: ادم، ابن ابي ذئب، زهري ابو عبداللّٰه الاغر حضرت ابو هريرةؓ روايت كوي، نبيؐ او فرمائيل چه د جمعے ورځ راشي نو فرښتے د جماعت په دروازه اودريږي او د راتلونكو نومونه ليكي، او دوخته تلونكے سړے د هغه چا په شان دے چه اوښ قرباني كړي وروسے د هغے چا په شان چه غوا قرباني كړي وروسے ډ ګډ، بيا د چرګے بيا، د اګئ د صدقے كونكي په شان دے كوم وخت چه امام د خطبے د پاره راشي نو هغوي (فرښتے) خپل دفتر راونغاړي او خطبے ته غوږ كيږدي.

باب ۵۸۶: اِذَا رَاَى الْاِمَامُ رَجُلًا جَآءَ وَهُوَ يَخْطُبُ اَمَرَهٗ اَنْ

باب ۵۸۶: هر كله چه امام خطبه لولي، او هغه يو سړے راتلونكے اووينې، نو هغه دے هغه ته د دوو

يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ.

رکعاتو مونځ کولو حکم ورکړی

۸۸۱: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ وَّالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَالَ اَصَلَّيْتَ يَا فُلَانُ فَقَالَ لَا قَالَ قُمْ فَارْكَعْ.

۸۸۱: ابو النعمان، حماد بن زید، عمرو بن دینار، جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، هغه او فرمائیل چه یو سړے راغے او نبي ﷺ خلقو ته د جمعې په ورځ خطبه ورکوله نو حضورؐ اوفرمائیل: اے فلانیه، تا مونځ کړے دے هغه جواب ورکه، چه نه، نو حضورؐ ورته اوفرمائیل پاسه اؤ مونځ اوکه[۱].

باب ۵۸۷: مَنْ جَآءَ وَالْاِمَامُ يَخْطُبُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ.

باب ۵۸۷: که څوک سړے داسے حال کښې راشي چه امام خطبه لولي نو دوه مختصر رکعاتونه دې اوکړي.

۸۸۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو وَّسَمِعَ جَابِرًا قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ يَّوْمَ الْجُمُعَةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ اَصَلَّيْتَ قَالَ لَا قَالَ قُمْ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ.

۸۸۲: علي بن عبداللّٰه، سفیان، عمرو بن دینار روایت کوي، هغه د جابر نه واوریدل چه یو سړے د جمعې په ورځ جمات ته راغے داسے حال کښې چه نبيؐ خطبه لوستله نو حضورؐ ورته او فرمائیل آیا تا مونځ کړے دے، هغه جواب ورکه نه نو حضورؐ ورته او فرمائیل، پاسه، او دوه رکعاته اوکړه.

۱. دا حدیث شریف په بعضے روایاتو کښې دي. چه نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم څنګه په منبر کیناستلو دغه صحابي رضي اللّٰه عنه راغے. دا نه معلومیږي. چه نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم لا خطبه نه وه شروع کړے د احنافو په نزد چه کله خطبه شروع شي نو بیا سنت یا تحیة المسجد (نفل) کول پکار نه دي. بلکه خطبه اوریدل دي ځکه چه دا واجب دي او هغه صرف سنت دي.

باب ۵۸۸: رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِيْ الْخُطْبَةِ.

باب ۵۸۸: خطبه کښې د دواړو لاسونو اوچتولو بیان.

۸۸۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ ح وَعَنْ يُوْنُسَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اِذَا

۸۸۳: مسدد، حماد بن زید، عبدالعزیز انس (ح) یونس ثابت د انسؓ نه روایت کوي هغه او فرمائیل داسے دوران کښې چه رسول اللّٰه د جمعې په ورځ خطبه ورکوله یو سړے راغے، او هغه اووے یا رسول اللّٰه آسونه تباه

قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَ الْكُرَاعُ هَلَكَ الشَّآءُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّسْقِيَنَا فَمَدَّ يَدَيْهِ وَدَعَا.

شو چیلے برباده شوے نو اللّه تعالی نه دعا او غواړه چه مونږ باندے باران اووروي نو حضورؐ دواړه لاسونه اوږده کړل او دعائے او کړه۱.

۱. په عام ډول علماء کرام ددے حدیث شریف په حقله لیکي، چه نبي اکرم صلي اللّه علیه وسلم د دعا پشان لاسونه اوچت کړے نه وو بلکے څرنګ چه مقررین (تقریر کونکي وعظ کونکي) د تقریر، وعظ په دوران کښ په لاسو اشارے کوي. دغه رنګ نبي اکرم صلي اللّه علیه وسلم کړے وو. د راوي د بیان نه خلقوته غلط فهمي شویده. ځکه چه دا ثابته ده. چه نبي کریم صلي اللّه علیه وسلم په خطبه کښ ددعا پشان لاسونه پورته کول نه خوښول.

## بَابٌ ۵۸۹: اَلْاِسْتِسْقَآءِ فِي الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.

## باب ۵۸۹: د جمعے په ورځ خطبه کښ باران د پاره دعا کولو بیان.

۸۸۴: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ ابْنُ مُسْلِمٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَمْرٍو وَقَالَ حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ اَصَابَتِ النَّاسَ سَنَةٌ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ قَامَ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَ الْمَالُ وَجَاعَ الْعِيَالُ فَادْعُ اللّٰهَ لَنَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ وَمَا نَرٰى فِي السَّمَآءِ قَزَعَةً فَوَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا وَضَعَهَا حَتّٰى ثَارَ السَّحَابُ اَمْثَالَ الْجِبَالِ ثُمَّ لَمْ يَنْزِلْ عَنْ مِنْبَرِهٖ حَتّٰى رَاَيْتُ الْمَطَرَ يَتَحَادَرُ عَلٰى لِحْيَتِهٖ فَمُطِرْنَا يَوْمَنَا ذٰلِكَ وَمِنَ الْغَدِ وَمِنْ بَعْدِ الْغَدِ وَالَّذِيْ يَلِيْهِ حَتّٰى الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى فَقَامَ ذٰلِكَ الْاَعْرَابِيُّ اَوْ قَالَ غَيْرُهٗ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَهَدَّمَ الْبِنَاءُ وَغَرِقَ

۸۸۴: ابراهیم بن منذر، ولید بن مسلم ابو عمر اسحاق بن عبداللّه بن ابي طلحه انس بن مالکؓ روایت کوي چه یو کال د رسول اللّهؐ په زمانه کښ قحط راغے نو د جمعے په ورځ د نبي کریمؐ د خطبے لوستو په دوران کښ یو بانډیسے (اعرابي) اودریدلو او، وے وئیل یا رسول اللّهؐ مال تباه شو بچي د لوږے مره شو تاسو د اللّه نه زمونږ په حق کښ دعا اوغواړئے نو حضورؐ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل دغه وخت آسمان کښ دوریځے یو ټکړه قدرے هم په نظر نه راتله خما ذې په هغه ذات قسم وي چه د هغه په قبضه کښ خما ساه ده، حضورؐ لا لاسونه ښکته کړي هم نه وو چه د غرونو په شا د وریځے لوئے لوئے ټکړے راخورے شوے بیا حضورؐ د منبر نه لا، راکوز شوے هم نه وو چه د باران څاڅکي مو، دهغوئ د ګیرے مبرکے نه څڅدل، بیا پرلے پسے تر بلے جمعے پورے باران اوریدو. بلے جمعے له هغه بانډیسے یا بل څوک اودریدو او عرض ئے اوکړو یا رسول اللّه آبادئ پریوتے او مال اسباب ډوب شو تاسو مونږ د پاره د اللّه نه دعا اُغواړئ نو

الْمَالُ فَادْعُ اللّٰهَ لَنَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا فَمَا يُشِيْرُ بِيَدِهٖ اِلٰى نَاحِيَةٍ مِنَ السَّحَابِ اِلَّا انْفَرَجَتْ وَصَارَتِ الْمَدِيْنَةُ مِثْلُ الْجَوْبَةِ وَسَالَ الْوَادِيُ قَنَاةُ شَهْرًا وَلَمْ يَجِيْءُ اَحَدٌ مِّنْ نَاحِيَةٍ اِلَّا حَدَّثَ بِالْجَوْدِ.

حضورؐ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل' اووے فرمائيل اے خدا الله' خمونږ گير چاپيره اووروے. او په مونږ نے مه وروے او دوريځے كوم طرف ته چه به نے اشاره كوله' هغه به لرے كيدله او مدينه د يو حوض په شانشوه' او وادي قناة د' يوے مياشتے پورے بهيدله' او كوم سړے چه به د يوے علاقے نه راتلو نو د دغے باران حال به نے وئيلو.

## بَاب ۵۹۰: اَلْاِنْصَاتِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْاِمَامُ يَخْطُبُ وَاِذَا قَالَ لِصَاحِبِهٖ اَنْصِتْ فَقَدْ لَغَا وَ قَالَ سَلْمَانُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْصِتُ اِذَا تَكَلَّمَ الْاِمَامُ.

## باب ۵۹۰: د جمعے په ورځ د' امام د خطبے لوستو په وخت د' خاموش اوسيدو بيان چه هر كله يو سړي خپل ملگري ته اووئيل' چه خاموش شه نو ده عبث كار اوكه او سلمانؓ د نبيؐ نه روايت اوكه چه خاموش اوسي كله چه خطبه وئيلے كيږي.

۸۸۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قُلْتُ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَنْصِتْ وَالْاِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ

۸۸۵: يحيى بن بكير' ليث' عقيل' ابن شهاب' سعيد بن مسيب حضرت ابوهريرهؓ روايت كوي رسول الله صلعم او فرمائيل' كله چه تا خپل ملگري ته د جمعے په ورځ اووئيل چه خاموش شه او امام خطبه لوسته نو تا عبث كار' اوكه.

## بَاب ۵۹۱: اَلسَّاعَةِ الَّتِيْ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ

## باب ۵۹۱: په بيان د هغے وخت چه دعا پكښ قبليږي د جمعے ورځ كښ دے.

۱. دا د دعا د قبليدو وخت دے په اكثرو احاديثو كښ ددے خاص وخت وضاحت شويدے چه دا وخت دا مازيگر او د ماښام په مينځ كښ دے. او دغه وخت ډير لږ وي. امام احمد او امام ابو حنيفه رحمة الله عليهما نه هم دا روايت دعے چه دغه وخت د مازيگر د مونځ نه روستو دے. ددے په حقله د محدثينو نور روايات هم شته.

۸۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ

۸۸۶: عبدالله بن مسلمه' مالك' ابو الزناد اعراج' ابو هريرهؓ روايت كوي' رسول الله د جمعے د ورځے ذكر اوكه نو حضورؐ او فرمائيل' دے

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَالَ فِيهِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللّٰهَ شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ وَأَشَارَ بِيَدِهٖ يُقَلِّلُهَا.

ورځے کښې يو داسے ساعت دے که څوک مسلمان بنده اودريږي، مونځ اوكړي، او دے كښې كوم يو خيز هم د اللّٰه نه اوغواړي، نو اللّٰه ئے ورکوي او خپلو لاسونو سره ئے د هغے وخت کمي طرفته اشاره اوكړه ١.

**باب ۲ ۵ ۹ : إِذَا نَفَرَ النَّاسُ عَنِ الْإِمَامِ فِيْ صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ فَصَلٰوةُ الْإِمَامِ وَمَنْ بَقِيَ جَائِزَةٌ.**

**باب ۲ ۵ ۹ : د جمعے په ورځ كه څه خلق امام** پريږدي او اوتښتي، نو د امام او باقي خلقو مونځ جائز دے.

۸۸۷ : حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ قَالَ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَمَا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَقْبَلَتْ عِيْرٌ تَحْمِلُ طَعَامًا فَالْتَفَتُوْٓا إِلَيْهَا حَتّٰى مَا بَقِيَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا اثْنَا عَشَرَ رَجُلًا فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوْٓا إِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ قَائِمًا.

۸۸۷ : معاويه بن عمرو، زائده، حصين سالم بن ابي الجعد، جابر بنا بي عبداللّٰه بيان كوي، چه مونږ يو ځل رسول اللّٰهﷺ سره مونځ كولو. نو يو قافله راغله، چه هغے سره په اوښانو غله بار شوے وه. نو خلقو هغے قافلے ته ورمخے کړے او نبيﷺ سره صرف دولس سړي پاتے شو په دے خبره دا، آيت نازل شو چه هر كله خلق د تجارت مال يا، دلوبو سامان اويني، نو هغے طرف ته ورمخے كړي، او تا ولاړ پريږدي ١.

١ . دا واقعه د اسلام د اولني دور ده. نورو صحيح روايتونو كښې دي. چه رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلم خطبه ويله. د اسلام په شروع كښې خطبه د مانځه نه روستو وه. څنګه چه د اخترونو د مونځ نه خطبه روستو وي. د صحيح نسائي شريف په حديث كښې دي چه نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم د اخترونو د مونځ ادا كولو نه روستو فرمايل. څوک چه غواړي هغه دے ايسار شي او د چا زړه چه غواړي نو لاړ دے شي. شايد چه ځ اسلام په اولني دور كښې د اخترونو د خطبے دومره اهميت نه وؤ. د دے وجے نه صحابۀ كرامو رضي اللّٰه عنهم د جمعے خطبه د اخترونو د خطبے پشان اوګڼله چه ددے اوريدل ضروري نه دي. نو كله ئے چه د تجارت سامان اوليده نو حاجت مند صحابۀ كرام رضي اللّٰه عنهم د خرڅولو اغستلو د پاره لاړل. په دے باندے هغوي ته اللّٰه پاک سخته زورنه اوكړه. امام بخاري د باب سر ليک كښې د مونځ پريخودلو ذكر كړيدے څكه چه د كومو څيزونو د مونځ سره تعلق وي هغه مونځ كښې شميرلے شي نو امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د مونځ لفظ ذكر كړو حالانكه هغے صحابۀ كرامو مونځ كړے وو او خطبے ته ايسار

شوي نه وو.

**بــاب ۵۹۳: الصَّلٰوةُ بَعْدَ الْجُمُعَةِ وَقَبْلَهَا**

**باب ۵۹۳: د جمعې د مونځ نه پس او د هغې نه مخکښې د مونځ کولو بيان.**

۸۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ قَبْلَ الظُّهْرِ رَكْعَتَيْنِ فِيْ بَيْتِهٖ وَبَعْدَ الْعِشَآءِ رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ لَا يُصَلِّيْ بَعْدَ الْجُمُعَةِ حَتّٰى يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ.

۸۸۸: عبدالله بن يوسف، مالک، نافع عبدالله بن عمرؓ نه روايت دې چه رسول اللّٰهؐ به د ماسپخين نه مخکښې دوه رکعاته او د هغې نه پس دوه رکعاته او د ماښام نه پس دوه رکعاته خپل کور کښې او ماسختن نه پس دوه رکعاته مونځ کولو، او د جمعې نه پس به ئې مونځ نه کولو، تر دې چه کور ته به واپس شولو او دوه رکعاته به ئې کول[1].

[1] امام بخاري رحمة الله عليه ته د خپل شرطونو برابر چه کله داسې حديث په لاس رانغې چه په هغې کښې دا بيان وي چه رسول کريم صلي الله عليه وسلم به د جمعې د مونځ نه وړاندې، روستو څو رکعته سنت ادا کول. نو هغه د باب سر ليک "جمعه" او کرزو. ليکن کوم حديث شريف ئې چه دلته ذکر کړو نو په هغې کښې د ماسپخين د مونځ نه وړاندې او د روستو سنت ذکر دې او د جمعې د مونځ نه روستو د سنتو بيان نشته. ممکنه ده چه امام بخاري د هغې احاديثو نه فائده اخستلې وي.

**بــاب ۵۹۴: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ.**

**باب ۵۹۴: د اللّٰه تعالیٰ قول دې، چه مونځ پوره شي، نو زمکه کښې خواره شئ، او د اللّٰه تعالیٰ فضل تلاش کوئ.**

۸۸۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ كَانَتْ فِيْنَا امْرَاَةٌ تَجْعَلُ عَلٰى اَرْبِعَآءَ فِيْ مَزْرَعَةٍ لَهَا سِلْقًا فَكَانَتْ اِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ تَنْزِعُ اُصُوْلَ السِّلْقِ فَتَجْعَلُهٗ فِيْ قِدْرٍ ثُمَّ تَجْعَلُ عَلَيْهِ قَبْضَةً مِّنْ شَعِيْرٍ تَطْحَنُهَا فَتَكُوْنُ

۸۸۹: سعيد بن ابي مريم، ابو غسان ابو حازم، سهل بن سعد ساعدي نه روايت کوي هغه او فرمائيل، مونږ کښې يوه ښځه وه. چه خپل پټي کښې به ئې د نهر په غاړه چقندر کرل چه د جمعې ورځ به راغله نو چقندر به ئې د جرړو سره اوبکل او هغه به ئې په کټوئې کښې پخول بيا به ئې د وربشو اوړه هغې کښې واچول نو د چقندر جرړې به ګويا د هغې بوټئ (بوٹياں) شوې

أُصُوْلُ السِّلْقِ عَرْقَهُ وَكُنَّا نَنْصَرِفُ مِنَ الصَّلٰوةِ الْجُمُعَةِ فَنُسَلِّمُ عَلَيْهَا فَتَقَرَّبَ ذٰلِكَ الطَّعَامَ إِلَيْنَا فَنَلْعَقُهُ وَكُنَّا نَتَمَنّٰى يَوْمَ الْجُمُعَةِ لِطَعَامِهَا ذٰلِكَ.

او مونږ چه به د مونځ نه فارغ شو نو هغې له به راغلو سلام به مو ورته او کړلو نو هغې به هغه طعام مونږ ته کېښودلو او مونږ به هغه خوړلو او مونږ خلقو به د هغې نه ددغې طعام د خوړلو په سبب ذ جمعې د ورځې آرزو کوله.

۸۹۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ بِهٰذَا وَقَالَ مَا كُنَّا نَقِيْلُ وَلَا نَتَغَدّٰى إِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

۸۹۰ : عبدالله بن مسلمه، ابن ابي حازم ابو حازم د سهیل بن سعد نه دا حدیث روایت که، او وې وئیل چه مونږ به نه سملاستلو او نه به مو ذ غرمې ډوډئ خوړله خو، د جمعې د مانځه نه پس.

باب ۵۹۵ : الْقَائِلَةِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ.

باب ۵۹۵ : د جمعې د مونځ نه پس د ملاستې بیان.

۸۹۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُقْبَةَ الشَّيْبَانِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحٰقَ الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُوْلُ كُنَّا نُبَكِّرُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ثُمَّ نُقِيْلُ.

۸۹۱ : محمد بن عقبه، شیباني، ابو اسحٰق، فزاري، حمید روایت کوي، ما د انسؓ نه واوریدل چه مونږ به د جمعې په ورځ د وخته تللو بیا به د جمعې د مانځه نه پس سملاستلو.

۸۹۲ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ أَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُمُعَةَ ثُمَّ تَكُوْنُ الْقَائِلَةُ.

۸۹۲ : سعید بنا بي مریم ابو غسان ابو حازم، سهل روایت کوي چه مونږ به نبيّ سره د جمعې مونځ کولو د هغې نه پس به موقیلوله (د غرمې آرام کول) کوله.

## اَبْوَاب ۵۹۶ صَلٰوةِ الْخَوْفِ د خَوف ویرې دَ مونځ بیان[۱]

۱ . راتلونکي احادیثو کښې د هغې مونځ تفصیل دې چه د ویرې او دښمن سره د جګړې او د مقابلې په وخت باندې په خصوصي ډول روا دې. په غزاګانو کښې د مونځ وختونه راځي. او مخامخ دښمن

مقابلے ته ولاړ وي. ټولو مسلمانانو دا غوښتله چه مونځ دے د رسول الله صلي الله علیه وسلم په اقتداء کښې ادا کړي. لیکن مخکښې چه کوم حالات وو. که په یو وخت ټول مسلمانان مونځ شروع کړي نو هر وخت د دښمن د ناڅاپه حملے خطره وه. امام ابو یوسف رحمة الله علیه ته ددے وینا نسبت کیږي. چه د ویرے مونځ صرف د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په مبارک زمانه کښې روا وو او وجه ئے داوه چه ټولو مسلمانانو دا غوښتله چه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په اقتدا کښې مونځ اوکړي لیکن د هغوئ نه روستو ددے جواز منسوخ شو. ځکه چه اوس د پیغمبر پشان اهم مرکزي انسان' مسلمانانو کښې نشته چه د هغه په اقتداء کښې د مونځ ادا کولو د خلقو په زړه کښې شوق وي ددے وجے نه دویرے' او د دښمن سره د مقابلے په وخت اوس مونځ په هغه طریقے سره نشي ادا کیدے. بلکے مجاهدین دے په څو ټولو کښې تقسیم شي. د هر ټولي دے خان له' خان له امام وي. او په عامه طریقه دے مونځ ادا کړے شي. لیکن د عام امت د عالمانو په دے اتفاق دے چه صلوٰة الخوف' د ویرے مونځ په خپلے خاص طریقے سره اوس هم باقي او روا دے او هغه منسوخ شوے نه دے ځکه چه ددے مونځ په قرآن مجید کښې تفصیلات شته او د منسوخ کیدو ئے هیڅ اشاره نشته. اګرچه د پیغمبر پشان کوم مرکزي شخصیت نشته لیکن بیاهم مسلمانانو کښې داسے لوئے' لوئے عالمان وي. چه د هغوي په اقتداء کښې د مونځ ادا کولو د خلقو په زړه کښې شوق وي. ددے وجے چه کله شریعت د خلقو د خواهش لحاظ ساتلے دے او د خپل لوئے حکمت په نظر کښې د ساتلو' د ویرے د مونځ یو خاص طریقه ئے ښودلے ده. نو دهغے د جاري ساتلو خلاف څه بندیز نشته له دے کبله علماؤ لیکلے دي چه امام ابو یوسف رحمة الله علیه ته ددے مونځ خلاف د وینا نسبت صحیح نه دے.

په قرآن مجید کښې د مونځ تفصیلات نه بیانیږي بلکے اشاره ورته کیږي. د مونځ ټول تفصیلات د رسول الله صلي الله علیه وسلم د وینا او د عمل په ذریعه واضح کیږي. صرف د ویرے د مونځ طریقه په قرآن مجید کښې څه تفصیل سره بیان شویده. لکه څرنګ په دے باب کښې چه کوم آیت شریف ذکر شویدے اګرچه پوره تفصیل دلته هم نشته. د ویرے مونځ (صَلَاةُ الْخَوْفِ) د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه په مختلفو طریقو سره نقل دے ابو داؤد شریف او نسائي شریف کښې ددے مونځ تفصیلات زیات وضاحت سره شته دے. علامه ابن القیم رحمة الله علیه په "زاد المعاد" کښې ددے ټولو روایاتو تحقیق کړیدے هغه لیکلي دي که چرے په دے ټولو روایاتو غور اوشي نو شپږ طریقے د مونځ ددینه معلومیږي څرنګ چه د الله تعالي د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه دا مونځ په مختلف طریقو سره نقل شویدے دا ښکاره خبره ده چه ددے مونځ د ادا کولو په طریقو کښې د امامانو حضراتو اختلاف ضروري وؤ. حضرت علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه لیکلي دي. چه خما غالب ګمان دا دے. چه قرآن مجید قصدًا د صلاة الخوف (ویرے د مونځ) طریقه مختصره بیان کړیده او تفصیل ئے بیان کړے نه دے. چه د شریعت مقصد' د احکامو په سلسله کښې فراخي باقي پاتے شي. او هیڅ قسم تنګسیا پیدا نه شي. که په قرآن مجید کښې ددے مونځ د یو خاص طریقے تفصیلي بیان وے نو بیا د هغے خلاف کول ممکن نه وؤ. د حنفي مذهب د فقهے په کتابونو کښې په عام ډول د ویرے د مونځ (د صلاة الخوف) دا طریقه لیکلے ده. چه فوج به دوه حصے کړے شي یوه حصه به دښمن ته محامخ' محاذ کښې اودریږي. او بله حصه به مانخه د پاره امام طرفته لاړه شي. امام به دے حصے (ټولي) ته یو رکعت مونځ ادا کړي. نو دا ټولے (حصه) به د امام د شا د طرفته' محاذ ته ورشي. هلته به اودریږي. د محاذ اولنے ټولے به مانخه ته راروان شي. چه کله را اورسیږي

نو یو رکعت مونخ به د امام په اقتداء کښ ادا کړي. د امام مونخ به پوره شي. لیکن د مقتدیانو د هیڅا مونخ پوره نه دے. مقتدیان به خپل اولني ځائے ته لاړ شي خپل مونخ به پوره کړي. ددے صورت دا دے چه کوم ټولي د امام په اقتداء کښ وړاندے اول رکعت ادا کړے وو هغه ځائے ته به لاړ شي او دویم رکعت به ادا کړي نو مونخ به ئے پوره شي. په دغه دوران کښ به هغه دویم ټولے محاذ کښ دښمن ته مخامخ ولاړ وي. کله چه اولنے ټولے د مونخ نه اوزګار شي نو محاذ ته به لاړ شي. هلته چه څرنګ او دریږي. هغه دویم ټولے به د مانځه ځائے ته راشي او خپل باتے مونخ به پوره کړي. دا د مونخ صورت ښکه غوره شویدے. چه په دے کښ د دښمن د ناڅا په حملے نه د حفاظت انتظام دے. دے مونخ کښ ډیرے آسانئ او رعایتونه دي. په تلو راتلو مونخ نه ماتیږي. ځکه چه دے مونخ کښ تلل راتلل دي. د (صلاة الخوف ویرے د مونخ) بغیر په نورو حالاتو کښ مونخ تلو راتلو سره ماتیږي. او د مونخ حالت کښ د ګرځیدو اجازت نشته که چرے جنګ لاس په لاس وي. نو بیا به مونخ روستو کولے شي. پخپله د رسول اکرم صلي الله علیه وسلم نه په جنګ احزاب (د خندق جنګ) کښ د جنګ په وجه مونخ قضا شوے وؤ. او د مازیګر مونځ ئے د ماښام د وخت نه روستو په امامتئ سره ادا کړے وؤ. د نورو امامانو په نزد ددے مونخ نورے طریقے دي د احنافو د طریقے نه لږے مختلفے دي. امام بخاري رحمة الله علیه د احنافو طریقه خوښه کړیده. په احادیثو کښ ددے مونخ چه هر څو طریقے بیان شویدي ټولے روا دي. اختلاف صرف په مستحب والي کښ دے چه کومه طریقه زیاته مستحب ده.

وَقَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اِلٰى قَوْلِهٖ عَذَابًا مُّهِيْنًا.

او الله تعالیٰ او فرمائیل کله چه تاسو زمکه کښ ګرځئے (سفر کوئے) نو دے خبره کښ په تاسو هیڅ حرج نشته چه مونخ کښ قصر او کړئے. اخر آیت عَذَابًا مُّهِيْنًا پورے (قصر: کمے)

۸۹۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَاَلْتُهُ هَلْ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي صَلٰوةَ الْخَوْفِ فَقَالَ اَخْبَرَنَا سَالِمٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ فَصَافَفْنَا لَهُمْ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ لَنَا فَقَامَتْ طَائِفَةٌ مَعَهُ وَاَقْبَلَتْ طَائِفَةٌ عَلَى الْعَدُوِّ وَرَكَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۸۹۳: ابو الیمان، شعیب بیان کوي، ما د زهري نه تپوس او که آیا نبي ﷺ څه مونخ یعنی د ویرے مونخ کړے دے نو هغه جواب کښ اووے ما ته سالم بیان او که، عبدالله بن عمرؓ اووے ما د نجد اطرافو کښ د نبي ﷺ په ملګرتیا کښ جهاد او که مونږ خلق د دشمن مقابل شو او د هغوي مخکښ مونږ صفونه جوړ کړل، رسول الله ﷺ اودریدلو او مونږ ته ئے مونخ راکړلو نو یو جماعت هغوي سره اودریدلو او یو جماعت دشمن ته مخکښ شو رسول الله خپلو ملګرو سره

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْ مَعَهُ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفُوْا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِيْ لَمْ تُصَلِّ فَجَاؤُوْا فَرَكَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمْ رَكْعَةً وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمْ فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ رَكْعَةً وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ.

رکوع او دوه سجدې او کړې بیا هغه خلق دده جماعت په ځائې واپس شولو چه چه مونځ نه وو کړې هغه خلق راغلل نو رسول اللّٰه یوه رکوع او دوه سجدې او کړې بیا ئې سلام اوګرځولو او (هغې جماعت نه) هر یو، یوه رکوع او دوه سجدې اوکړلې.

بَابُ ۵۹۷ : صَلٰوةِ الْخَوْفِ رِجَالًا وَّرُكْبَانًا رَّاجِلٌ قَائِمٌ.

باب ۵۹۷ : پیاده یا په سورلي د خوف د مونځ کولو بیان راجل نه مراد پیاده دې.

۸۹۴ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدِ نِ الْقُرَشِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا بْنُ جُرَيْجٍ عَنْ مُّوْسٰى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوًا مِّنْ قَوْلِ مُجَاهِدٍ اِذَا خْتَلَطُوْا قِيَامًا وَّزَادَ بْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِنْ كَانُوْا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَلْيُصَلُّوْا قِيَامًا وَّرُكْبَانًا.

۸۹۴ : سعید بن یحیٰي بن سعید قرشي ابن جریج موسٰي بن عقبه نافع ابن عمرؓ نه د مجاهد د قول په شان روایت کوي چه هر کله خلق د یو بل سره ګډ وډ شي، نو په ولاړه په اشاره مونځ کوئ، او ابن عمرؓ د نبيؐ نه دې زیاتې سره روایت کړې دې که کافر خلق زیات تعداد کښ وي نو مسلمانان دې په ولاړه او په سورلئ (یعني دغه قسم چه موقع وي) مونځ کويا .

۱ . دې روایت کښ زیات ګران والې دا دې چه د ابن عمر رضي اللّٰه عنهما قول ئې نقل کړې به دې . چرته کښ امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا لیکلي ندي. چه د هغې نه معلومه شي چه ابن عمر رضي اللّٰه عنهما څه فرمایلي وو بل دا ویل پکار وو . چه مجاهد رحمة اللّٰه علیه د ابن عمر رضي اللّٰه عنهما پشان روایت کړیدې لیکن امام بخاري رحمة اللّٰه علیه ددې مخالف خبره کوي. حالانکه حضرت مجاهد رحمة اللّٰه علیه تابعي دې او ابن عمر رضي اللّٰه عنهما صحابي دې ددې وجې نه د اصول حدیث د قاعدې مطابق د ابن عمر رضي اللّٰه عنهما وینا نقل کول پکار وو . بیا ددې نه روستو ئې چه کوم قول نقل کړیدې د هغې په مطلب په وضاحت سره بنده پوهیدې نشي. له دې کبله ډیرو د حدیث شریف شرحه کونکو ددې عبارت په معني کښ اختلاف کړیدې مونږ په ترجمه د عبارت د معني د واضح کولو کوشش کړیدې ددې مطلب دا دې چه کله لاس په لاس جنګ وي او مونځ ادا کول ګران وي نو په اشارو سره مونځ کول روا دي. د احنافو په نزد، امام محمد رحمة اللّٰه علیه د سور د پاره په اشاره د مونځ کولو اجازت ورکوي. ددې زیات تفصیل د فقهې په کتابونو کښ کتلې شي.

باب ۵۹۸: يَحْرُسُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فِيْ صَلوٰةِ الْخَوْفِ.

۸۹۵: حَدَّثَنَا حَيْوٰةُ بْنُ شُرَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ عَنِ الزُّبَيْدِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ فَكَبَّرَ وَكَبَّرُوْا مَعَهُ وَرَكَعَ وَرَكَعَ النَّاسُ مِنْهُمْ ثُمَّ سَجَدَ وَسَجَدُوْا مَعَهُ ثُمَّ قَامَ لِلثَّانِيَةِ فَقَامَ الَّذِيْنَ سَجَدُوْا وَحَرَسُوْا اِخْوَانَهُمْ وَاَتَتْ طَائِفَةٌ اُخْرٰى فَرَكَعُوْا وَسَجَدُوْا مَعَهُ وَالنَّاسُ كُلُّهُمْ فِيْ صَلٰوةٍ وَلٰكِنْ يَحْرُسُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا.

باب ۵۹۸: د خوف مونځ کښې د يو بل د څوکۍ کولو بيان.

۸۹۵: حيوة بن شريح، محمد بن حرب زبيدي، زهري، عبدالله بن عتبه ابن عباسؓ نه روايت کوي هغه او فرمائيل چه نبي صلي الله عليه وسلّم اودريدلو او خلق هم ورسره اودريدل حضورؐ تکبير اوکه نو خلقو هم حضورؐ سره تکبير اوکه حضورؐ رکوع اوکه نو خلقو هم حضورؐ سره رکوع اوکړه. بيا حضورؐ سجده اوکړه نو خلقو هم حضورؐ سره سجده اوکړه بيا دويم رکعت د پاره اودريدلو نو کومو کسانو چه سجده کړې وه، هغوي اودريدل او د خپلو رونړو څوکۍ ئې کوله او بل جماعت راغې حضورؐ سره ئې رکوع او سجدې اوکړې او ټول خلق مانځه کښې وو ليکن د يو بل څوکۍ ئې کوله.

بـاب ۵۹۹: الصَّلٰوةِ عِنْدَ مُنَاهَضَةِ الْحُصُوْنِ وَلِقَاءِ الْعَدُوِّ وَقَالَ الْاَوْزَاعِيُّ اِنْ كَانَ تَهَيَّا الْفَتْحُ وَلَمْ يَقْدِرُوْا عَلَى الصَّلٰوةِ صَلُّوْا اِيْمَآءً كُلُّ امْرِئٍ لِنَفْسِهٖ فَاِنْ لَّمْ يَقْدِرُوْا عَلَى الْاِيْمَاءِ اَخَّرُوا الصَّلٰوةَ حَتّٰى يَنْكَشِفَ الْقِتَالُ اَوْ يَاْمَنُوْا فَيُصَلُّوْا رَكْعَتَيْنِ فَاِنْ لَّمْ يَقْدِرُوْا صَلُّوْا رَكْعَةً وَّسَجْدَتَيْنِ فَاِنْ لَّمْ يَقْدِرُوْا فَلَا يُجْزِءُهُمُ التَّكْبِيْرُ وَيُؤَخِّرُوْنَهَا حَتّٰى يَاْمَنُوْا وَبِهٖ قَالَ مَكْحُوْلٌ وَقَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ حَضَرْتُ مُنَاهَضَةَ حِصْنِ تُسْتَرَ عِنْدَ

باب ۵۹۹: په قلعه ګانو د حملې او د، دشمن د مقابلې په وخت د مونځ کولو بيان، اوزاعي اووې که فتح قريب وي او خلق په مونځ قادر نه وي نو هر سړې دې خان خان له اشارې سره مونځ اوکړي او که په اشاره قادر نه وي نو مونځ دې ورستو کړي، تر دې چه جنګ ختم شي، يا خلق محفوظ شي نو دوه رکعاته دې اوکړي، او که دوه رکعاته کولو باندې هم قادر نه وي نو يوه رکوع او دوه سجدې دې اوکړي، او که په دې باندې هم قادر نه وي نو هغوي له تکبير کافي نه دې بلکه دامن وخت پورې دې ورستو کړي او د مکحول هم دغه قول دې انس بن مالکؓ بيان اوکه، د سحر وخت کښې چه کله تستر باندې حمله کيدله زه موجود

اِضَـآءَ ةِ الْفَجْرِ وَاشْتَدَّ اِشْتِعَالُ الْقِتَالِ وَلَمْ يَقْدِرُوْا عَلَى الصَّلٰوةِ فَلَمْ نُصَلِّ اِلَّا بَعْدَ ارْتِفَاعِ النَّهَارِ فَصَلَّيْنَاهَا وَنَحْنُ مَعَ اَبِيْ مُوْسٰى فَفُتِحَ لَنَا قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ وَّمَا تَسُرُّنِيْ بِتِلْكَ الصَّلٰوةِ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

روم' او د جنګ اور سخت ګرم وو' خلق په مونځ قادر نه وو' د نمر اوچت راختونه پس مونږ په مونځ قادر شو نو مونږ مونځونه او کړل' داسے حال کښې چه مونږ ابو موسیٰ سره وو بيا هغه قلعه مونږ ـ پاره فتح شوه د انس بن مالکؓ بيان دے ددے مونځ په عوض کښې به مونږ د دنيا او ددے د ټولو څيزونو په حاصليدلو خوشاله شوي نه وو[۱].

۱. يعني قلعه فتحه شوه او دا د الله تعالٰي لوئے نعمت وو ليکن د مونځ د روستو کولو مونږ ته چه کوم افسوس اوشو د قلعے د فتحے خوشالي هغه افسوس نشي لرے کولے. په حقيقت کښې د قلعے فتحه کول قبضه کول ديني مقصد وو. ليکن د مونځ د خپل وخت نه روستو کيدل لوئے غم وو. د جنګ په داسے حالت کښې د احنافو په نزد مونځ په خپل وخت ادا کول ضروري نه دي. مونځ روستو کول دي او بيا قضا ادا کول دي پخپله رسول اکرم صلي الله عليه وسلم د احزاب په غذا کښې د جنګ په وجه مونځ روستو کړے وو او بيائے قضا ادا کړے وو.

۸۹۶: حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَاءَ عُمَرُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَجَعَلَ يُسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ وَّيَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا صَلَّيْتُ الْعَصْرَ حَتّٰى كَادَتِ الشَّمْسُ اَنْ تَغِيْبَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا وَاللّٰهِ مَا صَلَّيْتُهَا بَعْدُ قَالَ فَنَزَلَ اِلٰى بُطْحَانَ فَتَوَضَّاَ وَصَلَّى الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَابَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى الْمَغْرِبَ بَعْدَهَا.

۸۹۶: يحيي' وکيع' علي بن مبارک' يحيي بن ابي کثير' ابو سلمه جابر بن عبداللهؓ روايت کوي' حضرت عمرؓ د غزوه خندق په ورځ راغے او کفار قريش ته ئے بد رد شروع کړل او وئيلے يا رسول اللهؐ مونږ د مازيګر مونځ او نه کړے شو تر دے چه نمر پريوتو ته نزدے شو نو نبي صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل په خدائے چه ما هم اوه پورے مونځ نه دے کړے بيا حضورؐ بطحان کښې کوز شولو اودس ئے اوکه او د مازيګر مونځ ئے اوکه چه نمر پريوتے وو د هغے نه پس ئے د ماښام مونځ اوکه.

بَابٌ ۴۰۰: صَلٰوةِ الطَّالِبِ وَالْمَطْلُوْبِ رَاكِبًا وَاِيْمَآءً وَقَالَ الْوَلِيْدُ ذَكَرْتُ لِلْاَوْزَاعِيِّ شُرَ حْبِيْلِ بْنِ

باب ۴۰۰: دشمن پسے دلګيدونکي يا چاپسے چه لګيدلے وي د هغه اشارے سره او په سورلئ د مونځ کولو بيان او وليد اووے ما د اوزاعي سره د

السِّمْطِ وَاَصْحَابِهٖ عَلٰی ظَهْرِ الدَّآبَّةِ فَقَالَ كَذٰلِكَ الْاَمْرُ عِنْدَنَا اِذَا تُخُوِّفَ الْفَوْتُ وَاحْتَجَّ الْوَلِيْدُ بِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّيَنَّ اَحَدٌ الْعَصْرَ قَالَ اِلَّا فِيْ بَنِيْ قُرَيْظَةَ.

شرجیل بن سمط او د هغه د ملګرو په سورلي د مونځ کولو تذکره او کړه نووے ونیل خما په نزد۱ دا درست ده په شرط ددے چه د مونځ د پاتے کیدو خوف وي او ولید د نبيّ ددے اشارے نه دلیل اخذ که چه هیڅوک دے د مازیګر مونځ نه کوي مګر قریظه ته چه اورسي.

۱ . د "طالب" د دښمن په تلاش کښ د وتونکي مونځ د احنافو په نزد په اشارو ادا کول صحیح نه دي. لیکن د "مطلوب" چه دښمن ئے په تلاش کښ وي هغه د سورلۍ په حالت کښ په اشارو سره مونځ کولے شي. ځکه چه دا کیدے شي چه په تیز تلو سره د خپل ځان د بچ کولو تدبیر او کړے شي. شُرحبیل بن سمط او د هغه ملګري د خطرے په حالت کښ وو د صبا د مونځ وخت نزدے وو هغه خپل ملګروته اوېل چه د صبا مونځ په سورلۍ او کړئ لیکن اشتر نخعي د خپلے سورلۍ نه کوز شو او لاندے ئے مونځ ادا کړو. شُرحبیل رحمة الله علیه او فرمایل "چه اشتر پدے خپل عمل د الله تعالي مخالفت او کړو.

۸۹۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَاءَ قَالَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَا لَمَّا رَجَعَ مِنَ الْاَحْزَابِ لَا يُصَلِّيَنَّ اَحَدٌ نِ الْعَصْرَ اِلَّا فِيْ بَنِيْ قُرَيْظَةَ فَاَدْرَكَ بَعْضَهُمُ الْعَصْرَ فِي الطَّرِيْقِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ نُصَلِّيْ لَمْ يُرِدْ مِنَّا ذٰلِكَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُعَنِّفْ اَحَدًا مِّنْهُمْ.

۸۹۷ : عبدالله بن محمد بن اسماء' جویریه نافع ابن عمر رضي الله تعالي عنه نه روایت کوي. هغه اووے کوم وخت چه نبيّ د جنګ احزاب نه واپس شو نو مونږ خلقو ته ئے او فرمایل: چه هیڅوک دے د مازیګر مونځ نه کوي خو بني قریظه ته چه اورسي د بعضے خلقو په لار کښ د مازیګر وخت راغے نو بعضو اووے' چه مونږ به مونځ نه کوو. خو پورے چه هلته بني قریظه ته اونه رسو' او بعضو اووے' مونږ به کوو' او د حضورﷺ مقصد دانه وو (چه مونږ دے مونځ قضا او کړو) کوم وخت چه ددے ذکر رسول الله ته اوشو نو هغوي هیڅوک ملامته۱ نه که.

۱ . کله چه د احزاب (خندق) غزا ختمه شوه. نو رسول الله صلي الله علیه وسلم سمدستي مجاهدینو ته حکم ورکړو. چه په دے حالت کښ د بنو قریظه قبیلے علاقے ته اورسي. بنو قریظه یهودوو. رسول الله صلي الله علیه وسلم چه کله مدینے منورے ته تشریف یوړو. نو یهودیانو رسول الله صلي الله علیه وسلم سره معاهده کړے وه چه د "یو بل خلاف به په جنګ کښ حصه نه اخلي" لیکن یهودو به پټه پټه د مسلمانانو خلاف سازشونه کول. لیکن د احزاب د غزا په وخت ئے په ډاګه د کافرانو ملګرتیا اوکړه. ځکه چه دا جنګ د کافرانو د طرفه د اسلام خلاف ډیره لویه کاروائي وه که کافران دغه جنګ کښ کامیاب شوے وو نو د مسلمانانو د پاره ډیر لوئے تاوان او ماتے یقیني وه. یهودیانو په ښکاره ډول د کافرانو ملګرتیا

او کړه. چه "دا به د اسلام خلاف آخري او فیصله کونکے جنګ وي. او په دے کښې مسلمانانو ته ماتے یقیني ده". د معاهدے د مخے د یهودیانو د نورو کافرانو سره دا ملګرتیا ډیر لوئے جرم وو له دے کبله رسول الله صلي الله علیه وسلم هغوي له مهلت ورنه کړو او سمدستي ئے راګیر کړل او په دے وجه رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل "چه د مازیګر مونځ د بنو قریظه علاقه کښې ادا کړئ. خکه که چرے لښکر په لاره کښې مونځ ادا کوي نو ناوخته به شي. له دے کبله بعضے صحابه کرامو رضی الله عنهم ترے دا مطلب واخست "چه مقصد بنو قریظه ته زر تیزئ سره رسیدل دي. په دے حدیث شریف کښې دا ښسته چه دغے صحابه کرامو چا چه په لاره کښې مونځ کړے وو هغوي د مونځ په حالت کښې سواره وو په اشارونے مونځ کړے وو یا مزکے ته کوز شوے وو له دے وجے نه د امام بخاري رحمة الله علیه ددے حدیث شریف دا دلیل (چه مونځ په سورلئ کول) صحیح نه دے.

## بَـاب ۱۰۲ : التَّبْكِيْرِ وَالْغَلَسِ وَالصُّبْحِ وَالصَّلٰوةِ عِنْدَ الْاِغَارَةِ وَالْحَرْبِ.

باب ۱۰۲ : د سحر مونځ تیاره کښې او دوخته کول او د لوټ مار او د جنګ وخت کښې د مونځ کولو بیان.

۸۹۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ وَثَابِتِ الْبَنَانِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الصُّبْحَ بِغَلَسٍ ثُمَّ رَكِبَ فَقَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ فَخَرَجُوْا يَسْعَوْنَ فِي السِّكَكِ وَيَقُوْلُوْنَ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيْسُ قَالَ الْخَمِيْسُ الْجَيْشُ فَظَهَرَ عَلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَتَلَ الْقَاتِلَةَ وَسَبَى الذَّرَارِيَّ فَصَارَتْ صَفِيَّةُ لِدَحْيَةَ الْكَلْبِيِّ وَصَارَتْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ صَدَاقَهَا عِتْقَهَا فَقَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ

۸۹۸: مسدد، حماد بن زید، عبدالعزیز بن صهیب، ثابت بناني، انس بن مالک نه روایت کوي، چه رسول الله د سحر مونځ تیاره کښې او که بیا سور شولو، اووے، فرمائیل، الله اکبر، خیبر دے وران شي، کله چه مونږ د یو قوم میدان ته را کوز شو، نو د ویرولے شوے خلقو سحر ډیر سپیره وي نو هغے خلقو (یهودیانو) به کوڅو کښې منډے وهلے او دا به ئے وے چه محمد (صلي الله علیه وسلم) لښکر سره راغے (راوي اووے چه خمیس لښکر ته وائي) نو رسول الله په هغوي غالب راغے) جنګیان ئے قتل کړل او ښځے او بچي ئے قید کړل. بي بي صفیه د، د حیه کلبي په حصه کښې راغله، بیا رسول الله ته ورکړے شوه چه ورستو ورسره بیا حضور نکاح او کړله، او د هغے آزادي ئے د هغے مهر مقرر کړلو عبدالعزیز، ثابت ته اووے، اے ابو محمد، آیا تا د انس نه تپوس کړے وو. چه رسول الله د هغے مهر څه مقرر کړے وو نو ثابت اووے، چه حضور هغه (د

لِثَابِتٍ يَا اَبَا مُحَمَّدٍ ءَ اَنْتَ سَأَلْتَ اَنَسًا اَمْهَرَهَا فَقَالَ اَمْرُهَا نَفْسَهَا قَالَ فَتَبَسَّمَ.

هغې نفس يعني د هغې آزادي) د هغې مهر مقرر کړې وو د عبدالعزيز بيان دې چه ابو محمد په دې مُسکې شو.

## كِتَابُ الْعِيْدَيْنِ

## د آخترونو بيان

بَاب ۲۰۲: مَا جَآءَ فِي الْعِيْدِيْنِ وَالتَّجَمَّلِ فِيْهِمَا.

باب ۲۰۲: د هغې څيز بيان چه د' اخترونو متعلق نقل دې' او دواړو اخترونو کښې د خانسته کيدو بيان.

۸۹۹: حَدَّثَنَا اَبُوا الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيُ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اَخَذَ عُمَرُ جُبَّةً مِّنْ اِسْتَبْرَقٍ تُبَاعُ فِي السُّوْقِ فَاَخَذَهَا فَاَتٰى بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْتَعْ هٰذِهٖ تَجَمَّلْ بِهَا لِلْعِيْدِ وَالْوُفُوْدِ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هٰذِهٖ لِبَاسُ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ فَلَبِثَ عُمَرُ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَلْبَثَ ثُمَّ اَرْسَلَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجُبَّةِ دِيْبَاجٍ فَاَقْبَلَ بِهَا عُمَرُ فَاَتٰى بِهَا عُمَرُ فَاَتٰى بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ قُلْتَ هٰذِهٖ لِبَاسُ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ وَاَرْسَلْتَ اِلَيَّ بِهٰذِهِ الْجُبَّةِ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبِيْعُهَا وَتُصِيْبُ بِهَا حَاجَتَكَ.

۸۹۹: ابو اليمان شعيب' زهري' سالم بن عبداللّٰه' عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي' عمرؓ يوه جبه چه بازار کښې خرخيده' هغه ئې واخسته. د نبيﷺ خدمت کښې حاضر شو' او عرض ئې او کړه' يا رسول اللّٰه' تاسو دا (په بيع) واخلئ' او د آختر او د' وفد د راتلو په ورځ ئې د زينت د پاره اغندئې حضورﷺ ورته او فرمائيل' دا' د هغې سړي لباس دې چه آخرت کښې ئې څه حصه نه وي. حضرت عمرؓ وخت تيرولو. څو پورې چه اللّٰه تعالیٰ ته منظوره وه بيا رسول اللّٰهﷺ حضرت عمرؓ ته يوه ريښمينه چغه اوليږله' حضرت عمرؓ هغه واخسته بيا هغې سره رسول اللّٰهﷺ ته راغې او عرض ئې او کړه' يا رسول اللّٰه تاسوﷺ فرمائيلې وو چه داد هغه سړي لباس دې چه آخرت کښې د هغه حصه نه وي نو (ددې باوجود) بيا دا جبه تاسوﷺ ماته راوليږله' نو رسول اللّٰهﷺ ورته او فرمائيل' دا خرڅه کړه او خپل ضرورت پرې پوره کړه[1].

[1] دې حديث شريف کښې دي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته حضرت عمر رضي اللّٰه عنه

فرمايلي وو "چه دا جبه (چوغه) د اخترونو په ورځ اغوندئ او كله چه وفدونه راځي نو په هغه وخت ئے اغوندئے" ددينه معلوميږي چه د اختر په ورځ ښکل خان او لباس ښائسته کول بکار دي. پدے سلسله کښ نور احاديث هم شته دے.

## بَاب ٦٠٣ : الحِرَابِ وَالدَّرَاقِ يَوْمَ الْعِيْدِ

٩٠٠ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ قَالَ حَدَّثَنَا بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عَمْرٌو اَنَّ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْاَسَدِیِّ حَدَّثَهُ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَیَّ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدِیْ جَارِیَتَانِ تُغَنِّیَانِ بِغِنَآءِ بُعَاثٍ فَاضْطَجَعَ عَلَی الْفِرَاشِ وَحَوَّلَ وَجْهَه دَخَلَ اَبُوْ بَكْرٍ فَانْتَهَرَ نِیْ وَقَالَ مِزْمَارَةُ الشَّیْطَانِ عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلَ عَلَیْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهِ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعْهُمَا فَلَمَّا غَفَلَ غَمَزْتُهُمَا فَخَرَجَتَا وَكَانَ یَوْمَ عِیْدٍ یَّلْعَبُ السُّوْدَانُ بِالدَّرَقِ وَالْحِرَابِ فَلَمَّا سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَاِمَّا قَالَ تَشْتَهِیْنَ تَنْظُرِیْنَ فَقُلْتُ نَعَمْ فَاَقَامَنِیْ وَرَآءَهٗ خَدِّیْ عَلٰی خَدِّهٖ وَهُوَ یَقُوْلُ دُوْنَكُمْ یَا بَنِیْ اَرْفِدَةَ حَتّٰی اِذَا مَلِلْتُ قَالَ لِیْ حَسْبُكِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاذْهَبِیْ

## باب ٦٠٣ : د اختر په ورځ نيزو ډهالونو سره د لوبو كولو بيان[1].

٩٠٠ : احمد ابن وهب، عمرو محمد بن عبدالرحمن اسدي، عروه بن زبير بي بي عائشےؓ نه روايت كوي هغے او فرمائيل، نبي صلي الله عليه وسلّم ما پله تشريف راوړلو. او ما كره دوه جينكو د جنګ بعاث متعلق سندرے ونيلے حضورؐ په بستره سملاستلو او خپل مخ ئے واړولو حضرت ابو بكرؓ راغے نو ماله ئے زوروونه راكړه، اووے ونيل، چه دا شيطاني حركت، او بيا د نبيؐ په موجودګئ كښ، نو حضورؐ او فرمائيل چه پريږيدئے كوم وخت چه ابو بكرؓ بل خوا متوجه شو نو ما هغے دواړو سندر غاړو ته دوتلو اشاره اوكړه. نو هغوي لاړے اووتلے او د اختر په ورځ به تورو خلقو ډهالونو او نيزو سره لوبے كولے، يا خو ما رسول اللّٰهؐ ته خواست اوكه يا رسول اللّٰهؐ ماته او فرمائيل چه ته تماشه كتل غواړے؟ ما ورته اووے او، نو حضورؐ زه خپل شا ته اودرولم ما خپل اننګے (رخسار) د حضورؐ په اننګي ايښے وو حضورؐ او فرمائيل، اے بني ارفده، تماشه اوښائے تردے چه زه ستړے شوم، نو حضورؐ او فرمائيل، "بس" نو ما اووے، جي او، نو حضورؐ اوفرمائيل خه لاړه شه.

[1] ١. ددے سر ليک لاندے چه کوم حديث شريف ذکر شويدے هغے نه دا نه ثابتيږي چه د اختر په ورځ داسے لوبے كول سنت دي. خكه چه په دغه زمانه كښ د مسلمانانو د كافرانو سره جنګونه روان وو.

سو بـه دے وحـه رسول الله صلي الله عليه وسلم دا اوعوښتله چه به كافرو ويره راشي او د مسلمانانو طاقت ورته ښكاره شي بيا په حديث شريف كښ دا هم نشته. چه بيرو سره لوبے كونكے خلق رسول كريم صلي الله عليه وسلم سره عيدګاه ته تلے وو. نه رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلو صحابة كرامو ته حكم وركړے وو. چه عيدګاه ته خان سره وسلے يوسئ. بلكے حديث شريف نه په ښكاره معلوميږي. چه عيدګاه نه واپسئ بانديے دا حنګي مظاهره شوے وه. ابن منير رحمة الله عليه دا ليكلي دي. چه د امام بخاري رحمة الله عليه ددے سر ليک نه دا مقصد دے چه د اختر په ورځ د نورو عامو ورځو نه د زياتے خوشالئ مظاهره پكار ده.

## بَاب ۴۰۲ : سُنَّةِ الْعِيْدِ لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ .

**باب ۴۰۲ : اهـل اسـلام د پـاره' د اختر دستو بيان.**

۹۰۱ : حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنِيْ زُبَيْدٌ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ اِنَّ اَوَّلَ مَا نَبْدَؤُ مِنْ يَوْمِنَا هٰذَا اَنْ نُصَلِّيَ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ فَمَنْ فَعَلَ فَقَدْ اَصَابَ سُنَّتَنَا.

۹۰۱ : حـجـاج' شـعبـه' زبيـد' شـعبي' براءؓ روايت كوي' چه ما د نبيؐ نه خطبه واوريده' حضورؐ او فـرمـائيل' د ټولو نه وړمبے څيز' چه د هغے نه مونږ نن ورځ شروع او كړو هغه دا چه مونږ مونځ او كړو بيا كور ته واپس شو بيا قرباني او كړو او چا چه دغسے او كړل نو هغه خما سنت ادا كړل.

۹۰۲ : حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ بْنُ اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّعِنْدِيْ جَارِيَتَانِ مِنْ جَوَارِي الْاَنْصَارِ تُغَنِّيَانِ بِمَا تَقَاوَلَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثَ قَالَتْ وَلَيْسَتَا بِمُغَنِّيَتَيْنِ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ بِمَزَامِيْرِ الشَّيْطَانِ فِيْ بَيْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذٰلِكَ فِيْ يَوْمِ عِيْدٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا بَكْرٍ اِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيْدٌ وَّهٰذَا عِيْدُنَا.

۹۰۲ : عبيـده بـن اسـمـاعيـل' ابـو اسـامـه' هشـام بـن عـروه' عـروه بن زبير بي بي عـائشےؓ نـه روايت كـوي' هغے او فـرمـائيـل چـه ابـو بـكـرؓ راغـے او مـا كـره د انـصـارو دوو جينـكـو د جنګ بعـاث شـعرونـه وئيـل' او د هغے جينـكو پيشـه د سندرو وئيلو نـه وه نـو ابـو بكـرؓ او فـرمـائيل دا شيطـاني باجه او د رسول الـلـه پـه كـور كـښ' او هغـه د اختـر ورځ وه نـو رسـول الـلـهؐ او فـرمـائيـل' اے ابـو بـكـرؓ د هـر قـوم اختـر وي. او نن خمونږ د خلقو اختر دےؓ.

۱. بعاث: د مديني منورې نه د دوو ورځو د مزل په فاصله باندې د بنو كمي نوم دے. د مصرو د اوس قبيلې دلته يوه قلعه هم وه. د انصارو د دوو قبيلو اوس او خزرج په مېنځ كښې د عربو مشهور جنګونه دننه شوې وو. واني: چه شهر شلې كاله ددې جنګ سلسله روانه وه. يهودو به دا دواړه قبيلې جنګ ته لمسولې په دې جنګونو كښې اوس د خزرج لوئي لوئي سرداران وژلې وو. مطلب دا دے چه ددې جنګ په موقعه چه كومې سندرې ويلې شوې وې هغه دې جينكو ويلې

۲. دې روايت كښې دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته او فرمايل: "چه ابوبكره! دوي پرېږده د هر قوم يو اختر وي او دا خمونږ اختر دے" دا حديث شريف نه بخاري كښې بيا راځي. او په هغې كښې ذكر دے چه دا جينكئ دا سندر غاړې جينكي نه وې. بلكې د اختر په خوشالي كښې ئې سندرې ويلې دا ياد ساتل پكار دي چه د پردې (اجنبيې) ښځې مخ او لاسونو ته كتل روا دي. ليكن چه كله حالات خراب شو. نو ددينه منعه او شوه دلته د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په عمل هم غور پكار دے چه دوي ئې د سندرونه منعه نه كړې. خو پخپله پكښې شريک نشو مخ مبارک ئې بل خوا واړه وو. ددينه معلوميږي كه دا كار روا دے خو بيا هم د شريعت په نظر كښې خوښ نه دے او دے كار كښې مشغوليدل غوره كار نه دے. امام غزالي رحمة الله عليه ليكلي دي چه بعضې رواكارونه داسې دي چه په هغې اصرار كول (هغه بيا بيا كول) وړه ګناه جوړيږي.

## باب ۶۰۵: اَلْاَكْلِ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ الْخُرُوْجِ

## باب ۶۰۵: عيد ګاه ته د تلو نه مخكښې د وړوكي اختر په ورځ د خوراک بيان.

۹۰۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ اَبِي بَكْرِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْدُوْا يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَأْكُلَ ثَمَرَاتٍ وَقَالَ مُرَجّٰى بْنُ رُجَآءٍ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا.

۹۰۳: محمد بن عبدالرحيم، سعيد بن سليمان، هشيم، عبيد الله بن ابي بكر بن انس بن مالک روايت كوي: هغه او فرمايل: رسول اللّٰه به د اختر په ورځ خو پورې چه چوهارې نه وې خوړلې. نو عيد ګاه ته به نه تلو او مرجي بن رجاء د عبدالله بن ابي بكر، نه او هغه د انس نه او انس د نبي نه روايت كړے دے. چه حضورﷺ به چهو هارې طاق (ناتكې) شمير كښې خوړلې.

## باب ۶۰۶: اَلْاَكْلِ يَوْمَ النَّحْرِ.

## باب ۶۰۶: د قربانئ په ورځ د خوراک بيان.

۹۰۴: مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا

۹۰۴: مسدد، اسماعيل، محمد بن سرين

اِسْمٰعِيْلُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَلْيُعِدْ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ هٰذَا يَوْمٌ يُشْتَهٰى فِيْهِ اللَّحْمُ وَذَكَرَ مِنْ جِيْرَانِهٖ فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَّقَهٗ قَالَ وَعِنْدِيْ جَذْعَةٌ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَرَخَّصَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا اَدْرِيْ بَلَغَتِ الرُّخْصَةُ مَنْ سِوَاهُ اَمْ لَا.

انس بن مالک نه روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل کوم سړے چه د مانځه نه مخکښ قرباني او کړي نو هغه دے دوباره قرباني او کړي، نو يو سړے او دريدلو، او عرض ئے او که، په نن ورځ غوښے د پاره ډير خواهش وي او هغه د خپلو ګوانډيانو حال بيان کـه نبي صلي الله عليه وسلّم د هغه تصديق او که او هغه اووے، ما سره يوه جذعه (د يو کال د کلونے بچے) دے، چه د غوښتو دوو چيلو نه ماته محبوب دے. او هغه ته نبيّ اجازت ور که، ماته معلومه نه ده چه دا، اجازت د هغه نه سوا نورو خلقو ته هم دے که نه[۱].

۱. ددے نه وړانـدے د وړوکي اختر په حقله يو حديث شريف ذکر دے چه په هغے کښ دا وو. چه د عيد ګاه تللو نه مخکښ به نبي کريم صلي الله عليه وسلم خوراک کوؤ قجورے به ئے خوړلے ددے وجے په سر ليک کښ هم د خوراک شرط وؤ. ليکن د لوئے اختر په حقله په حديث شريف کښ داسے قسم څه لفظ نشته. ددے وجے نه په لوئے اختر کښ د خوراک کولو ذکر اونه کړو. په لوئے اختر کښ دا مستحب دي. چه د قربانئ غوښه نه تلو نه اول اوخوري. ددے حديث شريف په بعضے رواياتو کښ دي چه دغه بنـده ويلے وو. چه دا د خوړلو ښځنلو ورځ ده. د اسلام په نظر کښ د اختر ورځ د خوشالئ او د خوراک ښځناک ده. رسول اکرم صلي الله عليه وسلم دے بنده ته د څلورو مياشتو د څاروي د قرباني کولو اجازت ورکړے وؤ. ددے نه پس د راوي بيان دے چه ماته معلومه نه ده چه دا اجازت دغه سړي د پاره خاص وؤ يا د ټول امت د پاره دے. ددے حديث شريف په بعضے رواياتو کښ دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمايل "چه ستا نه علاوه د بل چا د پاره ددے عمر د څاروي قرباني کول روا نه دي.

**۹۰۵** : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْاَضْحٰى بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَقَالَ مَنْ صَلّٰى صَلٰوتَنَا وَنَسَكَ نُسُكَنَا فَقَدْ اَصَابَ النُّسُكَ وَمَنْ نَسَكَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَاِنَّهٗ قَبْلَ الصَّلٰوةِ وَلَا نُسُكَ لَهٗ فَقَالَ اَبُوْ

**۹۰۵** : عثمان، جرير، منصور، شعبه، براء بن عازب روايت کوي، خمونږ خلقو مخکښ رسول الله صلي الله عليه وسلّم د قربانے د اختر په ورځ د مانځه نه پس خطبه او لوسته، او وے فرمائيل، چا چه خمونږ په شان مونځ او که، او خمونږ په شان قرباني ئے او کړه. نو د هغه قرباني درست شوه، او چاچه د مانځه نه مخکښ قرباني او کړه نو هغه د مونځ نه مخکښ ده (يعني صرف غوښے د پاره ده) او هغه قرباني نه کيږي، د براء، ماما، ابو برده بن دينار

بُـرْدَةَ بْنِ دِيْنَارٍ خَالُ الْبَرَآءِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاِنِّیْ نَسَكْتُ شَاتِیْ قَبْلَ الصَّلٰوةِ وَعَـرَفْتُ اَنَّ الْيَوْمَ يَوْمُ اَكْلٍ وَّشُرْبٍ وَاَحْبَبْتُ اَنْ تَـكُوْنَ شَاتِیْ اَوَّلَ شَاةٍ تُـذْبَحُ فِیْ بَيْتِیْ فَـذَبَحْتُ شَـاتِیْ وَتَـغَدَّيْتُ قَبْـلَ اَنْ اٰتِیَ الصَّلٰوةَ قَالَ شَـاتُـكَ شَاةُ لَحْمٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَـاِنَّ عِـنْدَنَا عَنَاقًا لَّنَاجَذَعَةً اَحَبُّ اِلَیَّ مَـنْ شَـاتَيْـنِ اَفَتُجْزِیُ عَنِّیْ قَالَ نَعَمْ وَلَنْ تُجْزِیَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

عرض اوکه' يارسول اللّٰهٔ ما خپله چيلئے د مانخه نه مخکښې ذبح کړېما دا خيال اوکه چه نن د خوراک څکاک ورځ ده نو ما خيال اوکه' چه څما چيلئے دې څما کور کښې د ټـولو نه مخکښې ذبح شي نو ما خپله چيلئے ذبح کړه او عيد گاه تـه د تـلو نه مخکښې ما هغه او خوړله نو حضورؐ ورته او فرمائيل' چه ستا چيلئے د غوښې چيلئے ده ابو برده عرض اوکه يـا رسـول اللّٰـهٔ ما سره د څلورو مياشتو د ګډې بچے دې' چه څـمـا په نزد' د دوو چيلو نه زيات محبوب دے آيا هغه بـه څـمـا د پـاره کافي شي حضورؐ ورته او فرمائيل' او ليکن ستا نه پس به دبل چا د پاره کافي نه وي.

## بـاب ۷۰۶: الْـخُـرُوْجُ اِلَی الْمُصَلّٰی بِغَيْرِ مِنْبَرٍ.

## باب ۷۰۶: عيد ګـاه تـه بـغيـر منبر نـه د تلو بيان.

۹۰۶: حَـدَّثَنِیْ سَعِيْدُ بْنُ اَبِیْ مَـرْيَـمَ قَـالَ حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَـالَ اَخْبَـرَنِـیْ زَيْـدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ عِيَاضِ بْـنِ عَبْـدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِیْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِیِّ قَالَ كَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ يَـخْـرُجُ يَـوْمَ الْفِطْرِ وَالْاَضْـحٰـی اِلَی الْمُصَلّٰی فَاَوَّلَ شَیْءٍ يَّبْـدَاُ بِـهِ الصَّلٰوةُ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَيَقُوْمُ مُـقَـابِلَ النَّاسِ وَالنَّاسُ جُلُوْسٌ عَلٰی صُـفُـوْفِهِـمْ فَيَـعِـظُهُـمْ وَيُـوْصِيْهِـمْ وَيَـاْمُـرُهُـمْ فَـاِنْ كَـانَ يُرِيْدُ اَنْ يَّقْطَعَ بَـعْثًـا قَطَعَهٗ اَوْ يَاْمُرُ بِشَیْءٍ اَمَرَ بِهٖ ثُمَّ يَـنْـصَـرِفُ فَـقَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فَلَمْ يَزَلِ الـنَّـاسُ عَـلٰـی ذٰلِكَ حَتّٰی خَرَجْتُ مَعَ

۹۰۶: سـعـيـد بـن ابـي مـريـم' مـحـمـد بن جعفر زيـد بـن اسـلـم' عيـاض بـن عبـداللّٰـه بن ابي سرح ابو سـعـيـد خـدريؓ روايـت کـوي هـغـه او فـرمـائيـل نبـيؐ دوروکـي او' لـوئـې اخـتـر پـه ورځ عيد ګاه تـه تلو او پـه هـغـه ورځ بـه ئـې د ټـولو نـه ورمبـې چـه کـوم کار کـولـو هـغـه دا چـه مـونـځ بـه ئـې کـولو بيا چه د مونځ نه فـارغ شـو نـو د خـلـقـو مـخې ته به اودريدلو داسې حال کـښې چـه خـلـق بـه پـه خپلو صفونو کـښې نـاست وو حـضـورؐ بـه هـغـوي تـه نـصيحت او وصيت کولو. او هـغـوي تـه بـه ئـې حـکـم ورکـولو او کـه د څـهٔ لښکر ليـږلـو اراده بـه ئـې کـولـه نـو هغه بـه ئې جدا کړلو او د کـوم څيـز چـه بـه ...... حـکـم ورکـول وو هـغـې بـه ئـې ورکـولو تـر دې چـه زه مـروان سـره لـوې يـا وړوکـي اخـتـر کـښې اووتـلم چـه د مـديـنې

مَرْوَانَ وَهُوَ اَمِيْرُ الْمَدِيْنَةِ فِيْ اُضْحٰى اَوْفِطْرٍ فَلَمَّا اَتَيْنَا الْمُصَلّٰى اِذَا مِنْبَرٌ بَنَاهُ كَثِيْرُ بْنُ الصَّلْتِ فَاِذَا مَرْوَانُ يُرِيْدُ اَنْ يَّرْتَقِيَهُ قَبْلَ اَنْ يُّصَلِّيَ فَجَبَذْتُ بِثَوْبِهٖ فَجَبَذَنِيْ فَرْتَفَعَ فَخَطَبَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَقُلْتُ لَهٗ غَيَّرْتُمْ وَاللّٰهِ فَقَالَ يَا اَبَا سَعِيْدٍ قَدْ ذَهَبَ مَا تَعْلَمُ فَقُلْتُ مَا اَعْلَمُ وَاللّٰهِ خَيْرٌ مِّمَّا لَا اَعْلَمُ فَقَالَ اِنَّ النَّاسَ لَمْ يَكُوْنُوْا يَجْلِسُوْنَ لَنَا بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَجَعَلْتُهَا قَبْلَ الصَّلٰوةِ.

كورنر وو نو اووم ليدل، چه هلته منبر موجود وو، چه كثير بن صلت جوړ كړے وو، مروان د مونځ نه مخكښې منبر ته د ختلو اراده اوكړه نو ما د هغه كړه راؤنيوله رام بنكلو، هغه هم زه رابنكلم او منبر ته اوختلو او د مونځ نه مخكښې ئے خطبه اولوسته ما هغه ته اووے، په خدائے چه تا سنت بدل كړل مروان اووے هغه خيز تير شوے دے چه تا پيژندو. ماورته اووے، په خدائے چه، زه څه خيز پيژنم، هغه د هغے نه بهتر دے كوم چه نه پيژنم مروان اووے خلق د مانځه نه پس خما خبره آوريدو ته نه كينى. په دے وجه ما خطبه د مانځه نه مخكښې ورکړه.

١. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كښې به عيدګاه كښې منبر نشو كيخودلے د هغوي په زمانه كښې د عيدګاه څه خاص ابادي هم نه وو بلكے په ميدان كښې د وړوكي او لوئے اختر مونځونه كيدل. مروان چه كله د مدينے منورے امير شو نو هغه عيدګاه ته د خطبے د پاره منبر اوليږلو. عامو خلقو د هغه دا كار خوښ نه كړو. نو په دے وجه د كچه خښتو منبر ئے په خپله جوړ كړو. په دواړو اخترونو كښې خطبه د اختر د مونځ نه روستو يكار ده ليكن مروان د سنتو خلاف خطبه د مونځ نه وړاندے شروع كړه. رواياتونه، معلوميږي چه بيا بيا مروان ته په دے زورنه وركړے شوے وه. مروان ئے وجه بيان كړه. چه روستو خلق خطبے د پاره نه كيني. ددے نه معلوميږي چه مروان پخپل اجتهاد دا فيصله كړے وه. بعضے رواياتو كښې دي چه حضرت عثمان رضي الله عنه هم د مونځ نه وړاندے د اختر خطبه ويلے وه. ليكن هغه د عذر په وجه داسے كړے وو.

## باب ٨٠٦ : اَلْمَشْىِ وَالرُّكُوْبِ اِلَى الْعِيْدِ بِغَيْرِ اَذَانٍ وَّلَا اِقَامَةٍ.

باب ٨٠٦ : د اختر مونځ له پياده او په سورلي د تلو بيان.

٩٠٧ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ الْحِزَامِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عَيَّاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ فِى الْاَضْحٰى وَالْفِطْرِ ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلٰوةِ.

٩٠٧ : ابراهيم بن منذر حزامي انس بن عياض، عبدالله نافع عبدالله بن عمر روايت كوي، چه رسول الله به لوئے او وړوكي اختر كښې مونځ كولو بيا به ئے د مانځه نه پس خطبه وركوله.

٩٠٨ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَبَدَاَ بِالصَّلٰوةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ قَالَ وَاَخْبَرَنِيْ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَرْسَلَ اِلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ فِيْ اَوَّلِ مَا بُوْيِعَ لَهٗ اِنَّهٗ لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ بِالصَّلٰوةِ وَاَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمَ الْاَضْحٰى وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فَبَدَاَ بِالصَّلٰوةِ ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ بَعْدُ فَلَمَّا فَرَغَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ فَاَتَى النِّسَآءَ فَذَكَّرَهُنَّ وَهُوَ يَتَوَكَّاُ عَلٰى يَدِ بِلَالٍ وَّبِلَالٌ بَاسِطٌ ثَوْبَهٗ تُلْقِيْ فِيْهِ النِّسَآءُ صَدَقَةً قُلْتُ لِعَطَآءٍ اَتَرٰى حَقًّا عَلَى الْاِمَامِ الْاٰنَ اَنْ يَّاْتِيَ النِّسَآءَ فَيُذَكِّرُهُنَّ حِيْنَ يَفْرُغُ قَالَ اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ عَلَيْهِمْ وَمَا لَهُمْ اَنْ لَّا يَفْعَلُوْا.

٩٠٨ : ابراهيم بن موسي' هشام' ابن جريج عطاء د جابر بن عبدالله نه روايت كوي' ما د هغه نه واوريدل چه نبيّ د وړوكي اختر په ورځ عيد گاه ته تشريف يوړلو او د خطبے نه مخكښې ئے مونځ اوكه ابن جريج اووے' ماته عطاء بيان اوكه' چه ابن عباس' ابن زبير ته كوم وخت چه د هغه نه بيعت اخستے شو' خبر وركړلو' چه د وړوكي اختر په ورځ به مونځ د پاره اذان نه كيدلو او خطبه به د مانخه نه پس وه او عطاء ماته په واسطه د' ابن عباسؓ او جابر بن عبدالله بيان اوكه' چه نه به د وړوكي اختر او نه به د لوئي اختر په ورځ آذان كيدلو جابر بن عبدالله نه روايت دے چه نبي صلي الله عليه وسلم اودريدلو اول ئے مونځ اوكه بيا ئے د خلقو مخكښې خطبه وركړه كوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم فارغ شو نو د ښځو طرفته راغے او هغوي ته ئے نصيحت اوكه' داسے حال كښے چه په بلالؓ ئے تكيه وهلے وه او بلالؓ خپله كپړه خوره كړے وه ښځو به هغے كښې صدقے اچولے ما د عطاء نه تپوس اوكه آيا ته د امام د پاره دا واجب گڼړے چه هغه دے ښځو طرفته راشي او هغوي ته دے نصيحت اوكړي كله چه د مانخه نه فراغت بيا مومي هغه جواب كښې اووے بے شكه د هغه په ذمه واجب دي. او هغه ته څه شوے دي چه داسے نه كوي.

## بَابُ ٩٠٩ : اَلْخُطْبَةِ بَعْدَ الْعِيْدِ.

## باب ٩٠٩ : د اختر د مونځ نه پس د خطبے لوستو بيان.

٩٠٩ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ قَالَ

٩٠٩ : ابو عاصم' ابن جريج' حسن

اَخۡبَرَنَا ابۡنُ جُرَيۡجٍ قَالَ اَخۡبَرَنِیۡ الۡحَسَنُ بۡنُ مُسۡلِمٍ عَنۡ طَاوسٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدۡتُ الۡعِيۡدَ مَعَ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَاَبِیۡ بَكۡرٍ وَّعُمَرَ وَعُثۡمَانَ وَكُلُّهُمۡ كَانُوۡا يُصَلُّوۡنَ قَبۡلَ الۡخُطۡبَةِ.

بن مسلم، طاؤس ابن عباسؓ نه روايت كوي هغه او فرمائيل چه زه د اختر په مونځ كښې رسول اللهؐ ابو بكرؓ، عمرؓ او عثمانؓ سره مونځ كښې شريك شوم دے تولو خلقو به د خطبے نه مخكښې مونځ كولو.

۹۱۰: حَدَّثَنَا يَعۡقُوۡبُ بۡنُ اِبۡرَاهِيۡمَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوۡ اُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيۡدُ اللّٰهِ عَنۡ نَّافِعٍ عَنِ ابۡنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَاَبُوۡ بَكۡرٍ وَّعُمَرَ يُصَلُّوۡنَ الۡعِيۡدَيۡنِ قَبۡلَ الۡخُطۡبَةِ.

۹۱۰: يعقوب بن ابراهيم ابو اسامه عبدالله نافع، ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه او فرمائيل، چه نبيؐ، ابو بكرؓ او عمرؓ به د اخترونو مونځ د خطبے نه مخكښې كولو.

۹۱۱: حَدَّثَنَا سُلَيۡمَانُ بۡنُ حَرۡبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ عَدِیِّ بۡنِ ثَابِتٍ عَنۡ سَعِيۡدِ بۡنِ جُبَيۡرٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى يَوۡمَ الۡفِطۡرِ رَكۡعَتَيۡنِ لَمۡ يُصَلِّ قَبۡلَهَا وَلَا بَعۡدَهَا ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ مَعَهٗ بِلَالٌ فَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلۡنَ يُلۡقِيۡنَ تَلۡقِى الۡمَرۡاَةُ خُرۡصَهَا وَسِخَابَهَا.

۹۱۱: سليمان بن حرب، شعبه، عدي بن ثابت، سعيد بن جبير ابن عباسؓ روايت كوي، چه نبيؐ د وړوكي اختر په ورځ دوه ركعاته او كړل نه د هغے نه مخكښې او نه د هغے نه ورستوئے مونځ اوكه بيا زنانه ؤ له راغے او حضورؐ سره بلالؓ وو زنانه ؤ ته حضورؐ د صدقے وركولو حكم او كه، نو هغے زنانه ؤ كښې څنے خپلے والي (باليانې) او څنے خپل هارونه (صدقه كښې) غرخول شروع كړل.

۹۱۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا زُبَيۡدٌ قَالَ سَمِعۡتُ الشَّعۡبِیَّ عَنِ الۡبَرَآءِ بۡنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَوَّلُ مَا نَبۡدَاُ فِیۡ يَوۡمِنَا هٰذَا اَنۡ نُّصَلِّیَ ثُمَّ نَرۡجِعَ فَنَنۡحَرَ فَمَنۡ فَعَلَ ذٰلِكَ

۹۱۲: آدم، شعبه زبيد، شعبي، براء بن عازب روايت كوي، هغه اووے، نبيؐ او فرمائيل د تولو نه وړمبے څيز چه د هغے نه به مونږ نن شروع كوو، هغه دا دے چه مونږ مونځ او كړو بيا كور ته واپس شو او قرباني او كړو نو چا چه داسے او كړل هغه خما سنت بيا مندلو او چا چه د مونځ نه مخكښې قرباني او كړه نو هغه صرف غوښه ده چه هغه د خپل كور

أَصَابَ سُنَّتَنَا وَمَنْ نَحَرَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَإِنَّ هُوَ لَحْمٌ قَدَّمَهُ لِأَهْلِهِ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِيْ شَيْءٍ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ أَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ دِيْنَارٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَبَحْتُ وَعِنْدِيْ جَزَعَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُسِنَّةٍ قَالَ اجْعَلْهُ مَكَانَهُ وَلَنْ تُوَفِّيَ أَوْ تُجْزِئَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ.

د خلقو د پاره تياره كړه' قرباني كښې د هغه حصه نشته نو انصارو كښې يو سړي' چه هغه ته ابو برده بن دينار' ونيلې شو هغه عرض اوكه' يا رسول اللّٰهؐ' ماخو' د مانځه نه مخكښې قرباني اوكړه' او ماسره د خلورو مياشتو د ګډې بچې دې چه د كال د بچي نه بهتر دې نو حضورؐ او فرمائيل چه دا د هغې په ځائې ذبح كړه او ستا نه پس به چا د پاره كافي نه وي' يا ې فرمائيل' د چا قرباني به پرې نه كيږي.

## باب ۶۱۰: مَا يُكْرَهُ مِنْ حَمْلِ السَّلَاحِ فِي الْعِيْدِ وَالْحَرَمِ وَقَالَ الْحَسَنُ نُهُوْا أَنْ يَحْمِلُوا السَّلَاحَ يَوْمَ الْعِيْدِ إِلَّا أَنْ يَخَافُوْا عَدُوًّا.

باب ۶۱۰: د اختر په ورځ او حرم كښې د وسلې اوړلو د كرهت بيان او حسن بصري اووې چه خلق د آختر په ورځ د وسلې اوړلو نه منع كړې شو په شرط ددې چه د دشمن خوف نه وي.

۹۱۳: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيٰى أَبُوْا السُّكَيْنِ قَالَ حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُوْقَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ حِيْنَ أَصَابَهُ سِنَانُ الرُّمْحِ فِيْ أَخْمَصِ قَدَمِهِ فَلَزِقَتْ قَدَمُهُ بِالرِّكَابِ فَنَزَلْتُ فَنَزَعْتُهَا وَذٰلِكَ بِمِنًى فَبَلَغَ الْحَجَّاجَ فَجَاءَ يَعُوْدُهُ وَقَالَ الْحَجَّاجُ لَوْ نَعْلَمُ مَنْ أَصَابَكَ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ أَنْتَ أَصَبْتَنِيْ قَالَ وَكَيْفَ حَمَلْتَ السَّلَاحَ فِيْ يَوْمٍ لَمْ يَكُنْ يُحْمَلُ فِيْهِ وَأَدْخَلْتَ السَّلَاحَ الْحَرَمَ وَلَمْ يَكُنِ السَّلَاحُ يُدْخَلُ فِي الْحَرَمِ وَلَمْ يَكُنِ السَّلَاحُ يُدْخَلُ فِي الْحَرَمِ.

۹۱۳: زكريا بن يحيٰى' ابو السكين' محاربي محمد بن سوقه' سعيد بن جبير روايت كوي' هغه او فرمائيل' چه زه ابن عمرؓ سره ووم' چه د هغه په تلي كښې د نيزې څوكه ننوتلې وه' او د هغه پښه ركاب سره اونښته نو زه راكوز شوم' او هغه نيزه م ترې راوښكله دا واقعه منا كښ شوې وه چه حجاج خبر شو نو د هغهٔ پښتنې له راغې نو حجاجاوې كاش چه مونږ ته معلوم شوې وې چه چاتا سو ته دا تكليف او رسولو. ابن عمرؓ جواب وركه چه تا ماته دا تكليف راورسولو. حجاج تپوس اوكه څنګه ابن عمرؓ جواب وركه' تا په داسې ورځ وسله راوړله' چه د وسلې راوړلو ورځ نه وه او تا وسله حرم كښې داخله كړه حالانكه حرم كښې به وسله داخلولې نه شوه.

۹۱۴: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ

۹۱۴: احمد بن يعقوب' اسحٰق بن سعيد بن

يَعْقُوبُ قَالَ حَدَّثَنِيُ اِسْحٰقُ بُنُ سَعِيْدِ بْنِ عَمْرِو بُنِ سَعِيُدِ بُنِ الْعَاصِ عَنُ اَبِيْهِ قَالَ دَخَلَ الْحَجَّاجُ عَلٰى ابُنِ عُمَرَو اَنَا عِنُدَهُ قَالَ كَيُفَ هُوَ قَالَ صَالِحٌ فَقَالَ مَنُ اَصَابَكَ قَالَ اَصَابَنِيُ مَنُ اَمَرَ بِحَمْلِ السِّلَاحِ فِيُ يَوْمٍ لَّا يَحِلُّ فِيْهِ حَمْلُهُ يَعْنِي الْحَجَّاجَ

عمرو بن سعيد بن عاص د خپل پلار نه روايت کوي، هغه او فرمائيل چه حجاج، ابن عمرؓ له راغے او زه هغه سره ووم هغه تپوس او که څه حال دے ابن عمرؓ جواب ورکه ښه يم، حجاج ترے تپوس او که، دا تکليف درته چا اورسولو هغه ورته اووے ماته تکليف هغه سړي راورسولو چه هغه په داسے ورځ دوسلے اوچتولو اجازت ورکړے دے په کومه ورځ چه وسله ګرځول جائز نه وو هغه ددے نه حجاج مراد کړلو١.

١. مطلب ئے دادے چه ددينه وړاندے حرم ته يا د اختر په ورځ به چا وسيله نه راوړله ليکن "تا" ددے اجازت ورکړو. د اختر ورځ د خوشالئ ورځ ده نو په دے ورځ ځان سره وسله ولے يوړے شي؟ بيا ګنړه وي هر وخت په ګنړه کښ د وَسلے په وجه د زخمي کيدو خطره وي. ددے وجے نه چه کله تا د وسلے اوړلو اجازت ورکړو. او کوم بنده په هغے زخمي شو نو د زخم سبب ئے ته جوړ شوے او دا ويلے شي چه حجاج پخپله د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خلاف سازش کړے وو. عام خلقو عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خوښوو. او حجاج دا خبره نه خوښوله. نو حجاج يو سړے تيار کړو چه زهر نيزے له ورکړي او په هغے عبدالله بن عمر رضي الله عنهما زخمي کړي هغه سړي دغسے اوکړل او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د هغے زخم نه شهيد شو نو دے واقعے ته عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اشاره اوکړله.

## باب ٧١١: اَلتَّبْكِيُرُ لِلْعِيُدِ

وَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بُنُ بُسُرٍ اِنُ كُنَّا فَرَغْنَا فِيُ هٰذِهِ السَّاعَةِ وَذٰلِكَ حِيُنَ التَّسْبِيُحُ.

باب ٧١١: د اختر مونځ د پاره د وخته تلو بيان او عبدالله بن بسر اووے چه مونږ به د مونځ نه هغه وخت فارغ کيدلو کوم وخت چه تسبيح (نفل مونځ) کول جائز دي١.

١. صلاة تسبيح، نفل مونځ هله ادا کيږي چه د نمر ختلو نه پس مکروهه وخت ختم شي. د اختر مونځ کښ سنت دا طريقه ده چه د مکروه وخت د ختميدو نه روستو ادا کړے شي.

٩١٥: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بُنُ حَرُبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنُ زُبَيْدٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الْبَرَاءِ بُنِ عَازِبٍ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحُرِ فَقَالَ اِنَّ اَوَّلَ مَا نَبُدَأُ بِهٖ فِيُ يَوْمِنَا هٰذَا اَنُ نُّصَلِّيَ ثُمَّ نَرُجِعَ فَنَنُحَرَ فَمَنُ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدُ اَصَابَ سُنَّتَنَا وَمَنُ ذَبَحَ قَبُلَ اَنُ

٩١٥: سليمان بن حرب، شعبه، زبيد، شعبي، براء بن عازب نه روايت دے هغه او فرمائيل د قرباني د اختر په ورځ رسول اللّٰه مونږ ته خطبه راکړه، نو وے فرمائيل، د ټولو نه مخکښ چه په دے ورځ مونږ کوم کار کوؤ، هغه دا چه مونځ اوکړو، بيا واپس شو او قرباني اوکړو، څوک چه داسے اوکړي، نو هغه خما سنت بيا مندل، او چا چه د مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه نو هغه غوښه ده، چه هغه د خپل کور خلقو د پاره زر تياره کړے

يُصَلِّيْ فَاِنَّمَا لَحْمٌ عَجَّلَهٗ لِاَهْلِهٖ لَيْسَ مِنْ نُسُكٍ فِيْ شَيْءٍ فَقَامَ خَالِيْ اَبُوْ بُرْدَةُ بْنُ دِيْنَارٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ نُصَلِّيْ وَعِنْدِيْ جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِنْ مُسِنَّةٍ فَقَالَ اِجْعَلْهَا مَكَانَكَ اَوْ قَالَ اذْبَحْهَا وَلَنْ تَجْزِيَ جَذَعَةٌ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

ده قرباني نه ده خما ماما ابو برده بن دينار اودريدلو او وے ونيل يا رسول الله! ما د مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه او ما سره د چيلئے د څلور مياشتيز بچے دے چه د دوو کالو د بچي نه بهتر دے حضورﷺ او فرمائيل چه دا د هغے قائم مقام جوړ کړه يا وے فرمائيل چه د هغے په ځائے ئے ذبح کړه ليکن ستا نه پس به بل چا د پاره کافي نه وي.

## باب ۱۲ ۶: فَضْلِ الْعَمَلِ فِيْ اَيَّامِ التَّشْرِيْقِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ اَيَّامُ الْعَشْرِ وَالْاَيَّامُ الْمَعْدُوْدَاتُ اَيَّامُ التَّشْرِيْقِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ تَخْرُجَانِ اِلَى السُّوْقِ فِي الْاَيَّامِ الْعَشْرِ يُكَبِّرُ النَّاسُ بِتَكْبِيْرِهِمَا وَ كَبَّرَ مُحَمَّدُ ابْنُ عَلِيٍّ خَلْفَ النَّافِلَةِ.

باب ۶۱۲: ايام تشريق کښ د عمل د فضيلت بيان او ابن عباسؓ اووے چه د الله تعالىٰ قول اذکر والله في ايام معلومات کښ لس ورځے مراد دي او ايام معدودات د تشريق ورځے دي ابن عمرؓ او ابو هريرةؓ چه په دے لسو ورځو کښ بازار ته وتل نو تکبير به ئے ونيلو خلقو به د دوي تکبير سره تکبير ونيلو او محمد بن علي به د نفل مونځونو نه پس هم تکبير ونيلو[۱].

۱. د ذوالحجے مياشتے د اولنو لس ورځو عبادت د کال د ټولو ورځو د عبادت نه غوره دے. ويلے شويدي چه د ذوالحجے مياشتے اولنے لس ورځے د ټولو ورځو نه زياتے غوره دي او د رمضان شپے د ټولو شپو نه زياتے غوره دي. د ذوالحجے د اولنو لس ورځو عبادت تکبير ويل او روژے نيول دي پدے د سلفو عمل وو ددے باب سر ليک په تشريح کښ دي چه ابو هريره او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم به چه تکبير وے نو ټولو خلقو به هغوي سره تکبير وے او د تکبير په سلسله کښ دا غوښتلے شي. چه کله څوک تکبير اوائي نو چار چاپيره ټول خلق به په اوچت آواز تکبير وائي.

۹۱۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُسْلِمِ بْنِ الْبَطِيْنِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا الْعَمَلُ فِيْ اَيَّامٍ اَفْضَلَ مِنْهَا فِيْ

۹۱۶: محمد بن عرعره شعبه، سليمان مسلم بن بطين، سعيد بن جبير ابن عباسؓ او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضورﷺ او فرمائيل، کوم عمل چه په دے ورځ اوکړے شي ددے نه هيڅ عمل افضل نه دے خلقو تپوس اوکه آيا جهاد هم (افضل) نه دے حضورﷺ

هٰذِهٖ قَالُوْا وَلَا الْجِهَادُ اِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ يُخَاطِرُ بِنَفْسِهٖ وَمَالِهٖ فَلَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ.

او فرمائیل، جهادهم نه دے بغیر د هغه سړي نه چه هغه خپل جان و مال خطرے کښ واچولو او هیڅ څیزئے واپس راونه ړلو.

باب ۶۱۳ : اَلتَّكْبِيْرِ اَيَّامِ مِنًى وَّاِذَا غَدَا اِلٰى عَرَفَةَ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُكَبِّرُ فِيْ قُبَّتِهٖ بِمِنًى فَيَسْمَعُهُ اَهْلُ الْمَسْجِدِ فَيُكَبِّرُوْنَ وَيُكَبِّرُ اَهْلُ الْاَسْوَاقِ حَتّٰى تَرْتَجَّ مِنًى تَكْبِيْرًا وَّكَانَ بْنُ عُمَرَ يُكَبِّرُ بِمِنًى تِلْكَ الْاَيَّامَ وَخَلْفَ الصَّلٰوتِ وَعَلٰى فِرَاشِهٖ وَفِيْ فُسْطَاطِهٖ وَمَجْلِسِهٖ وَمَمْشَاهُ وَتِلْكَ الْاَيَّامَ جَمِيْعًا وَّكَانَتْ مَيْمُوْنَةُ تُكَبِّرُ يَوْمَ النَّحْرِ وَكَانَ النِّسَآءُ يُكَبِّرْنَ خَلْفَ اَبَانَ ابْنِ عُثْمَانَ وَعَبْدَ الْعَزِيْزِ لَيَالِيَ التَّشْرِيْقَ مَعَ الرِّجَالِ فِي الْمَسْجِدِ.

باب ۶۱۳ : د منٰي په ورځو کښ دَ تکبیر وئیلو بیان، او هر کله چه د عرفے په ورځ سحر وخت کښ مقامِ عرفات ته لاړ شي او ابن عمرؓ به خپله خیمه کښ تکبیر وئیلو چه د جماعت خلقو به هغه واوریدلو نو تکبیر به ئے وئیلو تر دے چه د منٰي زمکه به د تکبیر نه کړنګیده او ابن عمرؓ به منٰي کښ هغے ورځو کښ تکبیر وئیلو او د ټولو مونځونو نه پس خپله بستره باندے خپله خیمه کښ خپل مجلس کښ او په لاره تلو کښ، دے ټولو ورځو کښ، او بي بي میمونےؓ یوم نحر کښ تکبیر وئیلو، او ښځو به ابان بن عثمان او عبدالعزیز پسے د تشریق په زمانه کښ جماعت کښ سړو سره تکبیر وئیلو ۱.

۱ . تکبیر ددے ورځو خاص نښه ده. او د تلبیے (لبیک ویلو) ویلو نه تکبیر زیات اهم دے ښځو به رو رو تکبیر وے او دا مطلب ئے هر ګز نه دے چه ښځو به اوچت آواز تکبیر وایه د ترمذي شریف د حدیث نه هم دا معلومیږي.

۹۱۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ ابْنُ اَبِيْ بَكْرِ نِ الثَّقَفِيِّ قَالَ سَأَلْتُ اَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ وَنَحْنُ غَادِيَانِ مِنْ مِّنًى اِلٰى عَرَفَاتٍ عَنِ التَّلْبِيَةِ كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُلَبِّيْ

۹۱۷ : ابو نعیم، مالک بن انس، محمد بن ابي بکر ثقفي روایت کوي، چه مونږ خلق د سحر وخت کښ د منٰي نه عرفات ته تلو نو ما د انس بن مالک نه د تلبیه متعلق تپوس اوکه، چه تاسو خلقو به د نبيّ سره څنګه (تلبیه) کوله، نو هغه جواب کښ اووے چه لبیک ویونکي به لبیک وئیلے نو چا به پرے اعتراض

الْمُلَبِّيْ لَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ وَيُكَبِّرُ الْمُكَبِّرُ فَلَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ.

نه كولو او تكبير ويونكي به تكبير وئيلے نو دا به هم چا بد نه گڼړلو.

**۹۱۸**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ كُنَّا نُؤْمَرُ اَنْ نَّخْرُجَ يَوْمَ الْعِيْدِ حَتّٰى نُخْرِجَ الْبِكْرَ مِنْ خِدْرِهَا حَتّٰى نُخْرِجَ الْحُيَّضَ فَيَكُنَّ خَلْفَ النَّاسِ فَيُكَبِّرْنَ بِتَكْبِيْرِهِمْ وَيَدْعُوْنَ بِدُعَائِهِمْ يَرْجُوْنَ بَرَكَةَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَطُهْرَتِهٖ.

**۹۱۸**: محمد بن عمرو بن حفص. حفص. عاصم. حفصه. ام عطيه نه روايت كوي هغې اوويے مونږ ته به حكم وو. چه آختر په ورځ د كور نه اوخو تردے چه پيغلے جينكۍ به هم د خپلے پردے نه بهر شوے. او حائضه ښځے به هم د كورنه بهر وتلے، نو هغوي به سړو پسے ورستو وے. او د سړو تكبير سره به ئے تكبير وئيلو. او د هغوي دُعاګانو سره به ئے دُعا كوله. او د هغے ورځے د بركت او پاكئ اُميد به ئے كولو.

## بَابٌ ٦١٥: حَمْلِ الْعَنَزَةِ وَالْحَرْبَةِ بَيْنَ يَدَيِ الْاِمَامِ يَوْمَ الْعِيْدِ.

## باب ۶۱۴: د نيزے په پناه كښې د آختر په ورځ د مونځ كولو بيان.

**۹۱۹**: حَدَّثَنَا: مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ تُرْكَزُ لَهُ الْحَرْبَةُ قُدَّامَهُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ ثُمَّ يُصَلِّيْ.

**۹۱۹**: محمد بن بشار. عبدالوهاب. عبيدالله نافع ابن عمرؓ نه روايت كوي چه د نبي صلي الله عليه وسلم مخكښې به د وړوكي او لوئے آختر په ورځ نيزه ښخولے شوه بيا به د هغے مخے ته حضورؐ مونځ كولو[۱].

۱. د اخترونو مونځونه به د جومات پخائے ميدان كښې ادا كيدل. او په ميدان كښې د مونځ د پاره "ستره" ضروري ده (ستره هغه څيز ته ويلے شي چه په ميدان كښې مونځ گذار خپلے مخے ته اودروي. چه د هغے نه اخوا خلق تيريدے شي) ددے وجے به نبي كريم صلي الله عليه وسلم وړه نيزه واخستله چه "ستره" ئے خپل وړاندے مزكه كښې ښخه كړي. د نيزے مزكه كښې ښخول اودرول آسان وي. امام بخاري رحمة الله عليه ددينه وړاندے ذكر كړيدي چه عيدگاه ته وسله اوړل پكار نه دي. دلته دا ښائي. چه د ضرورت په وخت عيدگاه ته وسله اوړلو كښې څه گناه نشته خكه چه رسول اكرم صلي الله عليه وسلم پخپله د "سُتره" د پاره وړه نيزه (وسله) اوړله.

## بَابٌ ٦١٥: حَمْلِ الْعَنَزَةِ

## باب ۶۱۵: د نيزے او د بلے د امام

وَالْحَرْبَةِ بَيْنَ يَدَيِ الْإِمَامِ يَوْمَ الْعِيْدِ.

مخكښې د آختر په ورځ د اُوړلو بيان.

۹۲۰: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَمْرٍو ن الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْدُوْا اِلَى الْمُصَلّٰى وَالْعَنَزَةُ بَيْنَ يَدَيْهِ تُحْمَلُ وَتُنْصَبُ بِالْمُصَلّٰى بَيْنَ يَدَيْهِ فَيُصَلِّيْ اِلَيْهَا.

۹۲۰: ابراهيم بن منذر. وليد. ابو عمرو اوزاعي. نافع ابن عمرؓ نه روايت كوي. هغه او فرمائيل چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به د عيدگاه په طرف سحر وخت تلو او نيزه به د هغوي نه مخكښې اُوړلے شوه. او عيدگاه كښې به د حضورؐ مخے ته بنخولے شوه. بيا به د هغے مخے ته حضورؐ مونځ كولو.

باب ۲۱۶: خُرُوْجِ النِّسَآءِ وَالْحُيَّضِ اِلَى الْمُصَلّٰى.

باب ۲۱۶: د ښځو او حائضه ښځو عيدگاه ته د تلو بيان.

۹۲۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ اُمِرْنَا اَنْ تُخْرِجَ الْعَوَاتِقَ ذَوَاتِ الْخُدُوْرِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ بِنَحْوِهٖ وَزَادَ فِيْ حَدِيْثِ حَفْصَةَ قَالَ اَوْ قَالَتِ الْعَوَاتِقَ وَذَوَاتِ الْخُدُوْرِ وَ يَعْتَزِلْنَ الْحُيَّضُ الْمُصَلّٰى.

۹۲۱: عبداللّٰه بن عبدالوهاب. حماد بن زيد. ايوب. اُم عطيه نه روايت دے. ام عطيه او فرمائيل. مونږ ته به حكم راكولے شو چه مونږ پيغلے پردے والا ښځے بهر راوكاږو. او ايوب نه په واسطه د بي بي حفصےؓ دغسے روايت دے او د بي بي حفصےؓ روايت دومره قدرے زيات راغلے دے بي بي حفصےؓ اووے چه پيغلے او د پردے ښځے به راوښكلے شوے او حائضه ښځے به د مانځه د ځائے نه جدا وے. (يعني پيغلے او پرده نشينے ښځے به هم د آختر د مونځ د پاره راوښكلے شوے)

باب ۲۱۷: خُرُوْجِ الصِّبْيَانِ اِلَى الْمُصَلّٰى.

باب ۲۱۷: د بچو عيدگاه ته د تلو بيان.

۹۲۲: حَدَّثَنَا عُمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ قَالَ

۹۲۲: عمرو بن عباس، عبدالرحمن، سفيان عبدالرحمن بن عابس روايت كوي، ما د ابن عباسؓ نه واوريدل، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره زه، د وړوكي يا لوئے اختر په ورځ اووتلم نو

سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فِطْرٍ اَوْ اَضْحٰى فَصَلّٰى ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ فَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ وَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ.

حضور مونځ اوکړو بيا ئې خطبه ورکړله بيا ښځو طرف ته راغے هغوي ته ئې نصيحت اوکړو او د صدقے ورکولو حکم ئې اوکړو.

باب ۹۱۸: اِسْتِقْبَالِ الْاِمَامِ النَّاسَ فِيْ خُطْبَةِ الْعِيْدِ وَقَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقَابِلَ النَّاسِ.

باب ۹۱۸: د اختر خطبه کښې د امام خلقو ته د مخ کولو بيان او ابو سعيد اووے چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به خلقو ته مخ کړے اودريدلو.

۹۲۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اَضْحٰى اِلَى الْبَقِيْعِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَقَالَ اِنَّ اَوَّلَ نُسُكِنَا فِيْ يَوْمِنَا هٰذَا اَنْ نَّبْدَأَ بِالصَّلٰوةِ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ وَافَقَ سُنَّتَنَا وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلَ ذٰلِكَ فَاِنَّمَا هُوَ شَيْءٌ عَجَّلَهٗ لِاَهْلِهٖ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِيْ شَيْءٍ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ ذَبَحْتُ وَعِنْدِيْ جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُسِنَّةٍ قَالَ اِذْبَحْهَا وَلَا تَفِيْ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

۹۲۳: ابو نعيم، محمد بن طلحه، زبيد، شعبي براء روايت کوي، چه نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم د لوئے اختر په ورځ بقيع ته تشريف يوړلو او دوه رکعاته مونځ ئې اوکه بيائے مونږ ته مخ کړے اودريدلو اووے فرمائيل د تولو نه اول عبادت خمونږ په دے ورځ دا پکار دے چه ورمبے مونږ مونځ اوکړو بيا واپس شو، او قرباني او کړو چا چه داسے اوکړل. نو خما د سنت موافق ئې اوکړل، او چا چه د دے نه مخکښې ذبح او کړه، نو هغه غوښه ده چه هغه د خپل کور د خلقو د پاره تياره کړه، قرباني نه ده نو يو سړے اودريدو، او عرض ئې او که، يا رسول اللّٰه ما خود مانځه نه مخکښې ذبح اوکړه، او ماسره د ګډے د يو ځلور مياشتيز بچے دے چه دوه کليز بچي نه زيات غوريز دے، حضور ورته او فرمائيل، دا ذبح کړه. او ستا نه پس به بل چا د پاره کافي نه وي (يعني هغه دے داسے نه کوي).

باب ۹۱۹: اَلْعَلَمُ بِالْمُصَلّٰى

باب ۹۱۹: عيدګاه کښې د نښے لږولو بيان.

۹۲۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَابِسٍ قَالَ

۹۲۴: مسدد، يحيي، عبدالرحمن بن عابس روايت کوي، ما د ابن عباسؓ نه واوريدل، هغه نه تپوس اوشو، چه آيا ته د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره د اختر

سَمِعْتُ ابْنِ عَبَّاسٍ قِيْلَ لَهُ اَشَهِدْتَّ الْعِيْدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ وَلَوْلَا مَكَانِيْ مِنَ الصِّغْرِ مَا شَهِدْتُهُ حَتّٰى اَتَى الْعَلَمَ الَّذِيْ عِنْدَ دَارِ كَثِيْرِ بْنِ الصَّلْتِ فَصَلّٰى ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ وَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَرَاَيْتُهُنَّ يَهْوِيْنَ بِاَيْدِيْهِنَّ يَقْذِفْنَهُ فِيْ ثَوْبِ بِلَالٍ ثُمَّ انْطَلَقَ هُوَ وَ بِلَالٌ اِلٰى بَيْتِهٖ.

مونږ کښې شريک شوې ئې، نو هغه او فرمائيل، او، که د ماشوم والي په وجه د حضورؐ ما سره مينه نه وې نو ما حضورؐ (د دومره نزدې نه) نه شو ليدې حضورؐ هغې نښې پله راغې چه د کثير بن صلت په کور کښې وو حضورؐ مونږ او که بيائې خطبه ورکړه، بيا ښځو پله ئې تشريف راوړلو، داسې حال کښې، چه بلالؓ ورسره وو. حضورؐ هغې ښځو ته نصيحت اوکه، او د صدقې ورکولو حکم ئې ورکړلو نو ما هغه ښځې اوليدې چه خپل لاسونه ئې راخکته کړې وو او د بلالؓ په کپړه کښې ئې کالي (زيورات) غرخول بيا حضورؐ او بلالؓ خپل کور طرف ته روان شول.

## بَابُ ۶۲۰ : مَوْعِظَةِ الْاِمَامِ النِّسَآءَ يَوْمَ الْعِيْدِ.

## باب ۶۲۰ : د امام د اختر په ورځ ښځو ته د نصيحت کولو بيان.

۹۲۵ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ نَصْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءٌ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَصَلّٰى فَبَدَاَ بِالصَّلٰوةِ ثُمَّ خَطَبَ فَلَمَّا فَرَغَ نَزَلَ فَاَتَى النِّسَآءَ فَذَكَّرَهُنَّ وَهُوَ يَتَوَكَّأُ عَلٰى يَدِ بِلَالٍ وَّبِلَالٌ بَاسِطٌ ثَوْبَهُ تُلْقِيْ فِيْهِ النِّسَآءُ الصَّدَقَةَ قُلْتُ لِعَطَآءٍ زَكٰوةَ يَوْمَ الْفِطْرِ قَالَ لَا وَلٰكِنْ صَدَقَةً يَتَصَدَّقْنَ حِيْنَئِذٍ تُلْقِيْ فَتَخَهَا وَيُلْقِيْنَ قُلْتُ لِعَطَآءٍ اَتَرٰى حَقًّا عَلَى الْاِمَامِ ذٰلِكَ وَيُذَكِّرُهُنَّ قَالَ اِنَّهُ لَحَقٌّ

۹۲۵ : اسحٰق بن ابراهيم بن نصر عبدالرزاق، ابن جريج، عطاء، جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي، ما د هغه نه اوريدل، چه نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلّم د وړوکي اختر په ورځ اودريدلو، او مونځ ئې اوکه بيائې خطبه اوونيله کوم وخت چه د خطبې نه فارغ شولو نو د منبر نه راکوزځ شولو او ښځو طرف ته راغلو، او هغوي ته ئې نصيحت اوکه داسې حال کښې چه د بلالؓ په لاس ئې تکيه لګولې وه او بلالؓ خپله کپړه خوره کړې وه چه ښځو پکښې خيرات غورځولو ما د عطاء نه تپوس اوکه، آيا صدقه فطر، ئې ورکوله، نو هغه اووې نه بلکه خيرات ئې کولو هغه وخت که يو ښځې به خپله واﺋي اچوله نورو به هم اچولې ما د عطاء نه تپوس اوکه، چه آيا، ستاسو خيال کښې په امام دا واجب دي، چه هغه دې ښځو ته نصيحت اوکړي، هغه اووې بې شکه دا واجب

عَلَيْهِمْ وَمَا لَهُمْ لَا يَفْعَلُوْنَهُ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ وَاَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدْتُ الْفِطْرَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ وَعُثْمَانَ يُصَلُّوْنَهَا قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدُ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ حِيْنَ يَجْلِسُ بِيَدِهٖ ثُمَّ اَقْبَلَ يشُقُّهُمْ حَتّٰى جَاۤءَ النِّسَاۤءَ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَقَالَ يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَاۤءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ الْاٰيَةَ ثُمَّ قَالَ حِيْنَ فَرَغَ مِنْهَا اَنْتُنَّ عَلٰى ذٰلِكَ فَقَالَتِ امْرَاَةٌ وَّاحِدَةٌ مِنْهُنَّ لَمْ يُجِبْهُ غَيْرُهَا نَعَمْ لَا يَدْرِىْ حَسَنٌ مَنْ هِيَ قَالَ فَتَصَدَّقْنَ فَبَسَطَ بِلَالٌ ثَوْبَهُ ثُمَّ قَالَ هَلُمَّ لَكُنَّ فِدَاءٌ اَبِيْ اُمِّيْ فَيُلْقِيْنَ الْفَتَخَ وَالخَوَاتِيْمَ فِيْ ثَوْبِ بِلَالٍ قَالَ عَبْدُ الرَّزَاقِ الْفَتَخُ الْخَوَاتِيْمُ الْعِظَامُ كَانَتْ فِى الْجَاهِلِيَّةِ.

دي، هغوي له څه شوي دي، چه داسې دې نه کوي، ابن جريج اووې، ما ته حسن بن مسلم په سند، د طاؤس ابن عباس او کړه، ابن عباس اووې، چه زه ورو کي اختر کښې نبيّ، ابو بکرؓ، عثمانؓ سره شريک شوم ټولو به د خطبې نه مخکښې مونځ کولو بيا به ئې خطبه ورکوله. نبي عليه السلام راووتلو، ګويا زه حضورؐ وينم چه حضورؐ خلق د خپلو لاسو اشارې سره کينول۲ بيا حضورؐ د هغوي د صفونو نه را مخکښې شو تردې چه ښځو طرفته راغلو او بلالؓ ورسره وو، حضورؐ دا آيت يا ايها النّبيُّ اذا جاءک الخ د آخره پورې او لوستو، د هغې نه چه فارغ شو نو حضورؐ او فرمائيل تاسو به په دې قائمې او سيږئي نو هغوئ کښې صرف يوې ښځې اووې چه او، او د هغې نه علاوه بلې ښځې د حضورؐ د خبرې جواب او نه کړلو حسن ته معلومه نه ده چه هغه ښځه څوک وه حضورؐ او فرمائيل تاسو خيرات کوئې او بلالؓ خپل څادر خور کړلو او وې فرمائيل تاسو راوړئې. خما مور پلار دې په تاسو قربان وي نو هغې ښځو خپلې ګوتې او والئ د بلالؓ په څادر کښې غرځول شروع کړل، عبدالرزاق اووې، د فتخ نه مراد لوئې ګوتې دي چه د هغې د جاهليت زمانه کښې رواج وو.

۱. د رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم په زمانه کښې د عيدګاه څه ابادې نه وو او کوم ميدان کښې به ئې چه د اخترونو مونځ ادا کولو هلته منبر به هم نه وو. ليکن ددې عبارت نه معلوميږي چه هغه ځائې کښې څه اوچت ځائې وو چه هلته به رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم ختلو او خطبه به ئې ويله.

۲. رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم کله چه د سرږ مخکښې خطبه اوويله. نو خلقو ترې دا مطلب واخست چه خطبه ختمه وه اوس تلل پکار دي. نو چه خلق د واپس تللو د پاره اودريدل. نو رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم خلقوته د لاس په اشاره حکم اوکړو. چه کينئ لا ښځو ته خطبه پاتې ده هلته نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلم خطبه وائي.

**بـاب ۶۲۱ : اِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ فِي الْعِيْدِ.**

**۹۲۶ :** حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ قَالَتْ كُنَّا نَمْنَعُ جَوَارِيَنَا اَنْ يُّخْرُجْنَ يَوْمَ الْعِيْدِ فَجَآءَتِ امْرَاَةٌ فَنَزَلَتْ قَصْرَ بَنِيْ خَلَفٍ فَاَتَيْتُهَا فَحَدَّثَتْ اَنَّ زَوْجَ اُخْتِهَا غَزَامَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشَرَةَ غَزْوَةً فَكَانَتْ اُخْتُهَا مَعَهُ فِيْ سِتَّةِ غَزَوَاتٍ قَالَتْ فَكُنَّا نَقُوْمُ عَلَى الْمَرْضٰى وَنُدَاوِي الْكَلْمٰى فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعَلٰى اِحْدَانَا بَاْسٌ اِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ اَلَّا تَخْرُجَ فَقَالَ لِتَلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا فَلْيَشْهَدْنَ فَلَمَّا قَدِمَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ اَتَيْتُهَا فَسَاَلْتُهَا اَسَمِعْتِ فِيْ كَذَا وَكَذَا فَقَالَتْ نَعَمْ بِاَبِيْ وَقَلَّمَا ذَكَرَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا قَالَتْ بِاَبِيْ قَالَ لِتَخْرِجَ الْعَوَاتِقُ وَذَوَاتُ الْخُدُوْرِ شَكَّ اَيُّوْبُ وَالْحُيَّضُ فَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ الْمُصَلّٰى وَلْيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ وَدَعْوَةَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَتْ فَقُلْتُ لَهَا الْحُيَّضُ قَالَتْ نَعَمْ اَلَيْسَ الْحَائِضُ تَشْهَدُ عَرَفَاتٍ وَتَشْهَدُ كَذَا وَتَشْهَدُ كَذَا.

**باب ۶۲۱ : کـه ښـځـې سره آختر کښې څادر نه وي. (نو څه به کوي)**

**۹۲۶ :** ابـو مـعـمـر، عبدالوارث، ایوب حفصه بنت سیرین روایـت کـوي چـه مـونږ خلقو به خپلې جینکۍ د آختر په ورځ وتـلـو نه منع کولې نو یوه ښځه را راغـلـه، او قصر بني خلف کښې کوزه شـوه زه هغې له ورغلم، نو هغې بیان اوکه، چه د هغې د خور خاونـد نبي صـلـي اللّٰـه عـلـيـه وسلّم سره دولس غزا ګانو کښې شـریـک شوے وو نو د هغې خور شپږو غزا ګانو کښې خپل خاوند سره وه او هغې بیان اوکه چه خمونږ کار د مریضانو علاج او د زخـمـیـانو مرهم پټۍ کول وو نو هغې اووے یا رسول اللّٰه آیا مونږ کـښې چا د پـاره دے بـاب کـښې څه نقصان شته که هغه د اختر په ورځ بهـر او نـه خـي کـه ورسـره څـادر نـه وي نو حضورؐ ورته او فـرمـائـیل چه د هغې همخولې دے هغه خپل څادر کښې پټه کړي، او پـکـار دي چـه هغوی نیک کار کښې شریکې شي، او د مومنانو دعا کښې حاضرې ... سی حفصې اووے کوم وخت چه ام عطیه راغله نـوزه هـغـې له ورغلم او هغې نه م تپوس اوکه چه تا ددے متعلق څه اوریدلي دي نو هغې اووے او په حضورؐ دے خما مور او پلار قربان وي او کـلـه چـه بـه هـغـې د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نوم مبارک اخستلو نـو دا بـه ئـې ضرور ونیلې چه خما مور پلار د په تا قربان وي حـضـورؐ او فرمائیل چه پردې والا پیغلې دې بهر اوځي یا، دا ئـې او فـرمـائـیـل چـه پـرده دارې ښځې او پیغلې دې بهر اوځي، ایـوب تـه شک شو او حائضه ښځې دې هم اوځي، خو هغوي دې د مونځ د ځائې نه جدا، او سي، او نیک کار او د مومنانو دعا کښې دې شـریـکـیـږي، د حـفـصـې بیـان دے مـا ام عطیه ته اووے چه آیا حـائـضـه ښـځـې دې هـم اوځي، هغې اووے چه آیا حائضه ښځې عرفات او فلاني فلاني ځائې ته نه راځي څه؟.

۱. نورو روایاتو نه معلومیږي چه دغه ښځه "اَسْمَاء بِنْتِ يَزِيْد" رضي الله عنها وه. چه "خَطِيْبَةُ النِّسَاء" (د ښځو مقرره لیکچر ورکونکې) باندې مشهوره وه. د هغې په یو روایت کښ دي. "چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم کله د اختر په ورځې ښځو طرفته راغی نو زهٔ په کښ موجود وم نبي کریم صلي الله علیه وسلم اُفرمائیل "ښځو" تاسو د دوزخ خشاک یئ ما اویل: خهٔ ستاسو مخکښ خبرو کولو کښ زړه وره یم، اے د الله تعالي رسوله، دا ولې؟ رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل: دا خکه چه تاسو بدرد ډیر وائئ په یو بل لعنت وایئ او د خپل خاوند ناشکري کوئ.

۲. د حضرت حفصه رضي الله عنها د سوال وجه دا وه چه کله په حائضه ښځه مونځ فرض نه دے او د اختر مونځ کولې نشي نو عیدګاه ته د هغې د تلو څه فائده ده. محدثینو رحمة الله علیهم لیکلي دي ددے باوجود، د حائضه ښځو عیدګاه ته د تللو دا فائده ده. چه د مسلمانانو رعب داب د شان و شوکت مظاهره اوشي.

باب ۶۲۲: اِعْتِزَالِ الْحُيَّضِ الْمُصَلّٰى.

باب ۶۲۲: د حائضه ښځو د مونځ د ځائے نه د جدا، کیدو بیان.

۹۲۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ اُمِرْنَا اَنْ تَخْرُجَ فَنُخْرِجُ الْحُيَّضَ وَالْعَوَاتِقَ وَذَوَاتِ الْخُدُوْرِ وَقَالَ ابْنُ عَوْنٍ اَوِ الْعَوَاتِقَ ......فَاَمَّا الْحُيَّضُ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَدَعْوَتَهُمْ وَيَعْتَزِلْنَ مُصَلَّاهُمْ.

۹۲۷: محمد بن مثنی، ابن ابي عدي، ابن عون، محمد، ام عطیه نه روایت کوي، چه ام عطیه او فرمائیل، مونږ ته حکم او شو چه بهر ته اوځو نو حائضه ښځې او پیغلې او پردې دارې ښځې (عید ګاه ته د تلو د پاره) بهر او باسئے او ابن عون اووے. چه یا پرده دارے پیغلے ښځے (دے بهر اوځي) نو حائضه ښځې به د مسلمانانو جماعت او د هغوي په دعاګانو کښ شریکیدلې او هغوي به د مونځ د ځایونو نه جدا وي.

باب ۶۲۳: اَلنَّحْرِ وَالذَّبْحِ يَوْمَ النَّحْرِ بِالْمُصَلّٰى.

باب ۶۲۳: عیدګاه کښ د قرباني او ذبح کولو بیان.

۹۲۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ كَثِيْرُ بْنُ فَرْقَدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْحَرُ اَوْ يَذْبَحُ بِالْمُصَلّٰى.

۹۲۸: عبدالله بن یوسف، لیث کثیر بن فرقد، نافع ابن عمر نه روایت دے چه نبي صلي الله علیه وسلم به قرباني یا ذبح عیدګاه کښ کوله.

باب ۶۲۴: كَلَامِ الْاِمَامِ

باب ۶۲۴: د اختر خطبه کښ د، امام او د

وَالنَّاسِ فِي خُطْبَةٍ عَنْ شَيْءٍ وَهُوَ يَخْطُبُ.

خلقو د خبرو كولو بيان او د امام نه چه څه تپوس اوشي هر كله چه هغه خطبه لولي.

۹۲۹ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَقَالَ مَنْ صَلّٰى صَلٰوتَنَا وَنَسَكَ نُسُكَنَا فَقَدْ اَصَابَ النُّسُكَ وَمَنْ نَّسَكَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَتِلْكَ شَاةُ لَحْمٍ فَقَامَ اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ دِيْنَارٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ لَقَدْ نَسَكْتُ قَبْلَ اَنْ اَخْرُجَ اِلَى الصَّلٰوةِ وَعَرَفْتُ اَنَّ الْيَوْمَ يَوْمُ اَكْلٍ وَّشُرْبٍ فَتَعَجَّلْتُ وَاَكَلْتُ وَاَطْعَمْتُ اَهْلِيْ وَجِيْرَانِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ شَاةُ لَحْمٍ قَالَ فَاِنَّ عِنْدِيْ عَنَاقًا جَزَعًا اَلَّتِيْ جَدِيْرٌ مِّنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَهَلْ تُجْزِئُ عَنِّيْ فَقَالَ نَعَمْ وَلَنْ تُجْزِئَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ.

۹۲۹ : مسدد، ابو الاحوص، منصور بن معتمر، شعبي براء بن عازب نه روايت كوي. هغه او فرمائيل مونږ خلقوته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د مانځه نه پس د قرباني په ورځ خطبه راكړه، نو حضورؐ اوفرمائيل چا چه خما د مونځ په شان مونځ اوكه، او خمونږ د قربانئ په شان ئے قرباني اوكړه، نو د هغه قرباني صحيح شوه او چا چه د مانځه نه مخكښ ذبح اوكړه، نو دا د غوښے چيلئے ده، ابو برده بن دينار اودريدلو او عرض ئے اوكه، يا رسول اللّٰه، ما خو عيدګاه ته د تلو نه مخكښ قربانئ اوكړه او ما دا خيال اوكه چه نن د خوراک څښاک ورځ ده، په دے وجه ما تادي اوكړه خپله م اوخوړله او په كور والو او په ګواندِيانو م هم اوخوړله نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل چه دا خو د غوښے چيلئے ده، او ابو برده اووے ما سره يو خلور مياشتيز بچے دے چه د غوښے د دوو چيلو نه زيات بهتر دے آيا د هغے قرباني به خما د پاره كافي شي نو حضورؐ ورته او فرمائيل، او خوستانه پس به د بل چا د پاره كافي نه وي.

۹۳۰ : حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ عُمَرَ عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ خَطَبَ فَاَمَرَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلٰوةِ اَنْ يُّعِيْدَ ذَبْحَهُ

۹۳۰ : حامد بن عمر، عمار بن زيد، ايوب محمد نه روايت كوي، انس بن مالكؓ او فرمائيل، چه نبيؐ د لوے آختر په ورځ مونځ وركه بيائے خطبه او لوسته. نو هغے خطبه كښ حضورؐ حكم اوكه چا چه د مانځه نه مخكښ قرباني كړے ده هغه دے دوباره قرباني اوكړي، نو انصارو كښ يو سړے اودريدلو او عرض ئے اوكه يا

فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جِيْرَانٌ لِيْ اِمَّا قَالَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَاِمَّا قَالَ بِهِمْ فَقْرٌ وَاِنِّي ذَبَحْتُ قَبْلَ الصَّلٰوةِ وَعِنْدِيْ عَنَاقٌ لِيْ اَحَبُّ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَرَخَّصَ لَهٗ فِيْهَا.

رسول الله خما گوانډيان دي او هغوي محتاج دي (يا خو بِهِمْ خصاصه ئې اووې يا بِهِمْ فَقْرٌ ئې اووې) او ما د مانځه نه مخکښې ذبح کړې ده او ما سره يو خلور مياشتيز خناور دې چه د غوښې د دوو چېلو نه زيات بهتر دې نو حضور صلي الله عليه وسلم هغه ته د هغې قرباني کولو اجازت ورکړلو.

۹۳۱ : حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ جُنْدُبٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ ذَبَحَ وَقَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ يُّصَلِّيَ فَلْيَذْبَحْ اُخْرٰى مَكَانَهَا وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللّٰهِ.

۹۳۱ : مسلم، شعبه، اسود جندبؓ نه روايت دې جندب اووې، چه نبي صلي الله عليه وسلّم د لوئې اختر په ورخ مونځ اوکه بيا ئې خطبه ورکړه، بيائې ذبح اوکړه اووې وئيل، چاچه د مانځه نه مخکښې ذبح اوکړه نو د هغې په ځائې دې بل خناور ذبح کړي، او چا چه ذبح نه وه کړې نو هغه دې اوس د الله په نوم ذبح اوکړي[۱].

۱. ددې باب احاديثو کښې امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه د اخترونو په خطبه کښې د جمعې د خطبې په نسبت زياته فراخي ده. او د اخترونو د خطبې په دوران کښې عام خلق د امام نه سوال (پښتنه) کولې شي او ورسره خبرې هم کولې شي.

## باب ۶۲۵ : مَنْ خَالَفَ الطَّرِيْقَ اِذَا رَجَعَ يَوْمَ الْعِيْدِ.

باب ۶۲۵ : د اختر په ورخ په بدله لار د واپس کيدو بيان.

۹۳۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ تُمَيْلَةَ يَحْيٰى ابْنُ وَاضِحٍ عَنْ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ يَوْمَ عِيْدٍ خَالَفَ الطَّرِيْقَ تَابَعَهٗ يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ فُلَيْحٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَحَدِيْثُ جَابِرٍ اَصَحُّ.

۹۳۲ : محمد، ابو تميله، يحيي بن واضح، فليح بن سليمان، سعيد بن حارث، جابرؓ نه روايت کوي جابر اووې چه د اختر ورخ به شوه، نو نبيّ به واپسي کښې په بدله لار، راتللو، او يونس بن محمد په واسطه د فليح، سعيد، ابو هريرهؓ د دې متابع حديث روايت کړې دې او د جابر حديث زيات صحيح دې.

بـاب ٦٢٦ : اَذَا فَـاتَـهُ الْعِيْدُ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ وَكَذٰلِكَ النِّسَآءُ وَمَنْ كَانَ فِي الْبُيُوْتِ وَالْقُرٰى لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا عِيْدُنَا يَـآهْلَ الْاِسْلَامِ وَاَمَرَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ مَّوْلَاهُ وَبَنِيْهِ وَصَلّٰى كَصَلٰوةِ اَهْلِ الْمِصْرِ وَتَكْبِيْرِهِمْ وَقَالَ عِكْرَمَةُ اَهْلُ السَّوَادِ يَجْتَمِعُوْنَ فِي الْعِيْدِ يُصَلُّوْنَ رَكْعَتَيْنِ كَمَا يَصْنَعُ الْاِمَامُ وَقَالَ عَطَآءٌ اِذَا فَاتَهُ الْعِيْدُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

باب ٦٢٦ : د اختر، په ورځ چه مونځ فوت شي نو دوه رکعاته دې اوکړي ښځې هم او کوم خلق چه کورونو کښې او کلو کښې وي نو دغسې دې اوکړي ځکه چه نبي صلي الله علیه وسلّم فرمائیلي دي اې مسلمانانو دا ځمونږ د اختر ورځ ده او انس بن مالکؓ خپل غلام ابن ابي عتبه ته زاویه کښې حکم ورکه، نو هغه د کور واله او ځامن راجمع کړل، او د ښار والو (ښاریانو) د مونځ او تکبیر په شان مونځ ئې اوکه او عکرمه اووې چه د کلو خلق دې اختر کښې جمع شي او دوه رکعاته مونځ دې اوکړي. څنګه چه امام کوي، او عطاء اووې چه هر کله د اختر مونځ ترې لاړ شي نو دوه رکعاته دې اوکړي[۱].

۱. د مذهب حنفي د فقهې په کتابونو کښې دي که چرې د اختر مونځ پاتې شي نو د هغې قضا دوه رکعاته یا څلور رکعاته په کور کښې کول مستحب دي. د اختر مونځ سنت دې ددې سنتو قضا هم کیږي که فرض مونځ پاتې شي نو د هغې قضا فرض ده او د سنتو قضا مستحب ده. ددې وجه داده چه کوم عمل (کار) رسول الله صلي الله علیه وسلم په کوم خاص وقت کښې همیشه د پاره ادا کوؤ هغه سنت عمل وي. او چه کله ئې وخت تیر شي د هغې څه سبب باقي پاتې نشي نو د هغې قضا مستحب ده لیکن فرض او واجب عمل د شارع (د الله او د هغه د رسول) په حکم ثابتیږي. او د وخت تیریدو سره د هغه حکم باقي وي.

۹۳۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا جَارِيَتَانِ فِيْ اَيَّامِ مِنًى تُدَفِّفَانِ وَتَضْرِبَانِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهٖ فَانْتَهَرَهُمَا اَبُوْبَكْرٍ فَكَشَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَجْهِهٖ فَقَالَ دَعْهُمَا يَا اَبَا بَكْرٍ فَاِنَّهَا اَيَّامُ عِيْدٍ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ

۹۳۳ : یحیی بن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب عروه بي بي عائشې نه روایت کوي، چه ابو بکرؓ بي بي عائشېؓ له راغې او هغې سره د منې ورځو (ایام منی) کښې دوه جینکۍ وې چه تمبل سره ې سندرې وئیلې او نبي صلي الله علیه وسلّم په خان څادر اچولې وو ابو بکرؓ هغه دواړه (جینکۍ) اورټلې، نو نبي صلي الله علیه وسلّم خپل مخ نه کپړه لرې کړه، او وې فرمائیل، اې ابو بکرؓ، دواړه پریږده ځکه چه دا د اختر ورځې دي او دا د منې ورځې دي او بي بي

اَيَّامُ مِنًى وَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِيْ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَى الْحَبَشَةِ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ فِي الْمَسْجِدِ فَزَجَرَهُمْ عُمَرُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُمْ اَمْنًا بَنِيْ اَرْفَدَةَ يَعْنِيْ مِنَ الْاَمْنِ.

عائشےؓ اووے ما اولیدل خه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پټولم' او ما حبشیانو طرف ته کتل' چه جمات کښې ئې (فوجي) لوبے کولے عمرؓ هغوي اورټل (چه داسے مه کوئے) نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائیل دوي پريږده' اے بني ارفده' تاسو اطمینان سره لوبے کوئے.

باب ۶۲۷ : الصَّلٰوةِ قَبْلَ الْعِيْدِ وَ بَعْدَهَا وَ قَالَ اَبُو الْمُعَلّٰى سَمِعْتُ سَعِيْدًا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ كَرِهَ الصَّلٰوةَ قَبْلَ الْعِيْدِ.

باب ۶۲۷ : د اختر د مونځ نه مخکښې او د هغے نه پس د مونځ کولو بیان او ابو معلٰي اووے ما د سعید نه د ابن عباسؓ متعلق واوریدل چه هغه د اختر د مونځ نه مخکښې مونځ کول مکروه ګنړلے دي.

۹۳۴ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا وَ مَعَهُ بِلَالٌ.

۹۳۴ : ابو الولید' شعبه' عدي بن ثابت' سعید بن جبیر' ابن عبسؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د وړوکي اختر په ورځ اووتلو او دوه رکعاته مونځ ئې داسے اوکه چه نه ئې د هغے نه مخکښې مونځ اوکه او نه دے هغے نه پس' او حضور صلي اللّٰه عليه وسلم سره بلالؓ وو[۱].

۱. د اختر په ورځ د صبا د مونځ نه روستو نفل مونځ مکروهه دے تردے چه د اشراق مونځ هم نشي کولے. د اختر د مونځ نه روستو په عیدګاه کښې هم نشي کولے لیکن د اختر د مونځ نه روستو کور کښې نفل کولے شي. صرف په عیدګاه کښې اجازت نشته.

## اَبْوَابُ الْوِتْرِ

## د وتر بیان

باب ۶۲۸ : مَا جَآءَ فِي الْوِتْرِ.

باب ۶۲۸ : د هغے روایتونو بیان چه د وتر باره کښې منقول دي.

۹۳۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ وَ

۹۳۵ : عبداللّٰه بن یوسف' مالک نافع و عبدالله بن دینار ابن عمرؓ نه روایت

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رُجُلًا سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلٰوةِ اللَّيْلِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا غَشِيَ اَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلّٰى رَكْعَةً وَّاحِدَةً تُوْتِرُ لَهٗ مَا قَدْ صَلّٰى وَ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يُسَلِّمُ بَيْنَ الرَّكْعَةِ وَالرَّكْعَتَيْنِ فِي الْوِتْرِ يَاْمُرُ بِبَعْضِ حَاجَتِهٖ.

کوي، چه يو سړي د نبي صلي الله عليه وسلّم نه د شپے د مانـخـه پـه حقـله تپوس اوکه نو رسول الله صلي الله عليـه وسلّم ورتـه او فـرمـائيـل، د شپے مونـخ دوه دوه رکعاتـه دے تـاسو کښ چه چا تـه د سحر کيدو خـطـره شي، نو يو رکعات دے پـرے زيات کـړي، چـه د هغـه کـړے مونـخ طاق (ناتکے) جوړ کړي او نافع نـه روايت دے چـه عبدالله بن عمرؓ بـه د، يـو رکـعـات او دوو رکـعـاتـو مينـځ کـښ سلام ګـرځـولـو، او د خپـلـو بـعـضو ضـرورتـونـو حکـم به ئے ورکولو.

۹۳۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ مَّخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ اَنَّ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ وَ هِيَ خَالَتُهٗ فَاضْطَجَعْتُ فِيْ عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَهْلُهٗ فِيْ طُوْلِهَا فَنَامَ حَتّٰى انْتَصَفَ اللَّيْلُ اَوْ قَرِيْبًا مِّنْهُ فَسْتَيْقَظَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَّجْهِهٖ ثُمَّ قَرَاَ عَشْرَ اٰيَاتٍ مِّنْ اٰلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى شَنٍّ مُّعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّاَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ فَصَنَعْتُ مِثْلَهٗ وَ قُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رَاْسِيْ وَ اَخَذَ بِاُذُنِيْ يَفْتِلُهَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ

۹۳۶ : عبدالله بن مسلمه، مالک، مخرمه بن سليمـان، کريب ابن عباسؓ نه روايت دے چه ابن عباسؓ خپلے ترور بي بي ميمونےؓ کره شپه تيره کړه او بيائ ئے اوکه چه زه د بسترے په پلنوالي کښ ملاست ووم، او رسول اللهؐ او د هغـه بي بي (ميمونهؓ) د بسترے په اوږدوالي (طول) ملاست وو تر دے چه نيمه شپه يا ددے په مثل تيره شوه نو حضورؐ د خپل مخ نه دے خوب اثر لرے کولو سره بيدار شولو بيائے د، سورهٔ ال عمران لس آيتونه او لوستل، بيا حضورؐ يو اويزاند مشک له ورغـلـو او پـه ښـه شان ئے اودس اوکړو بيا مونخ کولو دپاره اودريدلو نو ما هم د حضورؐ په شان اودس اوکړلو، او د حضورؐ په خوا کښ اوريدلم حضورؐ خپل ښے لاس خما په سر کيښودلو خما غوږ ئے مړل شروع کړل، بيا حضـور دوه رکعاته مونخ اوکړلو بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاتـه بيـا دوه رکـعـاتـه بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاته، بيـائے د يـو رکعات نه وتر جور کړل، (ټول ۱۲ + ۱ =

رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى جَآءَ هُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

۱۳ رکعاته شول) بيا سملاستو تر دے چه حضورٌ له موذن راغے نو حضورٌ اودريدلو' دوه رکعاته (د سحر سنت) ئے اوکړل بيا بهر اووتلو' نو د سحر مونځ ئے ئے اوکړلو.

۱. بعضے محدثينو ليکلے دي. چه عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ورکوټے ماشوم وو نو د بے علمئ په وجه کينړ (ګس) طرفته اودريدو. ددے وجے نه رسول الله صلي الله عليه وسلم د کينړ (ګس) غوږ نه کينړ طرفته کولو د پاره اونيولو. دا تفصيل په نورو روايتونو کښې هم شته يو بل روايت کښې دي چه خما غوږ ئے خکه مږلو (مښلو) چه په تياره کښې د هغه په مبارک لاس پوهه شم او ويره نه وي. دواړه روايتونه جدا جدا دي عبدالله بن عباس رضي الله عنهما خپل پلار عباس رضي الله عنه د رسول کريم صلي الله عليه وسلم په کور کښې د خوب د پاره ددے مقصد د پاره ليږلے وو چه د شپے په وخت کښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم د عبادت حال د يو ګواه په ليدلو سره معلوم کړي. عبدالله رضي الله عنه ورکوټے وو. د رسول الله صلي الله عليه وسلم خپلوان (د تره خوئے) وو او د مؤمنانو مور بي بي حضرت ميمونه رضي الله عنها ئے خاله (دَ مور خور) وه. په کومه شپه چه هغے کره د رسول الله صلي الله عليه وسلم د راتلو وار وو. نو عبدالله بن عباس رضي الله عنه هغے کره د شپے تيرولو د پاره لاړوو. د وړوکوالي سره ډير هوخيار او پوهه وو نو د عبادت ټول تفصيل ئے ياد کړو. امام بخاري رحمة الله عليه "ابواب الوتر" کښې اول د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث ذکر کړيدي. چه هغه (عبدالله بن عمر رضي الله عنهما) به وتر مونځ دوه رکعاته ادا کړو. بيا به ئے سلام او ګرځوو او د څه حاجت حکم به ئے او کړو بيا به ئے يو رکعت ادا کړو. بيا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا حديث شريف هم ذکر کړيدے. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي وي. "دوه رکعاته ادا کړه. بيا چه کله اَلتَّحِيَّات اولولے' د سلام اراده اوکړے نو د سلام ګرځولو نه بغير دريم رکعت يو ځائے کړه". امام قاسم بن محمد بن ابي بکر رضي الله عنهم چه د اوه فقهاؤ نه دے هغه دا روايت نقل کړيدے (اوه فقهاء (فقهاء سبعه) دا هغه جليل القدر تابعين امامان دي چه د جليل القدر صحابهٔ کرامونه ئے علم حاصل کړو او بيا مسجد نبوي کښې د دين استاذان وو) امام قاسم رحمه الله تعالٰي وائي چه مونږ خلق (صحابهٔ کرام) داسے ليدل چه هغوي به وتر پدے طريقه کول' يعني درے رکعاته وتر په يو ځائے د دوو التحيات سره' امام طحاوي رحمة الله عليه دا روايت نقل کړے دے چه يواځے امام قاسم رحمة الله عليه نه بلکے اوه واړو فقهاؤ ويل چه "وتر درے رکعاته په يو ځائے ادا کول دي او سلام به نه ګرځوي مګر په آخر د مونځ کښې" او په دے روايت باندے خليفه عمر بن عبدالعزيز درے رکعاته وتر د يو سلام سره مقرر کړي وؤ (طحاوي ص ۲۰۲، ۲۰۳) د امام بخاري رحمة الله عليه استاذ' امام ابوبکر بن ابي شيبه رحمة الله عليه روايت کوي چه حضرت حسن بصري رحمة الله عليه فرمايلي دي. "د مسلمانانو پدے اجماع ده چه وتر درے رکعاته دي صرف آخري رکعة ختميدو باندے سلام ګرځول دي" (ش جلد دويم ص ۲۹۴) ددے نه واضحه شوه چه په آخر کښې د تحقيق نه پس فيصله اوشوه چه وتر درے رکعاته دوه تشهده يو سلام سره دي (امين او کاړوي)

۹۳۷ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ ۹۳۷ : يحيي بن سليمان' عبدالله بن

سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُوْ بْنُ الْحَارِثِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنِ قَاسِمٍ حَدَّثَهٗ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا اَرَدْتَّ اَنْ تَنْصَرِفَ فَارْكَعْ رَكْعَةً تُوْتِرُ لَكَ مَا صَلَّيْتَ قَالَ الْقَاسِمُ وَرَاَيْنَا اُنَاسًا مُنْذُ اَدْرَكْنَا يُوْتِرُوْنَ بِثَلَاثٍ وَّاِنَّ كُلًّا لَّوَاسِعٌ اَرْجُوْا اَنْ لَّا يَكُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْهُ بَأْسٌ.

وهب عمرو بن حارث عبدالرحمن بن قاسم، قاسم بن محمد عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، رسول اللهؐ ورته او فرمائیل، چه د شپې مونخ دوه دوه رکعاته دې بیا چه کله ته د مانځه نه د فارغ کیدو اراده اوکړې نو یو رکعات (بل) اوکړه، چه ستا ټول مونخ به وتر جوړ کړي. او قاسم اووې، د کله نه چه زه په هوش کښې راغلې یم، نو خلق درې رکعاته وتر کولو باندې وینم، او دواړه صورتونه ښما په خیال کښې جائز دي ښه امید لرم، چه دې کښې څه حرج نشته.

**۹۳۸ :** حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً كَانَتْ تِلْكَ صَلٰوتُهٗ تَعْنِيْ بِاللَّيْلِ فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذٰلِكَ قَدْ يَقْرَاُ اَحَدُكُمْ خَمْسِيْنَ اٰيَةً قَبْلَ اَنْ يَّرْفَعَ رَاْسَهٗ وَيَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ ثُمَّ يَضْطَجِعُ عَلٰى شِقِّ الْاَيْمَنِ حَتّٰى يَاْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ لِلصَّلٰوةِ.

**۹۳۸ :** ابو الیمان، شعیب، زهري، عروه بي بي عائشېؓ نه روایت کوي، هغې او فرمائیل، چه رسول اللهؐ به یولس رکعاته مونخ کولو، او دا مونځ د حضورؐ د شپې مونخ وو، حضورؐ به سجده کوله دومره وخته پورې، چه تاسو کښې یو سړي به د حضورؐ د سر اوچتولو نه مخکښې پنځوس آیاتونه وئیلې شو، او د سحر د مونخ نه مخکښې به ئې دوه رکعاته کول، بیا به په خپل ښي مټ سملاستو تر دې چه مؤذن به ورته د مونځ کولو د پاره راغې ل.

۱. د وتر مونخ په حقله د علماؤ اختلاف دې چه وتر واجب دي یا سنت، وتر څو رکعاته دي. یو سلام سره به ادا کولې شي یا دوه سلامونو سره به د شپې مونخ (صَلَاةُ اللَّيْل) نه مابنام او ماسختن نه علاوه د "تَهَجُّد" مونځ مراد دې. محدثین حضرات صلاة اللیل، او تهجد جدا جدا ذکر کوي. چه د هغې نه دا معلومیږي چه صلاة اللیل او وتر جدا جدا مونځونه دي. د دواړو مونځونو خپله کښې ډیر تعلق دې. که څوک د تهجد مونځ کوي هغه د پاره دا مستحب دي چه وتر دې د تهجدونه روستو ادا کړي. او دا د

رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم طریقه وه. چه هغه به وتر د تهجدو نه روستو کول. ددے وجے نه محدثین حضرات، صلاة اللیل (تهجد) د وتر په بابونو کښې ذکر کوي. د احنافو مسلک هم دا دے احناف وائي چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم د عمل نه هم دا معلومیږي چه وتر د صلاة اللیل بوه حصه ده. او وتر ددے سره، سره د قرأت، د رکعاتونو او د صفتونو په حقله یو مستقل خان له مونځ جوړ شوے دے. د امام شافعي رحمة اللّٰه علیه په مذهب په دے کښې څه فرق نشته هغه وائي چه وتر کم از کم یو رکعت، او زیات نه زیات یوولس رکعاته دي بعضے شوافع علماء وتر دیارلس رکعاته وائي. او دا وجه ده چه په شافعي مذهب کښې وتر واجب نه دي احناف په صلاة اللیل (تهجد) او وترو کښې فرق کوي او د دواړو مونځونو په صفتونو (طریقه) کښې فرق کوي ددے وجے نه هغوي وائي چه وتر درے رکعاته او واجب دي لیکن چه کوم خلق په صلاة اللیل او وترو کښې فرق نه کوي د هغوي په نزد واجب نه دي. په احادیثو کښې دي چه رسول اکرم صلي اللّٰه علیه وسلم به خپلے پاکے بیبیانے (ازواج مطهرات) د وترو ادا کولو د پاره راویښولے لیکن د صلاة اللیل د پاره به نے نه راویښولے د وترو په حقله د رسول اکرم صلي اللّٰه علیه وسلم دا حکم وو چه د شپے په آخري حصه کښې دے ادا کړے شي. لیکن چه کله صحابة کرامو رضوان اللّٰه علیهم ته د شپے په آخري حصه کښې د بیداریدو یقین نه وو هغوي ته حکم وو چه د شپے په اوله حصه کښې دے ادا کړي. بلکه دا که وتر پاتے شي نو د هغے قضا هم ضروري ده. او که صلاة اللیل پاتے شي نو د هغے قضا نشته. د عامو سنتو خلاف د وترو رکعتونه او وخت هم مقرر دے او په دے د ټولو مذاهبو اتفاق دے چه د وترو پریخودل روا نه دي. بیا د احنافو او د شوافعو په وترو کښې څه اختلاف پاتے شو بغیر د دینه چه مونږ وترو ته واجب وایو او هغوي ورته نه وائي. دریم اختلاف دا دے چه هغوي وتر په دوه سلامونو ادا کوي. او مونږ یو سلام کرخوو. په احادیثو کښې دواړه طریقے شته اختلاف صرف په فضیلت او غوره والي کښې دے.

**باب ۶۲۹ : سَاعَاتِ الْوِتْرِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَوْصَانِىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْوِتْرِ قَبْلَ النَّوْمِ.**

**باب ۶۲۹** : د وتر د ساعتونو بیان، ابو هریرةؓ اووے، ما ته رسول اللّٰهؐ د اوده کیدو نه مخکښې د وتر کولو وصیت اوکه.

**۹۳۹** : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ سِيْرِيْنَ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ اَرَيْتَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ اُطِيْلُ فِيْهِمَا الْقِرَآءَةَ قَالَ كَانَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّىْ مِنَ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى وَيُوْتِرُ بِرَكْعَةٍ وَيُصَلِّىْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ وَكَاَنَّ

**۹۳۹** : ابو النعمان، حماد بن زید انس بن سیرین بیان کوي، ما د ابن عمرؓ نه تپوس او که چه راته او ښایه، آیا زه د سحر د مونځ ورمبني دوه رکعاتو کښې اوږد (طویل) قرأت اوکړم نو هغه جواب راکه چه نبيؐ به د شپے دوه، دوه رکعاته مونځ کولو او د یو رکعت په زریعه به ئے هغه طاق کول، او د سحر مونځ نه مخکښې به ئے دوه رکعاته مونځ کولو ګویا آذان د هغه په غوږو کښې کیږي

الْاَذَانَ بِاُذُنَيْهِ قَالَ حَمَّادُ اَيْ بِسُرْعَةٍ. حماد اووے يعني زر (به ئے كولو)ؒ.

۹۴۰ : حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كُلَّ اللَّيْلِ اَوْتَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَانْتَهٰى وِتْرُهُ اِلَى السَّحَرِ.

۹۴۰ : عمرو بن حفص، اعمش، مسلم، مسروق بي بي عائشےؓ نه روايت كوي بي بي عائشےؓ او فرمائيل، چه رسول اللّٰه وتر، د شپے په ټولو حصو كښې كړي دي، او د حضورؐ وتر به سحر پورے ختم شو.

## بَاب ۶۳۰ : اَيْقَاظِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهْلَهُ بِالْوِتْرِ.

باب ۶۳۰ : د نبيؐ د خپل كور خلق د وترو د پاره د ويښولو بيان.

۹۴۱ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَاَنَارَا قِدَةٌ مُعْتَرِضَةٌ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يُوْتِرَ اَيْقَظَنِيْ فَاَوْتَرْتُ.

۹۴۱ : مسدد، يحيي، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، بي بي عائشےؓ او فرمائيل، چه نبي صلي الله عليه وسلّم به مونځ كولو او زه به د حضورؐ په بستره په پرتو (عرض) ملاسته ووم چه د وتر كولو اراده به ئے كوله، نو زه به ئے ويښه كړم نو ما به هم وتر او كړل.

۱ . په دے سلسله كښې د احاديثو مباركو نه څه معلوميږي هغه دا حكم دے چه ټوله شپه د وترو ادا كولو وخت دے د صبا (صبح صادق) د ختونه وړاندے چه څه وخت وتر ادا كول غواړي كولے شي. د رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلم عادت او طريقه داوه. چه د شپے په آخري حصه كښې د صلاة الليل (تهجدو) نه روستو ئے ادا كول. حضرت ابوبكر رضي الله عنه په آخري شپه كښې د بيداريدو (ويښيدو) پوره يقين نه وؤ هغه به د ماسختن مونځ پسے سمدستي ادا كول. او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه عمل داوؤ چه وتر به ئے د شپے په آخري حصه كښې ادا كول. د دينه وړاندے حديث شريف "۹۳۹" كښې دا ذكر دے چه رسول اكرم صلي الله عليه وسلم به اذان په غوږو اوريده په هغه وخت كښې به ئے سنت ادا كول. په دے حديث شريف د اَذان نه مراد اقامت دے دهغے مطلب دا دے چه د صبا په سنتو كښې به ئے اوږد قرأت نه لوستلو. اولنډ قرأت به ئے كوو د اقامت آواز اوريدو سره به ئے سنت ختم كړل او فرض مونځ كښې به د امام په حيثيت شريک شو. د صبا سنت به ئے زر، زر ادا كول لكه مطلب ئے دا شو چه د صبا په سنتو كښې اوږد قرأت پكار نه دے دا دهغه چا د پاره دے چه چا د شپے تهجد كړے وي په نورو رواياتو كښې دي چه رسول اكرم صلي الله عليه وسلم وتر د شپے په اولنے حصه كښې ادا كړيدي. د شپے په

مینځنۍ او آخري حصه کښې نې هم ادا کړېدي. ددې مطلب دا دې چه د ماسختن د مونځ نه روستو' او د صبا ختلو نه اول د نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه وتر ادا کول ثابت دي. حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله علیه لیکلي دي چه په مختلفو حالاتو کښې رسول اکرم صلي الله علیه وسلم وتر په مختلفو اوقاتو کښې ادا کړیدي. غالباً د تکلیف او د مرض په حالت کښې د شپې په اول کښې' د سفر په حالت کښې د شپې په مینځ کښې او په عام حالاتو کښې د شپې په آخري حصه کښې نې وتر ادا کړیدي.

**بـاب ۶۳۱ : لِيَجْعَلَ اٰخِرَ صَلٰوتِهٖ وِتْرًا.**

**باب ۶۳۱ :** وتر آخري مونځ جوړول پکار دي.

**۹۴۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْعَلُوْا اٰخِرَ صَلٰوتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا.**

**۹۴۲ :** مسدد یحیي بن سعید' عبدالله نافع عبدالله بن عمرؓ د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي' حضور صلي الله علیه وسلم او فرمائیل' چه وتر د شپې آخري مونځ جوړ کړئ[۱].

۱. که چرې تهجد کول وي نو وتر د تهجدونه روستو ادا کړئ. شریعت دا غواړي چه د شپې د ټولو نه آخري مونځ وتر وي هم دا وجه ده چه د وترونه د شپې په مونځ کښې چه کوم دوو' دوو سنت رکعتونو ذکر راځي هغه په ناستې کول زیات غوره دي.

**باب ۶۳۲ : اَلْوِتْرِ عَلَى الدَّابَةِ.**

**باب ۶۳۲ :** په سورلي د وتر کولو بیان.

**۹۴۳ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ يَسَارٍ اَنَّهٗ قَالَ كُنْتُ اَسِيْرُ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ بِطَرِيْقِ مَكَّةَ فَقَالَ سَعِيْدٌ فَلَمَّا خَشِيْتُ الصُّبْحَ نَزَلْتُ فَاَوْتَرْتُ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اَلَيْسَ لَكَ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فَقُلْتُ بَلٰى وَاللّٰهِ قَالَ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوْتِرُ عَلَى الْبَعِيْرِ.**

**۹۴۳ :** اسماعیل' مالک' ابو بکر بن عمر بن عبدالرحمن بن خطابؓ د سعید بن یسار نه روایت کوي' هغه او فرمائیل' زه عبدالله بن عمرؓ سره د مکې په لار تلم' چه ما سره د سحر کیدو ویره پیدا شوه' نو زه کوز شوم' وتر م اوکړل' او هغه سره یو ځائې شوم' نو عبدالله بن عمرؓ رانه تپوس اوکه کوم ځائې پاتې شوې وې ما ورته اووې ما سره د سحر خطره وه نو زه کوز شولم او وتر م اوکړل عبداللهؓ او وې آیا ستا د پاره رسول اللهؐ کښې ښه نمونه' نه ده ما اووې' او' والله' نو هغه اووې' چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به په اوښ[۱] (سور) وتر کول.

۱ . په نورو ګڼرو روايتونو کښې دي چه پخپله ابن عمر رضي الله عنهما د وترو کولو د پاره د سورلئ نه کوزيدلو . او هغه دا د وترو مونځ په سورلئ کړے ندے . د دواړو حديثونو د يو بل سره مخالفت (تعارض) محدثينو په دے طريقه ختم کړيدے چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما هغه صحابهٔ کرامو کښې وو چه په وتر او صلاة الليل فرق نه کولو . او ټولو ته به ئے وتر ويل . ددے وجے نه' د بخاري ددے حديث متعلق ويلے شي. چه د صلاة الليل سر ليک ئے وترو سره کړے دے ليکن نورو روايتونو کښې دي چه د وترو ادا کولو د پاره به ابن عمر رضي الله عنهما د سورلئ نه کوزيدو . او په مزکه به ئے ادا کول. دغه حقيقي وتر وو د احنافو مسلک دا دے چه وتر دے په سورلئ نه ادا کوي.

## بَاب ۶۳۳ : اَلْوِتْرِ فِي السَّفَرِ.

## باب ۶۳۳ : سفر کښې د وتر کولو بيان.

۹۴۴ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ ابْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهٖ وَيُوْمِئُ اِيْمَآءً صَلٰوةَ اللَّيْلِ اِلَّا الْفَرَائِضَ وَيُوْتِرُ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ.

۹۴۴ : موسى بن اسماعيل' جويرِ بنا سماء نافع ابن عمرؓ نه روايت کوي' چه نبيؐ به سفر کښې په سورلئ مونځ کولو د سورلئ رخ که به کوم طرفته هم وو او د شپے مونځ به ئے سوا' د فرائضو نه' اشارے سره کولو' او وتر به ئے په سورلئ کول.

## بَاب ۶۳۴ : اَلْقُنُوْتِ قَبْلَ الرُّكُوْعِ وَبَعْدَهٗ.

## باب ۶۳۴ : د رکوع نه مخکښې او د هغے نه پس د دعائے قنوت لوستو بيان.

۹۴۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ سُئِلَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَقَنَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصُّبْحِ قَالَ نَعَمْ فَقِيْلَ اَوْ قَنَتَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ قَالَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ يَسِيْرًا.

۹۴۵ : مسدد' حماد بن زيد' ايوب محمد بن سيرين نه روايت دے د هغه بيان دے . د انس بن مالک نه تپوس اوشو' چه آيا نبي صلي الله عليه وسلم د سحر مونځ کښې دعائے قنوت لوستے دے هغه جواب ورکه' چه' او تپوس ترے او شو' آيا' د رکوع نه مخکښې ئے دعائے قنوت لوستے ده' وے فرمائيل رکوع نه لږ پس.

۹۴۶ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فَقَالَ قَدْ كَانَ

۹۴۶ : مسدد' عبدالواحد' عاصم بيان کوي' ما د انس بن مالک نه' د دعائے قنوت په حقله تپوس اوکه' نو هغه اووے چه دعائے قنوت به لوستے شو ما تپوس

الْقُنُوْتُ قَبْلَ الرُّكُوْعِ اَوْ بَعْدَهُ قَالَ قَبْلَهُ قَالَ فَاِنَّ فُلَانًا اَخْبَرَنِيْ عَنْكَ اَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ فَقَالَ كَذَبَ اِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا اُرَاهُ كَانَ بَعَثَ قَوْمًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّآءُ زُهَآءَ سَبْعِيْنَ رَجُلًا اِلٰى قَوْمٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ دُوْنَ اُولٰٓئِكَ وَكَانَ بَيْنَ هُمْ وَبَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدًا فَقَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا يَدْعُوْا عَلَيْهِمْ.

اوكه د ركوع نه مخكښې يا وروستو نو هغه اووې د ركوع نه مخكښې عاصم اووې چه فلانې ما ته ستاسو متعلق بيان اوكه چه تاسونې پس د ركوع نه روايت كونې هغه اووې هغه دروغ ويلې دي رسول اللّٰه د ركوع نه پس يو مياشت پورې دعائې قنوت لوستې دې او زه يو هيرم، چه رسول اللّٰه تقريباً اويا كسان، چه هغوي ته به ئې قاريان (قراء) وئيلې مشركانو پله ليږلې وو دا خلق د هغوي نه سوا وو (چه هغوي ته حضورﷺ بد دعا كړې وه) او د هغوي او د رسول اللّٰهﷺ په مينځ كښې معاهده وه بيا د وعدې ما تولو په وجه رسول كريمﷺ يو مياشت پورې دعائې قنوت اولوستلو او هغوي ته ئې بد دعا اوكړه.

۹۴۷: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ قَالَ حَدَّثَنَا زَآئِدَةُ عَنِ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَنَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا يَدْعُوْا عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ.

۹۴۷: احمد بن يونس، زائده، تيمي ابو مجلز، انس بن مالك نه روايت كوي، چه نبيﷺ رعل او ذكوان ته بد دعا كوله، او يو مياشت پورې ئې دعائې قنوت اولوست.

۹۴۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ اَخْبَرَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ الْقُنُوْتُ فِي الْمَغْرِبِ وَالْفَجْرِ.

۹۴۸: مسدد، اسماعيل، خالد ابو قلابه انس بن مالكؓ روايت كوي، حضرت انسؓ اووې چه دعائې قنوت به د مابنام او د سحر مونځ كښې لوستې شو۱.

۱. معلوميږي چه امام بخاري رحمة اللّٰه عليه سره د وتر د قنوت په حقله كوم حديث نه وو. دې وجې نه چه كوم احاديث ذكر كړيدي هغه ټول د قنوت للنازله (د كوم مصيبت په وجه چه قنوت ويلې شي) دي چه د كوم آفت لرې كيدو د پاره ويلې شي. داسې موقعو باندې دغه قنوت اوس هم ويل روا دي. د وتر قنوت، د احنافو په مسلك ټول كال ويلې شي، د وترو په آخري ركعت كښې د ركوع نه وړاندې. لېكن د امام شافعي رحمة اللّٰه عليه په نزد د صبا مونځ كښې هميشه قنوت ويل دي او د رمضان په آخرو شپو كښې هم قنوت ويل دي.

# اَبْوَابُ الْاِسْتِسْقَاءِ

## د استسقاء بیان[۱]

۱ . هدایه کښې لیکلي دي چه استسقاء د دعا او د استغفار نوم دے نبي کریم صلي الله علیه وسلم همیشه د باران غوښتلو د پاره مونځ کړے نه دے یو ځل ئے صرف مونځ کړے وؤ بیائے بغیر د مونځ نه د باران د پاره دعا ګانے کړے وے ددینه معلومه شوه چه استسقاء د دعا او د استغفار نوم دے د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد باندے د استسقاء مونځ نشته په "المختار" کښې دي چه د مذهب حنفي څلور د متن کتابونو او د ظاهر الراویة کتاب دے:

لَا صَلٰوةَ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ وَ اِنَّمَا هُوَ دُعَاءٌ وَ اسْتِغْفَارٌ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَهُ مَرَّةً ثُمَّ تَرَكَهُ

په استسقاء کښې مونځ نیشته دا خو دعا او ښښنه غوختل دي. نبي کریم صلي الله علیه وسلم یو ځل د استسقاء مونځ کړیدے او بیائے پریخودلے دے.

نبي اکرم صلي الله علیه وسلم به د باران د پاره دعا غوښتله په بخاري کښې روستو حدیث راځي "چه د جمعے په خطبه کښې نبي کریم صلي الله علیه وسلم لاس اوچت کړل او دعائے اوکړه باران شروع شو. حضرت عمر رضي الله عنه د باران غوښتلو د پاره مونځ نه وؤ کړے. د نبي اکرم صلي الله علیه وسلم تره مبارک حضرت عباس رضي الله عنه ئے خپل وړاندے اودروو. او دعائے اوکړه "اے الله مونږ به تا ته ستا پیغمبر وسیله جوړوؤ اوس هغه دنیا کښې نشته د هغه تره تاته وسیله کوؤ" داسے به حضرت عمر رضي الله عنه کول او باران به کیدلو". البته د صاحبینو په نزد د استسقاء مونځ شته او خطبه ئے هم شته. د عام جمهورو په نزد اول دوه رکعته مونځ د استسقاء شته د مونځ نه روستو دعا کول دي او لاس اوچتول دي. او دا مونځ د ښهر نه بَهَر په عیدګاه یا کومه ډاګه میدان کښې کول دي" نبي کریم صلي الله علیه وسلم چه کله یو ځل د استسقاء مونځ کړے وؤ هغے کښې ئے خپل څادر مبارک اړولے وو خکته حصه ئے بره کړے او بره ئے ښکته کړے وه. لیکن اوس څادر اړول نشته که امام ورکوټے رومال واړه وي. هم کافي دے د نمر د تندر نیولو مونځ صلاة کسوف پشان د استسقاء مونځ نه واجب دے نه اتفاقي سنت دے یو اخرے شیخ شمس الدین سروجي لیکلے دي. "د هدائے په شرحه کښې" که چرے د وخت بادشاه د استسقاء د مونځ حکم جاري کړي. نو بیا واجبیږي. "حموي" د "اَلْاَشْبَاهُ وَالنَّظَائِر" په حاشیه کښې دا وضاحت کړے دے. چه څنګه روژه د قاضي په حکم واجبیږي داسے استسقاء د پاره مسلمان بادشاه که حکم جاري کړے نو استسقاء واجبیږي. اسلام کښې د امیر المؤمنین د وخت او انتظامي کارونو کښې اختیارات شته د هغه په حکم وجوب د هغه دور پورے به وي. بیا به ختم شي. امیر المؤمنین' شرعي احکامو کښې دخل نشي کولے. صرف د خلفاء راشدینو درجه د نورو اُمراء المؤمنین نه زیاته ده هغوي ته اګر که د شارع حیثیت حاصل نه دے خو بیا هم د هغوي حکم شرعي حکم کیږي. لکه تراویح شل رکعاته په جماعت سره ادا کول" وغیره داسے نور احکام چه حضرت عمر رضي الله عنه په خپل دور خلافت کښې جاري کړي وؤ. او فقهاؤ هغے ته د شرعي احکامو حیثیت ورکړے دے د دے بنیاد د نبي اکرم صلي الله علیه وسلم هغه فرمان مبارک دے "خما نه پس د ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما اقتداء کوئ" او په تاسو خما او خما د خلفاء راشدینو طریقے لازمیدي" ددینه معلومیږي چه د خلفاء راشدینو منصب' د شارع او د عامو خلفاؤ په مینځ کښې یو جدا منصب دے چه د شارع نه کم دے او د عامو خلفاؤ نه زیات دے (فتح الباري جلد دویم صفحه ۴۷۸' ۴۷۷ت)

بَاب ٦٣٥ : الِاسْتِسْقَاءِ وَخُرُوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الِاسْتِسْقَاءِ.

٩٤٩ : حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَسْقِي وَحَوَّلَ رِدَآءَهُ.

بَاب ٦٣٦ : دُعَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ.

٩٥٠ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ يَقُولُ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدَ اللّٰهُمَّ أَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ وَأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غِفَارٌ غَفَرَ اللّٰهُ لَهَا وَأَسْلَمُ سَالَمَهَا اللّٰهُ قَالَ ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ أَبِيهِ هٰذَا كُلُّهُ فِي الصُّبْحِ.

بـاب ٦٣٥ : استسقاء او استسقاء كښې د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د وتلو بيان.

٩٤٩ : ابو نعيم، سفيان، عبداللّٰه بن ابي بكر عباده بن تميم د خپل تره نه روايت كوي، هغه اووې چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د باران دعا د پاره بهر اووتلو او خپل څادر ئې آړولې كړلو.

باب ٦٣٦ : د نبيّ دا دعا كول چه دا، د يوسفؑ د قحط د كال په شان د قريش كفارو د پاره جوړ كړې.

٩٥٠ : قتيبه، مغيره بن عبدالرحمن ابو الزناد، اعراج، ابو هريرهؓ نه روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به كله خپل سر د، آخري ركعت نه اوچتولو نو وئيل به ئې اې اللّٰه، عياش بن ربيع له خلاصي (نجات) ور كړې. اې اللّٰه سلمه بن هشام له خلاصي ور كړې. اې اللّٰه وليد بن وليد له خلاصي ور كړې اې اللّٰه، كمزورو مسلمانانو له خلاصي ور كړې، اې اللّٰه د مضر په كفارو خپل ګرفت سخت كړې اې اللّٰه، هغوي د پاره كالې، د يوسف د قحط د كال په شان جوړ كړې او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه غفار ته اللّٰه مغفرت اوكه، او قبيله، اسلم اللّٰه محفوظ كړله، او ابن ابي الزناد، د خپل پلار نه دا ټولې دعاګانې د سحر د مونځ متعلق هم نقل كړې دي.

٩٥١: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ح حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَاٰى مِنَ النَّاسِ اِدْبَارًا فَقَالَ اللّٰهُمَّ سَبْعًا كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ حَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتّٰى اَكَلُوا الْجُلُوْدَ وَالْمَيْتَةَ وَالْجِيَفَ وَيَنْظُرُ اَحَدُهُمْ اِلَى السَّمَآءِ فَيَرَى الدُّخَانَ مِنَ الْجُوْعِ فَاَتَاهُ اَبُوْ سُفْيَانُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّكَ تَاْمُرُ بِطَاعَةِ اللّٰهِ وَبِصِلَةِ الرَّحِمِ وَاِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوْا فَادْعُ اللّٰهَ لَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى فَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ وَاٰيَةُ الرُّوْمِ.

٩٥١: حميدي سفيان، اعمش ابو الضحي مسروق، عبدالله، (ح) عثمان بن ابي شيبه، جرير منصور، ابو الضحي، مسروق روايت کوي، چه مونږ خلق عبدالله ابن مسعود سره وو نو هغه بيان او که چه نبي صلي الله عليه وسلّم (د کفارو قريش) د اسلام نه شاکول او اعراض ئے اوليده نو حضورؐ او فرمائيل، اے الله، دوي د، يوسف د اوه کليز قحط په شان په قحط کښ اخته کړے نو هغوي په قحط کښ اخته شو ټول څيزونه ئے تباه شول، تر دے چه څرمنے او مردارے پورے ئے خوړلے او که چا به آسمان طرف ته کتل، نو د لوږے په وجه به ورته په اسمان لوګے په نظر راته نو ابو سفيان، حضورؐ له راغے او وے وئيل، اے محمدؐ تاسو، د الله د، اطاعت او صله رحمئ حکم ورکوئے او ستاسو قوم هلاک شو الله نه د هغوي د پاره دعا اوغواړه۔ نو الله پاک او فرمائيل د هغے ورځے انتظار کوه چه په آسمان ظاهر لوګے را څرګند شي الخ (چه په هغه ورځ به مونږ ډير سخت ګرفت کوو) بطشه نه مراد د، بدر، ورځ ده، دُخان بطشه، لزام (لوګے ګرفت يا نيوکه، او قيد) او آيت روم ټول تير شوي دي.

١. دا د هجرت نه رومبنے واقعه ده رسول الله صلي الله عليه وسلم مکه مکرمه کښ تشريف لرلو. قحط ډير سخت وو کومو علاقو کښ چه قحط وو هغه ورانے شوے وے. ابو سفيان رضي الله عنه په هغه وخت کښ اسلام قبول کړے نه وو خو بيا هم رسول الله صلي الله عليه وسلم سره راغے. او د الله رسول صلي الله عليه وسلم ته ئے د اسلام د اخلاقي تعليماتو او د صله رحمئ (د خپلولئ) واسطه ورکړه د رحم درخواست ئے او که. رسول الله صلي الله عليه وسلم دعا او کړه او قحط ختم شو. ددے سر ليک لاندے د هغے احاديثو ذکر دے چه د رسول اکرم صلي الله عليه وسلم په خيرو (بددعائي) سره قحط راغلے وو د هغے تفصيلات بيان شويدي. ددے احاديثو بعضے بحثونه په خپلو موقعو راخي او بيانيږي به.

**بـاب ٢٣٧ : سُـؤَالِ النَّـاسِ الْاَمَامَ الْاِسْتِسْقَآءَ اِذَا قَحَطُوْا.**

**باب ٢٣٧ : د خلقو امام نه د باران د دعا د پاره د خواست كولو بيان هر كله چه هغوي قحط كښې راګير وي**

**٩٥٢ :** حَـدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ عَلِيِّ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ قُتَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ بْنُ عُمَرَ يَتَمَثَّلُ بِشِعْرِ اَبِيْ طَالِبٍ. وَاَبْيَضَ يُسْتَسْقَى الْغَمَامُ بِـوَجْهِهٖ ثِمَالُ الْيَتٰمٰى عِصْمَةٌ لِّلْاَرَامِلِ وَقَالَ عُمَرُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا سَالِمٌ عَنْ اَبِيْـهِ وَرُبَّـمَـا ذَكَرْتُ قَوْلَ الشَّاعِرِ وَاَنَا اَنْظُرُ اِلٰى وَجْهِ النَّبِيِّ صَلَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّـمَ يَسْتَسْقِيْ فَمَا يَنْزِلُ حَتّٰى يَـجِيْـشَ كُـلُّ مِيْـزَابٍ. وَاَبْيَـضُ يُسْتَسْقَى الْغَمَـامُ بِوَجْهِهٖ. ثِمَالُ الْيَتٰمٰى عِصْمَةٌ لِّلْاَرَامِلِ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ طَالِبٍ.

**٩٥٢ :** عـمـرو بـن عـلـي' ابـو قتيـبـه' عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار د خپل پلار نه روايت كوي' د هغه بيان دے چه ما د ابن عمرؓ نه د' ابو طالب دا شعر واوريدلو. ترجمه' هغه سپين رنګ واله' چه د هغه د مخ په واسطه د' وريځے نه د باران دعا كيږي' هغه د يتيمانو حامي او كُنډو د پاره پاكدامني ده او د عمرؓ بن حمزه بيان دے چه ماته سالم او هغه د خپل پلار ابن عمرؓ نه روايت اوكه' چه كله به ما د شاعر قول يادولو' او ما به د نبي صلي الله عليه وسلّم مخ ته كتل چه حضورؐ به د باران دعا كوله نو د منبر نه به لارا كوز شوے هم نه وو' چه ټولے ناوے به بهيدلے او دا شعر وابيض الخ د ابو طالب كلام دے.

**٩٥٣ :** حَـدَّثَـنَـا الْحَسَنُ بْـنُ مُحَمَّـدٍ قَـالَ حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰـهِ بْـنِ الْمُثَنّٰى عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰـهِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ عُـمَـرَ بْـنَ الْـخَـطَّـابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ اِذَا قَحَطُوْا اسْتَسْقٰى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْـدِ الْـمُطَّلِبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ اللّٰـهُـمَّ اِنَّـا كُـنَّـا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَسْقِيْنَا وَاِنَّا

**٩٥٣ :** حسن بن محمد' محمد بن عبدالله انصاري' عبدالله بن مثني' ثمامه بن عبدالله بن انس بن مالک روايت كوي' كوم وخت چه خلق قحط كښې اخته شو نو عمر بن خطابؓ به د عباس بن عبدالمطلبؓ په وسيله دعا غوښتله' او فرمائيل به ئے اے الله مونږ به تاته ستا د نبيؐ وسيلے سره راتلو نو مونږ باندے به دے باران كولو اوس مونږ خلق د نبي صلي الله عليه وسلم د تره عباسؓ وسيلے سره راخو نو مونږ

نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا قَالَ فَيُسْقَوْنَ. باندے باران اوکرے د' راوي بيان دے چه په خلقو به باران کیدلوا.

۱. په خير القرون (د صحابؤ د تابعينو د تبع تابعينو زمانه) کښې د دعا هم دا طريقه وه او د ټولو سلفو (پخواني ديندارو خلقو) عمل دا وو چه مړي به نې نه وسيله کول د دعا د پاره' او د مړو نه به نې دعا نه غوښتله' نه به نې دے طرفته خيال تللو. بلکې ژوندے يو نيک بنده به نې د خدائے تعالیٰ دربار ته وړاندے کړو. هغه به دعا کوله' ټولو خلقو به ورباندے آمين ويلو حضرت عمر رضي الله عنه په دے طريقه حضرت عباس به وسيله جوړولو هغه به دعا کوله حضرت عمر رضي الله عنه او ټولو خلقو به ورباندے آمين وايه ددے حديث شريف نه معلوميږي چه د غير موجود يا مړي وسيله کولو صورت د حضرت عمر رضي الله عنه مخکښې نه وؤ. که داسے نه وے نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم د ذات مبارک نه د چا لوئے ذات نه وو د مړي يا غير موجود نه د توسّل د جواز فتويٰ د متاخرينو ده ليکن حافظ ابن تيميهؒ دے ته ناجائز وائي. بهرحال که چرے د حافظ ابن تيميه پشان په دے مسئله کښے شدت اختيار هم نه کړے شي بيا هم په مړو سره توسل نه کول به بهتر وي ځکه چه د سلفو همدا معمول وو. د حضرت عمر رضي الله عنه عمل پدے سلسله کښې ډير واضح دے. د بدعت او فساد په دے زمانه کښې اگر که د سدّباب په طور وي د دے قسم توسل نه خلق منع کول پکار دي. حافظ ابن حجر رحمة الله عليه د حضرت عباس رضي الله عنه دعا هم داسے نقل کړيده. "اے الله' آفت او مصيبت بغير د گناه نه نۀ نازليږي نبي عليه الصلاة والسلام به ځما ډير قدر کولو پدے وجه دا قوم ماستا په دربار کښې وړاندے کوي. زۀ حاضريم دا ځمونږ لاسونه دي پدے لاسونو مونږ گناهونه کړيدي د توبے د پاره ځمونږه تندي په سجدي پراته دي د رحمت په باران مونږ خړوب کړه" په بل روايت کښې دي چه پدے موقعه حضرت عمر رضي الله عنه خطبه کښې او فرمايل "د رسول الله صلي الله عليه وسلم د حضرت عباس رضي الله عنه سره داسے معامله وه لکه د ځوي د پلار سره' خلقو د رسول الله صلي الله عليه وسلم اقتداء اوکړئ د الله تعالي په دربار کښې د هغهٔ تره وسيله جوړ کړئ" د عباس رضي الله عنه د استسقاء د دعا نه روستو په زوره ډير تيز باران اوشو. هر طرفته به نظر اوبه' اوبه وے.

## بَاب ۶۳۷ : تَحْوِيلِ الرِّدَآءِ فِي الْاِسْتِسْقَآءِ.

باب ۶۳۸ : استسقاء کښې د څادر' اړولے کولو بيان.

۹۵۴ : حَدَّثَنِي اِسْحٰقُ قَالَ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِي بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِ ابْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْتَسْقٰى فَقَلَّبَ رِدَآءَهٗ.

۹۵۴ : اسحاق' وهب بن جرير' شعبه محمد بن ابي بکر' عباد بن تميم' عبدالله بن زيد نه روايت کوي' چه نبي صلي الله عليه وسلم باران د پاره دعا اوکړله' نو حضور صلي الله عليه وسلم خپل څادر آړولے که.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

۹۵۵ : علي بن عبدالله' سفيان' عبدالله

اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبَّادَ بْنَ تَمِيْمٍ تُحَدِّثُ أَبَاهُ عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى الْمُصَلّٰى فَاسْتَسْقٰى فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَقَلَبَ رِدَآءَهُ وَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ كَانَ ابْنُ عُيَيْنَةَ يَقُوْلُ هُوَ صَاحِبُ الْأَذَانِ وَلٰكِنَّهُ وَهِمَ فِيْهِ لِأَنَّ هٰذَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ الْمَازِنِيُّ مَازِنِ الْأَنْصَارِ.

بن ابي بكر، عباد بن تميم د خپل پلار نه او هغه د خپل تره، عبداللّٰه بن زيد نه روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم عيدگاه ته تشريف يوړلو، باران د پاره ئې دعا اوكړله، بيائې قبلې ته مخ كړه، او خپل څادرئې آړولې كړه او دوه ركعاته مونځ ئې اوكړه د امام بخاريؒ بيان دے ابن عيينه وائي چه دا هم هغه عبداللّٰه بن زيد آذان والا دے (يعني چه خوب كښې ئې آذان ليدلے وو) ليكن هغه ته وهم شوے دے ځكه چه عبداللّٰه بن زيد بن عاصم مازني د، انصارو مازني قبيلے سره تعلق لرلو.

بَابُ ۶۳۹ : اِنْتِقَامِ الرَّبِّ تَعَالٰى عَزَّ وَجَلَّ مِنْ خَلْقِهٖ بِالْقَحْطِ إِذَا انْتُهِكَ مَحَارِمُهٗ.

باب ۶۳۹ : د اللّٰه تعالي د خپلو بنديانو نه د قحط په ذريعه د بدل اخستو بيان هر كله چه حدود الٰهي مات كړے شيـ[۱].

۱ . د دے سر ليک لاندے نۀ د حديث ذكر كړيدے نه د كوم صحابيؓ قول. ابن رشيد رحمة اللّٰه عليه ويلے دي غالباً دا سر ليک په يو خالي صفحه وؤ د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا اراده وه چه د دے مناسب حديث به ليكم ليكن ياد ورته نشو. او روستو عالمانو دا باب هم دغسے پريخودو. او صحيح بخاري كښې شامل پاتے شو. په بخاري كښې داسے احاديث شته چه ددے سر ليک لاندے راتلے شي.

بَابُ ۶۴۰ : اَلْاِسْتِسْقَآءِ فِي الْمَسْجِدِ الْجَامِعِ.

باب ۶۴۰ : جامع مسجد كښې د باران د دُعا كولو بيان.

۹۵۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوْ ضَمْرَةَ أَنَسُ بْنُ عَيَّاضٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَرِيْكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ نَمِرٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَذْكُرُ أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِنْ بَابٍ كَانَ وِجَاهَ الْمِنْبَرِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ

۹۵۶ : محمد، ابو ضمره، انس بن عياض شريک بن عبداللّٰه بن ابي نمر روايت كوي، هغه د انس بن مالک نه واوريدل، چه يو سړے د جمعے په ورځ په دے دروازه جمات كښې داخل شو، چه د منبر مخے ته وه او رسول اللّٰهؐ ولاړ، وو خطبه ئې وركوله هغه په ولاړه ولاړه رسول اللّٰهؐ طرفته مخ كړو او وے وئيل، يا رسول اللّٰه، د خلقو مال تباه شو لارے بندے شوے نو تاسو د اللّٰه

يَخْطُبُ فَاسْتَقْبَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمًا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْاَمْوَالُ وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يُغِيْثَنَا قَالَ فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اَسْقِنَا اَللّٰهُمَّ اَسْقِنَا اَللّٰهُمَّ اَسْقِنَا قَالَ اَنَسٌ فَلَا وَاللّٰهِ مَا نَرٰى فِي السَّمَآءِ مِنْ سَحَابٍ وَّلَا قَزْعَةٍ وَّلَا شَيْئًا وَّلَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ سِلْعٍ مِّنْ بَيْتٍ وَّلَا وَبَرٍ قَالَ فَطَلَعَتْ مِنْ وَّرَآئِهٖ سَحَابَةٌ مِثْلُ التُّرْسِ فَلَمَّا تَوَسَّطَتِ السَّمَآءَ انْتَشَرَتْ ثُمَّ اَمْطَرَتْ فَوَ اللّٰهِ مَا رَاَيْنَا الشَّمْسَ سَبْتًا ثُمَّ دَخَلَ رَجُلٌ مِّنْ ذٰلِكَ الْبَابِ فِي الْجُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَآئِمٌ يَخْطُبُ فَاسْتَقْبَلَهٗ قَآئِمًا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْاَمْوَالُ وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يُّمْسِكَهَا فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا اَللّٰهُمَّ عَلَى الْاٰكَامِ وَالْجِبَالِ وَالظِّرَابِ وَالْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرَةِ قَالَ فَانْقَطَعَتْ وَخَرَجْنَا نَمْشِيْ فِي الشَّمْسِ قَالَ شَرِيْكٌ فَسَاَلْتُ اَنَسًا اَهُوَ الرَّجُلُ الْاَوَّلُ قَالَ لَا اَدْرِيْ.

نه دعا او غواړئے چه باران او کړي انس اووے رسول اللّٰهؑ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او وے فرمائيل اے خُما اللّٰه، په مونږ باران او کړے، اے خما اللّٰه په مونږ باران او کړے. اے خما اللّٰه په مونږ باران او کړے انس وائي په خدائے چه هغه وخت په آسمان نه څه وريځ، او نه دوريځے څۀ ټکړه او نه څه څيز په نظر راتلو او نه خمونږ اوسلع مينځ کښې څه کور يا مکان وو د سلع د ورستو نه د ډهال برابر، د وريځے يوه ټکړا را څرګنده شوه کوم وخت چه د آسمان مينځ ته راغله، نو هغه وريځ خوره شوله، بيا باران شروع شولو، په خدائے چه، بيا مونږ خلقو يوه هفته پورے نمر او نه ليده بيا يو سړے د هغے دروازے نه د، دوئمے جمعے په ورځ، جماعت کښې داخل شو او رسول اللّٰهؑ ولاړ، وۀ خطبه ئے ورکوله، هغے سړي حضورؐ طرف ته مخ کړے، اودريدلو او وے وئيل، يا رسول اللّٰه د خلقو مال تباه شو، او لارے بندے شوے نو د اللّٰه تعالي نه دعا اوغواړئے، چه باران بند کړي، رسول اللّٰهؑ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل، بيائے اوفرمائيل اے اللّٰه خمونږ نه ګير چاپيره ئے او وروے او په مونږ ئے مه وروے اے خما اللّٰه په غرونو غنډو ډهيرو او د اونو زرغنيدو په ځائے او وروے، د راوي بيان دے چه ما د، انس نه تپوس او که چه هغه، هغه مخکنے سړے وو انس اووے ماته نه ده معلومه.

## باب ۱۲۱ : اَلْاِسْتِسْقَآءِ فِيْ

## باب ۱۲۱ : د جمعے خطبه کښې قبلے ته د مخ

خُطْبَةِ الْجُمُعَةِ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةِ.

٩٥٧ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شَرِيْكٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِنْ بَابٍ نَحْوَ دَارِ الْقَضَاءِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ يَخْطُبُ فَاسْتَقْبَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمًا ثُمَّ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْاَمْوَالُ وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ يُغِيْثُنَا فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا قَالَ اَنَسٌ وَلَا وَاللّٰهِ مَا نَرٰى فِي السَّمَآءِ مِنْ سَحَابٍ وَّ قَزَعَةٍ وَمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ سَلْعٍ مِّنْ بَيْتٍ وَّلَا دَارٍ قَالَ فَطَلَعَتْ مِنْ وَّرَآءِهٖ سَحَابَةٌ مِثْلَ التُّرْسِ فَلَمَّا تَوَسَّطَتْ اِنْتَشَرَتْ فَلَا وَاللّٰهِ مَا رَاَيْنَا الشَّمْسَ سَبْتًا ثُمَّ دَخَلَ رَجُلٌ مِّنْ ذٰلِكَ الْبَابِ فِي الْجُمُعَةِ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ يَّخْطُبُ فَاسْتَقْبَلَهُ قَائِمًا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْاَمْوَالُ وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ يُمْسِكْهَا عَنَّا قَالَ فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا اَللّٰهُمَّ

كولو نه بغير، د باران د دعا كولو بيان.

٩٥٧ : قتيبه بن سعيد، اسماعيل بن جعفر شريك، انس بن مالك روايت كوي، يو سړے جمات كښ د جمعے په ورځ د هغې دروازې نه داخل شو چه دارالقضاء طرفته وه او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ولاړ وو. خطبه ئے وركوله هغې سړے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم طرفته مخ كه. اودريدو او عرض ئے اوكه يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، مال تباه شو او لارے بندے شوے نو تاسو اللّٰه ته سوال اوكړئے چه باران اوكړي، حضورؐ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل بيائے او فرمائيل، اے خما اللّٰه په مونږ باران اوكړے، اے خما اللّٰه په مونږ باران اوكړے د انسؓ بيان دے چه هغه وخت نه په آسمان باندے څه وريځ وه او نه د وريځ څه ټكړه په نظر راتله، او نه خمونږ اوسلع مينځ كښ څه مكان يا كور وو، د سلع د، شانه د وريځے د ډهال برابر يوه ټكړه را پورته شوه، هغه وريځ چه د آسمان مينځ له راغله، نو خوره شوه بيا په خدائے چه يوه هفته پورے مونږ ته نمر په نظر رانغے، بيا هم د هغې دروازے نه، د دويمے جمعے په ورځ يو سړے په جمات كښ داخل شو، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خطبه وركوله هغه سړے په ولاړه ولاړه، حضورؐ ته متوجه شو او عرض ئے اوكه، يا رسول اللّٰهؐ د خلقو مال تباه شو او لارے بندے شوے اللّٰه ته سوال اوكړئے چه باران بند كړي، دراوي بيان دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت كړل، بيائے اوفرمائيل اے خما اللّٰه، خمونږ نه گير چا پيره ئے اووروے، او په مونږ ئے اومه وروے، اے خما اللّٰه په

عَلَى الْآكَامِ وَالظِّرَابِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ قَالَ فَاقْلَعَتْ وَخَرَجْنَا نَمْشِيْ فِي الشَّمْسِ قَالَ شَرِيْكٌ فَسَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَهُوَ الرَّجُلُ الْاَوَّلُ فَقَالَ مَا اَدْرِيْ.

غرونو، غنډو وادو او داونو د زرغنیدو په ځایونو ئے او ورویے، نو باران اودریدلو، او مونږ داسے حال کښې (د جماعت نه) اووتلو، چه نمر کښې روان وو، شریک اووے، ما د انس بن مالک نه تپوس اوکه، چه دا هغه وړمبنے سړے وو (کوم چه دَ باران سوال کړے وو) نو انسؓ اووے ماته پته نشته.

۱ . سَلع د مدینے منورے یو وړوکے غر دے چه د مسجد نبوي نه مغرب طرفته د لس منتهو مزل فاصله باندے دے راوي دا ویل غواړي چه د وریځے څه نښه نښانه، نه وه د سلع طرفته وریخ نه وه غر صفا ښکاریدو . د مسجد نبوي او د غر په مینځ کښې مکانونه نه وو . که وریځ وے نو ضرور به ښکاریده. لیکن د رسول الله صلي الله علیه وسلم دُعا نه پس وریځے راغلے او باران شروع شو .

۲ . فتح الباري کښې د سَبْتًا په ځائے "سِتًّا" لفظ دے شپږ ورځے .

## باب ۶۴۲ : اَلْاِسْتِسْقَاءِ عَلَى الْمِنْبَرِ.

باب ۶۴۲ : په منبر د، باران د دعا کولو بیان.

۹۵۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اِذْجَآءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَحَطَ الْمَطَرُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَسْقِيَنَا فَدَعَا فَمُطِرْنَا فَمَا كِدْنَا اَنْ نَصِلَ اِلٰى مَنَازِلِنَا نُمْطَرُ اِلَى الْجُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ قَالَ فَقَامَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ اَوْ غَيْرُهُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَصْرِفَهُ عَنَّا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا قَالَ فَلَقَدْ رَاَيْتُ السَّحَابَ يَتَقَطَّعُ يَمِيْنًا وَّشِمَالًا يُمْطَرُوْنَ وَلَا يُمْطَرُ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ.

۹۵۸ : مسدد، ابو عوانه، قتاده انس بن مالک روایت کوي، دَ جمعے په ورځ رسول الله صلي الله علیه وسلّم خطبه ورکوله، دے کښې یو سړے راغے او عرض ئے اوکه، یا رسول اللهؐ باران نه کیږي، او الله نه دعا او غواړئے چه په مونږ باران اوکړي، حضورؐ دعا اوکړله نو باران شولو او مونږ خپلو کورونو ته په مشکله واپس شولو بلے جمعے پورے باران وریدلو، د راوي بیان دے چه هغه وړمبے سړے یا بل اودریدلو او عرض ئے اوکه، یا رسول الله، الله نه دعا اوغواړئے، چه باران بند کړي، نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل اے خدا الله خمونږ نه کیر چاپیره ئے اوورویے، او په مونږ ئے مه ورویے، انس اووے ما اولیدل، چه وریځ ټکړے ټکړے شوه. او، ښي او کس طرفته شوه هغے طرف ته باران وریدلو، او د مدینے په خلقو نه وریدلو.

باب ٦٤٣ : مَنِ اكْتَفٰى بِصَلٰوةِ الْجُمُعَةِ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ.

باب ٦٤٣ : د باران دعا کولو کښ د جمعې د مونځ کافي ګڼړلو بيان.

٩٥٩ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ فَدَعَا فَمُطِرْنَا مِنَ الْجُمُعَةِ اِلَى الْجُمُعَةِ ثُمَّ جَآءَ فَقَالَ تَهَدَّمَتِ الْبُيُوْتُ وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ وَهَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ فَقَامَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ عَلَى الْاٰكَامِ وَالظِّرَابِ وَالْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ فَانْجَابَتْ عَنِ الْمَدِيْنَةِ انْجِيَابَ الثَّوْبِ.

٩٥٩ : عبدالله بن بن مسلمه، مالک، شريک بن عبدالله، انس روايت کوي، يو سړے د رسول اللهؐ خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئے او که، چه د خلقو څناور تباه شو اولارے بندے شوے، حضورؐ دعا او کړله يوے جمعے نه تر بلے جمعے پورے باران وريدو بيا هغه سړے راغے او عرض ئے او کړه، چه د خلقو کوروڼه او غورځيدل، لارے بندے شوے، د خلقو څناور تباه شول، نو حضورؐ اودريدلو، او وے فرمائيل اے الله په غرونو، غنډو، وادو، او د او نوزر غنيدو په ځائے ئے اووروے نو د مدينے نه وريځ او شليده څنګه چه کپړه شليږي (يعني لرے شوه).

باب ٦٤٤ : اَلدُّعَآءِ اِذَا تَقَطَّعَتِ السُّبُلُ مِنْ كَثْرَةِ الْمَطَرِ.

باب ٦٤٤ : د باران، د زياتي په وجه، چه لارے بندے شي، نو د دعا کولو بيان.

٩٦٠ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ فَدَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمُطِرُوْا مِنْ جُمُعَةٍ اِلٰى فَجَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَهَدَّمَتِ الْبُيُوْتُ

٩٦٠ : اسماعيل، مالک شريک بن عبدالله ابي نمر، انس بن مالکؓ روايت کوي، يو سړے د رسول اللهؐ په خدمت کښې حاضر شولو، او عرض ئے او که، يا رسول اللهؐ د خلقو ډنګر مره شو لارے بندے شوے نو تاسو د الله نه دعا او غواړئے. رسول اللهؐ دعا او کړه نو د يوے جمعے نه تر بلے جمعے باران وريدلو بيا يو سړے رسول الله صلي الله عليه وسلم له راغے. او عرض ئے او که يا رسول اللهؐ د خلقو کوروڼه او غرځيدل لارے بندے شوے د خلقو څناور مره شول نو رسول اللهؐ او فرمائيل، يا الله

وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ وَهَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ عَلٰى رُءُوْسِ الْجِبَالِ وَالْاٰكَامِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ فَانْجَابَتْ عَنِ الْمَدِيْنَةِ اِنْجِيَابَ الثَّوْبِ.

د غرونو په څوکو، په غنډو او لاندې وادو، او، د اونو تو کېدو په ځايونو باران اوورو ې نو باران د مدينې نه (لرې شو) او شليدو څنګه چه کپړه او شليږي.

**باب ۶۴۵ : مَا قِيْلَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّلْ رِدَآءَهُ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.**

**باب ۶۴۵ :** د هغې روايت بيان چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به د جمعې په ورځ د باران په دعا کښې خپل څادر، آړولې کولو.

**۹۶۱ :** حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ بِشْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَافِي ابْنُ عِمْرَانَ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَجُلًا شَكَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَاكَ الْمَالِ وَجَهْدَ الْعِيَالِ فَدَعَا اللّٰهَ يَسْتَسْقِيْ وَلَمْ يَذْكُرْ حَوَّلَ رِدَآءَهُ وَلَا اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ.

**۹۶۱ :** حسن بن بشر، معاني بن عمران اوزاعي، اسحاق بن عبداللّٰه بن ابي طلحه، انس روايت کوي چه يو سړي د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې د مال د تباهئ او د بچو د مصيبت شکايت اوکه، نو حضورؐ د اللّٰه تعالىٰ په دربار کښې د باران دعا اوکړله. ليکن دا بيان ئې او نه که چه قبلې طرف ته ئې مخ کړې وو.

**باب ۶۴۶ : اِذَا شَفَعُوْا اِلَى الْاِمَامِ لِيَسْتَسْقِيْ لَهُمْ لَمْ يَرُدَّهُمْ.**

**باب ۶۴۶ :** هر کله چه خلق، د باران د دعا، د پاره امام ته سفارش اوکړي، نو هغه د نه رد کوي.

**۹۶۲ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ فَادْعُ اللّٰهَ فَدَعَا اللّٰهَ فَمُطِرْنَا مِنَ الْجُمُعَةِ اِلَى الْجُمُعَةِ فَجَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**۹۶۲ :** عبداللّٰه بن يوسف، مالک، شريک بن عبداللّٰه بن ابي نمر، انس بن مالکؓ روايت کوي، د هغه بيان دې چه يو سړې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې او که يا رسول اللّٰهؐ د خلقو ځناور مره شو لارې بندې شوې تاسو د اللّٰه نه دعا اوغوارئې حضورؐ دعا اوکړله نو يوې جمعې نه بلې جمع پورې باران وريدو بيا يو سړې د نبيؐ په خدمت کښې حاضر شو او

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَهَدَّمَتِ الْبُيُوْتُ وَتَقَطَّعَتِ السُّبُلُ وَهَلَكَتِ الْمَوَاشِيُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ عَلٰى ظُهُوْرِ الْجِبَالِ وَالْاٰكَامِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ فَانْجَابَتْ عَنِ الْمَدِيْنَةِ اِنْجِيَابَ الثَّوْبِ.

عرض ئے او کہ یا رسول اللّٰہؐ د خلقو مکانات او غرخیدل لارے بندے شوے او د خلقو خناور مرہ شول نو رسول اللّٰہؐ او فرمائیل یا اللّٰہ د غرونو پہ شا غنڈو باندے وادو باندے او د اونو زرغنیدو ځایونو باندے باران او وروے نو وریځ د مدینے نہ داسے اوشلیدہ څنگہ چہ کپړہ شلیږي.

## بــاب ٦٤٧ : اِذَا اسْتَشْفَعَ الْمُشْرِكُوْنَ بِالْمُسْلِمِيْنَ عِنْدَ الْقَحْطِ.

## باب ٦٤٧ : د قحط پہ وخت د مشرکانو مسلمانانو تہ د دعا کولو خواست.

٩٦٣ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ وَالْاَعْمَشُ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ اَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ فَقَالَ قُرَيْشًا اَبْطَأُوْا عَنِ الْاِسْلَامِ فَدَعَا عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ فَاَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ حَتّٰى هَلَكُوْا فِيْهَا وَاَكَلُوا الْمَيْتَةَ وَالْعِظَامَ فَجَآءَهُ اَبُوْ سُفْيَانُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ جِئْتَ تَأْمُرُ بِصِلَةِ الرَّحِمِ وَاِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوْا فَادْعُ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ فَقَرَاَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ الاية ثُمَّ عَادُوْا اِلٰى كُفْرِهِمْ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى يَوْمَ بَدْرٍ وَزَادَ اَسْبَاطُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ فَدَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسُقُوْا الْغَيْثَ فَاَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ سَبْعًا

٩٦٣ : محمد بن کثیر سفیان، منصور، و، اعمش، ابو الضحي، مسروق نہ روایت کوي، مسروق اووے، زہ ابن مسعود لہ ورغلم، نو ھغہ اووے، چہ کفار قریشو ایمان راوړلو کښې تاخیر او کہ، ہ ھغوي پہ حق کښې نبيؐ بد دعا او کړلہ، نو ھغوي قحط کښې اختہ شو تر دے چہ ھغوي پہ کښې ھلاک شولو او مردارے او ھډوکي بہ ئے خوړل، نو حضورؐ لہ ابو سفیان راغے او ورتہ ئے اووے، اے محمدؐ تہ د صلہ رحمي حکم ورکوے، او ستا قوم ھلاکیږي، اللّٰہ نہ دعا اوغواړہ، نو حضورؐ دا ایت د آخرہ پورے اولوست د ھغے ورځے انتظار او کړہ، چہ آسمان بہ ځر گند لوگے را برسیرہ کړي، بیا ھغوي خپل کفر تہ او گرځیدل د اللّٰہ تعالٰي قول، پہ کومہ ورځ چہ مونږ د ھغوي سختہ نیوکہ او کړو کښې د بطشہ نہ مراد، د بدر ورځ دہ، او اسباط پہ روایت د منصور دے زیادتي سرہ روایت کړے دے چہ رسول اللّٰہؐ دا او کړلہ نو باران اوشولو او پرلہ پسے اوہ ورځے باران وریدلو او خلقو د باران د زیاتي شکایت او کہ نو نبيؐ اوفرمائیل، اے اللّٰہ

وَشَكَا النَّاسُ كَثْرَةَ الْمَطَرِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا فَلْتَحَدَّرَتِ السَّحَابَةُ عَنْ رَأْسِهِ فَسُقُوْا النَّاسُ حَوْلَهُمْ.

خلقو په کثرت د باران شکایت وکړو نو نبي کریم ﷺ دعا وکړه: خمونږ نه ګېر چاپېره ئې اوورووي او په مونږ ئې مه ورووي نو وریځ د حضورؐ د سر نه لرې شوه او د خلقو چار چاپېره باران کېدلو.

۱. دلته چه کومه واقعه بیان شویده دا د مکې مکرمې واقعه ده. د کفارو د سر کشئ او د نافرمانئ په وجه رسول الله صلي الله علیه وسلم ورته خېرې (بددعائي) اوکړې او په کافرو قحط راغې. ابو سفیان رضي الله عنه دغه وخت کښې کافر وو. د رسول الله صلي الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او اوئې وئيل ته د صله رحمئ (د خپلولئ د پاللو) حکم ورکوې ستا قوم ستا خپلوان دي لیکن د خلقو په حلقه تا سختې خېرې اوکړې اوس رحم اوکړه د خپل قوم د پریشانئ لرې کولو د پاره دعا اوکړه. په حدیث شریف کښې دې وضاحت نشته چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم ددوي په حق کښې دوباره دعا کړې وه. لیکن د حدیث شریف د الفاظو نه معلومیږي چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم د قحط د ختمېدو د پاره دعا اوکړه نو قحط ختم شو. لیکن د مکې د خلقو سرکشي او مخالفت برابر جاري وو. نو بیا دا آیت شریف نازل شو.

يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى کومه ورځ چه مونږ په لوئې نیوکې سره دوي اونیسو.

دا لویه نیوکه د بدر غزاوه چه پکښې د قریشو لوئې لوئې سرداران قتل شو او څه سرداران ئې ګرفتار شو. او ډېر په بدحال قریش د میدان جنګ نه واپس لاړل. "الدمیاطي" لیکلي دي. چه د ټولو نه اول رسول الله صلي الله علیه وسلم هغه وخت خېرې کړې وې کله چه کافرانو په حرم کښې د سجدې په حالت کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلم په شا مبارکه باندې لرې (اوجھڑی) اچولې وې. ټول کافر په دې خوشاله وو خنداګانې ئې کولې، کله چه د مکې د کافرانو سرکشي او فساد دومره زیات شو چه د رسول اکرم صلي الله علیه وسلم پشان صبر کونکي برداشت کونکي د مبارکې ژبې نه خېرې رااوتلې کله چه د کافرو د ایمان راوړلو څه امید پاتې نشوبلکې ددغې په دنیا کښې شته والې د شر فساد ورانئ سبب اوګرځېده نو ددې شر فساد ختمولو د پاره آخري تدبیر خېرې وې. د رسول اکرم صلي الله علیه وسلم د مبارکې ژبې نه هیچرې داسې خېرې نه وې وتلې چه ټول قوم تباه شي څکه چه د عربو د اکثرو خلقو په تقدیر کښې ایمان راوړل وو. دې روایت کښې د "اسباط" په ذریعه چه کومه حصه بیان شویده د هغې تعلق مکې سره نه دې بلکې د مدینې منورې سره دې. اسباط چه د منصور په واسطې سره کوم حدیث نقل کړېدې ددې تفصیل ددې نه وړاندې څو بابونو کښې تیر شویدې. امام بخاري رحمة الله علیه چه دوه حدیثونه خائې ګډ کړیدي دا ګډوډي د کوم راوي نه ده. دِمیاطي ویلې دي دا پخپله امام بخاري رحمة الله علیه کړیده.

## بَابٌ ۶۴۸: اَلدُّعَاءُ اِذَا كَثُرَ الْمَطَرُ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا.

باب ۶۴۸: د باران د زیاتي په وخت دا دعا کول چه خمونږ نه ګېر چاپېره دې او وریږي او په مونږ دې نه وریږي.

۹۶۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ ۹۶۴: محمد بن ابي بکر، معتمر، عبدالله، ثابت

بكر قال حدثنا معتمر عن عبيد الله عن ثابت عن انس قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يخطب يوم الجمعة فقام الناس فصاحوا فقالوا يا رسول الله قحط المطر واحمرت الشجر وهلكت البهائم فادع الله ان يسقينا فقال اللهم اسقنا مرتين وايم الله ما نرى في السماء قزعة من سحاب فنشأت سحابة وامطرت ونزل عن المنبر فصلى فلما انصرف لم تزل تمطر الى الجمعة التي تليها فلما قام النبي صلى الله عليه وسلم يخطب صاحوا اليه تهدمت البيوت وانقطعت السبل فادع الله يحبسها عنا فتبسم النبي صلى الله عليه وسلم وقال اللهم حوالينا ولا علينا وتكشطت المدينة فجعلت تمطر حولها وما تمطر بالمدينة قطرة فنظرت الى المدينة وانها لفي مثل الاكليل.

انس نه روایت کوی انس او فرمایل چه رسول الله د جمعې په ورځ خطبه ورکوله نو خلق او دریدل شور یې جوړ کړو اووې ویل یا رسول الله باران بند شوی دی اونې سرې شوې څاروی تباه شو نو د الله نه دعا اوغواړئ چه باران اوکړی حضور دوه ځله او فرمایل اې خدایه په مونږ باران اوکړې او د الله قسم آسمان کښې د وریځې یوه ټکړه هم په نظر نه راتله چه د وریځې یوه ټکړه راښکاره شوه او باران شروع شو حضور د منبر نه راکوز شولو مونځ یې اوکړلو کوم وخت چه فارغ شو نو د هغې نه پس د دریمې جمعې پورې باران وریدلو کوم وخت چه نبی خطبې ورکولو د پاره اودریدلو نو خلقو شور جوړ کړو اووې ویل د خلقو کورونه او غورځیدل اولارې بندې شوې نو (یا رسول الله) تاسو دعا او غواړئ چه الله تعالی باران بند کړی نو نبی صلی الله علیه وسلم مسکی شو او یې ویل اې خدایه خوښ نه کیږ چاپیره یې اووروې او په مونږ یې مه وروې نو د مدینې نه وریځ لرې شوه او ګیر چاپیره ترې باران وریدلو لیکن مدینه کښې یو څاڅکې هم نه کیدلو ما مدینه لیدله چه هغه د تاج په شان ښانده وه.

۱ ددې حدیث شریف څو روایتونه وړاندې تیر شویدی په دې روایت کښې څه زیاتې نوې خبرې دی مثلاً چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم خطبه ورکوله نو عامو خلقو فریاد اوکړو ظاهره دا چه ټول خلق بې نشانه وو نو کله چه یو سړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د دعا درخواست اوکړو نو ټولو خلقو یې تائید کړې وو د کومې واقعې په حقله راوی د واقعې ټول تفصیلات بیانولی نشی ددې وجې نه بعضې روایاتو کښې په ظاهره اختلاف معلومیږی په حقیقت کښې ټول راویان خبره صحیح بیانوی. مدینه منوره کښې دومره ډیر زیات باران شوې وو چه د سیلاب خطره وه. د مدینې منورې په خوا وشا کښې د باران ضرورت وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې دعا اوکړه چه چرته د باران کمې دې هلته دې باران اوشی

**بَاب ٦٤٩: اَلدُّعَاءِ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ قَائِمًا** وَقَالَ اَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ عَنْ زُهَيْرٍ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ خَرَجَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ الْاَنْصَارِيُّ وَخَرَجَ مَعَهُ الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ وَزَيْدُ بْنُ اَرْقَمَ فَاسْتَسْقٰى فَقَامَ لَهُمْ عَلٰى رِجْلَيْهِ عَلٰى غَيْرِ مِنْبَرٍ فَاسْتَسْقٰى ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ يَجْهَرُ بِالْقِرَآءَةِ وَلَمْ يُؤَذِّنْ وَلَمْ يُقِمْ قَالَ اَبُوْ اِسْحَاقَ وَرَاٰىُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**باب ٦٤٩:** استسقاء کښې په ولاړه د دعا کولو بيان او مونږ ته ابو نعيم په واسطه د زهير، ابو اسحاق بيان اوکه، چه عبدالله بن يزيد انصاري راووتلو او هغه سره براء بن عازب او يزيد بن ارقم هم راووتلو او د باران دعائے اوکړله او په خپلو دواړو پښو بغير منبر نه اودريدلو او دعائے اوکړله بيائے دوه رکعاته جهر سره اوکړل او نه اذان او شو او نه اقامت او د ابو اسحاق بيان دے چه عبدالله بن يزيد نبي صلي الله عليه وسلم ليدلے وو[١].

١. عبدالله بن يزيد رضي الله عنه صحابي وو ځکه چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم د استسقاء د پاره ليدلے وو چه هغه دعا کوله هغه شان عبدالله بن يزيد رضي الله عنه د استسقاء د پاره دعا اوکره.

**٩٦٥:** حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبَّادُ بْنُ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِيْ لَهُمْ فَقَامَ فَدَعَا اللّٰهَ قَائِمًا ثُمَّ تَوَجَّهَ قِبَلَ الْقِبْلَةِ وَحَوَّلَ رِدَآءَهٗ فَاُسْقُوْا.

**٩٦٥:** ابو اليمان، شعيب، زهري، عباد بن تميم د خپل تره عبدالله بن يزيد نه، چه صحابي وو، روايت کوي د هغه بيان دے چه نبي صلي الله عليه وسلم خلقو سره د استسقاء د مونځ د پاره اووتلو حضورؐ اودريدلو او په ولاړه ولاړه ئے د الله نه دعا اوغوښتله بيا قبلے ته متوجه شو خپل څادرئے اړولے که نو باران اوشولو.

**بَاب ٦٥٠: اَلْجَهْرُ بِالْقِرَآءَةِ فِي الْاِسْتِسْقَآءِ**

**باب ٦٥٠:** استسقاء کښې په جهر د قرات کولو بيان.

**٩٦٦:** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ خَرَجَ النَّبِيُّ

**٩٦٦:** ابو نعيم، ابن ابي ذئب، زهري، عباد بن تميم د خپل تره نه روايت کوي چه نبي صلي الله عليه وسلم د استسقاء د مونځ د پاره اووتلو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَسْقِيْ فَتَوَجَّهَ اِلَى الْقِبْلَةِ يَدْعُوْا وَحَوَّلَ رِدَآءَ هٗ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ يَجْهَرُ فِيْهِمَا بِالْقِرَآءَ ةِ.

قبلے ته ئے مخ كه او دعائے اوغوښتله خپل څادرئے اړولے كه بيائے دوه ركعاته مونځ اوكه او دواړو ركعاتو كښې ئے اوچت آواز سره قرات اوكه.

## بَاب ٢٥١: كَيْفَ حَوَّلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهٗ اِلَى النَّاسِ.

## باب ٢٥١: نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خلقو طرف ته ځنګه خپله شا اوكړځوله.

٩٦٧: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَرَجَ يَسْتَسْقِيْ قَالَ فَحَوَّلَ اِلَى النَّاسِ ظَهْرَهٗ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ يَدْعُوْ ثُمَّ حَوَّلَ رِدَاءَ هٗ ثُمَّ صَلّٰى لَنَا رَكْعَتَيْنِ جَهَرَ فِيْهِمَا بِالْقِرَآءَ ةِ.

٩٦٧: آدم، ابن ابي ذئب، زهري، عباد بن تميم د خپل تره نه روايت كوي، د هغه بيان دے ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په هغه ورځ اوليده. چه حضور استسقاء د پاره اووتلو نو خلقو طرفته ئے شا كړه قبلے ته ئے مخ كه دعا ئے اوكړه خپل څادرئے اړولے كه بيائے مونږ ته دوه ركعاته مونځ راكړلو او دواړو ركعاتو كښې ئے اوچت آواز سره قرات اوكه.

## بَاب ٢٥٢: صَلٰوةِ الْاِسْتِسْقَآءِ رَكْعَتَيْنِ

## باب ٢٥٢: د استسقاء د دوو ركعتونو كولو بيان.

٩٦٨: حَدَّثَنِيْ قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَمِّهٖ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَسْقٰى فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَ قَلَّبَ رِدَآءَ هٗ.

٩٦٨: قتيبه بن سعيد، سفيان، عبداللّٰه بن ابي بكر، عباد بن تميم د خپل تره نه روايت كوي چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د استسقاء مونځ اوكړلو نو دوه ركعاته ئے اوكړل بيائے خپل څادر واړولو.

## بَاب ٢٥٣: اَلْاِسْتِسْقَآءَ فِي الْمُصَلّٰى.

## باب ٢٥٣: عيدګاه كښې د استسقاء مونځ كولو بيان.

٩٦٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

٩٦٩: عبداللّٰه بن محمد، سفيان،

مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ سَمِعَ عَبَّادَ بْنَ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُصَلَّى يَسْتَسْقِي وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَقَلَبَ رِدَاءَهُ قَالَ سُفْيَانُ وَأَخْبَرَنِي الْمَسْعُودِيُّ عَنْ أَبِي بَكْرٍ قَالَ جَعَلَ الْيَمِينَ عَلَى الشِّمَالِ.

عبدالله بن ابي بكر نه هغه د عباد بن تميم نه هغه د خپل تره نه روايت كړى دے چه نبي صلى الله عليه وسلم د استسقاء د مونځ د پاره اووتلو قبلے ته ئې مخ كړو دوه ركعته مونځ ئې اوكړو او خپل څادر ئې اړولے كړو سفيان اووئيل چه ما ته مسعودي د ابو بكر نه خبر راكړو چه حضور صلى الله عليه وسلم هغه ښي كنارے ته چپه كنارے اوړوه واچولو.

## بَابُ ۲۵۴ : اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ فِي الْاسْتِسْقَاءِ

## باب ۲۵۴ : استسقاء كښې مخ په قبله كيدو بيان.

۹۷۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَنَّ عَبَّادَ بْنَ تَمِيمٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ زَيْدٍ الْأَنْصَارِيَّ أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى الْمُصَلَّى يُصَلِّي وَأَنَّهُ لَمَّا دَعَا أَوْ أَرَادَ يَدْعُوا اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ هٰذَا مَازِنِيٌّ وَالْأَوَّلُ كُوفِيٌّ هُوَ بْنُ يَزِيدَ.

۹۷۰ : محمد بن عبدالوهاب يحيي بن سعيد ابو بكر بن محمد عباد بن تميم عبدالله بن زيد انصاري نه روايت كوي د هغه بيان دے چه نبي صلى الله عليه وسلم عيد گاه طرف ته د مونځ كولو د پاره اووتلو او چه دعا ئې اوكړله يا د دعا اراده ئې اوكړله نو قبلے ته ئې مخ كړو او خپل څادر ئې اړولے كړو ابو عبدالله (امام بخاري) اووئې چه دا عبدالله بن زيد مازني دے او څوك چه وړمبے دے هغه عبدالله بن يزيد دے.

## بَابُ ۲۵۵ : رَفْعِ النَّاسِ أَيْدِيَهُمْ مَعَ الْإِمَامِ فِي الْاسْتِسْقَاءِ

## باب ۲۵۵ : استسقاء كښې د خلقو امام سره د خپلو لاسونو اوچتولو بيان.

وَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ أُوَيْسٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ قَالَ يَحْيَى ابْنُ

او ابو ايوب بن سليمان په سند د ابو بكر بن اويس سليمان بن بلال يحيي بن سعيد بيان اوكړو چه انس بن مالك

سعيد سمعت انس بن مالك قال اتى رَجُلٌ اَعْرَابِيٌّ مِنْ اَهْلِ الْبَدْوِ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْمَاشِيَةُ هَلَكَ الْعِيَالُ هَلَكَ النَّاسُ فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ يَدْعُوْا وَ رَفَعَ النَّاسُ اَيْدِيَهُمْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْنَ قَالَ فَمَا خَرَجْنَا مِنَ الْمَسْجِدِ حَتّٰى مُطِرْنَا فَمَازِلْنَا نُمْطَرُ حَتّٰى كَانَتِ الْجُمُعَةُ الْاُخْرٰى فَاَتَى الرَّجُلُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَشِقَ الْمُسَافِرُ وَمُنِعَ الطَّرِيْقُ بَشِقَ اَىْ مَلَّ وَقَالَ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنِىْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرَ عَنْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ وَشَرِيْكٍ قَالَا سَمِعْنَا اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى رَاَيْتُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ.

اوريدے شو كښې وائي چه يو ... د نبي صلى الله عليه وسلم خدمت كښې د جمعې په ورځ حاضر شو او عرض ئې اوكړو يا رسول الله څاروى او بچي هلاک شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم لاس اوچت كړل دعا ئې اوكړه او خلقو هم رسول الله سره لاس اوچت كړل او دعا ئې اوكړله د انس بيان دے چه مونږ خلق د جمات نه لا وتلي هم نه وو چه باران شروع شو او كيدلو تر دے چه بلے جمعې ته اورسيدلو نو بيا سړے د نبي صلى الله عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو يا رسول الله مسافر ستړے شو لارے بندے شوے بشق معني مل دي يعني ستړي ستومانه شو او اويسي اووے چه ماته محمد بن جعفر د يحيي بن سعيد او شريک نه اووے د هغے دواړو بيان دے چه مونږ د انس نه د نبي روايت واوريدلو چه حضورﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل تر دے چه د حضورﷺ د ترخونو سفيدي په نظر راغله.

۱. د ابو داود شريف په مرسل روايتونو كښې دا حديث شريف هم داسے دے چه د استسقاء نه بغير به نبي كريم صلى الله عليه وسلم په هيڅ يوه دعا كښې لاس نه اوچتول ددے حديث شريف نه معلوميږي چه د امام بخاري رحمة الله عليه د لاس اوچتولو نه د انكار مطلب دا دے چه ډير زيات به ئې لاسونه نه پورته كول په استسقاء كښې به ئې دومره زيات پورته كول چه د ترخونو سپين والے به ئې ښكاريدو ددے روايت نه دا نه ثابتيږي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دعاګانو كښې لاسونه نه پورته كول. امام نووي رحمة الله عليه داسے ډيرش احاديث ليكلي دي. چه په هغے كښې د دعا نه وخت د لاسونو اوچتولو ثبوت شته دے نو دا وهم دے او يقينا غلطه خبره ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د دعا د پاره لاسونه نه اوچتول.

**باب : رَفعِ الْاِمَامِ يَدَهُ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ.**

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى وَابْنُ عَدِيّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْئٍ مِّنْ دُعَآئِهِ اِلَّا فِي الْاِسْتِسْقَآءِ وَاِنَّهُ يَرْفَعُ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ اِبْطَيْهِ.

**باب : استسقاء كښې د لاس اوچتولو بيان**

**حديث :** محمد بن بشار، يحيي و ابن عدي، سعيد، قتاده انس بن مالک نه روايت کوي، د هغه بيان دے چه حضورﷺ د استسقاء نه بغير بله دعا کښې خپل لاس (زيات) نه اوچتولو، او استسقاء کښې به نبے لاسونه دومره زيات اوچتول چه د حضورﷺ د ترخونو سپين والے به په نظر راتلو.

**بَاب ٦٥٦ : مَا يُقَالُ اِذَا مَطَرَتْ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَصَيِّبٍ اَلْمَطَرُ وَقَالَ غَيْرُهُ صَابَ وَاَصَابَ يَصُوْبُ.**

**باب ٦٥٦ :** چه باران اوشي نو څه کول پکار دي او ابن عباس او فرمائيل، چه صيب نه (قرآن کښې) مراد باران دے او د هغه نه علاوه نورو اصحابو ونيلے دي چه صاب، اصاب، يصوب نه ماخوذ دے.

**٩٧١ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا رَاَى الْمَطَرَ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَّافِعًا تَابَعَهُ الْقَاسِمُ بْنُ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَرَوَاهُ الْاَوْزَاعِيُّ وَعُقَيْلٌ عَنْ نَّافِعٍ.

**٩٧١ :** محمد بن مقاتل، عبدالله، عبيد الله نافع، قاسم بن محمد بي بي عائشےؓ نه روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به باران اوليدلو نو فرمائيل به ئے اے الله نفع رسونکے باران اووروے او قاسم بن يحيي د عبيد الله نه ددے متابع حديث روايت کړے دے اودا اوزاعي او عقيل د نافع نه روايت کړے دے.

**بَاب ٦٥٧ : مَنْ تَمَطَّرَ فِي الْمَطَرِ حَتّٰى يَتَحَادَرَ عَلٰى لِحْيَتِهِ.**

**باب ٦٥٧ :** د هغه سړي بيان چه باران کښې اودريږي تر دے چه ږيره ئے لونده شي.

**٩٧٢ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ

**٩٧٢ :** محمد بن مقاتل، عبدالله، اوزاعي اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه انصاري،

اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ انْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ اَصَابَتِ النَّاسَ سَنَةٌ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَامَ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَ الْمَالُ وَجَاعَ الْعِيَالُ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّسْقِيَنَا قَالَ فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَمَا فِي السَّمَآءِ قَزَعَةٌ قَالَ فَثَارَ سَحَابٌ اَمْثَالَ الْجِبَالِ ثُمَّ لَمْ يَنْزِلْ عَنْ مِنْبَرِهٖ حَتّٰى رَاَيْتُ الْمَطَرَ يَتَحَادَرُ عَلٰى لِحْيَتِهٖ قَالَ فَمُطِرْنَا يَوْمَنَا ذٰلِكَ وَمِنَ الْغَدِ وَمِنْ بَعْدِ الْغَدِ وَالَّذِيْ يَلِيْهِ اِلَى الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى فَقَامَ ذٰلِكَ الْاَعْرَابِيُّ اَوْ رَجُلٌ غَيْرُهٗ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَهَدَّمَ الْبِنَآءُ وَغَرِقَ الْمَالُ فَادْعُ اللّٰهَ لَنَا فَرَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا قَالَ فَمَا جَعَلَ يُشِيْرُ بِيَدَيْهِ اِلٰى نَاحِيَةٍ مِّنَ السَّمَآءِ اِلَّا تَفَرَّجَتْ حَتّٰى صَارَتِ الْمَدِيْنَةُ فِيْ مِثْلِ الْجَوْبَةِ حَتّٰى سَالَ الْوَادِيْ وَادِيْ قَنَاةَ شَهْرًا قَالَ فَلَمْ يَجِئْ اَحَدٌ مِّنْ نَاحِيَةٍ اِلَّا حَدَّثَ بِالْجُوْدِ.

انس بن مالک نه روایت کوي د هغه بیان دے چه یو کال د رسول اللّٰهؐ زمانه کښې خلق قحط کښې آخته شو دے دوران کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د جمعے په ورځ خطبه لوستله چه یو اعرابي (بانډیسے) راغے. او دریدلو او عرض نے اوکه: یا رسول اللّٰه مال تباه شو بچي اوږي دي. نو تاسو د اللّٰه نه مونږ د پاره د باران دعا اوغواړے. انس واني رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او هغه وخت په آسمان د وریځے یوه ټکړه هم نه وه انس اووے وریځے د غرونو په شان راښکاره شوے بیا حضورؐ د منبر نه لا راکوز شوے هم نه وو چه ما اولیدل د باران څاڅکي یا د حضورؐ په ګیره مبارکه بهیدل. د هغے نه بس په دریمه ورځ بلکه دریمے جمعے پورے باران وریدلو نو هغه اعرابي او دریدلو یا د هغه نه علاوه څوک بل سړے او دریدلو اووے وییل یا رسول اللّٰه مکانات راوغرځیدل مال ډوب شو. تاسو مونږ د پاره اللّٰه نه دعا اوغواړئ نو رسول خدا صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت کړل اووے فرمائیل اے خما اللّٰه خمونږ نه ګیر چاپیره نے اوورووے او په مونږ نے مه وروے د انس بیان دے چه حضورؐ به د آسمان کوم طرفته د لاسونو سره اشاره کوله نو د هغے طرفته وریځ به لرے کیده تر دے چه مدینه د حوض په شان شوه او وادي قناة یو میاشتے پورے بهیدله او کوم سړے چه به د هغے طرفته راتلو نو د باران د خوبي ذکر به نے کولو.

**باب ۲۲۰ : مَا قِيلَ فِي الزَّلَازِلِ وَالْآيَاتِ.**

**۲۲۰ : د زلزلو او د قیامت د نښو په حقله د روایتونو بیان.**

۹۷۵ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ وَتُكْثَرَ الزَّلَازِلُ وَيَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَتَظْهَرَ الْفِتَنُ وَيَكْثُرَ الْهَرْجُ وَهُوَ الْقَتْلُ حَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمُ الْمَالُ فَيَفِيضُ.

۹۷۵ : ابو الیمان، شعیب، ابو الزناد، عبدالرحمن ابو هریره نه روایت کوي، نبي او فرمایل قیامت به هغه وخت پورې نه قائمیږي ځو پورې چه علم او چت نشي او زلزلې به کثرت سره وي او زمانه به یو بل ته قریب شي او فتنه او فسادونه به څرګند شي او د هرج به کثرت وي، هرج نه مراد قتل دے قتل. تر دې چه تاسو کښې به مال ډیر زیات شي، دا شان چه بهیږي به (او څوک احستونکے به نے نه وي).

۹۷۶ : حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ الْحَسَنِ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي شَامِنَا وَفِي يَمَنِنَا قَالَ قَالُوا وَفِي نَجْدِنَا قَالَ قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي شَامِنَا وَفِي يَمَنِنَا قَالُوا وَفِي نَجْدِنَا قَالَ هُنَالِكَ الزَّلَازِلُ وَالْفِتَنُ وَبِهَا يَطْلَعُ قَرْنُ الشَّيْطٰنِ.

۹۷۶ : محمد بن مثنى، حسين بن حسن ابن عون، نافع ابن عمر نه روایت کوي، ابن عمر او فرمایل، اے الله خمونږ د پاره خمونږ شام کښې او خمونږ یمن کښې برکت راچولے کړے حلقو ورته اووے او خمونږ نجد کښې نو هغوی اووے اے الله مونږ د پاره خمونږ شام کښې او خمونږ یمن کښې برکت راچولے کړے. حلقو اووے او خمونږ نجد کښې نو هغوی اووے هلته به زلزلے او فتنے وي او هغے ځائے کښې به د شیطان ښکر راخیژي.[۱]

[۱] په دې روایت کښې دا ذکر نشته چه څه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او فرمایل هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان وو. قابسي رحمة الله عليه لیکلي دي چه دلته کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ذکر پاتې شویدے حکه چه بخپله د خان نه، عبدالله بن عمر رضي الله عنهما داسے نشو ویلے. دا بیان د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرفه پکار وو په بعضے روایتونو کښې دا حدیث شریف مرفوع ذکر دے کتاب الفتن کښې به دا حدیث شریف بیا راحي.

**باب ۲۲۱ : قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شُكْرَكُمْ.**

**باب ۲۲۱ : د الله تعالى ددې ارشاد بیان، چه** تاسو دروغ خپل رزق ګرځوئے ابن عباس اوفرمایل د رزق نه مراد شکر دے.

۹۷۷ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ لَبِيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ اَنَّهُ قَالَ صَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَّةِ عَلٰى اَثَرِ سَمَآءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلَةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا ذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ اَصْبَحَ مِنْ عِبَادِيْ مُؤْمِنٌ بِيْ وَكَافِرٌ بِالْكَوَاكِبِ وَ اَمَّا مَنْ قَالَ بِنَوْءِ كَذَا وَ كَذَا فَذٰلِكَ كَافِرٌ بِيْ مُؤْمِنٌ بِالْكَوَاكِبِ.

۹۷۷ : اسماعیل، مالک، صالح بن کیسان عبید الله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود، زید بن خالد جهني روایت کوي هغه اووې رسول الله صلي الله علیه وسلم مونږ ته د سحر مونځ حدیبیه کښې راکړلو د شپې باران شو کوم وخت چه نبي صلي الله علیه وسلم د مونځ نه فارغ شو نو خلقو ته متوجه شو اووې فرمائیل تاسو ته معلومه ده چه ستاسو رب څه اوفرمائیل، خلقو جواب ورکه الله او د هغه رسول ښه پوهیږي. حضور اووې الله تعالي او فرمائیل چه څما بندیانو کښې په ما ایمان راوړونکو او خمانه انکار کونکو (یعني کافرو) صبا که چا چه اووې چه په ما د الله د فضل او د رحمت نه باران شو نو هغه په ما ایمان راوړنکې دې او دستورو نه منکر دې او چا چه اووې چه د فلاني فلاني ستورو په وجه باران اوشو نو هغه زمانه منکر دې او په ستوري ایمان راوړونکې دې.

بَاب ۶۶۲ : لَا يَدْرِيْ مَتٰى يَجِيْءُ الْمَطَرُ اِلَّا اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسٌ لَا يَعْلَمُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ.

باب ۶۶۲ : د الله تعالي نه سوا هیڅوک په دې نه پوهیږي چه باران به کله کیږي، او ابو هریرة د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کړې دې پنځه څیزونه داسې دي چه په هغې د خدائې نه سوا بل څوک نه پوهیږي.

۹۷۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا اللّٰهُ لَا يَعْلَمُ اَحَدٌ مَّا يَكُوْنُ فِيْ غَدٍ وَلَا يَعْلَمُ اَحَدٌ مَا يَكُوْنُ فِي الْاَرْحَامِ وَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا ذَا تَكْسِبُ غَدًا

۹۷۸ : محمد بن یوسف، سفیان، عبدالله بن دینار، ابن عمر نه روایت کوي، ابن عمر اووې رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، د غیب کنجیانې پنځه دي او په هغې د خدائې نه سوا بل څوک نه پوهیږي هیچا ته نه ده معلومه چه صبا له به څۀ کیږي او نه په دې پوهیږي چه څه په رحمونو کښې دي؟ او نه چا ته دا معلومه ده چه صبا به هغۀ څه

وَمَا تَدْرِیْ نَفْسٌ بِاَیِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ وَمَا یَدْرِیْ اَحَدٌ مَتٰی یَجِیْءُ الْمَطَرُ. کوي او نه چاته دا خبر شته چه هغه به کوم ملک کښې مري او نه څوک په دې پوهيږي چه باران به کله کيږي.

# اَبْوَابُ الْكُسُوْفِ دَ نمر دَ تندرۀ نيولو بيان

۱. د رسول اکرم صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې صرف يو ځل نمر تندر نيولے وو کله به چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم څه نښه يا اهم څيز اوليدو نو الله طرفته به ئے توجه کوله د نمر تندر نيول دا هم د الله تعالي يوه نښه ده. او کله چه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې نمر تندر اونيوو نو فوراً ئے دوه رکعاته مونځ اوکړو. ډير اوږد مونځ په هر رکعت کښې ئے دوه رکوع اوکړے او سجدے ئے ډيرے اوږدے وے څو پورے چه نمر تندر نيولے وو هغه پورے په مونځ لګيا وو. د نمر د تندر نيولو ډير ګنړ روايتونه دي په بعض رواياتو کښې دي چه نبي کريم صلي الله عليه وسلم د عام مونځ په شان په هر رکعت کښې يوه رکوع کړے وه او په ډيرو روايتونو کښې د دوو رکوع ذکر دے په بعضے رواياتو کښې د درے رکوع دے او بعضو رواياتو کښې تر پنځو رکوع بيان دے. علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي. "چه ټولو رواياتو باندے د غور کولو او د تحقيق نه پس دا معلوميږي چه ټولو رواياتو کښې هغه روايت صحيح معلوميږي کوم چه صحيح بخاري کښې دے. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په هر رکعت کښې دوه رکوع کړے وے په عام مونځونو کښې په هر رکعت کښې يوه رکوع ده کله چه رسول الله صلي الله عليه وسلم "صلاة کسوف" (د نمر د تندر نيولو مونځ) کښې دوه رکوع اوکړے. نو ډيرو صحابهٔ کرامو د خپل اجتهاد په ذريعه داسے او ګنړله چه دا مونځ د عامو مونځونو نه د خپلو خصوصياتو په وجه مختلف دے اوپه دے کښې په هر رکعت کښې د يو نه زياتے رکوع کيدلے شي. روستو د صحابه ؤ په دے سلسله کښې فتوے ډيرو راويانو د مرفوع روايت پشان بيان کړے چه د هغې نه دا غلط فهمي پيدا شوه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په صلاة کسوف کښې په هر رکعت کښې دوه رکوع خکه کړے وے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د مونځ په دوران کښې د الله تعالي د قدرت داسے نښے نښانے ښکاره شوے وے چه عامو مونځونو کښې هغه نه ليدلے کيږي. په شريعت کښې د الله تعالے د قدرت نښو ليدلو سره رکوع يا سجده کول معلومه خبره ده. عبدالله بن عباس رضي الله عنهما چه کله خمونږ د مور بي بي ام المؤمنين حضرت ميمونے رضي الله عنها د وفات خبرو اوريدو نو سمدستي ئے سجده اوکړله خکه چه دا هم د الله تعالي د قدرت نښه وه. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه کله مکے مکرمے ته د فاتح (فتحه کونکي) په حيثيت داخليدو. نو ټولو عالمانو د تاريخ ليکلے دي. چه پخپلے سورلۍ رسول الله صلي الله عليه وسلم د رکوع کولو پشان ټيټ شوے وو. داسے کله چه رسول الله صلي الله عليه وسلم "ديار ثمود" (د صالح عليه السلام د قوم کلي) سره تيريدلو تبوک ته روان وؤ هم دغسے په خپلے سورلۍ د رکوع په شکل ټيټ وو سر او نيم بدن ئے ښکته کړے وو. رکوع او سجده کښې کامله بندګي او عاجزي ښکاره کيږي ددے وجے نه د الله تعالي د قدرت نښے نښانے ليدلو باندے رسول

... صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم رکوع او سجدې کولې ... صلاة کسوف د ... نمر تندر په موقع کښې د الله تعالی د قدرت د نښو مشاهده کړې وه د قدرت الهی د نښو لیدلو سره یې دوهمه رکوع اوکړه اولې رکوع دوهمه رکوع د الله تعالی د قدرت نښو لیدلو په وجه د صلاة کسوف ... رسول الله صلی الله علیه وسلم ... د موقع د ... رکعت کښې ... رکوع او دوه سجدې ... صلاة کسوف ... دوهمه رکوع د الله تعالی د قدرت د نښو لیدلو نتیجه وه ... د رسول الله صلی الله علیه وسلم خصوصیت ...

... د احنافو دا مسلک دې چه صلاة کسوف د نورو مونځونو په شان مونځ دې او په هر ... رکعت کښې ... رکوع ذکر دې ... چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ... کړې وه او صحابه کرامو ... رسول الله صلی الله علیه وسلم ولاړ وې ... بعض صحابه کرامو چه ... اولیدل چه اولې صفونو کښې ... حکمه پوره نه کړی نو هغوی دا محسوس کړه چه په یو رکعت کښې دوې رکوع شویدی

## باب ۶۶۳ : الصَّلٰوةِ فِی کُسُوفِ الشَّمْسِ.

## باب ۶۶۳ : د نمر تندر نیولو کښې د مونځ کولو بیان.

۹۷۹ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ یُوْنُسَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِیْ بَکْرَةَ قَالَ کُنَّا عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَانْکَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَجُرُّ رِدَآءَهٗ حَتّٰی دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَدَخَلْنَا فَصَلّٰی بِنَا رَکْعَتَیْنِ حَتّٰی انْجَلَتِ الشَّمْسُ فَقَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا یَنْکَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّاِذَا رَاَیْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا وَادْعُوْا حَتّٰی یَکْشِفَ مَا بِکُمْ.

۹۷۹ : عمرو بن عون، خالد، یونس، حسن ابو بکره نه روایت کوی د ابو بکره بیان دې چه مونږ نبی سره وو نو نمر تندر اونیولو رسول الله خپل څادر راښکلو او دریدلو تر دې چه جماعت کښې داخل شو او مونږ ورسره هم داخل شو بیان حضور مونږ ته مونځ راکړلو تر دې چه نمر روښانه شولو او حضور اوفرمایل چه نمر او سپوږمی د چا د مرګ په سبب تندر نه نیسی چه ستاسو تندر نیول اووینې نو مونځ کوئ او دعا کوئ تر دې چه تندر نیول ختم شي.

۹۸۰ : حَدَّثَنَا شِهَابُ ابْنُ عَبَّادٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اِبْرَاهِیْمُ ابْنُ حُمَیْدٍ عَنْ اِسْمٰعِیْلَ عَنْ قَیْسٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا مَسْعُوْدٍ یَقُوْلُ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ

۹۸۰ : شهاب بن عباد، ابراهیم بن حمید، اسماعیل قیس نه روایت کوی هغه وائی ما د ابو مسعود نه واوریدل نبی اوفرمایل چه نمر او سپوږمی د چا د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ مِّنَ النَّاسِ وَلَكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا.

مرګ په سبب تندر نه نيسي بلکه دا د خدائے د نښو نه دوه نښے دي کله چه تاسو تندرنيول اووينئ نو اودريږئ او مونځ اوکړئ

٩٨١ : حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرٌو عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يُخْبِرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهِ وَلَكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا.

٩٨١ : اصبغ ابن وهب عمرو عبدالرحمن بن قاسم د خپل پلار نه او هغه د ابن عمر نه او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت کړي. حضور اوفرمائيل نمر او سپوږمى د چا د مرګ يا د ژوند په سبب تندر نه نيسي بلکه دوے دواړو تندرنيول د خدائے د نښو نه يو نښه ده کله چه دا تاسو اووينئ نو مونځ کوئ.

٩٨٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ ابْنُ الْقَاسِمِ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ أَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيْمُ فَقَالَ النَّاسُ كَسَفَتِ الشَّمْسُ لِمَوْتِ إِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَكْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمْ فَصَلُّوْا فَادْعُوا اللّٰهَ.

٩٨٢ : عبدالله بن محمد قاسم بن هاشم شيبان ابو معاويه زياد بن علاقه مغيره بن شعبه نه روايت کړي. مغيره بن شعبه بيان اوکه د رسول الله په زمانه کښې په کومه ورځ چه ابراهيم (د حضور خوئے) وفات شو نمر تندر او نيولو نو خلقو اووے د ابراهيم د مرګ په وجه نمر تندر او نيولو رسول الله نو فرمائيل چه نمر او سپوږمى د چا د مرګ يا ژوند په سبب تندر نه نيسي کله چه دا تاسو اووينئ نو مونځ کوئ او الله نه دعا غواړئ.

## باب ٢٦٤ : الصَّدَقَةِ فِي الْكُسُوْفِ.

٢٦٤ : نمر تندر نيولو کښې د خيرات کولو بيان.

۹۸۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ فَقَامَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْاُخْرٰى مِثْلَ مَا فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَادْعُوا اللّٰهَ وَكَبِّرُوْا وَصَلُّوْا وَتَصَدَّقُوْا ثُمَّ قَالَ يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَّاللّٰهِ مَا مِنْ اَحَدٍ اَغْيَرَ مِنَ اللّٰهِ اَنْ يَّزْنِيَ عَبْدُهٗ اَوْ تَزْنِيَ اَمَتُهٗ يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَّاللّٰهِ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا.

۹۸۳ : عبداللّه بن مسلمه، مالک، هشام بن عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. بي بي عائشےؓ اوفرمائيل، د رسول اللّهؐ په زمانه کښې نمر تندر او نيولو، نو رسول اللّهؐ خلقو ته مونځ ورکړلو، او اودريدلو نو ډيرو وخته پورے قيام ئے اوکړلو بيائے رکوع اوکړه، نو اوږده رکوع ئے اوکړه بيا اودريدل نو ډير وخته پورے اودريدو ليکن د هغے ورمبنے قيام نه کم وو. بيائے رکوع اوکړه نو اوږده رکوع ئے اوکړه ليکن د ورمبنے رکوع نه کمه وه بيائے سجده اوکړه نو اوږده سجده ئے اوکړه بيا دويم رکعت کښې ئے هم داسے اوکړل، څنګه چه ورمبني رکعت کښې کړے وو بيا چه د مونځ نه فارغ شو نو نمر روښانه شوے وو بيا حضورؐ خلقوته خطبه واوروله نو د اللّه حمدو ثنائے بيان کړه بيائے او فرمائيل چه نمر او سپوږمي دواړه د اللّه نښے نښانے دي د چا د مرګ په سبب ئے تندر نه نيسي هر کله چه دا تاسو اووينے نو، د اللّه نه دعا غواړے تکبير وائے مونځ کوے او صدقه ورکوے بيائے او فرمائيل، اے د محمدؐ امته، د خدائے نه زيات غيرتي هيڅوک نشته (هغه له غيرت ورځي چه د هغه بنده يا وينزه زنا اوکړي اے د محمدؐ امته په څه چه زه پوهيږم که تاسو ته هغه معلوم شي نو ډير کم به خاندئے او ډير زيات به ژاړئے.

## باب ٦٦٥ : اَلنِّدَآءِ بِالصَّلٰوةِ جَامِعَةٌ فِي الْكُسُوْفِ.

## باب ٦٦٥ : نمر تندر نيولو کښې مونځ د پاره د جمعے کيدو بلنه.

۹۸۴ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ قَالَ اَخْبَرَنَا

۹۸۴ : اسحاق يحيي بن صالح، معاويه

يَحْيَى ابْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَامِ بْنِ اَبِیْ سَلَامٍ الْحَبَشِیُّ الدِّمَشْقِیُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ اَبِیْ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ الزُّهْرِیُّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو وَقَالَ لَمَّا كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُوْدِیَ اِنَّ الصَّلٰوةَ جَامِعَةٌ.

بن سلام بن ابي سلام جيشي د مشقي يحيى بن ابي كثير ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف زهري عبدالله بن عمر نه روايت كوي عبدالله بن عمرؓ او فرمائيل د رسول اللهؐ زمانه كښې چه نمر تندر او نيولو نو خلقو ته اعلان اوشو چه مانځه د پاره راجمع شي.

## باب ٦٦٦: خُطْبَةُ الْاِمَامِ فِی الْكُسُوْفِ وَقَالَتْ عَائِشَةُ وَاَسْمَاءُ خَطَبَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ٦٦٦: نمر تندر نيولو كښې د امام خطبې لوستو بيان او د بي بي عائشےؓ او بي بي اسماءؓ بيان دے چه نبيؐ خطبه واوروله.

**٩٨٥**: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح وَحَدَّثَنِیْ اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ قَالَ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فِیْ حَيٰوةِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ اِلَى الْمَسْجِدِ قَالَ فَصَفَّ النَّاسُ وَرَآءَهُ فَكَبَّرَ فَاقْتَرَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِرَاْءَةً طَوِيْلَةً ثُمَّ كَبَّرَ وَرَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقَامَ وَلَمْ يَسْجُدْ وَقَرَاَ قِرَاءَةً طَوِيْلَةً هِیَ اَدْنٰى مِنَ الْقِرَاءَةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ كَبَّرَ

**٩٨٥**: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب (دريم سند) احمد بن صالح، عنبسه، يونس، ابن شهاب عروه د بي بي عائشےؓ د نبي صلي الله عليه وسلم د تبر نه روايت كوي، د هغے بيان دے چه د نبي صلي الله عليه وسلم ژوند كښې نمر تندر اونيولو نو حضورؐ جمات ته تشريف يوړلو او خلقو وروسته صف اوتړلو بيا حضورؐ تكبير اوكه او رسول الله اوږد قرأت اوكه، بيائے تكبير اوكها و ركوع ئے اوكړله اوږد قرأت ئے اوكه چه د وړمبني قرأت نه كم وو بيائے تكبير اوكه او اوږده ركوع ئے اوكړله، چه د وړمبنے ركوع نه كمه وه بيائے سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد اووے. بيائے سجده اوكړه. او دويم ركعت كښې ئے هم دغسے اوكړل، او پوره څلور

وركع ركوعا طويلا هو أدنى من الركوع الأول ثم قال سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم سجد ثم قال في الركعة الآخرة مثل ذلك فاستكمل أربع ركعات في أربع سجدات وانجلت الشمس قبل أن ينصرف ثم قام فأثنى على الله بما هو أهله ثم قال هما آيتان من آيات الله لا يخسفان لموت أحد ولا لحياته وإذا رأيتموهما فافزعوا إلى الصلوة وكان يحدث كثير بن عباس أن عبد الله بن عباس كان يحدث يوم خسفت الشمس بمثل حديث عروة عن عائشة فقلت لعروة إن أخاك يوم خسفت الشمس بالمدينة لم يزد على ركعتين مثل الصبح قال أجل لأنه أخطأ السنة.

رکوع او خپلې سجدې ئې اوکړلې او بيا د مونځ نه د فارغ کېدو نه مخکښې روښانه شو بيا ودرېدلو او د الله تعريف ئې بيان کړه چې د هغې مستحق دے بيا ئې اوفرمايل دا دواړه (لمر او سپوږمۍ) د خدائے نښې نښانې دي د چا د مرګ يا ژوند په سبب نه تندر نه نيسي هر کله چې دا تاسو اووينئ نو مونځ ته ورزغلئ او کثير بن عباس به وئيل چې عبدالله بن عباس د لمر تندر په ورځ واقعه د عروه د حديث په شان د بيبي عائشې په طريقه بيان کړه نو عروه نه اووې چې ستا ورور په مدينه کښې چې کله نمر تندر نيولے وو د سحر د دوو رکعتونو پشان (په دوو رکعتونو کښې) د دوو رکوعو نه زياتې نه دي کړي نو هغې اوفرمايل چې ټهيک دے ليکن هغه د سنت نه خلاف کړي وو.

۱ دے حديث شريف کښې دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مونځ نه پس خطبه ويلې وه. د حديث شريف د آخري حصې مطلب دا دے چې عروه بن الزبير رضي الله عنهما چې کله حديث شريف بيان کړو نو ابن شهاب رحمة الله عليه راوي ته ئې پښتنه (يونس) اوکړه چې ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صلاة کسوف دا عمل بيانوے چې په هر رکعت کښې دوه رکوع دي ليکن ستا مشر ورور عبدالله بن زبير رضي الله عنهما د خپل خلافت په زمانه کښې چې کله نمر تندر اونيولو نو هغه د صبا د مونځ پشان صلاة کسوف ادا کړے وو (په هر رکعت کښې يوه رکوع). عروه رضي الله عنه اوفرمايل "د هغه دا عمل دليل نه دے. کله هغه داسې کړے وي نو د هغه عمل د سنت (د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طريقې) خلاف دے". ليکن د حضرت عروه رضي الله عنه دا خبره نشي منلے. عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما چې کله صلاة کسوف کښې په هر رکعت کښې يوه رکوع اوکړه نو ډېرو صحابه کرامو د هغه په اقتداء کښې د مونځ کولو او هلته د عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په دے عمل اعتراض نه وو کړے. دا ناممکنه ده چې هغه ټولو صحابه کرامو د سنت خلاف کړے وو. بله د عروه خبره دا ده چې کوم راوي د عبدالله بن

زبير رضي الله عنهما د صلاة كسوف كړے دے هغه ويلے دي "چه هغه د صبا د مونځ پشان صلاة كسوف ادا كړے وو څرنګ چه د صبا مونځ كښې په هر ركعت كښې يوه ركوع ده دغسے عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په صلاة كسوف كښې هر ركعت كښې يوه ركوع كړے وه" د سنن ابو داؤد شريف په روايت كښې د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم دا حكم موجود دے "چه د صلاة كسوف ادا كولو نه پس رسول اكرم صلي الله عليه وسلم خپلو صحابة كرامو رضي الله عنهم ته دا هدايت كړے وو" "چه كله نمر تندر اونيسي نو تاسو د صبا د مونځ پشان صلاة كسوف ادا كوئ" د دے حديث شريف نه عبدالله بن الزبير او نورو صحابة كرامو رضي الله عنهم چه كوم مطلب اخستے وو په هغے ئے عمل كړے وؤ او احناف هم پدے عمل كوي چه په هر ركعت كښې د صبا د مونځ پشان يوه ركوع ده.

**باب ۶۶۷ : هَلْ يَقُوْلُ كَسَفَتِ الشَّمْسُ أَوْ خَسَفَتْ وَقَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَخَسَفَ الْقَمَرِ.**

**باب ۶۶۷ :** آيا كسفت الشمس يا خسفت وئيلے شي او الله تعالي خسف القمر فرمائيلے دي.

**۹۸۶ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِىْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى يَوْمَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ فَكَبَّرَ فَقَرَءَ قِرَآءَةً طَوِيْلَةً ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقَامَ كَمَا هُوَ ثُمَّ قَرَأَ قِرَآئَةً طَوِيْلَةً وَهِيَ اَدْنٰى مِنَ الْقِرَآءَةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ سَجَدَ سُجُوْدًا طَوِيْلًا ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ سَلَّمَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ اَنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيٰوتِهٖ فَاِذَا**

**۹۸۶ :** سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عروه بن زبير، د بي بي عائشه نه روايت كوي. د بي بي عائشه بيان دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم په كومه ورځ چه نمر تندر اونيولو، مونځ وركه. حضور اودريدلو تكبير ئے او كه بيائے اوږده ركوع او كړله چه د مخكښې ركوع نه كمه وه بيا ئے اوږده سجده او كړله بيائے دويم ركعت هغسے او كړل څنګه ئے چه مخكښې ركعت كښې كړے وو بيا ئے سلام او ګرځولو او نمر روښانه شوے وو حضور خلقو ته خطبه وركړه او وے وئيل د نمر او سپوږمۍ تندر نيول د خدائے دوه نښے نښانے دي چه د چا د مرګ او ژوند په سبب ئے تندر نه نيسي هر كله چه دا تاسو اووينئ نو مونځ ته ورزغلئ (د كسوف شمس و قمر فرمائيلو ته معلومه شوه چه د كسوف لفظ د نمر او سپوږمۍ دواړو د پاره استعمال جائز

رأیتموهٗ فافزعوا الی الصلوة.

ذي

**باب ۲۲۸ : قول النبي صلی اللّٰه علیه وسلم یخوّف اللّٰه عبادهٗ بالکسوف قاله ابو موسٰی عن النبي صلی اللّٰه علیه وسلم.**

**باب ۲۲۸** د نبي صلی الله علیه وسلم د فرمان چه الله تعالی خپل بندګان د نمر تندر نیولو په ذریعه ویروي او دا ابو موسٰی د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کړ

**۹۸۷ :** حدثنا قتیبة بن سعید قال حدثنا حمّاد بن زید عن یونس عن الحسن عن ابی بکرة قال قال رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم ان الشمس والقمر اٰیتان من اٰیات اللّٰه لا ینکسفان لموت احد ولکن اللّٰه یخوّف بها عبادهٗ لم یذکر عبد الوارث وشعبة خالد بن عبد اللّٰه وحمّاد بن سلمة عن یونس یخوّف اللّٰه بهما عبادهٗ وتابعه موسٰی عن مبارک عن الحسن قال اخبرني ابو بکرة عن النبي صلی اللّٰه علیه وسلم یخوّف اللّٰه بهما عبادهٗ وتابعه اشعث عن الحسن.

**۹۸۷ :** قتیبه بن سعید حماد بن زید یونس حسن ابو بکره نه روایت کړی ابو بکره اووئ رسول الله وفرمایل نمر او سپوږمی د الله دوه نښانې دي د چا د مرګ په سبب تندر نه نیسي لیکن الله تعالی خپل بندګان ددې په ذریعه ویروي عبدالوارث شعبه خالد بن عبدالله او حماد بن سلمه د یونس نه یخوّف الله عباده (الله خپل بندګان ویروي) الفاظ نه دي بیان کړي او موسٰی د مبارک نه او هغه د حسن نه ددې متابع حدیث روایت کړ حسن اووئ ماته ابو بکر او هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت او کړ چه الله ددې دواړو په ذریعه خپل بندګان ویروي او اشعث د حسن نه ددې متابع حدیث روایت کړ.

**باب ۲۲۹ : التعوّذ من عذاب القبر في الکسوف.**

**باب ۲۲۹ :** نمر تندر نیولو کښې د قبر د عذاب نه د پناه غوښتلو بیان

**۹۸۸ :** حدثنا عبد اللّٰه بن مسلمة عن مالک عن یحیی بن سعید عن عمرة بنت عبد الرحمٰن عن عائشة زوج النبي صلی اللّٰه علیه وسلم ان یهودیة جاءت

**۹۸۸ :** عبدالله بن مسلمه مالک یحیی بن سعید عمره بنت عبدالرحمن د نبي د بي بي عائشې نه د نبي نه روایت کړی چه یو یهود ښځه نبي بي بي عائشې له خه غوښتلو له راغله اووې ویل چه الله دې تا د قبر د عذاب

تَسْأَلُهَا فَقَالَتْ لَهَا أَعَاذَكِ اللّٰهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُعَذَّبُ النَّاسُ فِيْ قُبُوْرِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِذًا بِاللّٰهِ مِنْ ذٰلِكَ ثُمَّ رَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ غَدَاةٍ مَرْكَبًا فَخَسَفَتِ الشَّمْسُ فَرَجَعَ ضُحًى فَمَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ ظَهْرَانَيِ الْحُجَرِ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ وَقَامَ النَّاسُ وَرَاءَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَسَجَدَ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَسَجَدَ وَانْصَرَفَ فَقَالَ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَقُوْلَ ثُمَّ أَمَرَهُمْ أَنْ يَتَعَوَّذُوْا مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

نه په امان کړی نو بی بی عائشې د حضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو آیا خلقو ته په قبرونو کښې عذاب ورکولے شی نو حضور اوفرمایل (ددې نه) د خدائے پناه (غواړم یا پناه ګیر دی) بیا یوه ورځې به سحر وخت کښې سور شولو او نمر ته تندر ونیولے نو حضور د څاښت وخت کښې واپس شولو بیا رسول الله د حجرو مینځ کښې تیر شولو بیا مونځ ورکولو د پاره اودریدلو نو خلق حضور پسې اودریدل نو حضور اوږد قیام اوکړلو بیا یې اوږده رکوع وکړله بیا یې اوږد قیام اوکړو چه د مخکنی قیام نه کم وو بیا یې اوږده رکوع اوکړله چه د مخکنۍ رکوع نه کمه وه بیا یې سر اوچت کړو او سجدې ته لاړلو بیا اودریدلو نو ډیر وخت ئې اودریدو چه د مخکنی قیام نه کم وو بیا یې اوږده رکوع اوکړله چه د مخکنۍ رکوع نه کمه وه بیا یې سر اوچت کړو نو ډیر وخت ئې ولاړ وو چه د مخکنی قیام نه کم وو بیا یې اوږده رکوع اوکړله چه د مخکنۍ رکوع نه کمه وه بیا یې سر اوچت کړو او سجده یې اوکړله او د مونځ نه فارغ شو نو یې فرمایل څه چه الله تعالی غوښتل بیا حضور حکم ورکړو چه د قبر د عذاب نه پناه غواړی

۱ بعضې روایاتو کښې دی چه کله یهودۍ ښځې د حضرت عائشې رضی الله عنها نه مخکښې د قبر د عذاب ذکر اوکړو نو عائشې بی بی رضی الله عنها اوفرمایل د قبر عذاب به یهودو ته ورکړی شی مسلمانانو سره یې څه تعلق دے؟ نو دغه حضرت عائشې بی بی رضی الله عنها ته د قبر د عذاب نه حفاظت چه معلومات نه وو نه یې دے طرف ته فکر حاصل کړے وو لکه ددې یهودۍ ښځې د قبر د عذاب د ذکر کولو نه

حقله د رسول الله صلي الله عليه وسلم ته تپوس او كړ. دے روايت كښې دي "چه رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه كرامو ته د قبر د عذاب نه د پناه غوښتلو حكم او كړو. نو عائشے بي بي رضي الله عنها او فرمايل "د قبر عذاب به يهودو ته وركيږي مسلمانانو سره ئے څه تعلق دے؟ تر اوسه حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها ته د قبر د عذاب په حقله څه معلومات نه وو. نه ئے دے طرفته څه فكر خيال كړے وو. ليكن ددے يهودي ښخے د قبر د عذاب د ذكر كولو په حقله د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس ئے او كړ. دے روايت كښې دي "چه رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه كرامو ته د قبر د عذاب نه د پناه غوښتلو حكم او كړو.

تَعَوَّذُوْا مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ — د قبر د عذاب نه پناه غواړئ.

دا د نهم هجري كال واقعه ده چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د نمر د تندر نيولو د مونخ نه روستو خطبه ويلے وه.

**بَاب ۶۷۰ : طُوْلِ السُّجُوْدِ فِي الْكُسُوْفِ.**

**باب ۶۷۰ : د نمر تندر نيولو كښې د اوږدو سجدو كولو بيان.**

۹۸۹ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّهُ قَالَ لَمَّا كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُوْدِىَ اَنَّ الصَّلٰوةَ جَامِعَةٌ فَرَكَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ فِيْ سَجْدَةٍ ثُمَّ قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِيْ سَجْدَةٍ ثُمَّ جَلَسَ حَتّٰى جُلِّيَ عَنِ الشَّمْسِ قَالَ وَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا مَا سَجَدْتُ سُجُوْدًا قَطُّ كَانَ اَطْوَلَ مِنْهَا.

۹۸۹ : ابو نعيم، شيبان، يحيي، ابو سلمه عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. د عبدالله بن عمرؓ بيان دے د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښې چه نمر تندر او نيولو نو اعلان او شولو چه مونځ كيدونكے دے نو نبي صلعم يو ركعت كښې دوه ركوع او كړلے بيا كيناستلو تر دے چه نمر روښانه شولو د راوي بيان دے چه بي بي عائشےؓ او فرمائيل ما ددے نه اوږده سجده هيڅ كله نه ده كړے.

**بَاب ۶۷۱ : صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ جَمَاعَةً وَّصَلّٰى لَهُمُ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ صُفَّةِ زَمْزَمَ وَجَمَّعَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ وَصَلّٰى ابْنُ عُمَرَ.**

**باب ۶۷۱ : د نمر تندر نيولو مونځ جماعت سره د كولو بيان، او ابن عباسؓ خلقو ته صفه زمزم كښې مونځ وركړلو او علي بن عبدالله بن عباسؓ خلق راجمع كړل او ابن عمرؓ مونځ وركولو.**

۹۹۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۹۹۰ : عبدالله بن مسلمه، مالك،

مُسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ
عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ
عَبَّاسٍ قَالَ اِنْخَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى
عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ
قِيَامًا طَوِيْلًا نَحْوًا مِّنْ قِرَآءَةِ سُوْرَةِ
الْبَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَفَعَ
فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا نَحْوًا مِّنْ قِرَآءَةِ
سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ
رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ
الْاَوَّلِ رَكَعَ ثُمَّ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ
الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا
طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ
فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ
الْاَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ
الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ
وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَقَالَ اِنَّ الشَّمْسَ
وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ
لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيٰوتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ
فَاذْكُرُوْا اللّٰهَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
رَاَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِيْ مَقَامِكَ ثُمَّ
رَاَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ فَقَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُ الْجَنَّةَ
وَتَنَاوَلْتُ عُنْقُوْدًا وَّلَوْ اَصَبْتُهٗ لَاَكَلْتُمْ
مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا وَاُرِيْتُ النَّارَ فَلَمْ
اَرَ مَنْظَرًا كَالْيَوْمِ قَطُّ اَفْظَعَ وَرَاَيْتُ
اَكْثَرَ اَهْلِهَا النِّسَآءَ قَالُوْا بِمَ يَا رَسُوْلَ

زيد بن اسلم، عطاء بن يسار، عبدالله بن عباسؓ
نه روايت کوي. عبدالله بن عباسؓ اوړے د نبي
صلي الله عليه وسلم زمانه کښې نمر تندر
اونيولو نو رسول الله صلي الله عليه
وسلم مونځ ورکړلو، او د سورة بقره د تلاوت
برابر نے اوږد قيام او کړه بيائے اوږده رکوع
او کړله. خو د ورمبنئے رکوع نه کمه وه.
بيائے سجده او کړه بيا د مونځ نه فارغ
شولو نو نمر روښانه شوے وو. حضورؐ
او فرمائيل نمر او سپوږمۍ د الله دوه نښے
نښانے دي د چا د مرګ يا ژوند په
سبب نے تندر نه نيسي، هر کله چه دا تاسو
اووينئے، نو الله يادوئے خلقو عرض او کړه،
يا رسول الله مونږ اوليدل چه تاسو د خپل
ځائے نه څه څيز اخستلو، بيا تاسو په ورستو
شونے، نو حضورؐ ورته او فرمائيل: ما جنت
اوليدو نو د هغے نه م غنچک شو کول غوښتل،
که ما هغه راشو کولے وے. نو تاسو به هغه
د هغے وخته پورے خوړلے څو پورے چه دنيا قائمه
وي او ماته دوزخ او ښودلے شو د نن په شان
منظر ما هيڅ کله نه دے ليدلے او هغے دوزخيانو
کښې زياتے ښځے وے خلقو تپوس او کړه يا
رسول الله داولے. نو حضورؐ ورته او فرمائيل
د هغوي د کفر په سبب آيا هغوي خدائے
سره کفر کوي حضورؐ ورته او فرمائيل
بلکه د خاوندانو نافرماني کوي، او د احسان

اللّٰهِ قَالَ بِكُفْرِهِنَّ قِيلَ يَكْفُرْنَ بِاللّٰهِ قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ وَيَكْفُرْنَ الْإِحْسَانَ لَوْ أَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ كُلَّهُ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ.

[illegible] د [illegible] کړی [illegible] کښې [illegible] عمر [illegible] کړې [illegible] ولیدی [illegible] هیڅ کله [illegible] لیدلی!

۱ ددې باب تولو احادیثو کښې ددې خبرې ذکر دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به هر رکعت کښې دوه دوه رکوع کړې وې. ددې روایاتو کښې اول او دویم بیا رکوع کول بیا او دویم بیا رکوع کول سوره تفصیل سره بیان شویدي لیکن چه کله د سجدې ذکر راسي نو بس دومره بیان دې چه سجده نې کړې وه ددې تفصیل نشته چه څو سجدې یې کړې وې. راویانو تولو د صلاة کسوف د نورو مونځونو سره فرق بیان کړیدې. ددې روایاتونه دا معلومیږي چه رکوع به هر رکعت کښې دوه وې. او په کومو روایاتو کښې چه د یو رکوع ذکر دې هلته د اختصار نه کار اخستلې شویدې

## بَابُ ٦٧٢ : صَلٰوةِ النِّسَآءِ مَعَ الرِّجَالِ فِي الْكُسُوْفِ.

## باب ٦٧٢ : نمر تندر نیولو کښې نارینه ؤ سره د زنانه ؤ د مونځ کولو بیان

۹۹۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنِ امْرَأَتِهِ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ عَنْ أَسْمَآءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّهَا قَالَتْ أَتَيْتُ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَإِذَا النَّاسُ قِيَامٌ يُصَلُّوْنَ فَإِذَا هِيَ قَائِمَةٌ تُصَلِّي فَقُلْتُ مَا لِلنَّاسِ فَأَشَارَتْ بِيَدِهَا إِلَى السَّمَآءِ وَقَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَقُلْتُ آيَةٌ فَأَشَارَتْ أَيْ نَعَمْ قَالَتْ فَقُمْتُ حَتّٰى تَجَلَّانِي الْغَشْيُ فَجَعَلْتُ أَصُبُّ فَوْقَ رَأْسِي الْمَآءَ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمِدَ

۹۹۱ : عبدالله بن یوسف مالک هشام بن عروه فاطمه بنت منذر اسماء بنت ابو بکر بیان کوي زه د نبي صلی الله علیه وسلم بی بی عایشې له راغلم کوم وخت چه نمر تندر نیولې وو نو اوم لیدل چه هغه وخت خلق ولاړو او مونځونه ئې کول او بي بي عائشه هم ولاړه وه. مونځ ئې کولو ما اووې دې خلقو ته څه شوې دي نو هغې خپل لاس سره آسمان طرفته اشاره او کړه اووې وئیل سبحان الله ما اووې څه نښه شته نو هغې اشارې سره اووې او زه ولاړه ووم تر دې چه نزدې وه چه زه بیهوشه شم نو ما په خپل سر او به اچول شروع کړل کوم وخت چه رسول الله صلي الله علیه وسلم فارغ شولو نو د الله تعالی حمد و ثنا ئې بیان کړل. بیائې او فرمائیل ما هغه څیز ونه په دې مقام اولیدل چه ددې نه مخکښې ما نه وو لیدلي تر دې چه جنت او دوزخ هم ماته اوښودلې شو او ماته

٩٩٣ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ يَهُوْدِيَّةً جَآءَتْ تَسْأَلُهَا فَقَالَتْ اَعَاذَكِ اللّٰهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُعَذَّبُ النَّاسُ فِيْ قُبُوْرِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِذًا بِاللّٰهِ مِنْ ذٰلِكَ ثُمَّ رَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ غَدَاةٍ مَرْكَبًا فَكَسَفَتِ الشَّمْسُ فَرَجَعَ ضُحًى فَمَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ ظَهْرَانَيِ الْحُجَرِ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى وَقَامَ النَّاسُ وَرَآءَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَفَعَ وَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ ثُمَّ رَفَعَ سَجَدَ سُجُوْدًا طَوِيْلًا ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَّهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاشَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ ثُمَّ اَمَرَهُمْ اَنْ يَّتَعَوَّذُوْا مِنْ

٩٩٣ : اسماعيل، مالك، يحيى بن سعيد، عمره بنت عبدالرحمن، بي بي عائشہؓ روايت كوي چه يوه يهودنړه ښځه د هغې نه څه غوښتلو د پاره راغله نو هغې (يهودنړې ښځې) ورته اووې چه الله تعالى دې تا د قبر د عذاب نه محفوظ كړي نو بي بي عائشې د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكه آيا خلقو ته به قبر كښې عذاب وركولے شي نو رسول اللهؐ ورته او فرمائيل د خدائے پناه (پكارده يا غوښتل پكار دي) بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم يو سحر په سورلئ سور وو. نو نمر تندر او نيولو ورځ راختلے وه چه رسول اللهؐ واپس شولو رسول اللهؐ د حجرو د مينځ نه تير شو بيا اودريدل نو حضورؐ اوږد قيام اوكړلو بيا حضورؐ اوږده ركوع اوكړله بيا حضورؐ سر اوچت كړلو نو ډير وخته پورے ولاړ وو ليكن دا د ړومبني قيام نه كم وو بيائے اوږده ركوع اوكړله ليكن د ړومبني ركوع نه كمه وه بيائے سر اوچت كه بيائے اوږده سجده اوكړله بيا ډير وخته پورے ولاړ وو. ليكن د ړومبني قيام نه كم وو بيائے اوږده ركوع اوكړله ليكن د ړومبنۍ ركوع نه كمه بيا ډير وخته پورے ولاړ وو ليكن د ړومبني قيام نه كم بيائے اوږده ركوع اوكړله ليكن د ړومبنۍ ركوع نه كمه بيائے سجده اوكړله ليكن د ړومبنۍ سجدې نه كمه بيا چه د مانځه نه فارغ شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل څه چه الله تعالى حضورؐ نه وئيل غوښتل بيا حضورؐ خلقو ته حكم اوكړلو چه د قبر د عذاب

عَذَابِ الْقَبْرِ.

نه ورې پناه غواړي.

**بَابٌ ۶۷۵: لَا تَنْكَسِفُ الشَّمْسُ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهٖ رَوَاهُ اَبُوْ بَكْرَةَ وَالْمُغِيْرَةَ وَاَبُوْ مُوْسٰى وَابْنُ عَبَّاسٍ وَابْنُ عُمَرَ.**

**باب ۶۷۵:** د چا د مرګ یا ژوند په وجه نمر تندر نه نیسي. ابو بکرؓ، مغیرهؓ، ابو موسیؓ، ابن عباسؓ روایت کړې دې.

**۹۹۴:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلٰكِنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا.

**۹۹۴:** مسدد، یحیی، اسماعیل، قیس، ابو مسعودؓ نه روایت دې رسول اللّٰهؐ ورته اوفرمائیل نمر او سپوږمۍ د چا د مرګ یا ژوند په وجه تندر نه نیسي، لیکن دا دواړه د خدائے د نښو نښانو نه دي هر کله چه دا دواړه په تندر نیولو اووینئ نو مونځ کوئے.

**۹۹۵:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَهِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فَاَطَالَ الْقِرَاءَةَ ثُمَّ رَكَعَ فَاَطَالَ الرُّكُوْعَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ فَاَطَالَ الْقِرَاءَةَ وَهِيَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ قَامَ فَصَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ قَامَ فَقَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ وَلٰكِنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ

**۹۹۵:** عبداللّٰه بن محمد، هشام، معمر، زهري، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشةؓ روایت کوي د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په زمانه کښې نمر تندر او نیولو نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اودریدلو او خلقو ته ئے مونځ ورکړلو او اوږد قرأت ئے اوکړه بیا ئے رکوع اوکړه نو اوږده رکوع ئے اوکړه بیائے خپل سر اوچت که نو اوږد قرأت ئے اوکه چه د وړمبني قرأت نه کم وو بیائے رکوع اوکړه نو اوږده رکوع ئے اوکړله، چه د وړمبنئ رکوع نه کمه وه. بیائے خپل سر اوچت که او دوه سجدې ئے اوکړلې او بیا اودریدلو او دویم رکعت کښې ئے هم دغسې اوکړل بیا اودریدلو اوو ې فرمائیل چه نمر اوسپوږمۍ د چا د مرګ یا ژوند په سبب تندر نه نیسي لیکن

اٰيٰاتِ اللّٰهِ يُرِيْهُمَا عِبَادَهٗ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَافْزَعُوْا اِلَى الصَّلٰوةِ.

دا دواړه د خدائے نښے نښانے دی چه خپلو بندګانو ته یې ښائي کله چه دا تاسو اووینئ نو مونځ کوئ.

## بـاب ٦٧٦: الذِّكْرِ فِي الْكُسُوْفِ رَوَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ.

## باب ٦٧٦: نمر تندر نیولو کښې د الله د ذکر کولو بیان دا روایت ابن عباس کړے دے.

٩٩٦: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَزِعًا يَخْشٰى اَنْ تَكُوْنَ السَّاعَةُ فَاَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى بِاَطْوَلِ قِيَامٍ وَرُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ مَا رَاَيْتُهٗ قَطُّ يَفْعَلُهٗ وَقَالَ هٰذِهِ الْاٰيَاتُ الَّتِيْ يُرْسِلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لَا تَكُوْنُ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيٰوتِهٖ وَلٰكِنْ يُّخَوِّفُ اللّٰهُ بِهَا عِبَادَهٗ فَاِذَا رَاَيْتُمْ شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ فَافْزَعُوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَدُعَآئِهٖ وَاسْتِغْفَارِهٖ.

٩٩٦: محمد بن علاء، ابو اسامه، زید بن عبدالله، ابو برده، ابو موسی روایت کوی چه نمر تندر او نیولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم داسے ویرے سره اودریدلو لکه چه قیامت[1] شو حضور جمات ته راغے او ډیر زیات اوږد قیام رکوع او سجدو سره یے مونځ اوکه چه ددے نه مو مخکښې دغسے کولو باندے چرته نه وو لیدلے او حضور او فرمائیل دا نښے نښانے دی چه الله پاک یے رالیږی دا د چا د مرګ یا ژوند په سبب نه کیږی بلکه ددے په ذریعه الله پاک خپل بندیان ویروی کله چه دا تاسو اووینئ نو ذکر الهی دعا او استغفار پله ورزغلئ.

۱ د قیامت خو نښے دی چه هغه به مخکښې خو کیدیږی او د هغے نه روستو به قیامت راځی لیکن ددے حدیث شریف کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپل مبارک ژوند کښې د قیامت د راتلو نه اویریدلو خان داوو چه په دغه وخت د قیامت راتلو نښے نه وے ددے وجے نه ددے حدیث شریف ددے حصے نه حقیقه ویلے شوی دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم داسے اودریدو لکه چه ویس نه قیامت راځی ددے مطلب د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د ویرے د حالت ښودل دی د الله تعالی نه د یو ویریدونکی دا حالت وي کله چه د الله تعالی نښے نښانے اوینی کله که به سیلی راتله با نه یے وریحه لیدلے د هغوي نه هم دا حالت وو دا صحیح خبره ده چه د قیامت نښے ښکاره شوے نه دی لیکن چه د یو بنده هر وخت د الله تعالی لوئی او زبردستی وړاندے وی نو هغه په داسے موقعو د فکر نه کار نه اخلی حضرت عمر رضی الله عنه نه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د جنت زیرے ورکړے وو خو هغه به ویل د قیامت به ورځ که حسا معامله سر په سر شی نو خه په دے رضا یم" د هغے وجه هم دا وه

## بـاب ٦٧٧: الدُّعَآءِ فِي

## باب ٦٧٧: نمر تندر نیولو کښې د دعا کولو

الْكُسُوْف قاله ابُوْ مُوْسى وعَائِشةُ عن النبيّ صلى اللهُ عليْه وسلم.

بیان: د ابو موسی او بی بی عائشې د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کړے دے

۹۹۷: حدثنا ابُوْ الْوليْد قال حدثنا زائدة قال حدثنا زياد بْن علاقة قال سمعتُ الْمغيرة ابْن شُعْبة يَقُوْلُ انْكسفت الشَّمْسُ يوْم مَاتَ اِبْراهِيْمُ فقال النّاسُ انْكَسَفتِ الشَّمْسُ لِمَوْتِ اِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيٰوتِه فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهَا فَادْعُوا اللّٰهَ وَصَلُّوْا حَتّٰى يَنْجَلِيَ.

۹۹۷: ابو الولید، زائده، زیاد بن علاقه، مغیره بن شعبه نه روایت دے نه کوم ورځ چه حضرت ابراهیم (د حضور ځوئے) وفات شو نو په هغې ورځ نمر تندر او نیولو خلقو اووے چه د ابراهیم د مرګ په وجه نمر تندر او نیولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل نمر او سپوږمی د خدائے دوه نښې نښانے دي. د چا د مرګ او ژوند په سبب ئے تندر نه نیسي کله چه تاسو تندر نیول اووینئ نو الله نه دعا غواړئ او مونځونه کوئ تر دے چه نمر روښانه شي.

باب ۶۷۸: قَوْلِ الْاِمَامِ فِيْ خُطْبَةِ الْكُسُوْفِ اَمَّا بَعْدُ وَقَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَتْنِيْ فَاطِمَةُ بِنْتُ الْمُنْذِرِ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ فَانْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ فَحَمِدَ اللّٰهَ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ.

باب ۶۷۸: د نمر تندر نیولو خطبه کښې د امام د "اما بعد" ویلو بیان او ابو اسامه اووے مونږ ته هشام بیان اوکه چه هغه ته فاطمه بنت منذر او هغې د اسماء نه روایت اوکه چه رسول الله د مونځ نه فارغ شو نو نمر روښانه شوے وو حضور خطبه ورکړه او د الله تعالی تعریف ئے بیان که چه د هغې هغه مستحق دے بیائے اما بعد او فرمائیل

باب ۶۷۹: الصَّلٰوةِ فِيْ كُسُوْفِ الْقَمَرِ.

باب ۶۷۹: سپوږمی تندر نیولو کښې د مونځ کولو بیان:

د دے سر لیک لاندے امام بخاري رحمة الله علیه د ابوبکره رضي الله عنه دوه روایته ذکر کړیدي. په دے دواړو روایاتو کښې دا نشته چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د سپوږمی د تندر نیولو په سلسله کښې مونځ ادا کړے وي لیکن د امام بخاری رحمة الله علیه دا سر لیک خکه لیکلے دي. چه په دویم حدیث شریف کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د صلاة کسوف (د نمر د تندر نیولو مونځ) ادا کولو نه

پس او فرمایل: "نمر او سپوږمۍ د الله تعالیٰ د قدرت نښې دي او کله ئې چه تندر اونیسي نو تاسو مونځ او دعا کوئ چه تندر لرې شي" د دې نه ثابته شوه چه د سپوږمۍ د تندر نیولو په وخت به مونځ کولې شي، د دې باب اولني او دویم روایت دواړه یو دي فرق دا دې چه اول کښې واقعه مختصره بیان شویده او دویم روایت کښې لږ تفصیل سره بیان شویده. د سپوږمۍ د تندر نیولو واقعه د رسول الله صلي الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښې راغلې وه لیکن امام بخاري رحمة الله علیه ته د هغې په حقله روایت په لاس نه وو ورغلې. ابن حبان رحمة الله علیه په خپل سیرت کښې لیکلې دي. چه په پنځم کال د هجرت سپوږمۍ تندر نیولې وه او رسول الله صلي الله علیه وسلم په جماعت (امامتۍ) سره دوه رکعته مونځ کړې وو. او دا په اسلام کښې د سپوږمۍ د تندر نیولو په سلسله کښې اولنې مونځ وو. احناف د سپوږمۍ د تندر نیولو په سلسله کښې د جماعت (د امامتۍ) بیره د مونځ کولو قائل نه دي. د هغوي مسلک دا دې چه خلق به خان له، خان له مونځ کوي. هدایه کښې لیکلي دي چه دا د امامتۍ د مونځ واقعه یواځې ابن حبان رحمة الله علیه لیکلې ده او بل چا دا نقل کړې نه ده.

۹۹۸: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عَامِرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

۹۹۸: محمود، سعید بن عامر، شعبه، یونس حسن، ابو بکره روایت کوي، د رسول اللهؐ زمانه کښې نمر تندر او نیولو نو حضورؐ دوه رکعاته مونځ او که (ددې حدیث عنوان سره مطابقت نشته لیکن دا روایت د هغې روایت اختصار دې کوم چه مخکښې راغي).

۹۹۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَآءَهُ حَتّٰى انْتَهٰى اِلَى الْمَسْجِدِ وَثَابَ اِلَيْهِ النَّاسُ فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ فَانْجَلَتِ الشَّمْسُ فَقَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ وَاِنَّهُمَا لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ فَاِذَا كَانَ ذٰلِكَ فَصَلُّوْا وَادْعُوْا حَتّٰى

۹۹۹: ابو معمر، عبدالوارث، یونس، حسن ابو بکره روایت کوي، د رسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کښې نمر تندر او نیولو نو حضورؐ څادر راښکلو، بهر راووتلو تر دې چه جمات ته اورسیدو او حضورؐ طرفته خلق هم متوجه شولو. حضورؐ خلقو ته دوه رکعاته مونځ ورکړلو نو نمر روښانه شولو حضورؐ اوفرمائیل چه نمر او سپوږمۍ د الله تعالیٰ دوه نښې نښانې دي او دا دواړه د چا د مرګ په سبب تندر نه نیسي کله چه دا صورت پیښ شي نو مونځ کوئې تر دې چه هغه څیز لرې شي چه تاسو سره دې (یعني تندر نیول) او دائې څکه او فرمائیل، چه د

يُكْشَفَ مَا بِكُمْ وَذٰلِكَ اَنَّ ابْنًا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهٗ اِبْرَاهِيْمَ مَاتَ فَقَالَ النَّاسُ فِيْ ذٰلِكَ.

نبي صلي الله عليه وسلّم يو خوے چه د هغه نوم ابراهيمؑ وو. په دغه ورځ وفات شوے وو او خلقو د هغه متعلق ونيلے وو (چه تندر نيول د هغه په سبب شوے وو).

## باب ٦٨٠ : الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى فِي الْكُسُوْفِ اَطْوَلَ.

باب ٦٨٠ : نمر تندر نيولو كښې د ورمبني ركعت د، اوږدولو بيان.

١٠٠٠ : حَدَّثَنَا مَحْمُوْدُ بْنُ غَيْلَانَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اَحْمَدَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمْ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فِيْ سَجْدَتَيْنِ الْاُوْلٰى اَطْوَلَ.

١٠٠٠ : محمود بن غيلان، ابو احمد، سفيان يحيٰي، عمره، عائشهؓ روايت كوي چه نبيؐ خلقو ته نمر تندر نيولو كښې مونځ وركړلو او دوه ركعاتو لپے څلور ركوع سره اوكړل، چه هغے كښې ورمبنے ركعت د دويم نه اوږد وو.

## باب ٦٨١ : الْجَهْرِ بِالْقِرَآءَةِ فِي الْكُسُوْفِ.

باب ٦٨١ : نمر تندر نيولو كښې اوچت آواز سره د قرأت كولو بيان.

١٠٠١ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ قَالَ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنَا بْنُ نَمِرٍ سَمِعَ ابْنَ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ جَهَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ صَلٰوةِ الْخُسُوْفِ بِقِرَآءَتِهٖ فَاِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَآءَتِهٖ كَبَّرَ فَرَكَعَ وَاِذَا رَفَعَ مِنَ الرَّكْعَةِ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ثُمَّ يُعَاوِدُ الْقِرَآءَةَ فِيْ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِيْ رَكْعَتَيْنِ وَاَرْبَعَ سَجَدَاتٍ وَقَالَ الْاَوْزَاعِيُّ وَغَيْرُهٗ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ

١٠٠١ : محمد بن مهران، وليد ابن نمر، ابن شهاب، عروه، عائشهؓ روايت كوي، نبيؐ د نمر تندر نيولو مونځ كښې اوچت اواز سره قرأت اوكه كوم وخت چه د قرأت نه فارغ شو نو تكبير ئے اووے بيائے ركوع اوكړله او د ركوع نه ئے چه سر اوچت كړلو. نو سَمِعَ اللّٰه لمن حمده ربنا ولك الحمد ئے اووے بيائے دوباره قرأت اوكه صلوٰة كسوف كښې ئے دوه ركعاته څلور ركوع او څلور سجدے اوكړلے. او اوزاعي وغيره ونيلے دي چه ما، د زهري نه په ذريعه د عروه بي بي عائشهؓ واوريدل چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په زمانه كښې نمر تندر او

اَنَّ الشَّمْسَ خَسَفَتْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ مُنَادِيًا اَلصَّلٰوةُ جَامِعَةٌ فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فِى الرَّكْعَتَيْنِ وَاَرْبَعَ سَجَدَاتٍ قَالَ وَاَخْبَرَنِىْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ نَمِرٍ سَمِعَ ابْنَ شِهَابٍ مِثْلَهُ قَالَ الزُّهْرِىُّ فَقُلْتُ مَا صَنَعَ اَخُوْكَ ذٰلِكَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ مَا صَلّٰى اِلَّا رَكْعَتَيْنِ مِثْلَ الصُّبْحِ اِذَا صَلّٰى بِالْمَدِيْنَةِ وَقَالَ اَجَلْ اِنَّهُ اَخْطَأَ السُّنَّةَ تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ ابْنُ كَثِيْرٍ وَسُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ عَنِ الزُّهْرِىِّ فِى الْجَهْرِ.

رسولو په حضور په اعلان کونکے اولیږلو چه اعلان اوکړی (مونځ تیار دے) بیا حضور مخکښې شو او دوه رکعاتو کښې څلور رکوع او څلور سجدو سره اوکړې او ولید اووے ماته عبدالرحمن بن نمر اووے چه د هغه د ابن شهاب نه دغسے اوریدلی دی نو ما اووے چه ستا وروړ یعنی عبدالله بن زبیر داخه اوکړل چه هغه مدینه کښې مونځ اوکه نو صرف دوه رکعاته نے د سحر د مونځ په شان اوکړل عروه اووے او هغه خلاف سنت اوکړل سلیمان بن کثیر او سفیان بن حسین د زهری نه د جهر متعلق دے متابع حدیث روایت کړے دے

## بَابُ ۶۸۲ : مَا جَآءَ فِىْ سُجُوْدِ الْقُرْاٰنِ وَسُنَّتِهَا.

## باب ۶۸۲ : د هغے روایتونو بیان چه د قران د سجدو او د هغے د سنت کیدو په حقله راغلے[1] دی

[1] د تلاوت سجده د احنافو په نزد واجب ده او د نورو امامانو په نزد سنت ده

۱۰۰۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِىْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْاَسْوَدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَرَاَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجْمَ بِمَكَّةَ فَسَجَدَ فِيْهَا وَسَجَدَ مَنْ مَّعَهُ غَيْرَ شَيْخٍ اَخَذَ كَفًّا مِّنْ حَصًى اَوْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ اِلٰى جَبْهَتِهٖ وَقَالَ يَكْفِيْنِىْ هٰذَا فَرَاَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا.

۱۰۰۲ : محمد بن بشار غندر شعبه ابو اسحاق اسود عبدالله (بن مسعود) روایت کوی چه نبي صلي الله علیه وسلم مکه کښې سورة نجم تلاوت که نو سوا د یو بوډا نه نورو ټولو ملګرو سجده اوکه هغے بوډا یو موټے کنکریا خاوره راواخسته او هغه نے تندی طرف ته اوچته کړه اووے وماله دا کافی ده ما اولیدل چه هغه (امیه بن خلف) د هغے نه پس د کفر حالت کښې قتل کړے شو[1].

[1] په نورو روایاتو کښې دي چه کله نبی کریم صلي الله علیه وسلم د سورة النجم تلاوت اوکړو کله چه نبی کریم صلي الله علیه وسلم سجده کوله نو ټولو مشرکانو ورسره سجده اوکړه. د دغے روایت په مختلف طریقو سره بیان شوبدے چه هغے کښے بعضے علماوو ته ساده او غلطے خبرے لګکلے دی شاه

السُّجُوْدِ وَقَدْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِيْهَا.

او ما نبي صلعم دے كښې په سجده كولو ليدلے دے.

۱. د نسائي شريف په روايت كښې دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سورة ص كښې سجده اوكړه او بيانيے او فرمايل "چه دا سجده داؤد عليه السلام د توبے د پاره كړے وه. او مونږه ئے خالص د شكر په طور كوو.

او ذلَيْسَ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُوْدِ

او د ضروري سجدونه نه ده.

دا مطلب دے چه دا سجده خو داؤد عليه السلام ده او مونږه د داؤد عليه السلام د سنت په طور او د شكر په طور كوو چه الله تعالي د داؤد عليه السلام توبه قبول كړے وه.

## بَاب ٦٨٥ : سَجْدَةِ النَّجْمِ

قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ٦٨٥ : سورهٔ نجم كښې د سجدے كولو بيان دا ابن عباسؓ د نبيؐ نه روايت كړے دے.

۱۰۰۵ : حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ سُوْرَةَ النَّجْمِ فَسَجَدَ بِهَا فَمَا بَقِيَ اَحَدٌ مِّنَ الْقَوْمِ اِلَّا سَجَدَ فَاَخَذَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ كَفًّا مِّنْ حَصًى اَوْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ اِلٰى وَجْهِهٖ وَقَالَ يَكْفِيْنِيْ هٰذَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَلَقَدْ رَاَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا.

۱۰۰۵ : حفص بن عمر، شعبه ابو اسحاق، اسود عبدالله روايت كوي، نبيؐ سورهٔ نجم اولوستو دے كښې ئے سجده اوكړه نو ټولو خلقو سجده اوكړله دغے جماعت كښې يو سړي يو موټے كنكر يا خاوره راواخسته او هغے ئے چپال تندي طرفته اوچته كړه او وے وئيل ماله دا كافي ده عبدالله اووے چه ما ددے نه پس هغه د كفر حالت كښې قتل شوے اوليدو.

## بَاب ٦٨٦ : سَجُوْدِ الْمُسْلِمِيْنَ

مَعَ الْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكُ نَجَسٌ لَيْسَ لَهٗ وُضُوْءٌ وَّكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَسْجُدُ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ.

باب ٦٨٦ : د مسلمانانو مشركانو سره د سجدے كولو بيان او مشرك ناپاك دے د هغه اودس نه وي او ابن عمر به بغير اودسه سجده كوله.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي. چه د تلاوت يے اودسه هم روا ده. دليل ئے دادے چه مشركانو د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره سجده كړے وه. او ښكاره خبره ده. چه د مشركانو د

اودس او د پاک والي سوال نه پيدا کيږي. لکن اسلام کښې د مشرکانو د سجدې څه اعتبار نشته. هغوی په مزکه تندي کيخودل. د سريعت د سجدې سره د مشرکانو څه تعلق نشته. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه که چرې بې اودسه سجده کړې وي نو د عامو صحابه کرامو د طريقې خلاف عمل دې او بيا د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه دا روايت هم شته. چه هغه به اودس سره سجده کوله. ددې وجې د هغه په حقله د امام بخاري رحمة الله عليه دا روايت شکی شو.

١٠٠٦ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ بِالنَّجْمِ وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ رَوَاهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ أَيُّوبَ.

١٠٠٦ : مسدد، عبدالوارث، ايوب، عکرمه ابن عباسؓ روايت کوي، چه نبي سورة نجم کښې سجده او کړله، او حضور سره مسلمانانو او مشرکانو هم سجده او کړله، او جن او انس سجده او کړله دا ابراهيم بن طهمان د ايوب نه روايت کړې دې.

## باب ٦٨٧ : مَنْ قَرَأَ السَّجْدَةَ وَلَمْ يَسْجُدْ.

## باب ٦٨٧ : د هغې سړي بيان چه د سجدې آيت اولولي او سجده او نه کړي.

١٠٠٧ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ أَبُو الرَّبِيعِ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ خَصِيفَةَ عَنِ ابْنِ قُسَيْطٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَأَلَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فَزَعَمَ أَنَّهُ قَرَأَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّجْمِ فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا.

١٠٠٧ : سليمان بن داود، ابو الربيع، اسماعيل بن جعفر، يزيد بن خصيفه، ابن قسيط، عطاء بن يسار نه روايت کوي، هغه حضرت زيد نه تپوس او کړو نو هغه دعوی او کړو چه هغه د نبي مخکښې سورة نجم اولوستو حضور دې کښې سجده او نه کړله.

١. رسول الله صلى الله عليه وسلم په دغه وخت کښې به سجده نه وي کړې ددې روايت نه دا نه لازميږي چه د سره بې سجده نه وه کړې.

١٠٠٨ : حَدَّثَنَا آدَمُ ابْنُ أَبِي إِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ قُسَيْطٍ

١٠٠٨ : آدم بن ابي اياس، ابن ابي ذئب، يزيد بن عبدالله بن قسيط، عطاء بن يسار، زيد بن ثابت نه روايت کوي، هغه

عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَرَأْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّجْمِ فَلَمْ يَسْجُدْ.

وايي ما د نبي مخکښې سورة نجم اولوستو نو حضور صلى الله عليه وسلم دے کښې سجده اونه کړه.

**باب ۲۸۸ : سَجْدَةِ اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ.**

**باب ۲۸۸** : سورة اذا السماء انشقت کښې د سجدے کولو بيان.

**۱۰۰۹** : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ وَمُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ اَبِي سَلَمَةَ قَالَ رَاَيْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَرَاَ اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ فَسَجَدَ بِهَا فَقُلْتُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ اَلَمْ اَرَكَ تَسْجُدُ قَالَ لَوْ لَمْ اَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ لَمْ اَسْجُدْ.

**۱۰۰۹** : مسلم بن ابراهيم، معاذ بن فضاله، هشام، يحيي ابو سلمه بيان کوي چه ما ابو هريره اذا السماء انشقت لوستو کښې اوليده نو هغه دے کښې سجده اوکړله ما ترے تپوس اوکه اے ابو هريره آيا ته ما سجده کولو باندے اونه ليدلے نو هغه جواب راکه که ما نبي په سجده کولو نه وے ليدلے نو ما به سجده نه وه کړے.

**باب ۲۸۹ : مَنْ سَجَدَ لِسُجُوْدِ الْقَارِئِ وَقَالَ بْنُ مَسْعُوْدٍ لِتَمِيْمِ بْنِ حَذْلَمٍ وَهُوَ غُلَامٌ فَقَرَاَ عَلَيْهِ فَقَالَ اسْجُدْ فَاِنَّكَ اِمَامُنَا فِيْهَا.**

**باب ۲۸۹** : د قاري په سجده د سجدے کولو بيان تيميم بن حذلم چه يو هلک وو د سجدے يو آيت ئے تلاوت کړو ابن مسعود ورته اوفرمائيل چه ته سجده اوکړه ځکه چه ته دے کښې زمونږ امام يے

۱ د تلاوت سجده د تلاوت کونکي سره سره په اوريدونکي هم واجبه ده. دلته امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي که داسے موقعه وي چه د سجدے د آيت شريف اوريدونکي هم وي. نو غوره داده چه اوريدونکي دے صف (قطار) جوړ کړي. او تلاوت کونکے دے وړاندے کړي او د هغه په اقتداء کښې دے سجده اوکړي.

**۱۰۱۰** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ عَلَيْنَا السُّوْرَةَ الَّتِيْ فِيْهَا السَّجْدَةُ فَيَسْجُدُ وَنَسْجُدُ حَتَّى مَا يَجِدُ اَحَدُنَا مَوْضِعَ جَبْهَتِهِ.

**۱۰۱۰** : مسدد، يحيي، عبيد الله، نافع، ابن عمر نه روايت کوي چه نبي به زمونږ مخکښې هغه سورت تلاوت کولو چه هغے کښې به سجده وه نو حضور به سجده کوله او مونږ به هم سجده کوله تر دے چه مونږ کښې به د بعضو د پاره د تندی ايښودلو ځاے نه وو

باب ٦٩٠: اِزْدِحَامِ النَّاسِ اِذَا قَرَأَ الْاِمَامُ السَّجْدَةَ.

١٠١١: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ آدَمَ قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ السَّجْدَةَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ فَيَسْجُدُ وَ نَسْجُدُ مَعَهُ فَنَزْدَحِمُ حَتّٰى مَا يَجِدُ اَحَدُنَا لِجَبْهَتِهِ مَوْضِعًا نَسْجُدُ عَلَيْهِ.

باب ٦٩٠: د امام د سجدې د ایت د لوستو په وخت د خلقو د ګڼې بیان

١٠١١: بشر بن آدم علي بن مسهر عبيد الله نافع ابن عمر روایت کوي چه نبي په د سجدې ایت تلاوت کولو او موږ به حضور سره وو. چه حضور به سجده کوله موږ به ور سره سجده کوله نو دومره ګڼه به شوه چه موږ کښې به بعضو د تندې ایښودو (سجدې کولو) ځای نه شو موندلو

باب ٦٩١: مَنْ رَاٰى اَنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ لَمْ يُوجِبِ السُّجُوْدَ وَقِيْلَ لِعِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ الرَّجُلُ يَسْمَعُ السَّجْدَةَ وَلَمْ يَجْلِسْ لَهَا قَالَ اَرَاَيْتَ لَوْ قَعَدَ لَهَا كَاَنَّهُ لَا يُوجِبُهُ عَلَيْهِ وَقَالَ سَلْمَانُ مَا لِهٰذَا غَدَوْنَا وَقَالَ عُثْمَانُ اِنَّمَا السَّجْدَةُ عَلٰى مَنِ اسْتَمَعَهَا وَقَالَ الزُّهْرِيُّ لَا يَسْجُدُ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ طَاهِرًا فَاِذَا سَجَدْتَ وَلَا سَفَرٍ وَاَنْتَ فِيْ حَضَرٍ فَاسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَاِنْ كُنْتَ رَاكِبًا فَلَا عَلَيْكَ حَيْثُ كَانَ وَجْهُكَ وَكَانَ السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ لَا يَسْجُدُ لِسُجُوْدِ الْقَاصِّ.

باب ٦٩١: د هغې خلقو بیان چه دوی قائل دي چه الله تعالی سجده واجب کړې نه ده. او عمران بن حصین نه تپوس اوشو چه یو سړی د سجدې ایت واوریدلو او هغې د پاره کیناست نه نو آیا سجده او کړي؟ عمران بن حصین جواب ورکړه که هغې د پاره کیناستے نو آیا سجده به یې کړې؟ ګویا د هغه نه خیال کښې رجوع هغه دې مقصد د پاره کیني یا نه کیني سجده تلاوت واجب نه ده. او سلمان اووے چه موږ دې د پاره نه وو راغلي. او عثمان اووے سجده په هغه سړي واجب ده چه دا آیت واوري. او زهري اووے چه سجده دې د پاکۍ په حالت کښې کوي او کله چه سفر کښې نه يې او حضر کښې يې یعنې په کور يې او سجده کوې نو قبلې ته مخ کړه او که ناست سوار يې نو نه ناست قبلې ته مخ کول واجب نه دي کوم طرف ته چه د سورلۍ رخ وي او سائب بن یزید به د قصه بیانونکو په سجده باندې سجده نه کوله.

١٠١٢: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ

١٠١٢: ابراهيم بن موسى هشام بن يوسف ابن جريج ابو بكر بن ابي مليكه عثمان بن عبدالرحمن تيمي ربيعه بن عبدالله

أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عُثْمَانَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ التَّيْمِيِّ عَنْ رَّبِيْعَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الْهُدَيْرِ التَّيْمِيِّ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ وَكَانَ رَبِيْعَةُ مِنْ خِيَارِ النَّاسِ عَمَّا حَضَرَ رَبِيْعَةُ مِنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَرَأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ بِسُوْرَةِ النَّحْلِ حَتّٰى إِذَا جَآءَ السَّجْدَةَ نَزَلَ فَسَجَدَ وَسَجَدَ النَّاسُ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ الْجُمُعَةُ الْقَابِلَةُ قَرَأَبِهَا حَتّٰى إِذَا جَآءَ تِ السَّجْدَةُ قَالَ يٰأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا بِالسُّجُوْدِ فَمَنْ سَجَدَ فَقَدْ أَصَابَ وَمَنْ لَّمْ يَسْجُدْ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَلَمْ يَسْجُدْ عُمَرُ وَزَادَ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَفْرِضِ السُّجُوْدَ إِلَّا أَنْ نَّشَآءَ.

بن هدير تيمي، ابو بكر او وې چه ربيعه بهترو خلقو كښې وو او هغه د عمر بن خطاب د مجلس هغه حال بيان كه چه هغه ليدلې وو چه هغه په منبر سوره نحل اولوسته تر دې چه د سجدې آيت ته راورسيد. نوراكوز شولو. او سجده ئې اوكړله او ټولو خلقو هم سجده اوكړله تر دې چه دويمه جمعه راغله، او هغه سورت ئې اووې تر دې چه د سجدې آيت راغې نو وې فرمائيل اې خلقو مونږ د سجدې آيت باندې تيريږو، چا چه سجده اوكړه نو هغه درست كار اوكه او چا چه سجده او نكړله، نو په هغه څه ګناه نشته، او عمرؓ سجده اونه كړله او نافع د ابن عمرؓ نه روايت اوكه چه الله تعالى سجده فرض نه كړه ما سوا ددې نه چه زمونږ په مرضي پريښې دو.

١. اكثر فقهاء امامانو ددې قائل دی. چه سجدهٔ تلاوت ضروری نه ده. بلكې سنت ده. د امام بخاری رحمة الله عليه هم دا مسلک دې لیکن د احنافو په نزد د تلاوت سجده واجب ده د واجب لفظ، اصطلاح د احنافو ده ددې وجې نه باقي حضرات ورته سنت وائي. د احنافو دليل دا دې چه په قرآن مجيد د سجده كولو واضح صفا حكم موجود دې. څوک چه سجده نه كوي قرآن مجيد هغه مخالفين او انكار كونكي ګنړي قرآن وائي "چه د قرآن آيت د دوی په وړاندې تلاوت كيږی نو دوي سجده نه كوي" او څوک چه آيت واوري او سجده كوی د هغوي قرآن مجيد تعريف كوي "چه كله د سجدې آيت د هغوي وړاندې تلاوت شي نو هغوي په عاجزی او زاری سره سجده كوی". ددې دواړو آيتونو نه دا ثابتيږی چه د تلاوت سجده ضروری او واجب ده.

## بَابٌ ٦٩٢: مَنْ قَرَأَ السَّجْدَةَ فِي الصَّلٰوةِ فَسَجَدَ بِهَا.

## باب ٦٩٢: مونځ كښې د سجدې آيت تلاوت كولو سره د سجدې كولو بيان.

١٠١٣: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ قَالَ

١٠١٣: مسدد، معتمر، د معتمر پلار، بكر ابو رافع روايت كوی، چه ما د ابو

حدثنا بكرٌ عن ابي رافعٍ قال صليتُ مع ابي هُريرةَ العتمةَ فقرأ اذا السّماءُ انشقّتْ فسجد فقلتُ ما هذه قال سجدتُ بها خلفَ ابي القاسمِ صلّى اللّهُ عليهِ وسلّم فلا ازالُ اسجدُ فيها حتّى القاهُ.

حضرت بکر د ابو رافع نه روایت کوي چه ما د ابو هریره سره د ماسخوتن مونځ وکړو نو هغه اذا السماء انشقت ولوستو او سجده ئې وکړه. ما ورته اووې دا څه دي؟ هغه ووې ما دې سورت کښې د ابو القاسم ﷺ شاته سجده کړې ده نو زه به همېشه په دې کښې سجده کوم تر څو چه حضور ﷺ سره یو ځائے شي.

**باب ۶۹۳ : مَنْ لَمْ يَجِدْ مَوْضِعًا لِلسُّجُوْدِ مِنَ الزِّحَامِ.**

**باب ۶۹۳ :** د ګڼې په وجه که د سجدې ځائے بیا نه مومي نو څه به کوي

**۱۰۱۴ :** حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ السُّوْرَةَ الَّتِيْ فِيْهَا السَّجْدَةُ فَيَسْجُدُ وَنَسْجُدُ حَتّٰى مَا يَجِدُ اَحَدُنَا مَكَانًا لِمَوْضِعِ جَبْهَتِهِ.

**۱۰۱۴ :** صدقه بن فضل، یحیی بن سعید، عبید الله، نافع، ابن عمر نه روایت کوي چه نبي ﷺ به هغه سورت لوستو چه سجده به په کښې وه نو سجده به ئې کوله. او موږ به هم سجده کوله تردې چه موږ نه به د تندي ایښودو ځائے هم نه بیا مندلو.

## اَبْوَابُ تَقْصِيرِ الصَّلٰوةِ — دَ قصر یعني دَ کم مونځ کولو بیان

**باب ۶۹۴ : مَا جَآءَ فِي التَّقْصِيْرِ وَكَمْ يُقِيْمُ حَتّٰى يُقَصِّرَ.**

**باب ۶۹۴ :** مونځ کښې د قصر کولو په حقله چه کوم روایتونه راغلي دي د هغې بیان او څومره موده به قیام کښې قصر کوي

۱. مسئله دا ده چه کوم فرض مونځ څلور رکعاته وي نو په سفر کښې به هغه دوه رکعته وي. د ماښام مونځ درې رکعاته او د صبا مونځ به دوه رکعته وي. په دې قصر (کمې) نشته. کوم ځائے چه بنده مسافر اوسیږي د هغه ځائے نه اته څلویښت میله یا د هغې نه زیات د سفر اراده اوکړي. نو شریعت ورته دا آسانې ورکړې ده. د اته څلویښت میلونه کم سفر کښې شریعت رعایت نه ورکوي. سفر کښې شرعي رعایت د سفر د سختو او د ضرورتونو په وجه ورکیږي. د اته څلویښت میلونو نه کم سفر ته شریعت هیڅ اهمیت نه ورکوي. کوم ځائے ته چه په سفر اورسي. او هلته کښې بنده پنځلس ورځې یا د هغې نه زیات د اوسیدو اراده اوکړي. نو بیا دا د سفر رعایت ختمیږي بیا به پوره مونځ کوي. بیا هغه بنده د شریعت په نظر کښې مسافر نه دے. د خپل کور نه اته څلویښت میله لرې د اوسیدو (د قیام) یو صورت دا دے چه یو ځائے نه

انسان په سفر کښې اورسیدو هلته کښې د پنځلس ورځو نه کم د پاتې کیدو اراده وه. خو ضرورتونه پیدا کیږي او زړه کښې وائي چه س یا صبا به روانیږم خو بیا بیائې اراده پاتې کیږي که په داسې ترتیب څوک میاشت، دوه میاشتې یا کال یا کلونه هم پاتې شو د شریعت په نظر کښې مسافر دے د شریعت په نزد کښې اعتبار ارادے او نیت لره دے که مستقل پنځلس ورځې یا دهغې نه په یو ځائې د اوسیدو اراده اوکړي نو سفر به پخپله ختم شي. ددے سر لیک لاندې دوه روایته بیان شویدي ړومبے روایت د فتح مکه په حقله دے دا روایت د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دے په دے روایت کښې دي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم نولس ورځې مکه کښې پاتې شوے وو بعضې روایاتو کښې اتلس ورځې او بعضو کښې د پنځلس ورځو ذکر دے هغه ټول روایات صحیح دي چه په دغه ورځو کښې نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه قصر کوو (د څلور رکعاتو پځائې دوه رکعته) دے کښې بنیادي او مطلبي خبره داده چه د دومره ورځو پاتې کیدو د نبي کریم صلي الله علیه وسلم اراده نه وه. مکه مکرمه فتح کولو له ې تشریف اوړے وو او مکه کښې د پاتې کیدو په اراده تشریف نه وو اوړلے د فتحې یا د ماتې (شکست) پته نه لګي چه کله به نصیب وي. ددے وجې نه نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه بغیر د معلومو ورځو پاتې کیدل راغلل. کله چه مکه مکرمه فتح شوه نو څه نه څه ضرورت به پیښیدلو چه د هغې په وجه به رسول الله صلي الله علیه وسلم پاتې کیدلو. مکه مکرمه کښې رسول الله صلي الله علیه وسلم د پنځلس ورځو یا د هغې نه زیات د پاتې کیدو، اوسیدلو اراده او نیت نه وو کړے. دا بله خبره ده چه د ضرورت په وجه هلته کښې د پنځلس ورځو نه زیات پاتې کیدل راغلل. ددے سر لیک لاندې دویم روایت د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه دے د هغې تعلق حجة الوداع سره دے دلته کښې د فتح مکې ضرورت نه وو یاد دے چرته ناندے مکه مکرمه او خواوشا کښې اوسیدل د لس ورځو د پاره وو او د دغه کیدلو د پاره د پنځلس ورځو په یو ځائې د پاتې نیت ضروري دے علامه انور شاه کشمیري رحمة الله علیه لیکلي دي چه داسې کومه مرفوع حدیث نشته چه په هغې د قصر د مونځ حد مقرر شوے وي. امامانو رحمة الله علیهم د خپل اجتهاد په ذریعه د قصر حدونه مقرر کړیدي. د صحیح مرفوع حدیث په رڼرا کښې نه دي.

۱۰۱۵: حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ إِسْمٰعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ عَاصِمٍ وَحُصَيْنٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسْعَةَ عَشَرَ يُقْصِرُ فَنَحْنُ إِذَا سَافَرْنَا تِسْعَةَ عَشَرَ قَصَرْنَا وَإِنْ زِدْنَا أَتْمَمْنَا.

۱۰۱۵: موسی بن اسماعیل، ابو عوانه، عاصم و حصین، عکرمه، ابن عباس نه روایت کوي، چه نبي نولس ورځې ایسار وو او قصر به ئې کولو نو مونږ به هم چه سفر کولو نو نولس ورځو پورې به مو قصر کولو او که ددے نه به زیات ایساریدلو نو پوره مونځ به مو کولو.

۱۰۱۶: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنِي

۱۰۱۶: ابو معمر، عبدالوارث، یحیی بن ابي اسحاق روایت کوي، ما د انس نه

يَحْيَى بْنُ أَبِيْ إِسْحَاقَ سَمِعْتُ أَنَسًا يُقُوْلُ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ إِلَى مَكَّةَ فَكَانَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ حَتّٰى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِيْنَةِ قُلْتُ أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا قَالَ أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا.

واوريدل چه مونږ نبي صلي اللّه عليه وسلم سره د مدينے نه مکے طرف ته اووتلو نو دوه دوه رکعاته به مونږ کول تر دے چه مونږ مدينے ته واپس شولو ما ورته اووے تاسو مدينه کښې څو ورځے ايسار وئے نو هغه جواب راکه چه مونږ لس ورځے ايسار وو.

## باب ۲۹۵ : الصَّلٰوةَ بِمِنًى.

## باب ۲۹۵ : مني کښې د مونځ کولو بيان.

۱۰۱۷ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ وَأَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ مَعَ عُثْمَانَ صَدْرًا مِنْ إِمَارَتِهٖ ثُمَّ أَتَمَّهَا.

۱۰۱۷ : مسدد يحيي عبيد اللّه نافع عبداللّه نه روايت کوي ما نبي صلي اللّه عليه وسلم سره او د ابو بکر عمر او عثمان د خلافت ابتدائي دور کښې مني کښې دوه رکعاته کړي دي بيا به عثمان پوره مونځ کولو.

۱۰۱۸ : حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَنْبَأَنَا أَبُو إِسْحٰقَ سَمِعْتُ حَارِثَةَ عَنْ وَهْبٍ قَالَ صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آمَنَ مَا كَانَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ.

۱۰۱۸ : ابو الوليد شعبه ابو اسحاق حارثه وهب نه روايت کوي چه مونږ خلقو ته رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم مني کښې دامن حالت کښې دوه رکعاته راکړل.

۱۰۱۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ عَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ يَقُوْلُ صَلّٰى بِنَا عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ بِمِنًى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فَقِيْلَ فِيْ ذٰلِكَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَاسْتَرْجَعَ ثُمَّ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۰۱۹ : قتيبه عبدالواحد بن زياد اعمش ابراهيم عبدالرحمن بن يزيد نه روايت کوي چه مونږ خلقو ته عثمان بن عفان مني کښې څلور رکعاته مونځ راکړلو ددے متعلق چه عبداللّه بن مسعود ته بيان اوشو نو هغه انا للّه و انا اليه راجعون اووے بيانے او فرمائيل ما رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم سره مني کښې دوه رکعاته کړي دي او ابو بکر سره

وَسَلَّمَ بِمِنٰى رَكْعَتَيْنِ وَصَلَّيْتُ مَعَ اَبِیْ بَكْرِنِ الصِّدِّيْقِ بِمِنٰى رَكْعَتَيْنِ وَصَلَّيْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ بِمِنٰى رَكْعَتَيْنِ فَلَيْتَ حَظِّىْ مِنْ اَرْبَعِ رَكْعَاتٍ رَكْعَتَانِ مُتَقَبَّلَتَانِ.

د منى كښې دوه ركعاته كړي دي او عمر بن خطاب سره د منى كښې دوه ركعاته كړي دي كاش دغې څلور ركعاتونو كښې دوه قبول شوي ركعاتونه حصو ېه حصه كښې راتلې

۱. امام بخاري رحمة الله عليه د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم د حضرت ابوبكر رضي الله عنه او د حضرت عمر رضي الله عنه په مني كښې د هغوى د مونځ ذكر ددې وجې نه كړى چه دوى به د حج په اراده مكې مكرمې ته تلل او د حج د اركانو د ادا كولو په سلسله كښې به منى كښې اوسيدل ددى به د سفر په حالت كښې وو د دې وجې به دوي قصر كولو. حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل دور خلافت په اولې حصه كښې قصر كولو ليكن روستو بيا هغه په مني كښې پوره څلور ركعاته ادا كول. په دې باندې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ډير خفګان ښكاره كړو. نورو روايتونو كښې چه حضرت عثمان رضي الله عنه د پوره څلور ركعاتو كولو عذر بيان كړو چه هغه په اصل كښې د مكې دے او مني مكې سره نژدې ده. دا ټول احاديث دا ښائي چه د سفر په حالت كښې د قصر ډير اهميت دے د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد په سفر كښې قصر واجب دے.

## بَاب ۲۹۶: كَمْ اَقَامَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِیْ حَجَّتِهٖ.

باب ۲۹۶: حج كښې نبي صلي الله عليه وسلم څو ورځې پاتې وو.

۱۰۲۰: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنَا وَهُيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِیْ الْعَالِيَةِ الْبَرَآءِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابُهٗ لِصُبْحِ رَابِعَةٍ يُلَبُّوْنَ بِالْحَجِّ فَاَمَرَهُمْ اَنْ يَجْعَلُوْهَا عُمْرَةً اِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهٗ هَدْیٌ تَابَعَهٗ عَطَآءٌ عَنْ جَابِرٍ.

۱۰۲۰: موسي بن اسماعيل، وهيب، ايوب، ابو العاليه، براء ابن عباس نه روايت كوى چه نبي صلى الله عليه وسلم او د هغوي ملګرو په څلورم ذي الحجه سحر كښې د حج تلبيه وئيلو سره تشريف راوړلو، نو هغې خلقو ته حكم وركړې شو چه دغه (حج) عمره جوړه كړي خو هغه سړې چه هغه سره د قرباني څناور وي. (هغه دې حج او كړي) عطاء د جابر نه ددې متابع حديث روايت كړې دے.

## بَاب ۲۹۷: فِیْ كَمْ تَقْصُرَ الصَّلٰوةُ وَسَمَّى النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّفَرَ يَوْمًا وَّلَيْلَةً وَّكَانَ ابْنَ عُمَرَ وَ بْنِ عَبَّاسٍ تَقْصُرَانِ وَيُفْطِرَانِ فِیْ

باب ۲۹۷: څومره مسافت كښې قصر مونځ پكار دے نبي صلعم يوې ورځې او يوې شپې ته هم سفر وئيلې دے او ابن عمر او عباس به د څلور بريد د مسافت په سفر كښې قصر كولو او افطار به يې كولو او څلور بريد شپاړس فرسخ وي. (اته څلويښت ميلو مسافت او هر

اَرْبَعَةِ بُرُدٍ وَهُوَ سِتَّةَ عَشَرَ فَرْسَخًا.

ښار څلور برده دي او هغه شپاړس فرسخه دي.

١. څرنګ چه وړاندې بيان شويدي. چه کله سفر اته څلويښت ميله وي نو د قصر موقع به کيږي. اصل مذهب دا دے چه د درے ورځو درے شپو د پياده تلو مزل وي. نو د سفر رعايتونه به حاصليږي يا د ورځو اندازه او کړے شوه. چه دغه مزل په څو ورځو کښې ختميږي په دے حقله د علماؤ مختلف وينا ده ليکن فتوي په اته څلويښت ميله ده د يو ورځے د يو شپے مزل ته هم رسول الله صلي الله عليه وسلم سفر ويلے دے خو په هغے کښې ئے د قصر حکم نه دے کړے. ددے وجے نه دغه سفر کښې رعايتونه نشته. امام بخاري رحمة الله عليه ته د خپلو شرطونو برابر حديث شريف په لاس ورغلے نه دے حد به هغے کښې د شرعي سفر او د هغے د خاص رعايتونو بيان وي. د دے وجے نه د عام ضرورتونو د سفر په حقله احاديث ئے دے باب کښې نقل کړيدي.

١٠٢١: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ قَالَ لِاَبِيْ اُسَامَةَ حَدَّثَكُمْ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُسَافِرُ الْمَرْاَةُ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا مَعَ ذِيْ مَحْرَمٍ.

١٠٢١: اسحاق مونږ ته بيان او که ما د ابو اسامه نه تپوس او کړ آيا تاته عبيد الله په سند د نافع ابن عمر روايت کړے دے چه نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي چه ښځه دے د دريو ورځو سفر نه کوي. بغير د هغے صورت نه چه د هغے څوک محرم خپلوان ورسره وي.

١٠٢٢: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُسَافِرُ الْمَرْاَةُ ثَلَاثًا اِلَّا مَعَهَا ذُوْمَحْرَمٍ تَابَعَهُ اَحْمَدُ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

١٠٢٢: مسدد يحيٰي عبيد الله نافع ابن عمرؓ نه او هغه د نبي اکرم نه روايت کوي حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل هيڅ ښځه د دريو ورځو سفر نه کوي خو دا چه داسے رشته دار ورسره وي چه هغه سره نکاح حرام وي. احمد په روايت د عبدالله بن مبارک عبيد الله نافع ابن عمرؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه ددے متابع حديث روايت کړے دے.

١٠٢٣: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

١٠٢٣: ادم ابن ابي ذئب مقبري د مقبري پلار ابو هريرهؓ نه روايت کوي نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چه الله او د اخرت ورځ باندے ايمان لرونکے هيڅ ښځے د پاره حلال نه دي چه د يوشوا روز سفر او کړي داسے حال

اَنْ تُسَافِرَ مَسِيْرَةَ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ لَّيْسَ مَعَهَا حُرْمَةٌ تَابَعَهُ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ وَّسُهَيْلٌ وَّمَالِكٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

کښې چه هغې سره داسې رشته دار نه وي چه هغه سره نکاح حرام وي يحيي ابن ابي كثير و سهيل و مالک د مقبري نه او هغه د ابو هريرةؓ نه ددې متابع حديث روايت کړې دې[۱].

۱ . وړاندې دوه احاديثو کښې د درې ورځو د سفر ذکر وو . دريم حديث شريف کښې د يو ورځې په سفر د غير محرم سره د ښځې د سفر نه منعه کړې شويده. ظاهره ده. چه ددې احاديثو د قصر او د پوره مونځ سره څه تعلق نشته. دې کښې د عام حاجتونو د پاره د سفر پحقله احکام دي. په مختلف وختونو کښې د رسول الله صلي الله عليه د دربار نه مختلف احکام جاري شويدي. په دې کښې د راويانو اختلاف ته هيڅ دخل نشته چه حديث يو وي او د راويانو د اختلاف په وجه دې احکام بدل شي . د فقه حنفي کتابونو کښې ليکلي دي چه د ښځې د پاره بغير د محرم نه سفر کول روا نه دي. په دې کښې د سفر د منزل اندازه نشته. خو که چرې د فتنې فساد خطره نه وي نو بغير د محرم نه هم ښځه سفر کولې شي.

## باب ۲۹۸ : يَقْصُرُ اِذَا خَرَجَ مِنْ مَّوْضِعِهٖ

باب ۲۹۸ : چه د کور نه اوځي نو قصر دې کوي

وَخَرَجَ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَصَرَ وَهُوَ يَرَى الْبُيُوْتَ فَلَمَّا رَجَعَ قِيْلَ لَهُ هٰذِهِ الْكُوْفَةُ قَالَ لَا حَتّٰى نَدْخُلَهَا.

عليؓ بن ابي طالب د کورنه اووتلو نو مونځ کښې ئې قصر اوکه داسې حال کښې چه هغه کورونه ليدل کوم وخت چه هغه واپس شو نو ورته اووئيلې شو چه دا خو کوفه ده نو هغه جواب ورکه چه نه څو پورې چه مونږ هلته داخل نه شو[۱].

۱ . نورو رواياتو کښې دي چه حضرت علي کرم الله وجهه د شام په اراده په سفر روان شوې وو د کوفې د ښهر نه د وتلو سره ئې سمدستي قصر شروع کړې وو . داسې په واپسي کښې د کوفې د ښهر کورونه ښکاره کيدل. په هغه وخت ئې هم د قصر مونځ اوکړو . چه کله ورته اوويلې شو ته خو د کوفې ښهر ته نږدې يې هغه او فرمايل چه پوره مونځ به مونږ هله کوو چه د کوفې ښهر کښې ننوزو . اوس خو د کوفې نه بهر يو . د احنافو په نزد هم دا مسئله ده.

۱۰۲۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ وَاِبْرَاهِيْمَ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّيْتُ الظُّهْرَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ اَرْبَعًا وَالْعَصْرَ بِذِى الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ.

۱۰۲۴ : ابو نعيم، سفيان، محمد بن منكدر و ابراهيم بن ميسره، انس بن مالکؓ نه روايت کوي چه ما نبي صلي الله عليه وسلم سره مدينه کښې د ماسپخين څلور رکعاته، او د مازيګر ذي الحليفه کښې دوه رکعاته کړې دي[۱].

۱ نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حج په اراده مکې معظمې ته روان وو د د سحر د مونځ په وخت مدینه منوره کښې وو بیا یې سفر شروع کړو چه ذوالحلیفه ته ورسیدو د ماښګر وخت وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د ماښګر مونځ د څلورو په ځای دوه رکعته وکړل

**۱۰۲۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ الصَّلٰوةُ اَوَّلُ مَا فُرِضَتْ رَكْعَتَانِ فَاُقِرَّتْ صَلٰوةُ السَّفَرِ وَاُتِمَّتْ صَلٰوةُ الْحَضَرِ قَالَ الزُّهْرِيُّ فَقُلْتُ لِعُرْوَةَ فَمَا بَالُ عَائِشَةَ تُتِمُّ قَالَ تَاَوَّلَتْ مَاتَاَوَّلَ عُثْمَانُ.**

۱۰۲۵ : عبدالله بن محمد، سفیان، زهری، عروه د عائشې نه روایت کوی هغه فرمائی چه مونځ رنې دوه رکعته فرض شوې وو نو د سفر مونځ قائم پاتې شو او د حضر مونځ پوره کړې شو ما عروه ته اووې د عائشې څه حال دې نو هغه اووې عائشې تاویل کړې دې څنګه چه عثمان تاویل کړې دې ۱.

۱ حضرت عائشې بي بی رضی الله عنها د حج په موقعه په منی کښې پوره څلور رکعاته مونځ کول قصر یې نه کول هغه په سفر کښې وه هغې له د قصر مونځ کول پکار وو دې روایت کښې دې واقعې ته اشاره شویده. حضرت عروه رضي الله عنه جواب ورکړو چه حضرت عثمان رضی الله عنه کوم عذر بیان کړې وو هغه د عائشې بي بی رضي الله عنها هم وو. د حضرت عثمان رضي الله عنه خیال کوو مکه معظمه کښې هم وو هغه د پاتې کیدو اراده کړې وه. دغه عذر د حضرت عائشې بي بی رضي الله عنها هم وو

## بَابُ ۶۹۹ : يُصَلِّي الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا فِي السَّفَرِ.

باب ۶۹۹ : د ماښام مونځ دې سفر کښې درې رکعاته کوي.

**۱۰۲۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ فِي السَّفَرِ يُؤَخِّرُ الْمَغْرِبَ حَتّٰى يَجْمَعَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِشَآءِ قَالَ سَالِمٌ وَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهُ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ وَزَادَ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَالِمٌ**

۱۰۲۶ : ابو الیمان، شعیب، زهري، سالم عبدالله بن عمر روایت کوي هغه وائي ما رسول الله صلي الله علیه وسلم اولیدو چه سفر کښې به ئې زر رسیدل وو نو ماښام کښې به یې تاخیر کولو تر دې چه ماښام او ماسختن دواړه (مونځونه) به ئې یو ځائې کول. او د سالم بیان دې چه عبدالله بن عمر به هم دغسې کول چه چرته به زر رسیدل وو او لیث دې زیاتي سره بیان کړې دې چه ماته یونس او هغه د ابن شهاب نه او هغه د سالم نه روایت کړې دې چه ابن عمر به د

كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ بِالْمُزْدَلِفَةِ قَالَ سَالِمٌ وَاَخَّرَ ابْنُ عُمَرَ الْمَغْرِبَ وَكَانَ اسْتُصْرِخَ عَلٰى امْرَاَتِهٖ صَفِيَّةَ بِنْتِ اَبِيْ عُبَيْدٍ فَقُلْتُ لَهُ الصَّلٰوةُ فَقَالَ سِرْ فَقُلْتُ لَهُ الصَّلٰوةُ فَقَالَ سِرْ حَتّٰى سَارَ مِيْلَيْنِ اَوْ ثَلَاثَةً ثُمَّ نَزَلَ فَصَلّٰى ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ وَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ يُقِيْمُ الْمَغْرِبَ فَيُصَلِّيْهَا ثَلٰثًا يُسَلِّمُ ثُمَّ قَلَّمَا يَلْبَثُ حَتّٰى يُقِيْمَ الْعِشَآءَ فَيُصَلِّيْهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ يُسَلِّمُ وَلَا يُسَبِّحُ بَعْدَ الْعِشَآءِ حَتّٰى يَقُوْمَ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ.

مابنام او ماسختن مونځ مزدلفه کښې يو ځائے کولو او دسالم بيان دے چه ابن عمرؓ ته کوم وخت د خپلې بي بي صفيه بنت ابي عبيد د سختې بيمارۍ اطلاع اورسيدله. نو د مابنام مونځ کښې ئې تاخير کړے وو ماورته اووے چه د مونځ وخت شو نو هغه اووے څه چه خو ما ورته اووے د مونځ وخت راغے نو هغه اووے مخ په وړاندے خه تر دے چه دوه يا درے ميله مخکښې لاړو بيا کوز شولو او مونځ ئې اوکه بيائے اووے ما نبي صلي الله عليه وسلم په دغسې مونځ کولو ليدلے دے چه حضورؐ ته به چرته زرتلل وو. عبدالله بن عمرؓ اووے، ما نبي صلي الله عليه وسلم اوليدلو. چه سفر کښې به د حضورؐ تادي وه نو د مابنام تکبير به ئې اوکه او درے رکعاته مونځ به ئې اوکه نو سلام به ئې اوګرځولو بيا به ډير کم ايساريدلو او د ماسختن د مونځ تسبيح (نفل سنت) به ئې نه کول تر دے چه نيمے شپے نه ورستو به اودريدلو.

## بَابٌ ۷۰۰: صَلٰوةِ التَّطَوُّعِ عَلَى الدَّوَآبِّ حَيْثُمَا تَوَجَّهَتْ.

## باب ۷۰۰: سورلۍ باندے د نفل کولو بيان د سورلۍ مخ چه هر طرف ته وي.

۱۰۲۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى قَالَ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَامِرٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهٖ.

۱۰۲۷: علي بن عبدالله، عبدالاعلي معمر زهري، عبدالله بن عامر د خپل پلار (ربيعه) نه روايت کوي، د هغه بيان دے چه ما نبي صلي الله عليه وسلم په سورلۍ په مونځ کولو باندے ليدلے دے د سورلۍ رُخ چه به کوم طرف ته وو.

۱۰۲۸ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعِيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ لِلتَّطَوُّعِ وَهُوَ رَاكِبٌ فِيْ غَيْرِ الْقِبْلَةِ.

۱۰۲۸ : ابو نعيم، شيبان، يحيى، محمد بن عبدالرحمان، جابر بن عبدالله بيان كولو چه نبي صلي الله عليه وسلم به نفل مونځ په سورلۍ د قبلے نه سوا بل زخ ته هم كولو.

۱۰۲۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى ابْنُ حَمَّادٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ وَيُوْتِرُ عَلَيْهَا وَيُخْبِرُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُهُ.

۱۰۲۹ : عبدالاعلي بن حماد، وهيب، موسي بن عقبه نافع روايت كوي، چه حضرت ابن عمرؓ به په سورلۍ نفل مونځ كولو او وتر به ئے هم كول او خبر به ئے وركولو چه نبي صلي الله عليه وسلم به هم داسے كول[۱].

۱. د سورلۍ مونځ كښ د تكبير تحريمه په وخت قبلے طرفته مخ كول د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد شرط دے د احنافو په نزد مستحب دے. د سورلۍ مخ چه كوم طرفته وي هغه خوا ته مونځ كوي. په مونځ كښ څه نقصان نه راځي.

باب ۷۰۱ : اَلْاِيْمَاءِ عَلَى الدَّآبَّةِ.

باب ۷۰۱ : سورلۍ باندے اشارے سره د مونځ كولو بيان.

۱۰۳۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ ثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ يُصَلِّيْ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ اَيْنَمَا تَوَجَّهَتْ بِهٖ يُوْمِئُ وَذَكَرَ عَبْدُ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُهُ.

۱۰۳۰ : موسي بن اسماعيل، عبدالعزيز بن مسلم، عبدالله بن دينار بيان كوي، چه حضرت عبدالله بن عمرؓ به سفر كښ په خپله سورلۍ مونځ كولو كوم طرف ته به چه د سورلۍ زخ وو اشاره به ئے كوله، او د عبدالله بيان دے چه نبي صلي الله عليه وسلم به دغسے كول.

باب ۷۰۲ : يَنْزِلُ لِلْمَكْتُوْبَةِ.

باب ۷۰۲ : فرض مونځ د پاره د سورلۍ نه د كوزيدو بيان.

۱۰۳۱ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ اَنَّ عَامِرَ بْنَ رَبِيْعَةَ اَخْبَرَهُ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الرَّاحِلَةِ يُسَبِّحُ يُوْمِئُ بِرَاْسِهِ قِبَلَ اَيِّ وَجْهٍ تَوَجَّهَ وَلَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ ذٰلِكَ فِي الصَّلٰوتِ الْمَكْتُوْبَةِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ سَالِمٌ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يُصَلِّيْ عَلٰى دَآبَّتِهٖ مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُسَافِرٌ مَّا يُبَالِيْ حَيْثُ مَا كَانَ وَجْهُهُ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَبِّحُ عَلَى الرَّاحِلَةِ قِبَلَ اَيِّ وَجْهٍ تَوَجَّهَ وَيُوْتِرُ عَلَيْهَا غَيْرَ اَنَّهُ لَا يُصَلِّيْ عَلَيْهَا الْمَكْتُوْبَةَ.

۱۰۳۱ : یحیی بن بکیر، لیث، عقیل، ابن شهاب عبدالله بن عامر بن ربیعه (د خپل پلار) عامر بن ربیعه نه روایت کوي هغه وائي ما رسول صلی الله علیه وسلم په سورلی په نفل کولو لیدلے دے خپل سر سره به نے اشاره کوله کوم طرف ته به چه د رسول الله صلی علیه وسلم داسے نه کول لیث وائی ما ته یونس هغه د ابن شهاب نه او هغه د سالم نه روایت کړے دے هغه وائی چه عبدالله بن عمر به په خپلے سورلی د شپے مونځ د سفر په حالت کښې کولو او ددے پروا به نے بالکل نه کوله چه د سورلی رخ کوم طرف ته دے ابن عمر وائي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به په سورلی نفل مونځ کولو د سورلی رخ چه به کوم طرفته وو او به هغے به نے وتر هم کول خو دا چه فرض مونځ به نے په سورلی نه کولو

۱۰۳۳ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ ثَوْبَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ نَحْوَ الْمَشْرِقِ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يُصَلِّيَ الْمَكْتُوْبَةَ نَزَلَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ.

۱۰۳۳ : معاد بن فضاله، هشام، یحیي، محمد بن عبدالرحمن بن ثوبان، جابر بن عبدالله نه روایت کوي، چه نبي صلي الله علیه وسلم به په سورلی مشرق طرفته مخ که مونځ به نے کولو او کله چه به نے اراده او کړله چه فرض مونځ او کړي نو راکوز به شولو او قبلے ته به نے مخ کړلو

بحمدالله د تاج البخاري څلورمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحيح البخاری

پاره ۵

شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امين درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دين البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-22

# تاج البخاري پاره ۵ دمضامينو فهرست

# پنځمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**بـاب ۷۰۳: صَلوٰةِ التَّطَوُّعِ عَلَى الْحِمَارِ.**

**بـاب ۷۰۳:** خـر بـانـدې د نـفـل مـونـځ كولو بيان.

**۱۰۳۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَبَّانُ قَالَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ سِيْرِيْنَ قَالَ اسْتَقْبَلْنَا اَنَسًا حِيْنَ قَدِمَ مِنَ الشَّامِ فَلَقِيْنَاهُ بِعَيْنِ التَّمْرِ فَرَاَيْتُهُ يُصَلِّيْ عَلٰى حِمَارٍ وَّجُهُهُ مِنْ ذَا الْجَانِبِ يَعْنِيْ عَنْ يَّسَارِ الْقِبْلَةِ فَقُلْتُ رَاَيْتُكَ تُصَلِّيْ لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ فَقَالَ لَوْلَا اَنِّيْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَهُ لَمْ اَفْعَلْهُ رَوَاهُ ابْنُ طَهْمَانَ عَنْ حَجَّاجٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**۱۰۳۳:** احـمـد بـن سـعيد. حبـان، هـمـام، انـس بـن سيـريـن روايـت كـوي، چه انس د شام نه راغـې نو مـونـږ د هـغـه استـقبال (پـه خيره راغلې) لـه ورغـلو، مـونـږ هـغـه سره عين التمر كښې يوځائې شولو، نو مـا هـغـه پـه خـر بـانـدې په مونځ كولو اوليدلو، او د هـغـه مخ د هغې جانب يعني د قبلې نه كس طرف ته وو ما هـغـه تـه اووې چـه مـا تـه د قبلې نـه بل طرف تـه پـه مـونـځ كـولـو اوليـدې، نو هـغـه جـواب كـښې اووې، كـه مـا رسـول الـلّٰـه صـلي اللّٰه عليـه وسلم پـه دغـسې كـولـو نـه وې ليدلې، نو مـا بـه داسـې نـه كـولې. طهـمـان دا حـديـث پـه ذريـعه د حجاج انس بن سيرين، انـس د نبـي صـلـې الـلّٰـه عـليـه وسـلـم نـه روايـت كړيدې.

**بـاب ۷۰۴: مَنْ لَمْ يَتَطَوَّعْ فِي السَّفَرِ دُبُرَ الصَّلوٰةِ وَقَبْلَهَا.**

**باب ۷۰۴:** د هـغـې سړي بيان، چه سفر كښې د فرض مونځ نه مخكښې او ورستو نفل اونه كړي[۱].

۱. د سـفـر د مشـكـلاتـو د خـاطـره، كله چه فرض مونځونه د څلورو پځائې دوه ركعته پاتې شو نو د فـرض مـونـځونو سره چه كوم سنت ركعتونه ادا كيدل هغه هم ادا كول ضروري پاتې نه شو. د احنافو فقهاؤ ددې پـه حـقـلـه مختلف رائې دي. ليكن تولو كښې د امام محمد رحمة اللّٰه عليه قول ډير صحيح او مناسب دې هـغـه فـرمـائـي كـه چـرې مسافر په لاره روان دې نو سنت مونځ كول پكار ندي او چه كله خپل منزل مقصود ته د سفر دوران كښې اورسيدو نو سنت ادا كول غوره دي.

**۱۰۳۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ**

**۱۰۳۴:** يـحـيـي بـن سـليـمـان. ابـن وهـب. عـمـر بـن مـحـمـد. حـفـص بـن عـاصـم بيـان كـوي،

حَدَّثَنِيْ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَنَّ حَفْصَ بْنَ عَاصِمٍ حَدَّثَهُ قَالَ سَافَرَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقَالَ صَحِبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ اَرَهُ يُسَبِّحُ فِي السَّفَرِ وَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهُ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

چه ابن عمر سفر اوکړو نو وې فرمائيل: چه زه نبي صلي الله عليه وسلم سره ووم نو ما حضور سفر کښې په نفل کولو نه دې ليدلې او الله تعالى فرمائيلي دي: چه ستاسو د پاره د الله رسول خائسته نمونه ده.

١٠٣٥ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عِيْسَى بْنِ حَفْصِ ابْنِ عَاصِمٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ لَا يَزِيْدُ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ وَ اَبَا بَكْرٍ وَّ عُمَرَ وَعُثْمَانَ كَذٰلِكَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

١٠٣٥ : مسدد. يحيى. عيسى بن حفص بن عاصم د خپل پلار نه روايت کړي هغه د ابن عمر نه واوريدل چه زه رسول الله صلي الله عليه وسلم سره سفر کښې ووم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به د دوو رکعاتو نه زيات نه کول او ابوبکر، عمر، عثمان به هم داسې کول.

بَابٌ ٧٠٥ : مَنْ تَطَوَّعَ فِي السَّفَرِ دُبُرَ الصَّلٰوةِ وَقَبْلَهَا وَرَكَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فِي السَّفَرِ.

باب ٧٠٥: چا چه سفر کښې د فرض مونځونو نه مخکښې او ورستو نفل مونځ اوکړو[1] او نبي صلي الله عليه وسلم سفر کښې د سحر دوه رکعاته اوکړل.

١. د صحيح بخاري شريف په بعضې نسخو کښې د فرضونه د اول او روستو سنتو ذکر دې ليکن زياته صحيح نسخه هغه ده چه د هغې دلته سرليک مقرر شويدي. ددينه معلوميږي چه د امام بخاري رحمة الله عليه په نزد په سفر کښې چه کوم نفل او سنت نه ادا کولو ذکر دې هغې نه مراد هغه سنت مونځ دې کوم سنت چه د فرضو نه روستو ادا کيږي. تهجد وغيره او هغه مونځونه چه د فرض وختونو نه په بل وخت کښې ادا کيږي يا هغه سنت رکعتونه چه د فرضو نه وړاندې ادا کيږي. د هغې نه منعه په حديث شريف کښې نشته.

١٠٣٦ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ

١٠٣٦ : حفص بن عمر. شعبه. عمرو. ابن ابي ليلى روايت کوي: د ام هانئ نه سوا

ابْنِ اَبِیْ لَیْلٰی قَالَ مَا اَنْبَاَ اَحَدٌ اَنَّهٗ رَاَی النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَلَّی الضُّحٰی غَیْرُ اُمِّ هَانِی ءٍ ذَکَرَتْ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمَ فَتْحِ مَکَّةَ اغْتَسَلَ فِیْ بَیْتِهَا فَصَلّٰی ثَمَانَ رَکْعَاتٍ فَمَا رَاَیْتُهٗ صَلّٰی صَلٰوةً اَخَفَّ مِنْهَا غَیْرَ اَنَّهٗ یُتِمُّ الرُّکُوْعَ وَالسُّجُوْدَ وَقَالَ اللَّیْثُ حَدَّثَنِیْ یُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَامِرٍ اَنَّ اَبَاهُ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ رَاَی النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَلَّی السُّبْحَةَ بِاللَّیْلِ فِی السَّفَرِ عَلٰی ظَهْرِ رَاحِلَتِهٖ حَیْثُ تَوَجَّهَتْ بِهٖ.

هیڅ چا مونږ ته د نبي علیه السلام د څاښت مونځ نه دے بیان کړے اُم هانيؓ وائي د مکے د فتح په ورځ حضورؐ د هغے کور کښې غسل او کړ، بیا ئے اته رکعاته اوکړل ما حضورؐ نه دے لیدلے چه ددے نه آسان (مختصر) مونځ ئے چرته کړے دے ماسوا ددے نه چه حضورؐ به رکوع او سجدے پوره کولے. او د لیث بیان دے، چه ماته یونس، هغه د ابن شهاب نه، ابن شهاب د عبدالله بن عامر نه هغه د خپل پلار نه روایت کړے دے، چه هغه نبي صلے الله علیه وسلم سفر کښې په سورلۍ د شپے نفل مونځ کولو بساندے لیدلے دے، د سورلۍ مخ چه به کوم طرف ته وو.

۱۰۳۷ : حَدَّثَنَا اَبُوالْیَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کَانَ یُسَبِّحُ عَلٰی رَاحِلَتِهٖ حَیْثُ کَانَ وَجْهُهٗ یُوْمِیْ بِرَاْسِهٖ وَکَانَ ابْنُ عُمَرَ یَفْعَلُهٗ.

۱۰۳۷ : ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم بن عبدالله. ابن عمرؓ روایت کوي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به د سورلۍ به شا نفل مونځ کولو. د سورلۍ زخ چه به کوم طرف ته وو. حضورؐ به خپل سر مبارک سره اشاره کوله، او ابن عمرؓ هم دغسے کول.

## بَاب ۷۰۶ : اَلْجَمْعِ فِی السَّفَرِ بَیْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ.

## باب ۷۰۶ : سفر کښې د ماښام او ماسختن مونځ په یوځائے د کولو بیان.

۱۰۳۸ : حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِیَّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِیْهِ قَالَ کَانَ

۱۰۳۸ : علي بن عبدالله. سفیان. زهري. سالم د خپل پلار نه روایت کوي چه رسول الله صلے الله علیه وسلم به د ماښام او ماسختن

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ اِذَا جَدَّبِهِ السَّيْرُ وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنِ الْحُسَيْنِ الْمُعَلِّمِ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ صَلَاةِ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ اِذَا كَانَ عَلٰى ظَهْرِ سَيْرٍ وَّ يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ وَعَنْ حُسَيْنٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ حَفْصِ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ فِي السَّفْرِ وَتَابَعَهُ عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ وحَرْبٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ حَفْصٍ عَنْ اَنَسٍ جَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

مونخ په يو ځائے کولو' کله چه به حضورؐ په سفر وو' او ابراهيم بن طهمان په ذريعه د حسين معلم' يحيى بن ابي کثير. عکرمه. ابن عباسؓ نه روايت کوي' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به د ماسپخين او مازيګر مونخ په يو ځائے کولو' کله چه به حضورؐ په سفر وو. او د ماښام او ماسختن مونځ به نے يوځائے کولو. او په سند د حسين. يحيي بن کثير. حفص بن عبيداللّٰه بن انس. انس بن مالکؓ نه روايت کوي' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به د ماښام او ماسختن مونځ سفر کښې يوځائے کولو. او علي بن مبارک او حرب په سند د يحيي. حفص. انسؓ نه ددے متابع حديث روايت کړے' چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم جمع کړے دےا.

ا . په سفر کښې او بغير د سفر نه به رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم د دوو وختونو مونخونه په يو وخت کول. ليکن د احاديثو شرح کونکي عالمان په دے کښې اختلاف کوي. چه آيا دا مونخونه به نے په يو وخت کول' د ماسپخين مازيګر' د مازيګر په وخت او د ماښام ماسختن په ماسختن کښې' يا ښکاره به داسے په يو وخت کښې ښکاريدل لکه د ماسپخين په آخر وخت کښې او د مازيګر په اول وخت کښې احناف نے دا دويم صورت بيانوي.

## بَابٌ ۷۰۷: هَلْ يُؤَذِّنُ اَوْيُقِيْمُ اِذَا جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ.

## باب ۷۰۷: د ماښام او ماسختن مونخ چه يوځائے کوي نو آيا اذان يا اقامت به کوي؟ا.

ا . د احنافو مسلک دا دے چه کله دوه مونخه په يو ځائے کوي نو د دواړو د پاره به خان له' خان له اذان او اقامت کوي او که اذان نے يو ځل اوکړو او اقامت نے دواړو له اوکړو نو هم څه ګناه نشته.

**۱۰۳۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ فِي السَّفَرِ يُؤَخِّرُ صَلَاةَ الْمَغْرِبِ حَتّٰى يَجْمَعَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِشَآءِ قَالَ سَالِمٌ وَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَفْعَلُهُ اِذَا اَعْجَلَهُ السَّيْرُ وَيُقِيْمُ الْمَغْرِبَ فَيُصَلِّيْهَا ثَلَاثًا ثُمَّ يُسَلِّمُ ثُمَّ قَلَّمَا يَلْبَثُ حَتّٰى يُقِيْمَ الْعِشَآءَ فَيُصَلِّيْهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ يُسَلِّمُ وَلَا يُسَبِّحُ بَيْنَهَا بِرَكْعَةٍ وَّلَا بَعْدَ الْعِشَآءِ بِسَجْدَةٍ حَتّٰى يَقُوْمَ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ.**

۱۰۳۹ : ابوالیمان. شعیب. زهری. سالم. عبدالله بن عمر روایت کوي چه ما رسول الله صلي الله علیه وسلم اولید چه کله به حضور ته سفر کښې تلوار وه نو د ماښام مونځ به ئې ورستو کولو ترڅو چه د ماښام او ماسختن مونځ به ئې یوځائې کولو. او د سالم بیان دې چه عبدالله هم دغسې کول چه سفر کښې به ئې تادي وه نو د ماښام اقامت به ئې کولو. د ماښام به ئې درې رکعاته کول. بیائې سلام کرځولو بیا به ډیر کم ایساریدلو ترڅو چه د ماسختن تکبیر به اوشولو او دوه رکعاته د ماسختن مونځ به ئې د دې دواړو په مینځ کښې او نه د ماسختن نه پس نفل کول ترڅو چه د نیمې شپې به (مانځه د پاره) اودریدلو.

**۱۰۴۰ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا حَرْبٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ حَفْصُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ اَنَّ اَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدَّثَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ فِي السَّفَرِ يَعْنِي الْمَغْرِبَ وَالْعِشَآءَ.**

۱۰۴۰ : اسحاق. عبدالصمد. حرب. یحیي. حفص بن عبیدالله بن انس بیان کوي. حضرت انس هغه ته اووې چه نبي صلې الله علیه وسلم به دا دواړه مونځونه یعني ماښام او ماسختن سفر کښې یوځائې کول.

**باب ۷۰۸ : يُؤَخِّرُ الظُّهْرَ اِلَى الْعَصْرِ اِذَا رُتَحَلَ قَبْلَ اَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ فِيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

باب ۷۰۸ : د نمر خکته کیدونه مخکښې که په سفر روانیږي نو ماسپخین دې د مازیګر د وخته پورې ورستو کړي. دې کښې د ابن عباسؓ قول د نبي صلې الله علیه وسلم نه منقول دې.

**۱۰۴۱ : حَدَّثَنَا حَسَّانُ**

۱۰۴۱ : حسان واسطي. مفضل بن فضاله.

الْوَاسِطِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ اَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ اَخَّرَ الظُّهْرَ اِلٰى وَقْتِ الْعَصْرِ ثُمَّ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا وَ اِذَا زَاغَتْ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَكِبَ.

عقيل. ابن شهاب. انس بن مالک روايت کوی چه نبي صلي الله عليه وسلم به د نمر ښکته کيدونه مخکښې په سفر روانيدلو نو ماسپخين (مونخ) به نې د مازيګر پورې ورستو کولو. بيا به نې دا دواړه (مونځونه) يوځاني کول. او چه نمر به ښکته شو د ماسپخين مونځ به نې او کړو سور به شولو.

باب ۷۰۹: اِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ مَا زَاغَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَكِبَ.

باب ۷۰۹: که د نمر ښکته کيدو نه ورستو سفر شروع کوي نو د ماسپخين مونځ دې او کړي بيا دې سور شي.

۱۰۴۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ اَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ اَخَّرَ الظُّهْرَ اِلٰى وَقْتِ الْعَصْرِ ثُمَّ نَزَلَ فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا فَاِنْ زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَحِلَ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَكِبَ.

۱۰۴۲: قتيبه. مفضل بن فضاله. عقيل. ابن شهاب. انس بن مالک روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به د نمر ښکته کيدو نه مخکښې سفر کولو نو د ماسپخين مونځ به يې د مازيګر وخته پورې ورستو کړو. بيا به د سورلۍ نه راکوز شولو او دا دواړه مونځونه به نې يوځائې کول. او که د سفر شروع کولونه مخکښې به نمر ښکته شو نو د ماسپخين مونځ به نې او کړ بيا به سور شولو.

باب ۷۱۰: صَلٰوةِ الْقَاعِدِ.

باب ۷۱۰: د ناستې د مونځ بيان.

۱۰۴۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا قَالَتْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِهِ وَهُوَ شَاكٍ

۱۰۴۳: قتيبه بن سعيد. مالک. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشة روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلم د بيماري په حالت کښې خپل کور کښې مونځ او کړ نو په ناسته يې او کړ. او خلقو حضور پسې به ولاړه مونځ او کړ نو حضور هغوي پله اشاره

فَصَلّٰى جَالِسًا وَصَلّٰى وَرَآءَهٗ قَوْمٌ فَاَشَارَ اِلَيْهِمْ اَنِ اجْلِسُوْا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَاِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا.

١٠٤٤ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَقَطَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فَرَسٍ فَخُدِشَ اَوْجُحِشَ شِقُّهٗ الْاَيْمَنُ فَدَخَلْنَا عَلَيْهِ نَعُوْدُهٗ فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلّٰى قَاعِدًا فَصَلَّيْنَا قُعُوْدًا وَقَالَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا وَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَاِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ.

١٠٤٥ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ قَالَ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عِبَادَةَ اَخْبَرَنَا حُسَيْنٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ سَاَلَ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَنَا اِسْحَاقُ قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ وَّكَانَ مَبْسُوْرًا قَالَ سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ

وکړه چه کیننئ کوم وخت چه حضور صلعم فارغ شو نو ويے فرمائيل امام دے د پاره جوړ شوے دے چه د هغه اقتدا اوشي چه هغه رکوع کوي نو تاسوهم رکوع کوئ او کله چه هغه سر اوچت کړي نو تاسو هم سر اوچت کړئ.

١٠٤٤ : ابونعيم. ابن عيينه. زهري. انس روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د اس نه پريوتلو نو د حضور ښے اړخ زخمي شولو. مونږ د حضور پوښتنے له ورغلو. دے کښې د مونځ وخت شو نو حضور په ناسته مونځ اوکړلو نو مونږ هم ورسره په ناسته مونځ اوکړ. حضور او فرمائيل امام دے د پاره جوړ شوے دے چه د هغه اقتدا اوکړے شي. کله چه هغه تکبير اوکړي نو تاسوهم سر اوچت کړئ او کله چه هغه سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو ربنا لك الحمد وائئ.

١٠٤٥ : اسحاق بن منصور روح بن عباده. حسين. عبدالله بن بريده. عمران بن حصين روايت کوي هغه د نبي صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړ. اسحاق. د عبدالصمد پلار. حسين. ابن بريده د عمران بن حصين نه روايت کوي (چه د بواسيرو مريض وو) د هغه بيان دے ما د رسول الله صلے الله عليه وسلم نه په ناسته د مونځ کولو تپوس اوکړ نو حضور او فرمائيل که خوک په ولاړه مونځ اوکړي نو بهتر دے او چاچه په ناسته مونځ اوکړ نو هغه ته به د ولاړے

الرَّجُلِ قَاعِدًا فَقَالَ اِنْ صَلّٰى قَائِمًا فَهُوَ اَفْضَلُ وَمَنْ صَلّٰى قَاعِدًا فَلَهٗ نِصْفُ اَجْرِ الْقَائِمِ وَمَنْ صَلّٰى نَائِمًا فَلَهٗ نِصْفُ اَجْرِ الْقَاعِدِ.

مونخ كونكي مقابله كښې نيم اجر حاصليږي. او چاچه په ملاستے مونخ كه، نو هغه ته به ذ ناستے مونخ كونكي نيم اجر وركيږي[1].

۱. دے حديث شريف كښې دا بيان دے چه په ولاړے، ناستے او ملاستے مونځ ادا كولو كښې څومره فرق دے. پاتے شوه دا مسئله، چه په ملاستے مونځ ادا كول روا دي يا نه. ددے په حقله حديث شريف كښې بيان نشته. ددے باب مخكښي دوو احاديثو كښې دا واقعه تيره شويده. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د عذر په وجه جومات ته تلے نشو ددے وجے نه ئے فرض پخپل كور كښې ادا كول. صحابهٔ كرام چه كله د مونځ نه فارغ شو او د رسول الله صلي الله عليه وسلم پُښتنے له راغلل نو رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ ولاړ وو. دوي ورپسے نيت اوتړه اقتدائے اوكړه. صحابهٔ كرامو په ولاړے مونځ كوو. او رسول الله صلي الله عليه وسلم په ناستے رسول الله صلي الله عليه وسلم منعه كړل. چه نفلي مونځ كښې مقتديانو ته د امام نه په مخالف طريقه مونځ ادا كول مناسب نه دي.

## بَـاب ۷۱۱: صَلٰوةُ الْقَاعِدِ بِالْاِيْمَآءِ.

## باب ۷۱۱: ذ ناست اشارے سره ذ مونځ كولو بيان.

۱۰۴۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ الْمُعَلِّمُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ اَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ وَّكَانَ رَجُلًا مَبْسُوْرًا وَقَالَ اَبُوْ مَعْمَرٍ مَرَّةً عَنْ عِمْرَانَ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ وَهُوَ قَاعِدٌ فَقَالَ مَنْ صَلّٰى قَائِمًا فَهُوَ اَفْضَلُ وَمَنْ صَلّٰى قَاعِدًا فَلَهٗ نِصْفُ اَجْرِ الْقَائِمِ وَمَنْ صَلّٰى نَائِمًا فَلَهٗ نِصْفُ اَجْرِ الْقَاعِدِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ نَائِمًا عِنْدِيْ مُضْطَجِعًا هٰهُنَا.

۱۰۴۶: ابومعمر. عبدالوارث. حسين معلم. عبدالله بن بريده. عمران بن حصين (چه ذ بواسيرو مريض وو) او يو ځل ابو معمر ذ عمران نه روايت اُوكه، عمران اووے، ما ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه په ناسته ذ مونځ كولو متعلق تپوس اوكه، نو حضورؐ او فرمائيل چا چه په ولاړه مونځ اوكه، نو هغه افضل دے، اوچاچه په ناسته مونځ اوكه، نو هغهٔ ته به په ولاړه ذ مونځ كونكي مقابله كښې نيم اجر حاصليږي، او چا چه په ملاسته مونځ اوكړه، نو هغه ته په ناستے ذ مونځ كونكي نيم اجر وركيږي ابو عبدالله (بخاريؒ) اووے، څما خيال دے چه دلته ذ نائمًا نه مراد مضطجعًا دے. (يعني په اړخ)[1].

۱. دے حديث شريف كښې په اشارو سره د مونځ كولو هيڅرته ذكر نشته، غالباً امام بخاري رحمة الله عليه دا خيال كوي. چه په ناستے د مونځ ادا كولو ثواب، په ولاړه سره د مونځ ادا كولو د ثواب په نيمه

دے په ظاهره' په ولاړه مونځ کونکے تول د مانخه ارکان په ولاړے نه ادا کوي داسے په ناستے سره مونځ ادا کونکے صرف اودریږي نه' باقي د مونځ ارکان' هغه په ولاړے سره د مونځ ادا کونکي یشان اد' کوي صرف د اودریدو عمل په پریخودلو سره د هغه د مونځ ثواب نیمیږي. امام بخاري رحمة الله علیه دا بنودل غواړي چه په ناستے مونځ ادا کولو سره یواځے اودریدل نه پاتے کیږي. بلکے هر بنده په دے پوهیږي چه د اودریدو په مقابله کښې په ناستے مونځ کونکے پوره رکوع او پوره سجده نشي کولے دیته امام بخاری رحمة الله علیه اشاره واني. چه دا واقعي رکوع او سجده نه ده. دا خو صرف اشارے دے اګرچه فقهاء دیته پوره رکوع او پوره سجده واني لیکن امام بخاری رحمة الله علیه په اصطلاحاتو کښې د فقهاؤ تابع نه دے او دغه په ناستے په حقیقت کښې پوره رکوع او پوره سجده منلے شي. یو بنده د ارکانو د پوره پوره ادا کولو نه بغیر مونځ کولو. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمایل "چه تا مونځ نه دے کړے".

**باب ۷۱۲: اِذَا لَمْ يُطِقْ قَاعِدًا صَلّٰى عَلٰى جَنْبٍ وَّ قَالَ عَطَاءٌ اِنْ لَّمْ يَقْدِرْ اَنْ يَّتَحَوَّلَ اِلَى الْقِبْلَةِ صَلّٰى حَيْثُ كَانَ وَجْهُهٗ.**

**باب ۷۱۲:** که په ناسته د مونځ توان نه لري نو په اړخ دے سملي او مونځ دے اوکړي' او عطاء وئیلے دي' که قبلے ته مخ نه کړے شي' نو کوم طرف ته چه د هغه مخ وي' مونځ دے اوکړي.

**۱۰۴۷:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ طَهْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي الْحُسَيْنُ الْمُكْتِبُ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَتْ بِيْ بَوَاسِيْرُ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فَقَالَ صَلِّ قَائِمًا فَاِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَاِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَعَلٰى جَنْبٍ.

**۱۰۴۷:** عبدان. عبدالله. ابراهیم بن طهمان. حسین. ابن بریده. عمران بن حصین روایت کوي' ماته د بواسیرو مرض وو' نو ما د نبي صلی الله علیه وسلم نه د مانځه متعلق پښتنه اوکړه. حضور او فرمایل' په ولاړه مونځ کوه' که د دے طاقت دې نه وي' نو بیا په ناسته مونځ کوه' او که د دے طاقت هم نه لرے' نو په اړخ مونځ کوه.

**باب ۷۱۳: اِذَا صَلّٰى قَاعِدًا ثُمَّ صَحَّ اَوْ وَجَدَ خِفَّةً تَمَّمَ مَا بَقِيَ وَقَالَ الْحَسَنُ اِنْ شَآءَ الْمَرِيْضُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ قَائِمًا وَّ رَكْعَتَيْنِ قَاعِدًا.**

**باب ۷۱۳:** که یه ناسته مونځ کوي' بیا تندرست شي یا څه آساني بیا مومي' نو باقي دے پوره کړي. او حسن وئیلے دي' که مریض غواړي نو دوه رکعاته دے په ولاړه مونځ اوکړي او دوه رکعاته په ناسته.

**۱۰۴۸:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ

**۱۰۴۸:** عبدالله بن یوسف. مالک. هشام بن عروه. ام المؤمنین بي بي عائشه

بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا لَمْ تَرَرَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ صَلٰوةَ اللَّيْلِ قَاعِدًا قَطُّ حَتّٰى اَسَنَّ فَكَانَ يَقْرَأُ قَاعِدًا حَتّٰى اِذَا اَرَا دَاَنْ يَّرْكَعَ قَامَ فَقَرَاَ نَحْوًا مِّنْ ثَلَاثِيْنَ اٰيَةً اَوْاَرْ بَعِيْنَ اٰيَةً ثُمَّ رَكَعَ.

روايت كوي چه هغې رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې مونځ كښې هيڅ كله په ناسته نه دې ليدلې، تردې چه د حضورؐ آخري عمر شو. نو په ناسته به ئې قرات كولو. او د ركوع اراده چه به ئې اوكړله. نو اوبه اودريدلو او تقريبا ديرش يا څلويښت آيتونه به ئې لوستل بيا به ئې ركوع كوله.

۱۰۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ وَاَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَبْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ جَالِسًا فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ فَاِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَ تِهٖ نَحْوٌ مِّنْ ثَلَاثِيْنَ اَوْاَرْ بَعِيْنَ اٰيَةً قَامَ فَقَرَاَهَا وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ يَرْكَعُ ثُمَّ سَجَدَ يَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ فَاِذَا قَضٰى صَلَاتَهٗ نَظَرَفَاِنْ كُنْتُ يَقْظٰى تَحَدَّثَ مَعِيْ وَاِنْ كُنْتُ نَائِمَةً اِضْطَجَعَ.

۱۰۴۹: عبدالله بن يوسف. مالك. عبدالله بن يزيد او ابوالنصر (د عمر بن عبيدالله آزاد كرده غلام) ابوسلمه بن عبدالرحمن. ام المومنين بي بي عائشةؓ روايت كوي، چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په ناسته مونځ كولو، نو په ناسته ناسته به ئې قرأت كولو. بياچه تقريبا ديرش يا څلويښت آيتونه به د قرأت باقي پاتې شو. نو بيا به حضورؐ اودريدلو. او په ولاړه ولاړه به ئې لوستل بيا به ئې ركوع كوله او سجده كوله. بيابه ئې دويم ركعت كښې هم دغسې كول. كوم وخت چه به ئې خپل مونځ ختم كړ. نو ما سره به ئې خبرې كولې (بي بي عائشه فرمائي) او كه زه به اوده ووم. نو حضور صلى الله عليه وسلم به سملاستلو[۱].

۱. دې حديث شريف كښې د حضرت عائشې رضي الله عنها بيان دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د شپې د مونځ نه روستو ماسره خبرې كولې يا به څملاستلو. د صبا دوه ركعته سنت به نبي كريم صلي الله عليه وسلم هم دغه وخت كول. د احنافو په دې سلسله كښې دا مسلك دې چه د صبا د سنتو نه روستو خبرې كول مكروهه دي. د بعضې سلفو هم دا مسلك دې ليكن د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د صبا د سنتو نه روستو خبرې كول ثابت دي. بهرحال، د رسول اكرم صلي الله عليه وسلم د خبرو كولو

او د عامو خلقو حبرو کولو کښې دېر زیات فرق دے داسے به دے حدیث شریف کښې د ص د ستو د کولو نه روستو د خملاستلو بیان دے احناقو نه ددے مسلے سبب کوئ غلط دي چه ددوي به نږد د ص د ستو نه روستو خملاستل بدعت دے دے کښې د بدعت سوال نه پیدا کیږي دا خو د رسول الله صلي الله علیه وسلم عادت وو د عبادت سره ددے څه تعلق نشته چه ضروري اوکړلے شي د صبا د سنتو نه روستو خملاستل د خلقو په خیال کښې غورد کار نه دے ددے حیثیت نه چه دا د رسول الله صلي الله علیه وسلم مبارک عادت وو. که څوک د رسول الله صلي الله علیه وسلم په عاداتو عمل کول غواړي نو خامخا به ورته اجر او ثواب ورکیږي.

باب ۱۴۷: التَّهَجُّدُ بِاللَّيْلِ وَقَوْلِهٖ عَزَّوَجَلَّ وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ.

باب ۱۴۷: د شپے د تهجد کولو بیان، او د الله قول: چه د شپے تهجد کوئے، چه تاسو د پاره به نفل وي.

۱۰۵۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ اَبِيْ مُسْلِمٍ عَنْ طَاوٗسٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَنْ فِيْهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ لَكَ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَنْ فِيْهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ الْحَقُّ وَلِقَآؤُكَ حَقٌّ وَ قَوْلُكَ حَقٌّ وَّالْجَنَّةُ حَقٌّ وَّالنَّارُ حَقٌّ وَّالنَّبِيُّوْنَ حَقٌّ وَّمُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ حَقٌّ اَللّٰهُمَّ لَكَ اَسْلَمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْكَ اَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ وَاِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْ

۱۰۵۰: علي بن عبدالله. سفیان. سلیمان بن ابي مسلم. طاؤس. ابن عباس نه روایت کوي: چه نبي صلي الله علیه وسلم به د شپے د تهجد مونځ د پاره اودریدلو، نو فرمانیل به ئے. اے خدا الله، ستا د پاره حمد دے (یعني ثنا تالره بنائي) د آسمانونو زمکے او د هغے مینځ کښې چه څه څیزونه دي، د هغے ته نګران ئے. ثنا تالره بنائي. آسمانونو، زمکه او د دے مینځ کښې په ټولو څیزونو ستا حکومت دے. ستا د پاره حمد دے، ته د آسمانونو او زمکے رنړائے. تالره حمد دے. ته حق ئے ستا وعده حق ده. ستا ملاقات حق دے. جنت حق دے. جهنم حق دے ټول نبیان حق دي. او محمد صلي الله علیه وسلم حق دے. او قیامت حق دے. اے خدا الله، ما خپل څټ (کردن) تا د پاره خکته کړ. او ما په تا ایمان راوړلو. په تا ما تکیه اوکړله. ستا پلے زۀ متوجه شوم، ستا په مدد ما جګړه اوکړه، تا پلے ما خپله مقدمه پیش کړه،

لِيْ مَاقَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَوْلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ قَالَ سُفْيَانُ وَزَادَ عَبْدُ الْكَرِيْمِ اَبُوْ اُمَيَّةَ وَلَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ قَالَ سُفْيَانُ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ اَبِيْ مُسْلِمٍ سَمِعَهُ مِنْ طَاوُسٍ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خما مخکښې ورستو ظاهرې او پټې ګناه اوبښې ته مخکښې کونکې او ورستو کونکې يې ته معبود يې ستا نه سوا بل معبود نشته. سفيان اووې چه عبدالکريم ابو اميه د لاحول ولا قوة الا بالله زياتې سره روايت کړې دې. سفيان اووې چه سليمان بن ابي مسلم دا د طاؤس نه او هغه د ابن عباس نه او هغه د نبي صلې الله عليه وسلم دا واوريدل.

۱. غالبا رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا دعا د ويښيدلو نه روستو او د اودس نه مخکښې کوله.

(فيض الباري جلد دويم ص ۴۰۹)

## بَاب ۷۱۵: فَضْلِ قِيَامِ اللَّيْلِ

## باب ۷۱۵: د شپې د ولاړې د فضيلت بيان.

۱۰۵۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَّ حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ فِيْ حَيَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاٰى رُؤْيَا قَصَّهَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَمَنَّيْتُ اَنْ اَرٰى رُؤْيَا فَاَقُصَّهَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكُنْتُ غُلَامًا شَابًّا وَّ كُنْتُ اَنَامُ فِي الْمَسْجِدِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَاَيْتُ فِي النَّوْمِ كَاَنَّ

۱۰۵۱: عبدالله بن محمد. هشام. معمر. محمود. عبدالرزاق. زهري. سالم د خپل پلار نه روايت کوي چه د نبي صلي الله عليه وسلم ژوند کښې به چا خوب اوليدلو نو هغه به يې رسول الله صلې الله عليه وسلم ته بيانولو. خما دا ارمان وو چه ما څه خوب ليدلې نو رسول الله صلې الله عليه وسلم ته به مې بيانولې. اوزه ځلمې هلک ووم. او د رسول الله عليه وسلم په زمانه کښې به زه مسجد نبوي کښې اوده کيدلم. نو ما خوب اوليد چه ګويا دوو فرښتو زه اونيولم. او زه يې جهنم طرف ته بوتلم. چه د پيچ دار کوهي په شان پرپيچ وو. چه د هغې دوه ستنې وې. او هغې کښې څه خلق وو چه ما پيژندل. ما جهنم نه د

مَلَكَيْنِ اَخَذَا نِيْ فَذَهَبَا بِيْ اِلَى النَّارِ فَاِذَا هِيَ مَطْوِيَّةٌ كَطَيِّ الْبِئْرِ وَاِذَا لَهَا قَرْنَانِ وَاِذَا فِيْهَا اُنَاسٌ قَدْ عَرَفْتُهُمْ فَجَعَلْتُ اَقُوْلُ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ قَالَ فَلَقِيَنَا مَلَكٌ اٰخَرُ فَقَالَ لِيْ لَمْ تُرَعْ فَقَصَصْتُهَا عَلٰى حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ نِعْمَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللّٰهِ لَوْ كَانَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ فَكَانَ بَعْدُ لَا يَنَامُ مِنَ اللَّيْلِ اِلَّا قَلِيْلًا.

خدائے پناه غوښتل شروع کړل. بیا ما سره بل یو ملک وکتلو هغه راته اووې چه مه ویریږه. بیا دا خوب ما بي بي حفصې ته او هغې رسول اللّه صلی اللّه علیه وسلم ته بیان کړو نو حضور او فرمایل عبداللّه ښه سړے دے. کاش چه هغه د شپې مونځ کولے. نو دے نه پس به هغه د شپې ډیر کم اوده کیدلو (یعني تهجد یا د شپې مونځ به نے کولو).

## بَابٌ ۷۱۶: طُوْلِ السُّجُوْدِ فِيْ قِيَامِ اللَّيْلِ.

## باب ۷۱۶: شب بیداري کښې د اوږدو سجدو بیان.

۱۰۵۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً كَانَتْ تِلْكَ..... صَلَاتَهُ يَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذٰلِكَ قَدْرَ مَا يَقْرَاُ اَحَدُكُمْ خَمْسِيْنَ اٰيَةً قَبْلَ اَنْ يَرْفَعَ رَاْسَهُ وَيَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ ثُمَّ يَضْطَجِعُ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ حَتّٰى يَاْتِيَهُ الْمُنَادِيْ لِلصَّلٰوةِ.

۱۰۵۲: ابو الیمان. شعیب. زهري. عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي چه حضور به یولس رکعاته مونځ کولو. د حضور په دے مونځ کښې به سجده دومره اوږده وه چه تاسو کښې یو سړے پنځوس آیتونه وئیلے شي. قبل د دے نه چه حضور صلی اللّه علیه وسلم سر اوچت کړي او د سحر د مونځ نه مخکښې به نے دوه رکعاته کول. بیا به په ښي اړخ سملاستلو تردے چه مونځ د پاره به څوک حضور پسے راغے.

## بَابٌ ۷۱۷: تَرْكِ الْقِيَامِ لِلْمَرِيْضِ.

## باب ۷۱۷: مریض د پاره د قیام پریښودلو بیان.

۱۰۵۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ

۱۰۵۳: ابو نعیم. سفیان. اسود.

حدثنا سفيان عن الاسود قال سمعت جندبا يقول اشتكى النبي صلى الله عليه وسلم فلم يقم ليلة او ليلتين.

جندب نه روايت كوي چه نبي صلى الله عليه وسلم ناروغه شو نو يوه شپه يا دوه شپې اونه دريدلو

۱۰۵۴ : حدثنا محمد بن كثير قال اخبرنا سفيان عن الاسود بن قيس عن جندب بن عبد الله رضي الله عنه قال احتبس جبريل عليه السلام على النبي صلى الله عليه وسلم فقالت امراة من قريش ابطا عليه شيطانه فنزلت والضحى والليل اذا سجى ما ودعك ربك وما قلى.

۱۰۵۴ : محمد بن كثير. سفيان اسود بن قيس. جندب بن عبدالله نه روايت كوي چه جبرائيل عليه السلام نبي عليه السلام ته[۱] راتلونه بند شو نو د قريشو يوې ښځې اووې چه د هغه شيطان تاخير اوكړ په دې خبره دا آيت نازل شو: والضحى الخ يعني قسم دې د څاښت په وخت او قسم دې په شپه چه خوره شي ستا رب ته نه ئې پريښې او نه تا نه ناراضه دې[۲].

۱. دا يوه ښځه د ابولهب ښځه وه چه داسې بې هوده خبرې كولې. يو بل حديث شريف كښې دي چه د قريشو يو ښځې پښتنه كړې وه چه كله د وحي راتلل عارضي بند شوې وو "چه ستا ملګرې د څو ورځو نه ولې نه راځي"؟ يا دا خمونږ مور حضرت خديجې رضي الله عنها په شريفانه ډول تپوس كړې وو نورو روايتونو كښې نومونه هم شته. رسول الله صلي الله عليه وسلم په دغه ورځو كښې ډير پريشان او فكرمند وو. حضرت خديجې رضي الله عنها.د تسلي او د همدردۍ په وجه تپوس كړې وو د ابولهب د ښځې وينا د شرارت وه.

باب ۷۱۸ : تحريض النبي صلى الله عليه وسلم على صلوة الليل والنوافل من غير ايجاب وطرق النبي صلى الله عليه وسلم فاطمة وعليا عليهما السلام ليلة للصلوة.

باب ۷۱۸ : د شپې مونځونو او نفلونو پله د نبي صلى الله عليه وسلم د رغبت وركولو بيان بغير دَ دې نه چه واجب ئې كړي او نبي صلى الله عليه وسلم بي بي فاطمې او حضرت عليّ له يوه شپه مانځه د پاره بيدارولو له راغلې ووځ.

۱۰۵۴ : حدثنا ابن مقاتل اخبرنا عبد الله اخبرنا معمر عن

۱۰۵۴ : ابن مقاتل. عبدالله. معمر. زهري. هند بن حارث. أم سلمه نه روايت

الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدِ بِنْتِ الْحَارِثِ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَيْقَظَ لَيْلَةً فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَاذَا اُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْفِتْنَةِ مَاذَا اُنْزِلَ مِنَ الْخَزَائِنِ مَنْ يُوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ وَرُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الْاٰخِرَةِ.

كوي چه نبي صلى الله عليه وسلم يوه شپه راويښ شو نو وې فرمائيل. سبحان الله د آزمائښت څه څيزونه او څه څه خزانې ذ شپې راخكته كړې شوې. څوک شته چه د دې حجرو (كوټنګي) زنانه را بيدارې كړي. ډيرو ښځو ذنيا كښې كپړې اغستې وي. ليكن آخر كښې به بربنډې وي.

١٠٥٥ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَقَهُ وَفَاطِمَةَ بِنْتَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ لَيْلَةً فَقَالَ اَلَا تُصَلِّيَانِ فَقُلْتُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْفُسُنَا بِيَدِ اللّٰهِ فَاِذَا شَآءَ اَنْ يَبْعَثَنَا بَعَثَنَا فَانْصَرَفَ حِيْنَ قُلْنَا ذٰلِكَ وَلَمْ يَرْجِعْ اِلَيَّ شَيْئًا ثُمَّ سَمِعْتُهُ وَهُوَ مُوَلٍّ يَضْرِبُ فَخِذَهُ وَهُوَ يَقُوْلُ وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا.

١٠٥٥ : ابواليمان. شعيب. زهري. علي بن حسين. حسين بن علي. علي بن ابي طالبؓ روايت كوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم يوه شپه هغه (حضرت عليؓ) او بي بي فاطمهؓ (د نبيؐ لور) له راغې نو وې فرمائيل. تاسو دواړه (د شپې) مونځ ولې نه كوئ. ما اووې (حضرت عليؓ وائي) يارسول الله. خمونږ خانونه ذ الله قبضه كښې دي، كله چه هغه مونږ اوچتول او غواړي، نو مونږ به اوچت شو. چه مونږ دا اووې، نو حضورؐ واپس شولو، او مونږ ته هيڅ متوجه نه شو. بيا ما واوريدل، چه حضورؐ شا كرخوله او خپل ورونږي په لاس اووهلو، او، وې فرمائيل، انسان ذ هر څيز نه زيات جګړالو دې ط.

١. رسول الله صلي الله عليه وسلم، حضرت علي او حضرت فاطمه رضي الله عنهما دواړوته د شپې د مونځ شوق ور كولو. ليكن د حضرت علي كرم الله وجهه بهانه ئې واوريدله نو غلې (چپ) شو. كه چرې دا د شپې مونځ ضروري وې نو بيا به ئې د حضرت علي كرم الله وجهه بهانه نه قبلوله. دا د شپې مونځ نفلي مونځ دې. ددې وجې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم څه او نه فرمايل. ليكن د تلو په وخت ئې افسوس ښكاره كړو غالباً د حضرت علي كرم الله وجهه په حاضر جوابئ ئې تعجب كولو.

١٠٥٦ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

١٠٥٦ : عبدالله بن يوسف. مالک.

يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَدَعُ الْعَمَلَ وَهُوَ يُحِبُّ اَنْ يَّعْمَلَ بِهٖ خَشْيَةَ اَنْ يَّعْمَلَ بِهِ النَّاسُ فَيُفْرَضَ عَلَيْهِمْ وَمَا سَبَّحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَةَ الضُّحٰى قَطُّ وَاِنِّيْ لَاُسَبِّحُهَا.

ابن شهاب. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي هغې اوويل رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم به يو عمل پريښودلو حالانكه هغه عمل به ني ډير خوښ وو ليكن د دې خوف نه به ني پريښودلو كه خلق په دې عمل شروع اوكړي نو فرض پرې نشي او رسول اللّه صلعم د څاشت مونځ هيڅ كله نه دې كړې او زه ني كوم.

١٠٥٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَآئِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى ذَاتَ لَيْلَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَصَلّٰى بِصَلَاتِهٖ نَاسٌ ثُمَّ صَلّٰى مِنَ الْقَابِلَةِ فَكَثُرَ النَّاسُ ثُمَّ اجْتَمَعُوْا مِنَ اللَّيْلَةِ الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ فَلَمْ يَخْرُجْ اِلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اَصْبَحَ قَالَ قَدْ رَاَيْتُ الَّذِيْ صَنَعْتُمْ وَلَمْ يَمْنَعْنِيْ مِنَ الْخُرُوْجِ اِلَيْكُمْ اِلَّا اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تُفْرَضَ عَلَيْكُمْ وَذٰلِكَ فِيْ رَمَضَانَ.

١٠٥٧ : عبداللّه بن يوسف. مالك ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشه روايت كوي چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم يوه شپه جمات كښې مونځ اوكه نو خلقو هم ورسره اوكړلو بيا بله شپه حضورؐ مونځ اوكه نو د خلقو تعداد زيات شو. بيا په دريمه يا څلورمه شپه خلق راجمع شو نو رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم هغوني له ورنه رغې چه صبا شو نو حضورؐ او فرمائيل ما هغه څيز اوليد چه تاسو اوكه او زه بهر ته راتلو نه څه منع كړې نه ووم ماسوا ددې ويرې نه چه تاسو باندې چرته فرض نه شي. او دا واقعه په رمضان كښې شوې وه[1].

١ . د دين' دا اصول معلوميږي چه كله د وحي د نازليدو په زمانه كښې خلق يو نفل عبادت د فرض عبادت پشان په لازمي جوګه شروع كړي اللّٰه تعالي هغه نفل عبادت فرض كړي. ددې كنړې وجې وي هغه عمل خكه فرض كيږي چه د اللّٰه تعالي خوښ وي. مثلاً تراويح' چه د هغې په حقله پدې حديث شريف كښې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د طرز عمل بيان دې چه كله صحابهٔ كرامو په لازمي طريقه شروع كړې نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم پدې خيال پريخودلې چه چرته فرض نشي. بعضې وختونو كښې يو

روا كار څكه فرض كيږي چه يو امت يوه نامعقوله طريقه شروع كړي نو الله تعالى د سزا په طور هغه عمل فرض كړي. څرنګه چه د بني اسرائيلو د غوا په معامله كښې كومه رويه وه د نوي د وحي د زمانې سره خاص دي. غالبا د دين د دې اصول په وجه د احنافو دا مسلک دې چه نفل مونځ په شروع كولو سره فرض كيږي. چه يو بنده پخپله دا عمل شروع كړو او په ځان ئې ضروري كړو

**بـاب ٧١٩: قِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تَرِمَ قَدَمَاهُ وَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا حَتّٰى تَفَطَّرَ قَدَمَاهُ وَالْفُطُوْرُ الشُّقُوْقُ انْفَطَرَتْ انْشَقَّتْ.**

**باب ٧١٩:** د نبي صلى الله عليه وسلم د اودريدلو بيان. تر دې چه د حضور دواړه پښې به اوپړسيدې. او بي بي عائشې فرمائيلي دي. تر دې چه دواړه پښې به ئې اوچاودې يا. فطور نه مراد چاودل دي. انفطرت د انشقت معني كښې دې.

١. دا په هغه زمانه كښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم عمل وو چه كله د سورت مزمل اولې آيتونه نازل شو. چه په هغې كښې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د شپې په اكثرو حصو كښې د عبادت كولو حكم شوې وو.

٢. عراقي خپل كتاب د سيرت كښې ليكلي دي. چه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم كره يو سپين چرګ وو.

**١٠٥٨ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ الْمُغِيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ اِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَقُوْمُ لِيُصَلِّيَ حَتّٰى تَرِمَ قَدَمَاهُ اَوْسَاقَاهُ فَيُقَالُ لَهُ فَيَقُوْلُ لَهُ اَفَلَا اَكُوْنُ عَبْدًا شَكُوْرًا.**

**١٠٥٨ :** ابونعيم. مسعر. زياد. مغيره نه روايت كوي. ما د هغه نه واوريدل. نبي صلى الله عليه وسلم به اودريدلو چه مونځ اوكړي. تر دې چه دواړه پښې يا پنډۍ به ئې اوپړسيدې. په دې حقله حضورؐ ته اووئيلې شو (چه تاسو دومره تكليف ولې كوئې) نو حضورؐ به فرمائيل. آيا زه دې شكر ګذار بنده جوړ نشم.

**بـاب ٧٢٠: مَنْ نَامَ عِنْدَ السَّحَرِ.**

**باب ٧٢٠:** د شپې آخري حصه كښې د اودۀ كيدو بيان.

**١٠٥٩ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ اَنَّ عَمْرَو بْنَ اَوْسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ**

**١٠٥٩ :** علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. عمرو بن اوس. عبدالله بن عمرو بن عاص نه روايت كوي. عبدالله بن عمرو اووې. رسول الله صلى الله عليه وسلم

الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ اَحَبُّ الصَّلٰوةِ اِلَى اللّٰهِ صَلٰوةُ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَاَحَبُّ الصِّيَامِ اِلَى اللّٰهِ صِيَامُ دَاوُدَ وَكَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُوْمُ ثُلُثَهُ وَيَنَامُ سُدُسَهُ وَيَصُوْمُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا.

هغه ته او فرمائيل: د اللّٰه په نزد د ټولو نه زيات خوښ مونځ د داود عليه السلام مونځ دے. او د اللّٰه په نزد د ټولو نه زيات خوښه روژه د داود عليه السلام ده. هغه به نيمه شپه اوده کيدلو او د شپے دريمه حصه به ويښ وو. شپږمه حصه به اوده وو او يوه ورځ به ئے روژه او بله ورځ به ئے کوژه وه.

١٠٦٠ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَشْعَثَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ مَسْرُوْقًا قَالَ سَأَلْتُ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَيُّ الْعَمَلِ كَانَ اَحَبَّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتِ الدَّائِمُ قُلْتُ مَتٰى كَانَ يَقُوْمُ قَالَتْ يَقُوْمُ اِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ.

١٠٦٠ : عبدان. د عبدان پلار. شعبه. اشعث د خپل پلار نه روايت کوي: هغه د مسروق نه واوريدل: چه ما د بي بي عائشےؓ نه تپوس اوکړ: کوم عمل د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم زيات خوښ وو: هغے ورته اووے: کوم چه هميشه کولے شي. ما تپوس اوکړ. د شپے به څه وخت (حضورؐ) پاسيدلو هغے جواب کښ اووے: چه د چرګ بانګ به ئے واوريد: نو پابه سيدلو.

١٠٦١ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوالْاَحْوَصِ عَنِ الْاَشْعَثِ قَالَ اِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ قَامَ فَصَلّٰى.

١٠٦١ : محمد بن سلام. ابوالاحوص. اشعث روايت کوي: چه (حضورؐ به) د چرګ بانګ واوريدلو، نو پاسيدلو به: مونځ به ئے کولو.

١٠٦٢ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ ذَكَرَ اَبِيْ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا اَلْفَاهُ السَّحَرُ عِنْدِيْ اِلَّا نَائِمًا تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

١٠٦٢ : موسي بن اسمعيل. ابراهيم بن سعد. سعد. ابوسلمه او هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت کوي: د بي بي عائشےؓ بيان دے: چه ما هغوي يعني نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سحر وخت کښ خان سره اوده بيامندلو.

باب ٧٢١ : مَنْ تَسَحَّرَ فَلَمْ

باب ٧٢١ : د هغے سړي بيان چه پيشمنے ئے اوکړ او

يَنَمْ حَتّٰى صَلَّى الصُّبْحَ. هغه وخته پورې اوده نه شو. خو پورې چه د سحر مونځ ئې او کړ.

۱. امام بخاري رحمة الله عليه دلته دا بنو دل غواړي چه ددينه مخکښې کوم احاديث بيان شويدي د هغې نه ثابتيږي چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به تهجدو ادا کولو نه پس څملاستلو او بيا به مؤذن د صبا د مونځ د اطلاع د پاره راتللو ليکن دا هم د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ثابت دي. چه دې وخت کښې به نه څملاستلو بلکې د صبا مونځ به ئې ادا کوو. د رسول الله صلي الله عليه وسلم دا معمول د رمضان په مباشت کښې وو چه د پيشمني نه پس به ئې آرام کولو او بيا به ئې د صبا مونځ تياره کښې ادا کولو.

۱۰۶۳: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تَسَحَّرَ فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ سُحُوْرِهِمَا قَامَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَصَلّٰى قُلْنَا لِاَنَسٍ كَمْ كَانَ بَيْنَ فَرَاغِهِمَا مِنْ سُحُوْرِ هِمَا وَدُخُوْلِهِمَا فِي الصَّلٰوةِ قَالَ كَقَدْرِ مَايَقْرَأُ الرَّجُلُ خَمْسِيْنَ اٰيَةً.

۱۰۶۳: يعقوب بن ابراهيم. روح. سعيد. قتاده. انس بن مالک نه روايت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلم او زيد بن ثابتؓ پيش منې او کړه، د پيش منې نه چه فارغ شو نو نبي صلي الله عليه وسلم مانځه ته اودريدلو، او مونځ ئې او کړه. ما انسؓ نه تپوس او کړه، چه د دې دواړو د پيشمنې نه فراغت او د مونځ کولو په مينځ کښې څومره فرق (وخت) وو. انسؓ اووې دومره وخت چه هغې کښې يو سړې پنځوس آيتونه لولي.

## باب ۷۲۲: طُوْلِ الْقِيَامِ فِيْ صَلٰوةِ اللَّيْلِ.

## باب ۷۲۲: د شپې مونځ کښې ډير وخته پورې د اودريدلو بيان.

۱۰۶۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَلَمْ يَزَلْ قَائِمًا حَتّٰى هَمَمْتُ بِاَمْرِ سَوْءٍ قُلْنَا وَمَا

۱۰۶۴: سليمان بن حرب. شعبه. اعمش. ابووائل. عبدالله نه روايت کوي، هغه اووې، ما نبي صلي الله عليه وسلم سره مونځ او کړه، نو حضورؐ برابر ولاړ وو، چه ما د يو ناکواره عمل اراده او کړله. مونږ تپوس او کړه، چه د څه څيز تا اراده

هَمَمْتُ قَالَ هَمَمْتُ اَنْ اَقْعُدَ وَاَذَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

کړې وه؟ هغه اووې: ما قصد اوکه چه نبي صلے الله علیه وسلم پریږدم، او خپله کینم.

**۱۰۶۵:** حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَامَ لِلتَّهَجُّدِ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوْصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ.

**۱۰۶۵:** حفص بن عمر. خالد بن عبدالله. حصین. ابو وائل. حذیفةؓ نه روایت کوي، چه نبي صلے الله علیه وسلم به د شپے تهجد د پاره پاسیدلو، نو مسواک سره به ئے خپله خوله صفا کوله۱.

۱. مسواک کولو سره د خوب ختمولو کښې مدد کیږي امام بخاري رحمة الله علیه دلته دا حدیث شریف خکه ذکر کړیدے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به ډیر وخت مسواک کولو. چه د مونځ ادا کولو د پاره خان پوره تیار کړي.

## باب ۷۲۳: كَيْفَ كَانَ صَلٰوةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ الَّيْلِ.

## باب ۷۲۳: د نبي صلے الله علیه وسلم مونځ څنګه وو، او د شپے به ئے څومره مونځ کولو.

**۱۰۶۶:** حَدَّثَنَا اَبُوالْيَمَانِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اِنَّ رَجُلًا قَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ صَلٰوةُ اللَّيْلِ قَالَ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِذَا خِفْتَ الصُّبْحَ فَاَوْتِرْ بِوَاحِدَةٍ.

**۱۰۶۶:** ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمرؓ روایت کوي: یو سړي عرض اوکه: یا رسول الله، چه د شپے مونځ څنګه اوکړي۱ حضور ورته او فرمائیل. دوه دوه رکعاتونه. بیا چه د صبا کیدو خوف پیدا شي، نو یو رکعت ورسره (بل) یو ځائے که او هغه مونځونه طاق (ناتکے) جوړ کړه.

۱. ... ث شریف مختلف روایات دي. په دے حدیث کښې د غور کولو قابله خبره دا ده چه تپوس کونکي ... تپوس اونکړو چه د شپے څو رکعاته مونځ کول پکار دي نه ئے د وترو څه خبره اوکړه. بلکے د سوال ... معلومیږي چه د وترو او د مونځ د طریقے هغه ته د مخکښې نه علم شته هغه صرف د ... په حقله تپوس کوي. چه وتر کله ادا کول دي د تهجدونه مخکښې یا روستو، رسول الله صلي الله علیه وسلم جواب ورکړو. چه وتر به روستو کولے شي. دا حدیث شریف په مسلم کښې په تفصیل سره شته دے ددے نه "وتر" د یو رکعت هم نه ثابتیږي. د وترو د رکعتونو شمیر پدے حدیث شریف کښې په وضاحت سره نشته د "وترو" د رکعتونو واضح بیان په نورو احادیثو کښې موجود دے. د شپے په مونځ کښې د رسول

الله صلي الله عليه وسلم عادت د وترو سره يوولس يا ديارلس ركعتونه ادا كول وو

۱۰۶۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَمْزَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ صَلٰوةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً يَعْنِي بِاللَّيْلِ.

۱۰۶۷: مسدد. يحيي. شعبه. ابو حمزه. ابن عباس روايت كوي چه د نبي صلے الله عليه وسلم مونخ يعني د شپے مونخ ديارلس ركعاته وو.

۱۰۶۸: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ قَالَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ يَحْيٰى بْنِ وَثَّابٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَاَلْتُ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنْ صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ فَقَالَتْ سَبْعٌ وَّتِسْعٌ وَّاِحْدٰى عَشْرَةَ سِوٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ.

۱۰۶۸: اسحاق. عبيدالله. اسرائيل. ابو حصين. يحيي بن وثاب. مسروق نه روايت كوي. ذ مسروق بيان دے چه ما د بي بي عائشےؓ نه د نبي صلي الله عليه وسلم ذ شپے ذ مونخ په حقله تپوس اوكه، نو هغے او فرمائيل اوه. نهه او يولس ركعاتونه به نے د سحر د دوو ركعاتونه علاوه كول.

۱۰۶۹: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى قَالَ اَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِّنْهَا الْوِتْرُ وَرَكْعَتَا الْفَجْرِ.

۱۰۶۹: عبيدالله بن موسي. حنظله. قاسم بن محمد. بي بي عائشهؓ روايت كوي چه نبي صلي الله عليه وسلم به د شپے ديارلس ركعاته كول. دے كښې به وتر او د سحر دوه ركعاته هم شامل وو.

## بَابُ ۷۴۴: قِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ وَنَوْمِهٖ وَمَانُسِخَ مِنْ قِيَامِ اللَّيْلِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ اللَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا نِّصْفَهٗ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا اَوْزِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا اِنَّا

باب ۷۴۴: د نبي صلے الله عليه وسلم د شپے د اودريدو او د اوده كيدو بيان. او د الله تعالي قول اے كمبل (يا شړئي) اغوستونكيه، د شپے اودريږه، خو لږ ساعت، يعني نيمه شپه يا د دے نه لږ كم يا يرے څه زياتوه. او قرآن ترتيل سره لوله، بيشكه مونږ به تا يو درونډ كلام اچونكے يو. بيشكه ذ شپے پاسيدو كښې

سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا اِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ اَشَدُّ وَطْأً وَّ اَقْوَمُ قِيْلًا اِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا وَقَوْلُهُ عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ مِنْكُمْ مَّرْضٰى وَاٰخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِي الْاَرْضِ يَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاٰخَرُوْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا وَّمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرًا وَّ اَعْظَمَ اَجْرًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا نَشَا قَامَ بِالْحَبْشِيَّةِ وَطَاءً قَالَ مُوَطَاةُ الْقُرْاٰنِ اَشَدُّ مُوَافَقَةً لِّسَمْعِهٖ وَبَصَرِهٖ وَقَلْبِهٖ لِيُوَاطِئُوْا لِيُوَافِقُوْا.

د زړه او ژبے بنـه میـلان وي. او خبـره بنـه ټیک راوخـي. بیشکـه د ورځے ستا ډیر کارونـه وي. او د اللـه قول. چه هغـه تـه معلومه ده. چه تاسو دا محفوظ نـه شـئـے ساتلے. نو هغه تاسو ته توجه اوفرمائیله. خومره چه درتـه آسان وي. قرآن لـولـئي. اللّٰه تعالي پوهیږي. چه تـاسو کښې بعضے مریضان دي. او بعضے زمکه کښې ذ اللـه فضـل (روزي) تـلاش کـوي. سفر کوي. او څـهٔ خلق ذ اللـه پـه لار کښې جنګ کوي. نو څومره چه درتـه آسانـه وي. لـولـئـي. مونځ کـوئ. زکوة ورکـوئ. او اللـه تـعـالي لـه قـرض حسنه ورکوئ. او کومه نیکي چه تاسو خان ذ پـاره مخکښې اولیږئ. هغه به اللّٰه سره بیـا مـومـئ. دا بهتـره ده. او ذ اجـر اعتبـار نـه لویـه ده. ابـن عبـاسؓ او فـرمـائیل چه حبشـي ژبـه کښې د نشا مـعـنـي ایســاریـدل (اودریـدل) دي. او د وطـاء نـه مـراد مـواطـاة الـقـرآن دے. پـه دے وجـه چه دا د هغه د نـظـر او د زړه سـره اوریـدو ډیـر موافق دے. لیواطئوا نـه مراد لیوافقوا دے.

**ف:** ترتیل: ذ قرآن شریف داسے لوستل چه د هر ټکي او د هر لفظ خپل مخرج په بنهٔ شان سره ادا کیږي او په خیال سره ئے رو، رو، لولي.

١٠٧٠: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسًا رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ حَتّٰى نَظُنَّ اَنْ لَّا يَصُوْمَ مِنْهُ وَيَصُوْمُ حَتّٰى نَظُنَّ اَنْ لَّا يُفْطِرَ مِنْهُ

١٠٧٠: عبدالعزیز بن عبداللـه. محمد بن جعفر. حمید نه روایت کوي، هغه د حضرت انسؓ نه واوریـدل، چه رسـول اللـه صلي اللّٰه علیه وسلم به ټوله میاشت کوژه کوله. تردے چه خمونږ به ګمان راغے چه اوس بـه حضـورؐ دیمیاشت کښې روژه نهٔ نیسي او بعضے میاشت کښې به ئے روژه وه. نو خمونږ به ګمان پیدا شو. چه اوس بـه روژه نـه ماتوی. او تاسو چه به د شپے کوم

شَيْئًا وَكَانَ لَاتَشَاءُ اَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا اِلَّا رَاَيْتَهُ وَلَا نَائِمًا اِلَّا رَاَيْتَهُ تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ وَاَبُوْ خَالِدِ الْاَحْمَرُ عَنْ حُمَيْدٍ.

وخت حضورؐ په مونځ کولو لیدل غوښتل نو لیده به مو، او که په خوب به مو لیده غوښتلو، نو لیده به مو لې. سلیمان او ابو خالد احمر د حمید نه روایت کړے دے.

۱. د رسول الله صلي الله علیه وسلم د عام نفل مونځونو او د نفلي روژو په حقله څه خاص عادت نه وو چه هغه شان به ئے همیشه کول. د شپے په کومه حصه کښې چه به ئے مونځ ادا کول غوښتل، ادا کوو به ئے. او که د کومے میاشتے روژے نیول به ئے غوښتل، د هغے روژے به ئے نیوے. او په بعضو میاشتو کښې به ئے روژے پریخودلے اندازه ئے مقرره او معلومه نه وه ددے وجے نه صحابهٔ کرام رضي الله عنهم د رسول الله صلي الله علیه وسلم د مونځونو او روژو داسے بیان کوي. څرنګ چه دے حدیث شریف کښې په کومه طریقه حضرت انس رضي الله عنه بیان اوکړو. دلته د تهجدو او د نورو مونځونو ذکر نه دے بلکے د نفل مونځ او د نفلي روژے ذکر دے.

## بَاب ۷۲۵: عَقْدِ الشَّيْطَانِ عَلٰى قَافِيَةِ الرَّاْسِ اِذَا لَمْ يُصَلِّ بِاللَّيْلِ.

باب ۷۲۵: د شیطان د سر، شاته د غوټے اچولو بیان، هر کله چه د شپے ئے مونځ نه وي کړے [۱].

۱. د غوټے اچولو تعلق عام مثال سره دے په دے کښې دیته اشاره ده چه شیطان ور باندے زوره ور شي.

۱۰۷۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلٰى قَافِيَةِ رَاْسِ اَحَدِكُمْ اِذَا نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ يَّضْرِبُ كُلَّ عُقْدَةٍ عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيْلٌ فَارْقُدْ فَاِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللّٰهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَاِنْ تَوَضَّاَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَاِنْ صَلّٰى انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَاَصْبَحَ نَشِيْطًا طَيِّبَ النَّفْسِ وَاِلَّا اَصْبَحَ خَبِيْثَ النَّفْسِ كَسْلَانَ.

۱۰۷۱: عبدالله بن یوسف. مالک. ابي الزناد. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل، چه شیطان تاسو کښې د هر یو د سر شاته غوټه اچوي، کوم وخت چه هغه اُوده کیږي او په هره غوټه دا پوک وهي، چه اوس لا شپه ډیره باقي ده، نو اُوده شه. که هغه بیدار شي، او خدائے یاد کړي، نو یوه غوټه پرانستے شي، که اودس اوکړي، نو دویمه غوټه پرانستے شي، که مونځ اوکړي، نو دریمه غوټه پرانستے شي، نو هغه سحر په داسے حال کښې وي چه خوشحاله چست او چالاک وي. کنې بد باطن او سست پاسي.

۱۰۷۲: حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَعِيلُ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ قَالَ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ بْنُ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرُّؤْيَا قَالَ أَمَّا الَّذِي يُثْلَغُ رَأْسُهُ بِالْحَجَرِ فَإِنَّهُ يَأْخُذُ الْقُرْآنَ فَيَرْفُضُهُ وَيَنَامُ عَنِ الصَّلٰوةِ الْمَكْتُوبَةِ.

۱۰۷۲: مومل بن هشام. اسماعیل. عوف. ابو رجاء. سمره بن جندبؒ د نبي صلی الله علیه وسلم نه د خوب والا حدیث کښې بیان کوی. رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمائیل. د چا سر چه په کانړي سره چقولے شي هغه هغه سړے دے. چه قرآن یاد کړي بیائے پریږدي. او د فرض مونځ نه غافل اوده شي

باب ۷۲۶: إِذَا نَامَ وَلَمْ يُصَلِّ بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنِهِ.

باب ۷۲۶: چه اوده شي مونځ اونه کړي نو شیطان د هغه غوږ کښې وارۀ بول کوي.

۱۰۷۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ قَالَ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقِيلَ مَا زَالَ نَائِمًا حَتَّى أَصْبَحَ مَا قَامَ إِلَى الصَّلٰوةِ فَقَالَ بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنِهِ.

۱۰۷۳: مسدد. ابو الاحوص. منصور. ابو وائل. عبدالله نه روایت کوي. چه نبي صلی الله علیه وسلم ته د یو سړي ذکر اوشو. نو اوونیلے شو. چه هغه اوده وو. تر دے چه سحر شو. او مانځه نه پانه سیدلو. نو حضورؐ او فرمائیل. چه شیطان د هغه غوږ کښې وارۀ بول او کړه.

باب ۷۲۷: الدُّعَاءِ وَالصَّلٰوةِ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ وَقَالَ كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ أَيْ مَا يَنَامُونَ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ.

باب ۷۲۷: د شپې آخري حصه کښې ذعا او د مونځ کولو بیان. او الله تعالی فرمائیلي دي. چه هغه خلق به د شپې کم اوده کیدل (یهجعون معنے یناموں ده) او د سحرونو وخت کښې هغوي مغفرت غواړي.

۱۰۷۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَأَبِي عَبْدِ اللّٰهِ الْأَغَرِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۱۰۷۴: عبدالله بن مسلمه. مالک ابن شهاب. ابو سلمه. ابو عبدالله اغر. ابوهریرةؓ نه روایت کوي. رسول الله صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه زمونږ رب تبارک و تعالی هره شپه د دنیا آسمان ته راکوزیږي. کوم وخت چه آخري

يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ اِلَى السَّمَآءِ الدُّنْيَا حِيْنَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ يَقُوْلُ مَنْ يَدْعُوْنِيْ فَأَسْتَجِيْبَ لَهٗ مَنْ يَسْأَلُنِيْ فَأُعْطِيَهٗ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِيْ فَأَغْفِرَلَهٗ.

دریمه حصه شپه پاتې شي او فرمائي څوک شته چه ما ته سوال او کړي او زه د هغه سوال قبول کړم څوک شته چه ماته او غواړي او زه ورکړم څوک شته چه ما نه بخښنه او غواړي او زه ې وبښم

باب ۷۲۸: مَنْ نَامَ اَوَّلَ اللَّيْلِ وَاَحْيَا آخِرَهٗ وَقَالَ سَلْمَانُ لِاَبِي الدَّرْدَآءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا نَمْ فَلَمَّا كَانَ مِنْ اٰخِرِ اللَّيْلِ قَالَ قُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ سَلْمَانُ.

باب ۷۲۸: د هغه سړي بيان چه د شپې اوله حصه کښې اوده شو او آخري حصه کښې ويښ شو او سلمان ابو درداء ته اووې اوده شه. کله چه د شپې آخري حصه باقي پاتې شي نو اودريږه. نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائيل سلمان ريښتيا اووې.

۱۰۷۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا كَيْفَ صَلٰوةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ قَالَتْ كَانَ يَنَامُ اَوَّلَهٗ وَيَقُوْمُ اٰخِرَهٗ فَيُصَلِّيْ ثُمَّ يَرْجِعُ اِلٰى فِرَاشِهٖ فَاِذَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ وَثَبَ فَاِنْ كَانَ بِهٖ حَاجَةٌ اِغْتَسَلَ وَاِلَّا تَوَضَّاَ وَخَرَجَ.

۱۰۷۵: ابوالوليد. شعبه. سليمان. شعبه. ابو اسحاق. اسود نه روايت کوي. اسود اووې ما د بي بي عائشې نه تپوس اوکړ چه د نبي عليه السلام د شپې مونځ څنګه وو. نو هغې جواب راکړ چه د شپې په شروع کښې به اوده شو. او آخر شپه کښې به پاسيدلو. او مونځ به ې کولو. بيا به خپلې بسترې ته راغې. کله چه به مؤذن اذان اوکړ. نو راپابه سيدلو. او که د غسل به ورته حاجت وو. نو غسل به ې اوکړلو. کني او دس به ې کولو. او مانځه د پاره به اووتلو.

باب ۷۲۹: قِيَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ فِيْ رَمَضَانَ وَغَيْرِهٖ.

باب ۷۲۹: د نبي عليه السلام رمضان او غير رمضان کښې د شپې د اودريدو بيان.

۱۰۷۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ

۱۰۷۶: عبدالله بن يوسف. مالک. سعيد مقبري. ابو سلمه بن عبدالرحمن نه روايت کوي. چه ابو سلمه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مانځه متعلق

سلمة بن عبد الرحمن انه اخبره انه سأل عائشة رضي الله عنها كيف كانت صلوة رسول الله صلى الله عليه وسلم في رمضان فقالت ما كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يزيد في رمضان ولا في غيره على احدى عشرة ركعة يصلي اربعا فلا تسئل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي اربعا فلا تسئل عن حسنهن وطولهن ثم يصلي ثلاثا قالت عائشة فقلت يارسول الله اتنام قبل ان توتر فقال يا عائشة ان عيني تنامان ولاينام قلبي.

د بي بي عائشې نه تپوس وکړو چه رمضان کښې د حضور مونځ څنګه وو نو هغې جواب ورکړو چه رمضان او بې رمضانه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د يوولس رکعاتو نه زيات هيڅ کله نه کول. څلور رکعاته به يې داسې کول چه د هغې د ښائست او اوږدوالي حال هډو تپوس مه کوه چه څومره ښکلي او اوږده رکعاته به وو. بيا به يې څلور رکعاته داسې کول چه د هغې د ښکلي والي او اوږدوالي حال هډو تپوس مه کوه. بيا به يې درې رکعاته مونځ کولو. د بي بي عائشې بيان دې چه ما عرض اوکړو يا رسول الله تاسو د وتر کولو نه مخکښې اوده کيږئ. حضور او فرمايل اے عائشې زما سترګې اوده کيږي ليکن زما زړه نه اوده کيږي

**١٠٧٧** : حدثنا محمد بن المثنى قال حدثنا يحيى بن سعيد عن هشام قال اخبرني ابي عن عائشة رضي الله عنها قالت ما رايت النبي صلى الله عليه ولم يقرأ في شيء من صلوة الليل جالسا حتى اذا كبر قرأ جالسا فاذا بقي عليه من السورة ثلاثون او اربعون اية قام فقرأهن ثم ركع.

**١٠٧٧** : محمد بن مثنى يحيى بن سعيد. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت کوي هغه فرمائي چه ما د نبي صلي الله عليه وسلم د شپې مونځ کښې هيڅ کله د حضور نه په ناسته قرات نه دے اوريدلے سره د دې چه کوم وخت پرې بوډا والي راغے نو به ناسته به يې کولو او هر کله چه د سورت کښې به دېرش يا څلويښت آيتونه باقي پاتې شو نو هغه به يې په ولاړه لوستل او رکوع به يې کوله.

**باب ٧٣٠** : فضل الطهور بالليل والنهار و فضل الصلوة بعد الوضوء بالليل والنهار.

**باب ٧٣٠** : شپه او ورځ کښې د پاکي کولو او شپه او ورځ کښې د اودس نه پس د مونځ د فضيلت بيان

**١٠٧٨** : حدثنا اسحاق بن نصر قال حدثنا ابو اسامة عن ابي

**١٠٧٨** : اسحاق بن نصر. ابو اسامه. ابو حيان. ابو زرعه. ابو هريره نه روايت دے

خَيَّانَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالٍ عِنْدَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ يَابِلَالُ حَدِّثْنِيْ بِاَرْجٰى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ فِي الْاِسْلَامِ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ قَالَ مَاعَمِلْتُ عَمَلًا اَرْجٰى عِنْدِيْ اَنِّيْ لَمْ اَتَطَهَّرْ طُهُوْرًا فِيْ سَاعَةِ لَيْلٍ اَوْنَهَارٍ اِلَّا صَلَّيْتُ بِذٰلِكَ الطُّهُوْرِ مَاكُتِبَ لِيْ اَنْ اُصَلِّيَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ دَفَّ نَعْلَيْكَ يَعْنِيْ تَحْرِيْكَ.

ابوهريرة اووې چه نبي صلى الله عليه وسلم بلال ته د سحر د مونځ په وخت او فرمايل اې بلاله تـه ماتـه د اميد هغه كار اوښايه چه تا د اسلام په حالت كښې كړې وي، ځكه چه ما ستا د پېرو آواز په جنت كښې آوريدلې دې. بلال جواب كښې اووې چه ما د اميد كوم كار كړې دې هغه دا دې چه د شپې يا د ورځې كوم ساعت كښې ما پاكي (اودس) كړې دې نو هغې اودس سره چه څومره څما مقدر كښې وو ما مونځ كړې دې. او ابو عبدالله اووې "دف نعليك" نه مراد خوزول دي.[1] (د پېرو د چغ چغ آواز)

[1] حافظ ابن حجر رحمة الله عليه ليكلي دي چه روايت كښې د صبا د مونځ نه روستو د رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې خبرې د پښتنې ذكر دې. ددينه معلوميږي چه خوب كښې نې حضرت بلال رضي الله عنه د خان نه وړاندې په جنت كښې داسې ليدلې وو. خوب به رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو ته د صبا د مونځ نه روستو بيانولو

بَابٌ ۷۳۱: مَايُكْرَهُ مِنَ التَّشْدِيْدِ فِي الْعِبَادَةِ.

باب ۷۳۱: عبادت كښې د شدت اختيارولو د كراهت بيان.

۱۰۷۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِبْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا حَبْلٌ مَمْدُوْدٌ بَيْنَ السَّارِيَتَيْنِ فَقَالَ مَاهٰذَا الْحَبْلُ قَالُوْا هٰذَا حَبْلٌ لِزَيْنَبَ فَاِذَا فَتَرَتْ تَعَلَّقَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حُلُّوْهُ لِيُصَلِّ اَحَدُكُمْ نَشَاطَهُ فَاِذَا فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ قَالَ وَقَالَ

۱۰۷۹: ابومعمر. عبدالوارث. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالك نه روايت كوي. د انس بيان دې يو ځلې نبي صلى الله عليه وسلم تشريف راوړلو نو وې ليدل چه د دوو ستنو مينځ كښې رسۍ تړلې ده، حضور تپوس اوكه، دا رسۍ د څه ده. نو خلقو ورته اووې چه دا د زينب رسۍ ده كله چه هغه ستړې شي نو دې سره اونخلي. نبي صلى الله عليه وسلم او فرمائيل. نه. دا پرانزئې. تاسو كښې دې هر څوك خوشحالي سره مونځ كوي كله چه ورته سستي معلومه شي نو كيدې ني. او عبدالله بن مسلمه د مالك هشام

عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَتْ عِنْدِيْ امْرَاَةٌ مِّنْ بَنِيْ اَسَدٍ فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ هٰذِهٖ قُلْتُ فُلَانَةُ لَاتَنَامُ بِاللَّيْلِ فَذُكِرَ مِنْ صَلٰوتِهَا فَقَالَ مَهْ عَلَيْكُمْ مَاتُطِيْقُوْنَ مِنَ الْاَعْمَالِ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَمَلُّ حَتّٰى تَمَلُّوْا.

... بن عروه بن بي بي عائشې نه روايت اوکړه. بي بي عائشه فرمائي ما سره د بني اسد يوه ښځه وه. رسول الله صلی الله علیه وسلم ما پله تشريف راوړلو اوې فرمايل چه دا ښځه څوک ده؟ ما جواب ورکړه فلانۍ ښځه ده. چه د شپې نه اوده کيږي. بيا م د هغې د مونځ ذکر ورته اوکړه. نو حضور او فرمايل خاموشه شه تاسو هغه عمل په ځان لازم کړئ چه د هغې تاسو طاقت لرئ. ځکه چه الله نه ستړے کيږي حتي چه تاسو ستړے نه شئ.[۱]

۱. مطلب ئے دادے چه بنده له دومره عبادت پکار دے چه د بنده چستي او د زړه اطمينان باقي وي. عبادت کښې ځان له تکليف ورکول پکار نه دي. په شريعت کښې ددے څه اندازه څه حد مقرر نه دے چه څومره وخت پورے دے عبادت اوکړے شي بلکې عبادت کښې دا مقصد دے چه د روح چستي او مزه باقي پاتے شي که چرے کوم بنده د خپل وس نه زيات عبادت اوکړي. نو په هغې کښې په عبادت کښې د ډيرو نقصاناتو خطره ده. په راتلونکي وخت کښې به حوصله او همت بيلي او د نورو فرضو عبادتونو د پاتے کيدو خطرے هم شته ددے وجې نه مونځ او نور عبادتونه د خپل وس او د طاقت مناسب کول دي. چه په هغې بنده هميشه عمل کولے شي اوس د هر بنده طاقت او د عبادت شوق جدا جدا وي

## بَابُ ۷۳۲: مَايُكْرَهُ مِنْ تَرْكِ قِيَامِ اللَّيْلِ لِمَنْ كَانَ يَقُوْمُهُ.

## باب ۷۳۲: کوم سړے چه به د شپې اودريدلو هغه د پاره د قيام د ترک کولو د کراهت بيان.

۱۰۸۰: حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ الْحُسَيْنِ قَالَ حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْسَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاعَبْدَ اللّٰهِ لَاتَكُنْ مِثْلَ فُلَانٍ كَانَ يَقُوْمُ اللَّيْلَ فَتَرَكَ قِيَامَ

۱۰۸۰: عباس بن حسين. مبشر. اوزاعي. محمد بن مقاتل بن ابوالحسن. عبدالله. اوزاعي. يحيي بن ابي کثير. ابو سلمه بن عبدالرحمن. عبدالله بن عمرو بن عاص روايت کوي. د عبدالله بن عمرؓ بيان دے چه ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمايل اے عبدالله! ته د فلانی سړی په شان مه کيږه چه د شپې به بيداريدلو. بيا د شپې

اللَّيْلِ وَقَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ الْعِشْرِيْنَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى عَنْ عُمَرَ بْنِ الْحَكَمِ بْنِ ثَوْبَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ مِثْلَهٗ وَتَابَعَهٗ عَمْرُوبْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ.

پاسيدل ہے پريښودل او هشام اووے چه ماته ابن ابي العشرين په سند د اوزاعي. يحيى عمر بن حكم بن ثوبان. ابو سلمه د دے په مثل روايت کړے دے او عمرو بن ابو سلمه د اوزاعي نه د دے متابع حديث روايت کړے دے

## باب ۷۳۳:

باب ۷۳۳: (دا باب بے عنوانه دے)

۱۰۸۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِي الْعَبَّاسِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَمْ اُخْبَرْ اَنَّكَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ وَتَصُوْمُ النَّهَارَ قُلْتُ اِنِّيْ اَفْعَلُ ذٰلِكَ قَالَ فَاِنَّكَ اِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ هَجَمَتْ عَيْنُكَ وَنَفِهَتْ نَفْسُكَ وَاِنَّ لِنَفْسِكَ حَقًّا لِاَهْلِكَ حَقٌّ فَصُمْ وَاَفْطِرْ وَقُمْ فَنَمْ.

۱۰۸۱: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. ابو العباس نه روايت کوي چه ما د عبدالله بن عمرو نه واوريدل هغه اووے ماته نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل ماته ونيلے شوے دي چه ته د شپے اودريږے (مونځ کوے) او د ورځے روژے نيسے. ما عرض اوکړ چه زه دا کوم نو حضورؐ او فرمائيل چه ته داسے کوے نو سترګے به دے کمزورے او طبيعت به دے سست شي. ستا د ځان او ستا د بال بچ هم په تا حق دے نو روژه هم نيسه او کوژه هم کوه. د شپے قيام هم کوه او خوب هم کوه.

## باب ۷۳۴: فَضْلِ مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلّٰى.

باب ۷۳۴: د هغے سړي د فضيلت بيان چه د شپے پاسي او مونځ اوکړي.

۱۰۸۲: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ قَالَ اَخْبَرَنَا الْوَلِيْدُ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَيْرُ بْنُ هَانِيءٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ جُنَادَةُ بْنُ اَبِيْ اُمَيَّةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا

۱۰۸۲: صدقه بن فضل. وليد. اوزاعي. عمير بن هاني. جناده بن ابي اميه. عباده بن صامتؓ نه روايت کوي چه حضورؐ او فرمائيل څوک چه د شپے پاسي او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَا اِلٰهَ

وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ اَوْدَعَا اسْتُجِيْبَ فَاِنْ تَوَضَّأَ قُبِلَتْ صَلٰوتُهٗ.

لا لنه والله اکبر ولاحول ولا قوة الا بالله اووائي بيا اللهم اغفرلي اووائي يا دعا اوکړي نو د هغه دعا قبولے شي او که هغه اودس اوکړي نو د هغه مونځ مقبول شي (١)

(١) ابن بطال رحمة الله عليه ددے حديث شريف په حقله فرمائلي دي چه الله تعالى د خپل پيغمبر صلي الله عليه وسلم په ژبه باندے دا وعده کړيده چه کوم مسلمان د شپے بيدار شي او د هغه په ژبه د الله تعالي توحيد، په هغه د ايمان او يقين اقرار وي د هغه د لويي د بادشاهي محکمښ سر حکته کول د هغه د بندګي، د هغه د نعمتونو اقرار، او په هغے باندے د الله تعالي شکر، حمد و ثنا، د الله پاک د پاکوالي په حقله کلمات جاري وي نو الله تعالي د هغه دعا قبلوي. او د هغه مونځ د رب العزت په دربار کښې قبول وي ددے وجے نه چه کوم بنده ته دا حديث شريف اورسي هغه دے په دے باندے عمل کول غنيمت اوګڼي. او هغه ته د ټولو اعمالو خالص نيت د خپل رب د پاره کول پکار دي ځکه چه اخلاص د ټولو نه اول د قبليدو شرط دے.

١٠٨٣ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِي الْهَيْثَمُ بْنُ اَبِيْ سِنَانٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَهُوَ يَقْصُصُ فِيْ قَصَصِهٖ وَهُوَ يَذْكُرُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَخًا لَّكُمْ لَا يَقُوْلُ الرَّفَثَ يَعْنِيْ بِذٰلِكَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ رَوَاحَةَ وَفِيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ يَتْلُوْ كِتَابَهٗ. اِذَا انْشَقَّ مَعْرُوْفٌ مِّنَ الْفَجْرِ سَاطِعٌ اَرَانَا الْهُدٰى بَعْدَ الْعَمٰى فَقُلُوْبُنَا بِهٖ مُوْقِنَاتٌ اَنَّ مَاقَالَ وَاقِعٌ. يَبِيْتُ يُجَافِيْ جَنْبَهٗ عَنْ فِرَاشِهٖ اِذَا

١٠٨٣ : يحيي بن بکير. ليث. يونس ابن شهاب. هيثم بن ابي سنان د ابوهريره نه وعظ کښې واوريدل داسے حال کښې چه هغه د رسول الله صلے الله عليه وسلم ذکر خير کولو، چه ستاسو ورور يعني عبدالله بن رواحه بالکل لغوه خبره نه کوي (١) او مونږ کښې د الله رسول دے چه هغه کتاب لولي کوم وخت چه سحر راخيژي. (٢) مونږ ته ئے نيغه لار او ښودله، د هغے نه پس چه مونږ د جهالت په تاريکي کښې وو، نو خمونږ زړونه يقين کوي، چه څه حضورﷺ او فرمائيل، هم هغه به کيږي (٣) هغه شپه تيروي، داسے حال کښې چه د بستره نه ئے آړخ جدا وي، هر کله چه

اُسْتُثْقِلَتْ بِالْمُشْرِكِيْنَ الْمَضَاجِعُ. تَابَعَهُ عُقَيْلٌ وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ اَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدٍ وَّ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

بسترے د دے مشرکينو په وجه درنے دي. عقيل د دے متابع حديث روايت کړے دے. او زبيدي اووے چه ماته زهري او هغه د سعيد او اعرج نه او هغه د ابوهريره نه روايت کړے دے.

۱۰۸۴: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانُ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُبْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَاَيْتُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاَنَّ بِيَدِيْ قِطْعَةَ اِسْتَبْرَقٍ فَكَاَنِّيْ لَا اُرِيْدُ مَكَانًا مِّنَ الْجَنَّةِ اِلَّا طَارَتْ اِلَيْهِ وَرَاَيْتُ كَاَنَّ اثْنَيْنِ اَتَيَانِيْ اَرَادَا اَنْ يَّذْهَبَابِيْ اِلَى النَّارِ فَتَلَقَّاهُمَا مَلَكٌ فَقَالَ لَمْ تُرَعْ خَلِّيَا عَنْهُ فَقَصَّتْ حَفْصَةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِحْدٰى رُؤْيَايَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللّٰهِ لَوْ كَانَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ وَكَانُوْا لَا يَزَالُوْنَ يَقُصُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا اَنَّهَا فِي اللَّيْلَةِ السَّابِعَةِ مِنَ الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرٰى رُؤْيَاكُمْ قَدْ تَوَاطَتْ فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فَمَنْ كَانَ مُتَحَرِّيْهَا فَلْيَتَحَرَّهَا مِنَ الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ.

۱۰۸۴: ابوالنعمان. حماد بن زيد. ايوب. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي. ابن عمرؓ اووے ما د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم زمانه کښې خوب اوليد چه خما لاس کښې يو ريښمينه ټکړه ده او د جنت کومے حصے ته چه زۀ تلل غواړم هغه ما هلته الوخوي او ما اوليدل چه ګويا دوه سړي ماله راغلل او جهنم ته ئے خما بوتلل غوښتل او هغے دواړو سره يو فريښته يو خانے شوه او ورته ئے اووے چه دے پريږدئي. او ماته ئے اووے چه د ويرے څه خبره نشته. بي بي حفصےؓ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ته خما دوه خوبونو کښې يو خوب بيان کړلو نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل عبداللّٰه ډير ښه سړے دے کاش چه د شپے مونځ ئے کولے نو عبداللّٰه به (بيا) د شپے مونځ کولو. او خلقو به د نبي صلي الله عليه وسلم مخکښې خپل خوب بيانولو چه شب قدر د رمضان مياشت د آخري عشرے اوومه شپه کښې ده نو نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل زۀ وينم چه ستاسو خوبونه د آخري عشرے متعلق متفق (يو) شول. تاسو کښې چه څوک دا (شپه) تلاش کوي نو هغه له پکار دي چه آخري عشره کښې تلاش کوي.

## باب ۷۳۵: الْمُدَاوَمَةِ عَلٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ.

## باب ۷۳۵: د سحر دوه رکعاته هميشګي سره د کړلو بيان.

۱۰۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۱۰۸۵: عبداللّٰه بن يزيد. سعيد بن

| | |
|---|---|
| يَزِيدَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ هُوَ ابْنُ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ صَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ وَرَكْعَتَيْنِ جَالِسًا وَرَكْعَتَيْنِ بَيْنَ النِّدَاءَيْنِ وَلَمْ يَكُنْ يَدَعُهُمَا أَبَدًا. | ابي ایوب. جعفر بن ربیعه. عراک بن مالک. ابو سلمي. بي بي عائشې نه روایت کوي هغې اوویل نبي صلی الله علیه وسلم د ماسختن مونځ او که. بیا یې اته رکعاته او دوه رکعاته په ناسته او کړل او دوه رکعاته یې د دوارو بلنو (اذان او اقامت) په مینځ کښې او کړل. او دا دواړه رکعتونه به یې هیڅ کله نه پریښودل. |

**باب ۷۳۶: الضَّجْعَةِ عَلَى الشِّقِّ الْأَيْمَنِ بَعْدَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ.**

**باب ۷۳۶:** د سحر د دوو رکعاتونه پس په ښي اړخ د ملاستې بیان.

| | |
|---|---|
| **۱۰۸۶ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ ابْنُ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو الْأَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ. | **۱۰۸۶ :** عبدالله بن یزید. سعید بن ابي ایوب. ابوالاسود. عروه بن زبیر. بي بي عائشې نه روایت کوي هغې اوویل چه نبي صلی الله علیه وسلم به د سحر دوه رکعاته (سنت) او کړل نو په ښي اړخ به سملاستلو ۱. |

۱. په دې حدیث شریف کښې اختصار دې د امام بخاري رحمة الله علیه استاذ عبدالرزاق رحمة الله علیه په خپل تفصیلي روایت کښې لیکلې دي چه خمونږ مور بي بي سیده عائشه رضي الله عنها فرمایلي دي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم به ددې د پاره نه څملاستلو چه دا یو سنت عمل دې بلکې هغه به ددې د پاره څملاستلو چه د شپې په عبادت به ستړې شوې وو نو څه آرام به یې کولو (عبدالرزاق جلد ۳ ص ۴۳) حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به که څوک د صبا سنتو نه روستو ملاست اولیده نو په کانړي به یې ویشتلو. (عبدالرزاق ۳ ص ۴۳) او نورو خلقوته به یې هم په کانړي ویشتلو ددغې بنده حکم ورکولو (ش ۲ ص ۲۴۸) د امام بخاري رحمة الله علیه استاذ دا روایت کوي که چرې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما داسې ویونکې اولیدو چه هغه به د صبا د سنتو نه روستو څملاستلو ته سنت وې نو هغه به فرمایل چه دې خبر کړئ چه دا بدعت دې (ش ۲ ص ۲۴۹) حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به که داسې څوک اولیدو چه د صبا د سنتو نه روستو ملاست دې نو هغه به فرمایل "دا ته څه شویدي چه د اس، خر، پشان رغړي (ش ۲ ص ۲۴۸) (امین او کاړوي)

## باب ۷۳۷: مَنْ تَحَدَّثَ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ وَلَمْ يَضْطَجِعْ.

۱۰۸۷: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْحَكَمِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا صَلّٰى فَاِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِيْ وَاِلَّا اضْطَجَعَ حَتّٰى يُؤْذَنَ بِالصَّلٰوةِ.

## باب ۷۳۷: د هغې سړي بيان چه دوه رکعاتو نه پس خبرې اوکړي اوسم نه لي

۱۰۸۷: بشر بن حکم. سفيان. سالم. ابوالنضر. ابو سلمه. بي بي عائشې نه روايت کوي هغې اووې چه نبي صلى الله عليه وسلم به مونځ اوکړ. او زه به ويښه ووم' نو ماسره به ئې خبرې کولې کني سملاستلو به. تردې چه د مونځ اذان (يعني اقامت) به اوشولو.

## بَابُ ۷۳۸: مَاجَآءَ فِي التَّطَوُّعِ مَثْنٰى مَثْنٰى وَيُذْكَرُ ذٰلِكَ عَنْ عَمَّارٍ وَّاَبِيْ ذَرٍّ وَّ اَنَسٍ وَّ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَّ عِكْرَمَةَ وَالزُّهْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدِ الْاَنْصَارِيِّ مَا اَدْرَكْتُ فُقَهَآءَ اَرْضِنَا اِلَّا يُسَلِّمُوْنَ فِيْ كُلِّ اثْنَيْنِ مِنَ النَّهَارِ.

## باب ۷۳۸: د هغې روايتونو بيان چه د نفل په حقله منقول دي' چه دوه' دوه رکعاته دي.

او د اعمار. ابوذر. انس. جابر بن زيد. عکرمه او زهريَ نه منقول دي. او يحيي بن سعيد انصاري وئيلې دي' چه مونږ د خپل ښار فقهاء په داسې حال کښې بيامندل' چه د ورځې په مونځونو کښې به ئې په دوه رکعاته سلام ګرځولو.

۱۰۸۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ اَبِي الْمَوَالِيْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا الْاِسْتِخَارَةَ فِي الْاُمُوْرِ كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ يَقُوْلُ اِذَا هَمَّ اَحَدُكُمْ بِالْاَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ لِيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَ

۱۰۸۸: عبدالرحمن بن ابي الموالي. محمد بن منکدر. جابر بن عبدالله نه روايت کوي' هغهٔ اووې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته په اهمو کارونو کښې د استخارې تعليم راکولو' څنګه چه د قرآن يو سورت به ئې مونږ ته ښودلو. حضورؐ به فرمائيل' کله چه تاسو کښې يو سړې د څهٔ کار اراده اوکړي' نو د فرض نه علاوه دوه رکعاته نفل مونځ دې اوکړي. بيا دې اووائي' اې خدا الله' زهٔ ستانه ستا د علم په ذريعه خير طلب کوم' او ستا د قدرت په ذريعه قدرت طلب کوم او ستا د لوئې فضل درخواست کوم' ته قادر ئې.

اسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَاَسْاَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا اَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا اَعْلَمُ وَاَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْقَالَ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ فَاقْدُرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ وَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْقَالَ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ اَرْضِنِيْ بِهٖ قَالَ وَيُسَمِّيْ حَاجَتَهٗ.

ليکن زه قادر نه يم. ته علم لرې. ليکن ماته علم نشته. ته د غيب د ټولو نه زيات پوهيدونکے يې. اے خدائے الله! که ته پوهيږې چه دا کار ما د پاره خما د دين د پاره معاش او د کار د انجام د لحاظ نه بهتر دے نو دا خما د پاره مقدر او کرځوې او دے کښې ما د پاره آساني پيدا کړې. بيا دے کښې ما د پاره برکت واچولے کړې. او که ته پوهيږې چه دا خما د پاره، خما دين او معاش او د کار د انجام د لحاظ نه خراب دے نو دا خما نه لرې کړې او ما د دے نه اوساتې او ما د پاره خير مقدر کړې، کوم خائے چه وي. بيا ما راضي لرې. حضور او فرمائيل: بيا دے د خپل حاجت نوم واخلي[۱].

۱ د استخارے مونځ سره کارونو کښې برکت پيدا کيږي دا ضروري نده چه د استخارے کولو نه پس څوک خوب اوويني يا په بله ذريعه ورته معلومه شي چه فلاني کار کښې به داسے طريقه مناسب وي. دا هم ضروري نده چه د بنده په طبعت کښې د استخارے په ذريعه څه خبره په زړه کښې پيدا شي. په حديث شريف کښې د استخارے دا فائدے هيچرته بيان شوے ندي. او د واقعاتو نه دا معلوميږي چه د استخارے نه روستو په بعضے وختونو کښې په دے کښې څه خيرهم نه حاصليږي بلکې د استخارے مقصد "خير" غوښتل دي چه د کوم کار اراده ده يا کومه معامله کښې چه بنده ښتے دے په هغے کښې خير راشي. مطلب نے دادے چه د استخارے په ذريعه تا خپل خان د الله تعالي علم او قدرت ته اوسپارلو. او د هغه دربار کښې حاضر شوے. او په هغه دے پورہ د توکل وعده اوکړه. ته الله تعالي ته وائے "ما ستا د علم په واسطه ستا نه خير (بهتري) غوښتے دے او ستا د قدرت په واسطه ستانه طاقت غواړم او ستا د فضل غوښتونکے يم". دا په الله تعالي توکل اوسپارل نه دي، نو نور څه دي". او د دعا په آخري الفاظو کښې دي. "اے الله خما د پاره خير تقدير کښې مقرر کړه هر خائے کښې چه خير وي. خما زړه ورباندے مطمئن کړه". دا د استخارے دعا د الله تعالي په فيصله د راضي کيدو دعا ده. چه د الله تعالي په نزد د معاملے کوم صحيح حالت دے هغه شان کار دے الله تعالي اوکړي. ددينه روستو بنده د خان د پاره د هر قسم اطمينان دعا کوي چه په زړه کښې د الله تعالي د فيصلے خلاف څه قسم خطره پيدا نه شي. په حقيقت کښې د استخارے ددے دعا په ذريعه اول د توکل وعده کوي. بيا د ثابت قدمي او د الله تعالي په فيصله د راضي کيدو دعا کوي. "چه د معاملے فيصله دے خما د خواهش خلاف ولے نه وي خو چه هغه خير وي او خما زړه ورباندے مطمئن او رضا وي". که

څوک واقعي ډول باندې دا دواړه خبرې د الله تعالى په دربار کښې پیش کړي نو د هغه په کار کښې د الله تعالى په فضل و کرم سره بشپړې برکت وي. د استخارې صرف دا فائده ده ددې په ربات نور څه بکار دي؟

۱۰۸۹: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ سَمِعَ أَبَا قَتَادَةَ بْنَ رِبْعِيِّ الْأَنْصَارِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلَا يَجْلِسْ حَتَّى يُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ.

۱۰۸۹: مکي بن ابراهیم. عبدالله بن سعید. عامر بن عبدالله بن زبیر. عمرو بن سلیم زرقي. ابو قتاده بن ربعي انصاري نه روایت کوي: نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل: کله چه تاسو کښې څوک سړې جمات کښې داخل شي، نو نه دې کیني تردې چه دوه رکعاته مونځ او کړي.

۱۰۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ.

۱۰۹۰: عبدالله بن یوسف. مالک. اسحق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالک نه روایت کوي چه مونږ. خلقوته رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه رکعاته مونځ راکړلو. بیا واپس شولو.

۱۰۹۱: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ.

۱۰۹۱: ابن بکیر. عقیل. ابن شهاب. سالم. عبدالله بن عمر نه روایت کوي: هغه اوویل ما رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دوه رکعاته د ماسپخین نه مخکښې دوه رکعاته او د دې نه پس دوه رکعاته او د جمعې نه پس او دوه رکعاته د ماښام نه پس او دوه رکعاته د ماسختن نه پس کړې دي.

۱۰۹۲: حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ

۱۰۹۲: آدم. شعبه. عمرو بن دینار. جابر بن

أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ أَوْقَدْ خَرَجَ فَلْيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ.

عبد اللّٰه نه روایت کوي. هغه اووې: رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم د خپلې خطبې دوران کښې او فرمائیل هر کله چه تاسو کښې څوک راشي او امام خطبه لولي یا خطبې له راوتلے وي نو دوه رکعاته دې اوکړي.

**۱۰۹۳**: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سَيْفٌ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُوْلُ أُتِيَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فِيْ مَنْزِلِهِ فَقِيْلَ لَهُ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ دَخَلَ الْكَعْبَةَ قَالَ فَأَقْبَلْتُ فَأَجِدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ خَرَجَ وَأَجِدُ بِلَالًا عِنْدَ الْبَابِ قَائِمًا فَقُلْتُ يَا بِلَالُ صَلَّى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكَعْبَةِ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ فَأَيْنَ قَالَ بَيْنَ هَاتَيْنِ الْأُسْطُوَانَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فِيْ وَجْهِ الْكَعْبَةِ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَوْصَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَكْعَتَيِ الضُّحٰى وَقَالَ عِتْبَانُ غَدَا عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بَعْدَ مَا امْتَدَّ النَّهَارُ وَصَفَفْنَا وَرَاءَهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ.

**۱۰۹۳**: ابو نعیم. سیف بیان کوي ما د مجاهد نه واوریدل چه ابن عمر له د هغه قیام گاه ته ورغے نو هغه ته خبر ورکړے شو چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم کعبه کښې داخل شوے دے. ابن عمرؓ وائي څه وخت چه زۀ د کعبې مخې ته راغلم نو حضورؐ بهر وتلے وو او بلال مې په دروازه ولاړ اوليدلو نو ما ترې تپوس اوکړ اے بلاله آیا رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم کعبه کښې مونځ اوکړلو؟ بلال اووې او. ما ترې تپوس اوکړ کوم ځائے؟ وے وئیل د دغې دوو ستنو مینځ کښې. بیا بهر اووتلو او د کعبې مخې ته ئې دوه رکعاته اوکړل. د امام بخاري بیان دے ابوهریرهؓ اووې ماته نبي علیه السلام د څاښت د دوو رکعاتو وصیت اوکړه. او عتبان اووې رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم او ابوبکرؓ مونږ پله تشریف راوړلو داسې حال کښې چه ورځ راختلے وه. مونږ حضورؐ پسې صف بندي اوکړه او حضورؐ دوه رکعاته مونځ راکړلو [1].

۱. دے ټولو روایاتو کښې امام بخاري رحمة اللّٰه علیه دا ښودل غواړي چه نفل مونځ هر څومره رکعتونه کول وي نو دوه، دوه رکعاته ادا کول غوره دي. د امام شافعي رحمة اللّٰه علیه هم دا مسلک دے

ليكن د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په تر د باندے د ورځے خلور خلور ركعاته غوره دي. په حقيقت كښې د غوره والي سوال هله پيدا كيږي چه څوك خلور ركعاته يا ربات ادا كول غواړي ليكن كه څوك دوه ركعاته ادا كول غواړي نو بيا د غوره والي يا نه غوره والي سوال نه پيدا كيږي امام بخاري رحمه الله عليه چه ددے سر ليك لاندے دے باب كښې څومره احاديث روايت كړيدي په هغے كښې دا صورت دے "چه مونږ به دوه ركعاته كيدلو كه چرے خلور ركعاته رسول الله صلى الله عليه وسلم ادا كړے وے نو بيا به غوره والے ثابت شوے وو" ليكن بل طرفته داسے احاديث شته دے چه د هغے نه د ورځے په وخت د رسول الله صلي الله عليه وسلم خلور ركعاته ادا كول ثابت دي.

## بَاب ۷۳۹: الْحَدِيثِ بَعْدَ رَكْعَتِي الْفَجْرِ.

## باب ۷۳۹: د سحر دوو ركعاتونه پس د خبرو كولو بيان.

۱۰۹۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ أَبُو النَّضْرِ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيُ رَكْعَتَيْنِ فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِيْ وَإِلَّا اضْطَجَعَ قُلْتُ لِسُفْيَانَ فَإِنَّ بَعْضَهُمْ يَرْوِيْهِ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قَالَ سُفْيَانُ هُوَذَاكَ.

۱۰۹۴: علي بن عبدالله. سفيان. ابو النضر. د ابوالنضر پلار. ابوسلمه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. هغه واي چه نبي صلي الله عليه وسلم به دوه ركعاته مونځ كولو، كه زه به بيداره ووم نو ماسره به ئے خبرے كولے، كنې سملاستلو به. ما د سفيان نه تپوس اوكه، چه بعضے د سحر دوه ركعاته روايت كوي نو سفيان اووے. دا صحيح ده.

## بَاب ۷۴۰: تَعَاهُدِ رَكْعَتِي الْفَجْرِ وَمَنْ سَمَّاهُمَا تَطَوُّعًا.

## باب ۷۴۰: د سحر د دوو ركعاتو د پابندئ بيان. او بعضو دے دوو ركعاتوته نفل وئيلے دي.

۱۰۹۵: حَدَّثَنَا بَيَانُ بْنُ عَمْرٍ و قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنَ النَّوَافِلِ أَشَدَّمِنْهُ تَعَاهُدًا عَلٰى رَكْعَتَي

۱۰۹۵: بيان بن عمرو. يحيى بن سعيد. ابن جريج. عطاء. عبيد بن عمير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. هغے اووے، چه نبي صلي الله عليه وسلم به هيڅ نفل دومره هميشگي سره نه كول څومره چه د سحر دوه ركعاته به ئے پابندئ سره

الْفَجْرِ.

كول.

## بَابُ ۷۴۱: مَا يُقْرَأُ فِيْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ.

## باب ۷۴۱: د سحر دوه ركعاتو كښې څه لوستل پكار دي.

۱۰۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِاللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ يُصَلِّيْ اِذَا سَمِعَ النِّدَآءَ بِالصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ.

۱۰۹۶: عبدالله بن يوسف. مالك. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي هغې اووې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د شپې ديارلس ركعاته كول بيا چه د سحر آذان به ئې واوريدلو نو آسان دوه ركعاته به ئې كول (آسان نه مراد خفيف هلكي)

۱۰۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمَّتِهٖ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَحَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى هُوَ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّفُ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَقُوْلُ هَلْ قَرَاَ بِاُمِّ الْكِتَابِ.

۱۰۹۷: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه محمد بن عبدالرحمن. عمره. بي بي عائشې نه روايت كوي. ح. احمد بن يونس. زهير. يحي بن سعيد. محمد بن عبدالرحمن. عمره. بي بي عائشې نه روايت كوي هغه فرمائي چه نبي صلى الله عليه وسلم به د سحر د مونځ نه مخكښې سنت چه دوه ركعاته دي دا به ئې خفيف كول تردې چه ما به ونيلې چه حضور صلى الله عليه وسلم آيا صرف سورة فاتحه لوستې ده[1]

[1] حضرت عائشه رضى الله تعالى عنها د مونځ لندوالې (اختصار) بيانوي. د دامې روايتونو په وجه امام مالك رحمة الله عليه فرمايلي دي چه د صبا په سنتو كښې صرف فاتحه لوستلې شي ليكن د عام امت

۳۶

په نزد د سورت فاتحه سره د بل سورت يوځائے كول هم ضروري دي

## بـاب ۷۴۲: التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْمَكْتُوبَةِ.

**۱۰۹۸:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنَا نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَآءِ وَسَجْدَتَيْنِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَاَمَّا الْمَغْرِبُ وَالْعِشَآءُ فَفِي بَيْتِهِ قَالَ ابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ بَعْدَ الْعِشَآءِ فِيْ اَهْلِهِ تَابَعَهُ كَثِيْرُ ابْنُ فَرْقَدٍ وَ اَيُّوْبُ عَنْ نَافِعٍ فَحَدَّثَتْنِي اُخْتِي حَفْصَةُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي سَجْدَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ بَعْدَ مَا يَطْلُعُ الْفَجْرُ وَكَانَتْ سَاعَةً لَا اَدْخُلُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا تَابَعَهُ كَثِيْرُ ابْنُ فَرْقَدٍ وَاَيُّوْبُ عَنْ نَافِعٍ وَقَالَ ابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ بَعْدَ الْعِشَآءِ فِيْ اَهْلِهِ.

## بـاب ۷۴۲: فرض نه پس د مونځ كولو بيان.

**۱۰۹۸:** مسدد. يحيي بن سعيد. عبيدالله. نافع. ابن عمر نه روايت كوي هغه اووې ما نبي صلی الله عليه وسلم سره مونځ او كړلو دوه ركعاته د ماسپخين نه مخكښې او دوه ركعاته د ماسپخين نه پس. دوه ركعاته د ماښام نه پس. دوه ركعاته د ماسختن نه پس. دوه ركعاته د جمعې نه پس. ليكن د ماښام او د ماسختن وخت كښې به ئې خپل كور كښې كول. ابن ابي الزناد په ذريعه د موسى بن عقبه. نافع "بعد العشاء في اهله" الفاظ سره روايت كړي دي كثير بن فرقد ايوب نافع نه روايت دي چه ماته حفصا خوږ بي بي حفصې اوئې چه نبي صلی الله عليه وسلم د سحر ختلو نه پس دوه خفيف ركعاتونه كول او هغه به د هغې وخت وو چه زه نبي صلی الله عليه وسلم ته نه ننوتم ورسره كثير بن فرقد او ايوب د نافع نه دغه متابع حديث روايت كړي دي او ابن ابي الزناد د موسى بن عقبه نه او هغه د نافع نه بعد العشاء في اهله (خپل كور كښې به ئې د ماسختن نه پس نفل كول) الفاظ روايت كړي دي.

## بـاب ۷۴۳: مَنْ لَمْ يَتَطَوَّعْ بَعْدَ الْمَكْتُوبَةِ.

**۱۰۹۹:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو

## باب ۷۴۳: د هغه سړي بيان چه فرض نه پس نفل نه كړي

**۱۰۹۹:** علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. ابوالشعثاء جابر. ابن عباس نه روايت

قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الشَّعْثَآءِ جَابِرًا قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيًا جَمِيْعًا وَّ سَبْعًا جَمِيْعًا قُلْتُ يَآاَبَا الشَّعْثَآءِ اَظُنُّهُ اَخَّرَ الظُّهْرَ وَعَجَّلَ الْعَصْرَ وَعَجَّلَ الْعِشَآءَ وَاَخَّرَ الْمَغْرِبَ قَالَ وَاَنَا اَظُنُّهُ.

كوي هغه اوويـچـه مـا رسول الله صلي الله عليه وسلم سره اته ركعاته يوځائے او اوه ركعاته يو ځائے كړے دي. ما ورته اووے اے ابوالشعثاء خما گمان دے چه ماسپخين هغه تاخير سره او مازيگر ئے تادي سره كړے دے. او د ماسختن مونځ ئے تادئ سره او د ماښام مونځ ئے تاخير سره كړے دے نو هغه اووے خما هم دغه گمان دے.

## بـاب ۷۴۴: صَلٰوةِ الضُّحٰى فِي السَّفَرِ.

## بـاب ۷۴۴: سفر كښې د څاښت د مونځ بيان.

۱۱۰۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ تَوْبَةَ عَنْ مُوَرِّقٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَتُصَلِّى الضُّحٰى قَالَ لَا قُلْتُ فَعُمَرُ قَالَ لَا قُلْتُ فَاَبُوْبَكْرٍ قَالَ لَا قُلْتُ فَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا اِخَالُهُ.

۱۱۰۰: مسدد. يحيي. شعبه. توبه. مورق نه روايت كوي. هغه اووے ما ابن عمرؓ ته اووے آيا تاسو د څاښت مونځ كوئے. هغه اووے نه ما ترے تپوس اوكړ چه عمرؓ وئيلے نه ما ترے تپوس اوكړ چه ابوبكرؓ وئيلے نه. بيا ترے ما تپوس اوكړ چه نبي صلي الله عليه وسلم وئيلے خما خيال دے چه نه ئے كولو

۱۱۰۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَالرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ لَيْلٰى يَقُوْلُ مَا حَدَّثَنَا اَحَدٌ اَنَّهٗ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّى الضُّحٰى غَيْرُ اُمِّ هَانِيءٍ فَاِنَّهَا قَالَتْ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ فَاغْتَسَلَ فَصَلّٰى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ فَمَا رَاَيْتُهُ صَلّٰى صَلٰوةً قَطُّ اَخَفَّ مِنْهَا غَيْرَ اَنَّهٗ يُتِمُّ

۱۱۰۱: آدم. شعبه. عمرو بن مره. عبدالرحمن بن ابي ليلي وائي مونږ ته چا بيان اونه كړو چه مونږ نبي صلي الله عليه وسلم د څاښت په مونځ لېدلے دے سوا د ام هاني نه هغې وئيلي دي چه نبي صلي الله عليه وسلم د هغې كور كښې د مكے د فتح په ورځ داخل شو غسل ئے اوكړو او اته ركعاته مونځ ئے اوكړو او ما هيڅ مونځ دومره آسان (مختصر) نه دے لېدلے ماسوا دے نه چه ركوع او سجدے

الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ. به ئې پوره كولې ډ.

۱. ډيرو محدثينو ديته د شكرانې مونځ ويلې دې ليكن راوي دا د څاښت مونځ بنائي. دا د شكرانې مونځ وو. ليكن د څاښت په وخت ادا شوې وو خكه ورته راوي د څاښت وائي. بهرحال: د فتح مكه په وخت رسول الله صلي الله عليه وسلم د سفر په حالت كښې وو او هغوئ په مكه كښې دا مونځ كړې وو امام بخاري رحمة الله عليه پدې وجه "په سفر كښې د څاښت مونځ" وائي. كه چرې دا د څاښت مونځ او منلې شي نو بيا هم د رسول الله صلي الله عليه وسلم د څاښت د مونځ كولو معمول نه وو. ددې وجې نه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د څاښت د مونځ نه انكار كړيدې او كه كوم خلق ئې د څاښت په وخت مونځ اوليده: نو هغه به فرمايل: دا نوې څيز دې اگرچه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د څاښت د مونځ صفت او فضيلت هم بيان كړيدې رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله ددې مونځ فضيلتونه بيان كړيدي. ددې طرفته ئې صحابه كرامو ته توجه ور كړيده. ددين بعضې كارونه داسې دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم هميشه نه دي كړې يا ئې كم كړيدي. او عملي ثبوت ئې شته په احاديثو كښې ئې ډير فضيلتونه بيان شويدي. هيچرې اذان رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دې كړې اگرچه دې سره بعضې عالمانو اختلاف كړيدې ليكن د اكثر علماؤ دا تحقيق دې چه د اذان بې شماره فضيلتونه دي او د دغې لويو فضيلتونو په وجه بعضې علماؤ د امامت نه هم غوره گنړلې دې. د فرض مونځ نه روستو د دعا د پاره د رسول الله صلي الله عليه وسلم لاس پورته كول ډير كم ثابت دي ليكن صحابه كرامو ته د دعا د پاره ئې د لاس پورته كولو فرمايلي دي ددې ئې ډير زيات فضيلتونه بيان كړيدي ددينه دا نه ثابتيږي چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د وينا او د عمل په مينځ كښې اختلاف يا تعارض دې چه د هغې د لرې كولو كوشش اوشي. بلكې ددينه دا معلوميږي چه ډير ښه كارونه په عمل كښې راوستل پخپله رسول الله صلي الله عليه وسلم ضروري گنړلې نه دي. بلكې هغه عملونه به ئې كول كوم چه د پيغمبرئ د شان سره مناسب وو. او بعضې فضيلونه ثوابونه بيانول به ئې كافي گنړل. كه چرې پخپله رسول الله صلي الله عليه وسلم يو كار نه وي كړې. نو د هغې نه د هغې كار په فضيلت كښې څه كمې نه رازي. بلكې خمونږ د پاره د هغې كار فضيلت ددې درجې دې چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغې كار كولو حكم كړيدې. د څاښت مونځ هم داسې دې.

| | |
|---|---|
| بَاب ۷۴۵: مَنْ لَمْ يُصَلِّ الضُّحٰى وَرَوَاهُ وَاسِعًا. | باب ۷۴۵: د هغې سړي بيان چه د څاښت مونځ ئې اُونه كه: او كول اونه كول ئې دواړه جائز او گنړل. |
| ۱۱۰۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَارَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبَّحَ سُبْحَةَ الضُّحٰى | ۱۱۰۲: آدم. ابن ابي ذئب. زهره. عروه. بي بي عائشې نه روايت دې. هغه وائي: ما رسول الله صلي الله عليه وسلم د څاښت په مونځ كولو نه دې ليدلې: او زه ئې خپله |

وَاِنِّيْ لَاُسَبِّحُهَا.

کړه.

**بــاب ٧٤٦: صَلٰوةِ الضُّحٰى فِـي الْـحَضَرِ قَالَهُ عِتْبَانُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ٧٤٦:** حـضر کښې د چاشت د مونځ کولو بیان. دا عتبان بن مالک د نبي صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایت کړے دے.

**١١٠٣:** حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبَّاسُ الْجُرَيْرِيُّ هُوَ ابْنُ فَرُّوْخَ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ بِثَلَاثٍ لَا اَدَعُهُنَّ حَتّٰى اَمُوْتَ صَوْمِ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَصَلٰوةِ الضُّحٰى وَنَوْمٍ عَلٰى وِتْرٍ.

**١١٠٣:** مسـلـم بـن ابـراهيـم. شـعبـه. عبـاس جـريـري ابن فـروخ. ابو عثمـان نهدي. ابـو هـريـرةٌ نـه روايـت کـوي: هغـه اووې: چـه مـاتـه خـمـا دوسـت د درے خـبـرو وصيت کـړے دے: زۀ بـه هـغـه د مـرګـه پـورے نـه پـريـږدم. هـره (١) ميـاشـت کـښې درے روژے نيول، د (٢) څاښت مونځ او د (٣) وتر کولو نه ورستو اوده کيدل.

**١١٠٤:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ قَالَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَنَسِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَكَانَ ضَخْمًا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَا اَسْتَطِيْعُ الصَّلٰوةَ مَعَكَ فَصَنَعَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا فَدَعَاهُ اِلٰى بَيْتِهٖ وَنَضَحَ لَهٗ طَرَفَ حَصِيْرٍ بِمَآءٍ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَكْعَتَيْنِ وَقَالَ فُلَانُ بْنُ فُلَانِ بْنِ جَارُوْدَ لِاَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحٰى فَقَالَ مَارَاَيْتُهٗ صَلّٰى غَيْرَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ.

**١١٠٤:** عـلـي بن جعد. شعبه. انس بن سيـريـن. انـس بـن مـالـک انصـاري نـه روايت کـوي: هغـه وائـي يو انصـاري سـړي چـه ډيـر غـټ وو، نـبـي صـلـے اللّٰه عليه وسلم تـه عرض اوکـړو: چـه زۀ تـاسـو سـره ډيـر مـونـځـونـو کـښې نشم شـريـکيـدے. نو د نبـي صـلـے اللّٰه عليه وسلـم د پـاره ئے طـعـام تيـار کـړو او خپل کور کـښې ئے دعـوت ورکـړو، او حضـور د پـاره ئے د پوزې يو ګټ اوبه چـړقـاو کـړے او حضور په هغے دوه رکعـاتـه مونـځ اوکـړو. او فلاني بن فلاني بن جارود د انس نـه تپـوس اوکـړو: چه آيا نبي صلے اللّٰه عليه وسلم بـه د چاشـت مونـځ کـولـو، نـو وے فرمايل: ما حضور د هغـې ورځـې نـه عـلاوه بـه بـلـه ورځ د څـاښـت بـه مونـځ کولو نه دے ليدلے!

۱. دا حدیث شریف ددینه وړاندې خو حله تفصیل سره تېر شویدې په هغې کښې دادی چه وړ ج ډېره راختلې وه او دغه د ځابست وخت دے

## بَاب ۷۴۷: الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ.

باب ۷۴۷: د ماسپخين نه مخکښې د دوو رکعاتو کولو بيان.

**۱۱۰۵** : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ حَفِظْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ رَكَعَاتٍ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِيْ بَيْتِهٖ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَآءِ فِيْ بَيْتِهٖ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ وَكَانَتْ سَاعَةً لَّا يُدْخَلُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا حَدَّثَتْنِيْ حَفْصَةُ اَنَّهٗ كَانَ اِذَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ وَطَلَعَ الْفَجْرُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ.

**۱۱۰۵** : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. نافع. ابن عمر نه روايت کوي. هغه وائي ما د نبي صلے الله عليه وسلم نه لس رکعاته ياد کړي دي. دوه رکعاته د ماسپخين نه مخکښې او دوه رکعاته د ماسپخين نه ورستو. دوه رکعاته د ماښام نه پس خپل کور کښې او دوه رکعاته د ماسختن نه پس خپل کور کښې او دوه رکعاته د سحر د مونځ نه مخکښې. دا هغه وخت وو چه دے کښې به حضور ته څوک نه ورتلل. ماته بي بي حفصے اوويل چه مؤذن به اذان اوکړه او سحر به شو نو حضور به دوه رکعاته کول.

**۱۱۰۶** : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَدَعُ اَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْغَدَاةِ تَابَعَهُ ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ وَّ عَمْرٌو عَنْ شُعْبَةَ.

**۱۱۰۶** : مسدد. يحيى. شعبه. ابراهيم بن محمد بن منتشر. محمد بن منتشر بي بي عائشے نه روايت کوي. هغې اوويل نبي صلے الله عليه وسلم به څلور رکعاته د ماسپخين نه مخکښې او دوه رکعاته د سحر نه مخکښې هيڅ کله نه پرېښودل. ابن ابي عدی او عمرو د شعبه نه د دے متابع حديث روايت کړے دے.

## بَـاب ۷۴۸: الصَّلٰوةُ قَبْلَ

باب ۷۴۸: د ماښام نه مخکښې د مونځ کولو

الْمَغْرِبِ. بیان یا.

۱. دا مسئله وړاندې تیره شویده. چه د ماښام د اذان او د ماښام د مونځ په مینځ کښې کوم سنت مونځ شته دې یا نشته. د اسلام په اولنې زمانه کښې د بعضې صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین په دې دوو رکعاتو مونځ د ماښام د مونځ نه وړاندې عمل وو. د رسول الله صلي الله عليه وسلم د مرضی خلاف خبره هم نه وه. لیکن روستو د رسول الله صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې پدې عمل پریخودې شو او د رسول الله صلي الله عليه وسلم د زمانې نه روستو هم پدې عمل نه وو ددې وجې نه شیخ ابن الهمام رحمة الله علیه لیکلې دي. چه دا مونځ دوه رکعته د ماښام د مونځ نه وړاندې څرنګ چه پدې حدیث کښې بیان دې روا ضرور دي خو مستحب وغیره ندی ددې باب د دویم حدیث شریف نه دا خبره معلومیږي. چه د صحابه کرامو په دور کښې پدې عمل پریخودلې شوې وو او ابو تمیم رضي الله عنه چه کول نو عقبه رضي الله عنه ورته حیران پاتې شو.

۱۱۰۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ الْمُزَنِيُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلُّوْا قَبْلَ صَلٰوةِ الْمُغْرِبِ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَآءَ كَرَاهِيَةَ اَنْ يَّتَخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً.

۱۱۰۷: ابو معمر. عبدالوارث. ابن بریده. عبدالله مزني د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي حضور او فرمائیل چه مونځ کوئ مخکښې د مانځه د ماښام نه بیانې په دریم ځل او فرمائیل د هغې سړي د پاره چه غواړي خو دا خبره ئې نه خوښوله چه خلق دا سنت جوړ کړي.

۱۱۰۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ حَبِيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ مَرْثَدَ ابْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْيَزَنِيَّ قَالَ اَتَيْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ الْجُهَنِيَّ فَقُلْتُ لَا اُعْجِبُكَ مِنْ اَبِيْ تَمِيْمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ فَقَالَ عُقْبَةُ اِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ فَمَا يَمْنَعُكَ الْاٰنَ قَالَ الشُّغْلُ.

۱۱۰۸: عبدالله بن یزید. سعید بن ابي ایوب. یزید بن ابي حبیب. مرثد بن عبدالله یزني نه روایت کوي چه زه عقبه بن عامر جهني له راغلم ما ورته اووې آیا تاته د ابو تمیم د طرف نه دا خبره عجیبه نه ښکاري چه هغه د ماښام نه مخکښې دوه رکعاته کوي. نو عقبه اووې چه مونږ به دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې کولو. ما ورته اووې نو اوس مو ترې څه څیز منع کوي. جواب ئې راکه مشغولیت.

## بَـاب ٧٤٩: صَلٰوةِ النَّوَافِلِ جَمَاعَةً ذَكَرَهُ اَنَسٌ وَّ عَآئِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

١١٠٩: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّهُ عَقَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَقَلَ مَجَّةً مَجَّهَا فِيْ وَجْهِهٖ مِنْ بِئْرٍ كَانَتْ فِيْ دَارِهِمْ فَزَعَمَ مَحْمُوْدٌ اَنَّهُ سَمِعَ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ الْاَنْصَارِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَّعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُنْتُ اُصَلِّيْ لِقَوْمِيْ بِبَنِيْ سَالِمٍ وَّكَانَ يَحُوْلُ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُمْ وَادٍ اِذَا جَآئَتِ الْاَمْطَارُ فَيَشُقُّ عَلَيَّ اجْتِيَازُهٗ قِبَلَ مَسْجِدِهِمْ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهٗ اِنِّيْ اَنْكَرْتُ بَصَرِيْ وَاِنَّ الْوَادِيَ الَّذِيْ بَيْنِيْ وَبَيْنَ قَوْمِيْ يَسِيْلُ اِذَا جَآءَتِ الْاَمْطَارُ فَيَشُقُّ عَلَيَّ اجْتِيَازُهٗ فَوَدِدْتُ اَنَّكَ تَاْتِيْ فَتُصَلِّيْ مِنْ بَيْتِيْ مَكَانًا اَتَّخِذُهٗ مُصَلًّى فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبُوْبَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بَعْدَ مَا اشْتَدَّ

## بـاب ٧٤٩: نفل مونخونه جمات سره د کولو بیان. انسؓ او بي بي عائشےؓ د رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم نه روایت کړے دے.

١١٠٩: اسحاق. یعقوب بن ابراهیم. ابراهیم. ابن شهاب. محمود بن ربیع انصاري نه روایت کوي چه ماته رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم یاد دے، او ذ هغهٔ د خولے اوبه هم راته یادے دي چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم خمونږ ذ کور ذ کوهي نه خما په مخ اچولے وے. هغهٔ اووے: ما ذ عتبان نه چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم سره بدر کښې شریک شوے وو. واوریدل. چه ما به خپل قوم بني سالم ته مونځ ورکولو. او خما او د هغوي په مینځ کښې یوه وادي حائله وه، او کله به چه باران اوشو نو ماته به هغے جمات طرف ته لار، وهل ګران شو، نو زهٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم له راغلم. او عرض م اوکهٔ: چه خما نظر کمزورے دے، او وادي چه خمونږ او خمونږ د قوم مینځ کښې حائله ده، چه باران اوشي، نو ماته ګرانه شي، چه لار، اووهم. او هلته اورسم. نو خما دا ارمان دے، چه تاسو تشریف راوړئے او خما مکان کښې یو خائے مونځ اوکړئ، چه زهٔ هغه د مونځ خائے جوړ کړم. رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم ورته اوفرمائیل زهٔ به دغسے اوکړم، نو سحر ته خما خائے ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم او ابوبکرؓ راورسیدل، چه نمر ښهٔ تیز شوے وو. بیا رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم اجازت اوغوښتلو نو ما حضورؐ ته (خما کورته د راتلو) اجازت ورکړلو. حضورؐ لا ناست

النَّهَارُ فَاسْتَأْذَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَذِنْتُ لَهُ فَلَمْ يَجْلِسْ حَتَّى قَالَ أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ فَأَشَرْتُ لَهُ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي أُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ فِيْهِ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرَ وَصَفَفْنَا وَرَآءَهُ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ وَسَلَّمْنَا حِيْنَ سَلَّمَ فَحَبَسْتُهُ عَلَى خَزِيْرَةٍ يُّصْنَعُ لَهُ فَسَمِعَ أَهْلُ الدَّارِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِيْ فَثَابَ رِجَالٌ مِّنْهُمْ حَتَّى كَثُرَ الرِّجَالُ فِي الْبَيْتِ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ مَافَعَلَ مَالِكٌ لَّا أَرَاهُ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ ذَاكَ مُنَافِقٌ لَّا يُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُلْ ذَاكَ أَلَا تَرَاهُ قَالَ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ فَقَالَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ أَمَّا نَحْنُ فَوَاللّٰهِ لَا نَرٰى وُدَّهُ وَلَا حَدِيْثَهُ إِلَّا إِلَى الْمُنَافِقِيْنَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَرَّمَ عَلَى النَّارِ مَنْ قَالَ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ قَالَ مَحْمُوْدٌ فَحَدَّثْتُهَا قَوْمًا فِيْهِمْ أَبُوْ أَيُّوْبَ صَاحِبُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَتِهِ الَّتِيْ

هم نه وو. چه رې فرمائيل: ته څپل کور کښې کوم ځائے خوښوې چه هلته زهٔ مونځ اوکړم. نو ما هغے ځائے طرف ته اشاره اوکړله. کوم ځائے چه ما مونځ کول غوښتل. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم اودريدلو. او تکبير ئے اوکړه. او مونږ حضور پسے صف کښې اودريدلو. بيائے دوه رکعاته مونځ اوکړلو. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم سلام او ګرځولو. او مونږ هم سلام او ګرځولو. حضورٌ چه سلام اوګرځولو نو ما حضورٌ ته خزير (يو قسم طعام) کينولو چه حضورٌ د پاره تيار کړے شوے وو. هر کله چه د چم ګاونډ خلقو د رسول الله صلي الله عليه وسلم آواز خما په کور کښې واوريدلو، نو په تادي راغلل، تردے چه کور کښې خلق ډير زيات شو. نو هغوي کښې يو سړي اووے، چه مالک څهٔ اوکړل. زهٔ خو هغه نه وينم. نو هغوئ کښې يو سړي اووے، هغه منافق دے. الله او دَ هغهٔ رسول سره محبت نهٔ لري. نو رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل: داسے مهٔ وايه. ته نه وينے. چه هغه لَا اِلٰه اِلَّا اللّٰهُ وئيلے دي. او هغے سره دَ الله رضا غواړي، نو هغهٔ اووے، چه الله او دَ هغهٔ رسول ښهٔ پوهيږي ليکن مونږ خو په خدائے چه دَ هغهٔ محبت او خبرے د منافقانو سره وينو. رسول الله صلے الله عليه وسلم ورته او فرمائيل الله په جهنم هغه سړے حرام کړے دے چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وائي، او هغے سره رضائے الٰهي غواړي، محمود اووے ما دا يو جماعت ته بيان اوکړو چه هغے کښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم يو صحابي ابو ايوب هم وو او په هغے جنګ کښې ئے بيان کړو، چه هغے کښې هغه وفات

تُوُفِّيَ فِيْهَا وَيَزِيْدُ بْنُ مُعَاوِيَةَ عَلَيْهِمْ بِأَرْضِ الرُّوْمِ فَأَنْكَرَهَا عَلَيَّ أَبُو أَيُّوْبَ قَالَ وَاللّٰهِ مَا أَظُنُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا قُلْتَ قَطُّ فَكَبُرَ ذٰلِكَ عَلَيَّ فَجَعَلْتُ لِلّٰهِ عَلَيَّ إِنْ سَلَّمَنِيْ حَتّٰى أَقْفُلَ مِنْ غَزْوَتِيْ أَنْ أَسْأَلَ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ إِنْ وَّجَدْتُهُ حَيًّا فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِهٖ فَقَفَلْتُ فَأَهْلَلْتُ بِحَجَّةٍ أَوْبِعُمْرَةٍ ثُمَّ سِرْتُ حَتّٰى قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ فَأَتَيْتُ بَنِيْ سَالِمٍ فَإِذَا عِتْبَانُ شَيْخٌ أَعْمٰى يُصَلِّيْ لِقَوْمِهٖ فَلَمَّا سَلَّمَ مِنَ الصَّلٰوةِ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ وَأَخْبَرْتُهُ مَنْ أَنَاثُمَّ سَأَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ الْحَدِيْثِ فَحَدَّثَنِيْهِ كَمَا حَدَّثَنِيْهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ.

شولو. او هغه وخت روم کښې یزید بن معاویه حاکم وو ابو ایوب خمونږ د دې حدیث سره انکار اوکړو. او وې وئیل: والله څه چه تا اووې، خما خیال دې رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دي فرمایلي. دا خبره ما ته بده معلومه شوه نو ما د الله نذر اومنلو که هغه ما صحیح او سالم اولري. تردې چه زه د دې غزانه واپس راشم، نو زه به د دې حدیث متعلق د عتبان بن مالک نه پښتنه کوم، که ما هغه د هغه د قوم په جمات کښې ژوندې بیامند. زه چه د غزا نه واپس راغلم نو ما د حج یا عمرې احرام او تړلو. بیا زه لاړم تردې چه مدینې ته اورسیدم. زه بني سالم ته اورسیدم، نو اوم لیدل چه عتبان بوډا او نابینا شوې دې. خپل قوم ته مونځ ورکوي. کوم وخت چه هغه د مانځه نه فارغ شو، نو ما ورته سلام اوکړو او خان م ورته اوښودلو. بیا ما د هغه نه د هغه حدیث متعلق تپوس اوکړو، نو هغه ماته داسې بیان کړو څنګه چه مخکښې څل نې بیان کړې وو.

۱. په جمعه امامتي سره مونځ کول د فرض مونځونو خصوصیت دې د احنافو په نزد سنتو او نفلو د پاره جمعه (امامتي سره کول) نښته او خلق ددې د پاره رابلل هم مکروهه دي. څکه چه پخپله الله تعالیٰ مونږ ته د نفلونو کولو یا نه کولو اختیار راکړې دې نو دا څرنګ مناسب کیدې شي چه خلق را اونیسو او د نفل مونځ جمعې ته نې رااوغواړو. کوم صورت چه په حدیث شریف کښې بیان شویدې که چرې د نفل مونځ د امامتي داسې صورت اوشي نو څه بدي پکښې نشته لکه یو سړې نفل مونځ کوي او روستو ورپسې خلق نیت اوتړي او د جمعې مونځ کښې شریک شي.

۲. په دې حدیث شریف کښې دي چه کوم بنده په زړه سره په رښتیا کلمهٔ توحید اویله. هغه به دوزخ ته نه خي. حال دادې چه په قرآن مجید او احادیثو کښې د ایمان راوړلونه روستو په ګناه کولو د عذاب ورکولو ذکر شته دې ددې د ټکراؤ په وجه حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه ددې حدیث شریف نه انکار اوکړو. عالمانو ددې حدیث شریف ډیر تاویلونه کړیدي. چه په هغې کښې یو دا دې. "دوزخ ته د نه تلو مطلب دادې چه همیشه به ورکښې نه وي. څکه چه مؤمن به بهرحال یوه ورځ د دوزخ نه رااوزي".

۳. کله چه د حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه د وفات وښت راغې نو هغه دا وصیت اوکړو "چه ما داسې ځائې دفن کړئ چه د پاسه پرې د اُسونو ښپې خي راخي (چه اسونه پرې تیریږي راتیریږي) خو

هغوي د قسطنطنیه (استنبول) د ښهر د دیوال پو طرفته دفن کړو په دے غزا کښی صحابه کرام رضي الله عنهم اجمعین شریک وو د خلافت عثمانیه د ترکو په دور کښی دا دستور وو چه نوے خلیفه به کله منتخب کیدلو نو د هغه دستاربندي به د حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه په مزار کښی کیدله.

**باب ۷۵۰: التَّطَوُّعِ فِي الْبَيْتِ.**

باب ۷۵۰: کور کښی د نفل مونځ کولو بیان.

۱۱۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ وَعُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلٰوتِكُمْ وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا تَابَعَهُ عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ.

۱۱۱۰: عبدالاعلي بن حماد. وهيب. ايوب و عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي' هغه اووے' رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل چه خپلو کورونو کښی خپل مونځونه کوئ' او هغه قبرونه مه جوړوئ. عبدالوهاب د ايوب نه د دے متابع حديث روايت کړے دے.

**باب ۷۵۱: فَضْلِ الصَّلٰوةِ فِي مَسْجِدِ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ.**

باب ۷۵۱: ذ مکے (معظمے) او مدینے (منورے) جمات کښی ذ مونځ کولو ذ فضیلت بیان.

۱۱۱۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ قَزَعَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَرْبَعًا قَالَ سَمِعْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً ح حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ

۱۱۱۱: حفص بن عمرو. شعبه. عبدالملک قزعه وائي' ما ذ حضرت ابوسعيدؓ نه څلور خلبه واوريدل (هغه وائي) ما ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه واوريدل او هغه نبي صلے الله عليه وسلم سره دولس غزاګانو کښی شريک شوے وو' ح (دويم سند) سفيان. زهري. سعيد. حضرت ابوهريرهؓ ذ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کوي' حضورؐ او فرمائيل' ذ سفر سامان دے نشي تړلے' خو درے جماتونو ذ پاره

إِلَّاإِلٰى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ (۱) مسجد حرام

وَمَسْجِدِ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ (۲) مسجد نبوي او

وَسَلَّمَ وَمَسْجِدِ الْاَقْصٰى. (۳) مسجد اقصیٰ ته.

۱. په دې حدیث شریف کښې صرف ددې دریو جوماتونو فضیلت بیان شویدې. ددینه دا مطلب اخستل صحیح نه دي چه ګنې ددینه سیوا د بل مقدس ځائې د پاره سفر روا نه دې امام ابن تیمیه رحمة الله علیه ددې حدیث په وجه تردې حده لیکلې دي "چه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د قبر شریف د زیارت د پاره سفر کول (د سفر ځورلي تیاره ول) روا نه دي د مسجد نبوي د زیارت د پاره سفر کول مستحب دي او بیا چه کله مدینې منورې ته اورسي نو بیا د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د قبر شریف زیارت کول مستحب دي".

د امام ابن تیمیه رحمة الله علیه مسلک، جمهور امت نه قبلوي. په زرګونو سلف صالحینو د رسول الله صلي الله علیه وسلم د قبر شریف د زیارت کولو په نیت د سفر سامان ترلې دې او په دغه نیت ئې سفر کړیدې او د امت هیڅ یو بنده دې کښې څه بدي نه ویني. د جمهور امت په نزد د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د قبر شریف زیارت کول مستحب دي ددې حدیث شریف د قبرونو د زیارت کولو سره هیڅ تعلق نشته دې حدیث شریف کښې صرف ددې دریو جوماتونو فضیلت بیان شویدې.

۱۱۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ رَبَاحٍ وَّ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَغَرِّ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَغَرِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلٰوةٌ فِيْ مَسْجِدِيْ هٰذَا خَيْرٌ مِّنْ اَلْفِ صَلٰوةٍ فِيْمَاسِوَاهُ اِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ.

۱۱۱۲: عبدالله بن یوسف. مالک. زید بن رباح او عبیدالله بن ابو عبدالله اغر. ابو عبدالله اغر. ذ ابو هریرةؓ نه روایت کوي، نبي صلی الله علیه وسلم او فرمائیل، خما دې جمات کښې مونځ کول سِوا ذ خانه کعبې نه، ذ نورو ټولو جماتونو ذ زر مونځونو نه بهتر دې.

## باب ۷۵۲: مَسْجِدِ قُبَآءَ.

باب ۷۵۲: ذ قبا ذ جمات بیان.

۱۱۱۳: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا بْنُ عُلَيَّةَ قَالَ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ لَايُصَلِّيْ مِنَ الضُّحٰى اِلَّا فِيْ يَوْمَيْنِ يَوْمٍ يَقْدَمُ

۱۱۱۳: یعقوب بن ابراهیم. ابن علیه. ایوب. نافع نه روایت کوي، چه ابن عمرؓ به صرف دوه ورځې د چاشت مونځ کولو، اول چه په کومه ورځ به مکې ته راتلو، ځکه چه هلته به ذ چاشت په وخت رسیدلو، او

بِمَكَّةَ فَتَنَهُ كَانَ يَقْدَمُ مُهَ ضُحًى فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ خَلْفَ الْمَقَامِ وَيَوْمَ يَأْتِي مَسْجِدَ قُبَاءٍ فَإِنَّهُ كَانَ يَأْتِيهِ كُلَّ سَبْتٍ فَإِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ كَرِهَ أَنْ يَخْرُجَ مِنْهُ حَتَّى يُصَلِّيَ فِيهِ قَالَ وَكَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَزُوْرُهُ رَاكِبًا وَمَاشِيًا قَالَ وَكَانَ يَقُوْلُ إِنَّمَا أَصْنَعُ كَمَا رَأَيْتُ أَصْحَابِيْ يَصْنَعُوْنَ وَلَا أَمْنَعُ أَحَدًا أَنْ يُصَلِّيَ فِيْ أَيِّ سَاعَةٍ شَآءَ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ غَيْرَ أَنْ لَا تَتَحَرَّوْا طُلُوْعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبَهَا.

د خاسه كىمى طواف به نى كولو. بيا به نى د مقام ابراهيم شاته دوه ركعاته مونځ كولو. دويم به كومه ورځ چه به قبا ته راتلو هغه به دے حمات ته د هر خالي په ورځ راتلو چه حمات كښې به داخل شو نو دا خبره به نے نه خوښوله چه د دے حمات نه د مونځ كولو نه بغير اوځي. د ابن عمرؓ بيان دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به په سورلي او پياده د دے زيارت كولو او زۀ هغه شان كوم، څنګه چه به ما خپل ملګري ليدل اونه زۀ څوک منع كوم چه د ورځے يا شپے كومه حصه كښې غواړي مونځ دے او كړي خو دا چه د نمر ختو او پريوتو په وخت دے د مونځ قصد نۀ كوي.

## بَاب ٧٥٣: مَنْ أَتَى مَسْجِدَ قُبَآءَ كُلَّ سَبْتٍ.

## باب ٧٥٣: د هغے سړي بيان چه مسجد قباء ته د هر خالي په ورځ راځي.

١١١٣: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمَاعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِيْ مَسْجِدَ قُبَآءَ كُلَّ سَبْتٍ مَاشِيًا وَرَاكِبًا وَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَفْعَلُهُ.

١١١٣: موسي بن اسماعيل. عبدالعزيز بن مسلم. عبدالله بن دينار. ابن عمرؓ روايت كوي هغه وائي چه نبي صلي الله عليه وسلم به د هر خالي په ورځ مسجد قباء ته كله پياده او كله سور تشريف راوړلو. او عبدالله ابن عمر به هم دغسے كول۱.

۱. د قباء خلق به د جمعے په ورځ د جمعے د مونځ د پاره مدينے منورے ته راتلل بعضے حضرات به د حپلو مجبورو په وجه نشو راتللے نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم مسجد قباء ته د هر خالي په ورځ د تشريف اوړلو دا وجه وه. چه كوم خلق مدينے منورے ته نشو راتللے د هغوي سره ملاقات اوشي. مسجد قباء كښې د مونځ د فضيلت په حقله حضرت سعد رضي الله عنه فرمايلي دي چه دوه خله بيت المقدس ته د

سفر کولو پخاطر ماته په مسجد قباء کښې مونځ ډير خوښ دے که چرے خلقوته د مسجد قباء د شرافت او فضيلت پته اولږي. نو قباء کښې به اوسيږي". د هر خالي په ورځ د رسول الله صلي الله عليه وسلم مسجد قباء ته تلل عادت وو او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به د هغوئي په عادت هم عمل کولو. امام ابن تيميه رحمة الله عليه ليکلے دي "چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم عادتي اعمالو باندے که چرے اتفاقي طور عمل اوشي نو سنت عمل دے خو هميشه د پاره پرے عمل کول صحيح عمل نه دے". د امت عالمان د ابن تيميه رحمة الله عليه دا فيصله بنه نه گنړي.

## بَاب ۷۵۴: إِتْيَانِ مَسْجِدِ قُبَآءَ مَاشِيًاوَّ رَاكِبًا.

## باب ۷۵۴: مسجد قبا ته پياده يا په سورلي د راتلو بيان.

۱۱۱۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِيْ قُبَآءَ رَاكِبًاوَّ مَاشِيًا زَادَ ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ فَيُصَلِّيْ فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ.

۱۱۱۵: مسدد. يحيي. عبيدالله. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي: چه نبي صلے الله عليه وسلم به قباء ته په سورلي او پياده راتلو. ابن نمير' دے زياتوالي سره بيان کړے دے: چه مونږ ته عبيدالله او هغهٔ د نافع نه اوورے چه هلته به ئے دوه رکعاته مونځ کولو.

## بَاب ۷۵۵: فَضْلِ مَا بَيْنَ الْقَبْرِ وَالْمِنْبَرِ.

## باب ۷۵۵: د قبر او منبر نبوي مينځ کښې د خاے د فضيلت بيان.

۱۱۱۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِبْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ زَيْدٍ ن الْمَازِنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَابَيْنَ بَيْتِيْ وَمِنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّيَاضِ الْجَنَّةِ.

۱۱۱۶: عبدالله بن يوسف. مالک. عبدالله بن ابي بکر. عباد بن تميم. عبدالله بن زيد مازنيؓ روايت کوي: هغه وائي رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل' خما د کور او منبر مينځ کښې دَ جنت دَ باغونو نه يَو باغ دے.

۱۱۱۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ

۱۱۱۷: مسدد. يحيي. عبدالله. خبيب بن عبدالرحمن. حفص بن عاصم. ابوهريرهؓ نه روايت کوي: هغه

بْنِ عاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَابَيْنَ بَيْتِيْ وَ مِنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّيَاضِ الْجَنَّةِ وَمِنْبَرِيْ عَلٰى حَوْضِيْ.

او رې، نبي صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، خما كور او خما د منبر مينځ كښې د جنت د باغونو نه يو باغ دے او خما منبر خما په حوض دے ۱.

۱. د رسول الله صلي الله عليه وسلم قبر مبارك د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنهما په كور كښې دے ددے وجې نه امام بخاري رحمة الله عليه سرليك د باب "قبر او د منبر مينځ" ليكلے دے حافظ ابن حجر رحمة الله عليه يو روايت ذكر كړيدے چه په هغې كښې د "بيت" (كور) پځائے "د قبر" لفظ دے په عالم تقدير كښې چه څه ليكلے وؤ د هغې رسول الله صلي الله عليه وسلم مخكښې خبر وركړے وؤ. د دے حديث شريف مختلف شرحے دي د ټولونه مناسبه شرحه داده چه دا ځائے د جنت حصه ده د دنيا د فنا كيدو نه پس دا ځائے د جنت حصه ده د دنيا د فنا كيدو نه پس به دا ځائے د جنت يو باغ شي. په دے حديث شريف كښې دي چه "خما منبر خما په حوض (كوثر) دے" مطلب ئے دادے چه حوض دے ځائے كښې دے تر شام پورے به ئے پلن والے وي ددے وجې نه منبر اوس هم د حوض د پاسه دے د قيامت په ورځ به دا نظاره په ستر گو ليدلے شي.

## بَاب ۷۵۶: مَسْجِدِ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ.

باب ۷۵۶: د بيت المقدس د جمات بيان.

۱۱۱۸: حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِيْدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ سَمِعْتُ قَزَعَةَ مَوْلٰى زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَاسَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُحَدِّثُ بِاَرْبَعٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْجَبْنَنِيْ وَ آنَقْنَنِيْ قَالَ لَاتُسَافِرُ الْمَرْاَةُ يَوْمَيْنِ اِلَّا مَعَهَا زَوْجُهَا اَوْ ذُوْمَحْرَمٍ وَلَا صَوْمَ فِيْ يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالْاَضْحٰى وَلَاصَلٰوةَ بَعْدَ صَلٰوتَيْنِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ وَلَا تُشَدُّ الرِّحَالُ اِلَّا اِلٰى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ مَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ مَسْجِدِ

۱۱۱۸: ابوالوليد. شعبه. عبدالملك. قزعه (د زياد آزاد كرده غلام) وائي، ما د ابو سعيد خدريؓ نه د نبي صلے الله عليه وسلم څلور خبرے واوريدے، چه خما ډيرے خوښے شوے، فرمائيلي دي. ښځه دے د دوو ورځو سفر نه كوي، خو دے حال كښې چه هغې سره خپل خوند يا داسے رشته دار وي، چه هغه سره نكاح حرام ده، او نه دے د وړوكي او لوئے اختر په ورځ روژه نيسي. اونه دے مونځ كوي د دوو مونځونو نه پس، يو د سحر نه پس څو پورے چه نمر راونه خيژي، او بل د مازيگر نه پس، څو پورے چه نمر پريونه خي. اونه دے سوا د درے جماتونو نه بل جمات پله د سفر سامان تړې (۱) مسجد حرام. (۲) مسجد اقصي او (۳) خما

الْاَقْصٰى وَمَسْجِدِیْ.

جمات. (مسجد نبوي)

**باب ۷۵۷: اِسْتِعَانَةِ الْيَدِفِي الصَّلٰوةِ اِذَا كَانَ مِنْ اَمْرِ الصَّلٰوةِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَسْتَعِيْنُ الرَّجُلُ فِيْ صَلٰوتِهٖ مِنْ جَسَدِهٖ بِمَاشَآءَ وَوَضَعَ اَبُوْاِسْحَاقَ قَلَنْسُوَتَهُ فِي الصَّلٰوةِ وَرَفَعَهَا وَوَضَعَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَفَّهٗ عَلٰى رُصْغِهِ الْاَيْسَرِ اِلَّا اَنْ يَحُكَّ جِلْدًا اَوْيُصْلِحَ ثَوْبًا.**

**باب ۷۵۷: مونځ کښې د لاس نه د مدد** اخستو بيان چه هغه کار د مانځه وی. او ابن عباسؓ او فرمانيل چه سړے دے د خپل بدن نه مونځ کښې مدد واخلي د کوم نه چه غواړي. او ابو اسحق خپله ټوپۍ مونځ کښې کيښوده او هغه ئے اوچته کړه او عليؓ به خپل لاس په خپل مړوند ايښودلو، خو دا چه خپل جسم او ګروي يا خپلې کپړې درست کړي.

**۱۱۱۹**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مَّخْرَمَةَ بْنَ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ مَّوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهٗ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَهِيَ خَالَتُهٗ قَالَ فَاضْطَجَعْتُ عَلٰى عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَهْلُهٗ فِيْ طُوْلِهَا فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْتَصَفَ اللَّيْلُ اَوْقَبْلَهٗ بِقَلِيْلٍ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَلَسَ فَمَسَحَ النَّوْمَ عَنْ وَّجْهِهٖ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَرَاَ الْعَشْرَ اٰيَاتٍ خَوَاتِيْمَ سُوْرَةِ اٰلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ اِلٰى شَنٍّ مُّعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّاَ مِنْهَا فَاَحْسَنَ

**۱۱۱۹**: عبدالله بن يوسف. مالک. مخرمه بن سليمان. کريب (د ابن عباسؓ آزاد کرده غلام) د عبدالله ابن عباسؓ متعلق روايت اوکړ چه هغه خپلې ترور، ام المؤمنين بي بي ميمونےؓ کره شپه تيره کړه. ابن عباسؓ وائي، زۀ د بسترے په پرتو (عرض) سملاستم او رسول الله صلے الله عليه وسلم او د هغوئ بي بي د بسترے په اوږودوالي (طول) سملاستل او د نيمے شپے تيريدو پورے يا د دے نه لږ مخکښې يا څۀ ورستو پورے رسول الله صلے الله عليه وسلم اوده وو. بيا رسول الله صلے الله عليه وسلم بيدار شولو، او د خپلو لاسونو په ذريعه ئے د خوب اثر د خپل مخ نه لرے کړلو. بيائے د آل عمران آخري لس آيتونه او لوستل. بيا يو مشک طرف ته ورغلو، چه آويزاند وو، او هغے سره ئے اودس اوکړ او په ښه شان اودس ئے اوکړ، بيا مانځه د پاره اودريدلو. عبدالله بن عباسؓ وائي، زه هم اودريدلم

وُضُوْئَهٗ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَاصَنَعَ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رَأْسِيْ وَاَخَذَ بِأُذُنِي الْيُمْنٰى يَفْتِلُهَا بِيَدِهٖ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى جَاءَهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

او دغسې م او کړل څنګه چه حضورؐ کړي وو. بيا زه ورغلم او د حضورؐ اړخ کښې اودريدم نو حضورؐ خپل ښي لاس څما په سر کيښودلو او څما ښي غوږ ئې خپل لاس سره اوموړولو. بيا حضورؐ دوه رکعاته مونځ اوکړلو. بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاته بيا دوه رکعاته. (ګويا دولس رکعاته ئې اوکړل) بيائې وتر اوکړل او سملاستلو. تردې چه مؤذن راغې نو حضورؐ اودريدلو او مختصر دوه رکعاته ئې اوکړل. بيا بهر اووتلو او د سحر مونځ ئې اوکړلو.

## بَابٌ ۷۵۸: مَا يُنْهٰى مِنَ الْكَلَامِ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۷۵۸: مونځ کښې د خبرو کولو د ممانعت بيان.

۱۱۲۰: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا وَقَالَ اِنَّ فِي الصَّلٰوةِ شُغْلًا.

۱۱۲۰: ابن نمير. ابن فضيل. اعمش. ابراهيم. علقمه. عبدالله (ابن مسعود) نه روايت کوي هغه اووې مونږ به نبي صلى الله عليه وسلم ته د مونځ په حالت کښې سلام کولو نو حضورؐ به خلقوته جواب ورکولو. کوم وخت چه مونږ د نجاشي نه واپس شو مونږ حضورؐ ته سلام اوکۀ نو حضورؐ مونږ ته جواب رانۀ کولو او وې فرمائيل مونځ کښې خدائے طرف ته فکر وي.

۱۱۲۱: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ السَّلُوْلِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا هُرَيْمُ بْنُ سُفْيَانَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ

۱۱۲۱: ابن نمير. اسحاق بن منصور. هريم بن سفيان. اعمش. ابراهيم. علقمه. عبدالله بن مسعودؓ نه او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهٗ.

نه د دې په مثل روایت کړې دې.

۱۱۲۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِیْمُ بْنُ مُوْسٰی قَالَ اَخْبَرَنَا عِیْسٰی عَنْ اِسْمَاعِیْلَ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ شُبَیْلٍ عَنْ اَبِیْ عَمْرٍو الشَّیْبَانِیِّ قَالَ قَالَ لِیْ زَیْدُ بْنُ اَرْقَمَ اِنْ کُنَّا لَنَتَکَلَّمُ فِی الصَّلٰوةِ عَلٰی عَهْدِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یُکَلِّمُ اَحَدُنَا صَاحِبَهٗ بِحَاجَتِهٖ حَتّٰی نَزَلَتْ حَافِظُوْا عَلَی الصَّلٰوةِ الْاٰیَةَ فَاُمِرْنَا بِالسُّکُوْتِ.

۱۱۲۲: ابراهیم بن موسی. عیسی. اسمعیل. حارث بن شبیل ابن عمر شیبانی نه روایت کوي. هغه اووې ماته زید بن ارقم اووې مونږ به د نبي صلی اللّٰه علیه وسلم په زمانه کښې په مانځه کښې خبرې کولې او مونږ کښې به یو سړي بل ته خپل حاجتونه بیانول تر دې چه دا آیت نازل شو د خپلو مونځونو حفاظت کوئ نو مونږ خلقوته مانځه کښې د خاموش کیدو حکم اوشو.

## بَابٌ ۷۵۹: مَا یَجُوْزُ مِنَ التَّسْبِیْحِ وَالْحَمْدِ فِی الصَّلٰوةِ لِلرِّجَالِ.

## باب ۷۵۹: نارینه ؤ د پاره مانځه کښې د سبحان اللّٰه او الحمدللّٰه وئیلو بیان.

۱۱۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِیْزِ بْنُ اَبِیْ حَازِمٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ سَهْلٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یُصْلِحُ بَیْنَ بَنِیْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ وَّحَانَتِ الصَّلٰوةُ فَجَآءَ بِلَالٌ اَبَابَکْرٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقَالَ حُبِسَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَتَؤُمُّ النَّاسَ قَالَ نَعَمْ اِنْ شِئْتُمْ فَاَقَامَ بِلَالٌ لِلصَّلٰوةِ فَتَقَدَّمَ اَبُوْ بَکْرٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فَصَلّٰی فَجَآءَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

۱۱۲۳: عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزیز بن ابي حازم د خپل پلار نه او هغه د سهل نه روایت کوي. هغه اووې نبي صلی اللّٰه علیه وسلم بنو عمرو بن عوف سره د صلح د خبرو کولو د پاره اووتلو. او د مونځ وخت راغې نو بلال ابوبکر له راغې او ورته ئې اووې چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم ایسار کړې شوې دې تاسو د خلقو امامت اوکړئ. هغه ورته اووې که ته غواړې نو اقامت اوکړه. بلال تکبیر او که او ابوبکر مخکښې شو او مونځ ور کول ئې شروع کړل. دې کښې نبي صلی اللّٰه علیه وسلم صفونو کښې راغې تر دې چه رومبي صف ته راورسیدلو نو خلقو تصفیح

يَمْشِيُ فِي الصُّفُوُفِ يَشُقُّهَا شَقًّا حَتّٰى قَامَ فِي الصَّفِّ الْاَوَّلِ فَاَخَذَ النَّاسُ بِالتَّصْفِيْحِ قَالَ سَهْلٌ هَلْ تَدْرُوْنَ مَاالتَّصْفِيْحُ هُوَ التَّصْفِيْقُ وَكَانَ اَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَايَلْتَفِتُ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلَمَّا اَكْثَرُوْا الْتَفَتَ فَاِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّفِّ فَاَشَارَ اِلَيْهِ مَكَانَكَ فَرَفَعَ اَبُوْ بَكْرٍ يَدَيْهِ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى وَرَآءَهٗ وَتَقَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى.

كول شروع كړل، سهل اووې، تاسو پوهيږئ، چه تصفيح څۀ څيز دے، هغه لاس پرقول دي ابوبكرؓ خپل مونځ كښې دے ته متوجه نۀ شولو. خو كوم وخت چه خلقو زيات لاس پرقول شروع كړل، نو وے كتل چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ورمبي صف كښې دے، حضورؐ ورته اشاره اوكړه، چه په خپل ځائے اوسه، نو ابوبكرؓ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل او د اللّٰه تعريف ئے بيان كۀ، اوپه ورستو شو. او نبي صلے اللّٰه عليه وسلم مخكښې شو، او مونځ ئے وركړلو.

## باب ٧٦٠: مَنْ سَمّٰى قَوْمًا اَوْ سَلَّمَ فِي الصَّلٰوةِ عَلٰى غَيْرِهٖ مُوَاجَهَةً وَهُوَ لَايَعْلَمُ.

باب ٧٦٠: د هغے سړي بيان، چه مونځ كښې ئے د يو قوم نوم واخست يا مونځ كښې ئے بل چاته چه مخامخ نه وو لے سلام اوكۀ داسے حال كښې، چه هغه نه پوهيږي چه چاته ئے سلام كړے دے.

۱. "چه مخامخ نه وو" دا شرط ئے خكه اولكوو كه چرے چاته ئے سلام او كړو او هغه مخامخ وو نو بيائے د عامو خبرو حكم دے (چه مونځ مات شو) امام بخاري رحمة اللّٰه عليه داسے يو صورت بنودل غواري چه د عامو خبرونه جدا وي. مخكښې تير شويدي چه د دعا په ضمن كښې د چا نوم راشي نو گناه نشته اوكه هسے د چا نوم واخلي نو مونځ ماتيږي.

١١٢٤: حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ عِيْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نَقُوْلُ التَّحِيَّةَ فِي الصَّلٰوةِ وَنُسَمِّيْ وَيُسَلِّمُ بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَسَمِعَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قُوْلُوا التَّحِيَّاتُ

١١٢٤: عمرو بن عيسي. ابو عبدالصمد. عبدالعزيز بن عبدالصمد. حسين بن عبدالرحمن. ابو وائل. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے، چه مونږ خلقو به مانځه كښې التَحيَات لوستلو، او نوم به مو اخستلو. او مونږ كښې به بعضو يو بل ته سلام كولو. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم چه دا واوريدل، نو وے فرمائيل چه اَلتَحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ

لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا عَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اِنَّكُمْ اِذَا فَعَلْتُمْ ذٰلِكَ فَقَدْ سَلَّمْتُمْ عَلٰى كُلِّ عَبْدٍ لِلّٰهِ صَالِحٍ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ.

والطيبات السلام عليك ايها النبي و رحمة الله و بركاته السلام علينا و على عباد الله الصالحين اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده و رسوله. هر كله چه تاسو اووايئ نو تاسو آسمان او زمكه كښې د الله تعالى په هر صالح بنده سلام اوليږلو

## بَابُ ٧٦١: التَّصْفِيْقُ لِلنِّسَآءِ.

باب ٧٦١: د زنانه ؤ د لاس پړقولو بيان.

١١٢٥: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ التَّسْبِيْحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيْقُ لِلنِّسَآءِ.

١١٢٥: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. ابوسلمه. ابوهريره د حضور نه روايت كوي، حضور او فرمائيل: نارينه ؤ له تسبيح ده (يعني سبحان الله وئيل دي) او زنانه ؤ د پاره لاس په لاس وهل دي.

١١٢٦: حَدَّثَنَا يَحْيٰى اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلتَّسْبِيْحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيْقُ لِلنِّسَآءِ.

١١٢٦: يحيي. وكيع. سفيان. ابوحازم. سهل بن سعد نه روايت كوي، هغه اووے: چه نبي صلے الله عليه وسلم او فرمائيل: د سړو د پاره تسبيح ده او ښځو ذ پاره لاس په لاس وهل دي.

## بَابُ ٧٦٢: مَنْ رَّجَعَ الْقَهْقَرٰى فِيْ صَلَاتِهٖ اَوْ تَقَدَّمَ بِاَمْرٍ يَّنْزِلُ بِهٖ رَوَاهُ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ٧٦٢: د هغے سړي بيان چه مونځ كښې په ورستو شي يا د څه پيښيدونكي امر په بنا مخكښې شي. دا سهل بن سعد، د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت كړے دے.

۱۱۲۷: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ يُوْنُسُ قَالَ الزُّهْرِيُّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ الْمُسْلِمِيْنَ بَيْنَا هُمْ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ الْاِثْنَيْنِ وَاَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُصَلِّيْ بِهِمْ فَفَجَآءَ هُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَشَفَ سِتْرَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَنَظَرَ اِلَيْهِمْ وَهُمْ صُفُوْفٌ فَتَبَسَّمَ يَضْحَكُ فَنَكَصَ اَبُوْبَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَظَنَّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ اَنْ يَّخْرُجَ اِلَى الصَّلٰوةِ وَهَمَّ الْمُسْلِمُوْنَ اَنْ يَّفْتَتِنُوْا فِيْ صَلَاتِهِمْ فَرَحًا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ رَاَوْهُ فَاَشَارَ بِيَدِهٖ اَنْ اَتِمُّوْا ثُمَّ دَخَلَ الْحُجْرَةَ وَاَرْخَى السِّتْرَ وَتُوُفِّيَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ.

۱۱۲۷: بشر بن محمد. عبداللّٰه یونس. زهري. انس بن مالکؒ نه روایت کوي هغه اووې د ګل په ورځ د سحر وخت کښې مسلمانان مانځه کښې مشغول وو او ابوبکرؓ مونځ ورکولو. ناساپه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم مخې ته شو. د بي بي عائشې د حجرې پرده ئې اوچته کړه او هغوئ طرف ته ئې اوکتل چه خلق صف بسته دي حضورؐ مسکې شو، وې خاندل. ابوبکرؓ د پوندو په زور ورستو شولو او ګمان ئې اوکړ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم مانځه د پاره راتلل غواړي او مسلمانانو اراده اوکړه چه خپل مونځ مات کړي خکه چه د نبي صلي الله علیه وسلم په لیدلو سره ډیر خوشاله شو خو حضورؐ خپلو لاسونو سره اشاره اوکړه چه مونځ پوره کړئې. بیا حجرې ته داخل شو او پرده ئې راوغرځوله او په هغه ورځ وفات شولو.

باب ۷٦۳: اِذَا دَعَتِ الْاُمُّ وَلَدَهَا فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَادَتِ امْرَاَةٌ ابْنَهَا وَهُوَ فِيْ صَوْمَعَتِهٖ قَالَتْ يَاجُرَيْجُ قَالَ اَللّٰهُمَّ اُمِّيْ وَصَلَاتِيْ قَالَتْ يَاجُرَيْجُ قَالَ

باب ۷٦۳: چه مور خپل خوئې مونځ کښې اوبلي. او لیث په واسطه د جعفر. عبدالرحمٰن بن هرمز. ابوهریرهؓ نه روایت اوکړ، رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، یوې ښځې خپل خوئې ته آواز اوکړ او هغه خپلې عبادت خانه کښې وو چه اې جریج، هغه اووې. اې خدایه اللّٰه، خما مور او خما مونځ. هغې مور اوبله چه اې جریج، هغه اووې، اې اللّٰه، خما مور او خما مونځ. بیا د هغه مور اوبله، اې جریج، هغه اووې، اې

اَللّٰهُمَّ اُمِّیْ وَصَلَاتِیْ فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ لَایَمُوْتُ جُرَیْجٌ حَتّٰی یَنْظُرَ فِیْ وَجْهِ الْمَیَامِیْسِ وَکَانَتْ تَاْوِیْ اِلٰی صَوْمَعَتِهٖ رَاعِیَةٌ تَرْعَی الْغَنَمَ فَوَلَدَتْ فَقِیْلَ لَهَا مِمَّنْ هٰذَا الْوَلَدُ قَالَتْ مِنْ جُرَیْجٍ نَزَلَ مِنْ صَوْمَعَتِهٖ قَالَ جُرَیْجٌ اَیْنَ هٰذِهِ الَّتِیْ تَزْعَمُ اَنَّ وَلَدَهَا لِیْ قَالَ یَا بَابُوْسُ مَنْ اَبُوْكَ قَالَ رَاعِیْ الْغَنَمِ.

الله! ځما مور او ځما مونځ، د هغه مور اووې: اې الله جریج نه دې مرګ رانشي خو چې د بو زناکارې ښځې مخ اونه ویني. او یوه ښځه به د هغې عبادت ځاې حواله راتله چه چیلئ به یې څرولې د هغې بچې اوشو هغې نه تپوس اوشو چه دا د چا بچې دې هغې اووې: د جریج هغه د حپلې عبادت ځاې نه حکته راعلې وو. جریج اووې: هغه ښځه چرته ده چه دعوې کوي چه د هغې بچې زما نه پیدا دې نو هغه ورته اووې. اې بابوسه ستا پلار څوک دې هغې بچي اووې: چیلئ څرونکې. (یعني ګډوبه)

۱ "که چرې څوک مونځ کولو او مور ورته آواز اوکړو" پدې صورت کښې جواب ورکول پکار دي یا نه: د فقهاؤ دا فیصله ده چه د مونځ دوران کښې جواب ورکولو سره مونځ ماتیږي. که چرې نفل مونځ کوي او مور ورته آواز اوکړي. نو دا روا دي چه مونځ مات کړي او جواب ورکړي. لیکن د فرض مونځ کولو په وخت کښې مونځ ماتول او جواب ورکول روا نه دي. دې حدیث شریف کښې دي "چه د مونځ دوران کښې مور ورته آواز اوکړو او چه کله څوي جواب اونه کړو نو مور ورته خیرې اوکړې او خیرې قبولې شوې ددینه معلومیږي چه د فرضو او نفلو فرق نشته. جواب ورکول پکار دي او جواب نه ورکول غلطي ده که داسې نه وې نو د مور دعا به نه قبلیدله. لیکن حقیقت دا نه دې د شریعت د مسائلو او د دعا باب جدا جدا دي د شریعت د مسئلې خلاف هم کله کله خیرې (بددعائي) قبلیږي ابن بطال رحمة الله علیه ددې یوه بله وجه هم لیکلې ده چه د جُریج د وښت په شریعت کښې په مانځه کښې خبرې کول روا وو. کله چه جُریج د مور په بلنه جواب ورنه کړو. او برابر په خپل مونځ او مناجات کښې مشغول وو نو مور ورته خیرې اوکړې.

## بَاب ۷۶۴: مَسْحِ الْحَصَافِي الصَّلٰوةِ.

## باب ۷۶۴: مونځ کښې د کنکر لرې کولو بیان.

۱۱۲۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نَعِیْمٍ حَدَّثَنَا شَیْبَانُ عَنْ یَحْیٰی عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِیْ مُعَیْقِیْبٌ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِی الرَّجُلِ یُسَوِّی التُّرَابَ حَیْثُ یَسْجُدُ قَالَ اِنْ کُنْتَ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً.

۱۱۲۸: ابونعیم. شیبان. یحیي. ابوسلمه. معیقیب نه روایت دې هغه اووې: نبي صلی الله علیه وسلم د هغې سړي متعلق چه د سجدې کولو په ځائې خاوره برابره کړي او فرمائیل: که چرې دغسې کول غواړې نو بس یو ځل یې کوئې.

**باب ۷۲۵: بسط الثوب في الصلوة للسجود.**

۱۱۲۹: حدثنا مسدد حدثنا بشر حدثنا غالب عن بكر ابن عبد الله عن انس بن مالك رضي الله عنه قال كنا نصلي مع النبي صلى الله عليه وسلم في شدة الحر واذا لم يستطع احدنا ان يمكن وجهه من الارض بسط ثوبه فسجد عليه.

**باب ۷۲۵: مونځ كښې سجدې د باره د كپړې غوړولو بيان**

۱۱۲۹: مسدد بشر غالب بكر بن عبدالله انس بن مالك نه روايت كوي. هغه اووې چه موږ به سخته گرمۍ كښې نبي صلى الله عليه وسلم سره مونځ كولو او كله چه به موږ كښې چا د دې طاقت نه لرلو چه په زمكه خپل مخ كيږدي نو خپله كپړه به ئې په هغې خورولة او په هغې به ئې سجده كوله.

**باب ۷۲۶: ما يجوز من العمل في الصلوة.**

۱۱۳۰: حدثنا عبد الله بن مسلمة حدثنا مالك عن ابي النضر عن ابي سلمة عن عائشة رضي الله عنها قالت كنت امد رجلي في قبلة النبي صلى الله عليه وسلم وهو يصلي فاذا سجد غمزني فرفعتها فاذا قام مددتها.

**باب ۷۲۶: مونځ كښې كوم عمل جائز دې.**

۱۱۳۰: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابو النضر. ابو سلمه. بي بي عائشې نه روايت كوي. هغه فرمائي ما به خپله پښه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخكښې غزولې وه. او حضورؐ به مونځ كولو. چه حضورؐ به سجده كوله نو خما پښه به ئې دباؤ كړه. نو ما به هغه اوچته كړه چه حضورؐ به اودريدلو. نو ما به اوغزوله.

۱۱۳۱: حدثنا محمود حدثنا شبابة حدثنا شعبة عن محمد بن زياد عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم انه صلى صلوة قال ان الشيطن عرض لي فشد علي ليقطع الصلوة علي فامكنني الله منه فذعته ولقد هممت ان اوثقه الى سارية حتى

۱۱۳۱: محمود. شبابه. شعبه. محمد بن زياد. ابوهريرهؓ نه او هغه د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. چه حضورؐ يو خل مونځ اوكړلو. نو وې فرمانيل چه شيطان خا مخې ته راغې او په ما باندې ئې وس اوكړو چه مونځ راله خراب كړي خو الله تعالي ماله په هغه غلبه راكړه. او ما هغه مغلوب كړ. او ما اراده اوكړله. چه هغه يوې ستنې سره اوترم چه سحر ته تاسو خلق هغه اووينئ. بيا ما د سليمان عليه السلام دا

تُصْبِحُوْا فَتَنْظُرُوْا اِلَيْهِ فَذَكَرْتُ قَوْلَ سُلَيْمَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّايَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْ بَعْدِيْ فَرَدَّهُ اللّٰهُ خَاسِيًا ثُمَّ قَالَ النَّضْرُبْنُ شَمِيْلٍ فَذَعَتُّهُ بِالذَّالِ اَيْ خَنَقْتُهُ وَفَدَعِتُّهُ مِنْ قَوْلِ اللّٰهِ يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اَيْ يُدْفَعُوْنَ وَالصَّوَابُ فَدَعَتُّهُ اِلَّا اَنَّهُ كَذَا قَالَ بِتَشْدِيْدِ الْعَيْنِ وَالتَّاءِ.

قول راياد کړ، چه رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِنْ بَعْدِيْ، نو اللّٰه تعالي هغه شيطان نامراده او ذليل کړ، او واپس ئې کړلو. بيا نضر بن اسماعيل اووې چه ذَعَتُّه نه مراد دې، ما د هغه مرئ خفه کړه، او دعته ذ اللّٰه قول، يوم يدعون نه ماخوذ دې، يعني هغوئ دفع کوي، او صحيح دعته هم دادې، خو دا چه ذ عين او تاء تشديد سره ئې دغسې بيان او کړ.

بَابُ ٧٦٧: اِذَا انْفَلَتَتِ الدَّابَّةُ فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ قَتَادَةُ اِنْ اَخَذَ ثَوْبَهُ يَتْبَعُ السَّارِقَ وَيَدَعُ الصَّلٰوةَ.

باب ٧٦٧: کله ذ مونځ حالت کښې ذ چا خاروې او تښتي. او قتاده اووې، که غل ذ چا کپړه يوسي نو هغې پسې دې روان شي، او مونځ دې پريږدي.

١١٣٢: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْاَزْرَقُ بْنُ قَيْسٍ قَالَ كُنَّا بِالْاَهْوَازِ نُقَاتِلُ الْحَرُوْرِيَّةَ فَبَيْنَا اَنَا عَلٰى جُرُفِ نَهْرٍ اِذَا رَجُلٌ يُصَلِّيْ وَاِذَا لِجَامُ دَابَّتِهِ بِيَدِهٖ فَجَعَلَتِ الدَّابَّةُ تُنَازِعُهُ وَجَعَلَ يَتْبَعُهَا قَالَ شُعْبَةُ هُوَ اَبُوْبَرْزَةَ الْاَسْلَمِيُّ فَجَعَلَ رَجُلٌ مِّنَ الْخَوَارِجِ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ افْعَلْ بِهٰذَا الشَّيْخِ فَلَمَّا انْصَرَفَ الشَّيْخُ قَالَ اِنِّيْ سَمِعْتُ قَوْلَكُمْ وَاِنِّيْ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّ غَزَوَاتٍ اَوْ سَبْعَ غَزَوَاتٍ اَوْ ثَمَانَ غَزَوَاتٍ وَشَهِدْتُ تَيْسِيْرَهُ وَاِنِّيْ اِنْ كُنْتُ اَنْ اُرَاجِعَ مَعَ دَابَّتِيْ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَدَعَهَا تَرْجِعُ

١١٣٢: آدم. شعبه. ارزق بن قيس نه روايت دې، هغه وائي، چه مونږ اهواز کښې وو. خارجيانو سره مو جنګ کولو. مونږ خلق د يو نهر په غاړه وو، يو سړې مو اوليدو، چه مونځ ئې کولو، او ذ هغهٔ د سورلئ واګې ذ هغهٔ په لاس کښې وې، او سورلي ذ هغهٔ نه تړپونه وهل، او دې به هغې پسې تلو. شعبه وائي چه هغه سړې ابوبرزه اسلمي وو. خارجيانو کښې يو سړي اووې، اې اللّٰه ذ دې بوډا دې بده وي، هر کله چه هغه ضعيف سړې د مونځ نه فارغ شو، نو وې وئيل ما ستا خبره واوريده او ما رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلم سره شپږ يا اوه يا اته غزاګانو کښې شرکت کړې دې، او ما د هغوئ سهولتونه پخپله ليدلي دي که زهٔ خپل خناور سره واپس شوې وې، نو دا بهتره وه، ذ دې نه چه ما دا پريښې وې، او هغه خپل اصطبل طرف ته واپس شوې

اِلٰی مَاْلَفِهَا فَیَشُقُّ عَلَیَّ.

وي، او ما ذ پاره به واپسي گرانه وه.

**۱۱۳۳ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا یُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ قَالَتْ عَآئِشَةُ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَ سُوْرَةً طَوِیْلَةً ثُمَّ رَکَعَ فَاَطَالَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ بِسُوْرَةٍ اُخْرٰی ثُمَّ رَکَعَ حَتّٰی قَضَاهَا وَسَجَدَ ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ فِي الثَّانِیَةِ ثُمَّ قَالَ اِنَّهُمَا اٰیَتَانِ مِنْ اٰیَاتِ اللّٰهِ فَاِذَا رَاَیْتُمْ ذٰلِكَ فَصَلُّوْا حَتّٰی یُفْرَجَ عَنْکُمْ لَقَدْ رَاَیْتُ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا کُلَّ شَیْءٍ وُّعِدْتُهٗ حَتّٰی لَقَدْ رَاَیْتُ اُرِیْدُ اَنْ اٰخُذَ قِطْفًا مِنَ الْجَنَّةِ حِیْنَ رَاَیْتُمُوْنِيْ جَعَلْتُ اَتَقَدَّمُ وَلَقَدْ رَاَیْتُ جَهَنَّمَ یَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا حِیْنَ رَاَیْتُمُوْنِيْ تَاَخَّرْتُ وَرَاَیْتُ فِیْهَا عَمْرَوبْنَ لُحَیٍّ وَّهُوَ الَّذِيْ سَیَّبَ السَّوَائِبَ.

**۱۱۳۳ :** محمد بن مقاتل. عبدالله. یونس. زهره. عروه نه روایت کوي. بي بي عائشې اووې، چه نمر تندر اونیولو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم او دریدلو، اویو اوږد سورت ئې اُولستلو بیائې اوګډه رکوع او کړه بیائې خپل سر اوچت کهٔ، بیائې ډ یو بل سورت نه شروع او کړه. بیائې خپل سر اوچت کهٔ، بیائې ډ یو بل سورت نه شروع او کړه. بیائې رکوع او کړه، تردې چه هغه ئې پوره کهٔ، او سجده ئې او کړه. بیائې دغسې دویم رکعت کښې او کړل. بیائې او فرمائیل، دا دواړه ډ الله نښنو نښانو کښې دوه نښې نښانې دي، هر کله چه تاسو دا اووینئې، نو مونځ کوئې، تردې چه ډ نمر تندر نیول تاسو نه لرې شي. ما خپل دې ځائې کښې هغه ټول څیزونه اولیدل، چه ډ هغې ما سره وعده شوې ده. تردې چه ما اراده کوله، چه زهٔ ډ جنت نه یو غنچک راشوکوم، څه وخت چه تاسو زهٔ اولیدم. چه زهٔ وړاندې شوم، او ما جهنم هم اولیدلو، چه هغې کښې بعضې حصه بعضې خوري. هر کله چه زهٔ روستو شوم او ما جهنم کښې عمرو بن لحي اولیدلو. او دا هغه سړې دې چه هغه ډ سائبه[۱] رسم ایجاد کړې وو.

۱ . سائبه هغې اوښې ته وائي چه د جاهلیت په زمانه کښې به د هغې منخته (نذر) او کړې شوه بیا به هغه آزاده پریخودې شوه هر ځائې به څریده. نه به پرې چا سورلي کوله نه به د هغې چا شوده (پی) څښل. دا هغه عمرو بن لحي دې چا چه په عربستان کښې د بت پرستۍ او ډ نور ناروا کارونو بنیاد ایښودلې وو.

## بَاب ۷۶۸: مَا یَجُوْزُ مِنَ الْبُصَاقِ وَالنَّفْخِ فِي الصَّلٰوةِ وَیُذْکَرُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو نَفَخَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِيْ

**باب ۷۶۸:** مونځ کښې ډ تو کلو او پو کلو جائز کیدل. او عبدالله بن عمرو نه منقول دي، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ډ کسوف مونځ کښې خپله سجده

سُجُوْدِهٖ فِيْ كُسُوْفٍ. کښې پو کې وهلې وو ¹.

¹. په بحر الرائق کښې دي که چا په مونځ کښې پو کې اووهه او نږدې خلقو د پو کي آواز اوریدو نو مونځ ئې مات دے او که چا د پو کي آواز وانه وریدلو نو مونځ نه ماتیږي.

۱۱۳۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى نُخَامَةً فِيْ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَتَغَيَّظَ عَلٰى اَهْلِ الْمَسْجِدِ وَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ قِبَلَ اَحَدِكُمْ فَاِذَا كَانَ فِيْ صَلَاتِهٖ فَلَا يَبْزُقَنَّ اَوْ قَالَ لَا يَتَنَخَّمَنَّ ثُمَّ نَزَلَ فَحَتَّهَا بِيَدِهٖ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِذَا بَزَقَ اَحَدُكُمْ فَلْيَبْزُقْ عَلٰى يَسَارِهٖ.

۱۱۳۴: سلیمان بن حرب. حماد. ایوب. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم قبلې طرف ته بلغم غرخیدلې اولیدلو، نو جمات والو ته په غصه شو، اووې فرمائیل: اللّٰه تعالٰي ستاسو قبلې طرف ته دے. کله چه څوک مونځ کښې وي، نو نهٔ دے تو کي، او نهٔ دے بلغم غرځوي. بیا ذ منبر نه راکوز شولو او هغه ئې خپل لاس سره اوکرولو، صاف ئې کړلو. او ابن عمرؓ اووې، کله چه تاسو کښې څوک تو کي، نو خپل کس طرف ته دے تو کي.

۱۱۳۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا كَانَ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّهٗ يُنَاجِيْ رَبَّهٗ فَلَا يَبْزُقَنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَا عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَلٰكِنْ عَنْ شِمَالِهٖ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرٰى.

۱۱۳۵: محمد. غندر. شعبه. قتاده. انس ذ نبي صلې اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي، حضورؐ او فرمائیل کوم سړے چه مانځه کښې وي، خپل رب سره مناجات کوي، نو نهٔ دے خپلې مخې ته اونهٔ دے خپل ښي اړخ ته تو کي. بلکه خپل کس طرف ته ذ خپلې کسې پښې لاندې دے تو کي.

بَاب ۷۶۹: مَنْ صَفَّقَ جَاهِلًا مِنَ الرِّجَالِ فِيْ صَلَاتِهٖ لَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهٗ فِيْهِ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۷۶۹: څوک چه ذ ناپوهۍ په وجه مونځ کښې لاس اوپړقوي، نو ذ هغهٔ مونځ به فاسد نهٔ وي. دے کښې سهل بن سعد ذ نبي صلې اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي.

باب ۷۷۰: اِذَا قِيْلَ لِلْمُصَلِّيْ تَقَدَّمْ اَوْ اِنْتَظِرْ فَانْتَظَرَ فَلَا بَأْسَ.

باب ۷۷۰: چه مونځ كذار ته او ونيلے شي مخكښ شه يا انتظار را او كړه، او هغه انتظار او كړي نو دے كښې هيڅ حرج نشته.

۱۱۳۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّاسُ يُصَلُّوْنَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ عَاقِدُوْا اُزْرِهِمْ مِّنَ الصِّغَرِ عَلٰى رِقَابِهِمْ فَقِيْلَ لِلنِّسَاءِ لَاتَرْفَعْنَ رُءُوْسَكُنَّ حَتّٰى يَسْتَوِيَ الرِّجَالُ جُلُوْسًا.

۱۱۳۶: محمد بن كثير. سفيان. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، چه خلقو به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم سره مونځ كولو، او د لنډ والي په وجه به ئے لنګ خپلو كردنونو سره تړلو، نو ښځو ته وئيلے شو، چه خپل سرونه دے نهٔ اوچتوي، څو پورے چه سړے نيغ كينني.

باب ۷۷۱: لَا يَرُدُّ السَّلَامَ فِي الصَّلٰوةِ.

باب ۷۷۱: مونځ كښې دے دَ سلام جواب نهٔ ور كوي.

۱۱۳۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنْتُ اُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ فَيَرُدُّ عَلَيَّ فَلَمَّا رَجَعْنَا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَقَالَ اِنَّ فِي الصَّلٰوةِ شُغْلًا.

۱۱۳۷: عبداللّٰه بن ابي شيبه. ابن فضيل. اعمش. ابراهيم. علقمه. عبداللّٰهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، ما به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ته د مونځ حالت كښې سلام كولو، نو حضورؐ به جواب راكولو. كوم وخت چه مونږ واپس شو، ما حضورؐ ته سلام او كړلو، نو جواب ئے رانهٔ كړلو. او، وے فرمائيل: مانځه كښې مشغوليت وي.

۱۱۳۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا كَثِيْرُ بْنُ شِنْظِيْرٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ اَبِيْ رِبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَاجَةٍ لَهٗ فَانْطَلَقْتُ

۱۱۳۸: ابومعمر. عبدالوارث. كثير بن شنظير. عطاء بن ابي رباح. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي، هغهٔ اووے، زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو ضرورت د پاره اوليږلم. زهٔ لاړم، بيا واپس شوم داسے حال كښې، چه دَ حضورؐ ضرورت مِ پوره كړے وو. بيا زهٔ نبي صلي

ثُمَّ رَجَعْتُ وَقَدْ قَضَيْتُهَا فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ فَوَقَعَ فِيْ قَلْبِيْ مَا اللّٰهُ اَعْلَمُ بِهٖ فَقُلْتُ فِيْ نَفْسِيْ لَعَلَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ عَلَيَّ اَنِّيْ اَبْطَأْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ فَوَقَعَ فِيْ قَلْبِيْ اَشَدُّ مِنَ الْمَرَّةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ عَلَيَّ فَقَالَ اِنَّمَا مَنَعَنِيْ اَنْ اَرُدَّ عَلَيْكَ اِنِّيْ كُنْتُ اُصَلِّيْ وَ كَانَ رَاحِلَتُهٗ مُتَوَجِّهًا اِلٰى غَيْرِ الْقِبْلَةِ.

اللّٰـه عليـه وسلـم لـه راغلـم، او حضـورؐ تـه م سلام او كـه، ليـكـن جـواب نـې رانـه كـړلو، نو خمـا زړه كـښې خطـرې پيـدا شوې، چه د هغې اللّٰه تـه پتـه ده. مـا خپـل خـان سره اووې، شـايد رسول اللّٰـه صلـې اللّٰـه عليـه وسلـم خما نـه ناراض شوې وي، ځكـه چـه زۀ حضورؐ لـه تـاخير سره راغلې يم. بيا مـا سـلام او كـۀ ليكـن حضورؐ جواب رانـه كـړلو، بيـا م د مخكـښې خل نـه هـم زيـات زړه خفـه شو. بيـا م ورتـه سـلام او كـړو نـو وې فـرمـائيل مـا جواب ځكـه درنـۀ كـړلو، چـه مـا مونـځ كولو، او حضـور صـلي اللّٰـه عليـه وسلم پـه خپلـه سورلۍ غير قبلې طرف ته مخ كړې وو.

**باب ۷۷۲:** رَفْعِ الْاَيْدِيْ فِي الصَّلٰوةِ لِاَمْرٍ يَنْزِلُ بِهٖ.

**باب ۷۷۲:** د څۀ ضرورت د پيښيدو په وخت مونځ كښې د خپلو لاسونو د اوچتولو بيان.

**۱۱۳۹:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَلَغَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ بِقُبَاءَ كَانَ بَيْنَهُمْ شَيْءٌ فَخَرَجَ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فِيْ اُنَاسٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَحُبِسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَانَتِ الصَّلٰوةُ فَجَآءَ بِلَالٌ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقَالَ يَا اَبَابَكْرٍ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ حُبِسَ وَقَدْ حَانَتِ الصَّلٰوةُ فَهَلْ لَكَ

**۱۱۳۹:** قتيبـه. عبـدالـعـزيـز. ابـوحـازم. سهـل بـن سـعـدؓ نـه روايـت كـوي، هغه وائي، رسول اللّٰه صلـې اللّٰـه عليـه وسلـم ته خبر اورسيد، چه قباء كښې د بنـي عـمـرو بـن عـوف ميـنـځ كـښې جګړه شوې ده، نو حضـورؐ د هغوی ميـنـځ كـښې صـلح كولو د پـاره يو څـو صـحـابو سره روان شولو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليـه وسلـم ايسـار شـولـو. او د مونځ وخت راغې، نو بـلالؓ حضـرت ابـوبـكـرؓ لـه راغې، او ورتـه ئې اووې، اې ابـوبـكـرؓ رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰه عليه وسلم ايسار شـولـو. او د مـونـځ وخـت دې، نو تـاسـو خـلـقـوتـه امـامتـي كـولـې شـې؟ حضـرت ابوبكرؓ ورته اووې، او، كـه سـتـا خـواهـش وي، نو بـلالؓ تـكبـيـر او كـۀ، او

ان تؤم الناس قال نعم ان شئت فاقام بلال الصلوة وتقدم ابوبكر رضي الله عنه فكبر للناس وجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم يمشي في الصفوف يشقها شقا حتى قام في الصف فاخذ الناس في التصفيح قال سهل التصفيح هو التصفيق قال وكان ابوبكر رضي الله عنه لا يلتفت في صلاته فلما اكثر الناس التفت فاذا رسول الله صلى الله عليه وسلم فاشار اليه يأمره ان يصلي فرفع ابوبكر رضي الله عنه يده فحمد الله ثم رجع القهقرى وراءه حتى قام في الصف وتقدم رسول الله صلى الله عليه وسلم فصلى للناس فلما فرغ اقبل على الناس فقال يايها الناس مالكم حين نابكم شيء في الصلوة اخذتم بالتصفيح انما التصفيح للنساء من نابه شيء في صلاته فليقل سبحان الله ثم التفت الى ابي بكر رضي الله عنه فقال يا ابابكر ما منعك ان تصلي للناس حين اشرت اليك قال ابوبكر ما كان ينبغي لابن ابي قحافة ان يصلي بين يدي رسول الله صلى الله

ابوبکرؓ مخکښې شو او تکبیر تحریمه ئې اوکړه. دې کښې رسول الله صلے الله علیه وسلم تشریف راوړلو او صفونو کښې وړاندې راغے تر دې چه وړمبي صف ته اورسیدو نو خلقو تصفیح کول شروع کړل. سهل اووې د تصفیح نه مراد لاس پړقول دي او ابوبکرؓ مونځ کښې هیڅ طرف ته نه متوجه کیدلو هر کله چه خلقو ډیر زیات لاس پړقول شروع کړل مخ ئې راواړولو نو وې لیدل چه رسول الله صلے الله علیه وسلم دې. حضورؐ هغه ته اشارے سره حکم ورکړه، چه مونځ دې ورکړي ابوبکرؓ خپل لاس اوچت کړه. د الله تعریف ئې بیان کړه. بیا په ورستو شو تر دې چه صف سره یوځائے اودریدلو. او رسول الله صلے الله علیه وسلم مخکښې شو، خلقو ته ئې مونځ ورکړلو. څه وخت چه د مانځه نه فارغ شو نو وې فرمائیل. اے خلقو تاسو له څه شوے دي، چه کله تاسو ته مانځه کښې څه خبره پیښه شي، نو لاسونه پړقول شروع کړئے. لاس پړقول خو د ښځو د پاره دي. سړي ته چه مانځه کښې څه خبره پیښه شي، نو سبحان الله دې وائي. بیا ابوبکرؓ ته متوجه شو. او وې فرمائیل. اے ابوبکرؓ، ته څه څیز د مونځ ورکولو نه منع کړے، هر کله چه ما تاته اشاره کړے وه، ابوبکرؓ اووې، د ابو قحافه خوي له دا هیڅ کله مناسب نه وو، چه د رسول الله صلے الله علیه وسلم په موجودګئ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. کښې دې مونځ ور کړي وو.

۱. دا حدیث شریف څو خله تیر شویدې او د دې په حقله وضاحت تیر شویدې امام بخاري رحمة الله علیه دا ښودل غواړي که څه خبره پیښه شي نو د مونځ کولو دوران کښې د خدائے تعالی حمد و ثنا وبلو سره لاس پورته کولے شي. نورو روایتونو کښې دا هم شته چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ښتنه کړې وه چه ابوبکر رضي الله عنه په مانځه کښې لاس ولې پورته کړے وؤ حدیث شریف واضح دې ددینه معلومیږي چه په مونځ کښې قلارے او آرام غوښتلے شي دا یو واقعه ضرور ده لیکن ددینه کومه قاعده جوړه ول مناسب نه دي. د حدیث شریف نه دا هم معلومیږي چه دا د هجرت د شروع واقعه ده خکه چه په دې کښې دي چه صحابۀ کرامو لاسونه اوپړقول' په مانځه کښې لاسونه پړقول د ښځو کار دے سړي به سبحان الله وائي په شروع کښې په مونځ کښې دومره قلارتیا او سکون نه وو. ددے خیال روستو او کړے شو. او ډیر اهتمام ئې اوشو. (د لاس پړقولو مطلب دا دے چه د ښي لاس تلے به د ګس لاس شاله راواچوي. عارف)

## بَـابُ ۷۷۳: اَلْـخَـصْـرِ فِـي الصَّلٰوةِ.

## باب ۷۷۳: مونځ کښې په ملا (کمر) ذ لاس ایښودلو بیان.

۱۱۴۰: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نُهِيَ عَنِ الْخَصْرِ فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ هِشَامٌ وَ اَبُوْ هِلَالٌ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۴۰: ابوالنعمان. حماد. ایوب. محمد. ابوهریرهؓ نه روایت کوي ذ هغهٔ بیان دے چه مونږ مونځ کښې په تهوتو ذ لاس ایښودلو نه منع کړے شو. او هشام او ابو هلال ذ ابن سیرین نه او هغهٔ د ابو هریرهؓ نه او هغهٔ ذ نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کړے دے.

۱۱۴۱: حَدَّثَنِيْ عَمْرُوبْنُ عَلِيِّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نُهِيَ اَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ مُخْتَصِرًا.

۱۱۴۱: عمرو بن علي. یحیي. هشام. محمد. ابوهریرهؓ نه روایت کوي' چه سړے په ملا (کمر) لاس ایښودو سره مونځ کولو نه منع شوے دے.

## بَـابُ ۷۷۴: يُفَكِّرُ الرَّجُلُ الشَّيْءَ فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِنِّيْ لَاُجَهِّزُ جَيْشِيْ وَاَنَا فِي الصَّلٰوةِ.

## بـاب ۷۷۴: مونځ کښې د څهٔ څیز ذ سوچ کولو بیان. او عمرؓ اووے چه زهٔ خپل لښکر درست کوم' حالانکه زهٔ مونځ کښې یم.

۱۱۴۲ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا عُمَرُ هُوَابْنُ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَصْرَ فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ سَرِيْعًا دَخَلَ عَلٰى بَعْضِ نِسَائِهٖ ثُمَّ خَرَجَ وَرَاٰى مَا فِيْ وُجُوْهِ الْقَوْمِ مِنْ تَعَجُّبِهِمْ لِسُرْعَتِهٖ فَقَالَ ذَكَرْتُ وَاَنَا فِي الصَّلٰوةِ تِبْرًا عِنْدَنَا فَكَرِهْتُ اَنْ يُمْسِيَ اَوْيَبِيْتَ عِنْدَنَا فَاَمَرْتُ بِقِسْمَتِهٖ.

۱۱۴۲ : اسحق بن منصور. روح. عمر بن سعید. ابن ابي مليکه. عقبه بن حارثؓ نه روایت کوي. هغه اووې: ما نبي صلی اللّٰه علیه وسلم سره د مازیګر مونځ اوکړو. کوم وخت چه حضور سلام او ګرځولو، نو تادئ سره او دریدلو، او خپلو خنو بیبیانو له ورغلو بیا واپس شولو. نو حضور خلقو په مخ د تشریف زر اوړلو په سبب د تعجب اثرات اولیدل، حضورؐ ورته او فرمائیل. زهٔ مانځه کښې ووم، ماته یاد شو، چه مونږ کره سره زر، دي نو ما دا بده اوګنړله چه د هغې په موجودګی کښې ماښام شي یا شپه تیره شي نو ما دَ هغې دَ تقسیمولو حکم ور کړلو.

۱۱۴۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرٍ عَنِ الْاَعْرَجِ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اُذِّنَ بِالصَّلٰوةِ اَدْبَرَ الشَّيْطَانُ لَهٗ ضُرَاطٌ حَتّٰى لَايَسْمَعَ التَّاْذِيْنَ فَاِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ اَقْبَلَ فَاِذَا ثُوِّبَ اَدْبَرَ فَاِذَا سَكَتَ اَقْبَلَ فَلَا يَزَالُ بِالْمَرْءِ يَقُوْلُ لَهٗ اذْكُرْ مَالَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ حَتّٰى لَايَدْرِيْ كَمْ صَلّٰى قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِذَا فَعَلَ اَحَدُكُمْ ذٰلِكَ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ قَاعِدٌ وَسَمِعَهٗ اَبُوْ سَلَمَةَ مِنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

۱۱۴۳ : یحیي. بن بکیر. لیث. جعفر. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت کوي: نبي صلی اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، چه کله مونځ دَ پاره اذان کیږي، نو شیطان تیزونه اچوي او تښتي، تردې چه د اذان آواز واونه ري. کوم وخت چه مؤذن خاموش شي، نو شیطان واپس راشي، بیا چه تکبیر کیږي، نو شیطان تښتي. کله چه تکبیر کونکې خاموش شي، نو شیطان بیا راشي، او مونځ ګزارته وائي، فلانئے خبره یاده کړه، چه هغه ته یاده نه وه، تردې چه هغه مونځ ګزارنهٔ پوهیږي، چه څو رکعاته ئې اوکړل، ابوسلمه بن عبدالرحمن اووې، هر کله چه تاسو کښې څوک داسې اوکړي، نو دوه سجدې دې اوکړي، داسې حال کښې چه ناست وي، او دا ابوسلمه د ابوهریرهؓ نه آوریدلې دي.

۱۱۴۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ قَالَ أَخْبَرَنِيْ ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ قَالَ قَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ النَّاسُ أَكْثَرَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَلَقِيْتُ رَجُلًا فَقُلْتُ بِمَا قَرَأَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَارِحَةَ فِي الْعَتَمَةِ فَقَالَ لَا أَدْرِيْ فَقُلْتُ لَمْ تَشْهَدْهَا قَالَ بَلٰى قُلْتُ لٰكِنْ أَنَا أَدْرِيْ قَرَأَ سُوْرَةَ كَذَا وَكَذَا.

۱۱۴۴: محمد بن مثني. عثمان بن عمر. ابن ابي ذئب. سعيد مقبري نه روايت كوي، ابوهريرهؓ بيان او كه، خلق وائي چه ابوهريرهؓ ډير روايتونه كوي. زهٔ يو سړي سره يو ځائے شوم او د هغه نه م تپوس او كهٔ، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم تيره شپه د ماسختن مونځ كښې كوم سورت وئيلے وو، هغهٔ اووے، ماته نه دے معلومه، نو ما ترے پښتنه اوكړه. آيا تهٔ مونځ كښې موجود وے، هغے سړي جواب وركهٔ، او. نو ما اووے. ليكن ماته ياددي چه حضورؐ فلانے فلانے سورت لوستلے وو.

باب ۷۷۵: مَا جَآءَ فِي السَّهْوِ إِذَا قَامَ مِنْ رَكْعَتَيِ الْفَرِيْضَةِ.

باب ۷۷۵: ذ هغے روايتونو بيان چه ذ سجده سهو په حقله وارد شوي دي، هر كله چه ذ فرض دوه ركعاتو سره (بغير تشهد لوستو) اودريږي.

۱۱۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْأَعْرَجِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُحَيْنَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ صَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ مِنْ بَعْضِ الصَّلَوَاتِ ثُمَّ قَامَ فَلَمْ يَجْلِسْ فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ فَلَمَّا قَضٰى صَلٰوتَهُ وَنَظَرْنَا تَسْلِيْمَهُ كَبَّرَ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ ثُمَّ سَلَّمَ.

۱۱۴۵: عبداللّٰه بن يوسف. مالك بن انس. ابن شهاب. عبدالرحمٰن. اعرج. عبداللّٰه بن بحينهؓ نه روايت كوي، هغه اووے، مونږ ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مونځونو كښې يو مونځ دوه ركعاتو كښې راكړلو بيا اودريدلو. او كيناست، نو خلق هم حضورؐ سره پاسيدل. چه مونځ ئے پوره كهٔ. او مونږ د حضورؐ سلام ته اوكتل چه حضورؐ د سلام نه مخكښې دوه سجدے اوكړلے داسے حال كښې، چه حضورؐ ناست وو، بيائے سلام اوګرځولو.

۱۱۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ

۱۱۴۶: عبداللّٰه بن يوسف. مالك. يحيي بن سعيد. عبدالرحمن. اعرج. عبداللّٰه بن

سعيد عن عبد الرحمن الاعرج عن عبد الله بن بحينة رضى الله عنه انه قال ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قام من اثنتين من الظهر لم يجلس بينهما فلما قضى صلوته سجد سجدتين ثم سلم بعد ذلك.

...حينه نه روايت كوي هغه اووې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ماسپخين په مونځ كښې دويم ركعت نه پس اودريدلو او هغې دواړو مينځ كښې كيناست كوه وخت چه حضور مونځ پوره كړه نو دوه سجدې ئې اوكړلې هغې نه پس ئې سلام اوګرځولو.

باب ۷۷۶: اِذَا صَلّٰى خَمْسًا.

باب ۷۷۶: د پنځه ركعاتو كولو بيان.

۱۱۴۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا فَقِيلَ لَهُ اَزِيْدَ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ صَلَّيْتَ خَمْسًا فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ.

۱۱۴۷: ابوالوليد. شعبه. حكم. ابراهيم علقمه. عبدالله (بن مسعودؓ) نه روايت كوي هغه بيان اوكړه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ذ ماسپخين پنځه ركعاته اوكړل نو حضورﷺ ته اووئيلې شو، چه مانځه كښې زياتې شوې دې څه؟ حضورﷺ تپوس اوكړه څه خبره ده خلقو جواب وركړه چه تاسو پنځه ركعاته اوكړل. بيا حضورﷺ د سلام ګرځولو نه پس دوه سجدې[1] اوكړلې.

۱. په دې د ټولو محدثينو اتفاق دې چه دا واقعه په مونځ كښې د خبرو اترو د منسوخ كيدو نه اول واقعه ده د اسلام په شروع كښې په مونځ كښې ډيره فراخي وه. سلام جواب د سلام يو بل سره خبرې كول دا ټول روا وو دې روايتونو نه په ښكاره دا معلوميږي چه د سلام ګرځولو نه ئې اول سجده سهو كړې وه خمونږ د احنافو په نزد د سهوې دا طريقه ده چه اول به يو سلام اوګرځوي بيا به سجده سهو اوكړي بيا به قعدې التحيات درود شريف دعاګانې به اوائي او بيا به آخري سلام اوګرځوي. په احاديثو كښې به دې طريقه د سجده سهو ذكر هم شته. ذ احنافو د نورو امامانو سره اختلاف په غوره والي كښې دې دواړه طريقې روا دي.

باب ۷۷۷: اِذَا سَلَّمَ فِيْ رَكْعَتَيْنِ اَوْفِيْ ثَلَاثٍ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ مِثْلَ سُجُوْدِ الصَّلٰوةِ اَوْ اَطْوَلَ.

باب ۷۷۷: چه دوه ركعاته يا درې ركعاته كښې سلام اوګرځوي، نو د مونځ د سجدو په شان يا د هغې نه اوږدې سجدې دې اوكړي.

۱۱۴۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِبْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ اَوِ الْعَصْرَ فَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ ذُوالْيَدَيْنِ الصَّلٰوةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَقَصَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهٖ اَحَقٌّ مَّايَقُوْلُ قَالُوْا نَعَمْ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اُخْرَيَيْنِ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ قَالَ سَعْدٌ وَّرَاَيْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَصَلّٰى مِنَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ فَسَلَّمَ وَتَكَلَّمَ ثُمَّ صَلّٰى مَا بَقِيَ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَقَالَ هٰكَذَا فَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۴۸: آدم. شعبه. سعد بن ابراهيم. ابوسلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي هغهٔ بيان اوكهٔ، چه مونږ. خلقوته رسول الله صلي الله عليه وسلم د ماسپخين يا مازيګر مونځ راكړلو حضورؐ سلام اوګرځولو نو ذواليدين (نومې يو صحابي) اووې، يا رسول الله، آيا مونځ كم شولو نو نبي صلي الله عليه وسلم خپلو ملګروته او فرمائيل آيا دې تيك خبره كوي. خلقو اووې او نو حضورؐ دوه ركعاته نور اوكړل. بيائې دوه سجدې اوكړې. د سعد بيان دې. ما عروه بن زبير اوليد، چه هغهٔ د ماښام دوه ركعاته مونځ اوكهٔ هغهٔ سلام اوګرځولو او خبرې ئې اوكړې. بيائې باقي مونځ اوكهٔ او دوه سجدې ئې اوكړې او وې وئيل دغسې نبي صلي الله عليه وسلم كړې وو.

بَابٌ ۷۷۸: مَنْ لَّمْ يَتَشَهَّدْ فِيْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَسَلَّمَ اَنَسٌ وَ الْحَسَنُ وَلَمْ يَتَشَهَّدَا وَقَالَ قَتَادَةُ لَا يَتَشَهَّدُ.

باب ۷۷۸: د هغې سړي بيان چه سجده سهو د كښې ئې تشهد اونه وې. او سلام ئې اوګرځولو انس او حسن سلام اوګرځولو او تشهد ئې اونه وې او بيان ئې اوكه: چه قتاده به تشهد نه وې.

۱۱۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍؒ عَنْ اَيُّوْبَ بْنِ اَبِيْ تَمِيْمَةَ السُّخْتِيَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنَ اثْنَتَيْنِ فَقَالَ لَهُ ذُوالْيَدَيْنِ اَقُصِرَتِ الصَّلٰوةُ اَمْ نَسِيْتَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ

۱۱۴۹: عبدالله بن يوسف. مالک بن انس. ايوب بن تميمه سختياني. محمد بن سيرين. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي هغهٔ اووې. رسول الله صلي الله عليه وسلم د دوو ركعاتونه فارغ شو نو ذواليدين ورته عرض اوكهٔ آيا مونځ كښې كمې راغلې دې يا تاسونه هيره اوشوله. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل آيا ذواليدين

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَدَقَ ذُو الْيَدَيْنِ فَقَالَ النَّاسُ نَعَمْ فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى اثْنَتَيْنِ أُخْرَيَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ.

تپيک وائي خلقو اووې او نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اودريدلو او دوه رکعاته نے نور اوکړل بيائے سلام اوګرځولو. بيائے تکبير اوکړه او د مخکښو سجدو په شان يا د هغے نه اوږدے سجدے نے اوکړلے بيائے سر اوچت کړلو.

۱۱۵۰ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ عَلْقَمَةَ قَالَ قُلْتُ لِمُحَمَّدٍ فِيْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ تَشَهُّدٌ قَالَ لَيْسَ فِيْ حَدِيْثِ أَبِيْ هُرَيْرَةَ.

۱۱۵۰ : سليمان بن حرب. حماد. سلمه بن علقمه نه روايت کوي هغه وائي ما د ابن سيرين نه تپوس اوکړ' آيا سجده سهو کښې تشهد شته' نو وې وئيل' د ابوهريرهؓ حديث کښې ددے ذکر نشته[۱].

۱. امام طحاوي رحمة الله عليه په شرح معاني الاثار کښې په قوي سندونو سره داسے روايتونه نقل کړيدي چه امام ترمذي رحمة الله عليه ورته حسن وائي. هغے کښې وضاحت سره دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د سجده سهو نه روستو تشهد (التحيات) ويلے وو. د طحاوي رحمة الله عليه په روايت کښې دا فرمان نقل شويدے او په ترمذي کښې دي چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل عمل داوو د احنافو عمل د دغے احاديثو مطابق دے طريقه ئے داده چه د تشهد (التحيات' رسوله) نه پس سلام اوګرځوي بيا به د سهوے دوه سجدے اوکړي. بيا به په قعده کيني تشهد درود شريف او دعاګانے اوائي بيا به دوباره سلام اوګرځوي. امام بخاري رحمة الله عليه دلته د قتاده رضي الله عنه بيان نقل کړيدے چه تشهد به نه وائي. ليکن حافظ ابن حجر رحمة الله عليه ليکلے دي. چه عبدالرزاق رحمة الله عليه د قتاده رضي الله عنه نه دا نقل کړيده چه د تشهد ويلو نه به روستو سلام ګرځوي. شايد چه د بخاري په روايت کښې "لا" زياتي دے.

۲. ابو داود' د سجده سهو په باب کښې په ص۱۴۵ کښې دا روايت داسے نقل کړيدے چه سلمه بن علقمه بيان کوي چه ما د محمد بن سيرين رحمة الله عليه نه پښتنه اوکړه "او تشهد؟" نو هغه او فرمايل "ما د تشهد په حقله څه اوريدلے نه دي. ليکن خما په نزد غوره داده چه تشهد اويلے شي.

## بَابُ ۷۷۹: مَنْ يُكَبِّرُ فِيْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ.

## باب ۷۷۹: د هغے سړي بيان چه د سهو سجدو کښې تکبير اووائي.

۱۱۵۱ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ

۱۱۵۱ : حفص بن عمر. يزيد بن ابراهيم. محمد. ابوهريرهؓ نه روايت کوي' هغه اووې' نبي صلي

مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلّٰی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِحْدٰی صَلَاتَیِ الْعَشِیِّ قَالَ مُحَمَّدٌ وَاَکْثَرُ ظَنِّی الْعَصْرَ رَکْعَتَیْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ قَامَ اِلٰی خَشَبَةٍ فِیْ مُقَدَّمِ الْمَسْجِدِ فَوَضَعَ یَدَهٗ عَلَیْهَا وَفِیْهِمْ اَبُوْبَکْرٍ وَعُمَرُ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَهَابَااَنْ یُّکَلِّمَاهُ وَخَرَجَ سَرَعَانُ النَّاسِ فَقَالُوْا اَقَصُرَتِ الصَّلٰوةُ وَرَجُلٌ یَّدْعُوْهُ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ذَالْیَدَیْنِ فَقَالَ اَنَسِیْتَ اَمْ قُصِرَتْ فَقَالَ لَمْ اَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرُ قَالَ بَلٰی قَدْ نَسِیْتَ فَصَلّٰی رَکْعَتَیْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ کَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ فَکَبَّرَ ثُمَّ وَضَعَ رَاْسَهٗ فَکَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهٗ وَکَبَّرَ.

الله علیه وسلم د مابنام دوو مونخونو کښې یو مونخ اوکړ او محمد اووې، خما غالب گمان دا دې، چه هغه د مازیګر مونخ وو. حضورؐ دوه رکعاته اوکړل. بیائې سلام اوګرځولو بیائې هغې لرګي طرف ته مخ کړه، او دریدو، چه مخامخ د سجدې کولو په ځائې کښې وو، نو حضورؐ خپل لاس په هغې کیښودلو. او هغوي کښې ابوبکرؓ او عمرؓ هم وو، لیکن هغوي دواړه حضور سره د خبرې کولو نه او یریدل. او خلق تادئ سره اووتل. او، وې وئیل، چه آیا مونخ کم شولو او یو سړې وو، چه هغهٔ ته به نبي صلی الله علیه وسلم ذوالیدین وې، هغهٔ اووې. آیا تاسو نه هیره اُوشوه یا مونخ کم کړې شو. حضورؐ ورته او فرمائیل، نه، ما نه هیره شوې ده او نه مونخ کم شوې دې. ذوالیدین اُووې، تاسو نه هیره شوې ده. نو حضورؐ دوه رکعاته مونځ اوکړه. بیائې سلام اوګرځولو. بیائې تکبیر اوکړهٔ او د نورو سجدو پشان یا د هغې نه اوږدې سجدې ئې اوکړلې. بیائې سر اوچت کهٔ او تکبیر ئې اوکهٔ.

۱. دا حدیث شریف مخکښې هم تیر شویدې. لیکن دې روایت کښې د سجده سهوې د تکبیراتو تفصیل سره بیان دې ددې وجې نه امام بخاري رحمة الله د باب د سر لیک لاندې ذکر کړو. امام مالک رحمة الله علیه د سجده سهوې د پاره د مستقل تکبیر تحریمه قائل دې ګویا د هغه په نزد، دا دواړه سجدې خان له مستقل مونخ دې چه د هغې د پاره د تکبیر تحریمه هم ضرورت دې لیکن جمهور عالمان ددې قائل نه دي. بعض احادیثو کښې داسې ذکر شته چه د هغې نه د امام مالک رحمة الله علیه د مسلک تائید کیږي.

۱۱۵۲: حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا لَیْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُحَیْنَةَ

۱۱۵۲: قتیبه بن سعید. لیث. ابن شهاب. اعرج. عبدالله بن بحینه اسدي (چه د بنی عبدالمطلب حلیف یعنې ملګرې وو) نه روایت کوي، رسول الله

اَلْاَسْدِیِّ حَلِیْفِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فِیْ صَلٰوةِ الظُّهْرِ وَعَلَیْهِ جُلُوْسٌ فَلَمَّا اَتَمَّ صَلَاتَهُ سَجَدَ سَجْدَتَیْنِ فَکَبَّرَ فِیْ کُلِّ سَجْدَةٍ وَّهُوَ جَالِسٌ قَبْلَ اَنْ یُّسَلِّمَ وَسَجَدَ هُمَا النَّاسُ مَعَهُ مَکَانَ مَانَسِیَ مِنَ الْجُلُوْسِ تَابَعَهُ ابْنُ جُرَیْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ فِی التَّکْبِیْرِ.

صلی الله علیه وسلم د ماسپخین مونځ کښې اودریدلو. حالانکه حضورؐ له اودریدل نه وو پکار. کوم وخت چه حضورؐ خپل مونځ پوره کړ نو دوه سجدې ئې اوکړلې. او هره سجده کښې ئې د سلام نه مخکښې په ناسته ناسته تکبیر اووې. او خلقو هم حضورؐ سره دوه سجدې اوکړلې د هغې قعدې په ځائې چه ترې هیرې شوې وه. ابن جریج د ابن شهاب نه د تکبیر متعلق د دې متابع حدیث روایت کړے دے.

## بَابٌ ۷۸۰: اِذَا لَمْ یَدْرِ کَمْ صَلّٰی ثَلَاثًا اَوْ اَرْبَعًا سَجَدَ سَجْدَتَیْنِ وَهُوَ جَالِسٌ.

## باب ۷۸۰: چه دا یاد پاتې نشي چه څو رکعاته ئې اوکړل، درې یا څلور نو په ناسته ناسته دې دوه سجدې اوکړي.

۱۱۵۳: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ اَبِیْ عَبْدِ اللّٰهِ الدَّسْتَوَائِیُّ عَنْ یَّحْیَی بْنِ اَبِیْ کَثِیْرٍ عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا نُوْدِیَ بِالصَّلٰوةِ اَدْبَرَ الشَّیْطَانُ وَلَهُ ضُرَاطٌ حَتّٰی لَا یَسْمَعَ الْاَذَانَ فَاِذَا قُضِیَ الْاَذَانُ اَقْبَلَ فَاِذَا ثُوِّبَ بِهَا اَدْبَرَ فَاِذَا قُضِیَ التَّثْوِیْبُ اَقْبَلَ حَتّٰی یَخْطِرَ بَیْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهٖ یَقُوْلُ اذْکُرْ کَذَا وَکَذَا مَا لَمْ یَکُنْ یَذْکُرُ حَتّٰی یَظَلَّ الرَّجُلُ اَنْ یَّدْرِیْ کَمْ صَلّٰی فَاِذَا لَمْ یَدْرِ اَحَدُکُمْ صَلّٰی ثَلَاثًا اَوْ اَرْبَعًا فَلْیَسْجُدْ سَجْدَتَیْنِ وَهُوَ جَالِسٌ.

۱۱۵۳: معاذ بن فضاله. هشام بن ابو عبدالله دستوائي. یحیي بن ابي کثیر. ابو سلمة. ابوهریرهؓ نه روایت کوي چهٔ نبي صلي الله علیه وسلم او فرمایل: مونځ د پاره چه آذان کیږي نو شیطان تیزونه اچوي تښتي. تر هغې چه آذان واونه ري. کوم وخت چه آذان ختم شي. نو هغه واپس راشي. بیا چه د مونځ تکبیر کیږي نو تښتي چه تکبیر ختم شي نو هغه راشي، تر دې چه انسان او د هغه په زړه کښې خطره او وسوسه پیدا کوي. او وائي چه فلانئې فلانئې خبرې یادې کړه. چه ورته به نه یادیدې. تر دې چه سړے داسې شي چه هغه ته یاد پاتې نشي چه څومره رکعتونه ئې اوکړل. نو کله چه تاسو کښې چاته دا یاد پاتې نشي چه څو رکعاته ئې کړي دي، درې یا څلور، نو دوه سجدې دې په ناسته ناسته اوکړي.

باب ۷۸۱: السَّهْوِ فِي الْفَرْضِ وَالتَّطَوُّعِ وَسَجَدَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ وِتْرِهِ.

باب ۷۸۱: فرض او نفل کښې د سجده سهو بیان. او ابن عباسؓ د وتر نه پس دوه سجدې اوکړې ل۔

۱. د جمهور امت مسلک دا دے چه د سهوے په احکامو کښې فرائض او نوافل برابر دي. څه خلقو په دے سلسله کښې فرق کړیدے او په نفل مونځ کښې په سهو کیدو سجده سهو ضروري نه ګڼري.

۱۱۵۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا قَامَ يُصَلِّيْ جَآءَ الشَّيْطَانُ فَلَبِسَ عَلَيْهِ حَتّٰى لَايَدْرِيْ كَمْ صَلّٰى فَاِذَا وَجَدَ ذٰلِكَ اَحَدُكُمْ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ.

۱۱۵۴: عبدالله بن يوسف. مالک. ابن شهاب. ابوسلمه بن عبدالرحمٰن. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، کله چه تاسو کښې يو سړے مانځه ته اودريږي، نو شيطان راشي، د هغه زړه کښې وسوسه پيدا کړي، تردے چه هغه ته ياد پاتے نشي، چه څومره مونځ ئے اوکه، کله چه تاسو کښې چاته داسے صورت پيښ شي، نو په ناسته ناسته دے دوه سجدے اوکړي.

باب ۷۸۲: اِذَا كُلِّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَاَشَارَ بِيَدِهٖ وَاسْتَمَعَ.

باب ۷۸۲: د مونځ حالت کښې چه خبرے اوکړي، خپل لاس سره اشاره اوکړي، او هغه واوري.

۱۱۵۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ كُرَيْبٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍؓ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَزْهَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَرْسَلُوْهُ اِلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَقَالُوْا اقْرَاْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنَّا جَمِيْعًا وَسَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ وَقُلْ لَهَا اِنَّا اُخْبِرْنَا اَنَّكِ تُصَلِّيْنَهُمَا وَقَدْ بَلَغَنَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى

۱۱۵۵: يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمرو. بکير. کريب. ابن عباس و مسعود بن مخرمه و عبدالرحمٰن بن ازهرؓ نه روايت کوي، دے حضراتو کريب، بي بي عائشےؓ ته اوليږلو، او، وے وئيل، ته هغے له لاړ شه، خمونږ د ټولو د طرف نه ورته سلام اوکه، او د هغے نه د مازيګر د مونځ نه پس د دوو رکعاتو متعلق تپوس اوکه، او دا ورته اووايه چه مونږ خلقو ته معلومه شوے ده چه ته دا دوه رکعاته کوے، حالانکه مونږ ته خبر رارسيدلے دے، چه نبي صلے الله عليه وسلم د دے نه منع فرمائيلے ده. او ابن عباسؓ اووے، ما به عمر بن

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْهُمَا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ كُنْتُ اَضْرِبُ النَّاسَ مَعَ عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ عَنْهُمَا فَقَالَ كُرَيْبٌ دَخَلْتُ عَلٰى عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَبَلَّغْتُهَا مَاآرْ سَلُوْنِيْ فَقَالَتْ سَلْ اُمَّ سَلَمَةَ فَخَرَجْتُ اِلَيْهِمْ فَاَخْبَرْتُهُمْ بِقَوْلِهَا فَرَدُّوْنِيْ اِلٰى اُمِّ سَلَمَةَ بِمِثْلِ مَا اَرْسَلُوْنِيْ بِهٖ اِلٰى عَائِشَةَ فَقَالَتْ اُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنْهُمَا ثُمَّ رَاَيْتُهُ يُصَلِّيْهِمَا حِيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَخَلَ عِنْدِيْ نِسْوَةٌ مِّنْ بَنِيْ حَرَامٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَاَرْسَلْتُ اِلَيْهِ الْجَارِيَةَ فَقُلْتُ قُوْمِيْ بِجَنْبِهٖ قُوْلِيْ لَهٗ تَقُوْلُ لَكَ اُمُّ سَلَمَةَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ سَمِعْتُكَ تَنْهٰى عَنْ هَاتَيْنِ وَاَرَاكَ تُصَلِّيْهِمَا فَاِنْ اَشَارَ بِيَدِهٖ فَاسْتَاْخِرِيْ عَنْهُ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ يَا بِنْتَ اَبِيْ اُمَيَّةَ سَاَلْتِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَاِنَّهٗ اَتَانِيْ نَاسٌ مِّنْ عَبْدِ الْقَيْسِ فَشَغَلُوْنِيْ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ فَهُمَا هَاتَانِ.

خطابؓ سره دَ دے دوو رکعاتو کونکے وهلو کريب اووے، زۀ بي بي عائشےؓ له راغلم، او هغے ته م دغه خبر اورسولو، کوم چه ما راوړے وو. بي بي عائشےؓ اووے، دَ اُم سلمهؓ نه تپوس اوکه. زۀ هغے خلقوته واپس راغلم، او هغه خبره م ورته واوروله. کومه چه بي بي عائشےؓ کړے وه. بيا هغے خلقو زۀ اُم سلمهؓ ته هغے پيغام سره اوليږلم، کوم چه م بي بي عائشےؓ ته اوړے وو. نو اُم سلمهؓ اووے، ما د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه دَ دے ممانعت آوريدلے دے. بيا ما ذ مازيګر دَ مونځ نه پس حضور دَ دے په کولو اوليدلو، بيا حضورؐ ما پله تشريف راوړلو او ماسره انصارو کښ دَ بني حرام څو ښځے ناستے وے. ما يوه وينزه حضورؐ پله اوليږله، او ورته م اووے چه د حضورؐ خوا کښ اودريږه. او ورته بيان که، اُم سلمهؓ عرض کوي، يا رسول اللّٰه، ما تاسو نه دَ دے دوو رکعاتو د کولو نه ممانعت آوريدلے وو. او اوس زۀ تاسو وينم، چه تاسونے خپله کوئے. که حضورؐ خپل لاس سره اشاره اوکړي، نو په ورستو شه، هغے وينزے داسے اوکړل. کوم وخت چه حضورؐ فارغ شو، نو وے فرمائيل. اے بنت ابي اميه، تا مانه دَ مازيګر نه پس دَ دوو رکعاتو متعلق تپوس اوکه (نو خبره داده چه) دَ عبدالقيس قبيلے څۀ خلق ماله راغلل، نو دَ هغوي په وجه ما دغه دوه رکعاته اونه کړے شو. کوم چه د ماسپخين نه پس کيږي. او دا دواړه رکعاتونه دغه وو.

**بـاب ۷۸۳: الْاِشَارَةِ فِي الصَّلٰوةِ** قَالَهٗ كُرَيْبٌ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**بـاب ۷۸۳: مونځ کښ دَ اشارے** کولو بيان. دا کريب دَ اُم سلمهؓ نه او هغے دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت کړے دے.

١١٥٦: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ نِالسَّاعِدِيِّ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلَغَهُ اَنَّ بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ كَانَ بَيْنَهُمْ شَيْءٌ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فِيْ اُنَاسٍ مَّعَهُ فَحُبِسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَانَتِ الصَّلٰوةُ فَجَاءَ بِلَالٌ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ يَا اَبَا بَكْرٍ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ حُبِسَ وَقَدْ حَانَتِ الصَّلٰوةُ فَهَلْ لَكَ اَنْ تَؤُمَّ النَّاسَ قَالَ نَعَمْ اِنْ شِئْتَ فَاَقَامَ بِلَالٌ وَتَقَدَّمَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَكَبَّرَ لِلنَّاسِ وَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِيْ فِي الصُّفُوْفِ حَتّٰى قَامَ فِي الصَّفِّ فَاَخَذَ النَّاسُ فِي التَّصْفِيْقِ وَكَانَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَا يَلْتَفِتُ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلَمَّا اَكْثَرَ النَّاسُ الْتَفَتَ فَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَشَارَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْمُرُهٗ اَنْ يُّصَلِّيَ فَرَفَعَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَدَيْهِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَرَجَعَ الْقَهْقَرٰى

١١٥٦: قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روايت کوي· رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خبر اورسيد· چه د بني عمرو بن عوف مينځ کښ څه جګړه شوې ده. نو حضور صلي الله عليه وسلم څه خلقو سره اووتلو· چه د هغوي مينځ کښ صلح اوکړي· رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم ايسار شولو· او د مونځ وخت شو. نو بلالؓ حضرت ابوبکرؓ له راغے· ورته ئے اووے· اے ابوبکرؓ· رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ايسار کړے شوے دے. او د مونځ وخت دے· نو آيا تاسو به خلقو ته امامتي ورکړئے. ابوبکرؓ جواب ورکړه. که ستا خواهش وي· بلالؓ تکبير اوکه. او ابوبکرؓ مخکښ شو. بيائے تکبير تحريمه اوکه· او رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم په صفونو کښ مخکښ راغے· تردے چه صف کښ شامل شو نو خلقو لاس پړقول شروع کړل. او ابوبکرؓ به مانځه کښ بل طرف ته نه متوجه کيدلو. هر کله چه خلقو ډير لاس پړقول شروع کړل· نو ابوبکرؓ را تاؤ شو· او· وے ليدل· چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم موجود دے. رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم خپل لاس سره حکم ورکه· اشاره ئے اوکړله· چه ابوبکرؓ مونځ ورکړي. خو ابوبکرؓ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل· د اللّٰه حمد· ئے بيان که· او په ورستو شو· تردے چه صف کښ شامل شولو· بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مخکښ شو· او خلقوته ئے مونځ ورکړلو. کوم وخت چه فارغ

وَرَآءَهُ حَتّٰى قَامَ فِي الصَّفِّ فَتَقَدَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى لِلنَّاسِ فَلَمَّا فَرَغَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ يَآاَيُّهَا النَّاسُ مَالَكُمْ حِيْنَ نَابَكُمْ شَيْءٌ فِي الصَّلٰوةِ اَخَذْتُمْ فِي التَّصْفِيْقِ اِنَّمَا التَّصْفِيْقُ لِلنِّسَآءِ مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلْيَقُلْ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَاِنَّهُ لَا يَسْمَعُهُ اَحَدٌ حِيْنَ يَقُوْلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ اِلَّا الْتَفَتَ يَآاَبَا بَكْرٍ مَّا مَنَعَكَ اَنْ تُصَلِّيَ لِلنَّاسِ حِيْنَ اَشَرْتُ اِلَيْكَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَا كَانَ يَنْبَغِيْ لِابْنِ اَبِيْ قُحَافَةَ اَنْ يُّصَلِّيَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

شـولـو' نـو خـلـقـوتـه متوجـه شـو. وې فرمائيل' اې خلقو' پـه تـاسـو څـهٔ شوي دي' چـه مونځ کـښې تـاسـوتـه څـهٔ خبره پيښـه شي' نو لاس پړقول شروع کـړئې' حـالانکـه لاس پـړقـول ډ ښځو د پـاره دي. هر کـلـه چـه مـانـځـه کـښې څه خبره پيښه شي نو سبحـان اللّٰـه ونـيـل پـکـار دي' ځـکـه چـه کـوم مسلـمـان سبحان اللّٰـه واوري' نـو ضرور متوجـه شـي (بيـا حـضـرت ابـوبـكرؓ تـه متوجـه شـو' وې فـرمـائيل) اې ابـوبـكرؓ تـه څهٔ څيز ډ مونځ وركولونه منـع كـړې' هـر كـلـه چـه مـا ډ مونځ كـولو اشـاره دركـړلـه. ابـوبـكرؓ عـرض اوكـهٔ. د ابـوقـحـافـه د ځوى ډ پـاره مناسب نهٔ وو' چـه د رسول اللّٰـه صلى اللّٰـه عليـه وسلم مخكښې مونځ وركړي.

۱۱۵۷ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا الثَّوْرِيُّ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ اَسْمَآءَ قَالَتْ دَخَلْتُ عَلٰى عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَهِيَ تُصَلِّيْ قَآئِمَةً وَّالنَّاسُ قِيَامٌ فَقُلْتُ مَاشَانُ النَّاسِ فَاَشَارَتْ بِرَاْسِهَا اِلَى السَّمَآءِ فَقُلْتُ اٰيَةٌ فَقَالَتْ بِرَاْسِهَا اَيْ نَعَمْ.

۱۱۵۷ : يحيي بن سليمان. ابن وهب. ثوري هشام. فاطمه. اسماءؓ نه روايت كوي' چه زهٔ بي بي عـائشـېؓ لـه ورغـلم داسې حال كښې' چه هغه ولاړه وه' مـونـځ ئې كولو او خلق هم ولاړ وو. ما اووې. ډ خـلـقـو څـهٔ حال دې' نو هغې خپل سر سره آسمان طرف تـه اشاره اوكړه. ما اووې آيا څهٔ نښـه شتـه' نـو هغې خپل سر سره اشاره اوكړه' يعني او' ئې اووې.

۱۱۵۸ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا

۱۱۵۸ : اسماعيل. مالک. هشام د خپل پلار نه او هغهٔ ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ښېر بي بي عائشېؓ نه روايت كوي' چه رسول اللّٰـه صلي اللّٰه عليه وسلم ډ خپلې بيماري حالت كښې خپل كور كښې په ناسته مونځ

قَالَتْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ بَيْتِهٖ وَهُوَ شَاكٍ جَالِسًا وَّ صَلّٰى وَرَآءَهٗ قَوْمٌ قِيَامًا فَاَشَارَ اِلَيْهِمْ اَنِ اجْلِسُوْا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ فَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا وَ اِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا.

او که. او حضور پسے د قوم خلقو به ولاړه مونځ او که. نو حضور خلقو ته اشاره او کړه. چه کیېنئ. کوم وخت چه د مانځه نه فارغ شو. نو وے فرمائیل. امام دے د دے د پاره جوړ شویدے چه د هغه اقتدا او کړے شي. کله چه هغه رکوع او کړي نو تاسو هم رکوع او کړئ او کله چه سر اوچت کړي. نو تاسو هم سر اوچت کړئ.

## كِتَابُ الْجَنَائِزِ

## (دَ جنازو بيان)

**باب ۷۸۴: فِى الْجَنَائِزِ وَمَنْ كَانَ اٰخِرُ كَلَامِهٖ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَقِيْلَ لِوَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَلَيْسَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لَيْسَ مِفْتَاحٌ اِلَّا لَهٗ اَسْنَانٌ فَاِنْ جِئْتَ بِمِفْتَاحٍ لَهٗ اَسْنَانٌ فُتِحَ لَكَ وَاِلَّا لَمْ يُفْتَحْ لَكَ.**

**باب ۷۸۴:** دَ جنازو بيان. او د هغے سړي بيان چه د هغهٔ آخري كلام لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وي. او وهب بن منبه ته او وئيلے شو، چه آيا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ د جنت کُنجي نهٔ ده. وهب او وے. ضرور. ليكن ذ هرے کنجي غاښونه وي. که تاسو داسے کنجي راوړئ، چه دَ هغے غاښونه (دندانے) وي. نو جنت به پرانستے شي. کني نه به شي پرانستے [1].

۱. په دے موضوع د اصل بحث خائے كتاب الايمان وو ليكن چه كله د مرګ او د جنازو ذکر راغے نو امام بخاري رحمة الله عليه ته دلته ضرور څه ليکل وو. نو ذ وهب بن منبه رحمة الله عليه د مثال سره ددے باب تړلے مسئلے په آسانه حل کيږي. حديث شريف کښ دي ''چا چه کلمهٔ شهادت او وے هغه جنتي دے'' بل طرفته نورو احاديثو مبارکو کښ په بدو اعمالو او د ګناهونو په حقله د سزا ورکولو وعيد هم شته. چه د هغے نه په واضحه معلوميږي. چه بنده که مؤمن وي نو د ايمان باوجود د بدو اعمالو سزا نه نه بچ کيږي او د شريعت هم دا منشا ده. چه د کلمهٔ شهادت اصل تاثير دا دے چه بنده د جهنم نه صاف بهر کړي. ليکن ددے کلمے اصل تاثير هغه وخت ظاهريږي چه ددے کلمے هغه تړلے تقاضي پوره کړي دا کلمهٔ شهادت يقيني د جنت کنجي (چابي) ده ليکن ددے کنجئ حفاظت هم ضروري دے که چرے کوم بنده ددے کنجئ (چابئ) حفاظت نه کوي او ددے هغه غاښي چه جرنده (تاله) پرانزي هغه په ګناهونو مات کړي. نو ښکاره ده چه جرنده به نه پرانستلے کيږي. يا به غاښي جوړول وي چه د جرندے پرانستل ممکن شي. مسلمان دِ يا په دے دنيا کښ خپل اعمال درست کړي. او د خپلے کنجئ د غاښونو حفاظت د اوکړي. کني آخرت کښ به الله تعالي د هغے مسلمان د کُنجئ د سمولو په دے طريقه انتظام اوکړي. چه دوزخ کښ د بدو کارونو سزا ورکړي او بيا به ئے ''نهر حيات'' د ژوند درياب کښ اولمبوي. او په دے طريقه به د هغه کنجي د جنت ذَ دروازے جرنده پرانزي.

۱۱۵۹: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُوْنَ حَدَّثَنَا وَاصِلُ الْاَحْدَبُ عَنِ الْمَعْرُوْرِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَانِيْ اٰتٍ مِّنْ رَّبِّيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَوْ قَالَ بَشَّرَنِيْ اَنَّهُ مَنْ مَّاتَ مِنْ اُمَّتِيْ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَاِنْ زَنٰى وَاِنْ سَرَقَ قَالَ وَاِنْ زَنٰى وَ اِنْ سَرَقَ.

۱۱۵۹: موسي بن اسمٰعيل. مهدي بن ميمون. واصل احدب. معرور بن سويد. ابوذرٌ نه روايت كوي٬ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ٫ر فرمائيل ماته خما د رب د طرف نه يو راتلونكے راغے. او هغهٔ ماته خبر راكهٔ يا خوش خبري ئے راكړه٬ چه كوم سړے خما اُمت كښې داسے حال كښې مړ شو٬ چه اللّٰه سره ئے څوک شريک نهٔ وي جوړ كړے٬ نو جنت كښې به داخل شي. ما اووے٬ اګر كه زنا او غلا او كړي٬ وے فرمائيل اګر كه زنا او غلا او كړي[۱].

[۱]. مطلب ئے دادے چه په جاهليت كښې د كفر په حالت كښې ئے غلا يا زنا كړے وي. صحابهٔ كرامو ته به دا مشكل ډير پيخيده. چه هغوي په جاهليت كښې ډير بد كارونه كړے وو هغه به د اسلام راوړلونه پس معاف شي دے حديث شريف كښې ديته اشاره ده او د عامے معافئ اعلان دے.

۱۱۶۰: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيْقٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَّاتَ يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ النَّارَ وَقُلْتُ اَنَا مَنْ مَّاتَ لَايُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ.

۱۱۶۰: عمرو بن حفص. حفص. ابو الاعمش. شقيق. عبداللّٰه بن مسعودٌ نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل٬ كوم سړے چه داسے حال كښې مړ شي چه اللّٰه سره ئے څوک شريک جوړ كړے وي نو اور (دوزخ) كښې به داخل شي. او زهٔ وائيم چه څوک په دے حال كښې مړ شو چه اللّٰه سره ئے څوک شريک نه وي جوړ كړے نو جنت ته به داخل شي.

## باب ۷۸۵: اَلْاَمْرِ بِاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ.

## باب ۷۸۵: جنازو پسے د تلو د حكم بيان.

۱۱۶۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَشْعَثِ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ

۱۱۶۱: ابوالوليد. شعبه. اشعث. معاويه بن سويد بن مقرون. براءٌ نه روايت كوي٬ چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ ته د اوو څيزونو حكم

الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ اَمَرَنَا بِاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَ اِجَابَةِ الدَّاعِيْ وَنَصْرِ الْمَظْلُوْمِ وَاِبْرَارِ الْقَسَمِ وَرَدِّ السَّلَامِ وَتَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَنَهَانَا عَنْ اٰنِيَةِ الْفِضَّةِ وَخَاتَمِ الذَّهَبِ وَالْحَرِيْرِ وَ الدِّيْبَاجِ وَالْقَسِيِّ وَالْاِسْتَبْرَقِ.

راكړلو، او ذ اوو خبرو نه يې منع كړو. (۱) جنازو پسې ذ تلو (۲) ذ مريض پښتنه (۳) بلونكي له جواب وركول (دعوت قبلول) (۴) د مظلوم مدد (۵) قسم پوره كول (۶) د سلام جواب وركول (۷) او ذ انتبوشي كونكي ذ انتبوشي (اينكي) جواب وركولو نې مونږ ته حكم اوكه. او ذ چاندي ذ لوښو، ذ سرو ذ گوتې، حرير، ديباج. قسي او ذ استبرق ذ استعمال نه نې مونږ منع كړو.

۱۱۶۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ خَمْسٌ رَدُّ السَّلَامِ وَ عِيَادَةُ الْمَرِيْضِ وَ اتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ وَاِجَابَةُ الدَّعْوَةِ قَالَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَرَوَاهُ سَلَامَةُ عَنْ عُقَيْلٍ.

۱۱۶۲: محمد. عمرو بن ابي سلمه. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، ما ذ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل، چه ذ مسلمان په مسلمان پنځه حقونه دي (۱) ذ سلام جواب وركول (۲) ذ مريض پښتنه (۳) جنازو پسې تلل. (۴) دعوت قبلول (۵) انتبوشي كونكي له جواب وركول عبدالرزاق ذ دې متابع حديث روايت كړې دې، او، وئيلې، چه مونږ ته معمر دغسې بيان كړې دې او هغۀ ته سلامه ذ عقيل نه روايت كړې دې.

## بَاب ۷۸۶: الدُّخُوْلِ عَلَى الْمَيِّتِ بَعْدَ الْمَوْتِ اِذَا اُدْرِجَ فِيْ اَكْفَانِهِ.

باب ۷۸۶: مړي ته، چه هغه كفن كښې ايښودې شوې وي، ذ مرګ نه پس ذ ورتلو بيان ⁽¹⁾.

۱. په عام طور د مرګ نه پس د بنده مخ خرابيږي ددې وجې نه د مړي په څادر وغيره باندې د پټولو حكم دې له دې كبله قدرتي دا سوال پيدا كيږي. چه د مرګ نه پس د چا كتل (ليدل) مناسب دي يا نه؟ امام ابراهيم نخعي رحمة الله عليه ليكلي دي چه د غسل وركونكو نه علاوه بل څوک به مړې نه ګوري. امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل چه د مړي كتل روا دي. ددې باب رومبنې حديث د رسول الله صلي الله عليه وسلم د وفات په باره كښې دې او ''باب الوفاة'' كښې به دوباره بيا رازي دې حديث شريف كښې دي ''چه الله تعالٰى به په رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه مرګه نه راولي''. ددې معنې

بعضے محدثينو دا ليکلي دي چه د نبي کريم صلي الله عليه وسلم د وفات (وصال) واقعه ډيره سخته وه د برداشت نه بهر وه. ددې وجې نه بعضے صحابهٔ کرام رضي الله عنهم ډير ګډوډ شوي وو نو هغوي ويل "رسول الله صلي الله عليه وسلم به دوباره ژوندې کيږي". نو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اودريدلو. او ددې خبرې ئې رد اوکړو. ددې مسئلې دا وضاحت دلته ضروري وو.

۱۱۶۳: حَدَّثَنَا بِشْرُبْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ مَعْمَرٌ وَّيُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ قَالَتْ اَقْبَلَ اَبُوْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلٰى فَرَسِهٖ مِنْ مَّسْكَنِهٖ بِالسُّنْحِ حَتّٰى نَزَلَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلَمْ يُكَلِّمِ النَّاسَ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَتَيَمَّمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُسَجًّى بِبُرْدِ حِبَرَةٍ فَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهٖ ثُمَّ اَكَبَّ عَلَيْهِ فَقَبَّلَهٗ ثُمَّ بَكٰى فَقَالَ بِاَبِيْ اَنْتَ يَانَبِيَّ اللّٰهِ لَايَجْمَعُ اللّٰهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ اَمَّا الْمَوْتَةُ الَّتِيْ كُتِبَتْ عَلَيْكَ فَقَدْ مُتَّهَا قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ فَاَخْبَرَنِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ اَبَا بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خَرَجَ وَعُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُكَلِّمُ النَّاسَ فَقَالَ اجْلِسْ فَاَبٰى فَقَالَ اجْلِسْ فَاَبٰى فَتَشَهَّدَ اَبُوْبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَمَالَ اِلَيْهِ النَّاسُ وَتَرَكُوْا عُمَرَ فَقَالَ اَمَّا بَعْدُ فَمَنْ كَانَ

۱۱۶۳: بشر بن محمد. عبدالله. معمرو. يونس. زهري. ابوسلمه. بي بي عائشې ذ نبي صلي الله عليه وسلم ذ ټبر نه روايت کوي، ذ هغې بيان دې، چه ابوبکرؓ په خپل اس ذ مقام سخ نه راغې، تردې چه ذ اس نه کوز شولو. او جمات کښې داخل شو. چا سره ئې خبرې اونه کړې تردې چه بي بي عائشې له راغې، او ذ نبي صلي الله عليه وسلم قصد ئې اوکه، په حضورؐ يمني څادر اچولې شوې وو. ذ حضورؐ ذ مخ نه ئې څادر اوچت اوکه. بيا په حضورؐ راخکته شو. او ذ حضورؐ مخ مبارک ئې خکل کړلو. بيائې اوژړل، او وې فرمانيل، اې ذ الله نبي، په تاسو دې خما پلار قربان وي. الله به په تاسو دوه مرګه نه راولي. کوم مرګ چه تاسو ذ پاره مقدر وو، هغه په تاسو راغې. ذ ابوسلمه بيان دې، ماته ابن عباسؓ خبر راکه، چه ابوبکرؓ بهر اووتلو، او عمرؓ خلقوته خبرې کولې. ابوبکرؓ هغوي ته اووې، کينه. خو هغوي انکار اوکه، بيائې ورته اووې چه کينه، خو هغوي انکار اوکه، نو ابوبکرؓ تشهد اووې. خلق هغه پله متوجه شول. او عمرؓ ئې پريښو. وې وئيل اما بعد تاسو کښې چه کوم سړي ذ محمد صلي الله عليه وسلم عبادت کولو، نو محمد صلي الله عليه وسلم وفات شولو، او چا چه ذ الله عبادت کولو، نو

مِنكُمْ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْمَاتَ وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ حَيٌّ لَايَمُوْتُ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَمَامُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ اِلَى الشَّاكِرِيْنَ وَاللّٰهِ لَكَاَنَّ النَّاسَ لَمْ يَكُوْنُوْا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ حَتّٰى تَلَاهَا اَبُوْبَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَتَلَقَّاهَا مِنْهُ النَّاسُ فَلَمَّا يُسْمَعُ بَشَرٌ اِلَّا يَتْلُوْهَا.

اللّٰه ژوندے دے نه مري (نہیں مریگا) اللّٰه تعالي فرمايلي دي. وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ شاكرين پورے. په خدائے چه د دے نه مخكښې خلق گويا هډو پوهيدل نه چه اللّٰه دا آيت نازل كړے دے تردے چه ابوبكرؓ دا آيت تلاوت كړه. خلقو چه دا آيت د هغه نه واوريدلو نو پوهے شول. او بل څه به چا نه آوريدل، خو د دے آيت به ئے تلاوت كولو.

۱۱۶۴ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ اُمَّ الْعَلَاءِ امْرَاَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهُ اُقْتُسِمَ الْمُهَاجِرُوْنَ قُرْعَةً فَطَارَ لَنَا عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُوْنٍ فَاَنْزَلْنَاهُ فِيْ اَبْيَاتِنَا فَوَجِعَ وَجْعَهُ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَلَمَّا تُوُفِّيَ وَغُسِّلَ وَكُفِّنَ فِيْ اَثْوَابِهٖ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ اَبَا السَّائِبِ فَشَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَايُدْرِيْكَ اَنَّ اللّٰهَ اَكْرَمَهُ فَقُلْتُ بِاَبِيْ اَنْتَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَنْ يُكْرِمُهُ اللّٰهُ فَقَالَ اَمَّا هُوَ فَقَدْ جَاءَهُ الْيَقِيْنُ

۱۱۶۴ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. خارجه بن زيد بن ثابتؓ نه روايت كوي: د انصارو يوے ښځے اُم علاء بيان اوكۀ، هغے د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم سره بيعت كړے وو: چه مهاجرينو د انصارو د تقسيم ايسكے (قرعه) واچوو، خمونږ په حصه كښې عثمان بن مظعون راغے. نو مونږ هغه خپل كور كښې كوز كړلو، او هغه ناروغه شو، چه هغے كښې وفات شو، وفات نه پس چه او لامبولے شو او پخپلو كپړو كښې كفن كړے شو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم تشريف راوړلو. ما اووے، اے ابوالسائب، په تا دے د اللّٰه رحمت وي. ستا متعلق څما شهادت دے، چه اللّٰه تۀ معزز كړے ئے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، تاته دا څۀ څيز اوښودل چه هغه اللّٰه معزز كړيدے. ما اووے يا رسول اللّٰه، څما مور پلار دے په تا قربان وي. بيا څوک دے چه اللّٰه به ئے معزز جوړ كړي، حضورؐ او فرمائيل، په هغه مرګ راغلے دے، په خدائے چه، زۀ د هغۀ د خير اُميدوار يم. په خدائے چه زۀ يقين سره نشم

وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَرْجُوْلَهُ الْخَيْرَوَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ وَاَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَايُفْعَلُ بِيْ قَالَتْ فَوَاللّٰهِ لَا اُزَكِّيْ اَحَدًا بَعْدَهٗ اَبَدًا.

ونيلے' حالانكه زهٔ دَ اللّٰه رسول يم چه ماسره به څهٔ كولے شي. ام علاء اووے په خدائے چه دَ دے نه پس به زهٔ دَ هيچا متعلق دَ پاک كيدو شهادت نه وركوم.

١١٦٥ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُبْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ مِثْلَهٗ وَقَالَ نَافِعُ بْنُ يَزِيْدَ عَنْ عُقَيْلٍ مَّايُفْعَلُ بِهٖ وَ تَابَعَهٗ شُعَيْبٌ وَّعَمْرُوبْنُ دِيْنَارٍ وَّ مَعْمَرٌ.

١١٦٥ : سعيد بن عفير اووے' ماته ليث دَ دے په مثل روايت اوكهٔ' او نافع بن يزيد دَ عقيل نه روايت كوي' چه حضورؐ او فرمائيل' ماته نهٔ ده معلومه هغه سره به څهٔ معامله كيږي. شعيب. عمرو بن دينار او معمر دَ دے متابع حديث روايت كړے دے.

١١٦٦ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَبْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قُتِلَ اَبِيْ جَعَلْتُ اَكْشِفُ الثَّوْبَ عَنْ وَجْهِهٖ اَبْكِيْ وَيَنْهَوْنِيْ عَنْهُ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايَنْهَانِيْ فَجَعَلَتْ عَمَّتِيْ فَاطِمَةُ تَبْكِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبْكِيْنَ اَوْلَا تَبْكِيْنَ مَازَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ تُظِلُّهٗ بِاَجْنِحَتِهَا حَتّٰى رَفَعْتُمُوْهُ تَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرًا رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

١١٦٦ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن منكدر نه روايت كوي' ما دَ جابر بن عبداللّٰه نه واوريدل' كوم وخت چه خما پلار قتل كړے شو' نو ما دَ هغهٔ دَ مخ نه كپړه لرے كوله او ژړل م. او خلقو زهٔ دَ دے نه منع كولم او نبي عليه السلام نه منع كولم نو خما ترور فاطمه په ژړا شوه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' كه تاسو ژاړئے يا نه ژاړے' فريښتو په خپلو وزرو په هغهٔ سورے كړے دے' تردے چه تاسو هغه اوچت كړئ. ابن جريج دَ دے مطابق حديث روايت كړے دے' چه ماته ابن منكدر بيان كړے دے' او هغهٔ دَ جابر نه (دغسے) آوريدلے دي.

باب ٧٨٧: الرَّجُلُ يَنْعٰى اِلٰى اَهْلِ الْمَيِّتِ بِنَفْسِهٖ.

باب ٧٨٧: دَ مړي كوروالوته دَ هغهٔ دَ مرګ دَ خبرو وركولو بيان.

١١٦٧ : حَدَّثَنَا حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ شِهَابٍ

١١٦٧ : اسماعيل. مالک. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. ابوهريرهؓ روايت كوي' چه

عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ خَرَجَ اِلَى الْمُصَلّٰى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ اَرْبَعًا.

رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم د نجاشي د مرګ خبر په هغه ورځ واورولو په کومه ورځ چه هغه مړ شولو. حضورؐ عیدګاه طرف ته تشریف یوړلو. د خلقو صف بندي نے اوکړه، او څلور تکبیرونه نسے اوکړل.

١١٦٨: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَاُصِيْبَ ثُمَّ اَخَذَهَا جَعْفَرٌ فَاُصِيْبَ ثُمَّ اَخَذَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَاُصِيْبَ وَاِنَّ عَيْنَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتَذْرِفَانِ ثُمَّ اَخَذَهَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ مِنْ غَيْرِ اِمْرَةٍ فَفُتِحَ لَهُ.

١١٦٨: ابو معمر. عبدالوارث. ایوب. حمید بن بلال. انس بن مالکؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، زید جنډه اوچته کړه، هغه شهید شولو، جعفر جنډه واخسته، هغه هم شهید شولو. نو عبداللّٰه بن رواحه جنډه پورته کړه، هغه هم شهید شولو، او د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم دواړو سترګو نه اوښکے بهیدلے. بیا خالد بن ولید بغیر د چا د حکم نه جنډه اوچته کړه. او د هغهٔ په لاس د جنګ میدان فتح شو.

## باب ٧٨٨: اَلْاِذْنِ بِالْجَنَازَةِ

وَقَالَ اَبُوْرَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اٰذَنْتُمُوْنِيْ.

باب ٧٨٨: د جنازے د خبر ورکولو بیان. او ابو رافع د حضرت ابوهریرهؓ نه روایت اوکه، د هغهٔ بیان دے، نبي صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل چه تاسو ولے زهٔ خبر نهٔ کړم.

١١٦٩: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْمُعَاوِيَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ مَاتَ اِنْسَانٌ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

١١٦٩: محمد. ابو معاویه. ابو اسحاق. شیباني. شعبي. ابن عباس نه روایت کوي، یو سړے چه د هغهٔ تپوس له به رسول صلي اللّٰه علیه وسلم تلو. د شپے مړ شولو، خلقو هغه د شپے دفن کهٔ. چه سحر شو، خلقو په دے رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم

يَعُوْدُهٗ فَمَاتَ بِاللَّيْلِ فَدَفَنُوْهُ لَيْلًا فَلَمَّا اَصْبَحَ اَخْبَرُوْهُ فَقَالَ مَا مَنَعَكُمْ اَنْ تُعْلِمُوْنِيْ قَالُوْا كَانَ اللَّيْلُ فَكَرِهْنَا وَكَانَتْ ظُلْمَةٌ اَنْ نَشُقَّ عَلَيْكَ فَاَتٰى قَبْرَهٗ فَصَلّٰى عَلَيْهِ.

خبر كـه. نو حضورٌ او فرمائيل' تاسو كوم څيز منع كړئے چه زۀ مو خبر نه كړم. خلقو اووے' تيارۀ شپه وه. نو مونږ ته بده ښكاره شوه' چه تاسو له تكليف دركړو' نو حضورٌ د هغۀ قبر له ورغے' او په هغه ئے مونځ اوكۀ.

باب ۷۸۹: فَضْلِ مَنْ مَّاتَ لَهٗ وَلَدٌ فَاحْتَسَبَ وَقَالَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ.

باب ۷۸۹: د هغے سړي دَ فضيلت بيان چه بچے ئے مړشي' او هغه صبر اوكړي' او اللّٰه تعالي فرمائيلي دي چه صبر ناكوته خوشخبري وركړئ.

۱۱۷۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ النَّاسِ مِنْ مُّسْلِمٍ يُّتَوَفّٰى لَهٗ ثَلَاثٌ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ اِلَّا اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهٖ اِيَّاهُمْ.

۱۱۷۰: ابومعمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسٌ نه روايت كوي نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه نشته څوك مسلمان' چه د هغۀ درے بچي مړه شي خو اللّٰه تعالي په هغے بچو دَ فضل او رحمت په سبب هغه سړے په جنت كښ داخل كړي (يعني د هغے بچو په مرګ د صبر كولو په وجه به اللّٰه تعالي هغه سړے په جنت كښ داخل كړي).

۱۱۷۱: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْاَصْبَهَانِيُّ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النِّسَآءَ قُلْنَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْعَلْ لَنَا يَوْمًا فَوَعَظَهُنَّ وَقَالَ اَيُّمَا امْرَاَةٍ مَّاتَ لَهَا ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ كَانُوْا حِجَابًا مِّنَ النَّارِ قَالَتِ امْرَاَةٌ وَّاثْنَانِ قَالَ وَاثْنَانِ وَقَالَ شَرِيْكٌ عَنِ ابْنِ الْاَصْبَهَانِيِّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْصَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَّاَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا

۱۱۷۱: مسلم. شعبه. عبدالرحمٰن بن اصبهاني. ذكوان. ابوسعيدٌ نه روايت كوي' ښځو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ته اووے' مونږ دَ پاره يوه ورځ مقرر كړئے. نو حضورٌ هغے ښځو ته نصيحت اوكۀ' او' وے فرمائيل' د كومے ښځے چه درے بچي شوے وي' نو هغوي به د جهنم د اُور نه حجاب وي. يوے ښځے اووے' او دوو بچو كښ. حضورٌ ورته او فرمائيل' او دوو بچو كښ هم. او شريك د ابن اصبهاني نه هغه د ابو صالح نه' هغه د ابو سعيد او ابوهريرهٔ نه او هغے دواړو د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ.

نه ابوهریرهؓ روایت .. او کړه' چه لا بالغ شوي نه وي.

**۱۱۷۲ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِؒ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمُوْتُ لِمُسْلِمٍ ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ فَيَلِجَ النَّارَ اِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا.**

**۱۱۷۲ :** علي. سفیان. زهري. سعید بن مسیب. ابوهریرهؓ نه ار هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کو .' حضورؐ او فرمائیل' چه نه مري د یو مسلمان درې بچي' خو هغه اور کښې صرف د قسم پوره کولو د پاره داخلیږي. ابو عبدالله بیان اوکړه' و ان منکم الا واردها' او نه دې تاسو کښې هیڅوک خو دې کښې ورتلونکې دې جهنم پورې ما.

۱. د نابالغ اولاد په وفات که چرې مور پلار صبر اوکړي. نو د هغې ثواب الله تعالی ورکوي. قدرتي طور باندې د اولاد وفات ډېره لويه حادثه ده. ددې وجې نه که څوک صبر اوکړي چه دا الله تعالی راکړې وو هغه واپس واخست' نو هغه ته به ددې ثواب ډېر زیات ورکیږي. او د هغه ګناهونه به معاف شي. او آخرت کښې به جنت ته داخل شي. د حدیث شریف آخر کښې دا ښودلې شوې دی چه هر مسلمان به په دوزخ تیریږي خو چه کوم مسلمان د دوزخ حقدار نه وي د هغه تیریدل به داسې وي چه قسم پوره شي. امام بخاري رحمة الله علیه په دې سلسله کښې د قرآن مجید یو آیت شریف لیکلې دې د هغې مطلب هم دا دې چه څرنګ ابراهیم علیه السلام په اور تیر شوې وو داسې رښتینې مسلمان به هم په اور تیریږي. بعضې عالمانو ددې دا مطلب بیان کړیدې چه "پل صراط" به د دوزخ د پاسه کیخو .لې شي او هر انسان به د هغې د پاسه تیریږي چه څوک نیکان وي هغه به په آسانۍ سره تیر شي. او بدعمله کافر به نشي تیریدې هغه به جهنم ته لاړ شي نو د جهنم نه د تیریدلو نه دغه مراد دې. بعضو ویلې .ي چه مؤمنانو ته به جهنم اوښودلې شي. نورو احادیثو کښې هم ددې ذکر شته او دلته ترې هم دا مراد دې. دې ځائې کښې په دې خبره هم غور پکار دې چه په حدیث شریف کښې د نابالغ اولاد په مرګ د لوئې اجر وعده ده. د بالغ ذکر نشته. حال دادې چه د بالغ او د ځوان اولاد د مرګ حادثه ډېره لويه ده ددې وجه دا ده چه نابالغ اولاد به د مور پلار الله تعالی سره سفارش کوي. بعضې روایاتو کښې د یو بچي په مرګ هم داوعده موجوده ده. خو پورې چه د صبر د ثواب تعلق دې نو هغه به د بالغ په مرګ هم ورکیږي.

## بَابٌ ۷۹۰: قَوْلِ الرَّجُلِ لِلْمَرْاَةِ عِنْدَ الْقَبْرِ اِصْبِرِيْ.

**باب ۷۹۰:** د چا سړي' ښځې ته قبر سره دا وئیل چه صبر کوه.

**۱۱۷۳ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ**

**۱۱۷۳ :** آدم. شعبه. ثابت. انس بن مالکؓ نه روایت کوي' هغه وائي' نبي

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ مَرَّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ عِنْدَ قَبْرٍ وَّهِيَ تَبْكِيُ فَقَالَ اتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِيُ.

صلی اللّٰه علیه وسلم دَ یوې ښځې خوا کښې تیریدلو، چه قبر سره ئې ژړل، حضورؐ ورته او فرمائیل، اللّٰه نه او یریږه او صبر کوه.

باب ۱۹۷: غُسْلِ الْمَيِّتِ وَوُضُوْئُهُ بِالْمَآءِ وَالسِّدْرِ وَحَنَّطَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ابْنًا لِسَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ وَّحَمَلَهُ وَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا الْمُسْلِمُ لَايَنْجِسُ حَيًّاوَّ لَامَيِّتًا وَّقَالَ سَعِيْدٌ لَّوْ كَانَ نَجَسًا مَّا مَسَسْتُهُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُ لَايَنْجِسُ.

باب ۱۹۷: مړي لـه اوبو او دَ بيرې پاڼړو سره دَ غسل ورکولو بيان. او ابن عمرؓ دَ سعيد بن زيد ځوئ ته خوشبوئ اولږوله او هغه ئې اوچت کړ. او مونځ ئې اوکړ، او اودس ئې اونهٔ کړ. او ابن عباسؓ او فرمائيل، چه مسلمان نهٔ ژوند کښې او نهٔ د مرګ نه پس پليد وي. او سعيد اووې، که پليد وې، نو ما به لاس نه وروړلې. نبي صلی اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي، چه مؤمن پليت (نجس) نه وي[۱].

۱. د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا مقصد دې چه مړې پليت نه وي. او هغه ته غسل د عبادت او د صفائي په خاطر ورکولې شي. د ابو هريره رضي اللّٰه عنه يو روايت دې چه مړي ته غسل ورکونکې به د غسل ورکولو نه پس پخپله غسل کوي. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه وائي چه دغه حديث صحيح نه دې. د غسل نه په دغه روايت کښې اودس کول مطلب اخستل هم غلطه خبره ده.

۱۱۷۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيُ مَالِكٌ عَنْ اَيُّوْبَ السُّخْتِيَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ الْاَنْصَارِيَّةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ تُوَفِّيَتِ ابْنَتُهُ فَقَالَ اِغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا اَوْخَمْسًا اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ اِنْ رَاَيْتُنَّ ذٰلِكَ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ وَّاجْعَلْنَ فِي الْاٰخِرَةِ كَافُوْرًا اَوْشَيْئًا مِّنْ كَافُوْرٍ

۱۱۷۴: اسماعيل بن عبداللّٰه. مالک. ايوب سختياني. اُم عطيه انصاريهؓ نه روايت کوي، دَ هغې بيان دې، مونږ پله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم تشريف راوړلو، کوم وخت چه دَ حضورؐ لور وفات شوله، او، وې فرمائيل چه درې خله، يا پنځه خله يا، دَ دې نه زيات خله غسل ورکړې. که تاسو دَ دې ضرورت ګنړئې، نو اوبو او دَ بيرې پاڼړو سره غسل ورکړئې. او آخر کښې ورسره کافور يو څائې کړئې. کوم وخت چه فارغ شئې، نو مونږ خبر کړئې، څه وخت چه موږ اُوزګار (فارغ) شو،

فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَاذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغْنَا اٰذَنَّاهُ فَاَعْطَانَا حِقْوَهُ فَقَالَ اَشْعِرْنَهَا إِيَّاهَا يَعْنِي إِزَارَهُ.

نو حضورﷺ ته مو اطلاع ورکړله. حضورﷺ مونږ ته خپل ته بند راکړلو، چه دا ورله جسم سره يوځائے کړئے، يعني لنګ ترے جوړ کړئے.

## بَـاب ۷۹۲: مَـا يُسْتَحَبُّ اَنْ يُغْسَلَ وِتْرًا.

## باب ۷۹۲: طاق (ناتکے) خله غسل ورکول مستحب دي.

۱۱۷۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَغْسِلُ ابْنَتَهُ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا اَوْ خَمْسًا اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ وَّاجْعَلْنَ فِي الْاٰخِرَةِ كَافُوْرًا فَاِذَا فَرَغْتُنَّ فَاٰذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغْنَا اٰذَنَّاهُ فَاَلْقٰى اِلَيْنَا حِقْوَهُ فَقَالَ اَشْعِرْنَهَا اِيَّاهُ فَقَالَ اَيُّوْبُ وَحَدَّثَتْنِيْ حَفْصَةُ بِمِثْلِ حَدِيْثِ مُحَمَّدٍ وَّكَانَ فِيْ حَدِيْثِ حَفْصَةَ اِغْسِلْنَهَا وِتْرًا وَّكَانَ فِيْهِ ثَلَاثًا اَوْ خَمْسًا اَوْ سَبْعًا وَكَانَ فِيْهِ اَنَّهُ قَالَ ابْدَاُوْا بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوْءِ مِنْهَا وَكَانَ فِيْهِ اَنَّ اُمَّ عَطِيَّةَ قَالَتْ وَمَشَطْنَا هَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ.

۱۱۷۵: محمد. عبدالوهاب ثقفي. ايوب. محمد. اُم عطيهؓ نه روايت کوي، هغے اووے، مونږ پله رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو، او مونږ د حضورﷺ لور مبارکے له غسل ورکولو، حضورﷺ او فرمائيل دے له درے خله يا پنځه خله يا د دے نه زيات خله اوبو او د بيرے پانړو سره غسل ورکړئے. او آخر کښې ورسره کافور يوځائے کړئے. کوم وخت چه تاسو فارغ شئے، نو مونږ خبر کړئے. مونږ چه فارغ شو، نو حضورﷺ ته مو اطلاع ورکړه. حضور مونږ له خپل ته بند راکړلو، او، وے فرمائيل، چه دا ورله لنګ کړئے. او ايوب بيان اوکه، چه ماته حفصےؓ د محمد د حديث په مثل روايت که، او د بي بي حفصے په حديث کښې راځي، چه هغے له طاق خله غسل ورکړئ، او هغے کښې دا هم وو، چه درے خله يا پنځه خله يا اوه خله غسل ورکړئے. او دا هم وو، چه حضورﷺ او فرمائيل، د ښي طرف نه او د اودس د مقاماتو نه ئے شروع اوکړئے. او هغے کښې دا هم وو چه اُم عطيه اوويل چه مونږ ګومنز کړل، او د هغے ويښته مو درے حصو کښې تقسيم[۱] کړل.

۱. د احنافو په مسلک کښې منګزه ول روا نه دي د حضرت عائشه رضي الله عنها په يو روايت کښې د دے نه منعه موجوده ده. بل دلته د منګزولو حديث مرفوع هم نه دے. دا هم ويلے شويدي. چه دلته کښې د مشطنا، خپله حقيقي معني مراده نه ده بلکے په لاسو ويښته برابره ول دي. اګرچه عبارت کښې د دے ګنجائش کم دے خو چه کله مرفوع حديث شته دے نو په هغے به عمل کيږي.

## بَـاب ۷۹۳: يُبْدَاُ بِمَيَامِنِ

## باب ۷۹۳: مړي لـه د ښـي طرف نـه د غسل

الْمَيِّتِ.

ورکولو بیان.

۱۱۷۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غُسْلِ ابْنَتِهِ ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا.

۱۱۷۶ : علي بن عبدالله. اسماعیل بن ابراهیم. خالد. حفصه بنت سیرین. ام عطیهٔ نه روایت کوي. ام عطیے اووے: رسول الله صلي الله علیه وسلم لور د غسل متعلق او فرمانیل: چه د دے د ښي او د اودس د خایونو نه شروع اوکړئے.

باب ۷۹۴: مَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنَ الْمَيِّتِ.

باب ۷۹۴: ذ مړي د اودس د خایونو نه د شروع کولو بیان.

۱۱۷۷ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانُ عَنْ خَالِدِ الْحَذَّاءِ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا غَسَلْنَا بِنْتَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَنَحْنُ نَغْسِلُهَا ابْدَأُوا بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ.

۱۱۷۷ : یحیی بن موسی. وکیع. سفیان. خالد حذاء. حفصه بنت سیرین. ام عطیهٔ نه روایت کوي: ام عطیے اووے. کوم وخت چه مونږ د نبي صلے الله علیه وسلم لور له دَ غسل ورکولو اراده اوکړله، نو دَ غسل ورکولو په وخت نبي صلے الله علیه وسلم مونږ ته او فرمانیل، چه دَ دے د ښي طرف او د اودس دَ خایونو نه شروع او کړئے.

باب ۷۹۵: هَلْ تُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِي إِزَارِ الرَّجُلِ.

باب ۷۹۵: آیا ښځے ته دَ سړي دَ تِه بند کفن اغوستولے شي.

۱۱۷۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ حَمَّادٍ أَخْبَرَنَا ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ تُوُفِّيَتْ بِنْتُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَنَا اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَنَزَعَ مِنْ

۱۱۷۸ : عبدالرحمٰن بن حماد. ابن عون. محمد. ام عطیهٔ نه روایت کوي. ام عطیے بیان اوکه چه دَ نبي صلي الله علیه وسلم لور وفات شوه، نو حضور مونږ ته او فرمانیل: چه دے له درے خله یا پنځه خله غسل ورکړے: یا که ضرورت وي، نو د دے نه زیات خله غسل ورکړے: چه غسل ورکړئے نو مونږ خبر کړئے: کوم وخت چه فارغ شو. حضور ته مو اطلاع ورکړه، نو حضور خپل ته بند د ملا، نه پرانستلو، او ورے

حِقْوِهِ اِزَارَهُ وَ قَالَ اَشْعِرْ نَهَا اِيَّاهُ.

فرمائيل چه دا د هغې جسم سره يو ځائے کړئے.

**بَاب ٧٩٦: يَجْعَلُ الْكَافُوْرَ فِيْ اٰخِرِهٖ.**

**باب ٧٩٦:** آخر کښې د کافورو يو ځائے کولو بيان.

**١١٧٩:** حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ تُوُفِّيَتْ اِحْدٰى بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا اَوْخَمْسًا اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ اِنْ رَاَيْتُنَّ بِمَاءٍ وَّسِدْرٍ وَّاجْعَلْنَ فِي الْاٰخِرَةِ كَافُوْرًا اَوْشَيْئًا مِنْ كَافُوْرٍ فَاِذَا فَرَغْتُنَّ فَاٰذِنَّنِيْ قَالَتْ فَلَمَّا فَرَغْنَا اٰذَنَّاهُ فَاَلْقٰى اِلَيْنَا حِقْوَهُ فَقَالَ اَشْعِرْ نَهَا اِيَّاهُ وَعَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بِنَحْوِهٖ وَقَالَتْ اِنَّهُ قَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا اَوْخَمْسًا اَوْسَبْعًا اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ اِنْ رَاَيْتُنَّ قَالَتْ حَفْصَةُ قَالَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَجَعَلْنَا رَاْسَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ.

**١١٧٩:** حامد بن عمر. حماد بن زيد. محمد. اُم عطيهؓ نه روايت کوي. د اُم عطيےؓ بيان دے. د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم يوه لور وفات شوه. نو حضورؐ راووتلو. او وے فرمائيل. دے لـه درے يا پنځه خله يا د دے نه زيات اوبـو او د بيرے پانړو سره غسل ورکړئے. که تاسو د دے ضرورت ګنړئے، او آخر کښې ورسره کافور يوځائے کړی يا دائے او فرمائيل چه څۀ کافور ورسره يوځائے کړئے. او کله چه فارغې شئ، نو مونږ خبر کړئے. څه وخت چه مونږ فارغے شو، حضورؐ مو خبر کړلو. نو حضورؐ مونږ له خپل تهٔ بند راکړلو، او وے فرمائيل، چه دا د هغې بدن سره يو ځائے کړئے. او په سند د ايوب. حفصے. اُم عطيهؓ نه دغسے روايت دے. اُم عطيهؓ وائي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل. دے له درے يا پنځه خله يا که ضرورت ګنړئے، نو د دے نه زيات خله غسل ورکړئے. د حفصےؒ بيان دے، اُم عطيےؓ اووے، او مونږ د سر ويښته درے حصو کښې تقسيم کړل.

**بَاب ٧٩٧: نَقْضِ شَعْرِ الْمَرْاَةِ** وَقَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ لَابَاْسَ اَنْ يُّنْقَضَ شَعْرُ الْمَيِّتِ.

**باب ٧٩٧:** د ښځے د ويښتو د پرانستلو بيان

ابن سيرين وائي، د مړي ويښته پرانستو کښې څۀ حرج نشته.

**١١٨٠:** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَيُّوْبُ وَسَمِعْتُ حَفْصَةَ بِنْتَ سِيْرِيْنَ قَالَ حَدَّثَنَا اُمُّ عَطِيَّةَ رَضِيَ

**١١٨٠:** احمد. عبداللّٰه بن وهب. ابن جريج. ايوب. حفصه بنت سيرين. اُم عطيهؓ نه روايت کوي. هغے اووے (هغے غسل ورکونکو ښځو) د رسول اللّٰه صلے

اَللّٰهُ عَنُهَا اَنَّهُنَّ جَعَلُنَ رَأْسَ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ نَقَضْنَهُ ثُمَّ غَسَلْنَهُ ثُمَّ جَعَلْنَهُ ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ.

اللّٰه عليه وسلم ذ لور ذ سر ويښتۀ درې حصې كړل. هغه نې پرانستل، بيائے اووينزل، بيائے درې حصو كښې تقسيم كړل.

**باب ۷۹۸: كَيْفَ الْاِشْعَارُ لِلْمَيِّتِ قَالَ الْحَسَنُ الْخِرْقَةُ الْخَامِسَةُ تُشَدُّ بِهِمَا الْفَخِذَيْنِ وَالْوَرِكَيْنِ تَحْتَ الدِّرْعِ.**

**باب ۷۹۸: ذ مړي كفن څنګه پكار دې.** او حسن وائي چه پنځمې كپړې سره دې دواړو ورونړو نه او دواړه تـوتـي او تـړلـې شـي، دا شـان چـه ذ قميص لاندې راشي.

۱۱۸۱ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَنَّ اَيُّوْبَ اَخْبَرَهُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ سِيْرِيْنَ يَقُوْلُ جَاءَ تْ اُمُّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا امْرَأَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ مِنَ اللَّاتِيْ بَايَعْنَ قَدِمَتِ الْبَصْرَةَ تَبَادَرُ ابْنًا لَهَا فَلَمْ تُدْرِكْهُ فَحَدَّثَتْنَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَغْسِلُ ابْنَتَهُ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا اَوْ خَمْسًا اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ اِنْ رَاَيْتُنَّ ذٰلِكَ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ وَّاجْعَلْنَ فِي الْاٰخِرَةِ كَافُوْرًا فَاِذَا فَرَغْتُنَّ فَاٰذِنَّنِيْ قَالَتْ فَلَمَّا فَرَغْنَا اَلْقٰى اِلَيْنَا حِقْوَهُ فَقَالَ اَشْعِرْنَهَا اِيَّاهُ وَلَمْ يَزِدْ عَلٰى ذٰلِكَ وَلَا اَدْرِيْ اَيُّ بَنَاتِهٖ وَزَعَمَ اَنَّ الْاِشْعَارَ لَفِفْنَهَا فِيْهِ وَكَذٰلِكَ كَانَ ابْنُ سِيْرِيْنَ يَاْمُرُ بِالْمَرْاَةِ اَنْ تُشْعَرَوَ لَا تُوْزَرَ.

۱۱۸۱ : احمد. عبداللّٰه بن وهب. ابن جريج. ايوب نه روايت كوي. ايوب ذ ابن سيرين نه واوريدل، چه اُم عطيه (ذ انصارو د ښځو نه يو ښځه، چه هغې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه بيعت كړې وو) بصرې ته راغلهٔ، چه خپل خوئے اووينـي، نو هغه ئې بيانه موند. او هغې مونږ ته حديث بيان كړ، وې وئيل، چه مونږ پـلـه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم تشريف راوړلو. او مونږ ذ حضورﷺ لور له غسل وركولو، نو حضورﷺ او فرمائيل، چه دې له درې يا پنځه خله يا كه ضرورت وي نو ذ دې نه زيات خله اوبو او ذ بيرې پاڼړو سره غسل وركړې او آخر كښې ورسره كافور يوځائے كړئې. كوم وخت چه اُوزګارې (فارغې) شئې، نو مونږ خبر كړې. هغوئ اووې، كوم وخت چه مونږ اُوزګارې شو، نو حضورﷺ مونږ ته ته بند راوغرځولو، او، وې فرمائيل، چه دا ذ هغې جسم سره يو ځائے كړئې، او د دې نه ئې څه زيات اُونهٔ فرمائيل. او ماته ياد نه دي چه دا د حضورﷺ كومه لور وه، او، وئيلې، ذ اشعار نه مراد ذ هغې پټول دي. دغه شان ابن سيرين به ښځې له حكم وركولو، چه كپړه كښې دې اونغښتلې شي، او ته بند دې ورته تړلې شي.

**باب ۷۹۹: هَلْ يَجْعَلُ شَعْرًا**

**باب ۷۹۹: آيا ذ ښځې ويښتهٔ دې درې حصو**

لْمَرْأَةِ ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ.

كښې تقسيم كړے شي.

۱۱۸۲ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أُمِّ الْهُذَيْلِ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ ضَفَرْنَا شَعْرَ بِنْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِيْ ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ وَقَالَ وَكِيْعٌ قَالَ سُفْيَانُ نَاصِيَتَهَا وَقَرْنَيْهَا.

۱۱۸۲ : قبيصه. سفيان. هشام. ام هذيل. ام عطيهؓ نه روايت كوي. ام عطيهؓ اووے چه مونږ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د لور ويښتهٔ درے حصو كښې تقسيم كړل او د وكيع بيان دے، سفيان اووے چه يوه حصه د تندي د ويښتو او دوه حصے ئے د دواړو طرفونو د ويښتو كړے۱.

۱ . د احنافو په نزد ويښته دوه حصے كول غوره دي. د هغې طريقه مشهوره ده. د امام شافعي رحمة اللّٰه عليه په نزد دا طريقه غوره ده چه كومه حديث شريف كښې ده. په احاديثو كښې دواړه طريقے ذكر دي. اختلاف صرف په غوره والي كښې دے.

باب ۸۰۰ : يُلْقٰى شَعْرُ الْمَرْأَةِ خَلْفَهَا.

باب ۸۰۰ : دَ ښځو ويښتهٔ دِے دَ هغوئ په شا طرف واچولے شي.

۱۱۸۳ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانٍ قَالَ حَدَّثَتْنَا حَفْصَةُ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَتْ إِحْدٰى بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا بِالسِّدْرِ وِتْرًا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذٰلِكَ وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُوْرًا أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُوْرٍ فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِيْ فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَأَلْقٰى إِلَيْنَا حِقْوَهُ فَضَفَرْنَا شَعْرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ وَأَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا.

۱۱۸۳ : مسدد. يحيي بن سعيد. هشام بن حسان. حفصه. ام عطيهؓ نه روايت كوي، ام عطيهؓ اووے، د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم يوه لور وفات شوه نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم مونږ پله تشريف راوړلو او، وے فرمائيل، چه دے له دَ بيرو پانړو سره ناتكے (طاق) ځله غسل وركړئ، كه درے ځله وي يا پنځه ځله وي يا كه ضرورت وي نو دَ دے نه زيات ځله غسل وركړئ. او آخر ځل كښې ورسره كافور يو څائے كړئ. او كله چه فارغ شئ، نو ما خبرے كړئ. كوم وخت چه مونږ فارغ شو، حضورؐ ته مو اطلاع وركړله، نو حضورؐ مونږ ته خپل تهٔ بند راكړلو. مونږ دَ هغے دَ سر ويښته درے حصے كړل او دَ هغے شا طرف ته مو واچول.

باب ۸۰۱ : الثِّيَابِ الْبِيْضِ

باب ۸۰۱ : دَ كفن دَ پاره دَ سپينو كپړو

لِلْكَفَنِ.

بیان.

۱۱۸۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِيْ ثَلَاثَةِ اَثْوَابٍ يَمَانِيَةٍ بِيْضٍ سَحُوْلِيَّةٍ مِّنْ كُرْسُفٍ لَيْسَ فِيْهِنَّ قَمِيْصٌ وَّلَاعِمَامَةٌ.

۱۱۸۴ : محمد بن مقاتل. عبدالله. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي، ذ هغې بیان دې، چه رسول الله صلې الله علیه وسلم ته ذ سوت، په اودلې سحولي (ذ یو ځائې نوم) درې کپړو کښې کفن ورکړې شوې وو. هغې کښې نه قمیص وو، او نهٔ پټکې.

باب ۸۰۲: اَلْكَفَنِ فِيْ ثَوْبَيْنِ.

باب ۸۰۲: دوه کپړه کښې ذ کفن کولو بیان.

۱۱۸۵ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ اِذْوَقَعَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ فَوَقَصَتْهُ اَوْ قَالَ فَاَوْقَصَتْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ وَّ كَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ وَلَا تُخَمِّرُوْا رَاْسَهٗ فَاِنَّهٗ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا.

۱۱۸۵ : ابوالنعمان. حماد. ایوب. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، چه یو سړې عرفه کښې ایسار شوې وو. ذ خپلې سورلۍ نه اوغرځیدلو نو هغې هغه چیخنړې که، نو رسول الله صلې اسه علیه وسلم او فرمائیل، دهٔ له اوبو او ذ بیرې پانړو سره غسل ورکړئې. او دوو کپړو کښې ئې کفن کړې، نه پرې خوشبوئي لږوئې، او مهٔ ورله سر پټوئې، ځکه چه ذ قیامت په ورځ به دې لبیک وئیلو سرهٔ پاسیږي.

۱. د احنافو په نزد کفن درې قسمه دې (۱) سنت کفن (۲) د کافي کیدو کفن (۳) د ضرورت کفن. حدیث شریف کښې چه کوم صورت بیان شویدې د کافي کیدونکي کفن دې.

باب ۸۰۳: اَلْحَنُوْطُ لِلْمَيِّتِ.

باب ۸۰۳: مړي ذ پاره ذ خوشبوئي بیان.

۱۱۸۶ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ وَّاقِفٌ مَّعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ

۱۱۸۶ : قتیبه. حماد. ایوب. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دې، چه یو سړې ذ هغهٔ اوښ چیخنړې (میده) که، داسې حال کښې چه هغه محرم وو. او مونږ خلق نبي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ اِذْ وَقَعَ مِنْ رَّاحِلَتِهٖ فَاَقْصَعَتْهُ اَوْ قَالَ فَاَوْقَصَتْهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ وَّ كَفِّنُوْهُ فِىْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ وَلَا تُخَمِّرُوْا رَاْسَهٗ فَاِنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا.

صلی اللّٰه عليه وسلم سره وو. نو نبي صلی اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، چه دهٔ له اوبو او د بيرے پانړو سره غسل ورکړئے. او دے دوو کپړو کښې کفن کړئے. مه پرے خوشبوئي لږوئے، اومه ورله سر پټوئے، ځکه چه د قيامت په ورځ به دے اللّٰه تعالٰي لبيک ويونکے پاسوي[۱].

۱. د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه دا حديث شريف د خان د پاره دليل كول صحيح نه دي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم د هغے خاص محرم د پاره دا حكم كړے وو او دا د هغه د پاره خاص حكم وو د محرم د پاره عام حكم نه وو. د احنافو په نزد مسئله داده چه د محرم كفن به د عام مړو پشان وي او خوشبوئي به ورله لګولے شي.

## بَابُ ۸۰۴: كَيْفَ يُكَفَّنُ الْمُحْرِمُ.

باب ۸۰۴: محرم له څنګه كفن وركول پكار دي.

۱۱۸۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبُوْ كَبْشَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلًا وَّقَصَهٗ بَعِيْرُهٗ وَنَحْنُ مَعَ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَقَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْسِلُوْهُ بِمَآءٍ وَّ سِدْرٍ وَّ كَفِّنُوْهُ فِىْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تُمَسُّوْهُ طِيْبًا وَّلَا تُخَمِّرُوْا رَاْسَهٗ فَاِنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا.

۱۱۸۷: ابوالنعمان. ابو عوانه. ابو كبشه. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه يو سړے ذ هغهٔ اوښ (ذ پښو لاندے) مړ كړهٔ، داسے حال كښې چه هغه محرم وو، او مونږ حضورؐ سره وو، نو حضورؐ او فرمائيل ده له اوبو او ذ بيرے پانړو سره غسل وركړئے. او دوه كپړو كښې كفن وركړئے. خو مه پرے خوشبوئ مږئے او مه ورله سر پټوئے، ځكه چه اللّٰه تعالٰي به دے ذ قيامت په ورځ ذ احرام په حالت كښې پاسوي.

۱۱۸۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو وَّاَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ وَكَانَ رَجُلٌ وَاقِفٌ مَّعَ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۸۸: مسدد. حماد بن زيد. عمرو. ايوب. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي چه يو سړے رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم سره عرفه كښې ايسار شوے وو، چه ذ خپلے سورلئے نه اوغرځيدلو. ايوب "فوقصته" او عمرو "فاقصعته" لفظ سره روايت كړے

وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ فَوَقَعَ عَنْ رَاحِلَتِهٖ قَالَ اَيُّوْبُ فَوَقَصَتْهُ وَقَالَ عَمْرٌو فَاَقْعَصَتْهُ فَمَاتَ فَقَالَ اغْسِلُوْهُ بِمَاءٍ وَّسِدْرٍ وَّكَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْنِ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ وَلَا تُخَمِّرُوْا رَاْسَهٗ فَاِنَّهٗ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ اَيُّوْبُ يُلَبِّيْ وَقَالَ عَمْرٌو مُلَبِّيًا.

دے او هغه ئے چیخنړے کۀ. نو مړ شولو. حضورؐ او فرمائیل چه دۀ له اوبو او دَ بیرے پانړو سره غسل ورکړئے. او دوه کپړو کښې ئے کفن کړئے. او مۀ پړے خوشبوئ لړونئے او مۀ ورله سر پټوئے، ځکه چه اللّٰه تعالٰي به دَ قیامت په ورځ دے پاسوي، داسے حال کښې چه لبیک به وائي.

باب ۸۰۵: اَلْكَفَنِ فِي الْقَمِيْصِ الَّذِيْ يُكَفُّ اَوْلَا يُكَفُّ وَمَنْ كُفِّنَ بِغَيْرِ قَمِيْصٍ.

باب ۸۰۵: گنډلے یا نا گنډلے قمیص کښې دَ کفن کولو بیان.

۱۱۸۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ اُبَيٍّ لَمَّا تُوُفِّيَ جَاءَ ابْنُهٗ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطِنِيْ قَمِيْصَكَ اُكَفِّنْهُ فِيْهِ وَصَلِّ عَلَيْهِ وَاسْتَغْفِرْ لَهٗ فَاَعْطَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَمِيْصَهٗ فَقَالَ اٰذِنِّيْ اُصَلِّيْ عَلَيْهِ فَاٰذَنَهٗ فَلَمَّا اَرَادَ اَنْ يُّصَلِّيَ عَلَيْهِ جَذَبَهٗ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ اَلَيْسَ اللّٰهُ نَهَاكَ اَنْ تُصَلِّيَ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ فَقَالَ اَنَا بَيْنَ خِيَرَتَيْنِ قَالَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ فَصَلّٰى عَلَيْهِ فَنَزَلَتْ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ

۱۱۸۹: مسدد. يحيٰي بن سعيد. عبيداللّٰه. نافع ابن عمرؓ نه روايت کوي. چه کوم وخت عبداللّٰه بن ابي مړ شو، نو دَ هغۀ ځوئے رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم له راغے، او عرض ئے اوکۀ، يا رسول اللّٰه، خپل قميص راپيزو کړئے، چه دے نه ورله کفن جوړ کړو، او تاسوؐ په هغۀ مونځ اوکړئے او هغۀ دَ پاره دَ بښنے دُعا اوکړئے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ورته خپل قميص ورکړلو، او، وے فرمائيل. ما خبر کړئے زۀ به پړے مونځ اوکړم. کوم وخت چه حضورؐ په هغۀ دَ مونځ کولو اراده اوکړله، نو عمرؓ حضورؐ راښکلو، او وے وئيل، چه اللّٰه تعالٰي تاسو په منافقانو دَ مونځ کولو نه منع کړے نه ئے. حضورؐ ورته او فرمائيل، ماته دَ دوارو خبرو اختيار راکړے شوے دے (اللّٰه پاک فرمائيلي دي) که تۀ دوئ دَ پاره دَ بښنے دُعا کوے يا نۀ کوے، او که تۀ دوي دَ پاره اويا (۷۰) خله هم دَ بښنے دُعا اوغواړے، نو بيا به هم اللّٰه تعالٰي دوئ، او، نه بښي، نو حضورؐ په هغۀ مونځ اوکړلو، نو دا آيت نازل شو، دوئ کښې په هيچا هيڅ کله مونځ مۀ کوه، کوم

مَاتَ اَبَدًا.

وخت چه مړ شي.

۱۱۹۰ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ وَاَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ اُبَيّ بَعْدَ مَادُفِنَ فَاَخْرَجَهُ فَنَفَثَ فِيْ فِيْهِ مِنْ رِّيْقِهٖ وَاَلْبَسَهُ قَمِيْصَهُ.

۱۱۹۰ : مالک بن اسماعیل. ابن عیینه. عمرو. جابرؓ نه روایت کوي، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم عبداللّٰه ابن اُبي له ذ هغه ذ دفن کولو نه پس راورسیدلو هغه نې راوبنکلو، او ذ خپلې مبارکې لاړې (لعاب) نې ذ هغه په خوله کښې واچولې، او خپل قمیص نې هغه ته واغستلو.

باب ۸۰۶: اَلْكَفَنِ بِغَيْرِ قَمِيْصٍ.

باب ۸۰۶: بې قمیصه ذ کفن کولو بیان.

۱۱۹۱ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نَعِيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ كُفِّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ثَلَاثَةِ اَثْوَابٍ سَحُوْلٍ كُرْسُفٍ لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَلَا عِمَامَةٌ.

۱۱۹۱ : ابونعیم. سفیان. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روایت کوي، ذ هغې بیان دې، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلم د سوت جوړې شوې سحولي کپړو کښې کفن کړې شو. هغې کښې نه قمیص وو، او نه پټکې و[1].

[1] ابو داود شریف کښې د عبداللّٰه بن عباس رضي الله عنهما روایت موجود دې. چه د نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلم کفن کښې درې کپړې وې او په هغه دریو کښې د هغوئ، هغه قمیص مبارک وو چه کوم کښې وفات شوې وو په کوم روایتونو کښې چه د قمیص د نیشتوالي بیان دې د هغې نه مراد ګنډلې شوې قمیص دې د فقهاؤ په اصطلاح د کفن د قمیص بله معني ده (بل مطلب ئې دې) دا قمیص یو څادر وي چه څرې کړې شي او د هغې څه حده پورې شکل و صورت بدل وي د رسول الله صلي الله علیه وسلم د کفن په حقله ممکنه ده چه د راویانو بیان کښې فرق وي. په حقیقت کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلم په کفن کښې قمیص هم وؤ پټکې نه وو. ددې وجې نه په کفن کښې پټکې نه کول بهتر دي. د احنافو په نزد، شریفانو، عزتمندو او عالمانو د پاره پټکې په کفن کښې کول روا دي.

۱۱۹۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ

۱۱۹۲ : مسدد. یحیي. هشام. ذ خپل پلار نه او هغه ذ بي بي عائشې نه روایت کوي، چه رسول اللّٰه صلې اللّٰه علیه

اللّٰهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِيْ ثَلَاثَةِ اَثْوَابٍ لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَّلَاعِمَامَةٌ.

وسلم درې كپړو كښې كفن كړې شو. هغې كښې نه قميص وو او نه پټكې.

## بَاب ٨٠٧: الْكَفَنِ وَلَا عِمَامَةٌ.

باب ٨٠٧: بې پټكي ‌ دَ كفن كولو بيان.

١١٩٣: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِيْ ثَلَاثَةِ اَثْوَابٍ بِيْضٍ سَحُوْلِيَّةٍ لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَّلَاعِمَامَةٌ.

١١٩٣: اسماعيل. مالك. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي هغه فرمائي چه رسول اللّٰه صلې اللّٰه عليه وسلم سپينو سوتي سحولي كپړو كښې كفن كړې شو. هغې كښې نه قميص وو، او نه پټكې.

## باب ٨٠٨: الْكَفَنِ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ

باب ٨٠٨: د ټول مال نه دَ كفن كولو بيان.

وَبِهٖ قَالَ عَطَآءٌ وَالزُّهْرِيُّ وَعَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ وَّقَتَادَةُ وَقَالَ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ الْحَنُوْط مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ يَبْدَاُ بِالْكَفَنِ ثُمَّ بِالدَّيْنِ ثُمَّ بِالْوَصِيَّةِ وَقَالَ سُفْيَانُ اَجْرُ الْقَبْرِ وَالْغُسْلِ هُوَ مِنَ الْكَفَنِ.

عطاء. زهري. عمرو بن دينار او قتاده دَ دې قائل دي. او عمرو بن دينار اووې، چه حنوط به دَ ټولمال نه وركيدې شي (هر كله چه دومره مال وي) او ابراهيم اووې، چه مخكښې دې كفن وركړې شي، بيا قرض. دې نه پس دې وصيت جاري كړې شي. سفيان اووې چه دَ قبر مزدوري او دَ غسل مزدوري كفن كښې شامله ده١.

ف: حنوط: يو قسم خوشبوي ده چه په مړي او كفن اچولې شي.

١. مطلب ئې دادې چه د كفن انتظام مخكښې دې كه چرې مړې قرضدار وي. نو اول دې د هغه د پاتې شوي مال نه د كفن انتظام اوكړې شي او بيا پاتې مال دې نورو ضروورياتو كښې اولګوي.

١١٩٤: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ الْمَكِّيّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اُتِيَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

١١٩٤: احمد بن محمد مكي. ابراهيم بن سعد دَ خپل پلار نه روايت كوي، عبدالرحمٰن بن عوف ته يوه ورځې طعام راوړې شو، نو وئيلې چه مصعب بن عميرؓ شهيد كړې شو. او هغه خمونږ

يَوْمًا بِطَعَامِهٖ فَقَالَ قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَ كَانَ خَيْرًا مِّنِّيْ فَلَمْ يُوْجَدْ لَهٗ مَا يُكَفَّنُ فِيْهِ اِلَّا بُرْدَةٌ وَّقُتِلَ حَمْزَةُ اَوْرَجُلٌ اٰخَرُ خَيْرٌ مِّنِّيْ فَلَمْ يُوْجَدْ لَهٗ مَا يُكَفَّنُ فِيْهِ اِلَّا بُرْدَةٌ فَقَدْ خَشِيْتُ اَنْ يَّكُوْنَ قَدْ عُجِّلَتْ لَنَا طَيِّبَاتُنَا فِيْ حَيَاتِنَا الدُّنْيَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِيْ.

نه بهتر وو. او سوا د څادر نه بل څۀ نه وو، چه د هغۀ کفن شوے وو. او حمزه شهيد کړے شو، يا يو بل سړے چه خما نه بهتر وو او سوا دَ څادر نه بل څۀ نه وو، چه د هغه کفن شوے وو، ما سره ويره ده چه مونږ ته خمونږ د نيکو بدله دنياوي ژوند کښې را کړے شوه، نو (دے سوچ سره) په ژړا شولو.

## باب ٨٠٩: اِذَا لَمْ يُوْجَدْ اِلَّا ثَوْبٌ وَّاحِدٌ.

**باب ٨٠٩:** هر کله چه دَ يوے کپړے نه سِوا بله کپړه بيانه مندے شي.

**١١٩٥:** حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اُتِيَ بِطَعَامٍ وَّكَانَ صَائِمًا فَقَالَ قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَّهُوَ خَيْرٌ مِّنِّيْ كُفِّنَ فِيْ بُرْدَةٍ اِنْ غُطِّيَ رَاْسُهٗ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَاِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَاْسُهٗ وَاُرَاهُ قَالَ وَقُتِلَ حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِّنِّيْ ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ اَوْقَالَ اُعْطِيْنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا اُعْطِيْنَا وَقَدْ خَشِيْنَا اَنْ تَكُوْنَ حَسَنَاتُنَا وَ عُجِّلَتْ لَنَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِيْ حَتّٰى تَرَكَ الطَّعَامَ.

**١١٩٥:** ابن مقاتل. عبدالله. شعبه. سعد بن ابراهيم دَ خپل پلار ابراهيم نه روايت کوي چه عبدالرحمٰن بن عوف ته ډوډئ راوړلے شوه، او دَ هغۀ روژه وه، نو وئيلے چه مصعب بن عمير شهيد شولو، او هغه خما نه بهتر وو. يو څادر کښې هغه داسے کفن کړے شو، که سر ئے ورله پټولو، نو دواړه پښے ئے څرګنديدلے، او که دواړه پښے ئے ورله پټولے، نو سر ئے څرګنديدلو او خما خيال دے، شايد دائے هم اووے، چه حمزهؓ شهيد شولو، او هغه خمونږ نه بهتر وو. بيا مونږ باندے دُنيا فراخه شوه. يا دائے اووے، چه مونږ ته دُنيا راکړے شوه. او مونږ سره خوف پيدا شو، چه خمونږ نيکي (يعني بدلے ئے) زر راکړے شوے. بيا په ژړا شولو، تردے چه ډوډئ ئے پريښوده.

## باب ٨١٠: اِذَا لَمْ يَجِدْ كَفَنًا اِلَّا مَا يُوَارِيْ رَاْسَهٗ اَوْقَدَمَيْهِ غُطِّيَ رَاْسُهٗ.

**باب ٨١٠:** که صرف دومره کفن بيامومي چه هغے سره سر يا دواړه پښے پټے کړے شي، نو دَ هغه سر دے پټ کړي.

۱۱۹۶: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ ابْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيُ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيْقٌ حَدَّثَنَا خَبَّابٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ هَاجَرُنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَلْتَمِسُ وَجُهَ اللّٰهِ فَوَقَعَ اَجُرُنَا عَلَى اللّٰهِ فَمِنَّا مَنُ مَاتَ لَمُ يَأْكُلُ مِنُ اَجْرِهٖ شَيْئًا مِنْهُمُ مُصْعَبُ بُنُ عُمَيْرٍ وَّ مِنَّا مَنُ اَيْنَعَتُ لَهُ ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ فَلَمُ نَجِدُ مَا نُكَفِّنُهُ اِلَّا بُرُدَةً اِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأُسَهُ خَرَجَتُ رِجُلَاهُ وَاِذَا غَطَّيْنَا رِجُلَيْهِ خَرَجَ رَأُسُهُ فَاَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنُ نُغَطِّيَ رَأُسَهُ وَاَنُ نَّجْعَلَ عَلٰى رِجُلَيْهِ مِنَ الْاِذُخِرِ.

۱۱۹۶: عمرو بن حفص. غیاث. حفص بن غیاث. اعمش. شقیق. حبابٌ نه روایت کوي، مونږ خلقو نبي صلي اللّٰه علیه وسلم سره هجرت او کړه. دے نه مقصد صرف د اللّٰه تعالٰي رضا وه. څمونږ اجر اللّٰه سره واجب شولو. مونږ کښې بعضے خلق داسے حالت کښې مړهٔ شو، چه دَ اجر حصه ئې اونهٔ خوړلے شوه. دوي کښې مصعب بن عمیر هم وو. او مونږ کښې بعضے خلق داسے دي، چه هغوي دَ پاره میوه پخه شوه، او خوري ئې. مصعب بن عُمیر دَ جنګ اُحد په ورځ شهید شولو، نو مونږ ته دَ هغهٔ دَ کفن دَ پاره صرف یو داسے څادر په لاس راغے، که دَ هغه سر مو پټولو، نو دواړه پښې ئې څرګندے پاتے کیدے، او که دواړه پښے مو ورله پټولے نو سر ئې څرګند پاتے کیدلو. نو نبي صلی اللّٰه علیه وسلم مونږ ته حکم راکړلو، چه سر ورله پټ کړئې او په پښو ورله اذخر (وابنه) واچوئې.

باب ۸۱۱: مَنِ اسْتَعَدَّ الْكَفَنَ فِيُ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمُ يُنْكِرُ عَلَيْهِ.

باب ۸۱۱: د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم زمانه کښې که چا کفن تیار ساتهٔ، نو نبي صلی اللّٰه علیه وسلم هغه بد نهٔ ګنړلو.

۱۱۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيُ حَازِمٍ عَنُ اَبِيُهِ عَنُ سَهُلٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِنَّ امْرَاَةً جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبُرُدَةٍ مَّنُسُوْجَةٍ فِيْهَا حَاشِيَتُهَا اَتَدُرُوْنَ مَا الْبُرُدَةُ قَالُوا الشَّمُلَةُ قَالَ نَعَمُ قَالَتُ نَسَجْتُهَا بِيَدِيَ فَجِئْتُ لِاَكُسُوَ كَهَا فَاَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۱۹۷: عبداللّٰه بن مسلمه. ابن ابي حازم دَ خپل پلار او سهلٌ نه روایت کوي، چه یوې ښځې نبي صلی اللّٰه علیه وسلم له برده راوړله چه جوړه شوې وه، او په هغې حاشیه وَه، تاسو پیژنئې چه برده څهٔ ته وائي، خلقو اووې شمله (څادر) سهل اووې او نو هغې ښځې اووې، چه دا ما پخپلو لاسو جوړه کړې ده، او دا ما دې دَ پاره راوړې ده، چه تاسو دا استعمال کړئې. نو نبي صلی اللّٰه علیه وسلم هغه برده واخسته، او حضورٌ ته د دې ضرورت هم وو. بیا حضورٌ مونږ پله تشریف راوړلو. داسے حال کښې. چه دَ هغې برده

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا إِلَيْهَا فَخَرَجَ إِلَيْنَا وَإِنَّهَا إِزَارُهُ فَحَسَّنَهَا فُلَانٌ فَقَالَ اُكْسُنِيْهَا مَا اَحْسَنَهَا قَالَ الْقَوْمُ مَا اَحْسَنْتَ لَبِسَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا اِلَيْهَا ثُمَّ سَاَلْتَهُ وَعَلِمْتَ اَنَّهُ لَايَرُدُّ قَالَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ مَا سَاَلْتُهُ لِاَلْبِسَهُ اِنَّمَا سَاَلْتُهُ لِتَكُوْنَ كَفَنِيْ قَالَ سَهْلٌ فَكَانَتْ كَفَنَهُ.

(خادر) به ئې نه بده جوړ کړې وو. د هغې ډلې سړي تعريف وکړه او ووې ويل چه حضور دا ماله راکړې دا څادر څومره ښکلې دې. خلقو ورته اووې تا ښه اونه کړل د نبي صلی الله عليه وسلم د ضرورت په حالت کښې اغوستې وو او تا ترې وغوښتو حالانکه تاته معلومه ده چه حضور د چا سوال نه رد کوي. هغه اووې په خدائې چه ما دا خادر دې د پاره نه دې غوښتلې چه جامې ترې جوړې کړم بلکه دې د پاره م غوښتلې دې چه زما کفن شي. سهل اووې هغه خادر د هغې سړي کفن شولو.

### بَاب ٨١٢: اِتِّبَاعِ النِّسَآءِ الْجَنَائِزَ.

### باب ٨١٢: ذَ ښځو جنازو پسې د تلو بيان.

١١٩٨: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اُمِّ الْهُذَيْلِ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ نُهِيْنَا عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَآئِزِ وَلَمْ يُعْزَمْ عَلَيْنَا.

١١٩٨: قبيصه بن عقبه. سفيان. خالد. اُم هذيل. اُم عطيه نه روايت کوي. اُم عطيه اووې، چه مونږ جنازو پسې د تلو نه منع کړې شو، ليکن زياته زور نه راباندې نه ده شوې شوې.

### باب ٨١٣: حَدِّ الْمَرْاَةِ عَلٰى غَيْرِ زَوْجِهَا.

### باب ٨١٣: ذَ ښځې ذَ خاوند نه علاوه په بل چا ذَ ماتم کولو بيان.

١١٩٩: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ تُوُفِّيَ ابْنٌ لِاُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ دَعَتْ بِصُفْرَةٍ فَتَمَسَّحَتْ بِهٖ وَقَالَتْ نُهِيْنَا اَنْ نُحِدَّ اَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثٍ اِلَّا بِزَوْجٍ.

١١٩٩: مسدد. بشر بن مفضل. سلمه بن علقمه. محمد بن سيرين نه روايت کوي، هغه وائي، ذَ اُم عطيه يو هلک وفات شولو، چه دريمه ورځ شوه نو خوشبوي ئې راوغوښتله، او هغه ئې په بدن اومږله. او، وې ويل، چه مونږ ذَ دې نه منع کړې شوې يُو، چه ذَ خاوند نه علاوه دې په بل چا ذَ درې ورځو نه زيات ماتم اوکړو.

١٢٠٠: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ بْنُ

١٢٠٠: حميدي. سفيان. ايوب بن موسٰي. حميد بن نافع. زينب بنت ابي سلمه

مُوْسىٰ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَتْ لَمَّا جَآءَ نَعْيُ اَبِيْ سُفْيَانَ مِنَ الشَّامِ دَعَتْ اُمُّ حَبِيْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا بِصُفْرَةٍ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ فَمَسَحَتْ عَارِضَيْهَا وَذِرَا عَيْهَا وَقَالَتْ اِنِّيْ كُنْتُ عَنْ هٰذَا لَغَنِيَّةً لَوْلَا اِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَايَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ تُحِدَّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ فَاِنَّهَا تُحِدُّ عَلَيْهِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا.

نه روايت كوي. زينب وائي چه د شام نه د ابو سفيان د مرګ خبر۱ راغلے نو اُم حبيبے رضي الله عنها په دريمه ورځ خوشبوئي راوغوښتله او هغه ئې په خپل مخ او لاسونو اومږله. او وې وئيل ما ته د دے ضرورت نه وو. که ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه دا نه وې آوريدلے چه په الله تعالىٰ او د قيامت په ورځ ايمان لرونکے هيڅ ښځے له جائز نه دي چه سوا د خپل خاوند نه په بل مړي د درے ورځو نه زيات ماتم اوکړي. صرف د خاوند په مرګ دے څلور مياشتے او لس ورځے د غم اظهار کوي.

۱ . د نورو رواياتونه په يقيني ډول ثابته ده چه ابوسفيان رضي الله عنه په شام کښې وفات شوے نه وو بلکے مدينه منوره کښې وفات شوے وو. خو د اُم حبيبه رضي الله عنها رور يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنه په شام کښې وفات شوے وو او کله چه د هغه د مرګ خبر د شام نه مدينے منورے ته رارسيده. نو د هغه درے ورځے غم شوے وو. حافظ ابن حجر رحمة الله عليه د مختلفو رواياتو په رڼا کښې ليکلي دي. چه پدے روايت کښې د شام نه د ابو سفيان رضي الله عنه د مرګ خبر په هيره (سهو) سره شويدے ځکه چه په نورو رواياتو ددے حديث کښې د شام ذکر نشته او کله چه دا پوره ثابته ده چه ابو سفيان رضي الله عنه مدينه منوره کښې وفات شوے وو نو دے روايت کښې د "شام لفظ (سهو) هيرے سره دے دويمه واقعه داده چه د يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنه د مرګ خبر د شام نه راغلے وو په هغے کښې درے ورځے ام حبيبه رضي الله عنها غم کړے وو. دا دواړه جدا جدا واقعات دي. او په دواړو واقعاتو کښې څمونږ مور بي بي اُم حبيبه رضي الله عنها د درے ورځونه روستو خوشبوئي لګولے وه.

۱۲۰۱ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِ و بْنِ حَزْمٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ قَالَتْ دَخَلْتُ عَلٰى اُمِّ حَبِيْبَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ

۱۲۰۱ : اسماعيل. مالک. عبدالله بن ابي بكر. محمد بن عمرو بن حزم. حميد بن نافع. زينب بنت ابي سلمه نه روايت كوي. زينب اووے، چه زهٔ د نبي صلعم ښځه، اُم حبيبهؓ له ورغلم، نو هغے اووے ما د رسول الله صلے الله عليه وسلم نه آوريدلے دي، هيڅ يوے ښځے له چه په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، جائز نهٔ دي، چه په يو مړي د درے ورځو نه زيات خفگان

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يُحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُوْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ تُحِدُّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا ثُمَّ دَخَلْتُ عَلٰى زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ حِيْنَ تُوُفِّيَ اَخُوْهَا فَدَعَتْ بِطِيْبٍ فَمَسَّتْ ثُمَّ قَالَتْ مَالِي بِالطِّيْبِ مِنْ حَاجَةٍ غَيْرَ اَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُوْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ تُحِدُّ عَلٰى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا.

اوكړي، سوا د خپل خاوند نه، چه د هغه په مرګ به څلور مياشتے او لس ورځے غم كوي. بيا زهٔ زينب بنت حجش له ورغلم چه د هغے ورور مړ شوے وو نو هغے خوشبوئي راوغوښتله. هغے ئے اومږله. بيائے اووے. ما ته د خوشبوئي ضرورت نه وو، خو ما دَ رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم نه په منبر آوريدلے دي، چه اللّٰه او د قيامت په ورځ ايمان لرونكے هيڅ ښځے دَ پاره حلال نه دي چه د درے ورځو نه زيات په يو مړي خفګان اوكړي. خو خپل خاوند باندے به څلور مياشتے او لس ورځے خفګان كوي۱.

۱ . په دے كښ د زنانه ؤ د تعلق څومره اهميت او پاكوالے دے. اسلام كښ رسمونه رواجونه په عام حالاتو كښ ضروري نه دي. ليكن د ښځے د خپل خاوند په مرګ باندے ماتم، او غم ضروري ګڼړي ځكه چه په دے كښ د ښځے د وفادارئ د خاوند سره تعلق، ددے رشتے د مضبوطيا او د پاكوالي مظاهره مقصود ده. كوم چه اسلام ئے غواړي د عربو د جاهليت په زمانه كښ د ماتم ډيرے طريقے په رواج كښ وے او بعضے د ډير تكليف وے. اسلام د ماتم د پاره اندازه مقرر كړه چه ښځه به د خاوند په مرګ، څلور مياشتے لس ورځے غم كوي. په دے اوږده موده كښ به غم داسے ښكاره كوي. چه عطر، خوشبوئي به نه استعمالوي. رانجه به په سترږو كښ نه اچوي. ډول سنګار به نه كوي. دے مودے ته د شريعت په اصطلاح كښ ''عدت'' وائي. د خاوندنه علاوه په مور پلار په اولاد په نورو خپلو د درے ورځو نه زيات غم كولے نشي.

## بَاب ۸۱۴ : زِيَارَةُ الْقُبُوْرِ . باب ۸۱۴ : د قبرونو دَ زيارت بيان۱ .

۱ . د مسلم شريف په يو حديث كښ دي چه ''ما تاسو د قبرونو د زيارت كولو (قبرونو ته د تللو) نه منعه كړے وئي ليكن اوس تاسو كولے شئ'' ددينه معلومه شوه. چه د اسلام په اوله زمانه كښ قبرونو ته تلل منعه وؤ. روستو بيا اجازت وركړے شو. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه ته غالباً داسے واضحه حديث معلوم نشو چه مسئلے ترے واضحه معلومه شي نو داسے يو حديث شريف ئے روايت كړو. چه هغے نه قبرونو ته د تللو روا كيدل يا ناروا كيدل معلوم شي. حقيقت دادے چه ددے په حقله واضح صفا احاديث شته دے په حديث شريف كښ دي ''قبرونو ته خئ دے سره مرګ ياديږي'' يعني په زړه كښ ترے نرمي پيدا كيږي. قبرونوته د تللو صحيح مقصد دادے چه د انسان په زړه كښ د نيكو اعمالو، د اللّٰه تعالٰي نه د ويريدو شوق او رغبت پيدا كيږي. قبرونوته د تللو په اجازت كښ د شريعت هغه مصلحتونه او مقاصد دي. چه كوم

رسول الله صلي الله عليه وسلم بيان كړيدي. جاهليت كښې قبرونوته تللو به د بت پرستئ او د شرک شوق پيدا كولو ددے خيال د ختمولو د پاره د اسلام په ابتداء كښې قبرونو ته تلل منعه شو' كله چه انسان نيک وي او هغه قبرونو تـه لاړ شي نـو هغه ترے عبرت اخستے شي مقبرے د عبرت خائے دے او د دنيا د فاني كيدو گواه او نظاره ده. قبرونو ته د تللو دا مقصدونه پكار دي.

**۱۲۰۲ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَاَةٍ تَبْكِيْ عِنْدَ قَبْرٍ فَقَالَ اتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِيْ قَالَتْ اِلَيْكَ عَنِّيْ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَبْ بِمُصِيْبَتِيْ وَلَمْ تَعْرِفْهُ فَقِيْلَ لَهَا اِنَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ لَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَتْ بَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ تَجِدْ عِنْدَهُ بَوَّابِيْنَ فَقَالَتْ لَمْ اَعْرِفْكَ فَقَالَ اِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْاُوْلٰى.**

۱۲۰۲ : آدم. شعبه. ثابت. انس بن مالک نه روايت كوي' هغه اووے' نبي صلے الله عليه وسلم د يوے ښځے خوا كښې تيريدلو' چه قبر سره ئے ژړل' نو حضورؐ ورته او فرمائيل' ذ الله نه اويريږه او صبر كوه. هغے ښځے اووے' لرے شه. تاته هغه مصيبت نه دے رسيدلے' كوم چه ماته رسيدلے دے او نه تهٔ دا مصيبت پيژنے. هغې ته اوونيلے شو' چه دا خو نبي صلے الله عليه وسلم وو' نو هغه د حضور صلي الله عليه وسلم دروازے له راغله. او هلته ئے دربار بيانهٔ مُند. او عرض ئے او كهٔ' چه ما تاسوٌ نهٔ وئے پيژندلے' حضورؐ ورته او فرمائيل' صبر ذ صدمے ابتدا كښې وي.

**باب ۸۱۵: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَذَّبُ الْمَيِّتُ بِبَعْضِ بُكَاءِ اَهْلِهِ عَلَيْهِ اِذَا كَانَ النَّوْحُ مِنْ سُنَّتِهِ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قُوْا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهِ فَاِذَا لَمْ يَكُنْ مِّنْ سُنَّتِهِ فَهُوَ كَمَا قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ اُخْرٰى وَهُوَ كَقَوْلِهِ وَاِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ ذُنُوْبًا اِلٰى حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَمَا يُرَخَّصُ مِنَ الْبُكَاءِ فِيْ غَيْرِ نَوْحٍ**

باب ۸۱۵: د نبي عليه السلام د هغے ارشاد بيان چه مړي ته د هغهٔ د بعضو كور والو دَ ژړا په وجه عذاب وركولے شي' هر كله چه ساندے ونيل (وير كول) ئے عادت وي. ځكه چه الله پاک فرمائيلي دي' چه خپل ځان او كور واله د اور نه بچ كړے. او نبي صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي تاسو كښې هر سړے نگران دے او ذ هغه نه به ذ هغهٔ ذ رعيت متعلق تپوس كيږي' او هر كله چه ساندے ونيل ذ چا طريقه نهٔ وي' نو هغه هغے حكم كښې راخي ځنگه چه بي بي عائشےؓ فرمائيلے دي' هيڅوک به ذ بل چا بوج نهٔ اوچتوي' او دا ذ الله تعالي ذ دے قول مشابه دے كه يو سړے گناه ذ بوج ذ لاندے وي' او ذ هغے ذ اوچتولو ذ پاره څوک اوبلي' نو دهغه گناه هيڅ بوج به ترے پورته نه كړے شي. او د

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا اِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِّنْ دَمِهَا وَذٰلِكَ لِاَنَّهٗ اَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ.

کومې ژړا چه اجازت ورکړې شوېدې هغه د ساندې ویلو نه علاوه ده او نبي صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه هيڅ سړې ظلما نه قتليږي خو دا چه د ادم په ژړمې ځوې د هغه خون نه حصه وي چه هغه د قتل طريقه ايجاد کړه

۱. پدې مسئله کښې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها مشهور اختلاف وو چه په مړي ته د کور د بندیانو په ژړا او ساندو ویلو باندې عذاب ورکولې شي یا نه؟ امام بخاري رحمة الله عليه په دې باب کښې هغه ټول تفصیل د اختلاف او بیا وروستو د حدیث شریف ذکر کړېدې د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها دا خیال وو چه د مړي د کور بندیان که په مړي ژړا او ساندې وهي ددې په وجه هغه مړي ته عذاب ورکولې نشي هر سړې د خپل عمل ذمه وار دې په قرآن مجید کښې دي.

لَا تَزِرُوْا زِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى په چا د بل چا (د ګناه) بوج نشي اچولې

ددې وجې نه د ژړا او د ساندو ګناه خو د هغه چا ده څوک یې چه کوي. ددې ذمه واري په مړي څرنګ اچولې شي. لیکن د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مخکښې دا حدیث شریف وو "چه په مړي باندې عذاب د کور د بندیانو د ژړا په وجه وي" حدیث واضح او صفا وه او د مړي په حقله وو. لیکن قرآن مجید کښې عام حکم بیان شویدې. د عائشې بي بي رضي الله عنها دا جواب وو چه د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه غلطي شویده د رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ارشاد د یو خاص واقعې په حقله دې چه د یو یهودنړې (یهودي ښځې) په باره کښې دې چه هغه مړه شوې وه په هغې باندې اصلي عذاب د هغې د کفر په وجه وو لیکن د هغې ښځې عذاب د کور د بندیانو په ژړا په وجه زیات شوې وو د کور بندیانو په ساندو کښې د هغې ښځې نیکۍ بیانولې. ددې وجې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم چه په هغه موقعه څه او فرمایل هغه د مسلمانانو په حقله نه وو. لیکن علماء د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها دا دلیل نه مني بل طرفته د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حدیث کښې د شرعي اصولو او مثالونو په رڼړا کښې تصحیح هم کړې ده او بیانې د یو شرعي اصل په حیثیت منلې دې عالمانو ددې حدیث شریف مختلفې وجهې او تفصیلات بیان کړیدي. او هغه ټول تفصیل حافظ ابن حجر رحمة الله عليه لیکلې دې پدې سلسله کښې د امام بخاري رحمة الله عليه رائې داده چه د شریعت یوه قاعده ده.

كُلُّكُمْ رَاعٍ وَ كُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ. تاسو هر یو نګران یې او د هر یو نه به د هغه د رعیت پښتنه کیږي.

دا حدیث شریف په ډیرو طریقو سره د احادیثو په کتابونو کښې او په صحیح بخاري کښې موجود دې چه د بادشاه نه یو معمولي نوکر پورې هغه د نګرانۍ شان لري او د ټولو نه به د هغه د رعیت په حقله پښتنه کیږي. په قرآن مجید کښې دي.

قُوْا اَنْفُسَكُمْ وَ اَهْلِيْكُمْ نَارًا خپل ځان او د خپل کور بندیان د دوزخ نه بچ کړی.

امام بخاري رحمة الله عليه په دې موقعه واضح کړې ده څرنګ چه د خپلې اصلاح شریعت حکم کړېدې دغسې د خپل رعیت د اصلاح حکم کړیدې ددې وجې نه د خپل ځان یا د خپل کور د بندیانو د

اصلاح نه بے پروائي غفلت تباهي ده. اوس كه چرے د مړي په كور كښ د شريعت د احكامو خلاف ژړا او د ماتـم كولو رواج وي او هغے بنده په خپل ژوند خپل د كور بنديان د دغے غلط رواج نه منعه كړے نه وي او د خپلے پوهے سره سره ئے د غفلت بے پرواهئ نه كار اخستے وي. نو د شريعت په نظر كښ هغه مړے هـم مجرم دے. شريعت د امر بالمعروف او د نهي عن المنكر اصول مقرر كړيدي. دا ضروري وه چه د دے اصـولـو مـطـابـق ئـے د خپل كور بنديان د غلط رواج نه منعه كړے وے او چه كله دهٔ كوشش نه وه كړے نو ددغـے غـلـط رواج سبب هم دے شو. په دے سلسله كښ امام بخاري رحمة الله عليه دا حديث شريف هم نـقـل كـړيـدے "كـه چـرے كوم بنده په ظلم او وژلے شي نو د هغے قتل ذمه واري يو حده پورے د آدم عليه السـلام د مشـر خـوي قـابيل په غاړه ده هغه خپل رور هابيل په ظلم وژلے وو د هغه نه مخكښ خلق د قتل نه خبر نه وؤ ددے وجے نه كله چه قابيل ددے ظلم بنياد ايښودلے دے نو د قيامت د ورځے پورے د هر ظالمانه قتـل د گـنـاه يـوه حـصـه د قابيل په غاړه ده. د هغه په عمل نامه كښ ليكلے شي د شريعت دا اصول كه خپل مـخـكـښ كـيـخـودلے شي نو د شريعت ډيرے گرانے مسئلے حل كيږي. د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها اصول باندے يو نظر اچول پكار دي. هغے فرمايلے دي. قرآن پخپله فيصلے كړيدي "چه په يو انسان د بـل انـسـان ذمـه واري نشتـه حـضـرت عائشے رضي الله عنها فرمايلے دي. چه د مړي څه اختيار نشته' هغه د دے دنيـا نـه تلے دے هغه نه څوک منعه كولے شي نه ئے څه اختيار شته چه كومه گناه هغه نه ده كړے د هغے گناه سزا هغه له څرنگ وركولے شي. په دے موقعه كه غور او كړے شي نو معلومه به شي چه شريعت د هر څيـز د هـر كـار د پـاره قـاعدے او ضابطے مقرر كړيدي. ليكن كله كله په يوه مسئله كښ ډيرے قاعدے او ضـابـطـے يـو ځـائے شـي نو بيا اجتهاد ضروري شي. او دا پته لگول پكار دي چه دا مسئله د كومے قاعدے لانـدے حل كيدے شي. د حضرت عائشے بي بي رضي الله عنها اجتهاد چه په مړي باندے غم كول ساندے وهل' د مړي سره د قرآن مجيد ددے اصول سره تعلق لري. "چه په يو انسان د بل ذمه واري نشته. مخكښ چـه كوم تحقيقي مضمون بيان شو د هغے نه دا واضحه شوه چه د عائشے بي بي رضي الله عنها اجتهاد' امت قبـول كـړے ندے. غم او ماتم كولو كښ چه كوم غلط حركتونه كيږي اسلام د هغے په وجه وير او ماتم رد كـوي. كښي د خپلو خپلوانو په مرگ باندے غم قدرتي خبره ده او اسلام د دغے فطري غم اجازت وركړے دے بـلـكـے د حـديـث شـريف نه معلوميږي چه د كوم خلقو په زړه كښ د خپلو عزيزانو د مرگ غم نه وي هـغـوي ته رسول الله صلي الله عليه وسلم سخت زړے ويلے دي چه د دغے خلقو زړه د كاڼي پشان سخت دے پخپله د رسول الله صلي الله عليه وسلم په ژوند كښ داسے ډير واقعات راغلے دي چه د خپلو عزيزانو پـه مرگ ئے د سترګو مبارکو نه اوخکے رابهيدلے دي. او په دغے طريقه غم ته ئے رحمت ويلے دے چه دغه رحمت الله تعالٰي د خپلو بندگانو په زړه كښ اچولے دے او الله تعالٰي په هغوي رحم كوي.

١٢٠٣: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ وَمُحَمَّدٌ قَالَا أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي أُسَامَةُ بْنِ زَيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ

١٢٠٣: عبدان و محمد. عبدالله. عاصم بن سليمان. ابو عثمان. اسامه بن زيد نه روايت كوي' د رسول الله صلي الله عليه وسلم يوے لور حضورﷺ ته خبر اوليږو' چه خما يو خوئے وفات كيږي نو تاسو تشريف

عَنۡهُمَا قَالَ اَرۡسَلَتِ ابۡنَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِلَيۡهِ اِنَّ ابۡنًا لِيۡ قُبِضَ فَأۡتِنَا فَاَرۡسَلَ يُقۡرِءُ السَّلَامَ وَيَقُوۡلُ اِنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَلَهٗ مَا اَعۡطٰى وَكُلٌّ عِنۡدَهٗ بِاَجَلٍ مُّسَمًّى فَلۡتَصۡبِرۡ وَلۡتَحۡتَسِبۡ فَاَرۡسَلَتۡ اِلَيۡهِ تُقۡسِمُ عَلَيۡهِ لَيَاۡتِيَنَّهَا فَقَامَ وَمَعَهٗ سَعۡدُ بۡنُ عُبَادَةَ وَمُعَاذُ بۡنُ جَبَلٍ وَاُبَيُّ ابۡنُ كَعۡبٍ وَزَيۡدُ بۡنُ ثَابِتٍ وَرِجَالٌ فَرُفِعَ اِلٰى رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ الصَّبِيُّ وَنَفۡسُهٗ تَتَقَعۡقَعُ قَالَ حَسِبۡتُهٗ اَنَّهٗ قَالَ كَاَنَّهَا شَنٌّ فَفَاضَتۡ عَيۡنَاهُ فَقَالَ سَعۡدٌ يَّارَسُوۡلَ اللّٰهِ مَاهٰذَا فَقَالَ هٰذِهٖ رَحۡمَةٌ جَعَلَهَا اللّٰهُ فِيۡ قُلُوۡبِ عِبَادِهٖ وَاِنَّمَا يَرۡحَمُ اللّٰهُ مِنۡ عِبَادِهِ الرُّحَمَآءَ.

راوړنې. حضورؐ ورته جواب کښې د سلام نه بس او فرمائیل، چه د الله څه څیز وو، هغه ئې واخستلو، او هغه څیز د هغه دے، چه ورکړے ئې وو، او د هر سړي یو وخت مقرر دے، نو صبر کوه، او دا د ثواب کار اوګڼړه. د حضور لور بیا حضورؐ ته قسم ورکولو سره یو سړے اولیږلو، چه تاسو ضرور تشریف راوړئ، نو حضورؐ پاسیدلو، او حضورؐ سره سعد بن عباده، معاذ بن جبل، ابي بن کعب، زید بن ثابت او څه نور خلق هم وو. هغه هلک رسول الله صلي الله علیه وسلم ته راوړلے شو، او ذَ هغه ساه په ختو وه، څما خیال دے اُسامهؓ افرمائیل چه ګویا هغه یو مشک وو، نو د حضورؐ دواړه سترګو نه اوښکې په بهیدو شوې. سعد عرض اوکړه، یا رسول الله، دا څه دي. حضورؐ جواب ورکړه. دا رحمت دے، چه الله تعالي د خپلو بندیانو په زړونو کښې اچولې دے او الله تعالي رحم کونکو بندیانو باندې رحم کوي.

۱۲۰۴ : حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوۡ عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيۡحُ بۡنُ سُلَيۡمَانَ عَنۡ هِلَالِ بۡنِ عَلِيٍّ عَنۡ اَنَسِ بۡنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ شَهِدۡنَا بِنۡتًا لِرَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَرَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عَلَى الۡقَبۡرِ قَالَ فَرَاَيۡتُ عَيۡنَيۡهِ تَدۡمَعَانِ قَالَ فَقَالَ هَلۡ مِنۡكُمۡ رَجُلٌ لَمۡ يُقَارِفِ الۡلَيۡلَةَ فَقَالَ اَبُوۡطَلۡحَةَ اَنَا قَالَ فَانۡزِلۡ

۱۲۰۴ : عبدالله بن محمد. ابو عامر. فلیح بن سلیمان. هلال بن علي. انس بن مالک نه روایت کوي. ذَ انسؓ بیان دے. مونږ ذَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ذَ یوې لور جنازه کښې حاضر شو. او رسول الله صلي الله علیه وسلم قبر سره ناست وو، ما اولیدل، چه د حضورؐ ذَ دواړو سترګو نه اوښکې بهیدلې. حضورؐ او فرمائیل تاسو کښې څوک داسې شته، چه ذَ شپې ئې خپلې بي بي سره همبستري نه وي کړې. ابو طلحه جواب ورکه، زهٔ یم، نو حضورؐ ورته او فرمائیل، قبرته راکوز شه، نو هغه د هغې قبر ته

قَالَ فَنَزَلَ فِيْ قَبْرِهَا.

راکوز شولو.

**۱۲۰۵**: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ تُوُفِّيَتْ اِبْنَةٌ لِعُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِمَكَّةَ وَجِئْنَا لِنَشْهَدَهَا وَحَضَرَهَا ابْنُ عُمَرَ وَعَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَاِنِّيْ لَجَالِسٌ بَيْنَهُمَا اَوْقَالَ جَلَسْتُ اِلٰى اَحَدِهِمَا ثُمَّ جَآءَ الْاٰخَرُ وَجَلَسَ اِلٰى جَنْبِيْ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لِعَمْرِوبْنِ عُثْمَانَ اَلَا تَنْهٰى عَنِ الْبُكَاءِ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ اَهْلِهٖ عَلَيْهِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَدْ كَانَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ بَعْضَ ذٰلِكَ ثُمَّ حَدَّثَ قَالَ صَدَرْتُ مَعَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مِنْ مَّكَّةَ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ اِذَا هُوَ بِرَكْبٍ تَحْتَ ظِلِّ سَمُرَةٍ فَقَالَ اذْهَبْ فَانْظُرْ مَنْ هٰٓؤُلَاءِ الرَّكْبُ قَالَ فَنَظَرْتُ فَاِذَا صُهَيْبٌ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ ادْعُهُ لِيْ فَرَجَعْتُ اِلٰى صُهَيْبٍ فَقُلْتُ ارْتَحِلْ فَالْحَقْ اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَلَمَّا اُصِيْبَ عُمَرُ دَخَلَ صُهَيْبٌ يَبْكِيْ يَقُوْلُ وَا اَخَاهُ وَاصَاحِبَاهُ فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

**۱۲۰۵**: عبدان. عبدالله. ابن جريج. عبدالله بن عبيدالله بن ابي مليكه نه روايت کوي ذ هغه بيان دے. چه د حضرت عثمانؓ يوه لور مکه کښې وفات شوه. نو مونږ جنازه کښې شريکيدو د پاره ور اورسيدو. ابن عمرؓ او ابن عباسؓ هم حاضر شو. زۀ د هغے دواړو مينځ کښې ناست ووم، يا وے وئيل، چه زۀ هغوئ کښې يو سره ناست ووم. او بل راغے ما سره کيناست، نو عبدالله بن عمر، عبدالله بن عثمان ته اووے، د ژړا نه ولے نۀ منع کيږے. ځکه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي. مړي ته ذ هغه ذ کور والو د ژړا په سبب عذاب ورکيديشي. نو ابن عباسؓ او فرمائيل چه عمرؓ هم دا وئيل، نو بيان ئے اوکۀ چه زۀ عمرؓ سره د مکے نه واپس شوم تردے چه مونږ بيداء ته راورسيدلو. نو يو سور مو اوليدلو، چه د يوے اُونے ذ سوري لاندے سور وو. حضرت عمرؓ حکم اوکۀ لاړ شه او ګوره چه دا سور څوک دے، زۀ لاړم، نو څۀ ګورم چه هغه صهيبؓ وو، ما حضرت عمر ته دغسے اووے، هغه اُفرمائيل ماله ئے راوله، زۀ بيا صهيبؓ له ورغلم. ورته م اووے، څه چه څو، نو صهيب امير المؤمنين سره يو ځائے شولو. کوم وخت چه حضرت عمرؓ زخمي شو، نو صهيب په ژړا ور اُورسيدلو او وے وئيل، افسوس. اے خما وروره. افسوس اے خما ملګريه. عمرؓ ورته او فرمائيل. اے صهيب، آيا تۀ په ما ژړا کوے، حالانکه رسول الله صلے الله

يَـاصُهَيْـبُ اَتَبْـكِـيْ عَلَـيَّ وَقَدْ قَـالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْـمَيِّتَ يُـعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ اَهْلِهٖ عَـلَيْـهِ قَـالَ ابْـنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰـهُ عَنْهُمَا فَلَمَّا مَاتَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ذَكَـرْتُ ذٰلِكَ لِعَـآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَقَالَتْ رَحِمَ اللّٰهُ عُمَرَ وَاللّٰهِ مَا حَدَّثَ رَسُوْلُ الـلّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلٰكِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَـالَ اِنَّ الـلّٰــهَ لَيَـزِيْـدُ الْـكَافِرَعَذَابًا بِبُـكَـاءِ اَهْـلِـهٖ عَـلَيْهِ وَقَالَتْ حَسْبُكُمُ الْقُرْاٰنُ وَلَا تَزِرُوَا زِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى قَالَ ابْـنُ عَبَّـاسٍ رَّضِـيَ الـلّٰـهُ عَنْهُمَا عِنْدَ ذٰلِكَ وَاللّٰهُ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى قَالَ ابْنُ اَبِـيْ مُـلَيْـكَةَ وَالـلّٰهِ مَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا شَيْـئًا.

عليه وسلم فرمائيلي دي، چه مړي ته د هغه د كور والو د ژړا په سبب عذاب رسي. د ابن عباسؓ بيان دے، كوم وخت چه حضرت عمرؓ وفات شو، ما دا حديث بي بي عائشےؓ ته بيان كړ، نو هغے جواب كښې اووے، اللّه دے په عمرؓ رحم اوكړي. په خدائے چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم دا نه وو فرمائيلي، چه اللّه مؤمن ته د هغه د كور والو د ژړا په سبب عذاب وركوي، بلكه رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلم فرمائيلي دي، چه اللّه تعالٰي د كافر عذاب د هغه د كور والو د ژړا په سبب زياتوي، او بي بي عائشےؓ او فرمائيل، ستاسو د پاره قرآن كافي دے، چه هيڅ يو ګناه ګار به د بل د ګناه بوج نه اوچتوي. ابن عباسؓ هغه وخت اووے، اللّٰه هغه دے چه خندول او ژړول كوي. ابن مليكه اووے. په خدائے چه، ابن عمرؓ هيڅ اونه وے.

۱۲۰۶: حَـدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِـيْ بَـكْرٍ عَـنْ اَبِيْـهِ عَـنْ عُمْرَةَ بِنْتِ عَبْـدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا سَمِعَتْ عَائِشَةَ رَضِـيَ الـلّٰـهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ اِنَّمَا مَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَـلٰى يَهُـوْدِيَّةٍ يَبْـكِـيْ عَـلَيْهَا اَهْلُهَا فَـقَـالَ اِنَّـهُـمْ لَيَبْـكُوْنَ عَلَيْهَا وَ اِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِيْ قَبْرِهَا.

۱۲۰۶: عبداللّه بن يوسف. مالك. عبداللّه بن ابي بكر. ابوبكر. عمره بنت عبدالرحمٰن نه روايت كوي. عمره اووے، بي بي عائشےؓ نه م واوريدل، چه رسول اللّه صلے اللّه عليه وسلم د يوے يهودنړے بنځے (قبر) خوا كښې تيريدلو، چه د هغے كور والو په هغے ژړا كوله نو حضورؐ او فرمائيل، دا خلق په دے ژړا كوي، اودا (بنځه) خپل قبر كښې په عذابيږي.

۱۲۰۷: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ وَهُوَ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمَّا اُصِيْبَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَعَلَ صُهَيْبٌ يَقُوْلُ وَا اَخَاهُ فَقَالَ عُمَرُ اَمَا عَلِمْتَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ.

۱۲۰۷: اسمعيل بن خليل. علي بن مسهر. ابو اسحاق شيباني. ابو برده د خپل پلار نه روايت كوي كوم وخت چه حضرت عمرؓ زخمي شو، نو صهيب اووے افسوس. اے خما وروره، نو عمرؓ اووے، تاته معلومه نهٔ ده، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، چه مړي دَ ژوندو دَ ژړا په سبب په عذابيږي.

باب ۸۱۶: مَا يُكْرَهُ مِنَ النِّيَاحَةِ عَلَى الْمَيِّتِ وَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دَعْهُنَّ يَبْكِيْنَ عَلٰى اَبِيْ سُلَيْمَانَ مَا لَمْ يَكُنْ نَقْعٌ اَوْ لَقْلَقَةٌ وَالنَّقْعُ التُّرَابُ عَلَى الرَّأْسِ وَ اللَّقْلَقَةُ الصَّوْتُ.

باب ۸۱۶: په مړي د ساندو وئيلو (وير كولو) دَ كراهت بيان. او عمرؓ او فرمائيل پريږدے چه دا ښځے په ابو سليمان ژړا كوي، خو پورے چه نقع يا لقلقه نهٔ وي. نقع نه مراد خاوره ده. او لقلقه نه مراد آواز دے.

۱۲۰۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُبَيْدٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْمُغِيْرَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ كَذِبًا عَلَيَّ لَيْسَ كَكَذِبٍ عَلٰى اَحَدٍ مَّنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّءْ مَقْعَدَهٗ مِنَ ...... النَّارِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ نِيْحَ عَلَيْهِ يُعَذَّبُ بِمَا نِيْحَ عَلَيْهِ.

۱۲۰۸: ابو نعيم. سعد بن عبيد. علي بن ربيعه. مغيره نه روايت كوي، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلے دي، چه كوم دروغ په ما پورے اولږولے شي. هغه دغسے نه دي. ځنګه چه په بل چا اولږولے شي، ځوک چه په ما پورے دروغ اوتړي (ما طرف ته څهٔ دروغ خبره منسوب كړي) نو هغه دِے خپل ځائے جهنم كښې جوړ كړي. ما دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه آوريدلے دي، په كوم سړي چه ساندے وئيلے شي په هغه عذاب كيږي. په دے سبب چه په هغهٔ ويرا كيږي.

۱. حضرت مغيره بن شعبه رضي اللّٰه عنه په مړي باندے د وير كولو باره كښې حديث شريف اورول غوښتل نو د هغے نه وړاندے ئے بل حديث شريف بيان كړو. چه كوم حديث شريف زهٔ بيانوم هغه پوره ذمه

واریٔ سره بیانوم. او په دے کښې هیڅ غلط بیاني نشته

۱۲۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَيِّتُ يُعَذَّبُ فِي قَبْرِهِ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ تَابَعَهُ عَبْدُ الْأَعْلٰى حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ وَقَالَ آدَمُ عَنْ شُعْبَةَ الْمَيِّتُ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ عَلَيْهِ.

۱۲۰۹: عبدان. د عبدان پلار. شعبه. قتاده. سعید بن مسیب. ابن عمر د خپل پلار عمر نه او هغه د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي حضورؐ او فرمائیل، مړي باندے قبر کښې عذاب کیږي، په دے سبب چه په هغهٔ ویر کیږي. عبدالاعلٰي د دے متابع حدیث روایت کړے دے. مونږ ته یزید بن زریع، هغهٔ د سعید نه سعید دٔ قتاده نه روایت کړے دے. او آدم د شعبه نه روایت کړے دے. چه په مړي دٔ ژوندو د ژړا نه عذاب راځي.

باب ۸۱۷:

باب ۸۱۷: (دا باب عنوان نه لري)

۱۲۱۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جِيءَ بِأَبِي يَوْمَ أُحُدٍ قَدْ مُثِّلَ بِهِ حَتّٰى وُضِعَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ غُطِّيَ ثَوْبًا فَذَهَبْتُ أُرِيدُ أَنْ أَكْشِفَ عَنْهُ فَنَهَانِي قَوْمِي ثُمَّ ذَهَبْتُ أَكْشِفُ عَنْهُ فَنَهَانِي قَوْمِي فَأَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُفِعَ فَسَمِعَ صَوْتَ صَائِحَةٍ فَقَالَ مَنْ هٰذِهِ فَقَالُوا ابْنَةُ عَمْرٍو أَوْ أُخْتُ عَمْرٍو وَقَالَ فَلِمَ تَبْكِي أَوْلَا تَبْكِي فَمَا زَالَتِ الْمَلَائِكَةُ تُظِلُّهُ

۱۲۱۰: علي بن عبداللّٰه. سفیان. ابن منکدر نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما د جابر بن عبداللّٰه نه واوریدل، چه خما پلار دٔ اُحد په ورځ راوړلے شو او هغه سره مُثله شوے وه، تر دے چه دٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم مخکښې دٔ هغهٔ لاش کیښودے شو. هغه یو کپړه کښې پټ کړے شوے وو. زهٔ دے ارادے سره ورنږدے شو، چه هغه پرانزم، نو خما قوم زهٔ منع کړم، بیا زهٔ لاړم چه د هغهٔ دٔ جسم نه کپړے لرے کړم، نو خما قوم زهٔ منع کړم. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم ماته حکم راکهٔ، نو کپړه لرے کړے شوه. حضورؐ دٔ یوے چغې وهونکے آواز واوریدلو، نو وے فرمائیل، دا څوک ده. خلقو ورته اووے، دا د عمرو لور یا د عمرو خور ده، حضورؐ او فرمائیل، ولے ژاړے، یا وے فرمائیل مه ژاړه فریښتو په هغهٔ خپلو وزرو سره سورے کړے دے، تردے

بِأَجْنِحَتِهَا حَتّٰى رُفِعَ.

چه اوجت کړے شو

**بَاب ۸۱۸: لَيْسَ مِنَّا مَنْ شَقَّ الْجُيُوْبَ.**

**باب ۸۱۸: هغه سړے خمونږ نه نه دے چه گریوان اوشلوي.**

۱۲۱۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا زُبَيْدُ الْيَامِيُّ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَطَمَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.

۱۲۱۱: ابونعيم. سفيان. زبيد يامي. ابراهيم. مسروق. عبداللّٰه نه روايت كوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل هغه سړے خمونږ نه نه دے چه هغه خپل مخ او وهلو او گريوان نے اوشلولو او د جاهليت په شان چغے نے اووهلے.

**بَاب ۸۱۹: رَثَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدَ ابْنَ خَوْلَةَ.**

**باب ۸۱۹: نبي عليه السلام د سعد بن خوله د پاره مرثيه اووے.**

۱۲۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ مِنْ وَّجَعٍ اشْتَدَّ بِيْ فَقُلْتُ اِنِّيْ قَدْ بَلَغَ بِيْ مِنَ الْوَجَعِ وَاَنَا ذُوْ مَالٍ وَّلَا يَرِثُنِيْ اِلَّا ابْنَةٌ اَفَاَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لَا فَقُلْتُ بِالشَّطْرِ فَقَالَ لَا ثُمَّ قَالَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَبِيْرٌ اَوْ كَثِيْرٌ اِنَّكَ اَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ وَاِنَّكَ

۱۲۱۲: عبداللّٰه بن يوسف. مالک ابن شهاب. عامر بن سعد بن ابي وقاص د خپل پلار نه روايت كوي. چه رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم به د حجة الوداع په كال خما هغے بيمارئ كښې پښتنه كوله، چه په هغه كال ماته ډيره زياته لږيدلے وه. ما عرض اوكړ، چه ماته بيماري لږيدلے ده، او زۀ مالداريم، او سوا د لور نه خما بل څوک وارث نشته. نو زۀ خپل ۲/۳ حصه مال صدقه نۀ كړم. حضورؐ او فرمائيل نه، ما عرض اوكړ، نو نيم مال، حضورؐ او فرمائيل نه بيا حضورؐ او فرمائيل، دريمه حصه مال، او دريمه حصه مال هم ډير دے، يا وے فرمائيل زيات دے چه ته خپل وارثان مالدار پريږدے، دا بهتره ده د دے نه چه هغوي محتاج پريږدے، چه د خلقو نه سوال كوي. او ته چه د اللّٰه د رضامندئ د

لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ إِلَّا أُجِرْتَ بِهَا حَتّٰى مَا تَجْعَلُ فِيْ فِيْ امْرَاتِكَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أُخَلَّفُ بَعْدَ أَصْحَابِيْ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تُخَلَّفَ فَتَعْمَلَ عَمَلًا صَالِحًا إِلَّا ازْدَدْتَ بِهٖ دَرَجَةً وَّرِفْعَةً ثُمَّ لَعَلَّكَ أَنْ تُخَلَّفَ حَتّٰى يَنْتَفِعَ بِكَ أَقْوَامٌ وَيُضَرَّ بِكَ آخَرُوْنَ اَللّٰهُمَّ أَمْضِ لِأَصْحَابِيْ هِجْرَتَهُمْ وَلَا تَرُدَّهُمْ عَلٰى أَعْقَابِهِمْ لٰكِنَّ الْبَائِسَ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ يَرْثِيْ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ مَّاتَ بِمَكَّةَ.

پاره څه خرچ کوې پـه هغې بـه تاتـه اجر د. کيدې شي تردې چه کومه نوړئ ته د خپلې بي بي په خوله کښې اچوې[۱]. بيا ما عرض اوکه. يا رسول الله آيا زه به د خپلو ملګرونه ورستو مکه کښې پاتې شم، حضور او فرمائيل، تـه بـه هيڅکله ورستو پاتې نشې، خو دې سره به ستا درجه اوچتيږي. بيا ممکنه ده که ته ورستو پاتې شې، نو تانه به يو قوم ته فائده اورسي او بل قوم بـه نقصان بيامومي، اې خـما اللّه، خـما د اصحابو هجرت پوخ او کامل کړې. او هغوي په ورستو مه کړې ليکن غم زيلي سعد بن خولهؓ دَ پـاره حضورؐ خفګان بنکاره کړې وو خکه چه هغه مکه کښې وفات شو.

۱ . پـدې موقعه رسول اللّـه صلي اللّٰه عليه وسلم د اسلام سنهري قيمتي اصول بيان کړيدي. چه معاشرتي اولسي ژوند پرې ژوندې دې د احاديثو مبارکو په ذخيره کښې دداسې احاديثو هيڅ کمې نشته چه د هغې نه خمونږ د شريعت د مزاج پته لګي. چه هغه د خپل فرمان بردارونه د کوم قسم ژوند تيرولو مطالبه کوي. اللّٰه تعالٰي پخپله شرعي احکام نازلوي او د ټول مخلوق پشان بنيادم ئې هم پيدا کړي دي. ددې وجې نه د انسان په فطرت کښې ئې داسې صلاحيتونه او قابليتونه پيدا کړيدي چه د هغې مقصد دا دې چه د اللّـه تعالٰي عبادت د هغه د رضا او په خوښه اوشي او په مزکه کښې شر فساد نه ښوريږي. په اهل و عيال د خرڅ کولو او په هغې باندې د ثواب ورکولو حقدار کيدل د خپلولئ پاللو او د خانداني اهميت په وجه دې چه په هغې باندې د اولس د بنيکړې او د بقا دارومدار دې د حديث شريف دا برخه که چرې يو سړې د خپلې ښځې په خوله کښې نوړې ورکړي نو په هغې به هم اجر او ثواب ورکيږي. د اولسي بنيکړې بنياد دې د اسلام د ترتيب مطابق که کوم بنده خپل کورنئي نظام چلوي. نو په خپلو خواهشاتو او شهوت پوره کولو باندې هم اجر او ثواب ورکيږي. د مسلم شريف په يو حديث کښې دي "ستاسو دَ شرم ځائې کښې هم صدقه ده. صحابهٔ کرامو رضي اللّٰه عنهم اويل. مونږ به خپل شهوت پوره کوو او په هغې به ثواب ورکيږي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمايل که چرې په حرامو شهوت پوره شي نو بيا به څه وي؟ ددينه معلوميږي چه شريعت مونږ په کوم حدونو کښې ساتي او خمونږ د فطرتي خواهشاتو په وجه چه کومې خرابۍ پيدا کيږي د هغې لاره څرنګ شريعت بنده کړيده. حافظ ابن حجر رحمة اللّٰه عليه ليکلې دي. "چه د ښځې په خوله کښې نوړئ ورکول او نورو طريقو باندې په خپل کور کښې خرچه کول د انسان نفساني او شهواني غرض دې په خپله دغه نوړئ (لقمه) چه د کوم بدن حصه جوړيږي خاوند د هغې نه

فائده اخلي ليکن د شريعت د طرفنه په هغې د اجر او ثواب وعده ده. ددې وجې نه که په نورو خلقو خرچه اوشي او په هغې کښې زيات کوشش اوشي نو د هغې به ځومره ثواب وي؟ دا ياد ساتل پکار دي چه صدقه کښې اول د خپلو عزيزانو او خپلوانو حق دې د هغې نه روستو په نورو خلقو خيرات کول د شريعت مطالبه ده.

۲. سعد بن خوله رضي الله عنه ناجوړه وو. هغه د نيکۍ په کارونو کښې شريک کيدے نشو بعضې رواياتو کښې دي چه دا د فتح مکې واقعه ده. سعد بن خوله رضي الله عنه مهاجر وو ليکن په مکه مکرمه کښې وفات شو. دا خبره به هغه وخت نه خوښيدله. چه کومو خلقو د الله تعالیٰ او د هغه د رسول صلي الله عليه وسلم سره د تعلق په وجه' د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو د پاره هجرت کړے وو هغوي دے بغير د سخت ضرورت نه په مکه کښې د اوسيدو د پاره پاتې شي. سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه مکه مکرمه کښې ناجوړه شوے وو نو هغه زر تر زره د مکې مکرمې نه مدينې منورې ته لاړو. چه هسې نه مکه مکرمه کښې وفات شي. رسول الله صلي الله عليه وسلم په سعد بن خوله رضي الله عنه باندې خپل غم ښکاره کړے وو چه د مهاجر کيدو باوجود هغه مکه مکرمه کښې وفات شوے وو. ددې سره رسول الله صلي الله عليه وسلم دا دعا هم کړے وه چه الله تعالیٰ دے مهاجر صحابهٔ کرامو له' په هجرت باندې استقامت نصيب کړي بيا دا هم ويلې نشو چه نقصان به د چاوي دا د الله تعالیٰ تکويني فيصلې دي.

**باب ۸۲۰: مَا يُنْهٰى مِنَ الْحَلْقِ عِنْدَ الْمُصِيْبَةِ** وَقَالَ الْحَكَمُ ابْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ جَابِرٍ اَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُخَيْمَرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ بْنُ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ وَ رَجَعَ اَبُوْ مُوْسٰى وَجَعًا فَغُشِيَ عَلَيْهِ وَرَاْسُهٗ فِيْ حَجْرِ امْرَاَةٍ مِنْ اَهْلِهٖ فَلَمْ يَسْتَطِعْ يَرُدَّ عَلَيْهَا شَيْئًا فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ اَنَا بَرِيْءٌ مِمَّنْ بَرِئَ مِنْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَرِيْءٌ مِنَ الصَّالِقَةِ وَالْحَالِقَةِ وَالشَّاقَّةِ.

**باب ۸۲۰:** د مصيبت په وخت کښې د سر خريلو ذ کراهت بيان. او حکم بن موسیٰ په سند د يحيٰي بن حمزه. عبدالرحمٰن بن جابر. قاسم بن مخيمره. ابو برده بن ابي موسیٰ روايت اوکۀ' چه ابو موسیٰ ناروغه شو' نو په هغۀ بيهوشي راغله' داسې حال کښې چه ذ هغۀ سر ذ هغۀ ذ کور د يوې ښځې په غيږ کښې وو' او هغه ناقابو کيدۀ کوم وخت چه هوش کښې راغې' نو وې وئيل' چه زۀ ذ هغې نه ذ بيزارئ اظهار کوم' چه ذ هغې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم بيزاري ظاهره کړې ده. رسول الله صلي الله عليه وسلم په چغو ژړيدونکے' کريوان څيرې کونکے او سر خريونکې ښځې نه بيزاري ظاهره کړې ده.

**باب ۸۲۱: لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ.**

**باب ۸۲۱:** هغه سړے ځمونږ نه' نه دے چه اخپل اننگي وهي.

۱۲۱۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَابِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.

۱۲۱۳: محمد بن بشار. عبدالرحمن. سفیان. اعمش. عبداللّٰه بن مره. مسروق. عبداللّٰهؓ نه او هغه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل: هغه سړے ځمونږ نه، نه دے چه خپل اننګي وهي. ګريوان څيرے كړي او چغے وهي (ذ جاهليت په شان خبرے او كړي)

باب ۸۲۲: مَا يُنْهٰى مِنَ الْوَيْلِ وَدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ عِنْدَ الْمُصِيْبَةِ.

باب ۸۲۲: د مصيبت په وخت د واويلا كولو او ذ جاهليت په شان د خبرو كولو د ممانعت بيان.

۱۲۱۴: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.

۱۲۱۴: عمرو بن حفص. حفص. اعمش. عبداللّٰه بن مره. مسروق. عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، هغه سړے ځمونږ نه نۀ دے چه اننګي (يعني مخ) اووهي او ګريوان څيرے كړي او د جاهليت په شان خبرے او كړي.

باب ۸۲۳: مَنْ جَلَسَ عِنْدَ الْمُصِيْبَةِ يُعْرَفُ فِيْهِ الْحُزْنُ.

باب ۸۲۳: د مصيبت په وخت داسے ناسته، چه د غم اثرات ترے ظاهريږي.

۱۲۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا جَآءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَابْنِ رَوَاحَةَ جَلَسَ يُعْرَفُ فِيْهِ الْحُزْنُ وَاَنَا

۱۲۱۵: محمد بن مثني. عبدالوهاب. يحيٰي. عمره. بي بي عائشےؓ نه روايت كړي هغې اوويل كوم وخت چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم ته ذ ابن حارثه، جعفر او ابن رواحه ذ شهادت خبر اورسيد، نو حضورؐ داسے كيناست چه ذ غم آثار ذ حضورؐ د مخ مبارك نه ظاهريدل. او ما د تميے (كواړ) ذ سوري (سوراخ) نه كتل. حضورؐ له

انظُرْ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ شَقِّ الْبَابِ فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ نِسَآءَ جَعْفَرٍ وَّ ذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ لَمْ يُطِعْنَهُ فَقَالَ انْهَهُنَّ فَأَتَاهُ الثَّالِثَةَ قَالَ وَاللّٰهِ غَلَبْنَنَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَزَعَمَتْ أَنَّهُ قَالَ فَاحْثُ فِيْ أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ فَقُلْتُ أَرْغَمَ اللّٰهُ أَنْفَكَ لَمْ تَفْعَلْ مَاأَمَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ تَتْرُكْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَنَاءِ.

یو سړے راغے او د جعفرؓ د ښځو د ژړا حال ئې ورته بیان کړ. حضورؐ هغه ته حکم ورکړ چه هغوي منع کړه. هغه سړے لاړ بیا دوباره راغے او وے وئیل چه هغوي د هغه خبره اونه منله. حضور او فرمائیل لاړ شه هغوي منع کړه. هغه سړے په دریم ځل حضورؐ له راغے. او عرض ئې اوکړ: یا رسول اللّٰه هغه ښځے په موږ غالبے راغلے. بي بي عائشے اووے. حضورؐ او فرمائیل د هغوی خوله کښې خاورے واچوه. ما اووے الله دې پوزه خاورے کړه تا هغه اونه کړل چه د هغے رسول الله صلے الله علیه وسلم حکم درکړے وو او تا رسول الله صلي الله علیه وسلم د تکلیف نه پرے نخودلو[۱] (تکلیف دے ورکړو).

۱. فَاحْثُ فِي أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ — ددوي په خولو کښې خاوره واچوه.

دا د عربي یوه محاوره ده ددے مقصد په څه خبره خپل خفګان ښکاره کول وي. ددے خپل واقعي او حقیقي مطلب مراد نه وي. داسے محاورے په نورو ژبو کښې هم وي، عائشے رضي الله عنها پدے موقعه باندے د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د طرز عمل نه دا اوګڼړله چه دے وېښت کښې د حضرت جعفر رضي الله عنه په کور کښې کوم ژړا یا ساندے ویلے شي د شریعت په نظر کښې اګرچه ښه کارنه دے خو بیاهم ضرور روا دے. ددے وجے نه رسول الله صلي الله علیه وسلم کومه سخته خبره اونکړه. د عائشے رضي الله عنها مطلب دا دے چه بیا بیا د رسول الله صلي الله علیه وسلم په مخکښې د ژړا انګولا ذکر شوے نه وے نو غوره خبره وه. رسول الله صلي الله علیه وسلم ډیر خفه شو. او ښځے د ژړا نه منعه هم نشوے. یعني دغه ویونکي د خپل زړه خبره بیا بیاکوله او د رسول الله صلي الله علیه وسلم د خفګان خیال ئې او نه ساتلو.

۱۲۱٦: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ عَنْ أَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا حِيْنَ قُتِلَ الْقُرَّآءُ فَمَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَزِنَ حُزْنًا قَطُّ أَشَدَّ

۱۲۱٦: عمرو بن علي. محمد بن فضیل. عاصم احول. حضرت انسؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم یو میاشت پورے دُعاء قنوت اووے، کوم وخت چه قراء (قاریان د قرآن پاک) شهیدان کړے شو. ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم هیڅکله د دے نه زیات د سخت غم حالت کښې نه

مِنْهُ.

دے ليدلے.

**باب ۸۲۴: مَنْ لَمْ يُظْهِرْ حُزْنَهُ عِنْدَ الْمُصِيْبَةِ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ كَعْبِ الْقُرَظِيُّ الْجَزْعُ الْقَوْلُ السَّيِّءُ وَ الظَّنُّ السَّيِّءُ وَقَالَ يَعْقُوبُ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِنَّمَا اَشْكُوا بَثِّيْ وَحُزْنِيْ اِلَى اللّٰهِ.**

**باب ۸۲۴:** ذَ هغـه سړي بيان، چه د مصيبت وخت كښې ئې غم ظاهر نهٔ كړو. او محمد بن كعب قرظي اووے، ذَ جزع نه مراد خرا بے خبرے كول او بدگماني ده. او يعقوب عليه السلام او فرمائيل، چه زهٔ ذَ خپل غم شكايت اللّٰه ته كوم.

**۱۲۱۷:** حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْحَكَمِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ اَخْبَرَنَا اِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ: اشْتَكَىٰ ابْنٌ لِاَبِيْ طَلْحَةَ قَالَ فَمَاتَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ خَارِجٌ فَلَمَّا رَاَتِ امْرَاَتُهُ اَنَّهُ قَدْمَاتَ هَيَّاَتْ شَيْئًا وَنَحَّتْهُ فِيْ جَانِبِ الْبَيْتِ فَلَمَّا جَآءَ اَبُوْ طَلْحَةَ قَالَ كَيْفَ الْغُلَامُ قَالَ قَدْهَدَاَتْ نَفْسُهُ وَاَرْجُوْ اَنْ يَكُوْنَ قَدِ اسْتَرَاحَ وَظَنَّ اَبُوْطَلْحَةَ اَنَّهَا صَادِقَةٌ قَالَ فَبَاتَ فَلَمَّا اَصْبَحَ اغْتَسَلَ فَلَمَّا اَرَادَ اَنْ يَّخْرُجَ اَعْلَمَتْهُ اَنَّهُ قَدْ مَاتَ فَصَلّٰى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا كَانَ مِنْهُمَا فَقَالَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّبَارِكَ لَكُمَا فِيْ لَيْلَتِكُمَا قَالَ سُفْيَانُ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ

**۱۲۱۷:** بشر بن حكم. سفيان بن عيينه. اسحاق بن عبداللّٰه بن ابي طلحه. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے ذَ ابو طلحهؓ يو هلک ناروغه شو، او مړ شو. ابو طلحهؓ بهر، وو، ذَ هغه ښځے چه اوليدل، چه هلک مړ شوے دے. نو سامان ئے برابر كه، هغه ئے كفن كهٔ او ذَ كور په يو كُټ كښې ئے كيښودلو. څه وخت چه ابو طلحه راغے، نو تپوس ئے اوكهٔ چه هلک څنګه دے، ښځے جواب وركهٔ، اوس ښهٔ دے، اميد دے، آرام كښې دے. ابو طلحهؓ اوګڼړله چه ښځه ئے رښتيا وائي نو شپه ئے تيره كړله، چه سحر شو، غسل ئے اوكهٔ او ذَ بهر تلو اراده ئے اوكړله، نو ښځے ورته اوښودل، چه هلک مړ شوے دے بيا ابو طلحهؓ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم سره مونځ اوكړلو او نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ته ئے هغه واقعه بيان كړه چه ذَ ښځے خاوند مينځ كښې شوے وه، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، اميد دے چه اللّٰه تعالي به ستاسو ذَ دواړو په شپه كښې بركت واچوي، سفيان وائي، يو انصاري

الْاَنْصَارِ فَرَاَيْتُ لَهُمَا تِسْعَةَ اَوْلَادٍ كُلُّهُمْ قَدْ قَرَأَ الْقُرْاٰن.

سړے اووے ما د دے دواړو نهه هلكان وليدل چه ټول قاريان وو.

۱ د هغے بي بي مطلب داور چه ماشوم وفات شوے دے څرنګ چه مريض ته د مرض نه په بنه كيدو آرام وي دغسے په مرګ بانديے هم آرام بنكاره كيږي. د ناجوړتيا او د تكليف په وجه چه مريض كومه پريشاني بنكاره كوي د مرګ نه پس هغه تكليف ختم شي دويمه جمله ويلو بانديے بي بي صاحبے دا اميد بنكاره كوو چه د ماشوم سره به د الله تعالي په دربار كښ بنه معامله كيږي. ليكن ابو طلحه رضي الله عنه ته صحيح حال معلوم نه وو ددے وجے د بي بي صاحبے د اطمينان په جواب سره هغه دا او ګنړله. چه ماشوم جوړ شوے دے اوس آرام كوي. يعني اوده كيږي. ددے وجے نه هغه نورے خبرے مناسب او نه ګنړلے آرام سره اوده شو. د ضروري كارونونه اوزګار شو. خپلے بي بي سره نزدے هم شو. پدے بانديے رسول الله صلي الله عليه وسلم د بركت زيرے وركړو. دا د هغے بے اندازے صبر او د الله تعالي په حكمت بانديے د كامل يقين ميوه وه. څومره ډيره بنه بي بي وه. خپل خاوند ئے د ذهني بوج نه بچ او ساتلو. ابو طلحه رضي الله عنه ډير ستړے ستومانه وو. او د مخكښ نه ډير زړه ستړے راغلے وو.

## بَـاب ۸۲۵: الـصَّبْـرِ عِـنْـدَ الصَّدْمَةِ الْاُوْلٰـى

وَ قَـالَ عُـمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نِعْمَ الْعَدْلَانِ[۱] وَنِعْمَ الْعَلَاوَةَ اَلَّذِيْـنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰـهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَـوٰتٌ مِّـنْ رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَّاُولٰٓئِكَ هُـمُ الْمُهْتَـدُوْنَ وَ قَـوْلُـهٗ تَـعَالٰـى. وَاسْتَـعِيْـنُـوْا بِـالـصَّبْرِوَ الصَّلٰوةِ وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ.

باب ۸۲۵: صبر د صدمے په شروع كښ معتبر دے. او عمرؓ او فرمائيل: څومره بنهٔ دوه عدل او څهٔ بنهٔ دَ دے نه علاوه دي هغه خلق چه هغوئ ته مصيبت اُورسيدلو، او هغوي انالله و انا اليه راجعون اووے. هم دغه خلق دي چه په هغوي د هغوي دَ رب د طرف نه رحمتونه او مهربانئ دي، او هم دے خلقو هدايت مُندلے دے، او دَ الله تعالي قول: چه دَ صبر او مونځ په ذريعه مدد غواړئ، بيشكه دا بوج دے خو په هغه خلقو، نه كوم چه دَ الله نه ويريږي.

۱. حضرت عمر رضي الله عنه د مصيبت په وخت كښ د صبر او برداشت فضيلت بيانوي.

۱۲۱۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْاُوْلٰى.

۱۲۱۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. ثابت نه روايت كوي. ثابت وائي ما د انسؓ نه او هغه د نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، صبر هغه معتبر دے چه د صدمے په شروع كښ وي.

## باب ۸۲۶: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى

باب ۸۲۶: د نبي صلي الله عليه وسلم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا بِكَ لَمَحْزُوْنُوْنَ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَدْمَعُ الْعَيْنُ وَيَحْزَنُ الْقَلْبُ.

فرمائیل چه مونږ ستا به جدائي غم ژبلي یو او عمر د نبي صلي الله علیه وسلم نه روایت کړے دے چه سترګے ژاړي او زړه غمګین کیږي.

۱۲۱۹ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانٍ حَدَّثَنَا قُرَيْشٌ هُوَ ابْنُ حَيَّانَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اَبِي سَيْفٍ الْقَيْنِ وَكَانَ ظِئْرًا لِاِبْرَاهِيْمَ فَاَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِبْرَاهِيْمَ فَقَبَّلَهٗ وَشَمَّهٗ ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ بَعْدَ ذٰلِكَ وَاِبْرَاهِيْمُ يَجُوْدُ بِنَفْسِهٖ فَجَعَلَتْ عَيْنَا رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَذْرِفَانِ فَقَالَ لَهٗ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَاَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ يَا ابْنَ عَوْفٍ اِنَّهَا رَحْمَةٌ ثُمَّ اَتْبَعَهَا بِاُخْرٰى فَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْعَيْنَ تَدْمَعُ وَالْقَلْبَ يَحْزَنُ وَلَا نَقُوْلُ اِلَّا مَا يَرْضٰى رَبُّنَا وَاِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا اِبْرَاهِيْمُ لَمَحْزُوْنُوْنَ رَوَاهُ مُوْسٰى عَنْ سُلَيْمَانَ ابْنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۲۱۹ : حسن بن عبدالعزیز. یحیی بن حسان. قریش بن حیان. ثابت. انس بن مالک نه روایت کوي. د هغه بیان دے چه مونږ رسول الله صلے الله علیه وسلم سره ابو یوسف لوهار له ورغلو دا د ابراهیمؑ (د حضورؐ د خوي) د پئے ورکونکے ښځے خاوند وو، رسول الله صلي الله علیه وسلم، ابراهیمؑ اونیولو هغه ئے ښکل کړو او خوشبوئي ئے واخسته بوئي کړو. بیا مونږ دے نه روستو ابو یوسف له ورغلو، او د ابراهیمؑ ساه په وتو وه. د رسول الله صلے الله علیه وسلم د سترګو نه اوښکے روانے شوے. عبدالرحمٰن بن عوف عرض اوکړ، او تاسو یا رسول الله (ژاړئے) حضورؐ ورته او فرمائیل. اے ابن عوف، دا خو رحمت دے بیا رسول الله صلے الله علیه وسلم او فرمائیل سترګے ژاړي او زړه غمګین دے او مونږ نهٔ کوو خو هغه خبره چه هغے سره خمونږ رب راضي دے. او مونږ اے ابراهیمهؓ ستا د فراق په وجه غمګین یو. دا موسي د سلیمان بن مغیره نه، ثابت د انس نه او انس د نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کړے دے.

باب ۸۲۷: الْبُكَاءِ عِنْدَ الْمَرِيْضِ.

۱۲۲۰ : حَدَّثَنَا أَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اشْتَكَى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ شَكْوًى لَهُ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُهُ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَّ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ وَّ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ فَوَجَدَهُ فِيْ غَاشِيَةِ أَهْلِهِ فَقَالَ قَدْ قَضٰى قَالُوْا لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَبَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَأَى الْقَوْمُ بُكَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكَوْا فَقَالَ لَا تَسْمَعُوْنَ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلَا بِحُزْنِ الْقَلْبِ وَلٰكِنْ يُّعَذِّبُ بِهٰذَا وَأَشَارَ إِلٰى لِسَانِهِ أَوْ يَرْحَمُ وَإِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ وَكَانَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَضْرِبُ فِيْهِ بِالْعَصَا وَيَرْمِيْ بِالْحِجَارَةِ وَيُحْثِيْ بِالتُّرَابِ.

باب ۸۲۷: مريض ته د ژړا بيان.

۱۲۲۰ : اصبغ. ابن وهب. عمرو. سعيد بن حارث انصاري. عبدالله بن عمر نه روايت كوي چه سعد بن عباده ناروغه شو نو هغه له رسول الله صلي الله عليه وسلم عبدالرحمن بن عوف. سعد بن ابي وقاص او عبدالله بن مسعود سره تپوس د پاره تشريف راوړلو كوم وخت چه هغه ته اورسيدل نو هغه خپل كور كښې په بستره پروت وو. حضورؐ او فرمائيل آيا وفات شولو خلقو ورته اووے نه يا رسول الله نو نبي صلي الله عليه وسلم او ژړل خلقو چه نبي صلي الله عليه وسلم په ژړا اوليدلو نو هغوي هم په ژړا شولو نو حضورؐ او فرمائيل آيا تاسو نه آورئے چه الله تعالي اوښكو بهيولو او زړهٔ غمكين كيدو سره عذاب نه وركوي بلكه ذ دے په وجه عذاب وركوي (او خپلے ژبے طرف ته ئے اشاره اوكړله) يا رحم كوي او په مړي ذ هغهٔ دَ كور والو دَ ژړا په سبب عذاب كيږي او عمرؓ به دے صورت كښې ډنډے يا كانړي سره وهل كول او خوله كښې به ئے ورله خاورے غرخولے.

باب ۸۲۸: مَا يُنْهٰى عَنِ النَّوْحِ وَالْبُكَاءِ وَالزَّجْرِ عَنْ ذٰلِكَ.

۱۲۲۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

باب ۸۲۸: د ساندو او ژړا ممانعت او د هغے نه رټل.

۱۲۲۱ : محمد بن عبدالله بن حوشب.

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ قَالَ اَخْبَرَتْنِي عَمْرَةُ قَالَتْ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا تَقُوْلُ: لَمَّا جَآءَ قَتْلُ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ رَوَاحَةَ جَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَفُ فِيْهِ الْحُزْنُ وَاَنَا اَطَّلِعُ مِنْ شَقِّ الْبَابِ فَاَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ نِسآءَ جَعْفَرٍ وَّ ذَكَرَ بُكَاءَ هُنَّ فَاَمَرَهُ اَنْ يَّنْهَاهُنَّ فَذَهَبَ الرَّجُلُ ثُمَّ اَتٰى فَقَالَ قَدْنَهَيْتُهُنَّ وَذَكَرَاَنَّهُنَّ لَمْ يُطِعْنَهُ فَاَمَرَهُ الثَّانِيَةَ اَنْ يَّنْهَاهُنَّ فَذَهَبَ ثُمَّ اَتٰى فَقَالَ وَاللّٰهِ لَقَدْ غَلَبْتَنِي اَوْ غَلَبْتَنَا الشَّكُّ مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَوْشَبٍ فَزَعَمْتُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاحْثُ فِيْ اَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ فَقُلْتُ اَرْغَمَ اللّٰهُ اَنْفَكَ فَوَاللّٰهِ مَا اَنْتَ بِفَاعِلٍ وَّ مَا تَرَكْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَنَاءِ.

عبدالوهاب. يحيي بن سعيد. بي بي عائشہؓ نه روايت کوي' کوم وخت چه د زيد بن حارثهؓ جعفرؓ او عبدالله بن رواحهؓ د شهادت خبر راورسيد' نو نبي صلي الله عليه وسلم کيناست' او د حضورؐ د مخ نه غم ظاهريدلو. او ما د دروازے په چوند کښ کتل يو سړے راغے او عرض ئے اوکړ' يا رسول الله د جعفرؓ ښځے ژاړي' حضورؐ هغه ته حکم ورکړلو' چه هغه ښځے منع کړه' نو هغه سړے لاړ او بيا واپس راغے' او' وے وئيل' ما هغه ښځے منع کولے' خو هغوئ خما اونه منل' حضورؐ په دويم ځل بيا هغه ته د هغوي د منع کولو حکم اوکړ. هغه لاړ' بيا راغے' او وے وئيل' په خدائے چه هغه ښځے په ما غالبے راغلے' يا دائے اووے' چه په مونږ خلقو غالبے شوے (محمد بن حوشب ته شک شو) بي بي عائشےؓ اووے' حضورؐ او فرمائيل' د هغوي په خوله کښ خاورے واچوه. ما (عائشےؓ) اووے' خدائے دے ستا پوزه خاورے کړي' په خدائے چه ته نۀ کونکے ئے (د هغے چه حضورؐ حکم درکړے دے) او نۀ د رسول الله صلے الله عليه وسلم د مشقت نه خلاص کړوے[1].

[1]. دا حديث شريف مخکښ تير شويدے او ددے تفصيل هلته بيان شويدے په مړي هر قسم غم او ژړا په هر صورت کښ حرامه نده بعضے روا او مباح او بعضے مکروهه ده امام بخاري رحمة الله عليه دلته وضاحت کول غواړي.

۱۲۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ

۱۲۲۲: عبدالله بن وهاب. حماد بن زيد. ايوب. محمد. اُم عطيهؓ نه روايت

حَدَّثَنَا اَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اَخَذَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ الْبَيْعَةِ اَنْ لَّا تَنُوحَ فَمَاوَفَتْ مِنَّا امْرَاَةٌ غَيْرَخَمْسِ نِسْوَةٍ اُمِّ سُلَيْمٍ وَ اُمِّ الْعَلَاءِ وَابْنَةِ اَبِي سَبْرَةَ امْرَاَةِ مُعَاذٍ وَّامْرَ اَتَيْنِ اَو ابْنَةِ اَبِيْ سَبْرَةَ وَامْرَاَةِ مُعَاذٍوَّ امْرَاَةٍ اُخْرٰى.

كوي. د هغې بيان دے' نبي صلې اللّٰه عليه وسلم د بيعت په وخت مونږ نه عهد واخستو چه مونږ به ساندے نۀ كوو. مونږ كښې د ښځو نه سوا بل چا دا عهد پوره نۀ كړلو. اُم سليمؓ. ام علاءؓ بنت سبرهؓ (د معاذ ښځه) او نورے دوه ښځے او يا دائے اووے' د سبره لور او د معاذ ښځه. او يو بله ښځه[۱] (راوي ته شک دے)

۱. په حديث شريف كښې راوي ته شک دے چه دا د ابو سبره هغه لور ده چه د معاذ رضي اللّٰه عنه په كور كښې وه. يا ئے بله لور وه د معاذ رضي اللّٰه عنه هغه بي بي چه هغې خپله وعده پوره كړے وه هغه د ابو سبره لور نه وه.

## بَاب ۸۲۹: اَلْقِيَامُ لِلْجَنَازَةِ.

## باب ۸۲۹: جنازے ۀ پاره د اودريدو بيان.

۱۲۲۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُوْمُوْا حَتّٰى تُخَلِّفَكُمْ قَالَ سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ اَخْبَرَنِىْ سَالِمٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَخْبَرَنَا عَامِرُبْنُ رَبِيْعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَادَ الْحُمَيْدِيُّ تُخَلِّفَكم اَوْ تُوْضَعَ.

۱۲۲۳: علي بن عبداللّٰه. سفيان. زهري. سالم ۀ خپل پلار نه او هغه د عامر بن ربيعه نه او هغه ۀ نبي صلې اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل' چه كله تاسو جنازه اووينئے' نو اودريږئ' تردے چه تاسو ورستو پريږدي سفيان اووے' زهري په ' سند د سالم. ۀ سالم پلار عامر بن ربيعه د نبي صلې اللّٰه عليه وسلم نه روايت اوكۀ. او حميدي دومره زياته كړه' تردے چه تاسو ورستو پريږدي يا جنازه كيښودے شي.

## بَاب ۸۳۰: مَتٰى يَقْعُدُ اِذَا قَامَ لِلْجَنَازَةِ.

## باب ۸۳۰: چه جنازه اووينې' اودريږي نو بيا به كله كيني.

۱۲۲۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنْ عَامِرِ

۱۲۲۴: قتيبه بن سعيد. ليث. نافع. ابن عمرؓ. عامر بن ربيعه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل' كله چه

بْنِ رَبِيعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ جَنَازَةً فَإِنْ لَّمْ يَكُنْ مَاشِيًا مَّعَهَا فَلْيَقُمْ حَتّٰى يُخَلِّفَهَا أَوْ تُخَلِّفَهُ أَوْتُوضَعَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تُخَلِّفَهُ.

تاسو کښې څوک جنازه اووینې او هغے سره تلونکے نه وي. نو اودے دریږي. تر دے چه هغه جنازه د هغه نه مخکښې شي یا ذ دے نه وړاندے چه هغه مخکښې شي یا کیښودے شي.

۱۲۲۵: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ: كُنَّا فِيْ جَنَازَةٍ فَأَخَذَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِيَدِ مَرْوَانَ فَجَلَسَ قَبْلَ أَنْ تُوضَعَ فَجَآءَ أَبُوْ سَعِيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَأَخَذَ بِيَدِ مَرْوَانَ فَقَالَ قُمْ فَوَ اللّٰهِ لَقَدْ عَلِمَ هٰذَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ صَدَقَ.

۱۲۲۵: احمد بن یونس. ابن ابي ذئب. سعید مقبري ذ خپل پلار نه روایت کوي. مونږ یو جنازه کښې وو، نو ابوهریرهؓ د مروان لاس اونیولو او دواړه د جنازے کیښودلو نه مخکښې کیناستل، نو ابوسعید راغے. او ذ مروان لاس ئے اونیولو. او وے وئیل چه اودریږه. په خدائے چه دة ته معلومه ده، چه نبي صلی اللّٰه علیه وسلم مونږ ذ دے نه منع کړي یو. حضرت ابوهریرهؓ اووے چه دة ریښتیا اووے ؎.

۱. حضرت ابوهریره رضي اللّٰه عنه ته دا حدیث شریف یاد نه وو پاتے. او کله چه ابو سعید خدري رضي اللّٰه عنه یاد ئیرنه وړ کړه نو هغه ته حدیث شریف یاد شو او د حدیث تصدیق ئے اوکړو چه د جنازے سره دا ښه سلوک د انساني عزت او شرافت په وجه ده ددے وجے نه، چه کله ئے جنازه اولیدله نو د اودریدلو د پاره ئے اویل. لیکن دے سلسله کښې یو حدیث شریف راغلے دے چه شروع کښې دا حکم وو بیا پریخودلے شو. ددے مختلفے وجے بیان شویدي. اسلام د مړي سره د پوره عزت او د شرافت د سلوک تعلیم ور کوي. احادیثو مبارکو کښې ددے تفصیل شته دے.

## بَاب ۸۳۱: مَنْ تَبِعَ جِنَازَةً فَلَا يَقْعُدُ حَتّٰى تُوضَعَ عَنْ مَّنَاكِبِ الرِّجَالِ فَإِنْ قَعَدَ أُمِرَ بِالْقِيَامِ.

باب ۸۳۱: کوم سړے چه جنازے سره لاړ شي نو څو پورے چه جنازه خلقو د اوږونه کوزه کړے نه وي، نو نه دے کیني او که کیني نو هغه ته دے ذ اودریدو حکم ور کړے شي.

۱۲۲۶: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ

۱۲۲۶: مسلم بن ابراهیم. هشام. یحیٰي. ابو سلمه. ابو سعید خدريؓ ذ نبي صلی اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي. حضورؐ او فرمائیل، کله

الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُوْمُوْا فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدُ حَتّٰى تُوْضَعَ.

چه تاسو جنازه اووينئ، نو اودريږئ، او كوم سړي چه جنازې سره لاړ شي. هغه دې هغه وخت پورې نه كيني، څو پورې چه جنازه كينبودلې شي.

**باب ٨٣٢: مَنْ قَامَ لِجَنَازَةِ يَهُوْدِيٍّ.**

**بـاب ٨٣٢**: د يهودي د جنازې ذ پاره د اودريدلو بيان.

**١٢٢٧**: حَدَّثَنَا مُعَاذُبْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ مُقْسِمٍ عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: مَرَّ بِنَا جَنَازَةٌ فَقَامَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقُمْنَا بِهٖ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُوْدِيٍّ قَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُوْمُوْا.

**١٢٢٧**: معاذ بن فضالـه. هشام. يحيي. عبيداللـه بن مقسم. جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي، هغه اوويے، خمونږ خوا كښې يوه جنازه تيره شوه، هغې د پاره نبي صلے اللّٰه عليه وسلم اودريدلو، نو مونږ هم حضورؐ سره اودريدلو بيا مونږ عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، دا خو د يو يهودي جنازه ده. نو حضورؐ او فرمائيل، كله چه تاسو جنازه اووينئ، نو اودريږئ.

**١٢٢٨**: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَالرَّحْمٰنِ ابْنَ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ: كَانَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ وَّقَيْسُ بْنُ سَعْدٍ قَاعِدَيْنِ بِالْقَادِسِيَّةِ فَمَرُّوْا عَلَيْهِمَا بِجَنَازَةٍ فَقَامَا فَقِيْلَ لَهُمَا اِنَّهَا مِنْ اَهْلِ الْاَرْضِ اَيْ مِنْ اَهْلِ الذِّمَّةِ فَقَالَا اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتْ بِهٖ جَنَازَةٌ فَقَامَ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُوْدِيٍّ فَقَالَ اَلَيْسَتْ نَفْسًا وَ قَالَ اَبُوْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ كُنْتُ

**١٢٢٨**: آدم. شعبـه. عمرو بن مره. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، چه سعد بن حنيف او قيس بن سعد قادسيه كښې ناست وو. ذ هغوي خوا كښې يو جنازه تيره شوه، نو دواړه اودريدل. هغوي ته اووئيلے شو، چه دا ذ زمكے والو يعني د ذميانو نه ده، نو هغوي دواړو اووے، چه ذ نبي صلے اللّٰه عليه وسلم خوا كښې يوه جنازه تيره شوه. حضورؐ اودريدلو، حضورؐ ته اووئيلے شو، چه دا د يهودي جنازه ده. حضورؐ ورته او فرمائيل آيا هغه ذ ساه خاوند نه وو. ابو حمزه ذ اعمش. عمرو. ابن ابي ليلٰي نه روايت اوكه، چه زهٔ قيس او

مَعَ قَيْسٍ وَّ سَهْلٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقَالَا: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ زَكَرِيَّآءُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى كَانَ اَبُوْ مَسْعُوْدٍ وَّقَيْسٌ يَقُوْمَانِ بِالْجَنَازَةِ.

سعد سره وو٬ هغي دواړو اووې چه مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره وو. او زكريا د شعبي نه٬ هغه د ابن ابي ليلي نه روايت اوكه٬ چه ابو مسعود او قيس به جنازې د پاره اودريدلو.

## بَاب ۸۳۳: حَمْلِ الرِّجَالِ الْجَنَازَةَ دُوْنَ النِّسَآءِ.

## باب ۸۳۳: جنازه ښځو له نه٬ بلكه سړو له اوچتول دي.

**۱۲۲۹**: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اِذَا وُضِعَتِ الْجِنَازَةُ وَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلٰى اَعْنَاقِهِمْ فَاِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ قَدِّمُوْنِيْ وَاِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ يَاوَيْلَهَا اَيْنَ يَذْهَبُوْنَ بِهَا يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ اِلَّا الْاِنْسَانُ وَلَوْ سَمِعَهُ صَعِقَ.

**۱۲۲۹**: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ليث. سعيد مقبري ذ خپل پلار نه هغه ذ ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي٬ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل٬ چه كله جنازه ايښودې شي٬ او سړي هغه په خپلو اوږو اوچتوي٬ كه هغه صالح وي٬ نو وائي٬ ما٬ يوسې٬ او كه غير صالح (خراب) نو وائي٬ افسوس٬ تاسو ما كوم خوا اوړې. ذ هغه آواز ذ بني آدمو نه سوا نور ټول څيزونه آوري. كه بني آدم هغه واوري٬ نو بيهوشه به شي.

## بَاب ۸۳۴: السُّرْعَةِ بِالْجَنَازَةِ

## باب ۸۳۴: جنازه كښې د تادي كولو بيان.

وَقَالَ اَنَسٌ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنْتُمْ مُشَيِّعُوْنَ وَامْشِ بَيْنَ يَدَيْهَا وَخَلْفَهَا وَعَنْ يَّمِيْنِهَا وَعَنْ شِمَالِهَا وَقَالَ غَيْرُهُ قَرِيْبًا مِّنْهَا.

انسؓ اووې تاسو جنازې سره ځئې. تاسو ذ هغې مخكښې٬ ذ هغې نه ورستو او د هغې ښي او كس طرف ته هم ځئې. او ذ هغه نه علاوه نورو هم ذ دې قريب قريب بيان كړې دې.

**۱۲۳۰**: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ

**۱۲۳۰**: علي بن عبداللّٰه. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. ابوهريرهؓ ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ او فرمائيل

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُونَهَا وَإِنْ تَكُ سِوٰى ذٰلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ.

جنازه اوړلو کښې تادي کونې، که هغه نيکوکار وي، نو بهتر خېز دې، چه هغه تاسو مخکښې لېږئ، او که هغه ـ دې نه سوا وي، نو يو خراب خيز دې، چه هغه تاسو د خپل څټ نه کوز وئې.

**باب ۸۳۵: قَوْلِ الْمَيِّتِ وَهُوَ عَلَى الْجَنَازَةِ قَدِّمُوْنِي.**

**باب ۸۳۵:** مړے چه په جنازه وي د هغه دا وئيل چه ما زر يوسئې.

**۱۲۳۱:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلٰى أَعْنَاقِهِمْ فَإِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ قَدِّمُوْنِي وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ لِأَهْلِهَا يَاوَيْلَهَا أَيْنَ تَذْهَبُوْنَ بِهَا يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الْإِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ لَصَعِقَ.

**۱۲۳۱:** عبداللّٰه بن يوسف. ليث. سعيد. د خپل پلار نه. هغه د ابو سعيد خدريّ نه روايت کوي، نبي صلى اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي. کوم وخت چه جنازه کېښودې شي، او خلق هغه په اوږو کېږدي، که هغه نيکوکار وي، نو وائي، چه ما په تادئ يوسئې، او که نيکوکار نه وي، نو خپلوانو ته وائي، افسوس، تاسو ما چرته اوړئې. د هغه آواز د انسان نه سوا هر خيز آوري. که انسان هغه واوري، نو بې هوشه به شي.

**باب ۸۳۶: مَنْ صَفَّ صَفَّيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً عَلَى الْجَنَازَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ.**

**باب ۸۳۶:** امام پسې په جنازه د دوو يا درې صفونو جوړولو بيان[1].

[1] . د احنافو په نزد دا مستحب دي. چه د جنازې مونځ کښې دې د مقتديانو درې صفه وي. که په جنازه کښې د مقتديانو شمير (تعداد) کم وي نو بيا دې هم چه څومره ممکنه وي درې صفونه جوړ کړي. مثلاً که مقتديان پنځه دي نو اولني او دويم صف کښې دوه، دوه سړي او په دريم صف کښې دې يو تن او دريږي. حال دا دې چه په فرض مونځ کښې په داسې طريقه صف جوړول مکروهه دي ليکن جنازه کښې په هر حال کښې درې صفونه بکار دي. څومره چه ممکنه وي درې صفونه جوړول بهتر دي.

**۱۲۳۲:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ أَبِيْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ

**۱۲۳۲:** مسدد. ابوعوانه. قتاده. عطاء. جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي، د هغه بيان

جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى عَلَى النَّجَاشِيِّ فَكُنْتُ فِي الصَّفِّ الثَّانِيْ اَوِ الثَّالِثِ.

دے چه رسول الله صلے الله عليه وسلم نجاشي (د حبشو بادشاه) باندے (غائبانه) مونځ اوکړه نو زه دويم يا دريم صف کښې ووم.

**باب ٨٣٧: الصُّفُوْفِ عَلَى الْجَنَازَةِ.**

**باب ٨٣٧: جنازے د پاره صفونو بيان.**

**١٢٣٣:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اَصْحَابِهِ النَّجَاشِيَّ ثُمَّ تَقَدَّمَ فَصَفُّوْا خَلْفَهُ فَكَبَّرَ اَرْبَعًا.

**١٢٣٣:** مسدد. يزيد بن زريع. معمر. زهري. سعيد. حضرت ابوهريرة نه روايت کوي چه نبي صلے الله عليه وسلم خپلو ملګرو ته د نجاشي د مرګ خبر واورولو. بيا مخکښې شو نو خلقو ورپسے صف جوړ کړلو. حضور ځلور تکبيرونه اوکړل.

**١٢٣٤:** حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَنْ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتٰى عَلٰى قَبْرٍ مَنْبُوْذٍ فَصَفَّهُمْ وَكَبَّرَ اَرْبَعًا قُلْتُ مَنْ حَدَّثَكَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

**١٢٣٤:** مسلم. شعبه. شيباني. شعبي نه روايت کوي. ماته يو سړي بيان اوکړ چه هغه حضور صلي الله عليه وسلم ليدلے وو چه حضور د يو منبوذ (غرخيدلي بچي) قبر سره صفونه جوړ کړل. او ځلور تکبيرونه ئے اوکړل. ما ورته اووے تاته چا دا بيان کړيدے. هغه جواب ورکړ چه ابن عباس.

**١٢٣٥:** حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ تُوُفِّيَ الْيَوْمَ

**١٢٣٥:** ابراهيم بن موسى. هشام بن يوسف. ابن جريج. عطاء. جابر بن عبدالله روايت کوي د هغه بيان دے نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل نن د حبش يو صالح وفات شوے دے نو راځئ چه په هغه مونځ اوکړو. مونږ صفونه قائم کړل نو نبي صلي

رَجُلٌ صَالِحٌ مِّنَ الْحَبَشِ فَهَلُمَّ فَصَلُّوْا عَلَيْهِ قَالَ فَصَفَفْنَا فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ وَنَحْنُ صُفُوْفٌ قَالَ اَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ كُنْتُ فِي الصَّفِّ الثَّانِيْ.

اللّٰه عليه وسلم په هغه (د جنازې) مونځ اوكړلو' او مونږ خلق صف بسته وو. ابو الزبير د جابرؓ نه روايت اوكړه' چه زه په دويم صف كښې وم.

## باب ٨٣٨: صُفُوْفُ الصِّبْيَانِ مَعَ الرِّجَالِ عَلَى الْجَنَائِزِ.

باب ٨٣٨: جنازه كښې سړو سره د بچو د صف قائمولو بيان.

١٢٣٦: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُالْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَامِرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِقَبْرٍ قَدْ دُفِنَ لَيْلًا فَقَالَ مَتٰى دُفِنَ هٰذَا قَالُوْا الْبَارِحَةَ قَالَ اَفَلَا اٰذَنْتُمُوْنِيْ قَالُوْا دَفَنَّاهُ فِيْ ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا اَنْ نُوْقِظَكَ فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلْفَهٗ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ اَنَا فِيْهِمْ فَصَلّٰى.

١٢٣٦: موسى بن اسمٰعيل. عبدالواحد. شيباني. عامر. ابن عباسؓ روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ذ يو قبر خوا كښې تيريدلو. چه د شپې دفن شوې وو. حضورؐ او فرمائيل دا كله دفن شوې دې. خلقو ورته اووې' پرون شپه' حضورؐ او فرمائيل. ماته مو اطلاع ولې رانكړله. خلقو ورته اووې. مونږ هغه ذ شپې په تيارۀ كښې دفن كۀ. په دې وجه مونږ ستاسوّ ويښول خوښ نۀ كړل. ابن عباسؓ وائي' زۀ هم په هغوئ كښې وم' نو حضورؐ په هغې مړي مونځ اوكړلو[١].

١. د مړي د دفن كولو (خښولو) نه پـه قبر باندې جنازه كولو كښې د امامانو اختلاف دې بعضې حالاتو كښې د احنافو په نزد' قبر باندې جنازه كول روا دي. په احاديثو مباركو كښې دا ثبوت شته دې چه نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم د مړي په قبر باندې جنازه كړيده. حديث شريف كښې دي چه قبر د تيرو (تاريكئ) نه ډک وي. او په دې قبرونو باندې څما د مونځ د جنازې كولو په وجه پكښې اللّٰه تعالي رنړا پيدا كوي. ددې وجې نه مونږ وايو. كه دغسې واقعات د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم په زمانه كښې شويدي. نو دا د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلم خصوصيات وو داسې په غائب (چه مړې موجود نه وي) باندې د جنازې د مونځ كولو ثبوت شته ليكن صرف يو ځل د حبشو په بادشاه نجاشي. او په بل صحابي ابن معاويه رضي اللّٰه عنه باندې هم د غائبانه جنازې ذكر ملاويږي ليكن مستندو محدثينو دا واقعه منكر ليكلې ده غائبانه جنازه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم كړيده. ډير صحابهٔ كرام په سفر كښې مړه شوي يا شهيد شويدي او د هغوي غائبانه جنازه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نده كړې نو ددې نه معلومه شوه چه نجاشي سره څه خصوصيت وو.

بـــاب ۸۳۹: سُنَّةِ الصَّلٰوةِ عَلَى الْجَنَائِزِ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى عَلَى الْجِنَازَةِ وَقَالَ صَلُّوْا عَلَى النَّجَاشِيِّ سَمَّاهَا صَـلٰـوةً لَّيْسَ فِيْهَا رُكُوْعٌ وَّلَا سُجُوْدٌ وَلَا يَتَكَلَّمُ وَ فِيْهَا تَكْبِيْرٌ وَّ تَسْلِيْمٌ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يُصَلِّي اِلَّا طَاهِرًا وَلَا يُصَلِّيْ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبِهَا وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ وَقَالَ الْحَسَنُ اَدْرَكْتُ النَّاسَ وَ اَحَقُّهُمْ عَلٰى جَنَائِزِهِمْ مَنْ رَّضُوْهُمْ لِفَرَائِضِهِمْ وَاِذَا اَحْدَثَ يَوْمَ الْعِيْدِ اَوْعِنْدَ الْجِنَازَةِ يَطْلُبُ الْمَآءَ وَلَايَتَيَمَّمُ وَاِذَا انْتَهٰى الْجِنَازَةِ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ يَدْخُلُ مَعَهُمْ بِتَكْبِيْرَةٍ وَقَالَ ابْنُ الْمُسَيِّبِ يُكَبِّرُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالسَّفَرِ وَالْحَضَرِ اَرْبَعًا وَقَالَ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا وَفِيْهِ صُفُوْفٌ وَّاِمَامٌ.

باب ۸۳۹: پـه جنازه د مونځ ذ طريقې بيان. او نبي صلى اللّـه عليه وسلم او فرمائيل چا چه د جنازے مونځ اوكړو او وے فرمائيل په خپل ملګري مونځ اوكړئ او وے فرمائيل په نجاشي مونځ اوكړئ او دے تـه ئـے مونځ اووے حالانكه نۀ دے كښې ركـوع شتـه او نـه سجده او نه دے كښې خبرے كولے شي. او دے كښې تكبير او سلام دے. او ابن عمرؓ به ذ پاكي (طهارت) په حالت كښې مـونـځ كولو. ذ نمر ذ ختو او پريوتو په وخت به ئے مونځ نه كـولـو او خپل دواړه لاړسونه به ئے اوچتول. حسن بصري اووے مـا ذ خـلـقو نه واوريدل چه ذ جنازے ذ مونځ ور كولو مستحق هغه سړے دے چه فرض مونځ كښې خلق هغه امام جوړول خوښ كړي. او كـلـه چه ذ آختر په ورځ يا ذ جنازے په وخت بے اودسه شي نو اوبـه دے او غـواړي تيمم دے نه كوي او كه جنازے له داسے حال كښې اورسي چـه خلق مونځ كوي نو مونځ كښې دے هغوي سره تـكبـيـر اووائـي شـريـك دے شـي او ابن مسيب اووے چه شپه ورځ سـفـر حـضـر كښې دے څلور تكبيره كوي او انس اووے چه رومبے تكبير د مونځ كولو ذ پاره دے او ذ اللّٰه تعالٰى قول دے كه دے مـنافقانو كښې څوک مړشي نو په هغه هيڅ كله مونځ مه كوه او هغے كښې صفونه وي او امام وي.

۱. ددے مـقـصـد دا دے چه د جنازے مونځ هم يو مونځ دے او چه په ټولو مونځونو كښې څه ضروري وي هغـه د جـنـازے مـونـځ كښې ضروري دي. ددے د پاره امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د مختلفو صحابه ؤ تابعينو اقوال ذكر كړيدي.

۱۲۳۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَنْ مَرَّمَعَ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرٍ مَنْبُوْذٍ فَاَمَّنَا فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ فَقُلْنَا

۱۲۳۷: سـلـيـمـان بـن حـرب. شـعـبـه. شيباني. شـعـبي نـه روايـت كـوي. شـعـبي وائـي. ماته هغے سړي اووے چـه سـتـاسـو نـبـي صـلـے الـلّٰه عليه وسلم سره د يو منبـوذ (غـرخـيـدلـي بـچـي) قبـر سره تير شوے وو چـه حضورؐ خمونږ امامت اوكه. او مونږ حضورؐ پسے صفونه

يَا اَبَا عُمَرِ وَمَنْ حَدَّثَكَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

قـائم كړل، مونږ اووے. اے ابن عمر تاته چا بیان او كړ نو جواب ئے راكړ، چه ابن عباسؓ

بَابٌ ۸۴۰: فَضْلِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَقَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِذَا صَلَّيْتَ فَقَدْ قَضَيْتَ الَّذِيْ عَلَيْكَ وَقَالَ حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ مَا عَلِمْنَا عَلَى الْجَنَازَةِ اِذْنًا وَلٰكِنْ مَنْ صَلّٰى ثُمَّ رَجَعَ فَلَهُ قِيْرَاطٌ.

باب ۸۴۰: جنازے پسے ورستو د تلو د فضیلت بیان. او زید بن ثابت اووے هر كله چه تا مونځ او كړ نو تا پوره كړ هغه څیز چه په تا واجب۱ دے. او حمید بن هلال اووے چه مونږ د جنازے نه واپسي د پاره د اجازت ضرورت نه كنړلو. لیكن چا چه مونځ او كړ، بیا واپس شو، نو هغه د پاره یو قیراط دے.

۱. یعني جنازے سره تر قبره تلل ضروري ندي. د جنازے مونځ كولو سره د سړي ذمه خلاصه شي. د مړی حق پوره شو.

۱۲۳۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا يَقُوْلُ حُدِّثَ ابْنُ عُمَرَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ يَقُوْلُ مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً فَلَهُ قِيْرَاطٌ: فَقَالَ اَكْثَرَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَلَيْنَا فَصَدَّقَتْ يَعْنِيْ عَائِشَةَ اَبَا هُرَيْرَةَ وَقَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُهُ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَقَدْ فَرَّطْنَا فِيْ قَرَارِيْطَ كَثِيْرَةٍ فَرَّطْتُ ضَيَّعْتُ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ.

۱۲۳۸: ابو النعمان. جریر بن حازم. نافع. ابن عمر. ابوهریرهؓ روایت كوي، هغه وائي څوك چه جنازے سره لاړ شي، نو هغه د پاره یو قیراط دے. ابن عمرؓ اووے، ابوهریرهؓ ډیر زیات روایتونه بیانوي بي بي عائشےؓ د ابوهریرهؓ تصدیق او كړه او، وے وئیل چه ما دا د رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم نه آوریدلے دي. ابن عمرؓ اووے، چه مونږ ډیرو قیراطونو كښ كوتاهي او كړه۱، یعني د اللّٰه حكم مو ضائع كړلو.

۱. د ترمذي او د مسلم په روایتونو كښ دي چه د ابوهریره رضي اللّٰه عنه نه، عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما دا حدیث شریف واوریدو نو د حضرت عائشے بي بي رضي اللّٰه عنها ددے تصدیق او غوښتو حضرت عائشے بي بي رضي اللّٰه عنهائے تصدیق اوكړو چه دا حدیث شریف صحیح دے نو عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما ډیر افسوس ښكاره كړو. "چه مونږ ته علمنه وو د بے خبرئ په وجه ډیرو جنازو كښ د مړي په قبر كښ د دفن كولو ایسار شوي نه یو، او صرف د جنازے مونځ به مو كولو او مونږ ډیر قیراطونه پریښودلے دي".

عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنهما په شروع كښ د ابوهریره رضي اللّٰه عنه روایت كړے حدیث اونه

منلو. خکه چه هغه پخپله صحابي وو او د علم په لحاظ په لويو صحابو کښې شمار وو په مسجد نبوي کښې به ئې درس ورکولو. نو هغه چه کله دا نوې خبره واوريده نو حيران شو او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په حقله ئې او فرمايل "چه يواځې دده په خبره باندې نشم منلې خکه چه هغه ډير احاديث روايت کوي او د ډير والي د سهو (خطا کيدو) او د هيريدو خطرې شته دې" نو خکه ئې د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها نه تصديق او غوښته حافظ ابن حجر رحمة الله عليه ليکلې دي چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د روايت نه انکار څه نوې خبره نده. اهل علم، علماء هميشه داسې کوي.

## بَاب ۸۴۱: مَنِ انْتَظَرَ حَتّٰى تُدْفَنَ.

## بـاب ۸۴۱: دفـن کـولـو پـورې دَ انتظار بيان.

۱۲۳۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ قَرَأْتُ عَلٰى اِبْنِ اَبِیْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِیْدِ الْمَقْبُرِیِّ عَنْ اَبِیْهِ اَنَّهُ سَأَلَ اَبَاهُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ح وحَدَّثَنَا اَحْمَدُبْنُ شَبِیْبِ بْنِ سَعِیْدٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ حَدَّثَنَا یُوْنُسُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَحَدَّثَنِیْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ الْاَعْرَجِ اَنَّ اَبَاهُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ شَهِدَ الْجَنَازَةَ حَتّٰی یُصَلِّیْ فَلَهٗ قِیْرَاطٌ وَّمَنْ شَهِدَ حَتّٰی تُدْفَنَ كَانَ لَهٗ قِیْرَا طَانِ قِیْلَ وَمَا الْقِیْرَا طَانِ قَالَ مِثْلُ الْجَبَلَیْنِ الْعَظِیْمَیْنِ.

۱۲۳۹: عبدالله بن مسلمه. ابن ابي ذئب. سعيد بن ابي سعيد مقبري د خپل پلار ابو سعيد مقبري نه روايت کوي، هغه د ابوهريرهؓ نه تپوس اوکړو نو هغه اووې، ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل (دوئم سند) احمد بن شبيب بن سعيد. شبيب بن سعيد. يونس. ابن شهاب. عبدالرحمن اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل کوم سړې چه جنازه کښې شريک شي، تر دې چه مونځ او کړي، نو هغه ذ پاره يو قيراط دې، او چه دَ دفن کولو پورې حاضر وي نو هغه ذ پاره دوه قيراطه دي. تپوس اوشو دوه قيراط څومره وي، ورته اوونيلې شو، د دوو لويو غرونو په شان دي.

## بَاب ۸۴۲: صَلٰوةِ الصِّبْیَانِ مَعَ النَّاسِ عَلَی الْجَنَائِزِ.

## باب ۸۴۲: په جنازه خلقو سره د بچو د مونځ کولو بيان.

۱۲۴۰: حَدَّثَنَا یَعْقُوْبُ بْنُ

۱۲۴۰: يعقوب بن ابراهيم. يحيي بن

إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا أَبُوْإِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عَامِرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ أَتَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْرًا فَقَالُوْ......هٰذَا دُفِنَ أَوْدُفِنَتِ الْبَارِحَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ ثُمَّ صَلّٰى عَلَيْهَا.

ابي بكير. زائده. ابو اسحاق شيباني. عامر. ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم يو قبر له راغے نو خلقو اووے، چه دے تيره شپه كښې دفن كړے شوے دے، يا دفن كړے شوے ده. د ابن عباسؓ بيان دے چه مونږ حضورؐ پسے صفونه جوړ كړل، بيا حضورؐ په هغے مونځ اوكړو.

١. دا واقعه د عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنهما د وركوټ والي ده. ددے نه د جنازے د مونځ د ماشومانو ادا كول ثابتيږي. ابن رشيد ويلے دي. چه د امام بخاري رحمة اللّٰه عليه ددے سر ليک نه دا ثابتيږ چه وارډ، ماشومان به لويو سړو سره يو ځائے د جنازے په مونځ كښې اودريږي د عام مونځ پشان به نه وي. چه روستو صف كښې به اودريږي.

## بَابُ ٨٤٣: الصَّلٰوةِ عَلَى الْجَنَائِزِ بِالْمُصَلّٰى وَالْمَسْجِدِ.

## باب ٨٤٣: مصلے او جمات كښې په جنازه د مونځ كولو بيان.

١٢٤١: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِيْ سَلَمَةَ أَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَعٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجَاشِيَّ صَاحِبَ الْحَبَشَةِ يَوْمَ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ فَقَالَ اسْتَغْفِرُوْا لِأَخِيْكُمْ وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفَّ بِهِمْ بِالْمُصَلّٰى فَكَبَّرَ عَلَيْهِ أَرْبَعًا.

١٢٤١: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. سعيد بن مسيب او ابو سلمه دواړه د ابو هريرهؓ نه روايت كوي. د هغوي بيان دے چه مونږ ته رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم د شاه حبش نجاشي د مرگ خبر واورولو. په كومه ورځ چه نجاشي وفات شو، حضورؐ او فرمائيل. تاسو د خپل ورور د پاره د مغفرت دُعا اوكړئے او ابن شهاب نه روايت دے، مونږ ته سعيد بن مسيب د ابوهريرهؓ دا قول بيان كړ، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم مصلے كښې صفونه قائم كړل او څلور تكبيرونه ئے اوكړل.

۱۲۴۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ الْيَهُوْدَ جَآءُوْا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ مِّنْهُمْ وَامْرَاَةٍ زَنَيَا فَاَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا قَرِيْبًا مِّنْ مَّوْضِعِ الْجِنَائِزِ عِنْدَ الْمَسْجِدِ.

۱۲۴۲: ابراهیم بن منذر، ابو ضمره، موسی بن عقبه، نافع، عبدالله بن عمر نه روایت دے. یهودیانو نبي صلی الله علیه وسلم ته یو یهودي سړے او ښځه راوستل چه هغوی زنا کړے وه حضور د هغے دواړو د سنګسارولو حکم ورکړلو نو جمات سره د جنازے د مونځ ځائے ته قریب هغه دواړه سنګسار کړے شول.

۱. په دے مسئله کښې د امامانو رحمة الله علیهم اختلاف دے چه جُمات کښې د جنازے مونځ کول پکار دي یا نه. د امام ابو حنیفه او د امام مالک رحمة الله علیهما د مسلک مطابق په جمات کښې د جنازے مونځ کول پکار ندي. د امام شافعي رحمة الله علیه مسلک دا دے چه غوره داده چه جُمات نه د جنازے مونځ بهر ادا شي. لیکن جُمات کښې د جنازے مونځ کول روا دي د رسول الله صلي الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښې د عیدګاه چاردیواري نه وه. آزاد میدان وو. د باب رومبے حدیث د امام شافعي رحمة الله علیه د مسلک خلاف دے هغے نه دا حکم ثابتیږي چه کله د نجاشي د مرګ خبر راغے نو رسول الله صلي الله علیه وسلم مسجد نبوي کښې وو او د جنازے د مونځ د پاره د مسجد نبوي نه بهر عیدګاه طرفته لاړلو چه آزاد میدان وو او د نجاشي د جنازے مونځ کول ئے په مسجد نبوي کښې مناسب اونه ګنړلو. د باب د دویم حدیث شریف نه هم دا نه ثابتیږي چه د جنازے مونځ جُمات کښې ادا شوي وي ډیر واقعات داسے دي چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم د جنازے د مونځ د پاره د مسجد نبوي نه بهر تشریف اوړے دے که یو خل یا دوه خله په مسجد نبوي کښې د جنازے د مونځ ادا کولو روایت شته خو بیاهم د هغے د مخالف قوي دلائلو په وجه د هغے توجیه پکار ده. حدیث شریف کښې دي چه کوم بنده په جُمات کښې د جنازے مونځ او کړي هغه ته به ثواب نه ورکیږي.

## بَاب ۸۴۴: مَا يُكْرَهُ مِنْ اِتِّخَاذِ الْمَسَاجِدِ عَلَى الْقُبُوْرِ

وَلَمَّا مَاتَ الْحَسَنُ ابْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ ضَرَبَتْ اِمْرَاَتُهُ الْقُبَّةَ عَلٰى قَبْرِهٖ سَنَةً ثُمَّ رُفِعَتْ فَسَمِعُوْا صَائِحًا يَقُوْلُ: اَلَا هَلْ وَجَدُوْا مَافَقَدُوْا فَاَجَابَهُ الْاٰخَرُ بَلْ يَئِسُوْا فَانْقَلَبُوْا.

## باب ۸۴۴: په قبرونو د جماتونو د جوړولو د کراهت بیان.

او کوم وخت چه حسن بن حسن بن علی وفات شولو، نو د هغه ښځے یو کال پورے د هغه په قبر خیمه لګولے پرته وه، بیائے خیمه اوچته کړه، لاړله، نو خلقو د یو آواز کونکي آواز واوریدلو، چه آیا دے خلقو چه کوم څیز ورک کړے وو، هغه ئے بیامندلو، نو بل جواب ورکړلو، بلکه ناامیده واپس شولو.

۱۲۴۳ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ شَيْبَانَ عَنْ هِلَالٍ هُوَ الْوَزَّانُ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰى اِتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَآءِهِمْ مَسْجِدًا قَالَتْ وَلَوْلَا ذٰلِكَ لَاُبْرِزَ قَبْرُهٗ غَيْرَ اَنِّيْ اَخْشٰى اَنْ يُّتَّخَذَ مَسْجِدًا.

۱۲۴۳ : عبيدالله بن موسي. شيبان. هلال. وزان. عروه. بي بي عائشهؓ د نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، چه حضورؐ كوم مرض كښې وفات شو هغې كښې ئې او فرمائيل: الله دې په يهودو او نصاري لعنت كړي، چه هغوي د خپلو انبياؤ د قبرونو نه جمات جوړ كړلو ا. بي بي عائشې اووې: كه داسې نه وې نو د حضورؐ قبر به كولاؤ ځائې كښې جوړ شوې وو، خو ما سره ويره ده، چه چرته جمات تر جوړ نۀ كړي.

۱. دا ياد ساتل پكار دي چه د يهوديانو پشان عيسايان هم د بني اسرائيلو پيغمبرانو باندې ايمان لري. ځرنګ چه يهوديانو د خپلو پيغمبرانو په قبرونو جماتونه جوړ كړې وو په دې جرم كښې عيسايان هم ورسره شريك وو. ددې حديث شريف نه د عيسي عليه السلام د وفات مسئله نه ثابتيږي.

باب ۸۴۵ : اَلصَّلٰوةُ عَلَى النُّفَسَآءِ اِذَا مَاتَتْ فِيْ نِفَاسِهَا.

باب ۸۴۵ : نفاس واله ښځې باندې دَ مونځ كولو بيان، هر كله چه هغه د نفاس حالت كښې مړه شي.

۱۲۴۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ سَمُرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ وَرَآءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَاَةٍ مَاتَتْ فِيْ نِفَاسِهَا فَقَامَ عَلَيْهَا وَسَطَهَا.

۱۲۴۴ : مسدد. يزيد بن زريع. حسين. عبدالله بن بريده. سمره نه روايت كوي. سمرهؓ بيان اوكه: چه ما نبي صلي الله عليه وسلم پسې په هغې ښځې باندې مونځ اوكۀ، چه دَ نفاس په حالت كښې مړه شوې وه، حضورؐ د هغې (د جنازې) په مينځ كښې اودريدلو ا.

۱. د احنافو مسلک دا دې چه د جنازې د مونځ وركولو د پاره به امام د مړي سينې سره اودريږي كه مړې سړې وي او كه ښځه. راوي دې حديث شريف كښې خپل ليدل بيان كړې دي. او داسې كه څوک خپل ليدل يا مشاهدې بيان كړي. د هغې نه څه نه ثابتيږي په دې روايت كښې "وسط" (مينځ) لفظ له اهميت وركول پكار دي. امام ابوحنيفه رحمة الله عليه د نورو قوي رواياتو په وجه دا حكم كړې دې چه امام به د سړي او د ښځې د سينې سره اودريږي. سينه د ايمان ځائې دې.

باب ۸۴۶ : اَيْنَ يَقُوْمُ مِنَ

باب ۸۴۶ : د ښځې او سړي جنازه كښې كوم

الْمَرْاَةِ وَالرَّجُلِ.

خانے او دریدل پکار دي.

۱۲۴۵ : حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ بْنُ جُنْدُبٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَآءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَاَةٍ فِيْ نِفَاسِهَا فَقَامَ عَلَيْهَا وَسَطَهَا.

۱۲۴۵ : عمران بن مسيره. عبدالوارث. حسين. ابن بريده. سمره بن جندبؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے چه ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلم پسے ذيوے ښځے ذ جنازے مونځ اوكه، چه ذ نفاس په حالت كښې مړه شوے وه، نو حضورؐ ذ هغے (ذ جنازے) مينځ كښې اودريدلو.

باب ۸۴۷: التَّكْبِيْرُ عَلَى الْجِنَازَةِ اَرْبَعًا وَقَالَ حَمِيْدٌ صَلّٰى بِنَا اَنَسٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَكَبَّرَ ثَلَاثًا ثُمَّ سَلَّمَ فَقِيْلَ لَهُ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ ثُمَّ كَبَّرَ الرَّابِعَةَ ثُمَّ سَلَّمَ.

باب ۸۴۷: ذ جنازے ذ څلورو تكبيرونو بيان.

او حميد اووے، چه مونږ ته انسؓ مونځ راكه، نو درے تكبيره ئے اوكړل. بيائے سلام اوګرځولو هغه ته اوونيلے شو، نو قبلے ته ئے مخ كه. بيائے څلورم تكبير اوكه. او سلام ئے اوګرځولو.

۱۲۴۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَخَرَجَ بِهِمْ اِلَى الْمُصَلّٰى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ عَلَيْهِ اَرْبَعَ تَكْبِيْرَاتٍ.

۱۲۴۶ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم ذ نجاشي ذ مرګ خبر واورولو، په كومه ورځ چه نجاشي وفات شو، او هغه خلق ئے مصلے طرف ته بوتلل. ذ هغوئ صفونه ئے قائم كړل، او په هغه ئے څلور تكبيرونه اوكړل.

۱۲۴۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمُ ابْنُ حَيَّانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ عَنْ جَابِرٍ

۱۲۴۸ : محمد بن سنان. سليم بن حيان. سعيد بن ميناء. جابر نه روايت كوي، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى عَلٰى اَصْحَمَةَ النَّجَاشِيِّ فَكَبَّرَ اَرْبَعًا وَقَالَ يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ وَعَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ سُلَيْمٍ اَصْحَمَةَ وَتَابَعَهُ عَبْدُ الصَّمَدِ.

اصحمه نجاشي باندے مونځ او کړلو' نو څلور تکبیرونه ئے او کړل. او یزید بن هارون او عبدالصمد د سلیم نه صرف د اصحمه لفظ روایت کړے دے' او عبدالصمد د دے متابع حدیث روایت کړے دے.

## باب ۸۴۸: قِرَاْءَةُ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ عَلَى الْجَنَازَةِ وَقَالَ الْحَسَنُ يَقْرَاءُ عَلَى الطِّفْلِ بِفَاتِحَتِ يَقْرَأُ الْكِتَابِ وَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَّ سَلَفًا وَّ اَجْرًا.

باب ۸۴۸: په جنازه د سورة فاتحه لوستو بيان[۱]. او حسن اووے' په بچي دے سورة فاتحه اولولي' او اودے وائي: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَّ سَلَفًا وَّ اَجْرًا.

۱. د احنافو په نزد د جنازے په مونځ کښې سورة فاتحه ويل روا دي د نورو دعاګانو په نسبت دا جامعه دعا ده. نو ددے په لوستلو کښې څه بدي نشته د دعا او د الله تعالٰي د ثنا په خاطر د جنازے مونځ کښې ويل پکار دي د قرأت په نيت نه' امام بخاري رحمة الله عليه د باب سر ليک ايښے دے. ''په جنازه کښې سورة فاتحه لوستل'' د امام بخاري رحمة الله عليه کرنيکه استاذ په سنهري سند سره مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما عمل بيان کړے دے چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به د جنازے مونځ کښې قرأت نه لوستلو سورة فاتحه به ئے نه وئ (موطا صفحه ۲۱۰) او ابن وهب رحمة الله وائي. چه ډيرو علماؤ صحابه ؤ او تابعينو د جنازے مونځ کښې قرأت نه لوستلو هغه علماء: حضرت عمر' حضرت علي' حضرت عبدالله بن عمر' حضرت عبيد بن فضاله' حضرت ابوهريره' حضرت جابر بن عبدالله او حضرت واثله بن الاسقع رضي الله عنهم' او حضرت قاسم بن محمد' حضرت سالم بن عبدالله' حضرت سعيد بن المسيب' حضرت عطاء بن ابي رباح' حضرت يحيي بن سعيد رضي الله عنهم به د جنازے په مونځ کښې قرأت نه لوستلو (فاتحه يا سورت به ئے نه لوستلو) ابن وهب رحمة الله عليه فرمائي. چه امام مالک رحمة الله عليه ويلے دي چه په مدينه منوره به هيڅا د جنازے مونځ کښې قرأت نه لوستلو د جنازے مونځ کښې صرف دعا ده او د مدينے منورے د عالمانو په دے عمل وو چه قرأت به ئے نه لوستلو (المدونة الکبري جلد اول صفحه ۱۷۴) د امام بخاري رحمة الله عليه بل استاذ امام ابوبکر ابن ابي شيبه رحمة الله عليه د حجاج نه روايت کوي چه ما د حضرت عطاء بن ابي رباح رحمة الله عليه نه د جنازے په مونځ کښې د قرأت په حقله پښتنه اوکړه ''هغه او فرمايل''. ''ما چرے اوريدلے نه دے'' (ش جلد دريم ص ۲۹۹) عطاء بن ابي رباح رحمة الله عليه د مکے مکرمے لوئے عالم وو نو معلومه شوه چه د مدينے منورے د خلقو پشان د مکے مکرمے خلقو هم د جنازے په مونځ کښې فاتحه نه لوستله. داسے امام ابوبکر بن ابي شيبه رحمة الله عليه دا روايت هم کړے دے چه په کوفه کښې امام شعبي امام ابراهيم نخعي او بصره کښې امام محمد بن سيرين به هم د جنازے په مونځ کښې قرأت نه لوستلو (ش جلد دويم ص ۲۹۹. ۲۹۵) ددے تفصيل نه دا په

دا که معلومه شوه چه سورت فاتحه د قرأت په حيثيت د جنازے مونځ کښې نشته او بعضے احناف د دعا او د ثنا په ډول فاتحه د جنازے مونځ کښې روا ګڼړي. څرنګ چه حائضه ښځه د قرآن قرأت نشي کولے لیکن بعض عالمانو د دعا او د ثنا په ډول د لوستلو اجازت ورکړے دے. (امين او کاروي)

۱۲۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ طَلْحَةَ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِبْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ طَلْحَةَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَلٰى جِنَازَةٍ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ قَالَ لِيَعْلَمُوْا اَنَّهَا سُنَّةٌ.

۱۲۴۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعد. طلحه نه روایت کوي. طلحه بیان او کړه، چه ما ابن عباسؓ پسے (د جنازے) مونځ او کړه (دويم سند) محمد بن کثير. سفيان. سعد بن ابراهيم. طلحه بن عبدالله بن عوف نه روایت کوي، د طلحه بیان دے، چه ما ابن عباسؓ پسے په یوه جنازه مونځ او کړه. او هغه سورة فاتحه اولوسته، اووے وئيل خلق دے پوهه شي، چه دا سنت دي.

باب ۸۴۹: الصَّلٰوةُ عَلَى الْقَبْرِ بَعْدَ مَا يُدْفَنُ.

باب ۸۴۹: دفن کولو نه پس په قبر د مونځ کولو بیان.

۱۲۴۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَنْ مَرَّ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرٍ مَنْبُوْذٍ فَاَمَّهُمْ وَصَلُّوْا خَلْفَهُ قُلْتُ مَنْ حَدَّثَكَ هٰذَا يَا اَبَا عَمْرٍو قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

۱۲۴۹: حجاج بن منهال. شعبه. سليمان شيباني. شعبي نه روایت کوي، هغه، اووے، ماته هغه سړي بیان او کړه، چه نبي صلی الله علیه وسلم سره د یو منبوذ (غرڅيدلي بچي) قبر سره تیر شوے وو. حضورؐ د خلقو امامت او کړه، او خلقو حضورؐ پسے مونځ او کړه. ما تپوس او کړه، چه اے ابو عمرو، تاته کوم سړي دا بیان او کړه، نو هغه جواب راکه، چه ابن عباسؓ.

۱۲۵۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

۱۲۵۰: محمد بن فضل. حماد بن زيد. ثابت. ابو رافع. ابوهريرهؓ نه روایت کوي، چه اسود نومے یو سړي (یا ښځے) به جمات جارو

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: اَنَّ اَسْوَدَ رَجُلًا اَوِامْرَاَةً كَانَ يَقُمُّ الْمَسْجِدَ فَمَاتَ وَلَمْ يَعْلَمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَوْتِهٖ فَذَكَرَهٗ ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ مَا فَعَلَ ذٰلِكَ الْاِنْسَانُ قَالُوْا مَاتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَفَلَا اٰذَنْتُمُوْنِيْ فَقَالُوْا اِنَّهٗ كَذَاوَكَذَا قِصَّتُهٗ قَالَ فَحَقَرُوْا شَاْنَهٗ قَالَ فَدُلُّوْنِيْ عَلٰى قَبْرِهٖ فَاَتٰى قَبْرَهٗ فَصَلّٰى عَلَيْهِ.

کولو. چه هغه مړ شو. نو نبي صلے الله علیه وسلم ته د هغه د مرګ خبر اونه شولو. یوه ورځ حضورؐ تپوس اوکړو چه هغه انسان څه شو خلقو اووے: یا رسول الله: هغه خو مړ شولو حضورؐ او فرمائیل: ماته مو اطلاع ولے رانه کړه. خلقو ورته اووے: د هغه فلانئے فلانئے واقعه: ګویا د هغه مرتبه خلقو سپکه اوګنړله: نو حضور او فرمائیل. ماته د هغه قبر اوښائے، نو حضورؐ د هغه قبر ته راغے، او په هغه ئے مونځ اوکړ.

## بَاب ٨٥٠: اَلْمَيِّتِ يَسْمَعُ خَفْقَ النِّعَالِ.

## باب ٨٥٠: مړے د پېنړو آواز آوري.

١٢٥١: حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ قَالَ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَبْدُ اِذَا وُضِعَ فِيْ قَبْرِهٖ وَتُوَلِّيَ وَذَهَبَ اَصْحَابُهٗ حَتّٰى اِنَّهٗ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ اَتَاهُ مَلَكَانِ فَاَقْعَدَاهُ فَيَقُوْلَانِ لَهٗ مَا كُنْتَ تَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الرَّجُلِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنَّهٗ عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ فَيُقَالُ انْظُرْ اِلٰى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ اَبْدَلَكَ اللّٰهُ بِهٖ مَقْعَدًا مِّنَ الْجَنَّةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَرَاهُمَا جَمِيْعًا وَّ اَمَّا الْكَافِرُ اَوِالْمُنَافِقُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ كُنْتُ اَقُوْلُ مَا

١٢٥١: عیاش. عبدالاعلیٰ. سعید. خلیفه. بن زریع. سعید. قتاده. انسؓ نه روایت کوي. نبي صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه بنده کله خپل قبر کښ کیښنودے شي، او (هغه دفن کړے شي) ملګري ترے رخصت شي، تردے چه د هغوي د پنړو آواز آوري، نو دهٔ له دوه فریښتے راشي هغه کینوي او ورته وائي چه د دے سړي یعني محمد صلي الله علیه وسلم متعلق ته څه وائے، نو هغه وائي، زهٔ ګواهي کوم، چه دے د الله بنده او د هغهٔ رسول دے، نو هغهٔ ته اوونیلے شي، چه د جهنم خپل ځائے ته اوګوره، چه الله تعالیٰ د هغے په بدله کښ تاله جنت کښ ځائے درکړلو. نبي صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه هغه دا دواړه ځیزونه (جنت او جهنم) اوویني. او کافر یا منافق به وائي ماته نهٔ ده معلومه، ما به خو هغه وئیلے چه څهٔ به خلقو وئیلے، نو ورته به اوونیلے شي نه دے معلومه کړله او نه دے خان پوهه کړلو. بیا به

يَقُوْلُ النَّاسُ فَيُقَالُ لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ ثُمَّ يُضْرَبُ بِمِطْرَقَةٍ مِّنْ حَدِيْدٍ ضَرْبَةً بَيْنَ أُذُنَيْهِ فَيَصِيْحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيْهِ إِلَّا الثَّقَلَيْنِ.

د او سپنې په ستڅکې د دواړو غوږونو مينځ کښې وهلې شي نو چغې به وهي او دغه چغې د انس او جن نه سوا نور د خواوشا ټول څيزونه ئې آوري.

**باب ۸۵۱: مَنْ أَحَبَّ الدَّفْنَ فِي الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ أَوْ نَحْوِهَا.**

**باب ۸۵۱: د هغې سړي بيان چه ارض مقدسه يا د دې نه علاوه خايونو کښې دفن کيدل خوښ کړي.**

۱۲۵۲ : حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ أُرْسِلَ مَلَكُ الْمَوْتِ إِلٰى مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ فَلَمَّا جَآءَهُ صَكَّهُ فَرَجَعَ إِلٰى رَبِّهِ فَقَالَ أَرْسَلْتَنِيْ إِلٰى عَبْدٍ لَّا يُرِيْدُ الْمَوْتَ فَرَدَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَيْنَهُ فَقَالَ ارْجِعْ فَقُلْ لَهُ يَضَعُ يَدَهُ عَلٰى مَتْنِ ثَوْرٍ فَلَهُ بِكُلِّ مَا غَطَّتْ بِهِ يَدُهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ سَنَةٌ قَالَ أَيْ رَبِّ ثُمَّ مَاذَا قَالَ ثُمَّ الْمَوْتُ قَالَ فَالْآنَ فَسَأَلَ اللّٰهَ أَنْ يُدْنِيَهُ مِنَ الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً بِحَجَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَوْ كُنْتُ ثَمَّ لَأَرَيْتُكُمْ قَبْرَهُ إِلٰى جَانِبِ الطَّرِيْقِ عِنْدَ الْكَثِيْبِ الْأَحْمَرِ.

۱۲۵۲ : محمود. عبدالرزاق. معمر. ابن طاوس د خپل پلار نه او هغه ذ ابوهريرة نه روايت کوي چه حضرت موسي عليه السلام ته ذ مرګ فريښته اوليږلې شوه کوم وخت چه هغه ته اورسيده نو موسي عليه السلام ورله پرقې ورکه هغه خپل پروردګار له لاړه او عرض ئې اوکه چه تا زه داسې بنده له اوليږلم چه مرګ نه غواړي. الله تعالي هغې فريښتې له بينائي ورکړه (خکه چه د موسي عليه السلام پرق سره ئې بينائي ختمه شوې وه) او ورته ئې او فرمائيل لاړ شه او هغه ته اووايه چه خپل لاس دغوي (بيل) په شاکيږده او د هغې د هر ويښته په عوض کښې به چه دهغه پرې لاس پريوځي يو کال عمر درکړې شي. موسي عليه السلام عرض اوکه اې پروردګاره دې نه پس به څه وي. الله پاک ورته او فرمائيل بيا به مرګ وي نو موسي عليه السلام عرض اوکه بيا اوس دې راشي او الله ته ئې خواست اوکه چه هغه ذ يو کانړي ويشتلو په مقدار ارض مقدس ته نزدې کړي. رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمائيل که زه هلته وې نو ما به تاسو ته د هغه قبر لارې طرف ته د سرې (سرخ) ډهيرئ د پاسه ښودلې وې[1].

۱ . عيني د بخاري شرحه کښې ليکلي دي چه د موسي عليه السلام په طبيعت کښې سختي ډيره وه. او کله چه به غصه شو نو د غضب په وجه به ئې ټوپئ سوزيدله دا خبره اګرچه ډيره د منلو قابله نده خو بياهم پخواني امتونه د طاقت او د بدن په لحاظ خمونږ نه زيات زوره ور وو د نن زمانې د تحقيقاتو په رڼا کښې دا خبره هم منلې شويده موسي عليه السلام د الله تعالي اولوالعزم رسول وو د هغه د روح د قبض کولو طريقه به هم خمونږ نه مختلف وه. انبياء عليهم السلام ته به د مرګ فرشته د مرګ نه مخکښې خکه راتلله چه د

هغه د پاره به دا ضروري وه چه ددې خبرې پښتنه او کړي. چه د هغه د مرګ تقديري وښت راغلے ليکن د الله تعالى د طرفنه هغه ته اختيار دے که نور ژوند غواړي نو ژوندے او سيدے شي ليکن د مرګ فرښتے حضرت موسي عليه السلام سره ددے په حقله څه مشوره يا خبرے اونه کړے بلکے يو اخې د وفات خبرئے ورکړو په هغے موسي عليه السلام ته غصه راغله او پرق ئے ورکړو.

۲. اوس دا معلومه نده چه سره ډهيرئ چرته ده د رسول اکرم صلي الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښې سره ډهيرئ وه. څکه د هغے په حقله هغوئ او فرمايل چه د موسي عليه السلام قبر سرے ډهيرئ سره دے. سلطان عبدالمجيد عثماني بيت المقدس بنهر کښې يو ګنبد جوړ کړے وو چه دا د موسي عليه السلام د قبر ځائے دے کيدے شي چه د هغے ګنبد بنياد اسرائيلي روايات وي. اسلامي روایاتو کښې د هغه په حقله څه معلومات نشته. نبي کريم صلي الله عليه وسلم چه کومه سره ډهيرئ ښودلے وه د هغے چانه پته نشته ددے روايت نه معلوميږي چه په پاکه مزکه کښې د دفن کيدو آرزو خواهش جائز او روا دے.

## بَابُ ۸۵۲: الدَّفْنِ بِاللَّيْلِ وَدُفِنَ اَبُوْبَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَيْلًا.

باب ۸۵۲: دَ شپے دَ دفن کولو بيان او حضرت ابوبکرؓ د شپے دفن کړے شو.

۱۲۵۳: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَجُلٍ بَعْدَ مَادُفِنَ بِلَيْلَةٍ قَامَ هُوَوَاَصْحَابُهٗ وَكَانَ سَاَلَ عَنْهُ فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقَالُوْا فُلَانٌ دُفِنَ الْبَارِحَةَ فَصَلُّوْا عَلَيْهِ.

۱۲۵۳: عثمان بن شيبه. جرير. شيباني. شعبي. ابن عباسؓ نه روايت کوي چه نبي صلے الله عليه وسلم په يو سړي د شپے د دفن کيدو نه پس مونځ اوکۀ. حضورؐ او دَ حضورؐ صحابهٌ پاسيدل او د هغۀ متعلق ئے تپوس کولو چه دا څوک دے. خلقو ورته اووے دا دَ فلاني سړي قبر دے چه تيره شپه کښې دفن کړے شوے دے نو خلقو په هغۀ مونځ اوکۀ.

## بَابُ ۸۵۳: بِنَاءِ الْمَسْجِدِ عَلَى الْقَبْرِ.

باب ۸۵۳: په قبر دَ جمات جوړولو بيان.

۱۲۵۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَتْ بَعْضُ نِسَآئِهٖ كَنِيْسَةً رَاَتْهَا بِاَرْضِ الْحَبَشَةِ يُقَالُ لَهٗ

۱۲۵۴: اسمٰعيل. مالک. هشام دَ خپل پلار نه او هغه دَ بي بي عائشے نه روايت کوي کوم وخت چه نبي صلے الله عليه وسلم ناروغه شو نو دَ حضورؐ بعضے بيبيانو ملک حبشه کښې د يوے کرجے ذکر اوکۀ چه هغے ته ئے ماريه وئيلے. اُم سلمهٌ او اُم حبيبه ملک حبشه

مَارِيَةُ وَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَأُمُّ حَبِيْبَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَتَتْ اَرْضَ الْحَبَشَةِ فَذَكَرَتَا مِنْ حُسْنِهَا وَتَصَاوِيْرَ فِيْهَا فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ أُولٰئِكَ إِذَا مَاتَ مِنْهُمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ بَنَوْا عَلٰى قَبْرِهٖ مَسْجِدًا ثُمَّ صَوَّرُوْا فِيْهِ تِلْكَ الصُّوْرَةَ أُولٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللّٰهِ.

نه تللے وے. نو هغے دواړو د هغے ګرجے خوبصورتي او د هغے د تصویرونو حال بیان که. حضورؐ سر راپورته کړلو. او وے فرمائیل، دا هغه خلق دي، چه کله به هغوي کښې یو صالح سړے مړشو، نو هغوي به د هغه په قبر جمات جوړولو. بیا به ئے په هغے کښې دغه تصویر جوړ کړو. دا خلق د اللّٰه تعالیٰ په نزد بدترین مخلوق دي.

## بَابُ ۸۵۴: مَنْ يَّدْخُلُ قَبْرَ الْمَرْأَةِ.

## باب ۸۵۴: د ښځے په قبر کښې به څوک کوزیږي؟.

۱. غوره داده چه د ښځے قبرته به څوک عزیز رشته دار (خپلوان) کوزیږي که ضرورت وي نو پردے سړے هم کوزیدے شي. دغه شان خاوند هم د ښځے قبرته کوزیدے شي. خلقو کښې یوه ډیره عجیبه بے بنیاده خبره مشهوره ده چه د مرګ نه پس خاوند د ښځے د پاره پردے او د عام خلقو پشان دے دا ډیره بے بنیاده او عبث غلطه خبره ده اسلام کښې د ښځے او د خاوند تعلق دومره معمولي ندے.

۱۲۵۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ أَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عَلَى الْقَبْرِ فَرَأَيْتُ عَيْنَيْهِ تَدْمَعَانِ فَقَالَ هَلْ فِيْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ لَّمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ...... فَقَالَ اَبُوْطَلْحَةَ اَنَا قَالَ فَانْزِلْ فِيْ قَبْرِهَا فَنَزَلَ فِيْ قَبْرِهَا فَقَبَرَهَا قَالَ ابْنُ مُبَارَكٍ قَالَ فُلَيْحٌ اَرَاهُ يَعْنِي الذَّنْبَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ لِيَقْتَرِفُوْا اَيْ لِيَكْتَسِبُوْا.

۱۲۵۵: محمد سنان. فلیح بن سلیمان. هلال بن علي. انسؓ نه روایت کوي، چه مونږ د رسول کریم صلے اللّٰه علیه وسلم د لور جنازه کښې حاضر شو او رسول کریم صلے اللّٰه علیه وسلم په قبر ناست وو ما اولیدل، چه د حضورؐ د سترګو نه اوښکے بهیدلے. حضورؐ او فرمائیل، تاسو کښې څوک داسے سړے شته چه نن شپه ئے خپلے بي بي سره صحبت نه وي کړے. ابو طلحهؓ عرض او کړو، زه یم. نو حضورؐ ورته او فرمائیل. د دے قبر ته کوز شه. نو ابوطلحهؓ قبر ته کوز شولو، او هغه ئے په قبر کښې کینولو. ابن مبارک وائي، چه د "لم یقارب" مطلب خما په خیال کښې دا دے، چه ګناه ئے نه وي کړے. او ابو عبداللّٰه وائي، چه قرآن کښې د لیقترفوا معني لیکتسبوا ده یعني چه کسب او کړي.

## باب ۸۵۵: اَلصَّلٰوةُ عَلَى الشَّهِيْدِ.

۱۲۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى اُحُدٍ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيُّهُمْ اَكْثَرُ اَخْذًا لِّلْقُرْاٰنِ فَاِذَا اُشِيْرَلَهُ اِلٰى اَحَدِهِمَا قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ اَنَا شَهِيْدٌ عَلٰى هٰٓؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَاَمَرَبِدَ فْنِهِمْ فِيْ دِمَآئِهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوْا وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ.

۱۲۵۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلّٰى عَلٰى اَهْلِ اُحُدٍ صَلٰوتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ اِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اِنِّيْ فَرَطٌ لَّكُمْ فَاَنَا شَهِيْدٌ عَلَيْكُمْ وَاِنِّيْ وَاللّٰهِ لَاَنْظُرُ عَلٰى حَوْضِي الْاٰنَ وَاِنِّيْ اُعْطِيْتُ مَفَاتِيْحَ خَزَآئِنِ الْاَرْضِ اَوْمَفَاتِيْحَ الْاَرْضِ وَاِنِّيْ وَاللّٰهِ

## باب ۸۵۵: په شهيد د مونځ كولو بيان

۱۲۵۶: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. ابن شهاب. عبدالرحمن بن كعب بن مالك. جابر بن عبداللّٰهٔ نه روايت كوي: چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم به د اُحد شهيدانو كښې دوه سړي يو كپړه كښې جمع (دفن) كول. بيا به ئے فرمائيل: دے دواړو كښې كوم يو ته زيات قرآن ياد دے. بيا چه هغوي كښې به يو كس ته اشاره اوشوه نو قبر كښې به وړمبے هغه ايښودلے شو. او فرمائيل به ئے چه زهٔ به د قيامت په ورځ په دوي گواه يم او وينے سره د هغوي د دفن كولو حكم ئے اوكړ، نه ئے غسل وركه او نه ئے پرے مونځ اوكړ.

۱۲۵۷: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت كوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلم يو ورځے اووتلو، نو اُحد والو باندے ئے مونځ اوكړ، څنګه چه په مړي باندې كيږي. بيا منبر طرف ته راغے، او، وے فرمائيل: زهٔ ستاسو مخكښې تلونكے يم، او زهٔ په تاسو گواه يم. په خدائے چه زهٔ حوض طرف ته اوس گورم، او د زمكے كنجيانے راكړے شوے دي. يا دانے او فرمائيل، چه د زمكے كنجيانے ماته راكړے شوے دي. او په خدائے چه ماسره د دے خوف نشته، چه څما نه

مَا اَخَافُ عَلَيْكُمْ اَنْ تُشْرِكُوْا بَعْدِيْ وَلٰكِنْ اَخَافُ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنَافَسُوْا فِيْهَا.

پس به تاسو شرک شروع کړئ خو ما سره دا ویره ده، چه دنیا حاصلو کښې به تاسو یو بل سره مقابله راواخلئ.

۱. دا واقعه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم د وصال (د وفات) نه څو ورځے وړاندے ده. د ابو داود شریف په حدیث کښې دي. چه په احد کښې ئے په شهیدانو باندے اته کاله پس د جنازے د مونځ دعا کړے وه. ددے نه معلومیږي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د ژوندو او مړو نېولونه رخصت اخستلو. دا دعائے په مسجد نبوي کښې ئے کړے وه او دعائے د منبر د پاسه کړے وه په دے حدیث شریف کښې د بخاري دیته اشاره شویده "چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم منبر ته اوختلو. که چرے دا دعائے د احد میدان کښې کړے وه نو هلته منبر چرته وو چه نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورته تشریف اوړلے وو. ددے باب په وړمبني حدیث کښې دي "چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د احد په شهیدانو د جنازے مونځ نه وو کړے" علماء احناف ددے متعلق دا وائي چه په ټولو شهیدانو ئے خان خان له د جنازے مونځ نه وو کړے. نو راوي هغو د سره د جنازے د مونځ نه په هغوي باندے انکار او کړو حقیقت دا دے چه د شهیدانو شمار زیات وو نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم به د لس لس شهیدانو جنازه کوله نور شهیدان به نهه کسان وړاندے کیخودلے او لسم به حمزه رضي الله عنه وو ځکه چه د حمزه رضي الله عنه درجه مرتبه لویه او اوچته وه نو هر ټولي د نهه کسانو سره به ئے د برکت د پاره حمزه رضي الله عنه شریک کوو د ابو داود شریف په یو روایت کښې دي. د انس رضي الله عنه نه روایت دے چه بغیر د حمزه رضي الله عنه نه د نورو شهیدانو جنازه نه وه شوے. د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد به "شهیدله غسل نشي ورکولے. لیکن په شهید باندے د جنازے مونځ کول واجب دی" د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په شهید جنازه نشته او د امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه په نزد په شهید د جنازے مونځ کول مستحب دي.

## بَاب ۸۵۶: دَفْنِ الرَّجُلَيْنِ وَالثَّلَاثَةِ فِيْ قَبْرٍ.

باب ۸۵۶: یو قبر کښې د دوو یا درے سړو د دفن کولو بیان.

۱۲۵۸: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى اُحُدٍ.

۱۲۵۸: سعید بن سلیمان. لیث. ابن شهاب. عبدالرحمن بن کعب. جابر بن عبدالله نه روایت کوي، د هغه بیان دے چه نبي صلے الله علیه وسلم به د احد په شهیدانو کښې دوه سړي یو قبر کښې جمع کول (یعني دفن کول)

## بَاب ۸۵۷: مَنْ لَّمْ يَرَ غُسْلَ

باب ۸۵۷: د هغے سړي بیان چه د هغه په نزد د

الشُّهَدَآءِ.

شهيدانو غسل ناجائز دے.

۱۲۵۹ : حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ كَعْبٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَدْفِنُوْهُمْ فِيْ دِمَآئِهِمْ يَعْنِيْ يَوْمَ اُحُدٍ وَلَمْ يُغَسِّلْهُمْ.

۱۲۵۹ : ابـو الـولـيـد. ليـث. ابـن شهـاب. عبـدالـرحمن بـن كـعـب. جابـرؓ نـه روايت كوي. نبيؐ او فرمـاليـل چـه هـغـوي (يعـني شهداء) د هغوي وينـے سـره دفـن كـړئـے او حضورؐ د أحد پـه ورخ فرمـائيلے وو چـه دوئ لـه غسل مه وركوئـے.

بـاب ۸۵۸ : مَنْ يُّقَدَّمُ فِي اللَّحْدِ وَسُمِّيَ اللَّحْدُ لِاَنَّهُ فِيْ نَاحِيَةٍ وَّكُلُّ جَآئِرٍ مُّلْحِدٌ مُّلْتَحَدًا اَمْعَدِلًا وَلَوْكَانَ مُسْتَقِيْمًا كَانَ ضَرِيْحًا.

باب ۸۵۸ : لحد كښې وړمبے څوک ايښودل پكار دي. او لحد ورته ځكه وئيلے شي چه يو غاړے ته بيرته وي او هر ظالم ته ملحد وائي. ملتحداً نه مراد دے د لرے كيدو ځائے. او كه قبر نيغ وي نو هغے ته ضريح وائي.

۱۲۶۰ : حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا لَيْثُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى اُحُدٍ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيُّهُمْ اَكْثَرُ اَخْذًا لِّلْقُرْاٰنِ فَاِذَا اُشِيْرَلَهٗ اِلٰى اَحَدِ هِمَا قَدَّمَهٗ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ اَنَا شَهِيْدٌ عَلٰى هٰؤُلَاءِ وَاَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَآئِهِمْ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسِّلْهُمْ وَاَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۲۶۰ : ابن مقاتل. عبدالله. ليث بن سعد. ابـن شهـاب. عبـدالـرحمن بـن كعب بـن مـالک جابـر بـن عبـدالله نه روايت كوي چه رسول الله صلى الله عليـه وسلم بـه د أحد شهيدان دوه سړي پـه يوه كپـړه كښې ايښودل. بيـا بـه ئے فرمـائيل چه دوئ كښې د قرآن علم د چـا زيات دے هر كله چه يو سړي طرف تـه بـه اشاره اوشوه نو هغه بـه ئے لحد كښې وړومبے ايښودلو او حضورؐ او فرمائيل زهٔ پـه دوي گواه يم. هغوي ئے د هغوي وينـے سره د دفن كولو حكم اوكړلو. نـه ئے پرے مونځ اوكهٔ او نه ئے ورلـه غسل وركـه. او اوزاعـي د زهري نـه او هغه د جابـر بـن عبـدالله نه روايت كړے دے چه نبي صلى الله عليه وسلم د أحد د شهيدانو متعلق فرمائيل چه هغوي كښې د قرآن علم د چا زيات دے چه كوم يو تـه بـه اشاره اوشولـه نو هغه بـه ئے لحد كښې د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِقَتْلَى أُحُدٍ أَيُّ هٰؤُلَاءِ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى رَجُلٍ قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ قَبْلَ صَاحِبِهِ وَقَالَ جَابِرٌ فَكُفِّنَ أَبِيْ وَعَمِّيْ فِيْ نَمِرَةٍ وَاحِدَةٍ وَقَالَ سُلَيْمَانُ ابْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنِيْ مَنْ سَمِعَ جَابِرًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

هغه ذ ملګري نه مخکښې ایښودلو. ذ حضرت جابر بیان دے، چه خما پلار ..... او خما تره حضورؐ په یو کمبل کښې کېښودل. او سلیمان بن کثیر اووے، مونږ ته .. زهري بیان اوکه، ما ته هغه سړي اووے، چه هغه ذ حضرت جابرؓ نه آوریدلے دي.

## بَابٌ ۸۵۹: الْإِذْخِرِ وَالْحَشِيْشِ فِي الْقَبْرِ.

## باب ۸۵۹: قبر کښې ذ اذخر یا واښو اچولو بیان.

۱۲۶۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَرَّمَ اللّٰهُ مَكَّةَ فَلَمْ تُحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِيْ وَلَا لِأَحَدٍ بَعْدِيْ أُحِلَّتْ لِيْ سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ لَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا تُلْتَقَطُ لُقَطَتُهَا إِلَّا لِمُعَرِّفٍ فَقَالَ الْعَبَّاسُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ إِلَّا الْإِذْخِرَ لِصَاغَتِنَا وَقُبُورِنَا فَقَالَ إِلَّا الْإِذْخِرَ وَقَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِقُبُورِنَا وَبُيُوتِنَا وَقَالَ أَبَانُ بْنُ صَالِحٍ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۲۶۱: محمد بن عبدالله بن حوشب. عبدالوهاب. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ ذ نبي صلے الله علیه وسلم نه روایت کوي، حضورؐ او فرمائیل، چه الله تعالیٰ مکه حرام ګرځولے ده، خما نه مخکښې چا ذ پاره حلال نه وه، اونه به خما نه ورستو چا ذ پاره حلال وي. خما ذ پاره ذ ورځے یو لږه حصه کښې حلال کړے شوے وه، نهٔ دے ذ دے واښهٔ اوښکلے شي، او نهٔ دِے ذدے اُونے وهلے شي، او نه دِے ذدے ښکار زغلولے شي، اونه به دلته غورځیدلے څیز اوچتولے شي، خو ذ اعلان کونکي ذ پاره جائز دي. عباسؓ اووے، خو اذخر، چه زمونږ ذ زرګرانو ذ پاره او زمونږ ذ قبرونو ذ پاره دے حلال کړے شي نو حضورؐ او فرمائیل، سوا ذ اذخر نه. او ابوهریرهؓ ذ حضور صلے الله علیه وسلم نه روایت اوکړ، زمونږ قبرونو او زمونږ کورونو ذ پاره. او ابان بن صالح په سند ذ حسن بن مسلم. صفیه بنت شیبه ذ نبي صلے الله علیه وسلم نه ذدے په مثل روایت کړے دے. او مجاهد د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لِقَمِيْنِهِمْ وَبُيُوْتِهِمْ.

طاؤس نه هغه ذ ابن عباسؓ نه روايت كړے دے' چه ذ هغوي ذ لوهارانو د پاره او ذ هغوي ذ كوروںو دَ پاره ذ حلال كولو د پاره ئے اووے.

## بَاب ۸۲۰: هَلْ يُخْرَجُ الْمَيِّتُ مِنَ الْقَبْرِ وَاللَّحْدِ لِعِلَّةٍ.

## باب ۸۲۰: آيا مړے ذ څهٔ عذر په سبب ذ قبر يا لحد نه ۱ بهٔكلے كيدے شي.

۱۲۶۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اَتَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ بَعْدَ مَا اُدْخِلَ حُفْرَتَهُ فَاَمَرَ بِهٖ فَاُخْرِجَ فَوَضَعَهُ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ وَنَفَثَ عَلَيْهِ مِنْ رِيْقِهٖ وَاَلْبَسَهُ قَمِيْصَهُ فَاللّٰهُ اَعْلَمُ وَكَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيْصًا قَالَ سُفْيَانُ وَقَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَ وَكَانَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَمِيْصَانِ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلْبِسْ اَبِيْ قَمِيْصَكَ الَّذِيْ يَلِيْ جِلْدَكَ قَالَ سُفْيٰنُ فَيَرَوْنَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ اَلْبَسَ عَبْدَ اللّٰهِ قَمِيْصَهُ مُكَافَاةً لِمَا صَنَعَ.

۱۲۶۲: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. جابر بن عبداللهؓ نه روايت كوي' چه رسول الله صلے الله عليه وسلم ذ عبدالله بن اُبي قبر ته اورسيد نو هغه قبر كښې دفن كړے شوے وو. حضورؐ ذ هغهٔ ذ اوبهٔكلو حكم اوكړلو' نو هغه اوبهٔكلے شو. حضورؐ هغه په خپلو دواړو ګُنډو كيښودلو' او ذ خپلے خولے لاړے ئے ورله خوله كښې واچولے. او خپل قميص ئے ورته واغوستولو. الله زيات پوهيږي' او هغه حضرت عباس ته قميص اغوستولے وو. ذ سفيان بيان دے. ابوهريرهؓ اووے. ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم دوه قميصونه وو' نو حضورؐ ته ذ عبدالله ځوئے عرض اوكړ' چه يا رسول اللهؐ خما پلار ته خپل قميص وركړئے' چه ستاسو په جسم دے. سفيان اووے' ذ خلقو خيال دے چه نبي صلي الله عليه وسلم عبدالله ته خپل قميص په دے بدله كښې واغستولو' چه هغه حضرت عباسؓ سره دغسے كړے وو۱.

۱. نبي كريم صلي الله عليه وسلم دوه قميصه اغوستے وو يو د رسول الله صلي الله عليه وسلم مبارك جسم (بدن) سره پيوست وو او بل قميص د هغے د پاسه وو. د عبدالله بن اُبي خوي چه د هغه نوم هم عبدالله وو صحيح مسلمان او صحابي وو او د خپل پلار سخت مخالف وو ليكن كله ئے چه پلار مړ شو نو د پلار هغه قدرتي (فطري) تعلق او محبت ورباندے زوره ور شو اسلام هم د كافر مور پلار سره د احسان او د ښيكړے مطالبه كوي. يو طرفته عبدالله بن اُبي منافق او كافر وو ليكن د بدر غزا كښې چه حضرت عباس رضي الله عنه چه هغه وخت مسلمان نه وؤ اونيولے شو او قميص ئے په جنګ كښې شليدلے وو خو د

رسول الله صلي الله علیه وسلم ته وو نو عبدالله بن ابي ورله خپل قمیص ورکړے وو خکه چه عباس رضي الله عنه ډیر دنگ لوړ وو. او د بل چا قمیص ورباندے نه پوره کیدو. نو عبدالله بن اُبي سره د دهغے احسان په بدله کښې احسان کول پکار وو. بل طرفته د هغه' د کامل مخلص مؤمن خوي د طرفنه د رسول الله صلي الله علیه وسلم د هغے قمیص چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم مبارک بدن سره د خپل پلار د پاره مطالبه کوله رسول الله صلي الله علیه وسلم ورله هغه قمیص هم ورکړو او خپل مبارک تو کانړي نے د هغه په بدن اولګولے او جنازه نے ورباندے هم اوکړله. حضرت عمر رضي الله عنه رسول الله صلي الله علیه وسلم ته درخاست کړے وو چه جنازه وریاندے مه کوه. لیکن رسول الله صلي الله علیه وسلم او فرمایل چه ماته الله تعالٰي اختیار راکړے دے که استغفار ورله وایم او که نه وایم' رسول الله صلي الله علیه وسلم د احسان په بدله کښې احسان ورسره اوکړو. لیکن بیکاره خبره ده چه د هغه نجات او خلاصے نشته خکه چه د هغه زړه د ایمان نه خالي وو الله تعالٰي اعلان اوکړو "که د منافق د پاره ته بښنانه غواړے یا ورله نه غواړے خلاصے د منافق نشته که رسول الله صلي الله علیه وسلم اویا ځله د منافق د پاره استغفار اوائي بیائے هم خلاصے نشته داسے احسان فراموش بنده چه د خپل رب د توحید او د هغه د انعاماتونه انکار کوي. د هغه د معاف کولو سوال نه پیدا کیږي سفیان راوي وائي چه د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم دا خیال وو چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ورله خپل قمیض خکه واغوستولو چه د هغے احسان بدله ورکړي چه عبدالله بن اُبي خپل قمیص د رسول الله صلي الله علیه وسلم تره عباس رضي الله عنه له ورکړے وو.

۱۲۶۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُبْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمِ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍرَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا حَضَرَ اُحُدٌ دَعَانِيْ اَبِيْ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ مَااُرَانِيْ اِلَّا مَقْتُوْلًا فِيْ اَوَّلِ مَنْ يُقْتَلُ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِنِّيْ لَا اَتْرُكُ بَعْدِيْ اَعَزَّعَلَيَّ مِنْكَ غَيْرَنَفْسِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ عَلَيَّ دَيْنًا فَاقْضِ وَاسْتَوْصِ بِاَخَوٰتِكَ خَيْرًا فَاَصْبَحْنَا فَكَانَ اَوَّلَ قَتِيْلٍ وَّدُفِنَ مَعَهُ اٰخَرُفِيْ قَبْرٍ ثُمَّ لَمْ تَطِبْ نَفْسِيْ اَنْ

۱۲۶۳: مسدد. بشر بن مفضل. حسین معلم. عطاء. جابرؓ نه روایت کوي' دَ اُحد زمانه چه نزدے راغله نو زهٔ خپل پلار دَ شپے راوغوښتلم. اووے وئیل' چه زهٔ خپل ځان دَ نبي صلي الله علیه وسلم په صحابهٔ کښې دَ ټولو نه مخکښې شهید کیدونکے ګنړم. او زهٔ دَ ځان نه پس دَ رسول اللّٰهؐ دَ ذات نه سوا' هیڅ څیز داسے نه پریږدم' چه ستا نه ماته عزیز وي' په ما قرض دے' هغه ادا کړه. او خپلو خویندو سره ښهٔ سلوک کوه. سحر وخت کښې مونږ اولیدل چه دَ ټولو نه مخکښې هم هغه شهید شوے وو. او هغه قبر کښې یو بل سړے دفن کړے شو' او خما طبیعت اونهٔ زغمله' چه هغه زه بل سره پریږدم. شپږ میاشتے پس

اَتْرُكَهُ مَعَ الْاٰخَرِ فَاسْتَخْرَجْتُهُ بَعْدَ سِتَّةِ اَشْهُرٍ فَاِذَا هُوَ كَيَوْمٍ وَضَعْتُهُ هُنَيَّةً غَيْرَ اُذُنِهِ.

ما هغه راوښکلو نو هغه وخت هغه داسې وو، څنګه چه ما دفن کړې وو. سوا د غوږ نه (چه لږ متاثر شوې وو)

۱۲۶۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عَامِرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دُفِنَ مَعَ اَبِيْ رَجُلٌ فَلَمْ تَطِبْ نَفْسِيْ حَتّٰى اَخْرَجْتُهُ فَجَعَلْتُهُ فِيْ قَبْرٍ عَلٰى حِدَةٍ.

۱۲۶۴: علي بن عبدالله. سعيد بن عامر. شعبه. ابن نجيح. عطاء. حضرت جابرؓ نه روایت کوي، هغه اووې خما پلار یو بل سړه سره دفن کړې شو، نو دا خما په طبیعت ښه او نه لګیده، نو ما هغه د هغې ځائې نه راوښکلو او بل قبر کښې م دفن کړلو.

## باب ۸۶۱: اَللَّحْدِ وَالشَّقِّ فِي الْقَبْرِ.

## باب ۸۶۱: قبر کښې د لحد[۱] او شق بیان.

۱. لحد د قبر هغې حصې ته وائي چه قبلې طرفته قبر کښې په دیوال کښې د مړي د پاره ځائې وي مخامخ د قبر کنده خالي وي او شق دیته وائي چه د قبر کنده کښې مړې واچوې او د پاسه پرې د کانړو تختې یا د لرګې تختې واچوي او بیا پرې ښاوره واچوي لحدي قبر زیات غوره دې.

۱۲۶۴ ا: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ بْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى اُحُدٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيُّهُمْ اَكْثَرُ اَخْذًا لِلْقُرْاٰنِ فَاِذَا اُشِيْرَ لَهُ اِلٰى اَحَدِهِمَا قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ فَقَالَ اَنَا شَهِيْدٌ عَلٰى هٰؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَآئِهِمْ وَلَمْ يُغَسِّلْهُمْ.

۱۲۶۴ ا: عبدان. عبدالله. لیث بن سعد. ابن شهاب. عبدالرحمن بن کعب بن مالک. جابر بن عبداللهؓ نه روایت کوي، چه نبي صلی الله علیه وسلم دَ اُحد شهیدان دوه دوه یو ځائې ایښودل. بیا به ئې تپوس کولو، چه دوي کښې دَ قرآن زیات عالم څوک دې، چه یو کس ته به اشاره اوشوه نو هغه به ئې لحد کښې وړمبې ایښودلو. او وې فرمائیل، چه زهٔ به دَ قیامت په ورځ په دوئ ګواه یم، او هغوي ئې دَ هغوئ وینې سره دَ دفن کولو حکم اوکړلو، او هغوي له ئې غسل ورنهٔ کړلو.

۱ . امام بخاري رحمة الله عليه دا ښودل غواړي چه د احد شهيدان به نے دوه دوه په قبر کښې داسې کېښودل چه يو به لحد کښې وو او بل به نے شق کښې کېخودلو .

**باب ۸۶۲: إِذَا أَسْلَمَ الصَّبِيُّ فَمَاتَ هَلْ يُصَلِّي عَلَيْهِ وَهَلْ يُعْرَضُ عَلَى الصَّبِيِّ الْإِسْلَامُ وَقَالَ الْحَسَنُ وَشُرَيْحٌ وَإِبْرَاهِيمُ وَقَتَادَةُ إِذَا أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا فَالْوَلَدُ مَعَ الْمُسْلِمِ وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَكُنْ مَعَ أَبِيهِ عَلَى دِيْنِ قَوْمِهِ وَقَالَ الْإِسْلَامُ يَعْلُوْ وَلَا يُعْلٰى.**

**باب ۸۶۲:** چه بچے اسلام راوړي، او مړ شي نو آيا په هغه به مونځ کولے شي. او آيا بچي ته اسلام پيش کيدے شي، او حسن، شريح، ابراهيم او قتاده او فرمائيل، که دواړو (مور، پلار) کښې يو مسلمان وي، نو هلک به مسلمان سره وي او ابن عباس په خلقو کمزورو کښې خپلے مور سره وو، او خپل پلار سره د خپل قوم په دين نه وو. اووے فرمائيل، چه اسلام غالب وي، مغلوب کيږي نه.

**۱۲۶۵ :** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّ عُمَرَ انْطَلَقَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَهْطٍ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتّٰى وَجَدُوْهُ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ عِنْدَ أُطُمِ بَنِيْ مَغَالَةَ وَقَدْ قَارَبَ ابْنُ صَيَّادٍ الْحُلُمَ فَلَمْ يَشْعُرْ حَتّٰى ضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَالَ لِابْنِ صَيَّادٍ أَتَشْهَدُ أَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَنَظَرَ إِلَيْهِ ابْنُ صَيَّادٍ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ الْأُمِّيِّيْنَ فَقَالَ ابْنُ صَيَّادٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَشْهَدُ أَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَرَفَضَهُ وَقَالَ اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ فَقَالَ لَهُ مَاذَا تَرٰى قَالَ ابْنُ

**۱۲۶۵ :** عبدان. عبدالله. يونس. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي: چه عمرؓ نبي صلے الله عليه وسلم سره ابن صياد طرف ته لاړلو، څه نور خلق هم ورسره وو. هغے خلقو ابن صياد ذ بني مغاله په ډهيرو بچو سره په لوبو کولو اوليدو. ابن صياد ځوانئے ته قريب وو. ابن صياد ته ذ حضورؐ ذ راتلو پته اونهٔ لږيده ترڅے چه حضورؐ خپل لاس په هغهٔ اووهلو. بيائے ابن صياد ته او فرمائيل، آيا تهٔ ګواهي کوے، چه زهٔ ذ الله رسول يم. حضورؐ طرف ته ابن صياد اوکتل، او، وے وئيل، زهٔ ګواهي کوم، چه تاسو د اميانو رسول نے، نو حضورؐ ورته اووے چه آيا ته ګواهي کوے چه زهٔ ذ الله رسول يم نو حضورؐ هغه پريښودلو او وے فرمائيل ما په الله او ذ هغه په رسول ايمان راوړلو. بيا حضورؐ هغهٔ ته او فرمائيل، تهٔ څه وينے، ابن صياد اووے. ما ته ريښتنے او دروغجن راځي. نبيّ

صَيَّادٍ يَأْتِينِي كَاذِبٌ وَصَادِقٌ فَقَالَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُلِطَ
عَلَيْكَ الْأَمْرُ ثُمَّ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي قَدْ خَبَأْتُ لَكَ
خَبِيئًا فَقَالَ ابْنُ صَيَّادٍ هُوَ الدُّخُّ فَقَالَ
اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ فَقَالَ عُمَرُ
رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دَعْنِي يَارَسُولَ اللّٰهِ
أَضْرِبْ عُنُقَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ يَكُنْهُ فَلَنْ تُسَلَّطَ
عَلَيْهِ فَإِنْ لَمْ يَكُنْهُ فَلَا خَيْرَ لَكَ فِي
قَتْلِهِ. وَقَالَ سَالِمٌ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ
رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُولُ انْطَلَقَ بَعْدَ ذٰلِكَ
رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ إِلَى النَّخْلِ الَّتِي فِيهَا
ابْنُ صَيَّادٍ وَهُوَ يَخْتِلُ أَنْ يَسْمَعَ مِنِ
ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ ابْنُ
صَيَّادٍ فَرَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَهُوَ مُضْطَجِعٌ يَعْنِي فِي
قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا رَمْزَةٌ أَوْ زَمْرَةٌ فَرَأَتْ أُمُّ
ابْنِ صَيَّادٍ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ
النَّخْلِ فَقَالَتْ لِابْنِ صَيَّادٍ يَا صَافِ
وَهُوَ اسْمُ ابْنِ صَيَّادٍ هٰذَا مُحَمَّدٌ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ وَقَالَ
شُعَيْبٌ فِي حَدِيثِهِ فَرَفَصَهُ رَمْرَمَةٌ
أَوْ زَمْزَمَةٌ وَقَالَ عُقَيْلٌ رَمْرَمَةٌ وَقَالَ

ورته او فرمائیله په تا امر مشتبه کړے شو. بیا
هغه ته حضورؐ او فرمائیل ما یوه خبره په زړه
کښې پټه کړے ده. نو ته او وایه چه هغه څه خبره ده.
ابن صیاد اووے هغه دخ (دخان. لوګے) دے.
حضورؐ ورته او فرمائیل ته ذلیل او خوار شے ته د
خپل حد نه نه شے مخکښې کیدے. عمرؓ عرض وکړ
یا رسول اللّٰه، ما ته اجازت راکړئ چه زه دده
څټ په توره اووهم. نبي صلے اللّٰه علیه وسلم ورته
او فرمائیل که دا هغه دجال وي نو ته په ده قدرت
نشے بیامندے او که هغه نه وي نو دده په قتلولو
کښې هیڅ خیر نشته. سالم بیان او کړ ما د ابن
عمرؓ نه واوریدل چه دے نه پس نبي صلے اللّٰه علیه
وسلم او ابي بن کعب هغے اُونے له ورغلل کوم
ځائے چه ابن صیاد وو، حضورؐ دا خیال کولو چه
ابن صیاد نه قبل د دے نه چه هغه حضورؐ اووینی
څه واوري. نبي صلے اللّٰه علیه وسلم اولیدلو داسے
حال کښې چه هغه ملاست وو، یعني څادر کښې
پروت وو او د هغه نه څه آواز راتلو د ابن صیاد
مور رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اولیدلو
حالانکه حضورؐ د اُونو خوا کښې راتلو. هغے ابن صیاد
ته اووے. اے صاف (چه د ابن صیاد نوم وو) دا
محمد صلے اللّٰه علیه وسلم راروان دے، ابن
صیاد کیناست، نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلم
او فرمائیل که هغے دے پریښے وے نو معامله
به څرګنده شوے وه. او شعیب خپل حدیث کښې
فرفضه رمرمة یا رمزة الفاظ روایت کړے دي. او

مَعْمَرٌ زَمْزَةٌ. عقیل زمزمة او معمر زمرة روایت کړے دی

۱. د نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مبارک زمانه کښې ابن صياد د يو يهودي خوی وو د هغه څه عجيبه نااشنا حالات وو تفصيل ئے وړاندے راځي. چه کله نبي کريم صلي الله عليه وسلم د هغه په حقله واوريده نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم د هغه حالات په خپله ستر ګو ليدل غوښتل چه کله نبي کريم صلي الله عليه وسلم په داسے طريقه ابن صياد ته نږدے اورسيدو چه هغه اوبه نه ليدلو مورئے نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوليدو خپل خوئ ئے خبر کړو. نبي کريم صلي الله عليه وسلم د ابن صياد حالات معلومول غوښتل خو مور ئے اويريده چه معلومه نده ددوي څه اراده ده. هغه مور ئے ددينه ډيره ويريده چه څرته نبي کريم صلي الله عليه وسلم نزدے ورشي. ابن صياد بالغ کيدو ته نزدے هلک وو د عربو د کاهنانو پشان به ئے ګلوے وړے خبرے کولے ابن صياد فطرتي کاهن وو ابن خلدون د فطرتي کهانت قائل وو چه هغې فطرتي کاهن ته د څه تعليم تربيت ضرورت نه وي دے حديث شريف کښې دي چه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ابن صياد ته اسلام وړاندے کړو د سر ليک سره ئے دغه مناسبت دے.

۱۲۶۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ وَهُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ غُلَامٌ يَّهُوْدِيٌّ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَرِضَ فَاَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُهٗ فَقَعَدَ عِنْدَ رَاْسِهٖ فَقَالَ لَهٗ اَسْلِمْ فَنَظَرَ اِلٰى اَبِيْهِ وَهُوَ عِنْدَهٗ فَقَالَ لَهٗ اَطِعْ اَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَسْلَمَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقُوْلُ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَنْقَذَهٗ مِنَ النَّارِ.

۱۲۶۶: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت کوي چه ذ يو يهودي خوي به د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم خدمت کولو. هغه ناروغه شو نو نبي صلے اللّٰه عليه وسلم ذ هغه تپوس ذ پاره تشريف يوړلو. حضورؐ د هغه سرته کيناستلو وے فرمائيل چه اسلام راوړه. هغه خپل پلار طرف ته اوکتل چه هغه سره خوا کښې ولاړ وو نو هغه خپل خوئ ته اووے ذ ابوالقاسم خبره اومنه هغه اسلام راوړلو. بيا نبي صلے اللّٰه عليه وسلم دے وينا سره بهر اووتلو. ذ اللّٰه شکر دے چه هغه دے ذ اور نه خلاص کړلو.

۱۲۶۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ كُنْتُ اَنَا وَاُمِّيْ مِنَ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ اَنَا مِنَ الْوِلْدَانِ وَاُمِّيْ

۱۲۶۷: علي بن عبداللّٰه. سفيان. عبيداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي ابن عباسؓ فرمائي زه او خما مور د کمزورو نه وو. زه بچو کښې او خما مور ښځو کښې کمزورے

مِنَ النِّسَآءِ.

وه.

۱۲۶۸ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ يُصَلِّيْ عَلٰى كُلِّ مَوْلُوْدٍ مُتَوَفًّى وَإِنْ كَانَ لِغَيَّةٍ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ وُلِدَ عَلٰى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ يَدَّعِيْ أَبَوَاهُ الْإِسْلَامَ أَوْ أَبُوْهُ خَاصَّةً وَإِنْ كَانَتْ أُمُّهُ عَلٰى غَيْرِ الْإِسْلَامِ إِذَا اسْتَهَلَّ صَارِخًا صُلِّيَ عَلَيْهِ وَلَا يُصَلِّيْ عَلٰى مَنْ لَّا يَسْتَهِلُّ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ سَقَطَ فَإِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يُحَدِّثُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَامِنْ مَّوْلُوْدٍ إِلَّا يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ أَوْيُنَصِّرَانِهِ أَوْ يُمَجِّسَانِهِ كَمَا تُنْتَجُ الْبَهِيْمَةُ بَهِيْمَةً جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّوْنَ فِيْهَا مِنْ جَدْعَآءَ ثُمَّ يَقُوْلُ أَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِطْرَةَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا الْآيَةَ.

۱۲۶۸ : ابو اليمان. شعيب. ابن شهاب وائي' چه هر وفات شوے بچي باندے مونځ پکار دے' اګر که هغه ذ زنا کارے نه وي' ځکه چه بچے ذ اسلام په فطرت پيدا کيږي. ذ هغهٔ مور پلار يا صرف د هغهٔ پلار که ذ اسلام..... دعوىٰ او کړي' او که ذ هغه مور په اسلام نهٔ وي' او هغه په چغه اوژاړي نو په هغه به مونځ کولے شي' او کوم بچے چه په چغه او نهٔ ژاړي. نو په هغه دے مونځ نهٔ کيږي ځکه چه هغه ساقط شولو. ذ حضرت ابوهريرهؓ بيان دے' نبي صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' هر بچے په اسلامي فطرت پيدا کيږي' بيا ذ هغهٔ مور پلار هغه يهودي' نصراني يا مجوسي جوړوي' ځنګه چه ځناور نه بچے پيدا کيږي' آيا تاسو هغے کښې څهٔ پريکړے اندام وينئے. بيا ابوهريرهؓ دا آيت آخره پورے تلاوت که: ذ اللّٰه تعالىٰ فطرت هغه دے' چه په هغے ئے خلق پيدا کړل.

۱۲۶۹ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَاهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَّوْلُوْدٍ إِلَّا يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ أَوْيُنَصِّرَانِهِ أَوْيُمَجِّسَانِهِ كَمَا تُنْتَجُ الْبَهِيْمَةُ بَهِيْمَةً هَلْ تُحِسُّوْنَ

۱۲۶۹ : عبدان عبداللّٰه. يونس. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' ذ هغه بيان دے' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' هر بچے په فطرت پيدا کيږي' بيا ذ هغه مور پلار' هغه يهودي نصراني يا مجوسي جوړ کړي' ځنګه چه ځناور نه بچے پيدا کيږي' آيا تاسو وينئے' چه ذ هغهٔ څه اندام دِے پريکړے وي.

فِيْهَا مِنْ جَدْعَآءَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِطْرَةَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ.

بيا حضرت ابو هريره دا آيت تلاوت كړه د الله تعالى فطرت همغه دے چه په هغې بخلق پيدا كړل د الله پيدا ښت كښې تبديلي نشته هم دا سم (صحيح) دين دے

باب ٨٦٣: اِذَا قَالَ الْمُشْرِكُ عِنْدَ الْمَوْتِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

باب ٨٦٣: هر كله چه مشرك د مرګ په وخت لا اله الا الله اووائي.

١٢٧٠: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ لَمَّا حَضَرَتْ اَبَاطَالِبٍ الْوَفَاةُ جَآءَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ عِنْدَهُ اَبَاجَهْلِ بْنَ هِشَامٍ وَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ اَبِيْ اُمَيَّةَ ابْنِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَالِبٍ يَاعَمِّ قُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ كَلِمَةً اَشْهَدُ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَقَالَ اَبُوْجَهْلٍ وَّعَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اُمَيَّةَ يَااَبَا طَالِبٍ اَتَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْرِضُهَا عَلَيْهِ وَ يَعُوْدَانِ بِتِلْكَ الْمَقَالَةِ حَتّٰى قَالَ اَبُوْ طَالِبٍ اٰخِرَ مَا كَلَّمَهُمْ هُوَ عَلٰى مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَاَبٰى اَنْ يَّقُوْلَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَاوَ اللّٰهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَالَمْ اُنْهَ عَنْكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى فِيْهِ

١٢٧٠: اسحاق يعقوب بن ابراهيم ابراهيم. صالح. ابن شهاب. سعيد بن مسيب د خپل پلار نه روايت كوي چه د ابو طالب د مرګ وخت نزدے شو نو رسول الله صلے الله عليه وسلم هغه له تشريف يوړلو. هغه سره ئے ابو جهل بن هشام. عبدالله بن ابي اميه بن مغيره اوليدل رسول الله صلے الله عليه وسلم ابوطالب ته اووے اے خما تره (اے كاكا جي) تاسو لا اله الا الله اووائے زه به الله سره ددے كلمے شهادت اوكړم. ابوجهل او عبدالله بن اميه اووے. اے ابوطالبه، آيا ته د عبدالمطلب د دين نه آوړے. رسول الله صلے الله عليه وسلم به د ابوطالب مخكښې دا كلمه پيش كوله او هغوي دواړو به هم هغه خبره بيا بيا كوله تر دے چه ابوطالب خپله كومه آخري خبره اوكړه هغه داوه چه زه د عبد المطلب په دين يم او لا اله الا الله وئيلو نه ئے انكار اوكړ. رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل په خدائے چه زه به ستا د پاره د ښښنے دُعا كوم ځو پورے چه د دے نه منع نه كړے شم. نو الله تعالى دا آيت: مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ آخره پورے نازل

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ الْاٰيَةَ.

کړلو.

بَاب ۸۶۴: الْجَرِيْدِ عَلَى الْقَبْرِ وَاَوْصَى بُرَيْدَةُ الْاَسْلَمِيُّ اَنْ يَجْعَلَ فِيْ قَبْرِهِ جَرِيْدَانِ وَرَآى ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فُسْطَاطًا عَلٰى قَبْرِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ انْزِعْهُ يَا غُلَامُ فَاِنَّمَا يُظِلُّهُ عَمَلُهُ وَقَالَ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدٍ رَاَيْتُنِيْ شُبَّانٌ فِيْ زَمَنِ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَاِنَّ اَشَدَّنَا وَثْبَةً الَّذِيْ يَثِبُ قَبْرَ عُثْمَانَ ابْنَ مَظْعُوْنٍ حَتّٰى يُجَاوِزَهُ وَقَالَ عُثْمَانُ ابْنُ حَكِيْمٍ اَخَذَ بِيَدَيَّ خَارِجَةُ فَاَجْلَسَنِيْ عَلٰى قَبْرٍ وَّاَخْبَرَنِيْ عَنْ عَمِّهٖ يَزِيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ اَنَّمَا كَرِهَ ذٰلِكَ لِمَنْ اَحْدَثَ عَلَيْهِ وَقَالَ نَافِعٌ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَجْلِسُ عَلَى الْقُبُوْرِ.

باب ۸۶۴: په قبر د ښاخ لګولو بيان. بريده اسلمي وصيت اوکړ، چه د هغه په قبر دې دوه لختې ښخ کړے شي. او ابن عمرؓ د عبدالرحمن په قبر خيمه اوليده نو، وے ونيل، اے هلکه، دا لرے کړه ځکه چه د هغه عمل به پرے سورے کوي. او خارجه بن زيد اووے، چه ما ځپل ځان داسے حال کښې اوليد، چه ځوان ووم، د حضرت عثمان په زمانه کښې، او مونږ کښې به زيات تيوپ وهونکے هغه ګڼړلے شو، چه د عثمان بن مظعون قبر نه تيوپ اووهي، تر دے چه د هغے نه وړاندے شي عثمان بن حکيم اووے، چه خارجه بن زيد ځما لاس اونيولو، او زه ئے په قبر کينولم. او ماته ئے د ځپل تره يزيد بن ثابت په واسطه اوونيل چه هغه دا د هغے چا د پاره مکروه اوګنړل، چه وربانديے اودس ماتے کوي. او نافع اووے، چه ابن عمرؓ به په قبرونو۔ کيناستلو.

۱. د قبر د پاسه کيناستل مکروهه دي. او د پاسه پرے قدم اخستل هم ښه کار نه دے ددے دواړو روايتونو مناسب تاويل پکار دے. چه قبر د يو ليشت نه زيات اوچت جوړول مکروهه دي. د يو ليشت قبر نه په پلن والي (عرض) کښې تيوپ وهل څه قابل تعريف خبره نه ده البته که په اوږد والي (طول) کښې د يو ليشت قبر نه تيوپ اوهي نو بيا څه د بهادرۍ خبره جوړيږي اګر چه هغه هم څه ښه خبره نده د خارجه بن زيد رضي الله عنه بيان داسے ښاني چه ځوانانو به تيوپ وهلو کښې د يو بل سره مقابله کوله. او زيات بهادر به هغه وو چه د عثمان بن مظعون رضي الله عنه د اوږد قبر نه به ئے په اوږدوالي تيوپ اووهلو. داسے د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په حقله د اويلے شي چه هغه به د قبر د پاسه نه کيناستلو بلکے ډډه به ئے وهله او راوي په غلط فهمۍ سره ترے د پاسه کيناستل اخستے دي. اسلام کښې د مړي د ادب او عزت خيال ساتل ضروري دي نو داسے کار ندے پکار چه د قبر بے عزتي اوشي. ددے حديث شريف په سر ليک کښې دي. چه نبي کريم صلي الله عليه وسلم د قبر د پاسه شنه تازه لختہ کيخودله چه د هغے لختے د اوچيدو پورے عذاب د مړي سپک شي ددے وجه دا هم کيدے شي چه د څانګے په کيخودلو سره عذاب نه کميږي. بلکے د رسول الله صلي الله عليه وسلم دعا سره عذاب کم شوي وي. او رسول الله صلي الله عليه وسلم

سره دا وعده شوې وي چه د ښاخ اوچيدو پورې به عذاب په مړي کم وي . په در مختار (فتاوی شامي) کښې دي چه په قبر اونه (درخت) لګول مستحب دي . او ګلونه وړاندې اچول ناکاره دي سپاه او نامعقول حرکت دے .

۱۲۷۱ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اَبُوْمُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ مَرَّ بِقَبْرَيْنِ يُعَذَّبَانِ فَقَالَ اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ اَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ لَايَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَاَمَّا الْاٰخَرُ فَكَانَ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ اَخَذَ جَرِيْدَةً رَطْبَةً فَشَقَّهَا بِنِصْفَيْنِ ثُمَّ غَرَزَ فِيْ كُلِّ قَبْرٍ وَّاحِدَةً قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا فَقَالَ لَعَلَّهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْهُمَا مَالَمْ يَيْبَسَا .

۱۲۷۱ : يحيى . ابو معاويه . اعمش . مجاهد . طاوس . ابن عباس د نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي . حضور د دوو قبرونو خوا کښې تير شولو . چه په هغوي عذاب کيدلو . حضور او فرمائيل : په دے دواړو عذاب کيږي او په څه لويه خبره په دوي عذاب نه کيږي . بلکه يو به د وړو بولو نه ځان نه بچ کولو . او بل به چغلي خوړله . بيائے يو لوند ښاخ واخستو . هغه ئے دوه ټکړے کړ . او په هر قبر ئے يوه ټکړه ښخه کړه . خلقو اووے : يارسول الله ، تاسو داسے د څه مصلحت په بنا اوکړل . حضور ورته او فرمائيل . شايد چه ددوي په عذاب کښې څه کمے راشي . څو پورے چه دا اوچه نشي .

باب ۸۲۵ : مَوْعِظَةَ الْمُحَدِّثِ عِنْدَ الْقَبْرِ وَقُعُوْدِ اَصْحَابِهٖ حَوْلَهٗ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ الْاَجْدَاثُ الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ اُثِيْرَتْ بَعْثَرْتُ حَوْضِيْ اَيْ جَعَلْتُ اَسْفَلَهٗ اَعْلَاهُ الْاِيْفَاضُ الْاِسْرَاعُ وَ قَرَأَ الْاَعْمَشُ اِلٰى نَصْبٍ اِلٰى شَيْءٍ مَّنْصُوْبٍ يَسْتَبِقُوْنَ اِلَيْهِ وَالنُّصْبُ وَاحِدٌ وَّالنَّصْبُ مَصْدَرٌ يَّوْمَ الْخُرُوْجِ مِنَ الْقُبُوْرِ يَنْسِلُوْنَ يَخْرُجُوْنَ .

باب ۸۲۵ : قبر سره د محدث نصيحت کول او د ملګرو د هغه نه څلور طرف ته کيناستل د يخرجون من الاجداث : معنى دي : هغوي به د خپلو قبرونو نه راوخي . بُعْثِرَتْ معنى دي : راپورته کړے شي او بَعْثَرْتُ حوضي معنى دي : ما د هغے لاندے حصه پورته کړه . ايفاض تيز زغليدل او اعمش الي نصب ونيلے دي ، يعني يو اوچت څيز طرف ته رسيدو کښې به سبقت کوي . نصب واحد دے او نصب مصدر دے . او ينسلون معنى راوخي به .

۱۲۷۲: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا فِيْ جَنَازَةٍ فِيْ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ فَاَتَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ وَقَعَدْنَا حَوْلَهُ وَمَعَهُ مِخْصَرَةٌ فَنَكَّسَ فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِمِخْصَرَتِهِ ثُمَّ قَالَ مَامِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ مَا مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوْسَةٍ اِلَّا كُتِبَ مَكَانُهَا مِنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ وَ اِلَّا قَدْ كُتِبَ شَقِيَّةً اَوْسَعِيْدَةً فَقَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ عَلٰى كِتَابِنَا وَنَدَعُ الْعَمَلَ فَمَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ اَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيَصِيْرُ اِلٰى عَمَلِ اَهْلِ السَّعَادَةِ وَاَمَّا مَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ اَهْلِ الشَّقَاوَةِ فَسَيَصِيْرُ اِلٰى عَمَلِ اَهْلِ الشَّقَاوَةِ قَالَ اَمَّا اَهْلُ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُوْنَ بِعَمَلِ السَّعَادَةِ وَاَمَّا اَهْلُ الشَّقَاوَةِ فَيُيَسَّرُوْنَ لِعَمَلِ الشَّقَاوَةِ ثُمَّ قَرَاَ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى اَلْاٰيَةَ.

۱۲۷۲: عثمان. جرير. منصور. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمن. حضرت علي كرم الله وجهه نه روايت كوي، چه مونږ بقيع غرقد كښې يو جنازه كښې شريک شو. نبي صلے الله عليه وسلم مونږ پله تشريف راوړلو، او كيناستلو، نو مونږ هم د حضورؐ نه چار چاپيره كيناستلو. او حضورؐ سره يو لخته وه، هغه ئے په زمكه وهل شروع كړل، او، وے فرمائيل، تاسو كښې هر جاندار ډ پاره د هغۀ ځائے جنت يا دوزخ ليكلے دے، او نيک بخت يا بدبخت كيدل ليكلے شوے دي. نو يو سړي اووے يا رسول الله، مونږ دے په خپل ليک تكيه اونۀ كړو او عمل دے پريږدو. مونږ كښې چه څوک دَ اهل سعادت نه وي، هغه به دَ اهل سعادت كار كوي او څوک چه بدبختو كښې وي، هغه به دَ بدبختو عمل طرف ته ځي. حضورؐ او فرمائيل نيک بختو خلقو ته به دَ نيک بختي عمل آسان كړے شي او بدبخت خلقو ته به دَ بدبختئ عمل آسان كړے شي. بيا حضورؐ دا آيت: فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى، آخره پورے تلاوت كړلو.

## باب ۸٦٦: مَا جَآءَ فِيْ قَتْلِ النَّفْسِ.

## بــاب ۸٦٦: دَ خودكشي كونكي بيان.

۱۲۷۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَاكِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ غَيْرِ

۱۲۷۳: مسدد. يزيد بن زريع. خالد ابو قلابه. ثابت بن ضحاک. نبي صلے الله عليه سلّم نه روايت كوي، حضورؐ او فرمائيل چا چه دَ اسلام نه علاوه دَ يو بل ملت قسم په دروغه او قصداً اوخوړلو، نو هغه داسے دے، ځنګه چه هغۀ اووے؛ او چا

الْاِسْلَامِ كَاذِبًا مُتَعَمِّدًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهٗ بِحَدِيْدَةٍ عُذِّبَ بِهٖ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ وَقَالَ الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا جُنْدُبٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ فَمَا نَسِيْنَا وَمَا نَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبَ جُنْدَبٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ بِرَجُلٍ جِرَاحٌ قَتَلَ نَفْسَهٗ فَقَالَ اللّٰهُ بَدَرَنِيْ عَبْدِيْ بِنَفْسِهٖ حَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ.

چه خپل ځان ځنـه اوسپنـې سره قتل کړو نو د جهنم په اُور کښې به هغې اوسپنې سره عذاب ورکيږي. حجاج بن منهال په واسطه د جرير بن حازم. حسن جندبؓ نه دې جمات کښې بيان اوکړ، چه نه مونږ نه هيره شوه، او نه مونږ ته خوف دې، چه کښې جندب به ذ نبي صلى اللّٰه عليه وسلم نه په دروغ روايت کوي. يو سړي چه زخمي وو، هغه خپل ځان قتل کړ، نو اللّٰه تعالى او فرمائيل، زما بنده خپل ځان په خپله ورکړلو (يعني هلاک کړلو) په دې وجه ما جنت په هغهٔ حرام کړلو.

۱. ددې صورت دادې چه مثلا څوک اووائي که زما فلانې کار اونشو نو زهٔ به يهودي يا عيسائي يم اوس که د دغه بنده دغه کار اونشي نو کافر به شي. او که هغه کار اوشو نو کافر به نه وي ليکن د هغې قسم خرابي باقي ده.

۱۲۷۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَّذِيْ يَخْنُقُ نَفْسَهٗ يَخْنُقُهَا فِي النَّارِ وَالَّذِيْ يَطْعَنُهَا يَطْعَنُهَا فِي النَّارِ.

۱۲۷۴: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. ابوهريرهؓ روايت کوي، نبي صلى اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل څوک چه ځان غاړه تاوژلو سره مړ کړي، هغه به جهنم کښې غاړه تاوولو (تا وهلو) سره وژني، او څوک چه نيزه ټومبلو سره ځان وژني، هغه به جهنم کښې ځان په نيزه وهي.

**ف:** دې کښې ځان په ټوپک تماچه ويشتل هم داخل دي. او څوک چه داسې کتابونه ليکي چه هغې کښې ذ خودکشي ترغيب ورکوي، نو هغه دې هم خپل انجام هم دغسې اوګڼړي نصاب تعليم کښې داسې کتابونه، نه دي داخلول پکار، چه هغې سره ذ طالبعلمانو توجه خودکشي ته لاړه شي. ځکه چه دا يو خلاف شريعت حرکت دې. (خودکشي خپل ځان وژل)

## بَاب ۸۶۷: مَا يُكْرَهُ مِنَ الصَّلٰوةِ عَلَى الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْاِسْتِغْفَارِ لِلْمُشْرِكِيْنَ رَوَاهُ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ

باب۸۶۷: منافقانو باندې مونځ کول او ذ مشرکانو د پاره ذ بښنې دعا غوښتلو د کراهت بيان. ابن عمرؓ دا ذ نبي

عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۲۷۵ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَالَ لَمَّا مَاتَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ أُبَيِّ بْنِ سَلُوْلَ دُعِيَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ عَلَيْهِ فَلَمَّا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُمْتُ اِلَيْهِ فَقُلْتُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ أَتُصَلِّيْ عَلٰى ابْنِ أُبَيٍّ وَقَدْ قَالَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا أُعَدِّدُ عَلَيْهِ قَوْلَهُ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ أَخِّرْ عَنِّيْ يَاعُمَرُ فَلَمَّا أَكْثَرْتُ عَلَيْهِ قَالَ اِنِّيْ خُيِّرْتُ فَاخْتَرْتُ لَوْ أَعْلَمُ أَنِّيْ اِنْ زِدْتُّ عَلَى السَّبْعِيْنَ فَغُفِرَلَهُ لَزِدْتُّ عَلَيْهَا قَالَ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَلَمْ يَمْكُثْ اِلَّا يَسِيْرًا حَتّٰى نَزَلَتِ الْاٰيَتَانِ مِنْ بَرَاءَةٍ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى أَحَدٍ مِّنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا اِلٰى وَهُمْ فَاسِقُوْنَ قَالَ فَعَجِبْتُ بَعْدُ مِنْ جُرْأَتِيْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ وَاللّٰهُ

صلي الله عليه وسلم نه روايت كړے دے.

۱۲۷۵ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. ابن عباسؓ. عمر بن خطابؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه عبدالله بن أبي بن سلول مړشو، نو هغه د پاره رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خواست اوكړے شو، چه په هغه (د جنازے) مونځ اوكړه. څۀ وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اودريدلو، نو زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم. او ورته م اووئيل، يا رسول الله، آيا تاسو به په عبدالله بن أبي مونځ كوئے. حالانكه هغه په فلانے فلانے ورځ دا شان او فلانے فلانے خبرے كړے وے. او ما د هغه خبرے په شمار كړے. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم مسكے شولو. او وے فرمائيل. ما نه وروستو شه عُمره، هر كله چه ما زيات سوال اوكۀ. نو حضورؐ او فرمائيل. ماته اختيار راكړے شو. نو ما اختيار كړلو. كه زۀ پوهيدے چه زۀ دۀ د پاره د اويا خلو نه زيات د ښښنے دعا اوكړم. او دے به او ښښلے شي. نو ما به يقينا ددے نه زياته كوله. نو نبي صلي الله عليه وسلم په هغۀ مونځ اوكړلو. بيا واپس شولو. او لږ ساعت لانه وو تير شوے. چه د سورة براة دوه آيتونه نازل شو: وَلَا تُصَلِّ عَلٰى أَحَدٍ نه وهم فاسقون پورے عمرؓ اووے. په هغه ورځ چه ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم په مخكښې كوم جرات اوكۀ. په هغے ما ته تعجب اوشو. الله او د هغۀ رسول ښه

وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ.

پوهيږي.

## باب ۸۶۸: ثَنَاءِ النَّاسِ عَلَى الْمَيِّتِ.

## باب ۸۶۸: په مړي د خلقو د تعريف كولو بيان.

۱۲۷۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ مَرُّوْا بِجَنَازَةٍ فَاَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَبَتْ ثُمَّ مَرُّوْا بِاُخْرٰى فَاَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا فَقَالَ وَجَبَتْ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَا وَجَبَتْ قَالَ هٰذَا اَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ خَيْرًا فَوَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَهٰذَا اَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ شَرًّا فَوَجَبَتْ لَهُ النَّارُ اَنْتُمْ شُهَدَآءُ اللّٰهِ عَلَى الْاَرْضِ.

۱۲۷۶: ادم. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالک نه روايت كوي چه خلق په يو جنازه تيرشو نو د هغه ذكر خيرئے اوكه نبي صلي اللّه عليه وسلم او فرمائيل واجب شو. بيا په يوے بلے جنازے تير شو د هغه ئے په خرابه طريقه ذكر اوكه نو حضورؐ او فرمائيل واجب شو. عمر بن خطابؓ عرض اوكه څه څيز واجب شو. حضورؐ او فرمائيل د كوم سړي چه تاسو تعريف اوكه هغه د پاره جنت واجب شولو. او د چا چه مو په بده طريقه نوم واخستلو هغه د پاره جهنم واجب شولو. تاسو خلق په زمكه د اللّه گواه ئے.

۱۲۷۷: حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا دَاوٗدُ بْنُ اَبِى الْفُرَاتِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ اَبِى الْاَسْوَدِ قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ وَقَدْ وَقَعَ بِهَا مَرَضٌ فَجَلَسْتُ اِلٰى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَمَرَّتْ بِهِمْ جَنَازَةٌ فَاُثْنِيَ عَلٰى صَاحِبِهَا خَيْرًا فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَجَبَتْ ثُمَّ مَرَّ بِاُخْرٰى فَاُثْنِيَ عَلٰى صَاحِبِهَا خَيْرًا فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَجَبَتْ ثُمَّ مَرَّ بِالثَّالِثَةِ فَاُثْنِيَ عَلٰى صَاحِبِهَا شَرًّا

۱۲۷۷: عفان بن مسلم. داود بن ابي الفرات. عبداللّه بن بريده. ابوالاسود نه روايت كوي، چه زه مدينے له راغلم او هلته يوه بيماري پيدا شوے وه. زه عمر بن خطابؓ سره ناست ووم. د هغه خوا كښې يوه جنازه تيره شوه نو د هغے جنازے والا تعريف اوكړے شو. عمرؓ او فرمائيل. واجب شو. بيا يوه دويمه جنازه تيره شوه د هغے هم تعريف اوكړے شو نو وے فرمائيل واجب شو بيا يوه دريمه جنازه تيره شوه نو د هغه بدي بيان كړے شوه عمرؓ اووے واجب شو. ابوالاسود اووے. ما تپوس اوكه يا امير المومنين څه څيز واجب شولو. نو وے ونيل ما هغه اووے، څه چه نبي صلي اللّه

فَقَالَ وَجَبَتْ فَقَالَ اَبُوالْاَسْوَدِ فَقُلْتُ مَاوَجَبَتْ يَااَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ قُلْتُ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا مُسْلِمٌ شَهِدَ لَهٗ اَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ فَقُلْنَا وَثَلَاثَةٌ قَالَ وَثَلَاثَةٌ فَقُلْنَا وَاثْنَانِ قَالَ وَاثْنَانِ ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ.

عليه وسلم فرمائيلي دي چه ذ كوم مسلمان ذ پاره خلور مسلمانان ښهٔ گواهي ورکړي. اللّٰه به هغه جنت کښ داخل کړي. مونږ اووې او، درې، نو حضورﷺ او فرمائيل، درې هم، مونږ اووې، او دوه، نو حضورﷺ او فرمائيل، دوه هم. بيا مونږ ذ يو متعلق تپوس اونهٔ کړلو.

## باب ٨٦٩: مَا جَآءَ فِيْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُوْا اَيْدِيْهِمْ اَخْرِجُوْآ اَنْفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ هُوَالْهَوَانُ وَالْهُوْنُ الرِّفْقُ وَقَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ سَنُعَذِّبُهُمْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ وَقَوْلُهٗ تَعَالٰى: وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْءُ الْعَذَابِ اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا وَّ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ اَدْخِلُوْا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ.

**باب ٨٦٩:** دَ قبر دَ عذاب په حقله چه كوم حديثونه نقل دي. او دَ اللّٰه تعالي قول، چه كوم وخت ظالمان دَ مرگ په سختو کښ وي او فريښتو به خپل لاسونه غزولے وي. نو هغوي ته به اووئيلے شي چه خپل خانونونه (ساه) راوکاږئے. نن به تاسو ته دَ رسوائي عذاب درکولے شي. هوان وهون دَ رفق معني کښ دي، او دَ اللّٰه تعالي قول چه مونږ به دوي له دوباره عذاب ورکوو، بيا به لوئے عذاب طرف ته اوکرخولے شي. او دَ اللّٰه تعالي قول چه ال فرعون باندے به سخت عذاب کيږي. سحر ماښام د اُور مخکښ پيش کولے شي، اوپه کومه ورخ چه قيامت شي، نو اوبه وئيلے شي، چه ال فرعون سخت ترين عذاب کښ داخل کړئے[١].

١. ددے آيتونونه معلوميږي چه بے عمله او كافر مرے د قيامت نه وړاندے په عذاب كښ گيريږي اوكله چه قيامت شي بيا به ورله سخت عذاب وركولے شي د قيامت نه وړاندے عذاب سخت نه دے خرنگ چه سخت عذاب به قيامت كښ وركولے شي. امام بخاري رحمة اللّٰه عليه د قيامت نه وړاندے عذاب ته د قبر عذاب وائي علماء د قبر دنيا ته عالم برزخ وائي. د قيامت نه وړاندے چه مړے كوم خائے كښ وخت تيروي نو هغه عالم برزخ دے كه څوك نيك وي نو په عالم برزخ كښ هم په آرام كښ اوسيږي كه څوك ناكاره وي نو هغه ته په عالم برزخ كښ هم عذاب وركولے شي بيا قيامت كښ د ټولو فيصلے كيږي څوك به جنت ته خي څوك به د وزخ ته خي.

**١٢٧٨:** حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ

**١٢٧٨:** حفص بن عمرو. شعبه. علقمه

عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنُ مَرْثَدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقْعِدَ الْمُؤْمِنُ فِي قَبْرِهِ أُتِيَ ثُمَّ شَهِدَ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللّٰهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ.

بن مرثد. سعد بن عباده. براء بن عازب نبي صلے اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي. حضورؐ او فرمائيل. کوم وخت چه مؤمن خپل قبر کښې کينولې شي نو هغه ته يوه فرښته ليږلې شي، بيا هغه ګواهي ورکوي چه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ هم داده ذ اللّٰه تعالىٰ هغه وينا: يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ.

۱۲۷۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْرَاهِيْمَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ صَالِحٍ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ قَالَ اطَّلَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى أَهْلِ الْقَلِيْبِ فَقَالَ وَجَدْتُّمْ مَّاوَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا فَقِيْلَ لَهُ تَدْعُوْا أَمْوَاتًا فَقَالَ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ مِنْهُمْ وَلٰكِنْ لَّا يُجِيْبُوْنَ.

۱۲۷۹: علي بن عبداللّٰه. يعقوب بن ابراهيم. ابراهيم. صالح. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم کوهي (کنوئيں) کښې او کتل (چه هغې کښې ذ بدر قتل شوي مشرکان پراته وو) حضورؐ او فرمائيل، آيا تاسو تيک تيک هغه څۀ بيامندل، چه ستاسو رب تاسو سره وعده کړې وه. حضورؐ ته اووئيلې شو، آيا تاسو مړو سره خبرې کونې. حضورؐ ورته او فرمائيل، تاسو ذ دوئ نه زيات نه آورئ. ليکن دوئ جواب نه کوي.

۱۲۸۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ بِهٰذَا وَزَادَ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا نَزَلَتْ فِيْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

۱۲۸۰: محمد بن بشار. غندر. شعبه دا حديث روايت کۀ، او دې زياتې سره، چه يثبت اللّٰه الّذين اٰمنوا ذ قبر ذ عذاب متعلق نازل شوې دې.

۱۲۸۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ إِنَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۲۸۱: عبداللّٰه بن محمد. سفيان. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل البته هغوي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُمْ لَيَعْلَمُوْنَ الْاٰنَ اَنَّ مَاكُنْتُ اَقُوْلُ حَقٌّ وَّقَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّكَ لَاتُسْمِعُ الْمَوْتٰى.

به اوس پوهه شي چه څه ما ونيل حق دي. او الله تعالى او فرمائيل چه ته مړوته نه شې آوروليَ ا

ا ددې نه وړاندې چه كوم روايت د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما تير شويدې عائشه رضي الله عنهما د هغې ترديد كوي. د عائشې بي بي رضي الله عنها مقصد دا دې چه قرآن مجيد په خپله فيصله كړېده چه مړي د ژوندو خبرې نه اوري.

انك لا تسمع الموتى بې شكه ته مړو ته نشې اوروليَ اوره ول د الله تعالي كار دې.

د رسول الله صلي الله عليه وسلم د بدر په موقعه د ارشاد فرمايلو مطلب دا دې چه ما دوي ته ددوي د ژوند په وخت كښ د الله تعالي د لارې دعوت وركړې وو ليكن دوي ترې انكار كړې وو او خه نې دروغ ګنړلې وم. اوس دوي ته معلومه شوه چه خما خبره رښتيا او صحيح وه. ليكن د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د روايت په مقابله كښ د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنهما روايت د امت عالمان نه مني. خكه چه د قرآن مجيد د آيت مطلب دادې چه مړي په هر حال كښ د ژوندو خبرې نه اوري ليكن چه كله د الله تعالي رضا وي نو مړي د ژوندو خبرې اوري. د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا روايت په ډيرو ګنړو طريقو سره روايت شويدې د ټولو رواياتو دا يو مطلب دې چه كومې خبرې رسول الله صلي الله عليه وسلم د بدر مړو مشركانوته كړې وې نو د الله تعالي په حكم هغوي د رسول الله صلي الله عليه وسلم آواز اوريدلې وو ددې وجې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم چه دا مړي به اوريدلو كښ ستاسو نه كم ندي عالم برزخ ددې دنيا نه يوه جدا دنيا ده. څرنګ چه قيامت د آخرت عالم دې نو د يو دنيا بنده د بلې دنيا بنديانو ته پيغام څرنګ وركولې شي ليكن د الله تعالي د قدرت نه لرې نده پدې وجه د حضرت عائشې بي بي رضي الله عنها اجتهاد پدې مسئله كښ د اُمت عالمانو ندې ګنړلې.

۱۲۸۶ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ سَمِعْتُ الْاَشْعَثَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَاۤئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ يَهُوْدِيَّةً دَخَلَتْ عَلَيْهَا فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ فَقَالَتْ لَهَا اَعَاذَكِ اللّٰهُ عَذَابَ الْقَبْرِ فَسَاَلَتْ عَائِشَةُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ نَعَمْ عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَمَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ

۱۲۸۶ : عبدان. ابوعبدان. شعبه. اشعث د خپل پلار نه، هغه د مسروق نه او مسروق ذ بي بي عائشې نه روايت كوي. هغه وائي، يوه يهودنړه ښنخه ماله راغله. او د قبر ذ عذاب ذكرئې اوكڼ او راته ئې اووې، الله دې ذ قبر د عذاب نه اوساته، نو بي بي عائشې ذ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ذ قبر ذ عذاب متعلق تپوس اوكه. حضورّ ورته او فرمائيل، او، قبر كښ عذاب كيږي. بي بي عائشې اووې. دې نه پس چه مونږ به رسول الله صلى الله عليه وسلم كوم مونخ كښ ليدلو، نو هغې كښ به ئې د قبر ذ عذاب نه پناه غوښتله. (يا الله،

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلٰوةً اِلَّا تَعَوَّذَمِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

مونږ د قبر د عذاب نه په آمان کړے. اللّٰهم آمين.

۱۲۸۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ سَمِعَ اَسْمَاءَ بِنْتَ اَبِيْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا تَقُوْلُ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطِيْبًا فَذَكَرَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ الَّتِيْ يَفْتَتِنُ فِيْهَا الْمَرْءُ فَلَمَّا ذَكَرَ ذٰلِكَ ضَجَّ الْمُسْلِمُوْنَ ضَجَّةً زَادَ غُنْدَرٌ عَذَابَ الْقَبْرِ.

۱۲۸۳ : يحيي بن سليمان. ابن وهب يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير. اسماء بنت ابوبكرؓ نه روايت كوي' هغه وائي' رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم خطبے ورکولو د پاره اودريدلو. نو د قبر د فتنے ذکر ئے اوکړ' چه هغے کښې د مړګ نه پس سړے آخته کيږي. کوم وخت چه حضورؐ د هغے ذکر اوکړ نو مسلمانان په چغو اُجړل. غندر د قبر د عذاب د زياتے الفاظ بيان کړل.

۱۲۸۴ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ حَدَّثَهُمْ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْعَبْدَ اِذَاوُضِعَ فِيْ قَبْرِهٖ وَتَوَلّٰى عَنْهُ اَصْحَابُهٗ وَاِنَّهٗ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ اَتَاهُ مَلَكَانِ فَيُقْعِدَانِهٖ فَيَقُوْلَانِ مَا كُنْتَ تَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الرَّجُلِ لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ فَيَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنَّهٗ عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ فَيُقَالُ لَهٗ اُنْظُرْ اِلٰى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ قَدْ اَبْدَلَكَ اللّٰهُ بِهٖ مَقْعَدًا مِّنَ الْجَنَّةِ فَيَرَاهُمَا جَمِيْعًا: قَالَ وَقَتَادَةُ وَذُكِرَ اَنَّهٗ

۱۲۸۴ : عياش بن وليد. عبدالاعلے. سعيد. قتاده. انس بن مالک نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' کله چه بنده خپل قبر کښې کينولے شي' او د هغه ملګري د هغه نه رخصت شي' او هغه د هغوي د پنړو آواز آوري. نو هغه له دوه فريښتے راشي' هغه کينوي' او ورته وائي چه تابه د دے سړي (محمد صلے اللّٰه عليه وسلم) متعلق څه وئيل' مؤمن خو به دا جواب ورکوي' چه زهٔ ګواهي کوم' چه دے د اللّٰه بنده او رسول دے نو هغه ته به اووئيلے شي' چه خپل خائے جهنم ته اوګوره' اللّٰه د هغے بدله کښې تاله جنت درکړلو. هغه سړے دا دواړه ځيزونه ويني. قتاده اووے او مونږ ته ئے ذکر اوکه' چه د هغه قبر کښې کشادګي پيدا کړے شي. بيا د انس حديث

يُفْسَحُ لَهُ فِيْ قَبْرِهِ رَجَعَ إِلَى حَدِيْثِ أَنَسٍ قَالَ: وَأَمَّا الْمُنَافِقُ وَالْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ مَا كُنْتَ تَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الرَّجُلِ فَيَقُوْلُ لَا أَدْرِيْ كُنْتُ أَقُوْلُ مَا يَقُوْلُ النَّاسُ فَيُقَالُ لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ وَيُضْرَبُ بِمَطَارِقَ مِنْ حَدِيْدٍ ضَرْبَةً فَيَصِيْحُ صَيْحَةً يَّسْمَعُ مَنْ يَّلِيْهِ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ.

طرف ته نیے رجوع وکړه. او منافق یا کافرته ونیلے شي، تا به دَ دے سړي متعلق څهٔ ونیل، نو هغه به وائي، ماته نهٔ ده معلومه، ما به هغه ونیلے، چه څه به خلقو ونیلے، نو هغه ته به ونیلے شي، تانهٔ دَ عقل نه اونهٔ دَ نقل نه دَ پوهیدلو کوشش اوکه. او دَ اوسپنے ستمکونو سره به هغه وهلے شي. نو هغه داسے چغے وهي، چه سوا دَ اِنس او جن نه نور ټول خیزونه چه دَ هغه قریب وي، دَ هغهٔ چغے آوري.

**باب ٨٧٠: التَّعَوُّذِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.**

**باب ٨٧٠:** دَ قبر دَ عذاب دَ پناه غوښتلو بیان.

**١٢٨٥ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْنُ بْنُ أَبِيْ جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ وَجَبَتِ الشَّمْسُ فَسَمِعَ صَوْتًا فَقَالَ يَهُوْدُ تُعَذَّبُ فِيْ قَبْرِهَا وَقَالَ النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَوْنٌ سَمِعْتُ أَبِيْ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ عَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**١٢٨٥ :** محمد بن مثني. یحیٰي. شعبه عون بن ابي حجیفه. ابو حجیفه. براء بن عازب. ابو ایوبؓ نه روایت کوي، نبي صلی الله علیه وسلم راووتلو، داسے حال کښ، چه نمر پریوتلے وو. حضورؐ یو آواز واوریدلو، او وے فرمائیل، چه یهود خپل قبرونو کښ په عذابیږي. او نضر اووے، چه مونږ ته شعبه. هغه د عون نه روایت اوکه، عون د خپل پلار نه، هغه دَ براء نه او براء د ابو ایوب نه او هغه دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت اوکه.

**١٢٨٦ :** حَدَّثَنَا مُعَلًّى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَتْنِي ابْنَةُ خَالِدِ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

**١٢٨٦ :** معلي. وهیب. موسي بن عقبه. بنت خالد بنت سعید بن عاصؓ نه روایت کوي، بنت خالد اووے، ما دَ نبي صلی الله علیه وسلم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَعَوَّذُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

نـه ذ قبـر ذ عـذاب نـه پنـاه غـوښتـل واوريدل.

۱۲۸۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْا اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ.

۱۲۸۷: مسلم بن ابراهيم. هشام. يحيي. ابوسلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دا ذعا غوښتله چه، اې اللّٰه زهٔ تانه ذ قبر ذ عذاب، ذ اُور ذ عذاب، ذ ژوند او مرگ ذ فتنې او ذ مسيح دجال ذ فتنې نه پناه غوارم.

باب ۸۷۱: عَذَابِ الْقَبْرِ مِنَ الْغِيْبَةِ وَالْبَوْلِ.

باب ۸۷۱: غيبت او ورو بولو سره ذ قبر ذ عذاب كيدو بيان.

۱۲۸۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاؤُسٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرَيْنِ فَقَالَ اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ مِنْ كَبِيْرٍ ثُمَّ قَالَ بَلٰى اَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ يَسْعٰى بِالنَّمِيْمَةِ وَاَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهٖ قَالَ ثُمَّ اَخَذَ عُوْدًا رَطْبًا فَكَسَرَهُ بِاثْنَتَيْنِ ثُمَّ غَرَزَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلٰى قَبْرٍ ثُمَّ قَالَ لَعَلَّهُ يُخَفِّفُ عَنْهُمَا مَالَمْ يَيْبَسَا.

۱۲۸۸: قتيبه. جرير. اعمش. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت كوي نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دوه قبرونو سره تير شولو او، وې فرمائيل، چه دې دواړو قبرونو والو باندې عذاب كيږي، او ذ څه لوئې كار په وجه په دوي عذاب نهٔ كيږي. بيائې او فرمائيل هاؤ لوئې كار وو دوئ كښې به يو چُغلي خوړله او دويم ذ ورو بولو نه ځان نه بچ كولو. بيا حضورؐ يو لوند ښاخ واخستلو، هغه ئې دوه ټكړې كه. او يوه يوه ټكړه ئې په يَو يو قبر ښخه كړه. بيائې او فرمائيل شايد چه ذدې دواړو په عذاب كښې كمې اوشي څو پورې چه دا دواړه لختې اوچې شوې نهٔ وي.

باب ۸۷۲: اَلْمَيِّتُ يُعْرَضُ عَلَيْهِ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ.

باب ۸۷۲: په مړي ذ سحر مابنام په وخت ذ پيش كولو بيان.

١٢٩٠ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَحَدَ كُمْ اِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهٗ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ اِنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَيُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰى يَبْعَثَكَ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

١٢٩٠ : اسماعيل. مالک. نافع. عبدالله بن عمر نه روايت کوي: رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل: کله چه تاسو کښې څوک مړ شي نو سحر ماښام د هغه مخکښې د هغه ځائے پيش کولے شي که هغه د جنتيانو نه وي، او که هغه د دوزخيانو نه وي، هغه ته ونيلے شي: چه دا ستا ځائے دے: تر دے چه الله تعالي د قيامت په ورځ تا راپورته کړي.

## باب ٨٧٣: كَلَامِ الْمَيِّتِ عَلَى الْجَنَازَةِ.

## باب ٨٧٣: په جنازه د مړي د خبرو کولو بيان.

١٢٩٠ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلٰى اَعْنَاقِهِمْ فَاِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ قَدِّمُوْنِيْ وَاِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ يَاوَيْلَهَا اَيْنَ يَذْهَبُوْنَ بِهَا يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ اِلَّا الْاِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَهَا الْاِنْسَانُ لَصَعِقَ.

١٢٩٠ : قتيبه. ليث. سعيد بن ابي سعيد. ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي: رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل: کله چه جنازه تياره شي او خلق ئے په اوږو اوچته کړي: که هغه نيک عمله وي: نو وائي: ما زر اوړئے، ما زر اوړئے. او که نيک عمله نه وي، نو وائي، افسوس، تاسو ما کوم خوا اوړئے. د انسان نه سوا نور ټول څيزونه د هغه آواز آوري، که هغه انسان واوري، نو بيهوشه به شي.

## باب ٨٧٤: مَا قَالَ فِيْ اَوْلَادِ الْمُسْلِمِيْنَ قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ لَهٗ ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ كَانَ لَهٗ حِجَابًا مِّنَ النَّارِ اَوْدَخَلَ الْجَنَّةَ.

## باب ٨٧٤: د مسلمانانو د اولاد په حقله چه کوم روايتونه نقل دي. ابوهريرهؓ د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت او کړ، چه د چا درے نابالغه بچي مړه شي، نو هغه د هغه د پاره د دوزخ د اُور نه حجاب (پرده) شي. يا دائے او فرمائيل، چه هغه به جنت کښې داخل شي.

۱۲۹۱ : حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ النَّاسِ مُسْلِمٌ لَهُ ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ إِلَّا أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمْ.

۱۲۹۱ : يعقوب بن ابراهيم، ابن عليه، عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالک نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: د کوم مسلمان چه درے نابالغه بچي مړۀ شي، نو اللّٰه تعالٰي به هغه په خپلو بچو ډيرے زياتے مهربانـي په سبب او د خپل رحمت په باعث جنت کښې داخل کړي.

۱۲۹۲ : حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ سَمِعَ الْبَرَآءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ.

۱۲۹۲ : ابوالوليد. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي: چه ابراهيم (د حضورؐ خوئے) وفات شو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه جنت کښې هغه د پاره يوه پئے ورکونکي (داني) ده.

الحمدللّٰه و الشکر للّٰه پنځمه پاره ختمه شوه